# فتح الهداية

پښتو شرح

# هداية

د اول ځل لپاره په آسانه معیاري پښتو
د هدایې یوه جامع شرحه



ژباړه او ترتیب

مولوی حبیب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربیه

صداقت کتبخانه
کندهار

وَاللّٰهُ يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

## پښتو شرح

# هدايه

### د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو
### د هدايې يوه جامع شرحه

د حديثونو تخريج

د متن بشپړ اعراب

صرفي تحقيق

د لغاتو حل


پر فقهي او ضروري معلوماتو
مشتمله يوه جامع مقدمه

دوهم ټوک

تعيين د قول راجح

د هرې جملې تر خنګ ژباړه

د عنواناتو اضافه

صورت د مسئلې

باب الإستسقاء - مسائل منثورة


ژباړه او ترتيب:

مولوی حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربية

بسم الله الرحمن الرحیم



## د کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| ❁ د کتاب نوم | : فتح الهدایه پښتو شرح هدایه |
| ❁ ژباړه او ترتیب | : مولوي حبیب الرحمن مدني |
| ❁ تصحیح کوونکی | :مولوي جمالدین |
| ❁ خپرندوی | : صداقت کتب خانه/ کندهار |
| ❁ کمپوز/ ډیزاین | : صداقت د کتاب چاپولو اداره |
| ❁ د چاپ کال | : ۱۳۹۵ ل./ ۱٤۳۷ هـ.ق. / ۲۰۱٦ م. |
| ❁ چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |

د تر لاسه کولو ځای:

**صداقت کتب خانه**

کندهار – افغانستان

تلیفون: ۰۷۰۰۳۰۵٤۰۷

ایمیل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرس

## بَابُ مَا يُوجِبُ الْقَضَاءَ وَالْكَفَّارَةَ ........ ۲۵۵

## فَصْلٌ فِيْ أَعْذَارِ الْإِفْطَارِ ........ ۲۸۴

# بَابُ الْإِسْتِسْقَاءِ

## (دا) باب د استسقاء (د احکامو په بيان کې) دی

**تشريح:** مخکې تر دې مصنف د صلاة الکسوف مسئلې بيان کړې، او اوس له دې ځايه د استسقاء مسئلې بيانوي، د دواړو په مينځ کې د مناسبت وجه دا ده چې په دواړو کې د خلکو زيات شمېر را جمع کېږي، خو څرنګه چې د کسوف لمونځ يعني د لمر د ترنځې لمونځ په جماعت سره اداء کېږي، او د ټولو په نېز د لمر او د سپوږمۍ د ترنځې لپاره لمونځ سته، نو ځکه يې د کسوف مسئلې تر باب الإستسقاء مخکې بيان کړې، ځکه چې د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز په استسقاء کې لمونځ نشته، همدا وجه ده چې صاحب د هدايې په عنوان کې د صلاة لفظ ذکر نه کړی، بلکې فقط بابُ الاستسقاء يې ذکر کړی.

استسقاء د استفعال له باب څخه مصدر دی، معنیٰ يې ده: د اوبو طلب کول، د باران خواست کول، او په اصطلاح کې دې ته ويل کېږي چې د وچکالۍ او باران ته د سخت ضرورت په وجه خلک په يوه ميدان کې را جمع سي، او د لوی څښتن ﷻ څخه د باران خواست وکړي.

### د استسقاء د لمانځه لپاره د جماعت حکم

| |
|---|
| قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: لَيْسَ فِي الْإِسْتِسْقَاءِ صَلَاةٌ مَسْنُونَةٌ فِي جَمَاعَةٍ امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په استسقاء کې په جماعت سره سنت لمونځ نشته فَإِنْ صَلَّى النَّاسُ وُحْدَانًا جَازَ او که خلک يوازې لمونځ وکړي نو جائز دي وَإِنَّمَا الْإِسْتِسْقَاءُ الدُّعَاءُ وَالْإِسْتِغْفَارُ او استسقاء فقط دعاء او استغفار ته ويل کېږي لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي فَقُلْتُ: اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا، الْآيَةَ (نوح، ۱۰) [د آيت ژباړه] نو ما ويل: "له خپل پروردګار څخه مغفرت وغواړئ بې شکه هغه زيات بخښونکی دی" وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ❶ اِسْتَسْقَى او نبي ﷺ (هم) استسقاء کړې ده وَلَمْ تُرْوَ عَنْهُ الصَّلَاةُ (خو) له هغه څخه لمونځ روايت سوی نه دی. |

**اللغات:** ﴿وُحْدَانٌ﴾ جمع ده پر وزن د فُعْلَان، واحد يې وَاحِدٌ دی: يوازې، تنها. ﴿اِسْتِسْقَاءٌ﴾ د استفعال مصدر دی: د اوبو غوښتنه کول. ﴿وَلَمْ تُرْوَ﴾ د ضرب له باب څخه د جحد مجهول واحده مؤنثه غائبه صيغه ده.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د استسقاء لپاره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د جماعت لمونځ سنت نه دی، بلکې استسقاء صرف دعاء او استغفار ته ويل کېږي، هو! که خلک يوازې لمونځ وکړي، نو څه حرج نشته، لېکن په استسقاء کې اصل دا دی چې هغه فقط دعاء او استغفار ته ويل کېږي، او پر دې خبره دليل دا دی چې الله تعالیٰ په دې آيت

---

❶ تخريج: اخرجه البيهقي في كتاب صلوة الاستسقاء، باب الاستسقاء بغير صلاة، حديث رقم: ۶۲۳۳.

استغفروا ربكم... الخ سره دا ښکاره کړې ده چې د استسقاء لپاره د لمانځه ضرورت نسته، بلکې صرف په دعاء او استغفار سره هم کار کيږي، همدا وجه ده چې له نبي ﷺ څخه د استسقاء لپاره فقط دعاء او استغفار را نقل سوی دی، لکه څرنګه چې علامه ابن الهمام په فتح القدير کي دا حديث بيان کړی دی: أن رجلا دخل المسجد ورسول الله ﷺ قائما يخطب فقال يا رسول الله! هلكت الأموال وانقطعت السبل فادع الله يغثنا. فقال: اللهم أغثنا اللهم أغثنا (يعني نبي ﷺ په خپل مسجد کي [د جمعې] خطبه ويله، چې يو سړی راغلی او ويې ويل: اې د الله رسوله! (زموږ) مالونه برباد سول، [تولي] لاري بندي سوې، تاسو الله ﷻ ته دعاء وکړئ چې پر موږ باران وکړي، نو نبي ﷺ د اللهم أغثنا په الفاظو سره دعاء وکړه)، صاحب دبنايې د ابن عباس په حواله سره هم دغسې حديث رانقل کړی دی، او په هغه کي هم د لمانځه ذکر نسته، نو معلومه سوه چې په استسقاء کي به صرف استغفار او دعاء وي، او لمونځ به سنت نه وي. ابنايه ج۲، ص۱۱۷۵.

## د استسقاء د لمانځه په باره کي د صاحبينو رايه

وَقَالَا: يُصَلِّي الْإِمَامُ رَكْعَتَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې امام به (په استسقاء کي) دوه رکعته لمونځ کوي لِمَا رُوِيَ څکه روايت سوی دی أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1] صَلَّى فِيهِ رَكْعَتَيْنِ كَصَلَاةِ الْعِيدِ چې نبي ﷺ په استسقاء کي دا ختر د لمانځه په ډول دوه رکعته لمونځ وکړی رَوَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ دا حديث ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روايت کړی دی قُلْنَا: فَعَلَهُ مَرَّةً وَتَرَكَهُ أُخْرَى موږ وايو: چې نبي ﷺ يو وار لمونځ کړی دي او بل وار يې پرې ايښی دي فَلَمْ يَكُنْ سُنَّةً نو څکه به سنت نه وي وَقَدْ ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ قَوْلُ مُحَمَّدٍ وَحْدَهُ او په مبسوط کي دامام محمد رَحِمَهُ الله قول يوازي بيان سوی دی.

**تشريح:** په استسقاء کي د صاحبينو مذهب دا دی چې امام به خلکو ته دوه رکعته لمونځ ورکوي، همدا قول د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله دی، د دې حضراتو دليل د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قول دی: خرج رسول الله ﷺ مبتذلا متواضعا متضرعا حتى اتى المصلى فلم يخطب خطبتكم هذه ولكن لم يزل في الدعاء والتضرع والتكبير وصلى ركعتين كما يصلي في العيد. (رواه اصحاب السنن). (يعني رسول الله ﷺ په ډېره عاجزي سره را ووتی عيدګاه ته ولاړی، لېکن نبي ﷺ خطبه وونه ويله، او مسلسل په دعاء او ژړا مشغوله وو او بيا يې دوه رکعته لمونځ وکړی، لکه څرنګه چې په اختر کي لمونځ کيږي)، بل روايت د عبد الله بن زيد بن عاصم دی: أن رسول الله ﷺ خرج بالناس يستسقي بهم فصلى بهم ركعتين وحول رداءه ورفع يديه فدعا واستسقى واستقبل القبلة. متفق عليه. (يعني رسول الله ﷺ خلک د استسقاء لپاره روان کړل، بيا يې هغوی ته دوه رکعته لمونځ ورکړی او خپل پټو (څادر) يې واړوی، او دواړه لاسونه يې پورته کړل، دعاء يې وکړه، او استسقاء يې وکړه، او مخ پر قبله سو)، له دې دواړو روايتونو څخه د استسقاء لپاره لمونځ ثابتيږي.

**جواب:** زموږ له طرفه جواب دا دی چې نبي ﷺ په استسقاء کي يو وخت لمونځ کړی دی او بل وخت يې پرې ايښی دی، لهذا له دې څخه د استسقاء د لمانځه جواز ثابتيږي، لېکن سنتوالي يې نه ثابتيږي، او ښکاره ده چې له جواز څخه موږ هم انکار نه کوو، بلکې خبره د استسقاء د لمانځه په سنتوالي او نه سنتوالي کي ده، او سنت هغه دي چې پر هغه نبي ﷺ همېشتوب کړی وي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداود في كتاب صلوة الاستسقاء، باب جماع ابواب صلوة الاستسقاء، حديث رقم: ۱۱۶۵.

وقد ذکر الخ صاحب د هدايې فرمايي چي په استسقاء کي د لمانځه د سنتوالی قول فقط د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دی، ځکه په مبسوط کي فقط د امام محمد رَحِمَهُ الله قول ذکر سوی دی، لهذا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی، لېکن په قول د صاحب د بنايې صحيح دا ده چي امام محمد او امام ابو يوسف دواړه سره يو ځای دي.

## د استسقاء په لمانځه کي د جهري قرائت حکم او د خطبې حکم

وَيَجْهَرُ فِيهِمَا بِالْقِرَاءَةِ او د استسقاء د لمانځه په دواړو رکعتونو کي به په لوړ آواز سره قرائت کوي اِعْتِبَارًا بِصَلَاةِ الْعِيْدِ د اختر پر لمانځه باندي په قياسولو سره ثُمَّ يَخْطُبُ بيا به خطبه وايي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● خَطَبَ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ خطبه ورېله ثُمَّ هِيَ كَخُطْبَةِ الْعِيْدِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ بيا د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا خطبه د اختر د خطبې په ډول ده (يعني دوې خطبې دي) وَعِنْدَ● أَبِي يُوسُفَ خُطْبَةٌ وَاحِدَةٌ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز يوه خطبه ده وَلَا خُطْبَةَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خطبه نسته لِأَنَّهَا تَبَعٌ لِلْجَمَاعَةِ ځکه چي خطبه د جماعت تابع وي وَلَا جَمَاعَةَ عِنْدَهُ او د امام صاحب په نېز (په استسقاء کي) جماعت سته نه.

**تشريح**: صاحبين رَحِمَهُمَا الله وايي چي د اختر د لمانځه په ډول به د استسقاء د لمانځه په دواړو رکعتونو کي قرائت بالجهر کېږي، بيا به خطبه ويل کېږي، ځکه چي له نبي ﷺ خطبه ثابته ده، خو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به د اختر په ډول دوې خطبې ويل کېږي، او د دواړو په مېنځ کي به په ناستي سره فصل کېږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به يوه خطبه ويل کېږي، لېکن د امام صاحب په نېز خطبه نسته، ځکه چي خطبه هغه وخت ويل کېږي چي لمونځ په جماعت وسي، يعني خطبه د لمانځه تابع ده، او د امام صاحب په نېز د استسقاء لپاره لمونځ نسته، نو ځکه به خطبه هم نه وي.

## د استسقاء تر لمانځه وروسته د سنت عملونو بيان

وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ بِالدُّعَاءِ او امام به په دعاء کي د قبلې و طرف ته مخ کوي لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● اِسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ د قبلې و طرف ته مخ کړی او خپل پټو (څادر) يې واړوی وَيُقَلِّبُ رِدَاءَهُ او امام به (هم) خپل پټو اړوي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي (اوس) موږ روايت کړی قَالَ: وَهٰذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ فرمايي: چي دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی أَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ فَلَا يُقَلِّبُ رِدَاءَهُ لېکن د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز به امام خپل پټو نه اړوي لِأَنَّهُ دُعَاءٌ ځکه چي دا دعاء ده فَيُعْتَبَرُ بِسَائِرِ الْأَدْعِيَةِ لهذا دا به پر نورو دعاګانو قياسېږي وَمَا رَوَاهُ كَانَ تَفَاؤُلًا او د امام محمد رَحِمَهُ الله په روايت سوي حديث کي (د پټو اړول) د ښکمرغۍ لپاره وو

---

● تخريج: اخرجه ابوداؤد فی كتاب إقامة الصلوة، باب ما جاء فی صلوة الاستسقاء، حديث رقم: ۱۲۶۸.

● القول الراجح: قول أبی يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام: وعند أبی يوسف خطبة واحدة ولا صريح فی المرويات يوافق قول محمد رَحِمَهُ الله أنها خطبتان، فتح القدير ج:۲، ص:۶۰ . [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۵۵]

● تخريج: اخرجه مسلم فی كتاب صلوة الإستسقاء، حديث رقم: ۸۹۴ / ۲۰۷۱.

وَلَا يَقْلِبُ الْقَوْمُ أَرْدِيَتَهُمْ او خلک به خپل پټوان نه اړوي لِأَنَّهُ لَمْ يُنْقَلْ أَنَّهُ أَمَرَهُمْ بِذٰلِكَ ځکه دا نه دي را نقل سوي چي نبي ﷺ دي صحابه وو ته د دې حکم کړی وي وَلَا يَحْضُرُ أَهْلُ الذِّمَّةِ الْاِسْتِسْقَاءَ او ذميان به استسقاء ته نه راځي (يعنې ذميان به استسقاء ته نه راوستل کيږي) لِأَنَّهُ لِاسْتِنْزَالِ الرَّحْمَةِ ځکه چي استسقاء د رحمت د را نازلولو د غوښتني لپاره کيږي وَإِنَّمَا تَنْزِلُ عَلَيْهِمُ اللَّعْنَةُ او پر کافرانو خو لعنت نازليږي (نو ځکه به هغوی استسقاء ته نه راوستل کيږي).

**اللغات**: ﴿يَسْتَقْبِلُ﴾ د استفعال د باب مضارع ده: مخ پر قبله کېدل، ﴿حَوَّلَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: اړول، ګرځول، ﴿يُقْلِبُ﴾ ګرځول، ﴿رِدَاء﴾ پټو، څادر، ﴿تَفَاؤُل﴾ د تفاعل مصدر دی: نېکمرغي، نېک فالي، فال کتنه، طالع کتنه ﴿أَرْدِيَة﴾ جمع د رِدَاءٌ ده: پټو، څادر، ﴿أَهْلُ الذِّمَّةِ﴾ ذميان، په اسلامي هيواد کي هغه استوګن کفار چي اسلامي حکومت ته ټيکس ورکوي، ﴿اِسْتِنْزَال﴾ د استفعال مصدر دی: د را نازلولو طلب کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي کله د استسقاء په لمانځه کي امام دعاء کوي، نو مخ پر قبله دي سي، او دعاء دي وکړي، او د دعاء پر وخت دي خپل پټو واړوي، ځکه چي له نبي ﷺ څخه هم داسي ثابت دي، صاحب د عنايې ليکلي دي چي د پټو په اړولو کي څه تفصيل سته، او هغه دا چي که پټو څلور کونجه وو، نو د هغه لاندي حصه دي پورته کړی سي، او پورتنۍ حصه دي يې لاندي کړی سي، او که پټو مدوّر يعني ګول وو، نو چپه حصه دي يې راسته طرف ته او راسته حصه دي يې چپه طرف ته وګرځول سي.

قال هذا الخ فرمايي چي د پټو اړول د امام محمد په نېز دي، او دا د ائمه ثلاثه وو مسلک هم دی. (بنايه)، لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د پټو اړول نسته، ځکه چي دا د دعاء ځای دی، نو پر نورو دعاګانو به قياسيږي، او په نورو دعاګانو کي د پټو اړول نسته، نو د استسقاء په دعاء کي به هم د پټو اړول نه وي.

و ما رواه كان الخ او امام محمد رَحِمَهُ الله چي د پټو اړولو په باره کي کوم روايت ذکر کړی دی، هغه پر تفاؤل او نېک فالۍ باندي مبني دی، ځکه چي نبي ﷺ ته د وحي په ذريعه سره پر آسمان باندي د وريځي د راتللو علم وسو، نو ځکه نبي ﷺ د خلکو د حالت پر بدلېدلو باندي د نېک فالۍ په توګه پټو واړوی، (د حالت بدلېدلو مطلب دا چي د خلکو حالت به له وچکالۍ څخه په آبادۍ بدل سي).

ولا يقلب القوم الخ فرمايي چي امام خو دي پټو واړوي، لېکن مقتديان دي دا کار نه کوي، ځکه خلکو ته نبي ﷺ دا حکم نه وو کړی چي تاسو هم پټوان واړوئ.

ولا يحضر أهل الذمة الخ فرمايي چي ذميان دي د استسقاء په لمانځه او دعاء کي ګډون نه کوي، ځکه چي استسقاء د رحمت او د باران د را نازلېدلو دعاء ده، او کفار او ذميان د رحمت مستحق نه دي، بلکي د لعنت مستحق دي، او هر وخت پر دوی لعنت وريږي، په خپله قرآن کريم د دوی دعاء بېکاره او كالعدم ګرځولې ده: وما دعاء الكافرين إلا في ضلال، نو ځکه به کفار استسقاء ته نه راځي، او نه به راوستل کيږي.



# بَابُ صَلَاةِ الْخَوْفِ

## (دا) باب د بيرې د لمانځه (په بيان کي) دی

**تشریح:** د باب الاستسقاء او د باب صلاة الخوف په مینځ کي مناسبت دا دی چي دواړه د عارض په وجه سره مشروع سوي دي، لیکن څرنګه چي د استسقاء مشروعیت غیرِ اختیاري دی، یعني د استسقاء دعاء د آسماني آفت یعني د باران د انقطاع په وجه مشروع سوې ده، نو ځکه استسقاء تر صلاة الخوف مخکښي بیان سوه، او صلاة الخوف اختیاري دی، ځکه چي صلاة الخوف د جهاد او د ظلم د لیرې کولو لپاره مشروع سوی دی. (بنایه ج۳، ص۱۸۷، فتح القدیر ج۲)

### د صلاۃ الخوف تفصیلي طریقه

إِذَا اشْتَدَّ الْخَوْفُ جَعَلَ الْإِمَامُ النَّاسَ طَائِفَتَيْنِ کله چي بېره سخته سي نو امام دي خلک دوې ډلي کړي طَائِفَةً إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ وَطَائِفَةً خَلْفَهُ (له هغو دوو ډلو څخه دي) یوه ډله د دښمن و طرف ته کړي او بله ډله دي خپل شاته ودروي فَيُصَلِّي بِهَذِهِ الطَّائِفَةِ رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ نو دې اولي ډلي ته دي یو رکعت او دوې سجدې لمونځ ورکړي فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ او کله چي له دویمي سجدې څخه امام سر راپورته کړي مَضَتْ هَذِهِ الطَّائِفَةُ إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ نو دا اوله ډله دي د دښمن و طرف ته ولاړه سي وَجَاءَتْ تِلْكَ الطَّائِفَةُ او هغه دویمه ډله دي راسي فَيُصَلِّي بِهِمُ الْإِمَامُ رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ بیا دي امام دې دویمي ډلي ته (هم) یو رکعت او دوې سجدې لمونځ ورکړي وَتَشَهَّدَ وَسَلَّمَ او امام دي تشهد وواییي او سلام دي وګرځوي وَلَمْ يُسَلِّمُوا وَذَهَبُوا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ خو دا دویمه ډله دي سلام نه ګرځوي بلکي د دښمن و مخ ته دي ولاړه سي وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُولَى او اوله ډله دي راسي فَصَلُّوا رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ وُحْدَانًا بِغَيْرِ قِرَاءَةٍ نو هغه دي یو رکعت او دوې سجدې یوازي وکړي بې له قرائته لِأَنَّهُمْ لَاحِقُونَ ځکه چي اوله ډله لاحقین دی (او پر لاحق قرائت نسته، نو ځکه به هغوی قرائت نه کوي) وَتَشَهَّدُوا وَسَلَّمُوا وَمَضَوْا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ او دا اوله ډله دي تشهد وواییي، سلام دي وګرځوي او د دښمن مخ ته دي ولاړه سي وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى وَصَلَّوْا رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ بِقِرَاءَةٍ او دویمه ډله دي راسي او یو رکعت او دوې سجدې دي وکړي د قرائت سره لِأَنَّهُمْ مَسْبُوقُونَ ځکه چي دویمه ډله مسبوقین دي (او پر مسبوق قرائت کول ضروري دي) وَتَشَهَّدُوا وَسَلَّمُوا او (بیا دي) دویمه ډله تشهد وواییي او سلام دي وګرځوي وَالْأَصْلُ فِيهِ رِوَايَةُ ابْنِ مَسْعُودٍ او په دې باره کي د ابن مسعود رضي الله عنه (دا) روایت اصل دی أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] صَلَّى صَلَاةَ الْخَوْفِ عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي قُلْنَا چي نبي ﷺ پر هغه طریقه صلاة الخوف وکړی کوم چي موږ ذکر کړه وَأَبُو يُوسُفَ وَإِنْ

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب صلاة السفر، باب من قال يصلي بكل طائفة ركعة ثم يسلم، حديث رقم: ١٢٤٢.

أَنكَرَ شَرْعِيَّتَهَا فِي زَمَانِنَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله که څه هم زموږ په زمانه کي د صلاةُ الخوف د مشروعيت انکار کړی دی فَهُوَ مَحْجُوجٌ عَلَيْهِ بِمَا رَوَيْنَا خو زموږ بيان سوی روايت د هغه په خلاف حجت دی.

**اللغات:** ﴿اِشْتَدَّ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: سختېدل، ﴿عَدُوٌّ﴾ دښمن، ﴿طَائِفَةٌ﴾ ډله، جماعت، ﴿وِجَاهٌ﴾ جمع د وَاجِهٌ ده: يوازي.

**تشريح:** د قدوري له دې جملې اذا اشتد الخوف څخه په ښکاره دا معلومېږي چي د صلاة الخوف د جائز کېدلو لپاره د خوف اشتداد شرط دی، او د مطلق خوف په وخت کي صلاة الخوف جائز نه دی، لېکن صحيح خبره دا ده چي که د دښمن بېره وه، يا په لمانځه کي د مشغوله کېدلو په وجه د دښمن د حملې اندېښنه وه، نو هم صلاة الخوف جائز دی، تر دې چي په تحفه او مبسوط کي مطلق د دښمن نژدېکت د صلاة الخوف د جواز علت گرځول سوی دی، دا خبره هم د يادوني وړ ده چي په ابوداؤد شريف کي د صلاة الخوف څلور طريقې ذکر سوي دي، لېکن د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز دغه په متن کي ذکر سوې طريقه غوره ده، اوس د هغه طريقې تشريح ته گورئ.

**صورت د مسئلې:** دا دی چي کله مسلمانان د جنگ په ميدان کي د کافرانو سره د جنگ لپاره ملا تړلي ولاړ وي، او په دغه حالت کي د لمانځه وخت راسي، نو د لمانځه د اداء کولو طريقه دا ده چي امام دي خلک دوې ډلې (حصې) کړي، د مثال په توگه يوه د "جعفر" ډله او بله د "زيد" ډله، نو اول دي د "زيد" ډله پر محاذ (سنگر) باندي د دښمن د مقابلې لپاره ودرېږي، او د "جعفر" ډلې ته دي امام يو رکعت لمونځ ورکړي، تر هغه وروسته دي د جعفر ډله له دويم رکعت کولو څخه بغير د دښمن د مقابلې لپاره ودرېږي، او د زيد ډله دي راسي په امام پسي دي يو رکعت وکړي، خو څرنگه چي دا رکعت د امام لپاره دويم رکعت سو، نو ځکه دي امام تشهد ووايي او سلام دي وگرځوي، او د زيد د ډلې هم يو رکعت پوره سو، نو د زيد ډله دي بيرته د دښمن مخ ته ولاړه سي، او د جعفر ډله دي راسي، او خپل دويم رکعت دي پوره کړي او سلام دي وگرځوي، او په دا دويم رکعت کي دي قرائت نه کوي، ځکه دوی په دويم رکعت کي لاحقين دي، ځکه چي اول رکعت يې د امام سره نيولی وو، نو دويم رکعت دي بغير له قرائت څخه وکړي، ځکه چي پر لاحق قرائت نسته، تر سلام گرځولو وروسته دي د جعفر ډله د دښمن مخ ته ولاړه سي، او د زيد ډله دي راسي خپل دويم رکعت دي پوره کړي، او سلام دي وگرځوي، او د زيد ډله په خپل دويم رکعت کي مسبوقين دي، ځکه چي دوی د امام سره دويم رکعت نيولی وو، اول رکعت څني تېر سوی وو، او څوک چي مسبوق وي، هغه به د قرائت سره خپل پاته لمونځ پوره کوي، نو ځکه به د زيد ډله د قرائت سره خپل دويم رکعت پوره کړي.

والاصل فيه الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د صلاة الخوف کومه طريقه بيان سوه، دا طريقه په اصل کي د ابن مسعود ﷺ له حديث څخه را اخيستل سوې ده، چي هغه په ابوداؤد شريف کي ذکر سوی دی. (وگورئ ابو داؤد ص:۱۸۶، حديث شمېره: ۱۲۴۴، باب من قال يصلي بکل طائفة رکعة ثم يسلم).

وأبويوسف وإن أنكر الخ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د نبي ﷺ له زمانې څخه وروسته صلاة الخوف نسته، بلکي اوس به دوه امامان جوړېږي او خلک به دوې ډلې کيږي، او هر امام به خپلې خپلې ډلې ته جلا جلا پوره لمونځ ورکوي، او دا خو د نبي ﷺ خصوصيت وو چي هر سړي به خپل آخري لمونځ په نبي ﷺ پسي کول غوښتل، نو ځکه به نبي ﷺ هري ډلې ته يو يو رکعت ورکوی، لنډه دا چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د نبي ﷺ تر زمانې وروسته د صلاة الخوف له

مشروعيت څخه انکار کوي، لېکن دا صحيح نه ده، ځکه د سنن البيهقي په يو اثر کي راغلي دي چي ابو موسیٰ اشعري ﷺ په خپله زمانه کي صلاة الخوف وکړی، همدارنګه له سعد بن ابی وقاص، ابو عبيده بن الجراح څخه هم صلاة الخوف ثابت دی.

فهو محجوج الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د عبد الله ابن مسعود روايت د امام ابو يوسف په خلاف حجت دی، ځکه چي د ابن مسعود په روايت کي په تفصيل سره د نبي ﷺ د صلاة الخوف ذکر سوی دی، لېکن دلته يو څوک دا اعتراض کولای سي، چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله خو د رسول الله په زمانه کي د صلاة الخوف له مشروعيت څخه انکار نه دی کړی، بلکي د نبي ﷺ تر زمانې وروسته يې د صلاة الخوف د مشروعيت انکار کړی دی، نو د رسول الله ﷺ صلاة الخوف د ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلاف حجت څرنګه کېدای سي؟ د دې جواب دا دی چي که څه هم د ابن مسعود روايت من حيث العبارة د امام ابو يوسف په خلاف حجت نه دی، لېکن من حيث الدلالت حجت دی، په دې توګه چي د صلاة الخوف سبب بېره او خوف دی، او خوف چي څرنګه د نبي ﷺ په ژوند کي وو، همدارنګه د نبي ﷺ تر زمانې وروسته هم سته، نو څرنګه چي د نبي ﷺ په زمانه کي د خوف په وجه صلاة الخوف مشروع وو، همدارنګه به د دې سبب په وجه د نبي ﷺ تر زمانې وروسته هم مشروع وي، دويم جواب يې دا دی چي د نبي ﷺ تر زمانې وروسته له صحابه وو څخه صلاة الخوف ثابت دی (لکه څرنګه چي مخکي دا خبره ذکر سوه)، نو ځکه به د صلاة الخوف له مشروعيت څخه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله انکار بنه نه معلومېږي.

## که امام مقيم وو نو د صلاة الخوف حکم؟

فَإِنْ كَانَ الْإِمَامُ مُقِيمًا بيا که امام مقيم وو صَلَّى بِالطَّائِفَةِ الْأُولَى رَكْعَتَيْنِ وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَتَيْنِ نو اولي ډلي ته دي دوه رکعته لمونځ ورکړي او دويمي ډلي ته دي (هم) دوه رکعته لمونځ ورکړي لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ ● صَلَّى الظُّهْرَ بِالطَّائِفَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ چي نبي ﷺ دوو ډلو ته د ماپښين لمونځ دوه دوه رکعته ورکړی وَيُصَلِّي بِالطَّائِفَةِ الْأُولَى مِنَ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ او مقيم امام دي د ماښام په لمانځه کي اولي ډلي ته دوه رکعته لمونځ ورکړي وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَةً وَاحِدَةً او دويمي ډلي ته دي يو رکعت لمونځ ورکړي لِأَنَّ تَنْصِيفَ الرَّكْعَةِ الْوَاحِدَةِ غَيْرُ مُمْكِنٍ ځکه چي د يوه رکعت نيمی کول ناممکنه دي فَجَعْلُهَا فِي الْأُولَى أَوْلَى نو د اولي ډلي لپاره دا (دويم) رکعت خاصول ډېر غوره دي بِحُكْمِ السَّبْقِ د مخکي والي په وجه.

**اللغات:** ﴿تنصيف﴾ د تفعيل مصدر دی: نيمی کول. ﴿سبق﴾ د فتح مصدر دی: مخکي کېدل، اول کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که امام مقيم وو، نو دواړو ډلو ته دي دوه، دوه رکعته لمونځ ورکړي، ځکه چي نبي ﷺ د اقامت په حالت کي د ماپښين لمونځ هم داسي ورکړی وو، او د ماښام لمونځ دي داسي پوره کړي چي اولي ډلي ته دي دوه رکعته ورکړي، او دويمي ډلي ته دي يو رکعت ورکړي، ځکه په صلاة الخوف کي حکم دا دی چي امام به هري ډلي ته نيم (نصف) لمونځ ورکوي، او د ماښام د لمانځه نصف يو نيم رکعت دی، او دا خبره تسليم سوې ده چي يو رکعت نسي

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب صلوة المسافر، باب صلوة الخوف، حديث رقم: ۳۱۲، ۳۱۱.

نیمی کېدلای، نو څکه موږ وریل چي اولي ډلي ته دي د مخکي والي په وجه دوه رکعت ورکړي، او دویمي ډلي ته دي یو رکعت ورکړي، حضرت امام نووي رَحِمَهُ الله وایي چي د دې برعکس به کوي، یعني اولي ډلي ته به یو رکعت ورکوي، او دویمي ډلي ته به دوه رکعته ورکوي، امام نووي رَحِمَهُ الله دا وجه ذکر کړې ده چي په اولو دوو رکعتو کي قرائت فرض دی، نو مناسب دا ده چي هره ډله له قرائت څخه حصه ترلاسه کړي، او هره ډله په فرض قرائت کي شریکه سي.

## د لمانځه په حالت کي د جنګ حکم

وَلَا يُقَاتِلُونَ فِي حَالِ الصَّلَاةِ او دا خلک به د لمانځه په حالت کي جنګ نه کوي فَإِنْ فَعَلُوا بَطَلَتْ صَلَاتُهُمْ اوکه هغوی جنګ وکړي نو لمونځ یې باطل سو لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ[●] شُغِلَ عَنْ أَرْبَعِ صَلَوَاتٍ يَوْمَ الْخَنْدَقِ څکه نبي کریم ﷺ د خندق په ورځ له څلورو لمونځونو څخه مشغوله کړی سو وَلَوْ جَازَ الْأَدَاءُ مَعَ الْقِتَالِ لَمَا تَرَكَهَا (نو) که د جنګ سره سره د لمانځه اداء کول جائز وای نو نبي ﷺ به دا لمونځونه (بالکل) پرې ایښي نه وای.

**اللغات:** ﴿يُقَاتِلُونَ﴾ د مفاعلې د باب مضارع صیغه ده: جنګ کول.

**تشریح: مسئله:** دا ده چي زموږ په نېز به د لمانځه په حالت کي یوه ډله هم جنګ نه کوي، او که یې جنګ وکړی، نو لمونځ یې باطلیږي، او له سره به لمونځ کوي، لېکن د مالکیانو او شوافعو په نېز د لمانځه په حالت کي جنګ کول جائز دي، د دوی دلیل دا آیت دی: وَلْيَأْخُذُوٓا۟ أَسْلِحَتَهُمْ [النساء: ١٠٢]، په دې سره دلیل په دې توګه نیسي چي په دې آیت کي په لمانځه کي دننه د وسلې اخیستلو امر سوی دی، او ښکاره ده چي د لمانځه په حالت کي وسله د جنګ لپاره وي، نو ثابته سوه چي د لمانځه په حالت کي جنګ کول جائز دي، زموږ دلیل دا دی چي د غزوۀ احزاب پر موقع له نبي ﷺ څخه څلور لمونځونه قضاء سول، چي د هغو قضاء نبي ﷺ وروسته راوړه، نو که د لمانځه په حالت کي جنګ جائز وای، نو نبي ﷺ به دا لمونځونه په دې وخت کي نه پرېښوولای، لهذا معلومه سوه چي د لمانځه په حالت کي جنګ کول جائز نه دي. د مالکیانو او نورو د دلیل جواب دا دی چي د لمانځه په حالت کي د وسلې اخیستلو حکم څکه سوی دی چي کفار دا نه وګڼي چي مسلمانان جنګ ته تیار نه دي، او حمله به پر وکړي، یا دا که د جنګ ضرورت پېښ سي، نو جنګ به وکړي، او لمونځ به وروسته را وګرځوي.

## د سختي بیري په صورت کي د لمانځه طریقه

فَإِنِ اشْتَدَّ الْخَوْفُ بیا که بېره سخته سي صَلُّوا رُكْبَانًا فُرَادَى نو د سپرلي په حالت کي دي یوازي یوازي لمونځونه وکړي يُومِئُونَ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ إِلَى أَيِّ جِهَةٍ شَاءُوا رکوع او سجده به په اشاره سره کوي کوم طرف ته چي یې خوښه وي إِذَا لَمْ يَقْدِرُوا عَلَى التَّوَجُّهِ إِلَى الْقِبْلَةِ په دې شرط چي د قبلې و طرف ته پر مخ ګرځولو قدرت نه لري لِقَوْلِهِ تَعَالَى څکه الله تعالیٰ فرمایلي دي فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا [البقرة: ٢٣٩] که تلسو ته (د دښمن یا نورو) بېره وه نو پیاده لمونځ وکړئ یا پر سپرلي باندي وَسَقَطَ التَّوَجُّهُ لِلضَّرُورَةِ او مخ پر قبله کېدل د ضرورت په وجه ساقط سو وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُمْ

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلوة، باب ما جاء في الرجل تفوت الصلوة، حديث رقم: ١٧٩.

يُصَلُّوْنَ بِجَمَاعَةٍ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا خلک به په جماعت سره لمونځ کوي وَلَيْسَ بِصَحِيْحٍ لېکن دا خبره صحيح نه ده لِإِنْعِدَامِ الْإِتِّحَادِ فِي الْمَكَانِ ځکه چي په مکان کي اتحاد ممکن نه دی.

**اللغات:** ﴿رُكْبَانًا﴾ جمع د رَاكِبْ ده: سپور، ﴿فُرَادٰى﴾ يوازي، ځانته، ﴿يُوْمِئُوْنَ﴾ د افعال د باب مضارع ده: اشاره کول، ﴿رِجَالًا﴾ جمع د رَاجِلْ ده: په پښو تګ کونکی، پياده تلونکی.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که له دښمن څخه ډېره ډېره زياته سوه، نو په دې صورت کي د مسلمانانو لپاره پر سپرلي باندي په اشاره سره جلا جلا لمونځونه کول جائز دي، او د قبلې په باره کي حکم دا دی چي که د قبلې و طرف ته مخ ګرځول ممکن نه وو، نو کوم طرف ته چي وغواړي هغه طرف ته دي مخ کړي، دليل د الله تعالیٰ دا قول دی: فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا، او دلته له هغو څخه د قبلې پر طرف مخ ګرځول د ضرورت په وجه ساقطيږي، له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د سپرتيا په حالت کي په جماعت سره لمونځ کول غوره دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دا خبره کوي، لېکن دا صحيح نه ده، ځکه چي د اقتداء د صحت لپاره د مکان اتحاد شرط دي، او هغه دلته نسته (او نه راتلای سي)، هو! که يو سړی د امام پر سپرلي باندي د امام سره سپور وي، نو هغه په امام پسي لمونځ کولای سي.



# بَابُ الْجَنَائِزِ

(دا) باب د جنازو (د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح:** مخکي تر دي صاحب د کتاب د عوارضو مثلاً د سفر، خوف او کسوف بابونه بيان کړل، او اوس له دې ځايه تر ټولو آخري عارض يعني د مرګ احکام او مسائل بيانوي، او څرنګه چي د مرګ پړاو تر ټولو آخري وي، نو ښکاره دا وه چي باب الجنائز تر باب الصلاة في الكعبة هم وروسته ذکر سوی وای، لېکن صاحب د عنايې وايي چي صاحب د کتاب د تبرک په توګه په باب الصلاة في الكعبة سره کتاب الصلاة ختموي.

جنائز جمع د جنازة ده، جنازه د جيم په فتحه سره مړي ته ويل کيږي، او د جيم په کسره سره تابوت لو هغه تختې ته ويل کيږي چي پر هغې مړی پرې ايستل کيږي.

## د قريبُ الموت (مرګ ته د نږدې سړي) احکام

وَإِذَا احْتُضِرَ الرَّجُلُ او کله چې يو سړی مرګ ته نږدې سي وُجِّهَ إِلَى الْقِبْلَةِ عَلٰى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ نو هغه دې پر راسته اړخ د قبلې و طرف ته مخامخ کړی سي اِعْتِبَارًا بِحَالِ الْوَضْعِ فِي الْقَبْرِ په قبر کې د ايښولو پر حالت په قياسولو سره لِأَنَّهُ أَشْرَفَ عَلَيْهِ ځکه چې دا سړی قبر ته نږدې سو(يعني دا سړی دې ته نږدې سو چې په قبر کې ښخ کړی سي، نو ځکه به د قبر په ډول پرې ايستل کيږي) وَالْمُخْتَارُ فِي بِلَادِنَا الْاِسْتِلْقَاءُ او زموږ په ښارونو کي ستوني ستغ پرېوتل (يعني پرې باسل) غوره دي لِأَنَّهُ أَيْسَرُ لِخُرُوجِ الرُّوحِ ځکه د روح د وتلو لپاره دا ډېره آسانه صورت دی وَالْأَوَّلُ هُوَ السُّنَّةُ ليکن اول صورت سنت دی(يعني مخ پر قبله برابرول) وَلُقِّنَ الشَّهَادَتَيْنِ او هغه ته دې د شهادتينو تلقين وركړی سي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ شَهَادَةَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ "تاسي خپلو مړو ته د لا إله إلا الله د شهادت تلقين ورکړئ" وَالْمُرَادُ الَّذِي قَرُبَ مِنَ الْمَوْتِ او په حديث کي له مړو څخه مراد هغه څوک دي چي مرګ ته نږدې سوی وي فَإِذَا مَاتَ بيا چي کله انسان مړ سي شُدَّ لَحْيَاهُ نو د هغه دواړي ژامي دي وتړل سي وَغُمِّضَ عَيْنَاهُ او سترګي دي يې پټي کړی سي بِذٰلِكَ جَرَى التَّوَارُثُ توارث هم پر دې را روان دی(يعني د نبي ﷺ له زمانې څخه په وراثت دا طريقه را روانه ده) ثُمَّ فِيهِ تَحْسِينُهُ بيا په دې صورت کي د مړي ښکلي کول(او ښه جوړول هم) دي فَيُسْتَحْسَنُ نو ځکه به داسي کول غوره وي.

**اللغات:** ﴿احْتُضِرَ﴾ د افتعال ماضي مجهوله صيغه ده، له حضر څخه مشتق ده، معنیٰ يې ده: د مرګ وخت حاضرېدل، يعني کله چي انسان مرګ ته نږدې سي، مجهوله او معروفه دواړه ويل کېدای سي، ﴿شِقّ﴾ بغل، اړخ، طرف، ﴿اِسْتِلْقَاء﴾ د استفعال مصدر دی: ستوني ستغ پرېوتل، د شا پر تخته پرېوتل، ﴿لَحْيَان﴾ د لام په فتحه سره: دواړي ژامي (ژامي)، ﴿شُدَّ﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده: تړل، ﴿غُمِّضَ﴾ د تفعيل د باب ماضي مجهوله ده: پټول، بندول.

**تشريح:** امام قدوري د مرګ د نږدې کېدلو لپاره د احتضر لفظ استعمال کړی دی، يعني مرکېدونکي سړي ته يې محتضر ويلي دي، دا ځکه چي هغه ته مرګ حاضرېږي، يا د مرګ ملائکي ورته حاضرېږي، د مرګ نښي او علامې دا دي چي (۱) د انسان دواړي پښې سستي سي، (۲) ولاړ ېدای نه سي، (۳) پزه يې کږه سي، (۴) د خصيتينو (خوټو) پوست يې اوږد سي (او وېړسيږي)؛ لنډه دا چي کله انسان مرګ ته نږدې سي، نو د خلکو نمه واري دا ده چي دا قريبُ الموت سړی دي پر راسته اړخ مخ پر قبله پرې باسي، ځکه چي په قبر کي د مړي د ايښوولو همدغه طريقه سنت ده، نو پر دې باندي په قياسولو سره به قريبُ الموت هم پر هغه طريقه پرې ايستل کيږي، ځکه چي دا سړی قبر ته نږدې دی، صاحب د هدايې وايي چي زموږ په ښارونو، علاقو او ما وراء النهر کي ستوني ستغ پرې باسل رواج دي، او همدغه مختاره دي، ځکه چي په دې کيفيت کي روح ډېر په آساني سره وځي؛ او د قريبُ الموت تر سر لاندي دي بالښت يا يو بل جګ شی هم

---

● تخريج: أخرج البيهقي في كتاب الجنائز، باب ما يستحب من تلقين الميت، حديث رقم: ۶۵۹۸.

کښېږدي، چې مخ يې د قبلې پر طرف سي، او د آسمان و طرف ته نه سي، لېکن د دې کيفيت په باره کي هيڅ نص نه دي ذکر سوی، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله ووېل چي اول کيفيت سنت دی، يعني پر اړخ پرې باسل.

ولقن الشهادتين الخ دويم عمل دا دی چي قريبُ الموت انسان ته دي د شهادتينو تلقين ورکړل سي، يعني د هغه سره دي يو څوک نژدې کښېني په کرار آواز سره أشهد أن لا إله إلا الله و أشهد أن محمد رسول الله ووايي (دې ته تلقين وايي)، او هغه ته دي د دې کلمې حکم نه کوي، ځکه چي دا ډېري سختۍ وخت وي، داسي نه چي نعوذ بالله انکار وکړي، نو خاتمه به يې پر کفر سي، دليل د نبي ﷺ دا قول دی: لقنوا موتاکم شهادة أن لا إله إلا الله، او دلته له موتاکم څخه مراد هغه خلک دي چي مرګ ته نژدې وي، بالکل مړه خلک ځني مراد نه دي، ځکه چي تلقين هغو ته هيڅ فايده نه کوي.

فإذا مات الخ دريم عمل دا دی چي د مړي ژامې دي په کپړه يا بل شي سره وتړل سي، او دواړي سترګي دي يې پټي کړل سي، همدا طريقه د نبي ﷺ له زمانې څخه په توارث را روانه ده، او په دې طريقه کي يعني د سترګو په پټولو او د ژامې په تړلو کي د مړي ښايست او ښکلا هم سته، نو په دې حواله سره هم دا طريقه د مړي په حق کي غوره ده.



## فَصْلٌ فِي الْغُسْلِ

(دا) فصل مړي ته د غسل ورکولو (د احکامو په بيان کي) دی

تشريح: له دې ځايه صاحب د هدايې په بېلابېلو فصلونو کي د مړي بېلابېل احکام بيانوي، خو څرنګه چي تر مرګ وروسته اول پړاو د غسل دی، نو ځکه غسل تر نورو فصلونو مخکي ذکر کوي.

### مړي ته د غسل ورکولو تفصيلي طريقه

فَإِذَا أَرَادُوْا غُسْلَهُ نو کله چي خلک د مړي د غسل اراده وکړي وَضَعُوْهُ عَلَى سَرِيْرٍ نو هغه دي پر يوه تخته (يا کټ) باندي کښېږدي لِيَنْصَبَّ الْمَاءُ عَنْهُ چي اوبه لاندي ځني وبهيږي وَجَعَلُوْا عَلَى عَوْرَتِهِ خِرْقَةً او پر عورت دي يې کوچنۍ کپړه واچوي إِقَامَةً لِوَاجِبِ السَّتْرِ د واجب ستر د اداء کولو لپاره وَيَكْتَفِيْ بِسَتْرِ الْعَوْرَةِ الْغَلِيْظَةِ او د عورت غليظه (شرم ځای) پر ستر (پټولو) دي اکتفاء وکړي هُوَ الصَّحِيْحُ تَيْسِيْرًا د آسانۍ لپاره همدا صحيح دي وَنَزَعُوْا ثِيَابَهُ او له مړي څخه دي کالي وکاږي لِيُمْكِنَهُمُ التَّنْظِيْفُ چي د دوی لپاره د مړي صفا کول ممکن سي وَوَضَّئُوْهُ مِنْ غَيْرِ مَضْمَضَةٍ وَلَا اسْتِنْشَاقٍ او بغير له خولې او پزې پرېولو څخه دي اودس ور وکړي لِأَنَّ الْوُضُوْءَ سُنَّةُ الْاِغْتِسَالِ ځکه چي اودس کول د غسل سنت دي غَيْرَ أَنَّ إِخْرَاجَ الْمَاءِ مِنْهُ مُتَعَذِّرٌ لېکن د مړي له خولې او پزې څخه اوبه را ايستل مشکل

دي فَيَتَرَكَانِ نو ځکه به خوله او پزه پرېښوول کېږي ثُمَّ يُفِيضُوْنَ الْمَاءَ عَلَيْهِ بيا به پر مړي اوبه وبيوي اِعْتِبَارًا بِحَالِ الْحَيَاةِ دژوند پر حالت باندي په قياسولو سره وَيُجَمَّرُ سَرِيْرُهُ وِتْرًا او د مړي تخته (يا کټ) به په خوشبوداره شي سره په طاق شمېر لوګی کړل سي (يعني د هغه د تختې يا کټ سره دي خوشبويي په طاق شمېر سره ودودل سي) لِمَا فِيْهِ مِنْ تَعْظِيْمِ الْمَيِّتِ ځکه په دې کي د مړي تعظيم دی وَإِنَّمَا يُوْتَرُ او په طاق شمېر سره به ځکه کېږي لِقَوْلِهِ● عَلَيْهِ السَّلَامُ چي نبي ﷺ فرمايلي دي إِنَّ اللّٰهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ الله طاق دی او طاق شمېر خوښوي وَيُغْلَى الْمَاءُ بِالسِّدْرِ أَوْ بِالْحُرُضِ او (د غسل ورکولو) اوبو ته به د بېرو په پاڼو کي يا د زمی په بوټي کي جوش ورکړل سي مُبَالَغَةً فِي التَّنْظِيْفِ چي په پاکوالي کي مبالغه راسي فَإِنْ لَمْ يَكُنْ ليکن که له دې (شيانو) څخه يو شی نه وو فَالْمَاءُ الْقَرَاحُ نو په خالصو اوبو (سره دي غسل ورکول سي) لِحُصُوْلِ أَصْلِ الْمَقْصُوْدِ د اصل مقصود د حاصلېدلو په وجه (يعني په دې سره هم اصل مقصود يعني غسل حاصلېږي) وَيُغَسَّلُ رَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ بِالْخِطْمِيِّ او د مړي سر او ږيره به په خطمي ګل (خيرو ګل) سره پرېولل سي لِيَكُوْنَ أَنْظَفَ لَهُ چي مړی په ښه توګه سره پاک سي ثُمَّ يُضْجَعُ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ بيا به پر خپل چپه بغل پرې ايستل سي فَيُغَسَّلُ بِالْمَاءِ وَالسِّدْرِ نو په اوبو او د بېري په پاڼو سره به پرېولل سي حَتَّى يُرَى تر دې چي وليدل سي أَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ إِلَى مَا يَلِي التَّخْتَ مِنْهُ چي اوبه د مړي هغه حصې ته ورسېدلې چي تخته ور سره لګېدلې ده (يعني تر راسته اړخ پوري) ثُمَّ يُضْجَعُ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ بيا به پر راسته بغل پرې ايستل سي فَيُغَسَّلُ او پرېولل به سي حَتَّى يُرَى أَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ إِلَى مَا يَلِي التَّخْتَ مِنْهُ تر دې چي وليدل سي چي د مړي هغه حصې ته اوبه ورسېدلې چي تخته ور سره لګېدلې ده (يعني تر چپه اړخ پوري) لِأَنَّ السُّنَّةَ هُوَ الْبِدَايَةُ بِالْمَيَامِنِ ځکه چي سنت له راسته طرف څخه شروع کول دي ثُمَّ يُجْلِسُهُ بيا به غسل ورکونکی مړی کښېنوی وَيُسْنِدُهُ إِلَيْهِ او پر خپل ځان به د هغه تکيه ولګوي (يعني غاسل به مړی کښېنوي او پر خپل ځان به يې راايله کړي) وَيَمْسَحُ بَطْنَهُ مَسْحًا رَفِيْقًا او په نرمي (او کراره) سره به د هغه نس ور ومږي تَحَرُّزًا عَنْ تَلْوِيْثِ الْكَفَنِ له ګنده والي څخه د کفن د خوندي کېدلو لپاره (يعني چي کفن ککړ نه سي) فَإِنْ خَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ غَسَلَهُ نو که د هغه له نس څخه يو شی را ووتی نو هغه دي پرېولي وَلَا يُعِيْدُ غُسْلَهُ وَلَا وُضُوْءَهُ او نه به د هغه غسل راګرځوي، او نه د هغه اودس لِأَنَّ الْغُسْلَ عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ ځکه چي غسل موږ په نص (حديث) سره پېژندلی دی وَقَدْ حَصَلَ مَرَّةً او په يو وار سره غسل حاصل سو ثُمَّ يُنَشِّفُهُ بِثَوْبٍ بيا به مړی په يوه کپړه (جامه) سره وچ کړي كَيْ لَا تَبْتَلَّ أَكْفَانُهُ د دې لپاره چي د هغه کفن لوند نه سي وَيَجْعَلُهُ أَيِ الْمَيِّتَ فِي أَكْفَانِهِ او بيا به هغه يعني مړی په کفن کي ووپېچي (يعني کفن به ور واغوندي).

---

● تخريج: اخرجه البخاري في كتاب الدعوات، باب لله مائة اسم غير واحد، حديث رقم: ۶۴۱۰.

**اللغات:** ﴿سرير﴾ کټ، چارپايي، مجازاً د غسل ورکولو تخته، ﴿ليطهر﴾ د انفعال د باب مضارع ده: بهيلل، لام جاره دی وروسته يې أن ناصبه مقدر دی، ﴿عورة﴾ عورت، د پټولو ځای، ﴿خرقة﴾ کپړه، ټوټه، ټوکر، ﴿عورة الغليظة﴾ شرمګاه(شرم ځای)، يعني د مخ او شا حصه، ﴿ليتطلق﴾ د افعال د باب مضارع ده: بيول(بهول)، اچول، ﴿المجمر﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده، د افعال له باب څخه هم راځي: بنه بوی لرونکی شی دودول(لوګی کول)، ﴿وِتر﴾ طاق، ﴿يغلي﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: ايشول، جوش ورکول، ﴿حرض﴾ زمی، يو بوټی دی چې د صابون کار کوي، ﴿سدر﴾ د بيري پاڼې، ﴿خطمي﴾ خيروګل، ټوته ګول، يو بوټی دی چې سور او سپين ګل لري او د صابون کار کوي، ﴿ينشف﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: په ټوکر يا داسې بل شي سره وچول.

**تشريح:** په دې اوږده عبارت کې مړي ته د غسل ورکولو طريقه بيان سوې ده، فرمايي چې کله خلک مړي ته د غسل ورکولو اراده وکړي، نو هغه به پر يوه تخته پرې باسي، او پر تخته به يې ځکه پرې باسي چې اوبه لاندې ځني ولاړې سي، ځکه که مړی پر مځکه پرې ايستل سي، نو مړی به په خاورو او ختو ککړ سي، صاحب د کتاب خو نه د تختې اېښوولو کيفيت ذکر کړی دی، او نه يې پر تختې د مړي اېښوولو کيفيت ذکر کړی دی، صاحب د عنايې وايي چې بعضو حضراتو ويلي دي چې تخته دې د قبلې پر طرف په اوږدوالي سره کښېښول سي، يعني تخته دې په اوږدول شرقاً او غرباً کښېښول سي، لکه څرنګه چې انسان د مرض په حالت کې شرقاً او غرباً پرېوځي او په اشاره سره لمونځ کوي، يعني پښې د قبلې و طرف ته کوي، او سر د مغرب و طرف ته کوي، او بعضو ويلي دي چې تخته دې عرضاً يعني په پلنوالي سره کښېښول سي، لکه څرنګه چې مړی په قبر کې اېښوول کېږي، علامه شمس الائمه سرخسي ويلي چې څرنګه ممکنه وي، هغه رنګه دې کښېښول سوي، ځکه چې پر تخته باندې د مړي د اېښوولو په باره کې هيڅ کيفيت روايت سوی نه دی، لېکن عرف دا دی چې مړی دې ستوني ستغ پرې ايستل سي.

وجعلوا علی الخ تر پرې ايستلو وروسته دې د مړي پر عورت کپړه واچول سي، ځکه چې عورت پټول فرض دي، او بل دا چې څرنګه انسان په ژوند کې محترم وي، همداسې به تر مرګ وروسته هم محترم وي، نو د هغه د محترم کېدلو تقاضا دا ده چې عورت يې پټ کړی سي. صاحب د هدايې وايي چې د آسانۍ لپاره د عورتِ غليظه يعني د قُبل او دُبر پټول کافي دي، له نامه څخه تر زنګنو پوري پټول ضروري نه دي، همدا ظاهرة الرواية دی، د نوادر روايت دا دی چې له نامه څخه تر زنګونو پوري يې پټول ضروري دي.

ونزعوا الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې له مړي څخه به ټوله کالي وکښل سي، چې خلک په آسانۍ سره مړی پاک او صفا کړي، وجه دا ده چې له غسل څخه مقصود د مړي پاکول دي، خو کله چې په کالو کې مړي ته غسل ورکول سي، نو دا مقصود نه حاصلېږي، ځکه چې د غسل په مستعملو اوبو سره کالي ناپاکه کېږي، چې په هغه سره بيا د مړي بدن چټلېږي، نو غسل به د پاکوالي فايده نه ورکړي، نو کله چې په کالو کې غسل ورکول د طهارت فايده نه ورکوي، نو ځکه به له مړي څخه کالي کښل واجب وي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې مړي ته په داسې قميص کې غسل ورکول مستحب دي چې د هغه لستوڼي دومره پراخه وي چې غسل ورکونکی په هغو لاس ننه کولای سي، دليل يې دا دی چې نبي ﷺ ته په کالو کې غسل ورکول سو، لکه څرنګه چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی: أن رسول الله ﷺ غسلوه وعليه قميصه يصبون الماء عليه ويدلكونه من فوق القميص. رواه ابو داؤد. (حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې صحابه وو نبي ﷺ ته په داسې حال کې غسل ورکړی چې د نبي ﷺ پر بدن قميص وو. او صحابه وو پر قميص

سرېږه د نبي ﷺ بدن مبارک مړی)، له دې څخه معلومه سوه چي مړي ته په قميص کي غسل ورکول افضله او مستحب دي، لېکن زموږ له طرفه جواب دا دی چي دا طريقه د نبي ﷺ سره خاص وه، او د نبي ﷺ د فضيلت او احترام په وجه وه، ځکه چي نبي ﷺ د ژوند او مرګ په دواړو حالتونو کي له نورو عامو وګړو څخه جلا او ممتاز دی، نو د نبي ﷺ غسل به تر نبي ﷺ پوري خاص وي، او هغه به د هر مړي لپاره سنت يا مستحب نه ګڼل کيږي، کنې په نبي او غيرِ نبي کي به څه فرق پاته سي؟

**تر غسل مخکي مړي ته د اودس ورکولو بيان:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي بغير له خولې او پزې پرېللو څخه دي مړي ته اودس ورکړی سي، اودس خو دي ځکه ورکړی سي چي اودس د غسل سنت دی، خوله او پزه دي ځکه پرېنوول سي چي د مړي له خولې او پزې څخه اوبه را ايستل مشکل دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ژوند په حالت باندي په قياسولو سره به د مړي خوله او پزه هم پرېولل کيږي، د بعضي علماؤ رايه دا ده چي غسل ورکونکی دي پر خپله ګوته يو نری غوندي ټوکر يا پمبه ونښلوي، او ګوته دي د مړي په خوله دننه کړي، او شا و خوا دي يې پکښي وګرځوي چي خوله يې هم پاکه سي.

ثم يفيضون الخ فرمايي چي تر اودس وروسته دي د مړي پر ټوله بدن اوبه وبيول سي، د ژوند پر حالت باندي په قياسولو سره، يعني څرنګه چي به هغه په خپل ژوند کي په کوم ترتيب سره غسل کوی، يعني پر ټوله بدن به يې اوبه بيولې، او درې واره به يې بيولې، نو تر مرګ وروسته به هم په هغه ترتيب سره غسل ورکول کيږي.

ويجمّر سريره الخ فرمايي چي د مړي تختې ته دي د عود لرګی يا بل بنه وږم لرونکی بنی ودودل سي، او دا کار دي په طاق شمېر يعني ۱/ ۳/ ۷ وارو سره وسي، ځکه په دې کي د مړي تعظيم دی، او طاق شمېر ځکه دي، چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: إن الله وتر ويحب الوتر(الله طاق دی طاق خوښوي).

ويغلى الماء الخ فرمايي چي په کومو اوبو سره مړي ته غسل رکول کيږي، په هغه اوبو کي دي د بيري پاڼي يا د زمی بوټي واچول سي او جوش دي ورکړل سي(يعني دا شيان دي پکښې را وېشول سي)، ځکه په دې توګه مړی ښه پاکيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله وايي چي د مړي د غسل لپاره يخي اوبه استعمالول افضله دي، ځکه د ګرمو اوبو په استعمال سره د بدن اندامونه سستيږي، او د نجاست وتلو خطره ځني پيدا کيږي، لېکن موږ جواب ورکوو چي غسل د مړي د پاکولو لپاره مشروع سوی دی، او په ګرمو اوبو کي پاکي زياته وي، نو ځکه به په ګرمو اوبو سره غسل ورکول افضله وي، او پاته سو د نجاست وتلو خطره نو هغه نوره فايده لري ځکه کله چي د غسل په دوران کي نجاست ووځي، نو تر غسل وروسته به د هغه د وتلو خطره او په هغه سره د کفن د ککړ کېدلو خطره نه وي، او که د بيري پاڼي يا د زمی بوټي نه ول، نو بيا دي په خالصو اوبو سره مړي ته غسل ورکول سي، د اوبو دا پورتنی ترتيب له شمسُ الائمه سرخسي څخه را نقل سوی دی، لېکن شيخُ الاسلام او صاحب د محيط وايي چي اول دي په خالصو اوبو سره غسل ورکول سي، بيا دي هغه اوبه استعمال کړي چي د بيري پاڼو ته جوش پکښې ورکول سوی وي، او دريم وار دي هغه اوبه استعمال کړي چي کافور په ګډ سوی وي، لکه څرنګه چي له ابن مسعود رَحِمَهُ الله څخه هم دا را نقل سوي دي.

ويغسل رأسه الخ فرمايي چي د مړي سر او ږيره دي په خطمي ګول سره پرېولل سي، ځکه خطمي ګل هم هغه کار کوي، کوم چي يې صابون کوي.

ثم يضجعه الخ تر دې تولو کارونو وروسته دې مړی پر چپه اړخ پرې ایستل سي، او اوبه دې د هغه پر راسته اړخ واچول سي، او دومره دې واچول سي چي هغه اوبه چپه اړخ او د چپه اړخ سره لګېدلي تختې ته ورسيږي، او بيا دې پر راسته اړخ پرې ایستل سي، دغومره او دغه رنګه اوبه دې پر واچول سي، اول به ځکه پر چپه اړخ پرې ایستل کيږي چي په راسته طرف شروع کول سنت دي.

ثم يجلسه الخ بيا دې غسل ورکونکی مړی کښېنوي، او خپل ځان ته دې يې تکيه کړي، او نس دې په نرمي سره ومږي (او په کراره دې يې ورکښېکاږي)، ځکه که د مړي په نس کي يو شی وو، هغه به راووځي چي وروسته کفن ککړ نه کړي، په دې باره کي اصل دا روايت دی: أن عليا رضي الله عنه لما غسل رسول الله ﷺ مسح بطنه بيده رقيقا، طلب منه ما يطلب من الميت فلم ير شيئا فقال طبت حيا وميتا، (يعني حضرت علي ﷺ چي کله نبي ﷺ ته غسل ورکوی، نو په خپل لاس سره يې د نبي ﷺ مبارک نس په کراره ومږی، او مقصود يې هغه شی وو کوم چي له بل مړي څخه طلب کيږي، لېکن هيڅ شی نه راووتی، بيا حضرت علي ﷺ وفرمايل: چي ستا ژوند او مرګ دواړه پاک دي)

د نس تر مږلو وروسته که د مړي له نس څخه يو شی راووتی، نو هغه دې پرېولي، او د غسل راګرځولو ضرورت نسته، او نه د اودس راګرځولو ضرورت سته، ځکه غسل خو موږ له حديث څخه معلوم کړی دی، يعني چي نبي ﷺ فرمايلي دي د مسلمان پر بل مسلمان شپږ حقونه دي، له هغو څخه يو مړي ته غسل ورکول دي، لنډه دا چي د مړي غسل واجب دی، او غسل په يو ځل ورکولو سره حاصليږي، نو د دويم وار لپاره د غسل ورکولو ضرورت نسته، تر غسل وروسته دې د مړي بدن په يوه پاک ټوکر سره وچ او صفا کړی سي چي کفن لوند نه سي، او تر هغه وروسته دې کفن ورکړي.

## تر غسل وروسته سنت عملونه

وَيُجْعَلُ الْحَنُوطُ عَلَى رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ او حنوط عطر دې د مړي پر سر او ږيره ومږل سي وَالْكَافُورُ عَلَى مَسَاجِدِهِ او د سجدې پر اندامونو دې يې کافور ومږل سي لِأَنَّ التَّطَيُّبَ سُنَّةٌ ځکه عطر مږل (لګول) سنت دي وَالْمَسَاجِدُ أَوْلَى بِزِيَادَةِ الْكَرَامَةِ او د سجدې اندامونه د زيات عزت ډېر مستحق دي وَلَا يُسَرَّحُ شَعْرُ الْمَيِّتِ وَلَا لِحْيَتُهُ او د مړي وروښته او ږيره دې نه ږمنځول کيږي وَلَا يُقَصُّ ظُفْرُهُ وَلَا شَعْرُهُ او نه دې د مړي نوکان او وروښتيان پرېکيږي لِقَوْلِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځکه حضرت عائشې رضي الله عنها فرمايلي دي عَلَامَ تَنْصُونَ مَيِّتَكُمْ تاسو ولي د خپل مړي تندی ښکلی جوړوئ (يعني ولي يې سر وږ ږمنځوئ) وَلِأَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ لِلزِّينَةِ او په دې وجه (هم) چي دا شيان د ښکلا لپاره دي وَقَدِ اسْتَغْنَى الْمَيِّتُ عَنْهَا حال دا چي (اوس) مړی له دې شيانو څخه بې پروا سوی دی وَفِي الْحَيِّ كَانَ تَنْظِيفًا (لېکن) په ژوندي سړي کي دا شی د پاکولو لپاره وو (يعني په ژوند کي دا کار د پاکوالي لپاره کېدی) لِاجْتِمَاعِ الْوَسَخِ ځکه چي (تر نوکانو او وروښتيانو لاندي) خيري جمع وي وَصَارَ كَالْخِتَانِ لهذا دا د ختنه کولو (سنتولو) په ډول سو.

**اللغات:** ﴿حنوط﴾ يو ډول عطر دي چي له بېلابېلو عطرونو څخه جوړيږي، ﴿کافور﴾ يو ډول سپينه ماده ده چي د کافور له ونې څخه تر لاسه کيږي، ﴿يسرّح﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: ږمنځول، ﴿يقص﴾ د نصر د باب

مضارع مجهوله ده: پرېکول(کاټول). ﴿تُقْلَمُ﴾ ظُفُرٌ او ظُفْرٌ: نوک، جمع يې أَظْفَارٌ راځي. ﴿تَقْلِمُوْنَ﴾ د نصر د باب مضارع ده: تندی کشول(مطلب تندی ښائسته کول، يا سر ږمنځول). ﴿وَسَخٌ﴾ خيره.

**تشريح:** فرمايي چې کله مړي ته غسل او کفن ورکړل سي، نو بيا دې د هغه پر سره اوږيره حنوط ولګول سي، حنوط له څو ډوله عطرونو څخه جوړيو ډول عطر دي، چې هغه ته تاسو د دې زمانې په اعتبار سره عطرِ مجموعه(يا ګلچين عطر) هم ويلای سی، او د مړي د سجدې پر اندامونو يعني پر تندي، پزه، پښو، لاسو، او زنګنو دې کافور ومړل سي، ځکه چې حنوط او کافور خوشبوداره او ښه بوی لري، او د سجدې اندامونه د خوشبوداره کولو زيات حقداره دي، او په دې باره کي د حضرت ام عطيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث هم دليل دی، چې نبي ﷺ د خپلې لور غسل ورکونکو ښځو ته وفرمايل: اغسلنها ثلثاً أو خمسا واجعلن في الآخر كافوراً، او له حضرت علي ﷛ څخه روايت دی: كان عنده مسك فأوصى أن يحنط به (بنايه ج۳، ص۲۲۰)، له دې دوارو روايتونو څخه معلوميږي چې پر مړي به کافور او حنوط لګول کيږي، او له پخوا څخه همدغه معمول را روان دی.

ولايسرح الخ فرمايي چې د مړي د وربښتيان او ږيره ږمنځول، يا يې وربښتيان او نوکان پرېکول دا ټول له شيان منع دي، او له سنت څخه خلاف دي، او په دې باره کي دليل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا فرمان دی: علام تنصون ميتكم علام په اصل کي على ما دی، على حرفِ جر دی، پر ما استفهاميه داخل سو، او د تخفيف په وجه الف ځني ساقط سو علام سو، لکه عمّ يتساءلون چې په اصل کي عن ما يتساءلون وو، او د تنصون معنیٰ ده: تندی کشول، او د سر په ږمنځولو کي هم تندی کشيږي، مطلب دا چې له تنصون څخه مراد ږمنځول دي، او بعضي شارحينو يې معنیٰ په ښائسته کولو سره کړې ده، ځکه کله چې د سر وربښتيان ږمنځ کړل سي نو تندی هم ښکلی ښکاره کيږي.

ولأن الخ د وربښتيانو د نه ږمنځولو او د نوکانو د نه پرېکولو عقلي دليل دا دی چې د دې شيانو تعلق د ښکلا سره دی، او ښکاره ده چې مړی له ښکلا او تزيين څخه بې پروا دی، لېکن د ژوندو خلکو په حق کي د دې شيانو ضرورت سته، ځکه چې تر وربښتيانو او نوکانو لاندي خيري جمع کيږي، نو د خيرو ليري کولو لپاره نوکان او وربښتيان پرېکول د ژوندو خلکو په حق کي د ښکلا سبب دی، او دا مسئله د ختنه کولو (سنتولو) په ډول ده، يعني څرنګه چې ختنه کول د ژوندو خلکو سره خاص دي، او د ژوندو په حق کي سنت دي، نه د مړو په حق کي، همدا ډول به نوکان او وربښتيان پرېکول هم د مړو په حق کي سنت او مشروع نه دي.



# فَصْلٌ فِي التَّكْفِيْنِ

## (دا) فصل د کفن ورکولو (په بیان کي) دی

**تشريح:** په مخکني فصل کي موږ وويل چي تر دې وروسته صاحب د هدايې د مړي بيلابيل حالات په بيلابيلو فصلونو کي بيانوي، نو دا فصل هم له هغه سلسلې څخه دويمه کړی ده، او څرنګه چي تر غسل وروسته د کفن پړاو مخته راځي، نو ځکه تر فصل في الغسل وروسته فصل في التکفين بيانوي.

### د سړي لپاره سنت کفن

**اَلسُّنَّةُ أَنْ يُكَفَّنَ الرَّجُلُ فِيْ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ** سنت دا دي چي سړي ته په دريو کپړو (جامو) کي کفن ورکړل سي **إِزَارٍ وَقَمِيْصٍ وَلِفَافَةٍ** په (۱) لنګ (۲) کميس (۳) او پټو (څادر) کي **لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** [1] **كُفِّنَ فِيْ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ بِيْضٍ سَحُوْلِيَّةٍ** ځکه روايت سوی دي چي نبي ﷺ ته د سحوليې سيمي په دريو سپينو کپړو کي کفن ورکول سو **وَلِأَنَّهُ أَكْثَرُ مَا يَلْبَسُهُ عَادَةً فِيْ حَيَاتِهِ** او په دې وجه (هم) چي درې کپړې زياتره وخت انسان په خپل ژوند کي د عادت په توګه اغوندي **فَكَذَا بَعْدَ مَمَاتِهِ** نو همداسي به تر مرګ وروسته (هم درې کپړې ور اغوستل کيږي).

**اللغات:** ﴿إِزَار﴾ لنګ، ﴿لِفَافَة﴾ هغه شی چي مړی پکښې ونغښتل سي، مراد ځني هغه پټو دی چي ټوله بدن پکښې پټ سي، ﴿سَحُوْلِيَّة﴾ د يمن د يو کلي (محلې او سيمې) نوم دی.

**تشريح:** کفن پر درې قسمه دی: (۱) کفنِ مسنون (۲) کفنِ کفايه (۳) کفنِ ضرورت، په دې عبارت کي کفنِ مسنون يعني سنت کفن بيانيږي، کفنِ سنت د خلکو په حق کي درې جامې دي: ① ازار، هغه لنګ ځني مراد دی چي له سر څخه تر پښو پوري وي، ② قميص له غاړې څخه تر پښو پوري وي، بغير له لستونو څخه، ③ لفافه، هغه پټو (څادر) چي له سر څخه تر پښو پوري وي، چي ټوله بدن پټ کړي.

**دليل:** د دې دريو جامو پر سنتوالي دليل دا دی چي نبي ﷺ ته د سحوليه کلي په دريو سپينو کپړو کي کفن ورکول سو، او جابر بن سمره رضی الله عنه فرمايلي دي: کفن رسول الله ﷺ في ثلثة أثواب قميص و إزار ولفافة. لنډه دا چي له دې څخه دا ثابته سوه چي د نبي ﷺ کفن درې کپړې وې، **دويم دليل:** دا دی چي انسان په عامه توګه په ژوند کي درې کپړې اغوندي (يعني کميس، لنګ [يعني پرتوګ] او پټو)، نو ځکه به تر مرګ وروسته هم درې کپړې ور اغوستل کيږي.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب الكفن بلا عمامة، حديث رقم: ۱۲۷۳.

## د سړي د کفن کمه اندازه

فَإِنِ اقْتَصَرُوا عَلٰى ثَوْبَيْنِ جَازَ لېکن که خلکو پر دوو کپړو (جامو) اکتفاء وکړه نو (هم) جائز دي وَالثَّوْبَانِ إِزَارٌ وَلِفَافَةٌ او دوې جامې لنګ او لفافه دي وَهٰذَا كَفَنُ الْكِفَايَةِ او دا کفنِ کفايه دی لِقَوْلِ أَبِي بَكْرٍ د حضرت ابو بکر ﷺ د قول په وجه سره اِغْسِلُوا ثَوْبَيَّ هٰذَيْنِ وَكَفِّنُونِي فِيهِمَا "زما دا دوې جامې پرېولئ او ما ته په دې کي کفن راکړئ" (يعني ما په دې کي پټ کړئ) وَلِأَنَّهُ أَدْنٰى لِبَاسِ الْأَحْيَاءِ او په دې جه (هم) چي دا دوې جامې د ژوندي خلکو د جامو کمه حصه ده وَالْإِزَارُ مِنَ الْقَرْنِ إِلَى الْقَدَمِ او ازار (لنګ) به له سر څخه تر پښو پوري وي وَاللِّفَافَةُ كَذٰلِكَ او لفافه به هملارنګه وي وَالْقَمِيصُ مِنْ أَصْلِ الْعُنُقِ او کميس به له غاړي څخه (تر پښو پوري) وي.

**اللغات:** ﴿اِقْتَصَرُوا﴾ د افتعال د باب ماضي ده: اکتفاء کول. ﴿كِفَايَة﴾ هغه مقدار چي فقط کافي سي، ﴿قَرْن﴾ سر، ښکر.

**تشريح:** په دې عبارت کي د نارينه د کفنِ کفايه بيان دی، د نارينه په حق کي کفنِ کفايه دوې کپړې دي: يو ازار او بل لفافه. د کفنِ کفايه په باره کي د صديق اکبر ﷺ له قول څخه دليل نيول کيږي، پوره قول په مصنف ابن عبد الرزاق کي داسي ذکر سوی دی: عن عائشة قالت قال ابو بكر لثوبيه الذين كان يمرض فيهما اغسلوهما وكفنوني فيهما فقالت عائشة ألا نشترى لك جديداً فقال لا الحي أحوج إلى الجديد من الميت. (حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل: چي زما پِتمن پلار ابوبکر ﷺ د هغو دوو جامو په باره کي وفرمايل چي په هغو کي دی ناروغه سوی وو: چي دا دواړي پرېولئ. او زما لپاره يې کفن کړئ، حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل: پلاره محترمه! آيا موږ ستا لپاره نوي جامې نه رانيسو. وېې فرمايل: نه! ژوندی سړی د نوو جامو زيات مستحق دی په نسبت د مړي ته، فتح القدير)، دويم دليل د ابن عباس حديث دی، قصه داسي ده چي يو سړی د احرام په حالت کي له اوښې څخه را ولوېدی، مړ سو، نو نبي ﷺ وفرمايل: وكفنوه في ثوبين، (يعني هغه ته په دوو جامو کي کفن ورکړئ).

**عقلي دليل:** دا دی چي د ژوندو خلکو د کمي اندازې کالي دوې کپړې وي، نو تر مرګ وروسته به هم پر دوو کپړو اکتفاء کول جائز وي، صاحب د هدايې د دريو سره کپړو تفصيل داسي بيان کړی دی چي ازار به له سر څخه تر پښو پوري وي، او لفافه به هم دغومره وي، او قميص به له غاړي څخه تر پښو پوري وي، لېکن په دې کي به نه جېب وي، نه غاړه او نه لستوڼي.

## د کفن ورکولو طريقه

وَإِذَا أَرَادُوا لَفَّ الْكَفَنِ او کله چي خلک (پر مړي) د کفن د را پېچلو اراده وکړي اِبْتَدَءُوا بِجَانِبِهِ الْأَيْسَرِ نو د مړي له چپه طرفه دي يې شروع کړي فَلَفُّوهُ عَلَيْهِ او د چپه طرف والا کفن دي پر مړي وپېچي ثُمَّ بِالْأَيْمَنِ بيا دي يې له راسته طرفه شروع کړي كَمَا فِي حَالِ الْحَيَاةِ لکه د ژوند په حالت کي چي کيږي وَبَسْطُهُ أَنْ تُبْسَطَ اللِّفَافَةُ أَوَّلًا او د کفن غوړولو طريقه دا ده چي اول دي لفافه وغوړل سي ثُمَّ يُبْسَطَ عَلَيْهَا الْإِزَارُ بيا دي پر لفافه ازار وغوړل سي ثُمَّ يُقَمَّصُ الْمَيِّتُ بيا دي مړي ته کميس ور واغوستل سي وَيُوضَعَ عَلَى الْإِزَارِ او پر ازار به کښېښول سي ثُمَّ يُعْطَفَ الْإِزَارُ مِنْ قِبَلِ

اليَسَارِ ثُمَّ مِنْ قِبَلِ الْيَمِينِ او بيا دي ازار له چپه طرف څخه او بيا دي له راسته طرف څخه را وپېچل سي ثُمَّ اللِّفَافَةُ كَذَلِكَ بيا دي لفافه هم داسي را وپېچل سي وَإِنْ خَافُوا أَنْ يَنْتَشِرَ الْكَفَنُ عَنْهُ او كه خلكو ته دا ډېره وه چي كفن به له مري څخه خلاص سي عَقَدُوهُ بِخِرْقَةٍ نو د ټوكر په يوه ټوټه (يا ربنكى) سره دي يې وتړي صِيَانَةً عَنِ الْكَشْفِ له خلاصېدلو څخه د ساتني لپاره (يعني كه د كفن د خلاصېدلو انديښنه وه نو په يوه ربنكى سره دي يې وتړي چي خلاص نه سي).

**اللغات:** ﴿لف﴾ د نصر د باب مصدر دى: پېچل. ﴿بسط﴾ د نصر د باب مصدر دى: ‌نوړول. ﴿يقمّص﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: قميص (كميس) ور اغوستل. ﴿يعطف﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده. دا باب ډېري معناوي لري، كله چي د ثوب سره راسي، نو معنىٰ يې راځي: تاوول، پېچل، اغوستل. ﴿ينتشر﴾ د افتعال مضارع ده: خورېدل، (مراد ځني خلاصېدل دي). ﴿صيانة﴾ ساتنه، ژغورنه.

**تشريح:** مري ته د كفن وركولو طريقه دا ده چي كفن وركونكى دي اول څادر يعني لفافه وغوړوي، بيا دي پر هغه لنګ وغوړوي، بيا دي پر هغه قميص وغوړوي، وروسته دي مړى پر پرې باسي، اول دي قميص ور واغوستل سي، بيا دي د لنګ چپه طرف اول پر را وپېچي، او بيا دي يې راسته طرف پر را وپېچي، د دې لپاره چي چپه طرف لاندي سي، او راسته طرف لوړ سي، او لفافه دي همدارنګه پر را وپېچل سي، صاحب د هدايې د سري په كفن كي د لنګوټې (عمامې) ذكر نه وكړى، ځكه چي بعضي حضراتو په كفن كي لنګوټه مكروه ګرځولې ده، ځكه كه لنګوټه هم په كفن كي شامله كړى سي، نو د كفن كپړې به په جفت شمېر سره سي، حال دا چي سنت طاق شمېر يعني درې كپړې دي، لېكن بعضي حضراتو لنګوټه مستحب ګرځولې ده، او په دليل كي يې ويلي دي چي ابن عمر به مړي ته لنګوټه ور اغوستل، او د لنګوټې شمله به يې د مړي پر مخ اچول، لېكن دا قول د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د قول يعني كُفِّنَ رسول الله ﷺ فى ثلاثة أثواب بيض خلاف دى.

**فايده:** د كفن لپاره سپينه پمبيزه كپړه استعمالول افضله دي، ځكه په حديث كي هم دې ته اشاره سوې ده.

## د ښځي سنت كفن

وَتُكَفَّنُ الْمَرْأَةُ فِي خَمْسَةِ أَثْوَابٍ او ښځي ته به په پنځو كپړو (جامو) كي كفن وركول كيږي دِرْعٍ وَإِزَارٍ وَخِمَارٍ وَلِفَافَةٍ په (١) قميص (٢) لنګ (٣) پوړني (۴) څادر (پټو) كي وَخِرْقَةٍ تُرْبَطُ فَوْقَ ثَدْيَيْهَا (٥) او يوه ټوټه (ربنكى) چي هغه به د دې پر تيانو تړل كيږي لِحَدِيثِ أُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ام عطيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حديث په وجه أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1] أَعْطَى اللَّوَاتِيْ غَسَّلْنَ ابْنَتَهُ خَمْسَةَ أَثْوَابٍ چي نبي ﷺ د خپلي لور غسل وركونكو ښځو ته پنځه جامې وركړې وَلِأَنَّهَا تَخْرُجُ فِيهَا حَالَةَ الْحَيَاةِ او په دې وجه (هم) چي ښځه په خپل ژوند كي په دې پنځو جامو كي راوځي فَكَذَا بَعْدَ الْمَمَاتِ نو همداسي به تر مرګ وروسته (هم) وي ثُمَّ هَذَا بَيَانُ كَفَنِ السُّنَّةِ بيا دا د سنت كفن بيان

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب الجنائز، باب فى كفن المرأة، حديث رقم: ٣١٥٧.

دی وَإِنِ اقْتَصَرُوا عَلٰى ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ جَازَ او كه دې خلكو پر دريو جامو اكتفاء وكړه نو هم جائز دي وَهِيَ ثَوْبَانِ وَخِمَارٌ او هغه دوې جامې دي (يعني ازار او پټو) او بل پوړنی دی وَهُوَ كَفَنُ الْكِفَايَةِ او دا كفايه كفن دی وَيُكْرَهُ أَقَلُّ مِنْ ذٰلِكَ او له دې څخه كمي جامې مكروه دي (يعني له دې څخه په كمو جامو كي ښځي ته كفن وركول مكروه دي) وَفِي الرَّجُلِ يُكْرَهُ الِاقْتِصَارُ عَلٰى ثَوْبٍ وَاحِدٍ او په سړي كي پر يوه جامه اكتفاء كول مكروه دي إِلَّا فِي حَالَةِ الضَّرُورَةِ ليكن د ضرورت په حالت كي (جائز دی) لِأَنَّ مُصْعَبَ بْنَ عُمَيْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ● حِينَ اسْتُشْهِدَ ځكه مصعب بن عمير ﷺ چي كله شهيد كړی سو كُفِّنَ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ نو په يوه جامه كي كفن وركول سو وَهٰذَا كَفَنُ الضَّرُورَةِ او دا د ضرورت (مجبوری) كفن دی.

**اللغات:** ﴿درع﴾ كنډل سوی كميس (دلته مراد ځني مطلق كميس دی)، ﴿خمار﴾ پوړنی، ﴿ثديين﴾ تثنيه ده، واحد يې ثدئ دی، مراد ځني تي دي.

**تشريح:** په دې عبارت كي د ښځي سنت كفن بيانوي، فرمايي چي د ښځي سنت كفن پنځه كپړې دي: ① قميص، ② ازار (لنګ)، ③ پوړنی، ④ لفافه (پټو)، ⑤ د كپړې يوه ټوټه يا ربنكی چي د ښځي تيان په وتړل سي، دليل دام عطيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی، او هغه دا چي كله د نبي ﷺ لور حضرت زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفات سوه، نو كومو ښځو چي هغې ته غسل وركوی، نبي ﷺ هغو ته د كفن لپاره همدغه پنځه كپړې وركړې.

**عقلي دليل:** دا دی چي په ژوند كي په عامه توګه ښځه په دغه پنځو كالو كي اوسيږي، نو ځكه به تر مرګ وروسته هم دغه پنځه كپړې ور اغوستل كيږي.

**د ښځي د كفن كمه اندازه:** وإن اقتصروا على ثلاثة الخ له دې ځايه د ښځي كفنِ كفايه بيانيږي، نو د ښځي كفنِ كفايه درې كپړې دي: (۱) ازار (۲) لفافه (۳) پوړنی. له دريو څخه په كمو كپړو كي ښځي ته كفن وركول مكروه دي، ليكن كه د ضرورت په وجه وو، نو جائز دي، او د نر لپاره يوه كپړه كفنِ ضرورت دی. دليل د خباب بن ارت حديث دی:

قال هاجرنا مع النبي ﷺ نريد وجه الله تعالى فوقع اجرنا على الله فمنا من مضى ولم يأخذ من أجره شيئا منهم مصعب بن عمير قتل يوم أحد وترك نمرة فكنا إذا غطينا بها رأسه بدت رجلاه، و إذا غطينا بها رجليه بدأ رأسه فأمرنا رسول الله ﷺ أن نغطي رأسه وأن نجعل على رجليه شيئا من الاذخر (خباب بن ارت وايي چي موږ صرف د الله د رضا لپاره د نبي ﷺ سره هجرت وكړی، زموږ اجر پر الله تعالیٰ دی، زموږ څخه چي كوم خلګ مخكي تېر سول او په دنيا كي يې هيڅ اجر هم نه واخيستی، له هغو څخه يو مصعب بن عمير ﷺ دی، چي د أحد په ورځ شهيد سو، هغه يو ليكه داره (كربښي لرونكی) پټو پرېښوی، په دې سره چي به موږ كله د هغه سر پټوی، نو پښې به يې ښكاره كېدلې، او كله چي به مو پښې په پټولې نو سر به يې ښكاره كېدی، نو موږ ته رسول الله ﷺ حكم راكړی چي د مصعب سر پټ كړو او پر پښو يې د اذخر وابنه واچوو).

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب اذا لم يوجد إلا ثوب واحد، حديث رقم: ۱۲۷۵.

## ښځې ته د کفن ورکولو طریقه

وَتُلْبَسُ الْمَرْأَةُ الدِّرْعَ أَوَّلًا او ښځې ته به اول کمیس ور واغوستل سي ثُمَّ يُجْعَلُ شَعْرُهَا ضَفِيْرَتَيْنِ بیا به د هغې له وربښتیانو څخه دوې کوڅۍ (چوټیان) جوړې کړل سي عَلٰى صَدْرِهَا فَوْقَ الدِّرْعِ د هغې پر سینې تر کمیس لوړ (یعني دا کوڅۍ به د هغې پر سینه پر کمیس لوړې کېښوله سي) ثُمَّ الْخِمَارُ فَوْقَ ذٰلِكَ بیا به پر کمیس پوړنۍ ور واغوستل سي ثُمَّ الْإِزَارُ تَحْتَ اللِّفَافَةِ بیا به تر څادر لاندې لنګ ور واغوستل سي.

**اللغات:** ﴿ضَفِيْرَتَيْنِ﴾ دوې کوڅۍ، دوه چوټیان، مراد څني دوربښتیانو دوې حصې دي.

**تشریح:** د ښځې د کفن طریقه دا ده چې ښځې ته به اول کمیس ور واغوندي، بیا به یې وربښتیان دوې حصې کړي، یوه حصه به یې پر کمیس لوړه راسته طرف ته کېښږدي، او بل چپه طرف ته، بیا به پر کمیس پوړنۍ وپېچي چې تر کمیس او وربښتیانو لوړ پوړنۍ راسي، لکه څرنګه چې په ژوند کې هم ښځه پر کمیس او وربښتیانو لوړ پوړنۍ پر سر کوي، بیا به لنګ پر وپېچي چې هغه به له سر څخه تر پښو پورې وي، او بیا به د تیانو د ترلو لپاره یو ټوکر پر وپېچي، او دا ټوکر به تر ورنو پورې وي، او پر دې ټولو به پټو را وپېچي چې ټوله پټ کړی سي؛ او د ټولو کپړو چپه طرف به اول راپېچي، او راسته طرف به وروسته راپېچي چې راسته طرف لوړ راسي.

## پر کفن باندې د عطر لګولو حکم

قَالَ: وَتُجْمَرُ الْأَكْفَانُ قَبْلَ أَنْ يُدْرَجَ فِيْهَا الْمَيِّتُ وِتْرًا فرمایي: چې په کفن کې دې د مړي تر پېچلو مخکې و کفن ته په طاق شمېر سره څه خوشبویي ودودول سي (مطلب دا چې هسې په یو بوی دې کفن خوشبوداره کړل سي) لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] أَمَرَ بِإِجْمَارِ أَكْفَانِ ابْنَتِهِ وِتْرًا ځکه نبي ﷺ د خپلې لور و کفن ته د خوشبویي دودولو حکم کړی وو وَالْإِجْمَارُ هُوَ التَّطْيِيْبُ او له اجمار څخه مراد خوشبوداره کول (او عطر لګول) دي فَإِذَا فَرَغُوْا مِنْهُ بیا چې کله خلک له کفن څخه فارغه سي صَلُّوْا عَلَيْهِ نو پر مړي دې د جنازې لمونځ وکړي لِأَنَّهَا فَرِيْضَةٌ ځکه چې د جنازې لمونځ فرض دی.

**اللغات:** ﴿يُدْرَجُ﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: داخلول (پېچل)، ﴿أَكْفَانُ﴾ جمع د کَفَنٌ ده: کفن، ﴿تَطْيِيْبٌ﴾ د تفعّل مصدر دی: عطر لګول.

**تشریح:** په دې عبارت کې کفن ته د یو خوشبوداره شي د دودولو حکم ذکر سوی دی، مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چې له دودولو څخه مراد خوشبوداره کول دي، یعني کفن دې هسې په یو بوی خوشبوداره کړی سي چې ښه بوی څني پورته سي، هغه که د یو شي په دودولو سره وي او که په عطرو سره وي، یا په یو بل شي سره وي، او دا کار په طاق شمېر سره کول سنت دي، لکه حدیث چې هم پر دې خبره ګواه دی، تر کفن وروسته دې پر مړي د جنازې لمونځ وسي، ځکه چې د جنازې لمونځ فرض کفایي دی.

---

[1] تخریج: أخرجه البیهقي في کتاب الجنائز، باب الحنوط للمیت، حدیث رقم: ۶۷۰۶.

# فَصْلٌ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْمَيِّتِ

## (دا) فصل پر مړي دلمونځ کولو (په بيان کي) دی

**تشريح:** څرنګه چي تر کفن وروسته د جنازې د لمانځه پړاو راځي، نو ځکه صاحب د کتاب تر تکفين وروسته د جنازې دلمانځه فصل بيانوي.

### د جنازې د لمانځه زيات حقداره څوک دی؟

| |
|---|
| وَأَوْلَى النَّاسِ بِالصَّلَاةِ عَلَى الْمَيِّتِ السُّلْطَانُ او پر مړي د جنازې د لمانځه تر ټولو زيات حقداره باچا دی إِنْ حَضَرَ خو په دې شرط چي هغه حاضر وي لِأَنَّ فِي التَّقَدُّمِ عَلَيْهِ ازْدِرَاءً بِهِ ځکه چي له هغه څخه په مخکي کېدلو کي د هغه سپکاوی دی فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ فَالْقَاضِي لېکن که باچا حاضر نه وو نو قاضي زيات حقداره دی لِأَنَّهُ صَاحِبُ وِلَايَةٍ ځکه چي هغه ولايت لرونکی دی فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ او که قاضي (هم) نه وو فَيُسْتَحَبُّ تَقْدِيمُ إِمَامِ الْحَيِّ نو د کلي امام مخته کول مستحب دي لِأَنَّهُ رَضِيَهُ فِي حَالِ حَيَاتِهِ ځکه چي مړی په خپل ژوند کي د هغه په امامت راضي وو قَالَ: ثُمَّ الْوَلِيُّ بيا د مړي ولي زيات حقداره دی وَالْأَوْلِيَاءُ عَلَى التَّرْتِيبِ الْمَذْكُورِ فِي النِّكَاحِ او بيا نور وليان د هغه ترتيب مطابق حقداره دي کوم چي په نکاح کي ذکر سوي دي. |

**اللغات:** ﴿ازْدِرَاءً﴾ دافتعال مصدر دی: سپکاوی، ملنډي وهل، تحقير، ﴿حَيّ﴾ کلی، کوڅه.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي د جنازې دلمانځه تر ټولو زيات حقداره باچا دی، يعني که يو مسلم او عالم باچا د يو مړي په جنازه کي حاضر وو، او باچا د لمانځه په احکامو او مسئلو خبر وو، نو باچا تر ټولو زيات حقداره دی، ځکه د باچا په وجود کي که يو بل سړی مخته کړی سي، نو په دې کي د باچا بې عزتي او سپکاوی دی، حال دا چي پر موږ د باچا تعظيم او عزت واجب ګرځول سوی دي، نو ځکه به تر ټولو زيات د امامت مستحق باچا وي.

هو! که باچا نه وو، نو بيا به د هغه له طرف څخه ټاکل سوی شرعي قاضي د جنازې دلمانځه زيات حقداره وي، ځکه هغه د ولايت خاوند دی، او د هغه ولايت عام او پوره دی، لېکن که قاضي هم نه وو، نو بيا به د کلي او محلې امام د جنازې لمونځ ورکوي، ځکه چي مړي به په خپل ژوند کي د هغه په اقتداء کي په رضا او رغبت سره لمونځونه کول، نو تر مرګ وروسته به هم د هغه په امامت راضي وي.

قال ثم الولی الخ فرمايي که په دې وخت کي د کلي امام هم نه وو، نو بيا به د مړي ولي د جنازې لمونځ ورکوي، او د جنازې په لمانځه کي به هم د وليانو هغه ترتيب وي، کوم چي په نکاح کي ذکر سوی دی، خو دلته به د ښځي پلار د ښځي تر زوی مخکي وي، لېکن په نکاح کي د ښځي زوی د ښځي تر پلار مخکي دی، په بنايه کي ذکر سوي دی: قال الأوزاعی والحسن البصری الأب أحق، ثم الزوج، ثم الإبن، ثم الأخ. (بنايه ج:۳، ص:۲۲۵)

## که له ولي څخه بغیر بل چا د جنازې لمونځ وركړي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ صَلَّى غَيْرُ الْوَلِيِّ أَوِ السُّلْطَانِ بیا که له ولي او باچا څخه بغیر بل چا د جنازې لمونځ وركړي أَعَادَ الْوَلِيُّ نو ولي دي لمونځ (دويم ځل) را وګرځوي يَعْنِي إِنْ شَاءَ يعني كه يې خوښه وي (نو را ودي يې ګرځوي) لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ مخكي بيان كړي أَنَّ الْحَقَّ لِلْأَوْلِيَاءِ چي حق د مړي وليانو لره دی وَإِنْ صَلَّى الْوَلِيُّ او كه ولي د جنازې لمونځ ودكړي لَمْ يَجُزْ لِأَحَدٍ أَنْ يُصَلِّيَ بَعْدَهُ نو تر هغه وروسته د هيچا لپاره د جنازې لمونځ كول جائز نه دي لِأَنَّ الْفَرْضَ يَتَأَدَّى بِالْأَوَّلِ ځكه چي فرض په اول وار اداء كيږي (ځكه چي دا فرض كفايي دی) وَالتَّنَفُّلُ بِهَا غَيْرُ مَشْرُوعٍ او د جنازې په لمانځه كي نفل مشروع نه دي وَلِهَذَا رَأَيْنَا النَّاسَ همدا وجه ده چي موږ خلك وينو تَرَكُوا عَنْ آخِرِهِمُ الصَّلَاةَ عَلَى قَبْرِ النَّبِيِّ (ص) چي هغوی (له اوله څخه) تر آخره پوري د نبي ﷺ پر قبر لمونځ پرې ايښی دی وَهُوَ الْيَوْمَ كَمَا وُضِعَ حال دا چي نن ورځ (هم) نبي ﷺ هغسي صحيح سلامت پروت دی لكه څرنګه چي (په اوله ورځ په قبر كي) ايښودل سوی وو.

**تشریح:** تر دې مخكي دا خبره ذكر سوه چي تر ټولو زيات د جنازې د لمانځه حقداره باچا دی. بيا په آخر كي د ولي درجه ده، اوس كه له باچا او ولي څخه ماسوا بل سړي د جنازې لمونځ وركړي، نو ولي او باچا ته د لمونځ راګرځولو حق سته، ځكه چي دوی ته له شروع څخه د مخكي كېدلو حق حاصل دی، نو په راګرځولو كي به په طريقه اولی دوی ته دا حق حاصل وي، لېكن څرنګه چي د باچا حق تر ټولو مخكي دی، نو كه باچا د جنازې لمونځ وركړي، يا قاضي يا ولي ودكړي، نو تر دوی وروسته د هيڅ سړي لپاره د جنازې د لمانځه اجازه نسته، ځكه چي د جنازې لمونځ فرض كفايي دی، او په يوه وار كولو سره دا فرض اداء كيږي، او په دې كي نفل هم مشروع نه دي، نو ځكه به تر ولي او نورو وروسته د جنازې د لمانځه اجازه نه وي.

ولهذا الخ او په جنازه كي د نفلو د نه مشروع كېدلو په وجه موږ وينو چي له اول څخه تر اوسه پوري د نبي ﷺ پر قبر مبارك چا لمونځ نه دي كړی، حال دا چي نبي ﷺ نن هم په خپل مقدس قبر كي هغسي تر وتازه پروت دی، څرنګه چي پټ سوی وو، ځكه چي هغه سردار د انبياؤ او رسولانو دی، او د انبياؤ جسم خاوري نه خوري، نو كله چي د نبي كريم ﷺ پر قبر دويم وار د جنازې د لمانځه اجازه نسته، نو د نورو پر قبرو به دا څرنګه جائز وي، نور خو د نبي ﷺ د پښو د خاورو سره هم برابر نه دي.

د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ولي د جنازې تر لمانځه وروسته نورو خلكو ته هم د لمانځه حق سته، په دې باره كي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي يوه ښځه په مدينه منوره كي مړه سوه، او خلكو پټه كړه، لېكن نبي ﷺ ته يې خبر نه وركړی، سهار چي كله نبي ﷺ په دې خبر سو، نو ويې فرمايل: چي تاسو زه ولي خبر نه كړم، خلكو د تيارې او خزندلو عذر ووايی (يعني چي د شپې تياره وه، همدارنګه د خزندلو خطره هم وه)، نو نبي ﷺ د هغې پر قبر دوباره لمونځ وكړی، له دې څخه معلوميږي چي د ولي تر لمانځه وروسته نورو خلكو ته هم د جنازې د لمانځه حق سته، لېكن زموږ له طرفه جواب دا دی چي نبي ﷺ هم د دې ميت ولي وو، بلكي نبي ﷺ خو رئيس الاولياء وو، لكه څرنګه چي د قرآن كريم دا اعلان دی: النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ [الاحزاب، ۶]، لهذا نبي ﷺ د نږدې ولايت په وجه د هغې د جنازې لمونځ دويم وار وكړی، او نږدې ولي ته د دويم وار كولو حق سته.

## که مړی د جنازې له لمانځه څخه بغير ښخ کړی سو نو څه حکم دی؟

وَإِنْ دُفِنَ الْمَيِّتُ او که مړی ښخ (ښخ) کړی سو وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ او پر هغه لمونځ نه وسو صُلِّيَ عَلَى قَبْرِهِ نو د هغه پر قبر دې د جنازې لمونځ وسي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] صَلَّى عَلَى قَبْرِ امْرَأَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ ځکه نبي ﷺ د يوې انصاري ښځي پر قبر لمونځ وکړی وَيُصَلَّى عَلَيْهِ قَبْلَ أَنْ يَتَفَسَّخَ او پر مړي به د هغه تر پرسېدل (يعني خرابېدلو) مخکي لمونځ کېږي وَالْمُعْتَبَرُ فِي مَعْرِفَةِ ذٰلِكَ أَكْبَرُ الرَّأْيِ او د دې د پېژندګلوی په باره کي غالب ګومان معتبر دی هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح دی لِاخْتِلَافِ الْحَالِ وَالزَّمَانِ وَالْمَكَانِ ځکه چي د مړي حالت د وخت او ځای په اعتبار سره مختلف کېږي.

**اللغات:** ﴿يَتَفَسَّخَ﴾ پرسېدل، شوړېدل، مراد څني د مړي د بدن خرابېدل او شوړېدل دي، ﴿أَكْبَرُ الرَّأْيِ﴾ غالب ګومان.

**تشريح:** مسئله: دا ده که مړی بغير د جنازې له لمانځه څخه ښخ سو، نو د هغه پر قبر دې د جنازې لمونځ وسي، دليل دا دی چي يوه انصاري ښځه په داسې حال کي ښخه سوه چي نبي ﷺ پر هغې د جنازې لمونځ نه وو کړی، خو کله چي نبي ﷺ په دې خبر سو، نو د هغې پر قبرې لمونځ وکړی.

صاحب د قدوري وايي چي پر قبر د لمونځ کولو اجازه هغه وخت سته چي کله مړی خراب سوی نه وي، يعني که د مړي بدن وپرسيږي، او وشوړيږي، او د بدن اجزاء يې بېل بېل سي، نو بيا د لمانځه اجازه نسته، صاحب د هدايې وايي چي د پرسېدلو او شوړېدلو د پېژندګلوی لپاره غالب ګومان معتبر دی، يعني تر څو چي غالب ګومان دا وي چي د مړي لاش لا تر اوسه نه دي شوړېدلی، نو پر هغه لمونځ کېدلای سي، او کله چي يې د شوړېدلو غالب ګومان وي، نو بيا لمونځ جائز نه دی، همدا صحيح قول دی، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي تر پنځو ورسته تر درېو ورځو پوري پر قبر لمونځ کول جائز دي، تر هغه ورسته جائز نه دي، د صحيح قول دليل دا دی چي د لاش خرابېدل د مړي د حالت په اختلاف سره مختلف کېږي، حتیٰ چي ډنډ او تازه لاش تر وچ او ډنګر لاش ژر خرابيږي او شوړيږي، همدارنګه د مړي حالت د موسم او ځای په اختلاف سره هم بدليږي، تر دې چي د ګرمۍ په موسم کي د ژمي په نسبت ژر لاش خرابيږي، او په لنډه او مالګينه ځکه کي هم د وچي ځمکي په نسبت ژر خرابيږي، لنډه دا چي کله غالب ګومان معتبر دی، نو که غالب ګومان دا وو چي تر درېو ورځو مخکي لاش خراب سوی دی، نو پر هغه به لمونځ نه کېږي، او که غالب ګومان دا وو چي تر درېو ورځو ورسته هم نه دي خراب سوی، نو پر هغه به تر درېو ورځو ورسته هم لمونځ کول جائز وي، پاته سوه دا خبره چي نبي ﷺ اته کاله ورسته د أُحُد پر شهيدانو لمونځ وکړی، د دې څه وجه ده؟ د هغه جواب دا دی چي نبي ﷺ د أُحُد د شهيدانو لپاره دعاء وکړه، چي له هغه څخه تعبير په صلیٰ سره سوی دی.

## د جنازې د لمانځه سنت طريقه

وَالصَّلَاةُ او د لمانځه طريقه دا ده أَنْ يُكَبِّرَ تَكْبِيرَةً [١] چي لمونځ ګزاره دې يو تکبير ووايي يَحْمَدُ اللهَ عَقِيبَهَا تر هغه ورسته دې د الله حمد ووايي (يعني ثناء دې ووايي) ثُمَّ يُكَبِّرَ تَكْبِيرَةً [٢] بيا دې بل تکبير ووايي يُصَلِّيَ فِيهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب السنن الكبرى، باب الصلاة على القبر بعد ما يدفن الميت، حديث رقم: ٧٠١٨.

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او په هغه کې دې پر نبي ﷺ درود شريف ووايي ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيْرَةً [۳] بيا دې بل تکبير ووايي يَدْعُوْ فِيْهَا لِنَفْسِهِ وَلِلْمَيِّتِ وَلِلْمُسْلِمِيْنَ او په هغه کې دې د خپل ځان، او د مړي، او د (ټولو) مسلمانانو لپاره دعاء وکړي ثُمَّ يُكَبِّرُ الرَّابِعَةَ [۴] بيا دې څلورم تکبير ووايي وَيُسَلِّمُ او سلام دې وګرځوي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● كَبَّرَ أَرْبَعًا فِيْ آخِرِ صَلَاةٍ صَلَّاهَا ځکه نبي ﷺ چې کوم آخري لمونځ کړی وو په هغه کې يې څلور تکبيرونه ويلي وو فَنَسَخَتْ مَا قَبْلَهَا لهذا (په دې سره) مخکني تکبيرونه منسوخ سول وَلَوْ كَبَّرَ الْإِمَامُ خَمْسًا لَمْ يُتَابِعْهُ الْمُؤْتَمُّ او که امام پنځه تکبيرونه وويل نو مقتدي دې (تر څلورو په زياتو کې) د امام تابعداري نه کوي خِلَافًا لِزُفَرَ د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّهُ مَنْسُوْخٌ لِمَا رَوَيْنَا ځکه چې پنځه تکبيرونه منسوخ دي د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَيَنْتَظِرُ تَسْلِيْمَةَ الْإِمَامِ فِيْ رِوَايَةٍ او په يوه روايت کې (راغلي) دي چې د امام د سلام انتظار دې کوي وَهُوَ الْمُخْتَارُ مختاره روايت همدغه دی وَالْإِتْيَانُ بِالدَّعَوَاتِ اسْتِغْفَارٌ لِلْمَيِّتِ او دعاګاني کول (په حقيقت کې) د مړي لپاره استغفار کول دي وَالْبِدَايَةُ بِالثَّنَاءِ ثُمَّ بِالصَّلَاةِ سُنَّةُ الدُّعَاءِ او په ثناء سره شروع کول بيا درود شريف ويل د دعاء سنت دي وَلَا يَسْتَغْفِرُ لِلصَّبِيِّ او د کوچني لپاره به استغفار نه غواړي وَلٰكِنْ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا وَاجْعَلْهُ لَنَا أَجْرًا وَذُخْرًا وَاجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا وَمُشَفَّعًا ليکن داسي به وايي: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا (اې الله دا کوچنی زموږ لپاره په آخرت کې مخکني سفارشي (سپاربنتي) جوړ کړې وَاجْعَلْهُ لَنَا أَجْرًا وَذُخْرًا او دی زموږ لپاره ثواب او د نيکۍ ذخيره جوړه کړې وَاجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا وَمُشَفَّعًا او دی زموږ لپاره داسي سپاربنتي جوړ کړې چې سپاربنت يې قبول کړی سي.

**اللغات:** ﴿عقيب﴾ وروسته، ﴿فرط﴾ هغه سامان چې انسان يې تر سفر مخکې واستوي (مراد ځني په آخرت کې سپاربنتي دی)، ﴿ذخر﴾ ذخيره، ﴿مشفع﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: داسي سپاربنتي چې د هغه سپاربنت قبليږي.

**تشريح:** په دې عبارت کې د جنازې د لمانځه طريقه بيانيږي، فرمايي چې د جنازې لمونځ څلورو تکبيرونو ته ويل کيږي، تفصيل يې دا دی: ① چې تر نيت وروسته دې تکبير د افتتاح ووايي، او دواړه لاسونه دې تر غوږو پوري پورته کړي، تر دې وروسته دې د الله ﷻ ثناء ووايي يعني الحمد لله او د الحمد لله په ځول نوري کلمې ووايي، بعضو ويلي دي چې: سبحانك اللهم وبحمدك ...الخ دې ووايي، لکه څرنګه چې په نورو لمونځونو کې هم د ثناء لپاره دغه ويل کيږي. زموږ په نيز تر اول تکبير وروسته سورت فاتحه ويل مشروع نه دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې سورت فاتحه دې ووايي.

**د امام شافعي دليل:** قياس دی، د جنازې لمونځ پر نورو لمونځونو قياسوي، يعني څرنګه چې په نورو لمونځونو کې د قرآن قرائت ضروري دی، همداسي به د جنازې په لمانځه کې هم د قرآن قرائت ضروري وي.

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الجنائز، باب التسليم في الجنائز واحد والتكبير اربع، حديث رقم:۱۷۹۹.

**زموږ دليل:** دا دی چي له حضرت نافع ﷺ څخه روايت دی: أن ابن عمر رضي الله عنهما كان لايقرأ في الصلوٰة على الجنازة. (نافع ﷺ فرمايي: چي عبد الله بن عمر به د جنازي په لمانځه کي قرائت نه کوی). **عقلي دليل:** دا دی چي د جنازې لمونځ صرف ديوه رکن (يعني د ولاړي) نوم دی، او په يوازي رکن کي د قرآن قرائت مشروع نه وي، لکه څرنګه چي په سجده تلاوت کي ديوازي رکن کېدلو په وجه قرائت مشروع نه دی.

② بيا دي د دويم تکبير تر ويلو وروسته پر نبي ﷺ درود ووايي، **دليل:** ځکه د الله تعالیٰ تر ثناء وروسته دويمه درجه د نبي ﷺ د درود ده، لکه څرنګه چي په تشهد کي هم دغه ترتيب دی، او هم پر دې ترتيب خطبې وضع سوي دي. ③ بيا دي دريم تکبير ووايي او تر هغه وروسته دي د خپل ځان لپاره، او د مړي لپاره او د ټولو مسلمانانو لپاره دعاء وکړي، او که دا دعاء يې ياده وي، نو دا دعاء دي ووايي: اللّٰهم اغفر لحينا وميتنا وشاهدنا وغائبنا وصغيرنا وكبيرنا وذكرنا وأنثانا اللّٰهم من أحييته منا فأحيه على الاسلام ومن توفيته منا فتوفه على الايمان الخ، او که دا دعاء يې ياده نه وي، نو کومه دعاء چي يې په ياد وي هغه دي ووايي، **دليل:** د الله ﷻ تر حمد او ثناء او د نبي ﷺ تر درود وروسته دعاء ځکه مقرره سوې ده، چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: إذا أراد أحدكم أن يدعو فليحمد الله وليصل على النبي ثم يدعو (يعني کله چي په تاسو کي څوک دعاء کول وغواړي، نو د الله ﷻ حمد دي ووايي، او پر نبي کريم ﷺ دي درود ووايي، وروسته دي دعاء وکړي). ④ بيا دي څلورم تکبير ووايي، او د هغه تر ويلو وروسته دي سلام وګرځوي، **دليل:** تر څلورم تکبير وروسته به ځکه سلام ګرځوي، چي نبي کريم ﷺ خپل د آخري جنازې په لمانځه کي څلور تکبيرونه ويلي وو، تر دې مخکي عمل يې که څه هم له دې څخه مخالف وو، خو هغه په دې آخري عمل سره منسوخ سو، صاحب د عنايې ليکلي دي چي تر څلورم تکبير وروسته او تر سلام مخکي د ظاهر روايت مطابق هيڅ دعاء نسته، او بعضو مشائخو ويلي دي چي تر سلام مخکي دي دا دعاء وايي: رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا بِرَحْمَتِكَ عَذَابَ الْقَبْرِ وَ عَذَابَ النَّارِ، او بعضو ويلي دي چي دا دي وايي: رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ.

ولو كبّر الإمام خمسا الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي که امام پنځم تکبير ووايي، نو مقتدی به په دې پنځم تکبير کي د امام تابعداري نه کوي ځکه تر څلورو زيات تکبيرونه د تېر روايت په وجه منسوخ سوي دي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: که امام پنځم تکبير ووايي، نو مقتدی به د هغه تابعداري کوي، د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دا مسئله اختلافي ده، ځکه دا هم را نقل سوي دي چي حضرت علي ﷺ د جنازې په لمانځه پنځم تکبير ووايي نو مقتديانو د حضرت علي ﷺ تابعداري وکړه، زموږ له طرفه جواب دا دی چي صحابه وو په دې باره کي مشوره وکړه او د نبي کريم ﷺ د آخري لمانځه وطرف ته يې رجوع وکړه، نو د حضرت علي ﷺ پنځم تکبير ويل هم منسوخ سو، او د منسوخ تابعداري کول صحيح نه دي. پاته سوه دا خبره چي مقتدی به په پنځم تکبير کي د امام تابعداري نه کوي نو څه به کوي؟، په دې کي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دوه روايتونه دي: يو دا چي مقتدی دي دستي سلام وګرځوي، چي په پنځم تکبير کي د امام مخالفت ثابت سي، او دويم روايت دا دی چي مقتدی دي د امام د سلام انتظار وکړي، چي په سلام کي يې تابعداري وسي، صاحب د هدايې فرمايي چي مختار او خوښ روايت هم دغه دی، وقال في الواقعات وعليه الفتوىٰ. (بنايه)

والاتيان بالدعوات الخ فرمايي چي د جنازې په لمانځه کي د مړي لپاره استغفار کول، او تر دعاء مخکي د الله حمد او ثناء بيانول سنت دي، لکه څرنګه چي حديث هم مخکي ذکر سو يعني: إذا أراد أحدكم أن يدعو...الخ، او په بل حديث

کي ذکر سوي دي: إذا صلى أحدكم فليبدأ بتحميده الله والثناء عليه ثم يصلي على النبي ﷺ ثم يدعو بعده بما شاء. (يعني تر دعاء مخکي حمد و ثناء او درود ويل سنت دي)، او څرنګه چي د جنازې په لمانځه کي دعاء د مړي لپاره استغفار يعني د بخښني طلب کول دي، نو په دې وجه صاحب د هدايې فرمايي چي د کوچني لپاره به استغفار نه ويل کيږي، ځکه له کوچني څخه قلم پورته سوی دی، او هغه د ګناه نه کولو په وجه له استغفار څخه بې نيازه دی، نو د کوچني لپاره به دا دعاء: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا...الخ ويل دېر غوره وي.

## د مسبوق لپاره د جنازې د لمانځه طريقه

وَلَوْ كَبَّرَ الْإِمَامُ تَكْبِيرَةً أَوْ تَكْبِيرَتَيْنِ او که امام يو يا دوه تکبيره ويلي وي لَا يُكَبِّرُ الْآتِي حَتّٰى يُكَبِّرَ أُخْرٰى بَعْدَ حُضُوْرِهٖ نو راتلونکی سړی به تکبير نه وايي تر دې چي د هغه تر حاضرېدلو (شريک کېدلو) وروسته امام بل تکبير ووايي عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ●: يُكَبِّرُ حِيْنَ يَحْضُرُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: کله چي دا سړی په لمانځه کي شريک سي په هغه ګړي دي تکبير وايي لِأَنَّ الْأُوْلٰى لِلْإِفْتِتَاحِ ځکه چي دا اول تکبير د لمانځه د شروع کولو لپاره دی وَالْمَسْبُوْقُ يَأْتِيْ بِهٖ او مسبوق اول تکبير وايي وَلَهُمَا أَنَّ كُلَّ تَكْبِيْرَةٍ قَائِمَةٌ مَقَامَ رَكْعَةٍ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي هر تکبير د يوه رکعت پر ځای ولاړ دی وَالْمَسْبُوْقُ لَا يَبْتَدِئُ بِمَا فَاتَهٗ او مسبوق هغه رکعت نه شروع کوي چي له هغه څخه تېر سوی وي إِذْ هُوَ مَنْسُوْخٌ ځکه چي داسي کول منسوخ سوي دي وَلَوْ كَانَ حَاضِرًا فَلَمْ يُكَبِّرْ مَعَ الْإِمَامِ او که يو سړی په لمانځه کي شريک وي لېکن هغه د امام سره تکبير ويلی نه وي لَا يَنْتَظِرُ الثَّانِيَةَ بِالْاِتِّفَاقِ نو دا سړی به بالاتفاق د دويم تکبير انتظار نه کوي لِأَنَّهٗ بِمَنْزِلَةِ الْمُدْرِكِ ځکه چي دا سړی د مدرک په درجه کي دی.

**اللغات:** ﴿الحضور﴾ حاضري، موجود والی، راتلل. ﴿المسبوق﴾ هغه سړی چي د لمانځه يو څه حصه څني تېره سوې وي. ﴿المدرك﴾ هغه سړی چي ټوله لمونځ يې نيولی وي.

**تشريح:** په عبارت کي د بيان سوې مسئلې حاصل دا دی چي که يو سړی له شروع څخه د جنازې په لمانځه کي شريک نه وو، بلکي په يو داسي وخت کي شريک سو چي کله امام يو يا دوه تکبيرونه ويلي وو، نو اوس د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دې سړي لپاره حکم دا دی چي په لمانځه کي تر شريک کېدلو وروسته دي د قضاء سوو تکبيرونو قضاء نه راوړي، بلکي د امام د تکبير انتظار دي وکړي، او چي کله امام تکبير ووايي، نو دا سړی دي هم تکبير ووايي، او کله چي امام سلام وګرځوي، نو د خپل قضاء سوو تکبيرونو قضاء دي راوړي، د دې په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي څه وخت دا سړی چي په لمانځه کي شريک سي نو سملستي دي قضاء سوي تکبيرونه راوګرځوي، او تر هغه وروسته دي د امام تابعداري وکړي.

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۵۷]

**د امام ابو یوسف دلیل:** دا دی چي دا سړی د مسبوق په ډول دی، او مسبوق چي کله هم په لمانځه کي شریک سي، نو تکبیرِ تحریمه وایي، نو دا سړی به هم په لمانځه کي د شریک کېدلو او داخلېدلو لپاره تکبیرِ افتتاح او نور تکبیرونه وایي.

**د طرفینو دلیل:** دا دی چي دا خبره صحیح ده چي دا سړی مسبوق دی، او په دې وجه د ده لپاره د تکبیرِ تحریمه په ډول قضاء سوي تکبیرونه(هم) ویل پکار دي، خو خبره دا ده چي د جنازې د لمانځه د مسبوق او د نورو مطلق لمونځونو د مسبوق په مینځ کي فرق سته، ځکه د مطلق لمونځونو تکبیرونه د رکعتونو په درجه کي نه دي، لېکن د جنازې د لمانځه هر تکبیر د یوه رکعت پر ځای ولاړ دی، او دومره خو تاسو ته هم معلومه ده چي مسبوق د امام تر سلام وروسته تېر سوي لمونځ(قضاء سوی لمونځ) راګرځوي، نو ځکه به دا سړی هم په پورتنی مسئلي کي د امام تر سلام وروسته قضاء سوي تکبیرونه راګرځوي، او هغه به د مطلق لمانځه پر مسبوق قیاسول صحیح نه وي، ځکه چي د مسبوق لپاره تر سلام مخکي د تېر سوي لمانځه د قضاء راوړلو حکم منسوخ سوی دی، یعني د اسلام په شروع کي خو همدا حکم وو، چي مسبوق به د امام تر سلام مخکي د خپل تېر سوي لمانځه قضاء راوړل، لېکن بیا دا حکم منسوخ سو، او له منسوخ سوي حکم څخه علت او دلیل جوړول صحیح نه دي.

ولوکان حاضرا الخ فرمایي که یو سړی د امام سره د جنازې په لمانځه کي شریک وو، لېکن د امام سره یې تکبیر نه وو وایی، مثلاً اول تکبیر ځني تېر سو، نو هغه به اوس د امام د دویم تکبیر انتظار نه کوي، او د حنفي ائمه وو په اتفاق سره به د تېر سوي تکبیر قضاء راوړي، ځکه چي هغه د دې تکبیر په باره کي مدرک دی، او د مدرکوالي په وجه پر هغه د دې تکبیر اداء کول ضروري دي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دی، یعني که له یو سړي څخه د جنازې په لمانځه کي یو یا دوه تکبیرونه تېر سول، نو په لمانځه کي دي د شریک کېدلو په وخت کي هغه تکبیرونه را وګرځوي،

وقال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالي رَحِمَهُ الله وظاهر الكافي ترجيح قول ابي يوسف رَحِمَهُ الله. قال في الدرر: وعليه الفتوىٰ (مجمع الانهر ج:۱، ص:۱۸۲). [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۵۷]

## د جنازې په لمانځه کي به امام چیري دریږي؟

وَيَقُومُ الَّذِي يُصَلِّي عَلَى الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ بِحِذَاءِ الصَّدْرِ او کوم څوک چي پر سړي او ښځي د جنازې لمونځ کوي هغه به (د سړي یا ښځي) د سینې پر برابر دریږي لِأَنَّهُ مَوْضِعُ الْقَلْبِ● ځکه چي سینه د زړه ځای دی وَفِيهِ نُورُ الْإِيمَانِ او په زړه کي د ایمان نور وي فَيَكُونُ الْقِيَامُ عِنْدَهُ إِشَارَةً إِلَى الشَّفَاعَةِ لِإِيمَانِهِ نو د سینې پر برابر درېدل به د دې خبري و طرف ته اشاره وي چي د هغه شفاعت به د خپل د ایمان په وجه سره وسي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَقُومُ مِنَ الرَّجُلِ بِحِذَاءِ رَأْسِهِ او له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي امام به د سړي د سر پر برابر دریږي وَمِنَ الْمَرْأَةِ بِحِذَاءِ وَسَطِهَا او د ښځي د مینځ پر برابر به دریږي لِأَنَّ أَنَسًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَعَلَ كَذَلِكَ ځکه حضرت انس ﷛ همداسي کړي وه وَقَالَ: هُوَ السُّنَّةُ او فرمایلي یې وو: چي دا سنت دي قُلْنَا تَأْوِيلُهُ أَنَّ جِنَازَتَهَا لَمْ تَكُنْ مَنْعُوشَةً موږ جواب ورکوو چي د هغې

● القول الراجح: هو ظاهر الرواية، أى يقوم بحذاء الصدر، كذا فى البحر الرائق ج:۲، ص:۱۸۶. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۵۸]

بنځي جنازه نعش دلره نه وه (يعني د هغې بنځي لاش په کټ يا تابوت کي نه وو ايښول سوی) فَحَالَ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُمْ نو حضرت انس رضي الله عنه د خلکو او بنځي په مينځ کي پرده (حائل) جوړ سو.

**اللغات:** ﴿حذاء﴾ پر برابر، ﴿صدر﴾ سينه، ﴿وسط﴾ مينځ، ﴿مکلوسة﴾ د مړي هغه لاش (لاش) چي د جنازې په کټ (چپرکټ) يا تابوت کي ايښوول سوی وي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي جنازه که د سړي وي او که د بنځي، د امام لپاره حکم دا دی چي هغه د دې سړي او بنځي د سينې پر برابر ودرېږي او لمونځ دي ورکړي، ځکه چي سينه د زړه ځای دی، او په زړه کي د ايمان نور وي، نو کله چي امام د زړه پر برابر ودرېږي، او لمونځ ورکړي، نو دا به د دې و طرف ته اشاره وي چي د ايمان په وجه سره به الله تعالیٰ د دې مړي بخښنه وکړي، نو ځکه به د امام لپاره د سينې پر مخامخ او برابر درېدل غوره وي، او پر دې باندي د اُمت عمل هم دی.

وعن أبي حنيفة الخ لېکن په دې لړ کي امام اعظم رَحِمَهُ الله د سړي او بنځي په لمانځه کي فرق کړی دی، فرمايي چي که جنازه د سړي وه، نو امام دي د هغه د سر پر برابر ودرېږي، او که د بنځي جنازه وه، نو د جنازې د مينځ پر برابر ودرېږي، ځکه چي حضرت انس رضي الله عنه د انصارو د يوې بنځي د جنازې د مينځ پر برابر درېدلی وو، او کله چي خلکو له هغه شخصه په دې بلره کي پوښتنه وکړه، نو حضرت انس رضي الله عنه وفرمايل: چي دا د رسول الله ﷺ سنت دی، له دې شخصه معلومه سوه چي د بنځي په جنازه کي به امام د جنازې د مينځ پر برابر درېږي، نه د سينې پر برابر.

قلنا الخ صاحب د هدايې جواب ورکوي فرمايي چي د حضرت انس رضي الله عنه دا عمل د يو عارض په وجه سره وو او هغه عارض دا وو چي د دې بنځي لاش (جسم) منعش يعني په تابوت کي نه وو، بلکي هسي پر تخته يا کټ ښکاره پروت وو، نو ځکه حضرت انس رضي الله عنه د بنځي او خلکو تر مينځ د پردې او ستر لپاره د جنازې د مينځ پر برابر درېدلی وو، والله أعلم وعلمه أتم.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول ظاهر روايت دی، يعني امام به د جنازې په لمانځه کي د سړي او بنځي دواړو د سينې پر برابر درېږي، وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ويقوم الامام ندباً بحذاء الصدر مطلقاً للرجل والمرأة، لأنه محل الإيمان والشفاعة لإجله (الدر المختار ج۱، ص۶۲۶). [القول الراجح، ج۱، ص۱۵۸]

## پر سپرلي د جنازې د لمانځه حکم

فَإِنْ صَلَّوْا عَلَى جِنَازَةٍ رُكْبَانًا بيا که خلک د سپرتيا په حالت کي پر يوې جنازې لمونځ وکړي أَجْزَأَهُمْ فِي الْقِيَاسِ نو د قياس مطابق د هغو لمونځ جائز دی لِأَنَّهَا دُعَاءٌ ځکه چي د جنازې لمونځ دعاء ده وَفِي الِاسْتِحْسَانِ: لَا تُجْزِئُهُمْ لېکن د استحسان مطابق د هغو لمونځ جائز نه دی لِأَنَّهَا صَلَاةٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي دا په يوه اعتبار سره لمونځ دی لِوُجُودِ التَّحْرِيمَةِ د تحريمې د شتون په وجه (يعني ځکه چي د جنازې په لمانځه کي تکبير تحريمه سته نو په دې اعتبار سره لمونځ دی) فَلَا يَجُوزُ تَرْكُهُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ احْتِيَاطًا نو احتياطاً به بې له عذره قيامه (ولاړه) پرېښوول جائز نه وي.

**اللغات:** ﴿رُكْبَان﴾ جمع ده، واحد يې رَاكِبٌ دی: سپور، دلته حال واقع سوی دی، يعني د سپرتيا په حالت کې.
﴿لَايُجْزِئُ﴾ دافعال له باب څخه د نفي صيغه ده: کافي کېدل، جائز کېدل، اداء کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خلکو مثلاً پر آسانو يا داسي نورو باندي د سپرتيا په وخت کي د يو سړي د جنازې لمونځ وکړی، نو د قياس تقاضا دا ده چي دا لمونځ صحيح دی، او د دې خلکو له غاړي څخه د لمانځه فريضه ساقطه سوه، ځکه د جنازې لمونځ په حقيقت کي دعاء ده، نو څرنگه چي نوري دعاگاني پر سپرلي جائز دي، همدا ډول به د جنازې لمونځ هم پر سپرلي جائز وي، لېکن د استحسان تقاضا دا ده چي بې له عذره پر سپرلي د جنازې لمونځ جائز نه دی، ځکه چي د جنازې په لمانځه کي تکبيرِ تحريمه(تکبيرِ افتتاح) هم سته، نو په دې حواله سره د جنازې لمونځ په يوه اعتبار د لمانځه سره مشابه سو، نو څرنگه چي نور فرضي لمونځ بې له عذره پر سپرلي جائز نه دي، همدارنگه به د جنازې لمونځ هم بې له عذره پر سپرلي جائز نه وي.

## د جنازې په لمانځه کي د ولي د اجازې حکم

وَلَا بَأْسَ بِالْإِذْنِ فِيْ صَلَاةِ الْجِنَازَةِ او د جنازې په لمانځه کي اجازه ورکول هيڅ پروا نه لري لِأَنَّ التَّقَدُّمَ حَقُّ الْوَلِيِّ ځکه چي مخته کېدل د ولي حق دی فَيَمْلِكُ إِبْطَالَهُ بِتَقْدِيْمِ غَيْرِهِ نو د بل چا په مخکي کولو سره ولي د خپل حق د باطلولو ملکيت لري(يعني داسي کولای سي) وَفِيْ بَعْضِ النُّسَخِ: لَا بَأْسَ بِالْأَذَانِ: أَيِ الْإِعْلَامِ او په بعضې نسخو کي لا بأس بالأذان راغلي دي يعني (د جنازې د لمانځه لپاره) اعلان کول هيڅ پروا نه لري وَهُوَ أَنْ يُعْلِمَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا او اعلان کول دا دي چي بعضي خلک نورو خلکو ته (د جنازې د لمانځه) خبر ورکړي لِيَقْضُوْا حَقَّهُ د دې لپاره چي هغوی د مړي حق اداء کړي.

**اللغات:** ﴿إِذْن﴾ د ضرب د باب مصدر دی: نورو ته اجازه ورکول، ﴿إِعْلَام﴾ د افعال د باب مصدر دی: خبر ورکول.
﴿لِيَقْضُوْا﴾ د نصر د باب مضارع ده: پوره کول، په اصل کي يَقْضُوْنَ وو، د لام جاره په وجه نون اعرابي څني ساقط سو، ځکه که لام جاره پر فعل داخل سي، نو وروسته به أَنْ ناصبه به حتماً مقدر وي، په آخر کي لِيَقْضُوْا سو.

**تشريح:** په متن کي د عبارت په هکله دوې نسخې ذکر سوي دي: ① يوه نسخه خو لا بأس بالإذن في صلوة الجنازة ده، ② دويمه نسخه لا بأس بالأذان ده. [۱] د اولي نسخې پر بنياد د عبارت دوه مطلبه کيږي: يو دا که ولي بل چا ته د جنازې د لمانځه اجازه ورکړي، نو هيڅ پروا نه لري (يعني صحيح دي)، ځکه امامت د ولي حق دی، نو که ولي بل چا ته په حق ورکولو سره خپل حق ختموي، نو ختمولای يې سي، دويم مطلب دا دی چي که ولي د جنازې د لمانځه تر فراغت وروسته خلکو ته د تللو اجازه ورکړي، نو هيڅ حرج نسته(يعني بيا خلک خپلو کورو ته تللی سي)، ځکه د مړي تر ښخولو مخکي د ولي له اجازې څخه بغير د خلکو لپاره خپلو کورو ته تلل صحيح نه دي.
[۲] د دويمي نسخې پر بنياد د عبارت حاصل دا دی چي د جنازې د لمانځه لپاره د اطلاع ورکولو او د خلکو په خبرولو کي هيڅ حرج نسته، قال: إذا مات أحدكم فآذنوني بالصلوة، (رسول الله ﷺ فرمايلي دي: کله چي په تاسو کي څوک مړ سي نو ماته د لمانځه خبر راکوئ)، بعضي متأخرينو د هغه سړي د جنازې د لمانځه لپاره په بازارو کي اعلان کول غوره گڼلي دي چي خلک د هغه د جنازې د لمانځه شوق لري لکه بزرگان او علماء.

## په مسجد کي د جنازې د لمانځه حکم

وَلَا يُصَلِّىٰ عَلَىٰ مَيِّتٍ فِي مَسْجِدِ جَمَاعَةٍ او پر يوه مړي به (هم) په جماعت والا مسجد کي د جنازې لمونځ نه کوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي مَنْ صَلَّىٰ عَلَىٰ جِنَازَةٍ فِي الْمَسْجِدِ چا چي په مسجد کي د جنازې لمونځ وکړی فَلَا أَجْرَ لَهُ نو هغه لره ثواب نسته وَلِأَنَّهُ بُنِيَ لِأَدَاءِ الْمَكْتُوبَاتِ او په دې وجه (هم) چي مسجد د فرضي لمونځونو د اداء کولو لپاره جوړ سوی دی وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ تَلْوِيثُ الْمَسْجِدِ او په دې وجه (هم) چي په دې کي د مسجد د ککړ کېدلو (چټلتيا) احتمال سته وَفِيمَا إِذَا كَانَ الْمَيِّتُ خَارِجَ الْمَسْجِدِ اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ رَحِمَهُمُ اللهُ او په هغه صورت کي چي کله مړی له مسجد څخه دباندي وي مشائخو اختلاف کړی دی.

**اللغات:** ﴿مَسْجِد جَمَاعَة﴾ هغه مسجد چي په هغه کي په جماعت سره لمونځونه اداء کيږي، ﴿مَكْتُوبَات﴾ فرضي لمونځونه.

**تشريح:** صاحب د عنايې د دې عبارت په حل کي فرمايي چي که فقط جنازه په مسجد کي وه، او څه خلک له مسجد څخه دباندي ول، او نور خلک په مسجد کي ول، نو بالاتفاق د جنازې لمونځ مکروه دی، او که فقط جنازه له مسجد څخه دباندي وه، او امام او نور ټوله خلک په مسجد کي ول، نو مشائخو اختلاف کړی دی، بعضي مشائخ د کراهت خبره کوي، او بعضي د نه کراهت، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په هيڅ حال کي لمونځ مکروه نه دی، يعني که فقط جنازه په مسجد کي وه، نو بيا هم لمونځ مکروه نه دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي کله سعد بن ابی وقاص مړ سو، نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حکم وکړی چي د هغه جنازه دي مسجد ته داخله کړی سي، تر دې چي د نبي ﷺ ټولو بيبيانو پر هغه د جنازې لمونځ وکړی، بيا حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حاضرينو خلکو ته وويل: آيا خلکو ته زموږ پر دې عمل اعتراض دی؟.(يعني آيا خلک زموږ پر دې فعل عيب لګوي؟) هغوی وويل: هو!، نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل: چي له خلکو څخه څومره ژر هېره سوه چي رسول الله ﷺ د سهيل بن البيضاء د جنازې لمونځ په مسجد کي کړی وو. له دې واقعې څخه معلوميږي چي په مسجد کي دننه هم د جنازې لمونځ بې له کراهته جائز دی، کنې رسول الله ﷺ او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به ولې په مسجد کي د جنازې لمونځ کولای.

**زموږ دليل:** د ابو هريره ﷺ حديث دی: أن رسول الله ﷺ قال من صلى على جنازة في المسجد فلا أجر له. (يعني نبي ﷺ وفرمايل: څوک چي په مسجد کي د جنازې لمونځ وکړي، د هغه لپاره هيڅ ثواب نسته)، دويم دليل دا دی چي مسجد د فرضي لمونځونو لپاره جوړ سوی دی، نو له پنځو فرضي لمونځونو څخه ماسوا دي نور لمونځونه په مسجد کي نه اداء کيږي، دريم دليل دا دی چي که جنازه په مسجد کي وه، نو په دې صورت کي د خلکو د دېر رش په وجه د مسجد د ککړ کېدلو او د مسجد د احترام د پايماله کېدلو احتمال سته، نو په دې وجه به هم بې له عذره په مسجد کي مړی ايښوول مکروه وي.

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجنائز، باب الصلوٰة على الجنازة في المسجد، حديث رقم: ٣١٩١.

**د امام شافعي د دليل جواب:** دا دی چي د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په زمانه کي بعضي صحابه وو د هغې پر دې عمل عيب ولګوی، نو له دې څخه معلوميږي چي په هغه وخت کي په مسجد کي د جنازې د لمانځه کراهت مشهوره وو، او پاته سو د حضرت سهيل د جنازې لمونځ چي هغه نبي ﷺ په مسجد کي وکړی، نو د هغه وجه دا وه چي په هغه وخت کي نبي ﷺ معتکف وو، د نبي ﷺ له مسجد څخه وتل نامکنه وو، نو نبي ﷺ د جنازې راوړلو حکم وکړی، نو جنازه له مسجد څخه دباندي کښېښول سوه، او نبي ﷺ په مسجد کي لمونځ وکړی، او زموږ په نېز که جنازه له مسجد څخه دباندي وه او خلک په مسجد کي دننه وه، نو په دې صورت کي هيڅ کراهت نسته، لهذا اول عذر خو دا وو چي نبي ﷺ په اعتکاف کي وو، دويم دا چي جنازه له مسجد څخه دباندي وه، نو ځکه به دا حديث په دليل کي وړاندي کول مناسب نه وي.

## د نوي زېږېدونکي کوچني بيلابېل حالتونه او د هغه د جنازې د لمانځه حکم

وَمَنِ اسْتَهَلَّ بَعْدَ الْوِلَادَةِ او کوم کوچنی چي تر زېږېدني وروسته په آواز سره وژاړي (يعني د ژړا آواز يې تر خوله راووځي) سُمِّيَ وَغُسِّلَ نو پر هغه دې نوم کښېښول سي او غسل دې ورکول سي وَصُلِّيَ عَلَيْهِ او د جنازې لمونځ دې پر وکړی سي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا اسْتَهَلَّ الْمَوْلُودُ صُلِّيَ عَلَيْهِ "کله چي زېږېدونکی کوچنی په آواز سره وژاړي نو پر هغه دې د جنازې لمونځ وکړی سي وَإِنْ لَمْ يَسْتَهِلَّ لَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ او که په آواز سره نه وژاړي نو پر هغه به د جنازې لمونځ نه کيږي وَلِأَنَّ الِاسْتِهْلَالَ دَلَالَةُ الْحَيَاةِ او په دې وجه (هم) چي ژړل د ژوند نښه ده فَتَتَحَقَّقُ فِي حَقِّهِ سُنَّةُ الْمَوْتَى نو ځکه به د کوچني په حق کي د مړو طريقه ثابتيږي وَمَنْ لَمْ يَسْتَهِلَّ أُدْرِجَ فِي خِرْقَةٍ او کوم کوچني چي په آواز سره نه وژاړي هغه دې په يوه کپړه کي وپېچل سي كَرَامَةً لِبَنِي آدَمَ د انسان د عزت په وجه وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ او پر هغه به د جنازې لمونځ نه کيږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَيُغَسَّلُ فِي غَيْرِ الظَّاهِرِ مِنَ الرِّوَايَةِ او د غير ظاهر الرواية مطابق به غسل ورکول کيږي لِأَنَّهُ نَفْسٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي په يوه اعتبار سره هغه (هم) يو نفس (او يو انسان) دی وَهُوَ الْمُخْتَارُ او غوره روايت همدغه دی.

**اللغات:** ﴿اِسْتَهَلَّ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: آواز را ايستل، چغه وهل، ﴿سُمِّيَ﴾ د تفعيل د باب ماضي مجهوله ده: نوم اېښوول، ﴿أُدْرِجَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: داخلول، اچول (پېچل)، ﴿نَفْس﴾ ساکښ (ذي روح).

**تشريح:** له استهلال الصبي څخه مراد د زېږېدلو په وخت کي د کوچني آواز کول دي، لېکن دلته مراد ځني دا دي چي له کوچني څخه يو داسي شی صادر سي چي هغه د کوچني په ژوند باندي دلالت وکړي، د مثال په توګه کوچنی يو اندام وښوروي، يا يې د ژړا آواز واورېدل سي او داسي نور.

حاصل دا که يو کوچني پيدا سو او د ژوند يو دليل يې ښکاره سو مثلاً آواز يې وکړی، بيا مړ سو، نو د دې کوچني نوم به هم اېښوول کيږي، او غسل به هم ورکول کيږي، او د جنازې لمونځ به هم پر کيږي، دليل د نبي ﷺ دا قول دی: إذا استهل المولود صلی عليه وإن لم يستهل لم يصل عليه، او عقلي دليل دا دی چي استهلال يعني د کوچني آواز را ايستل د ژوندي

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الجنائز، باب ترک الصلوة على الطفل حتى يستهل، حديث رقم: ۱۰۳۲.

والي نښه ده، نو ځکه به د هغه په حق کي د مړو طريقه ثابتيږي، او کوم کوچنی چي د پيدايښت په وخت کي د ژړا آواز نه وکړي، او د ژوند يوه بله نښه يې هم پيدا نه سي، نو هغه دي په يوه ټوټه کي ونغښتل سي، او په يو غار کي دي ښخ کړی سي، دا عمل فقط د انسانيت د عزت او اکرام په وجه دی، او لمونځ به نه پر کيږي، دليل مخکښی روايت دی، لېکن د غير ظاهر الروايه مطابق به غسل ورکول کيږي، دليل دا دی چي دا خو هم په يوه اعتبار سره د بدن يو جزء دی او په يوه اعتبار سره نفس(انسان) دی، نو د دارو اعتبار به کيږي، يعني په دې اعتبار سره چي د بدن يو جزء دی، لمونځ به نه پر کيږي، او په دې اعتبار سره چي نفس دی، غسل به ورکول کيږي، همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه رانقل سوي دي، او همدغه غوره روايت دی.

## که له دارُ الکفر (دارُ الحرب) څخه په قيد راوستل سوی کوچنی مړ سي نو څه حکم دی؟

وَاِذَا سُبِيَ صَبِيٌّ مَعَ اَحَدِ اَبَوَيْهِ او کله چي يو کوچنی د خپل پلار يا مور سره قيدي سي (يعني بندي سي) وَمَاتَ او بيا مړ سي لَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ نو پر هغه دي د جنازې لمونځ نه کيږي لِاَنَّهُ تَبَعٌ لَهُمَا ځکه چي هغه د خپل مور او پلار تابع دی اِلَّا اَنْ يُقِرَّ بِالْاِسْلَامِ لېکن دا چي کوچنی (پخپله) د اسلام اقرار وکړي وَهُوَ يَعْقِلُ په داسي حال کي چي پوهيږي (هم) لِاَنَّهُ صَحَّ اِسْلَامُهُ اسْتِحْسَانًا ځکه چي استحساناً د هغه اسلام صحيح دی اَوْ يُسْلِمَ اَحَدُ اَبَوَيْهِ يا دا چي د کوچني له مور او پلار څخه يو اسلام راوړي لِاَنَّهُ يَتْبَعُ خَيْرَ الْاَبَوَيْنِ دِيْنًا ځکه چي کوچنی په مور او پلار کي د هغه چا تابع کيږي چي هغه (د دين په اعتبار سره) غوره وي وَاِنْ لَمْ يُسْبَ مَعَهُ اَحَدُ اَبَوَيْهِ او که د هغه سره مور يا پلار قيدي نه سي صُلِّيَ عَلَيْهِ نو پر هغه دي د جنازې لمونځ وکړی سي لِاَنَّهُ ظَهَرَتْ تَبَعِيَّةُ الدَّارِ ځکه چي د دارُ الاسلام تابع کېدل (د هغه په حق کي) ښکاره سوه فَحُكِمَ بِالْاِسْلَامِ نو ځکه به د هغه د اسلام حکم کيږي كَمَا فِي اللَّقِيْطِ لکه څرنګه چي په لقيط کي (دا حکم دی).

**اللغات:** ﴿سُبِيَ﴾ ماضي مجهوله ده: بندي کېدل، ﴿يُقِرُّ﴾ د افعال د باب مضارع ده: اقرار کول، ﴿لَقِيْطٌ﴾ غورځول سوی ماشوم، لا وارثه ماشوم.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو کوچنی د مور يا پلار سره بندي سو او له دارُ الکفر څخه دارُ الاسلام ته راوستل سو، او بيا کوچنی مړ سو، نو پر هغه به د جنازې لمونځ نه کيږي، ځکه چي د کوچني مور او پلار کافران دي، نو دی به هم د هغو تابع وي، نبي ﷺ فرمايلي دي: الولد يتبع خير الأبوين ديناً، له دې حديث څخه معلوميږي چي کوچنی به په دين کي د خپل مور او پلار تابع وي، او څرنګه چي دلته مور او پلار کافران دي، نو ځکه به کوچنی هم کافر وي، لو پر کافر د جنازې لمونځ نه کيږي، نو ځکه به د هغه پر بچي هم د جنازې لمونځ نه کيږي، هو! که دا کوچنی عاقل وو، يعني پوهېدی، او د اسلام اقرار يې وکړی يا له مور او پلار څخه يې يو مسلمان سو، نو د دې کوچني د جنازې لمونځ به کيږي، د اسلام د اقرار کولو په صورت کي خو ځکه چي استحساناً د هغه اسلام صحيح دی، او له مور او پلار څخه د يوه د اسلام راوړلو په صورت کي ځکه چي کوچنی به د دين په اعتبار سره د خيرُ الأبوين تابع وي، لو د دين په اعتبار سره خير الأبوين هغه دی کوم چي مسلمان سو، نو کوچنی به هم د هغه تابع وي، او مسلمان به وي، او څرنګه چي پر مسلمان د جنازې لمونځ کيږي، نو ځکه به د دې کوچني پر جنازه هم لمونځ کيږي.

وإن لم يسب الخ او که کوچنی بندي سو، خو په مور او پلار کي یو هم د هغه سره بندي نه سو، او بیا دا کوچنی مړ سو، نو پر هغه به د جنازې لمونځ کيږي، ځکه چي د یوازي والي په وجه دا کوچنی د دارُ الاسلام تابع سو، نو ځکه به د هغه د اسلام حکم کيږي، لکه په لقیط کي چي هم دا حکم دی، یعني که یو سړی په یو صحرا یا داسي بل ځای کي روان وو، او یو کوچنی یې پروت ولیدی، او هیڅ وارث یې معلوم نه سو، نو که یې دا کوچنی په دارُ الاسلام کي ولیدی، نو هغه به د دارُ الاسلام تابع وي او د مسلمان حکم به پر لګیږي.

## که یو کافر مړ سي او مسلمان قریب لري نو څه حکم دی؟

وَإِذَا مَاتَ الْكَافِرُ او کله چي یو کافر مړ سي وَلَهُ وَلِيٌّ مُسْلِمٌ او دا کافر یو مسلمان ولي (وارث هم) لري فَإِنَّهُ يُغَسِّلُهُ نو هغه مسلمان ولي به دې کافر ته غسل ورکوي وَيُكَفِّنُهُ او کفن به ورکوي وَيَدْفِنُهُ او پټوي به یې بِذَلِكَ أُمِرَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ● فِي حَقِّ أَبِيهِ أَبِي طَالِبٍ (ځکه) حضرت علي ﷺ ته د خپل پلار ابو طالب په باره کي (هم) د دغه خبري حکم سوی وو لَكِنْ يُغَسَّلُ غَسْلَ الثَّوْبِ النَّجِسِ لیکن کافر ته به د ناپاکه جامې د پرېوللو په څیر غسل ورکول کيږي وَيُلَفُّ فِي خِرْقَةٍ او د کپړې په یوه ټوټه کي به پېچل کيږي وَتُحْفَرُ حُفَيْرَةٌ او یوه کنده به کښل کيږي مِنْ غَيْرِ مُرَاعَاةِ سُنَّةِ التَّكْفِينِ وَاللَّحْدِ د سنت کفن او د سنت لحد له خیال ساتلو څخه بغیر وَلَا يُوضَعُ فِيهَا بَلْ يُلْقَى او په کنده کي به ایښوول کيږي نه بلکي ور غورځول کيږي به.

**اللغات**: ﴿تحفر﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: کنده کاږل، غار جوړول. ﴿حفيرة﴾ د تصغیر صیغه ده: کوچنی کنده. ﴿يوضع﴾ د فتح د باب مضارع مجهوله ده: ایښوول. ﴿يلقى﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: غورځول، اچول.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که یو کافر په دارُ الاسلام کي مړ سو، او د هغه یو قریب مسلمان وو، نو مسلمان قریب ته پکار ده چي په ډېر نفرت او ناراضي سره د ناپاکه کالو د پرېوللو په ډول دې کافر مړي ته غسل ورکړي، او د سنت طریقې له رعایت کولو څخه بغیر دي یې په یوه کپړه کي ونغاړي، یعني نه دي د هغه لپاره د سنت غسل بندوبست کوي، او نه دي د سنت کفن انتظام کوي، بلکي هسي دي یې په یوه کپړه کي ونغاړي او یو کنده دي وکاږي، د لحد (ګوري) مراعات دي نه پکښي کوي، او په کنده کي دي یې وغورځوي، او په هیڅ یو پړاو کي دي هم د هغه سره د سنت طریقې خیال نه ساتي، د کافر مړي سره د داسي سلوک د اختیارولو په باره کي دلیل د نبي ﷺ هغه حکم دی کوم چي یې حضرت علي ﷺ ته د هغه د پلار ابو طالب د مړیني په وخت کي کړی وو، لکه څرنګه چي حضرت علي ﷺ فرمایي: لما أخبرت رسول الله ﷺ بموت أبي طالب بكى ثم قال لي إذهب فاغسله وكفنه و واره. (بنایه)



● تخریج: أخرجه ابوداؤد في كتاب الجنائز، باب الرجل يموت له قرابة مشرك، حديث رقم:٣٢١٤.

# فَصْلٌ فِيْ حَمْلِ الْجِنَازَةِ

## (دا) فصل د جنازې د پورته کولو (په بيان کې) دی

**تشريح:** ښکاره خبره ده چې د جنازې له لمانځه څخه تر فراغت وروسته د جنازې د پورته کولو او په قبر کې د ايښودلو مسئله مخته راځي، نو ځکه اوس صاحب د کتاب په ترتيب سره د جنازې پورته کولو او په قبر کې د مړي پټولو فصلونه بياتوي.

### د جنازې د پورته کولو بيان..... او د جنازې د پورته کولو سنت طريقه

وَإِذَا حَمَلُوا الْمَيِّتَ عَلَى سَرِيْرِهِ او کله چې خلک مړی پر خپل کټ (يا تخته) باندې راپورته کړي أَخَذُوْا بِقَوَائِمِهِ الْأَرْبَعِ نو کټ دې له څلورو پښو څخه ونيسي بِذٰلِكَ وَرَدَتِ السُّنَّةُ هم په دې باره کې حديث راغلی دی وَفِيْهِ تَكْثِيْرُ الْجَمَاعَةِ او د څلور خلکو په پورته کولو کې [۱] د جماعت ډېرښت دی وَزِيَادَةُ الْإِكْرَامِ [۲] او د عزت زياتوب دی وَالصِّيَانَةِ [۳] او له لوېدلو څخه خونديتوب سته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: السُّنَّةُ أَنْ يَحْمِلَهَا رَجُلَانِ امام شافعي رحمه الله فرمايي: سنت دا ده چې جنازه به دوه خلک پورته کوي يَضَعُهَا السَّابِقُ عَلَى أَصْلِ عُنُقِهِ چې په دې دواړو کې به مخکې سړی جنازه د خپلې غاړې پر آخري حصه کښېږدي وَالثَّانِيْ عَلَى صَدْرِهِ او دويم سړي به يې پر خپله سينه کښېږدي لِأَنَّ جِنَازَةَ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ هٰكَذَا حُمِلَتْ ځکه چې د سعد بن معاذ رضي الله عنه جنازه همدارنګه پورته سوې وه قُلْنَا: كَانَ ذٰلِكَ لِازْدِحَامِ الْمَلَائِكَةِ موږ جواب ورکوو: چې هغه د فرښتو د ګڼې ګوڼې (رش) په وجه سره وه وَيَمْشُوْنَ بِهِ مُسْرِعِيْنَ او د جنازې پورته کونکي به جنازه تېزه وړي دُوْنَ الْخَبَبِ لېکن ځغلي به نه لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ حِيْنَ سُئِلَ عَنْهُ ځکه کله چې له نبي ﷺ څخه په دې باره کې پوښتنه وسوه قَالَ[●]: مَا دُوْنَ الْخَبَبِ (نو) نبي ﷺ وفرمايل: مادون الخبب، (يعني په ځغستا سره به جنازه نه وړل کيږي).

**اللغات:** ﴿قوائمه﴾ جمع د قَائِمَةٌ ده: د کټ او چارپايي پښو ته ويل کيږي، ﴿سابق﴾ مخکنی سړی، د مخ والا، ﴿ازدحام﴾ د افتعال مصدر دی: ګڼه ګوڼه، رش، ﴿المسرعين﴾ د افعال د باب جمع اسم فاعل دی: تېز تلونکي، ﴿الخبب﴾ ځغستا، منډه.

**اللغات:** په دې فصل کې د جنازې د پورته کولو طريقه بيانيږي، فرمايي چې خلک دې مړی پر تخته يا کټ باندې راپورته کړي، او د کټ څلور سره پښې دې ونيسي، يعني څلور خلک دې وي، او هر سړی دې د کټ يوه پښه ونيسي،

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجنائز، باب الإسراع في الجنازة، حديث رقم:۳۱۸۴.

سنت طريقه همدغه ده، له عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی: من السنة أن تحمل الجنازة من جوانبها الأربعة، (يعني سنت دا ده چي جنازه له څلورو طرفونو څخه را پورته سي)، په حديث کي راځي: من حمل الجنازة من جوانبها الأربعة غفر له مغفرة موجبة، (يعني څوک چي جنازه له څلورو طرفونو څخه پورته کړي، نو د هغه بخښنه به کيږي)، دويمه خبره دا ده چي په دې کي د جماعت ډېرښت هم دی، يعني که خدای مه کړه د جنازې سره بل هيڅ سړی هم ولاړ نه سي، نو دا څلور خلک خو به ضروري وي، او ښکاره ده چي څلور خلک پوره يو جماعت دی، او د څلورو خلکو په پورته کولو کي د مړي عزت هم دی، په دې توګه چي پوره جماعت هغه پر خپلو اوږو را اخيستی دی، او کوم څوک چي پر اوږو راخيستل کيږي، د هغه په احترام کي هيڅ شک نسته، همدا ډول د څلورو خلکو په پورته کولو کي مړی له لوېدلو څخه هم خوندي وي.

وقال الشافعي الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: سنت دا ده چي جنازه دوه خلک پورته کړي چي په هغو کي به اول سړی د جنازې پښې د خپلي غاړي پر آخري طرف (يعني د غاړي پر بيخ) کښېږدي، او دويم سړی به يې پر خپل سينه کښېږدي، دليل دا دی چي د سعد بن معاذ جنازه همدارنګه پورته سوې وه، زموږ له طرفه جواب دا دی چي دا طريقه د ملائکو د ډېرښت په وجه وه، لکه څرنګه چي روايت دی چي د سعد بن معاذ په جنازه کي اويا زره (٧٠٠٠٠) ملائکي له آسمان څخه رانازلي سوي وې، لنډه دا چي د سعد ﷺ جنازه په دې وجه دوو خلکو پورته کړې وه چي لاره تنګه وه، همدا وجه وه چي نبي ﷺ د ګوتو پر سرو روان وو.

ويسرعون الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي جنازه کله راپورته کړي نو په تېزي سره دي ځي، خو ځغلي دي نه، ځکه کله چي له نبي ﷺ څخه د جنازې د تګ په باره کي پوښتنه وسوه، نو يې فرمايل: ما دون الخبب، د خبب معنیٰ ده: ځغستل، يعني نبي ﷺ خو د تېز تګ حکم کړی دی، لېکن د ځغستلو حکم يې نه دی کړی، او د تېز تګ حکم ځکه سوی دی چي جنازه که د نېک مړي وه، نو هغه به د الله ﷻ حضور ته ژر ورسول سي، او که د بد سړي وه، نو دغه بلا او آفت به ژر له اوږو څخه ليري سي، او له ځغلستي څخه ځکه منع سوې ده چي په دې کي د مړي بې عزتي او سپکاوی دی.

## په قبر کي د مړي تر ايښوولو مخکي د ناستي حکم

> وَإِذَا بَلَغُوا إِلَى قَبْرِهِ او کله چي خلک د مړي قبر ته ورسيږي يُكْرَهُ أَنْ يَجْلِسُوا قَبْلَ أَنْ يُوضَعَ مِنْ أَعْنَاقِ الرِّجَالِ نو د خلکو له غاړي څخه د جنازې تر ايښوولو مخکي د هغو لپاره کښېنستل مکروه دي لِأَنَّهُ قَدْ تَقَعُ الْحَاجَةُ إِلَى التَّعَاوُنِ ځکه چي کله نا کله مرستي (او مدد) ته ضرورت پيښيږي وَالْقِيَامُ أَمْكَنُ مِنْهُ او د ولاړي په حالت کي (انسان ته) پر مدد زيات قدرت وي وَكَيْفِيَّةُ الْحَمْلِ او د جنازې پورته کولو طريقه دا ده أَنْ تَضَعَ مُقَدَّمَ الْجِنَازَةِ عَلَى يَمِينِكَ [١] چي ته د جنازې مخکني طرف (سر) پر خپله راسته اوږه کښېږدې ثُمَّ مُؤَخَّرَهَا عَلَى يَمِينِكَ [٢] بيا د هغې شاتنی طرف پر خپله راسته اوږه کښېږدې ثُمَّ مُقَدَّمَهَا عَلَى يَسَارِكَ [٣] بيا د جنازې مخکنی طرف پر خپله چپه اوږه کښېږدې ثُمَّ مُؤَخَّرَهَا عَلَى يَسَارِكَ [٤] بيا يې شاتنی طرف پر خپله چپه اوږه کښېږدې إِيثَارًا لِلتَّيَامُنِ راسته طرف ته د ترجيح ورکولو لپاره وَهٰذَا فِي حَالَةِ التَّنَاوُبِ او دا طريقه به د نوبت په صورت کي وي (يعني چي کله خلک په وار او نوبت سره جنازه پورته کوي، نو ته به دا طريقه اختياروې).

**اللغات:** ﴿أعناق﴾ جمع د عُنق ده: غاړه، ﴿تيامن﴾ د تفاعل مصدر دی: راسته طرف اختيارول، ﴿تناوب﴾ دا هم د تفاعل مصدر دی: نوبت کول (يعني جنازه په نوبت سره پورته کول).

**تشريح:** فرمايي که د جنازې تر لمانځه وروسته يو څو خلک تر جنازې مخکې قبر ته ورسيدل نو هغو ته پکار دي چې ولاړ دي اووسي، او په ولاړه دي د جنازې انتظار کوي، د جنازې ته تر راتګ مخکې د هغو لپاره کښېنستل مکروه دي، ځکه چې کله نا کله د جنازې په ايښوولو کې ناڅاپه د مرستې او تعاون ضرورت پېښيږي، او ښکاره ده چې کله خلک مخکې لا چمتو ولاړ وي، نو په مرسته او تعاون کې به آسانې وي، نو په دې وجه دا حکم کيږي چې مخکې رسيدلي خلک دي د جنازې تر راتګ او ايښوولو مخکې نه کښېني.

وكيفية الحمل الخ فرمايي که جنازه خلکو په وار او نوبت سره پورته کوله، او په نوبت سره يې اوږه ورکوله، نو بيا يې د پورته کولو طريقه دا ده چې د جنازې د مخکنۍ حصې يعني د سر د حصې چې کومه پښه راسته اړخ ته وي اول دي هغه ونيول سي او پر راسته اوږه دي کښېښول سي، بيا دي د شاتنۍ حصې راسته پښه پر راسته اوږه کښېښول سي، بيا دي د جنازې د مخکنۍ حصې چې کومه پښه چپه اړخ ته وي هغه دي پر چپه اوږه کښېښول سي، او بيا دي د شاتنۍ حصې چپه پښه پر چپه اوږه کښېښول سي، او دا حکم د هغو خلکو لپاره دی چې هغوی د جنازې څلور سره پښې پورته کول غواړي، او خپل نوبت يې تاکلی وي، (يعني دا غواړي چې د جنازې څلور سره طرفو ته اوږه ورکړي، چې په دې کې ثواب ډېر دی او نورو خلکو ته نوبت هم ورکوي)، نو د هغو لپاره دا پورتنی حکم دی چې په راسته طرف سره شروع وسي، او که د جنازې پورته کونکي فقط څلور خلک وي، نو په يوه حالت او کيفيت کې به جنازه قبر ته رسوي، خو که بيا هم حالت بدلول غواړي، نو جنازه دي پر ځمکه کښېږدي، صورت او کيفيت دي بدل کړي، ځکه چې د تګ په حالت کې صورت او کيفيت بدلول ناممکن دي.

## فَصْلٌ فِي الدَّفْنِ

(دا) فصل د مړي د ښخولو (په بيان کې) دی

**تشريح:** څرنګه چې د جنازې تر پورته کولو او ايښوولو وروسته د مړي ښخولو نوبت راځي، نو ځکه اوس صاحب د هدايې د "تدفين" مسئلې بيانوي.

### د قبر د کنبلو سنت طريقه

| |
|---|
| ﴿وَيُحْفَرُ الْقَبْرُ﴾ او قبر دي وکنبل سي ﴿وَيُلْحَدُ﴾ او لحد (ډوری) دي جوړه کړی سي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي وَاللَّحْدُ لَنَا وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا "لحد زموږ لپاره دی او شق د نورو لپاره دی" ﴿وَيُدْخَلُ الْمَيِّتُ مِمَّا يَلِي﴾ |

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجنائز، باب في اللحد، حديث رقم: ٣٢٠٨.

الْقِبْلَةَ او مړی به د قبلې له طرف څخه (قبر ته) ور داخل کړی سي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی فَإِنَّ عِنْدَهُ يُسَلُّ سَلًّا ځکه چي د هغه په نېز به مړی د پښو له طرفه را کشول کيږي (مطلب دا چي په قبر کي چي پښې کوم طرف ته وي، له هغه طرفه به مړی په قبر کي را شوه کيږي) لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سُلَّ سَلًّا چي نبي ﷺ د پښو له طرفه په قبر کي داخل کړی سو وَلَنَا أَنَّ جَانِبَ الْقِبْلَةِ مُعَظَّمٌ او زموږ دليل دا دی چي د قبلې طرف د احترام وړ دی يُسْتَحَبُّ الْإِدْخَالُ مِنْهُ نو له هغه طرف څخه مړی داخلول مستحب دي وَاضْطَرَبَتِ الرِّوَايَاتُ فِي إِدْخَالِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او په قبر کي د نبي ﷺ د داخلولو په باره کي روايتونه مختلف دي (نو ځکه به د قبلې د طرف والا حديث راجح وي).

**اللغات:** ﴿يُحْفَرُ﴾ مضارع مجهوله ده، کنده، يا ډوري کنبل. ﴿يُلْحَدُ﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: ډوري جوړول، لحد جوړول (بغلي جوړول). ﴿شَقّ﴾ مينځوی قبر. ﴿يُسَلُّ﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: کشول.

**تشريح:** د قبر دوه قسمه دي: يو قسم لحد دی، هغه دا چي قبر سيده وکنبل سي، بيا په قبر کي راسته طرف ته دومره بغلي (ډوري) جوړه سي چي مړی پکښي ايښول کېدای سي، او دويم قسم شق دی، شق دا دی چي قبر سيده وکنبل سي، نېږ پراخه او ژور کړی سي او په مينځ کي يې يوه نری غوندي نالی جوړه کړی سي چي مړی پکښي ايښول کېدای سي.

د عبارت حاصل دا دی چي زموږ په نېز قبر کنبل او لحد جوړول سنت دي، په دې شرط چي مځکه نرمه او پسته نه وي، خو ک: مځکه داسي نرمه وه چي د لحد جوړول ممکن نه وو، نو شق جائز دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز شق سنت دی، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د مدينې د خلکو توارث دی، يعني د مدينې په خلکو کي له شروع څخه دا طريقه د توارث په توګه را روانه ده چي هغوی د مسلمان مړي لپاره شق جوړوي، زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی: اللحد لنا والشق لغيرنا، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دی چي د بقيع (يعني د مدينې منورې د هديرې) مځکه نرمه او ريګنه ده، او په هغې کي لحد جوړول ممکن نه دي، نو ځکه د مدينې خلک شق اختياروي.

ويدخل البيت الخ زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په مينځ کي دويم اختلاف دا دی چي زموږ په نېز سنت طريقه دا ده چي مړی به قبر ته له هغه طرف څخه ور شوه کيږي کوم چي د قبلې طرف وي، يعني د قبلې له طرفه به جنازه په قبر کي اېښوول کيږي، بيا به په لحد کي ايښوول کيږي، لېکن امام شافعي فرمايي چي سنت دا ده چي مړی به په قبر کي د پښو له طرفه راشوه کيږي، د دې طريقه دا ده چي جنازه دي د قبر پر هغه طرف کېښېښول سي چيري چي د مړي پښې راځي، بيا دي يو سړی قبر ته ور شوه سي، او جنازه دي د سر له طرفه را کش کړي په قبر کي دي يې کښېږدي، بعضو وېلي دي چي طريقه يې دا ده چي جنازه دي د قبر د سر وطرف ته کېښېښول سي، بيا دي اول د مړي دواړه پښې قبر ته داخلي کړی سي، وروسته دي تو له مړی راکش کړی سي په قبر کي دي کښېښول سي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د نبي ﷺ جنازه همدارنګه را کش کړل سوه، او په قبر کي کښېښول سوه، زموږ دليل دا دی چي د قبلې طرف معظم او محترم دی، نو ځکه به له هغه طرف څخه داخلول مستحب وي، او پاته سوه په قبر کي د نبي ﷺ د ايښوولو مسئله، نو په هغه

کي روايات مختلف دي، په بعضو کي يو څه راغلي دي، او په بعضو کي بل څه راغلي دي، نو ځکه به دا روايتونه د استدلال وړ نه وي.

## په قبر کي د مړي د اېښوولو صحيح طريقه، او د اېښوونکي لپاره دعاء

قَالَ وَإِذَا وُضِعَ فِي لَحْدِهِ بيا چي کله مړی په قبر کي کېښول سي يَقُولُ وَاضِعُهُ: بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ نو اېښوونکی به ووايي: بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ (يعني د الله په نامه او د رسول الله پر طريقه شروع کوم) كَذَا قَالَهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] حِينَ وَضَعَ أَبَا دُجَانَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي الْقَبْرِ همدغه دعاء نبي ﷺ ويلې وه کله چي يې ابودجانه په قبر کي کېښوی وَيُوَجَّهُ إِلَى الْقِبْلَةِ او اېښوونکی به د مړی مخ د قبلې وطرف ته کړي بِذَلِكَ أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[2] همد دې حکم رسول الله ﷺ کړی دی وَيُحَلُّ الْعُقْدَةُ او د کفن غوټې به خلاصې کړي لِوُقُوعِ الْأَمْنِ مِنَ الِانْتِشَارِ ځکه چي اوس د کفن له خلاصېدلو څخه اطمينان حاصل سو (يعني دا اندېښنه ليري سوه چي کفن به خلاص سي او به خوريږي) وَيُسَوَّى اللَّبِنُ عَلَى اللَّحْدِ او پر ډوری به کچه خښتې برابري کړی سي (يعني پر ډوری به کچه خښتې برابري او په ترتيب سره کېښول سي) لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جُعِلَ[3] عَلَى قَبْرِهِ اللَّبِنُ ځکه چي د نبي ﷺ پر قبر (هم) کچه خښتې لګول سوي وې وَيُسَجَّى قَبْرُ الْمَرْأَةِ بِثَوْبٍ او د ښځي قبر به په يوه کپړه (او پرده) سره پټ کړی سي حَتَّى يُجْعَلَ اللَّبِنُ عَلَى اللَّحْدِ تر دې چي کچه خښتې پر ډوری ولګول سي وَلَا يُسَجَّى قَبْرُ الرَّجُلِ او د سړي قبر به په کپړه سره نه پټېږي لِأَنَّ مَبْنَى حَالِهِنَّ عَلَى السَّتْرِ ځکه چي د ښځو حالت په پرده باندي مبني دی وَمَبْنَى حَالِ الرِّجَالِ عَلَى الِانْكِشَافِ او د خلکو حالت په ښکاره والی (او کشف) باندي مبني دی.

**اللغات:** ﴿يُحَلُّ﴾ د نصر د باب مضارع معلومه ده: غوټه خلاصول، يو شی حلول. ﴿عُقْدَة﴾ غوټه. ﴿اِنْتِشَار﴾ خورېدل (خلاصېدل). ﴿يُسَوَّى﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: برابرول. ﴿يُسَجَّى﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: پرده کول، په پرده پټول.

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د مړي اېښوونکی سړی دي په لحد کي د مړي د اېښوولو په وخت کي دا دعاء ووايي: بسم الله وعلى ملة رسول الله، او په يوه روايت کي د بسم الله وعلى سنة رسول الله الفاظ راغلي دي، دليل دا دي چي په قبر کي د ابو دجانه رضي الله عنه د اېښوولو په وخت کي نبي ﷺ د بسم الله وعلى ملة رسول الله الفاظ ويلي وو، په مبسوط او بدائع کي هم دغسي ذکر سوي دي، صاحب د کتاب هم دهغو تقليد کړی دی، لېکن قصه دا ډول نه ده، ځکه چي د ابو دجانه انصاري وفات د نبي ﷺ تر وفات وروسته د ابو بکر صديق رضي الله عنه په خلافت کي په جنګ يمامه کي وسو، صحيح دا ده چي رسول

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه فى كتاب الجنائز، باب ماجاء فى إدخال الميت القبر، حديث رقم: ١٥٥٠.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب الوصايا، باب ماجاء فى التشديد فى أكل مال اليتيم، حديث رقم: ٢٨٧٥.

[3] تخريج: أخرجه مسلم فى كتاب الجنائز، باب فى اللحد نصب اللبن على الميت، حديث رقم: ٩٠.

الله ﷺ د ذوالنجادين (عبدالله) د ايښوولو په وخت کي دا دعاء ويلې وه، له دې څخه ماسوا د دې دعاء ثبوت د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث سره هم کيږي، حديث دا دی: عن ابن عمر كان النبي ﷺ... (يعني کله چي به نبي ﷺ يو مړی قبر ته داخلوی نو بسم الله وعلى ملة رسول الله به يې ويل).

ويوجّه الخ په قبر کي د ايښوونکي لپاره دويم هدايت دا دی چي مړی دي په لحد کي د قبلې وطرف ته کړي، يعني پر راسته اړخ دې پرې بلسي او مخ دي يې د قبلې وطرف ته کړي، دليل دا دی چي رسول الله ﷺ خلکو ته د دې حکم کړی دی، لکه په عنايه کي چي هم په دې باره کي حديث راغلی دی.

و يحل العقدة الخ د ايښوونکي لپاره دريم هدايت دا دی چي په قبر کي دي د مړي تر ايښوولو وروسته د مړي د کفن غوټي خلاصي کړي، ځکه چي اوس د کفن د خلاصيدلو وهم نشته.

ويسوّي الخ څلورم هدايت دا دی چي په لحد کي دي د مړي تر ايښوولو وروسته کچه خښتي پر لحد ولګول سي، يا داسي بل شی لکه بانس او داسي نور دي پر لحد کښېښول سي چي په بشپړه توګه لحد بند سي، ځکه د نبي ﷺ په قبر کي همدغه عمل سوی وو، لکه د جابر ﷺ څخه چي روايت دی: كان قبر النبي ﷺ اللحد ونصبنا عليه اللبن نصباً ورفع قبره من الارض شبراً. (يعني نبي ﷺ په لحد کي کښېښول سو، او موږ پر لحد کچه خښته ولګولې، او د نبي ﷺ قبر مبارک ديوې لوېشتي په اندازه له ځمکي څخه پورته سو).

ويسجّى الخ فرمايي: که جنازه د ښځي وه، نو په قبر کي د هغې د ايښوولو په وخت کي په يوه کپړه يا پټو سره پرده کول پکار دي، لېکن که جنازه د سړي وه، نو بيا د دې هيڅ ضرورت نشته، ځکه چي د ښځو د حالت مدار پر ستر او پرده مبني دی، نو ځکه به په قبر کي هم د ښځو لپاره پرده څربږي، لېکن کله چي پر لحد خښتي او نور کښېښول سي نو بيا د پردې په ليري کولو کي څه حرج نشته، همدارنګه د سړي په جنازه کي هم د پردې څرولو څه ضرورت نشته، ځکه چي د خلکو د حالت مدار پر ظهور او انکشاف وي، نه پر ستر، او په دنيا کي هم د هغو لپاره د پردې کولو خاص ضرورت نه وي.

## په قبر کي د پخو خښتو او د لرګيو د لګولو حکم

وَيُكْرَهُ الْآجُرُّ وَالْخَشَبُ او (په قبر کي) پخه خښته او لرګي لګول مکروه دي لِأَنَّهُمَا لِإِحْكَامِ الْبِنَاءِ ځکه چي دا دواړه د بناء د ټينګولو لپاره دي وَالْقَبْرُ مَوْضِعُ الْبِلَى او قبر د زړېدلو (او خرابېدلو) ځای دی ثُمَّ بِالْآجُرِّ يَكُونُ أَثَرُ النَّارِ بيا په پخو خښتو کي د اور اثر (هم) سته فَيُكْرَهُ تَفَاؤُلًا نو د بدمرغۍ په توګه به مکروه وي وَلَا بَأْسَ بِالْقَصَبِ او د بانس په ايښوولو کي هيڅ حرج نشته وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَيُسْتَحَبُّ اللَّبِنُ وَالْقَصَبُ او په جامع صغير کي دي: چي کچه خښتي او بانسان ايښوول مستحب دي لِأَنَّهُ[●] عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جُعِلَ عَلَى قَبْرِهِ طُنٌّ مِنْ قَصَبٍ ځکه چي د نبي ﷺ پر قبر يو بنډل (دسته) بانسان استعمال کړی سول ثُمَّ يُهَالُ التُّرَابُ بيا به پر قبر خاوري واچول سي وَيُسَنَّمُ الْقَبْرُ او قبر

● تخريج: أخرجه امام اعظم في كتاب الآثار، ص:٤٢، والبخاري في معناه في كتاب الجنائز، باب ماجاء في قبر النبي ﷺ، حديث رقم: ١٣٩٠.

به د اوښ د بوک په ډول جوړ سي وَلَا يُسَطَّحُ او هوار به نه جوړيږي أَيْ لَا يُرَبَّعُ يعني څلور کونجه به نه جوړيږي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنْ تَرْبِيْعِ الْقُبُوْرِ ځکه چي نبي ﷺ د قبرونو له څلور کونجه جوړولو څخه منع کړې ده وَمَنْ شَاهَدَ قَبْرَهُ (ص) او چا چي د نبي ﷺ قبر (مبارک) ليدلی دی أَخْبَرَ أَنَّهُ مُسَنَّمٌ هغه دا خبر ورکړی دی چي د نبي ﷺ قبر د بوک غوندي وو.

**اللغات:** ﴿آجر﴾ پخه خښته، ﴿خشب﴾ لرګی، ﴿بلي﴾ زړيدل، پخوانی کېدل، خرابېدل، ورستېدل، ﴿تفاؤل﴾ فال اخيستل، ﴿قصب﴾ بانس، (مراد ځني د بانس نري لرګي دي)، ﴿لبن﴾ کچه خښته، ﴿لحد﴾ بنډل، بسته، پلنډه (مراد ځني د پر بانسان دي)، ﴿يهال﴾ مجهوله صيغه ده: غورځول، اچول، ﴿يسنم﴾ دا هم مجهوله صيغه ده: د اوښ د بوک په ډول جوړول، ﴿تربيع﴾ مصدر دی: څلور کونجه جوړول.

**تشريح:** فرمايي چي په قبر کي پخې خښتي او لرګي لګول مکروه دي، دليل دا دی چي دا دواړه شيان د قبر د ودانۍ او عمارت د ټينګولو لپاره دي، ليکن قبر د خرابېدلو او بربادېدلو ځای دی (يعني انسان پکښې خرابيږي، آخر يې نښه هم ورکيږي)، نو ځکه په دې کي پخه خښته، لرګيان او داسي نور لګول د قبر له موضوع څخه خلاف او اسراف دي، د پخو خښتو بله د کراهت وجه دا هم ده چي په پخو خښتو کي د اُور اثر وي، نو ځکه به د بدمرغۍ په توګه هم مکروه وي ځکه چي له پخو خښتو څخه دا ثابتيږي چي ګواکي د هغه د آخرت کور د اُور په مرسته تيار سو، خو د بانس په لرګيو کي هيڅ حرج نسته.

وفي الجامع الصغير الخ فرمايي: په جامع صغير کي ذکر سوي دي چي کچه خښتي او بانسونه لګول مستحب دي، او د قدوري عبارت پر استحباب دلالت نه کوي، ليکن د جامع صغير عبارت د دې دواړو شيانو پر استحباب دلالت کوي، دليل دا دی چي د رسول الله ﷺ په قبر مبارک کي هم بانسان استعمال سول.

ثم يهال التراب الخ بيا دي پر قبر خاوري واچول سي او قبر دي د اوښ د بوک په ډول جوړ سي، يعني له مځکي څخه دي يوه لوېشت يا لږ زيات جګ جوړ سي، قبر دي مسطح يعني څلور کونجه نه جوړيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: سنت دا دي چي قبر څلور کونجه جوړ سي، نه د بوک په څېر، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي کله د رسول الله ﷺ زوی ابراهيم وفات سو، نو نبي ﷺ د هغه قبر څلور کونجه جوړ کړی، زموږ دليل دا دی چي نبي ﷺ له څلور کونجه قبر جوړولو څخه منع کړې ده، ابراهيم نخعي وايي: يو سړي د نبي ﷺ او د شيخينو يعني د حضرت ابو بکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قبرونه ليدلي ول، نو هغه ما ته وويل چي د هغوی قبرونه مسنم يعني د اوښ د بوک په څېر وه، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دی چي د ابراهيم قبر خو اول څلور کونجه جوړ سو، ليکن وروسته بيا د بوک په ډول جوړ سو، په مبسوط او محيط کي همدغه ذکر دي. والله أعلم بالصواب



# بَابُ الشَّهِيْدِ

## (دا) باب د شهيد (د احکامو په بيان کي) دى

**تشريح:** څرنګه چي د شهيد احکام د نورو مړو له احکامو څخه جلا او بيل دي، نو ځکه د شهيد احکام په يوه جلا باب کي بيانوي، يا په دې وجه دا جلا بيانوي چي شهيد پر نورو مړو دېر فضيلت لري، تر دې چي له دې څخه منع سوې ده چي شهيد ته مړ وويل سي، لکه څرنګه چي د الله تعالىٰ فرمان دى: وَلَا تَقُولُواْ لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمْوَٰتُۢ بَلْ أَحْيَآءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ [البقرة:١٥٤]، تر باب الجنائز وروسته د شهيد ذکر د ذکر الخاص بعد العام له قبيلې څخه دى، لکه په قرآن کريم چي تر ملائکو وروسته د جبرئيل او ميکائيل ذکر هم له دې قبيلې څخه دى، د مثال په توګه د الله تعالىٰ فرمان دى: مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَىٰلَ فَإِنَّ ٱللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَٰفِرِينَ [البقرة:٩٨].

**شهيد ته د شهيد ويلو وجه:** صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي شهيد ته په څو وجهو شهيد ويل کيږي: ① په دې وجه چي فرښتې د تعظيم او عزت په خاطر د هغه د مرګ شهادت (ګواهي) ورکوي، او فرښتې د هغه په جنازه کي شرکت کوي، نو دلته به شهيد په معنىٰ سره د مشهود وي، لکه فعيل چي په معنىٰ سره د مفعول راځي، ② دويمه وجه دا ده چي شهيد ته تر مرګ وروسته د جنت زيرى او شهادت ورکول کيږي، نو دلته به هم په معنىٰ سره د مشهود دى، ③دريمه وجه دا ده چي د شهيد معنىٰ ده: حاضر، او شهيد هم د الله ﷻ په نېز حاضر او ژوندى وي، لکه څرنګه چي مخکي آيت ذکر سو (بنايه ج۲، ص۲۰۷،۹۳۰۷)، دلته به په معنىٰ د شاهد سره وي، د فقهاؤ په اصطلاح کي شهيد هغه څوک دى چي مشرکينو او کافرانو قتل کړى وي او د جنګ په ډګر کي پروت وي، او د هغه پر بدن د قتل او زخم اثر وي، يا هغه څوک دى چي مسلمانانو په ظلم قتل کړى وي، او د قتل په وجه يې ديت واجب سوى نه وي.

**د شهادت قسمونه:** د شهادت دوه قسمه دي: يو هغه چي د آخرت په احکامو کي شهيد وي، که څه هم په دنياوي احکامو کي هغه ته غسل او نور ورکول کيږي، دويم دا چي په دنيا او آخرت دواړو کي شهيد وي، تر دې چي هغه ته غسل هم نه ورکول کيږي.

### د شهيد تعريف، قسمونه او احکام

الشَّهِيْدُ مَنْ قَتَلَهُ الْمُشْرِكُوْنَ (کامل) شهيد هغه څوک دى [١] چي مشرکانو قتل کړى وي أَوْ وُجِدَ فِي الْمَعْرَكَةِ وَبِهِ أَثَرٌ [٢] يا د جنګ په ميدان کي پيدا سوى وي او پر هغه د زخم اثر وي أَوْ قَتَلَهُ الْمُسْلِمُوْنَ ظُلْمًا [٣] يا مسلمانانو په ظلم قتل کړى وي وَلَمْ يَجِبْ بِقَتْلِهِ دِيَةٌ او د هغه د قتل په وجه ديت لازم سوى نه وي فَيُكَفَّنُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ نو هغه ته به کفن ورکول کيږي او د جنازې لمونځ به پر کيږي وَلَا يُغَسَّلُ او غسل به نه ورکول کيږي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى شُهَدَاءِ أُحُدٍ ځکه چي دا سړى د اُحد د شهيدانو په معنىٰ سره دى (يعني دا د اُحد د شهيدانو په درجه کي دى) وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[●] فِيْهِمْ او د اُحُد د شهيدانو په باره کي نبي ﷺ فرمايلي وو زَمِّلُوْهُمْ بِكُلُوْمِهِمْ وَدِمَائِهِمْ "دوى د خپلو زخمونو او وينو سره (په

● تخريج: أخرجه البيهقي في سنن الكبرىٰ في كتاب الجنائز، باب المسلمون يقتلهم المشركون في المعترک، حديث رقم: ٦٨٠٠، والبخاري في كتاب الجنائز، باب الصلاة على الشهيد، حديث قم: ١٣٤٣.

کپړو) کي پټ کړئ وَلَا تُغَسِّلُوْهُمْ او غسل مه ورکوئ" فَكُلُّ مَنْ قُتِلَ بِالْحَدِيْدَةِ ظُلْمًا نو هر هغه څوک چي په تېره اوسپني سره په ظلم قتل کړی سي وَهُوَطَاهِرٌبَالِغٌ او هغه پاک او بالغ وي وَلَمْ يَجِبْ بِهٖ عِوَضٌ مَالِيٌّ او د هغه د قتل په بدله کي هيڅ مالي عوض واجب نه سوی نه وي فَهُوَفِيْ مَعْنَاهُمْ نو هغه د اُحُد شهيدانو په درجه کي دی فَيَلْحَقُ بِهِمْ نو ځکه به د هغوی سره ملحق کيږي وَالْمُرَادُ بِالْأَثَرِ الْجَرَاحَةُ او (په متن کي) له اثر څخه مراد زخم دی لِأَنَّهَا دَلَالَةُ الْقَتْلِ ځکه چي زخم د قتلېدلو نښه ده وَكَذَا خُرُوْجُ الدَّمِ مِنْ مَوْضِعٍ غَيْرِ مُعْتَادٍ همدارنګه له داسي ځای څخه د وينو راوتل چي په عامه توګه له هغه ځای څخه ويني نه راوځي كَالْعَيْنِ وَنَحْوِهَا لکه د سترګي او داسي بل ځای څخه ويني راوتل (هم د قتلېدلو نښه ده) وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِي الصَّلَاةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د لمانځه په باره کي زموږ څخه مخالف دی وَيَقُوْلُ: اَلسَّيْفُ مَحَّاءٌ لِلذُّنُوْبِ او فرمايي: چي توره د ګناهونو لپاره محوه کونکې (ورانونکې) ده فَأَغْنَى عَنِ الشَّفَاعَةِ نو توره به (هغه) له شفاعت څخه مستغني کوي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: اَلصَّلَاةُ عَلَى الْمَيِّتِ لِإِظْهَارِ كَرَامَتِهٖ او موږ وايو: چي پر مړي د جنازې لمونځ کول د هغه د کرامت (عزت) د څرګندلو لپاره دی وَالشَّهِيْدُ أَوْلٰى بِهَا او شهيد د کرامت زيات حقدار دی وَالطَّاهِرُ عَنِ الذُّنُوْبِ لَا يَسْتَغْنِيْ عَنِ الدُّعَاءِ كَالنَّبِيِّ وَالصَّبِيِّ او له ګناهونو څخه پاک انسان هم له دعاء څخه مستغني نه وي لکه نبي او کوچنی.

**اللغات:** ﴿زَمِّلُوْا﴾ د تفعيل د باب د امر صيغه ده: په پټو يا کپړه کي ېېچل (يا پټول)، نغاړل. ﴿كُلُوْمِ﴾ جمع ده، واحد يې كَلْمٌ دی: زخم. ﴿دِمَاءِ﴾ جمع ده، واحد يې دَمٌ دی: وينه. ﴿مَحَّاءٌ﴾ د نصر د باب اسم مبالغه ده: په ښه توګه محوه (مسحه) کونکی، په ښه توګه پاکونکی.

**تشريح:** صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله وايي چي د شهيد څو قسمونه دي: (١) اول دا چي يو مسلمان مشرکينو قتل کړی وي هغه که په وسله سره وي او که پر لرګي او نورو سره. (٢) دويم دا چي يو مسلمان د جنګ په ميدان کي په داسي حال کي پيدا سي چي د هغه پر بدن د زخم او قتل اثر وي. (٣) دريم دا چي يو مسلمان نورو مسلمانانو په ظلم قتل کړی وي، او د دې قتل په وجه د هغه ديت واجب سوی نه وي، په دې درې سره وو صورتونو کي حکم دا دی چي بالاتفاق به غسل نه ورکول کيږي، او کفن به ورکول کيږي، ځکه چي داسي مسلمان د اُحد د شهيدانو په معنیٰ کي دی، خو په لمانځه کي يې اختلاف دی، ځکه چي زموږ په نېز د شهيدانو د جنازې لمونځ کيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نه کيږي، شهيد ته به کفن ځکه ورکول کيږي، چي کفن د بني آدم په مړو کي سنت دی، خو که د شهيد پر بدن جامې وي، هغه به نه ځني ليري کيږي، ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي وو: زملوهم بکلومهم ودمائهم او په يوه روايت کي بثيابهم راغلي دي، (يعني دوی ونغاړئ د خپلو زخمونو، وينو او جامو سره)، د شهيد پر بدن که خولۍ (ټوپۍ)، موزه او وسله وي هغه به ځني ليري کيږي، او شهيد ته به غسل ځکه نه ورکول کيږي چي شهيد د اُحُد د شهيدانو په درجه کي دی، او د اُحُد د شهيدانو په باره کي نبي ﷺ فرمايلي وو: ولا تغسلوهم (دوی ته غسل مه ورکوئ)، په بل حديث کي راځي: "که چا

ته د الله ﷻ په لاره کي يو زخم ولګيږي، نو دا سړی به د قيامت په ورځ د الله ﷻ په حضور کي په داسي حال کي وړاندي کيږي چي د زخم رنګ خو به يې د وينو په شان وي ليکن بوی به يې د مشکو په شان وي".

فكل منه الخ صاحب د هدايې وايي چي کوم سړی په تېره او سپيني سره ظلماً قتل کړی سي، او هغه پاک او بالغ وي، او د هغه پر قتل څه مالي ديت يا قصاص نه وي واجب سوی، نو هغه د اُحُد د شهيدانو په معنیٰ کي دی، لهذا د هغو په حکم کي به وي.

والشافعي يخالفنا الخ د شهيد د جنازې په لمانځه کي زموږ او د امام شافعي رَحِمَہُ اللہ اختلاف دی، زموږ په نيز د شهيد د جنازې لمونځ هم فرضِ کفايي دی، ليکن امام شافعي رَحِمَہُ اللہ فرمايي چي پر شهيد به د جنازې لمونځ نه کيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د جنازې لمونځ په حقيقت کي د مړي لپاره سفارش او دعاء غوښتنه، او په کومه توره چي شهيد قتل سوی وي، هغه د شهيد ګناهونه محوه کوي، نو کله چي توري د شهيد ګناهونه محوه کړل، نو د هغه لپاره د سفارش او دعاء هيڅ ضرورت پاته نه سو، نو ځکه به پر شهيد د جنازې لمونځ نه کيږي.

**جواب:** د امام شافعي د دليل جواب دا دی چي د مړي لپاره د جنازې لمونځ فقط د دعاء لپاره نه وي، بلکي په دې کي له دعاء څخه ماسوا د مړي عزت او تعظيم هم ښکاريږي، او شهيد د تعظيم او عزت زيات حقداره دی، نو ځکه به د نورو مړو په شان د شهيد د جنازې لمونځ هم کيږي، او د امام شافعي رَحِمَہُ اللہ دا وينا چي کوم سړی له ګناهونو څخه پاک سي، هغه له دعاء څخه مستغني کيږي، دا صحيح نه ده، ځکه چي تر نبي به زيات پاک څوک وي؟، او نابالغه کوچني هم له ګناهونو څخه پاک وي، خو بر سېره پر دې پر دواړو د جنازې لمونځ کول فرض دي، نو کله چي پر نبي او کوچني د جنازې لمونځ فرض دی، نو پر شهيد به هم د جنازې لمونځ فرض وي.

## د حربيانو باغيانو او ډاکوګانو په لاس د قتل سوي مسلمان حکم

> وَمَنْ قَتَلَهُ أَهْلُ الْحَرْبِ او کوم سړی چي حربيانو قتل کړی وي أَوْ أَهْلُ الْبَغْيِ أَوْ قُطَّاعُ الطَّرِيقِ يا باغيانو يا ډاکوګانو (قتل کړی وي) فَبِأَيِّ شَيْءٍ قَتَلُوهُ نو هغه که دوی په هر شي سره قتل کړی وي لَمْ يُغَسَّلْ غسل به نه ورکول کيږي لِأَنَّ شُهَدَاءَ أُحُدٍ مَا كَانَ كُلُّهُمْ قَتِيلَ السَّيْفِ وَالسِّلَاحِ ځکه چي د اُحُد له شهيدانو څخه هر يو په توره او وسله سره نه وو قتل سوی.

**اللغات:** ﴿أَهْلُ الْبَغْيِ﴾ باغيان، بغاوت کونکي، ﴿قُطَّاعُ الطَّرِيقِ﴾ د لاري شکونکي، ډاکوګان، ډاکه ماران، ﴿قَتِيلٌ﴾ قتل کړی سوی، مقتول، ﴿سِلَاحٌ﴾ وسله.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کوم مسلمان د حربيانو، يا باغيانو، يا ډاکوګانو په لاس قتل سي، نو هغه به د شهيد په حکم کي وي، هغه که يې په هره ذريعه قتل کړی وي، او کله چي د شهيد په حکم کي سو، نو ښکاره ده چي بغير له غسل څخه به په قبر کي ښخيږي، ځکه بې له غسله ښخول د اُحُد د شهيدانو په حق کي ثابت دي، او د اُحُد له شهيدانو څخه هم هر يو په توره يا وسله سره نه وو قتل سوی، بلکي له هغو څخه بعضي صحابه په ډبرو شهيدان کړی سول، او بعضي صحابه په لکړو او لرګيانو شهيدان کړی سول، او نبي ﷺ مطلق د ټولو د بې له غسله ښخولو حکم وکړی، نو ځکه به دا حکم هر شهيد ته عام وي، او کوم سړی چي هم په ظلم او ناحقه سره قتل سي، هغه به بې له غسله ښخيږي.

## جُنب شهید ته د غسل ورکولو حکم

وَإِذَا اسْتُشْهِدَ الْجُنُبُ او که جنب سړی شهید کړی سو غُسِّلَ* عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز به هغه ته غسل ورکول کیږي وَقَالَا: لَا يُغَسَّلُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي غسل به نه ورکول کیږي لِأَنَّ مَا وَجَبَ بِالْجَنَابَةِ سَقَطَ بِالْمَوْتِ ځکه کوم شی چي په جنابت سره واجب سوی وو (یعني غسل) هغه په مرګ سره ساقط سو وَالثَّانِي لَمْ يَجِبْ لِلشَّهَادَةِ او دویم (یعني غسل) د شهادت په وجه سره نه واجبیږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الشَّهَادَةَ عُرِفَتْ مَانِعَةً غَيْرَ رَافِعَةٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي شهادت خو منع کونکی شی دی (لیکن) پورته کونکی شی نه دی فَلَا تَرْفَعُ الْجَنَابَةَ نو ځکه به جنابت نه پورته کوي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ حَنْظَلَةَ لَمَّا اسْتُشْهِدَ جُنُبًا او دا خبره صحیح ده (یعني په صحیح حدیث کي ذکر سوې ده) چي کله حضرت حنظله ﷺ شهید سو غَسَّلَتْهُ الْمَلَائِكَةُ نو هغه ته ملائکو غسل ورکړی وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ او هم پر دې اختلاف حائضه او نفاسه ښځي دي إِذَا طَهُرَتَا کله چي هغوی پاکي سي وَكَذَا قَبْلَ الِانْقِطَاعِ فِي الصَّحِيحِ مِنَ الرِّوَايَةِ او همدا (اختلاف دی) د وینو تر درېدلو مخکي په صحیح روایت کي وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ او هم پر دې اختلاف کوچنی (هم) دی لَهُمَا أَنَّ الصَّبِيَّ أَحَقُّ بِهَذِهِ الْكَرَامَةِ د صاحبینو دلیل دا دی چي کوچنی د دې کرامت زیات حقداره دی وَلَهُ أَنَّ السَّيْفَ كَفَى عَنِ الْغُسْلِ فِي حَقِّ شُهَدَاءِ أُحُدٍ او د امام صاحب دلیل دا دی چي توره د اُحد د شهیدانو په حق کي له غسل ځخه کافي سوه بِوَصْفِ كَوْنِهِ طَهْرَةً په دې صفت سره چي توره د ګناهونو پاکونکې ده وَلَا ذَنْبَ عَلَى الصَّبِيِّ او پر کوچني هیڅ ګناه نسته فَلَمْ يَكُنْ فِي مَعْنَاهُمْ نو ځکه به کوچنی د اُحد شهیدانو په معنیٰ کي نه وي.

**اللغات:** ﴿اُسْتُشْهِدَ﴾ د استفعال د باب ماضي مجهوله صیغه ده: شهید کېدل، ﴿نُفَسَاء﴾ هغه ښځه چي د کوچني تر زیږولو وروسته یې وینې راځي، ﴿ذَنْب﴾ ګناه.

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که یو جنب سړی د جنابت په حالت کي د جنګ میدان ته ولاړ‌ی او هغه ته د شهادت مرګ ورنصیب سو، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به هغه ته غسل ورکول کیږي، همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی، او د صاحبینو په نیز به غسل نه ورکول کیږي، او دا مسلک د امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دی.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چي کوم غسل د جنابت په وجه سره واجب سوی وو، هغه د مرګ په وجه ساقط سو، ځکه چي د مرګ په وجه هغه د جنابت د غسل له مکلف کېدلو ځخه ووتی، او دویم غسل یعني د مړي غسل د شهادت په وجه واجب نه سو، ځکه شهادت د غسل له وجوب ځخه مانع دی، ځکه چي د اُحُد د شهیدانو په باره کي نبي ﷺ فرمایلي وو: زملوهم بکلومهم ولا تغسلوهم په حدیث کي د دې هیڅ تفصیل نسته چي شهید به جنب وي او که غیر جنب.

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في فتح القدير ج:٢، ص: ١٠٧. [القول الراجح، ج:١، ص:١٥٨]

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي شهادت خو د مړي د غسل له وجوب څخه مانع دی، لېکن که مخکي غسل واجب سوی وو نو د هغه رافع يعني پورته کونکی نه دی، لکه څرنګه چي د شهيد پر کپړو نجاست ولګيږي، نو د هغه پرېولل ضروري دي، لېکن د هغه د بدن وريني پرېولل ضروري نه دي، نو کله چي شهادت رافع نه دی، نو ځکه به شهادت جنابت نه ليري کوي، او کله چي يې جنابت ليري نه کړي، نو جنب شهيد ته به غسل ورکول واجب وي، د دې تائيد په دې قصې سره هم کيږي چي حضرت حنظله رضي الله عنه چي کله شهيد سو، نو فرشتو هغه ته غسل ورکړی، نبي ﷺ د هغه له کورنۍ څخه پوښتنه وکړه چي حنظله په کوم حال کي وو، نو ښځي يې ورېل چي زما سره يې جماع وکړه، کله چي يې د جنګ اعلان واورېدی نو بې له غسله په جنګ کي شريک سو او شهيد سو، نبي ﷺ وفرمايل: چي همدا سبب دی(چي فرشتو غسل ورکړی)، نو له دې څخه هم معلومه سوه چي جنب شهيد ته به غسل ورکول کيږي، لېکن دا غسل به د جنابت غسل وي، د مرګ غسل به نه وي.

وعلى هذا الخلاف الخ فرمايي چي همدغه اختلاف په حائضې او نفاسې کي دی، يعني که د ښځي د حيض يا نفاس وريني ودرېدلې او تر اوسه يې غسل کړی نه وو چي په دغه حالت کي شهيده سوه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به غسل ورکول کيږي، ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خو شهادت د غسل له وجوب څخه مانع دی، لېکن رافع د غسل نه دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به غسل نه ورکول کيږي، ځکه چي اول غسل خو د مرګ په وجه ساقط سو، او دويم غسل د شهادت په وجه واجب نه سو.

وكذا قبل الانقطاع الخ فرمايي او د يوه روايت مطابق که ښځه د وينو تر درېدلو مخکي شهيده سوه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به غسل نه ورکول کيږي، ځکه د وينو تر درېدلو مخکي پر هغې بالکل غسل واجب نه سو، او د دويم روايت مطابق به غسل ورکول کيږي، همدا صحيح روايت دی، ځکه چي د مرګ په وجه د وينو درېدل(انقطاع) حاصل سو، او بهېدونکي ويني د انقطاع په وخت کي غسل واجبوي.

وعلى الخلاف الصبي الخ فرمايي: که کوچنی شهيد سو، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به غسل ورکول کيږي، او د صاحبينو په نېز به غسل نه ورکول کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي له شهيد څخه د غسل ساقطېدل په دې وجه دي چي د هغه د مظلوميت اثر پاته سي، مطلب دا چي شهيد ته د هغه د کرامت او عزت په وجه غسل نه ورکول کيږي، او د کوچني مظلوميت زيات دی، نو ځکه به کوچنی هم د دې کرامت زيات حقداره وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي د اُحُد د شهيدانو په حق کي توري د غسل پر ځای کفايت وکړی، ځکه چي توره ګناهونه محوه کوي، يعني د اُحُد شهيدانو ته په دې وجه غسل نه ورکول سو چي په توره(او داسي نورو) سره د هغو ګناهونه پاک کړی سول، او څرنګه چي پر کوچني هيڅ ګناه نسته، نو کوچنی به د اُحُد د شهيدانو په معنیٰ او درجه کي نه وي، او کله چي د اُحُد د شهيدانو په معنیٰ کي نه سو، نو د اُحُد د شهيدانو په ډول به له کوچني څخه غسل نه ساقطيږي، بلکي کوچني ته به غسل ورکول کيږي.

**راجح قول:** په پورتني قول کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة عبد الله داماد آفندی رَحِمَهُ الله: وكذا قبل الانقطاع في الأصح (مجمع الأنهر ج۱، ص۱۸۹). [القول الراجح، ج۱، ص۱۵۸]

## د شهيد د وينو، کالو او نورو شيانو حکم

وَلَا يُغَسَّلُ عَنِ الشَّهِيْدِ دَمُهُ او د شهيد له بدن څخه به نه خپلې ويني پرېولل کيږي وَلَا يُنْزَعُ عَنْهُ ثِيَابُهُ او نه به له هغه څخه خپل کالي (جامې) کښل کيږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَيُنْزَعُ عَنْهُ (لېکن) له هغه څخه به کښل کيږي اَلْفَرْوُ وَالْحَشْوُ پوستين او زياتي جامې وَالسِّلَاحُ وَالْخُفُّ وسله او موزې لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ جِنْسِ الْكَفَنِ ځکه چې دا شيان د کفن له جنس څخه نه دي وَيَزِيْدُوْنَ وَيَنْقُصُوْنَ مَا شَاءُوْا إِتْمَامًا لِلْكَفَنِ او د کفن د پوره کولو لپاره چې خلک خومره وغواړي کمي او زياتوب کولای سي (د مثال په توګه د کفن کپړې له دروڅخه کمي وي نو تر درو يې زياتولای سي، يا مثلاً له درو څخه زياتي وي نو کمولای يې سي)

**اللغات:** ﴿فرو﴾ پوستين، د کوټ په څير له وړين پوست څخه جوړي سوي جامې، ﴿حشو﴾ له ضرورت څخه زياتي جامې، او بعضو ويلي دي: له پمبه وو څخه ډکي جامې.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که د شهيد پر بدن له څرمن څخه جوړي جامې، پوستين، يا نوري زياتي جامې وي، يا له پمبه وو څخه ډک يو شی وو، يا وسله، موزه او داسي نور زيات شيان ول، نو هغه دي ځني ليري کړی سي، دا د احنافو مذهب دی، امام شافعي رَحِمَهُ الله وايي چې د شهيد له بدن څخه به هيڅ شی نه ليري کيږي.

**د امام شافعي دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: زملوهم...الخ، (يعني شهيدان په خپلو جامو کي ونغاړئ او پټ يې کړئ)، په دې حديث کي هيڅ تفصيل نسته چې په کومه جامه کي دي پټ کړی سي، او کومه جامه دي ځني ليري کړی سي، نو د حديث د اطلاق تقاضا دا ده چې هيڅ جامه او کپړه به هم د شهيد له بدن څخه نه ليري کيږي.

**زموږ دليل:** د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حديث دی: قال امر رسول الله ﷺ بقتلى أحد أن ينزع عنهم الحديد والجلود و أن يدفنوا بدمائهم وثيابهم (يعني رسول الله ﷺ د أحد د شهيدانو په باره کي حکم وکړی چې له هغوی څخه دي اوسپنه او پوستينونه جلا کړی سي، او د خپلو وينو او جامو سره دي پټ کړی سي)، په ښکاره دا دواړه حديثونه سره متعارض دي، نو ځکه موږ دواړه پرېښودو د قياس و طرف ته رجوع کوو، او قياس دا دی چې پوستين او نور دي ځني ليري کړی سي، ځکه چې دا شيان د کفن له جنس څخه نه دي.

ويزيدون الخ د شهيد پر بدن که له سنت شمېر څخه کمي جامې وي، نو د خلکو لپاره دا اجازه سته چې هغه زياتي کړي او د سنت شمېر سره يې برابري کړي او که له سنت شمېر څخه زياتي وي، نو دا اجازه ورته سته چې کمي يې کړي.

## د ارتثاث تعريف او د يو څو نورو صورتونو بيان

وَمَنْ أُرْتُثَّ غُسِّلَ او څوک چې فايده واخلي نو هغه ته به غسل ورکول کيږي (يعني چې له دنياوي ژوند څخه فايده واخلي د مثال په توګه تر زخمي کېدلو وروسته په دنيا کي لږ څه ژوندی پاته سي نو غسل به ورکول کيږي) وَهُوَ مَنْ صَارَ خَلَقًا فِي حُكْمِ الشَّهَادَةِ او فايده اخيستونکی هغه سړی دی چې د شهادت په حکم کي زوړ سي لِيَنَالَ مَرَافِقَ الْحَيَاةِ د ژوند د ګټو (منافعو) د حاصلولو په وجه لِأَنَّ بِذٰلِكَ يَخِفُّ أَثَرُ الظُّلْمِ ځکه چې په دې سره د ظلم اثر سپکيږي فَلَمْ يَكُنْ فِي مَعْنَى شُهَدَاءِ أُحُدٍ

لهذا هغه به دا حُد د شهيدانو په درجه کي نه وي وَالْإِرْتِثَاثُ: أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَشْرَبَ أَوْ يَنَامَ او فايده اخيستل دا دي: چي زخمي سړی خوراک او څښاک وکړي يا بيده سي أَوْ يُدَاوٰى أَوْ يُنْقَلَ مِنَ الْمَعْرَكَةِ يا د هغه علاج وسي يا د جنګ له ډګر څخه (بل ځای ته) نقل کړی سي لِأَنَّهُ نَالَ بَعْضَ مَرَافِقِ الْحَيَاةِ ځکه چي هغه د ژوند بعضي آسانتياوي حاصلي کړې وَشُهَدَاءُ أُحُدٍ مَاتُوْا عِطَاشًا او د احُد شهيدان خو تږي مړه سول وَالْكَأْسُ تُدَارُ عَلَيْهِمْ حال دا چي پر هغوی د اوبو پياله ګرځېدله فَلَمْ يَقْبَلُوْا خَوْفًا مِنْ نُقْصَانِ الشَّهَادَةِ لېکن په شهادت کي د نقصان د بيري په وجه هغوی اوبه نه قبلولې إِلَّا إِذَا حُمِلَ مِنْ مَصْرَعِهِ لېکن که هغه سړی د زخمي کېدلو له ځای څخه (په دې وجه) را پورته کړی سي (او راوستل سي) كَيْ لَا تَطَأَهُ الْخُيُوْلُ چي اسان يې تر پښو لاندي نه کړي (نو غسل به نه ورکول کيږي) لِأَنَّهُ مَا نَالَ شَيْئًا مِنَ الرَّاحَةِ ځکه چي هغه هيڅ راحت (هم) حاصل نه کړی وَلَوْ آوَاهُ فُسْطَاطٌ أَوْ خَيْمَةٌ او که هغه ته يوې غټې خېمې يا کوچنۍ خېمې پناه ورکړه (يعني ځای يې ورکړی) كَانَ مُرْتَثًّا لِمَا بَيَّنَّا نو هغه به مرتث (يعني له دنيوي ژوند څخه ګټه اخيستونکی) وي د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلَوْ بَقِيَ حَيًّا حَتّٰى مَضٰى وَقْتُ صَلَاةٍ او که هغه سړی ژوندی پاته سو تر دې چي ديوه لمانځه وخت تېر سو وَهُوَ يَعْقِلُ فَهُوَ مُرْتَثٌّ او هغه پوهېدی (يعني په هوښ کي وو) نو (هم) هغه مرتث دی لِأَنَّ تِلْكَ الصَّلَاةَ صَارَتْ دَيْنًا فِيْ ذِمَّتِهِ ځکه چي دا لمونځ د هغه پر ذمه قرض پاته سو وَهُوَ مِنْ أَحْكَامِ الْأَحْيَاءِ او دا د ژوندو له احکامو څخه دي قَالَ: وَهٰذَا مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا حکم له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوی دی وَلَوْ أَوْصٰى بِشَيْءٍ مِنْ أُمُوْرِ الْآخِرَةِ او که دې سړي د آخرت له امورو څخه يې ديو شي وصيت وکړی كَانَ إِرْتِثَاثًا عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا (هم) ارتثاث دی لِأَنَّهُ ارْتِفَاقٌ ځکه چي دا هم راحت حاصلول دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ[●] لَا يَكُوْنُ لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ارتثاث نه دی لِأَنَّهُ مِنْ أَحْكَامِ الْأَمْوَاتِ ځکه چي دا د مړو له احکامو څخه دي.

**اللغات:** ﴿أرتث﴾ د افتعال د باب ماضي مجهول له ده، اصطلاحي معنى يې ده: دنياوي ګټه حاصلول، له دنياوي آسانتياوو څخه فايده اخيستل، ﴿لحلق﴾ په فتحه د لام سره دی: زوږ، پخواني، ﴿نيل﴾ د فتح د باب مصدر دی: حاصلول، تر لاسه کول، ﴿مرافق﴾ ګټې، آسانتياوي، ﴿عطاش﴾ جمع ده، واحد يې: عَطْشَانٌ دی: تږی، ﴿مصرع﴾ د تښتېدلو ځای (له دې څخه مراد د جنګ په ډګر کي د انسان د زخمي کېدلو ځای دی)، ﴿كطأ﴾ تر پښو لاندي کول، پايماله کول، ﴿الخيول﴾ جمع د خيل ده: آس، ﴿أوى﴾ ځای ورکول، پناه ورکول، ﴿فسطاط﴾ غټه خېمه، مرکزي خېمه. ﴿كأس﴾ ګلاس، پياله (د اوبو د څښلو لوښی).

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله كذا في فتح القدير ج:٢، ص:١٠٩. [القول الراجح، ج:١، ص:١٥٩]

**تشريح**: ارتثاث د افتعال د باب مصدر دی، اصلي او لغوي معنیٰ يې ده: زړېدل (پخواني کېدل)، دلته د ارتثاث مطلب دا دی چې هغه سړی کوم چې د جنګ په ميدان کي زخمي سي، لېکن فوراً مړ نه سي، بلکي د زخم تر لګېدلو وروسته هغه تر يو څو ورځو يا يو څو ساعتونو (ګېنټو) پوري ژوندی پاته سي، او لږ څه ژوند وکړي، تر هغه وروسته مړ سي، نو اوس د هغه حکم دا دی چې غسل به ورکول کيږي، ځکه چې د زخم تر لګېدلو وروسته په هغه کي لږ څه ژوند پاته وو، نو په دې وجه د هغه د ظلم اثر سپک سو، او د هغه په مظلوميت کي سپکوالی راغلی، نو ځکه به دا ُحُد د شهيدانو په معنیٰ کي نه وي، ځکه چې هغوی تولـه د جنګ په ميدان کي شهيدان سول (او له دنياوي شيانو څخه يې هيڅ راحت حاصل نه کړی)، نو کله چې دا سړی د اُحُد د شهيدانو په معنیٰ کي نه سو، نو ښکاره ده چې تر مرګ وروسته به هغه ته غسل هم ورکول کيږي، ځکه چې غسل نه ورکول د اُحُد د شهيدانو او د ومن فی معناهم سره خاص دي.

والارتثاث الخ صاحب د قلوري وايي چې ارتثاث دا دی چې زخمي مجاهد تر مړه کېدلو مخکي څه وخوري يا وچيښي، يا بيده سي، يا يې علاج او درملنه وسي، يا د جنګ له ډګر څخه د راحت لپاره را نقل کړی سي، نو دې ټولو ته ارتثاث ويل کيږي، ځکه چې په دې صورتونو کي هغه له ژوند څخه يو څه منافعي حاصلې کړې (او د ژوند څه فائدې يې وکارولې)، لېکن دا چې د اُحُد د شهيدانو حال دا وو چې هغوی ته اوبه وړاندي سوې، لېکن د شهادت په مرتبه کي د نقصان راتللو د بيري په وجه هغوی اوبه قبولې نه کړې، او همدغسې د تندي په حالت کي مړه سول.

إلا إذا حمل الخ فرمايي که يو مجاهد تر زخمي کېدلو وروسته په دې انديښنه له مقتل او د جنګ له ډګر څخه نقل کړی سو چې اسونه يې تر پښو لاندي نه کړي، او بل ځای يې خوراک او څښاک هم نه وکړی، نو دا به ارتثاث نه وي، ځکه چې دې سړي هيڅ ډول راحت حاصل نه کړی، نو ځکه به هغه شهيد وي ويدفن بلا غسل.

ولو اواه الخ فرمايي که تر زخم لګېدلو وروسته مجاهد ته په يوه غته خېمه کي پناه ورکړل سوه، يا له عامو خېمو څخه په يوه خېمه کي پناه ورکړل سوه، نو په دې صورت کي به هغه مرتث وي، ځکه چې په دې صورت کي هم هغه د ژوند څه آرام حاصل کړی.

وبقي حياً الخ که مجاهد تر زخم لګېدلو وروسته ژوندی پاته سو او پر هغه د يوه لمانځه وخت تېر سو، او په دې دوران کي په هوښ کي هم وو، نو هغه به هم مرتث وي، ځکه چې د يوه لمانځه وخت د هوښ او حواسو په وخت کي تېرول د دې خبري دليل دی چې هغه لمونځ د ده پر ذمه قرض سو، او يو شی پر غاړه او ذمه قرض کېدل له دنياوي احکامو څخه دي، نو ځکه به هغه مرتث وي، لېکن که په دې دوران کي هغه بې هوښه وو او بيا مړ سو، نو هغه به مرتث نه شمارل کيږي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي چې دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت دی.

ولو أوصى الخ فرمايي که زخمي سړي له اُخروي مسئلو او معاملو څخه د يوې مسئلې يا معاملې په باره کي وصيت وکړی، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا سړی هم مرتث دی، ځکه د ثواب حاصلول هم راحت دي، يعني دې سړي اُخروي راحت حاصل کړی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا سړی مرتث نه دی، ځکه چې دا د دنياوي معاملو وصيت نه دی، بلکي د اُخروي معاملو وصيت دی، نو ځکه به دې سړي ته غسل نه ورکول کيږي.

**راجح قول**: په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة الحصکفي رَحِمَهُ الله: وإن أوصى بأمور الآخرة لا يصير مرتثا عند محمد رَحِمَهُ الله وهو الأصح (الدر المختار ج۱، ص۶۲۲). [القول الراجح، ج۱، ص۱۵۹]

## په ښار کې د پيدا سوي لاښ حکم

وَمَنْ وُجِدَ قَتِيْلًا فِي الْمِصْرِ او څوک چې په ښار کې قتل کړی سوی پيدا سي غُسِّلَ نو هغه ته به غسل ورکول کيږي لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيْهِ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ ځکه چې په هغه کې قسامت او ديت واجب دی فَخَفَّ أَثَرُ الظُّلْمِ نو د ظلم اثر سپک سو(يعني ديت او قسامت د ظلم اثر سپکوي) إِلَّا إِذَا عُلِمَ أَنَّهُ قُتِلَ بِحَدِيْدَةٍ ظُلْمًا لېکن که دا معلومه سي چې دا سړی په اوسپني سره په ظلم قتل سوی دی(نو غسل به نه ورکول کيږي) لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيْهِ الْقِصَاصُ ځکه چې په دې کې قصاص واجب دی وَهُوَ عُقُوْبَةٌ او قصاص سزا ده وَالْقَاتِلُ لَا يَتَخَلَّصُ عَنْهَا ظَاهِرًا او په ښکاره قاتل له سزا څخه نه سي خلاصېدلای إِمَّا فِي الدُّنْيَا وَإِمَّا فِي الْعُقْبٰى يا په دنيا کې(به هغه ته سزا ورکول کيږي) يا په آخرت کې وَعِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ: مَا لَا يَلْبَثُ بِمَنْزِلَةِ السَّيْفِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز چې کوم شی ځنډ نه کوي هغه د توري په درجه کې دی (يعني په کوم شي سره چې انسان سمدستي مري هغه د توري په ډول دی) وَيُعْرَفُ فِي الْجِنَايَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰی او (دا) مسئله به انشاء الله په باب الجنايت کې (تاته) معلومه سي.

**اللغات:** ﴿حديدة﴾ تېره اوسپنه لکه خنجر، تېره چاړه او داسي نور. ﴿عقوبة﴾ سزا، عذاب. ﴿عقبى﴾ آخرت، تر مرګ وروسته جهان. ﴿ما لا يلبث﴾ هغه شی چې ځنډ نه کوي، يعني وخت نه اخلي (بلکې فوراً انسان مړ کوي).

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړی په ښار کې قتل سوی پيدا سو، او د قاتل معلومات يې نه وو، او دا هم معلومه نه وه چې دا څرنګه مړ سوی دی، نو هغه شهيد نه دی، بلکې هغه ته به د عامو مړو په ډول غسل ورکول کيږي، او د کفن او پټولو بندوبست به يې کيږي، ځکه چې په دې صورت کې د مقتول پر وليانو قسامت واجب دی. د قسامت مطلب دا دی چې په کومه محله او علاقه کې چې د مړي لاښ پيدا سوی وي، د مقتول وليان به د هغې علاقې د خلکو په خلاف د قتل کولو قسم وخوري، او د هغوی د قسم په نتيجه کې به پر دغه علاقې والا ديت واجب سي، او څرنګه چې په ديت کې د ظلم تخفيف راځي، نو ځکه به دا سړی دأُحُد د شهيدانو په درجه کې نه وي، او غسل به ورکول کيږي.

إلا إذا علم الخ فرمايي که دا معلومه سوه چې دا سړی په تېره اوسپنه قتل سوی دی، او په ناحقه قتل سوی دی، يعني په قصاص يا رجم کې قتل سوی نه دی، نو اوس به هغه ته د شهيد درجه حاصله وي، ځکه د ظلماً او ناحقه قتل په وجه به د هغه پر قاتل يا د قاتل پر وليانو قصاص واجب وي، او قصاص يو ډول سزا ده، چې په هغه سره په مظلوميت کې تخفيف نه راځي، ځکه په مظلوميت کې په ديت او عوض سره تخفيف راځي، او دلته پر قاتل ديت نسته، بلکې قصاص پر واجب دی، ځکه چې قاتل ته به يو ځای سزا ورکول کيږي، يا به په دنيا کې نيول کيږي، نو هم به قصاص پر واجب وي، يا به په آخرت کې نيول کيږي، نو هم به دغه سزا ورکول کيږي، لنډه دا چې کله په پورتنې مسئله کې پر قاتل قصاص واجب دی، او قصاص سزاء ده، نو په دې سره به د مقتول په مظلوميت کې هيڅ تخفيف نه راځي، او هغه مقتول ته به شهيد ويل کيږي، نو بيا له غسله به پټيږي، لأنه في زمرة شهداء أحد.

وعند أبي يوسف الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: کوم شی چې د قتل په باره کې ځنډ نه کوي بلکې بې له ځنډه انسان وژني هغه هم د توري په ډول دی، يعني که په ښار کې يو څوک قتل سوی پيدا سو، او د هغه قاتل هم معلوم وو، او دا هم معلومه وه چې له تېره اوسپني څخه علاوه په يو بل شي مثلاً په درنه ډبره وژل سوی دی، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به پر قاتل قصاص واجب وي، او څرنګه چې دا سړی په ظلم قتل سوی دی، نو ځکه به د شهيد کېدلو په وجه غسل هم نه ورکول کيږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له تېره اوسپني څخه علاوه په يو بل شي سره د قتل کېدلو په صورت کې قصاص نه واجبيږي، لنډه دا چې د قصاص د وجوب لپاره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په تېره اوسپني سره قتل کېدل شرط دي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز شرط نه دي، ددې مسئلې د پوره تفصيل لپاره کتاب الجنايات وګورئ.

## په حد او قصاص کې د قتل سوي انسان د غسل او جنازې حکم

وَمَنْ قُتِلَ فِي حَدٍّ أَوْ قِصَاصٍ او څوک چې په يو حد يا يو قصاص کې قتل کړی سو غُسِّلَ وَصُلِّيَ عَلَيْهِ نو هغه ته دې غسل ورکول سي او پر هغه دې د جنازې لمونځ وکړی سي لِأَنَّهُ بَاذِلٌ نَفْسَهُ ځکه چې هغه د خپل ځان خرڅونکی دی (يعني خپل ځان يې قربان کړی) لِإِيفَاءِ حَقٍّ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِ د هغه حق د پوره کولو لپاره کوم حق چې د يو مستحق پر هغه باندې وو (يا مطلب دا چې د هغه حق د پوره کولو لپاره کوم چې پر هغه ثابت وو) وَشُهَدَاءُ أُحُدٍ بَذَلُوا أَنْفُسَهُمْ لِابْتِغَاءِ مَرْضَاةِ اللهِ تَعَالَى او د اُحُد شهيدانو د الله د رضا د حاصلولو لپاره خپل ځانونه قرباني کړل فَلَا يَلْحَقُ بِهِمْ نو ځکه به دا سړی د هغو سره نه ملحق کيږي (يعني د هغو په درجه کې به نه وي) وَمَنْ قُتِلَ مِنَ الْبُغَاةِ أَوْ قُطَّاعِ الطَّرِيقِ او که له باغيانو (ياغيانو) يا داګوګانو څخه يو څوک قتل کړی سو لَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ نو پر هغه به د جنازې لمونځ نه کيږي لِأَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لَمْ يُصَلِّ عَلَى الْبُغَاةِ ځکه حضرت علي رضي الله عنه پر باغيانو د جنازې لمونځ نه وکړی.

**اللغات:** ﴿باذل﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی: خرڅونکی (قربانونکی)، ﴿إيفاء﴾ د افعال د باب اسم مصدر دی: اداء کول، ﴿بغاة﴾ جمع ده، واحد يې بَاغِي: د اسلامي حکومت په خلاف بغاوت کونکی.

**تشريح:** که يو سړی په حد يا قصا کې قتل کړی سو، نو هغه ته به غسل هم ورکول کيږي، او د جنازې لمونځ به هم پر کيږي، ځکه چې هغه د واجب حق د اداء کولو لپاره ځان قرباني کړی، او د اُحُد شهيدانو فقط د الله د رضا د حاصلولو لپاره ځان قرباني کړی وو، نو ځکه به په حد يا قصاص کې قتل کېدونکي خلک د اُحُد د شهيدانو په درجه کې نه وي، همدارنګه روايت دی چې حضرت ماعز رَحِمَهُ الله سنګسار کړی سو، نو د هغه اکا د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر سو او داسې يې ووېل: قتل ماعز کما يقتل الکلاب فما ذا تأمرني أن اصنع به، (اې د الله رسوله! ماعز د سپيانو په ډول قتل کړی سو، ته وفرمايه! زه اوس په هغه څه وکړم)، رسول الله ﷺ وفرمايل: لا تقل هذا، فقد تاب توبة لو قسمت توبته على أهل الأرض لوسعتهم اذهب وغسله وصل عليه، (داسې مه وايه! هغه داسې توبه وکړه چې که پر ټوله مځکې والا تقسيم کړی سي، نو د ټولو لپاره به کافي سي، ولاړ سه، هغه ته غسل ورکړه او لمونځ پر وکړه، عنايه).

ومن قتل من البغاة الخ او كه يو باغي يا ډاكو قتل كړی سو، نو زموږ په نيز به د هغه د جنازې لمونځ نه كيږي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله وايي چي د هغه د جنازې لمونځ به كيږي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي باغي او ډاكو مؤمن دی، او دواجب حق په وجه قتل كړی سوی دی، نو دا د هغه سړي په ډول سو چي په رجم يا قصاص كي قتل كړی سوی وي، او مخكي تېر سوه چي پر رجم او قصاص والا به د جنازې لمونځ كيږي، نو ځكه به پر باغي او ډاكو هم د جنازې لمونځ كيږي. زموږ دليل دا دی چي حضرت علي ﷺ خوارجو ته نه غسل وركړی، او نه يې پر هغو د جنازې لمونځ وكړی، حال دا چي خوارج باغيان دي، حضرت علي ﷺ ته وويل سوه؟ آيا خوارج كافران دي؟ نو حضرت علي ﷺ وفرمايل: لا ولكنهم اخواننا بغوا علينا، (نه! ليكن هغوی زموږ وروڼه دي، خو زموږ څخه يې بغاوت كړی دی). له دې څخه معلوميږي چي باغيانو او ډاكوګانو ته غسل نه وركول او پر هغو لمونځ نه كول د هغو د سزا لپاره دي او نورو خلكو ته د تنبيه وركولو لپاره دي، لكه څرنګه چي د ډاكوګانو په باره كي دا خبره هم سته چي تر دريو ورځو پوري به په دار (پهانسی) راځړيږي، ښكاره خبره چي درې ورځې پرېښوول د هغه لپاره سزا ده، او د نورو لپاره تنبيه ده. والله أعلم

## بَابُ الصَّلَاةِ فِي الْكَعْبَةِ

(دا) باب په كعبه كي دننه دلمونځ كولو (په بيان كي) دی

**تشريح:** مخكي موږ وويل چي صاحب د كتاب د بركت او تيمّن لپاره دا باب كتاب الصلوة په آخر كي بيانوي، چي د كتاب الصلوة اختتام پريو بركتمن شي وسي، او تر باب الجنائز وروسته د دې باب د بيانولو وجه دا ده چي څرنګه په قبر كي تر داخليدلو وروسته قبر د مړي ضامن وي، همدارنګه په بيتُ الله كي د داخليدونكي سړي لپاره بيتُ الله ضامنه وي، دالله تعالیٰ فرمان دی: وَمَنْ دَخَلَهُ كَانَ اٰمِنًا.

**د كعبې وجه د تسميې:** صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله ليكلي دي چي كعبې ته ځكه كعبه ويل كيږي چي هغه څلور كونجه ده، او عرب د څلور كونجه شي لپاره د مكعب لفظ استعمالوي.

### په كعبه كي دننه د لمانځه بيان

الصَّلَاةُ فِي الْكَعْبَةِ جَائِزَةٌ په كعبه كي دننه لمونځ جائز دی فَرْضُهَا وَنَفْلُهَا فرضي او نفلي لمونځونه (دواړه) خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِيهِمَا د امام شافعي رَحِمَهُ الله په دواړو كي اختلاف دی وَلِمَالِكٍ فِي الْفَرْضِ او د امام مالك رَحِمَهُ الله په فرضي لمانځه كي اختلاف دی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] صَلَّى فِي جَوْفِ الْكَعْبَةِ يَوْمَ الْفَتْحِ ځكه نبي ﷺ د مكې د فتحې په ورځ د كعبې په نس (مينځ) كي لمونځ وكړی وَلِأَنَّهَا صَلَاةٌ اِسْتَجْمَعَتْ شَرَائِطَهَا لِوُجُوْدِ اِسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ او په دې وجه

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلاة، باب الصلاة بين السواري في غير جماعة، حديث رقم: ٥٠.

(هم) چې هغه داسې لمونځ دی چې په هغه کې د قبلې پر طرف د مخ کولو په وجه د لمانځه ټوله شرطونه جمع دي لِأَنَّ اسْتِيعَابَهَا لَيْسَ بِشَرْطٍ ځکه چې د ټولې قبلې و طرف ته مخ کول (او ټوله قبله کنبېپاسل) شرط نه دي.

**اللغات:** ﴿جَوْف﴾ خالي ځای، نس، دننې حصه. ﴿اِسْتَجْمَعَتْ﴾ د استفعال د باب ماضي معلومه ده: پوره کېدل، جمع کېدل. ﴿اِسْتِيعَاب﴾ د استفعال د باب مصدر دی: يو شی په پوره توګه نيول (کنبېپاسل).

**تشريح:** زموږ په نيز په کعبه کې دننه فرضي او نفلي لمونځونه دواړه جائز دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز دواړه ناجائز دي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز خو نفلي لمونځ جائز دی، ليکن فرضي لمونځ جائز نه دی، صاحب د نهايې ليکلي دي چې امام شافعي رَحِمَهُ الله ته د دې خبرې نسبت کول چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز فرضي او نفلي لمونځ دواړه ناجائز دي، د کاتب سهوه ده، ځکه شوافعو په خپلو کتابونو کې ليکلي چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز جائز دي، ناجائز نه دي، په اصل کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز هغه وخت په کعبه کې دننه لمونځ جائز نه دی، چې لمونځ کونکی دننه د دروازې پر طرف مخ کړي او مخ ته ستره نه وي، همدارنګه د کعبې د دروازې يا د ديوال يوه حصه د لمونځ کونکي مخ ته نه وي، نو په دې صورت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د لمونځ کونکي نه فرضي لمونځ صحيح دی، او نه نفلي لمونځ، او که د کعبې دروازه بنده وه، يا د هغه مخ ته د دروازې يا ديوال څه حصه مخ ته راتله يا يې مخ ته ستره وه نو جائز دی.

**د امام مالک دليل:** دا دی چې کوم سړی په کعبه کې لمونځ کوي، هغه د قبلې يوې حصې ته مخ (استقبال) کوي، او بلې حصې ته يې شا (استدبار) کوي، نو د لمانځه په حالت کې د استقبال تقاضا خو دا ده چې لمونځ دې صحيح وي، او د استدبار تقاضا دا ده چې لمونځ دې فاسد وي، نو د فساد اړخ ته احتياطاً ترجيح ورکول سوه، د قياس تقاضا په نفلي لمونځ کې هم دغه وه، چې نفل دې هم په کعبه کې دننه ناجائز وي، ليکن څرنګه چې د نفلو په باره کې اثر راغلی دی، نو ځکه به په نفلو کې قياس پرېښول کيږي، همدارنګه د نفلو مدار پر نرمي او اسانتيا دی، لکه څرنګه چې پر ولاړې د قدرت سره هم په ناستې نفل کول جائز دي، او څرنګه چې فرض د نفلو په معنیٰ کې نه دي، نو ځکه به فرض د نفلو سره لاحقول جائز نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د مکې د فتح کېدلو په ورځ نبي ﷺ په کعبه کې دننه دوه رکعته نفلي لمونځ اداء کړی، د روايت الفاظ دا دي: عن ابن عمر أن النبي ﷺ دخل الكعبة هو واسامة وبلال وعثمان بن طلحه واغلقها عليه ثم مكث فيها قال ابن عمر فسألت بلال حين خرج ما صنع رسول الله ﷺ قال جعل عمودين عن يساره وعموداً عن يمينه وثلاثة اعمدة وراءه ثم صلى وكان البيت يومئذ على ستة أعمدة وكان هذا يوم الفتح. (ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي چې رسول الله ﷺ، او اسامه، بلال او عثمان بن طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُم کعبې ته ورننه سول، او دروازه يې په ځان پسې بنده کړل، بيا يې يو څه وخت هلته تېر کړی، ابن عمر وايي چې کله بلال له کعبې څخه راووتی نو ما پوښتنه ځنې وکړه چې رسول الله ﷺ څه وکړه؟ بلال ورېل چې د کعبې دوې ستنې [پيلران] نبي ﷺ خپل چپه طرف ته کړله، يوه يې راسته طرف ته کړله او درې يې شاته کړې بيا يې لمونځ وکړی، په هغه زمانه کې په کعبه کې شريفه کې شپږ ستني وې، او دا د مکې د فتحې ورځ وه)، نو که په کعبه کې دننه لمونځ ناجائز وای، نو نبي ﷺ به هيڅکله په کعبه کې دننه لمونځ کړی نه وای، او که ته ووايې چې هغه خو نفلي لمونځ وو، نو موږ جواب ورکوو چې د جواز کوم شرطونه چې د نفلي لمانځه دي هغه د فرضي لمانځه هم دي، نو ځکه به فرض هم د نفلو په معنیٰ وي، او کله چې فرض د نفلو په معنیٰ سو، نو د نفلو په ډول به فرض هم په کعبه کې

دننه جائز وي، دويم دليل دا دی چي کوم لمونځ په کعبه کي دننه وسي، په هغه کي د لمانځه ټوله شرطونه سته، تر دې چي په هغه کي قبلې ته مخ کول (يعني استقبال قبله) هم سته، ځکه چي د ټولي قبلې استيعاب شرط نه دي (يعني ټولو دېوالو ته مخ کول شرط نه دي، او امکان هم نه لري، لکه دېاندي چي هم دا شرط نه دي).

## په کعبه کي په جماعت سره د لمانځه بيان

| |
|---|
| فَإِنْ صَلَّى الْإِمَامُ بِجَمَاعَةٍ فِيهَا بيا که امام په کعبه کي دننه په جماعت سره لمونځ وکړی فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ ظَهْرَهُ إِلَى ظَهْرِ الْإِمَامِ او يوه مقتدي خپله شا (ملا) د امام د شا وطرف ته کړه جَازَ نو (لمونځ يې) جائز دی لِأَنَّهُ مُتَوَجِّهٌ إِلَى الْقِبْلَةِ ځکه چي هغه د قبلې وطرف ته متوجه دي وَلَا يَعْتَقِدُ إِمَامَهُ عَلَى الْخَطَإِ او هغه خپل امام پر غلطۍ هم نه ګڼي بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ التَّحَرِّيْ په خلاف د تحري له مسئلې ځخه وَمَنْ جَعَلَ مِنْهُمْ ظَهْرَهُ إِلَى وَجْهِ الْإِمَامِ او که له مقتديانو ځخه چا خپله شا د امام د مخ وطرف ته کړه لَمْ تَجُزْ صَلَاتُهُ نو د هغه لمونځ جائز نه دی لِتَقَدُّمِهِ عَلَى إِمَامِهِ له خپله امام ځخه د مخکي کېدلو په وجه (يعني په دې وجه چي له خپل امام ځخه مخکي سو). |

**اللغات:** ﴿ظهر﴾ شا، ملا. ﴿تحري﴾ د تفعّل مصدر دی: غور او فکر کول، اجتهاد کول. له يو يقيني دليل ځخه بغير کوښښ کول او يو شی اختيارول.

**تشريح:** په کعبه کي دننه په جماعت سره د لمونځ کولو ځلور صورتونه دي: (١) يو صورت دا دی چي د مقتدي مخ د امام د ملا وطرف ته وي، (٢) د مقتدي مخ د امام د مخ و طرف ته وي، (٣) د مقتدي شا د امام د شا وطرف ته وي، (۴) د مقتدي شا د امام د مخ وطرف ته وي.

اول او دريم صورت خو بې له کراهته جائز دي، او دويم صورت مع الکراهت جائز دی، او ځلورم صورت بالکل جائز نه دی، د اول صورت جائز کېدل خو ښکاره دي، او دويم صورت ځکه جائز دی چي په دې صورت کي د امام متابعت سته او تر امام مخته کېدل نسته، او کراهت ځکه سته چي د مقتدي مخ کله د امام د مخ و طرف ته وي، نو دا د هغه سړي سره مشابهت راځي چي عکس يې مخ ته ايښی وي او لمونځ کوي، نو په دې صورت کي د مقتدي او امام په مينځ کي ستره ايښول مناسب دي، چي دا مشابهت ختم سي، د دريم صورت د جائز کېدلو وجه صاحب د هدايې دا بيان کړې ده چي مقتدی د قبلې پر طرف هم دی، او خپل امام پر غلطۍ هم نه بولي، او تر خپل امام مخکي هم نه دی، د دې په خلاف د تحري مسئله ده، يعني کله چي په تاريکه شپه کي په جماعت سره لمونځ وسي، او مقتدی د امام د شا ر طرف ته شا کړي، او مقتدی د امام په حالت خبر هم وي، نو د مقتدي لمونځ جائز نه دی، ځکه په دې صورت کي د مقتدي دا عقيده ده چي د هغه امام غلط دی، د ځلورم صورت د نه جائز کېدلو وجه ښکاره ده، چي په دې صورت کي به مقتدی له خپل امام ځخه مخکي وي او دا بالکل جائز نه دي.

**فايده:** کوم مقتديان چي د امام راسته يا چپه طرف ته وي، د هغو لمونځ هم جائز دی.

## که په مسجدِ حرام کي يو سړی تر امام مخکي سو نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| وَإِذَا صَلَّى الْإِمَامُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ او کله چي امام په مسجدِ حرام کي لمونځ ورکړي فَتَحَلَّقَ النَّاسُ حَوْلَ الْكَعْبَةِ او خلک د کعبې پر شا و خوا حلقه جوړه کړي وَصَلَّوْا بِصَلَاةِ الْإِمَامِ او په امام پسي لمونځ وکړي فَمَنْ كَانَ مِنْهُمْ أَقْرَبَ إِلَى |

الْكَعْبَةِ مِنَ الْإِمَامِ نو څوک چي له هغو څخه کعبې ته تر امام زيات نژدې وي جَازَتْ صَلَاتُهُ نو د هغه لمونځ جائز دی إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي جَانِبِ الْإِمَامِ خو چي کله د امام په طرف کي نه وي لِأَنَّ التَّقَدُّمَ وَالتَّأَخُّرَ إِنَّمَا يَظْهَرُ عِنْدَ اِتِّحَادِ الْجَانِبِ ځکه چي مخکي کېدل او شاته کېدل به د طرف د متحد کېدلو په وخت کي ښکاره کيږي.

**اللغات:** ﴿تَحَلَّقَ﴾ د تفعل د باب ماضي ده: دائره جوړول، حلقه جوړول، (شا و خوا راګرځېدل). ﴿جانب﴾ دلته له دې څخه مراد د کعبې يو طرف دی.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که امام په مسجد حرام کي لمونځ ورکوی، او مقتديانو د کعبې شا و خوا حلقه جوړه کړه، يعني پر کعبې يې شا وخوا صفونه جوړ کړل، او د امام په اقتداء کي يې لمونځ شروع کړی، نو په کوم طرف کي چي امام نه وو، که په هغه طرف کي مقتدی کعبې ته د امام په نسبت زيات نژدې سو، نو د هغه لمونځ جائز دی، لېکن په کوم طرف کي چي امام وو، او مقتدی په هغه طرف کي د امام په نسبت کعبې ته زيات نژدې سو، نو د دې مقتدي لمونځ صحيح نه دی، ځکه چي مخکيوالی او شاته والی د طرف د اتحاد(يو والي) په وخت کي ښکاره کيږي، نو د امام په طرف کي چي کوم مقتدی د کعبې د دېوال سره د امام په نسبت زيات نژدې وي، نو هغه به تر خپل امام مخکي وي، او کوم مقتدی چي تر خپل امام مخکي وي، د هغه لمونځ نه جائز کيږي، او په کوم طرف کي چي امام نه وي، په هغه طرف کي مخکيوالی او شاته والی (تقدم او تأخر) نه ثابتيږي، نو ځکه به د هغه طرف د خلکو لمونځونه صحيح وي.

## د کعبې پر بام(چت) د لمونځ کولو حکم

وَمَنْ صَلَّى عَلَى ظَهْرِ الْكَعْبَةِ او څوک چي د کعبې پر شا (يعني پر بام) لمونځ وکړي جَازَتْ صَلَاتُهُ نو د هغه لمونځ جائز دی خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ الْكَعْبَةَ هِيَ الْعَرْصَةُ وَالْهَوَاءُ إِلَى عَنَانِ السَّمَاءِ عِنْدَنَا ځکه چي کعبه زموږ په نېز د ميدان او تر آسمانه پوري د خالي فضاء نوم دی دُونَ الْبِنَاءِ د عمارت(وداني) نوم نه دی لِأَنَّهُ يُنْقَلُ ځکه چي هغه نقل کېدای سي أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ صَلَّى عَلَى جَبَلِ أَبِي قُبَيْسٍ آيا ته نه ګورې چي که يو سړی پر جبلِ ابو قبيس لمونځ وکړي جَازَ نو لمونځ يې جائز دی وَلَا بِنَاءَ بَيْنَ يَدَيْهِ حال دا چي د هغه مخ ته د (کعبې) هيڅ عمارت نسته إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ لِمَا فِيهِ مِنْ تَرْكِ التَّعْظِيمِ لېکن د کعبې پر بام لمونځ کول مکروه دي ځکه چي په دې کي د (کعبې د) تعظيم پرېښوول دي وَقَدْ وَرَدَ النَّهْيُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] او له رسول الله ﷺ څخه د کعبې تعظيم د پرېښوولو په باره کي منع راغلې ده.

**اللغات:** ﴿ظهر﴾ شا، بام، چت، ﴿عرصة﴾ د کور غولی، خالي ځای، نا تعمير سوی ځای، جمع يې عِرَاص راځي، او په بعضي شروحو کي فُرْضَة راغلی دی، او د دې معنیٰ هم د عَرصة معنیٰ ته نژدې ده، ﴿عنان﴾ د آسمان کناره، د سترګو تر ديده آسمان، ﴿بناء﴾ عمارت، وداني، تعمير سوی ځای.

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ماجاء في كراهية ما يصلى إليه وفيه حديث رقم: ٣٤٦، وابن ماجه في كتاب المساجد، باب المواضع التي تكره فيها الصلاة، حديث رقم:٧٣٥.

**تشريح**: زموږ په نيز د کعبې پر بام لمونځ کول جائز دي، که څه هم د لمونځ کونکي و مخ ته سُتره نه وي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د کعبې پر بام لمونځ کول جائز نه دي، هو! که د لمونځ کونکي ومخ ته ستره وي، نو جائز دی، زموږ او د هغه په مينځ کي د اختلاف اصلي بنسټ دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په لمانځه کي د کعبې د عمارت(بناء) و طرف ته مخ کول ضروري دي.

لأن الكعبة الخ او زموږ دليل دا دی چي کعبه صرف عمارت او څلور کونجه چاردېوالی ته نه ويل کيږي، بلکي د کعبې له ځايه څخه واخله تر آسمانه پوري ټوله فضاء په کعبه او قبله کي شامله ده، نو د کعبې پر بام د لمونځ کونکي مخ هم د قبلې وطرف ته راځي، که څه هم دا مخ کول يې هوائي او فضائي دي، او د کعبې عمارت ته ځکه کعبه نه ويل کيږي، چي عمارت له يوه ځای څخه بل ځای ته نقل کېدای سي، او نړېدای سي، او دا شيان د قبلې او د کعبې له شان څخه مخالف دي، نو ځکه به صرف د عمارت نوم کعبه نه وي، بلکي د کعبې له ودانۍ څخه واخله تر آسمانه پوري به د ټولي فضاء نوم کعبه وي، همدا وجه ده که څوک د ابو قبيس پر غره يا پر يوه بل غره يا پر يو بل جګ ځای ودريږي او لمونځ وکړي، نو هم لمونځ يې جائز دی، حال دا چي د هغه مخ ته د کعبې عمارت نسته، هو! خو د کعبې پر بام لمونځ کول مکروه دي، د مکروه والي وجه يې دا ده چي د کعبې پر بام په ختلو سره د کعبې تعظيم او عزت ختميږي، نو په دې وجه به مکروه وي.

همدارنګه د کعبې پر بام نبي ﷺ له لمونځ کولو څخه منع کړې ده: عن أبي هريرة أنه قال نهى النبي ﷺ عن الصلوة فى سبع مواطن المجزرة والمزبلة والمقبرة والحمام و قوارع الطريق ومعاطن الإبل و فوق ظهر بيت الله تعالى. (نبي کريم ﷺ پر اوو(٧) ځايونو له لمونځ کولو څخه منع کړې ده: ① د څارويانو د حلالو په ځای کي، ② په ډېران(انبار) کي يعني د چټلو شيانو د اچولو په ځای کي، ③ په هديره کي، ④ په حمام کي، يعني د ورېښتيانو د سمولو او د غسل کولو په ځای کي، ⑤ د لاري په مينځ کي، ⑥ د اوښ د تړلو په ځای کي، ⑦ د کعبې پر بام)، له دې حديث څخه ثابته سوه چې د کعبې پر بام له لمونځ کولو څخه منع سوې ده. والله أعلم بالصواب



# كِتَابُ الزَّكَاةِ

## (دا) کتاب د زکاة (د احکامو په بیان کي) دی

**تشریح:** صاحب د کتاب تر دې مخکي کتاب الصلاة د خپلو ټولو متعلقاتو سره بیان کړی، او اوس له دې ځایه له ارکانِ خمسه وو څخه د یو أهم رکن یعني د زکاة مسئلې او تفصیلات بیانوي، څرنګه چي په قرآن او حدیث کي هم د لمانځه تر احکامو او مسئلو وروسته د زکاة مسئلې او احکام بیان سوي دي، چي تقریباً په اتیا(٨٠) آیتونو کي تر لمانځه وروسته د زکاة ذکر سوی دی، نو ځکه تر کتاب الصلاة وروسته کتاب الزكاة بیانوي.

**د زکاة لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** زکاة د خپل اصل او لغوي معنیٰ په اعتبار سره د څو معناګانو لپاره استعمالیږي:

① کله نا کله د پاکوالي په معنیٰ سره استعمالیږي: لکه: قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّى (بې شکه کامیاب دی هغه څوک چي پاکي حاصله کړي). ② کله د زیاتېدلو، نما او ودې په معنیٰ سره استعمالیږي، مثلاً کښت چي کله وده وکړي نو عرب وايي: زَكَا الزَّرْعُ (یعني کښت وده وکړه). ③ او کله دا لفظ د صدقې او خیرات کولو په معنیٰ استعمالیږي لکه: تَزَكَّى الرَّجُلُ، أي تَصَدَّقَ الرَّجُلُ (یعني سړي صدقه وکړه).

**اصطلاحي معنیٰ:** هی تمليك جزء معين من النصاب الشرعي للفقير أومن يقوم مقامه، (یعني د شرعي نصاب یوه معلومه حصه فقیر یا د فقیر قائم مقام ته د ملکیت په توګه ورکول).

د زکاة سبب د داسي نصاب مالک کېدل دي چي پر هغه یو کال تېر سوی وي، او هغه مال د انسان له قرض (پور) او نورو اړتیاوو څخه فارغ وي. د زکاة د اداء کولو د وجوب دلیل د الله ﷻ دا قول دی: وَآتُوا الزَّكَاةَ. (الشامي ج:٣، ص: ١٧٠-١٣٧)

### د زکاة د وجوب شرطونه او د زکاة د اداء کولو وخت

الزَّكَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَى الْحُرِّ الْعَاقِلِ الْبَالِغِ الْمُسْلِمِ زکاة پر آزاد، عاقل، بالغ مسلمان واجب دی إِذَا مَلَكَ نِصَابًا مِلْكًا تَامًّا په دې شرط چي د نصاب پوره مالک وي وَحَالَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ او پر هغه نصاب یو کال تېر سوی وي أَمَّا الْوُجُوبُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى هر چي د زکاة وجوب دی نو هغه د الله تعالیٰ (د دې قول) په وجه دی وَآتُوا الزَّكَاةَ [البقرة: ٤٣] او زکاة ورکړئ وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] او د نبي ﷺ (د دې) قول په وجه دی أَدُّوا زَكَاةَ أَمْوَالِكُمْ تاسو د خپلو مالونو زکاة اداء کړئ وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الْأُمَّةِ او د زکاة پر وجوب د امت اجماع (هم) ده وَالْمُرَادُ بِالْوَاجِبِ الْفَرْضُ او (په متن کي) له واجب څخه مراد فرض دي لِأَنَّهُ لَا شُبْهَةَ فِيهِ ځکه چي په دې کي هیڅ شبهه نسته وَاشْتِرَاطُ الْحُرِّيَّةِ لِأَنَّ كَمَالَ الْمِلْكِ بِهَا او د

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الجمعة، باب ماذكر في فضل الصلاة، حديث رقم:٦١٦.

آزادي شرط کېدل په دې وجه دي چې پوره ملکيت په آزادۍ سره وي وَالْعَقْلِ وَالْبُلُوغِ لِمَا نَذْكُرُهُ او د عقل او بلوغ شرط کېدل د هغه دليل په وجه دي چې هغه به موږ بيان کړو وَالْإِسْلَامِ لِأَنَّ الزَّكَاةَ عِبَادَةٌ او مسلمان کېدل ځکه شرط دي چې زکاة يو عبادت دی وَلَا تَتَحَقَّقُ مِنَ الْكَافِرِ او له کافر څخه عبادت نه ثابتيږي وَلَا بُدَّ مِنْ مِلْكِ مِقْدَارِ النِّصَابِ او د نصاب په اندازه ملکيت (په دې وجه) ضروري دی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● قَدَّرَ السَّبَبَ بِهِ ځکه نبي ﷺ د زکاة سبب په نصاب سره اندازه کړی دی وَلَا بُدَّ مِنَ الْحَوْلِ او د کال تېرېدل (په دې وجه) ضروري دي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ مُدَّةٍ يَتَحَقَّقُ فِيهَا النَّمَاءُ ځکه چې دومره موده ضروري ده چې په هغه کې نما(يعني د مال وده او زياتوب) ثابت سي وَقَدَّرَهَا الشَّرْعُ بِالْحَوْلِ او دا موده شريعت په يوه کال تېرېدلو سره اندازه کړې ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا زَكَاةَ فِي مَالٍ چې په هيڅ مال کي زکاة واجب نه دی حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ تر دې چې پر هغه کال تېر سي وَلِأَنَّهُ الْمُتَمَكِّنُ بِهِ مِنَ الِاسْتِنْمَاءِ او ځکه چې دا (کال تېرېدل) قدرت ورکونکي دي (د مال) پر زياتېدلو (مطلب دا چې په کال کي د مال زياتېدل ممکن دي) لِاشْتِمَالِهِ عَلَى الْفُصُولِ الْمُخْتَلِفَةِ ځکه چې کال پر بېلابېلو فصلونو(موسمونو) باندې مشتمل وي وَالْغَالِبُ تَفَاوُتُ الْأَسْعَارِ فِيهَا او غالب دا ده چې په دې فصلونو کي نرخونه مختلف کېږي فَأُدِيرَ الْحُكْمُ عَلَيْهِ نو ځکه د کال پر تېرېدلو حکم دائر سو (يعني نو ځکه د کال پر تېرېدلو د نصاب د زياتېدلو حکم وسو) ثُمَّ قِيلَ: هِيَ وَاجِبَةٌ عَلَى الْفَوْرِ بيا ويل سوي دي: چې زکاة فوراً(سمدستي) اداء کول واجب دي لِأَنَّهُ مُقْتَضَى مُطْلَقِ الْأَمْرِ ځکه چې د مطلق امر تقاضا همدغه ده وَقِيلَ: عَلَى التَّرَاخِي او ويل سوي دي: چې په تأخير سره اداء کول واجب دی لِأَنَّ جَمِيعَ الْعُمُرِ وَقْتُ الْأَدَاءِ ځکه ټوله عمر د اداء کولو وخت دی وَلِهَذَا لَا تُضْمَنُ بِهَلَاكِ النِّصَابِ بَعْدَ التَّفْرِيطِ همدا وجه ده چې تر بې غورۍ(کوتاهۍ) کولو وروسته د نصاب په هلاکېدلو سره (انسان د هيڅ شي) نه ضامن کېږي.

**اللغات:** ﴿حول﴾ کال. ﴿المتمکن﴾ قدرت ورکونکی، د قدرت تر لاسه کېدلو ذريعه. ﴿فصول﴾ جمع د فَصل ده: د کال مختلفه حصې، موسمونه. ﴿أسعار﴾ جمع د سِعر ده: نرخ، ريټ، بازاري قيمت. ﴿تراخي﴾ ځنډېدل. ﴿تفريط﴾ بې غوري او بې پروايي کول(کوتاهي کول).

**تشريح:** د زکاة په باره کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله د متن هر لفظ ډېر جامع دی، او د پوره تحقيق او تفصيل تقاضا کوي، تر ټولو مخکي خو تاسو دا خبره په ذهن کي ونيسئ چې زکاة د اسلام له بنيادي فرائضو څخه يوه مهمه فريضه ده، چې اساسي رکنيت ورته حاصل دی، او د دې فريضي د اداء کولو لپاره چې شريعت کوم اوصاف او شرائط لازم کړي دي، د

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب زكاة الورق، حديث رقم: ١٣٣٧ — ١٤٥٩.

● تخريج: أخرجه امام مالك في كتاب الزكوة، باب الزكوة في العين من الذهب والورق ص:٢٧٢، و دار قطني، حديث رقم:١٨٧٢.

امام قدوري رَحِمَهُ الله په متن کي د هغو ټولو يادونه سوې ده، چي هغه په اجمالي توګه دا دي: (۱) زکاة ورکونکی به آزاد وي (۲) عقلمن به وي (۳) بالغ به وي (۴) مسلمان به وي (۵) د دومره اندازه مال به مالک وي چي هغه نصاب ته رسيږي (۶) پوره ملکيت به وي (۷) پر دې ملکيت به پوره يو کال تېر سوی وي، دا ټوله اووه شرطونه دي، په کوم سړي کي چي دا شرطونه پيدا سي، پر هغه زکاة ورکول لازم او ضروري دي، ځکه قرآن کريم په ښکاره الفاظو سره د "وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ" حکم کړی دی، او په سختي سره يې د زکاة اداء کولو هدايت کړی دی، همدارنګه زموږ ستر پيغمبر حضرت محمد ﷺ هم په پوره عظمت او ارزښت سره د زکاة حکم بيان کړی دی، او په خپل مقدس فرمان "وَ اَدُّوا زَكٰوةَ أَموالِكُم" سره يې د زکاة تأکيد کړی دی.

د زکاة د فرض کېدلو دريم دليل اجماع ده، يعني د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر ننه پوري تمام اُمت مسلمه د زکاة پر حقانيت او فرضيت متفق او متحد دی، او د اُمت زياتره افراد په پوره ايمانداري او بشپړ اخلاص سره د زکاة فريضه پوره کوي.

والمراد بالواجب الخ فرمايي: په متن کي چي کوم د الزكوة واجبة جمله بيان سوه، په هغه کي له واجبة څخه مراد فرض دي، ځکه د زکاة حکم په قرآن، په متواتره حديثونو، او په اجماع ټولو سره ثابت دی، او د زکاة په فرضيت کي هيڅ شک و شبهه نسته، پاته سوه دا خبره چي په متن کي د فرض پر ځای واجب ولي ذکر سو؟، نو يو جواب خو يې دا دی چي د زکاة بعضي مقادير او کيفيات په حديثونو سره ثابت دي، نو ځکه د واجب لفظ استعمال سو (ځکه په حديث سره چي کوم شی ثابت سي هغه واجب وي)، دويم جواب دا دی چي مجازاً د فرض پر ځای د واجب لفظ استعمال سوی دی، ځکه چي له فرض او واجب څخه هر يو د بل پر ځای مجازاً استعمالېدای سي.

په دې باره کي صاحب د بنايې دا خبره ليکلې ده چي په متن کي له واجبة څخه مراد لازمة او ثابتة دي، او په شريعت کي هم بيخي په ډېرو ځايونو کي وجوب د لزوم او ثبوت لپاره استعمال سوی دی. (بنايه ج: ۳، ص: ۳۲۱)

و اشتراط الحرية له دې ځايه صاحب د هدايې د زکاة د شرائطو وجهي (او فوائد قيود) ذکر کوي، نو تر ټولو مخکي د آزادۍ (حرّيت) د شرط ا وضاحت کوي، فرمايي چي د دې شرط په وجه پر غلام او مکاتب زکاة واجب نه دی، ځکه چي د زکاة د واجبېدلو (وجوب) لپاره پوره ملکيت ضروري دی، او غلام بالکل د هيڅ شي ملکيت نه لري، همدارنګه مکاتب او مدبر ناقص ملکيت لري، پوره ملکيت نه لري، او د زکاة د واجبېدلو لپاره پوره (کامل) ملکيت ضروري دی، او ملکيت صرف په آزادۍ کي کامل وي، نو ځکه به صرف پر آزاد انسان زکاة واجب وي.

و العقل والبلوغ فرمايي چي د زکاة د واجبېدلو لپاره عقل او بلوغ هم ضروري دي، له دې څخه معلومه سوه چي نه پر لېوني سړي زکاة واجب دی، او نه پر کوچني، د دې شرطونو دليل به وروسته بيان سي.

والاسلام په متن کي دا قيد هم سته چي سړی به مسلمان وي، نو بيا زکاة واجبيږي، ځکه چي زکاة مالي عبادت دی، او عبادت له کافر څخه نه سي متحقق کېدلای، بلکي له مسلمان څخه متحقق کېدلای سي.

ولا بد من ملك الخ د زکاة د وجوب لپاره د نصاب په اندازه مالک کېدل ضروري دي، که له دې څخه د کم مال مالک وي، نو زکاة نه واجبيږي، د مثال په توګه که يو څوک د دوو سوو (۲۰۰) درهمونو مالک وو، نو زکاة به پر فرض وي، او که له دې څخه د کم مال مالک وو، نو زکاة به پر فرض نه وي، ځکه نبي ﷺ د دومره اندازې نصاب پر ملکيت زکاة فرض کړی دی، لکه څرنګه چي په صحيح بخاري کي د ابو سعيد خدري رضي الله عنه حديث دی: أن رسول الله ﷺ قال ليس فيما

دون خمسة اوسق من التمر صدقة. وليس فيما دون خمسة من الإبل صدقة الخ. (يعني نبي ﷺ وفرمايل چي له پنځو وسقو څخه په کمو خرماوو کي زکاة واجب نه دی، او له پنځو څخه په کمو اوښانو کي هم زکاة واجب نه دی)، وګورئ! په حديثِ پاک کي په څرګنده توګه د خمسة اندازه بيان سوې ده، چي له هغه څخه دا خبره ثابتيږي چي د زکاة د وجوب لپاره د يو مخصوص او معلوم مقدار مالک کېدل ضروري دي.

ولا بد من الحول الخ د زکاة د وجوب اووم او آخري شرط دا دی چي د نصاب پر دې مال کال تېرېدل هم ضروري دی، يعني که د نصاب پر مال پوره يو کال تېر سي، نو بيا به په هغه کي زکاة فرض وي، کنې نه به وي، ځکه چي د زکاة د لغوي معنیٰ په سلسله کي دا ذکر سوه چي زکاة د نما او وده کولو په معنیٰ هم استعماليږي، او د ودي او نما د پېژندګلوی لپاره يوه داسي موده ضروري ده چي په هغه کي نما ثابته سي، نو ځکه نبي ﷺ د لا زكوٰة في مال حتى يحول عليه الحول په ذريعه د زکاة د وجوب لپاره د نصاب پر مال حولانِ حول شرط ګرځولی دی، همد دې حديث په اقتداء کي فقهاؤ د کال تېرېدل شرط کړي دي.

په دې باره کي عقلي دليل دا دی چي د يوه کال په موده کي په آسانی سره د ودي او زياتوب اندازه معلومېدای سي، ځکه په يوه کال کي څلور موسمونه سته يعني د پسرلي، ګرمی، منی (خزان) او ژمي څلور فصلونه سته، او په دې موسمونو او فصلونو کي د تجارت د نفع او نقصان جلا جلا معيار وي، او د شيانو په نرخونو کي د موسم مطابق ډېره تبديلي ښکاره کيږي، او تاجرانو ته په ښه توګه د نما او د غيرِ نما فرق معلوميږي، نو په دې حواله سره هم د نصاب پر مال د حولانِ حول شرط مُفيد معلوميږي.

ثم قيل الخ له دې ځايه دا بيانوي چي که په يو سړي کي د زکاة د وجوب ټوله شرطونه پيدا سي، او د هغه د نصاب پر مال کال تېر سي، نو فوراً (سملستي) زکاة اداء کول ضروري دي، او که په دې کي د تأخير او ځنډولو څه ګنجايش سته، نو فرمايي چي په دې باره کي دوه قولونه دي: (١) امام کرخي رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله کال تېر سي نو فوراً زکاة اداء کول ضروري دي، او که بې له څه عذره يې زکاة وځنډوی، نو ګنهګاره کيږي، د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک هم دا دی، د دوی دليل دا دی چي په قرآن او حديث کي يعني په أتو الزكوٰة او په أدوا زكوٰة أموالكم کي د زکاة حکم د مطلق أمر په صيغه سره سو دی، او مطلق أمر دا تقاضا کوي چي مأمور به دي في الفور اداء سي، نو ځکه به د شرطونو تر پوره کېدلو وروسته سملستي او فوراً زکاة اداء کوي. (٢) امام محمد بن شجاع بلخي رَحِمَهُ الله او ابو بکر جصاص رازي رَحِمَهُ الله وايي چي فوراً زکاة اداء کول ضروري نه دي، بلکي په هغه کي د تأخير او ځنډولو ګنجايش سته، او د تأخير په صورت کي انسان نه ګنهګاره کيږي، ځکه چي د زکاة تر وجوب وروسته ټوله ژوند د اداء کولو وخت دی، نو ځکه به اداء د اول وخت سره خاصول صحيح نه وي، همداوجه ده چي که پر يو سړي زکاة واجب سو، او هغه فوراً اداء نه کړی، بلکي بې پروايي او بې غوري يې کول دومره يې وځنډوی چي د نصاب په اندازه ملکيت يې ختم سو، نو اوس پر دې سړي د زکاة د مال ضمان واجب نه دی، نو که فوراً زکاة واجبېدلای، نو په ځنډولو او بې پروايي کولو سره به ضمان لازمېدلای، نو د ضمان نه لازمېدل د دې خبري ښکاره دليل دی چي فوراً د زکاة اداء کول واجب نه دي، بلکي په هغه کي د ځنډولو ګنجائش سته (خو په خپل وخت کي يې اداء کول زيات غوره دي).

## د کوچني او لېوني د زکاة حکم

وَلَيْسَ عَلَى الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُوْنِ زَكَاةٌ او پر کوچني او لېوني زکاة واجب نه دی خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی فَإِنَّهُ يَقُوْلُ: هِيَ غَرَامَةٌ مَالِيَّةٌ هغه فرمايي: چې زکاة مالي حق دی(يعني زکاة په مال کې لازمي حق دی) فَتُعْتَبَرُ بِسَائِرِ الْمُؤَنِ نو دا به پر نورو مالي حقونو قياسيږي كَنَفَقَةِ الزَّوْجَاتِ لکه د ښځو نفقه وَصَارَ كَالْعُشْرِ وَالْخَرَاجِ (لهذا) زکاة د عشر او خراج په شان سو وَلَنَا أَنَّهَا عِبَادَةٌ فَلَا تُتَأَدّٰى إِلَّا بِالْاِخْتِيَارِ او زموږ دليل دا دی چې زکاة عبادت دی نو بې له اختياره به نه اداء کيږي تَحْقِيْقًا لِمَعْنَى الْاِبْتِلَاءِ د ابتلاء د معنیٰ د ثابتولو لپاره وَلَا اِخْتِيَارَ لَهُمَا لِعَدَمِ الْعَقْلِ او د عقل د نشتوالي په وجه دواړو ته اختيار نسته (نو ځکه به پر دواړو زکاة واجب نه وي) بِخِلَافِ الْخَرَاجِ په خلاف د خراج لِأَنَّهُ مُؤْنَةُ الْأَرْضِ ځکه چې خراج د مځکې مؤونت(مالي حق) دی وَكَذَا الْغَالِبُ فِي الْعُشْرِ مَعْنَى الْمُؤْنَةِ همدارنګه په عشر کې (هم) د مؤونت(مالي حق) معنیٰ غالبه ده وَمَعْنَى الْعِبَادَةِ تَابِعٌ او د عبادت معنیٰ تابع ده وَلَوْ أَفَاقَ فِي بَعْضِ السَّنَةِ او که لېونی د کال په يوه حصه کې جوړ(روغ) سو(يعني په هوښ کې راغلی، او عقل يې پر ځای سو) فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ إِفَاقَتِهِ فِي بَعْضِ الشَّهْرِ مِنَ الصَّوْمِ نو دا د روژې د مياشتې په يوه حصه کې د هغه د جوړېدلو په شان دي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ الله أَنَّهُ يُعْتَبَرُ أَكْثَرُ الْحَوْلِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د اکثره کال اعتبار به کيږي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْأَصْلِيِّ وَالْعَارِضِيِّ او د اصلي (جنون) او عارضي (جنون) په مينځ کې هيڅ فرق نسته وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ● أَنَّهُ إِذَا بَلَغَ مَجْنُوْنًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې کله يو لېونی بالغ سي يُعْتَبَرُ الْحَوْلُ مِنْ وَقْتِ الْإِفَاقَةِ نو د جوړېدلو له وخت څخه به د کال(حولان حول) اعتبار کيږي بِمَنْزِلَةِ الصَّبِيِّ إِذَا بَلَغَ په منزله د کوچني چې کله هغه بالغ سي(يعني لکه څرنګه چې کوچنی له کوم وخت څخه بالغ سي نو له هغه وخته به د حولان حول اعتبار کيږي).

**اللغات:** ﴿غَرَامَة﴾ جرمانه، تاوان، داسې حق چې د هغه اداء کول ضروري وي، ﴿الْمُؤَن﴾ جمع د مُؤْنَةٌ ده: تکليف، علامه عبدالحي لکنوي رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې د يو شي د پاته کېدلو او بقاء چې کوم خرچ(خرڅ) وي هغه ته مؤونت ويل کيږي، لکه د ښځې نفقه(خرڅ) چې په دې کې د نکاح او ژوند بقاء ده، او په لنډه توګه د مؤونت معنیٰ ده: مالي حق، نو د مُؤَن معنیٰ سوه: مالي حقونه. ﴿الْعُشْر﴾ د مځکې له فصل او پيدا وار څخه چې کومه لسمه حصه اخيستل کيږي هغه ته عشر ويل کيږي. ﴿خراج﴾ د کافر له مځکې څخه چې په کال کې کوم ټيکس او ماليه اخيستل کيږي، هغه ته خراج ويل کيږي. ﴿أَفَاقَ﴾ په هوښ کې راتلل، جوړېدل، ناروغي ختمېدل.

**تشريح:** په مخکنی متن کې ذکر سوه چې د زکاة د فرض کېدلو لپاره عقل او بلوغ ضروري دي، نو په دې عبارت کې پر هغه يوه مسئله تفريع کوي، چې کوچنی بالغ نه دی، نو ځکه پر هغه زکاة فرض نه دی، همدارنګه لېونی عاقل نه دی يعني عقل نه لري، نو پر هغه هم زکاة فرض نه دی، ځکه په حديث کې راځي: عن علي عن النبي ﷺ قال رفع القلم عن ثلثة عن

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الخانية ج:١، ص:١٢٣، [القول الراجح ج:١، ص:١٦١]

النائم حتى يستيقظ وعن الصبي حتى يحتلم وعن المجنون حتى يعقل (ابو داؤد ج٢، حديث رقم ٤٤٠٣)، (يعني نبي ﷺ وفرمايل: چي په شريعت كي له دريو انسانانو څخه خطاب پورته سوی دی [١] له بيده سړي څخه تر دې چي راويښ سي، [٢] له کوچني څخه تر دې چي بالغ سي، [٣] له لېوني څخه تر دې چي عاقل سي).

خلافًا للشافعي الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي کوچنی او لېونی که د نصاب مالکان ول، نو زكاة پر فرض دی، دليل دا ذكر كوي چي زكاة مالي حق دی، نو څرنګه چي نور مالي حقونه له کوچني څخه اخيستل كيږي، او فرض دي، همدارنګه به دا حق هم فرض وي، يعني که کوچني ښځه درلودله، نو د هغې نفقه پر کوچني لازمه ده، يا که کوچني مځکه درلودله نو د هغه د مځکي په پيداوار كي عشر يا ټيکس (خراج) لازم دی، نو همداسي به زكاة هم لازم وي، همدارنګه په آيت كي راځي: خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا [التوبة:١٠٣]، په دې آيت كي له ټولو څخه د زكاة اخيستلو حكم سوی دی، او د غټ او کوچني هيڅ فرق نه دي سوی، نو ځکه به له کوچني څخه هم زكاة اخيستل كيږي، همدارنګه په حديث كي راغلي دي: أن النبي ﷺ خطب الناس فقال ألا مَنْ وَلِيَ يتيمًا له مال فليتجر فيه ولا يتركه حتى تأكله الصدقة، (نبي ﷺ وفرمايل: خبردار! كوم سړی چي د يتيم متولي سو[يعني مشرپه سو]، او د هغه يتيم سره مال هم وو، نو دې متولي ته پكار دي چي په هغه سره تجارت وكړي، او هسي دي يې نه پرېږدي چي صدقه د هغه مال ورختم کړي)، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي له صدقې څخه مراد زكاة دی، نو مطلب يې دا سو كه متولي د يتيم په مال سره تجارت نه كوی، نو د هر كال زكاة په وجه به په څو كلونو كي د يتيم ټوله سرمايه ختمه سي، نو له دې څخه معلومه سوه چي د يتيم په مال كي زكاة سته، او يتيم هغه ته ويل كيږي كوم چي نابالغه وي، نو له حديث څخه ثابته سوه چي د کوچني په مال كي زكاة سته.

ولنا الخ زموږ نقلي دليل مخكي تېر سو يعني رفع القلم الخ، اوس له دې ځايه زموږ عقلي دليل بيانيږي، چي زكاة د لمانځه په ډول عبادت دی، او عبادت په اختيار سره اداء كيږي، ځكه چي په انسان د عبادت اداء كولو مقصد دا دی چي انسان په امتحان كي او ابتلاء كي وي، چي هغه يې په خپل اختيار سره كوي او كه نه!، او په کوچني او لېوني كي خو ګردسره عقل نسته، نو دوی لره به اختيار څرنګه وي، او د دوی د امتحان او ابتلاء مطلب به څه وي، لهذا كله چي دوی لره اختيار نسته، نو زكاة به هم پر فرض نه وي.

بخلاف الخراج الخ دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله جواب دی، هغه فرمايلي وو چي څرنګه خراج او عشر پر کوچني او لېوني واجب دي، همدارنګه به زكاة هم واجب وي، د هغه جواب وركوي چي خراج عبادت نه دی، بلكي هغه د مځكي حق دی، لهذا په هغه كي د اختيار او ابتلاء ضرورت نسته، همدارنګه په عشر كي د مځكي د حق (مؤونت) معنیٰ غالبه ده، او د عبادت معنیٰ د دې غالبي معنیٰ تابع ده، لهذا په دې كي هم د اختيار ضرورت نسته، نو دا پر کوچني او لېوني دواړو لازمېدای سي، او زكاة خالص عبادت دی چي د هغه لپاره د اختيار ضرورت سته، نو ځكه به هغه پر کوچني او لېوني نه سي فرضېدلای.

ولو أفاق الخ فرمايي: كه يو لېونی د نصاب مالک وو، او د كال په يوه حصه كي جوړ او روغ سو، او په هوښ كي راغلی، نو اوس به پر هغه زكاة فرض وي، او هغه به ټوله كال جوړ او په هوښ كي ګڼل كيږي، د دې مثال داسي دی چي كه يو سړی د روژې په ټوله مياشت كي په لېونتوب مبتلا وو، نو د يوې ورځي روژه هم پر هغه نه لازميږي، لېكن كه د ټولي

میاشت په یوه جزء کي جوړ سو، نو بیا د ټولي میاشتي روژې پر هغه لازمیږي، او د هغو قضاء به راوړي، ځکه د روژې د میاشتي یو جزء هم د ټولي میاشتي د روژې سبب جوړیږي، همدارنګه د نصاب تر مالک کېدلو وروسته که یو لېونی جوړ سو، نو پر هغه به د ټوله کال زکاة واجب وي، ځکه د کال په یوه حصه کي جوړېدل د ټوله کال د زکاة د فرضېدلو سبب دی، او په دې حکم کي د جنونِ اصلي او جنونِ عارضي په مینځ کي هیڅ فرق نسته.

ښکاره دي وي چي جنون پر دوه قسمه دی: (١) جنونِ اصلي، (٢) جنون عارضي، جنونِ اصلي دا دی چي یو سړی د لېونتوب په حالت کي بالغ سوی وي(یعني د بالغوالي په وخت کي هم لېونی وي)، او جنونِ عارضي دا دی چي د بالغوالي په وخت کي لېونی نه وي، بلکي تر بلوغ وروسته لېونی سوی وي، نو فرمايي که د کال په یوه حصه کي لېونی جوړ سو هغه که مجنونِ اصلي وو او که عارضي، پر دواړو زکاة واجب دی.

وعن أبي يوسف الخ په دې لړ کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت دا دی چي د کال د اکثره حصې اعتبار به کیږي، یعني که لېونی له نیم کال څخه زیات جوړ وو او په هوښ کي وو، نو د ټوله کال زکاة به پر واجب وي، او که له نیم کال څخه کم په هوښ کي وو، نو هیڅ زکاة به پر واجب نه وي، د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په دې روایت کي د زکاة د وجوب لپاره د کال اکثره حصه د زکاة سبب ګرځول سوې ده، ځکه چي قاعده دا ده: للأكثر حكم الكل، او په دې روایت کي هم د جنون اصلي او عارضي په مینځ کي هیڅ فرق نسته.

وعن أبي حنيفة الخ فرمايي د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز په یوه روایت کي د جنون اصلي او عارضي په مینځ کي فرق سته هغه دا که یو سړی مجنونِ اصلي وي، یعني د بلوغت په وخت کي هم لېونی وي، نو کله چي د هغه لېونتوب ختم سي، له هغه وخته به د هغه پر مال د حولانِ حول اعتبار کیږي(یعني د جوړېدلو له وخته به د هغه پر مال کال شروع کیږي او چي کله یو کال تېر سي نو زکاة به واجبیږي)، د بلوغت له وخته به د حولانِ حول اعتبار نه کیږي، ځکه د لېونتوب په وجه به هغه د بلوغت په وخت کي هم غیر مکلف وي، او دا داسي ده لکه کوچنی چي د نصاب مالک وي، نو تر څو چي تر بلوغت وروسته د هغه پر مال کال تېر نه سي، تر هغه وخته به د هغه پر مال زکاة فرض نه وي، ځکه چي تر بلوغت مخکي هغه مکلف نه وي، همدارنګه په دې مسئله کي که څه هم مجنون بالغ وي، لېکن د جنون په وجه به هغه مکلف نه وي، نو ځکه به تر جوړېدلو وروسته د هغه پر مال د حولانِ حول اعتبار کیږي.

او که دا سړی مجنونِ عارضي وي، یعني د بلوغت په وخت کي جوړ وي، نو د بلوغت له وخته به مکلف ګڼل کیږي، اوس که په مینځ کي لېونی سو، نو د کال په مینځ کي چي کله هم جوړ سي، او په هوښ کي راسي، نو په دې لړ جوړېدلو سره به د ټوله کال زکاة واجبیږي، او د کال د تېرېدلو انتظار به یې نه کیږي، ځکه چي هغه د بلوغت له وخته مکلف وو، صرف د لېونتوب په وجه یوه څه موده غیرِ مکلف پاته سو.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی. [القول الراجح ج:١، ص:١٦١]

## په مکاتب باندي د زکاةد نه واجبېدلو بیان

وَلَيْسَ عَلَى الْمُكَاتَبِ زَكَاةٌ او پر مکاتب زکاة واجب نه دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالِكٍ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي هغه په هر اعتبار سره مالک نه دی لِوُجُودِ الْمُنَافِيْ ځکه (د هغه په حق کي د ملکیت) منافي سته وَهُوَ الرِّقُّ او هغه غلامتوب دی وَلِهَذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ أَنْ يُعْتِقَ عَبْدَهُ نو هم په دې وجه مکاتب د خپل غلام د آزادولو أهل نه دی.

**اللغات:** ﴿مکاتب﴾ هغه غلام چي خپل مالک ته د يو څه مال ورکولو په عوض کي ځان آزادولای سي، ﴿رق﴾ غلامي (غلامتوب).

**تشريح:** تر دې مخکي تاسو ووېل چي د زکاة د وجوب لپاره د نصاب داسي ملکيت ضروري او شرط دی چي هغه ملکيت تام او پوره وي، پر هغه شرط دا مسئله تفريع کوي، حاصل دا دی چي مکاتب يعني هغه غلام چي د مخصوص مال ورکولو په وعده د خپل مالک سره د بدل کتابت معامله وکړي او ملکِ يد او ملکِ تصرف حاصل کړي، نو د هغه په مال کي هم زکاة واجب نه دی، که څه هم هغه د نصاب مالک وي، ځکه د زکاة د وجوب لپاره پوره ملکيت (ملک تام) ضروري دی، او دا سړی په پوره توګه د يو شي مالک نه دی، ځکه چي اوس هم په هغه کي غلامتوب (رقيّت) پاته دی، ځکه قاعده دا ده چي که پر مکاتب غلام يو درهم هم پاته وي، نو غلام دی، او پر غلام زکاة واجب نه دی، نو ځکه به پر مکاتب هم زکاة واجب نه وي، په مکاتب کي د ملک تام د نشتوالي ښرګنده علت دا دی چي که مکاتب بل غلام د خپل ځان لپاره رانيولی وي، نو مکاتب دا غلام د خپل مالک له اجازې څخه بغير نه سي آزادولای، او نه يې خرڅولای سي، لهذا که د هغه ملکيت پوره وای، نو هغه ته به د دې اجازه وای، نو په دې حواله سره هم معلومه سوه چي د مکاتب ملکيت ناقص دی، حال دا چي د زکاة د وجوب لپاره پوره ملکيت ضروري دی، نو د مکاتب په مال کي به زکاة واجب نه وي.

## پر قرضداره (پور وړي) د زکاة د نه واجبدلو بيان

> وَمَنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِمَالِهِ او پر چا چي دومره پور (قرض) وي چي د هغه ټوله مال يې نيولی وي (د مثال په توګه پنځه سوه درهمه لري او پنځه سوه پور هم پر باندي وي) فَلَا زَكَاةَ عَلَيْهِ نو پر هغه زكاة واجب نه دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجِبُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر هغه زكاة واجب دی لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ ځکه سبب متحقق دی وَهُوَ مِلْكُ نِصَابٍ تَامٍّ او هغه د وده کونکي نصاب مالک کېدل دي وَلَنَا أَنَّهُ مَشْغُولٌ بِحَاجَتِهِ الْأَصْلِيَّةِ او زموږ دليل دا دی چي دا مال د هغه په اصلي حاجت کي مشغول دی فَاعْتُبِرَ مَعْدُومًا نو ځکه به دا مال معدم شمارل کيږي كَالْمَاءِ الْمُسْتَحَقِّ بِالْعَطَشِ لکه هغه اوبه چي د تندي ختملو لپاره وي وَثِيَابِ الْبِذْلَةِ وَالْمَهْنَةِ او لکه د ورځني استعمال او د کار کالي.

**اللغات:** ﴿يحيط﴾ د افعال د باب مضارع ده: احاطه کول، نيول. ﴿نامي﴾ زياتېدونکی، وده کونکی. ﴿حاجته الأصلية﴾ له کوم شي څخه بغير چي ژوند تېرول ستونزمن وي هغه ته حاجتِ اصليه ويل کيږي ﴿عطش﴾ تنده، تږی کېدل. ﴿بذلة﴾ د عام استعمال شی، د ورځني استعمال شی، ﴿مهنة﴾ په کار او کسب کي استعمالېدونکی شی.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که پر يو سړي دومره قرضه وه چي د هغه پر ټوله مال يې احاطه کړې وه، د مثال په توګه د هغه سره پنځه سوه درهمه وه، او پنځه سوه قرضه هم باندي وه، لهذا اوس که هغه قرضه اداء کړي، نو هيڅ نه پاتېږي، ګواکي د هغه سره د نصاب مال ګردسره نسته، نو ځکه به پر هغه زکاة واجب نه وي، (تفصيلي دليل به وروسته ذکر سي)

وقال الشافعي الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر هغه زكاة واجب دی، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د زكاة د واجبېدلو سبب د زياتېدونکي مال مالک کېدل دي، او هغه دلته سته، ځکه د قرضې او پور تعلق د ذمې سره دی نه د مال سره، همدا وجه ده چي د قرضداره تصرف په خپل مال کي نافذېدای سي، لنډه دا چي د زكاة د وجوب سبب سته، نو ځکه به زكاة پر واجب وي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چې د قرضداره مال د هغه په اصلي حاجت کې مشغول دی، او اصلي حاجت د قرضې اداء کول دي، ځکه چې قرضه په دنيا او آخرت دواړو کې مُهلکه (او د عذاب سبب) ده، په دنيا کې خو ځکه مهلکه ده چې قرض غوښتونکو د قرضداره ژوند سخت کړی وي، تر دې چې بندي کولای يې هم سي، او په آخرت کې ځکه مهلکه ده چې قرضه به د قرضداره او جنت په مينځ کې پرده وي، لنډه دا چې قرضه دېر زيات اصلي حاجت دی، او د قرضداره ټوله مال په دې حاجت کې مشغول دی، نو د قرضداره دا مال به معدوم شمارل کيږي، او داسې به ګڼل کيږي چې د هغه سره ګردسره مال سته نه، لهذا نو زکاة به څرنګه پر واجبيږي.

كالماء المستحق الخ له دې ځايه زموږ د دليل لپاره دوه مثالونه ذکر کوي: (١) اول مثال دا دی چې مثلاً د يو سړي سره لږ اوبه وي، خو دا سړی په داسې صحراء کې وي چې هلته تر ليرې پورې اوبه نه ليدل کيږي، نو اوس که دا سړی په دې اوبو سره اودس وکړي، نو له تندې څخه به مړ سي، نو ګواکې دا اوبه د څښلو لپاره مستحق سوې، لهذا اوس به داسې ګڼل کيږي چې ګواکې د ده سره بالکل اوبه سته نه، يعني دا سړی به معدومُ الماء ګرځول کيږي، نو ځکه به هغه تيمم کوي او لمونځ به کوي. (٢) دويم مثال دا دی چې که د يو سړي سره د ورځني استعمال او د کار او کسب جامې وي، او د نصاب په اندازه وي، خو څرنګه چې دا شيان د هغه د اصلي حاجت لپاره دي، نو ځکه به په دې کې زکاة واجب نه وي.

## که د قرضداره مال د هغه تر قرض زيات وو نو څه حکم دی؟

وَإِنْ كَانَ مَالُهُ أَكْثَرَ مِنْ دَيْنِهِ او که د قرضداره (پور وړي) مال د هغه له قرض څخه زيات وو وَزَكَّى الْفَاضِلَ نو د زيات مال زکاة به اداء کوي إِذَا بَلَغَ نِصَابًا په دې شرط چې کله نصاب ته ورسيږي بِالْفَرَاغَةِ عَنِ الْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ او (په دې شرط) چې له اصلي حاجت څخه (هم) فارغ وي وَالْمُرَادُ بِهِ دَيْنٌ لَهُ مُطَالِبٌ مِنْ جِهَةِ الْعِبَادِ او له دَين څخه مراد هغه پور دی چې د بندګانو له طرفه د هغه يو مطالبه کوونکی وي حَتَّى لَا يَمْنَعَ دَيْنُ النَّذْرِ وَالْكَفَّارَةِ تر دې چې د نذر او کفارې پور زکاة نه منع کوي وَدَيْنُ الزَّكَاةِ مَانِعٌ حَالَ بَقَاءِ النِّصَابِ او د زکاة پور د نصاب د پاته کېدلو په حالت کې د زکاة منع کوونکی دی لِأَنَّهُ يَنْتَقِصُ بِهِ النِّصَابُ ځکه چې په هغه سره نصاب کميږي وَكَذَا بَعْدَ الِاسْتِهْلَاكِ او همدارنګه د نصاب تر هلاکولو وروسته (هم پور د زکاة منع کوونکی دی) خِلَافًا لِزُفَرَ فِيهِمَا* د امام زفر رَحِمَهُ الله په دې دواړو صورتونو کې اختلاف دی وَلِأَبِي يُوسُفَ فِي الثَّانِي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دويم صورت کې اختلاف دی عَلَى مَا رُوِيَ عَنْهُ د هغه روايت مطابق کوم چې له هغه څخه روايت سوی دی لِأَنَّ لَهُ مُطَالِبًا ځکه چې د زکاة د پور مطالبه کوونکی سته وَهُوَ الْإِمَامُ فِي السَّوَائِمِ او هغه (مطالبه کوونکی) په څړېدونکو څارويانو کې د مسلمانانو امام دی وَنَائِبُهُ فِي أَمْوَالِ التِّجَارَةِ او د تجارت په مالونو کې د هغه نائب دی فَإِنَّ الْمُلَّاكَ نُوَّابُهُ ځکه چې د مال مالکان (هم) د امام نائبان دي.

* القول الراجح: هو القول السابق يعني دين الزكاة مانع حال بقاء النصاب...الخ. [القول الراجح ج:١، ص:١٦٢]

**اللغات**: ﴿زَكَّى﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: زکاة ورکول، پاکول. ﴿السَّوَائِمُ﴾ جمع د سَائِمَةٌ ده: هغه څارویان چي په صحراء او چراګاه کي د وښو د خوړلو لپاره کتل کیږي (پوول کیږي)، یعني څرېدونکي څارویان. ﴿مُلَّاك﴾ جمع د مَالِك ده: څښتن، خاوند، مالک. ﴿نُوَّاب﴾ جمع د نَائِب ده: ځای ناستی، قائم مقام.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که د قرضداره (پوروړي) مال د هغه له قرضې څخه زیات وو، نو په دې زیات مال کي زکاة واجب دی، خو په دې شرط چي د نصاب په اندازه وي، او د هغه له اصلي حاجت څخه فارغ هم وي.

والمراد به الخ صاحب د هدایې فرمایي چي له دَین څخه مراد داسي قرض دی چي د هغه یو غوښتونکی (مطالبه کونکی) د بندګانو له طرفه وي، نو دغسي قرض زکاة منع کوي (یعني د زکاة وجوب منع کوي)، او که د بندګانو له طرفه مطالبه نه وي، نو داسي قرض زکاة نه منع کوي، لکه د نذر پور (دینِ نذر) او د کفارې پور (دینِ کفاره)، د دینِ نذر صورت دا دی چي مثلاً یو سړي نذر ومنی چي که زما فلانکی کار وسو، نو پنځه درهمه به خیراتوم، او هغه کار وسي، نو اوس د دې پنځو درهمو هیڅ مطالبه کونکی انسان نسته، بلکي شریعت دی، او د دینِ کفاره صورت دا دی چي مثلاً پر یو چا د قسم خوړلو کفاره وي، نو د کفارې مطالبه کونکی هم شریعت دی، بنده نه دی، نو داسي قرض چي د هغه مطالبه کونکی شریعت وي، بنده نه وي، زکاة نه منع کوي.

ودین الزکاة الخ صاحب د هدایې فرمایي چي د زکاة د نصاب د بقاء (پاته کېدلو) په صورت کي د زکاة دین (پور) د زکاة وجوب منع کوي، ځکه د زکاة د پور په اداء کولو سره د زکاة نصاب کمیږي، د دې صورت دا دی چي مثلاً یو سړی د دوو سوو درهمو مالک دی، او پر دې درهمو یو کال تېر سو، لېکن هغه یې زکاة اداء نه کړې، تر دې چي دویم کال هم تېر سو، نو د اول کال زکاة پر هغه پور (دین) سو، لهذا اوس د دویم کال زکاة نه سي واجبېدلای، ځکه چي د اول کال د زکاة وجوب په دویم کال کي د زکاة وجوب منع کوي، ځکه د اول کال د زکاة یعني د پنځو درهمو په ورکولو سره نصاب کمیږي، یعني یو سل و پنځه نوي (١٩٥) درهمه پاتیږي، او دا ښکاره ده چي له نصاب څخه په کم مال کي زکاة نه واجبیږي (نو اوس به هغه د تېر کال زکاة ورکوي، او د دغه کال زکاة به نه ورکوي ځکه چي په دې کال کي هغه ګردسره د نصاب مالک نه پاتیږي)، او همدا حکم د ټوله مال تر تلف کولو (هلاکولو) وروسته هم دی، یعني مثلاً یو سړی د دوو سوو درهمو مالک دی، او پر درهمو کال تېر سو، بیا د زکاة تر اداء کولو مخکي هغه ټوله درهمونه په خپله هلاک کړل*، بیا یې دوه سوه درهمه وګټل، او پر هغو کال تېر سو، نو اوس پر هغه د اوسنی دوو سوو درهمو زکاة واجب نه دی، ځکه چي د اول نصاب زکاة د هغه پر ذمه پور (دین) سو، او د زکاة دین زکاة له وجوب څخه منع کوي، دا تفصیل د طرفینو په نیز دی، امام زفر رَحِمَهُ الله په داوړو صورتونو کي د طرفینو مخالف دی، یعني په هغه نصاب کي هم چي په هغه کي زکاة واجب سي، خو اداء یې نه کړي، تر دې چي یو کال تېر سي، او په هغه نصاب کي هم چي په هغه کي زکاة واجب سي لېکن وروسته هغه ټوله نصاب هلاک کړي، او بیا د نصاب مالک سي، او پر دغه نصاب کال تېر سي، حاصل دا چي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نیز په دواړو

---

* دلته دریم صورت مصنف نه دی ذکر کړی هغه دا چي که درهمونه په خپله هلاک سول، نو د هغو زکاة معاف دی، اوس که هغه سړي نور دوه سوه درهمه حاصل کړل، او کال پر تېر سو، نو د دغه دوو سوو درهمو زکاة به ورکوي، د تېر کال زکاة به نه ورکوي، ځکه د تېر کال زکاة معاف سو، او هغه ده پر ذمه قرض پاته نه سو.

صورتونو کي د زکاة پور (دينِ زكوٰة) د زکاة وجوب نه منع کوي (يعني د امام زفر په نيز به دا سړی په دواړو صورتونو کي د تېر کال زکاة نه ورکوي کوم چي پر هغه قرض پاته دی، بلکي د دغه کال زکاة به ورکوي).

**د امام زفرم دليل:** دا دی چي د زکاة پور داسي قرض دی چي د هغه مطالبه کونکی د بندګانو له طرفه هيڅوک نسته، بلکي مطالبه کونکی يې شريعت دی، نو دا هم د دينِ نذر او دينِ کفاره په ډول سو، او د کوم دين مطالبه کونکی چي څوک د بندګانو له طرفه نه وي، هغه دين زکاة له وجوب څخه نه منع کوي، نو ځکه به د زکاة دين او د استهلاک دين دواړه زکاة له وجوب څخه نه منع کوي.

ولأبي يوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ في الثاني الخ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دويم صورت کي (د نصاب د هلاکولو په صورت کي) زموږ مخالف دی، يعني د هغه په نيز د اول کال د زکاة دين په دويم کال کي د زکاة له وجوب څخه مانع دی، لېکن که تر کال تېرېدلو وروسته انسان په خپله ټوله نصاب هلاک کړي، او بيا د دوو سوو درهمو مالک سي، او کال هم پر تېر سي، نو د هلاک سوي مالک د زکاة دين به په دويم کال کي زکاة له وجوب څخه نه منع کوي، د هغه په نيز وجه د فرق دا ده چي د مستهلک نصاب د زکاة مطالبه کونکی د بندګانو له طرفه هيڅوک نسته، ددې په خلاف که نصاب موجود وي، او تر کال تېرېدلو وروسته يې هم زکاة اداء نه کړي، نو عُشر ټولونکی (عاشر) او د زکاة اخيستونکی د هغه د زکاة مطالبه کوی، نو څرنګه چي په دې صورت کي د بندګانو له طرفه مطالبه کونکی سته، نو ځکه به دلته د زکاة دين د را روان کال د زکاة له وجوب څخه مانع وي، او څرنګه چي د مستهلک دين هيڅ مطالبه کونکی د بندګانو له طرفه نسته، نو ځکه به هغه مانع نه وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي د زکاة د دين مطالبه کونکی بنده سته، او هغه بنده د څرېدونکو څارويانو په زکاة کي امامُ المسلمين دی، او د تجارت په نورو مالونو کي د هغه نائب دی، لېکن که دا وويل سي چي د امام هيڅ نائب هم د زکاة غوښتلو لپاره نه راځي، نه د څرېدونکو څارويانو د زکاة غوښتلو لپاره، او نه د تجارت د مالونو د زکاة غوښتلو لپاره.

**جواب:** دا دی چي امامُ المسلمين په خپله مالکانو ته اجازت ورکړی دی، نو د مال مالکان په خپله د امام نائبان دي، په دې توګه چي د مال مالک له مال څخه په زکاة را ايستلو کې خو مالک د زکاة دی، لېکن د زکاة په اداء کولو کي د امام نائب دی، او د دې اصل د الله تعالیٰ دا قول دی: خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً. له دې آيت څخه د امام لپاره له هر مال څخه د زکاة اخيستلو حق ثابتيږي، همدا وجه ده چي نبي ﷺ او تر نبي ﷺ وروسته حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه به د څارويانو، او مالونو زکاة اخيستی، او مستحقينو ته به يې ورکوی، لېکن کله چي د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت دور شروع سو، نو هغه وليدل چي په مسلمانانو کي زکاة مشهوره سوی دی، او دا خطره هم وه چي باچاهان به د خلکو د زکاة پر مالونو په خپله لاس را تېر کړي، نو ځکه يې د مال مالکان د مال نائبان جوړ کړل چي هغوی دي د خپلو مالونو زکاة په خپله اداء کوي، نو ثابته سوه چي د مال مالکان په زکاة اداء کولو کي د امامُ المسلمين نائبان دي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول اول قول دی يعني د زکاة د نصاب د بقاء په صورت کي د زکاة دين (پور) د زکاة وجوب منع کوي، همدارنګه مستهلک دين د زکاة وجوب منع کوي. [القول الراجح: ج:١، ص:١٦٢]

## د هغو مالونو بيان چي زکاة پکښي نسته

وَلَيْسَ او نسته فِي دُوْرِ السُّكْنٰى وَثِيَابِ الْبَدَنِ داستوګنې په کورونو کي او د بدن په کالو (جامو) کي وَأَثَاثِ الْمَنَازِلِ وَدَوَابِّ الرُّكُوْبِ او د کور په سامان کي او د سپرلي په څارويو کي وَعَبِيْدِ الْخِدْمَةِ وَسِلَاحِ الْاِسْتِعْمَالِ او د خدمت په غلامانو کي او د استعمال په وسله کي زَكٰوةٌ زکاة (يعني په دې ټولو شيانو کي زکاة نسته) لِأَنَّهَا مَشْغُوْلَةٌ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ

ځکه چي دا شيان په اصلي ضرورت(حاجتِ اصليه) کي مشغوله دي وَلَيْسَتْ بِنَامِيَةٍ أَيْضًا او دا شيان وده کونکي (زياتېدونکي) هم نه دي وَعَلَىٰ هٰذَا كُتُبُ الْعِلْمِ لِأَهْلِهَا وَآلَاتُ الْمُحْتَرِفِيْنَ او هم پر دې (حکم) د عالمانو کتابونه دي او د کسب کونکو (پيشه گرو) آلې دي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿دُور﴾ جمع د دَارٌ ده: کور، ﴿مَسْكَن﴾ استوګنه، اوسېدل، ﴿أَثَاث﴾ دنيوي سامان، ﴿دَوَابّ﴾ جمع د دَابَّةٌ ده: حيوان، څاروی، پر مځکه تلونکی ساکښ شی، ﴿عَبِيد﴾ جمع د عَبْدٌ ده: غلام، نوکر، خدمتګار، ﴿مُحْتَرِفِيْن﴾ جمع د مُحْتَرِفٌ ده: کسبګر، ديو کسب او کار خاوند، پېشه ګر.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي د استوګني په کورونو کي، او په هغو کالو کي چي اغوستل کيږي، او په هغو کورني سامانونو کي کوم چي په متن کي ذکر سول، او په هغو سامانونو کي چي په ورځني ژوند کي په کار راځي زکاة واجب نه دی، ځکه چي دا ټوله د انسان په حاجتِ اصليه کي مشغول دي، نه له ضرورت څخه زيات دي، او نه په زياتېدونکي (نامي) مال کي داخل دي، نو ځکه به په هغو کي زکاة واجب نه وي، ځکه چي د زکاة د واجبېدلو لپاره د مال (نامي کېدل) او له ضرورتِ اصليه څخه (فارغېدل) ضروري دي، او دا دواړه شيان دلته نسته، همدا وجه ده که ديو چا سره تر ضرورت زيات کالي وي، يا موټر، او کور تر ضرورت زيات ور سره وي، يا دا شيان يې په تجارت او کرايه کي مشغوله وي، نو تر کال تېرېدلو وروسته به په دې شيانو کي زکاة واجب وي.

وعلى هذا كتب العلم الخ فرمايي که ديو چا سره علمي کتابونه وي او د تجارت لپاره نه وي، بلکي د دې سړي د خپلي مطالعې او د فايدې لپاره وي نو په هغو کي هم زکاة واجب نه دی، ځکه چي هغه په حاجتِ اصليه کي مشغول دي، همدارنګه د کسبګرو آلې دي، د مثال په توګه د نجار سامان، د اشپز ديګونه، د عطرفروش اونګونه او د کاريګرو ماشينونه، نو په دې شيانو کي هم زکاة واجب نه دی، ځکه دا شيان هم په اصلي حاجتونو کي مشغوله دي، او نامي نه دي، ځکه چي په دې شيانو باندي په کار کولو سره پيسې ګټل کيږي، په خپله دا شيان پيسې نه ګټي.

## په مالِ ضمار کي د زکاة بيان

وَمَنْ لَهُ عَلَىٰ آخَرَ دَيْنٌ او که ديو چا پر بل سړي پور باندي وي فَجَحَدَهُ سِنِيْنَ (لېکن) پوروړی (قرضداره) څو کاله د پور انکار کوي ثُمَّ قَامَتْ بِهِ بَيِّنَةٌ بيا ګواهان پر هغه ودريږي لَمْ يُزَكِّهِ لِمَا مَضَىٰ نو پور ورکونکی به د تېرو کلونو زکاة نه ورکوي مَعْنَاهُ: صَارَتْ لَهُ بَيِّنَةٌ (او) د ګواهانو د درېدلو معنیٰ دا ده: چي د هغه لپاره ګواهان پيدا سي بِأَنْ أَقَرَّ عِنْدَ النَّاسِ په دې توګه چي قرضداره د خلکو مخته د پور اقرار وکړي وَهِيَ مَسْأَلَةُ مَالِ الضِّمَارِ [١] او دا د مالِ ضمار مسئله ده وَفِيْهِ خِلَافُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ او په دې کي د امام زفر رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَمِنْ جُمْلَتِهِ او د مالِ ضمار له ټولګي څخه الْمَالُ الْمَفْقُوْدُ [٢] ورک سوی مال دی وَالْآبِقُ [٣] او تښتېدلی غلام دی وَالضَّالُّ [٤] او بې لاري سوی او ورک سوی غلام (او حيوان) دی وَالْمَغْصُوْبُ [٥] او هغه مال دی چي يو چا غصب کړی وي إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ په دې شرط چي پر غاصب ګواه نه وي وَالْمَالُ السَّاقِطُ فِي الْبَحْرِ [٦] او هغه مال دی چي په سمندر کي

لوېدلی وي وَالْمَدْفُوْنُ فِي الْمَفَازَةِ إِذَا نَسِيَ مَكَانَهُ [٧] او هغه مال دی چې په بيابان (او ځنګله) کې ښخ سوی وي په دې شرط چې ځای يې هېر وي وَالَّذِيْ أَخَذَهُ السُّلْطَانُ مُصَادَرَةً [٨] او هغه مال دی چې باچا له مالک څخه جلا کړی وی وَوُجُوْبُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ بِسَبَبِ الْآبِقِ وَالضَّالِّ او د تښتېدلي او ورک سوي غلام له طرفه د سرسايې واجبېدل وَالْمَغْصُوْبِ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ (همدارنګه) د غصب سوي غلام له طرفه (د سرسايې واجبېدل) هم پر دې اختلاف دي لَهُمَا: أَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَحَقَّقَ د امام زفر او امام شافعي دليل دا دی: چې د زکاة سبب (ملکيت) متحقق سوی دی وَفَوَاتُ الْيَدِ غَيْرُ مُخِلٍّ بِالْوُجُوْبِ او د قبضې فوتېدل په واجبېدلو کې خلل اچونکي نه دي كَمَالِ ابْنِ السَّبِيْلِ لکه د مسافر مال وَلَنَا قَوْلُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او زموږ دليل د حضرت علي ﷺ (دا) قول دی لَا زَكَاةَ فِي الْمَالِ الضِّمَارِ چې زکاة نسته په مالِ ضمار کي وَلِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْمَالُ النَّامِيْ او په دې وجه (هم) چې د زکاة سبب وده کونکی (زياتېدونکی) مال دی وَلَا نَمَاءَ إِلَّا بِالْقُدْرَةِ عَلَى التَّصَرُّفِ او پر تصرف (او قبضې) له قدرت لرلو څخه بغير وده (زياتېدل) نسته وَلَا قُدْرَةَ عَلَيْهِ او پر تصرف (هغه ته) قدرت نسته وَابْنُ السَّبِيْلِ يَقْدِرُ بِنَائِبِهِ او مسافر د خپل نائب په ذريعه سره پر خپل مال د تصرف قدرت لري وَالْمَدْفُوْنُ فِي الْبَيْتِ نِصَابٌ او په کور کې ښخ کړی سوی مال (د زکاة) نصاب دی لِتَيَسُّرِ الْوُصُوْلِ إِلَيْهِ ځکه ښخ کړی سوي مال ته لاس رسی آسانه دی وَفِي الْمَدْفُوْنِ فِي الْأَرْضِ أَوِ الْكَرْمِ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ او په ځمکه يا باغ کې په ښخ کړی سوی مال کې د مشائخو اختلاف دی وَلَوْ كَانَ الدَّيْنُ عَلَى مُقِرٍّ او که پور پر داسي سړي وي چې هغه اقرار کونکی وي مَلِيْئٍ أَوْ مُعْسِرٍ هغه که مالداره وي او که تنګلاسی (مسکين) وي تَجِبُ الزَّكَاةُ نو زکاة واجب دی لِإِمْكَانِ الْوُصُوْلِ إِلَيْهِ ابْتِدَاءً ځکه چې په شروع کې مال ته لاس رسی (يعني مال تر لاسه کول) ممکن دي أَوْ بِوَاسِطَةِ التَّحْصِيْلِ يا د حاصلولو په ذريعه (د مال تر لاسول کول ممکن دي) وَكَذَا لَوْ كَانَ عَلَى جَاحِدٍ همدارنګه که پور پر داسي سړي وي چې هغه انکار کونکی وي وَعَلَيْهِ بَيِّنَةٌ أَوْ عَلِمَ بِهِ الْقَاضِيْ او د هغه په خلاف ګواهان وي يا قاضي په خبر وي (نو هم زکاة واجب دی) لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَلَوْ كَانَ عَلَى مُقِرٍّ مُفْلِسٍ او که پر داسي سړي پور وي چې هغه اقرار کونکی وي (لېکن) مفلسه وي فَهُوَ نِصَابٌ عِنْدَ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه د نصاب مال دی لِأَنَّ تَفْلِيْسَ الْقَاضِيْ لَا يَصِحُّ عِنْدَهُ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي مفلس ګرځول صحيح نه دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا تَجِبُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز زکاة واجب نه دی لِتَحَقُّقِ الْإِفْلَاسِ عِنْدَهُ بِالتَّفْلِيْسِ ځکه چې د هغه په نېز د قاضي په مفلس ګرځولو سره مفلسي ثابتېږي وَأَبُوْ يُوْسُفَ مَعَ

● القول الراجح: قول أبی حنيفه رَحِمَهُ الله، كذا فی رد المحتار ج:٢، ص:١٠. [القول الراجح ج:١، ص:١٦٣]

مُجْحَدٍ فِي تَحَقُّقِ الْإِفْلَاسِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د مفلسی په ثابتېدلو کي د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی وَمَعَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهِ فِي حُكْمِ الزَّكَاةِ او د زکاة په حکم کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی رِعَايَةً لِجَانِبِ الْفُقَرَاءِ د غريبانو د اړخ د رعايت کولو په وجه.

**اللغات:** ﴿جحد﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول، ﴿ملى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: تېرېدل، ﴿مال ضمار﴾ داسي ورک سوی مال چي د پیدا کېدلو او تر لاسه کولو امید يې نه وي، ﴿مفازة﴾ بیابان، دښت، ځنګل، ﴿آبق﴾ تښتېدونکی، ﴿كرم﴾ انګور، ګن باغ ته هم ويل کيږي جمع يې كُرُومٌ راځي، ﴿ملئ﴾ مالدار، شتمن ﴿تفليس﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: يو څوک ډېوالي (دېوالي) ګڼل، يو څوک غريب ګرځول.

**تشریح:** مخکي د هغو خلګو بیان وو چي پر هغو زکاة واجبيږي، يا نه واجبيږي، اوس له دې ځایه هغه مالونه بيانيږي چي په هغو کي زکاة نه واجبيږي، د عبارت تر حل مخکي په دې خبره پوه سئ چي دا مسئله د ضمار د مسئلې سره تعلق لري، نو تر ټولو مخکي تاسو د ضمار په حقيقت پوه سئ، ضِمَار د فعال پر وزن دی چي هغه د فاعل يا مفعول په معنیٰ سره راځي، دا له إضمار څخه مشتق دی، لغوي معنیٰ يې ده: پټول، غائبول، د شريعت په اصطلاح کي د ضمار تعريف دا دی: المال الضمار المال الغائب الذی لم یرج (يعني مالِ ضمار هغه غائب او ورک مال ته ويل کيږي چي د هغه د پیدا کېدلو امید نه وي).

بعضي حضراتو د اضمار تعريف داسي کړی دی: ما يكون عليه قائما ولكن لا يكون منتفعا به (يعني ضمار هغه مال دی چي موجود خو وي، لېکن د ګټي او فايدي وړ نه وي)، دې تعريف ته په کتني سره به ضمار له ضامر څخه مشتق وي، خو دې دواړو تعريفونو کي اول تعريف زيات مناسب معلوميږي. (بنایه ج۳، ص۳۶۰)

**د مالِ ضمار صورتونه:** مصنف رَحِمَهُ الله د مالِ ضمار اته(۸) صورتونه او قسمونه ذکر کړي دي، اول صورت دا دی چي: [۱] د يو سړي پر بل سړي پور باندي وي، پوروړی (قرضداره) تر څو کلونو پوري له دې پور څخه انکار کوي، او پور غوښتونکي په دې وخت کي له ګواهانو څخه محروم وي، تر څو کلونو وروسته ګواهان پیدا سي، په دې توګه چي پوروړی د خلګو مخته د پور اقرار وکړي، نو دا خلګ د پوروړي اقراري ګواهان سي، يعني دا خلګ پر دې ګواهان سوه چي پوروړي زموږ مخته د پور اقرار وکړی، نو د ګواهانو تر پیدا کېدلو مخکي دا پور مالِ ضمار وو، او د ګواهانو تر پیدا کېدلو وروسته دا پور مالِ ضمار نه سو پاته، ځکه چي تر څو پوري ګواهانو نه ول، تر هغه وخته د دې پور د حاصلولو هيڅ امید نه وو، لېکن کله چي ګواهانو پیدا سول، نو د عدالت او قاضي په ذريعه د دې قرضې ترلاسه کول ممکن سو، او امید يې پیدا سو، [۲] دويم قسم ورک سوی مال دی، [۳] تښتېدلی غلام، [۴] هغه حيوان او غلام چي بې لاري سي او ورک سي، [۵] هغه مال چي غصب کړی سي لېکن د مالک سره د غاصب په خلاف ګواه نه وي، [۶] هغه مال چي په سمندر کي لوېدلوی وي، [۷] هغه مال چي په يو بیابان او دښت کي پټ کړی سوی او ځای يې هير سوی وي، [۸] هغه مال چي باچا له مالک څخه جلا کړی وي، اوس سوال دا دی چي مالِ ضمار کوم چي تر څو کلونو پوري له مالک څخه غائب او ورک وي، او په دې موده کي د هغه د پیدا کېدلو امید هم نه وي، بيا يو څو کال وروسته دا مال پیدا سي، نو په دې تېرو کلونو کي په هغه کي زکاة واجب دی که نه؟ په دې باره کي د احنافو مذهب دا دی چي په تېرو کلونو کي زکاة واجب نه دی، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي زکاة پکښې واجب دی.

وجوب صدقة الفطر الخ همدا اختلاف د هغه غلام د سرسايې (صدقة فطر) په واجبېدلو کي دی چي هغه تېښتېدلی وی، يا ورک سوی وي، يا غصب کړی سوی وي، نو زموږ په نيز پر مالک د هغه له طرفه سرسايه اجب نه ده، او د امام زفر او امام شافعي په نيز واجب ده.

**د امام زفر او امام شافعي دليل:** دا دی چي په مالِ ضمار کي د زکاة د واجبېدلو سبب سته چي هغه د نامي (وده کونکي) نصاب مالک کېدل دي، لهذا کله چي د زکاة د واجبېدلو سبب سته، نو په مالِ ضمار کي به هم زکاة واجب وي، خو که دا وويل سي چي پر مالِ ضمار د مالک قبضه نسته، (يعني د هغه په لاس کي مالِ ضمار نسته)، نو جواب دا دی چي د قبضې نشتوالی د زکاة د واجبېدلو لپاره مُخل نه دی، لکه د مسافر مال چي د سفر په حال کي د هغه په قبضه کي نه وي، حال دا چي په اتفاق سره پر مسافر سرسايه واجب ده، او زکاة هم پر واجب دی.

**زموږ دليل:** د حضرت علي ﷺ دا قول دی: لا زكوٰة فى مال الضمار، همدا مضمون له حسن بصري رَحِمَهُ الله څخه داسي رانقل سوی دی: إذا حضرت الوقت الذى يؤدى فيه الرجل زكوته أدىٰ عن كل مال وعن كل دين إلا ما كان ضمار لايرجوه (يعني کله چي هغه وخت راسي چي په هغه کي سړی خپل زکاة اداء کوي، نو د هر مال او هر پور زکاة دي اداء کړي، خو دا چي کوم مال ضمار وي، او اميد يې نه وي)، له دې دوارو قولونو څخه ثابته سوه چي په مالِ ضمار کي زکاة واجب نه دی، **دويم دليل:** دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د امام زفر رَحِمَهُ الله دا وينا چي د زکاة د واجبېدلو سبب پيدا سو موږ دا نه منو، ځکه چي د زکاة د واجبېدلو سبب مطلق د مال مالک کېدل نه دي، بلکي د مالِ نامي (وده کونکي) مال مالک کېدل د زکاة د واجبېدلو سبب دي، او په مالِ ضمار کي دا سبب نسته، ځکه چي نما (او وده) هغه وخت راځي چي کله د تصرف قدرت وي، او پر مالِ ضمار د تصرفَ قدرت نسته، نو کله چي د تصرف قدرت نسته، نو په دې کي به نما هم نه راځي، او کله چي نما نه پکښې راځي، نو مالِ ضمار به مالِ نامي هم نه وي، او کله چي مالِ نامي نه سو، نو زکاة به هم پکښې واجب نه وي.

**جواب:** له وابن السبيل يقدر بنائبه څخه د امام زفر او امام شافعي د دليل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي مالِ ضمار د مسافر پر مال قياسول قياسِ فاسد دی، ځکه چي مالک نه په خپله پر مالِ ضمار د تصرف قدرت لري، او نه د يو بل نائب په ذريعه سره پر مالِ ضمار د تصرف قدرت لري، او مسافر که څه هم په خپله پر هغه مال د تصرف قدرت نه لري کوم چي د هغه په وطن کي دی، لېکن د نائب په ذريعه سره پر هغه مال د تصرف قدرت لري، نو که مسافر له خپل مال څخه يو شی خرڅ کړي نو جائز دي، ځکه چي مسافر د خپل نائب په ذريعه د مبيع (خرڅ کړی سوي شي) پر ورکولو قدرت لري، نو معلومه سوه چي د مسافر مال، مالِ نامي دی، او مالِ ضمار نامي نه دی، نو امام زفر او امام شافعي دي غور وکړي، چي د دې غټ فرق باوجود به قياس څرنګه صحيح وي.

والمدفون فى البيت الخ صاحب د هدايې وايي چي کوم مال په خونه (او کور) کي پټ سوی وي نو هغه د زکاة نصاب دی، يعني په هغه کي زکاة واجب دی، ځکه چي خونه او کور د ټولو اجزاؤ سره د انسان په قبضه کي دي، نو تر دې ماله پوري رسېدل آسانه دي، او کله چي تر دې پوري رسېدل آسانه دي، او د هغه حاصلول ممکن دي، نو دا مال به په مالِ ضمار کي داخل نه وي، او کله چي په مالِ ضمار کي داخل نه سو، نو زکاة به پکښې واجب وي.

وفى المدفون فى الأرض الخ او که مال په ځمکه يا باغ کي پټ سوی وي، او ځای يې له انسان څخه هېر وي، نو په دې کي د مشائخو اختلاف دی، بعضو ويلي دي چي په دې مال کي زکاة واجب دی، ځکه د ټوله باغ يا ټولي معلومي ځمکي په

کېندلو سره د هغه را ایستل ممکن دي، لهذا پر هغه د تصرف قدرت هم سته، او کله چي د تصرف قدرت سته، نو دا مال ضمار نه سو، او بعضي مشائخو ويلي دي چي په دې مال کي زكاة واجب نه دی، ځکه ټوله باغ يا معلومه ځکه کیندل که څه هم ناممکنه نه دي، لېکن ستونزمن او مشکل خامخا دي، او په شريعت کي تکليف او حرج لیري سوی دی، نو ځکه به په دې مال کي زكاة واجب نه وي.

ولوكان الدين الخ صاحب د هدايې وايي چي که پور پر يو داسي سړي وي چي هغه د دې پور اقرار کوي، بیا برابره ده که دا پوروړی مالداره وي او که مسکين، نو د دې پور زكاة واجب دی، ځکه چي د دې پور ترلاسه کول ممکن دي، پوروړی (قرضداره) که موړ وي نو له شروع څخه ځني ترلاسه کېدلای سي، او که غريب او تنګلاسی وي نو د تحصيل په ذريعه ځني تر لاسه کېدلای سي، يعني د هغه له ګټي څخه دي يې د قاضي په حکم يا د هغه په رضا سره حاصل کړي، نو پر داسي قرضه که څه هم حقيقةً قدرت نسته، لېکن حکماً قدرت سته، او کله چي مالک ته قدرت سته، که څه هم حکماً وي، نو هغه ته مال ضمار نه ويل کيږي.

وكذا لوكان على جاحد الخ او که پور پر يو انکار کونکي سړي وي، لېکن د پور غوښتونکي سره د هغه په خلاف ګواهان وي، يا قاضي په دې پور خبر وي، نو هم زكاة واجب دی، ځکه چي د ګواهانو په ګواهي سره قاضي د مالک په حق کي فيصله کولای سي، يا قاضي په خپل علم او خبره سره د هغه په حق کي حکم کولای سي.

ولوكان على مقر مفلس الخ او که پوروړی د پور اقرار کوي، لېکن قاضي د هغه د مفلس او غريب کېدلو حکم او اعلان وکړي (چي دا سړی هيڅ نه لري)، نو دا د پور مال هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د زكاة نصاب دی، يعني په دې کي هم زكاة واجب دی، ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا صحيح نه دي چي قاضي دا سړی مفلس وګرځوی، او د هغه د مفلس کېدلو حکم وکړي، نو کله چي د قاضي مفلس ګرځول صحيح نه دي، نو مفلس ګرځول او نه مفلس ګرځول به دواړه برابر وي، او د نه مفلس ګرځولو په صورت کي بالاتفاق زكاة واجب دی، ځکه چي پور ځني اخيستل ممکن دي، نو همدارنګه به تر مفلس کولو وروسته هم زكاة واجب وي، امام امحمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي که دا سړی قاضي مفلس وګرځوي يعني د هغه د مفلس کېدلو حکم وکړي، نو بيا زكاة واجب نه دی، ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي په مفلس ګرځولو سره مفلس کېدل ثابتيږي، او کله چي د قاضي مفلس ګرځول د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز صحيح دي، نو دا پور د پوروړي په حق کي د هلاک سوي مال په درجه کي سو، او د هغه پور په درجه کي سو چي له هغه څخه انکار وسي، او په هلاک سوي او انکار کړی سوي مال کي زكاة نه واجبيږي، نو ځکه به په دې مال کي هم زكاة نه واجبيږي.

وأبويوسف الخ پاته سو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله نو هغه په دې خبره کي د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی چي د قاضي په مفلس ګرځولو سره مفلسوالی ثابتيږي، نو د صاحبينو په نېز به د پوروړي تر مالداره کېدلو پوري مالک د پور مطالبه نه کوي، او د زكاة په واجبېدلو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی، لهذا کله چي دا پور مالک ته په لاس ورسي، نو د شيخينو په نېز به د تېرو کلونو زكاة پر هغه واجب وي، ځکه چيَ په دې کي د فقيرانو او مسکينانو زيات رعايت او خواخوږي ده.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، يعني که پوروړی د پور اقرار کوي، لېکن قاضي د هغه د مفلس او غريب کېدلو حکم وکړي، نو په دې مال کي هم زكاة واجب دی، كما قال الامام قاضيخان رَحِمَهُ

الله و ان كان على مفلس فلـه القاضي. وهو مقر يكون نصاباً في قول أبي حنيفة (الخانيه ج:۱، ص:۱۲۲)، ولكن قال الاستاذ المفتي غلام قادر النعماني: قول الامام مبني على الاحتياط وقول محمد رَحِمَهُ الله أرفق للناس فينبغي أن يكون الراجح قول محمد رَحِمَهُ الله في هذا الزمان. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۶۳]

## كه مينځه د تجارت په نيت رانيول سي، وروسته د خدمت نيت پكښي و سي نو څه حكم دی؟

وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً لِلتِّجَارَةِ او چا چي د تجارت لپاره مينځه رانيوله وَنَوَاهَا لِلْخِدْمَةِ بَطَلَتْ عَنْهَا الزَّكَاةُ او د خدمت لپاره يې د هغې نيت وكړی نو له هغې څخه زكاة ساقط سو لِاتِّصَالِ النِّيَّةِ بِالْعَمَلِ وَهُوَ تَرْكُ التِّجَارَةِ ځكه د عمل سره نيت متصل (جوخت) سو او هغه تجارت پرېښوول دي وَإِنْ نَوَاهَا لِلتِّجَارَةِ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمْ تَكُنْ لِلتِّجَارَةِ او كه د خدمت تر نيت وروسته يې په دې مينځه كي د تجارت نيت وكړی نو هغه به د تجارت لپاره نه وي حَتّٰى يَبِيْعَهَا تر دې چي هغه سړی دا خرڅه كړي فَيَكُوْنَ فِيْ ثَمَنِهَا زَكَاةٌ نو بيا به د دې په قيمت كي زكاة وي لِأَنَّ النِّيَّةَ لَمْ تَتَّصِلْ بِالْعَمَلِ ځكه چي نيت د عمل سره متصل نه سو إِذْ هُوَ لَمْ يَتَّجِرْ ځكه چي هغه (په رښتيا سره) تجارت نه وكړی فَلَمْ تُعْتَبَرْ نو ځكه به د هغه نيت معتبر نه وي وَلِهٰذَا يَصِيْرُ الْمُسَافِرُ مُقِيْمًا بِمُجَرَّدِ النِّيَّةِ همدا وجه ده چي مسافر صرف په نيت سره مقيم كرځي وَلَا يَصِيْرُ الْمُقِيْمُ مُسَافِرًا بِالنِّيَّةِ إِلَّا بِالسَّفَرِ لېكن مقيم بې له سفره (صرف) په نيت سره نه سي مسافر كېدای.

**اللغات:** ﴿جَارِيَة﴾ مينځه، ﴿مُجَرَّد﴾ خالي، فقط، محض، ﴿لَمْ يَتَّجِرْ﴾ (د تجارت يې نه وو كړی) د افتعال له باب څخه د جحد معلوم صيغه ده: تجارت كول.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخكي دا قاعده په ياده لرئ چي هر هغه شي چي تعلق يې د اندامونو د عمل (اعمال جوارح) او د اندامونو د حركت سره وي، په هغه كي فقط په نيت سره تغيّر او تبديلي نه راځي، او هغه شي چي تعلق يې د پرېښوولو (ترک) سره وي په هغه كي فقط په نيت سره تبديلي راځي.

**صورت د مسئلې:** دا دی كه يو سړي د تجارت په نيت سره يوه مينځه رانيوله، بيا يې دا اراده وكړه چي له هغې څخه به خدمت اخلم، او له تجارت څخه يې د هغې دايستلو نيت وكړی، نو له دې مينځي څخه زكاة باطل او ساقط سو، يعني د دې مينځي په قيمت كي زكاة واجب نه دی، دليل دا دی چي كوم شی له اعمال جوارح څخه وي هغه فقط په نيت سره نه ثابتيږي، بلكي د نيت سره د عمل اتصال ضروري دی، او كوم شی چي د ترک له قبيلې څخه وي، په هغه كي فقط نيت كافي دی، نو څرنګه چي دغه سړي د تجارت په نيت سره مينځه رانيوله، او بيا يې له هغې څخه د خدمت اخيستلو نيت وكړی، يعني په هغې كي يې د تجارت د پرېښوولو (ترک) نيت وكړی، نو فقط په نيت سره دا مينځه له تجارت څخه ووتله، او كله چي له تجارت څخه ووتله، نو له هغې څخه زكاة هم باطل او ساقط سو. صاحب د هدايې وايي چي نيت د عمل سره متصل سو، او هغه عمل د تجارت پرېښوول دي.

وإن نواها الخ او كه د تجارت په نيت سره يې مينځه رانيوله، بيا يې له هغې څخه د خدمت اخيستلو نيت وكړی، بيا يې تر هغه وروسته د تجارت نيت وكړی، نو هغه مينځه د تجارت لپاره نه ګرځي، تر دې چي هغه مينځه خرڅه نه كړي، نو كه يې خرڅه كړه، بيا د هغې په قيمت كي زكاة واجب دی، ځكه تر څو چي دی مينځه خرڅه نه كړي، تر هغه وخته

نيت د تجارت د عمل سره نه متصل کيږي، او کوم نيت چي د عمل سره متصل نه وي، هغه معتبر نه ګڼل کيږي، نو ځکه به فقط په نيت سره هغه مينځه د تجارت لپاره نه ګرځي.

ولهذا الخ د دې حاصل دا دی چي په ترک (پرېښوولو) کي فقط نيت کافي دی، او په عمل کولو کي عمل ضروري دي، د دې دليل بيانوي چي اقامت د سفر پرېښوولو ته ويل کيږي، همدا وجه ده که يو مسافر د مقيم کېدلو نيت وکړي، نو هغه فقط په نيت سره مقيم کيږي، ځکه چي په پرېښوولو کي فقط نيت کافي دی، لېکن که يو مقيم د مسافر کېدلو نيت وکړي، نو تر څو چي هغه په عملي توګه سفر شروع نه کړي، تر هغه وخته مسافر نه ورته ويل کيږي، ځکه چي سفر د اندامونو د عمل (عملِ جوارح) نوم دی، چي هغه فقط په نيت سره نه ثابتيږي.

## يو مال کله د تجارت مال جوړيږي؟

وَإِنِ اشْتَرَىٰ شَيْئًا وَنَوَاهُ لِلتِّجَارَةِ او که يو سړی يو شی رانيسي او په هغه کي د تجارت نيت وکړي كَانَ لِلتِّجَارَةِ نو هغه به د تجارت لپاره وي لِاتِّصَالِ النِّيَّةِ بِالْعَمَلِ ځکه چي نيت د عمل سره متصل سو بِخِلَافِ مَا إِذَا وَرِثَ وَنَوَى التِّجَارَةَ په خلاف د هغه صورت چي کله دا سړی د يو شي وارث سي او د تجارت نيت يې وکړي لِأَنَّهُ لَا عَمَلَ مِنْهُ ځکه (په هغه صورت کي) د ده له طرفه هيڅ عمل نسته وَلَوْ مَلَكَهُ او که د يو شي مالک سو بِالْهِبَةِ أَوْ بِالْوَصِيَّةِ [۱] په هبه سره [۲] يا په وصيت سره أَوِ النِّكَاحِ أَوِ الْخُلْعِ [۳] يا په نکاح سره [۴] يا په خلع سره أَوِ الصُّلْحِ عَنِ الْقَوَدِ [۵] يا د قصاص په بدله کي په صلح سره وَنَوَاهُ لِلتِّجَارَةِ او د هغه د تجارت نيت يې وکړی كَانَ لِلتِّجَارَةِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به هغه د تجارت لپاره وي لِاقْتِرَانِهَا بِالْعَمَلِ ځکه چي نيت (د تجارت) د عمل سره متصل سو وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ● لَا يَصِيرُ لِلتِّجَارَةِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به (په دې ټولو صورتونو کي) د تجارت لپاره نه ګرځي لِأَنَّهَا لَمْ تُقَارِنْ عَمَلَ التِّجَارَةِ ځکه چي نيت د تجارت د عمل سره متصل نه سو وَقِيلَ: اَلِاخْتِلَافُ عَلَىٰ عَكْسِهِ او ويل سوي دي: چي اختلاف د دې پرعکس دی.

**﴿قود﴾** قصاص (د قتل بدله چي د قتل په ذريعه واخيستل سي، هغه ته قصاص ويل کيږي). **﴿اقتران﴾** نژدې کېدل، متصل کېدل (جوختېدل)، يو ځای کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې بيان سوي دي: (۱) يو سړي يو شی رانيوی، او د رانيولو په وخت کي يې د هغه تجارت نيت وکړی، نو اوس هغه شی د تجارت لپاره متعين سو، او د زکاة د شرائطو د پوره کېدلو په وخت کي په هغه کي زکاة هم واجبيږي، ځکه چي تجارت يو عمل ته ويل کيږي، او په دې صورت کي د دغه سړي نيت د عمل يعني د رانيولو سره متصل سو، او ښکاره ده چي رانيول هم د تجارت لپاره دي، نو ګواکي نيت د تجارت سره متصل سو. او کله چي نيت ديو شي د تجارت سره متصل سي، نو هغه شی به د تجارت لپاره شمارل کيږي، نو ځکه به زکاة پکښې واجب وي.

---

●القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص:۱۵. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۶۲]

(۲) بخلاف ما إذا ورث الخ دې حاصل دا دی چې که یو سړي په وراثت کي یو شی تر لاسه کړی، او په هغه کي يې د تجارت نیت وکړی، نو د هغه سړي د دې نیت اعتبار به نه کیږي، ځکه چې د تجارت تعلق د عملِ جوارح(د اندامونو د عمل) سره دی، او په پورتني صورت کي د دې سړي له طرفه هیڅ عمل نشته، بلکي د وراثت مال خو بغیر له څه کوشش او عمل څخه هغه ته حاصل سو، نو نیت له عمل څخه خالي سو، او د تجارت په باب کي داسي نیت تأثیر نه کوي، نو ځکه به دغه د وراثت مال د تجارت مال نه وي، نو زکاة به هم پکښې واجب نه وي.

(۳) دریمه مسئله دا ده چې که یو سړی د هبې(تحفې) په ذریعه سره د یو شي مالک سو، یعني بل چا و ده ته یو شی په هبه ورکړی، او ده يې مالک سو، یا بل چا د ده لپاره د یو شي وصیت کړی وو، او هغه ده ته حاصل سو، یا یوه سړي بل سړي ته خپله مینځه په نکاح ورکړه او د هغې پر مهر يې قبضه وکړه، یا پر یو سړي د خپلي ښځي مهرپاته وو، او د ښځي تر مرگ وروسته هغه ته په دې کي څه حصه حاصله سوه، یا یو چا ته د ښځي سره د خلع کولو په وخت کي مال حاصل سو، یا د مقتول ولیانو ته د قصاص په عوض کي مال حاصل سو. او په دې ټولو صورتونو کي چې چا ته څه حاصل سو هغه د تجارت نیت وکړی، نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د هغه نیت کول صحیح دي، اودا ټوله مالونه به د تجارت لپاره متعین کیږي، او زکاة به هم پکښې واجبیږي، ځکه چې په دې صورتونو کي د سړي نیت د عمل یعني د هبې د قبلولو او د وصیت او د نکاح او د خلعې او د دیت د قبلولو سره متصل دی(یعني عمل دا دی چې دې سړي دا شیان قبول کړل)، او کله چې نیت د عمل سره متصل سو، نو هغه به تأثیر کوي، نو په دې صورتونو کي به هم نیت مؤثر وي، او له دې مالونو څخه به هر یو د تجارت لپاره متعین کیږي، او په دې کي به زکاة واجب وي.

د دې په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورتونو کي د دغه سړي د نیت هیڅ اعتبار نشته، او دا مالونه به د تجارت لپاره نه وي، ځکه دلته نیت د تجارت د عمل سره متصل نه دی، ځکه چې قبلول که څه هم یو عمل دی، لیکن د تجارت سره هیڅ تعلق نه لري، نو ذکر سوي عقود یعني هبه، وصیت، خلع او داسي نور د تجارت له عقودو څخه نه سو، همدا وجه ده که مالک خپل غلام ته د تجارت اجازه ورکړي، نو هغه ته په دې عقودو کي د تجارت اجازه نه حاصلیږي، له دې څخه هم معلومیږي چې دلته نیت د عمل سره نه متصل کیږي، نو ځکه به دا مالونه د تجارت لپاره نه وي، لهذا په دې کي به زکاة هم واجب نه وي.

وقیل الاختلاف الخ فرمایي: مخکي چې کوم اختلاف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله او امام محمد رَحِمَهُ الله په مینځ کي ذکر سو، دا له حضرت امام طحاوي څخه رانقل سوی دی، لیکن علامه اسبیجابي له قاضي شهید څخه په شرح الاسبیجابي کي دا اختلاف داسي رانقل کړی دی چې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په پورتني صورتونو کي د نیت باوجود تجارت نه مني او زکاة نه واجبوي، او امام محمد رَحِمَهُ الله په دې صورتونو کي تجارت مني او زکاة واجبوي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، یعني په پورتني صورتونو کي به د نیت اعتبارنه کیږي او مذکوره مالونه به د تجات لپاره نه وي، قال الاستاذ المفتی غلام قادر النعمانی: والحاصل أن نیة التجارة إنما تعتبر إذا كانت مقارنة مع العمل وإلا فلایكفی مجرد نیة التجارة. [القول الراجح ج۱، ص۱۶۲]

## د زكاة په اداء كولو كي د نيت بيان

وَلَا يَجُوزُ أَدَاءُ الزَّكَاةِ او زكاة اداء كول جائز نه دي إِلَّا بِنِيَّةٍ مُقَارِنَةٍ لِلْأَدَاءِ مګر په داسي نيت سره چي هغه به متصل وي د اداء سره أَوْ مُقَارِنَةٍ لِعَزْلِ مِقْدَارِ الْوَاجِبِ يا به متصل وي د واجب مقدار د جلا كولو سره لِأَنَّ الزَّكَاةَ عِبَادَةٌ ځکه چي زكاة يو عبادت دی فَكَانَ مِنْ شَرْطِهَا النِّيَّةُ نو نيت به د هغه لپاره شرط وي وَالْأَصْلُ فِيهَا الِاقْتِرَانُ او په نيت كي يو ځای والی اصل دی (يعني دا چي نيت به د عبادت سره يو ځای وي) إِلَّا أَنَّ الدَّفْعَ يَتَفَرَّقُ ليکن (ځرنګه چي) وركول بېلا بېل دي فَاكْتُفِيَ بِوُجُودِهَا حَالَةَ الْعَزْلِ تَيْسِيرًا نو ځکه د آساني لپاره د جلا كولو په حالت كي د نيت پر وجود اكتفا وسوه كَتَقْدِيمِ النِّيَّةِ فِي الصَّوْمِ لکه په روژه كي نيت مخكي كول (يعني لکه په روژه كي چي كله نيت مخكي وسي نو هم كافي دی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي له نيت ځخه بغير زكاة اداء كول جائز نه دي، او كه يو سړي له نيت ځخه بغير د زكاة ټوله مال فقيرانو او مسكينانو ته وركړي، نو د هغه زكاة نه اداء كيږي، ځکه چي زكاة يو عبادت دی، نو ځرنګه چي په نورو عبادتونو مثلاً په لمانځه او نورو كي نيت شرط او ضروري دی، همدارنګه په زكاة كي هم نيت ضروري دی، او بې له نيته زكاة نه ثابتيږي.

اوس پاته سوه دا مسئله چي نيت كله كول پكار دي، په دې لړ كي اصل همدغه دی چي نيت به د اداء سره متصل وي، خو ځرنګه چي د زكاة ټوله مال يوه سړي ته نه وركول كيږي، بلكي بېلابېلو خلكو ته وركول كيږي، نو هر وار د زكاة وركولو په وخت كي نيت كول ستونزمن او سخت دي، لهذا شريعت د سختي او حرج ليري كولو لپاره دا آساني جوړه كړې ده چي كله انسان د خپل مال حساب وكتاب وكړي، او د زكاة مال له نور مال ځخه جلا كړي، نو په هغه وخت كي دي د زكاة نيت وكړي، او كله چي يې مصارفو او مسكينانو ته وركوي نو نيت ضروري نه دی (يعني هر وار نيت ضروري نه دی)، ځکه د عزل په وخت كي (يعني له نور مال ځخه د زكاة د مال د راجلا كولو په وخت كي) چي كوم نيت وسي، هغه د ټولو وارونو لپاره كافي دی، او د هر وار لپاره د نوي نيت ضرورت نسته.

كتقديم النية الخ او دا مسئله په روژه كي د نيت د مخكي كولو سره مشابه ده، يعني ځرنګه چي د روژې په نيت كي اصل دا دی چي هغه به د روژې د شروع يعني د سهار د اول سره متصل وي، خو د تكليف ليري كېدلو په وجه له دې ځخه مخكي هم نيت كول معتبر دي، همدارنګه به د مال جلا كولو په وخت كي هم نيت معتبر وي چي خلک د تكليف سره مخامخ نه سي.

## بې له نيته د ټوله مال صدقه كولو حكم

وَمَنْ تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَالِهِ او څوک چي خپل ټوله مال صدقه كړي لَا يَنْوِي الزَّكَاةَ (او) د زكاة نيت نه وكړي سَقَطَ فَرْضُهَا عَنْهُ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً له هغه ځخه د زكاة فرضيت ساقط سو لِأَنَّ الْوَاجِبَ جُزْءٌ مِنْهُ ځکه چي واجب د ټوله مال څه حصه (په زكاة كي) وركول دي فَكَانَ مُتَعَيِّنًا فِيهِ نو په ټوله مال كي به هغه حصه متعينه وي فَلَا حَاجَةَ إِلَى التَّعْيِينِ نو ځکه به (اوس) د هغه د متعينولو ضرورت نه وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د زکاة نيت نه وکړی او خپل ټوله مال يې پر غريبانو او مسکينانو صدقه (خيرات) کړی، نو استحساناً د دې سړي له غاړي څخه د زکاة فريضه ساقطيږي، ليکن قياساً د هغه له غاړي څخه د زکاة فريضه نه ساقطيږي، همدا د امام زفر او د دريو امامانو قول دی.

**د قياس دليل:** دا دی چې صدقه پر دوه قسمه ده: يوه نفلي صدقه ده او بله فرضي صدقه ده يعني زکاة، نو په دواړو کې به د نيت په ذريعه سره فرق راځي، حال دا چې په پورتني صورت کې دې سړي نيت کړی نه دی، نو ځکه به د هغه ټوله صدقه نفلي صدقه وي، او د هغه پر ذمه به د زکاة فريضه همغسې پاته وي.

**د استحسان دليل:** دا دی چې پر دې سړي د ټوله مال زکاة فرض نه دی، بلکې د مال د يوه جزء يعني د څلوېښتمې حصې زکاة پر فرض دی، او کله چې هغه ټوله مال د الله په لار کې صدقه کړی، نو ښکاره ده چې په دې صدقه کې د زکاة نصاب او د زکاة مقدار هم ولاړی، او دا سړی بريئ الذمه سو، پاته سوه د نيت نه کولو مسئله، نو هغه دلته هيڅ تاوان نه کوي، ځکه د نيت اصل کار خو په عادت او عبادت کې تميز او فرق پيدا کول دي، او په پورتني صورت کې چې کله هغه د الله لپاره ټوله مال صدقه کړی، نو د هغه نيت له عادت څخه په عبادت بدل سو، او د عبادت لپاره متعين سو، اوس بيا د بل نيت متعينولو او د زکاة لپاره د نور مال ورکولو ضرورت نسته، ځکه څرنګه چې صدقه عبادت ده، همدارنګه زکاة هم يو عبادت دی، او د فرضو نيت کول د تعيين لپاره ضروري دي، او دلته نيت متعين دی، ځکه چې د زکاة نصاب په ټوله مال کې شامل او داخل دی، نو جلا د هغه د متعينولو ضرورت نسته.

او دا مسئله داسې ده لکه يو څوک چې د روژې په مياشت (رمضان) کې مطلق د روژې نيت وکړي، نو دا نفلي روژه نه ګرځي، بلکې د رمضان روژه به وي، ځکه په دې مياشت کې صرف د رمضان روژه فرض ده، لهذا جلا د فرضي روژې نيت کول به ضروري نه وي. (بنايه ج:۳، ص:۳۷۰)

## د څه مال صدقه کولو حکم

وَلَوْ أَدّٰى بَعْضَ النِّصَابِ او که څوک د نصاب څه حصه اداء کړي سَقَطَ زَكَاةُ الْمُؤَدّٰى عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د ورکړل سوي حصې زکاة ساقطيږي لِأَنَّ الْوَاجِبَ شَائِعٌ فِي الْكُلِّ ځکه چې واجب مقدار په ټوله مال کې خور دی وَعِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ● لَا تَسْقُطُ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د دې حصې زکاة نه ساقطيږي لِأَنَّ الْبَعْضَ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ ځکه چې بعضي حصه متعينه نه ده لِكَوْنِ الْبَاقِيْ مَحَلًّا لِلْوَاجِبِ ځکه کوم مال چې پاته دی هغه (هم) د واجب (زکاة) محل دی بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اولي مسئلې. والله أعلم بالصواب.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د نصاب د مال بعضي حصه صدقه کړه، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د مؤدیٰ يعني د نصاب چې کومه حصه فقيرانو ته ورکړل سوه، د هغې زکاة ساقط سو، او کوم مال چې باقي پاته سو، د هغه زکاة واجب دی، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د مؤدیٰ زکاة هم نه ساقطيږي، بلکې کوم مال چې باقي پاته سو، په هغه کې به د ټوله نصاب زکاة واجب وي.

---

●القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كذا في الخانية ج:۱، ص:۱۲۷. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۶۵]

**د امام محمد دليل:** دا دی چي د زکاة څومره اندازه واجب ده، هغه اندازه په ټوله نصاب کي خوره او شايع ده، نو که دې سړي ټوله مال صدقه کړی وای، نو ټوله زکاة به ساقط وای، لهذا کله چي ده بعضي مال صدقه کړی، نو د هغه بعضي زکاة به ساقط وي، حاصل دا چي امام محمد رَحِمَهُ الله بعض پر کُل قياسوي، د مثال په توګه پر يوه سړي په دوو سوو درهمو کي پنځه درهمه د زکاة واجب ول، او هغه تر کال تېرېدلو وروسته څلوېښت درهمه صدقه کړل، نو اوس په دې څلوېښتو درهمو کي يو درهم زکاة هم ووتی، اوس به پر هغه په پاته يو سل و شپېته (۱۶۰) درهمو کي څلور درهمه واجب وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي د زکاة لپاره د نصاب هغه بعضي حصه متعينه نه ده کومه چي ورکړل سوه (او هغه يې نيت هم کړی نه دي)، او څومره اندازه مال چي پاته دی، هغه د واجب زکاة محل دی، يعني د زکاة ټوله مقدار له هغه څخه اداء کېدای سي، په خلاف د اولي مسئلې يعني چي کله ټوله مال صدقه کړي، نو ټوله زکاة ساقطيږي، ځکه چي د زکاة واجب مقدار خامخا په هغه کي داخل دی. والله أعلم

**راجح قول:** په پورتني مسئله کي راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، يعني د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د مؤدی زکاة هم نه ساقطيږي. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۶۵]

# بَابُ صَدَقَةِ السَّوَائِمِ

(دا) باب د څرېدونکو څارويانو د زکاة (په بيان کي) دی

**تشريح:** له دې ځايه صاحب د کتاب د أموالو د زکاة تفصيلي بيان شروع کوي، او له ټولو څخه مخکي په سوائم شروع کوي، ځکه تر ټولو مخکي د څارويانو څرلو (پوولو) طريقه په عربو کي رواج وه، او زياتره عربو څاروي درلودله، او څاروي د هغوی غټه پانګه وه، او بيا هغو په څارويانو کي اوښان ډېر درلودله، نو ځکه صاحب د کتاب په څارويانو کي تر ټولو مخکي د اوښ د زکاة فصل في الإبل عنوان شروع کوي؛ د اوښانو د مخکي کولو يوه وجه دا هم ده چي نبي ﷺ د حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه په نامه يو خط ليکلی وو، او په هغه خط کي تر ټولو مخکي د اوښانو د زکاة بيان وو، همدارنګه ابو بکر رضی الله عنه هم په دغه ترتيب سره يو خط د حضرت انس رضی الله عنه په نامه ليکلی وو، نو ممکنه ده چي د مصنف په نظر کي د دې خطونو اقتداء او اتباع هم وي.

صاحب د کتاب په عنوان کي د زکوٰة لفظ ذکر نه کړی، بلکي د صدقة لفظ يې ذکر کړی، ځکه چي په دې کي د قرآن کريم اقتداء ده، ځکه په قرآن کي هم د زکاة د مصارفو د بيان په وخت کي په إِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَاءِ سره زکاة يې سوی دی.

ښکاره دي وي چي السوائم جمع د سائمة ده، معنی يې ده: څرېدونکي څارويان يعني د ونو خوړونکي څارويان، هغه که نر وي او که ماده، دلته له سوائم څخه مراد هغه څارويان دي چي هغو د کال زياتره حصه پر بيابان وابنه خوړلي وي، او په کور کي يې کم خوړلي وي.

په سائمه کي د زکاة د واجبېدلو شرط دا دی چي په هغو سره به د شيدو حاصلولو او نسل زياتولو ګټه مقصود وي، همدا وجه ده چي په هغو سوائمو کي زکاة نشته چي د سپرلي يا د غوښو لپاره پالل کيږي، همدارنګه کوم سوائم چي د تجارت لپاره وي، په هغه کي به د تجارت والا نصاب واجب وي، يعني په تجارتي سوائمو کي به د سوائمو نصاب معتبر نه وي، بلکي د مال نصاب به معتبر وي. (بنايه ج:۳، ص:۳۷۲)

بيا سائمة پر څو قسمه ده، او د عمر د مختلفوالي په وجه د سائمة نوم او احکام هم بېلابېل دي، او هغه څو قسمه دا دي:
① بنتِ مخاض، ② بنت لبون، ③ حقة، ④ جذعه.

(۱) بنتِ مخاض د اوښ هَغه ښځينه (مادَه) بچي ته ويل کيږي چي يو کال يې پوره سوی وي او په دويم کال کي داخله سي، او نر ته يې ابنِ مخاض ويل کيږي، وجه د تسميې دا ده چي مخاض د لنګوالي درد ته ويل کيږي، او څرنګه چي اوښه هم د خپل بچي د ولادت په وخت کي په درد مبتلا کيږي، نو ځکه د اوښي بچيانو ته ابنِ مخاض او بنتِ مخاض ويل کيږي. (۲) بنت لبون هغه بچي ته ويل کيږي چي دوه کاله يې پوره سوي او په دريم کال کي داخل سي، وجه د تسميې دا ده چي کله د هغه دوه کاله پوره سي، نو مور يې بل بچی وزيږوي، او د شيدو والا سي، نو د دې بل بچي سره هغه هم د خپلي مور شيدې چيښي، نو په دې وجه هغه ته بنت لبون يا ابن لبون وايي. (۳) حقه هغه بچي ته ويل کيږي چي په څلورم کال کي داخل سي، او څرنګه چي په څلورم کال کي دا بچی د بار، او سپرتيا حقداره سي، نو ځکه هغه ته حقه وايي. (۴) جذعه هغه بچي ته ويل کيږي چي څلور کال يې پوره سوي وي او په پنځم کال کي داخل سي، او دې ته جذعه ځکه ويل کيږي چي د جذع معنیٰ ده: يو شی له بېخه کښل، او څرنګه چي په پنځم کال کي د دې بچي د شيدو غاښونه وځي، او نور غاښونه يې راځي، نو په دې وجه جذعه ورته ويل کيږي. (بنايه ج:۳، ص:۳۷۴)

# فَصْلٌ فِي الْإِبِلِ

(دا) فصل د اوښانو (د زکاة په بيان کي) دی

## د اوښانو د نصاب او زکاة مقدار

قَالَ: لَيْسَ فِي أَقَلَّ مِنْ خَمْسٍ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ فرمايي: چي له پنځو څخه په کمو اوښانو کي زکاة واجب نه دی فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا سَائِمَةً او کله چي اوښان پنځه سي او هغه څرېدونکي (هم) وي وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ او يو کال پر تېر سي فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى تِسْعٍ نو په هغو کي تر نهو اوښانو پوري يوه بزه (وزه) واجب ده فَإِذَا كَانَتْ عَشْرًا فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى أَرْبَعَ عَشْرَةَ بيا چي کله لس اوښان سي نو په هغو کي تر څوارلسو اوښانو پوري دوې بزې واجب دي فَإِذَا كَانَتْ خَمْسَ عَشْرَةَ فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى تِسْعَ عَشْرَةَ بيا چي کله پنځلس اوښان سي نو په هغو کي تر نولسو (۱۹) اوښانو پوري درې بزې واجب دي فَإِذَا كَانَتْ عِشْرِينَ فَفِيهَا أَرْبَعُ شِيَاهٍ إِلَى أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ بيا چي کله شل سي نو تر څلورويشتو پوري څلور بزې

پکښې واجب دي فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِيْنَ فَفِيْهَا بِنْتُ مَخَاضٍ بیا چې کله پنځویشت سې نو په هغو کې یوه بنت مخاض واجب ده وَهِيَ الَّتِيْ طَعَنَتْ فِي الثَّانِيَةِ او بنتِ مخاض (د اوښ) هغه ماده بچی دی چې په دویم کال کې داخل سوی وی إِلٰى خَمْسٍ وَّثَلَاثِيْنَ تر پنځه دیرشو (۳۵) اوښانو پوري (یوه بنتِ مخاض واجب ده) فَإِذَا كَانَتْ سِتًّا وَّثَلَاثِيْنَ فَفِيْهَا بِنْتُ لَبُوْنٍ بیا چې کله شپږ دیرش (۳۶) اوښان سي نو په هغو کې یوه بنتِ لبون واجب ده وَهِيَ الَّتِيْ طَعَنَتْ فِي الثَّالِثَةِ او بنتِ لبون د اوښ هغه ماده بچی دی چې په دریم کال کې داخل سوی وي إِلٰى خَمْسٍ وَّأَرْبَعِيْنَ تر پنځه څلوېښتو (۴۵) اوښانو پوري (یوه بنت لبون واجب ده) فَإِذَا كَانَتْ سِتًّا وَّأَرْبَعِيْنَ فَفِيْهَا حِقَّةٌ بیا چې کله شپږ څلوېښت (۴۶) اوښان سي نو په هغو کې یوه حقه واجب ده وَهِيَ الَّتِيْ طَعَنَتْ فِي الرَّابِعَةِ او حقه هغه ماده بچی دی چې په څلورم کال کې داخل سوی وي إِلٰى سِتِّيْنَ تر شپېتو پوري (یوه حقه واجب ده) فَإِذَا كَانَتْ إِحْدٰى وَّسِتِّيْنَ فَفِيْهَا جَذَعَةٌ بیا چې کله یو شپېته (۶۱) اوښان سي نو په هغو کې یوه جذعه واجب ده وَهِيَ الَّتِيْ طَعَنَتْ فِي الْخَامِسَةِ او جذعه هغه ماده بچی دی چې په پنځم کال کې داخل سوی وی إِلٰى خَمْسٍ وَّسَبْعِيْنَ تر پنځه اویا پوري (یوه جذعه ده) فَإِذَا كَانَتْ سِتًّا وَّسَبْعِيْنَ فَفِيْهَا بِنْتَا لَبُوْنٍ إِلٰى تِسْعِيْنَ بیا چې کله شپږ اویا (۷۶) اوښان سي نو په هغو کې تر نوي (۹۰) اوښانو پوري دوې بنتِ لبون واجب دي فَإِذَا كَانَتْ إِحْدٰى وَّتِسْعِيْنَ فَفِيْهَا حِقَّتَانِ إِلٰى مِائَةٍ وَّعِشْرِيْنَ بیا چې کله یو نوي (۹۱) اوښان سي نو په هغو کې تر یو سلو شلو (۱۲۰) اوښانو پوري دوې حقې واجب دي بِهٰذَا اشْتَهَرَتْ كُتُبُ الصَّدَقَاتِ[1] مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدغه حساب مطابق د نبي ﷺ خطونه مشهور دي (یعني د نبي ﷺ له طرفه چې د زکاة کوم خطونه صادر سوي دي، په هغو کې همدغه حساب مشهور دی).

**اللغات:** ﴿ذَوْد﴾ اوښ، په بعضي شروحو کې د ذال فتحه سره لیکل سوی دی، ﴿سَائِمَة﴾ د کال زیاتره حصه له کور څخه د باندې څرېدونکی (د یعني د وښو خوړونکی) څاروی، ﴿بِنْتُ مَخَاض﴾ د اوښ او نورو د یوه کال بچی، ﴿بِنْتُ لَبُوْن﴾ د اوښ او نورو د دوو کالو بچی، ﴿حِقَّة﴾ د څارویانو د دریو کالو بچی، ﴿جَذَعَة﴾ د څارویانو د څلورو کالو بچی، ﴿شِيَاه﴾ جمع د شَاةٌ ده: بزه (وزه)، پسه د دواړو لپاره استعمالیږي.

**تشریح:** په دې عبارت کې د اوښانو د زکاة د نصاب اندازه او د زکاة اندازه په تفصیلي توګه سره بیان سوې ده، چې هغه په خپله له ترجمې څخه څرګنده ده، په لنډه توګه تاسو دا خبره په یاده لرئ چې څرنګه د درهم نصاب دوه سوه (۲۰۰) درهمه دی، او د سرو زرو نصاب اووه نیمي تولې دی، همدارنګه د اوښانو نصاب پنځه اوښان دي، نو تر پنځو اوښانو په کمو کې زکاة واجب نه دی، لیکن کله چې د اوښانو شمېر پنځه سي، نو بیا په هغو کې یوه بزه واجب ده، او تر دې وروسته په هغه حساب سره واجبیږي، کوم چې موږ په کتاب کې په ترتیب سره بیان کړی.

---

[1] تخریج: أخرجه البخاری فی کتاب زکاة الإبل، حدیث رقم: ۱۴۵۳ – ۱۴۵۴.

د څارويانو د زکاة د نصاب مسئله او په دې نصاب کې د زکاة د وجوب مسئله أمرِ توقيفي دی، يعني خلاف القياس له نص څخه ثابت دی، چې په هغه کې عقل لره هيڅ ګنجايش نشته، نو ځکه صاحب د عنايې پر دې موقع يوه مهمه خبره ليکلې ده چې د اوښانو په نصاب کې چې کومي بزې (وزې) واجب سوي دي، د هغه وجه دا ده چې زکاة د مال په څلوېښتمه حصه کې واجبيږي، او د اوښانو نصاب د پنځو شمېره ده، نو اوس خو له دې پنځو اوښانو څخه نه يو پوره اوښ ورکول کېدای سي، او نه يو اوښ حلالېدای سي چې له هغه څخه اتمه حصه ورکول سي، ځکه په دې طريقه کې عيب هم دی، او دا طريقه له شريعت څخه خلاف هم ده، او څرنګه چې په عربو کې به د يوې بزې قيمت پنځه درهمه وو، او د اوښ کم عمره بچی به يعني بنتِ مخاض به هم عموماً په څلوېښت درهمه وو، لهذا د پنځو اوښانو قيمت (ماليت) دوه سوه (٢٠٠) درهمه سو، نو په دې دوو سوو درهمو کې د پنځو درهمو بزه په زکاة کې واجب ده، همدارنګه چې تر پنځو وروسته کله دا شمېره زياته سي، نو تر نهو (٩) اوښانو پورې يوه بزه واجب ده، بيا له لسو څخه واخله تر څوارلسو (١٤) پورې دوې بزې واجب دي. (عنايه، ج۲)

له ١٥ څخه واخله تر ١٩ اوښانو پورې درې بزې واجب دي، له ٢٠ څخه واخله تر ٢٤ اوښانو پورې څلور بزې واجب دي، له ٢٥ څخه واخله تر ٣٥ اوښانو پورې يوه بنتِ مخاض واجب ده، له ٣٦ څخه واخله تر ٤٥ اوښانو پورې يوه بنت لبون واجب ده، له ٤٦ څخه واخله تر ٦٠ اوښانو پورې يوه حقه واجب ده، له ٦١ څخه واخله تر ٧٥ اوښانو پورې يوه جذعه واجب ده، له ٧٦ څخه واخله تر ٩٠ اوښانو پورې دوې بنت لبون واجب دي، له ٩١ څخه واخلته تر ١٢٠ اوښانو پورې دوې حقې واجب دي.

بهذا اشتهرت الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د اوښانو د زکاة په باره کې پورتنی ذکر سوی تفصيل د نبي کريم ﷺ له هغو خطونو څخه را اخيستل سوی دی، کوم چې نبي ﷺ د زکاة په باره کې استولي ول، او له هغو څخه يو خط د حضرت ابو بکر رضی الله عنه دی، چې هغه حضرت ابو بکر رضی الله عنه حضرت انس رضی الله عنه ته ور استولی وو، او د صحيح البخاري په اول جلد کې پر ١٩٥ صفحه د حضرت ثمامه رضی الله عنه په حواله سره ذکر سوی دی، د نور تفصيل لپاره هغه ته رجوع وکړئ!.

## په يو سل وشلو (١٢٠) اوښانو کې د زکاة مقدار

ثُمَّ إِذَا زَادَتْ عَلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ بيا چې کله اوښان تر يو سل و شلو (١٢٠) زيات سي تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ نو فريضه به له شروع څخه راګرځي (يعني فريضه به له نوي سره شروع کيږي) فَيَكُونُ فِي الْخَمْسِ شَاةٌ مَعَ الْحِقَّتَيْنِ نو په پنځو اوښانو کې به يوه بزه (وزه) د دوو حقو سره واجب وي وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ او په لسو اوښانو کې به دوې بزې (وزې) واجب وي وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ او په پنځلسو اوښانو کې به درې بزې واجب وي وَفِي الْعِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ او په شلو اوښانو کې به څلور بزې واجب وي وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ بِنْتُ مَخَاضٍ إِلَى مِائَةٍ وَخَمْسِينَ او په پنځويشت اوښانو کې به يوه بنتِ مخاض واجب وي تر يو نيم سل (١٥٠) اوښانو پورې فَيَكُونُ فِيهَا ثَلَاثُ حِقَاقٍ نو په يونيم سل (١٥٠) اوښانو کې به درې حقې واجب وي ثُمَّ تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ بيا به فريضه له شروع څخه راګرځي فَيَكُونُ فِي الْخَمْسِ شَاةٌ وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ نو په پنځو اوښانو کې به يوه بزه، په لسو اوښانو کې به دوې بزې، او په پنځلسو اوښانو کې به درې بزې واجب وي وَفِي الْعِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ بِنْتُ مَخَاضٍ وَفِي سِتٍّ وَثَلَاثِينَ بِنْتُ لَبُونٍ

او په شلو(۲۰) اوښانو کې به څلور بزې واجب وي، په پنځويشت(۲۵) اوښانو کې به يوه بنت مخاض، او په شپږ دېرش(۳۶) اوښانو کې به يوه بنت لبون واجب وي فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَةً وَسِتًّا وَتِسْعِينَ فَفِيهَا أَرْبَعُ حِقَاقٍ إِلَى مِائَتَيْنِ نو کله چې يو سل و شپږ نوي(۱۹۰) اوښان سي نو په هغو کې به تر دوو سوو(۲۰۰) اوښانو پورې دوې حقې واجب وي ثُمَّ تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ أَبَدًا بيا به همېشه فريضه له شروع څخه راګرځي كَمَا تُسْتَأْنَفُ فِي الْخَمْسِينَ الَّتِي بَعْدَ الْمِائَةِ وَالْخَمْسِينَ لکه په هغه پنځوسو کې چې راګرځي کوم چې تر يو نيم سلو(۱۵۰) وروسته وي وَهَذَا عِنْدَنَا او دا تفصيل زموږ په نېز دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِذَا زَادَتْ عَلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ وَاحِدَةً فَفِيهَا ثَلَاثُ بَنَاتِ لَبُونٍ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې کله پر يو سل و شلو(۱۲۰) اوښانو يو اوښ زيات سي نو په هغو کې به درې بنت لبون واجب وي فَإِذَا صَارَتْ مِائَةً وَثَلَاثِينَ فَفِيهَا حِقَّةٌ وَبِنْتَا لَبُونٍ بيا چې کله يوسل و دېرش(۱۳۰) سي نو په هغو کې به يوه حقه او دوې بنت لبون واجب وي ثُمَّ يُدَارُ الْحِسَابُ عَلَى الْأَرْبَعِينَاتِ وَالْخَمْسِينَاتِ بيا به د څلوېښتو او پنځوسو پر سر حساب راګرځول کېږي فَتَجِبُ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ نو په هرو څلوېښتو کې به يوه بنت لبون واجب وي وَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ او په هرو پنځوسو کې به يوه حقه واجب وي لِمَا رُوِيَ څکه روايت سوی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● كَتَبَ إِذَا زَادَتِ الْإِبِلُ عَلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ فَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ وَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ چې نبي ﷺ په خط کې ليکلي وه چې کله اوښان تر يوسل و شلو(۱۲۰) زيات سي نو په هرو پنځوسو کې به يوه حقه او په هرو څلوېښتو کې به يوه بنت لبون واجب وي مِنْ غَيْرِ شَرْطِ عَوْدِ مَا دُونَهَا له دې څخه په کم کې د حساب د راګرځولو له شرط څخه بغير وَلَنَا أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَتَبَ● فِي آخِرِ ذَلِكَ فِي كِتَابِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ او زموږ دليل دا دی چې نبي ﷺ د حضرت عمرو ابن حزم د خط په آخر کې (دا) ليکلي دي فَمَا كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ فَفِي كُلِّ خَمْسٍ ذَوْدٍ شَاةٌ نو کوم چې له دې څخه کم سي نو په هرو پنځو اوښانو کې به يوه بزه واجب وي فَنَعْمَلُ بِالزِّيَادَةِ نو موږ پر دې زياتوب عمل کوو وَالْبُخْتُ وَالْعِرَابُ سَوَاءٌ فِي وُجُوبِ الزَّكَاةِ او بختي او عربي(دواړه ډوله اوښان) د زکاة په وجوب کې برابر دي لِأَنَّ مُطْلَقَ الْإِسْمِ يَتَنَاوَلُهُمَا څکه چې مطلق (د إبل) نوم دواړو ته شامل دی. والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿تُسْتَأْنَفُ﴾ د استفعال د باب ماضي مجهوله صيغه ده: له نوي سره شروع کول. له شروع څخه راګرځول. ﴿عَوْد﴾ د نصر د باب مصدر دی: راګرځول. دويم وار کول. ﴿بُخْت﴾ د اوښانو يو نسل دی چې بوکونه يې جګ وي. ﴿عِرَاب﴾ د عربي نسل اوښان.

---

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الزكاة، باب كيف فرض الصدقة، حديث رقم:۷۲۵۵.

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الزكاة، باب ذكر رواية عاصم بن ضمرة، حديث رقم:۷۲۶۷.

**تشريح:** تر اوسه پورې د يو سل و شلو (۱۲۰) اوښانو د زکاة بيان وو، اوس له دې ځايه دا بيانيږي چې کله اوښان تر ۱۲۰ زيات سي، نو له شروع څخه به فريضه راګرځول کيږي، له شروع څخه د راګرځولو مطلب دا دی چې تر څو له ۱۲۰ اوښانو څخه پنځه اوښان زيات نه سي، تر هغه وخته به په هغو کي صرف دوې حقې واجب وي، هو! کله چې پنځه اوښان زيات سي، او د اوښانو مجموعي شمېر ۱۲۵ سي، نو په دې شمېر کي بيا دوې حقې او يوه بزه واجب دي، تر ۱۲۹ پورې.

بيا له ۱۳۰ څخه واخله تر ۱۳۴ پورې دوې حقې او دوې بزې واجب دي، له ۱۳۵ څخه واخله تر ۱۳۹ پورې درې بزې او دوې حقې واجب دي، په ۱۴۰ کي دوې حقې او څلور بزې واجب دي تر ۱۴۴ پورې، په ۱۴۵ کي دوې حقې او يوه بنت مخاض واجب ده تر ۱۴۹ پورې، په ۱۵۰ کي درې حقې واجب دي، تر دې وروسته به بيا فريضه له شروع څخه راګرځول کيږي، نو کله چې پر ۱۵۰ اوښانو پنځه اوښان زيات سي، يعني شمېر يې ۱۵۵ اوښانو ته ورسيږي، نو بيا به په دې کي ۳ حقې او يوه بزه واجب وي، تر ۱۵۹ پورې.

له ۱۶۰ څخه واخله تر ۱۶۴ پورې درې حقې او دوې بزې واجب دي، له ۱۶۵ څخه واخله تر ۱۶۹ پورې درې حقې او درې بزې واجب دي، له ۱۷۰ څخه واخله تر ۱۷۴ پورې درې حقې او څلور بزې واجب دي، په ۱۷۵ کي درې حقې او يوه بنت مخاض واجب ده تر ۱۸۵ پورې، په ۱۸۶ کي ۳ حقې او يوه بنت لبون واجب ده، تر ۱۹۵ پورې، په ۱۹۶ کي څلور حقې واجب دي، او تر دوو سوو (۲۰۰) پورې به همدا څلور حقې واجب وي.

بيا به په هرو پنځوسو کي له شروع څخه فريضه راګرځول کيږي، لکه په ۱۵۰ کي چې را وګرځول سوه، يعني په ۲۰۵ کي څلور حقې او يوه بزه واجب ده، په ۲۲۵ کي څلور حقې او يوه بنت مخاض واجب ده، تر ۲۳۵ پورې، په ۲۳۶ کي څلور حقې او يوه بنت لبون واجب ده تر ۲۴۵ پورې، بيا به په ۲۴۶ کي تر ۲۵۰ پورې ټولې پنځه حقې واجب وي. لنډه دا چې همداسي به د هرو پنځوسو حساب کيږي.

وهذا عندنا صاحب د هدايې فرمايي چې تر ۱۲۰ وروسته او تر ۱۵۰ وروسته د استيناف طريقه يعني له شروع څخه د فريضې راګرځولو طريقه زموږ د احنافو علماؤ په نېز ده، کنې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز تر ۱۲۰ وروسته د زکاة د حساب طريقه دا ده چې له ۱۲۱ څخه تر ۱۲۹ پورې به درې بنت لبون واجب وي، ځکه چې د مال د څلوېښتمې حصې زکاة ايستل کيږي، او په څلوېښتو اوښانو کي يوه بنت لبون واجب ده، نو د څلوېښتو پر درې چنده شمېره يعني پر ۱۲۰ به د زياتوب په صورت کي تر ۱۲۹ پورې درې بنت لبون واجب وي، بيا به په ۱۳۰ کي يوه حقه او دوې بنت لبون واجب وي، بيا به په هرو څلوېښتو او پنځوسو کي حساب راګرځول کيږي، نو په هر څلوېښت کي به يوه بنت لبون او په هر پنځوس کي به يوه حقه واجب وي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د څلوېښتو او پنځوسو په مينځ کي شمېره معاف ده.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې نبي ﷺ په خط کي ليکلي دي چې کله اوښان تر ۱۲۰ زيات سي، نو په هرو پنځوسو کي يوه حقه او په هرو څلوېښتو کي يوه بنت لبون ده، او په حديث کي له څلوېښتو څخه د کم په صورت کي د فريضې راګرځولو او په هرو پنځوسو کي د يوې بزې او په هرو پنځوېشتو کي د يوه بنت مخاض او د نورو شرط نه دی لګول سوی، چې هغه د دې خبره څرګنده دليل دی چې له څلوېښتو څخه کم ټوله معاف دي، (يعني د دې خبرې بيّن دليل دی چې تر ۱۲۰ وروسته له څلوېښتو څخه د کم زياتوب (اضافې) په صورت کي زکاة نه واجبيږي).

**زموږ دليل:** دا دی چې نبي ﷺ د اوښانو د زکاة په باره کي حضرت عمرو بن حزم ﷺ ته چې کوم خط لسټولی وو. په هغه کي يې دا وضاحت کړی وو چې تر ۱۲۰ وروسته که اوښان تر ۲۵ کم وي، نو په هغه کي بنت مخاض نه واجبيږي.

خو تر ۱۲۰ وروسته به په هرو پنځو کي يوه بزه واجبيږي، له دې خط څخه دا خبره په ډاګه ښکاره کيږي چي تر ۱۲۰ وروسته له څلوېښتو څخه د کم زياتوب په صورت کي زکاة واجب دی (يعني له څلوېښتو څخه کم معاف نه دی)، ځکه چي په دې کي د غريبانو او فقيرانو فايده هم زياته ده، او پر زياتوب (اضافه) عمل هم کيږي، چي هغه يقيناً د خير او برکت سبب دی.

والبخت والعراب الخ فرمايي چي د زکاة په وجوب کي بختي او عربي هر ډول اوښان برابر دي، او هر ډول اوښان چي د زکاة نصاب ته ورسيږي، نو په هغو کي زکاة واجب دی، ځکه په حديث کي مطلق د اِبل نوم ذکر سوی، او دا دواړه قسمونه په دې نامه کي داخل او شامل دي.

**فايده:** بُخت بضم الباء د بختي جمع ده، او دا د بُخت نصر و طرف ته منسوب دي، له دې څخه مراد هغه اوښان دي چي د عربي او عجمي اوښانو له ګډي نطفې څخه پيدا سوي وي، عِراب بکسر العين د فرس عربي جمع ده، يعني خالص د عربي نسل والا اوښ. (بنايه)

## فَصْلٌ فِي الْبَقَرِ

(دا) فصل د غواوو (د زکاة په بيان کي) دی

**تشريح:** تر ټولو مخکي په دې خبره پوهېدل پکار دي چي بَقَر اسم جنس دی، د مذکر او مؤنث دواړو لپاره استعماليږي، يعني غواوو ته هم بقر ويل کيږي، او غوايانو ته هم بقر ويل کيږي، او واحد يې بَقَرَةٌ دی، دا هم د دواړو لپاره استعماليږي، او د دې په آخر کي تاء د تانيث نه ده، بلکي د وحدت تاء (تائي وحدت) ده. (بنايه ج:۳، ص:۳۸۲، فتح القدير ج:۲)،

او د بَقَر لفظ له بَقْرٌ څخه مشتق دی، د بَقْرٌ معنیٰ ده: څيرل، څرنګه چي غوايان او د غوايانو انواع هم مځکه څيري، نو ځکه پر هغو ټولو د بقر اطلاق کيږي.

او د بقر زکاة د غنم له زکاة څخه په دې وجه مخکي بيانيږي، چي بقر د جسم او قيمت دواړو په اعتبار د اِبل سره نژدې دی، نو ځکه د اِبل تر احکامو وروسته د بقر احکام ذکر کيږي.

### د غواوو (او غوايانو) د نصاب او زکاة مقدار

| |
|---|
| لَيْسَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثِيْنَ مِنَ الْبَقَرِ السَّائِمَةِ صَدَقَةٌ له ديرشو (۳۰) څخه په کمو څرېدونکو (دباندي وښو خوړونکو) غواوو کي زکاة واجب نه دی فَإِذَا كَانَتْ ثَلَاثِيْنَ سَائِمَةً بيا چي کله ديرش څرېدونکي غواوي سي وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ او پر هغو يو کال تېر سي فَفِيْهَا تَبِيْعٌ أَوْ تَبِيْعَةٌ نو په هغو کي يو سخوندر يا يوه سخوندره واجب ده وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ فِي الثَّانِيَةِ او له سخوندر او سخوندري څخه مراد (د غوا يا ګاميښي) هغه بچی دی چي په دويم کال داخل سوی وي |

وَفِي أَرْبَعِينَ مُسِنٌّ أَوْ مُسِنَّةٌ او په څلوېښتو غواوو کي يو مُسن يا مُسنة ده وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ فِي الثَّالِثَةِ او مسن يا مسنه هغه بچي دی چي په دريم کال کي داخل سوی وي بِهٰذَا أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● مُعَاذًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم په دې سره نبي ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته حکم کړی وو.

**اللغات:** ﴿تبيع﴾ دغوا (يا ګاميښي) د يوه کال سخوندر (يعني هغه چي يو کال يې پوره سوی وي او په دويم کي وي)
﴿مسن﴾ دغوا (يا ګاميښي) د دوو کالو سخوندر (يعني چي دوه کاله يې پوره سوي وي او په دريم کي وي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** خو بالکل ښکاره دی چي د بقر يعني دغوا او غويي، او د بقر د انواعو يعني د ګاميښي د زکاة د نصاب مقدار دېرش (۳۰) دی، نو که دا څاروبان دېرشو ته ورسيږي، او سائمه هم وي، او يو کال هم پر تېر سي، نو بيا په هرو دېرشو کي يوه تبيعه واجب ده. تبيع مذکر او تبيعه مؤنث ده، دا د بقر او نورو هغه بچي ته ويل کيږي، چي يو کال يې پوره سوی وي او په دويم کال کي داخل سوی وي، دې ته د تبيع ويلو وجه دا ده چي په دويم کال کي هم دا بچی د خپلي مور تابع وي، او په خپلي مور پسې وي.
بيا چي کله د بقر شمېره تر څلوېښتو ورسيږي، نو بيا په هغو کي يو مُسن يا مُسنه واجب ده. مسن مذکر او مسنة مؤنث دی، او دا هغه بچي ته ويل کيږي چي دوه کاله يې پوره سوي وي او په درېم کال کي وي، دې ته د مسن ويلو وجه دا ده چي دا له سن څخه مشتق دی، معنی يې ده: عمر زياتېدل (او غاښ ته هم سن ويل کيږي)، څرنګه چي د تبيع او تبيعه په پرتله کي د مسن او مسنه عمر هم زيات وي، نو ځکه هغوی په دې نامه سره نومول سوي دي، يا وجه دا ده چي په دې عمر کي د هغوی غاښونه راوځي او ټينګيږي، والله أعلم.
صاحب د هدايې فرمايي چي د بقر د زکاة دا ذکر سوی نصاب د نبي ﷺ له هغه حکم او فرمان څخه را اخيستل سوی دی، کوم چي يې حضرت معاذ ابن جبل رضي الله عنه ته په هغه وخت کي وکړی، څه وخت چي يې هغه د يمن حاکم جوړوی، او يمن ته يې استوی.

## په څلوېښتو (۴۰) غواوو کي د زکاة مقدار

فَإِذَا زَادَتْ عَلَى أَرْبَعِينَ بيا چي کله غواوي تر څلوېښتو زياتي سي وَجَبَ فِي الزِّيَادَةِ بِقَدْرِ ذٰلِكَ إِلَى سِتِّينَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په زياتو کي تر شپېتو پوري په هغه اندازه سره زکاة واجب دی فَفِي الْوَاحِدَةِ الزَّائِدَةِ رُبُعُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ نو په يوه زياته (غوا) کي د مسنې څلوېښتمه حصه واجب ده وَفِي الِاثْنَتَيْنِ نِصْفُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ او په دوو زياتو (غواوو) کي د مسنې شلمه حصه واجب ده وَفِي الثَّلَاثَةِ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ عُشْرِ مُسِنَّةٍ او په درې زياتو (غواوو) کي د مسنې درې څلوېښتمي حصې واجب دي وَهٰذِهِ رِوَايَةُ الْأَصْلِ او دا د مبسوط روايت دی لِأَنَّ الْعَفْوَ ثَبَتَ نَصًّا بِخِلَافِ الْقِيَاسِ ځکه عفوه کېدل له نص څخه د قياس خلاف ثابت دي وَلَا نَصَّ هُنَا او دلته هيڅ نص نسته وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْهُ أَنَّهُ لَا يَجِبُ فِي الزِّيَادَةِ شَيْءٌ او حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت کړی دی چي په

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الزكاة، باب في زكاة السائمة، حديث رقم: ۵۷۲.

زياتوب کي هيڅ نه واجبيږي حَتّٰى تَبْلُغَ خَمْسِيْنَ تر دې چي هغه زياتوب تر پنځوسو پوري ورسيږي ثُمَّ فِيْهَا مُسِنَّةٌ وَرُبْعُ مُسِنَّةٍ أَوْ ثُلُثُ تَبِيْعٍ نو بيا په هغو کي يوه پوره مسنه او ديوې مسنې څلورمه حصه واجب ده يا (يوه پوره مسنه او) د تبيع دريمه حصه واجب ده لِأَنَّ مَبْنٰى هٰذَا النِّصَابِ عَلٰى أَنْ يَكُوْنَ بَيْنَ كُلِّ عَقْدَيْنِ وَقْصٌ ځکه چي د دې نصاب بنياد پر دې خبره دی چي د هرو دوو عقدونو (يعني د هرو دوو لسمو حصو) مينځ به عفوه (معاف) وي وَفِيْ كُلِّ عَقْدٍ وَاجِبٌ او په هر عقد (لسمه حصه) کي به زکاة واجب وي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ●: لَا شَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتّٰى تَبْلُغَ سِتِّيْنَ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په زياتوب کي هيڅ شی واجب نه دی تر دې چي زياتوب تر شپېتو (۶۰) پوري ورسيږي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ❶ لِمُعَاذٍ ځکه نبي ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته (داسي) وفرمايل لَا تَأْخُذْ مِنْ أَوْقَاصِ الْبَقَرِ شَيْئًا "(چي) د غوا له اوقاصو څخه هيڅ شی مه اخله!" وَفَسَّرُوْهُ بِمَا بَيْنَ أَرْبَعِيْنَ إِلٰى سِتِّيْنَ او علماؤ د اوقاص تفسير له څلوېښتو څخه د شپېتو تر مينځه پوري کړی دی (يعني نبي ﷺ وفرمايل: چي له څلوېښتو څخه تر شپېتو پوري هيڅ شی مه اخله) قُلْنَا: قَدْ قِيْلَ إِنَّ الْمُرَادَ مِنْهَا الصِّغَارُ موږ وايو: چي دا (هم) ويل سوي چي (دلته) له اوقاص څخه مراد کوچني بچيان دي ثُمَّ فِي السِّتِّيْنَ تَبِيْعَانِ أَوْ تَبِيْعَتَانِ بيا په شپېتو غواوو کي دوه تبيع دي يا دوې تبيعې دي وَفِيْ سَبْعِيْنَ مُسِنَّةٌ وَتَبِيْعٌ او په اويا (۷۰) غواوو کي يوه مسنه ده او يو تبيع دی وَفِيْ ثَمَانِيْنَ مُسِنَّتَانِ او په اتيا (۸۰) غواوو کي دوې مسنې دي وَفِيْ تِسْعِيْنَ ثَلَاثَةُ أَتْبِعَةٍ او په نوي (۹۰) غواوو کي درې تبيع دي وَفِي الْمِائَةِ تَبِيْعَانِ وَمُسِنَّةٌ او په سلو کي دوه تبيع او يوه مسنه ده وَعَلٰى هٰذَا او هم پر دغه قياس (حساب کول پکار دي) فَيَتَغَيَّرُ الْفَرْضُ فِيْ كُلِّ عَشْرٍ مِنْ تَبِيْعٍ إِلٰى مُسِنَّةٍ وَمِنْ مُسِنَّةٍ إِلٰى تَبِيْعٍ نو (د زکاة) فرض به په هرو لسو کي له تبيع څخه د مسنه و طرف ته او له مسنه څخه د تبيع و طرف ته بدليږي لِقَوْلِهِ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي فِيْ كُلِّ ثَلَاثِيْنَ مِنَ الْبَقَرِ تَبِيْعٌ أَوْ تَبِيْعَةٌ (چي) په هرو دېرشو (۳۰) غواوو کي يو تبيع يا يوه تبيعه ده وَفِيْ كُلِّ أَرْبَعِيْنَ مُسِنٌّ أَوْ مُسِنَّةٌ او په هرو څلوېښتو (۴۰) غواوو کي يو مسن يا يوه مسنه ده وَالْجَوَامِيْسُ وَالْبَقَرُ سَوَاءٌ او (په دې مسئله کي) کاميښي او غواوي برابري دي لِأَنَّ إِسْمَ الْبَقَرِ يَتَنَاوَلُهُمَا ځکه د بقر نوم دواړو ته شامل دی إِذْ هُوَ نَوْعٌ مِنْهُ ځکه چي کاميښه هم د غوا يو قسم دی إِلَّا أَنَّ أَوْهَامَ النَّاسِ لَا تَسْبِقُ إِلَيْهِ فِيْ دِيَارِنَا لِقِلَّتِهِ ليکن زموږ په علاقو کي د کاميښو د کمښت په وجه د خلکو ذهنونه (له بقر) څخه د کاميښي و طرف

---

● القول الراجح: هو هذا قول الصاحبين، كذا في رد المحتار ج:٢، ص:٢٠، و في جوامع الفقه: هو المختار وذكر الاسبيجابي أن الفتوى على قولهما وهو لا شئ في الزيادة حتى تبلغ ستين، مجمع الانهر ج:١، ص:١٩٩. [القول الراجح، ج:١، ص:١٦٦]

❶ تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرىٰ في كتاب الزكاة، باب كيف فرض صدقة البقر، حديث رقم: ٧٢٩٣.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الزكاة، باب ماجاء في زكاة البقر، حديث رقم:٦٢٢.

ته مخکېتوب نه کوي (يعني زموږ د مرغينان او ماوراء النهر په علاقو کې د خلکو خيال له بقر څخه د ګامېښې و طرف ته نه ځي، ځکه چې دلته ګامېښې ډېرې کمې دي) فَلِذٰلِكَ لَا يَحْنَثُ بِهٖ فِيْ يَمِيْنِهٖ لَا يَأْكُلُ لَحْمَ بَقَرٍ همدا وجه ده چې قسم کوونکی به په خپل (دې) قسم کې چې "د بقر غوښې به نه خورم" (د ګامېښې د غوښو په خوړلو سره) نه حانثيږي.

**اللغات:** ﴿عفو﴾ زيات، اضافي، معاف ﴿جُدّ﴾ لسمه حصه (شلمه، ډېرشمه او داسې نور)، ﴿وقص﴾ زائد مقدار، هغه چې معاف وي، صاحب د اثمار الهدايه وايي چې د دوو عمرونو يا دوو عددونو په مينځ کې چې کوم عدد وي هغه ته وقص ويل کيږي، ﴿جواميس﴾ جمع د جاموس ده: ګامېښه، ﴿أوهام﴾ جمع د وَهْم ده: سوچ، خيال، ذهن.

**تشريح:** په تېره مسئله کې ذکر سوه چې په ډېرشو غواوو کې به يوه تبيعه واجب وي، او په څلوېښتو غواوو کې به يوه مسنه واجب وي، لېکن که غواوې تر څلوېښتو زياتې سوې، نو په دې کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه درې روايتونه دي: (۱) اول روايت د مبسوط روايت دی، هغه دا دی چې که تر څلوېښتو يو بقر زيات سو، نو په ۴۱ کې به يوه مسنه او د يوې مسنې څلوېښتمه حصه واجب وي، او د دوو په زياتوب (يعني ۴۲) کې به يوه مسنه او د يوې مسنې شلمه حصه واجب وي، او د دريو په زياتوب (يعني په ۴۳) کې به يوه مسنه او د دويمې مسنې درې څلوېښتمې حصې واجب وي.

**دليل:** د دې روايت دليل دا دی چې د ډېرشو او څلوېښتو په مينځ کې د يوشي نه واجبېدل او زکاة معاف کېدل خلافُ القياس له نص څخه ثابت دي، او دلته له څلوېښتو څخه د زيات په معاف کېدلو کې هيڅ نص نسته، نو ځکه به له څلوېښتو څخه په زيات کې معاف کېدل يعني زکاة نه واجبېدل په رايه او قياس سره نه ثابتيږي، ځکه چې مال د زکاة د وجوب سبب دی، او په خپله اندازه سره نصاب تاکل جائز نه دي، نو کله چې غواوې تر څلوېښتو زياتې سي، نو په هغه زياتوب او اضافه کې به فقط په خپله رايه عفوه (معافوالی) ثابتول يعني زکاة نه واجبول جائز نه وي.

(۲) دويم روايت حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت کړی دی، د دغه روايت حاصل دا دی چې له څلوېښتو څخه په زيات کې هيڅ شی واجب نه دی، لېکن که زياتوب (اضافه) تر پنځوسو ورسېږي، يعني پر څلوېښتو غواوو لس غواوې نورې زياتې سوې، او پنځوس سوې، نو په دې کې به يوه مسنه او د يوې مسنې څلورمه حصه واجب وي، يا به يوه مسنه او د يوې تبيعې دريمه حصه واجب وي، خلاصه دا چې د څلوېښتو او پنځوسو مينځ عفوه دی، لېکن په پنځوسو کې زکاة واجب دی، **دليل:** د دې روايت دليل دا دی چې د بقر د نصاب بنياد پر دې خبره دی چې د هرو دوو[۲] لسو مينځ به عفوه (وقص) وي، او په هر لسو کې به وجوب وي، په دې اعتبار سره تر نصاب وروسته په ډېرشو کې يوه تبيعه واجب ده، او تر هغه وروسته د ډېرشو او څلوېښتو مينځ وقص يعني معاف دی، نو له ۳۱ څخه تر ۳۹ پورې هيڅ شی واجب نه دی، او بيا په لسمه حصه يعني په څلوېښتو کې مسنه واجب ده، نو وګورئ چې څرنګه له ۳۱ څخه تر ۳۹ پورې معاف دی، او په ۳۰ او ۴۰ کې وجوب دی، خاص همدارنګه به له ۴۱ څخه تر ۴۹ پورې معاف وي، او پنځوس کوم چې لسمه حصه ده، په هغه کې به يوه مسنه او د بلې مسنې څلورمه حصه واجب وي.

دريم روايت دا دی چې له څلوېښتو څخه تر شپېتو پورې هيڅ زکاة واجب نه دی، (يعني په ۴۰ کې خو يوه مسنه ده، لېکن بيا له ۴۱ څخه تر ۵۹ پورې عفوه دی، او هيڅ شی واجب نه دی، بيا چې کله دا شمېره ۶۰ ته ورسيږي، نو په دې کې دوې تبيعې واجب دي)، همدا قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله، امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله هم دی،

**دليل:** د دې روايت دليل دا دی چې نبي ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته فرمايلي وو: لا تأخذ من أوقاص البقر شيئا. او د لغت علماؤ د وقص تفسير د څلوېښتو او شپېتو په مينځ سره کړی دی (يعني له څلوېښتو څخه واخله تر شپېتو پورې چې

کوم د مينځ شمېره ده، هغه ته وقص وېل کېږي)، يعني "د څلوېښتو او شپېتو په مينځ کې د بقر زکاة مه اخله"، ځکه چې دا عفوه دی، زموږ له طرفه د دې دليل جواب دا ورکول سوی دی چې ځيني حضراتو له اوقاص څخه د بقر کوچني بچيان يعني ګلګيان مراد کړي دي، يعني د بقر کوم بچيان چې د يوه کال نه وي، د هغو زکاة مه اخله، تر دې تأويل وروسته دا روايت د صاحبينو دليل نه سي جوړېدلای. نو له دې روايت څخه به د ما بين الأربعين والستين د عفوي حکم نه ثابتيږي. حاصل دا چې دلته هيڅ داختلاف او نزاع خبره نسته، صفا او سيده خبره دا ده چې په أوقاص کي زکاة واجب نه دی، نه د صاحبينو او ائمه ثلاثه وو په نېز او نه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز (د دې روايت مطابق)، هغه که له أوقاص څخه ما بين الأربعين والستين مراد وي، او که ګلګيان او کوچني بچيان مراد وي.

ثم في الستين الخ ماتن فرمايي چې په شپېتو غواوو کي دوې تبيعې دي، او په اويا غواوو کي يوه مسنه او يوه تبيعه ده، يعني د څلوېښتو لپاره يوه مسنه ده او د دېرشو لپاره يوه تبيعه ده، او په اتيا غواوو کي دوې مسنې دي، په نوي (۹۰) کي درې تبيعې دي، او په سلو کي دوې تبيعې او يوه مسنه ده، او هم پر دغه حساب به قياس کيږي، نو پر هرو لسو به فرض يعني د زکاة وجوب له تبيعه څخه د مسنه و طرف ته او له مسنه څخه د تبيعه و طرف ته بدليږي، د مثال په توګه په سلو کي دوې تبيعې او يوه مسنه ده، نو په يو سل و لسو (۱۱۰) کي به دوې مسنې او دوې تبيعې وي، او په يو سل و شلو (۱۲۰) کي به درې مسنې وي، او په يو سل و دېرشو (۱۳۰) کي به درې تبيعې او يوه مسنه وي، على هذا القياس.... دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: في كل ثلثين من البقر تبيع أو تبيعة وفي كل أربعين مسن أو مسنة.

والجواميس الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې په زکاة کي د ګاميښې او غوا حکم برابر دي، نو په دېرشو (۳۰) ګاميښو کي د يوه کال بچی واجب دي، او په څلوېښتو ګاميښو کي دوه کلیزه بچی واجب دي، دليل دا دی چې د بقر لفظ غوا او ګاميښې دواړو ته شامل د، غويی او د ګاميښې نر هم د بقر په جنس کي داخل دي. صاحب د هدايې فرمايي چې لفظ د بقر دواړو ته په دې وجه شامل دی چې ګاميښه هم يو ډول غوا ده، خو ځرنګه چې زموږ د مرغينان او په شاوخوا علاقو کي ګاميښې ډېرې لږ دي، نو ځکه د بقر په ويلو سره د خلکو خيال د ګاميښې و طرف ته نه ځي، همدا وجه ده که يو څوک قسم وکړي چې زه به د بقر غوښې نه خورم، نو د ګاميښې د غوښو په خوړلو سره نه حانثيږي. والله أعلم بالصواب



# فَصْلٌ فِي الْغَنَمِ

## (دا) فصل د وزو (او د پسونو) د زکاة (په بیان کي) دی

**تشریح:** صاحب د هدایې تر دې فصل وروسته فصل فی الخیل یعني د آس د زکاة احکام بیانوي، د بزو(وزو) او پسونو د زکاة د مخکي کولو وجه دا ده چي بزې او پسونه په شمېر کي تر نورو څارویانو زیات وي، مالدار او غریب یې ټوله لري، نو د دوی د احکامو او مسائلو ضرورت د آسونو د احکامو په مقابله کي زیات دی، نو په دې وجه د غنم احکام مخکي بیانوي، یا دا چي د وزو او پسونو د زکاة مسئله متفق علیه ده، او د آسونو د زکاة مسئله مختلف فیه ده، او متفق علیه شی تر مختلف فیه شي مخکي وي، نو ځکه د متفق علیه شي مسائل مخکي بیانوي. (عنایه ج۲)

لفظ د غنم اسم جنس دی، مذکر او مؤنث دواړو ته شامل دی، همدارنګه وزې او پسونه ټوله په دې لفظ کي داخل دي،(موږ د آسانی لپاره په راروانه کي د دې ترجمه په وزې(بزې) سره کوو، همدارنګه شاة هم دواړو ته ویل کیږي)، او دې ته د غنم ویلو وجه دا ده چي بزه او پسه خو نه د جهاد آلې دي، او نه د دفاع آلې دي، بلکي د هر چا لپاره غنیمت دي. (بنایه ض:۳، ص:۳۸۹)

### د وزو (بزو) د نصاب او زکاة مقدار

لَيْسَ فِي أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعِينَ مِنَ الْغَنَمِ السَّائِمَةِ صَدَقَةٌ له څلوېښتو څرېدونکو وزو څخه په کمو وزو کي زکاة واجب نه دی فَإِذَا كَانَتْ أَرْبَعِينَ سَائِمَةً وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ لیکن کله چي څلوېښت څرېدونکي وزې(بزې) سي او یو کال پر تېر سي فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ نو تر یو سل و شلو(۱۲۰) پورې په هغو کي یوه بزه واجب ده فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةً فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى مِائَتَيْنِ بیا چي کله یوه بزه زیاته سي نو په هغو کي تر دوو سوو(۲۰۰) پورې دوې بزې واجب دي فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةً فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ بیا چي کله یو بزه زیاته سي نو په هغو کي درې بزې واجب دي فَإِذَا بَلَغَتْ أَرْبَعَمِائَةٍ فَفِيهَا أَرْبَعُ شِيَاهٍ بیا چي کله څلور سوه بزې سي نو په هغو کي څلور بزې واجب دي ثُمَّ فِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٍ شَاةٌ بیا په هر و سلو کي یوه بزه واجب ده هَكَذَا وَرَدَ الْبَيَانُ فِي كِتَابِ رَسُولِ اللهِ ﷺ [1] وَفِي كِتَابِ أَبِي بَكْرٍ ﷺ همداسي بیان د نبي ﷺ په خط کي او د ابو بکر ﷺ په خط کي راغلی دی وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او هم پر دې بیان اجماع سوې ده.

**اللغات:** ﴿غنم﴾ بزه(وزه)، او پسه ته وهم ویل کیږي(یعني د دواړو لپاره استعمالیږي)، ﴿سائمة﴾ ټوله کال یا د کال زیاتره حصه دباندې څرېدونکی(وابنه خورونکی) څاروی، ﴿حول﴾ کال، ﴿شیاه﴾ جمع د شاةٌ ده: بزه(وزه).

---

[1] تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب زكاة الغنم، حديث رقم:۱۴۵۴.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې په وزو کې د زکاة د نصاب شمېر څلوېښت دی، نو که د يو سړي سره څلوېښت دانې سائمه بزې جمع سوې، او پر هغوی يو کال تېر سو، نو پر دې سړي يوه د زکاة بزه واجب ده، نور تفصيل يې دا دی:

له ۴۰ څخه تر ۱۲۰ پورې يوه بزه واجب ده، له ۱۲۱ څخه تر ۲۰۰ پورې دوې بزې واجب دي، له ۲۰۱ څخه تر ۳۹۹ پورې درې بزې واجب دي، په ۴۰۰ سوه کې ۴ بزې واجب دي.

تر دې وروسته به په هر و سلو کې يوه بزه واجبيږي، مثلاً په ۵۰۰ کې به ۵، او په ۶۰۰ کې به ۶ بزې واجب وي.

**دليل:** د دې حساب دليل دا دی چې نبي ﷺ او د نبي ﷺ نائب ابوبکر رضي الله عنه چې د وزو د زکاة په باره کې کوم خطونه ليکلي دي، په هغو کې د دغه اندازې مطابق احکام او مسائل بيان سوي دي، او بيا پر دې حساب د ټوله امت اجماع سوې ده، او همدا د ټولو فقهاؤ او څلورو اماماتو مذهب دی.

## د بزې او پسه حکم برابر دی او په دې باره کې نور تفصيل

وَالضَّأْنُ وَالْمَعْزُ سَوَاءٌ پسه او وزګرې (د نصاب په مسئله کې) برابر دي (يعني د بزو، وزګرو، ميږو او پسونو نصاب يو شان دی) لِأَنَّ لَفْظَ الْغَنَمِ شَامِلَةٌ لِلْكُلِّ ځکه چې د غنم لفظ ټولو ته شامل دی وَالنَّصُّ وَرَدَ بِهِ او حديث د غنم په باره کې راغلی دی وَيُؤْخَذُ الثَّنِيُّ فِي زَكَاتِهَا او د غنم په زکاة کې به ثني اخيستل کيږي وَلَا يُؤْخَذُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ او له پسو څخه به جذع نه اخيستل کيږي إِلَّا فِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ مګر له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه د حضرت حسن بن زياد رَحِمَهُ الله په روايت کې وَالثَّنِيُّ مِنْهَا مَا تَمَّتْ لَهُ سَنَةٌ او له غنم څخه ثني هغه بچی دی چې يو کال يې پوره سوی وي وَالْجَذَعُ مَا أَتَى عَلَيْهِ أَكْثَرُهَا او جذع هغه بچی چې پر هغه د يوه کال زياتره حصه تېره سوې وي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَهُوَ قَوْلُهُمَا[1] او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی او دا د صاحبينو قول (هم) دی أَنَّهُ يُؤْخَذُ الْجَذَعُ چې جذع به اخيستل کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[2] ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي إِنَّمَا حَقُّنَا الْجَذَعُ وَالثَّنِيُّ زموږ حق جذع او ثني دی وَلِأَنَّهُ يُتَأَدَّى بِهِ الْأُضْحِيَةُ او په دې وجه چې په جذع سره قرباني اداء کيږي فَكَذَا الزَّكَاةُ نو زکاة به هم په اداء کيږي وَجْهُ الظَّاهِرِ حَدِيثُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَوْقُوفًا[3] وَمَرْفُوعًا د ظاهر روايت دليل د حضرت علي رضي الله عنه حديث دی چې هغه موقوفاً هم روايت سوی دی او مرفوعاً هم (هغه دا دی) لَا يُؤْخَذُ فِي الزَّكَاةِ إِلَّا الثَّنِيُّ فَصَاعِدًا "چې په زکاة کې به صرف ثني يا له هغه څخه زيات اخيستل کيږي" وَلِأَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ الْوَسَطُ او په دې وجه (هم) چې واجب د مېنځوی درجې (څاروی) دی وَهٰذَا مِنَ الصِّغَارِ او جذعه له کوچنيو (څارويو څخه) ده وَلِهٰذَا لَا يَجُوزُ فِيهَا الْجَذَعُ مِنَ

---

● القول الراجح: هٰذا القول الثاني يعني ما رواه الصاحبان، كذا في فتح القدير ج:۲، ص:۱۳۶، و قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وعنه جواز الجذع من الضأن وهو قولهما والدليل يرجحه، الدر المختار ج:۲، ص:۲۱. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۶۷]

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الضحايا، باب ما يجوز في الضحايا من السن، حديث رقم:۲۷۹۹ بمعناه.

● تخريج: أخرجه النسائي في كتاب الضحايا، باب المسنة والجذعة، حديث رقم:۴۳۸۳.

الْمَعْزِ همدا وجه ده چي د وزګري (يعني د بزې) جذع په قرباني کي جائز نه ده وَجَوَازُ التَّضْحِيَةِ بِهِ عُرِفَ نَصًّا او په جذعي سره د قرباني جائز کېدل(يعني د پسه د جذعي د قربانۍ جواز) په حديث سره معلوم سوی دی وَالْمُرَادُ بِمَا رُوِيَ الْجَذَعَةُ مِنَ الْإِبِلِ او (د صاحبينو) په بيان سوي روايت کي له جذعي څخه داوښ جذع مراد ده(يعني داوښ په جذع کي زموږ حق دی).

**اللغات:** ﴿ضَأن﴾ پسه(ګډ)، ﴿مَعْز﴾ وزګري، سېرلی، ﴿ثَنِي﴾ د بزې يا پسه د يوه کال بچی، ﴿جَذَع﴾ د څارويانو هغه بچي چي تريوه کال کم وي يعني د اتو او نهو مياشتو وي.

**تشريح:** د عبارت ترحل مخکي په دې خبره پوه سئ چي د ضَأن معنیٰ ده: پسه، او د معز معنیٰ ده: سېرلی، او ثنی د ضأن او معز هغه بچي ته ويل چي يو کال يې پوره سوی وي، او دويم يې شروع سوی وي، همدغه ثنی به په زکاة کي اخيستل کيږي، د دې په مقابله کي جذع ده، جذع هغه بچي ته ويل کيږي، چي تريوه کال کم وي، او د بعضو قول دا دی چي د نهو يا اتو مياشو وي، د ظاهر روايت مطابق به دا په زکاة کي نه اخيستل کيږي، او په دې کي اختلاف هم دی.

**صورت د مسئلې:** دا دی چي د نصاب د بشپړتيا په حواله سره ضأن او معز دواړه برابر دي، يعني که ضأن او معز دواړه سره ګډ وي، لېکن له دوی څخه يو هم د نصاب په اندازه يعني څلوېښت داني نه وي، لېکن د دواړو مجموعه د نصاب شمېر ته رسيږي، نو بيا به دواړه سره يو ځای کيږي، او زکاة به يې ايستل کيږي، ځکه چي لفظ د غنم ضأن او معز دواړو ته شامل دی.

او د نبي کريم ﷺ په دې فرمان: فی کل أربعين من الغنم شاة کي چي کوم د الغنم لفظ راغلی دی، هغه د ضأن او معز دواړو قسمونو ته شامل دی، او په عبارت کي له نص څخه همداغه حديث مراد دی.

ويؤخذ الثنی الخ فرمايي چي د غنم په زکاة کي به ثنی اخيستل کيږي، هغه که د ضَأن ثنی وي او که د معز، او د ظاهر روايت مطابق به د ضأن جذعه نه اخيستل کيږي، لېکن له حسن بن زياد رَحِمَهُ الله څخه چي د امام صاحب کوم روايت را نقل سوی دی، په هغه کي دا صراحت سوی دی چي په زکاة کي به د ضأن جذعه هم اخيستل کيږي، او همدا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی. **دليل:** د دې حضراتو دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: إنما حقنا الجذعة والثنی، (يعني زموږ هغه حق کوم چي موږ د غريبانو او فقيرانو لپاره د زکاة په توګه له شتمنو خلکو څخه اخلو هغه جذعه او ثني دواړه دي)، له دې څخه معلومه سوه چي جذعه هم په زکاة کي ورکول کېدای او اخيستل کېدای سي.

**عقلي دليل:** دا دی چي څرنګه زکاة عبادت دی، همدارنګه قرباني هم يو عبادت دی، او د جذعې قرباني صحيح ده، نو ځکه به هغه په زکاة کي ورکول هم صحيح وي، صاحب د هدايې د ولأنه الخ څخه همدغه خبره بيان کړې ده.

وجه الظاهر الخ د ظاهر روايت دليل د حضرت علي کرم الله وجهه هغه روايت دی، کوم چي موقوفاً او مرفوعاً دواړه ډوله را نقل سوی دی، چي مضمون يې داسي دی: لا يؤخذ فی الزکوٰة إلا الثنی فصاعدا، (يعني په زکاة کي به يا ثني اخيستل کيږي، يا به له هغه څخه د زيات عمر والا څاروی اخيستل کيږي).

**عقلي دليل:** دا دی چي په زکاة کي د اوسط(مينځوی) درجې څاروی ورکول واجب دي، او جذعه د کوچني والي په جه د اوسط له حد او لږ ليک څخه وتلې ده، نو په دې حواله سره به هم دا په زکاة کي ورکول صحيح نه وي، همدا وجه ده چي د معز جذعه هم په زکاة کي ورکول جائز نه دي.

وجواز الأضحية الخ له دې ځايه د صاحبينو د قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي ستاسو قياس يعني زکاة پر قرباني قياسول صحيح نه دي، ځکه چي د جذعې د قرباني جواز په نص يعني په حديث سره ثابت دی، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله دا حديث رانقل کړی دی: نعمت الأضحية الجذع من الضأن، (يعني د ضأن د جذعي قرباني ښه قرباني ده)، نو جذع به له قرباني ځخه د زکاة و طرف ته نه متعدي کيږي، او زکاة د قرباني په معنیٰ سره هم نه دی، چي زکاة دې پر قرباني قياس کړی سي، پاته سو د صاحبينو ذکر سوی حديث: إنما حقنا الجذعة والثني، نو د هغه جواب دا دی چي په دې حديث کي له جذعي ځخه داوښ جذع مراد ده، نه د ضأن، لهذا دا به په دليل کي ذکر کول صحيح نه وي.

## په زکاة کي نر او ماده دواړه قسمه خارويان اخيستل صحيح دي

وَيُؤْخَذُ فِي زَكَاةِ الْغَنَمِ الذُّكُورُ وَالْإِنَاثُ او د غنم (بزې) په زکاة کي نر او ماده دواړه اخيستل کېدلای سي لِأَنَّ اِسْمَ الشَّاةِ يَنْتَظِمُهُمَا ځکه چي د شاة نوم دواړو ته شامل دی وَقَدْ قَالَ الطَّيْلاً ❶ فِي أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ او نبي ﷺ فرمايلي دي چي په ځلوېښتو بزو کي يوه بزه واجب ده، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿ذكور﴾ جمع ده، واحد يې ذکر دی: مذکر، نر، ﴿إناث﴾ جمع ده، واحد يې أنثى دی: مؤنث، ماده (ښځه).

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره چي د غنم دواړه قسمونه يعني د ضأن او معز نر او ماده دواړه په زکاة کي اخيستل او ورکول جائز دي، دليل دا دی چي د نبي ﷺ په دې قول: في أربعين شاة شاة، کي د شاة لفظ راغلی دی، او د شاة لفظ نر او ماده دواړو ته شامل دی، نو ځکه به په زکاة کي که نر وي او که ماده دواړه ورکول صحيح وي.



# فَصْلٌ فِي الْخَيْلِ

(دا) فصل د آسانو (د زکاة په بيان کي) دی

**تشريح:** ځرنګه چي آسونه قيمتًا ګران دي، او د هر چا سره نه وي، بلکي د يو کس نا کس سره وي، بيا چي د يو چا سره وي، نو د تجارت لپاره نه وي، بلکي د جهاد او نورو لپاره وي، لهذا په هغو کي د زکاة مسئلې ډيري لږ پېښيږي، نو په دې وجه د هغو احکام او مسائل هم تر ټولو وروسته بيانيږي.

خيل اسم جنس دی، په دې کي هر يول مذکر او مؤنث آسونه داخل دي، واحد يې فرس دی.

---

❶ تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الزكاة، باب صدقة الغنم، حديث رقم: ١٨٠٧.

## د آسونو د نصاب او زکاة مقدار

إِذَا كَانَتِ الْخَيْلُ سَائِمَةً (او) کله چي آسونه څرېدونکي وي (يعني د کال زياتره حصه د دباندينۍ وښو خوړونکي وي) ذُكُورًا وَإِنَاثًا او نر او ماده (دواړه) وي فَصَاحِبُهَا بِالْخِيَارِ نو د هغو مالک (څښتن) ته اختيار دی إِنْ شَاءَ أَعْطَى عَنْ كُلِّ فَرَسٍ دِينَارًا [۱] که يې خوښه وي نو د هر آس له طرفه دي يو دينار په زکاة کي ورکړي وَإِنْ شَاءَ قَوَّمَهَا [۲] او که يې خوښه وي نو د هغو نرخ دي ولګوي (يعني قيمت دي يې معلوم کړي) وَأَعْطَى عَنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ او له هرو دوو سوو درهمو څخه دي پنځه درهمه ورکړي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او دا قول د امام زفر رَحِمَهُ الله (هم) دی وَقَالَا ●: لَا زَكَاةَ فِي الْخَيْلِ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په آسونو کي زکاة واجب نه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ●: لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ فِي عَبْدِهِ وَلَا فِي فَرَسِهِ صَدَقَةٌ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي پر مسلمان په خپل غلام او په خپل آس کي زکاة واجب نه دی وَلَهُ قَوْلُهُ ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام صاحب دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی فِي كُلِّ فَرَسٍ سَائِمَةٍ دِينَارٌ أَوْ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ (چي) په هر څرېدونکي آس کي يو دينار يا لس درهمه (زکاة) واجب دی وَتَأْوِيلُ مَا رَوَيَاهُ فَرَسُ الْغَازِي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د روايت سوي حديث تأويل دا دی چي (په هغه کي له فرس) څخه د غازي آس مراد دی (يعني د هغه تأويل دا دی چي د جهاد په آس کي زکاة واجب نه دی) وَهُوَ الْمَنْقُولُ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ او همدغه تأويل له حضرت زيد بن ثابت ﷺ څخه را نقل سوی دی وَالتَّخْيِيرُ بَيْنَ الدِّينَارِ وَالتَّقْوِيمِ مَأْثُورٌ عَنْ عُمَرَ او د نرخ لګولو او د دينار اداء کولو په مينځ کي اختيار ورکول له حضرت عمر فاروق ﷺ څخه رانقل سوي دي.

**اللغات:** ﴿الخيل﴾ آس، ﴿خيار﴾ اختيار، ﴿قوّم﴾ قيمت او نرخ لګول، قيمت معلومول. ﴿مأثور﴾ منقول (رانقل سوی)، روايت سوی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د صحيح قول مطابق دآسونو د زکاة د نصاب هيڅ اندازه متعينه نه ده، بلکي که د يو سړي سره صرف يو آس وي او هغه سائمه وي، يعني له کور څخه دباندي پر بيابان وابښه خوري، نو پر دي سړي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز زکاة واجب دی، بعضي خلکو دري داني د نصاب اندازه ټاکلې ده، او بعضي وايي چي کله نر او ما ده آسونه ټوله شلور سي، نو زکاة واجب دی، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُ الله په نېز په آسونو کي مطلق زکاة واجب نه دی، هغه که سائمه وي، او که نه وي، تجارت لپاره وي او که د نسل زياتوني لپاره وي، د دوی په نېز آس له زکاة څخه مبرّا دی.

---

● القول الراجح: قول الصاحبين، كذا في الخانية ص: ۱۱۹. [القول الراجح ج: ۱، ص: ۱۶۸]

● تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم والبخاري في كتاب الزكاة، باب ليس على المسلم في فرسه صدقة، حديث نمبر: ۱۴۶۳ – ۱۴۶۴.

● تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب الزكاة، باب من رأى في الخيل صدقة، حديث رقم: ۷۴۱۹.

په عبارت کې چې کومه مسئله ذکر سوې ده د هغې حاصل دا دی چې که ديو سرې سره يو شو آسونه وي، او نر و ماده ګډ وډ وي، او پر هغو کال هم تېر سوی وي، نو د امام اعظم رَحِمَهُ الله او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز پر مالک د هغو زکاة ورکول واجب دي، خو هغه ته دا اختيار سته چې که وغواړي نو له هر آس څخه دې يو دينار د زکاة په توګه ورکړي، او که زړه يې وغواړي، نو د آسونو قيمت دې معلوم کړي، او له دوو سوو درهمو څخه دې پنځه درهمه په زکاة کې ورکړي.

د دې په خلاف صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې آسونه که څومره هم وي او څرنګه هم وي، په هغو کې يوه رتې زکاة هم واجب نه دی.

**د صاحبينو دليل:** په کُتُبِ سته وو کې د حضرت ابو هريره ﷺ دا روايت دی: ليس على المسلم في عبده ولا في فرسه صدقة، له دې حديث څخه معلومه سوه چې په آس کې مطلقاً زکاة واجب نه دی، هغه که جهادي وي، که تجارتي.

**د امام صاحب دليل:** هغه حديث دی، کوم چې په دار قطني او بيهقي کې له حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه رانقل سوی دی: في كل فرس سائمة دينار أو عشرة دراهم (چې په هر څرېدونکي آس کې يو دينار يا لس درهمه د زکاة لپاره واجب دي)، دويم روايت په بخاري شريف کې د حضرت ابو هريره ﷺ روايت دی: أن رسول الله ﷺ ذكر الخيل فقال: رجل ربطها تغنيا و تعففا ثم لم ينس حق الله في رقابها ولا في ظهورها فهي لذالك ستر، (يعني نبي ﷺ د آسونو يادونه وکړه، او داسي يې وفرمايل: څوک چې د مالداری د اظهار او له سوال څخه د ځان ساتنې لپاره يو آس وتړي، او د هغه په غاړه او شا کې د الله حق هېر نه کړي[يعني د هغه زکاة اداء کړي]، نو هغه آس به د ده په حق کې ستر او ډال [سپر] وي)، له دې دوو حديثونو څخه دا خبره څرګنديږي چې په آسونو کې زکاة واجب دی.

وتأويل ما الخ صاحب د هدايې د صاحبينو د ذکر سوي روايت جواب ورکوي، فرمايي چې د صاحبينو په روايت کې له فرس څخه فرسِ غازي يعني جهادي آس مراد دی، او همدا له حضرت زيد بن ثابت ﷺ څخه رانقل سوي دي، لکه څرنګه چې صاحب د کفايې ليکلي دي: "چې يو وار د مروان باچا په زمانه کې د آسونو د زکاة مسئله مخته راغله، مروان له صحابه وو سره مشوره وکړه، نو حضرت ابو هريره ﷺ دا حديث ذکر کړی: ليس على الرجل في عبده ولا في فرسه صدقة، مروان له حضرت زيد بن ثابت څخه پوښتنه وکړه، نو هغه وفرمايل: صدق رسول الله ﷺ إنما هنا فرس الغازي، (يعني نبي ﷺ رښتيا فرمايلي دي، ليکن دلته له فرس څخه جهادي آس مراد دی)"، او په جهادي آس کې خو موږ هم د زکاة د علم وجوب خبره کوو. (کفايه بحواله حاشيه هدايه ص،۱۹۱)

لنډه دا چې دا خبره فيصله سوې ده چې په آس کې زکاة واجب دی، خو په دې شرط چې د جهاد لپاره نه وي، او د هغه مالک ته به دا اختيار وي چې که غواړي نو د هر آس په بدله کې دې يو دينار په زکاة کې ورکړي، او که غواړي نو د ټولو قيمت دې معلوم کړي، او له ۲۰۰ درهمو څخه دې ۵ درهمه ورکړي.

والتخيير الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د دينار او د قيمت معلومولو اختيار له حضرت عمر ﷺ څخه رانقل سوی دی، لکه څرنګه چې صاحب د کفايې ليکلي دي چې کوم خط حضرت عمر ﷺ د حضرت ابو عبيده ﷺ په نامه د آسونو د زکاة په باره کې استولی وو، په هغه کې داسي ليکل سوي وو: خير أربابها أن أدوا من كل فرس دينارا وإلا فقوّمها وخذ من كل مائتي دراهم خمسة دراهم (يعني ته د زکاة والا وو ته دا اختيار ورکړه چې هغوی دې د هر آس په بدله

کي يو دينار په زکاة کي ورکړي، يا د هغو قيمت معلوم کړه او له دوو سوو درهمو څخه پنځه درهمه د زکاة په توګه واخله)، له دې مقدس فرمان څخه د دينار او قيمت معلومولو په مينځ کي اختيار ثابت سو.

**راجح قول:** په پورتني مسئله کي راجح قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دی، قالوا والفتوى على قولهما واجمعوا على أن الامام لا يأخذ منه صدقة الخيل جبراً (خانيه ص،۱۱۹)، وقال في الهندية: لا شئ في الخيل و هذا عندهما وهو المختار للفتوى إلا أن تكون للتجارة (هندية ج۱، ص،۱۷۸). [القول الاجح ج۱، ص،۱۶۸]

## که آسونه فقط نر يا ماده وي نو څه حکم دی؟

وَلَيْسَ فِي ذُكُورِهَا مُنْفَرِدَةً زَكَاةٌ او يوازي په نرو آسونو کي زکاة واجب نه دی لِأَنَّهَا لَا تَتَنَاسَلُ ځکه چي هغه يوازي نسل نه زېږوي وَكَذَا فِي الْإِنَاثِ الْمُنْفَرِدَاتِ همدارنګه يوازي په ماده آسونو کي (هم) زکاة واجب نه دی فِي رِوَايَةٍ په يوه روايت کي وَعَنْهُ الْوُجُوبُ فِيهَا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت (په ماده آسونو کي) د وجوب دی (يعني زکاة پکښې واجب دی) لِأَنَّهَا تَتَنَاسَلُ بِالْفَحْلِ الْمُسْتَعَارِ ځکه چي ماده آسونه د غوښتل سوي نر آس په ذريعه نسل زېږولای سي بِخِلَافِ الذُّكُورِ په خلاف د نرو آسونو وَعَنْهُ أَنَّهَا تَجِبُ فِي الذُّكُورِ الْمُنْفَرِدَةِ ايضاً او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يوه روايت دا دی چي يوازي په نرو آسونو کي هم زکاة واجب دی.

**اللغات:** ﴿تتناسل﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: نسل پيدا کول (زېږول)، نسل زياتول، ﴿فحل﴾ د هر حيوان نر ته فحل ويل کيږي، ﴿المستعار﴾ د استفعال د باب اسم مفعول دی: په خواست غوښتل سوی.

**تشريح:** په دې عبارت کي صرف د نر يا صرف د ماده آسونو د زکاة مسئلې بيانيږي، حاصل يې دا دی که د يو چا سره صرف نر آسونه يا صرف ماده آسونه ول، نو په هغو کي د زکاة د وجوب په باره کي له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: (۱) اول روايت دا دی چي يوازي په نر يا ماده آسونو کي زکاة واجب نه دی، ځکه د زکاة د وجوب سبب د مال (نامي کېدل او زياتېدل) دي، او په آسونو کي نما او زياتېدنه په تناسل او زېږېدني سره ثابتيږي، ليکن صرف په نرو آسونو يا صرف په ماده آسونو کي توالد او تناسل امکان نه لري، نو ځکه به نه په يوازي نرو آسونو کي زکاة واجب وي، او نه په يوازي ماده آسونو کي.

(۲) دويم روايت دا دی چي په يوازي نر يا ماده آسونو کي زکاة واجب دی، که څه هم د هغوی سره يو ماده آس يا نر آس نه وي، صرف په ماده آسونو کي د زکاة د وجوب دليل دا دی چي له نرو آسونو څخه بغير هم له نورو خکلو څخه نر آسونه غوښتل او د ماده آسونو سره جوفتي (جماع) په کول ممکن دي، نو څرنګه چي په ماده آسونو کي د مال د نامي کېدلو سبب پيدا سو، نو ځکه به په هغو کي زکاة واجب وي. او صرف په نرو آسونو کي د زکاة د وجوب دليل دا دی چي دا حديث في کل فرس الخ مطلق دی، او په دې کي د نر يا ماده هېڅ قيد يا تفصيل نسته، نو ځکه به د دې حديث د اطلاق په وجه په نر او ماده دواړو قسمونو کي زکاة واجب وي، هغه که مخلوط وي، او که غير مخلوط، او صاحب د ايضاح وايي چي څرنګه په اوبن او بقر کي د سائمه والي په وجه د هغو په نر او ماده دواړو کي زکاة واجب دی، همدارنګه به په آسونو کي هم د يوازي نر يا يوازي ماده والي په صورت کي زکاة واجب وي. (بنايه ج۳، ص،۲۰۰)

## په غاطرو او خرو کي د زکاة حکم

وَلَاشَيْءَفِي الْبِغَالِ وَالْحَمِيْرِ او په غاطرو او خرو کي زکاة نسته لِقَوْلِهِ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَمْ يَنْزِلْ عَلَيَّ فِيْهِمَا شَيْءٌ پر ما د دې دواړو (د زکاة) په باره کي هيڅ شی نه دي را نازل سوی وَالْمَقَادِيْرُ تُثْبَتُ سَمَاعًا او مقدارونه (يعني د زکاة مقدارونه) په اورېدلو سره ثابتيږي إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ لِلتِّجَارَةِ خو دا چي خرونه او غاطري د تجارت لپاره وي لِأَنَّ الزَّكَاةَ حِيْنَئِذٍ تَتَعَلَّقُ بِالْمَالِيَّةِ ځکه چي په دې وخت کي زکاة د ماليت سره متعلق کيږي كَسَائِرِ أَمْوَالِ التِّجَارَةِ لکه نور (ټوله) د تجارت مالونه، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿بِغَال﴾ جمع د بَغْل ده: غاطره (خچره)، ﴿حَمِيْر﴾ جمع د حِمَار ده: خر.

**تشريح:** په خرو او غاطرو کي زکاة نسته، دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: لم ينزل علىّ فيهما شيئ، (يعني د خرو او د غاطرو زکاة په باره کي پر ما هيڅ حکم را نازل سوی نه دي)، او د زکاة مقادير (مقدارونه) سماعي دي، قياسي او عقلي نه دي. يعني د زکاة مسائل او اندازې له شريعت څخه پر اورېدلو موقوف دي، او په دې باره کي له نبي ﷺ څخه هيڅ هم اورېدل سوي نه دي، نو ځکه به په دوی کي زکاة واجب نه وي، هو! که خرونه او غاطري د تجارت لپاره وي، نو په هغو کي به زکاة واجب وي، ځکه چي په دې وخت کي به هغه مال وي، او څرنګه چي په نورو مالونو کي زکاة د ماليت او قيمت سره تعلق لري، همدارنګه به د هغو زکاة هم د قيمت سره متعلق وي، او د هغوی د قيمت په هرو دوو سوو درهمو کي به پنځه درهمه د زکاة واجب وي.



# فَصْلٌ فِيْ مَا لَا صَدَقَةَ فِيْهِ

دا فصل د هغو څارويو په بيان کي دی چي زکاة پکښي واجب نه وي

**تشريح:** تر دې مخکي د غټو حيواناتو د زکاة بيان وو، اوس د کوچنيو حيواناتو او د هغوی د بچيانو زکاة بيانيږي، په دې فصل کي درې الفاظ د پاملرني وړ دي: ① فُصْلَان دا د فَصِيْلٌ جمع ده، له دې څخه د اوښي هغه بچي مراد دی چي يو کال يې پوره سوی نه وي، ② عَجَاجِيْل دا د عَجُوْلٌ جمع ده، له دې څخه مراد د غوا يا ګاميښې هغه بچي دي چي تبيع نه وي، ③ حملان دا د حَمَلٌ جمع ده، له دې څخه د بزې هغه بچي مراد دی چي يو کال يې پوره سوی نه وي.

---

● تخريج: أخرجه النسائي في كتاب الخيل، باب الخيل معقود في نواصيها، حديث رقم: ٣٥٩٣، والبيهقي في كتاب الزكاة، باب من رأى في الخيل صدقة، حديث رقم: ٧٤١٨.

## د اوښ، غوا، او بزې(وزې) په بچو کې د زکاة حکم(او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

وَلَيْسَ فِي الْفُصْلَانِ وَالْعَجَاجِيلِ وَالْحُمْلَانِ صَدَقَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او نسته د اوښې، غوا او بزې په بچو کې زکاة د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَعَهَا كِبَارٌ خو چې د هغو سره لوې څاروي(هم) وي وَهٰذَا آخِرُ أَقْوَالِهِ او دغه امام صاحب رَحِمَهُ الله تر ټولو آخري قول دی وَهُوَ قَوْلُ● مُحَمَّدٍ او د امام محمد قول(هم) دی وَكَانَ يَقُولُ أَوَّلًا يَجِبُ فِيهَا مَا يَجِبُ فِي الْمَسَانِّ امام صاحب رَحِمَهُ الله به مخکې دا خبره کوله چې په کوچنيو بچو کې (هم) هغه زکاة واجب دی کوم چې په مسنه(يعني غټو څارويو) کې واجب دی وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَمَالِكٍ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله او د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی ثُمَّ رَجَعَ بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله (له دې قول څخه) رجوع وکړه وَقَالَ: فِيهَا وَاحِدَةٌ مِنْهَا او ويې فرمايل: چې په دې (بچو) کې هم له هغو څخه يو بچی واجب دی(يعني چې څومره بچيان چې وي له هغو څخه به يو بچی په زکاة کې ورکوي) وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ وَالشَّافِعِيِّ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی وَجْهُ قَوْلِهِ الْأَوَّلِ أَنَّ الْإِسْمَ الْمَذْكُورَ فِي الْخِطَابِ يَنْتَظِمُ الصِّغَارَ وَالْكِبَارَ (د امام صاحب) د اول قول دليل دا دی چې په خطاب کې ذکر سوی نوم کوچنيو او غټو ټولو ته شامل دی وَوَجْهُ الثَّانِي تَحْقِيقُ النَّظَرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ د دويم قول دليل د دواړو طرفونو(يعني د فقير او د مالدار) پوره لحاظ کول دي كَمَا يَجِبُ فِي الْمَهَازِيلِ وَاحِدٌ مِنْهَا لکه څرنګه چې په ډنګرو(او کمزورو) څارويو کې يو واجبيږي وَوَجْهُ الْأَخِيرِ أَنَّ الْمَقَادِيرَ لَا يَدْخُلُهَا الْقِيَاسُ او د آخري قول دليل دا دی چې (د نصاب) په مقاديرو کې قياس له هيڅ دخل نسته فَإِذَا امْتَنَعَ إِيجَابُ مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ امْتَنَعَ أَصْلًا نو کله چې ممتنع(او ناممکن) سو واجبېدل د هغه شي چې د هغه په باره کې شريعت راغلی دی نو د هغه زکاة بالکل ممتنع سو★ وَإِذَا كَانَ فِيهَا وَاحِدٌ مِنَ الْمَسَانِّ خو کله چې په دې بچو کې يو مسنه وي(يعني غټ څاروی وي) جُعِلَ الْكُلُّ تَبَعًا لَهُ فِي انْعِقَادِهَا نِصَابًا نو ټوله بچيان به د نصاب په پوره کولو کې د دې مسنه تابع ګرځول کيږي دُونَ تَأْدِيَةِ الزَّكَاةِ نه د زکاة په اداء کولو کې(يعني له بچو څخه به زکاة نه ورکول کيږي) ثُمَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا يَجِبُ فِيمَا دُونَ الْأَرْبَعِينَ مِنَ الْحُمْلَانِ بيا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز [١] د بزې له څلويښتو بچو څخه په کمو کې زکاة واجب نه دی وَفِيمَا دُونَ الثَّلَاثِينَ مِنَ الْعَجَاجِيلِ [٢]

---

● القول الراجح: قول الطرفين أى لا تجب الزكوة في الفصلان و العجاجيل والحملان، وقال العلامة الحصكفي الصحيح قولهما رد المحتار ج:٢، ص:٢٢. [القول الراجح ج:١، ص:١٦٩]

★ فإذا امتنع ...الخ په دې عبارت کې دا جمله څه ستونزمنه ده، صاحب د اثمار الهدايه د دې ډېره آسانه ترجمه داسې کړې ده: "نو شريعت چې د کوم عمر زکاة واجب کړی دی هغه سته نه، نو ځکه به بالکل زکاة نه واجبيږي"، هغه فرمايي چې د ايجاب ما ورد به الشرع مطلب دا دی چې شريعت په زکاة کې د کوم عمر حيوان واجب کړی دی، د هغه عمر حيوان ته ايجاب ما ورد به الشرع وايي، مثلاً په پنځويشتو اوښانو کې داوښ د يوه کال بچی لازم دی، او په ديرشو غواوو کې د غوا د يوه کال بچی لازم دی او داسې نور... نو دا يو کال عمر ايجاب ما ورد به الشرع سو، نو اوس که د مالک سره ټوله بچيان تر يو کال کم وي، نو د هغه سره بالکل د شريعت د عمر حيوان سته نه، نو ځکه به په هغو کې بالکل زکاة نه واجبيږي، د امتنع اصلاً مطلب همدغه دی.

او د غوا له ديرشو بچو څخه په کمو کي زکاة واجب نه دی وَيَجِبُ فِي خَمْسٍ وَعِشْرِيْنَ مِنَ الْفُصْلَانِ وَاحِدٌ [۳] او د اوښ په پنځوېشتو بچو کي يو بچی واجب دی ثُمَّ لَا يَجِبُ شَيْءٌ بيا هيڅ شی هم (په زياتو بچو کي) واجب نه دی حَتّٰى تَبْلُغَ مَبْلَغًا لَوْ كَانَتْ مَسَانَّ يُثَنَّى الْوَاجِبُ تر دې چي بچيان هغه شمېرې (تعداد) ته ورسيږي چي که مسنه (يعني غټ) شاروبان واى نو (په هغو کي به) دوه شاروبان واجبدلاى ثُمَّ لَا يَجِبُ شَيْءٌ بيا هيڅ شی هم واجب نه دی حَتّٰى تَبْلُغَ مَبْلَغًا لَوْ كَانَتْ مَسَانَّ يُثَلَّثُ الْوَاجِبُ تر دې چي هغه شمېرې ته ورسيږي چي که مسنه واى نو درې شاروبان به واجبدلاى وَلَا يَجِبُ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسٍ وَعِشْرِيْنَ فِي رِوَايَةٍ او (د امام ابو يوسف) په يوه روايت کي له پنځوېشتو څخه په کمو (بچو) کي هڅ شی نه واجبيږي وَعَنْهُ أَنَّهُ يَجِبُ فِي الْخَمْسِ خُمُسُ فَصِيْلٍ او له امام ابو يوسف څخه (دويم) روايت دا دی چي د اوښ په پنځو بچو کي د فصيل (يعني د اوښ د يوه بچي) پنځمه حصه واجبيږي وَفِي الْعَشْرِ خُمُسَا فَصِيْلٍ او په لسو بچو کي د فصيل دوې پنځمي حصې (واجبيږي) عَلٰى هٰذَا الْاِعْتِبَارِ هم په دې اعتبار سره (به حساب کيږي) وَعَنْهُ أَنَّهُ يَنْظُرُ اِلٰى قِيْمَةِ خُمُسِ فَصِيْلٍ فِي الْخَمْسِ او له امام ابو يوسف څخه (دريم) روايت دا دی چي (د اوښ) په پنځو بچو کي به د اوښ د يوه بچي پنځمي حصې ته کتل کيږي وَاِلٰى قِيْمَةِ شَاةٍ وَسَطٍ او د مېنځوې درجې بزې و قيمت ته به (کتل کيږي) فَيَجِبُ أَقَلُّهُمَا نو له دې دواړو څخه چي د کوم يوه قيمت کم وي هغه به واجبيږي وَفِي الْعَشْرِ اِلٰى قِيْمَةِ شَاتَيْنِ او (د اوښ) په لسو بچو کي به د دوو بزو قيمت ته (کتل کيږي) وَاِلٰى قِيْمَةِ خُمُسَيْ فَصِيْلٍ او د اوښ د يوه بچي د دوو پنځمو حصو قيمت ته به (کتل کيږي، او کوم چي کم وي هغه به واجبيږي) عَلٰى هٰذَا الْاِعْتِبَارِ هم په دې اعتبار سره (به نور حساب کيږي).

**اللغات:** ﴿الفصلان﴾ د فَصِيْلٌ جمع ده، د اوښ هغه بچی چي يو کال يې پوره نه وي، ﴿عجاجيل﴾ د عِجُوْلٌ جمع ده، د غوا يا کامېښې هغه بچی چي يو کال يې پوره نه وي، ﴿حملان﴾ د حمل جمع ده، د بزې (يا مېږې) هغه بچی چي يو کال يې پوره نه وي، ﴿مهازيل﴾ د مَهْزُوْلٌ او مَهْزِيْلٌ جمع ده: ډنګر، کمزوري.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي د اوښ، غوا، بزې (او پسه) په هغو بچو کي چي تر يوه کال کم وي، زکاة اجب دی، که نه؟ په دې باره کي تول امامان سره جلا دي، او په خپله له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کي درې قولونه رانقل سوي دي: (۱) اول قول دا دی چي په دې بچو کي هغه زکاة واجب دی کوم چي په مسنه شاروباتو کي واجب دی، يعني د اوښ په بچو کي به د اښ زکاة واجب وي، او د غوا په بچو کي به د غوا زکاة واجب وي علی هذا القياس...، د امام زفر رَحِمَهُ الله او د امام مالک رَحِمَهُ الله قول هم دغه دی. (۲) دويم قول دا دی چي له بچو څخه به يو واجب وي، مثلاً د بزې (او پسه) په شلوېښتو بچو کي به د بزې (او پسه) يو بچی واجب وي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله

قول دی. (۳) دریم قول دا دی چې که د اوښ، غوا او بزې بچې پوازې وي، او د هغو سره یو بل غټ څاروی نه وي، نو په هغو کې بالکل زکاة نه واجبیږي، دا د امام اعظم رَحِمَهُ الله تر ټولو آخري قول دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله قول هم دغه دی.

**دلیلونه:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله د لول قول دلیل دا دی چې د اوښ، غوا او د بزې د زکاة د وجوب په باره کې چې کوم نصوص راغلي دي، هغه مطلق دي، او په هغو کې د کوچني یا غټ هیڅ قید نشته، نو ځکه به په هر ډول اوښ، غوا او نورو کې زکاة واجب وي هغه که کوچني وي، او که غټ وي، ځکه چې دا قاعده مشهوره ده: المطلق يجري على إطلاقه.

(۲) د دویم قول دلیل یې دا دی چې له بچو څخه د یوه بچې په واجبولو کې د مال د خاوند په حق کې هم نرمي او رعایت سته، او د فقیرانو او مسکینانو په حق کې هم شفقت، خواخوږي او رعایت سته، په دې توګه چې که موږ له دغو بچو څخه زکاة واجب نه کړو (بلکې دا واجب کړو چې په څلوېښتو بچو کې به یو بچی نه ورکوي بلکې غټ څاروی به ورکوي یعني د غټو څارویو د زکاة مطالبه وکړو) نو په دې صورت کې به د مال خاوند تاواني وي، اول تاوان خو به یې دا وي چې د څاروي لټون به کوي، او دویم تاوان به یې دا وي چې د هر ځله یو غټ څاروی د څلوېښتو بچو د قیمت سره برابر وي، نو که یو داسې مالک چې د هغه سره صرف څلوېښت بچې وي دغه ډول غټ څاروی په زکاة کې ورکړي، نو هغه بېچاره به په خپله د زکاة مستحق سي، نو ځکه موږ ووېل چې له بچو څخه به یو بچی په زکاة کې ورکوي، او په دې صورت کې د فقیرانو رعایت دا ډول دی چې که د بچو زکاة معاف کړی سي، نو بېچاره فقیران به محروم پاته سي، نو په دې وجه په دې صورت کې د دواړو طرفونو د خیال ساتلو په وجه یو بچی واجب سوی دی، لکه د یو چا سره چې صرف کمزوري او ډنګر څارویان وي، نو د هغه لپاره حکم دا دی چې هغه به هم له هغو ډنګرو او کمزورو څارویانو څخه زکاة اداء کوي، چې نه د فقیرانو نقصان سي او نه د مالک نقصان.

(۳) د دریم قول دلیل دا دی چې د زکاة د نصاب مقدارونه (مقادیر) پر سماع (اورېدلو) موقوف دي، او په دې کې عقل او قیاس لره هیڅ دخل نشته، لکه څرنګه چې شریعت موږ ته دا را ښوولي دي چې په ۲۵ اوښانو کې یوه بنت مخاض واجب ده، یا په دېرشو غواوو (یا غویانو) کې یوه تبیعه واجب ده، یا په څلوېښتو بزو (یا پسونو) کې یوه بزه واجب ده، نو موږ به هم د شریعت پر طریقې عمل کوو، اوس که د یو چا سره د شریعت د بیان سوی نصاب او مقدار مطابق نور نصاب او څارویان نه وي، (بلکې صرف بچې وي)، نو بیا به د هغه لپاره صرف دوې لارې وي: (۱) یا خو به یو بچی له هغو بچو څخه په زکاة کې ورکوي، (۲) یا به له هغو څخه ماسوا د یو بل بنه څاروي لټون کوي او په زکاة کې به یې ورکوي، او دا دواړې لارې خطرناکه دي، ځکه چې په اوله لاره کې د شریعت له نصوصو څخه ممانعت راځي، او په دویمه کې په خپله د مالک نقصان دی، نو ځکه به په دې صورت کې بالکل زکاة نه واجبیږي، نه د کوچني او نه د غټ.

**ضروري یادونه:** له ګرانو علماؤ او طالبانو څخه دا هیله ده چې د همدغه ترتیب مطابق دې په مسئله پوه سي کوم ترتیب چې ما بیان کړی، کنې په هدایه کې خو د امام محمد رَحِمَهُ الله قول تر ټولو مخکې ذکر دی، او د هغه دلیل تر ټولو وروسته ذکر دی، همدارنګه له و وجه الأخیر څخه د دریم قول دلیل مراد نه دی، بلکې د امام صاحب رَحِمَهُ الله د آخري قول دلیل مراد دی، کوم چې امام محمد رَحِمَهُ الله اختیار کړی دی.

وإذا كان فيها الخ اوکه د دې بچو سره یو غټ بچی (او څاروی) وي (یعني د یوه کال څاروی وي)، نو بیا به د نصاب په تکمیل کې دا ټوله بچې د دغه غټ تابع کیږي، مثلاً د یو چا سره د بزې ۳۹ بچې وي، او صرف یوه مسنه ور سره وي (یعني د بزې هغه بچی چې یو کال یې پوره سوي او په دویم کې وي)، نو د دې مسنه په وجه به دا ټوله بچې غټ

شمارل کیږي(او د هغه به تابع کیږي)، او په دې سره به د زکاة نصاب منعقد او بشپړ ګڼل کیږي، لیکن د زکاة په اداء کولو کې به کوچني دغټ نه تابع کیږي، یعني په زکاة کې به صرف دغه مسنه(دیوه کال شاروی) ورکول کیږي، له بچو څخه به یو بچی هم نه ورکول کیږي.

ثم عند أبي یوسف الخ د دې حاصل دا دی چې د امام ابو یوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نیز د اوښ، غوا او نورو په بچو کې زکاة واجب دی، لیکن دا وجوب قیاسي او عقلي نه دی، بلکې د دوی پلار او مور ته به کتل کیږي، مطلب دا چې څرنګه له ۴۰ څخه په کمو بزو کې یوه بزه (هم) واجب نه ده، همدارنګه به له څلویښتو څخه د بزو(وزو) په کمو بچو کې هم هیڅ شی واجب نه وي، همداسې د غوا او د اوښ نصاب دی، نو څرنګه چې له دېرشو څخه په کمو غواوو کې هیڅ شی واجب نه دی، همدارنګه به له دېرشو څخه په کمو ګلګیانو کې هیڅ شی واجب نه وي، او لکه څرنګه چې له ۲۵ څخه په کمو اوښانو کې زکاة واجب نه دی، همداسې به د اوښ په بچو کې هم له ۲۵ څخه په کمو کې زکاة واجب نه وي، لیکن که د اوښ بچیان ۲۵ سول، او کال هم پر تېر سو، نو بیا به په هغو کې یو د اوښ بچی واجب وي، صاحب د هدایې له ویجب فی خمس و عشرین من الفصلان څخه همدغه مسئله بیان کړې ده.

ثم لایجب شيئ الخ د دې حاصل دا دی چې په ۲۵ اوښانو کې خو یوه بنت مخاض واجب ده، نو پر هغه به په قیاسولو سره د امام ابو یوسف په نیز د اوښ په ۲۵ بچو کې یو بچی واجب وي، لیکن تر ۲۵ وروسته خو په ۳۶ اوښانو کې یوه بنت لبون واجب ده، او په ۴۶ اوښانو کې یوه حقه واجب ده نو د اوښ بچیان چې کله ۳۶ یا ۴۶ سي نو په هغو کې به څه شي واجب وي؟ د هغه په جواب کې صاحب د هدایې فرمایي چې له پنځویشتو څخه په زیاتو بچو کې هیڅ شی نه واجبیږي تر دې چې بچیان هغه شمېر ته ورسیږي چې که دا غټ اوښان وای نو په هغو کې به د یوه عمره دوه اوښان واجبېدای(نو په دې وخت کې به بیا په بچو کې هم دو بچیان واجبیږي، مطلب دا چې کله تر پنځویشتو وروسته په څومره اوښانو کې یو اوښ یا د جلا عمرو دوه اوښان واجبیږي نو په هغومره بچو کې به هیڅ شی نه واجبیږي، او په څومره اوښانو کې چې د یوه عمر دوه اوښان واجبیږي نو په هغومره بچو کې به دوه بچي واجبیږي، او په څومره اوښانو کې چې د یوه عمره درې اوښان واجبیږي نو په هغومره بچو کې به درې بچي واجبیږي، علی هذا القیاس) مثلاً په ۳۶ اوښانو کې یوه بنت لبون، او په ۴۶ کې یوه حقه واجبیږي، نو څرنګه چې په دې کې یو اوښ واجبیږي. نو ځکه به په ۳۶ یا ۴۶ بچو کې هیڅ شی نه واجبیږي، لیکن په شپږ اویا(۷۶) اوښانو کې دوې بنت لبون واجب دي. نو په شپږ اویا بچو کې به دوه بچي واجبیږي، بیا به له شپږ اویا څخه په زیاتو کې هیڅ شی نه واجبیږي، تر دې چې د بچو شمېر هغه اندازې ته ورسیږي چې که دا غټ اوښان وای نو په هغو کې به درې د یوه عمر شاروي واجبېدای مثلاً په ۱۴۵ اوښانو کې درې حقې واجبیږي، نو په ۱۴۵ بچو کې به درې بچي واجبیږي، همداسې به د غوا او بزې حساب کیږي، او ترڅو چې په اصل یعني په اوښانو، غوا، او بزو کې اضافه کیږي، تر هغو پورې به په فرع یعني د هغو په بچو کې هم اضافه کیږي.

صاحب د هدایې همدغه مسئله د لو کانت مسان یثنی الواجب...(او) یثلث الواجب څخه بیان کړې ده، لو له مسان څخه غټ اوښان مراد دي.

ولا یجب فیما دون خمس وعشرین الخ له دې ځایه دا راښیي چې که د اوښ بچي تر ۲۵ کم وي، نو آیا په هغو کې به زکاة واجب وي، که نه؟ په دې باره کې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه را نقل سوي دي: (۱) لول روایت دا دی چې که د اوښ بچي تر ۲۵ کم ول، نو په هغو کې زکاة نه واجبیږي، (۲) دویم روایت دا دی چې که صرف پنځه د اوښ

بچيان ول، نو په هغو کي هم زکاة واجبيږي، دا روايت له امام ابو يوسف څخه محمد بن شجاع را نقل کړی دی، او د اول روايت راوي حسن بن مالک دی. (بنايه)

بيا چي په کوم روايت کي په پنځو بچو کي زکاة واجب ګرځول سوی دی، د هغو د وجوب په طريقه کي هم دوه روايتونه دي: (۱) اول روايت دا دی چي د اوښ په پنځو بچو کي د يوه بچي پنځمه حصه واجب ده، او په لسو بچو کي د يوه بچي دوې پنځمي حصې واجب دي، او په پنځلسو کي د يوه بچي درې پنځمي حصې واجب دي، على هذا القياس.

(۲) دويم روايت دا دی چي که د اوښ بچي پنځه سول، نو د يوه بچي د پنځمي حصې د قيمت او د يوې مينځوی درجې بزې د قيمت په مينځ کي به موازنه کيږي، او د کوم شي قيمت چي کم وي هغه به په زکاة کي ورکول کيږي، او که لس بچي وي، نو د يوه بچي د دوو پنځمو حصو د قيمت او د دوو مينځوی درجو بزو د قيمت په مينځ کي به موازنه کيږي، او چي کوم کم وي، هغه به په زکاة کي واجبيږي، على هذا القياس يعني په پنځلسو او شلو کي به هم داسي موازنه کيږي.

**که په زکاة کي واجب سوی ښاروی د مالک سره نه وي نو څه حکم دی؟**

قَالَ: وَمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ مُسِنٌّ فرمايي: چي پر چا مُسِن ښاروی واجب سي فَلَمْ يُوجَدْ لېکن هغه (د ده سره) پيدا نه سي (يعني د ده سره نه وي) أَخَذَ الْمُصَدِّقُ أَعْلَى مِنْهَا وَرَدَّ الْفَضْلَ نو زکاة اخيستونکي دي تر مُسِن د لوړي درجې (يعني د لوړ قيمت) ښاروی واخلي او زياتوب دي واپس کړي (يعني تر مُسِن چي څومره زيات سي د هغه قيمت دي ورکړي) أَوْ أَخَذَ دُونَهَا وَأَخَذَ الْفَضْلَ يا دي تر مُسِن د کمي درجې والا ښاروی واخلي او زياتوب دي (هم) واخلي وَهٰذَا يَبْتَنِي عَلَى أَنَّ أَخْذَ الْقِيمَةِ فِي بَابِ الزَّكَاةِ جَائِزٌ عِنْدَنَا او دا مسئله پر دې خبره مبني ده چي زموږ په نيز د زکاة په باب کي قيمت اخيستل جائز دی عَلَى مَا نَذْكُرُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى لکه څرنګه چي به موږ (وروسته) د دې ذکر وکړو انشاء الله تعالىٰ إِلَّا أَنَّ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَهُ خو په اول صورت کي زکاة اخيستونکي لره (دا) اختيار سته أَنْ لَا يَأْخُذَ وَيُطَالِبَ بِعَيْنِ الْوَاجِبِ أَوْ بِقِيمَتِهِ چي هغه (د لوړي درجې ښاروی) نه واخلي (بلکي) د عينِ واجب مطالبه وکړي يا د عينِ واجب د قيمت مطالبه وکړي لِأَنَّهُ شِرَاءٌ ځکه چي دا رانيول دي وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يُجْبَرُ او په دويم صورت کي به زکاة اخيستونکی (د کوچني ښاروي پر اخيستلو) مجبوره کيږي لِأَنَّهُ لَا بَيْعَ فِيهِ ځکه چي په دې کي بيع سته بَلْ هُوَ إِعْطَاءٌ بِالْقِيمَةِ بلکي دا د قيمت (په ذريعه زکاة) ورکول دي.

**اللغات:** ﴿المسن﴾ د ښاروبانو دوه کلېزه بچی، ﴿يبتني﴾ د افتعال د باب مضارع ده: مبني کېدل، موقوف کېدل.

**تشريح:** دا خبره خو تاسو ته معلومه سوه چي په زکاة کي به د مينځوی درجې مال اخيستل کيږي، هغه که ښاروی وي يا که يو بل شی وي، يعني نه به ډېر ښه مال اخيستل کيږي، چي مالک تاواني سي، او نه به ډېر کمزوری او خراب مال اخيستل کيږي چي د هيڅ کار نه وي او فقير تاواني سي، دا خبره تاسو په ذهن کي لرئ.

همدارنګه دا خبره هم په ذهن کي لرئ چي زموږ په نيز د زکاة په باب کي قيمت اخيستل او قيمت ورکول جائز دي، د دې پوره تفصيل به وروسته راسي، په عبارت کي چي کومه مسئله بيان سوې ده، د هغې حاصل دا دی چي که د يو سړي سره مثلاً ۳۶ اوښان وي، نو د شريعت له روې په هغو کي يوه بنت لبون واجب ده، يا مثلاً د يو چا سره ۴۶ اوښان وي، نو په

هغو کي شرعاً حقه واجب ده، خو که د ۳۶ په صورت کي د هغه سره يوه بنت لبون هم نه وي، همدارنګه د ۴۶ په صورت کي د هغه سره يوه حقه هم نه وي، نو اوس به د زکاة اخيستلو څه طريقه وي، فرمايي چي که بنت لبون نه وه، او تر بنت لبون غټ څاروی يعني حقه وه، نو عامل او د زکاة اخيستونکي (مصدّق) ته پکار ده چي له مالک څخه حقه واخلي او د بنت لبون د قيمت او د حقې د قيمت په مينځ کي چي کوم فرق دی، هغه دي مالک ته بيرته ورکړي، مثلاً د حقې قيمت ۲۰۰۰ روپۍ وو، او د بنت لبون قيمت ۱۰۰۰ روپۍ وو، نو مصدّق ته پکار ده چي مالک ته دي ۱۰۰۰ روپۍ واپس کړي، همدارنګه که پر چا حقه واجب سوه، او حقه نه وه، نو بنت لبون يا بنت مخاض دي څني واخيستل سي، او دې او د حقې په مينځ کي چي کوم فرق وي، هغه دي مصدّق له مالک څخه واخلي، دا حکم او تفصيل زموږ په نيز دی، خو په دې کي امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، چي هغه به مخته راسي.

إلا أن في الوجه الأول د دې حاصل دا دی چي په اول صورت کي يعني چي کله بنت لبون (يعني د کمي درجې څاروی) په زکاة کي واجب سي، لېکن هغه د مالک سره نه وي، نو مصدّق ته اختيار سته، که غواړي نو اعلیٰ څاروی يعني حقه دې واخلي او زياتوب دي واپس کړي، او که غواړي نو اعلیٰ دي نه اخلي، بلکي له مالک څخه دي د بنت لبون د قيمت مطالبه وکړي، او په دې صورت کي به مصدق د اعلیٰ يعني د حقه پر اخيستلو نه مجبوره کيږي، ځکه چي اعلیٰ اخيستل او زياتوب واپس کول يو ډول رانيول (پېرودل) او شراء ده، او په رانيولو کي جبر نه چليږي، نو ځکه به په دې صورت کي پر مصدق جبر نه کيږي.

لېکن په دويم صورت کي يعني چي کله اعلیٰ څاروی واجب سي، او هغه نه وي، او مالک د ادنیٰ درجې څاروی او نور قيمت ورکول غواړي، نو په دې صورت کي مصدق پر اخيستلو مجبوره کېدای سي، ځکه چي دلته بيع او شراء نسته، بلکي داسي به ويل کيږي چي مالک د قيمت په ذريعه سره زکاة اداء کوي، او څرنګه چي زموږ په نيز د قيمت په ذريعه سره زکاة اداء کول جائز دي، نو ځکه به مصدق پر زکاة اخيستلو مجبوره کيږي.

## په زکاة کي د قيمت د اداء کولو حکم

وَيَجُوزُ دَفْعُ الْقِيَمِ فِي الزَّكَاةِ عِنْدَنَا او په زکاة کي زموږ په نيز قيمتونه ورکول جائز دي وَكَذَا فِي الْكَفَّارَاتِ وَصَدَقَةِ الْفِطْرِ وَالْعُشْرِ وَالنَّذْرِ همدارنګه په کفارو، سرسايه، عُشر او نذر کي هم (قيمت ورکول جائز دي) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ اتِّبَاعًا لِلْمَنْصُوصِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي (قيمت ورکول) جائز نه دي د منصوص د تابعداری کولو په وجه كَمَا فِي الْهَدَايَا وَالضَّحَايَا لکه د هديو او قربانۍ په څارويو کي (چي قيمت ورکول جائز نه دي) وَلَنَا أَنَّ الْأَمْرَ بِالْأَدَاءِ إِلَى الْفَقِيرِ إِيصَالًا لِلرِّزْقِ الْمَوْعُودِ إِلَيْهِ زموږ دليل دا دی چي فقير ته د زکاة ورکولو چي کوم حکم دی هغه د الله له طرفه وعده سوي روزي د هغه وطرف ته رسول دي (يعني د هغه حکم مطلب فقير ته د رزقِ موعود رسول دي) فَيَكُونُ إِبْطَالًا لِقَيْدِ الشَّاةِ لهذا دا به د بزې (ورکولو) د قيد باطلول وي وَصَارَ كَالْجِزْيَةِ نو زکاة د جزيې په ډول سو بِخِلَافِ الْهَدَايَا لِأَنَّ الْقُرْبَةَ فِيهَا إِرَاقَةُ الدَّمِ په خلاف د هديو له څارويو څخه ځکه چي په هغو کي وينه بيول عبادت دی وَهُوَ لَا يُعْقَلُ او وينه بيول غير معقول دی (يعني د هغه قيمت ورکول په پوهه کي نه راځي) وَوَجْهُ الْقُرْبَةِ فِي الْمُتَنَازَعِ فِيهِ سَدُّ خَلَّةِ الْمُحْتَاجِ او

په متنازع فيه مسئله کې (يعني په زکاة کې) د عبادت وجه د محتاجه سړي ضرورت ليرې کول دي وَهُوَ مَعْقُوْلٌ او هغه معقول دی (يعني په هغه کې قيمت ورکول په پوهه کې راځي).

**اللغات:** ﴿القيم﴾ جمع د قِيمَةٌ ده: قيمت، ماليت. ﴿منصوص﴾ د کوم شي په باره کې چې حديث (يا آيت) راغلی وي. ﴿هدايا﴾ جمع د هَدِيٌ ده: د حج په موسم کې په حرم کې حلالېدونکي (ذبح کېدونکي) قربانيانې. ﴿ضحايا﴾ جمع د اُضحِيَةٌ ده: په لوی اختر کې حلالېدونکي قربانيانې. ﴿إزالة﴾ د افعال د باب مصدر دی: بېول، اچول. ﴿سد خلة﴾ ضرورت پوره کول، حاجت ليرې کول.

**تشريح:** مخکې د حيواناتو د زکاة تفصيل ذکر سو، چې په بعضې صورتونو کې بزه واجبېدل، او په بعضو کې بنت مخاض او په بعضو کې تبيعه...؛ اوس سوال دا دی چې که په زکاة کې کوم څاروی واجب سي، او مالک د هغه قيمت په زکاة کې ورکول وغواړي نو آيا دا به جائز وي؟. د دې خبرې د جواب ورکولو لپاره امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې زموږ په نېز په زکاة کې قيمت ورکول جائز دي، همدارنګه په کفاراتو کې قيمت ورکول جائز دي، مثلاً د يمين په کفاره کې که يو سړی لسو مسکينانو ته د خوراک ورکولو پر ځای د هغومره خوراک قيمت ورکړي، نو جائز دي، او همدارنګه که په سرسايه کې د غنمو يا اوربشو او نورو پر ځای د هغو قيمت ورکړي نو جائز دي، او همدارنګه په عُشر او نذر کې قيمت ورکول جائز دي، يعني چې د يو چا د ځمکې په پيداوار کې لسمه حصه واجب سي، نو د هغې لسمې حصې قيمت ورکول جائز دي، همدارنګه که څوک يوه بزه يا يو بل شی په نذر کې ومني يا د هغه بزې يا شي قيمت ورکړي نو جائز دي، ښکاره دې وي چې قيمت به د هغه ورځې معتبر وي په کومه ورځ چې زکاة ورکوي، او د هغه ښار قيمت به معتبر وي چيري چې مال وي، او که مال په بيابان او دښت کې وي، نو هغه قيمت به ورکوي چې و هغه بيابان ته په نژدې آبادۍ کې د داسې څارويانو څومره قيمت وي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په زکاة او نورو کې چې کوم شی او څاروی واجب سي، د هغه قيمت ورکول جائز نه دي، بلکې هغه شی او هغه څاروی به ورکوي کوم چې په حديث کې ذکر سو.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې په دې کې د منصوص يعني د کوم شي په باره کې چې حديث راغلی وي، د هغه اتباع ضروري ده، يعني په حديث کې خو بنت مخاض، بزه، تبيعه او داسې نور ذکر سوي دي، نو د حديث تابعداري واجب ده، او قيمت ورکول جائز نه دي، لکه په هدی او قرباني کې چې بالاتفاق قيمت ورکول جائز نه دي، نو همدارنګه به په زکاة کې هم قيمت ورکول جائز نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې الله تعالیٰ څومره مخلوقات هم پيدا کړي دي، د هغو ټولو رزق يې پر خپله ذمه اخيستی دی، لکه څرنګه چې الله تعالیٰ فرمايي: وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا [هود: ۶]، يعني په ځمکه کې هر چا ته روزي رسول د الله ﷻ پر ذمه دي، اوس د رزق رسولو شکلونه بېلابېل دي، نو په بندګانو کې چا ته الله ﷻ د کښت و کرونده، چا ته د تجارت او چا ته د مزدورۍ او نورو په توګه رزق رسوي، او څه بندګان داسې وي چې هغه ډېر بېچاره، مجبوره او بې وسه وي، او د کښت، تجارت، مزدورۍ وس نه لري، خو څرنګه چې هغو ته هم روزي ورکول د الله پر ذمه دي، نو ځکه الله ﷻ د هغوی لپاره د رزق بندوبست د مالدارو (او شتمنو) بندګانو په مالونو کې وکړی، چې هغه به د زکاة، خيرات او نورو په شکل کې ورکوي، نو د زکاة ورکولو اصل مقصد غريبانو ته رزق رسول دي، او د فقيرانو او مسکينانو حاجت ليرې کول دي، او ښکاره ده چې د هر مسکين حاجت جلا او مختلف وي، نو ځکه د څارويو په زکاة کې که يو سړی يو

فقیر ته څاروی ورکړي، او هغه د فقیر په کار رانه سي، نو که څه هم د ورکونکي غاړه خلاصه سوه، او اخیستونکي هم فایده حاصله کړه، لیکن دومره فایده یې حاصله نه کړه، څومره چي پکار وه، نو ځکه مونږ ایو چي قیمت ورکول جائز دي، چي هر فقیر په بشپړه توګه خپل ضرورت پوره کړی سي، لهذا د رزق رسولو او د قیمت ورکولو د جائز کېدلو په صورت کي به د بزې قید باطل وي، او دا ثابته سوه چي د هر انسان ضرورتونه په بزه او نورو کي منحصر نه دي، او نه د هغو رزق د اوښ او بزې او نورو سره خاص دی، بلکي له رزق څخه مراد ضرورت دی، او ضرورت هر شي ته عام دی، هغه که د مأکولاتو له قبیلې څخه وي، او که له ملبوساتو څخه وي، یا نور ضروریات وي.

فصار کالجزیة الخ فرمایي چي په زکاة کي د قیمت د اداء کولو مسئله د جزیې په شان سوه، یعني څرنګه چي په جزیه کي قیمت ورکول جائز دي، همدارنګه په زکاة کي هم قیمت ورکول صحیح دي.

بخلاف الهدایا الخ له دې ځایه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قیاس جواب ورکوي، حاصل یې دا دی چي د زکاة مسئله پر هدي او قرباني قیاسول صحیح نه دي، ځکه چي په قرباني او هدي کي د عبادت معیار وینه بیول دي، او وینه بیول په فهم کي نه راتلونکی (یعني غیرِ معقول) شی دی، ځکه چي په دې کي د څاروي ضایع کېدل دي، او په زکاة کي د عبادت معیار د فقیر او محتاجه سړي حاجت لیري کول دي، او دا په فهم کي راتلونکی (یعني معقول) شی دی، نو ځکه به په دې کي قیمت ورکول هم جائز وي، لهذا یو غیرِ معقول شی به پر معقول شي قیاسول څرنګه صحیح وي؟

## د کارو بار او په کور کي د خوړېدونکو څارویانو د زکاة حکم

وَلَيْسَ فِي الْعَوَامِلِ وَالْحَوَامِلِ وَالْعَلُوفَةِ صَدَقَةٌ او په کار کونکو، بار وړونکو او د کور د وښو په خوړونکو څارویانو کي زکاة نسته خِلَافًا لِمَالِكٍ د امام مالک اختلاف دی لَهُ ظَوَاهِرُ النُّصُوصِ د هغه دلیل ظاهري نصوص دي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [●] : لَيْسَ فِي الْحَوَامِلِ وَالْعَوَامِلِ وَلَا فِي الْبَقَرِ الْمُثِيرَةِ صَدَقَةٌ او زمونږ دلیل د نبي ﷺ (دا) قول دی: چي په بار وړونکو او کار کونکو څارویانو کي او په یوې کونکي غویانو کي زکاة نسته وَلِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْمَالُ النَّامِي او په دې وجه (هم) چي د زکاة د واجبېدلو سبب زیاتېدونکی (وده کونکی) مال دی وَدَلِيلُهُ الْإِسَامَةُ أَوِ الْإِعْدَادُ لِلتِّجَارَةِ او د زیاتېدلو دلیل سائمه جوړول (یعني پوول) یا د تجارت لپاره تیارول دي وَلَمْ يُوجَدْ او له هغو څخه یو شی (هم دلته) نسته وَلِأَنَّ فِي الْعَلُوفَةِ تَتَرَاكَمُ الْمُؤْنَةُ او ځکه چي په علوفه څاروي کي پرلپسې د خرچې بار زیاتیږي فَيَنْعَدِمُ النَّمَاءُ مَعْنًى نو په معنوي اعتبار سره به نما (وده) نه وي ثُمَّ السَّائِمَةُ هِيَ الَّتِي تَكْتَفِي بِالرَّعْيِ فِي أَكْثَرِ الْحَوْلِ بیا سائمه هغه څاروی دی چي د کال په زیاتره حصه کي (له کور څخه په دباندي) څرېدلو باندي اکتفاء کوي حَتَّى لَوْ عَلَفَهَا نِصْفَ الْحَوْلِ أَوْ أَكْثَرَ كَانَتْ عَلُوفَةً تر دې که مالک دغه څاروي ته نیم کال یا د کال زیاتره حصه په کور کي وابښه ورکړي نو دا څاروی به علوفه وي لِأَنَّ الْقَلِيلَ تَابِعٌ لِلْأَكْثَرِ ځکه چي لږ (وخت) د اکثر تابع دی.

[●] تخریج: أخرجه البیهقی فی کتاب الزکاة، باب کیف فرض صدقة البقر، حدیث رقم: ۷۲۹۳.

**اللغات:** ﴿عَوَامِل﴾ جمع د عامل ده: په کښت او داسې نورو کي کارکونکي څارويان. ﴿حَوَامِل﴾ جمع د حامل ده: بار وړونکي څارويان. ﴿المُثِيرَة﴾ د افعال او تفعيل دواړو څخه راځي، اسم فاعل دی: يوې کونکي څاروی، مځکه اړونکي څاروی. ﴿ثَائِر﴾ اسم فاعل دی، زياتيدونکی، وده کونکی. ﴿عَلُوفَة﴾ هغه څاروی چي نيم کال يا د کال زياتره حصه په کور کي خوراک ورکول کيږي. ﴿تَكَاثَرُ﴾ د تفاعل د باب مضارع صيغه ده: پرلپسې زياتيدل، يو پر بل سربيره زياتيدل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره پوه سئ چي عوامل د عاملة جمع ده، معنی يې ده هغه څاروی چي د کار لپاره تاکل سوي وي، حوامل د حامل جمع ده، له دې څخه مراد هغه څاروی دی چي د بار د وړلو لپاره متعين سوي وي، علوفه هغه څاروي ته ويل کيږي، چي هغه ته مالک په کور کي نيم کال يا د کال زياتره حصه خوراک ورکړي، اوس د عبارت حاصل دا دی چي د حواملو، عواملو، او علوفه حکم دا دی چي زموږ په نيز په دې څارويانو کي زکاة واجب نه دی، او همدا قول د امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دی، ليکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز په دې څارويانو کي هم زکاة واجب دی.

**د امام مالک دليل:** د زکاة د نصوصو او حديثونو اطلاق دی، يعني الله تعالى په دې آيت: خذ من أموالهم صدقة کي د مطلق مالونو د اخيستلو حکم کړی دی، او په دې آيت کي څارويان او له څارويانو څخه ماسوا نور هر ډول مالونه شامل دي، بيا په څارويانو کي هم عوامل، حوامل، غير عوامل او غير سائمه ټوله داخل دي، همدارنګه په دې حديث: في خمس ذود من الإبل کي تر اوښ لاندي هر ډول اوښان داخل دي. نو کله چي په نصوصو کي دسائمه او غير سائمه، همدارنګه د عواملو او غير عواملو هيڅ قيد نسته، نو بيا موږ ته هم د دې نصوصو د مقيد کولو هيڅ حق نسته او نه د دې حق سته چي غير سائمه او غير عوامل له زکاة څخه مستثنی کړو.

**زموږ دليل:** دا دی چي وروره! موږ له خپل طرفه عوامل او نور له نصوصو څخه نه دي مستثنی کړي، بلکي دا استثنا په خپله د شريعت لاربنوود حضرت محمد ﷺ کړې ده، او په ښکاره لفظو کي يې دا اعلان کړی دی چي: ليس في الحوامل والعوامل والبقرة المثيرة صدقة، (يعني په حواملو، عواملو او يوې کونکو غويانو کي زکاة واجب نه دی). نو کله چي په خپله د شريعت لاربنوود دا څارويان له زکاة څخه مستثنی کړي دي. سره د دې چي د هغوی ﷺ په زړه کي د اُمت د فقيرانو او مسکينانو لپاره تر اندازې زياته خواخوږي او درد وو. نو بيا موږ ته د درد احساسولو څه ضرورت سته؟

ولأن السبب له دې ځايه زموږ عقلي دليل بيانيږي، حاصل يې دا دی چي د زکاة د وجوب سبب د مال نامي کيدل او زياتيدل دي، او د مال د زياتيدلو دوې طريقې دي: (۱) يا خو به دا څارويان په دښتونو او ځنګلونو کي څرل (پوول) کيږي، (۲) يا به د تجارت لپاره تيارېږي، او په حواملو، علوفه او نورو کي دا يوه خبره هم نسته. نو به په هغو کي د زکاة د وجوب سبب (نامي کيدل) هم نه وي، او کله چي سبب نسته، نو په هغو کي به زکاة هم واجب نه وي.

دويمه خبره دا هم ده چي په کور کي د څارويو په ساتلو او خوراک ورکولو کي د خرڅ بوج او بار د انسان پر ذمه وي. چي په هغه کي د کمتي او نما پر ځای نقصان دی. نو په دې حواله سره به هم په غير سائمه څارويانو کي (د نما د فوتيدلو په وجه) زکاة واجب نه وي.

ثم السائمة الخ له دې ځايه صاحب د کتاب د سائمه تعريف کوي. فرمايي چي سائمه هغه څاروي ته ويل کيږي چي د کال زياتره حصه په دښتونو او ځنګلونو کي په خوراک کولو اکتفاء کوي. نو که نيم کال يا د کال زياتره حصه په کور

کي وتړل سي او خوراک ورکول سي، نو هغه ته علوفه ويل کيږي، د زياتره کال په صورت کي به علوفه ځکه وي چي قليل د کثير تابع دي، نو کله چي د کال اکثره حصه څاروی په کور کي وتړل سي او خوراک ورکول سي، نو د کال هغه لږ (قليل) موده به چي په هغه کي په دباندیني خوراک اکتفاء سوې ده د دې کثيري مودې تابع وي، نو ګواکي ټوله کال دې څاروي ته په کور کي خوراک ورکول سوی دی، او د نيم کال په صورت کي به علوفه ځکه وي چي په دې صورت کي د زکاة د واجبېدلو د سبب په ثبوت کي شک سو، په دې توګه چي که هغه نيم کال ته وکتل سي چي په هغې کي پر څرلو او په دباندیني خوراک اکتفاء سوې ده، نو زکاة واجبېدل پکار دي، او که هغه نيم کال ته وکتل سي چي په کور کي تړل سوی او خوراک ورکول سوی دی نو زکاة نه واجبېدل پکار دي، نو د دې شک په وجه به عدمِ وجوب ته ترجيح ورکول کيږي، او دا به ويل کيږي چي د نيم کال د تړلو په صورت کي به هم دا څاروی علوفه وي، او په هغه کي به زکاة واجب نه وي.

## زکاة اخيستونکی به څه ډول مال په زکاة کي اخلي؟

وَلَا يَأْخُذُ الْمُصَدِّقُ خِيَارَ الْمَالِ وَلَا رُذَالَتَهُ او زکاة اخيستونکي به نه غوره مال اخلي او نه بېکاره مال وَيَأْخُذُ الْوَسَطَ (بلکي) د مينځوی درجې مال به اخلي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ●: لَا تَأْخُذُوا مِنْ حَزَرَاتِ أَمْوَالِ النَّاسِ أَيْ كَرَائِمِهَا ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "تاسو د خلکو له قيمتي مالونو يعني له غوره مالونو څخه (زکاة) مه اخلئ وَخُذُوا مِنْ حَوَاشِيْ أَمْوَالِهِمْ أَيْ أَوْسَاطِهَا بلکي د هغوی له اطرافي مالونو يعني د مينځوی درجې له مالونو څخه (زکاة) اخلئ" وَلِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا مِنَ الْجَانِبَيْنِ او په دې وجه (هم) چي په دې کي د دواړو طرفونو لحاظ دی.

**اللغات:** ﴿المصدق﴾ زکاة وصولونکی، زکاة اخيستونکی، زکاة راټولونکی، ﴿رذالة﴾ بعضو شارحينو په کسره او فتحه د راء سره هم ليکلی دی: د کمي او سپکي درجې، بېکاره، ﴿حزرات﴾ جمع د حزرة ده: قيمتي او ګران مال، د لوړي درجې مال چي انسان يې خوندي کوي او په آخر کي يې خرڅوي، ﴿حواشي﴾ جمع د حاشية ده: د اطرافو مال، مراد څني هغه مال دی چي اول خرڅيږي، مناسب او د مينځوی درجې مال.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زکاة اخيستونکي ته د دې خبري خيال ساتل پکار دي چي هغه دي په زکاة کي د مينځوی درجې مال اخلي، يعني نه دي ډېر ښه مال اخلي، او نه دي ډېر بېکاره او خراب مال اخلي، ځکه په دې لړ کي نبي ﷺ د زکاة اخيستونکو لپاره علی الاعلان دا هدايت کړی دی، چي هغوی دي د خلکو له ښه مال اخيستلو څخه ځان وژغوري، او د هري مينځوی درجې مال دي په زکاة کي اخلي، همدارنګه کله چي نبي ﷺ حضرت معاذ بن جبل ؓ د يمن ګورنر جوړ کړی او يمن ته يې واستوی، نو د زکاة په باره کي يې هغه ته په سختۍ سره دا حکم وکړی: إياك وكرائم أموالهم (يعني تاسو د خلکو له ښه مال اخيستلو څخه پرېز کوئ)، له دې حکم څخه هم د مينځوی درجې مال اخيستل په فهم کي راځي.

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الزكاة، باب لا يؤخذ كرائم أموال الناس، حديث رقم: ٧٣١٠.

ولأن فيه النظر الخ له دې ځايه عقلي دليل بيانوي چي په مينځوی درجې مال کي د فقير او مالک دواړو لحاظ سته، د فقير لحاظ خو په دې وجه دی چي که بېکاره مال وي، نو هغه به ده ته په هيڅ کار ورنه سي، لېکن د مينځوی درجې مال په کار ورځي، د مالک رعايت ځکه دی چي د ښه مال اخيستلو په وجه به مالک ته هيڅ تکليف او تاوان نه وي، او هغه به په خپله رضا او خوښه سره د مينځوی درجې مال په زکاة کي ورکوي.

## که د کال په مينځ کي د نصاب مال زيات سي (يعني ګټه وکړي) نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَنْ كَانَ لَهُ نِصَابٌ فرمايي: چي د کوم سړي سره چي د نصاب مال وي فَاسْتَفَادَ فِي أَثْنَاءِ الْحَوْلِ مِنْ جِنْسِهِ بيا د کال په مينځ کي د همدې نصاب له جنسه څخه فايده حاصله کړي ضَمَّهُ إِلَيْهِ نو دا سړی به مستفاد مال د نصاب د مال سره يو ځای کوي وَزَكَّاهُ بِهِ او د هغه (ټوله مال) زکاة به ورکوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَضُمُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي نه به يې يو ځای کوي لِأَنَّهُ أَصْلٌ فِي حَقِّ الْمِلْكِ فَكَذَا فِي وَظِيفَتِهِ ځکه چي مستفاد مال په مملوک کېدلو کي اصل دی نو په خپل حکم کي به هم اصل وي بِخِلَافِ الْأَوْلَادِ وَالْأَرْبَاحِ په خلاف د اولاد او منافعو (ګټو) لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ فِي الْمِلْكِ ځکه چي په مملوک کېدلو کي اولاد (د اصل) تابع وي حَتَّى مُلِكَتْ بِمِلْكِ الْأَصْلِ تر دې چي د اصل په مملوک کېدلو سره توابع هم مملوک کيږي وَلَنَا أَنَّ الْمُجَانَسَةَ هِيَ الْعِلَّةُ فِي الْأَوْلَادِ وَالْأَرْبَاحِ او زموږ دليل دا دی چي علت په اولاد او منافعو کي له يوه جنسه کېدل دي لِأَنَّ عِنْدَهَا يَتَعَسَّرُ التَّمْيِيزُ ځکه چي د مجانست په وخت کي فرق کول ستونزمن کيږي فَيَعْسُرُ اعْتِبَارُ الْحَوْلِ لِكُلِّ مُسْتَفَادٍ نو ځکه به د هر مستفاد مال لپاره د کال اعتبار کول ستونزمن وي وَمَا شُرِطَ الْحَوْلُ إِلَّا لِلتَّيْسِيرِ او حال دا چي کال (يعني حولان حول) د آسانۍ لپاره شرط سوی دی.

**اللغات:** ﴿زكّى﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: زکاة ورکول، پاکول، ﴿أرباح﴾ جمع د ربح ده: تجارتي فايدې، ګټې، منافع، ﴿المجانسة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: له يوه جنسه کېدل، په جنس کي يو د بل سره شاملېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړی د نصاب څښتن وي، او د هغه سره د يو شي مثلاً د مېږو نصاب وي. بيا د کال په مينځ کي هغه ته نور مال په لاس ورسي، نو د دې به دوه صورتونه وي: (۱) دا په لاس ورغلی مال به يعني مال مستفاد به د نصاب له جنس څخه وي، (۲) يا به د نصاب له جنس څخه نه وي، که دويم صورت وي، يعني مال مستفاد د مال نصاب له جنس څخه نه وي، مثلاً له مېږو څخه ماسوا غواوي يا نور مال د هغه په ملکيت کي راسي، نو په دې صورت کي به د دې مال لپاره د جلا نصاب او حولان حول (کال تېرېدلو) ضرورت وي او د مېږو سره به دا نه يو ځای کيږي، او که اول صورت وي، يعني مال مستفاد د مال نصاب له جنس څخه وي، نو بيا په دې کي د زکاة د وجوب په حواله سره تفصيل دی، هغه دا که مال مستفاد له مال نصاب څخه حاصل سوی وو، مثلاً مېږې لنګې سوې، او بچي يې راوړل، يا له مېږو څخه يو شو مېږې خرڅې سوې، او نورې مېږې راوستل سوې، يا د هغو شېدې خرڅې سوې، ګټه يې تر لاسه کړه، نو په دې ټولو صورتونو کي به بالاتفاق دا مال مستفاد د مال نصاب سره يو ځای کيږي، او د ټوله مال زکاة به واجب وي، که څه هم پر مال مستفاد کال نه وي تېر سوی. (بنايه ج:۳، ص:۲۱۲)

لېکن که د مالِ مستفاد په حاصلولو کي د اصل مال يعني د مالِ نصاب هيڅ دخل نه وو، په دې توګه چي مالک ته په هبه يا ميراث او وصيت کي ميرږي په لاس ورغلې، نو په دې کي به هم زموږ په نېز دا مالِ مستفاد د نصاب د مال سره يوځاى کيږي، او د ټوله مال زکاة به واجب وي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي پر مالِ مستفاد جلا حولان حول(کال تېريدل) شرط دي، او دا به د اصل سره نه يوځاى کيږي، او زکاة به نه پکښې واجبيږي. په عبارت کي د مسئلي همدغه صورت بيان سوى دى.

**د امام شافعي دليل:** دا دى چي کوم شى په ملکيت (مملوک کېدلو) کي اصل وي، هغه به په حکم کي هم اصل وي، او د بل شي تابع به نه وي، او څرنګه چي په پورتنى صورت کي مالِ مستفاد په مملوک کېدلو کي اصل دى، او د دې په وجود او حصول کي د مالِ نصاب هيڅ دخل نسته(بلکي هغه خو د ميراث، هبه يا د وصيت په ذريعه حاصل سوى دى)، نو ځکه به دا مال په خپل حکم کي هم اصل وي، او د مالِ نصاب د حکم به تابع نه وي، لهذا نه خو به دا د مالِ نصاب يعني اصل سره يوځاى کيږي، او نه به په دې کي زکاة واجبيږي، بلکي په دې کي به د زکاة د وجوب لپاره جلا کال تېريدل شرط وي، او کله چي پر دې يو کال تېر سي، نو بيا به زکاة پکښې واجب وي.

بخلاف الأولاد الخ د دې په خلاف که اول صورت وي، يعني د مالِ مستفاد په حصول او وجود کي د مالِ نصاب څه دخل وي، په دې توګه چي مالِ مستفاد د ميرږو بچي وي، يا د ميرږو له ذات څخه ترلاسه سوي منافع وي، نو په دې صورت کي به مالِ مستفاد د اصل سره يوځاى کيږي، له کال تېرېدلو څخه به بغير هم په هغه کي زکاة واجبيږي، ځکه چي په دې صورت کي مالِ مستفاد په مملوک کېدلو کي د اصل تابع دى، او کله چي په مملوک کېدلو کي د اصل تابع دى، نو د زکاة په مستحق کېدلو کي به هم د هغه تابع وي، ځکه چي د اصل او د تابع حکم يو وي، او څرنګه چي په اصل کي زکاة واجب دى، نو په تابع يعني په مالِ مستفاد کي به هم زکاة واجب وي، که څه هم کال پر تېر سوى نه وي.

**زموږ دليل:** دا دى چي په اولاد(بچو) او منافعو کي خو امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دا خبره کوي چي مالِ مستفاد به د مالِ نصاب سره يوځاى کيږي، او په ټولو کي به زکاة واجبيږي، او څرنګه چي په اولاد او منافعو کي د اصل يعني د مالِ نصاب سره د مالِ مستفاد د يوځاى کولو علت جنسيت يعني د دواړو له يوه جنسه کېدل دي، او دا جنسيت په غيرِ اولاد او غيرِ منافعو مثلاً د هبه، وراثت او وصيت په مالونو کي هم سته. نو ځکه به هلته هم مالِ مستفاد د مالِ نصاب سره يوځاى کيږي، کنې په مالِ مستفاد او اصل کي به فرق کول ګران او ستونزمن سي، په دې توګه چي که يو سړى د بزو(وزو) د نصاب مالک وي، بيا يې بزې لنګي سي، بچي رواړي، تر هغه وروسته يو څه بزې په هبه کي ورته حاصلي سي، نو اوس به د هغه لپاره په مالِ مستفاد او مالِ نصاب کي فرق کول ګران وي، او بيا د هغه لپاره د مستفاد من الأولا ولأرباح او د مستفاد من الهبة وغيرها په مينځ کي فرق کول هم ګران وي، او څرنګه چي دا [illegible] او نفعه په بېلا بېلو وختونو کي حاصليږي، نو ځکه به د هغوى کال هم په بېلا بېلو وختونو کي پوره کيږي. او د هر مالِ مستفاد لپاره به د کال حساب کول نور ګران سي، حال دا چي د کال تېرېدلو شرط د آسانۍ په خاطر لګول سوى دى. نو [illegible] ره همدغه ده چي که مالِ مستفاد د مالِ نصاب له جنس څخه وي نو هغه به د اصل سره يوځاى کيږي [illegible] به زکاة واجبيږي، که څه هم مالِ مستفاد د اصل له اولاد او د هغه له منافعو څخه نه وي.

## په عفوه کې د زکاة حکم او د فقهاؤ قولونه

قَالَ: وَالزَّكَاةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ فِي النِّصَابِ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: چې زکاة د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په نصاب کې واجب دی دُوْنَ الْعَفْوِ نه په عفوه کې وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ فِيْهِمَا او امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې په دواړو کې زکاة وجب دی حَتَّى لَوْهَلَكَ الْعَفْوُ وَبَقِيَ النِّصَابُ تر دې که عفوه هلاکه سي او نصاب پاته سي بَقِيَ كُلُّ الْوَاجِبِ عِنْدَ● أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به ټوله واجب پاته وي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ وَزُفَرَ يَسْقُطُ بِقَدْرِهِ (ليکن) د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز به د هلاک سوي مال په اندازه واجب ساقطيږي لِمُحَمَّدٍ وَزُفَرَ أَنَّ الزَّكَاةَ وَجَبَتْ شُكْرًا لِنِعْمَةِ الْمَالِ د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې زکاة د مالي نعمت د شکر کښلو (شکرانې) لپاره واجب سوی دی وَالْكُلُّ نِعْمَةٌ او ټوله مال نعمت دی (نو ځکه به په ټوله مال کې زکاة واجب وي) وَلَهُمَا قَوْلُهُ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی فِي خَمْسٍ مِنَ الْإِبِلِ السَّائِمَةِ شَاةٌ (چې) په پنځو څرېدونکو اوښانو کې يوه بزه واجب ده وَلَيْسَ فِي الزِّيَادَةِ شَيْءٌ او په زياتوب کې هيڅ شی واجب نه دی حَتَّى تَبْلُغَ عَشْرًا تر دې چې لسو ته ورسيږي وَهٰكَذَا قَالَ فِي كُلِّ نِصَابٍ او همدارنګه يې د هر نصاب په باره کې فرمايلي دي نَفَى الْوُجُوْبَ عَنِ الْعَفْوِ نو (ګواکې) نبي ﷺ له عفوې څخه د وجوب نفي کړې دي وَلِأَنَّ الْعَفْوَ تَبَعٌ لِلنِّصَابِ او په دې وجه (هم) چې عفوه د نصاب تابع وي فَيُصْرَفُ الْهَلَاكُ أَوَّلًا إِلَى التَّبَعِ نو ځکه به هلاکېدل اول د تابع و طرف ته ګرځي كَالرِّبْحِ فِي مَالِ الْمُضَارَبَةِ لکه په مالِ مضاربت کې چې ګټه ده وَلِهٰذَا قَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ: يُصْرَفُ الْهَلَاكُ بَعْدَ الْعَفْوِ إِلَى النِّصَابِ الْأَخِيْرِ هم په دې وجه امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې تر عفوې وروسته به هلاک سوی مال د آخري نصاب و طرف ته ګرځي ثُمَّ إِلَى الَّذِيْ يَلِيْهِ بيا به د هغه نصاب و طرف ته (ګرځي) چې د آخري نصاب سره متصل (او نژدې) وي إِلَى أَنْ يَنْتَهِيَ تر دې چې ټوله نصاب ختم سي لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ النِّصَابُ الْأَوَّلُ ځکه اصل خو اول نصاب دی وَمَا زَادَ عَلَيْهِ تَابِعٌ او کوم چې پر هغه زيات سوی وي هغه تابع دی وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُصْرَفُ إِلَى الْعَفْوِ أَوَّلًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز به (هلاک سوی مال) اول د عفوې و طرف ته ګرځي ثُمَّ إِلَى النِّصَابِ شَائِعًا بيا به د (ټوله) مال و طرف ته پر طريقه د شيوع ګرځي.

**اللغات:** ﴿عفو﴾ زيات، اضافه. ﴿يلي﴾ د حَسِبَ د باب مضارع ده: نژدې کېدل، متصل کېدل. ﴿شائع﴾ غوړېدلی، عام.

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا فى الهنديه ج:۱، ص:۱۸۰، و كما قال العلامة وهبة الزحيلي: الزكاة فى النصاب دون العفو (الاوقاص). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۷۰]

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الزكاة، باب زكاة الإبل والغنم، حديث رقم: ۱۹۶۴.

**تشریح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره پوه سئ چي په هر مال کي د نصاب هم يو مقدار سته، او د عفوي هم يو مقدار سته، مثلاً په پنځو اوښانو کي يوه بزه واجب ده، او تر نهو اوښانو پوري همدغه يوه بزه ده، کله چي لس اوښان سي، نو بيا په هغو کي دوې بزې واجب دي، نو پنځه اوښان او لس اوښان خو نصاب سو، لېکن په مېنځ کي له شپږو څخه تر نهو پوري عفوه ده. همدارنګه په پنځوېشت اوښانو کي يوه بنت مخاض او په شپږ دېرش اوښانو کي يوه بنت لبون ده، او د دوی مېنځ عفوه دي.

اوس په دې باره کي اختلاف دی چي د زکاة تعلق د عفوي سره سته، که نه، نو امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د زکاة تعلق به د نصاب سره وي، نه د عفوي سره، همدا قول د امام مالک، امام احمد او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله هم دی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي زکاة په نصاب او عفوه دواړو کي سته، او دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله نوی (جديد) قول هم دی، مثلاً که د يو چا سره نهه (٩) اوښان وي، نو په هغو کي يوه بزه واجب ده، لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا يوه بزه د پنځو اوښانو له طرفه زکاة دی، او پاته څلور اوښان عفوه دي، د هغو سره د زکاة بالکل هيڅ تعلق نسته، او د امام محمد رَحِمَهُ الله او امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز دا بزه د نهو اوښانو زکاة دی.

**ثمره د اختلاف:** په دې مثال کي ښکاره کېږي چي که د يو سړي په ملکيت کي نهه اوښان وي، او پر هغو يو کال تېر سي، بيا له هغو څخه څلور اوښان هلاک سي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به په پاته پنځو کي پر هغه يوه بزه واجب وي، او د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نېز به د بزې قيمت نهه حصې کېږي، او پنځه حصې به پر هغه واجب وي، او څلور حصې به ځني ساقطېږي، يا مثلاً که د يو سړي په ملکيت کي اتيا (٨٠) بزې وي، نو تر کال تېرېدلو وروسته خو په هغو کي يوه بزه واجبېږي (ځکه له ٤٠ څخه تر ١٢٠ بزو پوري يوه بزه واجبېږي)، لېکن تر کال تېرېدلو وروسته څلوېښت بزې هلاکي سې، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پاته څلوېښت بزې پوره نصاب دی، په هغو کي چي کومه يوه بزه واجب وه، هغه به هغسي واجب پاته وي، او څرنګه چي د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نېز د زکاة تعلق د نصاب او عفوي دواړو سره دی، نو ګواکي د هغوی په نېز يوه بزه په اتيا (٨٠) بزو کي واجب سوه، او تر کال تېرېدلو وروسته نيمې بزې هلاکي سوې، نو د بزو د مقدار مطابق به واجب سوې بزه هم نيمې ساقطېږي، يعني په دې څلوېښتو بزو کي به د بزې نيمې قيمت واجبېږي، او نيمې به ساقطېږي.

**د امام محمد او امام زفر دليل:** دا دی چي زکاة د مالي نعمت د شکر اداء کولو لپاره واجب سوی دی، او مال ټوله هغه که عفوه وي او که نصاب، نعمت دی، نو ځکه به د زکاة تعلق د ټوله مال سره وي، او د زکاة کوم مقدار چي پر موږ واجب سوی دی هغه هم د ټوله مال شکرانه ده.

**د شيخينو دليل:** دا دی چي نبي ﷺ په دې حديث: في خمس من الإبل السائمة شاة وليس في الزيادة شئ حتى تبلغ عشرا کي د دې خبري وضاحت کړی دی چي د زکاة تعلق به صرف د نصاب سره وي، د عفوي سره به نه وي، کنې د ليس في الزيادة شئ به هيڅ معنیٰ او مطلب نه راوځي، او دا د رسول الله ﷺ د کلام سره لايق نه دي، او څرنګه چي نبي ﷺ په حتى تبلغ عشرا سره په عفوه کي يعني له ٦ څخه تر ٩ پوري زکاة معاف ګرځولی دی، او له عفوي څخه يې د زکاة نفي کړي دي، نو ځکه موږ وايو چي د زکاة تعلق به صرف د نصاب سره وي، د عفوي سره به نه وي.

**عقلي دليل:** دا دی چي څرنګه عفوه د نصاب تر وجود وروسته ثابتېږي، نو ځکه به عفو د نصاب تابع وي، او چيري چي مال پر اصل او تابع مشتمل وي، او بيا له هغه څخه څه مال هلاک سي، نو هلاک سوی مال به د تابع و طرف ته ګرځول

کیږي، نه د اصل و طرف ته، یعني دا به ویل کیږي چې هلاک هغه مال سو چې تابع دی، نه هغه مال چې اصل دی، لکه په مال مضاربت کې چې نفع ده، یعني که یو سړي یو چا ته په مضاربت کې د تجارت مال ورکړی، او په هغه کې گټه وسوه، او مضارب مسلسل تجارت کوی چې نابېره څه مال هلاک سو، نو دا نقصان به بالاتفاق پر اوله گټه اچول کیږي، نه پر اصل مال(رأس المال)، یعني دا به ویل کیږي چې گټه هلاکه سوه، نه رأس المال، هم په دې وجه امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چې څومره اندازه مال هلاک سي، هغه به تر عفوي وروسته د نصاب أخیر و طرف ته گرځول کیږي، یعني هلاک سوی مال که د عفوي په مقدار سره پوره نه سو، نو هغه به پر آخر د نصاب اچول کیږي، که په دې سره هم پوره نه سو، نو کوم نصاب چې د هغه سره متصل وي پر هغه به اچول کیږي، ځکه چې اصل خو اول نصاب دی، او کوم چې پر هغه زیات دی، هغه ټوله تابع دی.(مثلاً د یو چا سره ۱۹ اوښان وي، او له هغو څخه ۹ اوښان هلاک سي، نو اول به څلور اوښان د عفوي و طرف ته گرځول کیږي، او دا به ویل کیږي چې څلور اوښان له عفوي څخه هلاک سول، تر دې وروسته به پنځه اوښان له هغه نصاب څخه هلاک شمارل کیږي کوم چې له لسو څخه تر پنځلسو پوري اوښان دي، ځکه چې همدغه آخري نصاب دی، او که تر دې وروسته نور اوښان هلاک سول، نو له پنځو څخه چې تر لسو پوري کوم اوښان دي، له هغو څخه به هلاک سوي اوښان شمارل کیږي، ځکه چې آخري نصاب د اول نصاب تابع وي، او اول نصاب اصل وي، نو ځکه به تابع اول هلاک شمارل کیږي، وروسته به اصل هلاک شمارل کیږي).

وعند أبي یوسف رَحِمَهُ اللهُ په دې لړ کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې هلاک سوی مال به اول خو د عفوي و طرف ته گرځول کیږي، لېکن کله چې هلاک سوی مال د عفوي له مقدار څخه زیات سي، نو په دې صورت کې به علی سبیل الشیوع (یعني په مشترکه توگه) د ټوله نصاب و طرف ته گرځول کیږي، او د نصاب د اول او آخر به هیڅ تخصیص نه کیږي، صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله وایي چې د دې تفصیل داسې دی چې که د یو سړي سره څلوېښت اوښان وي، او پر هغو کال تېر سي، بیا له هغو څخه شل اوښان هلاک سي، نو د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز پر مالک څلور بزې واجبیږي، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه د یوه بنت لبون له شپږ دېرشو (۳۶) اجزاؤ څخه شل (۲۰) اجزاء واجبیږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د نیمی بنت لبون قیمت واجبیږي، د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول وجه دا ده چې د زکاة تعلق به د نصاب او عفوي دواړو سره وي، نو کله چې نیمی مال یعني له څلوېښتو اوښانو څخه شل اوښان هلاک سول، نو نیمی زکاة به ساقطیږي، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول وجه دا ده چې تر ۳۶ وروسته څلور خو عفوه دي، یعني له شلو هلاک سوو اوښانو څخه به څلور اوښان له عفوي څخه شمارل کیږي، یعني دا به ویل کیږي چې څلور اوښان د عفوي هلاک سول، چې د هغو سره د زکاة هیڅ تعلق نسته، نو ځکه به د هغو څلورو د هلاکېدلو په وجه به د زکاة هیڅ حصه نه ساقطیږي، او باقي شپاړس(۱۶) به پر ټوله نصاب اچول کیږي او له ټوله نصاب څخه به شمارل کیږي، یعني دا به ویل کیږي چې په ۳۶ اوښانو کې یوه بنت لبون واجب سوه، لېکن کله چې ۱۶ اوښان هلاک سول، نو د بنت لبون له ۳۶ حصو څخه ۱۶ حصې ساقطي سوې، او ۲۰ حصې پاته سوې، مثلاً د بنت لبون قیمت ۳۶ سوه روپی دی، نو ۱۶۰۰ سوه روپی به ساقطیږي، او ۲۰۰۰ روپی به پاتیږي، او د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز به له شلو هلاک سوو اوښانو څخه څلور له عفوي څخه شمارل کیږي، یعني دا به ویل کیږي چې د عفوي څلور اوښان له ۳۷ څخه تر ۴۰ پوري هلاک سول، بیا به هلاک سوي اوښان د نصاب أخیر و طرف ته گرځول کیږي یعني دا به ویل کیږي چې تر ۲۵ وروسته یوولس(۱۱) اوښان هلاک سول، خو څرنگه چې هلاک سوي اوښان اوس پوره نه سوه، نو د نصاب أخیر سره چې متصل کوم نصاب دی، د

هغه وطرف ته به ګرځول کیږي، یعني دا به وریل کیږي چې تر شلو وروسته تر ۲۵ پورې هلاک سول، اوس هلاک سوي اوښان پوره سول، او شل اوښان پاته سول، نو په هغو کې به څلور بزې واجبیږي، ځکه چې په شلو اوښانو کې څلور بزې واجب دي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

## که خوارجو په زوره زکاة او خراج واخیستی نو څه حکم دی؟

وَإِذَا أَخَذَ الْخَوَارِجُ الْخَرَاجَ او که خوارجو خراج واخیستی وَصَدَقَةَ السَّوَائِمِ او د څرېدونکو څارویانو زکاة یې واخیستی لَا يُثَنَّى عَلَيْهِمْ نو له خلکو څخه به دویم وار (دا شیان) نه اخیستل کیږي لِأَنَّ الْإِمَامَ لَمْ يَحْمِهِمْ ځکه چې امام د خلکو حفاظت نه وکړی وَالْجِبَايَةُ بِالْحِمَايَةِ او محصول (ټیکس) د حفاظت په وجه سره واجبیږي وَأَفْتَوْا بِأَنْ يُعِيدُوهَا دُونَ الْخَرَاجِ او خلکو ته به دا فتویٰ ورکول کیږي چې هغوی دې زکاة دوباره (فقیرانو ته) ورکړي، نه خراج فِيمَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى (دا دوباره زکاة ورکول به) د دوی او د الله په مینځ کې وي لِأَنَّهُمْ مَصَارِفُ الْخَرَاجِ ځکه چې خوارج (هم) د خراج مصرف دي لِكَوْنِهِمْ مُقَاتِلَةً ځکه چې هغوی له جنګېدونکې فوج څخه دي وَالزَّكَاةُ مَصْرِفُهَا الْفُقَرَاءُ او د زکاة مصرف فقیران دي وَهُمْ لَا يَصْرِفُونَهَا إِلَيْهِمْ او خوارج دا پر فقیرانو نه مصرفوي (نو ځکه به دوباره زکاة ورکوي) وَقِيلَ: إِذَا نَوَى بِالدَّفْعِ التَّصَدُّقَ عَلَيْهِمْ سَقَطَ عَنْهُ او ویل سوي دي: چې کله مالک د مال ورکولو په وخت کې پر دې خوارجو د زکاة نیت وکړي نو له هغه څخه زکاة ساقطیږي وَكَذَا الدَّفْعُ إِلَى كُلِّ جَائِرٍ همدارنګه هر ظالم ته د زکاة ورکولو په وخت کې (که د زکاة نیت وکړي نو زکاة ځني ساقطیږي) لِأَنَّهُمْ بِمَا عَلَيْهِمْ مِنَ التَّبِعَاتِ فُقَرَاءُ ځکه چې دا (ظالمان) خلک (هم) د هغو ظلمونو (او حقونو) په وجه کوم چې پر هغوی پراته دي فقیران دي وَالْأَوَّلُ أَحْوَطُ او په اول قول کې زیات احتیاط دی.

**اللغات:** ﴿يُثَنَّى﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: دویم وار کول، دوباره کول، دوغبرګه کول. ﴿لَمْ يَحْمِهِمْ﴾ د ضرب د باب د جحد معلوم صیغه ده: حفاظت او ساتنه کول، حمایت کول. ﴿جِبَايَة﴾ محصول، ټیکس. ﴿مُقَاتِلَة﴾ د مسلمانانو له طرفه د کفارو سره جنګېدونکې ډله، فوج. ﴿جَائِر﴾ ظالم، غصب کونکی واکمن. ﴿تَبِعَات﴾ جمع د تبعة ده: ذمه واریانې، حقوق، مراد ځني هغه ظلمونه، ازارونه او حقونه دي چې په انسان پسې وي او انسان به د هغو حساب ورکوي.

**تشریح:** خوارج د خارجي جمع ده، له دې څخه د مسلمانانو هغه ډله مراد ده. چې د عادل امام په خلاف د بغاوت او سرکښۍ بیرغ پورته کړي، او د عادل امام قتل او مال مباح وګڼي، او د هغو دا عقیده وي چې که یو څوک ګناه وکړي برابره ده که کوچنۍ ګناه وي، که غټه، هغه کافر دی، او د هغه قتلول حلال دي، خو دا چې هغه توبه وکړي، او له ګناه څخه لیرې سي. (بنایه ج:۳، ص: ۲۲۰)

په عبارت کې چې کومه مسئله بیان سوې ده، د هغې حاصل دا دی چې که خوارج د مسلمانانو په یوه علاقه کې تسلط، او هلته هغوی له مسلمانانو څخه د زکاة څارويي، او له کفارو څخه یې د خراج او ټیکس مالونه واخیستل، تر هغه

وروسته امامِ عادل هلته ورورسېدی، نو اوس عادل امام ته نه له مسلمانانو څخه دويم وار د زکاة اخيستلو حق سته، او نه له کفارو څخه د خراج اخيستلو حق سته، ځکه کفار چې کوم خراج ورکوي، هغه يې په دې وجه ورکوي چې په دارُ الاسلام کې دې هغوی په سکون او آرام سره ژوند تېر کړي، او هيڅوک دې د هغوی پر ځان او مال تجاوز نه کوي، خو څرنګه چې په پورتنۍ صورت کې خوارجو پر هغوی حمله وکړه او په زور او جبر يې له هغو څخه مال واخيستی، نو دا ګواکې د امامِ عادل له طرفه د هغوی په حق کې بې پروايي او بې غوري وسوه، او د هغوی په ساتنه او په امن و امان کې خلل واقع سو، نو ځکه به هغوی اوس امام ته خراج نه ورکوي، ځکه چې خراج د ساتنې او حفاظت په وجه سره ورکول کيږي.

همدارنګه به زکاة هم دوباره نه ورکول کيږي، او په دې حواله سره به امام ته د جبر کولو هيڅ حق هم نه وي، لېکن مسلمانانو ته به دا ويل کيږي چې ورونو! احتياطاً فيما بينكم وبين الله دويم وار زکاة ورکړئ، ځکه چې خوارج د زکاة مصرف نه دي، د زکاة مصرف خو فقيران او غريبان دي، ځکه خوارج ټوله د زکاة مال په خپله اخلي، او له هغه څخه يوه رتې هم پر غريبانو نه مصرفوي، ځکه چې دا بدبخته خوارج خو د مسلمانانو قتل هم مباح ګڼي، نو کله چې د هغوی په نېز د مسلمانانو وينه مباحه ده، نو هغو ته به د زکاة مال څرنګه ورکړي!.

پاته سوه د خراج مسئله، نو دوباره د هغه د اداء کولو ضرورت نسته، ځکه چې خوارج خو هم په هر حال مسلمانان دي، او که د کافرانو او مسلمانانو په مينځ کې جنګ ومښلي، نو خوارج هم د مسلمانانو له طرفه د کفارو سره جنګيږي، نو ځکه به د هغوی شمېر له مُقاتله يعني له جنګېدونکي ډلې او فوج څخه وي، او د مُقاتله وو لپاره خراج مباح دی، نو ځکه په د هغوی لپاره هم خراج مباح وي، او دويم وار به خراج نه اداء کيږي.

وقيل الخ په دې لړ کې د فقيه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله قول دا دی چې که مسلمانانو و خوارجو ته يا يو هـې و بل ظالم او جابر ته د مال ورکولو په وخت کې د زکاة نيت وکړی، نو د هغو له ذمې څخه زکاة ساقطيږي، ځکه چې د ظالمانو سره چې کوم ظاهري مال او اسباب وي، هغه ټوله د نورو وي، لو دا ظالمانو پر دې مالونو په ظلم سره قبضه کړې وي، په حقيقت کې د هغو هيڅ شی هم نه وي، همدارنګه په دوی پسې د خلکو ډېر حقونه پسې وي چې د هغه حساب به دوی ورکوي، او که دا مالونه له دوی څخه بيرته په زوره واخيستل سي، نو هغوی به فقيران پاته سي، نو کله چې په معنوي توګه او په اصل کې هغوی فقيران دي، نو بيا که هغوی ته د مال ورکولو په وخت کې مالک د زکاة نيت وکړي، نو د هغه زکاة به اداء کيږي.

والأول أحوط صاحب د هدايې فرمايي چې پر ظالمانو خو زکاة اداء کيږي، لېکن اول يعني په دويم وار زکاة ورکولو کې زيات احتياط دی، او په عبادتونو کې د احتياط اړخ ته نظر کول پکار دي، ځکه د فقهې مشهوره ضابطه دا ده: أن الإحتياط جائز في حقوق الله تعالى.

## د بني تغلب په مالونو کې د زکاة او د ټيکس واجبدلو بيان

| |
|---|
| وَلَيْسَ عَلَى الصَّبِيِّ مِنْ بَنِيْ تَغْلِبَ فِيْ سَائِمَتِهِ شَيْءٌ او د بني تغلب پر نابالغه کوچني د هغه په سائمه څاروي کې هيڅ څه نسته وَعَلَى الْمَرْأَةِ مِنْهُمْ مَا عَلَى الرَّجُلِ او د بني تغلب پر ښځه هغه شی واجب دی کوم چې د بني تغلب پر سړي واجب دی لِأَنَّ الصُّلْحَ قَدْ جَرَى ځکه چې صلح (د هغو سره پر دې خبره) وسوه عَلَى ضِعْفِ مَا يُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ |

چي له بني تغلب څخه به تر مسلمانانو دوچنده اخيستل کيږي وَيُؤْخَذُ مِنْ نِّسَاءِ الْمُسْلِمِيْنَ دُوْنَ صِبْيَانِهِمْ او د مسلمانانو له ښځو څخه (خو) زکاة اخيستل کيږي (لېکن) له کوچنيانو څخه يې نه اخيستل کيږي.

**اللغات:** ﴿ضِعْف﴾ دوچنده، ﴿صِبْيَان﴾ جمع د صبي ده: کوچني.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره پوه سئ چي بنو تغلب د عربو عيسايانو يو قوم وو چي د "روم" سره نژدې آباد وو، حضرت عمر رضي الله عنه خپل د خلافت په زمانه کي پر هغو د جزيې مقررولو اراده وکړه، نو هغوی له جزيې ورکولو څخه انکار وکړی، او دا يې وويل چي که تاسو زور کوی، نو موږ به ستاسو له رومي دښمنانو سره يو ځای سو، هو! ک تاسو زموږ څخه زکاة اخيستل غواړئ نو موږ د دې لپاره تيار يو، که څه هم زموږ څخه د مسلمانانو دوچنده واخلئ، نو حضرت عمر رضي الله عنه د صحابه وو سره مشوره وکړه، او د بنو تغلب سره يې پر دې خبره صلح وکړه چي مسلمانان خو دوه نيم فيصده زکاة ورکوی، دوی به پنځه فيصده زکاة ورکوي، نو بنو تغلب په دې راضي سول، او حضرت عمر رضي الله عنه دوی ته وفرمايل: هذه جزية فسموها ما شئتم (چي دا خو موږ جزيه بولو، تاسو چي هر څه غواړئ هغه نوم ورکړئ). (بنايه ج۳، ص: ۴۲۳)

په دې عبارت کي د دغه بنو تغلب بيان کيږي چي د بنو تغلب له نارينه وو او ښځو څخه به د دوی په مالونو کي ۵ فيصده (يعني دوچنده) زکاة اخيستل کيږي، لېکن د دوی له نابالغه کوچنيانو څخه به هيڅ نه اخيستل کيږي، ځکه چي د مسلمانانو له ښځو څخه زکاة اخيستل کيږي، ليکن له کوچنيانو څخه يې نه اخيستل کيږي، همدارنگه حضرت عمر رضي الله عنه چي کوم تړون وکړی، په هغه کي صرف د دوچنده صراحت سته، او له کوچنيانو څخه د مال اخيستلو هيڅ صراحت نسته، او حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا بيان کړی دی چي څرنګه له بنو تغلب څخه اخيستل سوی مال د جزيې بدل دی، او پر ښځو جزيه واجب نه ده، نو ځکه به د هغوی له ښځو څخه هم هيڅ نه اخيستل کيږي، د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله او نورو هم دا مسلک دی (بنايه)، خو ظاهرُ الرواية اول صورت دی.

## د زکاة تر واجبېدلو وروسته د مال د هلاکېدلو بيان

وَإِنْ هَلَكَ الْمَالُ بَعْدَ وُجُوْبِ الزَّكَاةِ سَقَطَتِ الزَّكَاةُ او که د زکاة تر واجبېدلو وروسته مال هلاک سي نو (زموږ په نيز) زکاة ساقطيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَضْمَنُ إِذَا هَلَكَ بَعْدَ التَّمَكُّنِ مِنَ الْأَدَاءِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مالک به ضامن وي که د زکاة پر اداء کولو باندي تر قدرت لرلو وروسته مال هلاک سوی وي لِأَنَّهُ الْوَاجِبُ فِي الذِّمَّةِ ځکه چي زکاة (د مالک) پر ذمه واجب وي فَصَارَ كَصَدَقَةِ الْفِطْرِ نو دا د سرسايې په ډول سو وَلِأَنَّهُ مَنَعَهُ بَعْدَ الطَّلَبِ او په دې وجه (هم) چي مالک تر غوښتني وروسته زکاة منع کړی فَصَارَ كَالْإِسْتِهْلَاكِ نو هلاکېدل د هلاکولو په ډول سوه وَلَنَا أَنَّ الْوَاجِبَ جُزْءٌ مِنَ النِّصَابِ او زموږ دليل دا دی چي واجب مقدار د نصاب يو جزء دی تَحْقِيقًا لِلتَّيْسِيْرِ د آسانۍ ثابتولو لپاره فَيَسْقُطُ بِهَلَاكِ مَحَلِّهِ نو د محل په هلاکېدلو سره به دا جزء هم ساقطيږي كَدَفْعِ الْعَبْدِ الْجَانِيْ بِالْجِنَايَةِ يَسْقُطُ بِهَلَاكِهِ لکه د جرم په وجه سره چي د مجرم غلام ورکول ساقطيږي د هغه مجرم غلام په هلاکېدلو سره وَالْمُسْتَحِقُّ فَقِيْرٌ يُعَيِّنُهُ الْمَالِكُ او مستحق هغه فقير دی کوم چي يې مالک معلوم کړي وَلَمْ يَتَحَقَّقْ مِنْهُ الطَّلَبُ او د داسي فقير له

طرفه غوښتنه ثابته سوې نه ده وَبَعْدَ طَلَبِ السَّاعِيْ قِيْلَ يَضْمَنُ او د زکاة اخيستونکي تر غوښتولو وروسته يو قول دا دی چې مالک ضامن کيږي وَقِيْلَ لَا يَضْمَنُ لِانْعِدَامِ التَّفْوِيْتِ او يو قول دا دی چې نه ضامن کيږي ځکه چې هلاکول نسته وَفِي الْإِسْتِهْلَاكِ وُجِدَ التَّعَدِّيْ او په مال هلاکولو کې تجاوز پيدا سو (يعني په هغه کې تجاوز سته) وَفِي هَلَاكِ الْبَعْضِ يَسْقُطُ بِقَدْرِهِ او د بعضې مال د هلاکېدلو په صورت کې به د هغه په اندازه (واجب) ساقطيږي اِعْتِبَارًا لَهُ بِالْكُلِّ پر کُل باندې د بعض په قياسولو سره.

**اللغات:** ﴿تمكّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: قدرت لرل، وس پيدا کول. ﴿جانی﴾ مجرم، ګناهکار. ﴿جناية﴾ جرم، ګناه. ﴿تعدّي﴾ د تفعل د باب مصدر دی: سرکشي، زياتي، ظلم، تجاوز.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نيز د زکاة تر واجبېدلو وروسته که مال بغير له څه تعدیٰ او تجاوز څخه هلاک سو، نو د هغه زکاة هم ساقطيږي، همدا قول د امام احمد رَحِمَهُ الله دی، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که د زکاة پر ورکړي (او اداء کولو) تر قدرت لرلو وروسته مال هلاک سو، نو زکاة نه ساقطيږي، بلکې د زکاة په اندازه به پر هغه ضمان واجب وي، او د زکاة پر اداء کولو قدرت دا دی چې د مال خاوند تر حولانِ حول وروسته د زکاة د حقداره په پيدا کولو کې کامیابه سي، هغه که تر طلب او لټون وروسته کامیابه سي، او که بغير له طلبه څخه. (يعني چې کله کال پوره سي او هغه ته مستحق فقير معلوم وي، نو دا ګواکې د زکاة پر اداء کولو قدرت لرل سو).

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې زکاة د بنده پر ذمه واجب دی، او د کوم سړي پر ذمه چې يو شی واجب وي، نو هغه شی له اداء څخه د عاجزۍ په وجه د هغه سړي له ذمې څخه نه ساقطيږي، لکه سرسايه، حج او د بندګانو پوروونه. يعني که پر يو چا سرسايه واجب سي، يا حج پر واجب سي، يا د يو چا پور پر باندې وي، بيا د هغه ټوله مال هلاک سي، نو د هغه له ذمې څخه سرسايه، حج او پور نه ساقطيږي، همدارنګه که د زکاة تر واجبېدلو وروسته ټوله مال هلاک سي، نو د هغه له ذمې څخه به زکاة نه ساقطيږي، دويم دليل دا دی چې زکاة د الله تعالیٰ حق دی، او پر اداء باندې د قدرت تر لرلو وروسته الله ﷻ د خطاب په ذريعه سره د دې طلب هم کړی دی (د الله تعالیٰ له خطاب څخه تقديري خطاب مراد دی). لېکن کله چې هغه اداء نه کړي، نو دغه د مال هلاکېدل به داسې وي لکه د حقداره سړي تر غوښتنې وروسته د هغه منع کول، او حقداره تر غوښتنې وروسته منع کول ضمان واجبوي، لکه څرنګه چې په تعدیٰ سره د مال هلاکول ضمان واجبوي.

**زموږ دليل:** دا دی چې زکاة پر ذمه واجب نه دی، بلکې خاص په مال کې واجب دی، يعني زکاة د نصاب يو جزء دی، ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: فی کل أربعين شاة شاة، په دې حديث کې د "فی" کلمه ذکر سوې ده. او د "فی" کلمه پر جزئيت دلالت کوي، (يعني په څلوېښتو (۴۰) بزو کې يوه بزه ده). د دې حديث مطلب بالکل دا نه دی چې د څلوېښتو بزو زکاة دا دی چې له دغه څلوېښتو بزو څخه ماسوا يوه بزه ورکړه، بلکې مطلب يې دا دی چې له همدغه څلوېښتو بزو څخه يوه بزه کوم چې د دې څلوېښتو بزو جزء ده، ورکړه، او د زکاة لپاره د نصاب يو جزء مقررول د آسانتيا لپاره دی، ځکه چې د نصاب يو جزء را ايستل د انسان په قدرت کې سته. لنډه دا چې دا خبره ثابته سوه چې زکاة د نصاب د مال يو جزء دی، او دا جزء په خپله په مال کې سته، نو دا جزء به د خپل محل په هلاکېدلو سره ساقطيږي، ځکه کله چې ټوله مال هلاک سي، نو د دغه سړي لپاره د دې جزء پر ورکولو قدرت نه پاتيږي، او کله چې يې پر ورکولو قدرت نه پاتيږي، نو پر واجب به هم نه وي، او دا مسئله داسې ده لکه يو غلام چې را ولاړ سي او بل

 څوک په خطاء قتل کړي، نو حکم دا دی چې مالک به داقاتل غلام د مقتول ولي ته ورکوي، لېکن که تر سپارلو مخکې داقاتل غلام مړ سي، نو بیا دا ورکول ساقطیږي، یعني پر مالک به هیڅ شی واجب نه وي، نو ثابته سوه چې زکاة پر نمه نه واجبیږي، بلکې په عینِ مال کې واجبیږي، او سرمایه او نور پر نمه واجبیږي، نو ځکه به زکاة پر سرسایې او نورو قیاسول صحیح نه وي.

والمستحق فقیر یعینه المالك په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دویم دلیل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې د زکاة حقدار هر فقیر نه دی، بلکې هغه فقیر دی چې مالک یې معلوم کړي، او په پورتني صورت کې مالک تر اوسه پورې هیڅوک معلوم کړی نه دی، نو د هیڅ فقیر له طرفه غوښتنه هم ثابته نه سوه، او کله چې غوښتنه ثابته نه سوه، نو تر غوښتنې وروسته منع کول هم نه راغله، او کله چې منع کول نه راغله، نو ځکه به مالک د منع عن الطلب په وجه متعدي هم نه بلل کیږي، فلا یجب علیه الضمان.

وبعد طلب الساعي الخ پاته سوه دا خبره چې که ساعي یعني د زکاة اخیستونکی زکاة وغوښتی، او مالک نه ورکړي، تر دې چې تو له مال هلاک سو، نو شیخ ابو الحسن کرخي وایي چې دا سړی به د زکاة ضامن وي، تر دې چې کله هغه ته مال په لاس ورسي، نو دا تاوان به اداء کوي، او د ماوراء النهر مشائخو ویلي دي چې ضامن به نه وي، د شیخ ابو الحسن کرخي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې څرنګه ساعي د زکاة اخیستولو لپاره متعین سوی دی، او د ساعي تر غوښتنې وروسته هغه منع کړې ده، نو د هغه منع کول به تفویت یعني د مال فوتول او هلاکول وي، او څرنګه چې د تفویت او هلاکولو په صورت کې د زکاة ضمان لازمیږي، نو ځکه به په دې صورت کې هم پر هغه د زکاة تاوان واجب وي، د ماوراء النهر د مشائخو دلیل دا دی چې زکاة نه ورکول او منع کول د مال فوتول او هلاکول نه دي، ځکه ممکنه ده چې په منع کولو سره به د هغه اراده بل چا ته د زکاة ورکولو وي، نو کله چې د زکاة نه ورکول تفویت نه سو، نو هغه به ضامن هم نه وي.

وفي الاستهلاك... الخ په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قیاس جواب ورکوي، امام شافعي فرمایلي وو چې څرنګه د استهلاک په صورت کې (یعني په خپله د مال د هلاکولو په صورت کې) زکاة واجبیږي، همدارنګه به د مال د هلاکېدلو په صورت کې هم زکاة واجبیږي، نو د هغه جواب ورکوي چې د استهلاک په صورت کې د مالک له طرفه تعدیٰ سته، نو ځکه به زجراً پر هغه ضمان واجبیږي، او د مال د هلاکېدلو په صورت کې د مالک له طرفه هیڅ تعدیٰ نسته، نو ځکه به پر هغه ضمان نه لازمیږي.

وفي هلاك البعض الخ فرمایي چې که لږ مال هلاک سو، او لږ مال پاته سو، نو د هلاک سوي مال زکاة ساقطیږي، او په پاته مال کې به زکاة واجب وي، ځکه چې دلته بعض پر کُل قیاسیږي، نو کله چې د کُل د هلاکېدلو په صورت کې تو له زکاة ساقطیږي، نو د بعضي مال د هلاکېدلو په صورت کې به د هغه په اندازه بعضي زکاة ساقطیږي.

## تر کال پوره کېدلو مخکې د زکاة د اداء کولو حکم

وَإِنْ قَدَّمَ الزَّكَاةَ عَلَى الْحَوْلِ او که یو سړي تر کال پوره کېدلو مخکې زکاة اداء کړی وَهُوَ مَالِكٌ لِلنِّصَابِ جَازَ او هغه د نصاب مالک وو نو دا مخکې اداء کول جائز دي لِأَنَّهُ أَدَّى بَعْدَ سَبَبِ الْوُجُوبِ ځکه چې هغه د زکاة د وجوب تر سبب وروسته زکاة اداء کړی فَيَجُوزُ نو ځکه به (د هغه اداء کول) جائز وي كَمَا إِذَا كَفَّرَ بَعْدَ الْجَرْحِ لکه یو سړي چې تر زخمي کولو وروسته کفاره ورکړي وَفِيهِ خِلَافُ مَالِكٍ او په دې کې د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَيَجُوزُ التَّعْجِيلُ

لِأَكْثَرَ مِنْ سَنَةٍ لِوُجُودِ السَّبَبِ او د يوه کال تر زکاة زيات زکاة ورکول (هم) جائز دي د سبب د وجود په وجه وَيَجُوْزُ لِنُصُبٍ إِذَا كَانَ فِي مِلْكِهِ نِصَابٌ وَاحِدٌ او که د انسان په ملکيت کې يو نصاب وو نو د هغه لپاره د څو نصابونو زکاة مخکې ورکول جائز دي خِلَافًا لِزُفَرَ د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ النِّصَابَ الْأَوَّلَ هُوَ الْأَصْلُ فِي السَّبَبِيَّةِ ځکه چې اول نصاب په سببيت کې اصل دی وَالزَّائِدُ عَلَيْهِ تَابِعٌ لَهُ او کوم چې پر اول نصاب زيات دي؛ هغه د اول نصاب تابع دی. والله أعلم بالصواب.

**اللغات**: ﴿تعجيل﴾ کړځېدل، مجازاً د کال پوره کېدل، ﴿کفّر﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: کفاره ورکول، ﴿نُصُب﴾ جمع د نِصَابٌ ده: ټاکلې اندازه، معلوم مقدار (نصاب).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې زموږ په نيز د نصاب مالک ته تر حولانِ حول (کال تېرېدلو) مخکې زکاة ورکول جائز دي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی، او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دي.

**د امام مالک دليل**: دا دی چې حولانِ حول شرط دی، لکه څرنګه چې نصاب شرط دی، او پر شرط مشروط مخکې کول جائز نه دي، نو ځکه به تر حولانِ حول مخکې زکاة مخکې ورکول جائز نه وي.

**زموږ دليل**: دا دی چې دغه سړي زکاة هغه وخت اداء کړی چې کله د زکاة د وجوب سبب پيدا سو، او د وجوب تر سبب وروسته اداء کول جائز دي، لکه يو سړی چې يو مسلمان په خطاء سره ووېلي، او هغه داسې زخمي کړي چې د ژوند اُميد يې پاته نه سي، او دا سړي د دغه زخمي مسلمان تر مړه کېدلو مخکې غلام آزاد کړي، نو جائز دي، ځکه چې د قتل سبب پيدا سو، همدارنګه که يو څوک په اول وخت کې لمونځ اداء کړي، نو جائز دي، ځکه چې د لمانځه سبب يعنې وخت پيدا سو.

**جواب**: د امام مالک د دليل جواب دا دی چې حولانِ حول د اداء د وجوب شرط دی، نه د اداء د جواز، يعنې تر حولانِ حول وروسته زکاة اداء کول واجبيږي، او تر هغه مخکې نه واجبيږي. دا يې مطلب نه دی چې تر حولان حول وروسته زکاة اداء کول جائز کيږي، او تر هغه مخکې نه جائز کيږي.

ويجوز التعجيل الخ صاحب د هدايې فرمايي چې که سبب يعنې د نصاب مال موجود وو، نو د زياتو کلونو زکاة هم مخکې (پيشګي) ورکول جائز دي، د دې مثال دا دی چې د نبي ﷺ په زمانه کې نبي ﷺ له حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه د دوو کالو زکاة مخکې واخيستی، ځکه کله چې سبب يعنې نصاب موجود وي، نو ښکاره ده چې د مسبب په وجود او د مسبب په ثبوت کې به هيڅ ستونزه نه وي.

ويجوز لنُصُب الخ نُصُب جمع د نصاب ده، مسئله دا ده که د يوه سړي په ملکيت کې يو نصاب وي، او هغه د څو نصابونو زکاة مخکې ورکړي، نو دا صحيح ده، صاحب د بنايې د دې مثال داسې بيان کړی چې مثلاً د يو سړي په ملکيت کې پنځه اوښان وي. او دا سړی د يوې بزې پر ځای څلور بزې مخکې په زکاة کې ورکړي، بيا د کال تر ختمېدلو وروسته د هغه په ملکيت کې شل (۲۰) اوښان راسي، نو د هغه مخکې اداء سوې زکاة د دې ټولو له طرفه کفايت کوي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د څو نصابونو زکاة مخکې اداء کول صحيح نه دي، ځکه د زکاة اداء کولو په باره کې هر نصاب په خپله اصل دی، او يو نصاب د بل نصاب تابع نه دی، نو د اداء کولو په وخت کې چې کوم نصاب موجود وي، د هغه زکاة به اداء کيږي، او د غيرِ موجود او غيرِ مملوک نصاب زکاة به نه اداء کيږي، کنې سبب يعنې د زکاة اداء کول به تر مسبّب يعنې د نصاب تر وجوب مخکې راسي، او دا بالکل صحيح نه دي.

**زموږ دليل**: دا دی چې د امام زفر رَحِمَهُ الله دا خبره چې هر نصاب اصل دی او تابع نه دی، صحيح نه ده، بلکې په سببيت يعنې د زکاة په وجوب کې اول نصاب اصل دی، او پاته نصابونه د هغه تابع دي، او څرنګه چې په پورتنۍ مسئله کې اصل نصاب موجود دی، نو د هغه توابع يعنې نور نصابونه به حکماً مملوک او موجود ګڼل کيږي، او د هغو له طرفه به زکاة ورکول هم صحيح ګڼل کيږي، نو کله چې داسې ده، نو د تقديم المسبَّب على السبب خرابي نه راځي.

# بَابُ زَكَاةِ الْمَالِ

(دا) باب د مالونو د زکاة (په بيان کي) دی

**تشريح:** څرنګه چي به د عربو په نيز سائمه څاروبان (يعني څرېدونکي څاروبان) قيمتي او د لوړي درجې شمارل کېدله، نو ځکه صاحب د کتاب د هغو بيان مخکي ذکر کړی، اوس تر هغو وروسته د نورو مالونو ذکر کوي، ښکاره دي وي چي دلته له مال څخه مراد له سوائمو (څرېدونکو څاروبانو) څخه ماسوا نور هر ډول مالونه دي، هغه که نغد مالونه وي (لکه روپۍ او زر)، او که د تجارت مالونه وي.

مال هر هغه شي ته يل کيږي چي انسان د هغه مالک جوړ سي، او فقهاؤ د مال تعريف داسي کړی دی: "چي په کوم شي کي بدل جاري وي، او د هغه و طرف ته د انسان طبيمت ليواله او راغب وي، او د ضرورت تر وخته پوري د هغه جمع کول ممکن وي هغه شي ته "مال" ويل کيږي".

# فَصْلٌ فِي الْفِضَّةِ

(دا) فصل د سپينو زرو (د زکاة په بيان کي) دی

**تشريح:** صاحب د کتاب د سپينو زرو احکام د سرو زرو تر احکامو مخکي بيانوي، د دې يوه وجه دا ده چي د رسول الله ﷺ په فرمان کي اول د سپينو زرو ذکر سوی دی او وروسته د سرو زرو، او بله وجه يې دا ده چي د سرو زرو په مقابله کي سپين زر ډېر دي، او آسانه تر لاسه کيږي، او د امير و غريب ټولو سره څه نا څه سته، نو ځکه د سپينو زرو بيان د سرو زرو تر بيان مخکي بيانوي.

## د سپينو زرو د زکاة نصاب او د زکاة اندازه

لَيْسَ فِيمَا دُونَ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ صَدَقَةٌ تر دوو سوو په کمو درهمو کي زکاة نسته لِقَوْلِهِ [1] عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ صَدَقَةٌ تر پنځو اوقيو په کمو کي زکاة نسته وَالْأُوقِيَّةُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا او يوه اقيه څلوېښت درهمه وي فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْنِ وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ نو کله چي درهمونه دوه سوه وي او پر هغو کال (هم) تېر سي نو په هغو کي به پنځه درهمه واجب وي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2] كَتَبَ

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب ليس فيما دون خمس، حديث رقم: ١٤٥٩

[2] تخريج: أخرجه دارقطني في كتاب الزكاة، باب وجوب زكاة الذهب والورق، حديث رقم: ١٨٨٥.

إِلَى مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځکه نبي ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته (دا) ليکلي وو أَنْ خُذْ مِنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ "چي ته له هرو دوو سوو درهمونو څخه پنځه درهمه اخله وَمِنْ كُلِّ عِشْرِينَ مِثْقَالًا مِنْ ذَهَبٍ نِصْفَ مِثْقَالٍ او د سرو زرو له هرو شلو مثقالونو څخه نيم مثقال اخله".

**اللغات:** ﴿أواق﴾ جمع د أوقية ده: د سپينو زرو يو وزن دی چي تقريباً لس نيمي تولې کيږي. يعني يوه اوقيه لس نيمي تولې کيږي، او د ګرام په حساب سره ۴۷. ۱۲۲ ګرامه کيږي. ﴿مثقال﴾ د سرو زرو يو وزن دی چي تقريباً ۳۷۵. ۴ ګرامه کيږي.

**تشريح:** په دې عبارت کي دا بيان سوي دي چي د سپينو زرو نصاب دوه سوه (۲۰۰) درهمه دی، او د سرو زرو نصاب شل (۲۰) مثقاله دی، نو نه له ۲۰۰ څخه په کمو درهمو کي زکاة واجب دی، او نه له ۲۰ مثقالو څخه په کمو سرو زرو کي زکاة واجب دی، دليل هغه حديث دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو، يعني: ليس فيما دون خمس أواق صدقة. او يوه اوقيه ۴۰ درهمه وي، نو په دې اعتبار سره ۵ اوقيې د ۲۰۰ درهمو سره برابري دي، او همدا د سپينو زرو نصاب دی، نو کله چي د سپينو زرو نصاب پوره سي، يعني د يو سړي سره ۲۰۰ درهمه وي، او پر هغو کال هم تېر سي، نو په هغو کي دوه نيم فيصده يعني پنځه درهمه د زکاة واجبيږي، ځکه نبي ﷺ چي د معاذ بن جبل ﷺ په نامه کوم خط ليکلی وو، په هغه کي يې دا حکم کړی وو چي له ۲۰۰ درهمو څخه پنځه درهمه اخله، او له ۲۰ مثقالو څخه نيم مثقال اخله، په دې حديث کي د زکاة نصاب هم بيان سوی دی، او په نصاب کي د زکاة واجب مقدار هم بيان سوی دی.

## له دوو سوو درهمو څخه په زيات مال کي د زکاة حکم

قَالَ: وَلَا شَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتَّى تَبْلُغَ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا فرمايي: چي (بيا) له دوو سوو درهمو څخه په زياتو کي هيڅ شی نسته تر دې چي زياتوب څلوېښتو درهمو ته ورسيږي فَيَكُونُ فِيهَا دِرْهَمٌ نو په څلوېښتو کي به يو درهم وي ثُمَّ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ بيا به په هرو څلوېښتو کي يو درهم وي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ● او دا حکم د امام صاحب رحمه الله په نيز دی وَقَالَا: مَا زَادَ عَلَى الْمِائَتَيْنِ فَزَكَاتُهُ بِحِسَابِهِ صاحبين رحمهما الله فرمايي: پر دوو سوو درهمو چي کوم څه زيات سي نو د هغه زکاة به د هغه په حساب سره کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رحمه الله قول دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● فِي حَدِيثِ عَلِيٍّ ﷺ د حضرت علي ﷺ په حديث کي د نبي ﷺ (د دې) قول په وجه وَمَا زَادَ عَلَى الْمِائَتَيْنِ فَبِحِسَابِهِ "او څه چي پر دوو سوو درهمو زيات سي نو د هغه زکاة به د هغه په حساب سره وي" وَلِأَنَّ الزَّكَاةَ وَجَبَتْ شُكْرًا لِنِعْمَةِ الْمَالِ او په دې وجه (هم) چي زکاة د مالي نعمت د شکر اداء کولو په توګه واجب سوی دی وَاشْتِرَاطُ النِّصَابِ فِي الِابْتِدَاءِ لِتَحَقُّقِ الْغِنَاءِ او په شروع کي د نصاب شرط لګول د مالداری د ثابتېدلو لپاره دی وَبَعْدَ

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رحمه الله، كذا في فتح القدير ج:۲، ص: ۱۶۰، و قال العلامة الحصكفي رحمه الله: و في كل خمس (بحسابه) ففي كل أربعين درهماً درهم، الدر المختار ج:۲، ص: ۳۲. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۷۱]

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الزكاة، باب وجوب ربع العشر في نصابها، حديث رقم: ۷۵۲۱.

النِّصَابِ فِي السَّوَائِمِ تَحَرُّزًا عَنِ التَّشْقِيصِ او په څرېدونکو څارويانو کي تر نصاب وروسته (دا شرط) له ټوکړه کېدلو (يعني له حصه حصه کېدلو) څخه د ځان ساتلو لپاره دی وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● فِي حَدِيْثِ مُعَاذٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د حضرت معاذ رضي الله عنه په حديث کي د نبي ﷺ (دا) قول دی لَا تَأْخُذْ مِنَ الْكُسُوْرِ شَيْئًا چي له کسورو څخه هيڅ مه اخله وَقَوْلُهُ فِي حَدِيْثِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ او د عمر بن حزم په حديث کي د نبي ﷺ (دا) قول دی وَلَيْسَ ● فِيْمَا دُوْنَ الْأَرْبَعِيْنَ صَدَقَةٌ (چي) تر څلوېښتو په کمو درهمو کي هيڅ زکاة نشته وَلِأَنَّ الْحَرَجَ مَدْفُوْعٌ او په دې وجه هم چي (شرعا) تکليف ليري کړی سوی دی وَفِي إِيْجَابِ الْكُسُوْرِ ذٰلِكَ (لېکن) د کسورو په واجبولو کي تکليف سته لِتَعَذُّرِ الْوُقُوْفِ ځکه چي (د کسر پر حساب) واقفېدل (خبرېدل) مشکل دي وَالْمُعْتَبَرُ فِي الدَّرَاهِمِ وَزْنُ سَبْعَةٍ او په دراهمو کي به وزنِ سبعه معتبر وي وَهُوَ أَنْ تَكُوْنَ الْعَشَرَةُ مِنْهَا وَزْنَ سَبْعَةِ مَثَاقِيْلَ او وزنِ سبعه دا دی چي د لسو درهمو وزن اووه مثقاله وي بِذٰلِكَ جَرَى التَّقْدِيْرُ فِي دِيْوَانِ عُمَرَ (رض) همد دغه اندازې مطابق د حضرت عمر رضي الله عنه په دفتر (ريجسټر) کي تقدير جاري وو وَاسْتَقَرَّ الْأَمْرُ عَلَيْهِ او هم پر دغه تقدير مسئله محکمه پاته سوه.

**اللغات:** ﴿سَوَائِم﴾ جمع د سَائِمَةٌ ده: له کور څخه بهر وابنه خوړونکی (يعني څرېدونکی) څاروی، ﴿تَحَرُّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: پرېز کول، خوندي کېدل، ﴿تَشْقِيص﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: برخي برخي کول، ټوټه ټوټه کول.

**تشريح:** تر دې مخکي تاسو ته معلومه سوه چي د سپينو زرو نصاب ۲۰۰ درهمه دی، او په ۲۰۰ درهمو کي ۵ درهمه د زکاة واجب دي، اوس له دې ځايه دا رابنيي چي که پر ۲۰۰ درهمو يو څو درهمه زيات سي، نو په هغو کي به څرنګه زکاة واجب وي، په دې لړ کي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي که تر ۲۰۰ وروسته راتلونکی زياتوب تر څلوېښتو پوري ورسيږي، نو په هغه کي به زکاة واجب وي، او که تر څلوېښت کم وي، نو په هغه کي به زکاة واجب نه وي، بلکي هغه به عفوه وي، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که تر ۲۰۰ وروسته يو درهم هم زيات سي، نو په هغه کي به څلوېښتمه حصه واجب وي، همدا د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

**د صاحبينو دليل:** د نبي ﷺ هغه فرمان دی کوم چي د حضرت علي رضي الله عنه په حديث کي ذکر سوی دی يعني: وما زاد على المائتين فبحسابه. (يعني پر دوو سوو درهمو چي څومره زيات سي، د هغو زکاة به په هغه حساب يعني د ۲۰۰ درهمو په حساب سره ورکول کيږي)، څرنګه چي په دې حديث کي په مطلق زياتوب کي زکاة واجب ګرځول سوی دی، نو تر ۲۰۰ وروسته چي څومره زياتوب هم راسي، په هغه کي به زکاة واجب وي، او د زکاة د وجوب لپاره به د څلوېښتو قيد لګول صحيح نه وي.

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الزكاة، باب ليس في الكسر شئ، حديث رقم: ۱۸۸۶.
● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الزكاة، باب وجوب العشر في نصاب، حديث رقم: ۷۵۲۰.

ولأن الزكاة الخ عقلي دليل دا دی چې زکاة د مالي نعمت د شکر د اداء کولو لپاره واجب سوی دی، او څرنګه چې څلوېښت درهمه مال دی، همدارنګه هر درهم پر خپل ځای مال دی، نو ځکه به تر ۲۰۰ وروسته په هر هر درهم کي زکاة واجب وي.

واشتراط النصاب له دې ځایه د صاحبینو پر عقلي دلیل دیو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې کله زکاة د مالي نعمت شکرانه ده، او مال په هر حال کي مال دی، هغه که لږ وي، که زیات، نو تاسو په شروع کي د نصاب، او د ۲۰۰ درهمو او د کال تېرېدلو شرط ولي لګوئ، بغیر له یو شرط څخه په هغه کي زکاة ولي نه واجبوئ، آخر له ۲۰۰ درهمو څخه کم خو هم مال دی.

جواب: فرمايېيه شروع کي چې کوم د نصاب شرط لګېدلی دی، هغه په دې وجه دی چې په دې شرط سره غناء او مالداري ثابته سي، ځکه چې زکاة صرف پر مالدارانو واجب دی، نه پر فقیرانو، اوس که موږ په شروع کي هم دا شرط نه ولګوو، نو هر يو به د زکاة ورکونکی سي، اخیستونکی به یې یو هم پیدا نه سي، نو په ابتداء کي دا شرط ځکه ولګول سو، چې په امیر او غریب کي فرق راسي، او په زکاة اخیستونکي او ورکونکي کي فرق راسي، او څرنګه چې تر نصاب وروسته دا فرق راځي، نو ځکه به تر نصاب وروسته بل شرط نه لګېږي، بلکي تر نصاب وروسته به پر هر حاصلېدونکي مال زکاة واجب وي، په دې شرط چې هغه مال د مالِ نصاب له جنس څخه وي.

وبعد النصاب في السوائم الخ لېکن پر پورتني جواب بل اعتراض کېږي چې په سائمه څارویانو کي تر نصاب وروسته ولي په هر څاروي کي د صاحبینو په نېز زکاة نه واجبېږي؟، حال دا چې د دوی په نېز که تر نصاب وروسته لږ مال هم زیات سي، په هغه کي به زکاة واجبېږي، لکه په نغدو(یعني په زرو او پیسو) کي چې د دوی په نېز همدغه حکم دی، یعني که تر دوو سوو درهمو یو درهم زیات سي، نو په هغه کي به څلوېښتمه حصه واجب وي، لېکن صاحبین په سوائمو کي ولي تر نصاب وروسته بل شرط لګوي؟

جواب: د دې جواب ورکوي فرمايي چې سوائم پر غیرِ سوائمو قیاسول او اعتراض کول صحیح نه دي، ځکه په سوائمو کي تر نصاب وروسته د بل نصاب او د بلي ځانګړي شمېرې شرط لګول زموږ مجبوري ده(یعني موږ ورته مجبوره یو)، او مجبوري دا ده چې که موږ په سوائمو کي هم تر نصاب وروسته په هر څاروي کي زکاة واجب کړو، نو د زکاة څاروی به ټوکړه ټوکړه کوو، نو له دې څخه د ځان ساتني لپاره موږ په هر څاروي کي زکاة نه واجبوو، مثلاً په پنځو اوښانو کي یوه بزه ده، اوس که پر دې شپږ اوښان نور زیات سي، او نهه اوښان سي، نو که په دې څلورو کي هم موږ زکاة واجب کړو، نو یوه بزه به پنځه حصې(ټوکړې) کوو، او د هر اوښ زکاة به د بزې یوه حصه وي، نو د څلورو اوښانو به څلور حصې وي، نو له دې تشقيص څخه د ځان ساتني لپاره موږ په سوائمو کي تر نصاب وروسته په هر څاروي کي زکاة نه واجبوو، بلکي بل نصاب او بله ځانګړې شمېره شرطوو، یعني چې کله پر پنځو اوښانو نور پنځه اوښان زیات سي یعني لس اوښان سي، نو په هغو کي به دوې بزې واجب وي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې نبي ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته دا حکم کړی وو: لا تأخذ من الكُسُور شيئا، کُسُور جمع د کَسر ده، معنی یې ده: حصه، جزء، ټوکړه(ټوټه)، د حدیث معنی دا ده چې له ټوکړو څخه هیڅ مه اخله، یعني داسي مه کوه چې یو درهم ټوکړه ټوکړه او حصه حصه کړې او د هغه یوه حصه واخلې، او څرنګه چې په څلوېښتو درهمو کي یو پوره درهم واجب دی، نو یو درهم پوره اخله، او داسي مه کوه چې هغه حصه حصه کړې، او وایې اخلې.(نو له دې

حديث څخه معلومه سوه چي له څلوېښتو څخه به په کمو درهمو کي زکاة نه واجبېږي، کنې يو درهم به حصه حصه کېږي او له هغه څخه به زکاة ورکول کېږي، او دا د حديث خلاف دي).

همدارنګه د حضرت عمرو بن حزم په روايت کي راغلي دي: ليس فيما دون الأربعين صدقة. (يعني له څلوېښتو څخه په کمو کي زکاة واجب نه دی). له دې څخه هم معلومېږي چي پر څلوېښتو به زکاة واجب وي.

ولأن الحرج الخ له دې ځايه د امام صاحب رَحِمَهُ الله عقلي دليل بيانوي، تفصيل يې دا دی چي که له ۴۰ څخه په کمو درهمو کي زکاة واجب سي، نو په دې صورت کي به د درهمونو حصه حصه کول او ټوټه کول لازم سي، همدارنګه به په حساب او شمېر کي هم ډېر تکليفونه راسي، مثلاً که د يو سړي سره ۲۰۷ درهمه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه صرف ۵ درهمه واجب دي، او د صاحبينو په نېز پر هغه ۵ درهمه او په اوو(۷) درهمو کي د هر درهم يوه څلوېښتمه حصه پر واجب ده(چي ټوله اووه(۷) څلوېښتمي حصې کېږي په لنډه توګه چي دا ټوله د يوه درهم اووه حصې کېږي)، نو کله چي هغه يو کال زکاة وباسي، او بيا که را روان کال هم د هغه سره دغه درهمونه پاته وي چي هغه به تقريباً ديوه درهم ۳۳ حصې او ۲۰۱ درهمه کېږي، نو په پنځو سوو درهمو کي به پنځه درهمه واجب وي، او په درهم کي به د درهم څلوېښتمه حصه واجب وي، او په ۳۳ حصو کي به د ۳۳ حصو څلوېښتمه حصه واجب وي، اوس تاسو فور وکړئ چي په ۳۳ حصو کي حساب کول او څلوېښتمه حصه را ايستل څومره مشکل دي، بيا چي دا حصه را وېستل سي، نو مخته به تر دې لا سخت حساب راسي، مطلب دا چي په دې حساب کي ستونزي او تکليفونه پرلپسې دي، نو ځکه غوره همدغه ده چي که پر ۲۰۰ له ۴۰ څخه کم درهمونه زيات سي، نو په هغو کي به زکاة بالکل نه واجبېږي.

والمعتبرفي الدراهم الخ فرمايي چي د درهمونو په نصاب کي وزنِ سبعه معتبر دی، وزنِ سبعه دا دی چي د لسو درهمو وزن د اوو(۷) مثقالو سره برابر وي، او د ګرام په اعتبار سره وزنِ سبعه ۳،۰۶۱ ګرامه کېږي، يعني تقريباً درې ګرامه کېږي، تر دې مخکي په اسلام کي د وزنِ عشره او ستة او خمسه په نامه سره نور اوزان جاري وو، ليکن حضرت عمر ﷺ خپل د خلافت په زمانه کي ټوله وزنونه ختم کړل، او د وزنِ سبعه حکم يې کړی، او هم په دې وزن سره يې د عشر، خراج او د زکاة اداء کولو حکم جاري کړی، چي هغه خلکو په سر او سترګو قبول کړی، او په خپل عمل سره يې پر هغه د اجماع ټاپه ولګوله. دلته دا خبره د پاملرني وړ ده چي له زکاة څخه ماسوا به د سرسايې، مهر، سرقه او د نورو په نصاب کي هم دغه وزن معتبر وي.

## د کوټه سپينو زرو حکم او په دې باره کي تفصيل

وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الْوَرِقِ الْفِضَّةَ او که د سپينو زرو په سکه کي سپين زر غالب وي فَهُوَ فِي حُكْمِ الْفِضَّةِ نو هغه سکه د سپينو زرو په حکم کي ده وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهَا الْغِشُّ او که پر هغې کوټ(يعني د بل شي ګډون) غالب وي فَهُوَ فِي حُكْمِ الْعُرُوضِ نو هغه د سامان په حکم کي ده يُعْتَبَرُ أَنْ تَبْلُغَ قِيمَتُهُ نِصَابًا (او) د دې اعتبار به کيږي چي د هغې قيمت نصاب ته ورسيږي لِأَنَّ الدَّرَاهِمَ لَا تَخْلُوْ عَنْ قَلِيْلِ غَشٍّ ځکه درهمونه د لږ کوټ(او ګډون) څخه خالي نه وي لِأَنَّهَا لَا تَنْطَبِعُ إِلَّا بِهِ ځکه چي درهمونه له کوټ څخه ماسوا (په قالب کي) جوړېږي نه وَتَخْلُوْ عَنِ الْكَثِيْرِ (خو) درهمونه له

زيات کوټ شخه خالي وي فَجَعَلْنَا الْغَلَبَةَ فَاصِلَةً نو ځکه موږ غلبه (دلږ او ډېر په مينځ کي) فرق کونکې وګرځوله وَهُوَ أَنْ يَزِيدَ عَلَى النِّصْفِ او غلبه دا ده چي (کوټ) له نيم شخه زيات وي اِعْتِبَارًا لِلْحَقِيقَةِ د حقيقت په اعتبار کولو سره وَسَنَذْكُرُهُ فِي الصَّرْفِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او د دې ذکر به موږ په کتابُ الصرف کي انشاء الله وکړو إِلَّا أَنَّ فِي غَالِبِ الْغِشِّ لَا بُدَّ مِنْ نِيَّةِ التِّجَارَةِ خو د کوټ د غالبه کېدلو په وخت کي د تجارت نيت کول ضروري دي كَمَا فِي سَائِرِ الْعُرُوضِ لکه په (نورو) ټولو سامانو کي إِلَّا إِذَا كَانَ تَخَلَّصَ مِنْهَا فِضَّةٌ تَبْلُغُ نِصَابًا لېکن دا چي له سکو شخه دومره سپين زر راووځي چي هغه تر نصابه رسيږي لِأَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ فِي عَيْنِ الْفِضَّةِ الْقِيمَةُ وَلَا نِيَّةُ التِّجَارَةِ ځکه چي د سپينو زرو په عين (ذات) کي نه قيمت معتبر دی او نه د تجارت نيت، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿وَرِق﴾ سپين زر، مجازاً: د سپينو زرو هغه سکّه (او پيسه) چي په غَالَب (قالب) کي جوړه سوې (او چاپ سوې) وي، ﴿غِشّ﴾ (د عين په فتحه سره دی) دوکه، مجازاً: ګډون، کوټ (کوټه والی، نا چلتوب) ﴿تَخَلَّص﴾ د انفعال د باب مضارع ده: په غَالَب کي جوړول، چاپول.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره پوه سئ چي د ورق لفظ څو ډوله ويل سوی دی: ① وَرِق ② وِرْق ③ وَرْق ④ وُرْق ⑤ وَرَق، او د ټولو معنیٰ ده: د سپينو زرو هغه سکّه چي په غَالَب او سانچه کيٖ جوړه سوې وي، له غش شخه مراد هغه زائد او پالتو شيان دي چي په سپينو او سرو زرو ګډيږي او بيا سکّه ځني جوړيږي. (اوس عبارت ته ګوريٖ)

د عبارت حاصل دا دی چي که د سپينو زرو په سکو کي سپين زر غالب وي، نو هغه سکې به د سپينو زرو په حکم کي وي، او په هغو کي به د سپينو زرو زکاة واجب وي، چي د هغه نصاب دوه سوه (۲۰۰) درهمه دی، او که پالتو شيان يعني کوټ غالب وي، نو هغه سکه به د سامان په حکم کي وي، او په هغه کي به د سامان زکاة واجب وي، يعني دې ته به کتل کيږي چي د دغه سکو قيمت نصاب ته رسيږي، که نه؟ که رسېدی، نو په دې کي به زکاة واجب وي، کنې واجب به نه وي، صاحب د کتاب په يعتبر أن تبلغ الخ سره همدغه خبره بيان کړې ده.

لأن الدراهم الخ امام قدوري چي په سکو کي د کوټ يا د سپينو زرو د غالبېدلو کومه خبره وکړه، صاحب د هدايې د هغه دليل بيانوي فرمايي چي د سپينو زرو په سکو کي خامخا لږ کوټ وي، ځکه چي له کوټ شخه بغير سکې جوړېدای نه سي، (ځکه کله چي په سپينو زرو نور زائد شيان ګډ سي، نو بيا سکه او پيسه ځني جوړېدای سي، له خالصو سپينو زرو شخه نه سي جوړېدای)، نو کله چي په سکو کي له کوټ شخه چاره نسته، نو اوس به له کوټ شخه د سپينو زرو د جلا کولو طريقه همدغه وي چي په هغو کي به ډېرښت او غلبه معيار جوړيږي او دا فيصله به کيږي چي که سپين زر غالب وو، نو هغه سکه به د سپينو زرو شمارل کيږي، او په هغه کي به زکاة واجب وي، او که کوټ غالب وو، نو بيا به هغه له عروضو او سامان شخه شمارل کيږي، او د هغه په قيمت کي به زکاة واجب وي، په دې شرط چي د نصاب په اندازه وي.

اعتبارا للحقيقة صاحب د هدايې د قليل او كثير په مينځ كي د غلبې د فاصل كرځولو علت بيانوي فرمايي چي فقط د غلبې په ذريعه سره د قليل او كثير په مينځ كي فرق راتلى سي، ځكه چي د كثير مقابل قليل دى، او د قليل مقابل كثير دى، او ښكاره ده چي دا تقابل بې له غلبې نه حاصليږي.

إلا أن في غالب الغش الخ له دې ځايه دا راښيي چي كه په سكو كي كوټ غالب وو، نو په دې صورت كي به هغه د سلمان په حكم كي وي، او په سلمان كي زكاة هغه وخت واجبيږي، چي كله هغه تجارتي وي، لهذا د كوټ د غالبېدلو په صورت كي د تجارت نيت كول ضروري دي، ليكن كه مغلوبه سپين زر دومره زيات وو چي له كوټ څخه تر جلا كولو وروسته تر نصاب پوري رسېدل، نو بيا په هغو كي د تجارت ضروري نه دى، بلكي بغير له نيت څخه زكاة واجبيږي، ځكه چي سپين زر د زكاة مال دى، نو ځكه به نه په سپينو زرو كي د قيمت اعتبار كيږي، او نه به د تجارت نيت ضروري وي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

## فَصْلٌ فِي الذَّهَبِ

### (دا) فصل د سرو زرو (د زكاة په بيان كي) دى

### د سرو زرو د زكاة نصاب او اندازه

لَيْسَ فِيمَا دُونَ عِشْرِيْنَ مِثْقَالًا مِنَ الذَّهَبِ صَدَقَةٌ له شلو مثقالو څخه په كمو سرو زرو كي زكاة نسته فَإِذَا كَانَتْ عِشْرِيْنَ مِثْقَالًا نو كله چي شل مثقاله سي فَفِيْهَا نِصْفُ مِثْقَالٍ نو په هغو كي نيم مثقال (د زكاة) دى لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه كوم چي موږ روايت كړى وَالْمِثْقَالُ مَا يَكُوْنُ كُلُّ سَبْعَةٍ مِنْهَا وَزْنَ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ او مثقال دا دى چي د اوو (۷) دينارو وزن د لسو درهمو سره برابر وي وَهُوَ الْمَعْرُوْفُ او همدا (په خلكو كي) مشهور دى.

**اللغات:** ﴿مِثْقَال﴾ د سرو زرو يو وزن دى چي ۴.۳۷۵ گرامه كيږي.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله د سرو زرو نصاب بيانوي فرمايي چي د سرو زرو نصاب ۲۰ مثقاله دى، نو تر شلو مثقالو په كمو سرو زرو كي زكاة واجب نه دى، هو! كله چي د يو چا سره ۲۰ مثقاله سره زر جمع سي، او پر هغو كال هم تېر سي، نو په هغو كي نيم مثقال واجب دى، دليل هغه روايت دى چي د هدايې پر صفحه: ۱۹۴ په فصل في الفضة كي د حضرت معاذ رضي الله عنه په حواله سره تېر سو، يعني: وفي كل عشرين مثقالا من ذهب نصف مثقال.

والمثقال ما يكون الخ فرمايي چي دلته له مثقال څخه هغه مثقال مراد دى چي د اوو (۷) دينارو وزن د لسو درهمو سره برابر وي، همدا په خلكو كي مشهور او متعارف دى، درهم په وزن كي كوچنى وي، او دينار په وزن كي غټ وي، يو دينار يو مثقال كيږي، د عبارت مطلب همدغه دى چي د اوو دينارو وزن به دومره وي څومره چي د لسو درهمو دى، د لسو درهمو

وزن اووه مثقاله کيږي، نو د اوو دينارو وزن به هم اووه مثقاله وي، يعني د يوه دينار وزن به يو مثقال وي، د ګرام په اعتبار سره يو دينار ۴،۳۷۵ ګرامه کيږي. د دې تفصيل به مخته راسي.

## له شلو مثقالو څخه په زياتوکي د زکاة بيان

ثُمَّ فِي كُلِّ أَرْبَعَةِ مَثَاقِيلَ قِيرَاطَانِ بيا په هرو څلورو مثقالونو کي دوه قيراطه واجب دي لِأَنَّ الْوَاجِبَ رُبْعُ الْعُشْرِ ځکه چي واجب خو څلوېښتمه حصه ده وَذَٰلِكَ فِيمَا قُلْنَا او دا په هغه صورت کي ثابتيږي کوم چي موږ بيان کړی إِذْ كُلُّ مِثْقَالٍ عِشْرُونَ قِيرَاطًا ځکه چي هر مثقال شل قيراطه وي.

**اللغات:** ﴿قِيرَاط﴾ د سرو زرو يو وزن دی چي ۰.۲۱۰ ګرامه کيږي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کله د سرو زرو پر نصاب څلور مثقاله سره زر زيات سي، او د نصاب مجموعي شمېر ۲۴ مثقالو ته ورسيږي، نو اوس به په هغو کي له نيم مثقال څخه ماسوا نور دوه قيراطه واجب وي، ځکه په زکاة کي خو څلوېښتمه حصه واجبيږي، او څلوېښتمه حصه هغه وخت کېدای سي چي کله په څلورو مثقالو کي دوه قيراطه واجب سي، ځکه چي د څلورو مثقالو څلوېښتمه حصه دوه قيراطه کيږي، ځکه يو مثقال شل قيراطه وي، نو څلور مثقاله به اتيا(۸۰) قيراطه وي، او د اتياوو څلوېښتمه حصه دوه کيږي، نو ځکه به په څلورو مثقالو کي دوه قيراطه واجب وي.

**فايده:** صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي يو قيراط پنځه اوربشي کيږي، او يو مثقال شل قيراطه کيږي، نو په دې اعتبار سره به هر مثقال د اربشو د سلو دانو په برابر وي، ځکه ۵ چي په ۲۰ کي ضرب کړی سي، نو حاصل د ضرب ۱۰۰ راوځي. (عنايه ج:۲)

## له څلورو مثقالو څخه په کموکي د زکاة بيان

وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ أَرْبَعَةِ مَثَاقِيلَ صَدَقَةٌ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ او تر څلورو په کمو مثقالونو کي زکاة واجب نه دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَعِنْدَهُمَا تَجِبُ بِحِسَابِ ذَٰلِكَ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په هغه حساب سره زکاة واجب دی وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْكُسُورِ او دا د کُسُور مسئله ده وَكُلُّ دِينَارٍ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ فِي الشَّرْعِ او په شريعت کي هر دينار لس درهمه وي فَيَكُونُ أَرْبَعَةُ مَثَاقِيلَ فِي هَذَا كَأَرْبَعِينَ دِرْهَمًا نو په سرو زرو کي به څلور مثقاله د څلوېښتو درهمو په ډول وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز که د سرو زرو پر نصاب يعني پر ۲۰ مثقالو تر څلورو ۴ مثقالو کم مثقالونه زيات سول، نو په دې زياتوب کي به هيڅ شی واجب نه وي، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د دغه زياتوب په حساب سره په دې کي زکاة واجب وي، نو که يو مثقال زيات سو، نو په هغه کي به نيم قيراط واجب وي، ځکه چي يو مثقال شل قيراطه وي، او د شلو څلوېښتمه حصه نصف دی، نو همدغه نصف به واجب وي، څرنګه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د کُسُورو د مسئلې په ډول په دې کي هم د حساب و کتاب په حواله سره ستونزه او تکليف راځي، نو ځکه به تر څلورو په کمو مثقالونو کي زکاة واجب نه وي.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الهندية ج:۱، ص: ۱۷۹. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۷۱]

وكل دينار الخ فرمايي چې په شريعت کې د قيمت په اعتبار سره يو دينار لس درهمه دی، او مثقال او درهم يو ډول دي، نو هر مثقال به هم لس درهمه وي، او ۴ مثقاله به د څلوېښتو درهمو برابر وي، او څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له څلوېښتو څخه د کمو درهمونو د زياتوب په صورت کې زکاة واجب نه دی، همدارنګه به له څلورو مثقالونو څخه د کمو زياتېدلو په صورت کې هم زكاة واجب نه وي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دی، وقال العلامة عبد الله داماد آفندی رَحِمَهُ الله: ولا شئ فيما دون ذالك عند الامام وهو الصحيح كما في التحفة (مجمع الانهر ج۱، ص: ۲۰۵). [القول الراجح ج۱، ص: ۱۷۲]

## د سرو او سپينو زرو په سکو، لوښو، او د ښکلا (او سينګار) په شيانو کې د زکاة حکم

قَالَ: وَفِي تِبْرِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَحُلِيِّهِمَا وَأَوَانِيهِمَا الزَّكَاةُ فرمايي: چې د سرو او سپينو زرو په ټوکرو (ټوټو) کې او د هغو په زېوراتو (يعني د ښکلا په شيانو) کې او د هغو په لوښو کې (زموږ په نېز) زکاة (واجب) دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَجِبُ فِي حُلِيِّ النِّسَاءِ وَخَاتَمِ الْفِضَّةِ لِلرِّجَالِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د ښځو په زېوراتو او د نارينه وو د سپينو زرو په ګوتمۍ کې زكاة واجب نه دی لِأَنَّهُ مُبْتَذَلٌ فِي مُبَاحٍ ځکه چې دا په مباح شي کې (يعني د ورځني استعمال په شي کې) مصرفيږي فَشَابَهَ ثِيَابَ الْبِذْلَةِ نو دا د ورځني استعمال د کالو سره مشابه شول وَلَنَا أَنَّ السَّبَبَ مَالٌ نَامٍ او زموږ دليل دا دی چې (د زکاة د وجوب) سبب زياتېدونکی (وده کونکی) مال دی وَدَلِيلُ النَّمَاءِ مَوْجُودٌ او (په دې شيانو کې) د زياتېدلو دليل سته وَهُوَ الْإِعْدَادُ لِلتِّجَارَةِ خِلْقَةً او هغه په پيدايښتي (او فطري) توګه سره د تجارت لپاره تيار ېدل دي وَالدَّلِيلُ هُوَ الْمُعْتَبَرُ او دليل معتبر دی بِخِلَافِ الثِّيَابِ په خلاف د کالو (چې هغه په پيدايښتي توګه د تجارت لپاره نه تيارېږي).

**اللغات:** ﴿تبر﴾ هغه سره او سپين زر چې په غالب کې نه وي جوړ سوي، د سرو او سپينو زرو ټوکره (ټوټه). ﴿حلي﴾ زېورات، پسول، يعني د سرو او سپينو زرو د ښکلا شيان لکه غاړه کۍ، غوږ والي (ګانه) او داسې نور، په غالب کې جوړ سوي سره او سپين زر، جواهر ﴿أواني﴾ جمع د آنِيَةٌ ده: لوښی. ﴿ثياب البذلة﴾ د ورځني استعمال کالي (جامې). ﴿نماء﴾ وده کول، زياتېدل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره پوه سئ چې د تبر معنىٰ ده: د سرو او سپينو زرو هغه ټوکرې چې په غالب او سانچه کې نه وي جوړې سوي (يعني هغه ټوټې چې تر اوسه کارول سوي نه وي)، او د حلي معنىٰ ده: د سرو او د سپينو زرو هغه زېورات چې ښځې يې د ښکلا لپاره اغوندي، او کاروي يې. (بنايه ج: ۳، ص: ۳۲)

**صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز په هر ډول تبر او هر ډول حُلي کې زکاة واجب دی، همدارنګه د سرو او سپينو زرو په لوښو کې هم زکاة واجب دی، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د ښځو په زېوراتو او د خلکو د سپينو زرو په ګوتميانو کې زكاة واجب نه دی، د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله هم دغه قول دی. (بنايه)

**د امام شافعي او نورو دليل:** دا دی چې د ښځو لپاره زېورات او د خلکو لپاره د سپينو زرو ګوتمياني مباح او جائز دي، او کوم شی چې مباح او د استعمال لپاره جائز وي، په هغه کې زکاة نه واجبيږي، نو په دې شيانو کې به هم زکاة واجب نه وي، او لکه څرنګه چې د ورځني استعمال کالي (جامې) او د کور او کسب کالي مباحُ الاستعمال دي، او په هغو کې زکاة واجب نه دی، همدارنګه به په زېوراتو او ګوتميانو کې هم زکاة واجب نه وي.

**زموږ دليل:** صاحب د هدايې زموږ عقلي دليل ذکر کړی دی، ليکن نقلي دليل يې ذکر کړی نه دی، خو تاسو اول په دليل عقلي ځان پوه کړئ، بيا به انشاء الله نقلي دليل ذکر کړو، د عقلي دليل حاصل دا دی چې د زکاة د واجبېدلو سبب مال نامي کېدل دي، او په سرو او سپينو زرو کې او د دوی په زېوراتو کې نماء سته، ځکه چې په پيدايشي او فطري توګه دا شيان د تجارت لپاره آماده کيږي، او څرنګه چې د سرو او سپينو په زېوراتو کې تجارت کيږي، همدارنګه د دوی په ټوکرو او ټوټو کې (چې له هغو څخه تر اوسه يو شی جوړ سوی نه وي) هم تجارت کيږي، او تجارت د نماء غوره ذريعه ده، نو کله چې په دوی کې د زکاة د واجبېدلو سبب يعني نماء سته، نو بيا به په دوی کې زکاة هم واجبيږي.

بخلاف الثياب الخ فرمايي: امام شافعي رَحِمَهُ الله چې پر ثياب (کالو) باندې د زېوراتو کوم قياس کړی دی، هغه صحيح نه دی، ځکه د استعمال کالي خو نه په پيدايشي او فطري توګه سره د تجارت لپاره تياريږي، او نه انسان د استعمالونکو کالو د رانيولو په وخت کې د تجارت نيت کوي، د دې په خلاف د سرو او سپينو زرو زېورات په شروع او وروسته دواړو کې د تجارت لپاره تياريږي (هغه که د تجارت نيت پکښې وسي، او که پکښې ونه سي)، نو پر غيرِ تجارتي مال د تجارتي مال قياسول صحيح نه دي.

زموږ له طرفه د نقلي دليل لپاره صاحب د بنايې دا حديث ذکر کړی دی: عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده أن امرأة أتت النبي ﷺ ومعها ابنة لها وفي يد إبنتها مسكتان غليظتان من ذهب، فقال أتعطين زكاة هذا، قالت لا قال أيسرك أن يسورك الله بهما سوارين من النار فخلعتهما وألقتهما إلى النبي ﷺ، وقالت هما لله ولرسوله [بنايه ج۳، ص: ۷۳۳، فتح القدير ج۲]، (يعني يوه ښځه نبي ﷺ ته راغله او د هغې سره خپله لور هم وه، او د لور سره يې دوې پنډې کړې (يعني بنګړي) ول، نبي ﷺ وفرمايل: آيا ته د دې زکاة ورکوې، هغې ورېل چې نه!، نبي ﷺ وفرمايل: آيا تا ته دا ښه معلوميږي چې الله د قيامت په ورځ د دې په بدله کې تا ته د اور دوه بنګړيان در واغوندي، نو هغې کړې (د لور له لاس) څخه وکښلې او د نبي کريم ﷺ مخته يې وغورځولې، او ويې ويل چې دا دواړه د الله او د هغه د رسول لپاره دي)، له دې روايت څخه په ډاګه ښکاره کيږي چې د ښځو په زېوراتو کې هم زکاة واجب دی.



# فَصْلٌ فِي الْعُرُوْضِ

## (دا) فصل د دنیاوي سامان (د زکاة په بیان کي) دی

**تشريح:** ښکاره دي وي چي عُرُوض د عُرْض جمع هم راځي، او د عَرَض جمع هم راځي، د عُرْض معنیٰ ده: قیمتي او ر لوړي درجې سامان. او د عَرَض معنیٰ ده: دنیاوي سامان. (بنایه ج:۳، ص:۴۲۷)

### له سرو اسپینو زرو څخه ماسوا په نور سامان کي د زکاة حکم

الزَّكَاةُ وَاجِبَةٌ فِي عُرُوْضِ التِّجَارَةِ د تجارت په سامان کي زکاة واجب دی كَائِنَةً مَا كَانَتْ هغه که هر ډول سامان وي إِذَا بَلَغَتْ قِيمَتُهَا نِصَابًا مِنَ الْوَرِقِ أَوِ الذَّهَبِ په دې شرط چي د هغه قیمت د سپینو زرو یا سرو زرو نصاب ته ورسیږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] فِيهَا ځکه د تجارتي سامان په باره کي نبي ﷺ فرمایلي دي يُقَوِّمُهَا فَيُؤَدِّيْ مِنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ "چي د سامان مالک به د سامان قیمت لګوي بیا به له هرو دوو سوو درهمو څخه پنځه درهمه اداء کوي" وَلِأَنَّهَا مُعَدَّةٌ لِلِاسْتِنْمَاءِ بِإِعْدَادِ الْعَبْدِ او په دې وجه (هم) چي دا سامان د انسان په تیارولو سره د نما (زیاتېدلو) لپاره تیار سوی دی فَأَشْبَهَ الْمُعَدَّ بِإِعْدَادِ الشَّرْعِ نو دا د هغه شي سره مشابه سو کوم چي د شریعت په تیارولو سره تیار سوی وي وَيُشْتَرَطُ نِيَّةُ التِّجَارَةِ لِيَثْبُتَ الْإِعْدَادُ او د تجارت نیت شرط دی چي (د نما لپاره) تیارول ثابت سي.

**اللغات:** ﴿المعدّة﴾ د افعال د باب اسم مفعول دی: تیار سوی، ﴿إستنماء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: وده کول، زیاتېدل، وده غوښتل.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي د تجارت سامان که هر ډول هم وي په هغه کي زکاة واجب دی. په دې شرط چي د هغه قیمت د سپینو یا سرو زرو نصاب ته ورسیږي، دلیل دا دی چي نبي ﷺ فرمایلي دي: د تجارتي سامان قیمت ولګوئ (یعني د قیمت اندازه یې معلومه کړئ)، او په هرو دوو سوو درهمو کي پنځه درهمه د زکاة اداء کړئ. او له سمره بن جندب ﷺ څخه روایت دی: أن رسول الله ﷺ كان يأمرنا أن نخرج الصدقة من الذي يعد للبيع. (یعني نبي کریم ﷺ به موږ ته حکم کوی چي موږ د هغو شیانو زکاة وباسو چي هغه د خرڅلاو لپاره تیاربږي)، دویم دلیل دا دی چي په سامان کي په تجارتي نیت کولو سره هغه سامان هم مال نامي (یعني وده کونکی مال) جوړیږي. او څرنګه چي په مال نامي کي زکاة واجب دی، نو په تجارتي سامان کي به هم زکاة واجب وي. لکه څرنګه چي په سپینو او سرو زرو کي (هم) زکاة واجب دی، ځکه چي دا د شریعت له طرفه مال نامي دی.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الزكاة، باب العروض إذا كانت للتجارة، حديث رقم: ۱۵۶۲.

**ويشترط نية التجارة الخ** صاحب د هدايې فرمايي چې په سامان کې د زکاة د واجبېدلو لپاره د رانيولو په وخت کې د تجارت نيت کول شرط او ضروري دي، ځکه فقط د تجارت په نيت سره سامان تجارتي کيږي، او په هغه کې نماء ثابتيږي، نو که د رانيولو په وخت کې په هغه کې د تجارت نيت وسي، نو بيا به په هغه کې زکاة واجب وي، کنې واجب به نه وي، او که د رانيولو تر وخت وروسته د تجارت نيت وسي، نو هغه به بالکل معتبر نه وي، ځکه ضروري دا ده چې نيت به د رانيولو سره متصل (او جوخت) وي. (بنايه)

## سامان به په کوم قيمت سره اندازه کيږي؟

**ثُمَّ قَالَ** بيا امام قلوري رَحِمَهُ الله فرمايي **يُقَوِّمُهَا بِمَا هُوَ أَنْفَعُ لِلْمَسَاكِيْنِ** (چې) د مال ښتن به د سامان قيمت په داسې شي سره لګوي چې هغه د مسکينانو لپاره زيات ګټمن وي **اِحْتِيَاطًا لِحَقِّ الْفُقَرَاءِ** د احتياط په توګه د فقيرانو د حق په وجه (يعني دا حکم د فقيرانو د حق په وجه پر احتياط مبني دی) **قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : وَهٰذَا رِوَايَةٌ عَنْ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی **وَفِي الْأَصْلِ خَيَّرَهُ** او په مبسوط کې يې د سامان ښتن ته اختيار ورکړی دی **لِأَنَّ الثَّمَنَيْنِ فِيْ تَقْدِيْرِ قِيَمِ الْأَشْيَاءِ بِهِمَا سَوَاءٌ** ځکه چې د شيانو د قيمت په اندازه کولو کې دواړه ثمنونه برابر دي **وَتَفْسِيْرُ الْأَنْفَعِ أَنْ يُقَوِّمَهَا بِمَا يَبْلُغُ نِصَابًا** او د أنفع تفسير دا دی چې د قيمت اندازه دې په داسې ثمن (او نغدو) سره ولګوي چې هغه د زکاة تر نصابه پورې رسيږي **وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ يُقَوِّمُهَا بِمَا اشْتَرٰى** او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې په کوم ثمن سره يې سامان رانيولی وي په هغه سره دې قيمت ولګوي **إِنْ كَانَ الثَّمَنُ مِنَ النُّقُوْدِ** په دې شرط که ثمن له نقودو (نغدو) څخه وي **لِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِيْ مَعْرِفَةِ الْمَالِيَّةِ** ځکه چې دا د ماليت (قيمت) په پېژندلو کې زيات آسانه دي **وَإِنِ اشْتَرَاهَا بِغَيْرِ النُّقُوْدِ** او که سامان يې له نقودو څخه بغير (په بل شي سره) رانيولی وي **قَوَّمَهَا بِالنَّقْدِ الْغَالِبِ** نو کوم نقد چې (په ښار کې) زيات چليږي په هغه سره دې د هغه قيمت ولګوي **وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يُقَوِّمُهَا بِالنَّقْدِ الْغَالِبِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ** او له امام محمد رَحِمَهُ الله روايت دی چې په هر حال کې به په زيات چلېدونکي نقد سره قيمت لګوي **كَمَا فِي الْمَغْصُوْبِ وَالْمُسْتَهْلَكِ** لکه په غصب سوي او هلاک سوي مال کې چې لګيږي.

**تشريح:** په تېره مسئله کې وويل سو چې په تجارتي سامان کې د زکاة د واجبېدلو لپاره دا ضروري ده چې د هغه قيمت به د سپينو زرو نصاب ته رسيږي، يا به د سرو زرو نصاب ته رسيږي، لېکن اوس سوال دا دی چې د قيمت اندازه به په سپينو زرو يعني په درهمونو سره لګوي، او که په سرو زرو يعني په دينارونو سره لګوي، نو په دې باره کې له حنفي فقهاؤ څخه څلور قولونه را نقل سوي دي: (۱) اول قول کوم چې له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه هم په أمالي کې يو

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في فتح القدير ج:۲، ص: ۱۶۷، و قال العلامة أكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله: يقومها بما هو أنفع للمساكين أحد الاقوال في التقويم إلى أن قال ووجهه ما ذكره بقوله احتياطاً لحق الفقراء فانه لا بدّ من مراعاته عناية ج:۲، ص: ۱۶۷. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۷۲]

روايت دی، دا دی چي د سامان د قيمت اندازه دي په دوو نغدو (يعني په سرو او سپينو زرو) کي په هغه سره وکړي چي په هغه کي د فقيرانو او مسکينانو لپاره ګټه وي، د مثال په توګه د يو چا سره د تجارت يو سامان دی چي د هغه قيمت دوه سوه درهمه کيږي، ليکن شل مثقاله نه کيږي، نو دا سامان دي په درهمو سره اندازه کړي، او که سپين زر په نرخ کي ګران وي، او سره زر ارزانه وي، او هغه سامان خو د شلو مثقالو و قيمت ته رسيږي، ليکن د دوو سوو درهمو و قيمت ته نه رسيږي، نو د سامان د قيمت اندازه دي په مثقالونو سره وکړي، نه په درهمونو سره، دا روايت د فقيرانو او مسکينانو د حق په وجه پر احتياط مبني دی، يعني احتياطاً به د فقيرانو د رعايت په خاطر داسي کيږي. (۲) دويم قول کوم چي په مبسوط کي ذکر دی، دا دی چي مالک ته اختيار دی، که غواړي نو په درهمونو سره دي يې اندازه کړي، او که غواړي نو په دينارونو سره دي يې اندازه کړي، د دې قول دليل دا دی چي په سامان کي ځکه قيمت اندازه کول کيږي چي د ماليت او قيمت مقدار معلوم کړی سي، او په دې مقصد کي درهم او دينار دواړه برابر دي، نو ځکه به يو ته پر بل ترجيح نه وي. (۳) دريم قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، او دا قول د امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دی، دوی فرمايي: د سامان مالک چي سامان له نغدو (يعني له سپينو او سرو زرو) څخه د کومو نغدو په بدله کي رانيولی وي، په هغه سره دي قيمت اندازه کړي، يعني که يې د درهم په عوض کي رانيولی وي، نو په درهمو سره دي د هغه قيمت اندازه کړي، او که د دنانيرو په عوض کي يې رانيولی وي، نو په دنانيرو سره دي يې اندازه کړي، او که د بل شي په عوض کي رانيولی وي، نو له درهمو او دنانيرو څخه چي د کوم رواج او چلاو زيات وي، په هغه سره دي يې اندازه کړي، د دې قول دليل دا دی چي د کومو نغدو په عوض سامان رانيول سوی وي، په هغه سره د قيمت پېژندنه آسانه کيږي، ځکه چي يو وار په دې نغدو نغره د دې سامان قيمت معلوم سوی وي، نو په دويم وار اندازه کولو کي يې هيڅ تکليف نه وي. (۴) څلورم قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، هغه فرمايي چي په هر حال کي به په هغه نغدو سره د قيمت اندازه کوي چي د هغو چلاو زيات وي، د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د الله تعالى په حق کي د قيمت اندازه کول به د بنده په حق کي د قيمت پر اندازه کولو قياسيږي، او د بندګانو په حق کي په نقد غالب يعني په هغو نغدو قيمت اندازه کيږي چي په ښار کي يې چلاو زيات وي، د مثال په توګه که يو چا يو شی غصب کړی، او هغه شی له ذواتُ القيم (يعني د قيمت لرونکو شيانو) څخه وو، ليکن هغه له غاصب څخه ضايع سو، نو پر غاصب به د هغه قيمت واجب وي، او د دې شي د قيمت اندازه به په هغو نغدو سره کيږي چي د هغه چلاو زيات وي، همدارنګه که يو چا يو سامان هلاک کړی او هغه له ذواتُ القيم څخه وو، نو پر هلاکونکي به د قيمت ضمان واجب وي، او د قيمت اندازه به په هغو نغدو سره کوي چي د هغه چلاو زيات وي، نو څرنګه چي په حقوقُ العباد کي د قيمتونو اندازه په نقدِ غالب سره کيږي، همدارنګه به په حقوقُ الله يعني په زکاة لو نورو کي هم د قيمتونو اندازه په نقد غالب سره کيږي.

## که د کال په اطرافو کي نصاب پوره وي نو د کال په مينځ کي به د تاوان اعتبار نه کيږي

وَإِذَا كَانَ النِّصَابُ كَامِلًا فِي طَرَفَيِ الْحَوْلِ او که د کال په دواړو طرفونو کي نصاب پوره وي فَنُقْصَانُهُ فِيمَا بَيْنَ ذَلِكَ لَا يُسْقِطُ الزَّكَاةَ نو د کال په مينځ کي د هغه (نصاب) نقصان زکاة نه ساقطوي لِأَنَّهُ يَشُقُّ اعْتِبَارُ الْكَمَالِ فِي أَثْنَائِهِ ځکه چي د کال په مينځ کي (د نصاب) د پوره والي اعتبار کول ستونزمن دي أَمَّا لَا بُدَّ مِنْهُ فِي ابْتِدَائِهِ هو! د کال په شروع کي (د نصاب) پوره والی ضروري دی لِلِانْعِقَادِ وَتَحَقُّقِ الْغِنَاءِ د زکاة د منعقد کېدلو لپاره او د مالداری د ثبوت لپاره وَفِي

اِنْتِهَائِهِ لِلْوُجُوْبِ او د کال په آخر کي د زکاة د واجبېدلو لپاره (د نصاب پوره والی ضروري دی) وَلَا كَذٰلِكَ فِيْمَا بَيْنَ ذٰلِكَ لېکن د کال په مينځ کي داسي نه ده (يعني د نصاب پوره والی ضروري نه دی) لِأَنَّهُ حَالَةُ الْبَقَاءِ ځکه د کال مينځ د بقاء حالت دی بِخِلَافِ مَا لَوْ هَلَكَ الْكُلُّ حَيْثُ يَبْطُلُ حُكْمُ الْحَوْلِ په خلاف د هغه صورت چي کله ټوله مال هلاک سي ځکه چي په هغه وخت کي به د کال حکم باطليږي وَلَا تَجِبُ الزَّكَاةُ او زکاة به نه واجبيږي لِانْعِدَامِ النِّصَابِ فِي الْجُمْلَةِ ځکه چي په بشپړه توگه نصاب معلوم سو وَلَا كَذٰلِكَ فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُوْلٰى او په اوله مسئله کي داسي نه ده لِأَنَّ بَعْضَ النِّصَابِ بَاقٍ ځکه چي بعضي نصاب (لا) پاته دی فَبَقِيَ الْاِنْعِقَادُ نو منعقد کېدل به (يعني د زکاة وجوب به) هم پاته وي.

**اللغات:** ﴿طرف﴾ اړخ، طرف (د لته له طرفين څخه مراد د کال اول او آخري سر دی)، ﴿يَشُقُّ﴾ سختېدل، بوجېدل، ستونزمن کېدل، ﴿أثناء﴾ مينځ، دوران.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د کال په شروع او آخر کي د نصاب څښتن وي، او د کال په مينځ کي د هغه نصاب يو څه نقصان وکړي او تر نصاب کم سي، نو پر هغه به زکاة واجب وي، او د کال په مينځ کي به د نصاب په کمېدلو سره د زکاة پر وجوب هيڅ اغېزه نه پرېوځي، ځکه له اوله څخه تر آخره پوري نصاب پوره پاته کېدل مشکل دي، ځکه چي مال کله زياتيږي، او کله کميږي، هو! خو د کال په شروع کي د نصاب پوره کېدل ضروري دي، چي د زکاة د واجبېدلو سبب منعقد سي، او د مال د څښتن مالداري ثابته سي، همدارنگه د کال په آخر کي هم د ټوله نصاب پاته کېدل ضروري دي، چي د زکاة وجوب ثابت سي، او څرنگه چي د کال په مينځ کي نه د سبب د منعقد کېدلو ضرورت سته، او نه د زکاة د واجبېدلو، نو ځکه به د کال په مينځ کي د ټوله نصاب پاته کېدل ضروري نه وي، او که فقط بعضي نصاب پاته وي، نو هغه به د زکاة د وجوب لپاره کافي وي.

بخلاف ما لو هلك الخ د دې حاصل دا دی چي د نصاب نقصان خو زکاة نه ساقطوي، خو که د کال په مينځ کي ټوله نصاب هلاک سي، نو په دې صورت کي بيا زکاة ساقطيږي، ځکه چي د زکاة د وجوب لپاره حولانِ حول شرط دی، او د کال په مينځ کي د نصاب هلاکېدلو په وجه دا شرط فوتيږي، نو ځکه به مشروط يعني زکاة هم ساقطيږي، ځکه قاعده دا ده: إذا فات الشرط فات المشروط. او په اوله مسئله کي دا صورت نسته، يعني چي کله نصاب نقصان وکړي او بعضي نصاب کم سي په هغه کي دا صورت نسته، يعني څرنگه چي په هغه کي د نصاب څه حصه پاتيږي، نو ځکه به هلته حولانِ حول معتبر وي، او د زکاة د وجوب سبب به هم ثابت پاته وي، ځکه چي کله يو وار (د کال په شروع کي) پر نصاب د وجوب سبب ثابت سي، نو تر کومه وخته چي د نصاب يو جزء هم پاته وي، تر هغه وخته به د نصاب د وجوب سبب پاته وي. (كفايه)

## د سامان او د سرو او سپينو زرو د قيمتونو د يو ځای کولو بيان

قَالَ: وَتُضَمُّ قِيْمَةُ الْعُرُوْضِ إِلَى الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ فرمايي: (د تجارتي) سامان قيمت به د سرو او سپينو زرو سره يو ځای کيږي حَتّٰى يَتِمَّ النِّصَابُ تر دې چي نصاب پوره سي لِأَنَّ الْوُجُوْبَ فِي الْكُلِّ بِاعْتِبَارِ التِّجَارَةِ ځکه چي په ټولو کي د زکاة وجوب د تجارت په اعتبار سره دی وَإِنِ افْتَرَقَتْ جِهَةُ الْإِعْدَادِ که څه هم (د نما او د زياتېدلو لپاره يې) د تيارولو جهت جلا جلا دی.

**اللغات:** ﴿تُضَمُّ﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: د یو شي سره بل شی یو ځای کول(ضمول). ﴿الْقُرُوضُ﴾ د افتعال د باب ماضي معلومه ده: جلا کېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده که د یو چا په ملکیت کي تجارتي سامان د نصاب په اندازه نه وي، لېکن د هغه سره یو څه سره او سپين زر وي، نو د نصاب پوره کولو لپاره به د تجارتي سامان قیمت د سرو او سپينو زرو سره یو ځای کیږي، د مثال په توګه د یو چا سره پنځوس درهمه سپين زر هم وي، او د یونیم سلو(۱۵۰) درهمو تجارتي سامان هم ور سره وي، نو پر هغه به د دوو سوو درهمو زکاة واجب وي، یا د مثال په توګه د یو چا سره اته (۸) مثقاله سره زر هم وي، او د دوولسو مثقالو په قیمت تجارتي سامان هم ور سره وي، نو پر هغه به د شلو مثقالو زکاة واجب وي، دا حکم بالاجماع دی. دلیل: دا دی چي په هر شي کي د زکاة د واجبېدلو سبب د نامي نصاب مالک کېدل دي، او نماء د تجارت په سامان کي هم سته، او په سپينو او سرو زرو کي هم سته، که څه هم د نماء جهت یې مختلف دی، ځکه په سامان کي نماء د تجارت په وجه راځي، او تجارت بندګانو شروع کړی دی، او په سپينو او سرو زرو کي نماء د الله له طرفه پیدا کیږي، ځکه چي الله تعالیٰ دوی د تجارت لپاره پیدا کړي دي، نو که څه هم په سامان او سرو او سپينو زرو کي د نماء سبب مختلف دی، خو په نماء کي یو د بل سره برابر دي، نو ځکه به د تجارتي سامان قیمت د سرو او سپينو زرو سره یو ځای کیږي، او زکاة به واجبیږي.

## د سرو زرو سره د سپينو زرو د یو ځای کولو بیان

وَيُضَمُّ الذَّهَبُ إِلَى الْفِضَّةِ او سره زر به د سپينو زرو سره یو ځای کیږي لِلْمُجَانَسَةِ مِنْ حَيْثُ الثَّمَنِيَّةِ ځکه چي په ثمن کېدلو کي دواړه له یوه جنس څخه دي وَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ صَارَ سَبَبًا او د ثمن کېدلو په وجه هغه (د زکاة) سبب سو ثُمَّ يُضَمُّ بِالْقِيمَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ بیا به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قیمت په ذریعه سره یو ځای کیږي وَعِنْدَهُمَا بِالْأَجْزَاءِ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د اجزاؤ په ذریعه سره وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه (هم) یو روایت دی حَتَّى أَنَّ مَنْ كَانَ لَهُ مِائَةُ دِرْهَمٍ وَخَمْسَةُ مَثَاقِيلَ ذَهَبٍ تر دې که د یو چا سره سل درهمه وي او پنځه مثقاله سره زر وي تَبْلُغُ قِيمَتُهَا مِائَةَ دِرْهَمٍ چي د هغو پنځو مثقالو سرو زرو قیمت سلو درهمو ته رسیږي فَعَلَيْهِ الزَّكَاةُ عِنْدَهُ● نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه زکاة واجب دی خِلَافًا لَهُمَا د صاحبینو اختلاف دی هُمَا يَقُولَانِ: الْمُعْتَبَرُ فِيهِمَا الْقَدْرُ دُونَ الْقِيمَةِ صاحبين فرمايي: چي په سرو او سپينو زرو کي وزن معتبر دی، نه قیمت حَتَّى لَا تَجِبَ الزَّكَاةُ فِي مَصْنُوعٍ وَزْنُهُ أَقَلُّ مِنْ مِائَتَيْنِ تر دې چي په داسي جوړ سوي لوښي کي به زکاة واجب نه وي چي د هغه وزن له دوو سوو درهمو څخه کم وي وَقِيمَتُهُ فَوْقَهَا او قیمت یې له دوو سوو درهمو څخه زیات وي هُوَ يَقُولُ: إِنَّ الضَّمَّ لِلْمُجَانَسَةِ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي یو ځای کول د یوه جنس کېدلو په وجه دي وَهِيَ تَتَحَقَّقُ بِاعْتِبَارِ الْقِيمَةِ دُونَ الصُّورَةِ او هغه د قیمت په اعتبار سره ثابتیږي نه د صورت په اعتبار سره فَيُضَمُّ بِهَا نو د قیمت سره به یو ځای کیږي.

---

● القول الراجح: هو هٰذا قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في البحر الرائق ج:۲، ص: ۲۳۰، قال الاستاذ المفتي غلام قادر النعماني: أفتى الفقهاء على قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله والفتوىٰ على قوله، لأن الأصل في العبادات الفتوىٰ على قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لكن قولهما أوفق للقياس. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۷۲]

**اللغات:** ﴿المجانسة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو شی د بل شي سره هم جنسه کېدل، يعني له يوه جنسه کېدل، ﴿القيمة﴾ ماليت، قيمت، ﴿المصنوع﴾ د فتح د باب اسم مفعول دی: هغه شی چي کار پکښی سوي وي، جوړ کړی سوی شی (مثلاً يو لوښی او داسي نور).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو چا سره نه د سرو زرو پوره نصاب وي، او نه د سپينو زرو پوره نصاب وي، لېکن دواړه دومره ور سره وي چي که يو ځای کړی سي، يو نصاب پوره کيږي، نو په دې صورت کي به د احنافو او امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز يو د بل سره يو ځای کيږي، او زکاة به پکښي واجبيږي، په دې شرط چي تر يو ځای کولو وروسته د نصاب مقدار ته ورسيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي سره او سپين زر به يو د بل سره نه يو ځای کيږي، نو کله چي نه يو ځای کيږي، نو د نصاب د نه پوره کېدلو په وجه به زکاة هم نه واجبيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي سره زر او سپين زر دواړه مختلف جنسونه دي، حقيقتاً هم او حکماً هم، لکه څرنګه چي اوښ او بزه دواړه مختلف جنسونه دي، حقيقةً مختلف والی خو ښکاره دي چي د دواړو نومونه او حقيقت يو له بل څخه جلا جلا دي، او حکماً مختلف والی په دې وجه دی چي سره او سپين زر يو د بل په عوض کي په تفاضل سره او په کمي او زياتوب سره خرڅول جائز دي، حال دا چي د جنس د اتحاد په صورت کي تفاضل حرام دی، نو کله چي په سرو او سپينو زرو کي مجانست نسته، نو ځکه به يو د بل سره نه يو ځای کيږي. (بنايه ج: ۳، ص: ۴۵۴)

**زموږ دليل:** دا دی چي په سرو او سپينو زرو کي که څه هم د ذات په اعتبار سره اتحاد نسته، لېکن د ثمنيت (قيمت) د وصف په اعتبار سره اتحاد سته، او همدا د ثمنيت وصف د زکاة د وجوب سبب دی، نو کله چي د زکاة د وجوب په سبب يعني د ثمنيت په وصف کي اتحاد سته، نو ګواکي دواړه د ثمنيت په اعتبار سره هَمْ جنسه دي، او کله چي دواړه هم جنسه دي، نو ځکه به د زکاة د واجبولو لپاره يو د بل سره يو ځای کول واجب وي، زموږ تائيد د عبد الله بن الاشج په روايت سره هم کيږي، روايت دا دی: مضت السنة من أصحاب رسول الله ﷺ فى ضم الذهب إلى الفضة والفضة إلى الذهب فى إخراج الزكاة. (يعني د زکاة د را ايستلو په لړ کي به د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم دا طريقه وه چي هغوی به سره زر د سپينو زرو سره او سپين زر به يې د سرو زرو سره يو ځای کول).

ثم يضم بالقيمة الخ اوس پاته سوه دا خبره چي دا يو ځای کول به د قيمت په اعتبار سره وي، او که د اجزاؤ په اعتبار سره، نو په دې باره کي اختلاف دی، د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز به د قيمت په اعتبار سره يو ځای کيږي، همدا يو روايت د امام احمد رَحِمَهُ الله دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به د اجزاؤ په اعتبار سره يو ځای کيږي، همدا يو روايت د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، او دا قول د امام مالک رَحِمَهُ الله هم دی، او يو روايت د امام احمد رَحِمَهُ الله هم دی.

**ثمره د اختلاف:** حتى أن الخ له دې ځايه ثمره د اختلاف بيانوي، د اختلاف ثمره په دې مثال کي ښکاره کيږي چي مثلاً د يوه سړي سره سل (۱۰۰) درهمه سپين زر دي، او پنځه مثقاله سره زر دي، او د پنځو مثقالو سرو زرو قيمت سلو درهمو ته رسيږي، نو په دې صورت کي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز زکاة واجب وي، ځکه چي د قيمت په اعتبار سره نصاب پوره کيږي، او څرنګه چي د اجزاؤ په اعتبار سره نصاب نه پوره کيږي، نو ځکه به د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز زکاة هم نه واجبيږي، او که د يو چا سره لس مثقاله سره زر وي، او سل درهمه سپين زر وي، يا د يوه دريمه حصه ورسره وي، او د بل دوې دريمي حصې ور سره وي، نو په دې صورتونو کي به بالاتفاق يو ځای کيږي، او زکاة به واجبيږي.

هما يقولان الخ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي په سرو او سپينو زرو کي وزن معتبر دی، نه قيمت، تر دې که د يو چا سره د سپينو زرو يو لوښی يا زېور وي، او د هغه وزن تر دوو سوو درهمو کم وي، لېکن قيمت يې تر دوو سوو درهمو زيات وي، نو په دې صورت کي به بالاتفاق زکاة نه واجبيږي، له دې څخه معلومه سوه چي اعتبار به د وزن کيږي، نه د قيمت، نو که د وزن په اعتبار سره نصاب پوره کېدی، نو زکاة به واجبيږي، کنې نه به واجبيږي.

هو يقول الخ امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله فرمايي چي يو ځای کول په دې وجه دي چي دواړه له يو جنسه دي، او له يوه جنسه کېدل د قيمت په اعتبار سره متحقق کيږي، نه د صورت په اعتبار سره، نو ځکه به يو ځای کول (هم) د قيمت په اعتبار سره وي، نه د صورت په اعتبار سره، او څرنګه چي د اجزاؤ اعتبار د صورت اعتبار دی، نو د صورت په اعتبار سره به نه يوځای کول د اجزاؤ په اعتبار سره نه يو ځای کول وي، نو ثابته سوه چي د يوځای کولو لپاره به د اجزاؤ اعتبار نه کيږي، بلکي د قيمت اعتبار به کيږي. والله أعلم علمه أتم

## بَابٌ فِيمَنْ يَمُرُّ عَلَى الْعَاشِرِ

(دا) باب د هغه چا په بيان کي دی چي د عاشر سره (يعني د عاشر مخته) تيريږي

تشريح: صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي تر زکاةُ الاموال وروسته د دې باب د بيانولو وجه دا ده چي په مبسوط او جامع صغير کي هم دا باب تر زکاةُ الاموال وروسته ذکر سوی دی، نو ځکه صاحب د هدايې د هغو په اقتداء کي دا باب دلته بيانوي.

عاشر له عشر (ضَرَبَ) څخه د اسم فاعل صيغه ده، معنی يې ده: د لسمي حصې اخيستونکی، او اصطلاحي تعريف يې هغه دی کوم چي په کتاب کي ذکر سوی دی، يعني: من نصبه الإمام على الطريق ليأخذ الصدقات من التجار (يعني کوم څوک چي امام له تاجرانو څخه د زکاة اخيستلو لپاره پر لاري ودروي هغه ته عاشر ويل کيږي)، لېکن پر دې تعريف دا اعتراض کېدای سي چي عاشر خو له کافرانو او ذميانو څخه هم ټيکس (محصول) اخلي، حال دا چي ټيکس صدقه او زکاة نه دی، نو جواب دا دی چي عاشر خو په اصل کي ځکه درول کيږي چي زکاة او صدقات واخلي، ځکه چي په دې کي د عبادت پر اداء کولو د مسلمانانو سره مرسته کول دي، او له زکاة او صدقات څخه ماسوا ټول له تابع دي، نو ځکه به صراحتاً د هغو د ذکر کولو هيڅ ضرورت نه وي.

**د عاشر تعريف..... که تاجر د زکاة له وجوب څخه انکار وکړي نو څه حکم دی؟**

إِذَا مَرَّ عَلَى الْعَاشِرِ بِمَالٍ کله چي (يو تاجر) د (خپل) مال سره د عاشر (عُشر اخيستونکي) سره تېر سي فَقَالَ: أَصَبْتُهُ مُنْذُ أَشْهُرٍ او (تاجر) ووايي: چي له يو څو مياشتو څخه ما دا مال حاصل کړی دی أَوْ عَلَيَّ دَيْنٌ وَحَلَفَ صُدِّقَ يا پر ما پوري باندي دی او قسم وکړي نو د هغه تصديق به کيږي (يعني خبره به يې منل کيږي) وَالْعَاشِرُ مَنْ نَصَبَهُ الْإِمَامُ عَلَى

الطَّرِيقِ او عاشر هغه سړی دی چي امام پر لاري درولی وي لِيَأْخُذَ الصَّدَقَاتِ مِنَ التُّجَّارِ چي له تاجرانو څخه زکاة واخلي فَمَنْ أَنْكَرَ مِنْهُمْ تَمَامَ الْحَوْلِ أَوِ الْفَرَاغَ مِنَ الدَّيْنِ نو که یو تاجر له کال پوره کېدلو یا له پور څخه د فارغېدلو انکار وکړي كَانَ مُنْكِرًا لِلْوُجُوبِ نو هغه به د زکاة د وجوب منکر وي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ الْيَمِينِ او قول د منکر به معتبر وي د قسم سره.

**اللغات:** ﴿عاشر﴾ هغه څوک دی چي په لاره کي د باچا له طرفه ولاړ وي، او له خلکو څخه زکاة اخلي ﴿عُشر﴾ لسمه برخه، ټيکس (ټکس)، ﴿أعتبة﴾ ما پيدا کړی، ما حاصل کړی، ما ته حاصل سو. ﴿دَين﴾ پور، ﴿حَول﴾ کال.

**تشريح:** د باب په تشريح کي د عاشر تعريف او تفصيل تېر سو.

**مسئله:** دا ده که يو تاجر د عاشر مخته تېر سو او مال ور سره وو، او تاجر ووېل: "يوځو مياشتي کيږي چي زه د دې مال مالک سوی يم، [يعني تر اوسه زما پر دې مال کال نه دي تېر سوی]، او له دې څخه علاوه زما سره بل داسي مال هم نسته چي پر هغه کال تېر سوی وي"، يا دې تاجر ووېل: "چي پر ما پور باندي دی". او پر دې خبرو يې قسم وخوړی، نو د هغه تصديق به کيږي، او عاشر به له هغه څخه زکاة نه اخلي، ځکه تاجر چي کله د کال تېرېدلو (حولان حول) انکار وکړي يا يې له دې څخه انکار وکړی چي له زه پور څخه فارغ نه يم (يعني زما په دې مال کي پور سته)، نو هغه پر ځان باندي د زکاة له واجبېدلو څخه منکر سو، او د منکر د قول اعتبار به هغه وخت کيږي چي مع اليمين (يعني د قسم سره) وي، نو ځکه به د دې تاجر قول مع اليمين معتبر وي، او زکاة به نه ځني اخيستل کيږي.

**فوائد:** په دې باب کي چي چيري د عُشر لفظ ذکر سوی وي، له هغه څخه هر ځای خاص لسمه حصه مراد نه ده، بلکي د عشر لفظ د لسمي حصې څخه ماسوا د شلمي حصې او د زکاة يعني د څلوېښتمي حصې لپاره هم استعماليږي. د دې تعيين به په قرائنو سره کيږي، نو که د عاشر مخته تېرېدونکی مسلمان وو، او د تجارت مال ور سره وو، نو له هغه څخه به څلوېښتمه حصه اخيستل کيږي، او که ذمي وو، نو شلمه حصه به ځني اخيستل کيږي، او که حربي وو نو لسمه حصه به ځني اخيستل کيږي، او پر دې ټولو به د عشر اطلاق کيږي.

## که تاجر ووېل چي ما بل عاشر ته عُشر ورکړی نو څه حکم دی؟

وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَدَّيْتُهَا إِلَى عَاشِرٍ آخَرَ او همدارنګه چي کله هغه (تاجر) ووايي: ما عُشر بل عاشر ته ورکړی (نو د هغه خبره به منل کيږي) وَمُرَادُهُ إِذَا كَانَ فِي تِلْكَ السَّنَةِ عَاشِرٌ آخَرُ د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد دا دی چي کله په دغه کال کي بل عاشر (هم) وي لِأَنَّهُ ادَّعَى وَضْعَ الْأَمَانَةِ مَوْضِعَهَا ځکه چي هغه پر خپل ځای د امانت د ايښولو وعده کړې ده بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ عَاشِرٌ آخَرُ فِي تِلْكَ السَّنَةِ په خلاف د هغه صورت چي کله په دغه کال کي بل عاشر نه وي لِأَنَّهُ ظَهَرَ كَذِبُهُ بِيَقِينٍ ځکه چي په يقيني توګه سره د هغه درواغ ښکاره سوه.

**اللغات:** ﴿أدّيتها﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: اداء کول، ورکول، ﴿ادّعى﴾ د افتعال د باب ماضي ده: دعوه کول، ﴿سَنة﴾ کال.

**تشريح: مسئله:** دا ده که تاجر عاشر ته ووېل چي ما بل عاشر ته عُشر ورکړی دی، او په دې کال کي دويم عاشر هم وو، نو د هغه خبره به منل کيږي، ځکه چي هغه دا دعوه وکړه چي ما امانت پر خپل ځای مصرف کړی، او امانت ساتونکی چي کله پر خپل ځای د امانت مصرفولو مُدعي وي، نو د قسم سره به د هغه خبره منل کيږي، هو! که په دې کال کي بل

دويم عاشر نه وو، نو د هغه قول به معتبر نه وي، ځکه چي په دې صورت کي په يقيني توګه معلومه سوه چي هغه په خپله دعوه کي درواغجن دی.

## که تاجر وويل ما زکاة اداء کړې دی نو څه حکم دی؟

وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَدَّيْتُهَا أَنَا همدارنګه چي کله (د مال څښتن) ووايي: ما زکاة په خپله اداء کړې يَعْنِي إِلَى الْفُقَرَاءِ فِي الْمِصْرِ يعني د ښار پر فقيرانو (او غريبانو) ته (مي ورکړې) لِأَنَّ الْأَدَاءَ كَانَ مُفَوَّضًا إِلَيْهِ فِيهِ ځکه چي اداء کول په ښار کي د مال څښتن ته سپارل سوي وي وَوِلَايَةُ الْأَخْذِ بِالْمُرُورِ او عاشر لره داخيستلو حق (د هغه مخته) د تېرېدلو په وجه دی لِدُخُولِهِ تَحْتَ الْحِمَايَةِ ځکه چي د مال څښتن (د عاشر) په حفاظت کي داخل سو وَكَذَا الْجَوَابُ فِي صَدَقَةِ السَّوَائِمِ فِي ثَلَاثَةِ فُصُولٍ او همدا حکم په درې سره وو صورتونو کي د سوائمو د زکاة په باره کي دی وَفِي الْفَصْلِ الرَّابِعِ وَهُوَ مَا إِذَا قَالَ: أَدَّيْتُ بِنَفْسِي إِلَى الْفُقَرَاءِ فِي الْمِصْرِ او په څلورم صورت کي او هغه دا دی چي د مال څښتن ووايي: ما په خپله په ښار کي فقيرانو ته زکاة ورکړې دی لَا يُصَدَّقُ (نو په دې څلوم صورت کي به) د هغه تصديق نه کيږي وَإِنْ حَلَفَ که څه هم قسم وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُصَدَّقُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي تصديق به يې کيږي لِأَنَّهُ أَوْصَلَ الْحَقَّ إِلَى الْمُسْتَحِقِّ ځکه چي هغه تر حقداره پوري حق رسولی دی وَلَنَا أَنَّ حَقَّ الْأَخْذِ لِلسُّلْطَانِ او زموږ دليل دا دی چي د اخيستلو حق باچا لره دی فَلَا يَمْلِكُ إِبْطَالَهُ نو د مال څښتن به د هغه د باطلولو مالک نه وي بِخِلَافِ الْأَمْوَالِ الْبَاطِنَةِ په خلاف د باطني مالونو (يعني په خلاف د دراهمو او دنانيرو) ثُمَّ قِيلَ: الزَّكَاةُ هُوَ الْأَوَّلُ وَالثَّانِي سِيَاسَةٌ بيا ويل سوي دي: چي زکاة اول دی او دويم زکاة د سياست په توګه دی وَقِيلَ: هُوَ الثَّانِي وَالْأَوَّلُ يَنْقَلِبُ نَفْلًا او ويل سوي دي: چي زکاة دويم دی او اول به په نفلو بدليږي وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح ده ثُمَّ فِيمَا يُصَدَّقُ فِي السَّوَائِمِ وَأَمْوَالِ التِّجَارَةِ بيا چي په کومو صورتونو کي په سوائمو او په تجارتي مالونو کي د هغه د خبري تصديق کيږي لَمْ يَشْتَرِطْ إِخْرَاجَ الْبَرَاءَةِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ په هغه صورتونو کي امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي د برائت نامې (يعني د اداء کولو د رسيد) د را ايستلو شرط نه دي لګولی وَشَرَطَهُ فِي الْأَصْلِ او په مبسوط کي يې د هغه شرط لګولی دی وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدغه له امام صاحب رَحِمَهُ الله د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله روايت دی لِأَنَّهُ ادَّعَى ځکه چي د مال څښتن (د زکاة اداء کولو) دعوىٰ کړې ده وَلِصِدْقِ دَعْوَاهُ عَلَامَةٌ او (برائت نامه) د دعوې د رښتيا والي لپاره يوه نښه ده فَيَجِبُ إِبْرَازُهَا نو ځکه به د هغې ښکاره کول واجب وي وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ الْخَطَّ يُشْبِهُ الْخَطَّ او د اول مسلک وجه دا ده چي يو خط د بل خط سره مشابه وي فَلَا يُعْتَبَرُ عَلَامَةً نو (د خط) نښه کېدل به معتبر نه وي.

**اللغات:** ﴿مصر﴾ ښار، ﴿المفوّض﴾ د تفعيل د باب اسم مفعول دی: سپارل سوی، ﴿المرور﴾ د نصر د باب مصدر دی: تېرېدل، ﴿حماية﴾ ساتنه، حفاظت، ﴿سوائم﴾ جمع د سائمةٌ ده: هغه څاروبان چي له کور څخه دباندي په بيابان او ځنګل کي وابنه خوري،

يعني ځړېدونکي څارويان. ﴿أَوْصَلَ﴾ د افعال د باب ماضي ده: رسول. ﴿الْبَرَاءَةُ﴾ د اداء كولو رسيد، عاشر د زكاة تر اخيستلو وروسته تاجر او د مال مالك ته يو رسيد او چيټۍ وركوي د دې لپاره چې بل عاشر له تاجر او مالك څخه دويم وار زكاة وانه خلي، دغه رسيد او چيټۍ ته (البراءة) يعني برائت نامه ويل كيږي.

**تشريح:** په دې عبارت كې ډېرې مسئلې بيان سوي دي، چې هغه به په ترتيب سره ستاسو مخته ذكر سي: (١) اوله مسئله دا ده چې كه د مال خاوند يعني تاجر عاشر ته دا وويل چې ما په خپله فقيرانو ته په ښار كې زكاة وركړى، او پر دې خبره يې قسم هم وخوړى، نو د قسم سره به د هغه خبره منل كيږي، ځكه چې په ښار كې د مال خاوندان په خپله د زكاة وركولو مالكان دي، او په ښار كې شريعت هغو ته دا اختيار وركړى دى چې په خپله دې زكاة خپلو مصارفو ته وركړي، نو كه يو تاجر قسم وخوري او دا ډول خبره وكړي، نو د هغه خبره به منل كيږي، او د عاشر له ذمې څخه به د الله ﷻ حق ساقطيږي. صاحب د فتح القدير رَحِمَهُ الله ليكلي دي چې په دې ځاى كې د فى المصر قيد ځكه لګېدلى دى چې كه يو سړى له ښار څخه ووتى او د سفر په حالت كې يې زكاة اداء كړى، نو د عاشر د اخيستلو حق به نه ساقطيږي، ځكه چې په اموال باطنه وو يعني په دراهمو او دنانيرو كې مالكانو ته په ښار كې دننه د زكاة د اداء كولو ولايت سته، لېكن له ښار څخه دباندې هغو ته دا ولايت حاصل نسته، بلكې كله چې له ښار څخه ووځي، نو د هغو ولايت به د امامُ المسلمين يا د هغه د عاشر و طرف ته نقل كيږي، ځكه كله چې يو سړى له ښار څخه دباندې ووځي، نو هغه د امامُ المسلمين په حمايت او حفاظت كې داخليږي.

وكذا الجواب الخ صاحب د هدايې فرمايي چې څرنګه د اموال باطنه وو په څلورو سره وو صورتونو كې د تاجر (او مالك) خبره د قسم سره منل كيږي، همدارنګه به د اموال ظاهره وو (سوائمو) په درېيو صورتونو كې هم د هغه خبره منل كيږي، لېكن په يوه صورت كې به د هغه خبره نه كيږي، د اموال ظاهره وو چې په كومو درېيو صورتونو كې به د مالك خبره منل كيږي هغه دا دي: (١) كه د مال خاوند (مالك) دا وويل چې يو څو مياشتې كيږي چې زه د دې مال مالك سوى يم او پر دې مال كال تېر سوى نه دى (٢) پر ما دومره پور باندې دى چې ټوله مال يې نيولى دى (يعني دومره پور دى چې زما ټوله مال په پور كې ځي) (٣) ما بل عاشر ته زكاة وركړى دى، او په دې كال كې بل عاشر موجود هم وي. (٤) او په څلورم صورت كې به زموږ په نېز د هغه خبره نه منل كيږي، لېكن د شوافعو په نېز به په دې صورت كې هم د قسم سره د هغه خبره منل كيږي، څلورم صورت دا دى چې د مال خاوند قسم وخوري او عاشر ته ووايي چې ما په ښار كې فقيرانو ته د دې سوائمو زكاة وركړى دى.

**د امام شافعي دليل:** دا دى چې زكاة د فقيرانو او غريبانو حق دى، او دا خبره منل سوې ده چې كله حقدار ته خپل حق ورسيږي، نو پر چا چې حق وي، هغه بري كيږي، او غاړه يې خلاصيږي، نو په پورتنۍ مسئله كې چې كله مالك په خپله فقيرانو ته د هغوى حق وركړى دى، نو شرعاً به هغه بري وي، او عاشر ته به له هغه څخه د دويم زكاة اخيستلو حق نه وي.

**زموږ دليل:** دا دى چې په ټولو مسئلو د يوه حكم جامه اغوستل صحيح نه دي، دا مسئله د سوائمو د زكاة ده، او د سوائمو د زكاة اخيستلو حق صرف او صرف امام يا د هغه ټاكل سوي عاشر لره سته، لكه څرنګه چې الله تعالىٰ فرمايلي دي: خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً، او په حديث كې ذكر سوي دي: خذ من الإبل الإبل، نو كله چې د سوائمو اخيستلو حق صرف امام لره سته، نو ښكاره ده چې د مالك وركړل سوى زكاة به شرعاً معتبر نه وي، او امام ته به دوباره د زكاة اخيستلو حق وي، ځكه

چي د مالک د ورکړل سوي زکاة د معتبر منلو مطلب دا دی: د امام د اخيستلو حق باطلول، او مالک ته د امام د حق باطلولو هيڅ اجازه نشته

بخلاف الأموال الباطنة الخ د دې په خلاف د اموال باطنه وو مسئله ده، نو څرنګه چي په هغو کي شريعت مالکان د امام او عاشر نائبان جوړ کړي دي، نو ځکه به په اموال باطنه وو کي د مالک ورکول سوی زکاة معتبر وي، او له هغه شخصه به دوباره زکاة نه اخيستل کيږي، همدا وجه ده چي موږ د اموال باطنه وو په ټولو صورتونو کي د مالک ورکول سوی زکاة معتبر منو.

ثم قيل الخ د دې حاصل دا دی چي کله د اموال ظاهره وو په څلورم صورت کي د مالک د اداء کړل سوي زکاة اعتبار نسته، او امام يا عاشر به له هغه شخصه دوباره زکاة اخلي، نو اوس خبره دا ده چي په دې دواړو کي به د مالک کوم يو زکاة اصل وي، يعني کوم زکاة ته به يې زکاة ويل کيږي، اول ورکول سوي زکاة ته، که دويم ورکول سوي زکاة ته کوم چي امام واخيستی، نو فرمايي چي په دې لړ کي دوه قولونه دي: (۱) اول قول دا دی چي کوم زکاة مالک په خپله اداء کړی دی، يعني اول زکاة به زکاة شمارل کيږي، او دويم (کوم چي امام واخيستی) هغه به د سياستِ مدنيه په توګه وي، يعني د دې لپاره چي په دې سره نورو مالکانو ته عبرت حاصل سي چي بيا داسي ګام پورته نه کړي، د دې قول دليل دا دی چي اول زکاة به ځکه اصل وي چي په اول زکاة کي هغه د زکاة نيت کړی دی، دويم زکاة خو يې امام ته د مجبورۍ په وجه ورکړی دی، (۲) دويم قول دا دی چي کوم زکاة امام دوباره اخلي، هغه به زکاة وي، ځکه زکاة د الله حق دی، نو کله چي د الله له طرفه ټاکل سوی سړی دا واخلي نو هلته به هغه اداء کيږي، او اول زکاة به يې نفل ګرځي، او دا مسئله داسي ده لکه يو سړی چي د جمعې په ورځ په کور کي د ماپښين فرضي لمونځ وکړي، بيا د جمعې د لمانځه لپاره راووځي، نو د هغه اداء سوی فرضي لمونځ په نفلي لمانځه بدليږي، همدارنګه به په پورتنۍ مسئله کي هم د مالک اداء سوی به په نفلو بدليږي، صاحب د هدايې فرمايي چي همدغه دويم قول صحيح او معتبر دی.

ثم فيما يصدق الخ له دې ځايه دا رابنيي چي که مالک عاشر ته وويل: "چي ما بل عاشر ته زکاة ورکړی دی"، نو آيا د هغه د تصديق لپاره به فقط قسم کافي وي، او که د هغه لپاره به د بل عاشر تصديقي سند (برائت نامه) ښکاره کول هم ضروري وي، په دې لړ کي امام محمد رَحِمَهُ الله په خپل تصنيف يعني په جامع صغير کي له قسم شخخه علاوه د تصديقي سند شرط نه دي لګولی، ليکن په مبسوط کي يې دا شرط لګولی دی چي پر مالک دويم عاشر ته تصديقي سند ور ښکاره کول هم ضروري دي، له دې شخخه بغير به د هغه خبره نه منل کيږي، هغه که هر څومره قسمونه وخوري، ځکه د عاشر عادت دا وي چي کله هم له يو چا شخخه زکاة او نور اخلي، نو هغه ته تصديقي رسيد خامخا ورکوي، نو ځکه به د مالک لپاره د خپلي دعوې په تصديق کي د عاشر تصديقي رسيد بل عاشر ته ور ښکاره کول ضروري وي، او بغير له رسيد شخخه به د مالک قول معتبر نه وي.

وجه الأول الخ امام محمد رَحِمَهُ الله چي په جامع صغير کي د تصديقي سند شرط نه دي لګولی، د هغه دليل دا دی چي ډېر ځله يو خط د بل خط سره مشابه وي، او په هغه کي په آساني سره درغلي او چالبازي کېدای سي، نو ځکه رسيد او خط علامه او نښه ګرځول بې فايدې دي، او کوم شی چي بې فايدې وي، د هغه شرط لګول به هم بې فايدې او مهمل وي.

فايده: د عبارت له آخري ټوکړي ثم فيما يصدق الخ شخخه دا وهم پيدا کيږي چي د اموال تجارت او د سوائمو په ټولو صورتونو کي په مبسوط کي د تصديقي رسيد ور ښکاره کول ضروري ګرځول سوي دي، حال دا چي داسي نه ده، بلکي

له ډیبا یصدق څخه هغه دریم صورت مراد دی، چې د هغه تفصیل بیان سو، او دلته عام ذکر سوی دی او مجازاً خاص څني مراد سوی دی، یعني دا عبارت د ذکر العام وإرادة الخاص له قبیلې څخه دی.

## په پورتني صورتونو کي د ذمي حکم

قَالَ: وَمَا صُدِّقَ فِيهِ الْمُسْلِمُ صُدِّقَ فِيهِ الذِّمِّيُّ فرمایي: په کومو صورتونو کي چي د مسلمان تصدیق کیږي په هغو کي به د ذمي تصدیق (هم) کیږي لِأَنَّ مَا يُؤْخَذُ مِنْهُ ضِعْفُ مَا يُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِ ځکه له ذمي څخه چي کوم مال اخیستل کیږي دا به د هغه مال دوچنده وي کوم چي له مسلمان څخه اخیستل کیږي فَتُرَاعَى تِلْكَ الشَّرَائِطُ تَحْقِيقًا لِلتَّضْعِيفِ نو د دوچندۍ د ثابتولو لپاره به د هغو شرطونو خیال ساتل کیږي.

**اللغات:** ﴿ضعف﴾ دوچنده، ﴿تراعى﴾ د مفاعلې د باب مضارع مجهوله ده: رعایت کول، لحاظ کول، خیال ساتل.

**تشریح:** مسئله: دا ده: چي په تېر عبارت کي چي د اموال تجارت او د سوائمو په کومو صورتونو کي د مسلمان تاجر خبره د قسم سره منل کیږي، په هغو صورتونو کي به د ذمي خبره هم د قسم سره منل کیږي، او له هغه څخه به دوباره زکاة نه اخیستل کیږي، د دې وجه دا ده چي له ذمي څخه د مسلمان د زکاة په څیر دوچنده اخیستل کیږي، نو د زکاة د هغو ټولو شرطونو خیال به د ذمي په مال کي هم ساتل کیږي، کوم چي د مسلمانانو په مال کي د هغو خیال ساتل کیږي، یعني نصاب، حولانِ حول او داسي نور، اوچیري چي د قسم سره د مسلمان خبره منل کیږي، هلته به د ذمي خبره هم منل کیږي، د کفر په وجه به د هغه خبره او قسم نه ردیږي.

## د عاشر مخته د حربي تاجر د دعوې حکم

وَلَا يُصَدَّقُ الْحَرْبِيُّ إِلَّا فِي الْجَوَارِيْ او د حربي تاجر تصدیق به نه کیږي مګر په مینځو کي يَقُوْلُ: هُنَّ أُمَّهَاتُ أَوْلَادِيْ چي (کله) هغه (داسي) ووایي: "دا زما د بچو منديٰ دي" أَوْ غِلْمَانٍ مَعَهُ یا په داسي هلکانو کي به (صرف د هغه تصدیق کیږي) چي هغه د ده سره وي يَقُوْلُ: هُمْ أَوْلَادِيْ او هغه (داسي) ووایي: "دا زما بچیان دي" لِأَنَّ الْأَخْذَ مِنْهُ بِطَرِيْقِ الْحِمَايَةِ ځکه چي له حربي څخه (عُشر) اخیستل د حمایت او حفاظت په توګه دی وَمَا فِيْ يَدِهِ مِنَ الْمَالِ يَحْتَاجُ إِلَى الْحِمَايَةِ او د هغه سره چي کوم مال دی هغه د حفاظت محتاجه دی غَيْرَ أَنَّ إِقْرَارَهُ بِنَسَبِ مَنْ فِيْ يَدِهِ مِنْهُ صَحِيْحٌ خو کوم بچیان چي د هغه په لاس کي دي د هغو د نسب اقرار کول د هغه له طرف صحیح دی فَكَذَا بِأُمُوْمِيَّةِ الْوَلَدِ نو همدارنګه به (د مینځو) د اُمِ ولد کېدلو اقرار کول (هم د هغه له طرفه صحیح) وي لِأَنَّهَا تَبْتَنِيْ عَلَيْهِ ځکه اُمِ ولد کېدل (خو) پر ولد کېدلو مبني دي (یعني بچی له مور څخه پیدا کیږي نو د مینځي په باره کي به دا اقرار کول چي دا زما اُمِ ولد ده هم صحیح وي) فَانْعَدَمَتْ صِفَةُ الْمَالِيَّةِ فِيْهِنَّ نو په دوی کي (یعني په مینځو او بچو کي) د مال کېدلو صفت ختم سو وَالْأَخْذُ لَا يَجِبُ إِلَّا مِنَ الْمَالِ او د عُشر اخیستل نه واجبیږي، مګر له مال څخه.

**اللغات:** ﴿جَوَارِي﴾ جمع د جارِيَةٌ ده: مينځې، (اينجوني)، ﴿غِلْمَانٌ﴾ جمع د غُلَامٌ ده: غلامان، هلکان، ﴿أُمُومِيَّة﴾ مور کېدل، ﴿إِنْعَكَسَ﴾ د انفعال د باب ماضي ده: نيستي کېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که حربي تاجر له اسلامي امير څخه أمان واخلي او د تجارت په اراده سره زموږ ملک يعني دارُ الاسلام ته راسي، او مال ور سره وي د عاشر سره تېر سي، او له تېرو ذکرو سوو خبرو څخه يوه خبره وکړي، مثلاً ووايي: چي زما پر دې مال تر اوسه کال نه دي تېر سوی، يا ووايي چي پر ما پور باندي دی، يا ووايي چي ما بل عاشر ته عشر ورکړی دی، يا ووايي چي ما په خپله د عشر مقدار فقيرانو ته ورکړی دی، نو په دې يوه صورت کي به هم د هغه تصديق نه کيږي، بلکي عاشر به له هغه څخه عشر اخلي، هو! که د هغه سره مينځې وي او هغه ووايي چي دا مينځې زما د اولاد مندي دي، يعني زما أُم ولد دي، يا يو څه هلکان ور سره وي، او هغه ووايي چي دا زما اولاد دی، نو په دې دواړو صورتونو کي به د هغه د قول تصديق کيږي، او په دې مينځو او هلکانو کي به عشر نه اخيستل کيږي.

**دليل:** د حربي تاجر له مال څخه د عشر اخيستلو دليل دا دی چي له حربي څخه عشر په دې وجه اخيستل کيږي چي د دارُ الاسلام امير او باچا د هغه د مال ساتنه او حفاظت کوي، او کوم مال چي د هغه په قبضه کي دی، هغه ساتني او حفاظت ته محتاج هم دی، نو کله چي اهلِ اسلام د هغه د مال ساتنه کوي، نو د ساتني او حفاظت حق يعني عشر به هم خامخا له هغه څخه اخيستل کيږي، او په پورتني څلور سره وو صورتونو کي به د هغه تصديق په دې وجه نه کيږي چي د هغه په تصديق کولو کي هيڅ فايده نسته، ځکه کله چي هغه ووايي چي زما پر مال تر اوسه کال نه دي تېر سوی، نو ويل کيږي به چي د حربي په مال کي د عشر واجبېدلو لپاره حولانِ حول شرط نه دی، ځکه پر حربي په دې عشر واجبيږي چي د هغه او د هغه د مال حفاظت اهلِ اسلام کوي، او حربي ته په امان سره حمايت او حفاظت حاصل سوی دی، نو ځکه به تر امان ورکولو وروسته پر هغه عشر واجبيږي، هغه که کال تېر سوی وي، او که نه وي، او که هغه ووايي چي پر ما پور باندي دی، نو د هغه تصديق به هم نه کيږي، ځکه کوم پور چي پر هغه په دارُ الحرب کي واجب سوی وي، د هغه غوښتنه خو په دارُ الاسلام کي له هغه څخه نه کيږي، که حربي ووايي چي ما بل عاشر ته عشر ورکړی دی، نو د هغه دا خبره به هم په دې وجه نه منل کيږي چي هغه رښتيا وايي، که درواغ (ځکه هغه کافر دی)، او که هغه ووايي چي ما په خپله فقيرانو ته عشر ورکړی دی، نو د دې خبري تصديق به يې هم نه کيږي، ځکه چي هغه کردسره د عشر او زکاة ورکولو عقيده نه لري، نو عُشر به يې څرنګه ورکړی وي!.

غير أن إقرارَه الخ صاحب د هدايې فرمايي: خو کوم کسان چي د حربي په قبضه کي دي، د هغو د نسب اقرار کول به د هغه له طرفه صحيح وي، يعني که هغه دا وايي چي دا زما زامن يا لوڼي دي، يا دا زما د زامنو مندي دي، نو موږ به د هغه دا اقرار منو، ځکه چي د هغه حربي کېدل د استيلاد او نسب منافي نه دي، ځکه څرنګه چي استيلاد او نسب په دار الاسلام کي ستنه، همدارنګه په دار الحرب کي هم ستنه، نو کله چي د مينځو په باره کي د أُم ولد کېدلو اقرار او د هلکانو په بله کي د اولاد کېدلو اقرار صحيح دی، نو په هغو کي به عشر او نور هم نه واجبيږي، ځکه چي په أُم ولد او زامنو کي د مال کېدلو (ماليت) صفت نسته، او عشر به له مال څخه اخيستل کيږي نه له غيرِ مال څخه، نو ځکه به په هغه کي عشر نه واجبيږي.

## له مسلمان، ذمي او حربي شخصه به څومره عُشر اخیستل کیږي؟

قَالَ: وَيُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِ رُبْعُ الْعُشْرِ فرمايي چي له مسلمان شخصه به څلویښتمه حصه اخیستل کیږي وَمِنَ الذِّمِّيِّ نِصْفُ الْعُشْرِ او له ذمي شخصه به شلمه حصه اخیستل کیږي وَمِنَ الْحَرْبِيِّ الْعُشْرُ او له حربي شخصه به لسمه حصه اخیستل کیږي هَكَذَا أَمَرَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سُعَاتَهُ حضرت عمر ﷺ خپل عشر (او زکاة) اخیستونکو ته همداسي حکم کړی وو وَإِنْ مَرَّ حَرْبِيٌّ بِخَمْسِينَ دِرْهَمًا او که یو حربي د پنځوسو (۵۰) درهمو سره (د عاشر مخته) تېر سي لَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُ شَيْءٌ نو له هغه شخصه به هیڅ شی نه اخیستل کیږي إِلَّا أَنْ يَكُونُوا يَأْخُذُونَ مِنَّا مِنْ مِثْلِهَا خو دا چي له دومره لږ مال شخصه يې حربیان هم زموږ شخصه (مال) اخلي لِأَنَّ الْأَخْذَ مِنْهُمْ بِطَرِيقِ الْمُجَازَاةِ ځکه چي له هغو شخصه عشر اخیستل د بدلې په توګه دي بِخِلَافِ الْمُسْلِمِ وَالذِّمِّيِّ په خلاف د مسلمان او ذمي لِأَنَّ الْمَأْخُوذَ زَكَاةٌ أَوْ ضِعْفُهَا ځکه چي (له مسلمان او ذمي شخصه) اخیستل سوی مال زکاة دی یا د زکاة دوچنده مال دی فَلَا بُدَّ مِنَ النِّصَابِ نو ځکه به نصاب ضروري وي وَهَذَا فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او دا حکم په جامع صغیر کي ذکر سوی دی وَفِي كِتَابِ الزَّكَاةِ: لَا تَأْخُذْ مِنَ الْقَلِيلِ او (د مبسوط) په کتاب الزکاة کي ذکر سوي دي: چي له لږ مال شخصه څه مه اخله! وَإِنْ كَانُوا يَأْخُذُونَ مِنَّا مِنْهُ که څه هم حربیان زموږ له لږ مال شخصه (مال) اخلي لِأَنَّ الْقَلِيلَ لَمْ يَزَلْ عَفْوًا ځکه چي لږ همېشه معاف وي وَلِأَنَّهُ لَا يَحْتَاجُ إِلَى الْحِمَايَةِ او په دې وجه چي لږ مال حفاظت ته احتیاج (هم) نه لري.

**اللغات:** ﴿سُعَاة﴾ جمع د ساعي ده: د ټیکس، عشر او زکاة اخیستونکی، ﴿مجازاة﴾ د مفاعلي د باب مصدر دی: بدله اخیستل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي له مسلمان تاجر شخصه به د هغه د مال څلویښتمه حصه اخیستل کیږي، له ذمیانو شخصه به د هغوی په مالونو کي شلمه حصه اخیستل کیږي، او له حربیانو شخصه به د هغوی په مالونو کي لسمه حصه اخیستل کیږي، دلیل دا دی چي د زکاة د تعیین په باره کي د حضرت عمر ﷺ مبارک فرمانونه او خطونه د اصل او بنیاد حیثیت لري، او د حضرت عمر ﷺ په باره کي دا رانقل سوي دي چي هغه خپلو عاشرینو او د زکاة اخیستونکو ته دا حکم کړی وو: خذوا من المسلم ربع العشر ومن الذمي نصف العشر ومن الحربي العشر او څرنګه چي د حضرت عمر ﷺ دا حکم د صحابه وو ﷺ په وجود کي جاري سوی وو، او یوه صحابي هم له دې شخصه انکار نه وو کړی، نو ګواکي پر دې اجماع منعقد سوه، او د عشر او زکاة په لړ کي درې روانو خلکو لپاره یو اُصول جوړ سو.

**عقلي دلیل:** د دې حکم عقلي دلیل چي له ذمیانو شخصه به دوچنده او له حربیانو شخصه به څلور چنده اخیستل کیږي، دا دی چي عشر او زکاة او نور د مال د حفاظت ټیکس (محصول) دی، او په دارُ الاسلام کي د مال حفاظت ته تر ټولو زیات ضرورت حربیان لري، بیا ذمیان او بیا مسلمانان، نو ځکه په حفاظت کي د ضرورت د زیاتوب او کمي مطابق پر دوی ټیکس واچول سو.

وإن مرّ حربي الخ د دې حاصل دا دی چي که یو حربي د ۵۰ درهمو سره د یو عاشر مخته تېر سو، نو عاشر به له هغه شخصه عشر نه اخلي، خو که حربیانو هم د مسلمانانو له کم او معمولي مال شخصه ټیکس اخیستی، نو بیا به عاشر په ۵۰ درهمو

کي هم له هغو څخه عشر اخلي، ځکه چي د حربيانو سره زموږ معامله د مجازات او بدلې اخيستلو په توګه ده، نو هغوی چي زموږ سره څرنګه معامله کوي، هغسي معامله به موږ هم د هغو سره کوو.

بخلاف الذمي الخ فرمايي چي که د حربي پر ځای يو مسلمان يا ذمي د ۵۰ درهمو سره يا تر نصاب د کم مال سره د عاشر مخته تېر سي، نو له هغو څخه به بالکل هيڅ شی نه اخيستل کيږي، ځکه له مسلمان چي کومه څلوېښتمه حصه اخيستل کيږي، هغه زکاة دی، او له ذمي څخه چي کومه شلمه حصه اخيستل کيږي، هغه د زکاة دوچنده حصه ده، او د زکاة لپاره د نصاب او نورو بشپړ تيا ضروري ده، نو که د مسلمان او ذمي مال تر نصاب کم وو، نو له هغه څخه به هيڅکله يو شی نه اخيستل کيږي.

وهذا في الجامع الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د حربي د لږ مال څخه د بدلې اخيستلو په توګه اخيستل د جامع صغير مسئله ده، او د مبسوط په کتاب الزکاة کي دا حکم ذکر سوی دی چي د حربي د لږ مال څخه به هم هيڅ نه اخيستل کيږي، که څه هم هغوی زموږ د لږ مال څخه ټيکس او نور اخلي، ځکه چي لږ مال همېشه معاف وي، نو د حربيانو له طرفه زموږ د لږ مال څخه څه اخيستل تعدي او ظلم دی، ولا مجازاة في الظلم او په ظلم کي بدله اخيستل نسته.
د لږ مال څخه د عشر نه اخيستلو دويم دليل دا دی چي عشر خو د مال د حفاظت ټيکس دی، ليکن لږ مال د حفاظت محتاجه نه وي، نو ځکه به په هغه کي عشر هم واجب نه وي.

## د حربي تاجرانو سره بايد څرنګه معامله وسي؟

قال: وَإِنْ مَرَّ حَرْبِيٌّ بِمِائَتَيْ دِرْهَمٍ فرمايي: که يو حربي تاجر د دوو سوو (۲۰۰) درهمو سره (د عاشر مخته) تېر سي وَلَا يُعْلَمُ كَمْ يَأْخُذُونَ مِنَّا او دا معلومه نه وه چي حربيان زموږ څخه څومره اخلي يَأْخُذُ مِنْهُ الْعُشْرَ نو عاشر به له هغه څخه عشر اخلي لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځکه حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي دي فَإِنْ أَعْيَاكُمْ فَالْعُشْرُ "يعني که هغه تاسو عاجزه کړي نو عشر اخلئ" وَإِنْ عُلِمَ أَنَّهُمْ يَأْخُذُونَ مِنَّا رُبُعَ الْعُشْرِ أَوْ نِصْفَ الْعُشْرِ او که معلومه سوه چي حربيان زموږ څخه څلوېښتمه حصه يا شلمه حصه اخلي يَأْخُذُ بِقَدْرِهِ نو (زموږ) عاشر به هم د هغه په اندازه مال اخلي وَإِنْ كَانُوا يَأْخُذُونَ الْكُلَّ لَا يَأْخُذُ الْكُلَّ او که (معلومه سوه چي) هغوی ټوله مال زموږ څخه اخلي نو (زموږ) عاشر به ټوله مال نه اخلي لِأَنَّهُ غَدْرٌ ځکه چي دا وعده خلافي ده وَإِنْ كَانُوا لَا يَأْخُذُونَ أَصْلًا لَا يَأْخُذُ او که (معلومه سوه چي) حربيان زموږ څخه بالکل (هيڅ) نه اخلي نو (زموږ) عاشر به (هم هيڅ) نه اخلي لِيَتْرُكُوا الْأَخْذَ مِنْ تُجَّارِنَا د دې لپاره چي هغوی زموږ له تاجرانو څخه اخيستل پرېږدي وَلِأَنَّا أَحَقُّ بِمَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ او په دې وجه (هم) چي موږ د غوره اخلاقو زيات حقدار يو.

**اللغات:** ﴿أعياكم﴾ دافعال د باب ماضي ده: ستړی کول، عاجزه کول. ﴿مکارم الأخلاق﴾ غوره اخلاق، ښه چلند او ښه رويه.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو حربي تاجر د دوو سوو درهمو يا تر دې د زياتو درهمو سره د يو عاشر مخته تېر سو، او مسلمان عاشر ته دا معلومه نه وه چي هغوی زموږ له تاجرانو څخه څومره اخلي، نو له هغه څخه به عشر اخيستل کيږي، دليل د حضرت عمر رضي الله عنه قول دی: فإن أعياكم فالعشر (يعني که تاسو د دې خبري له پېژندني څخه عاجزه سی چي

حربيان ستاسو څخه څومره اخلي نو ىيا تاسو لسمه حصه اخلئ)، او که دا معلومه وه چې حربيان زموږ څخه شلو ىنتمه يا شلمه حصه اخلي، نو زموږ عاشر به هم له هغوی څخه د هغه په اندازه مال اخلي، او که معلومه سوه چې حربيان زموږ له تاجرانو څخه ټوله مال اخلي، نو زموږ عاشر به له حربي تاجر څخه ټوله مال نه اخلي، ځکه دا خو وعده خلافي او درغلي ده چې تر أمان ورکولو وروسته ټوله مال ځني واخيستل سي، حال دا چې درغلي او غدر کول حرام دي، که څه هم حربي کفار داسي کوي، همدا وجه ده که حربيان تر أمان ورکولو وروسته زموږ تاجران قتل کړي، نو موږ به يې نه قتل کوو، او بعضي مشائخو ويلي دي چې په دې صورت کي به هم زموږ عاشر ټوله مال اخلي، او صرف دومره مال به پرېږدي چې په هغه سره دا حربي خپل وطن ته ورسيږي، ځکه موږ ته دا أمر سوی چې دوی خپل وطن ته ورسوو، د الله رب العزت فرمان دی: ثُمَّ أَبْلِغْهُ مَأْمَنَهُ (بيا هغوی خپل پناهګاه ته ورسوئ)، او بعضو ويلي دي چې له حربي تاجر څخه به ټوله مال اخيستل کيږي، دومره به هم نه ور پرېښوول کيږي چې هغه خپل وطن ته په ورسيږي، ځکه چې له حربيانو څخه عشر او نور د بدلې (مجازات) په توګه اخيستل کيږي، نو څرنګه چلند او سلوک چې هغوی زموږ سره کوي چې زموږ له تاجرانو څخه ټوله مال اخلي، هغسي به موږ د هغو سره کوو، د دې لپاره چې هغو ته تنبيه ورکول سي، او که حربيانو زموږ څخه هيڅ نه اخيستل، نو زموږ عاشر به هم له هغو څخه هيڅ نه اخلي، د دې لپاره چې هغوی زموږ له تاجرانو څخه بالکل اخيستل پرېږدي.

دويم دليل دا دی چې کله هغوی زموږ څخه هيڅ نه اخلي، نو دا هغو زموږ سره ښه اخلاق او غوره چلند وکړی، او موږ د غوره اخلاقو زياته لايق يو، ځکه غوره اخلاق د اسلام اهمه او ښستيزه نکته ده، او همدا هغه شی دي چې ډېرين زړونه يې ويلي کړل، او په سپېڅلي اسلام سره يې مشرفه کړل.

## له حربيانو څخه د عُشر په اخيستلو کي د کال د تېرېدلو شرط او حکم

قَالَ: وَإِنْ مَرَّ الْحَرْبِيُّ عَلَى عَاشِرٍ فَعَشَّرَهُ فرمايي: چې که يو حربي د عاشر سره تېر سي او عاشر عُشر ځني واخلي ثُمَّ مَرَّ مَرَّةً أُخْرَى بيا دويم واره (دوباره) تېر سي لَمْ يُعَشِّرْهُ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ نو بيا به عاشر عُشر نه ځني اخلي تر دې چې پر هغه يو کال تېر سي لِأَنَّ الْأَخْذَ فِي كُلِّ مَرَّةٍ اِسْتِئْصَالُ الْمَالِ ځکه چې هر وار عشر اخيستل مال له بېخه کښل دي (يعني بالکل ختمول دي) وَحَقُّ الْأَخْذِ لِحِفْظِهِ حال دا چې (د عشر) اخيستلو حق د مال د حفاظت په وجه دی وَلِأَنَّ حُكْمَ الْأَمَانِ الْأَوَّلِ بَاقٍ او په دې وجه (هم) چې د اول امان حق پاته دی وَبَعْدَ الْحَوْلِ يَتَجَدَّدُ الْأَمَانُ او تر کال تېرېدلو وروسته امان نوی کيږي لِأَنَّهُ لَا يُمَكَّنُ مِنَ الْمُقَامِ إِلَّا حَوْلًا ځکه چې حربي ته صرف تر يوه کاله پوري د وسېدلو قدرت ورکول کيږي وَالْأَخْذُ بَعْدَهُ لَا يَسْتَأْصِلُ الْمَالَ او تر يوه کال وروسته (عشر) اخيستل مال له بېخه نه کاږي (يعني که تر يوه کال وروسته بيا عشر لو ټيکس ځني واخلي نو په هغه سره مال نه ختميږي، ځکه په دومره وخت کي خو له مسلمان څخه هم اخيستل کيږي).

**اللغات:** ﴿عَشَّرَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: عُشر، زکاة او نور اخيستل، ﴿اِسْتِئْصَال﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ضايع کول، له بېخه کښل، نيست و نابود کول، بالکل ختمول، ﴿يَتَجَدَّدُ﴾ د تفعل د باب مضارع ده: نوی کېدل (جديد کېدل).

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که یو حربي تاجر د خپل مال سره د عاشر مخته تېر سو، او عاشر له هغه څخه عشر واخیستی، بیا هغه حربي تر یوه کال پوره کېدلو مخکې دویم وار بیا د عاشر مخته تېر سو (یعني یو کال لا پوره سوی نه وو چې د عاشر مخته دویم وار تېر سو)، نو اوس به عاشر له هغه څخه عشر نه اخلي، هو! که تر یوه کال پوره کېدلو وروسته تېر سو، نو له هغه څخه به دوباره عشر اخلي، تر یوه کال پوره کېدلو مخکې دوباره د عشر نه اخیستلو وجه دا ده چې عشر د مال د حفاظت په وجه اخیستل کېږي، (یعني په دې وجه عشر اخیستل کېږي چې امامُ المسلمین او عاشر د حربیانو د مال حفاظت کوي)، لیکن د هر وار تېرېدلو په وخت کې د عشر اخیستلو په صورت کې د حفاظت پر ځای مال بالکل له بېخه خیږي، یعني بالکل ختمیږي، او ضایع کیږي، او د مال ضایع کېدل د حفاظت او حمایت هم منافي دي، او هغه ته د ورکړل سوي امان سره هم خلاف دي، ځکه چې د مخکني امان حکم اوس هم پاته دی، او دا حکم به تر یوه کال پورې پاته وي، او تر کال پوره کېدلو وروسته چې کله امان نوی سي، نو د عشر اخیستل به نوي کیږي، او دویم وار به عشر څخني اخیستل کیږي، تر یوه کال وروسته د امان د تجدّد او نوي کېدلو وجه دا ده چې حربیانو او نورو ته چې کوم امان ورکول کیږي، هغه صرف د یوه کال لپاره ورکول کیږي، لهذا کله چې یو کال پوره سي، نو هغو ته د شریعت له طرفه نوی امان ورکول کیږي، لهذا له هغو څخه به دوباره عشر هم اخیستل کیږي، همدارنګه تر پوره کال وروسته د عشر په اخیستلو سره د حربي مال هم بالکلیه نه ختمیږي، نو په دې حواله سره هم تر یوه کال وروسته د عشر په اخیستلو کې هیڅ حرج او پروا نسته.

## حربي که له دارُالحراب څخه خو ځله راسي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ عَشَرَهُ او که له حربي څخه عاشر عُشر واخلي فَرَجَعَ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ بیا حربي دارُالحرب ته واپس ولاړ سي ثُمَّ خَرَجَ مِنْ يَوْمِهِ ذَلِكَ بیا په همدغه ورځ بیرته له دارُالحرب څخه را ووځي (یعني بیرته دارُالاسلام ته راسي) عَشَرَهُ أَيْضاً نو هم به عاشر له هغه څخه عُشر اخلي لِأَنَّهُ رَجَعَ بِأَمَانٍ جَدِيْدٍ ځکه چې هغه (دویم وار) په نوي امان سره واپس راغلی وَكَذَا الْأَخْذُ بَعْدَهُ لَا يُفْضِيْ إِلَى الْإِسْتِئْصَالِ همدارنګه تر هغه وروسته (عشر) اخیستل د مال ختمېدلو ته رَسوَلَ نه کوي (یعني تر هغه وروسته عشر څخني اخیستل د مال د بیخه کنډلو سبب نه جوړیږي).

**اللغات:** ﴿لا يُفْضِيْ﴾ د افعال د باب مضارع منفي ده: رسول.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې که حربي تاجر د مال سره د عاشر مخته تېر سو، او عاشر له هغه څخه عشر واخیستی. بیا هغه په همدغه ورځ دارُالحرب ته ولاړی هم، او بیرته راغلی هم، نو له هغه څخه به دوباره عشر اخیستل کیږي. ځکه چې دارُالحرب ته د تګ او بیرته راتګ په وجه هغه په نوي امان سره را واپس سوی دی. او اوس تلسو په مخکني مسئله کې وویل چې د امان د تجدّد او د نوي کېدلو په وجه به بل عشر لازمیږي، او بیا دار الحرب ته تر تګ او بیرته راتګ وروسته په عشر ورکولو سره د حربي مال بالکل ختمیږي هم نه (یعني مال یې له بېخه نه خیږي). ځکه چې ممکنه ده چې په دارُالحرب کې هغه له دې مال څخه ګټه ترلاسه کړې وي، نو ځکه به نفسِ سفر د ګټې د تر لاسه کولو (حصو) قائم مقام جوړیږي، او د هغه په مال کې به دویم عشر واجبیږي.

## د ذمي د خنزير او د شرابو په اړه د فقهاؤ اختلاف او قولونه

فَإِنْ مَرَّ ذِمِّيٌّ بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ او که يو ذمي د شرابو او خنزير سره (د عاشر مخته) تېر سي عَشَّرَ الْخَمْرَ● دُوْنَ الْخِنْزِيرِ نو عاشر دي د شرابو عشر (څني) واخلي، د خنزير عشر دي نه څني اخلي وَقَوْلُهُ عَشَّرَ الْخَمْرَ: أَيْ مِنْ قِيمَتِهَا او د ماتن د دې قول عَشَّرَ الْخَمْرَ معنیٰ ده: عَشَّرَ مِنْ قِيمَتِهَا (يعني د شرابو له قيمت څخه دي عشر [يعني لسمه حصه څني] واخلي) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُعَشِّرُهُمَا لِأَنَّهُ لَا قِيمَةَ لَهُمَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي؛ چي د دواړو عشر به نه اخلي ځکه چي د دواړو هيڅ قيمت نسته وَقَالَ زُفَرُ: يُعَشِّرُهُمَا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د دواړو عشر به اخلي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْمَالِيَّةِ عِنْدَهُمْ ځکه چي دا دواړه د کفارو په نيز په ماليت (قيمت) کي برابر دي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُعَشِّرُهُمَا إِذَا مَرَّ بِهِمَا جُمْلَةً او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: که ذمي د شرابو او د خنزير دواړو سره (د عاشر مخته) تېر سي (يعني دواړه يو ځای ور سره وي) نو د دواړو عشر به (څني) اخلي كَأَنَّهُ جَعَلَ الْخِنْزِيرَ تَبَعًا لِلْخَمْرِ کوکي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله خنزير د شرابو تابع کړی دی فَإِنْ مَرَّ بِكُلِّ وَاحِدٍ عَلَى الْإِنْفِرَادِ بيا که د هر يوه سره جلا تېر سي عَشَّرَ الْخَمْرَ دُوْنَ الْخِنْزِيرِ نو د شرابو عشر به اخلي، نه د خنزير وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ أَنَّ الْقِيمَةَ فِي ذَوَاتِ الْقِيَمِ لَهَا حُكْمُ الْعَيْنِ او د ظاهر روايت مطابق د فرق وجه دا ده چي په ذواتُ القيم کي قيمت ته د عين (ذات) حکم حاصل دی وَالْخِنْزِيرُ مِنْهَا او خنزير له ذواتُ القيم څخه دی وَفِي ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ لَيْسَ لَهَا هٰذَا الْحُكْمُ او په ذواتُ الامثال کي قيمت ته دا حکم حاصل نه دی وَالْخَمْرُ مِنْهَا او شراب له ذواتُ الامثال څخه دي وَلِأَنَّ حَقَّ الْأَخْذِ لِلْحِمَايَةِ او په دې وجه (هم چي د (عشر او ټيکس) اخيستلو حق د حفاظت په وجه دی وَالْمُسْلِمُ يَحْمِيْ خَمْرَ نَفْسِهِ لِلتَّخْلِيلِ او مسلمان د سرکه جوړولو لپاره د خپلو شرابو حفاظت کولای سي فَكَذَا يَحْمِيهَا عَلَى غَيْرِهِ نو د بل د شرابو به (هم) حفاظت کولای سي وَلَا يَحْمِيْ خِنْزِيرَ نَفْسِهِ او د خپل خنزير حفاظت نه سي کولای بَلْ يَجِبُ تَسْيِيبُهُ بِالْإِسْلَامِ بلکي د اسلام په وجه (د مسلمان لپاره) د خنزير پرېښوول ضروري دي فَكَذَا لَا يَحْمِيهِ عَلَى غَيْرِهِ همدارنګه به د بل د خنزير (هم) حفاظت نه سي کولای.

**اللغات:** ﴿خمر﴾ شراب، ﴿إِسْتِوَاءٌ﴾ د استفعال د باب مصدر دی: برابر والی، ﴿تَبَع﴾ تابع، محکوم، ﴿تَخْلِيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سرکه جوړول، سرکه کول، ﴿تَسْيِيب﴾ دا هم د تفعيل د باب مصدر دی: حيوان ايله کول او آزاد پرېښوول، ﴿ذَوَاتُ الْقِيَم﴾ شيان پر دوه قسمه دي: (١) ذواتُ القيم: دا هغو شيانو ته ويل کېږي چي د هغه په مېنځ کي تفاوت وي، او که له يو چا څخه هلاک سي، نو د هغو مثل به نه ورکوي، بلکي د هغو قيمت به ورکوي، لکه خنزير چي له يو چا څخه هلاک سي، نو د خنزير قيمت به ورکوي، (٢) ذواتُ الامثال: هغو شيانو ته ويل کېږي چي د هغو په مېنځ کي تفاوت نه وي، او که له يو چا څخه هلاک سي، نو د

---

● القول الراجح: هو هٰذا قول الطرفين، يعني عشر الخمر دون الخنزير، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: لا يؤخذ من خنزيره مطلقا لأنه قيمي فأخذ قيمته كعينه بخلاف الشفعة، الدر المختار ج:٢، ص: ٤٦. [القول الراجح، ج:١، ص:١٧٥]

هغو قيمت به نه ورکوي، بلکې د هغو مثل به ورکوي، لکه شراب چې له يو چا څخه تلف سي، نو نور شراب به ورکوي، قيمت به نه ورکوي.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو ذمي د تجارت په نيت سره شراب يا خنزير يا دواړه د ځان سره را واخلي او د عاشر سره تېر سي، نو په دې شيانو کې د عشر اخيستلو په باره کې څلور قولونه دي: (۱) اول قول د طرفينو رَحِمَهُ‌الله دی، چې عاشر دې د شرابو قيمت معلوم کړي، که هغه د دوو سوو درهمو ول، نو له هغه څخه دې عشر يعني لسمه حصه واخلي، او خنزير دې پرېږدي. (۲) دويم قول د امام شافعي رَحِمَهُ‌الله دی، هغه دا دی چې دواړه دې پرېږدي، يعني نه دې د شرابو عشر اخلي او نه د خنزير. (۳) دريم قول د امام زفر رَحِمَهُ‌الله دی، هغه دا دی چې عاشر دې د دواړو عشر واخلي. (۴) څلورم قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ‌الله دی، هغه دا دی چې که د ذمي سره شراب او خنزير دواړه يو ځای ول او د عاشر سره تېر سو، نو بيا خو دې عاشر د دواړو عشر واخلي، او که فقط شراب يا خنزير ور سره وو، او د عاشر سره تېر سو، نو په دې صورت کې به صرف د شرابو د قيمت عشر څني اخلي، او خنزير ته به لاس نه ور وړي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې د شرابو او خنزير هيڅ قيمت نسته، همدا وجه ده که مسلمان د ذمي شراب يا خنزير هلاک کړي، نو د امام شافعي رَحِمَهُ‌الله په نېز پر مسلمان هيڅ ضمان نه راځي، نو کله چې دا دواړه د شوافعو په نېز مال نه دي، نو په دې کې به عشر هم نه واجبېږي، ځکه چې عشر په مال کې واجبېږي، نه په غير مال کې.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې شراب او خنزير دواړه د کفارو په نېز مال دي، که څه هم زموږ په نېز مال نه دي، نو په دې وجه که مسلمان د ذمي خنزير هلاک کړي، نو پر هغه به ضمان واجبېږي، لکه څرنګه چې د شرابو په هلاکولو سره ضمان لازمېږي، نو کله چې د امام زفر رَحِمَهُ‌الله په نېز په ماليت کې دواړه برابر دي، که څه هم د کفارو په نېز مال دي، نه د مسلمانانو په نېز، نو په دې کې به عشر هم واجبېږي، ځکه چې د تجارت په هر مال کې عشر واجبېږي، په دې شرط چې د نصاب په اندازه وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** امام ابو يوسف رَحِمَهُ‌الله خنزير د شرابو تابع کړی دی، ځکه د شرابو ماليت واضح دی، ځکه چې د شرابو اجزاء تر شرابو جوړېدلو مخکې او تر شرابو جوړېدلو وروسته په دواړو حالتونو کې مال وي، تر شرابو جوړېدلو مخکې خو ماليت ښکاره دي، او تر شرابو جوړېدلو وروسته په دې وجه مال دي چې له دې څخه سرکه جوړېدای سي (يعني که مالکه ور واچول سي، نو له دې څخه بيا سرکه جوړېدای سي، نو ځکه مال سو)، لېکن په خنزير کې هيڅ ډول د ماليت صفت نسته، نو ځکه به خنزير د يو ماليت لرونکي شي يعني د شرابو تابع ګرځول کېږي او يو ځای خو به د دواړو عشر اخيستل کېږي، لېکن جلا جلا به نه اخيستل کېږي، ځکه چې قاعده دا ده: إن الشئ قد يثبت تبعاً ولا يثبت أصلاً (يعني کله نا کله داسي کېږي چې يو شی خو تبعاً ثابتېږي، لېکن قصداً او اصلاً نه ثابتېږي)، همدارنګه به په پورتنی مسئله کې خنزير هم د شرابو تابع کېږي نو د تبعيت توګه به په خنزير کې د ماليت صفت راسي، او د شرابو سره به يو ځای د هغه عشر هم اخيستل کېږي، لېکن يوازي او جلا په خنزير کې ماليت نه سي راتلای، او نه به جلا د هغه عشر اخيستل کېږي.

**د طرفينو دليل:** او د فرق وجه دا ده چې په ذوات القيم کې د قيمت حکم داسي دی لکه د خاص د هغه شي حکم، او خنزير له ذوات القيم څخه دی، نو د خنزير قيمت اخيستل خاص د خنزير اخيستل دي، او د مسلمان لپاره د خنزير اخيستل او مالک کېدل جائز نه دي، نو ځکه ووېل سوه چې د خنزير عشر به نه اخيستل کېږي، او په ذوات الامثال کې د

قیمت حکم خاص د هغه شي په حکم کي نه دی، او شراب له ذوات الامثال څخه دی، نو د شرابو له قیمت څخه عشر اخیستل خاص د شرابو اخیستل نه دي، او کله چي دا خبره ده نو د شرابو له قیمت څخه به عشر اخیستل هم جائزوي.

ولأن حق الأخذ الخ دویم دلیل دا دی چي د عشر اخیستلو حق د حمایت او حفاظت په وجه دی، او مسلمان د خپل ذاتي شرابو حفاظت کولای سي، د دې مثال داسي دی چي که د یو مسلمان لپاره کافر مکاتب غلام وي او دا غلام کتابت پرېږدي، دوباره غلام جوړ سي، او د هغه سره شراب وي، نو اوس دا شراب د مسلمان مالک په ملکیت کي راځله او د مسلمان ذاتي شراب سول(ځکه چي د غلام هر شی د مالک په ذاتي ملکیت کي وي). لهذا اوس مسلمان مالک ته د سرکې د جوړولو لپاره د دې شرابو د حفاظت اجازه سته یعني د سرکې د جوړولو لپاره د دې شرابو حفاظت کولای سي، ځکه په شرابو کي چي مالکه واچول سي، نو بیا سرکه ځني جوړېږي، نو کله چي د خپلو شرابو حفاظت کولای سي، نو د ذمي د شرابو حفاظت هم کولای سي، نو ځکه به د هغه عشر هم اخیستلای سي، ځکه چي عشر د حفاظت په وجه اخیستل کیږي، او که د مکاتب غلام سره خنزیر وي، او هغه کتابت پرېږدي، دوباره غلام سي، نو خنزیر د مسلمان مالک په ملکیت کي راځلی، نو اوس مسلمان مالک ته د هغه د حفاظت اجازه نه سته یعني حفاظت یې نه سي کولای، او نه یې په خپل ملکیت کي ساتلای سي، او نه یې خرڅولای سي، بلکي پر مسلمان د هغه شړل ضروري دي، نو کله چي د خپل خنزیر حفاظت نه سي کولای، نو د ذمي د خنزیر حفاظت هم نه سي کولای، نو ځکه به له ذمي څخه د خنزیر عشر هم نه سي اخیستلای، ځکه چي عشر د حفاظت په وجه اخیستل کیږي، نو دا د شرابو د عشر اخیستلو او د خنزیر د عشر نه اخیستلو دویم فرق سو.

## له بنو تغلب څخه د عشر د اخیستلو حکم

وَلَوْ مَرَّ صَبِيٌّ أَوِ امْرَأَةٌ مِنْ بَنِي تَغْلِبَ بِمَالٍ او که د بنو تغلب کوچنی یا ښځه د مال سره (د عاشر مخته) تېر سي فَلَيْسَ عَلَى الصَّبِيِّ شَيْءٌ نو پر کوچني هيڅ شی واجب نه دی وَعَلَى الْمَرْأَةِ مَا عَلَى الرَّجُلِ او پر ښځه هغه شی واجب دی کوم چي پر سړي واجب دی لِمَا ذَكَرْنَا فِي السَّوَائِمِ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ په بابُ السوائم کي ذکر کړی.

**تشریح: مسئله:** دا ده چي که د بنو تغلب د کوچني یا ښځي سره مال ور سره وو، او د عاشر مخته تېر سول، نو پر کوچني به عشر لو هیڅ شی واجب نه وي، او پر ښځه به دومره اندازه مال واجب وي څومره چي پر تغلبي سړي واجب دی، یعني دوچنده عشر به ځني اخیستل کیږي، د دې مسئلې تفصیل او دلائل په بابُ السوائم کي ذکر سول، لهذا بیا یې د ذکر کولو ضرورت نسته.

## که د تېر بدونکي سړي سره په کور کي نور مال هم وي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ مَرَّ عَلَى عَاشِرٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ او که یو سړی د سلو (۱۰۰) درهمو سره د عاشر سره تېر سي وَأَخْبَرَهُ أَنَّ لَهُ فِي مَنْزِلِهِ مِائَةً أُخْرَى او عاشر ته خبر ورکړي چي زما سره په کور کي نور سله درهمه سته قَدْ حَالَ عَلَيْهِمَا چي پر هغو کال (هم) تېر سوی دی لَمْ يُزَكِّ الَّتِي مَرَّ بِهَا نو عاشر به د هغو سلو درهمو زکاة نه اخلي کوم چي یې د عاشر مخته تېر کړل (یعني کوم چي لوس ور سره دي) لِقِلَّتِهَا ځکه چي دا لږ دي وَمَا فِي بَيْتِهِ لَمْ يَدْخُلْ تَحْتَ حِمَايَتِهِ او کوم چي د هغه په کور کي دي هغه د عاشر په حفاظت کي داخل نه دي فَلَوْ مَرَّ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ بِضَاعَةً لَمْ يُعَشِّرْهَا او که یو سړی د بضاعت د دوو سوو

درهمو سره (د عاشر مخته) تېر سي نو عاشر به د هغه عشر نه اخلي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَأْذُوْنٍ بِأَدَاءِ زَكَاتِهِ ځکه چي (د بضاعت په درهمونو کي) تېرېدونکي سړي ته د زکاة د ورکولو اجازه نه ده سوې.

**اللغات:** ﴿تَبَضُّع﴾ د تفعيل له باب څخه د جحد صيغه ده: زکاة ورکول. ﴿بِضَاعَة﴾ د بضاعة لغوي معنیٰ ده: د مال يو جزء او يوه ټوکړه، سامان. او په اصطلاح کي بضاعت دا دي چي مالک يو سړي ته پيسې ورکړي او ورته ووايي: "په دې سره تجارت کوه، خو ګټه به ټوله زما وي، له ګټي څخه به تا ته هيڅ حصه نه درکوم، بلکي تا ته به د خپل کار مزدوري درکوم". نو دې تجارت ته بضاعت ويل کيږي، او دې پيسو ته د بضاعت پيسې ويل کيږي. په دې کي تجارت کونکي لره د زکاة ورکولو اجازه نسته. (البحر الرائق بحواله حاشيه هدايه ص: ۱۹۸، حاشيه: ۱۰). ﴿غَيْرُ مأذُونٍ﴾ هغه څوک چي اجازه نه وي ورکول سوې.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱) اوله مسئله دا ده که د يو سړي سره سل (۱۰۰) درهمه وي او د عاشر سره تېر سو، او دې سړي عاشر ته وويل چي زما سره په کور کي سل (۱۰۰) نور درهمه سته، او پر دواړو کال هم تېر سوی دی، نو اوس په دې کي زکاة واجبېدل پکار دي او عاشر ته د هغه اخيستل پکار دي، لېکن دلته د عاشر لپاره حکم دا دی چي هغه دي له دې سړي څخه مطلقاً زکاة نه اخلي، نه دي يې له هغو سلو درهمو څخه اخلي کوم چي د هغه سره اوس سته، او نه دي يې له هغو څخه اخلي کوم چي د هغه سره په کور کي دي، ځکه د هغه سره چي اوس کوم درهم دي، هغه د نصاب په اندازه نه دي، او کوم چي په کور کي ور سره دي، هغه د عاشر په حمايت او حفاظت کي داخل نه دي، او دا معلومه خبره ده چي نه له نصاب څخه په کم مال کي زکاة واجبيږي، او نه په هغه مال کي زکاة واجبيږي کوم چي له حفاظت او حمايت څخه خارج وي، نو ځکه به د پورتنی مسئلې په دواړو صورتونو کي مطلقاً زکاة نه واجبيږي.

(۲) دويمه مسئله دا ده که د يو سړي سره د بضاعت والا دوه سوه درهمه وي او د عاشر سره تېر سو، نو له هغه څخه دي هم عاشر زکاة نه اخلي، ځکه چي د مالک له طرفه هغه ته د زکاة ورکولو اجازه نسته، بلکي هغه صرف او صرف د تجارت کولو حقدار دی، نو کله چي د مالک له طرفه و هغه ته د زکاة ورکولو اجازه نسته، نو عاشر به څرنګه له هغه څخه زکاة اخلي!.

## که د تېرېدونکي سړي سره د مضاربت مال وي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَكَذَا الْمُضَارَبَةُ همدارنګه د مضاربت حکم دی يَعْنِيْ إِذَا مَرَّ الْمُضَارِبُ بِهِ عَلَى الْعَاشِرِ يعني کله چي مضارب د مضاربت مال د عاشر سره تېر کړي (نو له هغه څخه به عاشر زکاة نه اخلي) وَكَانَ أَبُوْحَنِيْفَةَ يَقُوْلُ أَوَّلًا: يُعَشِّرُهَا او امام صاحب رَحِمَهُ الله به مخکي ويل: چي عاشر به له هغه څخه عشر اخلي لِقُوَّةِ حَقِّ الْمُضَارِبِ ځکه چي د مضارب حق مضبوطه دی حَتّٰى لَا يَمْلِكَ رَبُّ الْمَالِ نَهْيَهُ عَنِ التَّصَرُّفِ فِيْهِ تر دې چي ربُ المال د مضاربت په مال کي له تصرف کولو څخه د مضارب د منع کولو ملکيت نه لري بَعْدَ مَا صَارَ عُرُوْضًا وروسته تر دې چي د مضاربت مال په تجارتي سامان سره بدل سي فَنُزِّلَ مَنْزِلَةَ الْمَالِكِ نو مضارب به د مالک په درجه کي وي ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى مَا ذَكَرْنَا فِي الْكِتَابِ بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله له خپل دغه قول څخه د هغه مسئلې و طرف ته رجوع وکړه کوم چي موږ په کتاب کي ذکر کړه وَهُوَ قَوْلُهُمَا او همدا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالِكٍ وَلَا نَائِبٍ عَنْهُ فِيْ أَدَاءِ الزَّكَاةِ ځکه چي مضارب خو نه مالک دی او نه

د زکاة په اداء کولو کې د مالک نائب دی إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي الْمَالِ رِبْحٌ يَبْلُغُ نَصِيبُهُ نِصَابًا خو دا چې په مال کې دومره ګټه(نفعه) وسي چې په هغه کې د مضارب حصه تر نصابه پورې ورسيږي فَيُؤْخَذُ مِنْهُ لِأَنَّهُ مَالِكٌ لَهُ نو (په دې صورت کې به) د مضارب له حصې څخه زکاة اخيستل کيږي ځکه چې هغه د خپلې حصې مالک دی.

**اللغات:** ﴿التصرف﴾ د تفعّل مصدر دی: تصرف کول، اړول را اړول، کارول. ﴿العُرُوض﴾ جمع د عَرض ده: دنيأوي او تجارتي سامان. ﴿النائب﴾ خليفه، قائم مقام.

**تشريح:** مضاربت دې ته ويل کيږي چې يو سړی بل سړي ته پيسې ورکړي، چې په دې سره تجارت وکړه، او کومه ګټه چې وسي، هغه به زما او ستا په مينځ کې نيمې وي(نو په دې پيسو سره تجارت کونکي سړي ته مُضارب ويل کيږي،او د پيسو خاوند ته ربُ المال ويل کيږي، او دې پيسو ته مالِ مضاربت ويل کيږي).

**صورت د مسئلې:** دا دی چې که د مضارب سره د نصاب په اندازه مال وو، او د عاشر سره تېر سو، نو عاشر به له هغه څخه زکاة نه اخلي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول دا دی چې عاشر به له هغه څخه زکاة اخلي، ځکه چې د مضارب حق قوي دی(تر مالِ بضاعت)، تر دې چې کله مضارب د مضاربت پيسو سره سامان رانيسي، نو مالک ته اختيار نسته چې هغه مضارب د دې سامان له خرڅولو او له تجارتي تصرف څخه منع کړي، نو ګواکې مضارب د مالک په درجه کې سو، نو لکه څرنګه چې له مالک څخه عشر اخيستل کيږي، همدارنګه به له مضارب څخه هم اخيستل کيږي.

لېکن وروسته امام صاحب رَحِمَهُ الله له خپل اول قول څخه د هغه قول و طرف ته رجوع وکړه کوم چې په کتاب کې ذکر سو، او همدغه د صاحبينو قول دی، او د دې قول دليل دا دی چې مضارب خو نه د مال مالک دی، او نه په زکاة اداء کولو کې د مالک نائب دی، بلکې فقط په تجارت کولو کې نائب دی، نو کله چې مضارب نه مالک دی، او نه په زکاة اداء کولو کې د هغه نائب دی، نو له مضارب څخه به زکاة څرنګه اخيستل کيږي، هو! که په مال کې دومره اندازه ګټه وسي چې د مضارب حصه د نصاب په اندازه سي، نو بيا به له مضارب څخه زکاة اخيستل کيږي، ځکه چې مضارب د خپلې حصې مالک دی، او له مالک څخه به زکاة اخيستل کيږي.

## که تېربدونکی سړی عبدِ مأذون وي نو د عاشر لپاره څه حکم دی؟

وَلَوْ مَرَّ عَبْدٌ مَأْذُونٌ لَهُ بِمِائَتَيْ دِرْهَمٍ او که داسې غلام دوه سوه درهمه(د عاشر مخته) تېر کړي چې هغه ته (د تجارت کولو) اجازه ورکول سوې وي وَلَيْسَ عَلَيْهِ دَيْنٌ عَشَّرَهُ او پر هغه پور (هم) باندې نه وي نو عاشر به له هغه څخه عشر اخلي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: لَا أَدْرِي أَنَّ أَبَا حَنِيفَةَ رَجَعَ عَنْ هَذَا أَمْ لَا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: ماته معلومه نه ده چې امام صاحب رَحِمَهُ الله له دې قول څخه رجوع کړې ده، که نه؟ وَقِيَاسُ قَوْلِهِ الثَّانِي فِي الْمُضَارَبَةِ او په مضاربت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دويم قول قياس دا دی وَهُوَ قَوْلُهُمَا او دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول (هم) دی أَنَّهُ لَا يُعَشِّرُهُ چې عاشر به له عبدِ مأذون څخه عشر نه اخلي لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيمَا فِي يَدِهِ لِلْمَوْلَى ځکه چې د هغه په لاس کې چې څه دي هغه د مولیٰ په ملکيت کې دي وَلَهُ التَّصَرُّفُ او عبدِ مأذون ته (صرف) د تجارتي تصرف حق سته فَصَارَ كَالْمُضَارِبِ نو هغه د مضارب په شان سو وَقِيلَ فِي الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا او د دې دواړو مسئلو په مينځ کې د فرق په باره کې ويل سوي دي أَنَّ الْعَبْدَ

يَتَصَرَّفُ لِنَفْسِهِ چي عبد مأذون د خپل ځان لپاره تصرف کوي حَتّٰى لَا يَرْجِعَ بِالْعُهْدَةِ عَلَى الْمَوْلٰى تر دې چې پر مولیٰ به (د هغه په تصرف کولو سره) هیڅ ذمه واري نه راګرځي فَكَانَ هُوَ الْمُحْتَاجَ إِلَى الْحِمَايَةِ نو عبدِ مأذون به (د امام) حفاظت ته محتاجه وي وَالْمُضَارِبُ يَتَصَرَّفُ بِحُكْمِ النِّيَابَةِ او مضارب د نائب والي په وجه تصرف کوي حَتّٰى يَرْجِعَ بِالْعُهْدَةِ عَلٰى رَبِّ الْمَالِ تر دې چې ټوله ذمه واري به پر ربّ المال راګرځي فَكَانَ رَبُّ الْمَالِ هُوَ الْمُحْتَاجَ نو (حفاظت ته به) محتاج ربّ المال وي فَلَا يَكُوْنُ الرُّجُوْعُ فِي الْمُضَارِبِ رُجُوْعًا مِنْهُ فِي الْعَبْدِ نو د مضارب په مسئله کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله له خپل قول څخه رجوع کول به د عبدِ مأذون په مسئله کې د هغو رجوع کول نه وي وَإِنْ كَانَ مَوْلَاهُ مَعَهُ او که د عبدِ مأذون سره د هغه مولیٰ هم وي يُؤْخَذُ مِنْهُ نو له مولیٰ څخه به عشر اخيستل کيږي لِأَنَّ الْمِلْكَ لَهُ ځکه چې ملکيت خو د مولیٰ دی إِلَّا إِذَا كَانَ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ يُحِيْطُ بِمَالِهِ خو په هغه صورت کې چې کله پر غلام دومره پور وي چې د تجارت ټوله مال یې نيولی وي (نو په دې صورت کې به له مولیٰ څخه هم عشر نه اخيستل کيږي) لِانْعِدَامِ الْمِلْكِ أَوْ لِلشُّغْلِ ځکه چې (په دې صورت کې) د مولیٰ ملکيت پاته نه سو يا (د بل په حق کې) مشغول سو.

**اللغات:** ﴿العهدة﴾ ذمه واري (ذمه داري).

**تشريح:** عبد مأذون له في التجارة هغه غلام دی چې هغه ته د خپل مالک له طرفه د تجارت کولو اجازه ورکول سوې وي، امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې که عبد مأذون له في التجارة دوه سوه درهمه د عاشر مخته تېر کړل، او پر هغه دېو چا پور هم بلندي نه وو، نو عاشر به له هغه څخه عشر اخلي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وايي چې ماته معلومه نه ده چې زما استاذ امام صاحب رَحِمَهُ الله خپل له دې قول يعني د عشر له وجوب څخه د نه وجوب و طرف ته رجوع کړې ده، که نه؟ لکه څرنګه چې د مضارب په مسئله کې رجوع کول ثابت دي، هو! د مضاربت په مسئله کې چې څرنګه د امام صاحب دويم قول دا دی چې له مضارب څخه دې عشر نه اخيستل کيږي، همدارنګه به له عبد مأذون څخه هم عشر نه اخيستل کيږي، او د دې قول دليل قياس دی يعني چې څرنګه مضارب نه د مال مالک دی او نه د مالک له طرفه د زکاة په اداء کولو کې نائب دی، همدارنګه د عبد مأذون په قبضه کې چې کوم مال دی، هغه ټوله د مولیٰ ملک دی، عبد مأذون نه د هغه مالک دی، او نه په زکاة اداء کولو کې د مولیٰ له طرفه اجازه ورکول سوې ده، بلکې هغه ته فقط د تجارتي تصرف اختيار ورکول سوی دی.

وقيل في الفرق الخ ليکن کوم حضرات چې پر عبد مأذون د عشر د وجوب او پر مضارب د نه وجوب قائل دي، هغوی د دې دوو مسئلو په مينځ کې دا فرق کوي چې عبد مأذون د خپل ځان لپاره تصرف کوي، همدا وجه ده چې د عبد مأذون په تصرف کې پر مولیٰ هيڅ ذمه واري نه راځي، نو که د تجارت په وخت کې پر عبد مأذون يو پور بلندي سو، نو عبد مأذون به هغه له خپلې ګټې او له خپلې غاړې څخه اداء کوي، مولیٰ ته به د هغه په اداء کولو کې رجوع نه کوي، نو کله چې عبد مأذون د خپل ځان لپاره تصرف کوي، نو د حمايت او حفاظت محتاجه به هم هغه وي، او کوم څوک چې د حفاظت محتاجه وي، پر هغه عشر واجبيږي، نو ځکه به پر عبد مأذون عشر واجبيږي، او پاته سو مضارب نو هغه خود ربّ المال د نائب کېدلو په وجه تصرف کوي، همدا وجه ده چې د مضارب په تصرف کې پر ربّ المال ذمه واري راځي،

لهذا که مضارب یو سامان رانیسي، خو قیمت یې اداء نه کړي، تر دې چې هغه سامان هلاک سي، نو د دغه قیمت په اداء کولو کې به رب المال ته رجوع کوي، نو کله چې مضارب د خپل ځان لپاره تصرف نه کوي، بلکې د رب المال لپاره تصرف کوي، او د مضارب هغه نائب دی، نو د حفاظت محتاجه به هم رب المال وي، نه مضارب، او کله چې مضارب د حفاظت محتاجه نه دی، نو عشر به هم پر هغه نه واجبیږي، د دې دوو په مسئلو په مینځ کې چې کله دومره فرق سته، نو د مضاربت په مسئله کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله له خپل اول قول څخه د رجوع کولو په وجه به دا نه لازمیږي چې امام صاحب رَحِمَهُ الله دې د عبد مأذون په مسئله کې هم له خپل (یعني د عشر له وجوب) څخه رجوع کړې وي.

وإن كان مولاه معه الخ فرمايي که د عبد مأذون سره د هغه مولیٰ هم وو، نو له مولیٰ څخه به عشر اخیستل کیږي، ځکه د عبد مأذون په قبضه کې چې کوم مال دی، دا ټوله د مولیٰ ملک دی، خو که پر غلام دومره پور باندې وي چې دا پور د غلام پر ټوله مال احاطه کړې وي، یعني مال او پور تقریباً برابر وي، نو په دې صورت کې به له غلام مأذون څخه هیڅ نه اخیستل کیږي، هغه که مولیٰ ورسره وي، او که ور سره نه وي، ځکه کوم مال چې د غلام سره دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له هغه مال څخه د قرض غوښتونکو د حق په وجه د مولیٰ ملک ختم سوی دی، او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې هغه مال په دَین سره مشغول دی، او د مال ختمیدل، یا مال په دَین سره مشغوله کیدل دواړه د زکاة د وجوب مانع دي، نو ځکه به پر غلام باندې د پور په صورت کې عشر او نور هیڅ نه واجبیږي

فوائد: په پورتنۍ مسئلو کې چې چیرې د عشر لفظ ذکر سوی وي، له هغه څخه خاص لسمه حصه مراد نه ده، بلکې د عشر لفظ د لسمې حصې څخه ماسوا د شلمې حصې او د زکاة یعني د څلوېښتمې حصې لپاره هم استعمالیږي، د دې تعیین به په قرائنو سره کیږي، نو که د عاشر مخته تیریدونکی مسلمان وو، او د تجارت مال ورسره وو، نو له هغه څخه به څلوېښتمه حصه اخیستل کیږي، او که ذمي وو، نو شلمه حصه به ځني اخیستل کیږي، او که حربي وو نو لسمه حصه به ځني اخیستل کیږي، او پر دې ټولو به د عشر اطلاق کیږي.

## د خارجیانو عاشر ته د عُشر ورکولو حکم

| |
|---|
| قَالَ: وَمَنْ مَرَّ عَلَى عَاشِرِ الْخَوَارِجِ فِي أَرْضٍ قَدْ غَلَبُوا عَلَيْهَا فرمايي: که یو څوک د خارجیانو د عاشر سره تیر سي په داسې مځکه کې چې هلته د خلاځ غلبه وي لَمْ يُثَنَّ بیا له هغه څخه خارجي عاشر عشر واخلي يُثَنَّى عَلَيْهِ الصَّدَقَةُ نو له هغه څخه به دوباره زکاة اخیستل کیږي مَعْنَاهُ: إِذَا مَرَّ عَلَى عَاشِرِ أَهْلِ الْعَدْلِ د دې مطلب دا دی: چې کله هغه د عادل عاشر سره تیر سي لِأَنَّ التَّقْصِيرَ جَاءَ مِنْ قِبَلِهِ ځکه چې بې غوري (کوتاهي) د هغه له طرفه راغلې ده حَيْثُ إِنَّهُ مَرَّ عَلَيْهِ ځکه چې هغه د خارجي عاشر سره تیر سوی دی. |

اللغات: «الخوارج» جمع د خارجي ده: د مسلمانانو هغې ډلې ته ویل کیږي چې د مسلمانانو د امیر په خلاف یې د بغاوت بیرغ پورته کړی وي، او د ګناه کبیره والا ته کافر وایي.

تشریح: مسئله: دا ده که یو مسلمان تاجر په یو داسې مځکه کې تیر سو چې هلته د خارجیانو تسلط او قبضه وه، او د خارجیانو عاشر له هغه څخه عشر واخیستی، تر هغه وروسته دوباره دا سړی د اهل عدل (یعني د عادل باچا) د عاشر سره تیر سو، نو دا عادل عاشر به دویم وار هم له هغه څخه زکاة اخلي، او مځکې چې هغه کوم عشر خارجي عاشر ته ورکړی دی، هغه به په زکاة کې نه شمارل کیږي، ځکه خارجي عاشر ته چې یې کوم عشر ورکړی دی، هغه د خارجي عاشر سره د تیریدلو په وجه دی، نو دا د دې سړي خپله غلطي ده چې د خارجي عاشر سره تیر سو، نو ځکه به هغه زکاة د ده لپاره کافي نه وي، او د ده حفاظت خو عادل باچا په خپل ملک کې کوي، نو کله چې د عادل باچا د عاشر سره تیریږي، هغه به دوباره زکاة ځني اخلي. والله أعلم بالصواب

# بَابٌ فِي الْمَعَادِنِ وَالرِّكَازِ

(دا) باب د کانونو او د پټ کړی سوو مالونو (د زکاة په بیان کې) دی

**تشریح:** دا باب د عُشر او عاشر تر باب ځکه وروسته ذکر سو، چې د عُشر په مقابله کې معدن، رکاز او نور قلیلُ الوجود دی (یعني لږ پیدا کیږي)، نو ځکه مخکې د عُشر احکام بیان سول، او وروسته د معدن او نورو احکام بیانیږي. (بنایه ج۳، ص۴۷۲)

ښکاره دې وي چې معادن جمع د معدن ده، مَعْدَن هغه مال ته ویل کیږي چې الله پاک د ځمکې د پیدایښت په ورځ په ځمکه کې پیدا کړی وي، رِکَاز هغه مال ته ویل کیږي چې هغه په ځمکه کې ښخ کړی سوی او پټ کړی سوی وي، هغه که معدن وي ځکه چې معدن الله ﷻ په ځمکه کې ښخ کړی دی، او که کنز وي کوم چې یې مخلوق په ځمکه کې ښخوي (لنډه دا چې رکاز معدن او کنز دواړو ته ویل کیږي)، کَنْز هغه مال ته ویل کیږي چې هغه انسان په ځمکه کې ښخ کړی وي، آرْضِ خِرَاجِي هغه ځمکې ته ویل چې خراج پکښې واجب وي، او آرْضِ عُشْرِي هغه ځمکې ته ویل کیږي چې عشر پکښې واجب وي. (بنایه ج۳، ص۴۷۴)

## که په خراجي یا عُشري ځمکه کې یو کان پیدا سو نو څه حکم دی؟

قَالَ: مَعْدِنُ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ فرمایي: د سرو زرو یا د سپینو زرو هغه کان أَوْ حَدِيدٍ أَوْ رَصَاصٍ أَوْ صُفْرٍ یا د اوسپنې یا د سرپو یا د ژړو (هغه کان) وُجِدَ فِي أَرْضِ خَرَاجٍ أَوْ عُشْرٍ چې د خراج یا د عُشر په ځمکه کې پیدا سي فَفِيهِ الْخُمُسُ عِنْدَنَا نو په هغه کې زموږ په نیز پنځمه حصه واجب ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِيهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې پر پیدا کونکي په هغه کې هیڅ شی واجب نه دی لِأَنَّهُ مُبَاحٌ سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ كَالصَّيْدِ ځکه چې هغه یو مباح شی دی چې اول د دې سړي لاس ور رسېدلی دی (یعني اول هغه تر لاسه کړی دی) لکه ښکار إِلَّا إِذَا كَانَ الْمُسْتَخْرَجُ ذَهَبًا أَوْ فِضَّةً خو دا چې کله له کان څخه را ایستل سوی شی سره زر یا سپین زر وي فَيَجِبُ فِيهِ الزَّكَاةُ نو په هغه کې به زکاة واجب وي وَلَا يُشْتَرَطُ الْحَوْلُ فِي قَوْلٍ او (د امام شافعي رَحِمَهُ الله) د یو قول مطابق پر هغه د کال تېرېدل (هم) شرط نه دي لِأَنَّهُ نَمَاءٌ كُلُّهُ ځکه چې هغه ټوله نماء ده وَالْحَوْلُ لِلتَّنْمِيَةِ او کال تېرېدل د نماء لپاره دي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ●: وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ زموږ دلیل د نبي ﷺ (دا) قول دی: او په رکاز کې پنځمه حصه واجب ده وَهُوَ مِنَ الرِّكْزِ او رکاز له رکز څخه مشتق دی (او د رکز معنیٰ ده: ښخول او پټول) فَأُطْلِقَ عَلَى الْمَعْدِنِ نو پر معدن (هم) د هغه اطلاق وسو

● تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب في الركاز الخمس، حديث رقم: ۱۴۹۹.

وَلِأَنَّهَا كَانَتْ فِي أَيْدِي الْكَفَرَةِ وَحَوَتْهَا أَيْدِينَا غَلَبَةً او په دې وجه (هم) چې دا کانونه (مخکې) د کفارو په قبضه کې وو او زموږ لاسونو په غلبه سره هغه راجمع کړل (يعني پيا موږ پر قابض سو) فَكَانَتْ غَنِيمَةً نو ځکه به دا کانونه غنيمت وي وَفِي الْغَنَائِمِ الْخُمُسُ او په غنيمتونو کې پنځمه حصه واجب وي (نو په دې کانو کې به هم پنځمه حصه واجب وي) بِخِلَافِ الصَّيْدِ په خلاف د ښکار لِأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ فِي يَدِ أَحَدٍ ځکه چې ښکار د هيچا په قبضه کې نه وو (نو ځکه به خمس پکښې واجب نه وي) إِلَّا أَنَّ لِلْغَانِمِينَ يَدًا حُكْمِيَّةً خو د غازيانو قبضه په حکمي توګه سره ده لِثُبُوتِهَا عَلَى الظَّاهِرِ ځکه چې د هغو قبضه په ظاهري توګه ثابته ده وَأَمَّا الْحَقِيقِيَّةُ فَلِلْوَاجِدِ البته حقيقي قبضه د پيدا کونکي ده فَاعْتَبَرْنَا الْحُكْمِيَّةَ فِي حَقِّ الْخُمُسِ نو موږ د خمس په حق کې د حکمي قبضې اعتبار وکړی وَالْحَقِيقِيَّةَ فِي حَقِّ الْأَرْبَعَةِ الْأَخْمَاسِ او د څلورو خمسونو په باره کې مو د حقيقي قبضې اعتبار وکړی حَتَّى كَانَتْ لِلْوَاجِدِ تر دې چې هغه به د پيدا کونکي وي.

**اللغات:** ﴿معدن﴾ کان، ﴿ذهب﴾ سره زر، ﴿فضة﴾ سپين زر، ﴿حديد﴾ اوسپنه، ﴿رصاص﴾ سرپ، ﴿نماء﴾ وده، زياتېدل.

﴿حوت﴾ د ضرب د باب واحده مؤنثه غائبه ماضي معلومه صيغه ده: جمع کول، مالک جوړېدل، ﴿ركاز﴾ په مځکه کې پټ سوی مال، ﴿خمس﴾ خمس او خُمس دواړه راځي: پنځمه حصه.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې که په خراجي يا عشري مځکه کې د سپينو زرو، سرو زرو، اوسپنې، سرپو يا د ژړو يا د داسې نورو شيانو يو کان پيدا سو، نو په هغه کې زموږ په نيز خُمس (يعني پنځمه حصه) واجب ده، امام شافعي رَحِمَهُ الله او امام احمد رَحِمَهُ الله فرمايي: که له کان څخه را ايستل سوی شی سره يا سپين زر ول، نو بيا په هغو کې زکاة واجب دی، لېکن که يو بل شی وو، نو په هغه کې زکاة نسته، ځکه چې معدن يو غير مملوک او مباح شی دی، او مباح شي ته چې اول د چا لاس ورسيږي، هغه يې مالک کيږي، او په هغه کې به ټيکس (عشر) او هيڅ شی نه واجبيږي، لکه څرنګه چې ښکار مباح او غير مملوک دی، او څوک چې ښکار ونيسي، نو هغه يې مالک کيږي، او عشر نه پکښې واجبيږي، همدارنګه به په معدن کې هم خمس او نور نه واجبيږي.

همدا ډول که را ايستل سوی شی سره يا سپين زر ول، نو په هغو کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز څلوېښتمه حصه يعني زکاة واجب دی، لېکن د هغو د وجوب لپاره حولان حول او نور شيان شرط نه دي، ځکه چې د حولان حول شرط په مال کې د نماء او زياتېدلو لپاره دی، او په دې مسئله کې له معدن څخه را ايستل سوی مال په بشپړه توګه نماء ده (يعني له کان څخه را ايستل سوي سره يا سپين زر په خپله زيات دي، او په خپله يې نماء کړې ده)، نو ځکه به په هغو کې د حولان حول شرط نه لګيږي.

**زموږ دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: وفي الركاز الخمس، (يعني په رکاز کې خمس واجب دی)، او رکاز له رکز څخه مشتق دی، چې د هغه اطلاق پر معدن هم کيږي، نو د حديث په روی سره به په هر قسم رکاز کې خمس واجب وي، او څرنګه چې معدن هم د رکاز يو قسم دی، نو ځکه به په معدن کې هم خمس واجب وي. دويم دليل دا دی چې ټوله معدني او کاني مځکې مخکې د کفارو په قبضه کې وې، او مسلمانانو له هغوی څخه غلبةً لاندې کړې، لهذا دا ټوله کانونه اوس غنيمت سول، او په غنيمت کې خمس واجب دی، لکه څرنګه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ [الانفال: ۴۱]، يعني د غنيمت په مالونو کې خمس واجب دی.

بخلاف الصيد الخ له دې ځايه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، چې معدن پر ښکار قياسول صحيح نه دي، ځکه چې معدن (کان) د کفارو په قبضه کې وو، او ښکار د هيچا په قبضه کې نه وي، نو معدن د مسلمانانو په غلبې سره د غنيمت مال جوړ سو، لېکن ښکار د يو مسلمان په قبضه سره د غنيمت مال نه جوړيږي، نو ځکه به په معدن کې خمس واجب وي، لېکن په ښکار کې به خمس واجب نه وي.

إلا أن للغانمين الخ له دې ځايه د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله کانونه د غنيمت مالونه دي، نو بيا په هغو کې پکار دا ده چې يو خمس دي د يتيمانو او مسکينانو سي، او پاته څلور خمسه دي غانمينو (مجاهدينو) ته ورکول سي، نه پيدا کونکي ته، (ځکه چې دا ځمکې مجاهدينو فتحه کړې دي)، لېکن تاسو په دې مسئله کې څلور خمسه د پيداکونکي لپاره ټاکلي دي، نه د مجاهدينو لپاره، آخر د دې څه وجه ده؟ نو جواب ورکوي فرمايي چې د مجاهدينو لپاره به څلور خمسه هغه وخت وي، چې کله پر مال غنيمت د هغو قبضه حقيقتاً او حکماً دواړه بوله وي، او دلته خو حکماً د غنيمت پر مالونو د مجاهدينو قبضه سته، لېکن حقيقتاً نسته، بلکې په ظاهري توګه ده، او حقيقي قبضه خو د پيدا کونکي ده، لهذا موږ د حقيقي او حکمي قبضې دواړو اعتبار وکړی، نو د حکمي قبضې په اعتبار سره مو يو خمس د الله لپاره واجب کړی، چې هغه به فقيرانو او مسکيانو ته ورکول کيږي، او د حقيقي قبضې په اعتبار سره مو څلور خمسه د پيدا کونکو لپاره متعين کړل.

## که په يو کور کې کان پيدا سو نو څه حکم دی؟

وَلَوْ وَجَدَ فِي دَارِهِ مَعْدِنًا فَلَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ او که يو سړي په خپل کور کې کان پيدا کړی نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په هغه کې هيڅ شی واجب نه دی وَقَالَا: فِيهِ الْخُمُسُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په هغه کې خمس واجب دی لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا زموږ د روايت سوي حديث د مطلق کېدلو په وجه وَلَهُ أَنَّهُ مِنْ أَجْزَاءِ الْأَرْضِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې کان د ځمکې له اجزاؤ څخه دی مُرَكَّبٌ فِيهَا او په ځمکه کې شامل (او جوړ) دی وَلَا مُؤْنَةَ فِي سَائِرِ الْأَجْزَاءِ او (د ځمکې) په ټولو اجزاؤ کې هيڅ مؤنت او خرچه نسته فَكَذَا فِي هَذَا الْجُزْءِ نو په دې جزء کې به (يې) هم هيڅ خرچه نه وي لِأَنَّ الْجُزْءَ لَا يُخَالِفُ الْجُمْلَةَ ځکه چې جزء له کُل څخه نه مخالف کيږي بِخِلَافِ الْكَنْزِ په خلاف د پټې کړی سوي خزانې لِأَنَّهُ غَيْرُ مُرَكَّبٍ فِيهَا ځکه چې پټه کړی سوې خزانه په ځمکه کې شامله نه وي.

اللغات: ﴿معدن﴾ کان، ﴿مؤنة﴾ محنت، بار، بوج، خرڅ (خرچه)، لګښت، ﴿کنز﴾ خزانه، (دلته څني مراد پټه کړی سوې خزانه ده).

تشريح: صورت د مسئلې: دا دی که يو چا په خپل کور کې کان پيدا کړی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دغه کورني کان کې خمس او نور نه واجبيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په کورني کان کې هم خمس واجبيږي؛

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله أی لا شئ فيه، كذا في البحر الرائق ج:٢، ص: ٢٣٥. [القول الراجح، ج:١، ص: ١٧٦]

ځکه مخکښي چې موږ کوم حديث ذکر کړی، يعني: في الركاز الخمس. داحديث مطلق دی، او په هغه کې د دننه، دباندي، همدارنګه د کور او د غير کور هيڅ قيد نشته، نو ځکه به په هر کان کې خمس واجب وي، هغه که په کور کې پيدا سوی وي، يا له کور څخه دباندي.

وله أنه الخ: د امام صاحب دليل دا دئ چې د کور کان د کور د مځکي يو جزء دی، او د کائناتو د پيدايښت په وخت کې د کور دغه مځکه او کان مرکب سوي يعني جوړ سوي دي، او د مځکي د پيدايښت له وخت څخه دا کان په دغه مځکه کې شامل دی، او په کورني اجزاوو کې خمس او نور نه واجبيږي، او نه په کورني اجزاوو که يوه بله خرچه او ټيکس واجبيږي، نو ځکه به په کورني کان کې خمس هم واجب نه وي، ځکه چې د کور کان له کورني اجزاوو څخه يو جزء دی، او کله چې په کُل کې هيڅ شی نه واجبيږي، نو په جزء کې به هم هيڅ شی نه واجبيږي، ځکه چې جزء له کُل څخه نه مخالف کيږي، د دې په خلاف د ښخي کړی سوي خزانې مسئله ده، ځکه چې هغه په خپله (د يو انسان په ذريعه سره) ښخه کړی سوې او پټه کړی سوې ده، نو هغه د پيدايښت له وخت څخه په مځکه کې شامله نه سوه، او نه په پيدايشي توګه د مځکي له اجزاوو څخه سوه، نو ځکه به په هغه کې خمس واجب وي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، کما قال العلامة ابن العلاء: وإن وجده في داره فليس له فيه شيء وهو لصاحب الدار (التاتارخانية ج: ٢، ص: ٣٢٠). [القول الراجح ج:١، ص: ١٧٦]

## که په خپله مځکه کې کان پيدا سو نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِنْ وَجَدَهُ فِي أَرْضِهِ فرمايي: او که يو څوک په خپله مځکه کې کان پيدا کړي فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِيهِ رِوَايَتَانِ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په دې کې دوه روايته دي وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى إِحْدَاهُمَا وَهُوَ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او په دواړو روايتونو کې پر يوه روايت چې هغه د جامع صغير روايت دی وجه د فرق دا ده أَنَّ الدَّارَ مُلِكَتْ خَالِيَةً عَنِ الْمُؤَنِ چې کور په داسي حال کې (د انسان) په ملکيت کې راغلی دی چې هغه له ټولو خرچو (خرڅو) څخه خالي وي دُونَ الْأَرْضِ (او) مځکه داسي نه ده وَلِهَذَا وَجَبَ الْعُشْرُ وَالْخَرَاجُ فِي الْأَرْضِ دُونَ الدَّارِ همدا وجه ده چې په مځکه کې عشر او خراج واجب دی (لېکن) په کور کې واجب نه دی فَكَذَا هَذِهِ الْمُؤْنَةُ نو همدارنګه به دا خرچه هم وي (يعني همدارنګه به کور هم له دې خرچې څخه خالي وي).

**اللغات:** ﴿مؤن﴾ جمع د مؤنة ده: محنت، خرچه(خرڅه).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو سړي په خپله مځکه کې کان پيدا کړی، نو په هغه کې د خمس د واجبيدلو په باره کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: (١) اول روايت کوم چې د مبسوط دی، دا دی چې په دې کې خمس او هيڅ شی هم واجب نه دي، (٢) دويم روايت کوم چې د جامع صغير دی، دا دی چې خمس پکښي واجب دی، او په دې دواړو روايتونو کې د فرق وجه دا ده چې کور د هر ډول خرچو، ټکس او بار څخه خالي وي، لېکن پر مځکه ډول ډول خرڅونه او لګښتونه کيږي، همدا وجه ده چې په مځکه کې عشر او خراج دواړه واجب دي، او په کور کې هيڅ شی هم واجب نه دي، نو کله چې په نفسِ کور کې عشر او نور واجب نه دي، نو له کور څخه په را ايستل سوي کان کې به هم عشر او نور واجب نه وي.

## د ښخ کړی سوي مال او خزانې د پیدا کولو بېلابېل صورتونه او د هغو حکمونه

وَإِنْ وَجَدَ رِكَازًا أَيْ كَنْزًا او که رکاز یعني ښخه سوې خزانه پیدا کړي وَجَبَ فِيْهِ الْخُمُسُ عِنْدَهُمْ نو په دې کي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله (ټولو) په نېز خُمس واجب دی لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چي موږ روایت کړی وَاسْمُ الرِّكَازِ يُطْلَقُ عَلَى الْكَنْزِ او د رکاز اطلاق پر ښخي سوي خزانې کیږي لِمَعْنَى الرَّكْزِ وَهُوَ الْإِثْبَاتُ د رکز د معنیٰ په وجه او د رکز معنیٰ د ثابتولو (او ښخولو) ده ثُمَّ إِنْ كَانَ عَلَى ضَرْبِ أَهْلِ الْإِسْلَامِ كَالْمَكْتُوْبِ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الشَّهَادَةِ بیا که هغه خزانه د مسلمانانو پر طریقه ښخه سوې وي مثلاً پر هغې د شهادت کلمه لیکلې وي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ اللُّقَطَةِ نو هغه د لقطه په درجه کي ده وَقَدْ عُرِفَ حُكْمُهَا فِيْ مَوْضِعِهِ او د لقطې حکم به په خپل ځای کي معلوم سي (یعني په کتاب اللقطة کي) وَإِنْ كَانَ عَلَى ضَرْبِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ كَالْمَنْقُوْشِ عَلَيْهِ الصَّنَمُ او که د جاهلیت په طریقه ښخه سوې وي مثلاً پر هغې د بُت تصویر کښل سوی وي فَفِيْهِ الْخُمُسُ عَلَى كُلِّ حَالٍ نو په هر حال به په هغې کي خمس واجب وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی ثُمَّ إِنْ وَجَدَهُ فِيْ أَرْضٍ مُبَاحَةٍ بیا که یې دا په مباحه ځمکه کي پیدا کړې وي فَأَرْبَعَةُ أَخْمَاسِهِ لِلْوَاجِدِ نو څلور خمسه به یې د پیداکونکي لپاره وي لِأَنَّهُ تَمَّ الْإِحْرَازُ مِنْهُ ځکه چي د هغه له طرفه حفاظت پوره سو إِذْ لَا عِلْمَ بِهِ لِلْغَانِمِيْنَ ځکه چي غازیانو (مجاهدینو) ته د دې علم نه وو فَيَخْتَصُّ هُوَ بِهِ نو همدغه پیدا کونکي به د هغې سره خاص وي وَإِنْ وَجَدَهُ فِيْ أَرْضٍ مَمْلُوْكَةٍ او که په مملوکه ځمکه کي یې خزانه پیدا کړې وي فَكَذَا الْحُكْمُ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ نو هم دغه حکم دی د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز (یعني څلور خمسه به د پیدا کونکي وي) لِأَنَّ الْاِسْتِحْقَاقَ بِتَمَامِ الْحِيَازَةِ وَهِيَ مِنْهُ ځکه چي حقداره کېدل په پوره توګه په خپل حفاظت کي په راوستلو سره دي او هغه د پیداکونکي له طرفه دي (یعني پیداکونکي خزانه په پوره توګه په خپل حفاظت کي راوستې ده) وَعِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ• هُوَ لِلْمُخْتَطِّ لَهُ او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به دا (څلور حصې) د مختط له لپاره وي وَهُوَ الَّذِيْ مَلَّكَهُ الْإِمَامُ هٰذِهِ الْبُقْعَةَ أَوَّلَ الْفَتْحِ او مختط له هغه سړی دی چي هغه د ځمکي د فتح کېدلو په شروع کي امام د ځمکي د دې ټوټې (ټوکړې) مالک جوړ کړی وي لِأَنَّهُ سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ ځکه چي اول د مختط له لاس دې ته رسېدلی دی وَهِيَ يَدُ الْخُصُوْصِ فَيَمْلِكُ بِهَا مَا فِي الْبَاطِنِ او هغه خصوصي قبضه ده نو ځکه به مختط له د دې خصوصي قبضې په وجه د هغه شي مالک وي کوم چي په ځمکه کي دننه وي وَإِنْ كَانَتْ عَلَى الظَّاهِرِ که څه هم د هغه قبضه پر ظاهر ده كَمَنِ اصْطَادَ سَمَكَةً فِيْ بَطْنِهَا دُرَّةٌ لکه یو سړی چي داسي ماهی ښکار کړي چي د هغه په نس کي ملغلره وي (نو ملغلره به د ښکار کونکي

---

• القول الراجح: قول الطرفين، كما قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله قوله باقية "للمختط له" أي الأخماس الأربعة للذي ملكه الإمام البقعة أول الفتح و إن كان منها فلورثته.....وهكذا في التاتر خانية، (البحر الرائق ج:٢، ص: ٢٣٥)۔ [القول الراجح، ج:١ ص: ١٧٧]

وي، نه درانيونکي) ثُمَّ بِالْبَيْعِ لَمْ تَخْرُجْ عَنْ مِلْكِهِ بيا د مځکي د خرڅلاو په وجه خزانه د هغه له ملک څخه نه وځي لِأَنَّهُ مُودَعٌ فِيهَا ځکه چي دا خزانه(خو) په مځکه امانت ايښول سوي ده بِخِلَافِ الْمَعْدِنِ په خلاف د کان لِأَنَّهُ مِنْ أَجْزَائِهَا ځکه چي هغه د مځکي له اجزاوو څخه دی فَيَنْتَقِلُ إِلَى الْمُشْتَرِيْ نو هغه به د رانيونکي و طرف ته منتقل کيږي وَإِنْ لَمْ يُعْرَفِ الْمُخْتَطُّ لَهُ او که مختط له معلوم نه وو يُصْرَفُ إِلَى أَقْصٰى مَالِكٍ يُعْرَفُ فِي الْإِسْلَامِ نو دا خزانه به د هغه آخري مالک و طرف ته ګرځي کوم چي په اسلام کي پېژندل کيږي عَلٰى مَا قَالُوْا لکه څرنګه چي (متأخرينو) فقهاوو فرمايلي دي وَلَوِ اشْتَبَهَ الضَّرْبُ او که (د خزانې) طرز (او نقش) مشتبه سي يُجْعَلُ جَاهِلِيًّا فِيْ ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ نو په ظاهر د مذهب کي به هغه د جاهليت د زمانې(يعني کفري) خزانه ګرځول کيږي لِأَنَّهُ الْأَصْلُ ځکه چي هغه اصل دی وَقِيْلَ: يُجْعَلُ إِسْلَامِيًّا فِيْ زَمَانِنَا او ويل سوي دي: چي زموږ په زمانه کي به اسلامي خزانه ګرځول کيږي لِتَقَادُمِ الْعَهْدِ ځکه چي د اسلام زمانه(هم) ډېر تېره سوې ده.

**اللغات:** ﴿ضرب﴾ طرز، طريقه، ډول، نقش، ﴿لقطة﴾ غورځول سوی شی، غورځول سوی مال، ﴿صنم﴾ بت. ﴿غانم﴾ د غنيمت ټولونکی، ﴿إحراز﴾ خوندي کول، محفوظه کول، ژغورل، ﴿مختط له﴾ هغه څوک چي اول وار مځکه هغه ته ورکول سوې وي او د هغه په نامه سوې وي، ﴿بقعة﴾ د مځکي ټوکړه، حصه، ﴿دلّ﴾ ملغلره.

**تشريح:** **مسئله**: دا ده که يو چا په مځکه که ښخه کړی سوې(دفن کړی سوې) خزانه پيدا کړه، نو په دې کي د حنفي علماوو په اتفاق خمس واجب دی، ځکه تر دې مخکي چي کوم حديث روايت کړی سو(يعني: في الركاز الخمس) هغه مطلق دی، او څرنګه چي لفظ د رکاز معدن او کنز (ښخي کړی سوي خزانې) دواړو ته شامل دی، نو ځکه به په هغه روايت سره دلته دليل نيول صحيح وي، په خپله صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د رکاز اطلاق پر کنز هم کيږي، ځکه رکاز له رکز څخه مشتق دی، چي د هغه معنیٰ ده: ثابتول، ښخول، او څرنګه چي معدن(کان) هم په مځکه کي د الله له طرفه ښخ کړی سوي او ثابت سوی وي، همدارنګه کنز هم د بندګانو له طرفه په مځکه کي ښخ کړی سوي وي.

ثم إن كان الخ فرمايي بيا که پر پيدا سوي خزانې د مسلمانانو يوه نښه وي، مثلاً پر هغې کلمه ليکل سوې وي او داسي نور، نو دا خزانه به د لقطه په حکم کي وي، او په لقطه کي خمس او نور واجب نه دي، بلکي د لقطې حکم دا دی چي تر څه مودې پوري به د هغې اعلان کيږي، که مالک يې پيدا سو، نو ډېر ښه. کنې يو فقير ته به ورکول کيږي، او که په خپله فقير وو، نو خپله به يې استعمالوي، يعني پر ځان به يې صدقه کوي،(دا هم جائز دي چي هر وخت فقير سي بيا يې پر ځان صدقه کړي، خو خمس پکښي واجب نه دی)

وإن كان الخ او که پر خزانې د جاهليت د زمانې او د کفارو يوه نښه وي، مثلاً پر هغې د بُت او نورو تصوير وي، نو په هر حال به په هغې کي خمس واجب وي، هغه که هر ځای پيدا سي، د لما بينا څخه صاحب د کتاب د هغه دليل و طرف ته اشاره کړې ده، کوم چي مخکي د باب په شروع کي تېر سو، "يعني مسلمانان پر دې مځکه بلندي غالب سوي دي، لو دا د غنيمت مال دی، او د غنيمت په مال کي خمس واجبيږي".

ثم إن وجده الخ مسئله دا ده که يو سړي په مباحه (روا) او غيرِ مملوکه مځکه کي يو جاهلي او کفري خزانه پيدا کړه، نو له هغې څخه به يو خمس د فقيرانو او مسکينانو وي، او څلور خمسه به د پيدا کونکي وي، ځکه چي په غيرِ مملوکه مځکه کي پيدا سوې خزانه حفاظت ته ضرورت لري، نو د کوم سړي له طرفه چي د هغې پوره حفاظت او احراز وسي، هغه به د دې حقداره وي، ځکه کله چي هغه خزانه پيدا کړه، نو په خپل حفاظت کي يې واخيستله، او غازيانو ته خو د دې علم هم نه وو چي په دې مځکه کي خزانه ده، لهذا پيداکونکي به يوازي د دې حقداره وي، ځکه چي حقيقي قبضه خو د پيدا کونکي ده.

وإن وجده الخ او که يو چا په مملوکه مځکه کي يو جاهلي او کفري خزانه پيدا کړه، هغه مځکه که د ده په ملکيت کي وي، يا د بل چا په ملکيت کي وي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به له هغې خزانې څخه يو خمس فقيرانو ته ورکول کيږي، او پاته حصه به د پيداکونکي سړي وي، ځکه چي دلته هم د هغه له طرفه احراز او حفاظت راغلی دی، نو کله چي احراز د هغه له طرفه متحقق دی، نو د دې حقداره به هم هغه وي.

طرفين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په دې صورت کي به پيدا کونکي ته هيڅ نه ورکول کيږي، بلکي د څلورو خمسونو حقداره به مختط له وي، مختط له هغه سړي ته ويل کيږي چي امامُ المسلمين د ښار د فتح کېدلو په وخت کي هغه د مځکي د دغه حصې (چي په هغه کي خزانه پيدا سوې ده) مالک جوړ کړی وي، او امام هغه ته دا حصه ور معلومه کړې وي (او څرنګه چي امام هغه ته د خط او کرښي په ذريعه خپله حصه ور معلوموي نو ځکه هغه ته مختط له ويل کيږي).

د طرفينو دليل دا دی چي دا مځکه تر فتحې وروسته تر ټولو مخکي د مختط له په قبضه کي راغلې ده، نو څرنګه چي مختط له د دې مځکي د ظاهري اجزاوٌ هم مالک وي، همدارنګه به د دې د باطني اجزاوٌ هم مالک وي، لکه يو سړی چي ماهی (کب) ښکار کړي، او په خپل ملکيت کي يې واخلي، او د ماهي له نس څخه ملغلره را ووځي، نو څرنګه چي دا ښکاري د ماهي د ظاهري حصې مالک دی، همدارنګه به يې د باطني حصې هم مالک وي، او يو بل څوک به د هغه سره په دې کي شريک نه وي، نو همدا راز به مختط له هم د دې خزانې مالک وي، او که هغه ژوندی نه وو، نو د هغه اولاده لو کورنۍ به د دې خزانې مالکان وي.

ثم بالبيع الخ د دې حاصل دا دی چي که مختط له دا مځکه خرڅه کړه، او بيا په دې مځکه کي يوه خزانه پيدا سوه، نو هم به مختط له د دې خزانې حقداره وي، او د خرڅېدلو په وجه به خزانه د هغه له ملکيت څخه خارجه نه ګڼل کيږي، ځکه چي خزانه په دې مځکه کي امانت او وديعت ايښوول سوې ده، او د دې سره د رانيونکي (مشتري) د حق هيڅ تعلق نسته، نو ځکه به د مځکي اول مالک يعني مختط له د دې خزانې مستحق وي.

بخلاف المعدن الخ فرمايي که د خزانې پر ځای په مځکه کي کان يعني په پيدايښي او خلقي توګه سره ايښوول سوي سره زر يا سپين زر يا داسي د نورو شيانو کان پيدا سي، نو په دې صورت کي به رانيونکی حقداره وي، لو دا کان به د مځکي په خرڅولو سره د رانيونکي و طرف ته نقل کيږي، ځکه چي کان د مځکي له اجزاوٌ څخه يو جزء دی، نو کله چي رانيونکی د کُل مالک ګرځي، نو د جزء مالک خو به په درجه اولی ګرځي.

وإن لم يعرف الخ فرمايي که مختط له معلوم نه وو، نو په دې صورت کي به خزانه هغه سړي ته ورکول کيږي چي به اسلام کي تر ټولو مخکي د دې مځکي مالک سوی وي، ځکه چي د هغه حق او ملکيت د ټولو خلکو تر حقونو لو ملکيتونو مخکي دی، همدا د متأخرينو فقهاوٌ رايه ده، او که د خزانې نقشه او ټاپه شکمنه سوه، يعني نه پر هغې د

مسلمانانو يوه نښه وه، او نه د کافرانو، نو په دې صورت کي به د ظاهر روايت مطابق دا خزانه جاهلي او کفري ګرځول کيږي، او په هر حال کي به په دې کي خمس واجب وي، ځکه چي تر اسلام مخکي پر دې ملک د کفارو غلبه او قبضه وه، نو غالب ګومان همدغه دی چي دا به د کافرانو خزانه وي، او يو قول دا دی چي دا به اسلامي خزانه ګرځول کيږي، ځکه چي اوس هم د اسلام د خپرېدلو ډېر وخت کيږي، او ډېره زمانه تېره سوې ده، نو د اسلام له ظاهري حالت څخه همدغه معلوميږي، چي دا خزانه به د کفارو نه وي، بلکي د يو مسلمان قوم خزانه به وي، لهذا دا به هم اسلامي خزانه ګڼل کيږي، او حکم به يې دلقطې وي.

## په دارُ الحرب کي د خزانې د پيدا کولو حکم

وَمَنْ دَخَلَ دَارَ الْحَرْبِ بِأَمَانٍ او څوک چي دارُ الحرب ته په أمان سره داخل سي فَوَجَدَ فِي دَارِ بَعْضِهِمْ رِكَازًا بيا د يو حربي په کور کي رکاز (يعني ښخه سوې خزانه يا کان) پيدا کړي رَدَّهُ عَلَيْهِمْ نو هغه به دا رکاز د کور حربي مالک ته ورکوي تَحَرُّزًا عَنِ الْغَدْرِ له وعده خلافۍ (او درغلۍ) څخه د ځان ساتني لپاره لِأَنَّ مَا فِي الدَّارِ فِي يَدِ صَاحِبِهَا خُصُوصًا ځکه کوم څه چي په دې کور کي دي هغه د کور د مالک په خصوصي قبضه کي دي وَإِنْ وَجَدَهُ فِي الصَّحْرَاءِ فَهُوَ لَهُ او که يې رکاز د دارُ الحراب په صحرا کي پيدا کړی نو (بيا) دا د هغه دی لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي يَدِ أَحَدٍ عَلَى الْخُصُوصِ ځکه چي هغه د يو چا په خصوصي قبضه کي نه دی فَلَا يُعَدُّ غَدْرًا نو ځکه به دا وعده خلافي (او درغلي) نه شمارل کيږي وَلَا شَيْءَ فِيهِ او په دې رکاز کي به هيڅ شی هم واجب نه وي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمُتَلَصِّصِ غَيْرِ مُجَاهِرٍ ځکه چي دا سړی د هغه چا په درجه کي دی کوم چي په پټه غلا کوي نه په ډاګه (لکه ډاکو).

**اللغات:** ﴿تحرز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: پرېز کول، ځان ساتل، ﴿غدر﴾ خيانت، وعده خلافي، درغلي، ﴿صحراء﴾ صحرا، بيابان، ﴿متلصص﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: غل، په پټه توګه د مال غلا کونکی، ﴿مجاهر﴾ د مفاعلې د باب اسم فاعل دی: په ډاګه او ښکاره توګه يو کار کونکی، مراد ځني ډاکو دی.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړي له کفارو څخه امان واخيستی او دارُ الحرب ته ورغلی، بيا يې په دار الحرب کي د يوه حربي په کور کي رکاز پيدا کړی، هغه که کان وو او که خزانه (ځکه چي رکاز دواړو ته ويل کيږي)، نو هغه به دا رکاز د کور مالک ته ورکوي، چي درغلي او وعده خلافي رانه سي، او نبي ﷺ فرمايلي دي: في العهود وفاء لا غدر، (يعني په وعده او ژمنه کي وفاء کول پکار دي، نه غدر او درغلي)، دليل دا دی چي کوم څه په کور کي وي، هغه ټوله په خصوصي توګه د کور د مالک په قبضه کي دي، يعني پر دې باندي د کور د مالک قبضه ده، که څه هم حکمي قبضه ده، نو ځکه به دا رکاز اخيستل درغلي او خيانت وي، او که رکاز يې د دار الحرب په يو داسي دښت کي پيدا کړی چي د هغه هيڅ مالک معلوم وو، نو دا رکاز به د پيدا کونکي وي، ځکه چي دا رکاز د يو چا په خصوصي قبضه کي نه دی، نو ځکه به د هغه اخيستل شرعاً درغلي او غدر نه شمارل کيږي، او په دې رکاز کي به خمس هم نه واجبيږي، ځکه چي خمس په هغه مال کي واجبيږي، چي هغه د غنيمت په معنیٰ سره وي، او غنيمت هغه مال ته ويل کيږي چي هغه د حربيانو په قبضه کي وي، بيا مسلمانان پر هغو حمله وکړي او په غلبه سره په ښکاره توګه هغه مال ترلاسه کړي، لېکن دا سړی داسي نه دی، بلکي دا سړی د غله په ډول دی، نو کله چي دا د غنيمت په معنیٰ کي نه سو، نو په دې کي به خمس هم واجب نه وي.

## په قيمتي ډبرو کي د خُمس حکم

وَلَيْسَ فِي الْفَيْرُوْزَجِ يُوْجَدُ فِي الْجِبَالِ خُمُسٌ او په هغه فيروزه کي چي په غرونو کي پيدا سي خمس نسته لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: لَا خُمُسَ ● فِي الْحَجَرِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: په ډبرو کي خمس نسته وَفِي الزِّئْبَقِ الْخُمُسُ فِي قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ آخِرًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په آخري قول کي په زيبق کي خمس واجب دی وَهُوَ قَوْلُ ● مُحَمَّدٍ او همدا قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی خِلَافًا لِأَبِيْ يُوْسُفَ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله.

**اللغات:** ﴿فيروزج﴾ فيروزه (يو ډول قيمتي ډبره ده چي زرغون يا شين رنګ لري)، ﴿زيبق﴾ پاره، سيماب، ژیوه، آبک.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په هغو ډبرو کي کوم چي په غرونو کي پيدا کيږي، لکه فيروزه، ياقوت، (سنګ مرمر) او په داسي نورو کي خُمس نسته، که څه هم دا ټوله قيمتي دي، خو د ډبرو قسمونه دي، او د ډبرو په باره کي نبي ﷺ فرمايلي دي: لا خمس فی الحجر.

پاته سوه د زيبق يعني د پارې مسئله، نو په دې باره کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دا دی چي په دې کي هم خمس نسته، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله آخري قول او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دا دی چي په دې کي خمس واجب دی، او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی.

ښکاره دي وي چي دلته د فی الجبال قيد احترازي دی، لهذا که دا ډبري له کفارو څخه غلبةً ترلاسه سوې، نو بيا به په دې کي خمس واجب وي. (بنايه ج:۳، ص: ۴۸۵)

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دی، يعني په پاره کي خمس سته، كما قال فی الهندية ويجب الخمس فی الزيبق. كذا فی محيط السرخسي (الهندية ج:۱، ص: ۲۵). [القول الراجح ج:۱، ص: ۱۷۸]

## په ملغلرو او عنبر کي د خُمس حکم

وَلَا خُمُسَ فِي اللُّؤْلُؤِ وَالْعَنْبَرِ عِنْدَ ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په ملغلرو او عنبرو کي خمس نسته وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: فِيْهِمَا وَفِيْ كُلِّ حِلْيَةٍ تَخْرُجُ مِنَ الْبَحْرِ خُمُسٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې دواړو کي او له سمندر څخه په هر راوتونکي زېور کي خمس سته لِأَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَخَذَ الْخُمُسَ مِنَ الْعَنْبَرِ ځکه چي حضرت عمر ؓ له عنبرو څخه خمس واخيستی وَلَهُمَا أَنَّ قَعْرَ الْبَحْرِ لَمْ يَرِدْ عَلَيْهِ الْقَهْرُ او د طرفينو دليل دا دی چي د سمندر پر بيخ (د غازيانو) غلبه نه ده راغلې فَلَا يَكُوْنُ الْمَأْخُوْذُ مِنْهُ غَنِيْمَةً نو له سمندر څخه را اخيستونکی مال به غنيمت نه

---

● تخريج: لم أجده، قال الزيلعی غريب أخرجه ابن عدی فی الكامل ج:۵، ص:۲۲ قال رسول الله ﷺ لا زكاة فی حجر.

● القول الراجح: قول الطرفين، كذا فی البحر الرائق ج:۲، ص: ۲۳. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۷۸]

● القول الراجح: قول الطرفين، كذا فی فتح القدير ج:۲، ص: ۱۸۵، كما قال فی الهداية: ولا شیئ فيما يستخرج من البحر كالعنبر واللؤلؤ ج:۱، ص:۱۸۵. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۷۹]

وي وَإِنْ كَانَ ذَهَبًا أَوْ فِضَّةً كه څه هم هغه سره زر يا سپين زر وي وَالْمَرْوِيُّ عَنْ عُمَرَ فِيهَا دَسَرَهُ الْبَحْرُ او له حضرت عمر ﷺ څخه (د خمس د اخيستلو په باره كي) را نقل سوى روايت د هغه عنبرو په باره كي دى كوم چي سمندر (په خپله) دباندي راغورځولي وي (يعني هغه عنبر چي سمندر راغورځولى وي او د سمندر پر غاړه پراته وي او غازيانو را اخيستى وي) وَبِهِ نَقُولُ او دا خبره موږ هم كوو (چي په دې كي خمس سته) مَتَاعٌ وُجِدَ رِكَازًا (او) كوم سامان چي د ركاز په توګه پيدا سي فَهُوَ لِلَّذِي وَجَدَهُ وَفِيهِ الْخُمُسُ نو هغه به د پيدا كونكى وي او په هغه كي به خمس واجب وي مَعْنَاهُ: إِذَا وُجِدَ فِي أَرْضٍ لَا مَالِكَ لَهَا د دې مطلب دا دى: چي په داسي ځمكه كي پيدا سي چي هغه مالك نه لري لِأَنَّهُ غَنِيمَةٌ بِمَنْزِلَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ ځكه چي دا سامان (هم) د سرو او سپينو زرو په درجه كي غنيمت دى، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿اللؤلؤ﴾ ملغلره، ﴿عنبر﴾ عنبر (يو ډول غوړه او خوږه ماده ده، ښه بوى لري او د عنبر نومي ماهي له نس څخه را ايستله كيږي)، ﴿حلية﴾ زېور (ګاڼه، د ښكلا شى)، ﴿قعر﴾ بيخ، ژورتيا، ﴿قهر﴾ غلبه، ﴿دسر﴾ د نصر ماضي ده: له دننې څخه دباندي را ايستل، له خولي څخه دباندي را ايستل.

**تشريح:** د لؤلؤ معنىٰ ده: ملغلره، او د ملغلري په باره كي دوه قوله دي: (۱) د پسرلي د باران څاڅكي چي كله د صدف (سيپي) په خوله كي ولوېږي، نو ملغلره ځني جوړيږي، (۲) دويم قول دا دى چي صدف يو حيوان دى، چي په هغه كي الله تعالىٰ ملغلره پيدا كړې ده (بنايه، فتح القدير)، همدارنګه د عنبر اړوند هم څو قولونه دي، بعضي خلګ وايي چي د سمندر ښپې چي كله په مينځ كي سره ټكر سي، نو له هغه څخه عنبر جوړيږي، دويم قول دا دى چي عنبر په سمندر كي د يو وابنه نوم دى، او څه وخت چي دا وابنه ماهي ته ور كړي نو هغه وخت بيا دا وابنه غوړه عنبر شمارل كيږي. (بنايه ج:۳، ص:۴۷۶)

**صورت د مسئلې:** دا دى چي د طرفينو په نېز په ملغلرو او عنبرو كي خمس واجب نه دى، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو كي او په هر هغه زېور كي چي له سمندر څخه را ووځي خمس واجب دى.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دى چي حضرت عمر ﷺ له عنبرو څخه خمس اخيستى دى، لېكن په فتح القدير او بنايه كي پر دې موقع دا خبره ذكر سوې ده چي په عنبر كي د خمس اخيستلو نسبت د حضرت عمر ﷺ و طرف ته كول صحيح نه دي، بلكي صحيح دا ده چي حضرت عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ الله خمس اخيستى دى، او شايد دا د كاتب سهوه وي چي د (ﷺ) په اضافه سره يې دا اشتباه پيدا كړې ده، لنډه دا چي په دې شيانو كي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز خمس واجب نه دى.

**د طرفينو دليل:** دا دى چي خمس په هغه مال كي واجبيږي چي هغه مخكي د كفارو په قبضه كي وي، بيا مسلمانان حمله پر وكړي، او په غلبه سره هغه تر لاسه كړي، او عنبر داسي نه دي، ځكه چي عنبر د هيچا په قبضه كي نه وي، نو ځكه ويل سوي دي چي هغه سره زر او سپين زر كوم چي په سمندر كي دننه وي، په هغه كي هم هيڅ شى نه واجبيږي.

**جواب:** صاحب د هدايې د امام ابو يوسف د دليل دا جواب وركړى دى چي عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ الله (يا حضرت عمر ﷺ) چي په كومو عنبرو كي خمس واجب كړى دى، له دې څخه هغه عنبر مراد دي چي د دارُ الحرب سمندر هغه خپلي غاړي ته راغورځولي وي، او غازيانو هغه راپورته كړي وي، نو په هغه كي خمس واجب دى، ځكه چي دا غنيمت دى، او په غنيمت كي خمس واجب وي، او موږ هم د دې قائل يو چي په دې كي خمس واجب دى.

صاحب د کفايې د خمس د نه واجبېدلو په دليل کي فرمايلي دي چي د لؤلؤ اصل اوبه دي، او په اوبو کي هيڅ شی واجب نه دی، نو ځکه به په ملغلره کي هم خمس او نور واجب نه وي، او د عنبرو اصل هم اوبه دي، يا وابنه دي، او په دې شيانو کي هيڅ شی واجب نه دی، نو ځکه به په عنبرو کي هم هيڅ شی واجب نه وي.

متاع وجد الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: که په رکاز (خزانه) کي له سرو او سپينو زرو څخه ماسوا نور سامان لکه کورنی سامان مثلاً کالي يا وسله او داسي نور شيان ول، نو په هغو کي هم خمس واجب دی، خو په هغه وخت کي چي دا سامان له داسي مځکي څخه را ووځي چي د هغې هيڅ مالک نه وي، ځکه چي دا هم د سرو اسپينو زرو په ډول د غنيمت مال دی، او د غنيمت په مال کي خمس واجبيږي، نو په دې سامان کي به هم خمس واجب وي. والله أعلم بالصواب

## بَابُ زَكَاةِ الزُّرُوعِ وَالثِّمَارِ

(دا) باب د کښتونو او د مېوو د زکاة (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب د مطلق مالي عبادتونو احکام بيان کړل، او اوس له دې ځايه مقيد مالي عبادتونه بيانوي، او څرنګه چي مطلق تر مقيد مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب په ترتيب کي هم مطلق مخکي کوي، او دا باب په دې توګه مقيد دی چي په دې کي د عبادت سره سره د مؤنت (يعني د عشر) معنیٰ هم سته (عنايه، بنايه)، دلته له زکاة څخه مجازاً عشر مراد دی، ځکه د مځکي په فصل او پيداوار کي عشر (لسمه حصه) واجب ده، لکه څرنګه چي په تېر باب کي هم له مصدق (زکاة اخيستونکي) څخه مجازاً عاشر (يعني د عشر اخيستونکی) مراد وو.

### په راشنه کېدونکو شيانو کي د عشر او د صدقاتو حکم

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله فرمايلي دي فِي قَلِيلِ مَا أَخْرَجَتْهُ الْأَرْضُ وَكَثِيرِهِ الْعُشْرُ د مځکي په لږ را ايستل سوې غله (او فصل) کي او په زياته غله (او فصل) کي عشر واجب دی سَوَاءٌ سُقِيَ سَيْحًا أَوْ سَقَتْهُ السَّمَاءُ برابره ده که دا مځکه په جاري (روانو) اوبو سره اوبه سوې وي يا آسمان اوبه کړې وي إِلَّا الْقَصَبَ وَالْحَطَبَ وَالْحَشِيشَ لېکن د سونګ په لرګو (يعني د سوځلو په بوټو)، بانس او وښو کي (عشر واجب نه دی) وَقَالَا: لَا يَجِبُ الْعُشْرُ إِلَّا فِيمَا لَهُ ثَمَرَةٌ بَاقِيَةٌ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي عشر واجب نه دی مګر په هغه (فصل) کي چي د هغه مېوه پاتېږي إِذَا بَلَغَ خَمْسَةَ أَوْسُقٍ په دې شرط چي پنځو وسقو ته ورسېږي وَالْوَسْقُ سِتُّونَ صَاعًا بِصَاعِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او يو وسق د نبي ﷺ په صاع سره اته (۸) صاعه کيږي وَلَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ عِنْدَهُمَا عُشْرٌ او په سابه جاتو کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز عشر واجب نه دی فَالْخِلَافُ فِي مَوْضِعَيْنِ نو (د امام احب لو صاحبينو) اختلاف په دوو ځايو کي دی فِي اشْتِرَاطِ النِّصَابِ وَفِي اشْتِرَاطِ الْبَقَاءِ [۱] د نصاب په شرط لګولو کي [۲] او د بقاء په شرط لګولو کي

لَهُمَا فِي الْأَوَّلِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په نصاب کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی لَيْسَ [1] فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ (چي) له پنځو وسقو څخه په کم کي زکاة نسته وَلِأَنَّهُ صَدَقَةٌ فَيُشْتَرَطُ فِيهِ النِّصَابُ لِتَحَقُّقِ الْغِنَاءِ او په دې وجه (هم) چي عشر زكاة دی نو ځکه به په هغه کي نصاب شرط وي د مالداری د ثابتولو لپاره وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله [2] قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی مَا أَخْرَجَتِ [3] الْأَرْضُ فَفِيهِ الْعُشْرُ څه چي مځکه راوباسي په هغه کي عشر واجب دی مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ (د نبي ﷺ دا قول) بغير له څه تفصيل څخه (دی) وَتَأْوِيلُ مَا رَوَيَاهُ زَكَاةُ التِّجَارَةِ او د هغه حديث تأويل کوم چي صاحبينو رَحِمَهُمَا الله روايت کړی دی د تجارت زكاة دی (يعني كه د تجارت غله پنځه وسقه سوه، نو زكاة واجبيږي) لِأَنَّهُمْ كَانُوا يَتَبَايَعُونَ بِالْأَوْسَاقِ ځکه چي خلکو به په وسقونو سره خرڅول او رانيول كوله وَقِيمَةُ الْوَسْقِ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا او د يوه وسق قيمت به څلوېښت درهمه وو وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْمَالِكِ فِيهِ او په عشر کي د مالک اعتبار نسته فَكَيْفَ بِصِفَتِهِ وَهُوَ الْغِنَاءُ نو د هغه د صفت يعني د مالداری اعتبار به څرنګه کيږي وَلِهَذَا لَا يُشْتَرَطُ الْحَوْلُ همدا وجه ده چي د کال تېرېدل شرط نه دي لِأَنَّهُ لِلِاسْتِنْمَاءِ وَهُوَ كُلُّهُ نَمَاءٌ ځکه چي د کال تېرېدل (خو) د نماء د طلب لپاره دي او غله (خو) ټوله نماء ده وَلَهُمَا فِي الثَّانِي قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل په دويم شرط (يعني د بقاء په شرط) کي د نبي ﷺ (دا) قول دی لَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ [4] صَدَقَةٌ (چي) په سابه جاتو کي صدقه نسته وَالزَّكَاةُ غَيْرُ مَنْفِيَّةٍ او (په دې کي) د زكاة نفي نه دي سوي فَتَعَيَّنَ الْعُشْرُ نو عشر متعين سو وَلَهُ مَا رَوَيْنَا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل هغه حديث دی کوم چي موږ روايت کړی وَمَرْوِيُّهُمَا مَحْمُولٌ عَلَى صَدَقَةٍ يَأْخُذُهَا الْعَاشِرُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله روايت سوی حديث پر هغه صدقه حمل کيږي کوم چي يې عاشر اخلي وَبِهِ أَخَذَ أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله فِيهِ او په دې کي (خو) امام صاحب رَحِمَهُ الله (هم) په هغه حديث سره دليل نيسي وَلِأَنَّ الْأَرْضَ قَدْ تُسْتَنْمَى بِمَا لَا يَبْقَى او په دې وجه چي له مځکي څخه کله نماء په داسي شي سره (هم) حاصليږي چي هغه باقي نه پاتيږي (چي هغه نو سبزيجات دي) وَالسَّبَبُ هِيَ الْأَرْضُ النَّامِيَةُ او د (عشر او نور د واجبېدلو) سبب همدا د مځکي نامي کېدل دي وَلِهَذَا يَجِبُ فِيهَا الْخَرَاجُ نو ځکه په دې کي خراج واجبيږي أَمَّا الْحَطَبُ وَالْقَصَبُ وَالْحَشِيشُ لَا تُسْتَنْبَتُ فِي الْجِنَانِ عَادَةً هرچي د سوځلو لرګي، بانس او واښه دي نو دا

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، ليس فيما دون خمسة أوسق صدقة، حديث رقم: ۱۳۸۴.

[2] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۵۴، و كما قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله: العشر في كل ما يخرجه الارض.... الخانية ج:۱، ص: ۱۳۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۸۰]

[3] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب العشر فيما يسقى من ماء السماء، حديث رقم: ۱۳۸۳.

[4] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الزكوٰة، باب ماجاء في زكوٰة الخضروات، حديث رقم: ۶۳۸.

شیان عادةً په باغونو کي نه راشنه کول کیږي بَلْ تُنَقّٰى عَنْهَا بلکي باغونه له هغو شخه پاکیږي حَتّٰى لَوِ اتَّخَذَهَا مُقْصَبَةً تر دې که مالک له باغ شخه د بانسانو کښت جوړ کړي أَوْ مُشَجَّرَةً یا (د داسي) درختو باغ ځني جوړ کړي (چي هغه د سوځولو لپاره وي) أَوْ مَنْبَتًا لِلْحَشِيْشِ یا د وښو راشنه کولو ځای ځني جوړ کړي يَجِبُ فِيهَا الْعُشْرُ نو په هغه کي به عشر واجب وي وَالْمُرَادُ بِالْمَذْكُورِ الْقَصَبُ الْفَارِسِيُّ او له ذکر سوي بانس شخه فارسي بانس مراد دی أَمَّا قَصَبُ السُّكَّرِ وَقَصَبُ الذَّرِيْرَةِ فَفِيهِمَا الْعُشْرُ هر چي ګنی او زنبق (سخاوږه) دي نو په هغو کي عشر واجب دی لِأَنَّهُ يُقْصَدُ بِهِمَا اِسْتِغْلَالُ الْأَرْضِ ځکه چي په هغو سره د ځمکي غله (او فصل) مقصود دي بِخِلَافِ السَّعَفِ وَالتِّبْنِ په خلاف د خرما د ښاخونو او د پروړو لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ الْحَبُّ وَالثَّمَرُ دُوْنَهُمَا ځکه چي (له هغو شخه) دانه او خرما مقصود دي نه ښاخونه او پروړ.

**اللغات**: ﴿سبج﴾ د ځمکي پر مخ بهېدونکي اوبه، واله او داسي نور، ﴿قصب﴾ کوچنی بانسان، ﴿حطب﴾ د سونګ لرګي (دلته هغه درختي او بوټي ځني مراد دي چي خلګ يې د سوځلو لپاره استعمالوي) ﴿حشيش﴾ وابنه، ﴿خضروات﴾ سابه جات (سبزيجات)، ﴿جنان﴾ باغونه، ﴿سعف﴾ د خرما د درختي خالي ډنډوري، ښاخونه، ﴿تبن﴾ پروړ، ﴿قصب الذريرة﴾ زنبق، سوسن، ګلِ زنبق (یو ډول خوشبويه بوټي دی چي په عطرو او داوو کي استعماليږي، او ربنې ته يې "سخاوږه" وايي، په انګريزي کي sweet flag ورته وايي، اُوردو شارحينو يې په معنی کي "چراتَه" ليکلي دي، حال دا چي "چراتَه" بل بوټي دی چي هغه ته په عربي کي "كف الذئب" وايي).

**تشریح**: د ځمکي په پیداوار او حاصلاتو (یعني هغه چي د کښت او کروندې په ذریعه له ځمکي شخه حاصليږي په هغو) کي د عُشر د واجبېدلو په باره کي د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کي اختلاف دی، امام اعظم رَحِمَهُ الله فرمايي چي مطلقاً د ځمکي په حاصلاتو کي عشر واجب دی، هغه که حاصلات کم وي او که زيات وي، او له څه تدبير اختيارولو شخه بغير تر یوه وخته پوري پاته کېدونکي وي او که نه وي، ځکه د نهرونو (والو) او نورو په روانو اوبو سره اوبه سوي وي او که د باران په اوبو سره اوبه سوې وي، په هر حال کي عشر واجب دی، ماسوا له بانس، د سوځولو د لرګيو (بوټو) او وابنو شخه چي په دې شيانو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هم عشر واجب نه دی، صاحبين رَحِمَهُمَا الله وايي چي د ځمکي په حاصلاتو کي په دوو شرطونو عشر واجب دی: یو دا چي هغه شی کوم چي له ځمکي شخه پيدا سوی وي هغه به بغير له څه تدبيره تر یوه کاله پوري پاته کېدای سي، لکه غنم، اوربشي، وريجې او داسي، نور، او که تر یوه کال پوري نه سي پاته کېدای، نو په هغو کي به عشر واجب نه وي، لکه انګور، خټکی، هندوانه، سبب او داسي نور، دویم شرط دا دی چي دا حاصلات به د پنځو وسقو په اندازه وي، له دې شخه په کم عشر واجب نه دی، او یو وسق د نبي ﷺ په صاع سره شپېته (٦٠) صاعه کيږي، نو پنځه وسقه درې سوه (٣٠٠) صاعه کيږي، او یو صاع شلور منه کيږي، نو د من په حساب سره پنځه وسقه دوولس سوه (١٢٠٠) منه سوه.

د صاحبينو په نيز په سبزيجاتو (سابه جاتو) کي عشر واجب نه دی، ځکه چي تر یوه کال پوري د هغو پاته کېدل بغير له یو تدبيره شخه ممکن نه دي، حاصل دا چي د امام صاحب او صاحبينو اختلاف په دوو ځايونو کي دی: (١) یو دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د عشر د واجبېدلو لپاره د نصاب مقدار شرط نه دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز شرط دی،

دويم دا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تر يوه کال پورې پاته کېدل شرط نه دي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز شرط دي.

**د صاحبينو دليل:** د عشر په واجبېدلو کي د نصاب د شرطولو لپاره د صاحبينو دليل د نبي ﷺ دا قول دی: ليس فيما دون خمسة اوسق صدقة، په حديث کي له صدقې څخه مراد عشر دی، ځکه چې زکاة خو له پنځو وسقو څخه په کم کي هم واجبيږي، په دې شرط چې د هغه قيمت دوو سوو درهمو ته رسيږي، نو د حديث ترجمه دا سوه: "چې تر پنځو په کمو وسقو کي عشر نسته"، نو معلومه سوه چې د عشر د واجبېدلو لپاره پنځه وسقه کېدل ضروري دي، دويم دليل دا دی چې عشر هم د زکاة په ډول دی، ځکه چې د عشر تعلق هم د هغو ځمکو سره دی چې د نماء سره وي، لکه څرنګه چې د زکاة د واجبېدلو لپاره هم نماء شرط ده، او د زکاة په ډول عشر هم پر کافر نه واجبيږي، او د عشر مصارف هم هغه دي کوم چې د زکاة او صدقاتو مصارف دي، نو ثابته سوه چې عشر د زکاة په ډول دی، او د زکاة د واجبېدلو لپاره د نصاب مقدار شرط دی، د دې لپاره چې مالداري متحققه سي، نو همدارنګه به د عشر د واجبېدلو لپاره هم د نصاب مقدار شرط وي چې مالداري او غناء ثابته سي.

**د امام صاحب دليل:** د دې آيت عموم دی: أَنفِقُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ [البقرة: ۲۶۷]، يعني امام صاحب فرمايي چې په دې آيت کي د ځمکي په مطلق حاصلاتو کي د إنفاق حکم سوی دی، د قليل او کثير هيڅ تفصيل پکښې نسته، او د صاحبينو د حديث: ليس فيما دون خمسة اوسق صدقة تأويل دا دی چې په دې کي له صدقې څخه عشر نه بلکي د تجارتي مال (او د تجارتي غلې) زکاة مراد دی، يعني د تجارت په غله (حبوباتو) کي د زکاة د واجبېدلو لپاره پنځه وسقه ضروري دي، او د هغه وجه دا ده چې د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په زمانه کي به خلکو د وسق په حساب سره سودا (اخيستنه او خرڅونه) کوله، او د يوه وسق خرماوو قيمت به څلوېښت درهمه وو، نو د پنځو وسقو قيمت به دوه سوه (۲۰۰) درهمه وو، او دوه سوه درهمه د زکاة نصاب دی (نو د حديث مطلب دا سو چې که يو څوک د غلې تجارت کوي، او د هغه سره تر پنځو وسقو کمه غله وي نو پر هغه زکاة نسته، دا يې مطلب نه دی چې د ځمکي په حاصلاتو کي عشر نسته).

ولا معتبر بالمالك...الخ له دې ځايه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د عقلي دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې په عشر کي د مالک هيڅ اعتبار نسته، همدا وجه ده چې د کوچني، مکاتب او لېوني او نورو په ځمکه کي همدارنګه په موقوفه کي هم عشر واجب دی، حال دا چې په دې ټولو کي د مالک کېدلو صفت نسته، نو کله چې په عشر کي د مالک هيڅ اعتبار نسته، نو د هغه د صفت يعني د مالداري اعتبار به څرنګه کيږي؟ همدا وجه ده چې په عشر کي د کال تېرېدل (حولانِ حول) هم شرط نه دي، ځکه چې د حولانِ حول شرط د نماء او زياتوب د معلومولو لپاره دی، او د غلې او حاصلاتو ټوله حصه په خپله نماء ده.

ولهما في الثاني الخ په دويم شرط کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل د نبي ﷺ دا قول دی: ليس في الخضروات صدقة، دا روايت په دار قطني کي داسي ذکر سوی دی: أن رسول الله ﷺ نهى أن يؤخذ من الخضروات صدقة، په حديث کي له "صدقة" څخه مراد عشر دی، ځکه سبزيجات چې کله د تجارت لپاره وي، نو په هغو کي بالاتفاق زکاة واجبيږي، نو معلومه سوه چې په حديث کي د زکاة نفي نه دي سوې، او کله چې د زکاة نفي نه دي سوې، نو عشر به متعين کيږي، او د حديث مطلب به دا وي چې نبي ﷺ په سبزيجاتو کي له عشر اخيستلو څخه منع کړې ده، (يعني په سبزيجاتو کي

عشر واجب نه دی)، او په سبزیجاتو کي د عشر د نه واجبېدلو علت او سبب د هغوی نه پاته کېدل دي، نو ځکه موږ وویل چي کوم شیان تر یو کال بغیر له څه تدبیره څخه نه سي پاته کېدلای، نو په هغو کي به عشر واجب نه وي.

**د امام صاحب دلیل:** دا حدیث دی: ما أخرجت الأرض ففیه العشر او دا حدیث مطلق دی، په دې کي د پاته کېدلو او نه پاته کېدلو هیڅ قید نسته، نو ځکه به مطلقاً د ځمکي په حاصلاتو کي عشر واجب وي، هغه که تر یوه کال پوري پاته کېدای سي او که نه سي، او دلیس في الخضروات صدقة، مطلب به دا وي چي که دیو سړي سره سبزیجات وي او د عاشر سره تېر سي، او دا سړی له قیمت ورکولو څخه انکار وکړي، نو عاشر به خاص له سبزیجاتو څخه عشر نه اخلي، ځکه چي عاشر په عامه توګه له ښار څخه لیري وي، او هلته فقیران نه وي، نو که په داسي صورت له سبزیجاتو څخه عشر واخیستل سي، نو د هغو د خرابېدلو امکان سته (یعني مستحق خلک نسته چي تر عشر اخیستلو وروسته سبزیجات هغو ته ورکړي)، نو ځکه په حدیث کي وویل سوه چي عاشر به د سبزیجاتو عشر نه اخلي، بالکي مالک به یې په خپله فقیرانو ته ورکړي، او کله چي یې مالک فقیرانو او مستحقو خلکو ته ورکړي، نو هغوی به یې وخوري، او د هغو د خرابېدلو امکان به نه وي، امام صاحب رَحِمَهُ الله هم د حدیث پر دغه محمل عمل کوي، نو د حدیث دا مطلب نه دی چي په سبزیجاتو کي بالکل عشر واجب نه دی، لکه څرنګه چي صاحبین وایي.

ولأن الأرض د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مسلک عقلي دلیل دا دی چي د عشر د واجبېدلو سبب د ځمکي نامي کېدل دي (یعني نامي ځمکه ده)، او کله له ځمکي څخه په داسي شي سره هم نماء حاصلیږي (یعني له ځمکي څخه کله داسي شی هم پیدا کیږي) چي هغه تر یوه کال پوري پاته کېدونکی نه وي (مثلاً سبزیجات)، اوس که موږ د نه پاته کېدلو په وجه په هغو کي عشر واجب نه کړو، نو سبب به چي هغه نامي ځمکه ده بغیر له حکم څخه چي هغه عشر دی پاته سي، (په لنډه توګه دا چي سبب به بغیر له حکم څخه پاته سي)، او دا صحیح نه ده، همدا وجه ده که یو څوک په خراجي ځمکه کي سبزیجات وکرل، نو په هغو کي به پوره خراج واجب وي (ځکه چي سبب یعني نامي ځمکه سته)، نو څرنګه چي په نه پاته کېدونکو شیانو کي خراج واجب دی، همدارنګه به عشر هم پکښي واجب وي.

أما الحطب الخ فرمایي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په بانس، وښو او د سوځلو په بوټو کي عشر واجب نه دی، ځکه چي عادتاً او په عامه توګه دا شیان په باغو کي نه کرل کیږي، بلکي زیاتره دا لیدل کیږي چي دا شیان په خپله په باغو کي راشنه کیږي، لیکن خلک یې پر ته کاږي او باغونه ځني صفا کوي، هو! که د کښت مالک له ځمکي څخه ـ بانسو کښت جوړ کړي، یا یې د هغو درختو باغ ځني جوړ کړي چي په سوځلو کي کار ځني اخیستل کیږي یا یې د وښو کرلو ځای ځني جوړ کړي، نو اوس د دې شیانو حاصلول مقصود سو (او په خپله راشنه نه سو. بلکي وکرل سو) نو ځکه به عشر پکښي واجب وي.

والمراد الخ فرمایي چي په متن کي له قصب څخه مراد فارسي بانس دی، چي له هغه څخه قلمان او نور جوړیږي، لو ګنې او جواري ځني مراد نه دي، ځکه چي په دې دواړو سره د حاصلاتو او غلې حاصلول مقصود دي. نو په دې کي به عشر هم واجب وي، د دې په خلاف د خرما د درختي ښاخونه او پروړ دي چي په دي کي هم عشر واجب نه دی، ځکه چي د خرما له ښاخونو څخه کجوري او خرماوي مقصود دي، او له پروړو څخه دانه لو غله مقصود دي. او په خرما او غله کي عشر واجب دی، نو د هغو په فضلاتو کي د عشر واجبولو څه ضرورت نسته.

## د نیم عشر حکم

قَالَ: وَمَا سُقِيَ بِغَرْبٍ أَوْ دَالِيَةٍ أَوْ سَانِيَةٍ فرمايي: او کومه ځمکه چي اوبه کړی سي په غټه سولاغه يا ارهټ يا اوښي سره فَفِيهِ نِصْفُ الْعُشْرِ نو په هغه کي نصف عشر (يعني شلمه حصه) ده عَلَى الْقَوْلَيْنِ پر دواړو قولونو لِأَنَّ الْمُؤْنَةَ تَكْثُرُ فِيهِ ځکه چي په هغه کي خرچه (او تکليف) زيات دی وَتَقِلُّ فِيمَا يُسْقَى بِالسَّمَاءِ أَوْ سَيْحًا او کومه ځمکه چي د آسمان (يعني د باران) په اوبو سره يا د درياب (رُود) په اوبو سره اوبه کيږي په هغه کي تکليف کم دی وَإِنْ سُقِيَ سَيْحًا وَبِدَالِيَةٍ او که ځمکه د درياب په اوبو او په ارهټ (دواړو) سره اوبه سوې وي فَالْمُعْتَبَرُ أَكْثَرُ السَّنَةِ نو (په دې کي به) د اکثره کال اعتبار کيږي كَمَا هُوَ فِي السَّائِمَةِ لکه په سائمه څارويانو کي چي د اکثره کال اعتبار کيږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي فِيمَا لَا يُوسَقُ كَالزَّعْفَرَانِ وَالْقُطْنِ يَجِبُ فِيهِ الْعُشْرُ چي په هغو شيانو کي کوم چي په وسق کي نه راځي (يعني چي په وسق سره نه تلل کيږي) لکه زعفران او پمبه په هغو کي عشر واجب دی إِذَا بَلَغَتْ قِيمَتُهُ خَمْسَةَ أَوْسُقٍ مِنْ أَدْنَى مَا يُوسَقُ په دې شرط چي د هغو قيمت د ادنیٰ وَسَقي شي پنځو وسقو ته ورسيږي (يعني په دې شرط چي د هغو قيمت د هغه ادنیٰ شي قيمت ته ورسيږي چي په وسق سره تلل کيږي، له ادنیٰ شي څخه مراد د ادنیٰ درجې غله ده لکه جوار چي دا تر ټولو ادنیٰ درجه غله او ارزانه دي) كَالذُّرَةِ فِي زَمَانِنَا لکه زموږ په زمانه کي چي جواري دی لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّقْدِيرُ الشَّرْعِيُّ فِيهِ ځکه چي په غيرِ وسق شي کي د شرعي نصاب اندازه کول ممکن نه دي فَاعْتُبِرَتْ قِيمَتُهُ نو د هغه د قيمت اعتبار وسو كَمَا فِي عُرُوضِ التِّجَارَةِ لکه د تجارت په سامان کي چي دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: يَجِبُ الْعُشْرُ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي عشر واجب دی إِذَا بَلَغَ الْخَارِجُ خَمْسَةَ أَعْدَادٍ مِنْ أَعْلَى مَا يُقَدَّرُ بِهِ نَوْعُهُ چي کله پيداوار (حاصلات) د پنځو شمېر ته ورسيږي د هغه لوړي اندازې په پيمانه سره چي په هغې سره دا ډول شی اندازه کيږي (پيمانه کيږي) فَاعْتُبِرَ فِي الْقُطْنِ خَمْسَةُ أَحْمَالٍ نو په پمبه وو کي د پنځو أحمالو اعتبار وسو كُلُّ حِمْلٍ ثَلَاثُ مِائَةِ مَنٍّ (چي) هر حمل درې سوه مَنه دی وَفِي الزَّعْفَرَانِ خَمْسَةُ أَمْنَاءٍ او په زعفران کي د پنځو مَنو (اعتبار وسو) لِأَنَّ التَّقْدِيرَ بِالْوَسْقِ كَانَ بِاعْتِبَارِ ځکه چي په وسق سره د اندازه کولو اعتبار په دې وجه وو أَنَّهُ أَعْلَى مَا يُقَدَّرُ بِهِ چي دا په هغو ټولو شيانو کي اعلیٰ پيمانه (او اندازه) وه چي په هغو سره به (غله جات او نور شيان) پيمانه کېدله.

**اللغات:** ﴿غرب﴾ غټه سولاغه. ﴿دالية﴾ ارهټ (ارهټ)، دا د دلو څخه مشتق دی، له دې څخه هغه څرخه مراد ده چي په هغې کي کوچنۍ کوچنۍ سولاغې نصب کړی سي او د اوښي په ذريعه له څاه څخه اوبه په راکښل کيږي چي هغې ته ارهټ هم وايي. ﴿سانية﴾ هغه اوښه چي ځمکه اوبوي. ﴿قطن﴾ پمبه. ﴿ذرة﴾ جواري.

**تشريح**: په پورتني عبارت کي يو شو لفظونه د پاملرني وړ دي: (۱) غرب، د دې معنىٰ ده: غټه سولاغه، (۲) داليه، د دې معنىٰ ده: ارهټ يعني هغه ګول شی چي پرهغه وړي سولاغي تړل کيږي او بيا يې غوبی يا يو بل حيوان ګرځوي، او د دې په ذريعه کښتونه او باغونه اوبوي، (۳) سانيه، د ساقية مترادف دی، او د دې معنىٰ ده: کښت اوبه کونکې اوښه.

**صورت د مسلې**: دا دی چي که کښت د غټي سولاغې يا ارهټ يا د اوښي په ذريعه سره اوبه کېدی، نو د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نيز په هغه کي نيم عشر واجب دی، خو د مخکيني اختلاف سره يعني په دې کي د صاحبينو رَحِمَهُمَاالله په نيز نصاب او يو کال پاته کېدل شرط دي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا شيان شرط نه دي، په دې کي د عشر د واجبېدلو دليل دا دی چي په دې صورتونو کي مشقت او تکليف زيات دی، په نسبت و دې ته چي د باران يا د درياب په اوبو سره اوبه سي، نو ځرنګه چي د باران يا د درياب په اوبو سره په اوبه کولو کي مشقت او تکليف کم دی، نو ځکه په هغو کي پوره عشر واجب کړی سو، او په ارهټ او نورو سره په اوبه کولو کي تکليف زيات دی، نو ځکه په دې صورتونو کي نيم عشر يعني شلمه حصه واجب کړی سوه.

وإن سقى الخ فرمايي چي که يو کښت د درياب په اوبو سره هم اوبه سوی وو، او په سولاغو سره هم اوبه سوی وو، نو د کال د اکثره حصې اعتبار به کيږي، يعني که اکثره کال د درياب په اوبو سره اوبه سوی وو، او يو څو ورځي په سولاغو سره اوبه سوی وو، نو عشر به واجب وي، او که د دې برعکس وو، نو نيم عشر به واجب وي، لکه په سائمه څارويانو کي چي د اکثره کال اعتبار کيږي، يعني که د کال زياتره حصه يې څارويانو ته د بيابان وابښه ورکړي وو، او يو څو ورځي يې په کور کي وابښه ورکړي وو، نو دا به سائمه څارويان وي، او زکاة به پکښې واجب وي، او که د دې برعکس ول، نو علوفه څارويان به وي، او زکاة به پکښې واجب نه وي.

وقال أبويوسف الخ د صاحبينو پر مذهب يو اعتراض کيږي هغه دا چي د صاحبينو په نيز د مځکي په حاصلاتو کي د عشر د واجبېدلو لپاره د پنځو وسقو مقدار ضروري دي، له دې څخه په کم کي عشر واجب نه دی، لېکن په کومو شيانو کي چي د وسق په ذريعه سره وزن او تول نه معلوميږي، او د وسق په ذريعه سره د هغو اخيستنه او خرڅونه نه کيږي، لکه زعفران او پمبه نو آيا په هغو کي به عشر واجب نه وي؟، صاحب د هدايې فرمايي چي د داسي شيانو په باره کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دا دی چي که د زعفران او د داسي نورو غيرِ وَسَقي شيانو (يعني په وسق سره د نه وزن کېدونکو شيانو) قيمت د ادنىٰ وَسَقي شي د پنځو وسقو و قيمت ته رسېدی، نو په هغو کي به عشر واجب وي، مثلاً که د دوو سوو ګرامو زعفرانو قيمت د پنځو وسقو جورو و قيمت ته رسېدی، نو په دوه سوه ګرامه زعفرانو کي به عشر واجب وبکه څه هم د زعفرانو اخيستنه او خرڅونه په وسق سره نه کيږي(د پنځو وسق جورو قيمت د درهم په حساب سره يونيم سل (۱۵۰) درهمه کيږي)، دليل دا دی چي په هغه شي کي چي وسقي نه وي د شرعي نصاب يعني د پنځو وسقو اندازه کول ممکن نه دي، نو ځکه د هغه د قيمت اعتبار وسو، لکه ځرنګه چي په تجارتي سامان کي د شرعي نصاب يعني د دوو سو درهمو اندازه کول ممکن نه دي، نو ځکه په هغه کي هم د هغه د قيمت اعتبار سوی دی، يعني که د تجارت سامان د دوو سوو درهمو و مقدار ته رسېدی، نو په هغه کي به زکاة واجب وي.

وقال محمد الخ د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دا دی چي په غيرِ وسقي شيانو کي به د لوړي درجې پيمانه او اندازه معتبره وي، يعني په کومو پيمانو سره چي غيرِ وسقي شيان اندازه کيږي، په هغو کي چي کومه تر ټولو اعلىٰ او غټه پيمانه

وي، که وسقي شی په هغه غټه پیمانه سره پنځه پیمانې سي، نو په هغه کي به عشر واجب وي، کنې نه به وي، نو په پمبه وو کي تر ټولو اعلیٰ او غټه اندازه او پیمانه حِمل دی، حِمل دیوه اوښ بار ته وایي، نو که پمبه پنځه حمله سوه، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به په هغو کي عشر واجب وي، یو حِمل تقریباً درې سوه مَنه کیږي، او د زعفرانو د اندازه کولو غټه پیمانه مَن دی، نو که زعفران د پنځو منو په اندازه وه، نو عشر به پکښې واجب وي، دلیل دا دی چي په هغو شیانو کي کوم چي تلل (تولول) کیږي، په هغو کي به تر ټولو غټه پیمانه د وسق په ځول سي، ځکه چي د وسق اعتبار به هم ځکه کېدی چي هغه به تر ټولو د لوړي درجي او غټه پیمانه او اندازه وه، حاصل دا سو که غیرِ وسقي شی په اعلیٰ او تر ټولو په غټي پیمانې سره د پنځو پیمانو ته ورسېدی، نو په هغه کي به عشر واجبیږي.

## په عسلو او ګنې کي د عشر حکم

قَالَ الْعَسَلِ الْعُشْرُ او په عسلو کي عشر واجب دی إِذَا أُخِذَ مِنْ أَرْضِ الْعُشْرِ په دې شرط چي کله هغه له عشري مځکي څخه را واخیستل سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجِبُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي (په عسلو کي) عشر واجب نه دی لِأَنَّهُ مُتَوَلِّدٌ مِنَ الْحَيَوَانِ ځکه چي عسل له حیوان څخه پیدا کیږي فَأَشْبَهَ الْإِبْرَيْسَمَ نو هغه د وربښمو سره مشابه سو وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: فِي الْعَسَلِ الْعُشْرُ او زموږ دلیل د نبي ﷺ دا قول دی: چي په عسلو کي عشر واجب دی وَلِأَنَّ النَّحْلَ يَتَنَاوَلُ مِنَ الْأَنْوَارِ وَالثِّمَارِ او په دې وجه (هم) چي مچمچی له غوټیو او مېوو څخه خوراک کوي (یعني د غوټۍ او مېوې رس څېښي) وَفِيهِمَا الْعُشْرُ او په دې دواړو کي عشر واجب دی فَكَذَا فِيمَا يَتَوَلَّدُ مِنْهُمَا نو په هغه شي کي به هم عشر واجب وي کوم چي له دې دواړو څخه پیدا کیږي بِخِلَافِ دُودِ الْقَزِّ په خلاف د وربښمو د چینجي لِأَنَّهُ يَتَنَاوَلُ مِنَ الْأَوْرَاقِ ځکه چي هغه له پاڼو (بلکو) څخه خوراک کوي وَلَا عُشْرَ فِيهَا او په پاڼو کي عشر واجب نه دی ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى[2] يَجِبُ فِيهِ الْعُشْرُ قَلَّ أَوْ كَثُرَ بیا د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز که عسل لږ وي که ډېر په هغو کي عشر واجب دی لِأَنَّهُ لَا يَعْتَبِرُ النِّصَابَ ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله د نصاب اعتبار نه کوي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَعْتَبِرُ فِيهِ قِيمَةَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت (دا) دی چي هغه په عسلو کي (هم) د پنځو وسقو اعتبار کوي كَمَا هُوَ أَصْلُهُ لکه څرنګه چي دغه د هغه اصل دی وَعَنْهُ أَنَّهُ لَا شَيْءَ فِيهِ حَتَّى يَبْلُغَ عَشْرَ قِرَبٍ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دویم روایت دا دی چي په عسلو کي عشر واجب نه دی تر دې چي هغه لسو ژبانو ته ورسیږي لِحَدِيثِ بَنِي شَبَابَةَ د بنو شبابه د حدیث په وجه سره أَنَّهُمْ كَانُوا يُؤَدُّونَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَلِكَ چي هغوی به نبي ﷺ ته همدغسي عشر ورکوی وَعَنْهُ خَمْسَةُ أَمْنَاءٍ او له امام ابو

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في سننه في كتاب الزكاة، باب ما ورد في العسل، حديث رقم: ٧٤٥٩، باب رقم: ٥١، و أخرجه الترمذي في كتاب الزكاة، باب ماجاء في زكاة العسل، حديث رقم: ٦٢٩ في معناه.

[2] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كذا في رد المحتار ج:٢، ص: ٥٣، و ايضاً يثبت من تفصيل ابن الهمام ترجيح قول الامام. [القول الراجح، ج:١، ص:١٨١]

یوسف رَحِمَهُ الله څخه دریم روایت دا دی چې په پنځو منو عسلو کې عشر واجب دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ خَمْسَةُ أَفْرَاقٍ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې په پنځو افراقو کې عشر واجب دی كُلُّ فَرَقٍ سِتَّةٌ وَثَلَاثُونَ رِطْلًا (چې) هر فرق شپږ دېر (۳۶) رطله کیږي لِأَنَّهُ أَقْصَى مَا يُقَدَّرُ بِهِ ځکه چې د عسلو په اندازه کولو کې فرق تر ټولو غټه پیمانه ده وَكَذَا فِي قَصَبِ السُّكَّرِ او همدا اختلاف په ګنې کې دی وَمَا يُوجَدُ فِي الْجِبَالِ مِنَ الْعَسَلِ وَالثِّمَارِ فَفِيهِ الْعُشْرُ او کوم عسل او مېوې چې په غرونو کې پیدا کیږي نو په هغو کې (هم) عشر واجب دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ لَا يَجِبُ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چې په هغو کې عشر واجب نه دی لِانْعِدَامِ السَّبَبِ وَهُوَ الْأَرْضُ النَّامِيَةُ ځکه چې سبب نشته چې هغه نماء کونکې مځکه ده وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ الْمَقْصُودَ حَاصِلٌ وَهُوَ الْخَارِجُ او د ظاهر روایت دلیل دا دی چې مقصود حاصل دی او هغه پیداوار (حاصلات) دي.

**اللغات:** ﴿عسل﴾ شات، عسل، ګبین، ﴿ابريسم﴾ قدرتي وربښم چې له چنجیانو څخه پیدا کیږي، ﴿النحل﴾ د شاتو مچۍ، مچمچۍ، ﴿أنوار﴾ جمع د نورة ده: د میوه دارو درختو غوټیو ته نورة ویل کیږي، ﴿دود القز﴾ د وربښم چینجي.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که له عشري مځکه څخه عسل حاصل سول، نو زموږ په نېز په هغو کې عشر واجب دی، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې په عسلو کې عشر واجب نه دی، همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې عسل له حیوان یعني له مچمچۍ څخه پیدا کیږي، نو دا د وربښمو سره مشابه سول، ځکه چې وربښم هم د حیوان یعني له چینجي څخه پیدا کیږي، او په وربښمو کې بالاتفاق عشر نشته، نو په عسلو کې به هم عشر نه وي.

**زموږ دلیل:** د نبي ﷺ دا حدیث دی: عن أبي هريرة ﷺ أن رسول الله ﷺ كتب إلى أهل اليمن أن في العسل العشر (یعني نبي ﷺ د یمن خلکو ته ولیکله چې په عسلو کې عشر واجب دی)، دویم دلیل دا دی چې مچمچۍ له غوټیو او مېوو څخه خوراک کوي (او له غوټیو څخه هم مېوې جوړیږي)، لکه څرنګه چې په آیت کې راغلي: ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ، او په غوټیو او مېوو کې عشر واجب دی، نو کوم شیان چې له غوټیو او مېوو څخه پیدا کیږي یعني عسل نو په هغو کې به هم عشر واجب وي، په خلاف د وربښمو د چینجي، چې هغه د شاتوت پاڼې خوري، او په پاڼو کې عشر واجب نه دی، نو څه چې له هغو څخه پیدا کیږي یعني وربښم نو په هغو کې به هم عشر واجب نه وي.

ثم عند أبي حنيفة الخ صاحب د هدایې فرمایي چې په عسلو کې عشر واجب دی، برابره ده عسل که لږ وي، او که ډېر وي، ځکه چې امام صاحب رَحِمَهُ الله د عشر په واجبېدلو کې د نصاب اعتبار نه کوي، او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې درې روایتونه دي: (۱) یو دا که عسل د پنځو وسقو د قیمت سره برابر سوه، نو په هغه کې به عشر واجب وي، همدا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اصل دی، (۲) دویم دا که عسل د لسو ژباتو په اندازه وه، نو په هغه کې به عشر واجب وي، دلیل د بني شبابه وو حدیث دی، په عنایه کې دا حدیث داسې ذکر سوی دی: "چې د بنو جرهم د یوې قبیلې بنو شبابه وو سره ډېرې مچمچیانې وې، (او دا قبیله په طائف کې وسېدله)، هغوی به په هرو لسو ژبو عسلو کې یوه ژۍ عسل نبي

ﷺ ته ورکوله"، او يو ژی پنځوس رطله کيږي، (۳) دريم روايت دا دی که عسل پنځه منه وه، نو په هغه کي به عشر واجب وي.

وعن محمد الخ له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په عسلو کي پنځه افراقه نصاب دی، يعني په پنځه فرقه عسلو کي عشر واجبيږي، يو فرق شپږ دېرش (۳۶) رطله کيږي، ځکه په کومو پيمانو سره چي عسل اندازه کيږي، په هغو ټولو کي دلوړي درجې او اعلیٰ پيمانه فرق ده.

وكذا في قصب السكر الخ او په ګني کي هم د امام ابو يوسف او امام محمد رَحِمَهُمَا الله په مينځ کي همدغه اختلاف دی چي دامام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز که د ګني قيمت پنځو وسقو ته ورسيږي، نو عشر واجبيږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز که ګني پنځه فرقه وي نو عشر واجبيږي.

وما يوجد في الجبال الخ او په غرونو کي چي کومي ميوې او عسل پيدا کيږي، په هغو کي هم عشر واجب دی، او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي په هغو کي عشر واجب نه دی، ځکه چي په هغو کي د عشر د واجبېدلو سبب نسته او هغه د ځمکي نامي کېدل دي، (زياته غوره دا وه چي داسي ويل سوي وای چي د عشر د واجبېدلو سبب مملوکه ځمکه ده، او غر د هيچا په ملکيت کي نه دی)، او د ظاهر روايت يعني د عشر د واجبېدلو دليل دا دی چي کوم شی مقصود دی يعني پيداوار او مال هغه دا دی حاصل دی، نو کله چي پيداوار او حاصلات سته، نو په هغو کي به عشر هم واجب وي.

## د عشري ځمکي په فصل کي به د مزدورانو د خرچې ورکولو حکم

قَالَ: وَكُلُّ شَيْءٍ أَخْرَجَتْهُ الْأَرْضُ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: او هر هغه شی چي ځمکه يې راوباسي (يعني له ځمکي څخه پيدا سي) مِمَّا فِيهِ الْعُشْرُ (او) چي په هغه کي عشر واجب وي لَا يُحْتَسَبُ فِيهِ أَجْرُ الْعُمَّالِ وَنَفَقَةُ الْبَقَرِ نو په هغه کي به د مزدورانو مزدوري او د غوييانو خرچه نه شمارل کيږي لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَكَمَ بِتَفَاوُتِ الْوَاجِبِ لِتَفَاوُتِ الْمُؤْنَةِ ځکه چي نبي ﷺ د تکليف (او مشقت) د مختلف کېدلو په وجه سره د واجب د مختلف کېدلو حکم کړی دی فَلَا مَعْنٰى لِرَفْعِهَا نو د خرڅي د شمارلو به هيڅ مطلب نه وي.

**اللغات:** ﴿لا يحتسب﴾ د افتعال د باب مصدر دی: شمارل، حساب کول، ﴿رفعها﴾ د رفع معنیٰ ده: پورته کول، دلته ځني مراد د خرچې او مزدوري جلا کول او شمارل دي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د کومو ځمکو له حاصلاتو او پيداوار څخه چي عشر اخيستل کيږي، په هغه حاصلاتو کي به د مزدورانو اُجرت او د غوييانو او نورو د خوراک خرچه نه شمارل کيږي، بلکي په ټوله پيداوار کي به عشر واجبيږي، مثلاً د يو چا سره ۲۰۰ مَنه غله پيدا سوه، (يعني کښت يې دوه سوه منه غله وکړه)، لېکن له ۲۰۰ منو څخه ۲۰ منه په مزدوري او د غوييانو په خوراک کي ولاړل، نو د ۱۸۰ منو عشر به نه ورکوي، بلکي د پوره ۲۰۰ منو عشر به ورکوي، يعني ۲۰ منه به له عشر څخه نه ايستل کيږي، بلکي د هغو عشر به هم ورکوي، ځکه نبي ﷺ د مشقتونو په مختلفه کېدلو سره د واجباتو د مختلفه کېدلو حکم کړی دی، (يعني نبي ﷺ دا حکم کړی دی چي کله مشقت زيات وي، هلته به واجب مثلاً عشر او داسي نور کم وي، او کله چي مشقت کم وي، هلته به واجب زيات وي، مثلاً که ځمکه د باران او رُود په اوبو

سره اوبه کېدله نو د هغې مځکې په پيدا وار کې به پوره عشر واجب وي، ځکه چې په دې کې مشقت کم دی، او که په سولاخه، يا په ماشين سره اوبه کېدله نو په هغې کې به نيم عشر واجب وي ځکه چې په دې کې مشقت زيات دی، او داسې نور...)، نو اوس که مونږ د مزدورانو خرچه له پيداوار څخه وشمارو، او په هغه کې عشر واجب نه کړو، نو بنکاره ده چې مشقت به ختم سي (حال دا چې نبي ﷺ د مشقت په بدلېدلو سره د واجب د بدلېدلو حکم کړی دی، او دلته به مشقت نه وي، ځکه مشقت هغه وخت راځي چې په پوره پيداوار کې عشر واجب سي او د مزدورانو خرچه له هغه څخه نه ويستل سي، لېکن کله چې داسې نه وسي نو مشقت به ختم سي)، او کله چې مشقت ختم سي، نو واجب يعني عشر به هم نه بدلېږي، (ځکه واجب به هغه وخت بدلېږي، چې مشقت وي)، او دا د شريعت خلاف دي، نو ځکه به په عشر او پيداوار کې مزدوري او نور نه شمارل کېږي.

## د بنو تغلب په عشري مځکه کې د عشر حکم

قَالَ: تَغْلِبِيٌّ لَهُ أَرْضُ عُشْرٍ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې (که) يو تغلبي سړی عشري مځکه لري فَعَلَيْهِ الْعُشْرُ مُضَاعَفًا نو پر هغه دوچنده عشر واجب دی عُرِفَ ذٰلِكَ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رِضْوَانُ اللهِ عَلَيْهِمْ دا خبره د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم په اجماع سره معلومه سوې ده وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ● أَنَّ فِيمَا اشْتَرَاهُ التَّغْلِبِيُّ مِنَ الْمُسْلِمِ عُشْرًا وَاحِدًا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه (دويم) روايت دا دی چې په هغه مځکه کې چې تغلبي سړي له يو مسلمان څخه رانيولې وي يو عشر واجب دی لِأَنَّ الْوَظِيفَةَ عِنْدَهُ لَا تَتَغَيَّرُ بِتَغَيُّرِ الْمَالِكِ ځکه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مالک په بدلېدلو سره حکم نه بدلېږي.

**تشريح:** **مسئله**: دا ده که د بنو تغلب د قبيلې د يو سړي سره يوه عشري مځکه وي، نو په هغه کې د عشر د واجبېدلو په باره کې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: (۱) اول روايت دا دی چې د هغه له عشري مځکې څخه به دوچنده عشر اخيستل کېږي، ځکه د حضرت عمر ﷺ په زمانه کې پر دې خبره اجماع سوې وه چې له بنو تغلب څخه به د مسلمانانو دوچنده اخيستل کېږي، او څرنګه چې د مسلمانانو له عشري مځکې څخه يو عشر اخيستل کېږي، نو له بنو تغلب څخه به خامخا دوه عشره اخيستل کېږي. (۲) دويم روايت دا دی چې که تغلبي سړي هغه مځکه له يو مسلمان څخه رانيولې وه، نو بيا به په هغه کې يو عشر واجب وي، ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مالک په بدلېدلو سره حکم نه بدلېږي، نو کله چې مځکه د مسلمان سره وه نو په هغې کې يو عشر واجب وو، نو اوس به د تغلبي سره هم په هغې کې يو عشر واجب وي.

## که يو ذمي له تغلبي سړي څخه مځکه رانيسي نو د عشر څه حکم دی؟

فَإِنِ اشْتَرَاهَا مِنْهُ ذِمِّيٌّ بيا که له تغلبي سړي څخه يو ذمي مځکه رانيسي فَهِيَ عَلٰى حَالِهَا عِنْدَهُمْ نو د ټولو په نېز دا مځکه پر خپل حال پاته ده (يعني دوچنده عشر به پکښې واجب وي) لِجَوَازِ التَّضْعِيفِ عَلَيْهِ فِي الْجُمْلَةِ ځکه چې پر ذمي په ټولو صورتونو کې دوچندي جائز ده كَمَا إِذَا مَرَّ عَلَى الْعَاشِرِ لکه کله چې ذمي د عاشر سره تېر سي (نو له هم به له هغه دوچنده عشر اخيستل کېږي)

---

● القول الراجح: قول الشيخين يعني العشر المضاعف، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ويجب ضعفه في ارض عشرية لتغلبي مطلقاً و إن كان طفلا أو أسلم..... رد المحتار ج:۲، ص: ۵۶. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۸۲]

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که له تغلبي سړي څخه یو ذمي سړي عشري مځکه رانیوله، نو پر هغه هم بالاتفاق دوچنده عشر واجب دی، د دې وجه دا ده چي پر ذمي په ټولو صورتونو کي دوچندي واجب ده، همدا وجه ده چي که د يو ذمي سره د تجارت مال وي او د عاشر مخته تېر سي، نو عاشر به له هغه څخه دوچنده عشر اخلي، نو ځکه به د هغه په عشري مځکه کي هم دوچنده عشر واجب وي.

## که یو مسلمان له تغلبي سړي څخه مځکه رانيسي یا تغلبي مسلمان سي نو د عشر څه حکم دی؟

وَكَذَا إِذَا اشْتَرَاهَا مِنْهُ مُسْلِمٌ أَوْ أَسْلَمَ التَّغْلِبِيُّ او همدارنګه (به دوچنده عشر اخيستل كيږي) چي كله له تغلبي څخه يو مسلمان مځكه رانيسي يا تغلبي (په خپله) مسلمان سي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ• د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز سَوَاءٌ كَانَ التَّضْعِيفُ أَصْلِيًّا أَوْ حَادِثًا هغه كه اصلي دوچندي وي او كه حادثه (يعني نوې دوچندي) وي لِأَنَّ التَّضْعِيفَ صَارَ وَظِيفَةً لَهَا ځكه چي دوچندي د دې مځكي وظيفه سوه فَتَنْتَقِلُ إِلَى الْمُسْلِمِ بِمَا فِيهَا كَالْخَرَاجِ نو دا مځكه به د مسلمان و طرف ته د خپل ټوله بار (او مؤنت) سره نقل كيږي لكه خراج وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: يَعُودُ إِلَى عُشْرٍ وَاحِدٍ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دوچنده عشره به د يوه عشر و طرف ته راګرځي لِزَوَالِ الدَّاعِي إِلَى التَّضْعِيفِ ځكه د دوچندۍ و طرف ته چي كوم شی داعي وو (يعني كفر) هغه ختم سو قَالَ فِي الْكِتَابِ: وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ فِيمَا صَحَّ عَنْهُ په مبسوط كي (په كتاب الزكاة كي) فرمايي: چي په صحيح روايت كي همدغه قول د امام محمد رَحِمَهُ الله هم دی (چي پر مسلمان به يو عشر واجبيږي) قَالَ: اِخْتَلَفَتِ النُّسَخُ فِي بَيَانِ قَوْلِهِ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په بيانولو كي نسخې مختلفي دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ فِي بَقَاءِ التَّضْعِيفِ (خو) صحيح دا ده چي د دوچندۍ په پاته كېدلو كي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی إِلَّا أَنَّ قَوْلَهُ لَا يَتَأَتَّى إِلَّا فِي الْأَصْلِيِّ لېكن د امام محمد رَحِمَهُ الله قول به نه حاصلېږي مګر په اصلي دوچندۍ كي لِأَنَّ التَّضْعِيفَ الْحَادِثَ لَا يَتَحَقَّقُ عِنْدَهُ ځكه چي حادثه (يعني نوې) دوچندي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز نه ثابتېږي لِعَدَمِ تَغَيُّرِ الْوَظِيفَةِ د وظيفې د نه بدلېدلو په وجه.

**اللغات:** ﴿تضعيف﴾ دووچندي، دوچندوالی، ﴿حادث﴾ نوی (جديد).

**تشريح:** مسئله: دا ده كه دا مځكه له تغلبي څخه يو مسلمان رانيوله، يا تغلبي په خپله مسلمان سو، نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز په هغې كي هم دوچنده عشر واجب دی، برابره ده كه دا دوچنده كېدل اصلي وي (په دې توګه چي تغلبي ته دا مځكه له خپل پلار څخه په ميراث كي په لاس ورغلې وي، او له هغه وخته څخه په دې كي دوچندي وي)، او كه حادث وي (په دې توګه چي تغلبي دا مځكه له يوه مسلمان څخه رانيولې وي، نو پر تغلبي دوچنده عشر واجب سوی وي، حال دا چي مځكي په دې كي يو عشر وي، نو په دې مځكه كي تضعيف حادث يعني نوی سو)، دليل دا دی چي د

---

• القول الراجح: قول ابى حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۲، ص: ۵۶. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۸۲]

عشر دوچنده کېدل د دې مځکي وظيفه سوه، نو دا مځکه چي کله هم د يو مسلمان و طرف ته نقل کيږي، نو د خپلو ټولو وظيفو يعني د ټولو خرچو او بار سره نقل کيږي، لکه خراج چي هم نقل کيږي، يعني که مسلمان له يو نمي شخه خراجي مځکه رانيوله، نو دا مځکه به د خراج سره د مسلمان و طرف ته نقل کيږي، تر دې چي څرنګه له ذمي شخه خراج اخيستل کېدی، همداسي به له مسلمان شخه هم اخيستل کيږي.

وقال ابو يوسف الخ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې تغلبي په مځکه کي چي کوم دوچنده عشر وو، هغه به منسوخه کيږي او د يوه عشر و طرف ته به راګرځي، ځکه چي د عشر د دوچنده کېدلو سبب او باعث د تغلبي کفر وو، لېکن کله چي له تغلبي شخه مسلمان دا مځکه رانيوله، يا تغلبي په خپله مسلمان سو، نو هغه سبب يعني کفر ختم سو، او کله چي د دوچندی سبب ختم سو، نو دوچنده اخيستل به هم ختميږي، او يو عشر به اخيستل کيږي.

قال في الكتاب الخ فرمايي چي د مبسوط په کتاب الزكاة کي د امام محمد رَحِمَهُ الله صحيح قول همدغه ذکر سوی دی چي که د تغلبي عشري مځکه يو مسلمان رانيوله يا تغلبي په خپله مسلمان سو، نو په هغه کي به يو عشر واجبيږي، نه دوچنده عشر، لېکن صاحب د هدايې وايي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله د مذهب په باره کي د کتابو په نسخو کي ډېر اختلاف دی، لېکن صحيح دا ده چي د دوچندی د پاته کېدلو په باره کي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی، خو په دې شرط چي اصلي دوچندی وي، ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حادثه دوچندي بالکل نه ثابتيږي، ځکه چي د هغه په نېز په وظيفه (حکم) کي تغير او تبدل نه راځي، لهذا د هغه په نېز چي يو وار د مځکي لپاره کومه وظيفه او حکم متعين سي، نو هغه به تر قيامته د دې مځکي وظيفه او حکم وي.

## که مسلمان مځکه پر عيسايي ذمي خرڅه کړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ كَانَتِ الْأَرْضُ لِمُسْلِمٍ او که مځکه د يو مسلمان وي بَاعَهَا مِنْ نَصْرَانِيٍّ او پر نصراني يې خرڅه کړي يُرِيدُ بِهِ ذِمِّيًّا غَيْرَ تَغْلِبِيٍّ له نصراني شخه مراد هغه نصراني دی چي ذمي وي تغلبي نه وي وَقَبَضَهَا او نصراني پر هغې قبضه وکړي فَعَلَيْهِ الْخَرَاجُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر دې نصراني خراج واجب دی لِأَنَّهُ أَلْيَقُ بِحَالِ الْكَافِرِ ځکه چي خراج د کافر د حال سره زيات مناسب دی وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ الله عَلَيْهِ الْعُشْرُ مُضَاعَفًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه دوچنده عشر واجب دی وَيُصْرَفُ مَصَارِفَ الْخَرَاجِ او هغه به د خراج په مصارفو کي مصرفيږي اِعْتِبَارًا بِالتَّغْلِبِيِّ پر تغلبي سري باندي په قياسولو سره وَهٰذَا أَهْوَنُ مِنَ التَّبْدِيلِ او دا د حکم له بدلېدلو شخه زيات آسانه دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ الله هِيَ عُشْرِيَّةٌ عَلَى حَالِهَا او د امام د محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا مځکه پر خپل (مخکيني) حالت عشري (پاته) ده لِأَنَّهُ صَارَ مُؤْنَةً لَهَا ځکه چي عشر د دې مځکي بار (او خرڅ) سو فَلَا يَتَبَدَّلُ كَالْخَرَاجِ نو د خراج په ډول به هغه نه بدليږي ثُمَّ فِي رِوَايَةٍ: يُصْرَفُ مَصَارِفَ الصَّدَقَاتِ بيا د امام محمد رَحِمَهُ الله په يوه روايت کي دي: چي دا عشر به د زكاة په مصارفو کي مصرفيږي (يعني زكاة مصارفو ته به ورکول کيږي) وَفِي رِوَايَةٍ: يُصْرَفُ مَصَارِفَ الْخَرَاجِ او په يوه روايت کي دي: چي د خراج په مصارفو کي به مصرفيږي.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو مسلمان خپله عشري مځکه پر یو غیر تغلبي ذمي خرڅه کړي، او ذمي پر هغه قبضه وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه ذمي خراج واجب دی، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه دوچنده عشر واجب دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه یو عشر واجب دی.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چي د کافر د حال سره خراج زیات مناسب دی، ځکه چي په خراج کي د عقوبت او سزا معنی ده، او کافر د سزا زیات لایق دی، نو ځکه به پر دې ذمي خراج واجب وي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** قیاس دی یعني غیر تغلبي ذمي پر تغلبي قیاسوي، یعني څرنګه چي د بنوتغلب پر خلګو دوچنده عشر واجب دی، همدارنګه به پر غیر تغلبي ذمیانو هم دوچنده عشر واجب وي، لېکن د دې عشر مصرف به هغه وي کوم چي د خراج مصرف دي، (ځکه چي دا په حقیقت کي خراج دی)، او فرمایي چي عشر دوچنده کول په نسبت د عشر و بدلولو ته آسانه دي، یعني عشر دوچنده کول فقط د عشر وصف بدلول دي، لېکن د عشر پر ځای خراج واجبول د عشر بدلول دي، او تغیر في الوصف آسانه دی په نسبت د شي و بدلولو ته، نو ځکه به دوچنده عشر واجبېږي.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چي عشر د دې مځکي تاکلی بار (او مؤنث) دی، یعني په دې مځکه کي له مخکي څخه عشر تاکل سوی دی، نو اوس به هم هغه عشر پاته وي، ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مالک په بدلېدلو سره د مځکي تاکلي او مقرره سوې وظیفه نه بدلېږي، نو د مسلمان سره په دې مځکه کي عشر واجب وو، او کله چي د کافر په قبضه کي راغله، نو هم به عشر پر واجب وي، په دې کي به هیڅ بدلون نه راځي، لکه خراج یعني څرنګه چي د کافر په مځکه کي خراج واجب دی، نو اوس که د کافر مځکه د مسلمان په قبضه کي راسي، نو پر مسلمان به هم هغه خراج واجب وي، بیا دې د مصرف په باره کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه دي: یو دا چي د دې مصرف به د زکاة مصارف وي، دویم دا چي د دې مصرف به د خراج مصارف وي.

## که د ذمي رانیول سوې مځکه د بل مسلمان په ملکیت کي د شفعي په وجه یا په یوه بله وجه راسي نو څه حکم دی؟

> **فَإِنْ أَخَذَهَا مِنْهُ مُسْلِمٌ بِالشُّفْعَةِ** بیا که دا مځکه یو مسلمان د شفعي په ذریعه له ذمي څخه واخلي **أَوْ رُدَّتْ عَلَى الْبَائِعِ لِفَسَادِ الْبَيْعِ** یا د بیعي د فاسدېدلو په وجه دا مځکه خرڅونکي ته واپس کړی سي **فَهِيَ عُشْرِيَّةٌ كَمَا كَانَتْ** نو دا مځکه به عشري وي لکه څرنګه چي (مخکي) وه **أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِتَحَوُّلِ الصَّفْقَةِ إِلَى الشَّفِيعِ** هر چي اول دی (یعني چي مسلمان د شفعي په ذریعه له ذمي څخه مځکه واخلي) نو هغه د شفیع و طرف ته د صفقې د نقل کېدلو په وجه دی **كَأَنَّهُ اشْتَرَاهَا مِنَ الْمُسْلِمِ** ګواکي دا مځکه مسلمان له مسلمان څخه رانیوله **وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّهُ بِالرَّدِّ وَالْفَسْخِ بِحُكْمِ الْفَسَادِ جَعَلَ الْبَيْعَ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ** او هر چي دویم دی (یعني چي د بیعي د فاسدېدلو په وجه مځکه د بائع و طرف ته واپس کړی سي) نو هغه ځکه چي د فساد په حکم سره د مځکي د واپس کولو او د بیعي د فسخ کولو په وجه بیع داسي سوه چي ګواکي سوې نه ده (یعني بیع کالعدم سوه) **وَلِأَنَّ حَقَّ الْمُسْلِمِ لَمْ يَنْقَطِعْ بِهَذَا الشِّرَاءِ** او په دې وجه (هم) چي د دغه رانیولو په وجه د مسلمان حق (له دغه مځکي څخه) ختم نه سو **لِكَوْنِهِ مُسْتَحَقَّ الرَّدِّ** ځکه چي دا بیع (خو) د واپس کولو مستحق وه.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده كه له مسلمان څخه ذمي ځمكه رانيوله، بيا بل مسلمان د شفعي د حق دعوىٰ وكړه، او دا ځمكه يې له ذمي څخه واخيستله، يا د بيعي د فاسدېدلو په وجه هغه ځمكه بيرته بائع (خرڅونكي) ته ردّ كړل سوه، نو هغه ځمكه چې څرنګه د بائع مسلمان سره عشري وه، همدارنګه به تر شفعي او ردّ وروسته هم عشري وي، ځكه چې په اول صورت كې يعني چې كله د دې ځمكي شفيع پيدا سو، نو د بيع صفقه له مسلمان بائع څخه د مسلمان شفيع و طرف ته نقل سوه، او په مينځ كې د ذمي واسطه او بيع بالكل ختم سوه، او بيع داسي سوه چې ګواكي له مسلمان بائع څخه مسلمان شفيع ځمكه رانيوله، او ښكاره ده چې كله له يوه مسلمان څخه بل مسلمان ځمكه رانيسي، نو په هغه كې به عشر واجب وي، او په دويم صورت كې يعني چې كله د بيعي د فاسدېدلو په وجه هغه ځمكه مسلمان بائع ته واپس كړى سوه، نو دا بيع كالعدم سوه، او داسي سوه چې ګردسره د مسلمان او ذمي په مينځ كې بيع سوې نه ده، او ښكاره ده چې كله بيع سوې نه وي، نو څرنګه چې مخكي هغه ځمكه عشري وي، همدارنګه به وروسته هم عشري وي، په دې لړ كې دويم دليل دا دى چې كله بيع فاسده سوه او د ردّ كولو مستحق سوه، نو له مسلمان بائع څخه هم د ځمكي حق منقطع نه سو او كله چې له ځمكي څخه د مسلمان حق منقطع نه سو، نو بيا په دې كې د خراج او د دوچندي واجبول هيڅ معنىٰ نه لري.

## كه د يو مسلمان سره يو مختط كور وي او هغه باغ ځني جوړ كړي نو د عشر حكم

قال: وَإِذَا كَانَتْ لِمُسْلِمٍ دَارُ خُطَّةٍ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې كه د يو مسلمان سره يو مختط كور وي فَجَعَلَهَا بُسْتَانًا فَعَلَيْهِ الْعُشْرُ او مسلمان له هغه څخه باغ جوړ كړي نو پر هغه عشر واجب دى مَعْنَاهُ إِذَا سَقَاهُ بِمَاءِ الْعُشْرِ مطلب يې دا دى چې كله يې دا باغ په عُشري اوبو سره اوبه كړى وي وَأَمَّا إِذَا كَانَتْ تُسْقَى بِمَاءِ الْخَرَاجِ لېكن كه دا په خراجي اوبو سره اوبه سوى وي فَفِيهَا الْخَرَاجُ نو بيا خراج پكښي واجب دى لِأَنَّ الْمُؤْنَةَ فِي مِثْلِ هٰذَا تَدُورُ مَعَ الْمَاءِ ځكه چې په دا ډول ځمكه كې د خرڅې مدار پر اوبو باندې دى.

**اللغات:** ﴿دار خطة﴾ هغه كور ته ويل كيږي چې كله د كافرانو هيواد فتح سي نو د مسلمانانو باچا يو سړى د يو كور مالک جوړ كړي او هغه ته يې وركړي (چې دا ستا كور به ستا په تصرف كې وي)، ﴿بستان﴾ باغ، ﴿تدور﴾ د نصر د باب مضارع ده: ګرځېدل، مدار كېدل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخكي په دې خبره پوه سئ چې د عشري ځمكي د ښاه ګانو اوبو ته، او د باران او د لوى درياب اوبو ته عشري اوبه ويل كيږي، او د عجمو باچاهانو د كيندل سوو نهرونو او ويالو اوبو ته خراجي اوبه ويل كيږي، همدارنګه د خرامي ځمكي د ښاه او درياب اوبو ته هم خراجي اوبه ويل كيږي. (بنايه)

**مسئله:** دا ده كه د يو مسلمان سره مختط كور وي، يعني د دار الحرب د فتح كېدلو په وخت كې امامُ المسلمين يو كور د يو مسلمان په نامه كړى وي، او بيا دا مسلمان له دې كور څخه باغ جوړ كړي، نو اوس كه هغه مسلمان دا باغ په عشري اوبو سره اوبه كوى، نو په دې كې به عشر واجب وي، او كه په خراجي اوبه سره يې اوبه كوى، نو په دې كې به خراج واجب وي، ځكه چې په دا ډول ځمكه كې د خرڅې او ټيكس دارومدار پر اوبو دى، نو څرنګه چې اوبه وي هغسي به ټيكس هم وي.

## د مجوسي په کور او باغ کې څه حکم دی؟

وَلَيْسَ عَلَى الْمَجُوسِيِّ فِيْ دَارِهِ شَيْءٌ او پر مجوسي په خپل کور کې هيڅ واجب نه دی لِأَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جَعَلَ الْمَسَاكِنَ عَفْوًا ځکه چې حضرت عمر رَحِمَهُ الله کورونه معاف کړي دي وَإِنْ جَعَلَهَا بُسْتَانًا فَعَلَيْهِ الْخَرَاجُ او که مجوسي له خپل کور څخه باغ جوړ کړی نو پر هغه خراج واجب دی وَإِنْ سَقَاهَا بِمَاءِ الْعُشْرِ که څه هم هغه يې په عشري اوبو سره اوبه کړی وي لِتَعَذُّرِ إِيْجَابِ الْعُشْرِ ځکه چې عشر واجبول ستونزمن دي إِذْ فِيْهِ مَعْنَى الْقُرْبَةِ ځکه چې په عشر کې د عبادت معنیٰ سته فَيَتَعَيَّنُ الْخَرَاجُ نو ځکه به خراج ټاکل کيږي وَهُوَ عُقُوبَةٌ او خراج يو سزا ده تَلِيْقُ بِحَالِهِ چې هغه د کافر د حال سره لايق ده وَعَلَى قِيَاسِ قَوْلِهِمَا يَجِبُ الْعُشْرُ فِي الْمَاءِ الْعُشْرِيِّ او د صاحبينو د قول د قياس مطابق به په عشري اوبو کې عشر واجبيږي(يعني د صاحبينو پر قول باندې په تيلسولو سره به په عشري اوبو....) إِلَّا أَنَّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ عُشْرًا وَاحِدًا لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز يو عشر واجبيږي وَعِنْدَ أَبِيْ يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ عُشْرَانِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دوه عشره واجبيږي وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ او د دې دليل تېر سو ثُمَّ الْمَاءُ الْعُشْرِيُّ: مَاءُ السَّمَاءِ وَالْآبَارِ وَالْعُيُوْنِ وَالْبِحَارِ الَّتِيْ لَا تَدْخُلُ تَحْتَ وِلَايَةِ أَحَدٍ بيا عشري اوبه دغه اوبه دي: د آسمان اوبه، د څاه ګانو اوبه، د چينو اوبه، او د سمندرونو (غټو دريابونو) اوبه چې هغه د هيچا په ولايت کې داخل نه وي وَالْمَاءُ الْخَرَاجِيُّ الْأَنْهَارُ الَّتِيْ شَقَّهَا الْأَعَاجِمُ او خراجي اوبه هغه نهرونه دي کوم چې عجمو کنبلي وي وَمَاءُ جَيْحُوْنَ وَسَيْحُوْنَ وَدِجْلَةَ وَالْفُرَاتِ عُشْرِيٌّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د جيحون، سيحون، دجله او فرات اوبه عشري دي لِأَنَّهُ لَا يَحْمِيْهَا أَحَدٌ كَالْبِحَارِ ځکه چې د سمندرونو په ډول د دې دريابونو(هم) څوک حفاظت نه کوي وَخَرَاجِيٌّ عِنْدَ● أَبِيْ يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز خراجي دي لِأَنَّهُ يُتَّخَذُ عَلَيْهَا الْقَنَاطِيْرُ مِنَ السُّفُنِ ځکه چې پر دې دريابونو باندې د کښتيانو پُلونه جوړيږي وَهٰذَا يَدٌ عَلَيْهَا او دا پر دې دريابونو (يو ډول) قبضه ده.

**اللغات:** ﴿عقوبة﴾ سزا، ﴿تليق﴾ د ضرب د باب مضارع ده: لايق کېدل، ﴿آبار﴾ جمع د بئر ده: څاه، ﴿شقها﴾ د نصر د باب ماضي ده: کنبل، کيندل، ﴿جيحون، سيحون﴾ د آسيا دوه دريابونه(سيندونه) دي، ﴿دجلة، فرات﴾ د عراق دوه دريابونه دي، ﴿قناطير﴾ جمع د قنطرة ده: پُل (پر والې يا درياب د پاسه د تېرېدلو لپاره جوړه سوې لاره)، ﴿سفن﴾ جمع د سفينة ده: کښتۍ.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې پر مجوسي(اور لمانځونکي) باندې د هغه په کور کې هيڅ ټيکس او لګښت نسته، لکه څرنګه چې د مسلمانانو، هندوانو، يهودو، او نصارا وو په کور کې هم هيڅ ټيکس او لګښت نسته، دليل دا دی چې امير

---

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال في الهندية: و أما ماء سيحون و دجلة والفرات فخراجي عند الشيخين، كذا في الكافي، الهندية ج:۱، ص: ۱۸۷. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۸۳]

المؤمنين حضرت عمر بن الخطاب ﷺ د مجوسيانو ځايونه او کورونه معاف کړي دي، لکه څنګه چې صاحب د عنايې ليکلي دي چې عبد الرحمن بن عوف ﷺ وفرمايل: "ما له رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي: سنوا بالمجوس سنة أهل الکتاب... الحديث، (يعني د مجوسيانو سره د اهل کتابو په ډول سلوک او رويه وکړئ، لېکن د هغو د ښځو سره نکاح مه کوئ او مه د هغو ذبيحه خورئ)". حضرت عمر ﷺ چې کله دا واورېدل، نو پر دې يې عمل وکړی، او خپل عاملينو ته يې حکم وکړی چې د مجوسيانو ځمکې اندازه کړئ، او پر هره ځمکه د هغې په اندازه خراج مقرر کړئ، او د هغوی کورونه، او د کورو ونې پرېږدئ. (بنايه ج:۳، ص:۵۱۴)، نو له هغه وخت څخه پر دې خبره اجماع منعقد سوې ده چې په کورو کي به هيڅ ډول خراج او نور نه واجبيږي.

وإن جعلها بستان الخ او که مجوسي له خپل کور څخه باغ جوړ کړی، نو پر هغه به خراج واجب وي، که څه هم هغه يې په عشري اوبو سره اوبه کړی وي، ځکه چې پر مجوسي عشر واجبول ستونزمن دي، ستونزمن ځکه دي چې په عشر کي د طاعت او عبادت معنیٰ ده، او د کافر له طرفه عبادت نه سي متحقق کېدلای، نو ځکه به خراج تاکل کيږي، او په خراج کي د سزا او عقوبت معنیٰ ده، چې هغه د کافر د حال سره زيات مناسبه ده، نو ځکه وويل سوه چې که څه هم په عشري اوبو سره يې اوبه کړی وي، لېکن په هغه کي به واجب خراج وي، نه عشر.

**اعتراض:** دلته يو اعتراض کيږي (کوم چې صاحب د عنايې او نورو پر دې موقع ذکر کړی دی)، هغه دا چې آيا د عشر يا د خراج په واجبېدلو کي به د اوبو اعتبار کيږي که د هغه سړي د حال اعتبار کيږي چې پر هغه عشر يا خراج واجب سوی وي، که تاسو د اول اعتبار کوئ، نو پر دې مجوسي عشر واجبېدل پکار دي، ځکه چې ده خپل باغ په عشري اوبو سره اوبه کړی دی، او که د دويم اعتبار کوئ، نو دا به د مصنف رَحِمَهُ الله د دې قول: لأن المؤنة في مثل هذا تدور مع الماء مناقض او مخالف وي، ځکه چې تاسو به اعتبار کوئ د هغه سړي د حال چې پر هغه عشر يا خراج واجب سوی وي، او مصنف وايي چې د مؤنت يعني د عشر او خراج مدار پر اوبو دی، يعني څرنګه چې اوبه وي، هغسې به مؤنت واجبيږي، لهذا د عشري اوبو په صورت کي به عشر او د خراجي اوبو په صورت کي به خراج واجبيږي.

**جواب:** دا دی چې اعتبار خو به د اوبو کيږي، لکه څرنګه چې مصنف ويلي دي، لېکن د حکم د واجبېدلو شرط دا دی چې هغه به پر خپل محل واقع وي، او کافر د عشر د واجبېدلو محل نه دی، ځکه چې عشر عبادت دی او کافر د عبادت محل نه دی، لنډه دا چې د عشري اوبو په وجه پر مجوسي عشر واجبېدل پکار وو، لېکن په هغه کي د واجبېدلو د شرط د نشتوالي په وجه عشر واجب نه کړی سو، بلکي خراج واجب کړی سو.

لېکن بيا اعتراض کيږي چې پر مسلمان ولي خراج واجبيږي؟ حال دا چې په خراج کي ذلالت دی، او مسلمان د ذلالت محل نه دی، جواب دا دی چې د ځمکي په خراج کي هيڅ ذلت نسته، ذلالت خو په هغه وخت کي دی، چې پر خلکو جزيه او خراج واجب کړی سي (يعني چې د هر سړي پر سر جزيه او خراج ځني واخيستل سي).

وعلى قياس قولهما الخ په دې مسئله کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر قول د قياس تقاضا دا ده چې که مجوسي دا باغ په عشري اوبو سره اوبه کړی وو، نو د هغو په نيز عشر واجبيږي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز يو عشر واجبيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دوچنده عشر واجبيږي، د دواړو دليلونه په تېرو صفحو کي ذکر سول، هلته يې وګورئ.

ثم السالہ العشری الخ پاته سوه دا خبره چي عشري اوبه او خراجي اوبه کومو اوبو ته ويل کيږي، نو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د باران، څاه ګانو، چينو او د هغو سمندرونو (او سيندونو) اوبه چي هغه د يو باچا يا عام سري په ولايت کي داخل نه وي، هغو ټولو ته عشري اوبه ويل کيږي، او د هغو نهرونو اوبه کوم چي عجمي باچاهانو کيندلي وي، يعني د اسلام تر راتګ مخکي د جاهليت باچاهانو کيندلي وي، لکه نہر يزدجرا و نہر مرورود، هغو ته خراجي اوبه ويل کيږي.

وماء جيحون جيحون په ترمذ کي د يو درياب نوم دی، او سيحون په تاشقند کي د يو درياب نوم دی (ترمذ او تاشقند دواړه اوس په ازبکستان کي دي)، او دجله په بغداد کي د يو درياب نوم دی، او فرات د کوفې د درياب نوم دی، د دې څلور سره وو دريابونو اوبه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز عشري دي، ځکه چي د غټو دريابونو په ټول د دې دريابونو هم هيڅ محافظ او متولي نشته، او کومي اوبه چي د يو چا په ولايت کي نه وي، هغه ته عشري اوبه ويل کيږي، نو د دې دريابونو اوبه به هم عشري وي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د دې دريابونو اوبه خراجي دي، ځکه چي پر دې دريابونو د کښتيو لپاره پلونه جوړيږي، او دا کار پر دې دريابونو يو ډول قبضه ده، او پر کومو دريابونو چي د يو چا قبضه او لاس وي، د هغو اوبو ته خراجي ويل کيږي، نو ځکه به د دې دريابونو اوبه خراجي وي.

## د بنو تغلب د ښځي او د بنو تغلب د کوچني حکم

> بِلِ أَرْضِ الصَّبِيِّ وَالْمَرْأَةِ التَّغْلِبِيَّيْنِ او د تغلبي کوچني او د تغلبي ښځي په مځکه کي دومره (عشر) واجب دی مَالِ أَرْضِ الرَّجُلِ التَّغْلِبِيِّ څومره چي د تغلبي سړي په مځکه کي واجب دی يَعْنِيْ الْعُشْرُ الْمُضَاعَفُ فِي الْعُشْرِيَّةِ يعني په عشري مځکه کي (يې) دوچنده عشر واجب دی وَالْخَرَاجُ الْوَاحِدُ فِي الْخَرَاجِيَّةِ او په خراجي مځکه کي (يې) خراج واجب دی لِأَنَّ الصُّلْحَ قَدْ جَرَى عَلَى تَضْعِيفِ الصَّدَقَةِ ځکه (د هغو سره) د صدقې پر دوچندۍ صلح سوې وه دُوْنَ الْمُؤْنَةِ الْمَحْضَةِ نه پر محض خرچه باندي ثُمَّ عَلَى الصَّبِيِّ وَالْمَرْأَةِ إِذَا كَانَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ الْعُشْرُ بيا که کوچنی او ښځه له مسلمانانو څخه وي نو پر هغوی عشر واجب دی فَيُضَعَّفُ ذٰلِكَ إِذَا كَانَا مِنْهُمْ خو کله چي دا دواړه له بنو تغلب څخه وي نو عشر به دوچنده کيږي.

تشريح: مسئله: دا ده چي د بنو تغلب د کوچني او ښځي په مځکه کي هم دوچنده عشر واجب دی، او په خراجي مځکه کي يې هم يو خراج واجب دی، دليل دا دی چي د امير المؤمنين عمر بن خطاب رضي الله عنه او د بنو تغلب په مينځ کي چي کومه صلح سوې وه، هغه پر داسي دوچندۍ (تضعيف) باندي سوې وه، چي په هغه کي به د عبادت معنیٰ وي، لکه زکاة، عشر او نور، او پر مؤنتِ محضه (يعني پر فقط خرچه او بار) باندي صلح سوې نه وه ځکه چي په دې کي بالکل د عبادت معنیٰ نشته، لکه خراج چي هم دغه ډول دی، نو که کوچنی او ښځه له مسلماني کورنۍ څخه وای نو پر هغو به يو عشر واجبېدلای، ليکن کله چي دا تغلبي دي، نو پر دوی به دوچنده عشر واجبيږي، لکه څرنګه چي د صلحي په ذريعه سره دا پريکړه سوې وه.

## د تېلو په چينو کي د عشر او نورو حکم

قَالَ: وَلَيْسَ فِيْ عَيْنِ الْقِيْرِ وَالنِّفْطِ فِيْ أَرْضِ الْعُشْرِ شَيْءٌ فرمايي: او واجب نه دی هيڅ شی د تارکول او د نفت په چينو کي په عشري مځکه کي لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَنْزَالِ الْأَرْضِ ځکه چي تارکول او نفت (يو هم) د مځکي له پيداوار (حاصلاتو) څخه نه دي وَإِنَّمَا هُوَ عَيْنٌ فَوَّارَةٌ كَعَيْنِ الْمَاءِ (بلکي) هغه خو په جوش سره راوتونکي چينې دي لکه د اوبو چينه وَعَلَيْهِ فِيْ أَرْضِ الْخَرَاجِ خَرَاجٌ او پر هغو په خراجي مځکه کي خراج واجب دی وَهٰذَا إِذَا كَانَ حَرِيْمُهُمَا صَالِحًا لِلزِّرَاعَةِ او دا حکم په هغه صورت کي دی چي د هغو شاوخوا مځکه د کښت و کروندې ورتيا لري لِأَنَّ الْخَرَاجَ يَتَعَلَّقُ بِالتَّمَكُّنِ مِنَ الزِّرَاعَةِ ځکه چي خراج تعلق لري پر کښت باندي د قدرت لرلو سره (يعني خراج هغه وخت واجبيږي چي کله انسان ته پر کښت کرني قدرت وي).

**اللغات:** ﴿قير﴾ تارکول، تور تېل، قطران (يوه گاټه سرښناکه توره مايع ماده ده چي تونده بوی لري او زياتره د سړکونو په جوړولو کي کار ځني اخيستل کيږي)، ﴿نفط﴾ نفت، د خاورو تېل، پيټرول، ﴿أنزال﴾ جمع د نزلة ده: پيداوار (هغه چي له مځکي څخه پيدا کيږي او له مځکي څخه حاصليږي)، حاصلات، ﴿حريم﴾ د شا واخوا مځکه، ﴿تمكّن﴾ د تفعّل مصدر دی: قدرت او طاقت لرل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي د تارکول او نفت په چينو کي عشر واجب نه دی، که څه هم دا په عشري مځکه کي وي، ځکه چي د عشر د واجبېدلو تعلق د پيداوار (حاصلاتو) سره دی، او قير او نور د مځکي له پيداوار څخه نه دي، بلکي دا هم د اوبو د چينې په ډول په جوش سره راوځي، نو کله چي دا د مځکي له پيداوار څخه نه سول، نو بيا به په دې کي عشر هم واجب نه وي، او که دا چينې په خراجي مځکه کي وي، او د دې چينو د شا واخوا مځکي د کښت و کروندې صلاحيت هم لري، نو بيا په دې کي خراج واجب دی، ځکه چي د خراج تعلق د پيداوار سره نه دی، بلکي خراج پر کښت باندي د قدرت درلودلو سره تعلق لري، لهذا که د تارکول او د نفت د چينو شا وخوا مځکي د کښت قابلي وي، نو په دې کي به خراج واجب وي (ځکه چي دا پر کښت کرلو قدرت لرل سو)، هغه که مالک کښت پکښې وکړي او که نه، په دواړو صورتونو کي به خراج پکښې واجب وي.



# بَابُ مَنْ يَجُوْزُ دَفْعُ الصَّدَقَاتِ إِلَيْهِ وَمَنْ لَا يَجُوْزُ

(دا) باب د هغو خلکو په بيان کي دی چي هغو ته زکاة ورکول جائز دي او چي هغو ته زکاة ورکول جائز نه دي

**تشريح:** صاحب د هدايې د زکاة او د زکاة له انواعو څخه تر فراغت وروسته په دې باب کي د زکاة (يعني د صدقاتو) مصارف بيانوي (يعني چي زکاة به پر چا مصرفيږي، او چا ته به زکاة ورکول کيږي). په لنډه توګه تاسو دا په ياد لرئ چي په قرآن کريم کي د زکاة ټوله اته (٨) مصارف او اقسام بيان سوي دي، چي له هغو څخه اوس يو قسم ساقط دی، لهذا اوس د زکاة او صدقاتو ټوله اووه (٧) مصارف دي چي د هغو تفصيل به په دې باب کي ذکر سي.

## د زکاة د مصارفو بيان

قَالَ (رض): **اَلْأَصْلُ فِيْهِ قَوْلُهُ تَعَالىٰ: ﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ...﴾** [التوبة، ٦٠] **الْآيَةُ** مصنف د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې باره کي د الله تعالیٰ دا فرمان اصل دی: إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ... الخ **فَهٰذِهِ ثَمَانِيَةُ أَصْنَافٍ** نو دا اته (٨) قسمونه دي **وَقَدْ سَقَطَ مِنْهَا الْمُؤَلَّفَةُ قُلُوْبُهُمْ** او له هغو څخه مؤلفةُ القلوب ساقط سوي دي **لِأَنَّ اللهَ تَعَالىٰ أَعَزَّ الْإِسْلَامَ وَأَغْنىٰ عَنْهُمْ** ځکه چي الله تعالیٰ اسلام غالب کړی او له هغوی څخه يې بې پروا کړی **وَعَلىٰ ذٰلِكَ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ** او هم پر دې د صحابه وو اجماع منعقد سوه.

**اللغات:** ﴿أصناف﴾ جمع د صنف ده: اقسام، ﴿مؤلفة القلوب﴾ هغه خلک چي هغوی ته به ځکه زکاة ورکول کېدی چي زړونه يې نرم سي.

**تشريح:** عبارت خو بالکل ښکاره چي د زکاة ټوله اته (٨) مصارف دي، او دا اته سره د قرآن کريم په دې آيت کي ذکر سوي دي: إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ [التوبة، ٦٠]، د دې آيت په رڼا کي د زکاة او صدقاتو اول (١) مصرف فقيران دي، (٢) دويم مسکينان دي، (٣) دريم محصلين او اخيستونکي د زکاة دي، (٤) څلورم مؤلفة القلوب دي، (٥) پنځم رِقاب يعني د غلامانو بدل کتابت اداء کول او د هغو آزادول دي، (٦) شپږم غارمين يعني مقروضين (پور وړي) او نور دي، (٧) اووم مجاهدين دي، (٨) او اتم مسافرين دي، د اسلام په شروع کي ټوله دا اته مصارف وو، ليکن کله چي الله اسلام ته تقويه ورکړه، او هر طرف ته اسلامي بيرغ رپاند سو، نو بيا د ابو بکر ﷺ د خلافت په زمانه کي د حضرت عمر ﷺ په مشوره له دې اتو څخه يو مصرف او يو صنف يعني مؤلفة القلوب ساقط کړی سو، له مؤلفة القلوب څخه هغه خلک مراد دي، چي هغوی ته به نبي ﷺ د اسلام راوړلو په هيله څه مال ورکوی، يا له دې څخه هغه کمزوري عقيدې والا مسلمانان مراد دي، چي هغوی به په اسلام کي محکم او مضبوط نه پاته کېدله، نو هغوی ته به په اسلام کي د مضبوطېدلو لپاره څه مال ورکول کېدی، په قول د صاحب د عنايې د دې خلکو په لړليک کي د عيينه بن حصين، اقراع بن حابس او عباس بن مرادس په ډول د قريشو مشران هم ول، نبي ﷺ به دوی ته مال ورکوی، ليکن تر نبي ﷺ وروسته د ابو بکر ﷺ په زمانه کي له هغو څخه مال بند سو، نو ځکه د ابو بکر ﷺ د خلافت په زمانه کي يو وار اول دوه خلک يعني

عیینه بن حصین او اقرع بن حابس ابو بکر ﷺ ته د خپلې مځکې د معافۍ لپاره راغله چې زمونږ له مځکو څخه دې عشر او خراج معاف کړی سي، ځکه چې مونږ خو مؤلفة القلوب یو، نو د دوی په باره کې حضرت ابو بکر ﷺ خط ولیکی، او دوی دا خط د شهادت لپاره حضرت عمر ﷺ ته راوړی، حضرت عمر ﷺ هغه خط ټوټه ټوټه کړی، او ورته فرمایل: "چې په خلاصو غوږو سره واورئ، ستاسو سره چې کوم رعایت کېدی، هغه د اسلام په حواله سره وو، لېکن اوس له دې رعایت څخه د ناجائزې فایدې اخیستلو کوښښ مه کوئ، او که په شرافت سره په اسلام کې اووسئ، نو خوره ده، کنې زماتوره به فیصله کوي، ولاړسئ، ستاسو مځکې به هیڅوک معافې نه کړي"، دوی بیر ته حضرت ابو بکر ﷺ ته راغله، او وې ویل: چې ته خلیفه یې او که عمر؟ ابو بکر ﷺ وفرمایل: "انشاء الله هغه خلیفه دی"، نو له هغه وخت څخه د مؤلفة القلوب مصرف ساقط سو، او د دې مصرف پر ساقطېدلو باندې ګواکې د صحابه وو سکوتي اجماع هم منعقده سوه (ځکه چې یوه صحابي هم له دې څخه انکار نه وکړی). (عنایه ج۲)

## د"فقیر" او "مسکین" تعریف او د دوی په مینځ کې فرق

وَالْفَقِيرُ مَنْ لَهُ أَدْنَى شَيْءٍ او فقیر هغه څوک دی چې د هغه سره لږ څه شی وي وَالْمِسْكِينُ مَنْ لَا شَيْءَ لَهُ او مسکین هغه څوک چې د هغه سره هیڅ شی (هم) نه وي وَهَذَا مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ● او دا تعریف له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه رانقل سوی دی وَقَدْ قِيلَ: عَلَى الْعَكْسِ او ویل سوي دي: چې دا تعریف د دې برعکس دی وَلِكُلٍّ وَجْهٌ او د هر تعریف لپاره دلیل سته ثُمَّ هُمَا صِنْفَانِ أَوْ صِنْفٌ وَاحِدٌ بیا فقراء او مساکین دوه قسمه دي یا (صرف) یو قسم دی سَنَذْكُرُهُ فِي كِتَابِ الْوَصَايَا إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى (چې) هغه به مونږ انشاء الله په کتابُ الوصایا کې ذکر کړو.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز مسکین هغه سړي ته ویل کېږي چې هغه بالکل خالي لاسی وي، یعنې هیڅ شی هم نه لري، تر دې چې د شپې پر ډوډۍ او پر یوه جوړه کالو هم قدرت نه لري، او فقیر هغه سړی دی چې د هغه سره څه نا څه شی وي، لېکن د نصاب څخه کم وي، یا د نصاب په اندازه وي، خو غیر نامي وي، او د هغه په ضرورت کې راګیر وي، په دې لړ کې د امام شافعي، امام طحاوي، امام مالک او اخفش رایه دا ده چې تعریف د دې برعکس دی، یعنې مسکین هغه ته ویل کېږي چې د هغه سره څه نا څه مال وي، او فقیر هغه دی چې هغه بالکل خالي لاسی وي.

**د امام شافعي دلیل:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د نورو حضراتو دلیل دا آیت دی: أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ، (یعنې خضر ﷺ چې کومه کښتۍ عیبجنه کړه هغه د مسکیناتو وه)، وګورئ په دې آیت کې د کښتۍ مالکانو ته مسکینان ویل سوي دي، له دې څخه معلومه سوه چې د مسکین سره به څه نا څه وي، او د فقیر سره به هیڅ نه وي، یعنې تر مسکین به زیات بدحاله وي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې په قرآن کې د مسکین حالت داسې بیان سوی دی: أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ، (یعنې مسکین د لوږې او لڅوالي په وجه د خاورو سره موښتی اوسیږي)، او هیڅ شی هم نه لري چې ورې خوري، مطلب دا چې مسکین له فقیر څخه زیات بدحاله او مفلس وي، ځکه چې د فقیر په باره کې د قرآن اعلان دا دی: لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في فتح القدير ج:۲، ص: ۲۰۲. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۸۲]

ﺍﻟﻠﻪِ ﻻ ﻳَﺴْﺘَﻄِﻴﻌُﻮﻥَ ﺿَﺮْﺑًﺎ ﻓِﻲ ﺍﻟْﺄَﺭْﺽِ ﻳَﺤْﺴَﺒُﻬُﻢُ ﺍﻟْﺠَﺎﻫِﻞُ ﺃَﻏْﻨِﻴَﺎﺀَ ﻣِﻦَ ﺍﻟﺘَّﻌَﻔُّﻒِ...الخ. (يعني د سوال نه کولو په وجه جاهلان خلک فقيرانو ته مالداره وايي، او فقيران مالداره ګڼي)، او دا خبره هغه وخت ممکنه ده چې د فقيرانو ښکاره حال ښه وي، او ښکاره حال هغه وخت ښه کيږي، چې کله د هغوی سره څه نا څه مال وي، له دې څخه معلومه سوه چې د فقير حالت به د مسکين په پرتله کې يو څه ښه وي. (عنايه، بنايه)

**جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کوم آيت په دليل کې ذکر کړی يعني: أَمَّا السَّفِينَةُ...الخ، د هغه جواب دا دی چې مساکين د دې کښتۍ مالکان نه ول، بلکې هغوی د دې کښتۍ خدمتګاران او مزدوران ول، او د کښتۍ په عيبي کولو سره د حضرت خضر عليه السلام مقصد دا وو، چې د دې بېچارګانو کسب او مزدوري ختمه نه سي؛ يا دا چې هغو عاريةً او په کرايه دا کښتۍ اخيستې وه، او په هغه سره به يې مزدوري او ګذاره کوله (نو ځکه د کښتۍ نسبت هغو ته وسو)، لکه څرنګه چې نن سبا هم غريبان خلک په کرايه سره موټران او داسې نور چلوي او په هغه سره د کور ګذاره کوي، لېکن د موټرانو نسبت هغو ته داسې کيږي چې ګواکې هغوی د دې مالکان دي (لېکن هغه په اصل کې د بل شتمن سړي وي).

ثم هو صنفان الخ فرمايي چې د زکاة په باره کې فقيران او مسکينان دواړه په يوه قسم کې راځي، يا په دوو قسمونو کې راځي، دا به موږ په پوره تفصيل سره انشاء الله په کتابُ الوصا کې ذکر کړو، لهذا لږ څه انتظار وکړئ.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی چې مسکين هغه څوک دی چې هيڅ شی ور سره نه وي، او فقير هغه دی چې څه نا څه مال لري. [القول الراجح ج۱، ص، ۱۸۲]

## د عامل تعريف او د هغه بيان

وَالْعَامِلُ يَدْفَعُ إِلَيْهِ الْإِمَامُ إِنْ عَمِلَ بِقَدْرِ عَمَلِهِ او عامل ته به امام د هغه د کار په اندازه مال ورکوي که يې کار کړی وي فَيُعْطِيهِ مَا يَسَعُهُ وَأَعْوَانَهُ نو دومره به ورکوي چې هغه د ده او د ده د مرستيالانو لپاره کافي سي غَيْرَ مُقَدَّرٍ بِالثُّمُنِ په داسې حال کې چې دا مال به د اتمې حصې سره خاص نه وي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ اِسْتِحْقَاقَهُ بِطَرِيقِ الْكِفَايَةِ ځکه چې د عامل مستحق کېدل د کفايت په توګه دي وَلِهَذَا يَأْخُذُ وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا او هم په دې وجه به عامل (هغه) اخلي که څه هم شتمن وي إِلَّا أَنَّ فِيهِ شُبْهَةَ الصَّدَقَةِ خو په دې کې د صدقې شبهه (هم) سته فَلَا يَأْخُذُهَا الْعَامِلُ الْهَاشِمِيُّ نو ځکه به يې هاشمي (سيّد) عامل نه اخلي تَنْزِيهًا لِقَرَابَةِ الرَّسُولِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ شُبْهَةِ الْوَسَخِ د رسولُ الله ﷺ قرابت له خيري (او چټلي) څخه د پاک ساتلو لپاره وَالْغَنِيُّ لَا يُوَازِيهِ فِي اِسْتِحْقَاقِ الْكَرَامَةِ او شتمن سړی د کرامت په مستحق کېدلو کې د هاشمي سره نه سي برابرېدلای فَلَمْ تُعْتَبَرِ الشُّبْهَةُ فِي حَقِّهِ نو ځکه د هغه په حق کې د شبهې اعتبار نه وسو.

**اللغات:** ﴿غير مقدر﴾ متعين او خاص به نه وي، ﴿ثمن﴾ اتمه حصه، ﴿تنزيه﴾ د تفعيل مصدر دی: پاک ساتل، ﴿وسخ﴾ خيري، چټلي، ﴿لا يوازی﴾ د مفاعلې د باب مضارع منفي ده: برابرېدل، مقابل کېدل، ﴿کرامة﴾ عزت، شرافت.

**تشريح:** په دې عبارت کې د زکاة د دريم مصرف او صنف يعني د عامل تعريف او تفصيل بيانيږي، دآيت په دې ټوکړه: والعاملين عليها کې هم د دغه عامل بيان سوی دی. او عاملين د عامل جمع ده، لغوي معنیٰ يې ده: کار کونکي، مزدوران. دلته له عاملين څخه هغه خلک مراد دي، چې هغوی د مسلمانانو امام د زکاة اخيستلو لپاره په بېلابېلو ځايونو کې ټاکلي او درولي وي، نو کله چې هغوی د اخيستلو کار پوره کړي، نو امامُ المسلمين به هغوی ته د خپل محنت او کار خرچه ورکوي، او دومره به ورکوي چې د هغو کافي سي، او د هغو سره چې کوم مرستيالان وي د هغو هم کافي سي، او څومره چې هغوی خپل وخت مصرف کړی وي، د هغه مطابق به يې ورکوي، داسي به نه کوي چې هغوی څومره زکاة راوړی وي د هغه اتمه حصه ورکړي، يعني اتمه حصه به نه ورکوي؛ لېکن تاسو دا خبره په ذهن کې په ياده لرئ چې که د هغوی خرچه د هغه زکاة او صدقاتو په اندازه سوه، کوم چې هغو د خلکو څخه راجمع کړي وي، نو په دې صورت کې به ټوله نه ورکول کيږي، بلکې د هغه زکاة او صدقاتو نيمی حصه به ورکول کيږي، همدا وجه ده چې زموږ په نيز چې عاملينو ته کوم څه ورکول کيږي، هغه به د کفايت په توګه ورکول کيږي (يعني څومره چې هغو خپل وخت مصرف کړی وي د هغه مطابق به په دومره اندازه ورکول کيږي چې د هغو کافي سي)، د اُجرت او مزدوری په توګه به نه ورکول کيږي، لکه څرنګه چې امام شافعي وايي يعني د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز چې کوم څه عاملينو ته ورکول کيږي، هغه به د اُجرت په توګه ورکول کيږي (يعني څومره زکاة چې يې راوړی وي د هغه اتمه حصه به ورکول کيږي)، لېکن زموږ په نيز به عاملينو ته د هغو د محنت او کار مطابق عوض ورکول کيږي، لېکن دا عوض به په اتمه، اوومه يا شپږمه حصه سره مقيّد او خاص نه وي، بلکې د کفايت په توګه به د هغو د عمل په حساب سره دومره ورکول کيږي چې د هغو کافي سي، او څرنګه چې دا عوض د زکاة په توګه نه دی، نو ځکه شتمن او مالدار عامل ته هم د دې د اخيستلو اجازه سته، که دا عوض د زکاة په توګه وای، نو د شتمن لپاره به دا شرعاً صحيح نه وای.

إلا أن فيه الخ له دې ځايه دا راښيي چې که څه هم عامل ته ورکړل سوی عوض او بدل د زکاة په توګه نه دی، بلکې د کفايت په توګه دی، نو په دې حواله سره د هر يوه لپاره د دې اخيستل صحيح معلوميږي، هغه که سيد وي، که هاشمي وي، خو څرنګه چې په دې کې څه نا څه د صدقې او زکاة شبهه سته، ځکه چې عاملين خلک دا د زکاة په نيت سره د عوض په توګه اخلي، نو ځکه سيد او هاشمي عامل ته دا عوض اخيستل پکار نه دي، ځکه چې د هغه نسبت سردارِ کونين رسولُ الله ته کيږي، نو په دې وجه هغه ته له شبهاتو الا شيانو څخه احتياط کول پکار دي، او دا سپېڅلی نسبت له خيري او چټلی څخه ژغورل پکار دي.

والغنی لايوازيه الخ لېکن که يو څوک اعتراض وکړي چې کله په دې عوض کې د زکاة شبهه سته، نو بيا د مالدار لپاره هم د دې اخيستل صحيح نه دي، حال دا چې تاسو يې د مالدار لپاره اخيستل صحيح ګرځوی، آخر څه وجه ده؟ د دې جواب ورکوي فرمايي چې هاشمي ته چې کوم عزت او شرافت حاصل دی، هغه غيرِ هاشمي ته نه سي حاصلېدای، که څه هم هغه د قارون غوندي خزانې ولري، نو د صدقې د شبهې په وجه به د هاشمي لپاره خو د دې عوض اخيستل صحيح نه وي، لېکن د غيرِ هاشمي لپاره به د دې ګنجايش وي، ځکه په دې عوض کې چې څرنګه د زکاة شبهه سته، همدارنګه د اُجرت شبهه هم پکښې سته، نو د هاشمي په حق کې به د زکاة د شبهې اعتبار کيږي، او د غيرهاشمي په حق کې به د اُجرت د شبهې اعتبار کيږي.

## د "في الرقاب" بيان

وَفِي الرِّقَابِ او د غاړو په آزادولو کي أَنْ يُعَانُ الْمُكَاتَبُونَ مِنْهَا فِي فَكِّ رِقَابِهِمْ او د غاړو آزادول دا دي چي د مکاتب غلامانو سره د هغوی د غاړو په خلاصولو کي مرسته وکړی سي وَهُوَ الْمَنْقُولُ او (د الرقاب) همدغه تفسير رانقل سوی دی.

**تشريح**: د زکاة له مصارفو څخه څلورم مصرف د غاړو خلاصول او آزادول دي، يعني مکاتب غلام ته به هم زکاة ورکول کيږي، چي هغه په دې زکاة سره خپل بدلِ کتابت اداء کړي، آزاد سي، او په بشپړه توګه په اسلام کي داخل سي، صاحب د هدايې فرمايي چي د الرقاب همدغه تفسير له رسول الله ﷺ څخه رانقل سوی دی.

## د "غارم" بيان

وَالْغَارِمُ مَنْ لَزِمَهُ دَيْنٌ او غارم هغه څوک دی چي پر هغه پور (قرض) لازم وي وَلَا يَمْلِكُ نِصَابًا فَاضِلًا عَنْ دَيْنِهِ او د داسي نصاب مالک نه وي چي هغه له پور څخه زيات وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: مَنْ تَحَمَّلَ غَرَامَةً فِي إِصْلَاحِ ذَاتِ الْبَيْنِ وَإِطْفَاءِ النَّائِرَةِ بَيْنَ الْقَبِيلَتَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: غارم هغه سړی دی چي (د مسلمانانو) د خپل مينځوي اختلاف په إصلاح کي يې او د دوو قومونو په مينځ کي يې د دښمنۍ د اور په مړه کولو کي مالي تاوان برداشت کړی وي (يعني مقروض سوی وي).

**اللغات**: ﴿غارم﴾ اسم فاعل دی: مقروض، پور وړی، ﴿ذات البين﴾ د خپل مينځ جنګ او اختلاف. ﴿إطفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: اُور مړه کول. ﴿نائرة﴾ اُور، جنګ، دښمني، سوځونکی.

**تشريح**: د امام قدوري رَحِمَهُ الله د بيان مطابق د زکاة د مصارفو پنځم قسم غارم دی، غارم هغه سړی دی چي پر هغه د خلکو قرض (پور) باندي وي، او د هغه سره چي څومره مال وي، قرض هغه ټوله مال نيولی وي، او له قرض څخه زيات د يو نصاب مالک نه وي (بيا برابره ده که هغه د اهل وعيال په وجه دومره مقروض سوی وي، او که د دوو قومونو په مينځ کي د صلحي په وجه)، مثلاً د يو سړي سره زر (۱۰۰۰) درهمه وي، او نهه سوه (۹۰۰) درهمه پر باندي وي، نو هغه ته زکاة ورکول جائز دي، ځکه چي په ۱۰۰۰ کي خو نهه سوه درهمه معلوم سول ځکه چي د هغه سره د قرض غوښتونکو حق متعلق دی، يعني داسي به ګڼل کيږي چي دا نهه سوه درهمه ګرد سره د هغه په ملک سته نه، پاته سوه سل درهمه نو هغه د نصاب په اندازه نه دي، نو ځکه به د هغه لپاره د زکاة مال اخيستل جائز وي.

وقال الشافعي الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي غارم هغه سړی دی چي هغه د دوو قومونو او ډلو په مينځ کي د صلحي کولو او د دښمنۍ د اُور د مړه کولو لپاره مالي تاوان زغملی وي، نو دا سړی که څه هم مالدار وي، د هغه لپاره زکاة اخيستل جائز دي، او زموږ په نيز دا سړی زکاة نه سي اخيستلای، هو! که د صلحي په وجه له هغه څخه دومره خرڅه لو مصرف وسو چي د نصاب مالک پاته نه سو، نو بيا يې اخيستلای سي، لېکن دا اخيستل به د غارم په وجه نه وي، بلکي د فقير په وجه به وي، يعني په دې وجه به وي چي هغه د نصاب مالک پاته نه سو.

## د "في سبيل الله" بيان

وَفِي سَبِيْلِ اللهِ او د الله په لاره کې مُنْقَطِعُ الْغُزَاةِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ (له دې څخه) د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هغه غازي (مراد) دی چې له مال څخه پاتې وي (يعني په جهاد کې مال ور سره نه وي) لِأَنَّهُ الْمُتَفَاهَمُ عِنْدَ الْإِطْلَاقِ ځکه چې له مطلق فی سبيل الله څخه همدغه فهمول کيږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ مُنْقَطِعُ الْحَاجِّ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز (يا له دې څخه) هغه حاجي (مراد) دی چې له خپل مال څخه پاتې وي (يعني په حج کې مال ور سره نه وي) لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّ رَجُلًا جَعَلَ بَعِيْرًا لَهُ فِي سَبِيْلِ اللهِ چې يو سړي خپل اوښ فی سبيل الله گرځولی وو (يعني د الله په لار کې يې وقف کړی وو) فَأَمَرَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [2] أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهِ الْحَاجَّ نو نبي ﷺ هغه ته حکم وکړی چې پر هغه دې حاجيان سپاره کړي وَلَا يُصْرَفُ إِلَى أَغْنِيَاءِ الْغُزَاةِ او پر مالدارو غازيانو به زکاة نه مصرفيږي (يعني نه به ورکول کيږي) عِنْدَنَا زموږ په نيز لِأَنَّ الْمَصْرِفَ هُوَ الْفُقَرَاءُ ځکه چې د زکاة مصرف (خو) فقيران دي.

**اللغات:** ﴿غزاة﴾ جمع د غازی ده: مجاهدين، ﴿متفاهم﴾ په فهم کې راتلونکي، ﴿بعير﴾ اوښ، ﴿مصرف﴾ د ضرب د باب اسم ظرف دی: د خرڅولو او مصرفولو ځای.

**تشريح:** په دې عبارت کې د زکاة شپږم مصرف بيانيږي، د زکاة شپږم قسم فی سبيل الله دی، او د في سبيل الله په مصداق کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز له دې څخه هغه غازي مراد دی چې د هغه سره خو په کور کې مال وي، ليکن د جهاد په سفر کې د هغه سره مال نه وي، نو داسې مجاهد د زکاة مصرف او مستحق دی، او هغه ته زکاة ورکول کېدای سي، ځکه في سبيل الله چې کله مطلق وويل سي، نو له هغه څخه همدغه مفهوم او مطلب په فهم کې راځي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز له فی سبيل الله څخه هغه حاجي مراد دی چې د حج په سفر کې د هغه سره مال نه وي، که څه هم په کور کې ور سره وي، نو هغه ته زکاة ورکول کېدای سي، امام محمد رَحِمَهُ الله خپل د دې مطلب په تائيد کې د يوه داسې سړي قصه ذکر کړې ده چې هغه خپل اوښ فی سبيل الله کړی وو (يعني د الله په لاره کې صدقه کړی وو)، او نبي ﷺ هغه ته دا حکم کړی وو چې پر دې حاجيان سپروه، څرنګه چې هغه د صدقې اوښ وو، او نبي ﷺ پر هغه د حاجيانو د سپرولو حکم کړی وو، نو له هغه څخه معلومه سوه چې له فی سبيل الله څخه هغه حاجي مراد دی چې د حج په سفر کې مفلسه سوی وي او د حج خرڅه ور سره نه وي، نو هغه ته به هم زکاة ورکول کيږي.

صاحب د هدايې دلته د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول نه دی ذکر کړی، علامه کاکي رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې په دې مسئله کې امام صاحب رَحِمَهُ الله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی، او د هغه په نيز هم له في سبيل الله څخه غازي مراد دی. (بنايه ج۳، ص۵۳۲)

---

[1] القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كذا في البحر الرائق ج:۲، ص: ۲۳۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۸۵]

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب العمرة، حديث رقم: ۱۹۸۸.

ولا يصرف الخ فرمايي چي زموږ په نيز به مالداره او شتمنو غازيانو ته زکاة نه ورکول کيږي، ځکه چي د زکاة مصرف خو نقراء دي، نو في سبيل الله ته به هغه وخت زکاة ورکول کيږي چي مالداره نه وي، کني نه به ورکول کيږي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی چي له في سبيل الله ځخه مراد غازي دی، وقال العلامة داماد آفندي رَحِمَهُ الله: ومنقطع الغزاة عند أبي يوسف رَحِمَهُ الله، وهو الصحيح وهو المراد في سبيل الله (مجمع الأنهر ج:۱، ص:۲۲۱).

[القول الراجح، ج:۱، ص:۱۸۵]

## د "ابن السبيل" بيان

وَابْنُ السَّبِيلِ مَنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فِي وَطَنِهِ او ابن السبيل هغه څوک دی چي په خپل وطن کي مال لري وَهُوَ فِي مَكَانٍ لَا شَيْءَ لَهُ فِيهِ او هغه (په خپله) په داسي ځای کي وي چي هلته د ده سره هيڅ نه وي.

**اللغات:** ﴿ابن السبيل﴾ دلاري زوی (يعني مسافر).

**تشريح:** اووم قسم ابن السبيل دی، او له ابن السبيل ځخه مراد هغه مسافر دی، چي په خپل وطن کي خو يې ډېر مال وي، ليکن د سفر په وخت کي د هغه سره هيڅ شی نه وي، نو ګواکي دا سړی په اوس وخت کي فقير سو، او د فقير لپاره زکاة اخيستل جائز دي، ليکن د هغه لپاره تر ضرورت زيات اخيستل حلال نه دي، علماؤ ليکلي دي چي غوره دا ده چي داسي سړی دي له يو چا ځخه قرض (پور) واخلي، او چي کله کور ته ولاړ سي، نو اداء دي يې کړي.

## څومره مصارفو ته زکاة ورکول واجب دي؟

قَالَ: فَهَذِهِ جِهَاتُ الزَّكَاةِ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا د زکاة طرفونه (يعني قسمونه) دي فَلِلْمَالِكِ أَنْ يَدْفَعَ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ نو مالک ته (دا) اختيار سته چي په دوی کي هر يوه ته (زکاة) ورکړي وَلَهُ أَنْ يَقْتَصِرَ عَلَى صِنْفٍ وَاحِدٍ او دا اختيار (هم) ورته سته چي (صرف) پر يوه قسم اکتفاء وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يَصْرِفَ إِلَى ثَلَاثَةٍ مِنْ كُلِّ صِنْفٍ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه دي مګر دا چي د هر قسم پر دريو افرادو (زکاة) مصرف کړي (يعني ور يې کړي) لِأَنَّ الْإِضَافَةَ بِحَرْفِ اللَّامِ لِلْاِسْتِحْقَاقِ ځکه په (للفقراء کي) چي د "لام" په ذريعه سره کوم اضافت سوی دی هغه د استحقاق لپاره دی وَلَنَا أَنَّ الْإِضَافَةَ لِبَيَانِ أَنَّهُمْ مَصَارِفُ او زموږ دليل دا دی چي (دا) اضافت د دې خبري د بيانولو لپاره دی چي دا (ذکر سوي) قسمونه د زکاة مصارف دي لَا لِإِثْبَاتِ الْاِسْتِحْقَاقِ نه د استحقاق د ثابتولو لپاره وَهَذَا لِمَا عُرِفَ أَنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ اللهِ تَعَالَى او څرنګه چي دا معلومه سوې ده چي زکاة د الله تعالیٰ حق دی وَبِعِلَّةِ الْفَقْرِ صَارُوا مَصَارِفَ او د فقر په وجه دا قسمونه مصارف ګرځېدلي دي فَلَا يُبَالَى بِاخْتِلَافِ جِهَاتِهِ نو د فقر د جهاتو د مختلف کېدلو فکر به نه کيږي وَالَّذِي ذَهَبْنَا إِلَيْهِ مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ وَابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او د کوم مذهب و طرف ته چي موږ تللي يو هغه د حضرت عمر او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ځخه روايت سوی دی.

**اللغات:** ﴿جهات﴾ جمع د جهة ده: طرفونه، لوري (مراد ځني صنفونه او قسمونه دي).

**تشريح:** د خلکو چي کوم اووه (۷) قسمونه ذکر سول، دا ټوله زموږ په نيز د زکاة مصارف دي، نو که په دې قسمونو کي هر قسم ته مال ورکړي، نو هم جائز دی، او که ټوله زکاة د يوه قسم خلکو ته ورکړي، يا يې د يوه قسم يوه سړي ته ورکړي، نو هم جائز دی، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا اووه سره قسمه د زکاة مستحق دي، نو ځکه په دې اوو قسمونو کي د هر قسم دريو خلکو ته زکاة ورکول ضروري دي، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز که د هر قسم دريو افرادو ته زکاة ورکول سي چي د هغه مجموعي شمېر يوويشت (۲۱) کيږي، نو زکاة اداء کيږي، کنې نه اداء کيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي الله تعالیٰ د مصارفو د زکاة په بيان کي فرمايي: إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَآءِ، يعني لفظ د الصدقات د فقراء و طرف ته د لام په ذريعه سره مضاف سوی دی، او پاته شپږ قسمونه په واو سره پر للفقراء عطف سوي دي، او لام د استحقاق لپاره راځي، او واو پر جمعيت دلالت کوي، نو اوس مطلب دا سو چي دا اووه سره قسمونه د زکاة حقداره دي، او کله چي اووه سره صنفونه د زکاة حقداره دي، نو اوو سره وو ته به ورکول ضروري وي، او دا اووه سره قسمونه د جمعي په صيغې سره ذکر سوي دي، او د جمعي کم اطلاق پر دريو افرادو کيږي، نو ثابته سوه چي د هر قسم دريو افرادو ته به زکاة ورکول کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د للفقراء لام د اختصاص لپاره دی، نه د استحقاق لپاره، يعني د صدقاتو مصرف فقط دا اووه قسمونه دي، له دې څخه علاوه نور خلک نه دي، او په دې کي چي کوم قسم ته هم صدقه ورکول سي، نو هغه به خپل په مصرف کي وي، دا يې مطلب نه دی چي دا اووه سره قسمونه د صدقاتو حقداره دي، او چي تر کوم وخته ټولو ته صدقه ور نه کړل سي، نو صدقه نه اداء کيږي، او د دې مطلب دليل دا دی چي زکاة د الله تعالیٰ حق دی، خو ځرنګه چي الله مستغني لو بې نيازه دی، نو ځکه دا الله تعالیٰ دا حق د فقر په وجه د هغه د بندګانو و طرف ته نقل سوی دی، او ځرنګه چي بندګان د فقر په وجه د زکاة مصرف ګرځېدلي دي، نو ځکه به د فقر د جهت او طرف د مختلف کېدلو هيڅ پروا نه کيږي، لو د فقر په دې لوو سره جهاتو کي چي په کوم جهت کي هم زکاة صرف کړی سي، زکاة به اداء وي.

والذی ذهبنا الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د زکاة د اداء کولو په باره کي چي زموږ کوم مذهب ذکر سو، دا مذهب د حضرت عمر او حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُم هم دی، لکه ځرنګه چي په طبراني کي له حضرت ابن عباس څخه د دې آيت په تفسير کي رانقل سوي دي: عن ابن عباس في قوله تعالى إنما الصدقات للفقراء والساكين الآية. قال في أي صنف وضعته اجزأك، (يعني ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُمَا د إنما الصدقات په تفسير کي فرمايلي دي تاسو چي کوم قسم ته هم زکاة ورکړئ نو زکاة اداء کيږي)، او له حضرت عمر ﷺ څخه هم دا ټول را نقل سوي دي: قال أيما صنف أعطيته من هذا أجزأ عنك.

## ذمي ته د زكاة وركولو بيان

وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَدْفَعَ الزَّكَاةَ إِلَى ذِمِّيٍّ او يوه ذمي ته (هم) زكاة وركول جائز نه دي لِقَوْلِهِ ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِمُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځكه نبي ﷺ حضرت معاذ ؓ ته فرمايلي وو خُذْهَا مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ وَرُدَّهَا فِي فُقَرَائِهِمْ چي زكاة د مسلمانانو له شتمنو خلكو څخه اخله او د مسلمانانو پر فقيرانو کي يې تقسيموه وَيَدْفَعُ مَا سِوَى ذٰلِكَ مِنَ الصَّدَقَةِ او له زكاة څخه ماسوا نور صدقات ذمي ته وركولای سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَدْفَعُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي صدقه دي (هم) نه وركوي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او همدا يو روايت له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دی اِعْتِبَارًا بِالزَّكَاةِ پر زكاة باندي په قياسولو سره وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی تَصَدَّقُوا عَلَى أَهْلِ الْأَدْيَانِ كُلِّهَا د هر ډول دين والا ته صدقه وركوئ وَلَوْلَا حَدِيثُ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ لَقُلْنَا بِالْجَوَازِ فِي الزَّكَاةِ او كه د حضرت معاذ ؓ حديث نه وای نو موږ به ويلي وای چي (ذمي او نورو كافرانو ته) زكاة وركول (هم) جائز دي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي ذمي ته بالاتفاق زكاة وركول جائز نه دي، ځكه نبي ﷺ چي كله حضرت معاذ بن جبل ؓ د يمن و طرف ته استوی، نو د زكاة په باره كي يې دا جمله ورته وفرمايله: خذها من أغنيائهم و ردها في فقرائهم (يعني په مسلمانانو كي د مالداره (او نصاب لرونكو خلكو) څخه زكاة اخله او د مسلمانانو فقيرانو ته يې وركوه)، په دې حديث كي د في فقرائهم څخه دا ثابتيږي چي غير مسلم (كافر) ته زكاة وركول صحيح نه دي.

زموږ په نيز له زكاة څخه ماسوا نور صدقات مثلاً صدقة الفطر (سرسايه) او داسي نور ذمي ته وركول جائز دي، لېكن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز چي څرنګه ذمي ته زكاة وركول جائز نه دي، همدارنګه نور صدقات هم وركول جائز نه دي، همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو روايت دی، او د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک هم دا دی.

**زموږ دليل:** د نبي ﷺ دا حديث دی: تصدقوا على أهل الأديان كلها، (چي د هر ډول دين والا ته صدقه وركوئ)، په دې حديث كي د تصدقوا لفظ عام دی، او د خپل عموم په اعتبار سره د هر دين والا خلكو ته د زكاة او نورو صدقو وركولو جواز ثابتوي، خو څرنګه چي د حضرت معاذ ؓ په حديث كي صرف مسلمان ته د زكاة وركولو حكم راغلی دی نو ځكه به كافرانو ته زكاة نه وركول كيږي، لېكن نور صدقات به وركول كيږي، هم په دې وجه صاحب د هدايې فرمايي چي كه د حضرت معاذ بن جبل ؓ حديث نه وای، نو موږ به د هر ډول دين خلكو ته زكاة وركول جائز كړي وای، خو د دې حديث په خاطر موږ له اسلام څخه بغير نورو أديانو ته زكاة وركول ممنوع ګرځوو.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب أخذ الصدقة من الاغنياء، حديث رقم: ۱۴۹۶، و ابو داؤد في كتاب الزكاة، باب في الزكاة السائمة، حديث رقم: ۱۵۸۴، والترمذي في كتاب الزكاة، باب: ۰۶.

● تخريج: أخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه، حديث رقم: ۳۹، ج:۰۳.

## د زکاة په مال سره د مسجد د جوړولو او مړي ته د کفن ورکولو حکم

وَلَا يُبْنٰى بِهَا مَسْجِدٌ او د زکاة په مال سره به مسجد نه جوړېږي وَلَا يُكَفَّنُ بِهَا مَيِّتٌ او نه به د زکاة په مال سره مړي ته کفن ورکول کيږي لِإِنْعِدَامِ التَّمْلِيْكِ وَهُوَ الرُّكْنُ ځکه چې مالک جوړول نشته حال دا چې هغه رکن دی وَلَا يُقْضٰى بِهَا دَيْنُ مَيِّتٍ او نه به د زکاة په مال سره د يو مړي قرض (پور) اداء کيږي لِأَنَّ قَضَاءَ دَيْنِ الْغَيْرِ لَا يَقْتَضِيْ التَّمْلِيْكَ مِنْهُ ځکه چې د بل چا قرض اداء کول د هغه له طرفه د مالک جوړېدلو تقاضا نه کوي (يعني د دې تقاضا نه کوي چې هغه دې مالک جوړ سي، حال دا چې د هغه مالک جوړول ضروري دي) لَا سِيَّمَا مِنَ الْمَيِّتِ په ځانګړې توګه د مړي له طرفه.

**اللغات:** ﴿لا يبنى﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: جوړول، آبادول. ﴿لا يكفن﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: کفن ورکول. ﴿لا سيما﴾ خصوصاً، په ځانګړې توګه.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې د زکاة په پيسو سره نه مسجد جوړول جائز دي، او نه يو مړي ته کفن په ورکول جائز دي، او نه د زکاة په مال سره د يو مړي قرض اداء کول جائز دي، ځکه چې د زکاة په باب کې تمليک يعني بل سړی مالک جوړول رکن او شرط دي، او ښکاره ده چې په مړي کې د مالک جوړېدلو صلاحيت نشته، نو په اولو دواړو صورتونو کې د زکاة د اداء کولو يو مهم رکن يعني تمليک معدوم دی، نو ځکه به په دې شيانو کې د زکاة پيسې ورکول صحيح نه وي، همدارنګه د زکاة په مال سره د مړي قرض اداء کول هم صحيح نه دي، ځکه چې هغه مړ سوی دی نو د زکاة مالک به څرنګه جوړ سي، او د زکاة د اداء کولو لپاره بل سړی د زکاة د پيسو مالک جوړول ضروري دي.

## د زکاة په مال سره د غلام او د مينځې د آزادولو حکم

وَلَا تُشْتَرٰى بِهَا رَقَبَةٌ تُعْتَقُ او د زکاة په مال سره به يو غلام نه رانيول کيږي چې آزاد کړی سي خِلَافًا لِمَالِكٍ د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی حَيْثُ ذَهَبَ إِلَيْهِ فِيْ تَأْوِيْلِ قَوْلِهِ تَعَالٰى وَفِي الرِّقَابِ [البقرة: ١٧٧] ځکه چې امام مالک رَحِمَهُ الله د الله تعالیٰ (د دې) قول وفي الرقاب په تأويل کې د همدې خبرې و طرف ته تګ کړی دی (چې د زکاة په مال سره به غلام رانيول او آزادول جائز وي) وَلَنَا أَنَّ الْإِعْتَاقَ إِسْقَاطُ الْمِلْكِ وَلَيْسَ بِتَمْلِيْكٍ او زموږ دليل دا دی چې آزادول د ملک ساقطول دي مالک جوړول نه دي.

**اللغات:** ﴿رقبة﴾ غاړه، مراد ځني غلام او مينځه ده.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې د زکاة په مال سره د غلام يا د مينځې رانيول او آزادول هم صحيح نه دي، لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز دا صحيح دي، ځکه امام مالک له وفي الرقاب څخه همدغه مراد اخيستی دی، يعني رقبه رانيول او آزادول، لېکن زموږ په نيز له وفي الرقاب څخه د بدل کتابت په اداء کولو کې د مکاتب غلامانو سره مرسته کول مراد دي، او ښکاره ده چې په رقبه رانيولو او آزادولو کې دا مفهوم نشته، په دې لړ کې زموږ دليل دا هم دی چې تمليک (يعني د زکاة مالک جوړول) د زکاة رکن دی، حال دا چې د رقبه په رانيولو او آزادولو کې د مولیٰ (مالک) د ملک ساقطول دي، چې هغه بالکل د تمليک برعکس او منافي دي، نو په دې حواله سره به هم د زکاة په مال سره رقبه رانيوله او آزادول صحيح نه وي.

## مالداره(شتمن) خلکو ته د زکاة نه ورکولو حکم

وَلَا تُدْفَعُ إِلَى غَنِيٍّ او مالدار سړي ته به هم زکاة نه ورکول کيږي لِقَوْلِهِ ❶ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ "زکاة د مالداره سړي لپاره حلال نه دی" وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي غَنِيِّ الْغُزَاةِ او دا حديث د خپل اطلاق په وجه په مالداره غازيانو کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَكَذَا حَدِيثُ ❷ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همدارنګه د حضرت معاذ ﷺ حديث هم (د امام شافعي په خلاف حجت دی) عَلَى مَا رَوَيْنَا لکه څرنګه چې هغه موږ(مخکې) بيان کړی.

**تشريح:** شتمن او مالداره سړي ته يعني کوم سړی چې د نصاب مالک وي هغه ته زکاة ورکول جائز نه دي، دليل دا حديث دی: لا تحل الصدقة لغني، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز مالداره غازيانو ته زکاة ورکول جائز دي، لکه څرنګه چې د دې پوره تفصيل مخکې ذکر سو، ليکن دا حديث او د حضرت معاذ ﷺ حديث ..... وردها في فقرائهم د هغه په خلاف حجت دي.

## نږدې قريبانو لکه پلار، نيکه، مور او داسې نورو ته د زکاة ورکولو حکم

قَالَ: وَلَا يَدْفَعُ الْمُزَكِّي زَكَاتَهُ فرمايي: او زکاة ورکونکی به د خپل مال زکاة نه ورکوي إِلَى أَبِيهِ وَجَدِّهِ وَإِنْ عَلَا خپل پلار او نيکه ته که څه هم د لوړې درجې وي وَلَا إِلَى وَلَدِهِ وَوَلَدِ وَلَدِهِ وَإِنْ سَفَلَ او نه به يې خپل زوی ته ورکوي او نه به يې د زوی، زوی ته ورکوي که څه هم د لاندې درجې وي لِأَنَّ مَنَافِعَ الْأَمْلَاكِ بَيْنَهُمْ مُتَّصِلَةٌ ځکه چې د دوی په مينځ کې د ملکيت ګټې (منافع) متصل دي فَلَا يَتَحَقَّقُ التَّمْلِيكُ عَلَى الْكَمَالِ نو تمليک په پوره توګه نه ثابتيږي وَلَا إِلَى امْرَأَتِهِ او نه به يې خپلې ښځې ته ورکوي لِلِاشْتِرَاكِ فِي الْمَنَافِعِ عَادَةً ځکه چې په عامه توګه (د دواړو) منافع مشترک دي وَلَا تَدْفَعُ الْمَرْأَةُ إِلَى زَوْجِهَا عِنْدَ ❸ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او نه به ښځه خپل خاوند ته زکاة ورکوي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَقَالَا: تَدْفَعُ إِلَيْهِ او صاحبين وايي: چې ښځه خپل خاوند ته زکاة ورکولای سي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❹ لَكِ أَجْرَانِ: أَجْرُ الصَّدَقَةِ وَأَجْرُ الصِّلَةِ ځکه چې نبي ﷺ فرمايلي دي چې ستا لپاره دوه ثوابه دي: يو د صدقې ثواب، دويم د صله رحمی (يعني د خپلوی او قرابت) ثواب قَالَهُ لِامْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا جمله نبي کريم ﷺ د عبد الله بن مسعود ﷺ ښځې ته وفرمايله وَقَدْ سَأَلَتْهُ

---

❶ تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الزكاة، باب من يعطى من الصدقة وحدُّ الغني، حديث رقم: ١٦٣٢.

❷ تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب أخذ الصدقة من الاغنياء، حديث: ١٢٩٦.

❸ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:٢، ص: ٦٩، كما قال وهبة الزحيلي: هل يجوز دفع الزوجة إلى زوجها زكوتها؟ قال ابو حنيفة رَحِمَهُ الله والحنابلة على الراجح لايجوز لأن الزكاة تعود إليها بانفاقه عليها، الفقه الاسلامي ج:٢، ص: ٨٨٥. [القول الراجح، ج:١، ص: ١٨٦]

❹ تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب الزكاة على الزوج، حديث رقم: ١٣٦٦.

عَنِ التَّصَدُّقِ عَلَيْهِ په داسي حال کي چي (کله) هغې له نبي کريم ﷺ څخه و عبد الله بن مسعود ﷺ ته د صدقې ورکولو په باره کي پوښتنه وکړه قُلْنَا: هُوَ مَحْمُوْلٌ عَلَى النَّافِلَةِ موږ وايو: چي دا حديث پر نفلي صدقه باندي حمل سوی دی.

**اللغات:** ﴿مزکّی﴾ د تفعيل د باب اسم فاعل دی: زکاة ورکونکی، ﴿علا﴾ د نصر د باب ماضي ده: لوړېدل، پورته کېدل، ﴿سفل﴾ او دا صيغه له نصر، سمع، کرُم ټولو څخه راتلای سي: لاندي کېدل، کښته کېدل، ﴿صلة﴾ له خپلوانو سره ښه سلوک او روېه کول، صله رحمه، ﴿نافلة﴾ نفل، صدقه، عبادت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي انسان نه خپل اُصولو يعني پلار، نيکه، ورنيکه، مور، انا او داسي نورو ته زکاة ورکولای سي، او نه يې خپل فروعو يعني زوی، د زوی زوی، لور، د لور زوی او داسي نورو ته زکاة ورکولای سي، ځکه چي د دې خلکو منافع يو تر بله سره متصل او مشترک دي، او هر يو د بل له ملکيت څخه فايده اخيستلای سي، او څرنګه چي د زکاة يو مهم رکن تمليک دی، او د منافعو د اتصال په صورت کي په بشپړه توګه تمليک نه سي راتلای، نو ځکه د انسان لپاره خو نه خپلو اُصولو ته زکاة ورکول صحيح دي، او نه خپلو فروعو ته.

ولا إلى مرأته الخ فرمايي چي خاوند (مېړه) خپلي ښځي ته هم د زکاة مال نه سي ورکولای، ځکه چي د اُصولو او فروعو په ډول د ښځي او د خاوند منافع هم سره مشترک دي، بلکي په دې زمانه کي خو اشتراک نور هم زيات سوی دی، نو په دې صورت کي هم په بشپړه توګه تمليک نه سي راتلای، نو په دې وجه خاوند ښځي ته د زکاة مال نه سي ورکولای، او څرنګه چي دا ستونزه په هغه صورت کي هم راځي چي کله ښځه خاوند ته د زکاة مال ورکړي، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ښځه هم خپل خاوند ته د زکاة مال نه سي ورکولای.

د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، هغه دا چي خاوند خو ښځي ته د زکاة مال نه سي ورکولای، ليکن ښځه خپل خاوند ته د زکاة مال ورکولای سي.

**د صاحبينو دليل:** هغه حديث دی کوم چي د حضرت ابن مسعود ﷺ له بي بي حضرت زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت سوی دی، صاحب د فتح القدير دا حديث په همدغه الفاظو سره بيان کړی دی کوم چي صاحب د هدايې ذکر کړی دی. له دې حديث څخه دا خبره ثابتېږي چي د ښځي لپاره خپل خاوند ته د زکاة مال ورکول صحيح او جائز دي.

قلنا هو محمول الخ صاحب د هدايې د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه جواب ورکوي فرمايي چي د صاحبينو ذکر سوی دليل پر نفلي صدقاتو حمل سوی دی، يعني که ښځه خپل خاوند ته نفلي صدقه ورکول وغواړي، نو ورکولای يې سي. د هغه اجازه ور ته سته، ليکن واجب صدقات نه سي ورکولای. او زموږ کلام هم په واجبو صدقاتو کي دی. او دليل پر دې چي له دې حديث څخه نفلي صدقات مراد دي، دا دی چي په دې حديث کي حضرت زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپلو بچو ته هم د صدقې ورکولو په باره کي پوښتنه وکړه، او اجازه هم ورکول سوه. حال دا چي ټلسو ته په دليل سره معلومه سوه چي انسان خپل زوی او د زوی زوی ته د زکاة مال نه سي ورکولای. نو اجازه ورکول د دې خبري ښکاره ثبوت دی چي په حديث کي له صدقات څخه مراد نفلي صدقې دي.

## مدبر، مكاتب او امّ ولد ته د زكاة وركولو حكم

قَالَ: وَلَا يَدْفَعُ إِلَى مُدَبَّرِهٖ وَمُكَاتَبِهٖ وَأُمِّ وَلَدِهٖ فرمايي: او زكاة به نه وركوي خپل مدبر غلام ته او خپل مكاتب غلام ته او خپل امّ ولد ته لِفُقْدَانِ التَّمْلِيكِ ځكه چې (په دې تولو كې) تمليک نه راځي إِذْ كَسْبُ الْمَمْلُوْكِ لِسَيِّدِهٖ ځكه چې د مملوک ګټه د هغه د مالک ده وَلَهٗ حَقٌّ فِيْ كَسْبِ مُكَاتَبِهٖ او د مكاتب غلام په ګټه كې (هم) د مالک حق سته فَلَمْ يَتِمَّ التَّمْلِيْكُ نو تمليک پوره نه سو وَلَا إِلَى عَبْدٍ قَدْ أُعْتِقَ بَعْضُهٗ او نه به زكاة وركوي (خپل) هغه غلام ته چې بعضي حصه يې آزاده سوې وي عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ● رَحِمَهُ اللهُ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز لِأَنَّهٗ بِمَنْزِلَةِ الْمُكَاتَبِ عِنْدَهٗ ځكه چې دا غلام د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مكاتب په درجه كې دى وَقَالَا: يَدْفَعُ إِلَيْهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې زكاة به وركوي لِأَنَّهٗ حُرٌّ مَدْيُوْنٌ عِنْدَهُمَا ځكه چې د صاحبينو په نېز دا غلام آزاد (او د خپل مالک) مقروض (پوروړى) دى.

**اللغات:** ﴿مدبر﴾ هغه غلام چې د مالک تر مړيني وروسته په خپله آزادېږي، ﴿فقدان﴾ د نصر مصدر دى: ورکېدل، نيستي كېدل.

**تشريح:** په عبارت كې دوې مسئلې بيان سوي دي چې يوه متفق عليه ده، او بله مختلف فيه ده: (۱) د متفق عليه مسئلې حاصل دا دى چې يو مالک نه خپل مدبر غلام د زكاة مال وركولاى سي، او نه خپل مكاتب غلام ته، او نه خپل امّ ولد ته، ځكه چې د زكاة د اداء كولو لپاره تمليک شرط او ضروري دى، او په مدبر، امّ ولد او مكاتب درې سره وو كې تمليک نسته، ځكه چې مدبر او امّ ولد د خپل مولىٰ مملوک وي، او د هغو ټوله ګټه او نفع د هغو د مولىٰ وي، همدارنګه د مكاتب ګټه هم د خپل مولىٰ وي، نو كله چې د هغو هر څه د خپل مولىٰ دي، نو هغو ته زكاة وركول داسي دي لكه خپل ځان ته زكاة وركول چې دا په هيڅ ډول هم صحيح نه دي، نو ځكه به په دې ذكر سوو انسانانو كي يوه هم ته زكاة وركول صحيح نه وي.

(۲) دويمه مسئله مختلف فيه ده چې هغه د ولا إلى عبد... الخ څخه بيان سوې ده. صورت د مسئلې: دا دى كه يو غلام د دوو خلكو په منځ كې مشترک وي، او په هغو كې يو شريک خپله حصه آزاده كړي، او دويم شريک غلام ته داسي ووايي" "چې ته ګټه وكړه زما د حصې قيمت را اداء كړه بيا به ته په بشپړه توګه آزاد سې"، نو تر څو چې غلام دويم شريک ته د خپلې حصې قيمت ور نه كړي، تر هغه وخته غلام د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مكاتب شمارل كېږي. او د مولىٰ لپاره خپل مكاتب غلام ته زكاة وركول صحيح نه دي، نو ځكه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دويم شريک لپاره دې غلام ته د زكاة مال وركول صحيح نه دي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې دا غلام د دويم شريک په حق كې مكاتب نه دى، بلكي آزاد سوى مقروض دى، ځكه چې د صاحبينو قاعده دا ده چې كه د غلام څه حصه هم آزاده كړى سي، نو ټوله غلام آزادېږي، د دوى په نېز په آزادولو كي تشقص (حصه حصه كېدل) نسته، لېكن كومه حصه چې آزاده سوې ده نو د هغه قيمت به غلام دويم شريک ته وركوي،

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۲، ص: ۷۰، كما قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاري رَحِمَهُ الله ومعتق البعض كالمكاتب عند أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، خلاصة الفتاوىٰ ج:۱، ص: ۲۴۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۸۷]

ځکه چي کله اول شريک اوله حصه آزاده کړه نو ټوله غلام آزاد سو، نو اوس هغه د دويم شريک غلام پاته نه سو، صرف د هغه مقروض سو، نو ځکه به د دويم شريک لپاره هغه ته زکاة ورکول جائز وي، لکه څرنګه چي دا هم جائز دي چي يو انسان خپل مقروض ته زکاة ورکړي او د هغه مالک يې جوړ کړي او بيا له هغه څخه خپل قرض واخلي.

## د مالداره سړي غلام ته او د هغه کوچني زوی ته د زکاة ورکولو حکم

وَلَا يَدْفَعُ إِلَى مَمْلُوكِ غَنِيٍّ او د مالداره سړي و مملوک ته به(هم) زکاة نه ورکوي لِأَنَّ الْمِلْكَ وَاقِعٌ لِمَوْلَاهُ ځکه چي (د مملوک) ملکيت خو د خپل مولیٰ لپاره واقع کيږي وَلَا إِلَى وَلَدِ غَنِيٍّ إِذَا كَانَ صَغِيرًا او نه به د مالداره زوی ته زکاة ورکوي کله چي هغه کوچنی (نابالغه) وي لِأَنَّهُ يُعَدُّ غَنِيًّا بِيَسَارِ أَبِيهِ ځکه چي نابالغه کوچنی د خپل پلار د مالدارۍ په وجه مالداره شمارل کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ كَبِيرًا فَقِيرًا په خلاف د هغه صورت چي کله هغه غټ(يعني بالغ) او فقير(محتاجه) وي لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ غَنِيًّا بِيَسَارِ أَبِيهِ ځکه چي بالغ زوی د خپل پلار په مالدارۍ سره مالداره نه شمارل کيږي وَإِنْ كَانَتْ نَفَقَتُهُ عَلَيْهِ که څه هم د هغه نفقه پر خپل پلار واجب ده وَبِخِلَافِ امْرَأَةِ الْغَنِيِّ او په خلاف د مالدار سړي د ښځي لِأَنَّهَا إِنْ كَانَتْ فَقِيرَةً لَا تُعَدُّ غَنِيَّةً بِيَسَارِ زَوْجِهَا ځکه ښځه که څه هم فقيره وي نو د خپل خاوند په مالدارۍ سره مالداره نه شمارل کيږي وَبِقَدْرِ النَّفَقَةِ لَا تَصِيرُ مُوسِرَةً او (فقط) د نفقې په مقدار هغه نه مالداره کيږي.

**اللغات:** ﴿مملوك﴾ د يو چا په ملکيت کي چي څوک وي هغه ته مملوک ويل کيږي، ﴿يسار﴾ خوشحالي، پراخي(مراد ځني مالداري او مرتبه ده).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د يو مالداره سړي و مملوک ته زکاة ورکول جائز نه دي، مملوک که خالص غلام وي، او که مدبر غلام وي، او که اُمّ ولد وي، دليل دا دی چي د مملوک هر مال د مولیٰ ملک وي، نو که د مالداره و مملوک ته زکاة ورکول سي، نو هغه به د مالداره په ملک کي داخل سي، او مالدار ته زکاة ورکول جائز نه دي، نو ځکه به د هغه د مملوک لپاره هم جائز نه وي، هو! د مالک و مکاتب غلام ته زکاة ورکول جائز دي، او د جواز دليل يې قرآني نص يعني وفي الرقاب دی.

بخلاف ما إذا كان الخ دويمه مسئله دا ده چي د مالداره سړي و نابالغه زوی ته هم زکاة ورکول جائز نه دي، ځکه چي نابالغه اولاد د خپل پلار د مال په وجه سره مالداره شمارل کيږي، او که د هغه اولاد بالغ وي او فقير وي، نو هغه ته زکاة ورکول جائز دي، ځکه چي بالغ اولاد د خپل پلار په مال سره مالداره نه شمارل کيږي، که څه هم د اولاد نفقه پر خپل پلار واجب ده، لېکن څرنګه چي دا په خپله فقير دی، نو ځکه به هغه ته زکاة ورکول جائز وي.

بخلاف امرأة الخ دريمه مسئله دا ده چي که د مالداره سړي ښځه فقيره وي، نو هغه ته هم زکاة ورکول جائز دي، ځکه چي ښځه به خپل د خاوند په مال سره مالداره نه شمارل کيږي، او پاته سوه نفقه نو هغه ښځه نه سي مالداره کولای، ځکه چي هغه په خوراک کي مصرفيږي، نو ځکه هغې ته هم زکاة ورکول صحيح دي.

## بنو هاشم ته د زكاة وركولو حكم

وَلَا تُدْفَعُ إِلَى بَنِيْ هَاشِمٍ او بنو هاشم ته به زکاة نه ورکول کيږي لِقَوْلِهِ [1] عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي يَا بَنِيْ هَاشِمٍ إِنَّ اللهَ تَعَالَى حَرَّمَ عَلَيْكُمْ غُسَالَةَ النَّاسِ وَأَوْسَاخِهِمْ "اې بنو هاشم! الله تعالىٰ پر تاسو د خلکو کارول سوي چټلې اوبه او د هغوی خيرې حرامې کړې دي وَعَوَّضَكُمْ مِنْهَا بِخُمُسِ الْخُمُسِ او د هغه په عوض کې يې تاسو ته د خمس، خمس در کړی دی" بِخِلَافِ التَّطَوُّعِ په خلاف د نفلي صدقې لِأَنَّ الْمَالَ هَاهُنَا كَالْمَاءِ ځکه چې دلته مال د اوبو په ډول دی يَتَدَنَّسُ بِإِسْقَاطِ الْفَرْضِ (چې هغه) د فرضو په ساقطولو سره خيرن(چټل) کيږي أَمَّا التَّطَوُّعُ بِمَنْزِلَةِ التَّبَرُّدِ بِالْمَاءِ هر چې نفلي صدقه ده نو هغه په اوبو سره د يخنۍ (يخوالي) حاصلولو په درجه کې ده.

**اللغات:** ﴿غسالة﴾ هغه اوبه چې په هغو کې يو شی پرېولل سي او چټلې سي، ﴿أوساخ﴾ جمع د وسخ ده: خيرې، ﴿يتدنس﴾ د تفعّل مضارع ده: خيرنېدل، ﴿تبرد﴾ د تفعّل مصدر دی: يخنې حاصلول.(ځان يخول).

**تشريح:** بنو هاشم ته هم زکاة ورکول جائز نه دي، دليل د نبي ﷺ حديث دی، علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله دا حديث په دې الفاظو سره ذکر کړی دی: يا بني هاشم إن الله كره لكم غسالة أيدى الناس و أوساخهم و عوضكم منها بخمس الخمس، (يعني اې د هاشم زامنو! الله ﷻ ستاسو لپاره د خلکو د لاسو کارول سوي اوبه او د هغوی خيرې ناخوښه کړې دي، او د هغه په بدله کې يې تاسو ته د خُمس، خُمس درکړی دی)، يعني د غنيمت له پنځو حصو څخه خو به څلور حصې په غازيانو کې تقسيمېږي، او پاته يوه حصه به بيا پنځه حصه کيږي، چې له هغو څخه به يوه حصه د بنو هاشمو وي، او پاته څلور حصې به په نورو ضرورياتو کې مصرفيږي.

بخلاف التطوع الخ په خلاف د نفلي صدقې چې هغه بنوهاشم ته ورکول جائز دي، دليل دا دی چې مال دلته د اوبو په ډول دی، نو که اوبه د فرضو د ساقطولو لپاره يعني د بې اودسۍ او د جنابت د ليرې کولو لپاره استعمال سي، نو اوبه ګنده او چټلې شمارل کيږي، همدارنګه په کوم مال سره چې زکاة اداء کيږي، په هغه سره د زکاة فريضه ساقطيږي، نو ځکه به د زکاة مال ګنده او له خيرو څخه ډک شمارل کيږي، او که يو سړی بې اودسه او محدث نه وي بلکې اوبه صرف د يخنۍ حاصلولو لپاره استعمال کړي، نو ښکاره ده چې په دې اودس سره د هغه هيڅ فرض ساقط نه سو، همدارنګه که مال د نفلي صدقې په توګه ورکول سي، نو څرنګه چې په دې سره هيڅ فريضه ساقطه نه سوه، نو ځکه به دا مال هم ګنده او چټل نه وي، او کله چې هغه مال ګنده نه دی، نو بنو هاشمو ته به د هغه ورکول جائز وي.

## بنو هاشم څوک دي؟

قَالَ: وَهُمْ آلُ عَلِيٍّ وَآلُ عَبَّاسٍ وَآلُ جَعْفَرٍ وَآلُ عَقِيْلٍ وَآلُ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فرمايي: او بنو هاشم (دا دي:) [۱] د حضرت علي رضي الله عنه اولاد [۲] د حضرت عباس رضي الله عنه اولاد [۳] د حضرت جعفر رضي الله عنه اولاد [۴] د حضرت عقيل رضي الله عنه اولاد [۵] د حضرت حارث بن عبد المطلب اولاد وَمَوَالِيْهِمْ او د هغو آزاد سوي غلامان أَمَّا هٰؤُلَاءِ فَلِأَنَّهُمْ يَنْتَسِبُوْنَ إِلَى بَنِيْ

[1] تخريج: أخرجه مسلم فى كتاب الزكاة، باب ترك استعمال آل النبى ﷺ على الصدقة، حديث رقم: ١٦٧.

هَاشِمِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ هر چي دا خلک دي نو ځکه چي د دوی نسبت د هاشم بن عبد مناف و طرف ته کيږي وَنِسْبَةُ الْقَبِيلَةِ إِلَيْهِ او د قبيلې نسبت (هم) د هاشم و طرف ته دی وَأَمَّا مَوَالِيهِمْ فَلِمَا رُوِيَ او کوم چي د دوی آزاد سوي غلامان دي نو (هغه) د دې روايت په وجه أَنَّ مَوْلًى لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] سَأَلَهُ أَتَحِلُّ لِيَ الصَّدَقَةُ چي د نبي ﷺ يو آزاد سوي غلام له نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي آيا زما لپاره زکاة حلال دی؟ فَقَالَ: لَا أَنْتَ مَوْلَانَا نو نبي ﷺ وفرمايل: چي نه! ته (خو) زموږ آزاد سوی غلام يې بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَ الْقُرَشِيُّ عَبْدًا نَصْرَانِيًّا په خلاف د هغه صورت چي کله يو قريشي سړی خپل نصراني غلام آزاد کړي حَيْثُ تُؤْخَذُ مِنْهُ الْجِزْيَةُ ځکه چي له هغه څخه به جزيه اخيستل کيږي وَيُعْتَبَرُ حَالُ الْمُعْتَقِ او د آزاد سوي غلام د حال اعتبار به کيږي لِأَنَّهُ الْقِيَاسُ ځکه چي همدغه قياس دی وَالْإِلْحَاقُ بِالْمَوْلَى بِالنَّصِّ او د مالک (آزادونکي) سره ملحق کول د نص په وجه سره دي وَقَدْ خَصَّ الصَّدَقَةَ او نص صدقه خاص کړې ده.

**اللغات:** ﴿مولی﴾ دا لفظ له اضدادو څخه دی: آزاد سوي غلام ته هم ويل کيږي، مالک او آزادونکي ته هم ويل کيږي.

**تشريح:** په دې عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله دا بيانوي چي بنو هاشم کوم خلک دي، فرمايي چي له بنو هاشم څخه مراد د حضرت عباس، حضرت جعفر، حضرت عقيل او حارث بن عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُم اولاد او د هغوی موالي يعني آزاد سوي غلامان دي، دا حضرات او د دوی اولاد په دې وجه بنو هاشم دي چي دا ټوله د نبي ﷺ د لوړ نيکه هاشم بن مناف و طرف ته منسوب دي، او د بنوهاشم قبيله هم د هاشم بن عبد مناف و طرف ته منسوبه ده، نو په دې حواله سره هغوی ته هاشمي ويل کيږي، او د دوی آزاد سوي غلامانو ته د هاشمي ويلو وجه دا ده چي د نبي ﷺ غلام ابو رافع يو وار له نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه: أتحلُّ لي الصدقة، (يعني آيا زما لپاره صدقه حلاله ده)، نو نبي ﷺ هغه ته وفرمايل: لا أنت مولانا، (يعني ستا لپاره صدقه حلاله نه ده ځکه چي ته زموږ آزاد سوی غلام يې)، نو کله چي زموږ لپاره صدقه حلاله نه ده، نو بيا ستا لپاره به څرنګه حلاله وي، ځکه چي ته (خو) هم زموږ په ډول په بنوهاشمو کي داخل او شامل يې.

بخلاف ما إذا الخ له دې ځايه د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي د مخکي ذکر سوي تفصيل څخه ثابته سوه چي د يو قوم غلامان به هم له هغه قوم څخه شمارل کيږي، اوس که قريشي سړی يو نصراني غلام آزاد کړي، نو د مخکي ذکر سوي تفصيل مطابق به پر دې نصراني غلام جزيه نه واجبېدل پکار وي، ځکه چي دا د قريشي غلام وو، او پر هغه جزيه واجب نه ده، حال دا چي شريعت د قريشي پر نصراني غلام هم جزيه واجبه کړې ده، آخر د دې څه وجه ده؟ صاحب د هدايې د دې جواب ورکوي فرمايي چي اصل قانون او قاعده دا ده چي د صدقې او د جزيې د واجبېدلو او نه واجبېدلو په باره کي به د مُعتَق يعني د آزاد سوي غلام د حالت او کيفيت اعتبار کيږي، نو که غلام نصراني او کافر وو، نو پر هغه به جزيه واجب وي، ځکه چي پر کافر جزيه واجب ده، او همدا د قياس تقاضا ده، لېکن د زکاة د حرام والي په باره کي چي غلام د خپل مولیٰ (مالک) سره ملحق سوی دی، هغه خلاف القياس د دې نص أنت مولانا، يا مولی القوم من

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الزكاة، باب صدقة بني هاشم، حديث رقم: ١٦٥.

انفسهم په وجه سره ملحق سوی دی، او څرنګه چې په نص کې دا الحاق صرف د زکاة سره خاص دی، نو ځکه به حديث صرف د زکاة سره خاص وي، د جزيې او نورو و طرف ته به نه متجاوز کيږي، ځکه چې د فقهي قاعده دا ده: ما ثبت على خلاف القياس فغيره لايقاس عليه، (يعني کوم شی چې خلاف القياس ثابت سي، پر هغه به نور شيان نه قياسيږي).

## که معلومه سوه چې دا سړی د زکاة حقداره نه دی نو څه حکم دی؟

قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ: إِذَا دَفَعَ الزَّكَاةَ إِلَى رَجُلٍ يَظُنُّهُ فَقِيْرًا طرفينو رَحِمَهُمَا الله فرمايلي دي: که يو چا داسي سړي ته زکاة ورکړی چې پر هغه يې د فقير ګومان وو ثُمَّ بَانَ أَنَّهُ غَنِيٌّ أَوْ هَاشِمِيٌّ أَوْ كَافِرٌ بيا ښکاره سوه چې هغه مالداره دی يا هاشمي دی يا کافر دی أَوْ دَفَعَ إِلَى ظُلْمَةٍ فَبَانَ أَنَّهُ أَبُوْهُ أَوِ ابْنُهُ يا يې په تياره کې (يو سړي ته) زکاة ورکړی بيا ښکاره سوه چې هغه د ده پلار دی يا د ده زوی دی فَلَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ [●] نو پر هغه د زکاة راګرځول (يعني دويم وار اداء کول) واجب نه دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: عَلَيْهِ الْإِعَادَةُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر هغه د زکاة راګرځول واجب دي لِظُهُوْرِ خَطَائِهِ بِيَقِيْنٍ په يقين سره د هغه د غلطۍ د ښکاره کېدلو په وجه وَإِمْكَانِ الْوُقُوْفِ عَلَى هَذِهِ الْأَشْيَاءِ او پر دې شيانو د واقفېدلو د امکان په وجه (يعني په دې شيانو خبرېدل ممکن دي) وَصَارَ كَالْأَوَانِيْ وَالثِّيَابِ او دا (معامله) د لوښو او جامو په شان سوه وَلَهُمَا حَدِيْثُ مَعْنِ بْنِ يَزِيْدَ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل د حضرت معن بن يزيد حديث دی فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَ [●] فِيْهِ ځکه نبي ﷺ د دې (معاملې) په باره کې وفرمايل يَا يَزِيْدُ لَكَ مَا نَوَيْتَ اې يزيده! ستا لپاره هغه (ثواب) دی چې تا يې نيت وکړی وَيَا مَعْنُ لَكَ مَا أَخَذْتَ او اې معنه! ستا لپاره هغه (اشرفياني) دي چې تا واخيستې وَقَدْ دَفَعَ إِلَيْهِ وَكِيْلُ أَبِيْهِ صَدَقَتَهُ حال دا چې معن ته د خپل د پلار وکيل د پلار زکاة ورکړی وو وَلِأَنَّ الْوُقُوْفَ عَلَى هَذِهِ الْأَشْيَاءِ بِالْاِجْتِهَادِ او په دې وجه (هم) چې پر دې شيانو واقفېدل د اجتهاد په توګه سره دي دُوْنَ الْقَطْعِ په يقيني توګه سره نه دي فَيَبْتَنِيْ الْأَمْرُ فِيْهَا عَلَى مَا يَقَعُ عِنْدَهُ نو په دې شيانو کې به د حکم بنياد پر هغه اجتهاد وي کوم چې د انسان په نېز واقع سي كَمَا إِذَا اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ لکه په هغه صورت کې چې کله پر لمونځ ګزاره قبله شکمنه سي وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ فِيْ غَيْرِ الْغَنِيِّ أَنَّهُ لَا يُجْزِئُهُ او له مالداره سړي شخصه په علاوه کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت (دا) دی چې زکاة ورکول جائز نه دي وَالظَّاهِرُ هُوَ الْأَوَّلُ (لېکن) ظاهر روايت اول قول دی وَهَذَا إِذَا تَحَرّٰى وَدَفَعَ او دا جائز کېدل هغه وخت دي چې کله هغه تحري کړې وي او زکاة يې ورکړی وي وَفِيْ أَكْبَرِ رَأْيِهِ أَنَّهُ مَصْرِفٌ او په غالب ګومان کې يې دا وي چې هغه (مؤدّیٰ اليه) مصرف دی أَمَّا إِذَا شَكَّ

---

● القول الراجح: قول الطرفين، كذا في رد المحتار ج:٢، كما قال العلامة أكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله والظاهر هو الأول يعني الإجزاء مع الشك [العناية] ج:٢، ص: ٢١٣. [القول الراجح، ج:١، ص: ١٨٧]

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب إذا تصدق على ابنه وهو لايشعر. حديث رقم: ١٤٢٢.

وَلَمْ يَتَحَرَّ لېکن که هغه شک کړی وي او تحري يې (هم) کړې نه وي أَوْ تَحَرَّى فَدَفَعَ يا يې تحري کړې وي بيا يې زکاة ورکړی وي وَفِيْ أَكْبَرِ رَأْيِهِ أَنَّهُ لَيْسَ بِمَصْرِفٍ خو غالب گومان يې دا وي چې هغه مصرف نه دی لَايُجْزِيهِ نو جائز نه دي إِلَّا إِذَا عَلِمَ أَنَّهُ فَقِيرٌ لېکن کله چې هغه ته معلومه سي چې هغه فقير دی هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده.

**اللغات:** ﴿بان﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ښکاره کېدل، څرګندېدل، ﴿ظلمة﴾ تياره، تاريکي، تورتم، ﴿أواني﴾ جمع د آنية ده: لوښي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو چا پر يو سړي د فقير گومان وکړی او زکاة يې ورکړی، بيا وروسته ورته معلومه سوه چې دا سړی مالداره دی، يا هاشمي دی، يا کافر دی، يا يو چا يو سړي ته د شپې په تياره کي د زکاة مال ورکړی، لېکن وروسته معلومه سوه چې مؤدّیٰ اليه يعني چاته چې يې زکاة ورکړی وو، هغه د ده پلار دی، يا د ده زوی دی، نو په دې ټولو صورتونو کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر مالک او زکاة ورکونکي د زکاة راګرځول واجب نه دي، بلکي د هغه زکاة اداء سو، او شرعاً پر هغه هيڅ نيوکه نسته، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې په يوه صورت کي هم زکاة اداء سوی نه دي، او پر هغه (مزکّي) دويم وار د زکاة ورکول واجب او لازم دي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې په دې ټولو صورتونو کي مزکّي ته په يقين سره دا خبره معلومه سوه چې هغه د زکاة په اداء کولو کي غلطي کړې ده، او کومو خلکو ته چې يې زکاة ورکړی دی، هغه د زکاة مصرف نه دي، او په غيرِ مصرف کي ورکړی سوی زکاة نه اداء کيږي، نو په دې صورتونو کي به هم د دې سړي زکاة اداءنه وي. او بل دا چې د دې سړي لپاره د مؤدّیٰ اليه د حالت معلومول ممکن هم وو، خو څرنګه چې هغه دا هم نه وکړه، نو د هغه له طرفه دا بله پروايي وسوه، نو ځکه به د هغه اداء سوی زکاة شرعاً معتبر نه وي.

ومسار كالأواني الخ او دا مسئله د لوښو او کالو (جامو) په ډول سوه، يعني که پاک او ناپاک لوښي سره ګډ سول، او بيا يو سړي تر تحري وروسته د يو لوښي په اوبو سره اودس وکړی، لېکن وروسته معلومه سوه چې هغه لوښی ناپاکه وو، نو پر هغه د اودس راګرځول ضروري دي، همدارنګه که پاک او ناپاک کالي سره ګډ سول، او د پاکو او ناپاکو په مينځ کي فرق ستونزمن سو، بيا هغه تحري وکړه او يوه جوړه کالي يې راواخيستل په هغه کي يې لمونځ وکړی، او وروسته معلومه سوه چې دا کالي ناپاکه وه، نو پر دې سړي د لمانځه راګرځول واجب دي، حاصل دا چې څرنګه په دې دواړو صورتونو کي د غلطۍ تر ښکاره کېدلو وروسته د اودس او د لمانځه راګرځول ضروري دي، همدارنګه به په پورتنۍ مسئله کي هم د خطاء تر ښکاره کېدلو وروسته د زکاة راګرځول واجب او ضروري وي.

**د طرفينو دليل:** د حضرت معن بن يزيد ﷺ هغه روايت دی چې په هغه کي ذکر سوي دي چې معن ته د خپل پلار (يزيد) صدقه د خپل پلار وکيل ورکړه، کله چې دا مسئله د نبي ﷺ په خدمت کي ذکر سوه، نو نبي ﷺ دا جمله وفرمايله: (يا يزيد لك ما نويت)، يعني اې يزيده! په دې صدقه سره چې کوم نيت تا کړی وو، د هغه ثواب به انشاء الله تا ته حاصل سي، او بيا د هغه د زوی (معن) و طرف ته متوجه سو، او ورته يې فرمايل: يا معن لك ما أخذت، (اې معنه! کوم څه چې تا واخيستله هغه ستاسو)، له دې روايت څخه دا خبره ښکاره سوه چې که زکاة غيرِ مصرف ته ورکول سو، او وروسته څرګنده سوه چې دا مصرف نه وو، نو دويم وار به زکاة نه ورکول کيږي، ځکه چې نبي ﷺ حضرت يزيد ته دويم وار د زکاة ورکولو حکم نه وکړی، بلکي هغه ته يې د ثواب رسېدلو يقين ورکړی، چې دا د دې خبري ښکاره دليل

دي چي د هغه زکاة اداء سو، او بيا نبي ﷺ له حضرت معن څخه د هغه مال د واپس کولو هيڅ مطالبه نه وکړه، چي له هغه څخه بيا دا اشاره تر لاسه کيږي چي د يزيد زکاة اداء سو، حال دا چي ورکونکي او اخيستونکي دواړه پلار او زوی ول.

**د طرفينو دويم دليل:** دا دی چي دا خو موږ هم منو چي د مؤدّي لپاره د مؤدیٰ اليه پر حالت واقفېدل ممکن وو، لکه څرنګه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وايي، لېکن دا واقفيت به پر غالب ګومان مبني وي، د حقيقت سره به د هغه هيڅ تعلق نه وي، ځکه چي مالداري او فقر دننه خبره ده، او د هيڅ سړي پر مالداری يا فقر په حقيقي توګه سره څوک نه سي خبرېدلای، نو ځکه به په دې کي پر غالب ګومان د حکم مدار وي، او انسان که يو څوک په خپل غالب ګومان سره يو څوک فقير وګڼي، او زکاة ورکړي، نو د هغه زکاة به اداء کيږي، ځکه چي د هغه په وس کي صرف تر غالب ګومانه پوري د مؤدیٰ اليه د حال معلومول وو، او هغه ده معلوم کړی، نو که وروسته د هغه غالب ګومان غلط هم سو، نو هم به د هغه زکاة شرعاً معتبر منل کيږي، لکه پر يو چا چي د قبلې طرف مشتبه سي، او هغه تحري وکړي او د غالب ګومان مطابق لمونځ وکړي، بيا هغه ته دا معلومه سي چي د هغه تحري غلطه وه، نو اوس د هغه په اداء سوي لمانځه کي هيڅ خلل نه راځي، او نه هغه ته دويم لمونځ کول پکار دي، همدارنګه به په پورتنۍ مسئله کي هم چي کله هغه تحري کړې وي او يو څوک يې د زکاة مصرف ګڼلی وي، زکاة يې ورکړی وي، او بيا ورته معلومه سي چي هغه د زکاة مصرف نه دی، نو پر هغه به دويم وار د زکاة ورکول لازم نه وي.

<u>وعن أبي حنيفة رَحِمَهُ اللهُ الخ</u> په دې باره کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي که زکاة ورکونکي (مزکّي) يو سړی فقير وګڼی زکاة يې ورکړی، او بيا هغه سړی (يعني مؤدیٰ اليه) مالدار وختی، نو په دې صورت کي به پر مزکّي د زکاة راګرځول ضروري نه وي، او که مؤدیٰ اليه هاشمي، يا کافر، يا د مزکّي پلار، يا د هغه زوی وختی، نو په دې تولو صورتونو کي به پر هغه د زکاة راګرځول ضروري وي، ځکه چي مالداره سړی هم په يو درجه کي د زکاة مصرف دی، همدا وجه ده که عامل يعني د زکاة اخيستونکی او راټولونکی موږ هم وي، نو هم هغه ته د زکاة له مال څخه خپل حقُ الزحمه اخيستل جائز دي، نو ځکه به د مؤدیٰ اليه د مالداره کېدلو په صورت کي زکاة اداء کيږي، لېکن د هغه د هاشمي، يا کافر يا نورو په صورت کي به زکاة نه اداء کيږي، ځکه چي هاشمي او نور خو قطعاً يعني په يوه درجه کي هم د زکاة مصرف نه دي، صاحب د هدايې فرمايي چي ظاهرُ الرواية اول قول دی چي په هغه کي طرفين سره يو ځای دي.

<u>وهذا إلی الخ</u> فرمايي چي غير مصرف ته زکاة ورکول هغه وخت صحيح او جائز دي چي کله زکاة ورکونکي تحري کړې وي او زکاة يې ورکړی وي، او د هغه غالب ګومان دا وي چي دا سړی د زکاة مصرف دی، او که زکاة ورکونکي ته شک وو چي آيا هغه د زکاة مصرف دی، که نه؟، لېکن د دې باوجود يې تحري کړې نه وي، بلکي بې له تحري يې هغه ته زکاة ورکړې وي، يا يې تحري کړې وي او زکاة يې ورکړې وي او غالب ګومان يې دا وي چي هغه د زکاة مصرف نه دی، نو په دې دواړو صورتونو کي هم زکاة نه اداء کيږي، هو! خو که وروسته ښکاره سوه چي مؤدیٰ اليه فقير دی، نو زکاة يې اداء کيږي، او همدا صحيح قول دی.

## که معلومه سوه چې دا سړی د هغه خپل غلام دی نو څه حکم دی؟

وَلَوْ دَفَعَ إِلَى شَخْصٍ او که زکاة یې ورکړی یو سړي ته ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ عَبْدُهُ أَوْ مُكَاتَبُهُ بیا ورته معلومه سوه چې هغه د ده غلام دی یا د ده مکاتب دی لَا يُجْزِئُهُ نو دا ورکړه جائز نه ده لِإِنْعِدَامِ التَّمْلِيكِ د تملیک د نیستیوالي په وجه لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ الْمِلْكِ ځکه چې (په غلام کي) د ملک لیاقت(وړتیا) نسته وَهُوَ الرُّكْنُ عَلَى مَا مَرَّ حال دا چې تملیک رکن(فرض) دی لکه څرنګه چې تېر سو.

**اللغات:** ﴿لايجزئ﴾ نه کافي کیږي(مجازاًنه جائز کیږي).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که یو چا یو سړي ته زکاة ورکړی، بیا معلومه سوه چې مؤدیٰ الیه یعني کوم سړي ته چې یې زکاة ورکړی دی هغه د ده غلام دی، یا د ده مکاتب غلام دی، نو د هغه دا زکاة نه اداء کیږيَ ځکه چې د زکاة د اداء کولو لپاره تملیک رکن دی، او په غلام او مکاتب کي د مالک جوړېدلو اهلیت نسته، نو په دواړو کي تملیک معدوم سو، او کله چې تملیک معدوم سو، نو څرنګه به زکاة صحیح وي!، حال دا چې تملیک د زکاة رکن دی.

## د نصاب خاوند ته د زکاة ورکولو حکم

وَلَا يَجُوزُ دَفْعُ الزَّكَاةِ إِلَى مَنْ يَمْلِكُ نِصَابًا او هغه سړي ته زکاة ورکول جائز نه دي چې هغه د نصاب مالک وي مِنْ أَيِّ مَالٍ كَانَ هغه که له هر مال څخه وي لِأَنَّ الْغِنَى الشَّرْعِيَّ مُقَدَّرٌ بِهِ ځکه چې شرعي مالداري د نصاب سره خاص ده وَالشَّرْطُ أَنْ يَكُونَ فَاضِلًا عَنِ الْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ او شرط دا دی چې دا نصاب به تر اصلي حاجت زیات وي وَإِنَّمَا النَّمَاءُ شَرْطُ الْوُجُوبِ او (د مال) نامي کېدل خو د زکاة د واجبېدلو شرط دی.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که یو سړی د نصاب مالک وي، د هغه سره د سرو یا سپینو زرو نصاب وي، یا د څارویانو نصاب وي، یا د بل سلمان نصاب وي، او مال که نامي وي، که غیرِ نامي، په دې شرط چې له حاجت اصلیه څخه زیات وي، نو هغه ته زکاة ورکول جائز نه دي، د حاجتِ اصلیه مطلب دا دی چې پر هغه د یو چا قرض وي. یا هغه دا مال په خپل ضرورت کي استعمالوي، مثلاً د یو عالم سره دومره اندازه کتابونه وي چې د هغو قیمت د نصاب په اندازه وي. لېکن هغه دې کتابو ته ضرورت لري، او په درس (او تصنیف) کي کار ځني اخلي، نو د دې عالم لپاره زکاة اخیستل جائز دي. ځکه هغه که څه هم د نصاب مالک دی، لېکن دا نصاب تر حاجتِ اصلیه زیات نه دی، نو ځکه به د هغه لپاره زکاة اخیستل صحیح وي.

وانما النماء الخ دا عبارت د یو سوال جواب دی هغه دا چې څه وجه ده چې د نصاب مالک ته د زکاة ورکولو په باره کي صرف له حاجت اصلیه څخه د نصاب د زیاتېدلو شرط ولګول سو، او د نصابِ نامي شرط نه ولګول سو، نو د هغه جواب دا دی چې د نصاب نامي کېدل د زکاة د واجبېدلو شرط دی، نه د زکاة اخیستلو، نو که یو څوک د داسي نصاب مالک وي چې هغه غیرِ نامي وي، نو پر هغه به زکاة ورکول واجب نه وي، خو څرنګه چې د شریعت په نظر کي مالداره دی، نو ځکه به د هغه لپاره زکاة اخیستل جائز نه وي.

## له نصاب څخه د کم مال خاوند ته د زکاة ورکولو حکم

وَيَجُوزُ دَفْعُهَا إِلَى مَنْ يَمْلِكُ أَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ او هغه سړي ته زکاة ورکول جائز دي چي هغه تر نصاب د کم (مال) مالک وي وَإِنْ كَانَ صَحِيحًا مُكْتَسِبًا که څه هم جوړ روغ او ګټونکی وي لِأَنَّهُ فَقِيرٌ ځکه چي تر نصاب د کم (مال) خاوند فقير دی وَالْفُقَرَاءُ هُمُ الْمَصَارِفُ او هم فقيران د زکاة مصارف دي وَلِأَنَّ حَقِيقَةَ الْحَاجَةِ لَا يُوقَفُ عَلَيْهَا او په دې وجه (هم) چي (ديو چا) پر حقيقي حاجت (انسان) نه سي خبرېدلای فَأُدِيرَ الْحُكْمُ عَلَى دَلِيلِهَا نو ځکه د حکم مدار د حقيقي حاجت پر دليل کښېښول سو وَهُوَ فَقْدُ النِّصَابِ او هغه د نصاب نيستي کېدل دي.

**اللغات:** ﴿مكتسب﴾ کسبګر، ګټونکی، ﴿أدير﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: مدار کېدل، مدار ابښوول، ﴿فقد﴾ د نصر مصدر دی: ورکېدل، نيستي کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کوم سړی له نصاب څخه د کم مال خاوند وي، هغه ته زکاة ورکول جائز دي، که څه هم هغه جوړ روغ، د ګټي او کسب خاوند وي، ځکه چي له نصاب څخه د کم مال په وجه هغه سړی فقير دی، او فقيران د زکاة مصرف دي، نو هغه ته به زکاة ورکول په مصرف کي زکاة ورکول وي، او په مصرف کي زکاة ورکول صحيح او جائز دي.

په دې لړ کي دوېم دليل دا دی چي حقيقي حاجت او حقيقي فقر يو پټ شی دی، په هغه باندي په يقيني توګه خبرېدل مشکل دي، (يعني په دې خبرېدل مشکل دي چي کوم انسان حقيقي ضرورت لري)، او قاعده دا ده چي که يو شی مخفي وي، نو د هغه دليل به د هغه قائم مقام کيږي، او حکم به د هغه پر دليل لګيږي، (او په دې مسئله کي دليل د نصاب نه مالک کېدل دي)، نو ځکه به دلته هم حکم د انسان د حاجت پر دليل يعني د نصاب پر فقدان لګيږي، او دا فيصله به کيږي چي څوک د نصاب مالک نه وي، د هغه لپاره زکاة اخيستل حلال دي، لکه څرنګه چي انزال غسل واجبوي، لېکن هغه يو پټ شی دی، (او په هغه ځان خبرول مشکل دي خصوصاً د ښځي لپاره) نو ځکه فقهاؤ د انزال دليل يعني التقاء ختانين (يعني د نارينه او ښځينه اندام سره جوختېدل) د انزال قائم مقام کړه او دا فيصله يې وکړه چي د التقاء ختانين په صورت کي به غسل واجبيږي، هغه که انزال وسي، که نه وسي، نو څرنګه چي د انزال په مسئله کي د هغه پر دليل يعني پر التقاء ختانين د حکم دار ومدار دی، همدارنګه به د فقر او محتاجۍ په مسئله کي د فقر او احتياج پر دليل يعني د نصاب پر فقدان د حکم دار و مدار وي.

## د نصاب په اندازه د زکاة ورکولو حکم

وَيُكْرَهُ أَنْ يَدْفَعَ إِلَى وَاحِدٍ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فَصَاعِدًا او يو چا ته دوه سوه درهمه يا تر دې زيات ورکول مکروه دي وَإِنْ دَفَعَ جَازَ او که يې ورکړي نو جائز دي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجُوزُ لِأَنَّ الْغِنَاءَ قَارَنَ الْأَدَاءَ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه دي ځکه چي مالداري د اداء سره متصله (جوخته) سوه فَحَصَلَ الْأَدَاءُ إِلَى الْغَنِيِّ نو د زکاة اداء مالدار ته حاصله سوه وَلَنَا أَنَّ الْغِنَاءَ حُكْمُ الْأَدَاءِ او زموږ دليل دا دی چي مالداري د زکاة د اداء کولو حکم دی فَيَتَعَقَّبُهُ نو مالداري به د زکاة تر اداء کولو وروسته وي لٰكِنَّهُ يُكْرَهُ لِقُرْبِ الْغِنَى مِنْهُ لېکن داسي کول به مکروه وي ځکه چي مالداري د اداء سره نژدې ده كَمَنْ صَلّٰى وَبِقُرْبِهِ نَجَاسَةٌ لکه يو څوک چي لمونځ کوي او هغه ته نژدې نجاست وي.

**اللغات:** ﴿فصاعدا﴾ زيات، ډېر، ﴿قارن﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: يو ځای کېدل، جوختېدل، ﴿يتطب﴾ ، تفعّل د باب مضارع ده: وروسته کېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې يوه فقير يا يوه مسکين يا يو بل د زکاة مستحق ته د زکاة مال دوسوه درهمه يا ترې زيات ورکول مکروه دي، لېکن که يې ورکړي، نو جائز دي، او د هغه زکاة اداء کېږي، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې يوه فقير ته ۲۰۰ يا ترهغه زيات درهمه د زکاة لپاره ورکول جائز نه دي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې کله فقير ته دوه سوه درهمه ورکړل سي، نو په هغه ګړي مالدار سو، ګواکي مالداري د زکاة ورکولو سره متصله او مقارنه سوه، ځکه چې د زکاة ورکول د دغه فقير د مالداره کېدلو علت سو، او مالداره کېدل معلول سو، او علت د معلول سره مقارن سو، لهذا داسي سو لکه مالدار سړي ته چې زکاة ورکړي، نو په پورتني صورت کي به ځکه يوه فقير ته ۲۰۰ درهمه د زکاة لپاره ورکول جائز نه وي.

ولنا أن الخ زموږ دليل دا دی چې فقير ته زکاة ورکول جلا مسئله ده، او د هغه مالداره کېدل جلا مسئله ده، په دواړو کي هيڅ مقارنت نسته، بلکي اول اداء راځي، بيا غناء يعني مالداري راځي، (يعني چې کله زکاة ورکړي تر هغه وروسته فقير مالداره کېږي)، ځکه چې غناء د اداء حکم دی (او حکم وروسته وي)، نو ځکه به هغه تر اداء وروسته وي، او د زکاة د ورکولو او د اداء کولو په وخت کي به هغه فقير، فقير وي، او فقير ته زکاة ورکول جائز دي، نو ځکه به په پورتني صورت کي يوه فقير ته ۲۰۰ درهمه د زکاة لپاره ورکول هم جائز وي، خو څرنګه چې د زکاة ورکول د مالداري سره نژدې دي، او تر ورکړي وروسته سملستي فقير مالداره کېږي، نو ځکه به دا مکروه وي، لکه څرنګه چې لمونځ کول په خپل ذات کي جائز او مباح دي، لېکن که د لمونځ ګزاره سره شاوخوا نژدې نجاست او ګندګي وي، نو هلته به لمونځ کول مکروه وي، ځکه چې په هغه سره د خشوع و خضوع د متأثره کېدلو خطره سته، همدارنګه به په پورتنۍ مسئله کي خو زکاة ورکول جائز وي، لېکن د مالداری د نژدېکت په وجه به مکروه وي.

## خومره زکاة ورکول غوره دي؟

قَالَ: وَأَنْ يُغْنِيَ بِهَا إِنْسَانًا أَحَبُّ إِلَيَّ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: او چې په زکاة سره انسان بې پروا کړی سي (دا) زما ډېر خوښ دي مَعْنَاهُ الْإِغْنَاءُ عَنِ السُّؤَالِ يعني (چې) هغه له سوال کولو (فقر کولو) څخه بې پروا کړی سي لِأَنَّ الْإِغْنَاءَ مُطْلَقًا مَكْرُوهٌ ځکه چې مطلق بې پروا کول (خو) مکروه دي.

**اللغات:** ﴿إغناء﴾ بې پروا کول، مستغني کول، احتياج ورختمول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره ده چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د زکاة مستحق سړي ته دومره زکاة ورکول چې د هغه په ذريعه سره يوه ورځ له سوال کولو او فقر غوښتلو څخه بې پروا سي، دا غوره خبره ده، فرمايي چې د متن مطلب همدغه دی چې د يوې ورځي لپاره بې پروا کول غوره خبره ده، دا مطلب يې نه دی چې فقير دي د همېشه لپاره بې پروا کړی سي، ځکه چې څه مخکي تاسو ووېل چې يوه فقير ته ۲۰۰ درهمه په زکاة ورکول مکروه دي، نو د دې په صحيح مطلب ځان پوه کړئ.

## له يوه ښار څخه بل ښار ته د زكاة د وړلو حكم

قَالَ: وَيُكْرَهُ نَقْلُ الزَّكَاةِ مِنْ بَلَدٍ إِلَى بَلَدٍ فرمايي: او مكروه دي د زكاة مال له يوه ښار څخه بل ښار ته وړل وَإِنَّمَا تُفَرَّقُ صَدَقَةُ كُلِّ فَرِيقٍ فِيهِمْ (بلكي) د هر فريق زكاة به په هغو كي تقسيمېږي لِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ مُعَاذٍ[1] رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت معاذ ﷺ د حديث په وجه كوم چي موږ روايت كړى وَفِيهِ رِعَايَةُ حَقِّ الْجِوَارِ او په دې كي د همسايتوب د حق رعايت(هم) دى إِلَّا أَنْ يَنْقُلَهَا الْإِنْسَانُ إِلَى قَرَابَتِهِ لېكن دا چي انسان خپل زكاة د خپلو ترېانو و طرف ته نقل كړي أَوْ إِلَى قَوْمٍ هُمْ أَحْوَجُ مِنْ أَهْلِ بَلَدِهِ يا يې د داسي قوم و طرف ته نقل كړي چي هغه تر خپلو ښاريانو زيات محتاجه وي لِمَا فِيهِ مِنَ الصِّلَةِ أَوْ زِيَادَةِ دَفْعِ الْحَاجَةِ ځكه چي په دې كي صله رحمي (خپلولي) ده يا په حاجت لېرې كولو كي زياتوب دى (يعني د ډېر زيات محتاج حاجت لېرې كول دي) وَلَوْ نَقَلَ إِلَى غَيْرِهِمْ أَجْزَأَهُ او كه له دې خلكو څخه ماسوا يې (د بل ځا) و طرف ته نقل كړى نو جائز دي وَإِنْ كَانَ مَكْرُوهًا كه څه هم دا مكروه دي لِأَنَّ الْمَصْرِفَ مُطْلَقُ الْفُقَرَاءِ بِالنَّصِّ ځكه چي د آيت په وجه سره مصرف مطلق فقيران دي.

**اللغات:** ﴿تفرق﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: تقسيمول، وېشل. ﴿أحوج﴾ زيات حاجتمند، زيات ضرورتمند.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي د زكاة مال له يوه ښار څخه بل ښار ته وړل مكروه دي، بلكي له كوم قوم څخه چي زكاة وړي، په هغه قوم كي زكاة تقسيمول پكار دي، اول دليل خو د معاذ ﷺ حديث دى: تؤخذ من اغنيائهم و ترد إلى فقرائهم (يعني د كوم ځاى له مالدارنو څخه چي زكاة واخيستل سي، د هغه ځاى پر فقيرانو به تقسيمېږي)، دويم دليل دا دى چي د زكاة په نه وړلو كي د همسايتوب خيال ساتل دي، او په وړلو كي د هغه پرېښوول راځي، هو! كه په يو ښار كي د يو چا قريبان اوسيږي، يا د بل ښار خلك د دغه ښار له خلكو څخه زيات محتاجه وي، نو د زكاة وړل بې له كراهته جائز دي، دا صورت ځكه مكروه نه دى، چي كه په بل ښار كي د هغه قريبان وي، نو هغو ته د زكاة په وركولو كي د زكاة له ثواب څخه علاوه صله رحمي هم ده، او كه د بل ښار خلك زيات محتاجه وي، نو هغه ځكه چي د زكاة مقصود د محتاج حاجت لېرې كول دي، او كوم سړى چي زيات محتاجه وي، هغه زيات مستحق دى، لېكن كه له قريبانو او يا زياتو محتاجو خلكو څخه ماسوا يې د بل چا لپاره بل ښار ته زكاة يوړى نو هم جائز دي، كه څه هم داسي كول مكروه دي، ځكه چي په دې آيت إنما الصدقات للفقراء كي د زكاة مصرف فقط فقيران ښوول سوي دي، د همسايه فقيرانو يا د بل ځاى د فقيرانو هيڅ تخصيص پكښي نسته. والله أعلم بالصواب



[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب أخذ الصدقة من الاغنياء، حديث رقم: ۱۴۹۶.

# بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

(دا) باب د صدقة الفطر (سرسايې) داحكامو په بيان كې دى

**تشريح:** صاحب د هدايې د زكاة تر احكامو وروسته د صدقة فطر (سرسايې) احكام بيانوي، او څرنګه چې دواړه ملي عبادتونه دي، نو ځکه ديوه احكام تر بل وروسته ذكر كوي، خو زكاة فرض دى، او صدقة فطر واجب ده، او ښكاره ده چې د فرضو درجه له واجبو څخه مخكې وي، نو ځکه يې مخكې د فرضو يعنې د زكاة احكام او مسائل بيان كړل، او اوس د واجب يعنې د صدقة فطر مسائل بيانوي.

ښكاره دې وي چې د صدقه معنیٰ ده: وركړه (عطيه)، او له دې څخه دلته هغه وركړه او عطيه مراد ده، چې هغه د الله ﷻ د تقرب (نژدېكت حاصلولو) په خاطر وركړل سي، د صدقه شرعي او اصطلاحي تعريف دا دى: هغه مال چې د صله رحمي او د عبادت په توګه د ترحم په خاطر وركړل سي، او صدقه ته په دې وجه صدقه وايي چې په دې سره په ثواب حاصلولو كې دانسان خوښته او رغبت صادق (رښتونى) وي. (بنايه ج ۳، ص ۵۴۶، وهكذا فى العنايه)

د حديثو په كتابونو كې د صدقة الفطر لپاره ډېر الفاظ ذكر سوي دي: (۱) صدقة الفطر. (۲) زكوة الفطر. (۳) زكوة رمضان، (۴) زكوة صوم، (۵) صدقة الصوم، (٦) صدقة رمضان، (۷) صدقة الرؤس، (۸) زكوة الأبدان.

## د صدقة فطر (سرسايې) شرعي حيثيت او شرطونه

قَالَ: صَدَقَةُ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ عَلَى الْحُرِّ الْمُسْلِمِ فرمايي: چې سرسايه واجب ده پر آزاد مسلمان إِذَا كَانَ مَالِكًا لِمِقْدَارِ النِّصَابِ په دې شرط چې هغه د نصاب د مقدار مالک وي فَاضِلًا عَنْ مَسْكَنِهِ وَثِيَابِهِ وَأَثَاثِهِ او (په دې شرط چې) دا نصاب به زيات وي د هغه له كور او د هغه له كالوجامو او د هغه له كورني سامان څخه وَفَرَسِهِ وَسِلَاحِهِ وَعَبِيدِهِ او د هغه له آس (سپرلي) او د هغه له اسحلې (وسلې) او د هغه له خدمتكاره غلامانو څخه أَمَّا وُجُوبُهَا فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● فِي خُطْبَتِهِ هر چې د صدقة فطر وجوب دى نو ځکه چې نبي ﷺ په خپله خطبه كې وفرمايل أَدُّوا عَنْ كُلِّ حُرٍّ وَعَبْدٍ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ "چې اداء كړئ له هر آزاد او غلام څخه د غنمو نيم صاع أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ يا د اوربشو نيم صاع" رَوَاهُ ثَعْلَبَةُ بْنُ صُعَيْرٍ الْعَدَوِيُّ داحديث ثعلبه بن صعير عدوي روايت كړى دى وَبِمِثْلِهِ يَثْبُتُ الْوُجُوبُ او په داسې حديث سره وجوب (د صدقة فطر) ثابتېږي لِعَدَمِ الْقَطْعِ د يقين د نشتوالي په وجه (يعني داسې

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب الزكاة، باب من روى نصف صاع من قمح، حديث رقم: ۱۶۱۹، ۱۶۲۰.

حديث ظني دي قطعي نه دي) وَشَرْطُ الْحُرِّيَّةِ لِيَتَحَقَّقَ التَّمْلِيكُ او د آزاد والي شرط ځکه دی چي تمليک ثابت سي وَالْإِسْلَامُ لِيَقَعَ قُرْبَةً او د اسلام شرط ځکه دی چي صدقة فطر عبادت(او قربت) واقع سي وَالْيَسَارُ لِقَوْلِهِ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د مالداري شرط ځکه دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي لَا صَدَقَةَ إِلَّا عَنْ ظَهْرِ غِنًى صدقه نسته مګر له مالدار څخه وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي قَوْلِهِ او دا حديث حجت دی د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف د هغه په دې قول کي تَجِبُ عَلَى مَنْ يَمْلِكُ زِيَادَةً عَلَى قُوتِ يَوْمِهِ لِنَفْسِهِ وَعِيَالِهِ چي صدقة فطر واجب ده پر هغه چا باندي چي د خپل ځان او د خپل عيال لپاره تر يوې ورځي زياته روزي لري وَقُدِّرَ الْيَسَارُ بِالنِّصَابِ لِتَقَدُّرِ الْغِنَاءِ فِي الشَّرْعِ بِهِ او د مالداري اندازه په نصاب سره سوې ده ځکه چي په شريعت کي مالداره کېدل د هغه سره خاص دي فَاضِلًا عَمَّا ذُكِرَ مِنَ الْأَشْيَاءِ په داسي حال کي چي دا نصاب به له ذکر سوو شيانو څخه زيات وي لِأَنَّهَا مُسْتَحَقَّةٌ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ ځکه چي دا شيان په اصلي حاجت(حاجتِ اصليه) کي مستحق دي وَالْمُسْتَحَقُّ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ كَالْمَعْدُومِ او کوم شيان چي په حاجتِ اصليه کي مستحق(او شامل) وي هغه د معلوم په ډول دي(يعني په حاجتِ اصليه چي کوم شيان شامل وي هغه ګواکي ګردسره سته نه) وَلَا يُشْتَرَطُ فِيهِ النُّمُوُّ او په دې نصاب کي نماء(وده کول) شرط نه دي وَيَتَعَلَّقُ بِهَذَا النِّصَابِ حِرْمَانُ الصَّدَقَةِ وَوُجُوبُ الْأُضْحِيَّةِ وَالْفِطْرَةِ او د دې نصاب سره تعلق لري [١] د صدقې حرامېدل [٢] د قرباني واجبېدل [٣] او صدقة فطر واجبېدل.

**اللغات:** ﴿حر﴾ آزاد، ﴿أثاث﴾ کورني سامان، ﴿سلاح﴾ اسلحه، ﴿عبيد﴾ جمع د عبد ده: غلامان، ﴿بر﴾ غنم، ﴿شعير﴾ اوربشي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز صدقة فطر(سرسايه) واجب ده، پر هغه چا چي آزاد وي، مسلمان وي، او د داسي نصاب مالک وي چي هغه د ده له حاجات اصليه وو(اصلي اړتياوو) مثلاً د استوګني کور، د اغوستلو کالي، د سپرتيا آسونه(موټرونه)، د اسلحې(وسلې) او د خدمتګارانو څخه فاضل او زيات وي، د ائمه ثلاثه وو په نېز صدقة فطر فرض ده، او د دې پر فرضيت د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په هغه حديث سره دليل نيسي چي هغه صاحب د بناېې او نورو په دې الفاظو سره بيان کړی دی: فَرَضَ رسول الله ﷺ صدقة الفطر صاعاً من شعير أو صاعا من تمر على حر وعبد ذكرا أو أنثى الخ. (يعني نبي ﷺ پر مسلمان آزاد او غلام صدقة فطر فرض کړې ده، هغه که نر وي، که ښځه (بعيه ض:٣، ص: ٥٧١))، ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ الله فرمايي چي په دې حديث کي په صراحت سره صدقة فطر د فرضو په صيغه سره ذکر سوې ده. دا د دې خبري دليل دی چي صدقة فطر فرض ده، خو زموږ له طرفه د هغه جواب دا دی چي له فَرَضَ څخه أَمَرَ او أَوْجَبَ مراد دي، او له دې الفاظو څخه وجوب(واجبېدل) ثابتېږي.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الوصايا، باب تأويل قوله تعالى: من بعد وصية توصي بها، حديث رقم: ٢٧٥٠، وفي كتاب الزكاة، حديث رقم: ١٤٢٦.

أمّا وجوبها الخ د صدقة فطر پر واجبېدلو زموږ دلیل د حضرت ثعلبه بن صُعیر عذري هغه حدیث دی، کوم چې په کتاب کې ذکر سو، یعني: أدّوا عن کل حر وعبد صغیراً أو کبیراً الخ، دا حدیث خبر واحد دی، او تاسو ته معلومه ده چې خبر واحد دلیلِ ظني وي، او په دلیل ظني سره خو وجوب ثابتېدای سي، لېکن فرضیت نه سي ثابتېدلای، ځکه چې د فرضیت د ثبوت لپاره دلیلِ قطعي ضروري دی، نو ځکه موږ صدقة فطر ته واجب وایو.

وشرط الحریة الخ فرمایي چې د صدقة فطر د واجبېدلو لپاره آزادي ځکه شرط ده چې د زکاة په ډول په صدقة فطر کې هم تملیک (یعني د بل چا مالک جوړول) رکن دی، او غلام خو د خپل ځان لا مالک نه وي، نو هغه به بل څوک څرنګه مالک جوړ کړي، نو ځکه شریعت پر غلام صدقة فطر واجب کړې نه ده، لېکن د غلام له طرفه یې د هغه پر مالک (مولیٰ) واجب کړې ده.

والإسلام الخ د صدقة فطر د وجوب لپاره اسلام ځکه شرط دی، چې دا یو عبادت دی، او کافر خو بالکل د عبادت اهل نه وي، او نه د هغه له طرفه عبادت متحقق کېدای سي.

والیسار الخ فرمایي چې د صدقة فطر د واجبېدلو لپاره مالداري (غناء) یعني د نصاب مالک کېدل هم شرط دي، او بنکاره دي وي چې د نصاب شرط صرف زموږ په نېز دی، لېکن د ائمه ثلاثه وو په نېز په صدقة فطر کې نصاب شرط نه دی، بلکې د دوی په نېز پر هغه سړي صدقة فطر واجب ده چې هغه د خپل ځان او د خپل عیال لپاره فقط تر یوې ورځې او شپې زیاته روزي لري.

په صدقة فطر کې د نصاب پر شرطیت زموږ دلیل دا حدیث دی: لا صدقة إلا عن ظهر غني ، (یعني صدقه به صرف د مالدار سړي له طرفه ثابتېږي)، نو په دې باره کې دا حدیث د ائمه ثلاثه وو په خلاف حجت دی.

وقدر الیسار الخ فرمایي چې مالداري په نصاب سره اندازه سوې ده، ځکه چې په شریعت کې هغه سړي ته مالدار ویل کېږي، چې د نصاب مالک وي، لېکن په دې باره کې دا هم ضروري ده، چې مذکوره نصاب به د مالک له حاجت اصلیه څخه فارغ وي، ځکه په حاجت اصلیه سره چې کوم نصاب مشغوله وي، هغه معدوم شمارل کېږي (یعني ګواکې هغه نصاب ګرد سره د مالک سره ستَه نه)، او کله چې نصاب نه وي، نو صدقه به څرنګه واجبېږي، نو ځکه موږ وایو چې له حاجت اصلیه څخه د هغه فارغېدل هم ضروري دي.

ولا یشترط فیه النمو الخ فرمایي چې د زکاة په نصاب کې خو نماء شرط وه، لېکن د صدقة فطر په نصاب کې نماء شرط نه ده، ځکه چې د صدقة فطر د واجبېدلو لپاره قدرت مُمکّنه ضروري دی، یعني د نصاب پر ملکیت قدرت شرط دی، نو صرف د نصاب وجود د صدقة فطر د واجبېدلو لپاره کافي دی، د دې په خلاف د زکاة په نصاب کې قدرتِ مُیسِّره شرط دی، او میسره له یُسر څخه مشتق دی، او یُسر (مالداري) له نماء څخه متحق کېږي، نو ځکه به په زکاة کې نماء شرط وي، لېکن په صدقة فطر کې به شرط نه وي.

ویتعلق الخ د دې حاصل دا دی چې د صدقة فطر د نصاب سره درې شیان تعلق لري، یعني کوم سړی چې د غیرِ نامي نصاب مالک وي د هغه سره دا درې شیان تعلق لري: د هغه لپاره صدقه اخیستل حرام دي، او دویم د داسې نصاب پر مالک قرباني هم واجب ده، او دریم صدقة فطر هم پر واجب ده، ځکه چې دا درې سره شیان د قدرتِ ممکنه سره تعلق لري.

پاته سوه دا خبره چې د چالپاره سوال کول (فقر کول) حرام دي، نو د چا سره چې د يوې ورځې روزي وي، او بعضو ويلي دي چې پنځوس (۵۰) درهمه ورسره وي، د هغه لپاره سوال کول حرام دي.

## له خپل طرفه د صدقۀ فطر ورکولو حکم

قَالَ: يُخْرِجُ الْمَلِكُ عَنْ نَفْسِهِ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: چې (د نصاب مالک به) دا صدقۀ فطر د خپل ځان له طرفه باسي لِحَدِيثِ ● ابْنِ عُمَرَ د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د حديث په وجه قَالَ: فَرَضَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ عَلَى الذَّكَرِ وَالْأُنْثَى ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: چې نبي ﷺ پر نر او ښځه صدقۀ فطر فرض کړې ده.

**اللغات:** ﴿ذکر﴾ نر، مذکر، ﴿أنثى﴾ ښځه، مؤنث.

**تشريح:** عبارت خو بالکل ښکاره دی، ليکن له عبارت څخه علاوه په دې خبره هم پوه سئ چې په دې حديث کې له صدقۀ فطر څخه تعبير په زکوٰة الفطر سره سوی دی، او د زکاة د وجوب لپاره نصاب شرط دی، نو ځکه به د صدقۀ فطر د وجوب لپاره (هم) نصاب شرط وي.

## د خپل نابالغ اولاد له طرفه د صدقۀ فطر ورکولو حکم

وَعَنْ أَوْلَادِهِ الصِّغَارِ او (د نصاب مالک يعني مالداره سړی به) د خپل نابالغه اولاد له طرفه (هم) صدقۀ فطر باسي لِأَنَّ السَّبَبَ رَأْسٌ يَمُونُهُ ځکه چې (د صدقۀ فطر د واجبېدلو) سبب داسې سر (يعني داسې انسان) دی چې هغه ته دا مالداره سړی نفقه (او توښه) ورکوي وَيَلِي عَلَيْهِ او د هغه متولي وي (يعني پر هغه مشري کوي) لِأَنَّهَا تُضَافُ إِلَيْهِ ځکه چې صدقۀ فطر د سر (يعني د انسان) و طرف ته منسوبيږي يُقَالُ: زَكَاةُ الرَّأْسِ ويل کيږي: د سر زکاة وَهِيَ أَمَارَةُ السَّبَبِيَّةِ او دا (اضافت او نسبت) د سبب کېدلو نښه ده وَالْإِضَافَةُ إِلَى الْفِطْرِ بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ وَقْتُهُ او د فطر و طرف ته اضافت په دې اعتبار سره دی چې فطر د صدقۀ فطر وخت دی وَلِهَذَا تَتَعَدَّدُ بِتَعَدُّدِ الرَّأْسِ همدا وجه ده چې د سر په متعدد کېدلو (يعني په ډېرېدلو) سره صدقۀ فطر (هم) متعدده کيږي مَعَ اتِّحَادِ الْيَوْمِ سره د دې چې ورځ يوه ده وَالْأَصْلُ فِي الْوُجُوبِ رَأْسُهُ وَهُوَ يَمُونُهُ او د صدقۀ فطر په واجبېدلو کې اصل (سبب) د مالداره سړي (داسې) سر دی (چې) مالداره سړی هغه ته نفقه ورکوي وَيَلِي عَلَيْهِ او پر هغه مشري کوي فَيَلْحَقُ بِهِ مَا هُوَ فِي مَعْنَاهُ نو د هغه سره به هر داسې سر ملحق کيږي چې د هغه په معنیٰ کې وي كَأَوْلَادِهِ الصِّغَارِ لکه د مالداره سړي نابالغه اولاد لِأَنَّهُ يَمُونُهُمْ وَيَلِي عَلَيْهِمْ ځکه چې دی هغو ته (هم) نفقه ورکوي او پر هغو هم مشري کوي.

---

● التخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الزكاة، باب ما جاء في صدقة الفطر، حديث رقم: ۶۷۵، ۶۷۶.

**اللغات:** ﴿صغار﴾ جمع د صغير ده: کوچنيان. ﴿رأس﴾ يو انسان. ﴿يمونه﴾ د نصر مضارع ده: ديو چا نفقه او خرچه زغمل، يو چا ته نفقه او خرچه ورکول. ﴿أمارة﴾ نښه. ﴿يلي﴾ کله چې د يلي په صله کې على راسي، نو معنىٰ يې راځي: نګران کېدل، متولي کېدل، مشر کېدل، مشري کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کوم سړی د نصاب مالک وي هغه به د خپل ځان له طرفه هم صدقه فطر ادام کړي، او د خپل نابالغه اولاد او د خپلو غلامانو له طرفه به هم صدقهٔ فطر اداء کړي. دليل دا دی چې د صدقهٔ فطر د واجبېدلو سبب داسې رأس (سَرَ) او داسې ذات دی، چې پر هغه دا سړی مشري کوي (يعني متولي يې وي)، او د هغه د نفقې ذمه واره وي، همدا وجه ده چې صدقهٔ فطر د رأس و طرف ته منسوبيږي، ويل کيږي چې زکوة الرأس، او اضافت د مضاف اليه د سبب کېدلو نښه ده، نو ځرنګه چې په زکوة الرأس کې د رأس و طرف ته د صدقهٔ فطر نسبت سوی دی، نو ځکه به رأس او ذات د صدقهٔ فطر د وجوب سبب وي.

والإضافة إلى الفطر الخ دا عبارت د يو سوال جواب دی، سوال دا دی چې ځرنګه صدقهٔ فطر د رأس و طرف ته منسوبيږي، تر دې زيات د فطر و طرف ته هم منسوبيږي، ويل کيږي: صدقهٔ فطر او صدقةُ الفطر، نو د واجبېدلو په سبب کې به د رأس په مقابله کې د فطر حق زيات وي، نو په دې وجه فطر (عيدُ الفطر) هم د صدقهٔ فطر د وجوب سبب ګرځول پکار دي، حال دا چې داسې نه ده. صاحب د هدايې په جواب کې فرمايي چې د فطر و طرف ته چې کوم اضافت دی هغه د فطر د سبب کېدلو په وجه سره نه دی، بلکې دا اضافت د فطر د وخت کېدلو په وجه سره دی، يعني د صدقهٔ فطر وخت عيدُ الفطر (د کوچني اختر ورځ) ده. لهذا رأس او ذات د صدقهٔ فطر سبب سو او فطر يعني عيدُ الفطر يې وخت سو، همدا وجه ده که ذات او رأسونه ډېر وي، نو متعدده صدقهٔ واجبيږي، که څه هم د فطر ورځ يوه ده. له دې څخه هم معلومه سوه چې د صدقهٔ فطر د وجوب سبب رأس دی، او فطر يې صرف د اداء کولو وخت دی.

والأصل الخ فرمايي چې د صدقهٔ فطر په وجوب کې اصل خبره همدا ده چې هغه به د نصاب پر مالک او مالداره سړي واجب وي، او ځرنګه چې مالداره پر خپل ذات او پر خپل رأس نفقه مصرفوي، همدارنګه خپل اولاد ته هم نفقه ورکوي، او اولاد ټوله د هغه په ولايت او نګراني (سرپرستي) کې اوسيږي، او ژوند تېروي، نو ځکه به دا ټوله هم د اصل او مالک يعني د مالداره سړي په معنىٰ کې وي، لهذا ځرنګه چې پر مالک د خپل رأس صدقه ورکول واجب دي، همدارنګه به پر هغه د هر هغه رأس صدقه ورکول واجب وي کوم چې د هغه په سرپرستي کې اوسيږي.

## د خپلو غلامانو له طرفه د صدقهٔ فطر ورکولو حکم

وَمَمَالِيكِهِ او د خپلو غلامانو له طرفه به (هم) صدقهٔ فطر باسي لِقِيَامِ الْمُؤْنَةِ وَالْوِلَايَةِ ځکه چې (په هغو کې هم) مؤنت او ولايت ثابت دی وَهَذَا إِذَا كَانُوا لِلْخِدْمَةِ او دا حکم هغه وخت دی چې کله غلامان د خدمت لپاره وي وَلَا مَالَ لِلصِّغَارِ او د نابالغه کوچنيانو سره مال نه وي فَإِنْ كَانَ لَهُمْ مَالٌ يُؤَدِّي مِنْ مَالِهِمْ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله، كما قال العلامة أكمل الدين البابرتي رَحِمَهُالله: فإن كان لهم مال يؤدى عن مالهم عند أبي حنيفة وأبي يوسف رَحِمَهُمَاالله وهو الإستحسان، العنايه ج:۲، ص: ۲۲۱. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۸۸]

رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالَىٰ لېکن که د هغو سره مال وي نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به پلار د هغو له مال څخه صدقهٔ فطر اداء کوي خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ الله د امام محمد رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ الشَّرْعَ أَجْرَاهُ مَجْرَى الْمُؤْنَةِ ځکه چي شريعت صدقهٔ فطر د مؤنت قائم مقام کړي ده فَأَشْبَهَ النَّفَقَةَ نو هغه د نفقې سره مشابه سوه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي پر مالک د خپل خدمتګاره غلامانو مثلاً د مدبر او اُم ولد له طرفه هم صدقهٔ فطر ورکول واجب دي، ځکه چي د نابالغه اولاد په ډول پر دوی هم د هغه ولايت قائم دی، او دوی هم د هغه په نفقه او خرڅه سره ژوند تېروي، او د هغه په سرپرستي کي اوسيږي، صاحب د هدايې فرمايي چي د غلامانو له طرفه هغه وخت پر مالک صدقهٔ فطر واجبيږي چي کله هغوی د خدمت لپاره وي، لېکن که غلامان د خدمت لپاره نه وي. بلکي د تجارت لپاره وي، نو بيا په هغو کي زکاة واجبيږي، صدقهٔ فطر نه واجبيږي.

ولا مال للصغار الخ د دې حاصل دادی چي د پلار لپاره د خپل نابالغه اولاد له طرفه د صدقهٔ فطر د ورکولو حکم هغه وخت دی چي کله د اولاد سره بالکل مال نه وي، لېکن که د هغو سره مال وو، نو د شيخينو په نېز به د هغو له مال څخه صدقهٔ فطر اداء کيږي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د هغو له مال څخه صدقهٔ فطر اداء کول صحيح نه دي، بلکي په دې صورت کي به هم پر پلار د هغو صدقهٔ فطر واجب وي، او که پلار د نابالغه اولاد له مال څخه صدقهٔ فطر اداء کړه، نو هغه به د دې ضامن وي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چي صدقهٔ فطر يو عبادت دی، او نابالغه ولد(صغير) د عبادت اهل نه دی، او کله چي پر صغير بدني عبادت واجب او لازم نه دی، نو بنکاره ده چي مالي عبادت به څرنګه پر واجب وي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چي شريعت د صدقهٔ فطر د خرڅې او مؤنت قائم مقام کړې ده(همدا وجه ده چي پر انسان د خپل اولاد او مماليکو له طرفه صدقهٔ واجبيږي)، نو دا د نفقې سره مشابه سوه، او که د صغير سره مال وو، نو د هغه نفقه به د هغه له مال څخه واجب وي، لهذا که د هغه سره مال وو، نو صدقهٔ فطر به هم د هغه په مال کي واجبيږي، او د هغه له مال څخه به ورکول کيږي.

## د ښځي صدقهٔ فطر پر خاوند واجبه نه ده

وَلَا يُؤَدِّي عَنْ زَوْجَتِهِ او خاوند (مېړه) به د خپلي ښځي له طرفه صدقهٔ فطر نه اداء کوي لِقُصُورِ الْوِلَايَةِ وَالْمُؤْنَةِ ځکه چي ولايت او مؤنت دواړه ناقص دي فَإِنَّهُ لَا يَلِيهَا فِي غَيْرِ حُقُوقِ النِّكَاحِ ځکه چي خاوند د نکاح له حقوقو څخه علاوه پر هغې نور ولايت نه لري (يعني صرف د نکاح په معاملاتو کي پر ښځي حق د ولايت لري، په نورو کي ښځه آزاده ده) وَلَا يَمُونُهَا فِي غَيْرِ الرَّوَاتِبِ كَالْمُدَاوَاةِ او له ثابت سوو ځايونو څخه علاوه خاوند د ښځي خرڅه هم نه زغمي لکه په درملنه کي.

**اللغات:** ﴿رواتب﴾ واجبات، ثابت سوي اُمور او ثابت سوي ځايونه.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي پر مالداره خاوند د خپلي ښځي له طرفه صدقهٔ فطر ورکول واجب نه دي، ځکه په ښځه کي هم ولايت ناقص دی، او هم مؤنت ناقص دی، ولايت خو ځکه ناقص دی چي د نکاح له حقوقو څخه علاوه خاوند د ښځي د هيڅ شي هم متولي او نمه واره نه دی (ځکه هغه په خپله آزاده، عاقله او بالغه ده)، او مؤنت ځکه ناقص دی چي له ثابت سوو شيانو مثلاً له سُکنیٰ، نفقه او کسوه څخه علاوه د يو بل شي لکه د علاج او درملني خرڅه او داسي نور د

خاوند پر ذمه واجب نه دي، نو کله چي پر ښځي د خاوند ولايت او مؤنت دواړه ناقص دي، نو ښکاره ده چي پر مئنه پر ښځي صدقة فطر هم واجب نه وي، ځکه چي د صدقة فطر لپاره کامل مؤنت او کامل ولايت ضروري دی.

## د بالغ اولاد صدقة فطر پر پلار لازمه نه ده

وَلَا عَنْ أَوْلَادِهِ الْكِبَارِ او نه به د خپل بالغ اولاد له طرفه صدقة فطر اداء کوي وَإِنْ كَانُوا فِي عِيَالِهِ که څه هم هغوی ده په عيال (او کفالت) کي وي لِانْعِدَامِ الْوِلَايَةِ پر هغو د ولايت د نشتوالي په وجه وَلَوْ أَدَّى عَنْهُمْ أَوْ عَنْ زَوْجَتِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او که هغه د خپل بالغ اولاد يا د خپلي ښځي له طرفه د هغو له حکم (او اجازې) څخه بغير صدقة فطر اداء کړي أَجْزَأَهُ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً د هغو له طرفه اداء سوه لِثُبُوتِ الْإِذْنِ عَادَةً ځکه چي عادتاً اجازه ثابته ده.

**اللغات:** ﴿عيال﴾ بال بچ، عيال (هغه چي د انسان تر پالني او نفقې لاندي وي).

**تشريح:** مسئله: دا ده چي پر پلار د خپل نابالغه اولاد له طرفه صدقه ورکول واجب نه دي، که څه هم بالغه اولاد د هغه په عيال کي داخل وي، ځکه چي د پلار لپاره پر بالغ اولاد هيڅ ولايت نسته، لېکن که يې پلار د بالغ اولاد له طرفه اداء کړي يا يې خاوند د خپلي ښځي له طرفه اداء کړي، بغير د هغو له حکمه څخه، نو هم استحساناً صدقه اداء سوه، ځکه چي دلته اجازه عادةً او په عامه توګه ثابته ده. (يعني د اولاد او ښځي له طرفه په عامه توګه اجازه وي)، او قاعده دا ده چي: الثابت عادة کالثابت بالنص. (يعني کوم چي عادةً ثابت سوی وي، هغه داسي دی لکه په نص او صراحت سره چي ثابت سوی وي).

## د مکاتب، مدبر او اُمّ ولد صدقة فطر پر مالک لازمه نه ده

وَلَا يُخْرِجُ عَنْ مُكَاتَبِهِ او مالک به نه باسي صدقة فطر د خپل مکاتب غلام له طرفه لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ ځکه ولايت نسته وَلَا الْمُكَاتَبُ عَنْ نَفْسِهِ او نه به يې مکاتب له خپل طرفه باسي لِفَقْرِهِ ځکه مکاتب فقير دی وَفِي الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ وِلَايَةُ الْمَوْلَى ثَابِتَةٌ او په مدبر او ام ولد کي د مالک ولايت (په بشپړه توګه) ثابت دی فَيُخْرِجُ عَنْهُمَا نو مالک به د هغو له طرفه صدقة فطر باسي وَلَا يُخْرِجُ عَنْ مَمَالِيكِهِ لِلتِّجَارَةِ او د خپل تجارتي غلامانو له طرفه به يې نه باسي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی فَإِنَّ عِنْدَهُ وُجُوبَهَا عَلَى الْعَبْدِ وَوُجُوبَ الزَّكَاةِ عَلَى الْمَوْلَى ځکه چي د هغه په نيز صدقة فطر پر غلام واجبيږي او زکاة پر مولیٰ واجبيږي فَلَا تُنَافِيهِ نو ځکه به صدقة فطر د زکاة منافي نه وي وَعِنْدَنَا وُجُوبُهَا عَلَى الْمَوْلَى بِسَبَبِهِ كَالزَّكَاةِ او زموږ په نيز صدقة فطر د خپل سبب په وجه سره پر مولیٰ واجبيږي لکه زکاة فَيُؤَدِّي إِلَى الثِّنَى نو دا به د تکرار سبب جوړ سي.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي مالک (مولیٰ) به د خپل مکاتب غلام له طرفه هم صدقة فطر نه باسي، ځکه مکاتب يداً او تصرف په اعتبار سره آزاد دی. او په هغه کي د مالک پوره ولايت نسته، حال دا چي د صدقة فطر د وجوب سبب کامل ولايت دی. او پر مکاتب د خپل ځان له طرفه هم صدقة فطر اداء کول واجب نه دي، ځکه مکاتب د بدل

کتابت واداء کولو ته محتاج دی، نو کوم مال چي د هغه سره وي، هغه به تو له د مولیٰ په ملکیت کي وي، او کله چي هغه د مولیٰ ملکیت سو، نو مکاتب فقیر پاته سو، او پر فقیر صدقهٔ فطر واجب نه ده، نو ځکه به پر مکاتب له خپل طرفه صدقهٔ فطر اداء کول واجب نه وي، او پاته سوه مدبر او أم ولد نو څرنګه چي مولیٰ ته پر هغو رقبة او یداً دواړه پوله کامل ولایت حاصل دی، او د هغو مؤنت (خرڅ او نفقه) هم مولیٰ زغمي، نو ځکه به د هغوی له طرفه صدقهٔ فطر هم پر مولیٰ واجب وي.

ولا یخرج الخ فرمایي چي زموږ په نیز پر مولیٰ د خپل تجارتي غلامانو او مینځو له طرفه هم صدقهٔ فطر ورکول واجب نه دي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي د تجارتي غلامانو او مینځو له طرفه به صدقهٔ فطر ورکوي، ځکه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز صدقهٔ فطر پر غلام واجبیږي، که څه هم د هغه له طرفه یې مولیٰ اداء کوي، او زکاة یې پر مولیٰ واجبیږي، نو صدقه او زکاة دواړه حقونه دي، او په دوو بېلابېلو ځایونو کي ثابت دي، یعني صدقه پر غلام ثابته ده، او زکاة پر مولیٰ ثابت دی، لهذا په دواړو کي هیڅ منافات نسته، او کله چي منافات نسته، نو د دواړو جمع کول به جائز وي، خو څرنګه چي زموږ په نیز د غلام صدقهٔ فطر پر مولیٰ واجبیږي، لکه زکاة چي هم پر مولیٰ واجبیږي، نو که د تجارتي غلامانو صدقه پر مولیٰ واجب کړو، نو دا خطره به پېښه سي چي په دې غلامانو کي به په یوه کال کي دننه دوه واره مالي فریضه واجب کړی سي، یوه به د صدقهٔ فطر په توګه واجب وي، او بله به د زکاة په توګه، حال دا چي په یوه کال کي دوه وار مالي فریضه واجبول جائز نه دي، لکه څرنګه چي د فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حدیث دی: لا ثِنَی فی الصدقة، ثنی د ثاء په کسره او د نون په الفِ مقصوره سره دی، (یعني په کال کي به دوه ورارہ صدقه نه اخیستل کیږي).

## د مشترک غلام د صدقهٔ فطر حکم

> وَالْعَبْدُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ او کوم غلام چي د دوو شریکانو په مینځ کي (مشترک) وي لَا فِطْرَةَ عَلَى وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په هغو کي پر یوه هم صدقهٔ فطر واجب نه ده لِقُصُورِ الْوِلَايَةِ وَالْمُؤْنَةِ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه چي ولایت او مؤنت د هر یوه په حق کي ناقص (کم) دی وَكَذَا الْعَبِيدُ بَيْنَ اثْنَيْنِ او همدارنګه په دېرو غلامانو کي هم (صدقهٔ فطر واجب نه ده) چي د دوو خلکو په مینځ کي (مشترک) وي عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله (دا حکم) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دی وَقَالَا: عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَا يَخُصُّهُ مِنَ الرُّؤُوسِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي پر هر یوه د هغو (حصو او) راسونو مطابق صدقهٔ فطر واجب ده چي هغه په دوی کي د هر یوه لپاره خاص وي دُونَ الْأَشْقَاصِ نه د ټوکړو (ټوټو) په حساب سره بِنَاءً عَلَى أَنَّهُ لَا يَرَى قِسْمَةَ الرَّقِيقِ دا اختلاف پر دې خبره مبني دی چي امام صاحب رَحِمَهُ الله د غلام تقسیم جائز نه ګڼي وَهُمَا يَرَيَانِهَا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله یې جائز ګڼي وَقِيلَ: هُوَ بِالْإِجْمَاعِ او ویل سوي دي چي دا

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله لأن الشرّاح نقل الإجماع على قوله، كما قال العلامة أكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله: وقيل هو بالاجماع أى عدم وجوب الفطرة في العبيد بين اثنين باجماع علمائنا الثلاثة، العناية ج:۲، ص: ۲۲۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۰]

حکم بالاجماع دی لِأَنَّهُ لَا يَجْتَمِعُ النَّصِيبُ قَبْلَ الْقِسْمَةِ ځکه چې تر تقسيم مخکې حصې نه سي جمع کېدلای فَلَمْ تَتِمَّ الرَّقَبَةُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لهذا په دواړو شريکانو کې د يوه لپاره (هم) غلام پوره نه سو.

اللغات: ﴿أشقاص﴾ جمع د شقص ده، يوه حصه، يوه ټوکړه. ﴿نصيب﴾ تاکل سوې برخه (حصه).

تشريح: مسئله: دا ده که يو غلام د دوو خلکو په مينځ کې مشترک وو، نو بالاتفاق پر يوه شريک هم د دې غلام صدقهٔ فطر واجب نه ده، ځکه چې د دواړو ولايت هم ناقص دی او مؤنت يې هم ناقص دی، او دا خبره تېره سوه چې د صدقهٔ فطر د واجبېدلو سبب کامل ولايت او کامل مؤنت دی، نو کله چې سبب پيدا نه سو، نو صدقه فطر به هم نه واجبېږي.

او که يو څو غلامان د دوو خلکو په مينځ کې مشترک ول، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د يوه غلام صدقهٔ هم پر يوه شريک واجب نه ده، او د صاحبينو په نېز به د هر شريک حصې سره يو ځلی کيږي او څومره رؤس چې پوره سي، د هغومره رؤسو صدقهٔ فطر به پر دوی واجب وي، او کوم رأس چې پوره نه سي، بلکې ټوکړه پاته سي، نو د هغه صدقه به واجب نه وي، د مثال په توګه پنځه غلامان د دوو خلکو په مينځ کې مشترک دي، نو څرنګه چې د صاحبينو په نېز د هرشريک په حصه کې دوه پوره غلامان راځي، نو ځکه به پر هر شريک د دوو غلامانو له طرفه صدقهٔ فطر واجب وي، او څرنګه چې په يوه غلام کې تشقيص راځي، يعني دوې حصې (ټوکړې) کيږي، نو ځکه به د هغه له طرفه صدقه واجب نه وي.

بناءً على الخ د اختلاف اصل بنياد دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غلام تقسيمول جائز نه دي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز دي (يعني صاحبين فرمايي چې که څه هم په حقيقي توګه غلامان تقسيمېدلای نه سي، يعني ټوکړه ټوکړه کېدلای نه سي، لېکن بيا هم په ذهني توګه چې کومې حصې د هر مالک په برخه کې راځي نو له هغو حصو څخه چې څومره غلامان جوړېږي د هغه مطابق به هر يو زکاة ورکوي، يعني د صاحبينو په نېز ذهني تقسيم جائز دی، او د امام صاحب په نېز جائز نه دی)، نو کله چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تقسيم جائز نه دی، نو ځکه به له شريکينو څخه هر يو په هر غلام کې حصه لرونکي وي، او کله چې په هر غلام کې د هر يوه حصه سته، نو له دواړو څخه به يو هم د کامل غلام او د کامل رأس مالک نه وي، او کله چې يو هم د کامل غلام مالک نه سو، نو له شريکينو څخه به د يوه ولايت او مؤنت هم کامل نه وي، او کله چې پر يوه غلام هم ولايت او مؤنت کامل نه سو، نو پر يوه به هم صدقهٔ فطر واجب نه وي، او څرنګه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د غلام تقسيم جائز دی، نو ځکه به د هغوی په نېز هر يو شريک د کامل غلام مالک جوړېدلای سي، لهذا د هر شريک حصې به سره يو ځای کيږي او څومره رأسونه چې پوره سي، پر هغو به صدقهٔ فطر واجب وي، او کوم چې يوه ټوکړه (او يوه حصه) پاته سي، د هغه صدقهٔ فطر به واجب نه وي، لکه مخکې چې مثال تېر سو.

وقيل الخ په دې لړ کې د بعضو حضراتو رايه دا ده چې په دې صورت کې د صدقهٔ فطر د نه واجبېدلو قول متفق عليه دی، او په امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله کې د يوه په نېز هم د هيڅ يو غلام له طرفه صدقهٔ فطر ورکول واجب نه دي، ځکه چې تر حقيقي تقسيم مخکې د يوه شريک حصې هم نه سي يو ځای کېدلای، نو کله چې نه سي جمع کېدلای، نو د يوه شريک په ملکيت کې به هم پوره رقبه نه راځي، او کله چې د يوه په ملکيت کې هم پوره رقبه نه راځي، نو صدقهٔ فطر به هم واجب نه وي.

## د کافر غلام له طرفه د صدقة فطر ورکولو حکم

وَيُؤَدِّي الْمُسْلِمُ الْفِطْرَةَ عَنْ عَبْدِهِ الْكَافِرِ او مسلمان مالک به د خپل کافر غلام له طرفه صدقة فطر اداء کوي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا ځکه زموږ روایت سوی حدیث مطلق دی وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● فِي حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او په دې وجه (هم) چي دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حدیث کي نبي ﷺ فرمایلي دي أَدُّوا عَنْ كُلِّ حُرٍّ وَعَبْدٍ "د هر آزاد او غلام له طرفه صدقة فطر اداء کړئ يَهُودِيٍّ أَوْ نَصْرَانِيٍّ أَوْ مَجُوسِيٍّ الْحَدِيثُ هغه غلام که یهودي وي که نصراني وي که مجوسي وي" وَلِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَحَقَّقَ او په دې وجه (هم) چي سبب (خو) ثابت سو وَالْمَوْلَى مِنْ أَهْلِهِ او مولیٰ د صدقې اهل (هم) دی وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله او په دې کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ الْوُجُوبَ عِنْدَهُ عَلَى الْعَبْدِ ځکه چي د هغه په نیز (د صدقة فطر) وجوب پر غلام دی وَهُوَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او کافر غلام د دې اهل نه دی وَلَوْ كَانَ عَلَى الْعَكْسِ فَلَا وُجُوبَ بِالْإِتِّفَاقِ او که مسئله د دې برعکس وه نو بالاتفاق وجوب نسته.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو مسلمان د نصاب مالک وي، او د هغه یو کافر غلام وي، نو زموږ په نیز پر هغه د کافر غلام صدقة فطر هم واجب ده، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز پر مسلمان مالک د خپل کافر غلام صدقة فطر واجب نه ده، همدا قول د امام مالک رَحِمَهُ الله او د امام احمد رَحِمَهُ الله دی.

**زموږ دلیل:** دا دی چي د ثعلبه بن صعیر حدیث مطلق دی کوم چي د باب په اول کي ذکر سو یعني: ادوا عن کل حر وعبد، مسلمان او کافر غلام دواړو ته شامل دی، دوهم دلیل د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حدیث دی چي هغه علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله د دار قطني په حواله سره داسي ذکر کړی دی: قال رسول الله ﷺ ادوا صدقة الفطر عن کل صغیر و کبیر ذکر وانثی یهودی او نصرانی حر او مملوك نصف صاع من بر او صاعاً من تمر او شعیر، دریم دلیل دا دی چي د صدقة فطر د واجبیدلو سبب پیدا سو، ځکه چي مسلمان مالک لره پر کافر غلام کامل ولایت حاصل دی، او د مالک د هغه مؤنت (خرڅه) هم په بشپړه توګه زغمي، او مولیٰ د صدقې د وجوب اهل هم دی، که څه هم غلام یې د کفر په وجه اهل نه دی، نو کله چي د وجوب سبب هم پیدا سو، او په مولیٰ کي اهلیت هم سته، نو ځکه به پر مولیٰ د کافر غلام له طرفه صدقه واجب وي.

**د امام شافعي دلیل:** څرنګه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز صدقة فطر پر غلام واجبیږي، که څه هم مولیٰ یې اداء کوي، او کافر غلام د دې لائق نه دی چي پر هغه دي د صدقة فطر په ډول عبادت واجب کړی سي. نو ځکه به د کافر غلام صدقة فطر پر مالک واجب نه وي.

ولو کان علی العکس الخ او که مسئله برعکس وه، یعني غلام مسلمان وو، او مولیٰ کافر وو، نو بالاتفاق صدقة فطر نه واجبیږي، زموږ په نیز خو ځکه چي مولیٰ د کفر په وجه سره نه د صدقة فطر د وجوب اهل دی، او نه د صدقة فطر د اداء

● تخریج: أخرجه دار قطني في کتاب الزکاة الفطر، حدیث رقم: ۲۰۸۶ – ۲۰۸۷، و ابو داؤد في کتاب الزکاة، حدیث رقم: ۱۶۱۹ – ۱۶۲۰.

کولو او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز که څه هم وجوب پر غلام کیږي، لیکن اداء کولي یې مولی. او مولی د کفر په وجه د صلاحیت د اداء کولو اهل نه دی، نو ځکه به په دې صورت کې د ټولو بالاتفاق صدقه واجب نه وي.

## د بیع بالخیار په ذریعه د خرڅ سوي غلام د صدقة فطر حکم

وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا او څوک چې غلام خرڅ کړي وَأَحَدُهُمَا بِالْخِيَارِ او په رانیونکي یا خرڅونکي کې یوه ته اختیار وي فَفِطْرَتُهُ عَلَى مَنْ يَصِيرُ لَهُ نو د دې غلام صدقة فطر به پر هغه یوه واجب وي چې غلام د هغه سي مَعْنَاهُ إِذَا مَرَّ يَوْمُ الْفِطْرِ مطلب یې دا دی چې د عید الفطر (کوچني اختر) ورځ تېره سي وَالْخِيَارُ بَاقٍ او اختیار پاته وي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ الله: عَلَى مَنْ لَهُ الْخِيَارُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چې صدقة فطر پر هغه چا واجب ده چې هغه ته اختیار وي لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لَهُ ځکه چې ولایت هغه ته حاصل دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: عَلَى مَنْ لَهُ الْمِلْكُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې پر هغه چا واجب ده چې هغه ته ملکیت حاصل وي لِأَنَّهُ مِنْ وَظَائِفِهِ كَالنَّفَقَةِ ځکه چې صدقة فطر د غلام له وظیفو څخه ده وَلَنَا أَنَّ الْمِلْكَ مَوْقُوفٌ او زموږ دلیل دا دی چې ملکیت موقوف دی لِأَنَّهُ لَوْ رُدَّ يَعُودُ إِلَى مِلْكِ الْبَائِعِ ځکه که بیع رد کړی سي نو هغه غلام به د بائع (خرڅونکي) د ملکیت و طرف ته وګرځي وَلَوْ أُجِيزَ يَثْبُتُ الْمِلْكُ لِلْمُشْتَرِي مِنْ وَقْتِ الْعَقْدِ او که بیع جائز کړی سي نو د عقد له وخت څخه به د رانیونکي ملکیت ثابت سي فَيَتَوَقَّفُ مَا يَبْتَنِي عَلَيْهِ نو کوم شی چې پر ملکیت مبني وي هغه به هم موقوف (یعني صدقة فطر) بِخِلَافِ النَّفَقَةِ لِأَنَّهَا لِلْحَاجَةِ النَّاجِزَةِ په خلاف د نفقې ځکه چې نفقه د سمدستي حاجت لپاره ده فَلَا تَقْبَلُ التَّوَقُّفَ نو ځکه به هغه توقف نه قبلوي وَزَكَاةُ التِّجَارَةِ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ او د تجارتي غلام زکاة هم پر دغه اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿ناجزة﴾ ژر، د هغه وخت، سمدستي، تلوار.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که تر اختر یوه ورځ مخکې یو چا خپل غلام خرڅ کړی، او بائع (خرڅونکي) یا مشتري (رانیونکي) د خپل ځان لپاره د دریو ورځو خیار شرط واخیستی، نو زموږ په نیز چې تر دریو ورځو وروسته غلام د چا سي صدقة فطر پر هغه واجبیږي، یعني که بیع پوره سي، نو صدقة فطر به پر مشتري واجبیږي، او که بیع ماته سي، نو صدقة فطر به پر بائع واجبیږي، صاحب د هدایې فرمایي چې د دې مطلب دا دی چې د اختر ورځ تېره سي، لیکن خیار تر اوسه لا پاته وي، نو په دې صورت کې چې غلام د چا سي، صدقة فطر به پر هغه واجب وي، بنکاره دې وي چې دا غلام به د خدمت لپاره وي، او مشتري به هم د خدمت لپاره رانیولی وي، په تجارتي غلام کې پر هیچا هم صدقة فطر واجب نه ده.

وقال زفر الخ د امام زفر رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چې د چا لپاره خیار وي، صدقة فطر پر هغه واجب ده، ځکه چې د صدقة فطر سبب کامل ولایت دی، او کامل ولایت خیار والا ته حاصل دی، ځکه که هغه بیع خوښه کړه، نو بیع به پوره کیږي، او که خوښه یې نه کړه، نو فسخ کیږي به، نو کله چې کامل ولایت خیار والا ته حاصل دی، نو صدقه به هم پر هغه واجب وي.

وقال الشافعي الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي ملکيت چي اوس د چا وي(چي هغه نو مشتري دی)، پر هغه صدقة فطر واجب ده، او زموږ په نېز به ملکيت موقوف وي، د خيار تر ختمېدلو وروسته چي د چا ملکيت راسي پر هغه به صدقة فطر واجب وي، د امام شافعي قاعده دا ده چي په بيع کې که هر څوک هم خيارِ شرط واخلي، نو ملکيت به مشتري لره ثابتېږي، او ملکيت چي د چا وي صدقه پر هغه واجب ده، ځکه چي صدقه د غلام له وظيفو او خرڅو څخه ده، لکه څرنګه چي نفقه د غلام له خرڅو څخه ده، او نفقه هم پر هغه چا واجبېږي، چي هغه لره ملکيت وي، لهذا صدقة فطر به هم پر هغه واجبېږي.

ولنا ان الملك الخ زموږ او د امام شافعي په مينځ کې پر دې خبره اتفاق دی چي د اختر په ورځ چي د چا ملکيت وي، پر هغه به صدقه فطر واجب وي، لېکن د امام شافعي په نېز به د خيارِ شرط باوجود د اختر په ورځ مشتري لره ملکيت ثابت وي، نو ځکه به پر مشتري صدقه فطر واجب وي، او زموږ په نېز به د خيارِ شرط په وجه ملک تر اوسه موقوف وي، لهذا تر خيار ختمېدلو پوري به صدقة فطر هم موقوفه وي، نو که بيع ردّ کړی سوه، او غلام بيرته د بائع سو، نو پر بائع به صدقه لازمه وي، ځکه چي له شروع څخه غلام د هغه په ملک کې وو، او د بيع د ماتېدلو په وجه د هغه ملک باقي پاته سو، او د اختر په ورځ کې هم د هغه ملک ثابت سو، نو ځکه به پر هغه صدقه لازمه وي، او که بيع جائز کړی سوه، نو د عقد له وخت څخه د مشتري ملکيت ثابت سو(چي په هغه کې د اختر ورځ هم راغله)، نو ځکه به پر مشتري صدقه واجب وي.

بخلاف النفقة الخ د امام شافعي د قياس جواب ورکوي، هغه فرمايلي وو چي د چا ملکيت وي، پر هغه چي څرنګه نفقه واجب ده، همداسي به صدقة فطر هم پر واجب وي، د هغه جواب ورکوي چي نفقه د سمدستي(او د چټک) ضرورت لپاره ده، که په نفقه کي يوه ورځ تأخير وسي، نو غلام او نور به مړه سي، نو ځکه به په دې کي تأخير نه کيږي، او صدقة فطر وروسته هم اداء کېدای سي، نو هغه به اوس موقوفه پاتېږي، تر خيار وروسته چي چا لره ملکيت ثابت سي، پر هغه به صدقة فطر واجب وي، لهذا پر نفقه به د صدقة فطر قياسول صحيح نه وي.

وزكوٰة التجارة الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د تجارتي غلامانو په زکاة کي همدغه اختلاف دی، مثلاً د يو چا سره تجارتي غلامان دي، هغه په خيارِ شرط دا غلامان خرڅ کړل، او د خيار په موده کي کال پوره سو، نو زموږ په نېز زکاة پر هغه چا واجبېږي کوم څوک چي تر خيار پوره کېدلو وروسته د دې غلامانو مالک سي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه چا واجبېږي د چا لپاره چي خيار دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه چا واجبېږي چي د هغه لپاره اوس ملکيت وي، يعني پر مشتري واجبېږي. والله أعلم بالصواب



# فَصْلٌ فِي مِقْدَارِ الْوَاجِبِ وَوَقْتِهِ

(دا) فصل (د صدقة فطر) د واجب مقدار او د هغه د وجوب د وخت په بيان کي دی

**تشريح:** صاحب د کتاب چي کله د صدقة فطر د وجوب او د هغه د شرائطو له بيان څخه فارغ سو، نو اوس له دې ځايه د صدقة فطر د مقدار او د هغه د وخت په باره کي بيان کوي، چي هغه به په ترتيب سره ستاسو په مخکي ذکر سي، انشاء الله تعالیٰ.

## د صدقة فطر د واجب مقدار بيان

الْفِطْرَةُ نِصْفُ صَاعٍ صدقة فطر (سرسايه) نيم صاع ده مِنْ بُرٍّ أَوْ دَقِيْقٍ له غنمو څخه يا له اوړو څخه أَوْ سَوِيْقٍ أَوْ زَبِيْبٍ يا له نينو څخه يا له کشمشو څخه أَوْ صَاعٌ مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيْرٍ يا (صدقة فطر) يو صاع ده له خرمالو (کجورو) څخه يا له اوربشو څخه وَقَالَا[●]: الزَّبِيْبُ بِمَنْزِلَةِ الشَّعِيْرِ او صاحبين فرمايي: چي کشمش د اوربشو په درجه کي دي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی وَالْأَوَّلُ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او اول روايت د جامع صغير دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مِنْ جَمِيْعِ ذٰلِكَ صَاعٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له دې ټولو څخه يو صاع دی لِحَدِيْثِ[●] أَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابو سعيد خدري رضي الله عنه د حديث په وجه قَالَ: كُنَّا نُخْرِجُ ذٰلِكَ عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه فرمايي: چي موږ به د نبي ﷺ په زمانه کي همدومره (يعني يو صاع) ايستی وَلَنَا مَا رَوَيْنَا وَهُوَ مَذْهَبُ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ او زموږ دليل هغه حديث دی چي موږ روايت کړی او همدغه د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم ديو جماعت مذهب دی وَفِيْهِمُ الْخُلَفَاءُ الرَّاشِدُوْنَ رِضْوَانُ اللهِ عَلَيْهِمْ أَجْمَعِيْنَ (چي) په هغو کي خلفاء راشدين هم (شامل) دي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى الزِّيَادَةِ تَطَوُّعًا او کوم حديث چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه د نفلو په توګه پر زياتوب حمل سوی دی وَلَهُمَا فِي الزَّبِيْبِ أَنَّهُ وَالتَّمْرُ يَتَقَارَبَانِ فِي الْمَقْصُوْدِ او په کشمشو کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي کشمش او خرما (کجوري) دواړه په مقصود کي سره نژدې دي وَلَهُ أَنَّهُ وَالْبُرَّ يَتَقَارَبَانِ فِي الْمَعْنَى او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي کشمش او غنم په معنیٰ کي سره نژدې دي لِأَنَّهُ يُؤْكَلُ كُلُّ

---

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وهو رواية عن أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، رواها الحسن عنه وصححها أبو اليسر لما ثبت الحديث، فتح القدير ج:۲، ص: ۲۲۵. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۰]

● أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب صدقة الفطر صاع من طعام، حديث رقم: ۱۵۰۶ – ۱۵۰۸، و مسلم في كتاب الزكاة، حديث رقم: ۱۷ – ۱۸ – ۲۱.

وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِجَمِيْعِ أَجْزَاءِهِ ځکه چې له دواړو څخه هر يو د خپلو ټولو اجزاؤ سره خوړل کيږي وَيُلْقَى مِنَ التَّمْرِ النَّوَاةُ وَمِنَ الشَّعِيْرِ النُّخَالَةُ او له خرما څخه تاکی (مندکه) او له اوربشو څخه بُوس غورځول کيږي وَبِهٰذَا ظَهَرَ التَّفَاوُتُ بَيْنَ الْبُرِّ وَالتَّمْرِ هم په دې سره د غنمو او خرماوو په مينځ کې فرق ښکاره سو وَمُرَادُهُ مِنَ الدَّقِيْقِ وَالسَّوِيْقِ مَا يُتَّخَذُ مِنَ الْبُرِّ او له اوړو او نينو څخه د امام قدارِي رَحِمَهُ الله مراد هغه اوړه او نينې دي کوم چې له غنمو څخه جوړيږي أَمَّا دَقِيْقُ الشَّعِيْرِ فَكَالشَّعِيْرِ هر چې د اوربشو اوړه دي نو هغه د اوربشو په ډول دي وَالْأَوْلٰى أَنْ يُرَاعٰى فِيْهِمَا الْقَدْرُ وَالْقِيْمَةُ احْتِيَاطًا او غوره دا ده چې په اوړو او نينو کې د وزن او قيمت دواړو خيال وساتل سي د احتياط په وجه (يعني په احتياط باندې د عمل کولو لپاره) وَإِنْ نَصَّ عَلَى الدَّقِيْقِ فِيْ بَعْضِ الْأَخْبَارِ که څه هم په بعضې حديثونو کې نص د اوړو په باره کې راغلی دی وَلَمْ يُبَيِّنْ ذٰلِكَ فِي الْكِتَابِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په کتاب (يعني په جامع صغير) کې د احتياط خبره ذکر کړې نه ده (يعني دا يې ذکر کړي نه دي چې په اوړو او نينو کې دې د وزن او قيمت دواړو خيال وساتل سي احتياطاً) اِعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ د غالب په اعتبار کولو سره وَالْخُبْزُ تُعْتَبَرُ فِيْهِ الْقِيْمَةُ هُوَ الصَّحِيْحُ او په ډوډۍ کې به د قيمت اعتبار کيږي، همدا صحيح ده ثُمَّ يُعْتَبَرُ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ وَزْنًا فِيْمَا يُرْوٰى عَنْ• أَبِيْ حَنِيْفَةَ بيا به د غنمو نيم صاع د امام صاحب رَحِمَهُ الله د روايت مطابق د وزن په اعتبار سره معتبر وي وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ الله أَنَّهُ يُعْتَبَرُ كَيْلًا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د پيمانې په اعتبار سره به معتبر وي وَالدَّقِيْقُ أَوْلٰى مِنَ الْبُرِّ او د غنمو اوړه له غنمو څخه غوره دي وَالدَّرَاهِمُ أَوْلٰى مِنَ الدَّقِيْقِ او له اوړو څخه درهم غوره دي فِيْمَا يُرْوٰى عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ• په هغه روايت کې کوم چې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی وَهُوَ اخْتِيَارُ الْفَقِيْهِ أَبِيْ جَعْفَرٍ او همدغه د فقيه ابو جعفر مختاره قول دی لِأَنَّهُ أَدْفَعُ لِلْحَاجَةِ وَأَعْجَلُ بِهِ ځکه چې درهم د حاجت لپاره زيات او ژر ليرې کونکي دي وَعَنْ أَبِيْ بَكْرٍ الْأَعْمَشِ تَفْضِيْلُ الْحِنْطَةِ او له ابو بکر بن اعمش څخه د غنمو فضيلت روايت سوی دی لِأَنَّهُ أَبْعَدُ مِنَ الْخِلَافِ ځکه غنم له اختلاف څخه ليرې دي إِذْ فِي الدَّقِيْقِ وَالْقِيْمَةِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ ځکه چې په اوړو او قيمت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی.

**اللغاته:** ﴿دقيق﴾ اوړه، ﴿سويق﴾ نينې (پر اُور کباب سوي غنم)، ﴿زبيب﴾ کشمش، وشکي (وچ کړی سوي انګور)، ﴿تمر﴾ خرما، کجوري، ﴿شعير﴾ اوربشي، ﴿نواة﴾ تاکی، د خرما مندکه، ﴿نخالة﴾ بُوس، (د غلې پوستکي، چوکر).

---

• القول الراجح: هو هذا قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وجهه أن العلماء لما اختلفوا في أن الصاع ثمانية أرطال أو خمسة وثلث كان إجماعاً منهم أنه يعتبر بالوزن إذ لا معنى لاختلافهم فيه، فتح القدير ج:۲، ص: ۲۲۹. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۲]

• القول الراجح: قول المروى عن أبي يوسف رَحِمَهُ الله والذى اختاره الفقيه ابو جعفر أى الدراهم أولى من الدقيق، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ودفع القيمة أى الدراهم أفضل من دفع العين على المذهب المفتى به، الدر المختار ج:۲، ص: ۸۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۲]

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که یو سړی د غنمو یا اوړو یا د نینو یا د کشمشو په ذریعه صدقهٔ فطر ورکول وغواړي، نو هغه به د هر نفر او هر فرد له طرفه نیم صاع ورکوي، او که د کجورو او خرماوو په ذریعه صدقهٔ فطر ورکول وغواړي، نو بیا به یو صاع ورکوي، لیکن د صاحبینو په نیز په کشمشو کي هم د کجورو په ډول یو صاع واجب دی، او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه حسن بن زیاد او نورو همدغه روایت کړی دی، او اول روایت د جامع صغیر دی، لنډه دا چي زموږ په نیز په غنمو، اوړو او نورو کي دیوه صاع او نیم صاع په حواله سره فرق سته، لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله او نورو دوو امامانو (امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله) دا ټیان ټول یو ډول ګرځولي دي او دا حکم یې کړی دي چي په صدقهٔ فطر کي یو صاع ورکول واجب دي، هغه که د غنمو یا نینو وي، یا د اوړو یا کشمشو وي، یا د ملسي نورو شیانو وي.

**د امام شافعي دلیل:** د دې حضراتو دلیل د ابو سعید خدري رضی الله عنه هغه حدیث دی چي هغه په ترمذي او نورو کي په دې الفاظو سره بیان سوی دی: كنا نخرج زكوة الفطر إذا كان فينا رسول الله ﷺ صاعاً من طعام أو صاعاً من شعير أو صاعاً من تمر... الخ، (یعني موږ به د نبي ﷺ په زمانه کي له طعام، اوړشو او کجورو او نورو څخه یو صاع صدقهٔ فطر ایستله)، په دې حدیث سره هغوی په دې توګه دلیل نیسي چي دلته له طعام څخه غنم مراد دي، نو په حدیث کي له غنمو څخه هم یو صاع صدقهٔ فطر ایستل ثابت سو، لهذا معلومه سوه چي په صدقهٔ فطر کي د غنمو او اوړشو دواړو مقدار برابر دی، او په دواړو کي دیوه صاع یا نیم صاع په حواله سره هیڅ فرق نسته.

**زموږ دلیل:** صاحب د هدایې فرمایي چي زموږ دلیل هغه حدیث دی کوم چي موږ بیان کړی، یعني: أدوا عن كل حر وعبد صغير أو كبير نصف صاع من بر أو صاعاً من تمر... الخ، په دې حدیث سره موږ دلیل په دې توګه نیسو چي په دې کي په صراحت سره دا حکم سوی دی چي له غنمو څخه به نیم صاع ایستل کیږي، همدارنګه امام طحاوي په شرح معاني الآثار کي د حضرت اسماء بنت ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا حدیث رانقل کړی دی: كنا نؤدي زكوة الفطر على عهد رسول الله ﷺ المدين من قمح، (یعني موږ به د نبي ﷺ په زمانه کي دوه مُده غنمه په صدقهٔ فطر کي ورکوله)، او دوه مُده د نیم صاع سره برابر دي، ځکه چي توله صاع څلور مُده کیږي، له دې حدیث څخه هم په غنمو کي نیم صاع ثابت سو، او بیا زموږ مسلک او مذهب د صحابه وو دیو غټ جماعت د مسلک سره هم برابر دی، حتیٰ چي خلفاءِ راشدین هم د دې مذهب او نظریې قائل وو.

**جواب:** صاحب د هدایې د امام شافعي او نورو دوو امامانو د حدیث جواب ورکوي فرمایي چي د ابو سعید خدري رضی الله عنه په حدیث کي چي دیو صاع غنمو ذکر سوی دی، له هغه څخه د تطوع او نفلو په توګه دیوه صاع ورکول مراد دي، یعني ابو سعید خدري رضی الله عنه او نورو به نیم صاع خو د وجوب په توګه ورکوی، او نیم صاع به یې د نفلو په توګه احتیاطاً له ځانه ورکوی، د دې بل جواب دا هم سوی دی چي په دې حدیث کي له صاعاً من طعام څخه غنم مراد نه دي، بلکي له دې څخه جوارې او بډن (ایږدن) مراد دي، نو ځکه به په دې سره په غنمو کي پر یوه صاع دلیل نیول صحیح نه وي، او په دویم حدیث کي د نصف صاع من بر الفاظ په صراحت سره ذکر سوي دي، چي هغه د دې خبرې ښکاره دلیل دی چي په غنمو کي به نیم صاع واجب وي.

ولهما أن الزبيب الخ صاحبین رَحِمَهُمَا الله په کشمشو کي هم د کجورو په ډول یو صاع واجبوي، او دلیل دا ذکر کوي چي کشمش او کجوري دواړه په مقصود یعني په خوړلو او خوږوالي کي سره نژدې دي، نو کوم حکم چي د کجورو وي، هغه

حکم به د کشمشو هم وي، او څرنګه چي په کجورو کي یو صاع واجب دی، نو په کشمشو کي به هم یو صاع واجب وي، لیکن په دې لړ کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي په شرعي مسائلو کي د تنګۍ او خوښوالي اعتبار نه کیږي، بلکي د شیانو د حقیقت او معنیٰ اعتبار کیږي، او د معنیٰ په اعتبار کشمش او غنم دواړه سره نژدې دي، ځکه څرنګه چي غنم د خپلو ټولو اجزاؤ سره خوړل کیږي، همدارنګه کشمش هم د خپلو ټولو اجزاؤ سره خوړل کیږي، او په دواړو کي هیڅ شی هم نه غورځول کیږي (نه مندکي او نه پوستکي)، نو کله چي په معنیٰ کي غنم او کشمش یو بل ته نژدې دي، نو په حکم کي به هم یو بل ته نژدې وي، او په غنمو کي نیم صاع واجب دی، نو په کشمشو کي به هم نیم صاع واجب وي.

د دې په مقابله کي د خرما او اوربشو د کشمشو سره هیڅ تعلق نشته، ځکه کشمش خو په بشپړه توګه خوړل کیږي، لیکن له خرما څخه تاکی غورځول کیږي، همدارنګه د اوربشو بوس هم غورځول کیږي، نو کله چي په کشمش او کجورو کي دومره فرق دی، نو آخر به څرنګه دا د هغو سره لاحقیږي.

ومراده الخ صاحب د هدایې فرمایي چي په متن کي له اوړو او نینو څخه هغه اوړه او نیني مراد دي، چي له غنمو څخه جوړ سوي وي، نو په هغو کي به نیم صاع واجب وي، او د اوربشو او نورو په اوړو کي به پوره صاع واجب وي، ځکه چي په اوربشو کي یو صاع واجب دی، لیکن غوره دا ده چي په نینو او اوړو کي احتیاطاً د مقدار او قیمت دواړو رعایت وسي، او په دې کي احتیاط هم دی، (یعني غوره دا ده چي اوړه یا نیني دې داسي ورکوي چي مقدار یې هم نیم صاع سي او قیمت یې هم د نیم صاع غنمو سره برابر سي، ځکه په عامه توګه د نیم صاع اوړو قیمت له نیم صاع غنمو څخه زیات وي، نو د احتیاط تقاضا دا ده چي دواړه برابر سي)، مثلاً که یوه سړي په صدقهٔ فطر کي نیم صاع د غنمو اوړه ورکړه، او د نیم صاع اوړو قیمت هم د نیم صاع غنمو د قیمت سره برابر وو، نو دې سړي پر احتیاط عمل وکړی، ځکه چي د نیم صاع مقدار هم راغلی، او د نیم صاع غنمو قیمت هم راغلی، یعني پر دواړو عمل وسو، همدغه غوره ده، که څه هم په بعضي حدیثونو کي صرف د اوړو صراحت سوي دي (یعني صرف د اوړو د مقدار یعني د نیم صاع ذکر سوی دی، د قیمت د رعایت صراحت نه دي سوی)، لکه څرنګه چي صاحب د عنایې د ابو هریر په حواله سره دا حدیث ذکر کړی دی: أن النبي ﷺ قال أدوا قبل خروجکم زكاة فطركم فإن على كل مسلم مدين من قمح أو دقيقه، وګورئ په دې کي په ښکاره توګه د دقیق صراحت سوی دی، لیکن صاحب د هدایې پر احتیاط د عمل کولو لپاره د مقدار او قیمت دواړو رعایت کول غوره ګڼلی دی، امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي د غالب او اکثر حالاتو اعتبار کړی، ځکه چي په عامه توګه د نیم صاع غنمو قیمت د نیم صاع اوړو سره برابر وي، نو ځکه د احتیاط خبره په متن کي ذکر سوې نه ده (ځکه چي د دې مسئلې متن هم له جامع صغیر څخه را اخیستل سوی دی، لنډه دا چي صاحب د هدایې پر احتیاط د عمل کولو اعتبار کړی دی، او امام محمد رَحِمَهُ الله د جامع صغیر په متن کي د غالب حال اعتبار کړی دی).

والخبز الخ فرمایي چي د صحیح قول مطابق په ډوډۍ کي قیمت معتبر دی، یعني په دومره اندازه ډوډیانو ورکولو سره صدقهٔ فطر اداء کیږي، چي هغه د نیم صاع غنمو د قیمت سره برابري سي.

ثم یعتبر الخ د دې حاصل دا دی چي د نیم صاع یا یوه صاع اندازه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په وزن سره کیږي، او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي دا اندازه به په کیل او پیمانې سره کیږي، ځکه چي په حدیثونو کي د صاع لفظ

راځلي دي، او د صاع تعلق د کيل او پيمانې سره دی، نو ځکه به د اجناسو په سلسله کې د پيمانې اعتبار کيږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې په اجناسو کې به د وزن اعتبار کيږي، ځکه چې په صاع کې د خلکو ډېر اختلاف دی، او د دې هيڅ يو يقيني مقدار معلوم نه دی، نو د اجناسو په باره کې به د وزن اعتبار ځکه کيږي، چې اختلاف او انتشار رانه سي.

والدقيق أولی الخ فرمايي چې د غنمو اوړه ورکول له غنمو ورکولو څخه غوره دي، ځکه چې اوړه في الفور او سمدستي استعمالېدای سي، او نغدي ورکول له اوړو ورکولو څخه غوره دي، ځکه چې نغدي زيات ضروريات پوره کولای سي، او له خوراک څخه ماسوا د نورو اړتياوو مثلاً د جامو او درملنې (علاج) لپاره هم استعمالېدای سي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت دا دی او د فقيه ابو جعفر خوښ مسلک هم دی، او له ابو بکر اعمش څخه روايت دی چې غنم ورکول زيات افضله دي، ځکه چې د غنمو په جواز کې د هيڅا اختلاف نسته، او د اوړو او قيمت په جواز کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، نو د مختلف فيه شي په نسبت د متفق عليه شي اختيارول غوره دي.

## د صاع مقدار (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَالصَّاعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ[1] ثَمَانِيَةُ أَرْطَالٍ بِالْعِرَاقِيِّ فرمايي: چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز صاع اته (۸) عراقي رطله کيږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: خَمْسَةُ أَرْطَالٍ وَثُلُثُ رِطْلٍ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې صاع پنځه رطله او ديوه رطل دريمه حصه کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[2]: صَاعُنَا أَصْغَرُ الصِّيعَانِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې زموږ صاع له ټولو صاعونو څخه کوچنی صاع دی وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[3] كَانَ يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ رِطْلَيْنِ او زموږ دليل دا روايت دی چې نبي ﷺ به په يوه مُد يعني دوو رطلونو سره اودس کوی وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ ثَمَانِيَةَ أَرْطَالٍ او په يوه صاع يعني په اتو (۸) رطلونو سره به يې غسل کوی وَهَكَذَا كَانَ صَاعُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او همداسې د حضرت عمر رضي الله عنه صاع وو وَهُوَ أَصْغَرُ مِنَ الْهَاشِمِيِّ او د نبي ﷺ صاع له هاشمي صاع څخه کوچنی وو وَكَانُوا يَسْتَعْمِلُونَ الْهَاشِمِيَّ او صحابه وو به هاشمي صاع استعمالوی.

**اللغات:** ﴿رطل﴾ په اوسني حساب سره: ۴۴۲,۵۲ گرامه کيږي (يعني څلور سوه دوڅلويښت گرامه کيږي او لږ څه زيات)، د اوسني حساب په اعتبار سره به د صاع وزن لاندې په پوره تفصيل سره ذکر سي.

**تشريح:** د صاع د پيمانښت او د هغه د وزن په باره کې د علماؤ اختلاف دی، له احنافو څخه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله رايه دا ده چې يو صاع اته (۸) عراقي رطله کيږي، او هر رطل شل (۲۰) استاره کيږي، او هر استار د شپږ نيمو (5/6) درهمو سره برابر دی، په دې لړ کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې يو صاع پنځه رطله او د بل رطل دريمه حصه کيږي، همدا د ائمه ثلاثه وو قول هم دی، د دې قول دليل دا دی چې نبي ﷺ فرمايلي دي: صاعنا أصغر الصيعان، (يعني زموږ صاع له

---

[1] القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، كما قال في الهداية: والصاع ثمانية أرطال بالبغدادي والرطل البغدادي عشرون أستاراً كذا في التبيين، الهندية ج:۱، ص: ۱۹۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۲]

[2] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الزكاة الفطر، حديث رقم: ۲۱۰۵ في معناه.

[3] تخريج: أخرجه دارقطني في كتاب الفطر، حديث رقم: ۲۱۱۸ – ۲۱۱۹.

تولو صاعونو څخه کوچنی دی)، او بنکاره ده چې أصغر الصيعان. هغه وخت کېدای سي چې کله صاع پنځه رطله او دریمه حصه د رطل وي(ځکه چې تر دې کوچنی صاع نه راځي).

ولنا ما روى الخ د طرفينو دليل دا دى چې نبي ﷺ به په يوه مُد يعني په دوه(۲) رطله اوبو سره اودس کوی، او په يوه صاع يعني په اته(۸) رطله اوبو سره به يې غسل کوی، او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه صاع همدارنګه وو، يعني هغه هم اته(۸) رطله وو، له دې څخه معلومېږي چې د نبي ﷺ صاع پنځه رطله او دريمه حصه د رطل نه وو، بلکې اته (۸) رطله وو، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په روايت کې چې کوم د أصغر الصيعان الفاظ راغلي دي، هغه د هاشمي صاع په مقابله کې دي(يعني نبي ﷺ وفرمايل چې زموږ صاع تر هاشمي صاع کوچنی دی)، ځکه چې هاشمي صاع تقريباً له تولو صاعونو څخه غټ وو، او دو دېرش(۳۲) رطله وو، او صحابه وو به هغه صاع استعمالوی، لېکن نبي ﷺ عراقي صاع استعمالوی، او عراقي صاع اته رطله وو.

## د صاع وزن د اوسني او پخواني مقدارونو په اعتبار سره

| صاع | رطل | وسق | کيلو | ګرام | لېتر |
|---|---|---|---|---|---|
| يو صاع | ۸ رطله کيږي | ...... | ۳,۵۳۸ (يعني ۳ کيلو او ۵۳۸ ګرامه کيږي) | ۳۵۳۸ | ۵,۸۸ |
| نيم صاع | ۴ | ...... | ۱,۷۶۹ (يعني يو کيلو او ۷۶۹ ګرامه کيږي) | ۱۷۶۹ | ۲,۹۴ |
| ۶۰ صاعه | ...... | يو وسق | ۲۱۲,۲۸ | ...... | ۳۵۲,۸۰ |

## د صدقة فطر د اداء کولو وخت

قَالَ: وَوُجُوْبُ الْفِطْرِ يَتَعَلَّقُ بِطُلُوْعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ الْفِطْرِ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د صدقة فطر واجبيدل تعلق لري د کوچني اختر د ورځې د سهار د سپېلو چاودلو سره وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: بِغُرُوْبِ الشَّمْسِ فِي الْيَوْمِ الْأَخِيْرِ مِنْ رَمَضَانَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د روژې د مياشتې د آخري ورځې د لمر د لوېدلو سره تعلق لري حَتَّى إِنَّ مَنْ أَسْلَمَ أَوْ وُلِدَ لَيْلَةَ الْفِطْرِ تَجِبُ فِطْرَتُهُ عِنْدَنَا تر دې که يو څوک د کوچني اختر په شپه اسلام راوړي يا يو کوچنی پيدا سي نو زموږ په نېز پر هغه صدقة فطر واجبيږي وَعِنْدَهُ لَا تَجِبُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نه واجبيږي وَعَلَى عَكْسِهِ مَنْ مَاتَ فِيْهَا مِنْ مَمَالِيْكِهِ أَوْ وُلْدِهِ او د دې برعکس حکم دی د هغه سړي په باره کې چې د هغه له غلامانو څخه يا د هغه له اولاد څخه(يو څوک) د اختر په شپه کې مړ سي لَهُ أَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْفِطْرِ وَهٰذَا وَقْتُهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د صدقة فطر وجوب د فطر(افطار) سره خاص دي او د افطار وخت همدغه د ماښام وخت دی وَلَنَا أَنَّ الْإِضَافَةَ لِلْإِخْتِصَاصِ او زموږ دليل دا دی چې اضافت د اختصاص لپاره دی وَاِخْتِصَاصُ الْفِطْرِ بِالْيَوْمِ دُوْنَ اللَّيْلِ او د افطار اختصاص د ورځې سره دی نه د شپې سره.

**تشریح:** زموږ په نیز د کوچني اختر له صبح صادق (سپېدې چاود) څخه د صدقۂ فطر اداء کول واجبیږي، همدا قول د امام مالک رَحِمَهُ الله دی، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د روژې د میاشتي په آخري ورځ تر لمر لوېدلو وروسته واجبیږي، حاصل دا چې د شوافعو په نیز د صدقۂ فطر د اداء د واجبېدلو وخت د اختر په شپه تر لمر لوېدلو وروسته شروع کیږي، او زموږ په نیز د اختر د ورځې له صبح صادق څخه شروع کیږي، د اختلاف ثمره په دې مثال کې ښکاره کیږي چې که یو کافر د اختر په شپه تر صبح صادق مخکې مسلمان سو، یا یو کوچنی پیدا سو، نو زموږ په نیز د هغه صدقۂ فطر واجبیږي، لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز نه واجبیږي، ځکه چې د اداء د واجبېدلو په وخت کې په دواړو کې اهلیت نه وو (او هغه وخت مخکې تېر سو چې هغه د ماښام وخت دی)، همدارنګه که د اختر په شپه تر صبح صادق مخکې د یو چا غلام مړ سو، یا یې ځوی مړ سو نو زموږ په نیز د هغه صدقۂ فطر نه واجبیږي، ځکه چې له وخت شروع کېدلو څخه مخکې مړ سو، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز واجبیږي، ځکه چې د هغه په نیز تر وخت شروع کېدلو وروسته مړ سوی دی.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې د صدقۂ فطر وجوب د فطر یعنې د افطار سره خاص دی، ځکه چې ابن عمر ﷺ فرمایلي دي: فرض رسول الله ﷺ زکوٰة الفطر او د افطار یعنې د روژه مات وخت تر لمر لوېدلو وروسته شروع کیږي، نو ځکه وویل سوه چې د صدقۂ فطر د وجوب وخت به د روژې د میاشتي د آخري ورځې د لمر لوېدلو سره تعلق لري.

**زموږ دلیل:** دا دی چې په صدقة الفطر کې د صدقې اضافت د فطر و طرف ته د اختصاص لپاره دی، یعنې صدقه د فطر سره خاص ده، او له فطر څخه مراد د صوم یعنې د روژې ضد دی، او د صوم د ورځې سر تعلق لري، نه د شپې سره، نو د فطر تعلق به هم د ورځې سره وي، نه د شپې سره، او ورځ له صبح صادق څخه شروع کیږي، نو ځکه موږ وویل چې د صدقۂ فطر د وجوب وخت به د اختر د ورځې له صبح صادق څخه شروع کیږي.

## د صدقۂ فطر د اداء کولو مستحب وخت

وَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يُخْرِجَ النَّاسُ الْفِطْرَةَ يَوْمَ الْفِطْرِ قَبْلَ الْخُرُوجِ إِلَى الْمُصَلَّى او مستحب دا ده چې خلک د کوچني اختر په ورځ د عیدګاه وطرف ته له وتلو څخه مخکې صدقۂ فطر وباسي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] كَانَ يُخْرِجُ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ لِلْمُصَلَّى ځکه نبي ﷺ به د عیدګاه و طرف ته له وتلو څخه مخکې صدقۂ فطر ایستله وَلِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْإِغْنَاءِ كَيْ لَا يَتَشَاغَلَ الْفَقِيرُ بِالْمَسْأَلَةِ عَنِ الصَّلَاةِ او په دې وجه (هم) چې (د فقیر) د مستغني کولو (بې پروا کولو) حکم د دې لپاره دی چې د سوالګرۍ په وجه له لمانځه څخه مشغول نه سي وَذَلِكَ بِالتَّقْدِيمِ او دا مقصد د صدقۂ فطر په مخکې ورکولو سره حاصلیږي.

**اللغات:** ﴿لا يتشاغل﴾ د تفاعل د باب مضارع منفي ده: مشغوله کېدل، بوختېدل. ﴿مسئله﴾ مصدر میمي دی: خیرات غوښتنه (سوالګري کول)، فقر کول (ګدايي کول). ﴿تقديم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مخکې کول، (مخکې ورکول).

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرىٰ في كتاب الزكاة، باب وقت إخراج زكاة الفطر، حديث رقم: ٧٧٢٩ – ٧٧٢٨.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې د اختر په ورځ عیدګاه ته تر تللو مخکې صدقة فطر اداء کول مستحب دي، ځکه چې همدغه له نبي ﷺ څخه رانقل سوي دي، او همدا د نبي ﷺ معمول وو، لکه څرنګه چې د ابن عمر رضي الله عنهما په یوه اوږده حدیث کې دا جمله هم ذکر سوې ده: وكان يأمرنا أن نخرجها قبل الصلاة. (یعني نبي ﷺ به موږ ته دا حکم کوی چې موږ عیدګاه ته تر وتلو مخکې صدقة فطر اداء کړو).

ولأن الأمر الخ عقلي دلیل دا دی چې د صدقة فطر مقصد د فقیرانو او مسکینانو حاجت لیرې کول دي چې د سوالګری لو خیرات غوښتولو په وجه هغوی د اختر له لمانځه څخه مشغول پاته نه سي، او دا په هغه صورت کې ممکن دی چې کله د اختر تر لمانځه مخکې هغو ته صدقة فطر ورکول سي، چې هغوی هم خپل د ضرورت سامان په رانیسي او د اختر تیاري مخکې لا وکړي، نو بیا به د لمانځه په وخت کې له لاس ګرځولو او خیرات غوښتولو څخه خوندي وي.

## د اختر تر ورځې مخکې د صدقة فطر د اداء کولو حکم

**فَإِنْ قَدَّمُوهَا عَلَى يَوْمِ الْفِطْرِ جَازَ** او که خلک د کوچني اختر پر ورځې صدقة فطر مخکې کړي نو جائز دي (یعني تر اختر مخکې سرسایه اداء کړي نو هم جائز دي) **لِأَنَّهُ أَدَّى بَعْدَ تَقَرُّرِ السَّبَبِ** ځکه چې د سبب تر ثابتېدلو وروسته یې اداء کړه **فَأَشْبَهَ التَّعْجِيلَ فِي الزَّكَاةِ** نو دا په زکاة کې د تلوار کولو سره مشابه سوه **وَلَا تَفْصِيلَ بَيْنَ مُدَّةٍ وَمُدَّةٍ هُوَ الصَّحِيحُ** او د یوې مودې او بلې مودې په مېنځ کې هیڅ تفصیل نسته همدا صحیح ده.

**اللغات:** ﴿تقرر﴾ د تفعل د باب مصدر دی: ثابتېدل.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې که خلکو له کوچني اختر څخه دوې، درې ورځې مخکې صدقة فطر اداء کړه، نو دا صحیح او جائز دي، دلیل دا دی چې صدقة فطر د واجبېدلو تر سبب وروسته اداء کړی سوه، ځکه چې د صدقة فطر اصلي سبب مالداري او مؤنت او ولایت دی، او هغه دوې، درې ورځې مخکې هم سته، نو دا مخکې اداء کول داسې سوه لکه تر کال تېرېدلو چې مخکې زکاة اداء کړی سي، او تر کال تېرېدلو مخکې زکاة اداء کول شرعاً معتبر دي، نو ځکه به تر کوچني اختر مخکې هم صدقة فطر اداء کول شرعاً صحیح او معتبر وي.

ولا تفصیل الخ د دې حاصل دا دی چې د صدقة فطر د مخکې اداء کولو په صورت کې د یوې مودې هیڅ تفصیل هم نسته، بلکې څومره موده چې مخکې اداء کړی سي، صدقة فطر به معتبره وي، همدا صحیح قول دی، د هو الصحیح په ویلو سره صاحب د هدایې له هغو قولونو څخه احتراز کړی دی چې په هغو کې له رمضان څخه مخکې او په بعضو کې د رمضان په نصف کې اداء کول معتبر نه دي ګرځول سوي (عنایه ج۲)، خو صحیح دا ده چې مطلق مخکې اداء کولو معتبر دي، هغه که تر رمضان مخکې وي، او که د رمضان په نصف کې وي.

## د اختر تر ورځې وروسته د صدقهٔ فطر د اداء کولو حکم

وَإِنْ أَخَّرُوهَا عَنْ يَوْمِ الْفِطْرِ لَمْ تَسْقُطْ او که خلکو صدقهٔ فطر د کوچني اختر تر ورځې وځنډوله نو صدقهٔ فطر (د هغوی له غاړې څخه) نه ساقطیږي وَكَانَ عَلَيْهِمْ إِخْرَاجُهَا او پر هغو به د دې ایستل واجب وي لِأَنَّ وَجْهَ الْقُرْبَةِ فِيهَا مَعْقُولٌ ځکه چې په صدقهٔ فطر کې د عبادت وجه په فهم کې راځي فَلَا يَتَقَدَّرُ وَقْتُ الْأَدَاءِ فِيهَا بِخِلَافِ الْأُضْحِيَةِ نو په صدقهٔ فطر کې به د اداء کولو وخت نه متعین کیږي (یعني د دې اداء کول به د یو وخت سره نه خاص کیږي) په خلاف د قربانی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خلکو د کوچني اختر په ورځ صدقهٔ فطر اداء نه کړه، او د اختر ورځ تیره سوه، نو هم د هغو پر ذمه صدقهٔ فطر پاته ده، او له هغو څخه د صدقهٔ فطر وجوب نه دي ساقط سوی، بلکي تر ځنډولو وروسته هم پر هغو د صدقهٔ فطر اداء کول ضروري دي، دلیل دا دی چې په صدقهٔ فطر کې د قربت او عبادت وجه معقول ده یعني په فهم کې راځي، ځکه چې دا مالي صدقه ده، او هر وخت د فقیرانو د حاجت لیري کولو لپاره مشروع سوې ده، نو ځکه به په دې کې د اداء کولو هیڅ وخت نه متعین کیږي، او تر واجبېدلو وروسته به بغیر له اداء کولو څخه نه ساقطیږي، لکه زکاة چې همدغسې دی.

د دې په خلاف د قربانی مسئله ده، نو په قربانی کې چې څرنګه د عبادت وجه معقول نه ده یعني په فهم کې نه راځي ځکه چې په قربانی کې وینه بهیږي، او وینه بیول یو غیرِ معقول او په فهم کې نه راتلونکی شی دی، نو ځکه به دا عبادت د قربانی د ورځو سره خاص وي، او د قربانی د ورځو تر تیرېدلو وروسته به قرباني جائز نه وي. والله أعلم بالصواب.



# كِتَابُ الصَّوْمِ

## (دا) كتاب د روژې (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح:** كه څه هم امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع كبير كتابُ الصوم تر كتابُ الصلاة وروسته بيان كړى دى، ځكه چي دواړه بدني عبادتونه دي، خو څرنګه چي په قرآن كريم كي ډېر ځايونه تر لمانځه وروسته زكاة بيان سوى دى، لكه په أَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ، او داسي نورو ډېرو آيتونو كي، نو ځكه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله هم د قرآن كريم په اقتداء او اتباع سره په خپل عظيم الشان كي تر كتاب الصلوة وروسته كتاب الصوم بيانوي.

**د صوم لغوي او اصطلاحي معنىٰ:** د صوم لغوي معنىٰ ده: إمساك، يعني مطلق منع كېدلو، بندېدلو او ځان نيولو ته صوم ويل كيږي، هغه كه له خوراک، څښاک څخه وي، او كه له خبرو څخه وي، او كه له يو بل شي څخه منع كېدل وي، او د صوم اصطلاحي او شرعي معنىٰ ده: الإمساك عن المفطرات الثلاثة نهاراً مع النية. (يعني په ورځ كي د روژې په نيت له دريو مفطراتو (خوراک، څښاک او جماع) څخه منع كېدلو او ځان نيولو ته د شريعت په اصطلاح كي صوم ويل كيږي).

**روژه كله فرض سوه؟** د رمضان روژه د هجرت په دويم [۲] كال د بدر تر جګړې مخكي فرض سوه، يو قول دا دى چي د هجرت په دويم كال د شعبان په مياشت كي فرض سوه، او تر دې مخكي د عاشوراء او د ايامِ بيض يعني د هري قمري مياشتي د ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم روژې فرض وې.

د عاشوراء او نورو روژو د فرضيت په لړ كي نور زيات تفصيل د حديثو په كتابونو كي ذكر سوى دى، د تفصيل مينه وال دي هغو ته رجوع وكړي، ځكه د دې شرحې مقصد خو د هدايې تشريح او توضيح ده.

### د روژې قسمونه او په هغو كي د نيت د شرط والي بيان

قَالَ: الصَّوْمُ ضَرْبَانِ: وَاجِبٌ وَنَفْلٌ فرمايي: چي روژه پر دوه قسمه ده: واجب او نفل وَالْوَاجِبُ ضَرْبَانِ او (بيا) واجب پر دوه قسمه دى مِنْهُ مَا يَتَعَلَّقُ بِزَمَانٍ بِعَيْنِهِ كَصَوْمِ رَمَضَانَ وَالنَّذْرِ الْمُعَيَّنِ له هغو څخه يو واجب هغه دى چي د متعيني (ټاكلي) زمانې سره تعلق لري لكه د روژې د مياشتي او د نذرِ معين روژه فَيَجُوزُ صَوْمُهُ بِنِيَّةٍ مِنَ اللَّيْلِ نو دا روژه جائز ده په داسي نيت سره چي هغه به له شپې څخه وي وَإِنْ لَمْ يَنْوِ حَتَّى أَصْبَحَ او كه يې نيت نه وكړى تر دې چي سهار سو أَجْزَأَتْهُ النِّيَّةُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الزَّوَالِ نو د هغه لپاره به د سهار او زوال په مينځ كي نيت كول كافي وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُجْزِئُهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي نه كافي كيږي اِعْلَمْ أَنَّ صَوْمَ رَمَضَانَ فَرِيضَةٌ پوه سه! چي د روژې د مياشتي روژه فرض ده لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ [البقرة: ۱۸۳] ځكه الله تعالىٰ فرمايلي دي: "پر تاسو روژې فرض سوي دي" وَعَلَىٰ فَرْضِيَّتِهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او د روژې پر فرضيت اجماع منعقد سوې ده وَلِهَٰذَا يُكَفَّرُ جَاحِدُهُ نو په دې وجه به د روژې منكر كافر كيږي وَالْمَنْذُورُ وَاجِبٌ او د نذر روژه واجب ده لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ [الحج:

ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "چي خپل نذرونه دي پوره کړي" وَسَبَبُ الْأَوَّلِ الشَّهْرُ د اول (يعني د رمضان د روژې) سبب مياشت ده وَلِهَذَا يُضَافُ إِلَيْهِ همدا وجه ده چي روژه د رمضان و طرف ته منسوبيږي وَيَتَكَرَّرُ بِتَكَرُّرِهِ او د رمضان د مياشتي په تکرار سره روژه (هم) مکرره کيږي (يعني د رمضان په بار بار راتللو سره روژه هم بار بار راځي) وَكُلُّ يَوْمٍ سَبَبٌ لِوُجُوبِ صَوْمِهِ او د رمضان هره ورځ د خپلي روژې د واجبيدلو سبب ده وَسَبَبُ الثَّانِي النَّذْرُ او د دويم (يعني د نذر معيّن د روژې) سبب نذر کول (نذر منل) دي وَالنِّيَّةُ مِنْ شَرْطِهِ او نيت د روژې شرط دی وَسَنُبَيِّنُهُ وَنُفَسِّرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او موږ به د شرطونو بيان او تفسير (په پوره وضاحت سره وروسته) وکړو انشاء الله تعالیٰ وَجْهُ قَوْلِهِ فِي الْخِلَافِيَّةِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او په اختلافي مسئله کي (يعني د نيت په باره کي چي کوم اختلاف ور په هغه کي) د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی لَا صِيَامَ لِمَنْ لَمْ يَنْوِ الصِّيَامَ مِنَ اللَّيْلِ● (چي) د هغه سړي روژه معتبره نه ده چي له شپې څخه يې د روژې نيت کړی نه وي وَلِأَنَّهُ لَمَّا فَسَدَ الْجُزْءُ الْأَوَّلُ لِفَقْدِ النِّيَّةِ او په دې وجه (هم) چي کله (د روژې) اول جزء د نيت د نيستي کېدلو په وجه سره فاسد سو فَسَدَ الثَّانِي ضَرُورَةَ أَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ نو دويم جزء به هم فاسديږي ځکه چي روژه نه متجزي کيږي (يعني حصه حصه او ټوکره ټوکره نه کيږي) بِخِلَافِ النَّفْلِ لِأَنَّهُ مُتَجَزٍّ عِنْدَهُ په خلاف د نفلو ځکه چي هغه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز ټوکره کيږي وَلَنَا قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● بَعْدَمَا شَهِدَ الْأَعْرَابِيُّ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی چي کله صحرايي د مياشتي ليدلو ګواهي ورکړه (نو نبي ﷺ وفرمايل) أَلَا مَنْ أَكَلَ فَلَا يَأْكُلَنَّ بَقِيَّةَ يَوْمِهِ خبردار! چا چي څه خوړلي وي هغه دي پاته ورځ خوراک نه کوي وَمَنْ لَمْ يَأْكُلْ فَلْيَصُمْ او چا چي (هيڅ) خوړلي نه وي نو هغه دي روژه ونيسي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى نَفْيِ الْفَضِيلَةِ وَالْكَمَالِ او کوم حديث چي امام شافعي روايت کړی دی هغه د فضيلت او کمال پر نفي حمل سوی دی أَوْ مَعْنَاهُ لَمْ يَنْوِ أَنَّهُ صَوْمٌ مِنَ اللَّيْلِ يا د هغه معنیٰ ده: چي هغه دا نيت نه وي کړی چي دا روژه به له شپې څخه دي (يعني يا د حديث دويمه معنیٰ دا ده چي هغه داسي نيت نه وکړي چي له شپې څخه روژه نيسم، بلکي داسي نيت وکړي چي مثلاً اوس له نهو بجو څخه روژه شروع کوم، نو د هغه روژه معتبره نه ده) وَلِأَنَّهُ يَوْمُ صَوْمٍ او په دې وجه (هم) چي دا د روژې ورځ ده فَيَتَوَقَّفُ الْإِمْسَاكُ فِي أَوَّلِهِ عَلَى النِّيَّةِ الْمُتَأَخِّرَةِ الْمُقْتَرِنَةِ بِأَكْثَرِهِ كَالنَّفْلِ نو د ورځي په اول کي چي کوم امساک دی هغه به موقوف وي پر هغه نيت کوم چي وروسته وي او د ورځي د اکثره حصې سره متصل وي لکه نفلي روژه وَهَذَا لِأَنَّ الصَّوْمَ رُكْنٌ وَاحِدٌ مُمْتَدٌّ او دا په دې وجه چي روژه (پوره) يو رکن دی (لېکن) اوږد دی وَالنِّيَّةُ لِتَعْيِينِهِ لِلهِ تَعَالَى او (د روژې) نيت د الله ﷻ لپاره د هغه

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصيام، باب النية في الصوم، حديث رقم: ٢٤٥٤.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب إذا نوى النهار صوماً، حديث رقم: ١٩٢٤.

رکن د متعینولو لپاره دی فَتَتَرَجَّحُ بِالْكَثْرَةِ جَنْبَةُ الْوُجُوْدِ نو په اکثره حصې سره به د وجود اړخ ته ترجیح ورکول کیږي بِخِلَافِ الصَّلٰوةِ وَالْحَجِّ په خلاف د لمانځه او حج لِأَنَّهُمَا أَرْكَانٌ ځکه چې د هغو لپاره څو ارکان دي (ما جمله په اصل کې داسې ده: لأن لهما ارکانا) فَيُشْتَرَطُ قِرَانُهَا بِالْعَقْدِ عَلٰى أَدَائِهِمَا نو د هغه عقد سره به د نیت متصل کېدل (جوختېدل) شرط وي کوم چې د لمانځه او د حج د اداء کولو لپاره سوی وي (په لنډه توګه دا چې په دواړو کې به له شروع څخه نیت کول شرط وي) وَبِخِلَافِ الْقَضَاءِ په خلاف د قضاء لِأَنَّهُ يَتَوَقَّفُ عَلٰى صَوْمِ ذٰلِكَ الْيَوْمِ ځکه چې هغه د دغه ورځې پر روژې موقوفه ده وَهُوَ النَّفْلُ او هغه نفلي روژه ده وَبِخِلَافِ مَا بَعْدَ الزَّوَالِ او په خلاف تر زوال وروسته لِأَنَّهُ لَمْ يُوْجَدْ اِقْتِرَانُهَا بِالْأَكْثَرِ ځکه چې (په دې صورت کې) د ورځې د اکثره حصې سره د نیت متصل کېدل پیدا نه سوه فَتَرَجَّحَتْ جَنْبَةُ الْفَوَاتِ نو د فوات اړخ ته به ترجیح ورکول کیږي ثُمَّ قَالَ فِي الْمُخْتَصَرِ: مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الزَّوَالِ بیا امام قدوري رَحِمَهُ الله په مختصر القدوري کې مابینه وبین الزوال (یعني د سهار او د زوال په مینځ کې دې نیت وکړي) ویلي دي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ قَبْلَ نِصْفِ النَّهَارِ او په جامع صغیر کې (امام محمد رَحِمَهُ الله) قبل نصف النهار (یعني تر نیمې ورځې دې مخکې نیت وکړي) ویلي دي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحیح ده لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ وُجُوْدِ النِّيَّةِ فِي أَكْثَرِ النَّهَارِ ځکه چې په اکثره ورځ کې د نیت وجود (شتون) ضروري دی وَنِصْفُهُ مِنْ وَقْتِ طُلُوْعِ الْفَجْرِ إِلٰى وَقْتِ الضَّحْوَةِ الْكُبْرٰى او د (شرعي) ورځې نصف (نیمې) له سهار راختلو څخه تر غتې رڼا (یعني د څاښت تر وخته) پورې دی لَا وَقْتَ الزَّوَالِ نه د زوال تر وخته پورې فَتُشْتَرَطُ النِّيَّةُ قَبْلَهَا نو تر څاښت مخکې به نیت شرط وي لِيَتَحَقَّقَ فِي الْأَكْثَرِ چې د ورځې په اکثره حصه کې نیت ثابت سي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْمُسَافِرِ وَالْمُقِيْمِ او (په دې لړ کې) د مسافر او مقیم په مینځ کې فرق نسته خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ الله د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّهُ لَا تَفْصِيْلَ فِيْمَا ذَكَرْنَا مِنَ الدَّلِيْلِ ځکه کوم دلیل چې موږ ذکر کړی په هغه کې (د مقیم او مسافر) هیڅ تفصیل نسته.

**اللغات**: ﴿ضربان﴾ قسمونه، ﴿جاحد﴾ د فتح د باب اسم فاعل دی: انکار کونکی، ﴿امساك﴾ د افعال د باب مصدر دی: نیول، بندېدل (منع کېدل)، (دلته څخې مراد له خوراک، څښاک او جماع څخه منع کېدل دي، چې هغه ته روژه وایي) ﴿لیوفوا﴾ امر غائب دی: پوره کول، پر وعده وفا کول، ﴿وقت الضحوة الکبرٰی﴾ هغه وخت چې بنه رڼا سي او رڼا زیاته سي، د څاښت آخري وخت.

**تشریح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله د روژې تقیسم بیانوي فرمایي چې روژه پر دوه قسمه ده: (۱) واجب، (۲) نفل، او دا دوه قسمونه په حقیقت کې د روژې درېو سره قسمونو ته شامل دي، ځکه چې روژه په اصل کې پر درې قسمه ده: (۱) فرض (۲) واجب (۳) نفل، لیکن څرنګه چې واجب په معنیٰ سره د ثابت دی، او فرض هم ثابت دي، نو ګواکي امام قدوري رَحِمَهُ الله فرض او واجب دواړه سره یو ځای کړل او دواړو ته یې د واجب نوم ورکړی، بیا واجب پر دوه قسمه دی: (۱) معیّن (۲) غیر معیّن، یعني یو هغه قسم دی چې دیوې ټاکلي او متعیني زمانې سره متعلق وي، لکه د رمضان او

نذر معین روژې. مثلاً یو سړی دا نذر ومني چې د جمعې په ورځ به روژه نیسم، نو دلته هغه د جمعې ورځ د روژې نیولو لپاره متعینه کړه. نو دا نذر معین سو. (۲) دویم قسم هغه دی چې د یوې متعینې زمانې سره متعلق نه وي، لکه د رمضان د قضاء روژې چې د هغو لپاره هیڅ وخت متعین نه دی. بلکې له منع کړی سوو ورځو څخه علاوه هر وخت انسان د هغه قضاء راوړی سي. په دې عبارت کې امام قدوري رَحِمَهُ الله اول د واجب معین احکام ذکر کوي، فرمايي چې د رمضان او نذر معین روژې هم د نورو قسمونو د روژو په ډول په شپه کې په نیت کولو سره جائز کیږي، او که یو سړی د رمضان یا نذر معین په روژه کې د شپې نیت نه وکړي، تر دې چې سهار سي، نو بیا که یې د سهار او زوال په مینځ کې نیت وکړي نو هم روژه جائز کیږي، لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که یې د رمضان د روژې یا د نذر معین د روژې نیت د شپې نه وکړی، بلکې تر صبح صادق وروسته یې وکړی، نو روژه نه جائز کیږي، خو د نفلي روژې نیت تر سهار وروسته هم جائز دی، همدا قول د امام احمد رَحِمَهُ الله دی، او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز په فرضي او نفلي ټولو روژو کې د شپې نیت کول شرط دی، او که تر سهار وروسته یې نیت وکړي، نو هغه د ده په نېز معتبر نه دی.

صاحب د هدایې په اختلافي مسئله کې د فریقینو د دلائلو تر بیان مخکې د تمهید او سریزې په توګه یو څو خبرې ذکر کړې دي: (۱) اول خبره دا ده چې د رمضان روژه فرض ده، دلیل دا آیت: کتب علیکم الصیام دی، او بل دلیل د امت اجماع ده، همدا وجه ده چې د رمضان د روژې د فرضیت منکر کافر شمارل کیږي، (۲) دویمه خبره دا ده چې د نذر روژه واجب ده، دلیل دا آیت دی: ولیوفوا نذورهم ځکه چې ولیوفوا د امر صیغه ده، او امر پر وجوب دلالت کوي، (۳) دریمه خبره دا ده چې د اول یعني د رمضان د روژو سبب د رمضان د میاشتې راتلل دي، همدا وجه ده چې صوم د رمضان و طرف ته منسوبیږي او صوم رمضان ویل کیږي، او نسبت او اضافت د مضاف الیه د سبب کېدلو نښه ده، نو کله چې هم د رمضان میاشت راسي، د روژې حکم به مکرر کیږي، ځکه چې د سبب تکرار د مسبّب تکرار لره مستلزم وي، (۴) څلورمه خبره دا ده چې د هرې ورځې د روژې د وجوب سبب هغه ورځ ده، یعني د رمضان د میاشتې هره ورځ د هرې روژې د واجبېدلو سبب ده، ځکه چې د رمضان روژې د عبادت متفرقه په درجه کې دي، ځکه چې د هرو دوو ورځو او هرو دوو روژو په مینځ کې یو داسې وخت راځي چې په هغه کې روژه نه نیول کیږي چې هغه نو د شپې وخت دی، نو په شپه کې نه د اداء روژه نیول کېدای سي، او نه د قضاء، نو په دې حواله سره د رمضان روژې د لمانځه په ډول سوې، او څرنګه چې د هر لمانځه سبب د هغه لمانځه وخت دی، همدارنګه به د هرې روژې سبب د هغه روژې ورځ وي.

وسبب الشان الخ او د نذر معین د روژې سبب نذر دی، او نیت د روژې لپاره شرط دی، ځکه چې روژه یو عبادتي عمل دی، او د ټولو عملونو دارومدار پر نیت باندې وي. صاحب د هدایې فرمايي چې د صوم ټوله شرطونه به په را روانو پاڼو کې انشاء الله ذکر کړو، وروسته فرمايي چې په مختلف فیه مسئله یعني د شپې او تر زوال مخکې چې د نیت په باره کې زموږ او د امام اشافعي رَحِمَهُ الله کوم اختلاف دی، په هغه مسئله کې:

**د امام شافعي دلیل:** دا حدیث دی: لا صیام لمن لم ینو الصیام من اللیل. (یعني څوک چې د روژې نیت د شپې نه وکړي، د هغه روژه معتبره نه ده)، له دې حدیث څخه شوافع په دې توګه دلیل نیسي چې په حدیث کې په شپه کې د روژې په نیت نه کولو سره د روژې نفي سوې دي، چې له هغه څخه دا خبره ثابتیږي چې د روژې د صحت لپاره د شپې نیت کول ضروري دي، او تر طلوع فجر (سهار راختلو) وروسته د نیت هیڅ اعتبار نسته، دویم دلیل د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا دی چې نیت د روژې شرط دی، نو که یو چا د شپې د روژې نیت نه وکړی، نو د روژې اول جزء یې د نیت د فقدان په وجه سره

فاسد سو، او کله چې د روژې اول جزء فاسد سو، نو دويم جزء خو به خامخا فاسديږي، ځکه چې وروستني ټوله اجزاء پر اول جزء مبني کيږي، او اول جزء فاسد دی، نو ښکاره ده چې وروستني اجزاء به هم فاسد وي (لأن بناء الفاسد على الفاسد فاسد)، ځکه روژه نه متجزي کيږي چې د روژې يوه ټوکړه او جزء دې صحيح وي. او دويم دې يې فاسد وي، د دې په خلاف که يو چا په نفلي روژه کې د شپې نيت نه وکړی، او بيا يې تر زوال مخکې د روژې نيت وکړی. نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز هم د هغه روژه صحيح ده، ځکه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په نفلي روژه کې تجزي او تقسيم راتلای سي، نو د روژې په کوم جزء کې چې نيت نه وسو هغه خو به فاسد وي، او په کوم جزء کې چې يې نيت وسو هغه به صحيح وي، او څرنګه چې دا معامله د نفلي روژې ده، او په نفلي روژه کې تجزي جائز ده، نو ځکه به په مينځ کې د بناء الفاسد على الفاسد والا خرابي هم نه راځي.

**زموږ دليل:** دا دی چې کله يوه صحرايي د رمضان د مياشتې د ليدلو ګواهي په ورځ کې نبي ﷺ ته ورکړه، نو نبي ﷺ وفرمايل: "چا چې څه خوړلي وي، هغه دې پاته ورځ خوراک نه کوي، او چا چې څه خوړلي نه وي، هغه دې روژه ونيسي، يعني د روژې نيت دې وکړي"، په دې حديث سره موږ دليل په دې توګه نيسو چې نبي ﷺ هغه خلک چې په ورځ کې يې خوراک کړی وو، له نور خوراک کولو څخه منع کړه، او نه خوړونکو ته يې د روژې حکم وکړی، نو معلومه سوه چې له شپې څخه د روژې نيت کول ضروري نه دي، او که يو سړی د شپې نيت نه وکړي، نو د هغه لپاره به تر زوال مخکې هم نيت کول جائز وي.

**جواب:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث يعني د لا صيام لمن لم ينو الصيام من الليل اول جواب خو دا دی چې په لا صيام کې لا د روژې د صحت د نفي لپاره نه دی، بلکې د کمال او د فضيلت د نفي لپاره دی، او د حديث معنیٰ دا ده: "څوک چې د شپې د روژې نيت نه وکړي، د هغه روژه کامله او بشپړه نه ده"، دا يې مطلب نه دی چې "د هغه روژه معتبره او صحيح نه ده"، او دويم جواب دا دی چې په لا صيام کې لا د صحت د نفي لپاره دی، خو د هغه سړي په حق کې چې هغه د ورځې دا نيت نه وکړي چې زما روژه له شپې څخه ده، بلکې دا نيت وکړي، چې له همدغه وخت څخه ده، او ښکاره ده چې په شريعت کې له شپې څخه روژه معتبره ده، نه له ورځې څخه، اوس که يو څوک د شپې نيت نه وکړي، او د ورځې د روژې نيت کول غواړي، نو هغه ته پکار ده چې داسې نيت وکړي چې: "زما روژه خو له شپې څخه ده، لېکن نيت يې اوس کوم"، او داسې دې هيڅکله نه وايي چې "له اوس څخه زما روژه ده، ځکه چې زه يې نيت اوس کوم".

ولأنه صوم الخ زموږ له طرفه عقلي دليل دا دی چې د رمضان او نذر معين ټوله ورځ د روژې ورځ ده، ځکه چې دا ورځ د روژې لپاره ټاکل سوې ده، نو د دې ورځې په اوله حصه کې (يعنې د ورځې په شروع کې) به له دريو مفطراتو (اکل، شرب، جماع) څخه ځان نيول پر هغه نيت موقوف وي کوم نيت چې د ورځې تر اولې حصې وروسته سوی وي، او د ورځې د اکثره حصې سره متصل وي، نو که يو چا تر زوال مخکې د روژې نيت وکړی، نو څرنګه چې د روژې نيت د ورځې د اکثره حصې سره متصل سو، نو ځکه به د اولې ورځې هغه امساک (ځان نيول) کوم چې له نيت څخه خالي وو، هغه به پر دې نيت موقوفيږي، او هغه به هم د نيت والا شمارل کيږي، او دا به ويل کيږي چې ټوله امساک د نيت سره متصل سو، ځکه چې د للأكثر حكم الكل قاعده مشهوره ده.

وهذا الخ فرمايي چې د ورځې د شروع امساک پر را روان نيت باندې موقوفه کېدل په دې وجه دي چې صوم يو رکن دی، لېکن اوږد رکن دی، اوس په دې کې دا احتمال هم سته چې صوم به د عادت په توګه وي، لېکن دا معلومول چې دا امساک خالص د الله لپاره دی او د عبادت په توګه دی، نه د عادت په توګه. دا صرف په نيت سره کېدای سي، نو ځکه وويل سوه چې د ورځې د اول او شروع امساک به پر هغه نيت موقوف وي کوم چې د ورځې د اولې حصې څخه وروسته وسي، اوس که دا نيت د ورځې په اکثره حصه کې وسو، نو څرنګه چې اکثر د کل قائم مقام وي، نو د کثرت په وجه سره به جانبِ وجود ته پر جانبِ عدم ترجيح ورکول کېږي او ټوله روژه به د نيت والا شمارل کېږي، يعني ويل کېږي به چې په ټوله ورځ کې د روژې نيت پيدا سو، او کله چې داسې ده، نو روژه به صحيح وي، لهذا ثابته سوه چې په شپه کې د روژې نيت کول ضروري نه دي.

بخلاف الصلاة والحج الخ فرمايي چې په روژه کې خو د للاکثر حکم الکل قاعده جاري کېږي، لېکن په لمانځه او حج کې به دا قاعده نه جاري کېږي، ځکه چې په حج او لمانځه کې ډېر ارکان دي، يعني په لمانځه کې شپږ ارکان دي، او په حج کې درې ارکان دي، نو که په هغو کې له اول وخت څخه نيت نه وسي، نو کوم رکن چې بې له نيته اداء کړی سوی وي، هغه به باطل وي، او د ارکانو په بُطلان سره نفسِ شی باطلېږي، نو ځکه به له شروع څخه په لمانځه او روژه کې نيت کول ضروري وي، او د وروسته نيت به هيڅ اعتبار نه وي.

بخلاف القضاء الخ له دې ځايه د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله روژه واحد او ممتد (اوږد) رکن دی، او تر زوال مخکې نيت کول جائز دي، نو د رمضان په قضاء راوړلو کې هم تر زوال مخکې نيت جائز کېدل پکار وو، حال دا چې داسې نه ده، بلکې د رمضان په قضاء کې د شپې نيت کول شرط دي، د دې جواب ورکوي چې له رمضان او نذر معين څخه چې علاوه کومې ورځې دي هغه د نفلي روژې لپاره دي، يعني له دې ورځو څخه علاوه نور ټوله کال د نفلي روژو لپاره متعين دی، اوس که يو څوک له صبح صادق څخه مخکې د قضائي روژې نيت نه وکړي، بلکې تر زوال مخکې يې وکړي، نو دا خو به روژه وي، لېکن نفلي روژه به وي، (ځکه چې له رمضان او نذر معين څخه علاوه نورې ټولې ورځې د نفلي روژې سره خاص دي)، نو په دې صورت کې به د ورځې د شروع روژه نفلي سي او تر زوال مخکې روژه به واجب سي، لېکن د واجب بناء پر نفلو نه سي کېدلای، نو ځکه به له شپې څخه د قضائي روژې نيت کوي، او په رمضان او نذر معين کې له شپې څخه د نيت ضرورت ځکه نسته چې دا ورځې د دغه روژې لپاره متعينې دي، نو که مطلق روژه هم څوک په دې ورځو کې ونيسي، هغه به د رمضان روژه وي، نه نفلي روژه.

وبخلاف مابعد الزوال الخ له دې ځايه هم د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله روژه رکنِ واحد او ممتد(اوږد) رکن دی، نو څرنګه چې په دې کې تر زوال مخکې نيت معتبر دی، همدارنګه تر زوال وروسته هم نيت معتبر کېدل پکار وو، حال دا چې تاسو تر زوال مخکې نيت معتبر منئ، لېکن تر زوال وروسته د نيت اعتبار نه کوئ، آخر په مخکې او وروسته کې څه فرق دی؟ جواب ورکوي چې تر زوال مخکې د نيت د معتبر کېدلو وجه دا ده چې په دې سره د ورځې اکثره حصه د روژې په نيت سره کېږي، او د للاکثر حکم الکل په قاعده سره به ټوله روژه د نيت سره متصله شمارل کېږي، لېکن تر زوال وروسته د نيت کولو په صورت کې د روژې اکثره حصه بې له نيته کېږي، نو ځکه به تر زوال وروسته د عدم نيت اړخ ته ترجيح حاصله وي، او دا به ويل کېږي چې دا سړی خو ټوله ورځ وږی پاته سو، لېکن د نيت د نشتوالي په وجه روژتي نه سو، ځکه چې موږ مخکې ذکر کړه چې د روژې لپاره نيت شرط او ضروري دی، او بې

له نيته روژه معتبره نه ده، او څرنګه چې تر زوال وروسته د نيت كولو په صورت كې به ټوله روژه له نيت څخه خالي شمارل كيږي، نو په دې وجه به تر زوال وروسته نيت معتبر نه وي.

ثم قال في المختصر الخ له دې ځايه صاحب د هدايې د مختصر القدوري او جامع صغير د عبارتونو په مينځ كې فرق بيانوي فرمايي چې په قدوري كې د ما بينه وبين الزوال عبارت دى، ليكن په جامع صغير كې د قبل نصف النهار عبارت دى، او همدا د جامع صغير عبارت صحيح دى، ځكه چې د شپې د نيت نه كولو په وجه د ورځې په اكثره حصه كې د نيت وجود ضروري دى، او د ورځې نصف له طلوع فجر څخه واخله تر ضحوه كبرىٰ (لوى څاښت) پورې كيږي، نه تر زواله پورې، ځكه چې په روژه كې شرعي ورځ معتبره ده، او د شرعي ورځې نصف ضحوى كبرىٰ كيږي، نه زوال، او زوال تر ضحوى كبرىٰ يو ساعت (ګينټه) وروسته راځي، نو ځكه د شرعي ورځې په حواله سره په اكثره ورځ كې د نيت په معتبر كيدلو سره د قبل النصف النهار والا عبارت زيات صحيح معلوميږي.

ولا فرق بين المسافر الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د رمضان او نذر معين په روژو كې تر نصف النهار مخكې نيت معتبر كيدل د مسافر او مقيم دواړو په حق كې برابر دي، ځكه كوم دليل چې د للاكثر حكم الكل په حواله سره بيان سو، په هغه كې هيڅ تفصيل نسته، ليكن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د مسافر لپاره د شپې نيت كول شرط دي، او د هغه په نيز تر صبح صادق وروسته تر نصف النهار مخكې نيت معتبر نه دى.

يادونه: ورځ پر دوه قسمه ده: ① شرعي ② عُرفي، شرعي ورځ له صبح صادق (طلوعِ فجر) څخه تر لمر لوېدلو پورې ده، او عُرفي ورځ له لمر راختلو څخه وروسته تر لمر لوېدلو پورې ده.

## د نفلو په نيت سره يا په مطلق نيت سره د فرضي روژې حكم

وَهٰذَا الضَّرْبُ مِنَ الصَّوْمِ يَتَأَدّٰى بِمُطْلَقِ النِّيَّةِ او د روژې دا قسم اداء كيږي[۱] په مطلق نيت سره هم وَبِنِيَّةِ النَّفْلِ وَبِنِيَّةِ وَاجِبٍ آخَرَ او (اداء كيږي) [۲] د نفلو په نيت سره (هم) [۳] او د بل واجب په نيت سره (هم) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِي نِيَّةِ النَّفْلِ عَابِثٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د نفلو په نيت كولو كې روژتي (صائم) عبث كار كونكى دى (يعني بالكل يې روژه نه صحيح كيږي) وَفِي مُطْلَقِهَا لَهُ قَوْلَانِ او په مطلق نيت كولو كې د امام شافعي دوه قوله دي لِأَنَّهُ بِنِيَّةِ النَّفْلِ مُعْرِضٌ عَنِ الْفَرْضِ ځكه چې د نفلو په نيت كولو سره هغه له فرضو څخه اعراض كونكى سو فَلَا يَكُونُ لَهُ الْفَرْضُ نو د هغه لپاره به فرض (هم) نه وي وَلَنَا أَنَّ الْفَرْضَ مُتَعَيَّنٌ فِيهِ او زموږ دليل دا دى چې په دې وخت كې فرض متعين دي فَيُصَابُ بِأَصْلِ النِّيَّةِ نو ځكه به په اصل نيت سره فرض صحيح كيږي كَالْمُتَوَحِّدِ فِي الدَّارِ يُصَابُ بِاسْمِ جِنْسِهِ لكه په كور كې چې يوازې سړى په خپل اسم جنس سره پيدا كيږي وَإِذَا نَوَى النَّفْلَ أَوْ وَاجِبًا آخَرَ او كله چې روژه داره د نفلو يا د بل واجب نيت وكړى فَقَدْ نَوَى أَصْلَ الصَّوْمِ وَزِيَادَةَ جِهَةٍ نو هغه د اصل روژې نيت (هم) وكړى او د يوه زيات جهت (يعني د نفلو يا بل واجب) نيت يې (هم) وكړى وَقَدْ لَغَتِ الْجِهَةُ فَبَقِيَ الْأَصْلُ وَهُوَ كَافٍ حال دا چې زيات جهت

لغوه سو نو اصل روژه پاتې سوه او هغه کافي ده وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْمُسَافِرِ وَالْمُقِيمِ وَالصَّحِيحِ وَالسَّقِيمِ عِنْدَ● أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مسافر او مقيم، روغ او ناروغ په مينځ کي هيڅ فرق نسته لِأَنَّ الرُّخْصَةَ كَيْلَا تَلْزَمَ الْمَعْذُورَ مَشَقَّةٌ ځکه رخصت خو په دې وجه وو چي معذوره سړي ته تکليف ونه رسيږي فَإِذَا تَحَمَّلَهَا الْتَحَقَ بِغَيْرِ الْمَعْذُورِ لېکن کله چي هغه په خپله تکليف وزغمي (برداشت يې کړي) نو هغه د غيرِ معذور سړه يو ځای سو وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله إِذَا صَامَ الْمَرِيضُ وَالْمُسَافِرُ بِنِيَّةِ وَاجِبٍ آخَرَ يَقَعُ عَنْهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز چي کله ناروغه او مسافر د بل واجب په نيت سره روژه ونيسي نو روژه (هم) د بل واجب له طرفه واقع کيږي لِأَنَّهُ شَغَلَ الْوَقْتَ بِالْأَهَمِّ ځکه چي هغه وخت په مهم شي سره مشغول کړی لِتَحَتُّمِهِ لِلْحَالِ ځکه چي بل واجب خو په اوسني حال کي حتمي (او لازمي) دی وَتَخَيُّرِهِ فِي صَوْمِ رَمَضَانَ إِلَى إِدْرَاكِ الْعِدَّةِ او د رمضان په روژه کي د عدت (موقع) تر نيولو پوري هغه ته اختيار دی وَعَنْهُ فِي نِيَّةِ التَّطَوُّعِ رِوَايَتَانِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د نفلي روژې په نيت کولو کي دوه روايتونه دي وَالْفَرْقُ عَلَى إِحْدَاهُمَا أَنَّهُ مَا صَرَفَ الْوَقْتَ إِلَى الْأَهَمِّ او له هغو څخه پر يوه روايت فرق دا دی چي مسافر وخت د مهم شي و طرف ته نه وګرځوی (يعني هغه په يو مهم شي کي د رمضان وخت صرف نه کړی).

**اللغات:** ﴿يتأدى﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: اداء کېدل. ﴿عابث﴾ اسم فاعل دی: عبث او بې فايدې کار کونکی. ﴿يصاب﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده، د إصابة ډېري معناوي راځي، په صله کي چي يې کوم حرف راسي د هغه سره يې معنیٰ بدليږي، يو څو معناګاني يې دا دي: صحيح کول، صحيح کېدل، اخيستل، پيدا کول، تکليف ورکول او داسي نور. ﴿تحتم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: حتمي کېدل، يقيني کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده زموږ په نېز چي څرنګه د روژې اول قسم يعني د رمضان او نذر معين روژه د رمضان او نذر په نيت سره اداء کيږي، همدارنګه د نفلو په نيت، مطلق نيت او د بل واجب (واجب آخر) په نيت سره هم اداء کيږي، لېکن د نذرِ معين روژه خو د نفلو په نيت او مطلق نيت سره اداء کيږي، لېکن د واجبِ آخر په نيت سره نه اداء کيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د نفلو په نيت سره په رمضان کي روژه نه اداء کيږي، يعني نه د رمضان روژه اداء کيږي، او نه نفلي روژه، بلکي که يې د نفلو نيت وکړی، نو د دې ورځي امساک به يې صرف لوږه وي، ځکه چي د رمضان د روژې نيت يې کړی نه دی، او د نفلي روژې وخت نه دی، نو ځکه به دا يوه روژه هم نه شمارل کيږي، او که په رمضان کي يې د مطلق روژې نيت وکړی، نو په دې کي له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه دوه قوله دي: (۱) يو دا چي په مطلق نيت سره د رمضان روژه اداء کيږي، (۲) دويم دا چي د رمضان روژه نه اداء کيږي، همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله او امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی.

لأنه بنية النفل الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل په نفلي نيت کي يعني چي د نفلو په نيت سره نه د رمضان روژه اداء کيږي او نه نفلي روژه، دا دی چي د رمضان په مياشت کي د نفلي روژې په نيت کولو سره ګواکي هغه له فرضي روژې څخه

---

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة داماد آفندي رَحِمَهُ الله: عندهما يقع عن رمضان إلى قوله فالأصح أنه يقع عن رمضان على جميع الروايات كالمريض، مجمع الأنهر ج:۱، ص: ۲۳۳. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۵]

اعراض وکړي، ځکه چې د فرضو او نفلو په مینځ کې تغایر دی، نو له فرضي روژې څخه اعراض کول داسي دي، لکه د هغې نیت پرېښوول، او دا خبره ښکاره ده چې د نیت په پرېښوولو سره روژه نه اداء کیږي، نو ځکه به په دې صورت کې د رمضان روژه اداء نه وي، او څرنګه چې رمضان د نفلي روژې وخت نه دی، نو ځکه به نفلي روژه هم اداء نه وي.

د مطلق نیت په صورت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اول قول دلیل دا دی چې کله د روژې په میاشت کې د مطلقي روژې نیت وسي، نو دا سړی به په دې نیت سره له فرضي روژې څخه اعراض کونکی نه شمارل کیږي، (ځکه د مطلق نیت سره یې د بل شي نیت نه دی کړی)، او کله چې له فرضي روژې څخه اعراض نه راغلی، نو د رمضان روژه به اداء کیږي، د دویم قول دلیل یې دا دی چې د فرضي روژې نیت یې کړی نه دی، نو ځکه به د رمضان روژه نه اداء کیږي.

ولنا الخ زموږ دلیل دا دی چې د روژې میاشته د فرض روژو لپاره تاکل سوې ده، لکه څرنګه چې نبي ﷺ فرمایلي دي:

إذا انسلخ شعبان فلا صوم إلا رمضان. (یعني کله چې د شعبان میاشته ختمه سي، نو له رمضان څخه علاوه نوري روژې نسته)، نو کله چې د رمضان میاشت د فرض روژې لپاره متعینه او تاکل سوې ده، نو فرض روژه به په اصل (او مطلق) نیت سره هم اداء کیږي، لکه په یو کور کې چې فقط یو سړی وي، او هغه په خپل اسم جنس سره را وبلل سي، نو همدغه سړی به ځني مراد وي، او په اسم جنس سره به د هغه رابلل صحیح هم وي، مثلاً که وویل سي: یا انسان، نو له یا انسان څخه به همدغه سړی مراد وي، کوم چې په کور کې دی، لکه څرنګه چې د هغه په عَلَم یا نوم سره هم هغه مرادیږي، همدارنګه د رمضان میاشت چې کله د فرض روژو لپاره متعینه ده، نو فقط د روژې په نیت سره به هم د هغه روژه اداء کیږي، ځکه چې دا میاشت د روژې محل ده؛ او که هغه د نفلو یا د بل واجب نیت وکړی، نو ګواکي د اصل روژې نیت یې هم وکړی، او د یو زیات شي یعني د نفلو یا د واجبو نیت یې هم وکړی، نو دا زیات جهت به لغوه کیږي (یعني د نفلو یا د واجبو نیت به ساقطیږي)، ځکه چې وقت یعني د رمضان میاشت دا نه قبلوي، او کله چې زائد جهت لغوه سي، نو د اصل روژې نیت به پاته وي، او مخکي ذکر سوه چې په اصل نیت سره د رمضان روژه اداء کیږي، نو ځکه به د نفلو یا د بل واجب په نیت سره هم د رمضان روژه اداء کیږي.

ولا فرق الخ صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چې په دغه حکم کې چې د رمضان روژه په مطلق نیت، د نفلو په نیت، او د بل واجب په نیت سره اداء کیږي، مسافر، مقیم، روغ او مریض ټوله برابر دي، ځکه چې مسافر او مریض ته د روژې ځنډولو رخصت ځکه ورکول سوی دی، چې دغه خلکو ته د سفر او د مرض د عذر په وجه تکلیف ونه رسیږي، لیکن کله چې دا خلک په خپله دا تکلیف برداشت کړي، نو دا خلک به د غیرِ معذور سره لاحقیږي، او د غیرِ معذور په باره کې مخکي ذکر سوه چې د هغه د رمضان روژه، په مطلق، نیت، د نفلو په نیت او د بل واجب په نیت سره اداء کېدای سي، نو ځکه به د مسافر او مریض روژه هم په دې نیتونو سره اداء کیږي.

وعند أبي حنيفة الخ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایي چې که مسافر یا مریض په رمضان کې د بل واجب (واجبِ آخر) په نیت سره روژه ونیسي، نو واجبِ آخر اداء کیږي، نه د رمضان روژه، دلیل دا دی چې د واجبِ آخر یعني د قضاء یا دکفارې روژه خو في الحاله پر هغه لازمه سوه، نو که په دغه حال کې مړ سو، نو د دې واجب په باره کې به د الله ﷻ په نېز نیول کیږي، لیکن د رمضان په روژه کې د مرض او سفر په وجه سره د ځنډولو اختیار ورکول سوی دی، نو که دا سړی په دغه مرض یا سفر کې مړ سو، نو هغه به د دې روژه په باره کې نه نیول کیږي، نو معلومه سوه چې د مریض او مسافر په حق کې واجب آخر مهم او رمضان غیرِ مهم دی، او وخت په مهم شي سره مشغوله کول او مهم شی مخکي اداء کول اولیٰ دي،

په نسبت د غيرِ مهم شي و اداء کولو ته. نو ځکه امام صاحب وفرمايي چي که په رمضان کي مسافر او مريض د واجب آخر نيت وکړی، نو هغه واجب آخر به اداء کيږي، نه د رمضان روژه.

وعنه في نية التطوع الخ او که مسافر په رمضان کي د نفلي روژې نيت وکړي، نو په دې باره کي له امام صاحب رحمه الله څخه دوه روايتونه دي، (۱) يو دا چي په دې صورت کي د رمضان روژه اداء کيږي، نه نفلي روژه. (۲) دويم دا چي نفلي روژه اداء کيږي، نه د رمضان روژه. د اول روايت دليل يې دا دی چي مسافر په رمضان کي د نفلي روژې په نيت کولو سره وخت په يو مهم کار سره مشغوله نه کړی، بلکي په يو غيرِ مهم کار يعني په نفلي روژه سره يې مشغول کړی، حال دا چي د رمضان روژه مهمه ده، نو ځکه به غيرِ مهم نه اداء کيږي، او مهم يعني د رمضان روژه به اداء کيږي. او د دويم روايت دليل يې دا دی چي د مسافر په حق کي د رمضان مياشت داسي ده لکه د مقيم په حق کي چي د شعبان مياشت ده، او د شعبان په مياشت چي کي له نفل يا واجبِ آخر ځخه د هر يوه نيت وکړی سي، هغه اداء کيږي. نو همداسي به مسافر چي کله د رمضان په مياشت کي د نفل يا واجبِ آخر نيت وکړي، نو هغه به اداء کيږي.

## په قضائي، نذرِ مطلق او نفلي روژو کي دنيت حکم

وَالضَّرْبُ الثَّانِي مَا يَثْبُتُ فِي الذِّمَّةِ او (د روژې) دويم قسم هغه دی چي د انسان په ذمه کي ثابت(واجب) وي كَقَضَاءِ شَهْرِ رَمَضَانَ وَصَوْمِ الْكَفَّارَةِ لکه د رمضان د مياشتي روژه او د کفارې روژه فَلَا يَجُوزُ إِلَّا بِنِيَّةٍ مِنَ اللَّيْلِ نو دا قسم(روژه) نه جائز کيږي مګر د شپې له نيت څخه لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ فَلَا بُدَّ مِنَ التَّعْيِينِ مِنَ الِابْتِدَاءِ ځکه چي دا روژه غير متعينه ده نو له شروع څخه دا متعينول ضرور دي وَالنَّفَلُ كُلُّهُ يَجُوزُ بِنِيَّةٍ قَبْلَ الزَّوَالِ او هر ډول نفل تر زوال په مخکي نيت سره جائز دي خِلَافًا لِمَالِكٍ د امام مالک رحمه الله اختلاف دی فَإِنَّهُ يَتَمَسَّكُ بِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا ځکه هغه دليل نيسي د هغه حديث په اطلاق سره کوم چي موږ روايت کړی وَلَنَا قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [●] بَعْدَمَا كَانَ يُصْبِحُ غَيْرَ صَائِمٍ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی چي کله هغه د سهار په وخت کي روژه دار نه وو(يعني د سهار په وخت کي د نبي ﷺ روژه نه وه او وروسته يې فرمايل) إِنِّي إِذًا لَصَائِمٌ (چي) زه اوس روژه دار يم(يعني اوس روژه نيسم) وَلِأَنَّ الْمَشْرُوعَ خَارِجَ رَمَضَانَ هُوَ النَّفَلُ او ځکه چي مشروع له رمضان څخه دباندي نفل دي فَيَتَوَقَّفُ الْإِمْسَاكُ فِي أَوَّلِ الْيَوْمِ عَلَى صَيْرُورَتِهِ صَوْمًا بِالنِّيَّةِ نو د ورځي په اوله حصه کي به د امساک روژه کېدل پر نيت موقوف وي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه مخکي چي موږ (دا) ذکر کړه وَلَوْ نَوَى بَعْدَ الزَّوَالِ لَا يَجُوزُ او که يو چا تر زوال وروسته (د روژې) نيت وکړی نو جائز نه دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ او امام شافعي رحمه الله فرمايي: چي جائز دی وَيَصِيرُ صَائِمًا مِنْ حِينِ نَوَى او له هغه وخت څخه به روژه داره ګرځي له کوم وخت څخه چي يې نيت کړی وي إِذْ هُوَ مُتَجَزِّئٌ عِنْدَهُ ځکه چي نفلي روژه د امام شافعي رحمه الله په نيز متجزي کيږي (يعني حصه حصه او ټوټه ټوټه کيږي) لِكَوْنِهِ مَبْنِيًّا عَلَى النَّشَاطِ ځکه چي نفلي روژه پر نشاط (يعني پر خوشالي او

---

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الصيام، باب جواز صوم النافلة بنية من النهار قبل الزوال، حديث رقم: ۱۶۹ — ۱۷۰.

چستي) مبني ده وَلَعَلَّهُ يَنْشَطُ بَعْدَ الزَّوَالِ او شايد تر زوال وروسته نشاط راسي إِلَّا أَنَّ مِنْ شَرْطِهِ الْإِمْسَاكَ فِي أَوَّلِ النَّهَارِ ليکن د هغه شرط د ورځي د شروع په حصه کي امساک دی وَعِنْدَنَا يَصِيرُ صَائِمًا مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ او زموږ په نيز به د ورځي له شروع څخه روژه داره کيږي لِأَنَّهُ عِبَادَةُ قَهْرِ النَّفْسِ ځکه چي روژه د نفس د مغلوبه کولو عبادت دی وَهِيَ إِنَّمَا تَتَحَقَّقُ بِإِمْسَاكٍ مُقَدَّرٍ او دا عبادت په مُقدر امساک سره متحقق کيږي (يعني په دومره امساک سره متحقق کيږي چي شريعت متعين کړی وي) فَيُعْتَبَرُ قِرَانُ النِّيَّةِ بِأَكْثَرِهِ نو د ورځي د اکثره حصې سره به د نيت د متصل کېدلو اعتبار کيږي (يعني د ورځي په اکثره حصه کي به نيت معتبر وي).

**اللغات:** ﴿يتمسك﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: نيول، ټينګول، دليل نيول (دليل جوړول). ﴿إمساك﴾ د افعال د باب مصدر دی: بندېدل، منع کېدل، نيول. ﴿صيرورة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: کېدل، ګرځېدل. ﴿نشاط﴾ د طبيعت خوشالي، ښادماني، چستي، چالاکي، جذبه. ﴿قهر﴾ د فتح د باب مصدر دی: مغلوبه کول. ﴿قران﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو ځای کېدل، متصل کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د روژې د دويم قسم بيان سوی دی، فرمايي چي د روژې دويم قسم هغه دی چي د انسان پر ذمه ثابت او واجب وي او د انسان لپاره د هغه اداء کولو ضروري وي، ليکن د هغه د اداء کولو هيڅ وخت متعين نه وي، لکه د رمضان د قضاء روژې، د نذرِ مطلق روژې، د کفارهٔ يمين روژې، د کفارهٔ ظهار روژې، د کفارهٔ قتل روژې، د دې قسم حکم دا دی چي که په دې کي يې له شپې څخه نيت وکړی، نو روژه يې جائز ده، او که يې تر سهار راختلو (طلوعِ فجر) وروسته نيت وکړی، نو روژه يې نه صحيح کيږي، ځکه چي د دا قسم روژو لپاره هيڅ وخت متعين نه دی، بلکي په ټوله کال کي يې انسان هر وخت نيولای سي، ماسوا په رمضان او منع کړی سوو ورځو کي، نو ځکه به يې د ورځي له شروع څخه متعينول ضروري وي، او ورځ شروع کيږي له طلوع فجر څخه، نو تر طلوعِ فجر به مخکي يا د طلوع فجر په وخت کي به نيت کوي، نه تر هغه وروسته.

والنفل کله الخ د دې حاصل دا دی چي د هر ډول نفلي روژو لپاره تر نصف النهار مخکي (يعني د شرعي ورځي تر نصف يعني تر ځانبت) مخکي نيت کول ضروري دي، نو که تر نصف النهار تېرېدلو وروسته نيت وسو، نو روژه به معتبر نه وي، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي د نفلي روژې لپاره هم د شپې نيت کول ضروري دي، که تر طلوعِ فجر وروسته نيت وسو، نو په دې وخت کي به هم روژه معتبره نه وي.

**د امام مالک دليل:** دا دی چي دا حديث لا صيام لمن ينو الصيام من الليل مطلق دی، په دې کي د فرضي او نفلي روژې هيڅ تفصيل نسته، نو ځکه به د هري روژې لپاره د شپې نيت کول ضروري وي.

**زموږ دليل:** د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا حديث دی: أن رسول الله ﷺ كان يدخل على نسائه ويقول هل عندكن من غذاء فان قلن لا، قال إني إذا صائم (يعني نبي ﷺ به خپلو بيبيانو ته راغلی او وبه يې فرمايل چي ستاسو سره څه د خوراک شی سته، نو که هغو به وويل چي څه نسته، نو وبه يې فرمايل چي زه اوس روژه داره [روژتي] يم) يعني کله چي به نبي ﷺ ته تر طلوعِ فجر وروسته د خوراک يو شی پيدا نه سو، نو نبي ﷺ به د روژې نيت کوی، له دې څخه معلومه سوه چي د نفلي روژې نيت به تر طلوعِ فجر وروسته هم جائز وي.

او عقلي دليل دا دی چې له رمضان المبارک څخه ماسوا ټوله وخت د نفلي روژو لپاره مشروع دی، نو د ورځې په اوله حصه کې له خوراک، څښاک او جماع څخه د امساک روژه کېدل په پر نيت موقوف وي، نو که يې تر نصف النهار مخکې د روژې نيت وکړی، نو روژه به يې معتبره وي، او د للأكثر حكم الكل په قاعده سره به پر ټوله ورځ د روژې حکم لګيږي، او که يې نيت نه وکړی، يا تر نصف النهار وروسته يې نيت وکړی، نو په دې دواړو صورتونو کې به يې روژه صحيح نه وي.

ولونوی الخ او که يو سړي د نفلي روژې نيت تر زوال وروسته وکړی، نو زموږ په نېز روژه جائز نه ده، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده. خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به له هغه وخت څخه روژه داره شمارل کيږي چې د روژې نيت يې کړی وي، ځکه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نفلي روژه متجزي او ټوټې کېدای سي، او بله وجه دا ده چې د نفلي روژې دار و مدار د طبيعت پر خوشالي او نشاط دی، نو ډېره ممکنه ده چې د هغه سړي په طبيعت کې تر زوال وروست نشاط پيدا سي، او زړه يې وغواړي چې اوس به يې نو روژه کړم، نو له هغه وخت څخه د روژې نيت وکړي، او روژه شروع کړي، نو د هغه روژه به له هغه وخت څخه معتبره منل کيږي (ځکه چې روژه متجزي کېدای سي)، لېکن د دې شرط دا دی چې امساک به د ورځې له شروع څخه سوی وي، مثلاً که يو څوک له طلوعِ فجر څخه تر زواله پوري هيڅ خوراک، څښاک نه وکړي، او بيا تر زوال وروسته مثلاً له دوو (۲) بجو څخه د روژې نيت وکړي، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به له ۲ بجو څخه تر لمر لوېدلو پوري د هغه نفلي روژه معتبره وي، او که تر طلوع فجر وروسته يې څه خوراک، څښاک وکړي، بيا يې تر هغه وروسته د نفلي روژې نيت وکړي، نو دا روژه به معتبر نه وي، او څرنګه چې زموږ په نېز روژه نه ټوټه کيږي، نو ځکه به د ورځې له شروع څخه (يعني تر نصف النهار مخکې) د روژې د نيت اعتبار کيږي، نه تر زوال وروسته، وجه دا ده چې روژه د نفس مغلوبه کولو يو عبادت دی، او نفس هغه وخت مغلوبه کيږي چې کله انسان دومره امساک وکړي يعني چې دومره له خوراک څښاک څخه ځان منع کړي څومره چې له مخکې څخه متعين سوي دي، او له مخکې څخه پوره ورځ امساک متعين سوی دی (يعني له طلوعِ فجر څخه تر غروبِ شمس پوري)، لېکن د ورځې په اکثره حصه کې امساک هم د دې حديث إن إذا لصائم په روی سره د پوره ورځې قائم مقام دی، نو ځکه به تر نصف النهار مخکې د نفلي روژې نيت معتبر وي، او تر هغه وروسته به يې اعتبار نه کيږي.



# فَصْلٌ فِي رُؤْيَةِ الْهِلَالِ

## (دا) فصل (د روژې) د مياشتي د ليدلو (په بيان كې) دى

### د رمضان د مياشتي د لټون (طلب كولو) حكم

قَالَ: وَيَنْبَغِي لِلنَّاسِ أَنْ يَلْتَمِسُوا الْهِلَالَ فِي الْيَوْمِ التَّاسِعِ وَالْعِشْرِينَ مِنْ شَعْبَانَ فرمايي: او خلكو ته پكار ده چې د شعبان په نهه ويشتمه (۲۹) ورځ د مياشتي لټون وكړي فَإِنْ رَأَوْهُ صَامُوا نو كه هغوى مياشته وليدله روژه دې ونيسي وَإِنْ غُمَّ عَلَيْهِمْ أَكْمَلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ يَوْمًا او كه پر هغوى مياشته پټه سوه(يعني په نظر نه ورغله) نو د شعبان دېرش(۳۰) ورځي دې پوره كړي ثُمَّ صَامُوا بيا دې روژه ونيسي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ●: صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي: "چې(د روژې) د مياشتي په ليدني سره روژه ونيسئ او (د اختر) د مياشتي په ليدني سره افطار وكړئ فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمُ الْهِلَالُ فَأَكْمِلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ يَوْمًا ليكن كه پر تاسو (د روژې) مياشته پټه سوه نو د شعبان دېرش روژې پوره كړئ" وَلِأَنَّ الْأَصْلَ بَقَاءُ الشَّهْرِ او په دې وجه هم چې اصل د مياشتي پاته كېدل دي فَلَا يُنْقَلُ عَنْهُ إِلَّا بِدَلِيلٍ نو له مياشتي څخه به بې له دليله(بلې مياشتي ته) انتقال نه كېږي وَلَمْ يُوجَدْ او دليل پيدا نه سو(يعني دليل سته نه).

**اللغات:** ﴿يلتمسوا﴾ د افتعال د باب مضارع ده: لټون كول، تلاش كول. ﴿غم﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده: پټېدل، په نظر نه راتلل، مشتبه كېدل، د يو چا مخته وريځ غوړېدل. ﴿عدة﴾ شمېر، تعداد.

**تشريح:** علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله په فتح القدير كي ليكلي دي چې په ۲۹ شعبان د رمضان المبارك مياشتي ته كتل واجب على الكفايه دي، ځكه چې مياشت كله نا كله د ۲۹ ورځو وي، او كله د ۳۰ ورځو وي، نو كه په ۲۹ د شعبان مياشته وليدل سوه، نو روژه دې ونيول سي، او كه نه وليدل سوه، نو د شعبان دېرش(۳۰) ورځي دې پوره كړی سي، او را روانه ورځ دې روژه ونيول سي.

**دليل:** دا حديث دى: صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته فان غم عليكم الهلال فاكملوا عدة شعبان ثلاثين يوماً، عقلي دليل دا دى چې په ۲۹ د شعبان كه مياشته نه وليدل سي، نو مطلب يې دا دى چې اوس لا د شعبان يوه ورځ پاته ده، ځكه چې دا مياشته د ۳۰ ورځو ده، نو تر را رواني ورځي پوري انتظار كول پكار دي، ځكه چې د را رواني ورځي له شعبان څخه كېدل يقيني دي، او د رمضان له مياشتي څخه د هغې كېدل په شك كي دي، او تاسو ته معلومه ده چې اليقين لا يزول

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب قول النبي ﷺ إذا رأيتم الهلال فصوموا، حديث رقم: ۱۹۰۹ – ۱۹۱۰.

بالشك، يعني په يقين سره ثابت سوی شی په شک سره نه لیري کیږي، بلکي په يقيني او قطعي دليل سره به لیري کیږي، او کله چي میاشت نه ولیدل سي، نو پر دې خبره هم دلیل پیدا نه سو چي را روانه ورځ به د رمضان له میاشتي څخه وي، نو ځکه به را روانه ورځ د شعبان له میاشتي څخه وي.

## د شک د ورځي (يومُ الشک) د روژې حکم

وَلَا يَصُومُونَ يَوْمَ الشَّكِّ إِلَّا تَطَوُّعًا او خلک به د شک په ورځ روژه نه نیسي مګر صرف نفلي روژه لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ●: لَا يُصَامُ الْيَوْمُ الَّذِي يُشَكُّ فِيهِ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ إِلَّا تَطَوُّعًا ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: چي د کومي ورځي په باره کي د رمضان کېدلو شک وي په هغه کي به روژه نه نیول کیږي مګر نفلي روژه وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى وُجُوهٍ او دا مسئله پر څو صورتونو (مبني) ده أَحَدُهَا: أَنْ يَنْوِيَ صَوْمَ رَمَضَانَ وَهُوَ مَكْرُوهٌ يو صورت يې دا دی: چي (په یومُ الشک کي صرف) د رمضان د روژې نیت وکړي او (داسي کول) مکروه دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چي موږ روایت کړی وَلِأَنَّهُ تَشَبُّهٌ بِأَهْلِ الْكِتَابِ او په دې وجه (هم) چي په دې کي د اهلِ کتاب سره مشابهت دی لِأَنَّهُمْ زَادُوْا فِي مُدَّةِ صَوْمِهِمْ ځکه چي اهلِ کتابو د خپلي روژې په موده (او شمېر) کي زیاتوب کړی وو ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّ الْيَوْمَ مِنْ رَمَضَانَ يُجْزِئُهُ بیا که ښکاره سوه چي نن ورځ د رمضان ده نو دا روژه د هغه لپاره کافي ده لِأَنَّهُ شَهِدَ الشَّهْرَ وَصَامَهُ ځکه چي هغه د رمضان میاشته ونیوله او روژه یې کړه وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ كَانَ تَطَوُّعًا او که ښکاره سوه چي دا ورځ د شعبان ده نو هغه به نفلي روژه وي وَإِنْ أَفْطَرَ لَمْ يَقْضِهِ او که هغه دا روژه ماته کړي نو قضاء به یې نه رواړي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمَظْنُونِ ځکه چي دا سړی د مظنون (ګومان کوونکي) په درجه کي دی.

**اللغات:** ﴿تطوع﴾ نفلي عبادت، هغه عبادت چي فرض نه وي، ﴿مظنون﴾ ګمان کړی سوی، غیر یقیني، صاحب د اثمار الهدایه د دې معنیٰ په "ګومان کوونکي" سره کړې ده.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره پوه سئ چي که په ۲۹ د شعبان مطلع صفا نه وو، او میاشت نه ولیدل سوه، نو د شعبان ۳۰ ورځي ته یومُ الشک ویل کیږي، يعني د دې ورځي په باره کي دا احتمال هم سته چي دا دي د رمضان اوله ورځ وي، او دا احتمال هم سته چي دا دي د شعبان آخري او دېرشمه ورځ وي، لنډه دا چي د یوم الشک په باره کي حکم دا دی چي که په دې ورځ یو څوک روژه نیول غواړي نو هغه دي صرف د نفلو په نیت سره روژه ونیسي، ځکه چي په دې حدیث لا یصام الیوم الخ کي صرف د نفلي روژې اجازه سوې ده، صاحب د هدایې د دې مسئلې ټوله پنځه صورتونه ذکر کړي چي له هغو څخه په دې عبارت کي اول صورت بیانیږي، د اول صورت حاصل دا دی چي په دې ورځ که یو سړی د رمضان په نیت سره روژه ونیسي، نو دا مکروه دي، ځکه په حدیث کي صرف د نفلي روژې حکم سوی دی، او نور د هر ډول روژو څخه منع سوې ده. او بل په دې سره یعني په یوم الشک کي د رمضان په نیت په روژه نیولو سره د اهلِ کتابو (یهودو) سره مشابهت راځي، ځکه پر یهود چي څومره روژې فرض وې، دوی به تر هغه زیاتي نیولې، او کله چي

---

● تخريج: قال الزيلعي هذا الحديث غريب جداً، ج:۱، ص: ۴۶۰.

پر زیاتې سوې نو تولو یې پرېښوولې، اوس ښکاره ده چې که د یوم الشک روژه له رمضان څخه نه سوه، نو د رمضان په نیت سره به د روژې نیولو په صورت کې یوه روژه زیاته سي، او د یهودو سره به مشابهت ثابت سي، نو په دې حواله سره هم په یوم الشک کې د رمضان په نیت سره روژه نیول مکروه دي، بیا هم که یو چا په دې ورځ د رمضان په نیت سره روژه ونیوله، او وروسته معلومه سوه چې واقعي دا د رمضان ورځ وه، نو دا روژه به له رمضان څخه شمارل کیږي، ځکه چې دې سړي ګواکي رمضان ونیوی او په هغه کې یې روژه کړه، نو د هغه دا روژه به د رمضان وي، او پر ده به یې قضاء واجب نه وي، او که دا معلومه سوه چې یومُ الشک د شعبان له میاشتې څخه وه، نو د هغه سړي دا روژه به نفلي وي، او د کراهت سره به جائز وي، او که هغه روژه ماته کړه، او دا د شعبان آخري ورځ وه، نو پر هغه به د روژې قضاء واجب نه وي، ځکه چې دا سړی د مظنون په درجه کې دی، ځکه هغه په دې ګومان سره روژه شروع کړې وه چې نن پر ما روژه نیول فرض دي، حال دا چې د شعبان د آخري ورځې کېدلو په وجه په دې ورځ کې پر هغه روژه نیول فرض نه سو، نو ځکه به د هغه د ماتولو په وجه د هغه قضاء هم پر ده واجب نه وي، ځکه چې پر مظنون قضاء نه واجبیږي.

## په یومُ الشک کې د بلې واجب روژې د نیت حکم

وَالثَّانِي: أَنْ يَنْوِيَ عَنْ وَاجِبٍ آخَرَ او دویم صورت دا دی چې (روژه دار) د بل واجب نیت وکړي وَهُوَ مَكْرُوهٌ أَيْضًا او دا هم مکروه دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی إِلَّا أَنَّ هٰذَا دُونَ الْأَوَّلِ فِي الْكَرَاهَةِ لیکن دا صورت په کراهت کې له اول صورت څخه کم دی ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ يُجْزِئُهُ بیا که ښکاره سوه چې دا ورځ د رمضان ده نو دا روژه د هغه لپاره کافي ده لِوُجُودِ أَصْلِ النِّيَّةِ ځکه چې اصل نیت سته وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ او که ښکاره سو چې دا ورځ د شعبان ده فَقَدْ قِيلَ: يَكُونُ تَطَوُّعًا نو ویل سوي دي: چې دا روژه به نفل وي لِأَنَّهُ مَنْهِيٌّ عَنْهُ ځکه چې (په دې ورځ کې) له روژې څخه منع سوې ده فَلَا يَتَأَدّٰى بِهِ الْوَاجِبُ نو په دې سره به واجب نه اداء کیږي وَقِيلَ: يُجْزِئُهُ عَنِ الَّذِي نَوَاهُ او ویل سوي دي: چې د کومې روژې نیت یې کړی وي له هغه څخه به کافي وي وَهُوَ الْأَصَحُّ همدا قول زیات صحیح دی لِأَنَّ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ ځکه (په حدیث کې) چې له کومې روژې څخه منع سوې ده وَهُوَ التَّقَدُّمُ عَلٰى رَمَضَانَ بِصَوْمِ رَمَضَانَ هغه پر رمضان د رمضان روژه مخکې کول دي لَا يَقُومُ بِكُلِّ صَوْمٍ (چې) په هره روژه سره دا خبره نه ثابتیږي بِخِلَافِ يَوْمِ الْعِيدِ په خلاف د اختر په ورځ (د روژې نیولو) لِأَنَّ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ وَهُوَ تَرْكُ الْإِجَابَةِ ځکه (په دې ورځ) چې له کوم شي څخه منع سوې ده هغه د دعوت قبلول پرېښوول دي يَلَازِمُ كُلَّ صَوْمٍ چې دا د هرې روژې سره لازم دي وَالْكَرَاهَةُ هٰهُنَا بِصُورَةِ النَّهْيِ او کراهت دلته د نهي د صورت په وجه سره دی.

**تشریح**: له پنځو صورتونو څخه دویم صورت دا دی چې روژه دار (روژتي) په یومُ الشک کې د بل واجب (واجب آخر) نیت وکړي، مثلاً د تېر سوي رمضان د قضائي روژې نیت وکړي، یا د کفارهٔ یمین د روژې نیت وکړي، نو دا هم د کراهت سره جائز دي، دلیل هغه حدیث کوم چې موږ روایت کړی یعني: لا یصام الیوم الذی یشك فیه...الحدیث، لیکن د اول صورت په مقابله کې په دې صورت کې کراهت کم دی، ځکه په دې صورت کې د اهلِ کتابو سره مشابهت نه راځي، اوس که د بل واجب په نیت روژه ونیول سوه، او وروسته معلومه سوه چې دا خو د رمضان ورځ وه، نو د رمضان

روژه اداء کیږي، ځکه چې د بل واجب په ضمن کې اصل نیت هم راځلی، او د رمضان میاشت هم ده، نو ځکه به دا روژه له رمضان څخه وي.

او که معلومه سوه چې دا ورځ د شعبان وه، نو بعضو حضراتو ویلي دي چې دا روژه به د بل واجب د نیت بلوجود نفلي شمارل کیږي، ځکه چې په یوم الشک کې روژه منهي عنه ده(یعني نهي څخني سوي دي)، نو ځکه به د دې ورځې روژه ناقصه وي، او هغه چې کومه روژه اداء کوي، هغه واجب ده او کامله ده، او په صوم ناقص سره د صوم کامل اداء کول صحیح نه دي، لکه د اختر په ورځ چې د بل واجب روژه ونیول سي، نو هم صوم واجب نه اداء کیږي(ځکه د اختر په ورځ هم روژه منهي عنه ده)، بعضي حضراتو ویلي دي چې د کوم واجب نیت چې یې کړی وي هغه اداء کیږي، او همدا صحیح قول دی، ځکه چې د ابو هریره ﷺ په حدیث کې یعني په لا تتقدموا على رمضان بصوم يوم ولا بصوم يومين (په رمضان باندې یوه روژه او دوې روژې مه مخکې کوئ) کې د رمضان روژه مراد ده، یعني په رمضان باندې یوه یا دوې روژې د رمضان په ګومان سره مه مخکې کوئ، حاصل دا چې تر رمضان مخکې مطلقاً له روژې نیولو څخه منع نه ده سوې، بلکې له رمضان څخه مخکې له هغه روژې څخه منع سوې ده چې هغه د رمضان د روژې په نیت او ګومان سره ونیول سي، او دې سړي چې کوم د واجبِ آخر(بل واجب) نیت کړی دی، ښکاره ده چې هغه د رمضان د روژې نیت نه دي کړی، نو ځکه به د واجبِ آخر روژه په دې ورځ کې منهي عنه نه وي، او کله چې منهي عنه نه ده، نو په دې ورځ کې به د واجبِ آخر په نیت سره واجبِ آخر اداء کیږي، او دا به هیڅ پروا نه لري.

بخلاف یوم العید الخ پاته سو د اختر په ورځ د روژې ممانعت، نو د هغه وجه دا ده چې د اختر په ورځ د الله ﷻ توله بندګان د الله ﷻ میلمانه وي، نو په دې ورځ کې روژه نه نیول د الله ﷻ دعوت نه قبلول دي، او د الله ﷻ دعوت پرېښودل منهي عنه دي، نو د اختر په ورځ له مطلق روژې نیولو څخه منع سوې ده، ځکه چې د دعوت پرېښودلو معنیٰ په هر ډول روژو کې پیدا کیږي.

والکراهة هنا بصورة الخ له دې ځایه دیو مقدار سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله په رمضان باندې د رمضان په ګومان سره روژه مخکې کول منهي عنه دي، نو پکار دا وه چې له رمضان څخه مخکې د بل واجب(واجبِ آخر) روژه بالکل جائز وای، حال دا چې تاسو وفرمایل چې د کراهت سره جائز ده، جواب دا چې که څه هم دلته له واجبِ آخر څخه صراحتاً نهي نه ده سوې، لیکن په دې حدیث لا یصام الیوم ... کې صورتاً نهي سته، نو ځکه به د واجبِ آخر روژه مکروه تنزیهي وي.

## په یومُ الشک کې د نفلي روژې د نیت حکم

وَالثَّالِثُ: أَنْ يَّنْوِيَ التَّطَوُّعَ او دریم صورت دا دی چې (روژه دار) د نفلي روژې نیت وکړي وَهُوَ غَيْرُ مَكْرُوْهٍ او دا(صورت) مکروه نه دی لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيْ قَوْلِهِ يُكْرَهُ عَلَى سَبِيْلِ الْإِبْتِدَاءِ او دا حدیث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی د هغه په دې قول یکره علی سبیل الابتداء کې (یعني چې د ابتداء په توګه روژه مکروه ده) وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● "لَا تَتَقَدَّمُوْا

---

● تخریج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم والبخاري في كتاب الصوم، باب لا يتقدم رمضان بصوم يوم، حديث رقم: ۱۹۲۱.

رَمَضَانَ بِصَوْمِ يَوْمٍ وَلَا بِصَوْمِ يَوْمَيْنِ" اَلْحَدِيثَ، نَفْيُ التَّقَدُّمُ بِصَوْمِ رَمَضَانَ او د نبي ﷺ له دې قول لا تتقدموا رمضان... الخ څخه مراد د رمضان په روژې سره د مخکې کولو نهي مراد دې (يعني تلسو پر رمضان د رمضان په کومان يوه روژه يا دوې روژې مه مخکې کوئ) لِأَنَّهُ يُؤَدِّيهِ قَبْلَ أَوَانِهِ ځکه چې انسان به روژه اداء کړي تر وخت مخکې (يعني که څوک پر رمضان د رمضان روژه مخکې کړي نو هغه به تر خپل وخت مخکې د روژې اداء کونکې سي) ثُمَّ إِنْ وَافَقَ صَوْمًا كَانَ يَصُومُهُ فَالصَّوْمُ أَفْضَلُ بِالْإِجْمَاعِ بيا که دا روژه د يو داسې روژې سره موافقه سوه چې هغه به (مخکې) ده نيوله (يعني بيا که دا ورځ پر هغې ورځې برابره سوه چې ده به روژه پکښې نيوله، او په دې ورځ به د ده روژه عادت وه) نو دا روژه بالاجماع افضله ده وَكَذَا إِذَا صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ آخِرِ الشَّهْرِ فَصَاعِدًا او همدارنګه که هغه د مياشتې په آخر کي درې ورځې يا تر دې زيات روژه نيوله وَإِنْ أَفْرَدَهُ فَقَدْ قِيلَ: اَلْفِطْرُ أَفْضَلُ او که دا روژه يې جلا نيولې وه (يعني د هغه د عادت د ورځې سره برابره نه سوه) نو ويل سوي دي: چې ماتول يې افضله دي اِحْتِرَازًا عَنْ ظَاهِرِ النَّهْيِ د نهي له ظاهر څخه د ځان ساتلو لپاره وَقَدْ قِيلَ: اَلصَّوْمُ أَفْضَلُ او ويل سوي دي: چې روژه افضله ده اِقْتِدَاءً بِعَلِيٍّ وَعَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا د حضرت علي او حضرت عائشې رضي الله عنهما د اقتداء کولو لپاره فَإِنَّهُمَا كَانَا يَصُومَانِهِ ځکه چې هغوی دواړو به په دې ورځ کي روژه نيوله وَالْمُخْتَارُ أَنْ يَصُومَ الْمُفْتِيْ بِنَفْسِهِ أَخْذًا بِالْاِحْتِيَاطِ خو غوره خبره دا ده چې پر احتياط باندې د عمل کولو لپاره مفتي په خپله روژه ونيسي وَيُفْتِيَ الْعَامَّةَ بِالتَّلَوُّمِ إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ او عامو خلکو ته دې د زوال تر وخته پورې د انتظار کولو فتویٰ ورکړي ثُمَّ بِالْإِفْطَارِ نَفْيًا لِلتُّهْمَةِ بيا دې د تهمت د نفي کولو لپاره د افطار فتویٰ ورکړي.

**اللغات:** ﴿أوان﴾ وخت، موقع، شيبې، ﴿تلوم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی؛ انتظار کول.

**تشريح:** دريم صورت دا دی چې يو څوک په يومُ الشک کي د نفلي روژې نيت وکړي، نو زموږ په نېز د هغه لپاره د نفلي روژې نيت کول جائز دي، مکروه نه دي، ځکه په دې حديث لايصام اليوم الذی يشك فيه إلاتطوعاً کي نفلي روژه مستثنیٰ سوې ده، امام شافعي رحمه الله فرمايي چې علیٰ سبيل الابتداء په يومُ الشک کي نفلي روژه نيول مکروه دي، د علیٰ سبيل الابتداء مطلب دا دی چې په کومه ورځ چې يوم الشک واقع سي، تر دې مخکې د دې سړي په دغه ورځ د روژې نيولو عادت نه وي، او نه يې د مياشتې په آخري ورځو کي د روژې نيولو عات وي، مثلاً د هغه عادت د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ د روژې نيولو وي، او يوم الشک د شنبې په ورځ واقع سي، او د دې سړي د مياشتې په آخري ورځو کي هم د روژې نيولو عادت نه وي، نو د شنبې په ورځ (کومه چې يوم الشک واقع سوې ده) نفلي روژه نيول د امام شافعي رحمه الله په نېز مکروه دي.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی؛ لا تتقدموا رمضان بصوم يوم ولا بصوم يومين إلا أن يكون صوماً يصومه رجل، له دې حديث څخه معلومېږي چې په يوم الشک کي مطلق روژه نيول منع دي، خو دا چې کله روژه د معمول او عادت

مطابق واقع سي، مثلاً د پنجشنبې په ورځ د يو ځا عادت د روژې نيولو وي، او يوم الشک هم د پنجشنبې په ورځ واقع سي، نو په دې صورت کي به د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز نفلي روژه مکروه نه وي.

زموږ دليل: په دې حديث لا يصام اليوم الذي... کي د "الاتطوعا" کلمه ده، ځکه چي په دې سره مطلقاً په يوم الشک کي د نفلي روژې اجازه سوې ده، هغه که د عادت مطابق واقع سي، يا واقع نه سي، نو دا حديث د خپل اطلاق په وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی.

والمراد الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث جواب ورکوي فرمايي چي ستا په حديث کي له مطلق روژې نيولو څخه منع نه ده سوې، بلکي له هغه روژې څخه منع سوې ده کوم چي تر رمضان مخکي د رمضان په ګومان او نيت سره ونيول سي، ځکه که تر رمضان مخکي د رمضان روژه ونيول سي، نو هغه به تر خپل وخت مخکي اداء سي، او د رمضان روژه تر وخت مخکي نه اداء کېږي، نو ځکه به د امام شافعي رَحِمَهُ الله په يوم الشک کي على سبيل الابتداء نفلي روژه مکروه ګرځول صحيح نه وي.

ثم إن والحق الخ د دې حاصل دا دی چي که د يوه سړي مثلاً هره جمعه د روژې نيولو عادت وي، او يومُ الشک هم د جمعې ورځ سي، يا د يو ځا د هري مياشتي په آخري دريو ورځو کي د روژې نيولو عادت وي، او يوم الشک خو هم د مياشتي په آخري ورځو کي راځي، نو په دې صورت کي د هغه لپاره بالاتفاق نفلي روژه نيول افضله دي، لېکن که يوم الشک د هغه د عادت د ورځي سره برابره نه سي، يا د هغه په هره مياشت کي دآخري ورځو د روژو نيولو عادت نه وي، بلکي هسي د شک په ورځ روژه ونيسي، نو په دې لړ کي د محمد بن مسلمه رايه دا ده چي د حديث لايصام اليوم الذي يشك فيه الخ له ظاهري نهي څخه د ځان ساتلو لپاره روژه نه نيول او روژه ماتول افضله دي، لېکن نصير بن يحيى فرمايي چي په دې ورځ کي روژه نيول افضله دي، ځکه په دې کي د حضرت عائشې او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اقتداء ده، ځکه چي هغوی به د شک په ورځ روژه نيوله، او داسي به يې فرمايل: الصوم يوما من شعبان أحب إلينا من أن نفطر يوما من رمضان. د حديث مفهوم دا دی چي که دا ورځ د شعبان وي، نو موږ د شعبان په روژه ډېر خوشاله يو، ځکه که موږ نن روژه نه وه نيوله او دا ورځ د رمضان لوله ورځ سوه نو د رمضان اوله روژه به پاته سي، نو غوره همدا ده چي د شک په ورځ روژه ونيول سي.

والمختار الخ فرمايي چي په دې لړ کي مختاره او غوره قول په عوامو او خواصو کي فرق کول دي، مطلب دا چي خواص يعني علماؤ، فقهاؤ او مفتيانو ته پکار ده چي د احتياط لپاره دي په يومُ الشک کي نفلي روژه ونيسي، ځکه کېداى سي چي دا د رمضان اوله ورځ وي، او که رښتيا هم دا ورځ د رمضان سوه، نو دا حضرات به د بدبخته جاهلانو له انوهو، چتياتو او ستونزو څخه په تکليف سي، نو ځکه د خواصو لپاره د شک په ورځ روژه نيول غوره دي، لېکن خواصو ته پکار ده چي عامو خلکو ته تر زواله پوري د انتظار کولو او د خوراک، څښاک نه کولو حکم وکړي، بيا که تر زوال مخکي مياشته ثابته سي (يعني د مياشتي خبر راسي)، نو دا خلک دي هم د روژې نيت وکړي، او که ثابته نه سي نو تر زوال او نصف النهار وروسته دي هغوی ته د روژې ماتولو حکم وکړي. خو که خواص د روژې نيولو حکم وکړي، نو خلک به هغوی متهم کړي، او پر هغو به د رافضي مُهر ولګوي، ځکه چي د روافضو په نيز د شک په ورځ روژه نيول واجب دي، نو ځکه خواصو ته پکار ده چي په يوم الشک کي تر زواله پوري تر انتظار وروسته عامو خلکو ته د روژې ماتولو فتوىٰ ورکړي.

## په يوم الشک کې په غير يقيني نيت سره د روژې حکم

وَالرَّابِعُ: أَنْ يُضَجِّعَ فِي أَصْلِ النِّيَّةِ او څلورم صورت دا دی چې په اصل نیت کې تردد وکړي بِأَنْ يَنْوِيَ أَنْ يَصُومَ غَدًا إِنْ كَانَ مِنْ رَمَضَانَ (يعني) داسې نيت وکړي چې سبا به روژه نيسم که ورځ د رمضان وه وَلَا يَصُومُهُ إِنْ كَانَ مِنْ شَعْبَانَ او نه به يې نيسم که د شعبان ورځ وه وَفِي هَذَا الْوَجْهِ لَا يَصِيرُ صَائِمًا او په دې صورت کې هغه روژتي نه ګرځي لِأَنَّهُ لَمْ يَقْطَعْ عَزِيمَتَهُ ځکه چې هغه خپل عزم يقيني جوړ نه کړی (يعني پوخ نيت يې نه وکړی) فَصَارَ كَمَا إِذَا نَوَى أَنَّهُ إِنْ وَجَدَ غَدَاءً يُفْطِرُ نو داسې سو لکه دا نيت چې وکړي چې که سبا مې د خوراک يو شی پيدا کړی نو روژه به نه نيسم وَإِنْ لَمْ يَجِدْ يَصُومُ او که مې پيدا نه کړی نو روژه به نيسم.

**اللغات:** ﴿يضجع﴾ د تفعيل د باب مضارع معلومه ده: تردّد کول، شک کول. ﴿عزيمة﴾ عزم، پخه اراده.

**تشريح:** څلورم صورت دا دی چې انسان د شک په ورځ يقيني او حتمي نيت نه وکړي، بلکې په تردد او شک سره يې وکړي، داسې ووايي چې که سبا ورځ د رمضان وه، نو زه به روژه نيسم او که د شعبان وه نو روژه به نه نيسم، په دې صورت کې د دې سړي روژه نه صحيح کيږي، ځکه چې د روژې د صحيح کېدلو لپاره قطعي او يقيني نيت ضروري دی، او دې سړي په نيت کې تردد پيدا کړی، نو ځکه به د هغه نيت معتبر نه وي، د دې مثال داسې دی لکه يو څوک چې داسې ووايي: که سبا ما ته د خوراک شی په لاس راغلی نو افطار به کوم (يعني روژه به ماتوم) او که په لاس نه راغلی، نو روژه به نيسم، ښکاره ده چې په دې صورت کې به هم د هغه روژه معتبره نه وي، ځکه چې د هغه نيت يقيني نه دی او په اصل نيت کې يې تردد سته، نو په پورتني صورت کې به هم د ارادې او نيت د نه يقيني والي په وجه د هغه روژه معتبره نه وي.

## د نيت په وصف کې د تردد حکم

وَالْخَامِسُ: أَنْ يُضَجِّعَ فِي وَصْفِ النِّيَّةِ او پنځم صورت دا دی چې د نيت په وصف کې تردد وکړي بِأَنْ يَنْوِيَ إِنْ كَانَ غَدًا مِنْ رَمَضَانَ يَصُومُ عَنْهُ (يعني) داسې نيت وکړي چې که سبا ورځ د رمضان وه نو روژه به نيسم وَإِنْ كَانَ مِنْ شَعْبَانَ فَعَنْ وَاجِبٍ آخَرَ او که ورځ د شعبان وه نو د بل واجب روژه به نيسم وَهَذَا مَكْرُوهٌ او دا (صورت) مکروه دی لِتَرَدُّدِهِ بَيْنَ أَمْرَيْنِ مَكْرُوهَيْنِ ځکه چې نيت د دوو مکروه شيانو په مينځ کې دائر دی ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ أَجْزَأَهُ بيا که ښکاره سوه چې دا ورځ د رمضان ده نو د هغه لپاره روژه کافي سوه لِعَدَمِ التَّرَدُّدِ فِي أَصْلِ النِّيَّةِ ځکه چې په اصل نيت کې هيڅ تردد نسته وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ لَا يُجْزِئُهُ عَنْ وَاجِبٍ آخَرَ او که ښکاره سوه چې دا ورځ د شعبان ده نو له بل واجب څخه به د هغه لپاره نه کافي کيږي لِأَنَّ الْجِهَةَ لَمْ تَثْبُتْ لِلتَّرَدُّدِ فِيهَا ځکه چې په وصف کې د تردد په وجه سره (د بل واجب) طرف ثابت نه سو وَأَصْلُ النِّيَّةِ لَا يَكْفِيهِ او د بل واجب لپاره اصل نيت کافي (هم) نه دی لَكِنَّهُ يَكُونُ تَطَوُّعًا لېکن دا روژه به (اوس) نفلي وي غَيْرَ مَضْمُونٍ بِالْقَضَاءِ (او) په قضاء سره به مضمونه نه وي (يعني که ماته يې کړي نو قضاء به يې واجب نه وي) لِشُرُوعِهِ فِيهِ مُسْقِطًا ځکه چې هغه په دې خيال سره دا روژه شروع کړې وه چې دا (د بل

واجب) ساقطونکې ده وَإِنْ نَوَى عَنْ رَمَضَانَ إِنْ كَانَ هٰذَا مِنْهُ وَعَنِ التَّطَوُّعِ إِنْ كَانَ مِنْ شَعْبَانَ او که د رمضان نیت وکړي په دې شرط که ـ ا د رمضان ورځ وه او د نفلو نیت وکړي په دې شرط که د شعبان ورځ وه يُكْرَهُ نو دا (هم) مکروه دې لِأَنَّهُ نَاوٍ لِلْفَرْضِ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې هغه په يوه اعتبار د فرضو نیت کونکی دی ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ أَجْزَأَهُ عَنْهُ بیا که ښکاره سوه چې دا ورځ د رمضان ده نو دا روژه به د هغه لپاره کافي وي لِمَا مَرَّ د هغه دلیل په وجه چې مخکې تېر سو وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ جَازَ عَنْ نَفْلِهِ او که ښکاره سوه چې د شعبان ورځ ده نو د هغه نفلي روژه به جائز وي لِأَنَّهُ يَتَأَدّٰى بِأَصْلِ النِّيَّةِ ځکه چې نفلي روژه په اصل نیت سره اداء کیږي وَلَوْ أَفْسَدَهُ يَجِبُ أَنْ لَا يَقْضِيَهُ او که هغه دا روژه فاسده کړه نو د هغې قضاء نه راوړل به واجب وي لِدُخُولِ الْإِسْقَاطِ فِي عَزِيمَتِهِ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې د هغه په اراده کې په يوه اعتبار سره فرض ساقطول داخل سو.

**تشریح:** له پنځو صورتونو څخه آخري او پنځم صورت دا دی چې انسان د نیت په وصف کي تردد پیدا کړي او داسې ووايي چې که سبا د رمضان ورځ وه نو د رمضان روژه به نیسم او که د شعبان ورځ وه، نو د بل واجب (واجب آخر) يعني د قضاء او کفارې روژه به نیسم، صاحب د هدایې فرمايي چې دا صورت مکروه دی، ځکه په دې صورت کې چې نیت د کومو دوو روژو په مینځ کي دائر سوی دی، يعني د رمضان روژه او واجب آخر روژه، دا دواړه روژې په يوم الشک کې منع دي، د دې حدیث لا يصام اليوم الذى الخ په وجه سره، نو ځکه به دا صورت مکروه وي.

ثم إن ظهر الخ فرمايي بیا که ښکاره سوه چې دا د رمضان ورځ وه، نو د رمضان روژه اداء سوه، ځکه چې په اصل نیت کې هیڅ تردد نه راغلی، او د رمضان روژه په اصل نیت سره اداء کیدای سي، او که ښکاره سوه چې د شعبان ورځ وه، نو واجب آخر نه اداء کیږي، ځکه چې د نیت په وصف کي د تردد په وجه سره د وجوب جهت ثابت نه سو، لیکن اصل نیت پیدا سو، خو اصل نیت د واجب آخر د اداء کولو لپاره کافي نه دی، ځکه چې د اصل نیت په صورت کې د واجب آخر تعیین نه کیږي، حال دا چې تعیین ضروري دی، لیکن د هغه دا روژه به نفلي وي (ځکه چې اصل نیت سته، او د رمضان ورځ هم نه ده)، او که هغه سړی دا روژه ماته کړه، نو پر هغه به د دې قضاء لازم نه وي، ځکه چې هغه په دې نیت او اراده سره دا روژه شروع کړې وه چې که د رمضان ورځ سوه، نو زما له ذمې څخه به فرض ساقط سي، او که د شعبان ورځ سوه، نو واجب آخر به ساقط سي، لیکن له دې دواړو څخه يوه روژه هم ساقطه نه سو (او دا سړی د مظنون په درجه کې سو)، لهذا پر هغه به قضاء هم لازم نه وي.

وإن نوى الخ او که یو چا د يومُ الشک په شپه دا نیت وکړی چې که سبا ورځ د رمضان سوه، نو د رمضان روژه به نیسم، او که د شعبان سوه نو نفلي روژه به نیسم، نو دا هم مکروه دي، ځکه په دې صورت کې هم يو ډول د فرضي روژې (يعني د رمضان د روژې) نیت راغلی، حال دا چې په يومُ الشک کې د فرضي روژې نیت کول مکروه دي، اوس که وروسته ښکاره سوه چې هغه ورځ د رمضان سوه، نو د رمضان روژه اداء کیږي، ځکه چې په اصل نیت کې تردد نه راغلی، او که ښکاره سوه چې هغه ورځ د شعبان سوه، نو نفلي روژه به جائز کیږي، ځکه چې نفلي روژه هم په اصل نیت سره اداء کیږي، او که هغه دا روژه ماته کړه، نو د هغه قضاء به نه پر لازمیږي، ځکه چې قضاء هغه وخت واجبیږي، چې کله په نیت کې يقین او جزم وي، او دلته هغه يقیني نیت نه دی کړی، ځکه هغه چې څرنګه چې د نفلي روژې نیت کړی دی،

همدارنګه یې د رمضان کېدلو په صورت کې له خپلې ځاني ځنځه د فرضو ساقطولو نیت هم کړی دی، نو دا سړی د مظنون سړي په ډول سو، او پر مظنون د هیڅ شي قضاء واجب نه ده، نو پر دې سړي به هم قضاء واجب نه وي.

## که یوازې یوه سړي د روژې میاشته ولیدله نو د هغه لپاره حکم

وَمَنْ رَأَى هِلَالَ رَمَضَانَ وَحْدَهُ او څوک چې یوازې د رمضان میاشته ووینې صَامَ وَإِنْ لَمْ يَقْبَلِ الْإِمَامُ شَهَادَتَهُ نو هغه دې روژه ونیسي که څه هم امام د هغه ګواهي قبوله نه کړي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صُومُوا[1] لِرُؤْيَتِهِ وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "روژه ونیسئ د میاشتې په لیدلو سره او افطار وکړئ (اختر جوړ کړئ) د میاشتې په لیدلو سره." وَقَدْ رَأَى ظَاهِرًا او دې سړي په ښکاره توګه میاشته ولیدله (نو ځکه هغه ته روژه نیول پکار دي) وَإِنْ أَفْطَرَ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ دُونَ الْكَفَّارَةِ او که روژه یې نه ونیوله نو پر هغه قضاء واجب ده نه کفاره وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: عَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې پر هغه کفاره (هم) واجب ده إِنْ أَفْطَرَ بِالْوِقَاعِ که په جماع سره یې روژه ماته کړه لِأَنَّهُ أَفْطَرَ فِي رَمَضَانَ حَقِيقَةً لِتَيَقُّنِهِ بِهِ ځکه هغه حقیقتاً په رمضان کې روژه ماته کړه ځکه چې هغه ته د رمضان یقین دی وَحُكْمًا لِوُجُوبِ الصَّوْمِ عَلَيْهِ او حکماً (یې هم په رمضان کې روژه ماته کړه) ځکه چې پر هغه روژه واجب ده وَلَنَا أَنَّ الْقَاضِيَ رَدَّ شَهَادَتَهُ بِدَلِيلٍ شَرْعِيٍّ او زموږ دلیل دا دی چې قاضي د هغه ګواهي په شرعي دلیل سره ردّ کړې ده وَهُوَ تُهْمَةُ الْغَلَطِ او هغه (شرعي دلیل) د غلطۍ تهمت (تومت) دی فَأَوْرَثَ شُبْهَةً نو تهمت (د هغه په لیدلو کې) شبهه پیدا کړه وَهَذِهِ الْكَفَّارَةُ تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ او دا کفاره په شبهاتو سره ختمیږي وَلَوْ أَفْطَرَ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّ الْإِمَامُ شَهَادَتَهُ او که هغه روژه ماته کړه مخکې تر دې چې امام د هغه ګواهي ردّ کړي اِخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيهِ نو په دې باره کې مشائخو اختلاف کړی دی وَلَوْ أَكْمَلَ هَذَا الرَّجُلُ ثَلَاثِينَ يَوْمًا لَمْ يُفْطِرْ إِلَّا مَعَ الْإِمَامِ او که دې سړي دېرش (۳۰) روژې پوره کړې (یا هم میاشته نه ولیدل سوه) نو روژه به نه ماتوي (یعني اختر به نه جوړوي) مګر د امام سره لِأَنَّ الْوُجُوبَ عَلَيْهِ لِلْإِحْتِيَاطِ ځکه چې پر هغه د اولې روژې واجبېدل د احتیاط په وجه دي وَالْإِحْتِيَاطُ بَعْدَ ذَلِكَ فِي تَأْخِيرِ الْإِفْطَارِ او تر دې وروسته احتیاط د افطار په ځنډولو کې دی وَلَوْ أَفْطَرَ لَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ او که روژه یې ماته کړه (یعني اختر یې جوړ کړی) نو پر هغه کفاره نسته اِعْتِبَارًا لِلْحَقِيقَةِ الَّتِي عِنْدَهُ د هغه حقیقت په اعتبار کولو سره کوم چې د هغه سره دی.

**اللغات:** ﴿وقاع﴾ جماع کول. ﴿تندرئ﴾ د انفعال باب دی، له درء ځنځه مشتق دی: ختمېدل، ساقطېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که یو سړي یوازې د رمضان میاشته ولیدله، لېکن بل چا نه ولیدله، حال دا چې آسمان صفا وو، نو اوس پر دې سړي لازم دي چې په خپله یوازې روژه ونیسي، که څه هم د هغه ګواهي ردّ کړی سي، ځکه چې په حدیث کې د صوموا لرؤیته وأفطروا لرؤیته خطاب هر چا ته عام دی، نو چا ته چې هم رؤیت او لیدنه حاصله سي، پر

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب قول النبي ﷺ إذا رأيتم الهلال فصوموا، حديث رقم: ۱۹۰۹ - ۱۹۱۰.

هغه روژه نیول لازم دي، او څرنګه چې دې سړي په ځرګنده توګه میاشته ولیدله، نو ځکه به پر ده هم روژه نیول لازم وي، او که ده روژه ماته کړه، نو زموږ په نېز پر ده صرف قضاء واجب ده، کفاره واجب نه ده، هغه که یې په خوراک، څښاک سره ماته کړي، یا یې په جماع او نورو سره ماته کړي، لېکن امام شافعي رحمه الله فرمایي چې که هغه د جماع په ذریعه سره روژه ماته کړي، نو پر هغه قضاء هم واجب ده، او کفاره هم.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې دې سړي په حقیقي رمضان کي روژه ماته کړه، ځکه چې ده میاشته ولیدله، او ده ته دا یقین سو چې دا ورځ د رمضان ده، او حکماً یې هم په رمضان کي روژه ماته کړه، ځکه چې د ده لپاره د شریعت حکم همدغه دی، لېکن کله چې هغه روژه نه ونیوله، بلکي په جماع سره یې روژه ماته کړه، نو ځکه به کفاره پر واجب وي.

**زموږ دلیل:** دا دی چې کله قاضي د ده ګواهي رد کړه، نو دا سړی شرعاً د اعتبار وړ پاته نه سو، او قاضي د ده ګواهي هم د شرعي دلیل په وجه رد کړه، او هغه شرعي دلیل د غلطی تهمت دی، ځکه چې د آسمان د صفاوالي سره سره فقط ده میاشته ولیدله، او بل چا نه ولیدله، حال دا چې په زرهاؤ مسلمانو په میاشتي پسې ګوري، نو د ده په باره کي د خطاء تهمت پیدا سو (چې شاید هغه به غلط وي، او میاشت به یې لیدلې نه وي)، او دې تهمت د ده په لیدلو کي یو ډول شبهه پیدا کړه، او کفاره د شبهاتو په وجه سره ساقطیږي، نو ځکه به پر دې سړي کفاره نه واجبیږي.

ولو أفطر قبل الخ د دې حاصل دا دی چې که امام تر اوسه د هغه ګواهي رد کړې لا نه وه چې دې سړي روژه ماته کړه، نو اوس به پر هغه کفاره واجب وي، که نه؟ فرمایي چې په دې لړ کي د مشائخو اختلاف دی، د بعضي مشائخو رایه دا ده چې په دې صورت کي هم پر هغه کفاره واجب ده، ځکه چې د کفارې د ساقطېدلو چې کوم علت وو یعني د ګواهي ردېدل هغه علت دلته نسته، نو ځکه به کفار واجب وي، لېکن صحیح قول دا دی چې په دې صورت کي هم کفاره واجب نه ده، ځکه چې د قاضي له ردولو څخه علاوه هم دلته شبهه سته، په دې توګه چې له ټوله قوم او خلکو څخه علاوه یوازي هغه میاشته لیدلې او روژه یې نیولې ده، نو فقط د دې سړي میاشته لیدل او روژه نیول هم د حیرت او اشتباه وړ دي، او څرنګه چې شبهات کفاره ختموي، نو ځکه به په دې صورت کي هم پر هغه کفاره واجب نه وي.

ولو أكمل الخ د دې حاصل دا دی که دې سړي دېرش (٣٠) روژې پوره کړې، او د امام او عامو مسلمانانو نهه ویشت (٢٩) روژې پوره سوې، او په ٢٩ رمضان میاشته نه ولیدله سوه، نو دا سړی دې په دې خیال سره افطار نه کوي (یعني اختر دې نه جوړوي) چې زما دېرش روژې خو پوره سوې، بلکي د امام سره دې اختر جوړ کړي، او دا روژه دې د امام سره ونیسي، ځکه چې اول یعني یوازي د هغه د میاشتي په لیدلو سره پر هغه احتیاطاً روژه واجب سوې وه، یعني دا روژه د احتیاط په وجه پر هغه واجب سوې وه، په دې وجه نه چې دا نو یقیني او قطعي د رمضان روژه ده، او څرنګه چې مخکې د احتیاط وجه وه، نو دلته هم د افطار په ځنډولو کي احتیاط دی، ځکه ممکنه ده چې هغه کومه اوله روژه نیولې وه، هغه به د رمضان نه وي، بلکي د شعبان به وي، نو د هغه به هم ٢٩ روژې پوره سوي وي، او کله چې دا امکان سته نو د هغه لپاره د امام سره اختر جوړول پکار دي، لېکن که بیا هم هغه یوازي اختر جوړ کړي، نو کفاره نه پر واجبیږي، ځکه چې دې سړي ته په خپل حق کي د دغه ورځي د اختر کېدلو یقین دی، نو د اختر د شبهې په وجه به د هغه له ذمې څخه کفاره ساقطیږي.

## كه آسمان ګرزمن يا وريځمن وو نو د يوه سړي د ګواهۍ حكم

وَإِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ او كله چي په آسمان كي يو علت وي قَبِلَ الْإِمَامُ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ الْعَدْلِ فِي رُؤْيَةِ الْهِلَالِ نو امامُ المسلمين به د مياشتي د ليدلو په باره كي د يوه عادل انسان ګواهي قبلوي رَجُلًا كَانَ أَوِ امْرَأَةً حُرًّا كَانَ أَوْ عَبْدًا هغه كه نر وي، كه ښځه، آزاد وي، كه غلام لِأَنَّهُ أَمْرٌ دِينِيٌّ ځكه د مياشتي ليدل يوه ديني مسئله ده فَأَشْبَهَ رِوَايَةَ الْأَخْبَارِ نو دا مسئله د حديثونو د روايت سره مشابه سوه وَلِهَذَا لَا يَخْتَصُّ بِلَفْظِ الشَّهَادَةِ همدا وجه ده چي د مياشتي ليدلو ګواهي د شهادت د لفظ سره خاص نه ده وَتُشْتَرَطُ الْعَدَالَةُ او عادل كېدل شرط دي لِأَنَّ قَوْلَ الْفَاسِقِ فِي الدِّيَانَاتِ غَيْرُ مَقْبُولٍ ځكه چي په ديني خبرو كي د فاسق قول نه منل كېږي وَتَأْوِيلُ قَوْلِ الطَّحَاوِيِّ عَدْلًا كَانَ أَوْ غَيْرَ عَدْلٍ او د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د دې قول عدلاً كان أو غير عدل تأويل دا دی أَنْ يَكُونَ مَسْتُورًا چي د هغه حال پټ وي وَالْعِلَّةُ غَيْمٌ أَوْ غُبَارٌ أَوْ نَحْوُهُ او علت وريځ يا ګرز يا دا ډول بل شی دی وَفِي إِطْلَاقِ جَوَابِ الْكِتَابِ يَدْخُلُ الْمَحْدُودُ فِي الْقَذْفِ بَعْدَمَا تَابَ او د متن د جواب په مطلق كېدلو كي محدود في القذف (هم) تر توبې كېدلو وروسته داخليږي وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او همدا ظاهر روايت دی لِأَنَّهُ خَبَرٌ ځكه چي (د مياشتي ګواهي) د خبر په درجه كي ده وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله أَنَّهَا لَا تُقْبَلُ لِأَنَّهَا شَهَادَةٌ مِنْ وَجْهٍ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د محدود فی القذف ګواهي به نه قبليږي ځكه چي د مياشتي ګواهي من وجه شهادت ده (يعني بالكل د خبر په درجه كي هم نه ده، بلكي يو ډول شهادت هم ده) وَكَانَ الشَّافِعِيُّ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ يَشْتَرِطُ الْمَثْنَى او امام شافعي رَحِمَهُ الله به له خپلو دوو قولونو څخه په يوه قول كي د دوو خلكو شرط لګوی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَا او د هغه په خلاف هغه دليل حجت دی كوم چي موږ ذكر كړی وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● قَبِلَ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ فِي رُؤْيَةِ هِلَالِ رَمَضَانَ او دا صحيح ده (يعني دا خبره په صحيح روايت كي ثابته ده) چي نبي ﷺ د رمضان د مياشتي د ليدلو په باره كي د يوه سړي ګواهي قبوله كړه ثُمَّ إِذَا قَبِلَ الْإِمَامُ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ بيا كه امام د يوه سړي ګواهي قبوله كړه وَصَامُوا ثَلَاثِينَ يَوْمًا او خلكو دېرش روژې ونيولې (لكن بيا هم مياشت نه وليدل سوه) لَا يُفْطِرُونَ نو هغوی به افطار نه كوي (يعني اختر به نه جوړوي) فِيمَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله د هغه قول مطابق چي حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت كړی دی لِلِاحْتِيَاطِ د احتياط لپاره (يعني دا روايت پر احتياط مبني دی) وَلِأَنَّ الْفِطْرَ لَا يَثْبُتُ بِشَهَادَةِ الْوَاحِدِ او په دې وجه (هم) چي افطار (اختر) د يوه سړي په ګواهي سره نه ثابتيږي وَعَنْ●

---

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الصيام، حديث رقم: ٢١٣٣ – ٢١٣٢.

● القول الراجح قول محمد رَحِمَهُ الله، وكذا في التبيين و في غاية البيان لقول محمد رَحِمَهُ الله أصح كذا في النهر الفائق، الهندية ج:١، ص: ١٩٨. [القول الراجح، ج:١، ص: ١٩٦]

مُخْتَلٍ أَنَّهُمْ يُفْطِرُوْنَ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دي چې خلک به افطار کوي (يعني اختر به جوړوي) وَيَثْبُتُ الْفِطْرُ بِنَاءً عَلَى ثُبُوْتِ الرَّمَضَانِيَّةِ بِشَهَادَةِ الْوَاحِدِ او فطر(اختر) به ثابتيږي پر دې خبره په بناء کولو سره چې د رمضان ثبوت د يوه سړي په ګواهي سره دی (يعني رمضان د يوه سړي په ګواهي سره ثابتيږي، نو اختر به هم د يوه سړي په ګواهي سره ثابتيږي) وَإِنْ كَانَ لَا يَثْبُتُ بِهَا ابْتِدَاءً که څه هم په ابتداء کې د يوه سړي په ګواهي سره اختر نه ثابتيږي كَاسْتِحْقَاقِ الْإِرْثِ بِنَاءً عَلَى النَّسَبِ الثَّابِتِ بِشَهَادَةِ الْقَابِلَةِ لکه د وراثت استحقاق چې پر هغه نسب مبني دی کوم چې د يوې دايي (رضاعي مور) په ګواهي سره ثابت سي.

**اللغات:** ﴿علة﴾ سبب، لامل، مرض، له اصل څخه خلاف حالت، ﴿ديانات﴾ د دين معاملات، ﴿غيم﴾ وريځ، ﴿غبار﴾ ګرز، ﴿محدود في القذف﴾ هغه څوک چې د تهمت حد پر لګول سوی وي، ﴿قابله﴾ دايي (دايه)، رضاعي مور، د شيدو مور.

**تشريح:** مسئله: دا ده که آسمان صفا نه وو، بلکي وريځمن يا ګرزمن وو، او يو عادل انسان راغلی، د رمضان د مياشتي ليدلو ګواهي يې ورکړه، نو امامُ المسلمين ته پکار دي چې د هغه ګواهي قبوله کړي، او خلکو ته دي په را روانه ورځ کي د روژې نيولو حکم وکړي، ګواهي ورکونکی که نر وي، او که ښځه، آزاد وي، که غلام، حاصل دا چې کله په هغه کي د عدالت صفت وي، نو د هغه ګواهي دي قبوله کړي، او زموږ په نېز له عدالت څخه ماسوا بل شرط نسته، ځکه چې دا يوه ديني مسئله ده، نو دا مسئله د أحاديثو د روايت سره مشابه سوه، او د أحاديثو روايت هم يو ديني أمر او مسئله ده، او څرنګه چې د احاديثو په روايت کي صرف عدالت شرط دی، او شمېر يا آزادي او داسي نور شيان شرط نه دي، همداسي به په دې کي هم صرف عدالت شرط وي، او نور شرطونه به نه لګيږي، همدا وجه ده چې د رمضان د مياشتي د ګواهي ورکولو لپاره د أشهد (زه ګواهي ورکوم) الفاظ ويل ضروري نه دي، بلکي رأيت الهلال (ما مياشته وليدله) ويل کافي دي، ځکه چې د مياشتي ګواهي يوه ديني مسئله ده، او د أشهد الفاظ ويل په ديني معاملاتو کي ضروري دي، نه په ديني مسئلو کي. او د مياشتي په ګواهي کي به عدالت ځکه شرط وي چې په ديني معاملو او مسئلو کي به د فاسق او غيرِ عادل قول نه منل کيږي.

وتأويل قول الطحاوي الخ د دې حاصل دا دی چې د مياشتي د ليدلو (رؤيتِ هلال) په مسئله کي خو احناف د شاهد د عدالت شرط لګوي چې ليدونکي به عادل وي، لېکن امام طحاوي رَحِمَهُ الله يو ځای د عدلا كان أو غير عدل عبارت ذکر کړی دی، چې له هغه څخه دا وهم کيږي چې د هغه په نېز عدالت شرط نه دی، صاحب د هدايې د امام طحاوي د قول علت او توجيه بيانوي، فرمايي چې له أو غير عدل څخه د امام طحاوي رَحِمَهُ الله مراد فاسق نه دی، بلکي له دې څخه يې مراد هغه عادل دی چې د هغه عدالت په خلکو کي مشهور او معروف نه وي، يعني په رؤيتِ هلال کي به د هغه سړي شهادت هم منل کيږي، چې د هغه عدالت په خلکو کي مشهور نه وي بلکي مستور او پټ وي، لکه څرنګه چې د مشهور عادل شهادت منل کيږي.

والعلة الخ فرمايي: په متن کي چې کوم د إذا كان بالسماء علة عبارت ذکر سو، په هغه کي له علت څخه مراد وريځ، ګرز، دوړه، دود، بُخار (او وږم) دی، نو که په دې شيانو کي د يوه شي په وجه آسمان خړ وو، او د مياشتي ليدل ستونزمن وو، نو د يوه عادل سړي ګواهي به معتبره وي.

وللإطلاق جواب الخ فرمايي: په متن كي چي كوم د قبل الإمام شهادة الواحد العدل عبارت ذكر سو، دا عبارت مطلق دی، چي اطلاق يې و دې خبري ته اشاره كوي چي كه محدود في القذف سړي توبه وكړه، نو تر توبې وروسته به د هغه ګواهي هم معتبره وي، ځكه چي د میاشتي ګواهي د خبر په درجه كي ده، يعني د يوې ديني مسئلې خبر وركوي، او د ديني مسئلې په ګواهي كي صرف عدالت ضروري دی، او په محدود في القذف كي هم تر توبې وروسته د عدالت صفت پيدا كيږي، نو ځكه به د محدود في القذف خبر او ګواهي هم په دې باره كي معتبره وي، همدا ظاهرُ الرواية دی؛ صاحب د بنايې ليكلي دي چي يو صحابي محدود في القذف وو، چي د هغه نوم حضرت ابو بكره ﷺ وو، كله چي هغه توبه وكړه، نو صحابه وو د رؤيت هلال په باره كي د هغه ګواهي قبوله كړه، له دې ځخه هم معلوميږي چي محدود في القذف كه توبه وكړي، نو د هغه ګواهي به معتبره وي.

وعن أبي حنيفة الخ په دې لړ كي له امام صاحب رَحِمَهُ الله ځخه د غير ظاهر الرواية مطابق يو روايت دا دی چي تر توبې وروسته به هم د محدود في القذف ګواهي نه قبليږي، ځكه د میاشتي ګواهي كه څه هم له ديني مسئلو ځخه ده، لېكن بلكل د خبر په درجه كي نه ده، بلكي دا هم يو قسم شهادت او ګواهي ده، او په قرآن كي راغلي چي د محدود في القذف ګواهي به هيڅكله نه قبليږي (ولا تقبلوا لهم شهادة أبدا)، نو ځكه به د هغه ګواهي په دې باره كي نه قبليږي.

وكان الشافعي الخ فرمايي چي له امام شافعي رَحِمَهُ الله ځخه د ګواه په باره كي دوه(۲) قوله را نقل سوي دي: اول دا چي رؤيت هلال به د يوه سړي په ګواهي سره نه ثابتيږي، بلكي د هغه لپاره به د دوو خلكو ګواهي ضروري وي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دې قول په خلاف زموږ بيان سوی دليل حجت دی، يعني چي دا يوه ديني مسئله ده، او د ديني مسئلې په باره كي به د يوه سړي ګواهي هم قبليږي، او دا حديث هم د هغه په خلاف حجت دی چي نبي ﷺ هم د رؤيت هلال په باره كي د يوه أعرابي ګواهي قبوله كړه، نو له دې ځخه معلوميږي چي دوه خلك ضروري نه دي.

ثم إذا قبل الخ د دې حاصل دا دی چي كله امام د رمضان د میاشتي په باره كي د يوه سړي ګواهي قبوله كړي، او خلكو ته د روژې نيولو حكم وكړي، او خلك د ديرش(۳۰) روژې پوره كړي، لېكن د ديرشمي روژې په ماښام د اختر میاشته نه وليدله سي، نو اوس به را روانه ورځ خلك څه كوي؟ روژه به نيسي، كه نه؟ په دې لړ كي له امام صاحب رَحِمَهُ الله ځخه د حسن بن زياد په روايت كي دا رانقل سوي دي چي احتياطاً دي خلك را روانه ورځ هم روژه ونيسي، او افطار دي نه كوي (يعني اختر دي نه جوړوي)، ځكه كېداى سي چي دا دي د رمضان ۳۰ ورځ وي، او كه په ۳۱ ورځ د اختر د جوړولو حكم وسي، نو دا خرابي هم لازميږي چي اختر به د يوه سړي په ګواهي سره ثابت سي، حال دا چي د اختر د ثبوت لپاره د دوو خلكو ګواهي ضروري ده.

وعن محمد الخ او له امام صاحب ځخه د امام محمد په روايت كي دا را نقل سوي دي چي امام به په ۳۱ ورځ خلكو ته د اختر جوړولو حكم كوي، ځكه كله چي هغوی په شمار ۳۰ روژې پوره كړې، نو اوس به ۳۱ روژې په هغو نه نيول كيږي، ځكه چي روژې له ۳۰ ځخه زياتي نه راځي.

پاته سو دا سوال چي په دې صورت كي خو د يوه سړي په ګواهي سره اختر ثابت سو، نو جواب دا دی چي د اختر د ثبوت لپاره خو ابتداءً د دوو خلكو ګواهي ضروري ده، لېكن كه د يو بل شي په ضمن كي اختر ثابتېدی، نو د هغه لپاره به بيا د دوو خلكو ګواهي ضروري نه وي، او څرنګه چي دلته اختر د رمضان په ضمن كي ثابتيږي (ځكه خلكو د يوه

سرې په ګواهي سره ۳۰ روژې پوره کړې، نو را روانه ورځ به خامخا د کوچنی اختر وي). لهذا ثابته سوه چې د يوه سړي په ګواهي سره به هم اختر ثابتيږي، نو د سوال ضرورت پاته نه سو.

او د دې مسئلې بل مثال داسې دی چې که يوې دايې ښځې په ابتداء کې د وراثت د ثابتېدلو لپاره او د وراثت د استحقاق لپاره د يوه سړي په باره کي ګواهي ورکړه، نو د هغې په ګواهي سره به د سړي لپاره د وراثت استحقاق نه ثابتيږي، بلکې د دوو انسانانو ګواهي به ضروري وي، ځکه چې د يو بل شي په ضمن کي د هغه سړي د وراثت استحقاق ثابت نه سو، او که دايي ښځې د يوه کوچني په باره کي دا ګواهي ورکړه چې دا د فلانکي سړي بچی دی، نو د دايي په ګواهي سره خو د دې بچي نسبت د فلانکي سړي سره ثابتيږي، نو د نسب په ضمن کي به د وراثت استحقاق هم ثابتيږي (حال دا چې ابتداءً د وراثت د استحقاق لپاره دوې ګواهۍ ضروري وې ځکه چې دا مسئله له معاملاتو څخه ده). نو معلومه سوه که د يو بل شي په ضمن کي يو شی ثابتېدی، نو د هغه لپاره به دوې ګواهۍ ضروري نه وي، بلکې يوه ګواهي به هم کار کوي.

## که آسمان صفا وو نو د ګواهۍ د معتبر والي شرطونه

وَإِذَا لَمْ تَكُنْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ او که په آسمان کي هيڅ علت نه وو نو (د يوه سړي) ګواهي به نه قبليږي حَتَّى يَرَاهُ جَمْعٌ كَثِيرٌ يَقَعُ الْعِلْمُ بِخَبَرِهِمْ تر دې چې هغه يو داسي ډېر جماعت وويني چې د هغو په خبر سره علم يقيني حاصليږي لِأَنَّ التَّفَرُّدَ بِالرُّؤْيَةِ فِي مِثْلِ هٰذِهِ الْحَالَةِ يُوهِمُ الْغَلَطَ ځکه په داسې حالت کي يوازي مياشته ليدل د غلطۍ وهم پيدا کوي فَيَجِبُ التَّوَقُّفُ فِيهِ نو په دې کي به توقف کول واجب وي حَتَّى يَكُونَ جَمْعًا كَثِيرًا تر دې چې ليدونکي کثير جماعت سي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ په خلاف د هغه صورت چې په آسمان کي يو علت وي لِأَنَّهُ قَدْ يَنْشَقُّ الْغَيْمُ عَنْ مَوْضِعِ الْقَمَرِ ځکه چې وريځ کله نا کله د مياشتي له ځای څخه ليري کيږي فَيَتَّفِقُ لِلْبَعْضِ النَّظَرُ نو بعضي خلکو ته اتفاقاً په نظر راځي ثُمَّ قِيلَ فِي حَدِّ الْكَثِيرِ أَهْلُ الْمَحَلَّةِ بيا د کثير په اندازه کي ويل سوي دي چې هغه د محلې (کلي) والا دي (يعني چې پوره کلی يې ويني نو دا کثير جماعت سو) وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ خَمْسُونَ رَجُلًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې پنځوس خلک دي اِعْتِبَارًا بِالْقَسَامَةِ پر قسامت باندې په قياسولو سره وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَهْلِ الْمِصْرِ وَمَنْ وَرَدَ مِنْ خَارِجِ الْمِصْرِ او هيڅ فرق نسته په مينځ د ښاريانو او د هغو خلکو کي چې د ښار له بهر څخه راغلي وي وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ أَنَّهُ تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْوَاحِدِ او امام طحاوي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چې د يوه سړي ګواهي به قبليږي إِذَا جَاءَ مِنْ خَارِجِ الْمِصْرِ چې کله هغه د ښار له بهر څخه راغلی وي لِقِلَّةِ الْمَوَانِعِ ځکه چې له ښار څخه بهر خنډونه کم وي وَإِلَيْهِ الْإِشَارَةُ فِي كِتَابِ الْإِسْتِحْسَانِ او همدې طرف ته په کتابُ الاستحسان کي اشاره ده وَكَذَا إِذَا كَانَ عَلَى مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ فِي الْمِصْرِ او همدارنګه چې کله مياشت ليدونکی سړی په ښار کي پر يو لوړ ځای وي (نو د امام طحاوي رَحِمَهُ الله په نيز به د هغه ګواهي هم قبليږي).

اللغات: ﴿جمع﴾ جماعت، ډله، مجمع، ﴿تفرد﴾ يوازي کېدل، ﴿ينشق﴾ شيرېدل، لڅېدل (دلته مراد څني ليري کېدل دي).

تشريح : مسئله : دا ده که آسمان صفا وو، وريځ، ګرز او داسې نور نه وو، نو په دې صورت کې به د رؤيت هلال په باره کې د يوه، دوو خلګو ګواهي نه قبليږي، بلکې د دومره ډېر جماعت ګواهي به قبليږي چې د هغو په خبر سره د مياشتې ليدلو يقين حاصل سي (يعني چې انسان ته دا يقين سي چې دومره ډېر خلک درواغ نه وايي، بلکې واقعي يې مياشت ليدلې ده)، ځکه چې د آسمان د صفاوالي په وخت کې فقط د يوه، دوو خلګو مياشته ليدل او د نورو نه ليدل د غلطي وهم پيدا کوي، يعني دا وهم پيدا کوي چې که مياشت رشتيا هم راختلې واى نو نورو خلګو به هم ليدلې واى (ځکه چې کله آسمان صفا وي، نو حتماً يې ډېر خلک ويني)، نو داسې معلوميږي چې دا يو، دوه خلک به د مياشتې په ليدلو کې غلط سوي وي، هو! که پر آسمان وريځ وه، نو د يوه، دوو ګواهي به هم قبليږي، ځکه په دې صورت کې ډېرو خلګو لګيدل نامکنه دي، خو د يوه يا دوو خلګو ليدل امکان لري، ځکه کله نا کله داسې هم کيږي چې د مياشتې له ځاى څخه وريځ ليرې سي (يعني د مياشتې پر برابر آسمان لڅ سي)، او د يو چا نظر پر مياشت ولګيږي، او بيرته وريځ پر راسي.

ثم قيل الخ پاته سوه دا خبره چې د کثير مقدار څومره دى؟ نو بعضي حضراتو فرمايلي دي چې له کثير څخه مراد د محلې (او کلي) ټوله خلک دي، يعني که د ټوله محلې خلګو مياشته وليدله، نو رؤيت به ثابتيږي، او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چې له کثير څخه مراد پنځوس خلک دي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا مسئله پر قسامت قياس کړې ده، يعني که په محله (کلي) کې يو مړى پيدا سو، او قاتل معلوم نه سو، نو د محلې پنځوسو خلګو ته به پر دې قسم ورکول کيږي چې مونږ د مړي په قاتل او قصه خبره نه يو، نو څرنګه چې دلته د پنځوسو خلګو په قسم سره د قاتل په باره کې لاعلمي ثابتيږي، همدارنګه به د مياشتې په باره کې هم د پنځوسو خلګو په ليدلو سره رؤيت ثابتيږي.

ولا فرق الخ فرمايي چې که آسمان صفا وو، نو د يوه، دوو خلګو ګواهي به نه قبليږي، تر څو چې جماعت کثيره يعني ډېر خلک نه وي، اوس برابره ده که دا ډېر خلک له هغو خلګو څخه وي چې هغو د ښار په آبادۍ کې مياشته ليدلې وي، يا هغه وي چې له ښار څخه يې بهر مياشته ليدلې وي او راسي ګواهي ورکړي، په دې دوارو کې هيڅ فرق نسته. امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که يو سړي هم له ښار څخه بهر مياشت ليدلې وي نو د هغه ګواهي به قبليږي، ځکه چې له ښار څخه بهر د ليدلو موانع او خنډونه کم دي، يعني په ښکار کې خو دودان، ګرز او داسې نور ډېر خنډونه سته، لېکن له ښار څخه بهر دود او نور خنډونه نه وي، نو ځکه به د هغه قول قبليږي، په کتاب الاستحسان کې هم و دې و طرف ته اشاره ترلاسه کيږي (چې له بهر څخه د راتلونکي سړي ګواهي به قبليږي)، همدارنګه د امام طحاوي رَحِمَهُ الله په نېز که يو څوک په ښار کې دننه پر يو لوړ ځاى ودريږي او مياشت ووينې، نو په دې صورت کې به هم د هغه ګواهي قبليږي.

## که د اختر مياشته يوازې يوه سړي وليدله نو څه حکم دى؟

> وَمَنْ رَأَى هِلَالَ الْفِطْرِ وَحْدَهُ او څوک چې د اختر مياشته يوازې ووينې لَمْ يُفْطِرْ اِحْتِيَاطًا نو هغه دې احتياطاً افطار نه کوي (يعني اختر دې نه جوړوي) وَفِي الصَّوْمِ الْاِحْتِيَاطُ فِي الْاِيْجَابِ او د روژې د مياشتې په صورت کې احتياط په روژه واجبولو کې دى.

تشريح : مسئله : دا ده چې که يو سړي يوازې د اختر مياشته وليدله، او بل چا نه وليدله، نو د دې سړي لپاره حکم دا دى چې يوازې دې افطار نه کوي، او احتياطاً دې د را رواني ورځې روژه هم ونيسي، د دې په خلاف که يو چا د رمضان مياشت يوازې وليدله، نو د هغه په حق کې احتياط دا دى چې يوازې دې روژه ونيسي، چې داسې نه يوه روژه ځنې فوت سي.

## كه آسمان صفا نه وو نو د اختر په میاشته كې د ګواهۍ د معتبر والي شرطونه

وَإِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ او كه په آسمان كې يو علت وو لَمْ تُقْبَلْ فِي هِلَالِ الْفِطْرِ إِلَّا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ نو د اختر په میاشت كې به نه قبلیږي مګر د دوو خلكو يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ نَفْعُ الْعَبْدِ ځكه چې د دې ګواهۍ سره د بنده نفع تعلق لري وَهُوَ الْفِطْرُ او د بنده نفع فطر (يعني روژه پرېښودل) دي فَأَشْبَهَ سَائِرَ حُقُوقِهِ نو دا د بندګانو د نورو حقونو سره مشابه شو. وَالْأَضْحَى كَالْفِطْرِ فِي هَذَا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د میاشتې د لیدلو په باره كې د لوی اختر حكم (هم) د ظاهر روايت مطابق د كوچني اختر په شان دی وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحيح ده خِلَافًا لِمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ په خلاف د هغه كوم چې له امام صاحب څخه روايت شوي دي أَنَّهُ كَهِلَالِ رَمَضَانَ چې د لوی اختر میاشت د رمضان د میاشتې په شان ده لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ نَفْعُ الْعِبَادِ ځكه چې د لوی اختر سره (هم) د بندګانو نفع تعلق لري وَهُوَ التَّوَسُّعُ بِلُحُومِ الْأَضَاحِيِّ او هغه د قربانۍ په غوښو كې پراخي ده (يعني په دې ورځې غوښې په پېرخوري، نو په دې كې هم د بندګانو نفع ده).

**تشریح:** مسئله: دا ده كه آسمان صفا نه وو، او په ۲۹ د رمضان آسمان ورېځمن يا ګرزمن وو، نو د كوچني د اختر د میاشتې د ثبوت لپاره شرعي او كامل شهادت ضروري دي، يعني لږ تر لږه د دوو خلكو يا يوه سړي او دوو ښځو ګواهي ضروري ده، او دا خلك يا ښځې به آزاد وي، او د شهادت په لفظ سره به ګواهي وركوي، مثلاً داسې به وايي: "زه ګواهي وركوم چې ما د میاشته لیدلې ده". نو بيا به د دوی ګواهي معتبره وي، كنې نه به وي، ځكه چې د دې ګواهۍ سره د بندګانو حق او نفعه متعلق ده، چې هغه اختر او روژه پرېښودل دي، يعني كه دوی ګواهي ور نه كړي، نو را روانه ورځ به هم خلك روژه ونيسي، لېكن د دوی په ګواهۍ سره را روانه ورځ اختر كېږي، او ښكاره ده چې په دې كې د بندګانو نفعه ده، نو دا مسئله د بندګانو د نورو حقونو په شان شوه، او خالص ديني مسئله پاتې نه شوه، او څرنګه چې د حقوقُ العباد د ثبوت لپاره شرعي ګواهي ضروري ده (چې هغه دوه خلك دي، يا يو سړی او دوې ښځې دي)، نو د اختر د میاشتې لپاره به هم شرعي ګواهي ضروري وي.

والأضحى الخ فرمايي چې د میاشتې د ثبوت په حواله د لوی اختر د میاشتې حكم هم د كوچني اختر د میاشتې په شان دی، يعني څرنګه چې د كوچني اختر د میاشتې لپاره د دوو خلكو يا يوه سړي او دوو ښځو ګواهي ضروري ده، همداغسې د لوی اختر د میاشتې لپاره هم د دومره افرادو ګواهي ضروري ده، په دې شرط چې پورتني شرطونه يعني آزادي او د شهادت لفظ په دوی كې موجود وي، دا حكم د ظاهر الرواية مطابق دی، او همدا صحيح قول دی، لېكن په نوادر كې له امام څخه يو روايت د دې په خلاف دی، يعني د نوادر په روايت كې د امام صاحب په نېز د لوی اختر میاشته د رمضان د میاشتې په شان ده، يعني د لوی اختر میاشت به هم د رمضان د میاشتې په شان د يوه سړي په ګواهۍ سره ثابتيږي، په دې شرط چې آسمان صفا نه وي.

د دې روايت دليل دا دی چې د لوی اختر میاشته د يو ديني أمر او مسئلې سره تعلق لري، چې هغه حج دی، او د ديني امورو د ثبوت لپاره د يوه عادل سړي ګواهي كافي ده، نو ځكه به د رمضان په شان د لوی اختر د میاشتې په ثبوت كې هم د يوه عادل سړي ګواهي كافي وي، او د ظاهر الرواية دليل دا دی چې د لوی اختر د میاشتې سره د بندګانو نفعه متعلق ده، يعني د لوی اختر په ورځو كې بندګان د خپل خدای مېلمانه وي، او د قربانۍ غوښې پرېوانه او په پېخروي، او ښكاره ده

چې د خوبنو په پراخې کې د بندګانو نفعه ده، نو دا هم د حقوقُ العباد سره مشابه سوه، او د حقوقُ العباد د ثابتولو لپاره د يوه سړي ګواهي کفايت نه کوي، نو د لوی اختر د میاشتې د ثبوت لپاره به هم د يوه سړي ګواهي کافي نه وي، بلکې د کوچني اختر په ډول به د لوی اختر د میاشتې لپاره هم کامله او شرعي ګواهي ضروري وي.

## که آسمان صفا وو نو د ګواهي حکم

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ او که په آسمان کې علت نه وو لَمْ تُقْبَلْ إِلَّا شَهَادَةُ جَمَاعَةٍ نو نه به قبليږي مګر د يو داسې جماعت ګواهي يَقَعُ الْعِلْمُ بِخَبَرِهِمْ چې د هغو په خبر سره يقيني علم حاصل سي كَمَا ذَكَرْنَا لکه موږ چې (مخکې دا) ذکر کړه.

تشريح: صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی، يعني ديوه يا دوو خلکو د شهادت قبلولو مسئله په هغه صورت کې ده چې کله آسمان صفا نه وي، لېکن که آسمان صفاوي، نو بيا د اختر د میاشتې د ثبوت لپاره هم د جماعتِ کثيره ګواهي ضروري ده چې د هغو په خبر سره يقيني علم حاصل سي، يعني چې د انسان دا يقين سي چې دومره ډېر خلک دروغ نه وايي، بلکې واقعي يې میاشت ليدلې ده، لکه څرنګه چې د رمضان د میاشتې په بيان کې د دې پوره تفصيل تېر سو.

## د روژې د وخت ابتداء او انتهاء

وَوَقْتُ الصَّوْمِ مِنْ حِينِ طُلُوعِ الْفَجْرِ الثَّانِي إِلَى غُرُوبِ الشَّمْسِ او د روژې وخت د صبح صادق (سپېلو چاودلو) څخه تر لمر لوېدلو پورې دی لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ [البقرة، ۱۸۷] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "خورئ! او څښئ! تاسو تر هغه پورې چې ښکاره سي تاسو ته سپين تار (سپېدې) له تور تار څخه" إِلَى أَنْ قَالَ: ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ [البقرة، ۱۸۷] تر دې چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: بيا تاسو روژه پوره کړئ تر شپې پورې وَالْخَيْطَانِ بَيَاضُ النَّهَارِ وَسَوَادُ اللَّيْلِ او دواړه تارونه د ورځې سپينوالی او د شپې توروالی دی.

اللغات: ﴿كلوا﴾ د نصر د باب د امر صيغه ده: خوراک کول. ﴿خيط﴾ تار، سپېدې، ﴿بياض﴾ سپينوالی، ﴿سواد﴾ توروالی.

تشريح: امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې عبارت کې د روژې اول او آخري وخت بيانوي، فرمايي چې د روژې وخت له سپېلو چاودلو (صبح صادق) څخه تر لمر لوېدلو پورې دی، دليل دا آيت دی: وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ، او تر دې وروسته فرمايي: ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ، په دې آيت کې له خيط أبيض څخه مراد د سهار رڼا ده، او له خيط أسود څخه د شپې تياره ده، چې د هغه ښکاره مطلب همدغه دی چې له صبح صادق څخه تر لمر لوېدلو پورې د روژې وخت دی.

## د روژې تعريف

وَالصَّوْمُ هُوَ الْإِمْسَاكُ عَنِ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَالْجِمَاعِ نَهَارًا مَعَ النِّيَّةِ او روژه منع کېدل (ځان نيول) دي له خوراک څښاک او کوروالي څخه تر له ورځ سره د نيته لِأَنَّ الصَّوْمَ فِي حَقِيقَةِ اللُّغَةِ: هُوَ الْإِمْسَاكُ ځکه چې روژه د لغت په حقيقت کې منع کېدل (او ځان نيول) دي لِوُرُودِ الْإِسْتِعْمَالِ فِيهِ ځکه چې صوم په همدغه معنیٰ کې استعمال سوی دی إِلَّا أَنَّهُ زِيدَ

عَلَيْهِ النِّيَّةُ فِي الشَّرْعِ خو دا چې په شريعت كې پر دې نيت زيات سوى دى لِتَتَمَيَّزَ بِهَا الْعِبَادَةُ مِنَ الْعَادَةِ چې د نيت په ذريعه عبادت له عادت څخه جلا سي وَاخْتُصَّ بِالنَّهَارِ لِمَا تَلَوْنَا او روژه د ورځي سره خاص ده د هغه آيت په وجه كوم چې موږ تلاوت كړى وَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ الْوِصَالُ كَانَ تَعْيِينُ النَّهَارِ أَوْلَى او په دې وجه (هم) چې كله وصل ستونزمن دى نو د ورځي متعين ول به ډېر بـه وي لِيَكُونَ عَلَى خِلَافِ الْعَادَةِ چې امساک د عادت خلاف سي وَعَلَيْهِ مَبْنَى الْعِبَادَةِ او هم پر دې د عبادت بنياد دى وَالطَّهَارَةُ عَنِ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ شَرْطٌ لِتَحَقُّقِ الْأَدَاءِ فِي حَقِّ النِّسَاءِ او له حيض او نفاس څخه پاكېدل شرط دي د ښځو په حق كې د اداء د ثابتېدلو لپاره.

**اللغات:** ﴿إمساك﴾ د افعال د باب مصدر دى: منع كېدل، بندېدل، ځان نيول. ﴿زيد﴾ د ضرب د باب ماضي مجهوله ده: زياتېدل، اضافه كېدل.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې عبارت كې د روژې تعريف بيانوي، فرمايي چې په شريعت كې د روژې په نيت له خوراک، څښاک او جماع څخه ځان نيولو ته صوم (روژه) ويل كېږي، ځكه په لغت كې د صوم لفظ مطلقاً د امساک په معنىٰ سره دى، ځكه چې تر اسلام مخكې به دا لفظ د امساک په معنىٰ استعمالېدى، لېكن په شريعت كې پر دې معنىٰ نيت هم زيات سو، چې د نيت په ذريعه د عادتي او عبادتي امساک په مېنځ كې توپير راسي (يعني كه د امساک سره نيت هم وو نو امساک به روژه او عبادت وي، او كه نيت ور سره نه وو، نو هسې د عادت په توګه به وي)، او شرعي روژه د ورځي سره خاص ده، ځكه په دې آيت (كلوا واشربوا الخ) كې چې كوم حدّ او وخت بيان سوى دى، په هغه كې د روژې ابتداء او انتهاء ورځ ښوول سوې ده، او عقلي دليل دا دى چې صوم وصال يعني په ورځ او شپه دواړو كې روژه نيول ناممكنه دي، ځكه چې يوه مياشت پرلپسې د ورځي او شپې په خوراک نه كولو سره د مرګ قوي امكان سته، نو ځكه به صرف شپه يا صرف ورځ د روژې لپاره متعينول ضروري وي، او په ورځ كې د انسان عادت دا دى چې ډېر خوراک، څښاک كوي، نو د عقل په تقاضا ورځ متعينول غوره دي، د دې لپاره چې د ورځي امساک يعني په ورځ كې له خوراک، څښاک او جماع څخه ځان نيول د عادت خلاف سي، او د عبادت بنياد هم پر دې دى چې د عادت خلاف به وي، نو ځكه د شرعي روژې لپاره ورځ خاصول زيات غوره دي.

والطهارة الخ د دې حاصل دا دى چې د ښځو په حق كې د روژې د اداء كولو لپاره له حيض او نفاس څخه پاكېدل شرط او ضروري دي، ځكه چې حيض او نفاس د روژې منافي دي. او د منافي شي سره روژه نه سي اداء كېدلاى، نو په دې خاطر له حيض او نفاس څخه پاكېدل شرط دي.



# بَابُ مَا يُوجِبُ القَضَاءَ وَالكَفَّارَةَ

## (دا) باب د هغو شیانو (په بیان کې) دی چې قضاء او کفاره (دواړه) واجبوي

**تشریح**: صاحب د هدایې د صوم له اقسامو څخه تر فراغت وروسته اوس هغه شی بیانوي چې د صوم لپاره مُتمم او پوره کونکی وي، یعنې کفاره، او د روژې هغه صورتونه هم بیانوي چې د هغو د فساد په صورت کې صرف کفاره، یا قضاء او کفاره دواړه واجبیږي.

### په هېره سره د خوراک، څښاک او کوروالي حکم

وَإِذَا أَكَلَ الصَّائِمُ أَوْ شَرِبَ أَوْ جَامَعَ نَاسِيًا لَمْ يُفْطِرْ او که روژتي په هېره سره خوراک یا څښاک یا کوروالی وکړي نو روژه یې نه ماتیږي وَالْقِيَاسُ أَنْ يُفْطِرَ لیکن قیاس دا دی چې روژه یې ماتیږي وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ او همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی لِوُجُودِ مَا يُضَادُّ الصَّوْمَ ځکه چې د روژې ضد پیدا سو فَصَارَ كَالْكَلَامِ نَاسِيًا فِي الصَّلَاةِ نو دا په لمانځه کې په هېره د خبرو کولو په ډول سوه وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • لِلَّذِي أَكَلَ وَشَرِبَ نَاسِيًا د استحسان وجه دا ده چې نبي ﷺ هغه سړي ته فرمایلي وو چې هغه په هېره خوراک، څښاک کړی وو تِمَّ عَلَى صَوْمِكَ فَإِنَّمَا أَطْعَمَكَ اللهُ وَسَقَاكَ "ته خپله روژه پوره کړه! ځکه چې په تا الله ﷻ خوارک او څښاک وکړی" وَإِذَا ثَبَتَ هَذَا فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ او کله چې دا حکم په خوراک، څښاک کې ثابت سو ثَبَتَ فِي الْوِقَاعِ نو د جماعت په حق کې به (هم) ثابتیږي لِلْاِسْتِوَاءِ فِي الرُّكْنِيَّةِ ځکه چې په فرضیت کې (تول) برابر دي (یعني لکه څرنګه چې له خوراک او څښاک څخه منع کېدل فرض دي، همدارنګه له جماع څخه هم...) بِخِلَافِ الصَّلَاةِ لِأَنَّ هَيْئَةَ الصَّلَاةِ مُذَكِّرَةٌ په خلاف د لمانځه ځکه چې د لمانځه حالت ور په یادونکی دی فَلَا يَغْلِبُ النِّسْيَانُ نو (په لمانځه کې) به هېره نه غالبیږي وَلَا مُذَكِّرَ فِي الصَّوْمِ او په روژه کې هیڅ ور په یادونکی شی نسته فَيَغْلِبُ نو (په دې کې) به هېره غالبیږي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْفَرْضِ وَالنَّفْلِ او د فرضي او نفلي روژې په مینځ کې هیڅ فرق نسته لِأَنَّ النَّصَّ لَمْ يُفَصِّلْ ځکه چې نص (حدیث) هیڅ فرق کړی نه دی.

**اللغات**: ﴿وقاع﴾ جماع (کوروالی)، ﴿استواء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: برابرېدل، ﴿هیأة﴾ حالت، صورت، ﴿مذکّرة﴾ د تفعیل د باب اسم فاعل دی: په یاد ور ویستل، ور په یادول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو روژتي په هېره خوراک یا څښاک وکړي، یا یې په هېره د خپلې ښځې سره جماع وکړه، نو استحساناً د هغه روژه نه ماتیږي، لیکن قیاساً د هغه روژه ماتیږي، د امام مالک قول هم دغه دی چې ماتیږي، او د

---

• تخریج: أخرجه الائمة الستة فی کتبهم والبخاری فی کتاب الصوم، باب الصائم إذا أکل أو شرب ناسیا، حدیث رقم: ۱۹۳۳.

دې قول دليل دا دی چې روژه امساک ته ويل کېږي، او خوراک، چښاک يا جماع کول د امساک ضد دي، او قاعده دا ده چې يو شی هم د خپل ضد سره پاته کېدای نه سي، نو که خوراک او چښاک وسي، نو امساک ختميږي، او کله چې امساک ختم سي، نو ښکاره ده چې روژه هم ماتيږي، او څرنګه چې يو سړی په هېره په لمانځه کي خبري وکړي نو د هغه لمونځ باطليږي، همدارنګه به په هېره په خوراک، چښاک سره هم روژه فاسديږي.

**د استحسان دليل:** دا دی چې يو صحابي د روژې په حالت کي په هېره څه خوراک وکړی، او بيا د نبي ﷺ په خدمت کي حاضر سو، ورته وويل: يا رسول الله ﷺ إني أكلت و شربت ناسيا و أنا صائم (اې د الله رسوله! زما روژه وه، ليکن په هېره مي څه خوراک، چښاک وکړی)، نو نبي ﷺ وفرمايل: الله أطعمك و سقاك، يا يې داسي وفرمايل: تم على صومك فإنما أطعمك الله و سقاك، (ته خپل روژه پوره کړه! په تا خو الله خوراک اوچښاک وکړی). له دې حديث څخه دا خبره څرګنديږي چې په هېره په خوراک، چښاک سره روژه نه ماتيږي، د دې حديث د مطابق نور هم ډېر حديثونه سته، او ټوله هملخه وانبيي چې نسيان معاف دی، او په هېره خوراک، چښاک د روژې پر صحت هيڅ اغېزه نه کوي.

وإذا ثبت هذا الخ د دې حاصل دا دی چې دا خو په حديث سره ثابت سو چې په هېره په خوراک، چښاک سره روژه نه ماتيږي، او څرنګه چې د روژې بل فرض له جماع څخه هم منع کېدل او امساک کول دي، او د امساک په مجموعه کي جماع هم سته، نو څکه به په هېره په جماع سره د روژې نه ماتېدلو حکم په دلالتُ النص سره ثابتيږي، څکه چې د منع کېدلو په حکم کي جماع د خوراک، چښاک په ډول ده، او څرنګه چې په هېره په خوراک، چښاک سره روژه نه ماتيږي، نو څکه به په هېره په جماع کولو سره هم روژه نه ماتيږي، او د جماع حکم به په دلالتُ النص سره ثابت وي.

بخلاف الصلاة الخ له دې ځايه صاحب د هدايې د امام مالک رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې روژه پر لمانځه قياسول قياس مع الفارق دی، په دې توګه چې د لمانځه حالت په ياد ورستونکی حالت دی، يعني د لمانځه په ټوله وخت کي د انسان دا په ياد وي چې زه په لمانځه کي يم، څکه چې د لمانځه حالت د عادي او د غير لمانځه له حالت څخه بالکل جلا او مختلف دی، نو د لمانځه په حالت کي هېره او نسيان نه سي غالبېدلای، د دې په خلاف د روژې حالت په ياد ورستونکی نه دی څکه چې د روژتي او غيرِ روژتي دواړو حالت برابر دی، څکه د روژې تعلق د باطن سره دی، نه د ظاهر سره، نو پر روژتي د هيري غالبېدل ډېر ممکن او اکثر دي، او س تاسو وګورئ چې د دومره فرق بلوجود به روژه پر لمانځه قياسول څرنګه صحيح وي.

ولا فرق الخ فرمايي چې روژه که نفلي وي، او که فرضي، په دواړو صورتونو کي په هېره خوراک، چښاک او جماع کولو سره روژه نه فاسدوي، څکه په حديث کي د فرضي او نفلي روژې هيڅ تفصيل او فرق نه دی ذکر سوی، بلکي په دې باره کي حديث مطلق دی والمطلق يجري على إطلاقه.

## په غلطۍ يا د بل چا په زور سره د روژې ماتولو حکم

وَلَوْكَانَ مُخْطِئًا أَوْ مُكْرَهًا او که روژتي خطاء کونکی وي او يا زور پر سوی وي (يعني مجبوره سوی وي) فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ نو پر هغه قضاء واجب ده خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی فَإِنَّهُ يَعْتَبِرُهُ بِالنَّاسِيْ څکه چې امام شافعي رَحِمَهُ الله خطاء کونکی پر هيري والا قياسوي وَلَنَا أَنَّهُ لَا يَغْلِبُ وُجُوْدُهُ او زموږ دليل دا دی چې د خطاء

وجود غالب نه دی وَعُذْرُ النِّسْيَانِ غَالِبٌ او د هيري عذر غالب دی وَلِأَنَّ النِّسْيَانَ مِنْ قِبَلِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ او په دې وجه (هم) چې هېره د هغه چا له طرفه ده چې هغه لره حق ثابت دی (يعني هېره د الله ﷻ له طرفه راځي) وَالْإِكْرَاهُ مِنْ قِبَلِ غَيْرِهِ او اکراه د بل چا له طرفه دی (يعني بنده را ولاړيږي او بل بنده مجبوره کوي) فَيَفْتَرِقَانِ نو نسيان او اکراه به دواړه سره جلا وي كَالْمُقَيَّدِ وَالْمَرِيضِ فِي قَضَاءِ الصَّلَاةِ لکه تړل سوی انسان او مريض انسان د لمانځه په حق کې.

**اللغات:** ﴿مقيد﴾ د تفعيل اسم مفعول دی، تړل سوی سړی (مثلاً په زولنو تړل سوی).

**تشريح:** د نسيان او خطاء په مينځ کې فرق دا دی چې د نسيان په صورت کې خو ناسي (هېرونکی) د فعل اراده کوي، لېکن روژه يې په ياد نه وي، يعني ناسي خو د خوراک، څښاک اراده کوي، لېکن خپله روژه ورته يادو نه وي، او خاطئ (خطاء والا) ته خو روژه يادوي، لېکن د فعل اراده يې نه وي، مثلاً روژتي په خوله اوبه غرغره کړې، او بې له ارادې اوبه ستوني ته ولاړې، نو دلته خو د هغه روژه په ياد وه، لېکن اوبه د هغه په اراده سره ستوني ته نه ولاړې، بلکي په خپله او بې له ارادې ستوني ته ولاړې.

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو روژتي په غلطي او خطاء سره يو شی وخوړي يا يې وڅيښي، يا يې جماع وکړه، يا يو چا په زوره خوراک، څښاک په وکړی، نو زموږ په نيز د هغه روژه ماتيږي، او پر هغه د دې روژې قضاء واجب ده، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې څرنګه د هيري په خوراک، څښاک سره روژه نه ماتيږي، او د هغه قضاء نه واجبيږي، همدارنګه په خطاء يا زور (اکراه) سره هم د خوراک، څښاک په صورت کې روژه نه ماتيږي، او کله چې روژه نه ماتيږي، نو د هغه قضاء به هم واجب نه وي.

زموږ دليل او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دا دی چې په نسيان، خطاء او اکراه کې د مځکي او آسمان فرق دی، او يو پر بل قياسول صحيح نه دي، ځکه چې نسيان کثير الوقوع دی، لېکن خطاء او اکراه دواړه قليل الوقوع دي، دويمه خبره دا ده چې نسيان د صاحبِ حق يعني د الله طرفه راځي، لېکن خطاء او اکراه د بندګانو له طرفه ثابتيږي، نو په نسيان، خطاء اونورو کې ډېر فرق دی، لهذا د دوی احکام به هم جلا جلا وي، او د دواړو په باره کې به يو حکم کول صحيح نه وي، لکه يو سړی چې په زولنو کې بندي وي، او په ناسته لمونځ کوي، او بل سړی مريض وي او هغه هم په ناسته لمونځ کوي، نو د مريض لمونځ خو په ناستي سره صحيح کيږي، او د راګرځولو ضرورت يې نسته، لېکن په زولنو کې بندي سړی چې کله آزاد کړی سي، نو پر هغه به د لمانځه راګرځول واجب وي، ځکه چې بندول او قيدول د بندګانو فعل دی، او مريض کول (ناروغه کول) د الله فعل دی، او د بنده او د الله په فعل کې فرق دی، نو د دغو دافعالو په احکامو کې به هم فرق وي.

## په روژه کې د احتلام حکم

وَإِنْ نَامَ فَاحْتَلَمَ لَمْ يُفْطِرْ او که روژتي بيده سو او احتلام ورته راغلی نو روژه يې نه ماتيږي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَلَاثٌ لَا يُفَطِّرْنَ الصِّيَامَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې درې شيان روژه نه ماتوي الْقَيْءُ وَالْحِجَامَةُ وَالْاِحْتِلَامُ قی، ښکر لګول او احتلام وَلِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ صُورَةُ الْجِمَاعِ وَلَا مَعْنَاهُ او په دې وجه (هم) چې نه د جماع

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصوم، باب ما جاء في الصائم يذرعه القيئ، حديث رقم: ۷۱۹.

صورت پیدا سو او نه د جماع معنیٰ وَهُوَ الإِنْزَالُ عَنْ شَهْوَةٍ بِالْمُبَاشَرَةِ او د جماع معنیٰ د کوروالي په ذریعه په شهوت سره انزالېدل دي.

**اللغات:** ﴿المباشرة﴾ جماع، کوروالی.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې په احتلام سره روژه نه فاسدیږي، لهذا که یو روژتي بیده سو، او شیطان خطا ایستی، نو د هغه روژه نه فاسدیږي، ځکه په حدیث کي ذکر سوي دي چې درې شیان روژه نه ماتوي: (۱) بې اختیاره قی وهل، (۲) ښکر لګول، (۳) احتلام کېدل. عقلي دلیل دا دی چې روژه خو ماتیږي په جماع سره، او په احتلام کي نه صورتاً جماع سته، او نه معناً. صورتاً جماع خو ښکاره ده چې نسته، او د معناً جماع کیفیت دا دی چې دخول نه وسي، لېکن بیا هم د ښځي او نر د یو ځاي والي په وجه په شهوت سره انزال وسي، نو معناً جماع هم نسته، ځکه چې دلته خو نه نر او ښځه سره یو ځای سوي دي، او نه په شهوت سره انزال سته، نو ځکه به جماع نه ثابتیږي، او کله چې جماع ثابته نه سوه، نو روژه به هم نه فاسدیږي.

## په روژه کي ښځي ته په کتلو سره یا په موټ وهلو (استنماء بالید) سره د انزال حکم

وَكَذَا إِذَا نَظَرَ إِلَى امْرَأَةٍ فَأَمْنَى او همدارنګه که روژتي یو ښځي ته وکتل او انزال سو (نو روژه یې نه ماتیږي) لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی فَصَارَ كَالْمُتَفَكِّرِ إِذَا أَمْنَى او دا داسي سو لکه (د ښځي په باره کي) سوچ کونکی سړی چې کله هغه انزال سي وَكَالْمُسْتَمْنِي بِالْكَفِّ عَلَى مَا قَالُوا او لکه په ورغوي سره د منی وو را ایستونکي سړی لکه څرنګه چې فقهاؤ ویلي دي.

**اللغات:** ﴿أمنى﴾ د افعال د باب ماضي ده: مني وتل، انزالېدل. ﴿مستمني﴾ د استفعال د باب اسم فاعل دی: مني را ایستل.

**تشریح:** مسئله: دا ده که روژتي یوه ښځه ولیدله، او انزال سو، یا روژتي د یوې ښځي د ښکلا او ښایست په باره کي سوچ کوی، او انزال سو، یا یو چا په خپله په لاس مني راوستله، نو په دې ټولو صورتونو کي روژه نه فاسدیږي، ځکه چې په یوه صورت کي هم نه صورتاً جماع سته او نه معناً، نو کله چې هیڅ ډول جماع نسته، نو روژه به هم نه فاسدیږي، ځکه چې روژه فاسدیږي په جماع سره.

ښځي ته په کتلو یا د هغې په باره کي په سوچ سره د انزال په صورت کي روژه نه ماتېدل خو د قیاس مطابق دي، لېکن په موټ وهلو سره د روژې ماتېدل یا نه ماتېدل مختلف فیه دي، صاحب د هدایې چې کومه رایه ذکر کړې ده، هغه د بعضي مشائخو ده، لېکن د اکثره مشائخو رایه دا ده چې موټ وهل روژه فاسدوي، او همدا محقق او مختاره قول دی.

## په روژه کي د تېلو، رانجو او ښکر لګولو حکم

وَلَوِ ادَّهَنَ لَمْ يُفْطِرْ او که روژتي تېل ولګوي نو روژه یې نه ماتیږي لِعَدَمِ الْمُنَافِي ځکه د روژې (یو) منافي (شی) نسته وَكَذَا إِذَا احْتَجَمَ او همدارنګه چې کله ښکر ولګوي (نو روژه یې نه ماتیږي) لِهَذَا وَلِمَا رَوَيْنَا د دې دلیل په وجه او د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی وَلَوِ اكْتَحَلَ لَمْ يُفْطِرْ او که سترګي رانجه کړي نو (هم) یې روژه نه

ماتيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بَيْنَ الْعَيْنِ وَالدِّمَاغِ مَنْفَذٌ ځکه چې د سترګي او دماغ په مينځ کي هيڅ لاره نشته وَالدَّمْعُ يَتَرَشَّحُ كَالْعَرَقِ او اوښکي د خولو په ډول راځاځي وَالدَّاخِلُ مِنَ الْمَسَامِ لَا يُنَافِي او په مسام کي داخلېدونکی شی د روژې منافي نه دی كَمَا لَوِ اغْتَسَلَ بِالْمَاءِ الْبَارِدِ لکه يو څوک چې په يخو اوبو سره غسل وکړي.

**اللغات:** ﴿الدهن﴾ د افتعال د باب ماضي ده، په اصل کي ادتهن وو: تېل او غوړي لګول. ﴿احتجم﴾ مخکنی صيغه ده: ښکر لګول. ﴿اکتحل﴾ مخکنی صيغه ده: رانجه لګول. ﴿منفذ﴾ لاره. ﴿دمع﴾ اوښکي. ﴿يترشح﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: څڅېدل، بهېدل ﴿عرق﴾ خوله. ﴿مسام﴾ د وېښتو په بېخ کي هغه نرۍ سورۍ چې خوله ځني راوځي، جمع يې مسامات راځي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې د روژتي لپاره تېل، ښکر، او رانجه لګول ټوله صحيح او جائز دي، او له دې شيانو څخه يو شی هم روژه نه فاسدوي، ځکه نه خو تېل لګول د روژې منافي دي، او نه ښکر او رانجه لګول د روژې منافي دي، او بيا د ښکر لګولو په باره کي خو په دې حديث: ثلاث لايفطرن الصيام القيئ والحجامة والاحتلام، کي دا صراحت هم سوی دی چې هغه روژه نه ماتوي، همدارنګه په رانجه لګولو سره هم د روژې پر صحت هيڅ اغېزه نه پرېوځي، ځکه چې رانجه په سترګو کي لګېږي، او د سترګو او دماغ په مينځ کي هيڅ لاره نشته، چې په هغه سره رانجه سيده دماغ يا ستوني ته ولاړ سي، او قاعده دا ده چې کله يو شی دماغ يا ستوني يا نس ته ورسيږي، نو هغه روژه فاسدوي، او که دا سوال وسي چې کله د دماغ او سترګو په مينځ کي لاره نشته نو اوښکي له کومه راوځي، جواب دا دی چې اوښکي هم د خولې (عرق) په ډول له مساماتو او له کوچنيو سوريو څخه راوځي، لهذا په دې سره پر لاره دليل نيول صحيح نه دي. او د مساماتو له لاري څخه چې يو شی داخل سي، نو په هغه سره د روژې په صحت کي هيڅ اثر نه راځي، لکه يو څوک چې په يخو اوبو سره ولمبيږي، نو د مساماتو په ذريعه هغه په بدن کي دننه يخوالي او تازګي احساسوي، او په ټوله بدن کي يې يو ډول سېرابي او چستي راسي، لېکن بيا هم په دې سره روژه نه ماتيږي، همدارنګه که د رانجو اثر هم د مساماتو په ذريعه تر ستوني پوري ورسيږي، نو په دې سره به روژه نه ماتيږي.

## په روژه کي د مچي اخيستلو حکم

وَلَوْ قَبَّلَ امْرَأَةً لَا يَفْسُدُ صَوْمُهُ او که روژتي خپله ښځه مچ کړي نو روژه يې نه فاسديږي يُرِيْدُ بِهِ إِذَا لَمْ يُنْزِلْ مراد دا دی چې کله انزال نه سي لِعَدَمِ الْمُنَافِي صُوْرَةً وَمَعْنًى ځکه چې منافي نه صورتاً سته او نه معناً بِخِلَافِ الرَّجْعَةِ وَالْمُصَاهَرَةِ په خلاف د رجعت او مصاهرت لِأَنَّ الْحُكْمَ هُنَاكَ أُدِيْرَ عَلَى السَّبَبِ ځکه چې هلته د حکم مدار پر سبب دی عَلَى مَا يَأْتِيْ فِيْ مَوْضِعِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ چې پر خپل ځای به (د هغه تفصيل) راسي انشاء الله تعالیٰ.

**اللغات:** ﴿قبّل﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: مچول. ﴿مصاهرة﴾ هغه قرابت چې د زوم له طرفه وي، (حرمتِ مصاهرت).
﴿أدير﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: مدار کېدل.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو روژتي سړي له خپلي ښځي څخه په شهوت مچه واخيستله، او انزال نه سو، نو د هغه روژه نه فاسديږي، ځکه چې په مچولو کي نه صورتاً جماع سته، او نه معناً، او جماع روژه فاسدوي، نو کله چې د جماع هيڅ احتمال او شبهه نشته، نو ښکاره ده چې روژه به هم نه فاسديږي، د دې په خلاف که يو سړي په خپله طلاقه سوې

ښځه (چي هغه په رجعي طلاق سره طلاقه سوي وه په عدت کي) په شهوت سره مچ کړه، نو رجعت ثابتيږي، همدا ډول که يوه پردۍ ښځه يې په شهوت سره مچ کړه، نو حرمتِ مصاهرت ثابتيږي، ځکه په رجعت او مصاهرت کې د حکم دارومدار د جماع پر سبب دی، نو څرنګه چي په جماع سره رجعت او مصاهرت ثابتيږي، همدارنګه به د جماع په سبب يعني په مچه اخيستلو سره هم ثابتيږي.

## په روزه کي په مچه اخيستلو يا مسه کولو سره د انزال حکم

وَلَوْ أَنْزَلَ بِقُبْلَةٍ أَوْ لَمْسٍ او که روژتي انزال سو په مچه اخيستلو يا مسه کولو سره فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ دُونَ الْكَفَّارَةِ نو پر هغه قضاء واجب ده نه کفاره لِوُجُودِ مَعْنَى الْجِمَاعِ ځکه چي د جماع معنیٰ پيدا سوه وَوُجُودِ الْمُنَافِي صُورَةً أَوْ مَعْنًى يَكْفِي لِإِيجَابِ الْقَضَاءِ احْتِيَاطًا او صورتاً يا معناً د منافي پيدا کېدل د قضاء واجبولو لپاره کافي دي أَمَّا الْكَفَّارَةُ فَتَفْتَقِرُ إِلَى كَمَالِ الْجِنَايَةِ هر چي کفاره ده نو هغه بشپړ جنايت (جرم) ته احتياج لري لِأَنَّهَا تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ كَالْحُدُودِ ځکه چي کفاره د شبهاتو په وجه سره ساقطيږي لکه حدود چي د شبهاتو په وجه ساقطيږي.

**اللغات:** ﴿قبلة﴾ مچه، ﴿تفتقر﴾ د افتعال د باب مضارع ده: محتاجه کېدل، موقوفه کېدل، ﴿تندرئ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ختمېدل، ساقطېدل، ليري کېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده که روژتي يوه ښځه مچ کړه، يا يې مسه کړه، او انزال سو، نو د هغه روژه فاسده سوه، خو پر هغه روژې قضا واجب ده، او کفاره پر واجب نه ده، قضاء خو ځکه واجب ده چي جماع که څه هم صورتاً نسته، لېکن معناً جماع سته چي دواړه په شهوت سره يوځای سول، او انزال وسو، که څه هم دخول نه دی سوی، دې ته معناً جماع ويل کيږي، او احتياطاً د قضاء د واجبولو لپاره د روژې د منافي پيدا کېدل کافي دي، هغه که صورتاً پيدا سي، او که معناً پيدا سي، او کفارې ځکه واجب نه ده چي کفاره هغه وخت واجبيږي، چي کله جرم په بشپړه توګه ثابت سي، او دلته د صورتاً جماع د نشتوالي په وجه جرم سپک سو، بلکي يو ډول د جماع د نشتوالي شبهه پيدا سوه، او دا خبره تسليم سوې ده چي د شبهاتو په وجه کفارې ساقطيږي، لکه څرنګه چي د شبهاتو په وجه حدود ساقطيږي.

## په روزه کي د مچې اخيستلو تفصيلي حکم

وَلَا بَأْسَ بِالْقُبْلَةِ إِذَا أَمِنَ عَلَى نَفْسِهِ او په مچه اخيستلو کي هيڅ پروا نسته چي کله پر خپل ځان د روژتي قابو وي أَيْ الْجِمَاعَ أَوِ الْإِنْزَالَ يعني له کوروالي يا انزال څخه (يې پر ځان قابو وي) وَيُكْرَهُ إِذَا لَمْ يَأْمَنْ او مکروه دي که پر خپل ځان د هغه قابو نه وي لِأَنَّ عَيْنَهُ لَيْسَ بِمُفْطِرٍ ځکه چي په خپله مچه اخيستل روژه نه ماتوي وَرُبَّمَا يَصِيرُ فِطْرًا بِعَاقِبَتِهِ (بلکي) کله نا کله د هغه په انجام (يعني په جماع) سره روژه ماتيږي فَإِنْ أَمِنَ يُعْتَبَرُ عَيْنُهُ وَأُبِيحَ لَهُ نو که روژتي په امن (او قابو کي) وي نو د خاص مچې اعتبار به کيږي او د هغه لپاره به مچه مباح وي وَإِنْ لَمْ يَأْمَنْ تُعْتَبَرُ عَاقِبَتُهُ وَكُرِهَ لَهُ او که په امن کي نه وي نو د هغه د انجام اعتبار به کيږي او د هغه لپاره به مچه مکروه وي وَالشَّافِعِيُّ أَطْلَقَ فِيهِ فِي الْحَالَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله په دواړو حالتونو کي مچه اخيستل جائز کړي دي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَا او د امام

شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف هغه دليل حجت دی كوم چې مونږ ذكر كړی وَالْمُبَاشَرَةُ الْفَاحِشَةُ مِثْلُ التَّقْبِيلِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او مباشرتِ فاحشه د مچې اخيستلو په شان ده (يعنې جائز ده) په ظاهر روايت كې وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ كَرِهَ الْمُبَاشَرَةَ الْفَاحِشَةَ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې مباشرتِ فاحشه مكروه دی لِأَنَّهَا قَلَّمَا تَخْلُو عَنِ الْفِتْنَةِ ځكه چې مباشرتِ فاحشه ډېر لږ له فتنې څخه خالي وي.

**اللغات:** ﴿مظنة﴾ انجام. ﴿المباشرة الفاحشة﴾ مباشرتِ فاحشه دې ته ويل كيږي چې نر د ښځې په فرج (شرمگاه) كې دخول نه وكړي بلكې صرف فرجونه سره ومږي.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې د روژتي لپاره نه مطلقاً مچې اخيستل جائز دي، او نه مطلقاً مكروه، او ممنوع دي، بلكې اصل حكم دا دی چې كه روژتي ته پر خپل نفس قابو (او كنترول) وو، او د مچو د اخيستلو په صورت كې دا يره ورته نه وه چې له حد څخه به تېر سي، او جماع به وكړي، نو د هغه لپاره مچې اخيستل جائز دي، ليكن كه په مچو اخيستلو سره د جماع يا انزال انديښنه وه، نو په دې صورت كې د هغه لپاره مچې اخيستل مكروه دي.

د دې تفصيل علت صاحب د هدايې دا بيانوي چې فی نفسه مچه اخيستل روژه نه ماتوي، ليكن كله نا كله په مچولو مچولو كې له انسان څخه جماع كيږي، يا انزاليږي، نو د آخري انجام په اعتبار سره مچه اخيستل مفسد د روژې جوړيږي، لهذا كوم انسان چې له جماع او انزال څخه په امن وي، د هغه په حق كې به خاص د مچې اعتباره كيږي او د مچولو اجازه به وركول كيږي، ځكه چې فی نفسه مچه روژه نه ماتوي، او كوم سړي ته چې د جماع او انزال يره وي، د هغه په حق كې به د مچې د انجام اعتبار كيږي، او د هغه لپاره به د روژې په حالت كې مچه اخيستل مكروه وي. له دې څخه د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حديث مفهوم هم ښكاريږي چې هغه فرمايي: "نبي ﷺ به د روژې په حالت كې له ما څخه مچه اخيستل". نو د نبي ﷺ په حق كې به هم خاص د مچې اعتبار وو، ځكه چې په ټوله مخلوق كې له نبي ﷺ څخه زيات بل څوك صابر او پر نفس قابو لرونكی نه وو.

والشافعي الخ فرمايي چې امام شافعي رَحِمَهُ الله مطلقاً د خاص مچې اعتبار كړی دی، او د امن او غير امن په دواړو حالتونو كې يې مچه اخيستل بې له كراهته جائز كړي دي، ليكن زمونږ بيان سوی دليل د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت او دليل دی.

والمباشرة الخ فرمايي چې د ظاهر الرواية مطابق مباشرتِ فاحشه هم د مچولو په شان دی، يعنې جائز دی كه يې پر ځان قابو وو، او مكروه دی كه قابو نه وو، مباشرت فاحشه دا دی چې نر او ښځه د لڅوالي په حالت كې د خپلو شرمگاوو سربېرني حصې سره ومږي او دخول نه وكړي.

ليكن امام محمد رَحِمَهُ الله مباشرتِ فاحشه مطلق مكروه كړی دی، ځكه مباشرت فاحشه په عامه توگه له انسان څخه ورخ وړي، او څه نا څه په انسان خلمخا كوي، نو ځكه دا صورت مطلقاً مكروه دی. او په دې زمانه كې احتياط هم په دې كې دی چې پر دې قول فتوی وركول سي، ځكه د روژې مقصد د الله تعالیٰ عبادت دی، نه عيش او مستي.

## د روژتي ستوني ته د مچ، ګرز او د داسې نورو د ننوتلو حکم

وَلَوْ دَخَلَ حَلْقَهُ ذُبَابٌ او که د روژتي ستوني ته مچ ننوځي وَهُوَ ذَاكِرٌ لِصَوْمِهِ لَمْ يُفْطِرْ او د هغه خپله روژه په ياد (هم) وي نو روژه يې نه ماتيږي وَفِي الْقِيَاسِ يَفْسُدُ صَوْمُهُ او قياس دا دی چې روژه يې ماتيږي لِوُصُولِ الْمُفْطِرِ إِلَى جَوْفِهِ ځکه چې د روژې ماتونکی شی د هغه نس ته ورسيدی وَإِنْ كَانَ لَا يَتَغَذَّى بِهِ كَالتُّرَابِ وَالْحَصَاةِ که څه هم په داسې شي سره غذاء نه حاصليږي لکه خاوره او شګې وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّهُ لَا يُسْتَطَاعُ الْاِحْتِرَازُ عَنْهُ د استحسان دليل دا دی چې له مچ څخه ځان خوندي کول ممکن نه دي فَأَشْبَهَ الْغُبَارَ وَالدُّخَانَ نو دا د ګرز او دود سره مشابه سو وَاخْتَلَفُوْا فِي الْمَطَرِ وَالثَّلْجِ او مشائخو په باران (يعني د باران په څاڅکو) او واوره کې اختلاف کړی دی وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَفْسُدُ او صحيح دا ده چې (په هغو سره) روژه ماتيږي لِإِمْكَانِ الْاِمْتِنَاعِ عَنْهُ ځکه چې له هغو څخه خوندي کېدل ممکن دي إِذَا آوَاهُ خَيْمَةٌ أَوْ سَقْفٌ چې کله روژتي ته خېمه يا بام (چت) پناه ورکړي.

**اللغات:** ﴿ذباب﴾ مچ، ﴿جوف﴾ خالي ځای، نس، ﴿تراب﴾ خاورې، ﴿حصاة﴾ شګې، کوچنی ډبرې، ﴿دخان﴾ دود، ﴿ثلج﴾ واوره، (ژلی)، ﴿آوی﴾ پناه ورکول، ځای ورکول، ﴿سقف﴾ بام (چت).

**تشريح: مسئله:** دا ده که د روژتي په ستوني مچ دننه سو او معدې ته يې ورسېدی، نو استحساناً د هغه روژه نه ماتيږي، او قياساً يې روژه ماتيږي، د قياس دليل دا دی چې معدې ته د روژې ماتونکی شی ورسېدی، نو ځکه به روژه ماتيږي، که څه هم په دې شي سره غذاء نه حاصليږي، او نه د غذاء په توګه استعماليږي، لېکن بيا هم معدې ته به د هغه په رسېدلو سره روژه فاسديږي، لکه څرنګه چې په هغه صورت کې هم روژه فاسديږي چې کله شګه، يا کوچنی لوټه، يا خاورې تيرې سي، حال دا چې دا شيان هم د غذاء په توګه نه استعماليږي.

د استحسان دليل دا دی چې له مچ څخه خوندي کېدل ناممکن دي، ځکه ډېر ځله مچ په خپله بې له ارادې د انسان په خوله ننوځي، او معدې ته رسيږي، نو ګواکې مچ د ګرز او دود سره مشابه سو، او ګرز او دود که بې اختياره ستوني ته ننوځي نو بالاجماع په هغه سره روژه نه فاسديږي، لهذا د بې اختياره مچ ننوتلو په صورت کې به هم روژه نه فاسديږي.

واختلفوا الخ فرمايي که د يو روژتي په خوله کې د باران څاڅکي، ژلی يا د واورې ټوکره ولوېږي، او معدې ته ورسيږي، نو آيا په دې سره روژه ماتيږي، که نه؟ په دې باره کې د مشائخو څو قولونه دي: (۱) اول قول دا دی چې په خوله کې د دې شيانو په لوېدلو سره د روژې پر صحت هيڅ اغېزه نه پرېوځي، او روژه نه ماتيږي، (۲) دوېم قول دا دی چې د باران څاڅکي خو روژه ماتوي، لېکن ژلی او د واورې ټوکره روژه نه ماتوي، (۳) درېيم او تر ټولو صحيح قول دا دی چې دا شيان روژه ماتوي، دليل دا دی چې د باران له څاڅکو، ژلی او واورې څخه ځان ساتل ممکن دي، په دې توګه چې کله باران، ژلی يا واوره کېږي، نو يوې خېمې يا بام لرونکي ځای ته دې پناه يوسي، لهذا کله چې له دې شيانو څخه ځان ساتل ممکن دي، نو دا د ګرز او دود سره مشابه نه سول، صاحب د فتح القدير فرمايي چې که علت دا بيان سي نو ډېره به غوره وي چې: "د خولې په بندولو له باران، ژلی او واورې څخه ځان ساتل ممکن دي"، ځکه چې کله نا کله يو څوک مسافر وي، او هغه ته نژدې هيڅ خېمه، چترۍ (سايه وان) او بام لرونکی ځای نه وي، نو د هغه لپاره به له دې شيانو څخه

ځان خوندي کول ممکن نه وي. لهذا که دا پورتني علت بيان سي، نو ډېره به غوره وي، ځکه چي دا علت جامع دی، او هيڅ ستونزه پکښې نه راځي.

## په روژه کي د غاښو د غوښو او د ذرّو د تېرولو حکم

وَلَوْ أَكَلَ لَحْمًا بَيْنَ أَسْنَانِهِ او که روژتي د خپلو غاښو په مينځ کي (بندي سوي) غوښې وخوري فَإِنْ كَانَ قَلِيلاً لَمْ يُفْطِرْ نو که هغه لږ وي نو روژه نه ماتيږي وَإِنْ كَانَ كَثِيرًا يُفْطِرُ● او که ډېري وي نو روژه ماتيږي وَقَالَ زُفَرُ: يُفْطِرُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام زفر رَحِمَهُ الله وايي: په دواړو صورتونو کي روژه ماتيږي لِأَنَّ الْفَمَ لَهُ حُكْمُ الظَّاهِرِ ځکه چي خولې ته دبدن د ظاهر حکم حاصل دی حَتَّى لَا يَفْسُدَ صَوْمُهُ بِالْمَضْمَضَةِ تر دې چي په غرغره کولو سره د هغه روژه نه فاسديږي وَلَنَا أَنَّ الْقَلِيلَ تَابِعٌ لِأَسْنَانِهِ بِمَنْزِلَةِ رِيقِهِ او زموږ دليل دا دی چي لږ شی د هغه د غاښو تابع دی (او) د هغه د ناړو په درجه کي دی بِخِلَافِ الْكَثِيرِ لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى فِيمَا بَيْنَ الْأَسْنَانِ په خلاف د ډېر شي ځکه چي هغه د غاښو په مينځ کي نه پاتيږي (بنديږي) وَالْفَاصِلُ مِقْدَارُ الْحِمَّصَةِ او (د ډېر او لږ په مينځ کي) فصل کونکی د نخود مقدار دی وَمَا دُونَهَا قَلِيلٌ او تر نخود کم شی لږ دی.

**اللغات**: ﴿أسنان﴾ جمع د سن ده: غاښونه، ﴿مضمضة﴾ خوله پرېولل، په خوله اوبه غرغره کول، ﴿ريق﴾ ناړي، لاړي، ﴿حمصة﴾ نخود، په کسره د ميم سره هم ويل کېداى سي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د روژتي په غاښو کي د غوښو يوه ريښه يا ديوه بل شي ذره بنده سوه، او هغه دې شي ته په ژبه سره حرکت ورکړي، او تېريې کړي، نو ريښه او ذره که په لږ اندازه وه (يعني کوچنۍ وه)، نو روژه نه فاسديږي، او که په ډېره اندازه وه، نو فاسديږي امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو صورتونو کي روژه فاسديږي.

**د امام زفر دليل**: دا دی چي دننه خولې ته د ظاهري (دباندېني) بدن حکم حاصل دی، يعني کوم حکم چي د ښکاره او دباندې بدن دی، هغه حکم به د دننه خولې هم وي، او د دباندې بدن حکم دا دی چي که لږ شی هم له دباندي ځخه خولې ته واچول سي، او تېر سي نو روژه فاسديږي، لهذا که په خوله کي لږ شی وو او تېر سو، نو هم به روژه فاسديږي، د دې دليل چي دننه خولې ته د ظاهري بدن حکم حاصل دی، دا دی چي که يو څوک د روژې په حالت کي اوبه غرغره کړي او بيرته يې تو کړي، نو د هغه روژه نه ماتيږي، نو که خولې ته د ظاهري بدن حکم حاصل نه واى، نو روژه به يې خامخا ماتېدلاى، لهذا کله چي معلومه سوه چي دننه خولې ته د ظاهري بدن حکم حاصل دی، نو د غوښو ريښه يا يوه ذره چي په خوله کي وي، د هغه تېرول به داسي وي لکه له خولې ځخه دباندي چي يو شی را وخيستل سي، او تېر سي، او له دباندي ځخه د لږ شي خوړل هم روژه فاسدوي، نو ځکه به د کوچنۍ ريښې يا ذرې په خوړلو سره هم روژه فاسديږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د غوښو ريښه يا ديو بل شي ذره که په لږ اندازه وه (يعني کوچنۍ وه)، نو د هغه د غاښونو تابع ده، ځکه چي له هغه ځخه غاښونه ساتل ممکن نه دي، لهذا لږ شی د ناړو په درجه کي سو، او په ناړو تېرولو سره روژه نه

---

● القول الراجح: قول علمائنا الثلاثة في القليل والكثير أي في القليل لا يفطر و في الكثير يفطر، كذا في الهندية ج:۱، ص: ۲۰۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۷]

فاسديږي، لهذا په دې لږ اندازه ربنه يا نوره سره به هم روژه نه فاسديږي، ليکن زياته اندازه يعني غټه ربنه او نوره په حلق توګه د غاښونو په مينځ کې نه پاتېږي، او له هغه شخصه ځان ساتل ممکن دي، نو ځکه به هغه د ظاهرو په حکم کې نه وي.

والفاصل الخ فرمايي چې د لږ او ډېرې اندازې په مينځ کې فاصل او بېلوونکې شی د نخود اندازه ده، نو کومه ربنه يا نوره چې د نخود په اندازه وي يا تر هغه غټ وي، نو هغه به غټه ربنه يا نوره وي، او روژه به ماتوي، او که تر نخود لږ وي، نو هغه به کمه اندازه يعني کوچنۍ ربنه يا نوره وي، او روژه به نه ماتوي.

راجح قول: په پورتنۍ مسئله کې زموږ قول راجح دی يعني که په غاښو کې بند سوی شی په لږ اندازه وو، نو روژه نه ماتېږي، او که په زياته اندازه وو، نو روژه ماتېږي، پاته سوه دا خبره چې په زياته اندازه کې کفاره واجبېږي، که نه؟ نو په دې باره کې څلور قولونه دي، خو په دې ټولو کې راجح قول د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله دی، يعني کفاره نه واجبېږي، چې په را روان عبارت کې به هم ذکر سي، کما قال في الهندية: وإن أكل ما بين أسنانه لم يفسد إن كان قليلا وإن كان كثيرا يفسد...... وفي الكفارة أقاويل (أربعة) والأصح أنه لا تجب الكفارة (هندية ج۱، ص۲۰۲)، [القول الراجح، ج۱، ص۱۹۷]

## د پورتنۍ مسئلې څه نور وضاحت

وَإِنْ أَخْرَجَهُ وَأَخَذَهُ بِيَدِهِ او که روژتي دا شی له (له غاښو څخه) راوستی او په لاس کې يې ونيوی ثُمَّ أَكَلَهُ يَنْبَغِي أَنْ يَفْسُدَ صَوْمُهُ او بيا يې وخوړی نو مناسب دا ده چې د هغه روژه فاسده سي لِمَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ لکه څرنګه چې روايت سوی دی له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه أَنَّ الصَّائِمَ إِذَا ابْتَلَعَ سِمْسِمَةً بَيْنَ أَسْنَانِهِ لَا يَفْسُدُ صَوْمُهُ چې که روژتي د خپلو غاښو په مينځ کې (بند سوې) کونجته تېره کړي نو د هغه روژه نه فاسديږي وَلَوْ أَكَلَهَا ابْتِدَاءً يَفْسُدُ صَوْمُهُ او که هغه ابتداءً کونجته وخوري نو د هغه روژه فاسديږي وَلَوْ مَضَغَهَا لَا يَفْسُدُ او که ويې ژووي (او تېره يې کړي) نو نه فاسديږي لِأَنَّهَا تَتَلَاشَى ځکه چې د ژوولو په وجه کونجته بالکل نيست و نابود کيږي وَفِي مِقْدَارِ الْحِمَّصَةِ عَلَيْهِ الْقَضَاءُ او د نخود په اندازه کې پر هغه قضاء واجب ده دُونَ الْكَفَّارَةِ نه کفاره عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ دا حکم د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله په نېز دی وَعِنْدَ زُفَرَ عَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ أَيْضًا او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه کفاره هم واجب ده لِأَنَّهُ طَعَامٌ مُتَغَيِّرٌ ځکه چې دا خراب سوي خواړه دي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يَعَافُهُ الطَّبْعُ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې دا طبيعت ناخوښه ګڼي (يعني طبيعت له دې څخه نفرت کوي).

اللغات: ﴿ابتلع﴾ د افتعال ماضي ده: تېرول. ﴿سمسمة﴾ کونجته. ﴿مضغ﴾ د فتح ماضي ده: ژوول. ﴿تتلاشى﴾ د تفاعل مضارع ده: لا شی کېدل، بالکل ختمېدل. ﴿يعاف﴾ له سَمِعَ او ضَرَبَ دواړو بابونو څخه راځي: ناخوښه او ناوړه ګڼل.

تشريح: مسئله: دا ده که روژتي په غاښو کې بند سوی شی په خپل لاس له خولې څخه دباندې راوستی، بيا يې وخوړی، نو مناسب دا ده چې په دې صورت کې روژه فاسده سي، که څه هم دا شی د نخود له دانې څخه کم وي، لکه څرنګه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله روايت هم داسې دی چې که روژتي په غاښو کې بنده سوې کونجته تېره کړه، نو روژه

نه فاسديږي، او كه كونجته يې ابتداءً په خوله كې واچوله (يعني په غاښو كې كونجته نه وه، بلكې له د باندې شخص يې را واخيستله او په خوله كې يې واچوله)، نو روژه فاسديږي، او كه كونجته يې په خوله كې واچوله او وې ژوله، بيا يې تېره كړه، نو په دې سره هم روژه نه فاسديږي، ځكه چې د ژوولو په وجه د كونجتې دانه بالكل ختميږي، او د غاښو، ژبې او ووری سره مښلي، او تر معدې پورې نه رسيږي، حال دا چې تر معدې پورې د غذا رسېدل روژه فاسدوي، او هغه دلته نشته، نو ځكه به روژه نه فاسديږي.

ول مقدار الحمصة الخ او كه يو روژتي د نخود په اندازه په غاښو كې بند سوی شی تېر كړی (يعني په لاس يې دباندې نه را ويستی)، نو روژه يې فاسديږي، لكه څرنګه چې مخكې هم د دې حكم تېر سو، او د روژې قضاء پر واجب ده، اوس دلته دا بيان كوي چې آيا كفاره پر واجبيږي، كه نه؟ نو فرمايي چې د كفارې په واجبېدلو كې اختلاف دی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز كفاره نه واجبيږي، او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې كفاره واجبيږي. (مخكې په راجح قول كې هم په اجمالي توګه د دې بيان وسو)

دامام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د نخود په اندازه چې كوم شی په غاښو كې بند سوی وي، د هغه په غذائيت كې نقصان او خرابي پيداه سي، ځكه چې د هر ځله په هغه كې داسې ناوړه بوی پيدا كيږي چې طبيعت له هغه شخه نفرت كوي، نو د داسې شي خوړل خو جنايت سو، لېكن ناقص جنايت سو، او په ناقص جنايت سره كفاره نه واجبيږي، لهذا په دې صورت كې به هم كفاره نه واجبيږي.

## په روژه كې د قي وهلو صورتونه او د هغو احكام

فَإِنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ لَمْ يُفْطِرْ او كه روژتي ته په خپله قي راغلې نو روژه يې نه ماتيږي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1]: مَنْ قَاءَ فَلَا قَضَاءَ عَلَيْهِ ځكه نبي ﷺ كريم فرمايلي دي: "چا چې قی وكړی پر هغه قضاء واجب نه ده وَمَنِ اسْتَقَاءَ عَامِدًا فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ او كه يو چا قصداً قی وكړی نو پر هغه قضاء واجب ده" وَيَسْتَوِي فِيهِ مِلْءُ الْفَمِ فَمَا دُونَهُ او په دې كې دكه خوله او له دې شخه كم (دواړه) برابره دي فَلَوْ عَادَ بيا كه قی په خپله دننه ولاړی وَكَانَ مِلْءَ الْفَمِ او په دكه خوله وو فَسَدَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز روژه فاسديږي لِأَنَّهُ خَارِجٌ ځكه چې هغه خارج دی (يعني ګواكې له خولې شخه راوتلی دی) حَتَّى انْتَقَضَ بِهِ الطَّهَارَةُ همدا وجه ده چې په هغه سره اودس ماتيږي وَقَدْ دَخَلَ او (تر را وتلو وروسته بيرته) دننه ولاړی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَفْسُدُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز روژه نه فاسديږي لِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ صُورَةُ الْفِطْرِ ځكه چې د افطار صورت پيدا نه سو وَهُوَ الْإِبْتِلَاعُ او افطار تېرول دي وَكَذَا مَعْنَاهُ او همدارنګه د افطار معنیٰ هم پيدا نه سوه لِأَنَّهُ لَا يُتَغَذَّى بِهِ عَادَةً ځكه چې په دې سره عادتاً غذاء نه حاصليږي وَإِنْ أَعَادَهُ فَسَدَ بِالْإِجْمَاعِ او كه روژتي (قصداً) قی راوګرځوی (يعني په خپله دننه نه ولاړی بلكې تېر يې كړی) نو بالاتفاق روژه

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصيام، باب الصائم يستقي عامداً، حديث رقم: ۲۳۹، والترمذي في كتاب الصوم، باب ما جاء فيمن استقاء عمداً حديث رقم: ۷۲۰.

فاسديږي لِوُجُوْدِ الْإِدْخَالِ بَعْدَ الْخُرُوْجِ ځکه چي تر را وتلو وروسته داخلول پيدا سوه فَتَتَحَقَّقُ صُوْرَةُ الْفِطْرِ نو د افطار صورت متحقق سو وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ مِلْءِ الْفَمِ او که له ډکي خولي څخه کم قی وو فَعَادَ او دننه ولاړی لَمْ يَفْسُدْ صَوْمُهُ نو د هغه روژه نه فاسديږي لِأَنَّهُ غَيْرُ خَارِجٍ ځکه چي دا خارج نه دی وَلَاصُنْعَ لَهُ فِي الْإِدْخَالِ او نه د دې په داخلولو کي د روژتي څه فعل سته وَإِنْ أَعَادَهُ او که روژتي هغه راوګرځوی (يعني تېر يې کړی) فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز هم دغه حکم دی لِعَدَمِ الْخُرُوْجِ ځکه چي خروج پيدا نه سو وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ الله يَفْسُدُ صَوْمُهُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د هغه روژه فاسديږي لِوُجُوْدِ الصُّنْعِ مِنْهُ فِي الْإِدْخَالِ ځکه چي په داخلولو کي د روژتي فعل پيدا سو.

**اللغات:** ﴿ذرع﴾ قی غالبه کېدل، خوا ګرځي زياتېدل، ﴿استقاء﴾ قی کول، په تکلف قی کول، ﴿ملء الفم﴾ په ډکه خوله، ﴿صنع﴾ کوښښ، کار.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو سړي ته په خپله قی راغلی، نو د هغه روژه نه ماتيږي، او که يو چا قصداً قی وکړی، نو د هغه روژه ماتيږي، او قضاء پر واجب ده، ځکه په حديث کي ذکر سوي دي: من قاء فلا قضاء عليه ومن استقاء عامدا فعليه القضاء، (يعني چا ته چي په خپله قی راسي پر هغه قضاء نسته، او څوک چي په قصد (او اراده سره) قی وکړي نو پر هغه قضاء سته).

ويستوي فيه الخ فرمايي: که په خپله قی راغلی يعني غيرِ اختياري وو نو هغه روژه نه فاسدوي، هغه که په ډکه خوله وي، يا لږ وي، په هر صورت کي روژه نه فاسدوي، ځکه چي دا حديث من قاء فلاقضاء عليه مطلق دی، او په دې کي دلږ او ډېر هيڅ تفصيل ذکر سوی نه دی.

فلوعاد الخ د دې حاصل دا دی چي که يوه سړي ته په خپله په ډکه خوله قی راغلی او بيا په خپله دننه ولاړی، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز روژه فاسديږي، ځکه چي دا قی خارج (يعني ګواکي له خولي څخه راوتونکی) قی دی، تر دې چي په دې سره اودس ماتيږي، لهذا کله چي هغه تر خارجېدلو وروسته بېرته دننه ولاړی، نو داسي سو لکه د دباندي شخه چي يو شی دننه ولاړ سي، او له دباندي څخه که يو شی دننه ولاړ سي، نو په هغه سره روژه فاسديږي، همدلسي به دلته هم روژه فاسديږي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي روژه نه فاسديږي، ځکه چي د روژې د فاسدېدلو لپاره صورتاً يا معناً افطار (روژه ماتول) ضروري دي، او دلته نه صورتاً افطار سته او نه معناً. صورتاً افطار خو ځکه نسته چي د افطار معنیٰ ده: يو شی په خوله کي اچول او تېرول، او په پورتنی مسئله کي خو قی په خپله دننه تللی دی، روژتي نه دي تېر کړی، او معناً افطار ځکه نسته چي د معنوي افطار مطلب دی: يو شی د غذاء په توګه خوړل، او قی د غذاء په توګه نه خوړل کيږي، لهذا کله چي نه صورتاً افطار سته او نه معناً، نو مورږ به روژه ولي فاسدوو؟

وإن أعاد الخ فرمايي: که روژتي په خپله قی دننه کړی (يعني تېر يې کړی)، نو بالاتفاق د هغه روژه فاسديږي، ځکه په دې صورت کي تر خروج وروسته دخول راغلی، نو صورتاً افطار پيدا سو، او صورتي افطار د روژې فاسدولو لپاره کافي دی، نو ځکه به روژه ماتيږي.

وإن كان الخ د دې حاصل دا دی چې که قی تر ډکې خولې کم وو، او تر را وتلو وروسته په خپله دننه ولاړی، نو هم بالاتفاق روژه نه فاسدیږي، ځکه چې د ډکې خولې د نشتوالي په وجه هغه قی د خیر خارج په حکم دی. او د هغه په تېرولو کې د روژتي څه عمل هم نسته، نو ځکه به روژه نه فاسدیږي.

وإن أعاد الخ فرمايي: که تر ډکې خولې کم قی راغلی او روژتي په خپل عمل او اختیار سره هغه واپس وګرځوی (یعنې تېرې کړی)، نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز په دې صورت کې روژه نه فاسدیږي، ځکه چې خروج ثابت نه سو. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز روژه فاسدیږي، ځکه چې د هغه په ګرځولو او تېرولو کې د روژتي عمل راغلی. نو ځکه به په دې صورت کې روژه فاسدیږي.

## د قي وهلو ټوله صورتونه په یوه نقشه کې

| شمېره | په خپله قی راتلل یا قصداً وهل | په خپله تېرېدل (دننه تلل) یا قصداً تېرول | د امام ابو یوسف په نیز روژه ماتوي، که نه؟ | د امام محمد په نیز یې ماتوي که نه؟ |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | که په خپله قی راسي | دننه نس ته ولاړ نه سي | روژه نه ماتوي | روژه نه ماتوي |
| ۲ | که په خپله قی راسي | په خپله دننه ولاړ سي | که په ډکه خوله وي روژه ماتوي | روژه نه ماتوي |
| ۳ | که قصداً قی ووهي | لږ وي او که ډېر | روژه ماتوي | روژه ماتوي |
| ۴ | که په خپله قی راسي | قصداً یې تېر کړي | که په ډکه خوله وي روژه ماتوي | روژه ماتوي |
| 5 | که په خپله قی راسي | قصداً یې تېر کړي | که تر ډکې خولې کم وي روژه نه ماتوي | روژه ماتوي |

## په روژه کې د قصداً قي وهلو حکم

وَإِنِ اسْتَقَاءَ عَمْدًا مِلْءَ فِيهِ بیا که روژتي قی وکړی (یعنې قی یې ووهی) قصداً په ډکه خوله لَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ نو پر هغه قضاء واجب ده لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی وَالْقِيَاسُ مَتْرُوكٌ بِهِ او د هغه (حدیث) په وجه قیاس پرېښوول سوی دی وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ لِعَدَمِ الصُّورَةِ او پر هغه کفاره واجب نه ده د افطار د صورت د نشتوالي په وجه (یعنې ځکه چې صورتاً افطار نسته) وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ مِلْءِ الْفَمِ او که تر ډکې خولې کم وو فَكَذَلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ نو هم دغه حکم دی د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز (یعنې روژه یې فاسدیږي او قضاء پر واجب ده) لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ د حدیث د مطلق کېدلو په وجه وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ لَا يَفْسُدُ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز روژه نه فاسدیږي لِعَدَمِ الْخُرُوجِ حُكْمًا ځکه چې حکماً خروج (یعنې د قي دباندې راوتل) نسته ثُمَّ إِنْ عَادَ لَمْ يَفْسُدْ عِنْدَهُ بیا که هغه لږ قی په خپله دننه ولاړی نو روژه نه فاسدیږي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز لِعَدَمِ سَبْقِ الْخُرُوجِ ځکه چې مخکې له خولې څخه دباندې راوتل نسته وَإِنْ أَعَادَهُ فَعَنْهُ: أَنَّهُ لَا يَفْسُدُ لِمَا ذَكَرْنَا او که روژتي (په خپله) راوګرځوی (یعنې

تېرېږ کړي) نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو روايت دا دی: چي روژه نه فاسديږي وَعَنْهُ: أَنَّهُ يُفْسِدُ او دويم روايت يې دا دی؛ چي روژه فاسديږي فَأَلْحَقَهُ بِمِلْءِ الْفَمِ لِكَثْرَةِ الصُّنْعِ نو (په دويم روايت کي) امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا لږ قی د ډکي خولی سره يو ځای کړی د فعل د کثير والي (ډېرښت) په وجه.

تشريح: صورت د مسئلې: دا دی که يو روژتي قصداً په ډکه خوله قی وکړی، نو د هغه روژه فاسديږي، او د روژې قضاء پر واجب ده، ځکه تر دې مخکي چي موږ کوم حديث بيان کړی يعني: من استقاء فعليه القضاء، له هغه ځنځه همدغه مفهوم ځرګنديږي، او دې حديث ته په کتني سره قياس پرېښوول سوی دی، ځکه د قياس تقاضا خو دا ده چي په دې صورت کي به روژه نه فاسديږي، ځکه چي روژه د يو شي په داخلولو او تېرولو سره فاسديږي، نه په را ايستلو او خارجولو سره، همدا وجه ده چي د روژې په حالت کي په غايطه موادو او متيازو سره روژه نه فاسديږي، لهذا په قي کولو سره هم روژه نه فلسدېدل پکار دي، خو ځرنګه چي په حديث کي په قصداً قي کولو سره قضاء واجب سوې ده، او بنکاره ده چي قضاء په هغه صورت کي واجبيږي چي کله روژه فاسده سي، نو ځکه به د دغه حديث په وجه قياس پرېښوول کيږي، او قضاء به واجبيږي، خو په ډکه خوله قي کولو سره صرف قضاء واجبيږي، کفاره نه واجبيږي، ځکه چي په دې کي صورتاً انفطار نسته، ځکه د صورتاً انفطار لپاره د يو شي دننه داخلول او تېرول ضروري دي، او دلته د هيڅ شي دخول هم نسته، لهذا کله چي صورتاً انفطار نه راغلی نو بنکاره ده چي جنايت (جرم) ناقص سو، او د ناقص جنايت په وجه کفاره نه واجبيږي.

وإن كان الخ فرمايي: که يو چا قصداً قی وکړی، ليکن دا قی په ډکه خوله نه وو، بلکي تر ډکي خولې کم وو، نو په دې کي د صاحبينو رايې جلا جلا دي، د امام محمد رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي په دې صورت کي هم روژه فاسديږي، او د هغه قضاء واجب ده، ځکه چي دا حديث من استقاء عامدا الخ مطلق دی، او په دې کي د لږ او ډېر هيڅ تفصيل نه دی ذکر سوی، لهذا ځرنګه چي قصداً په ډکه خوله قی قضاء واجبوي، همدا ډول به تر هغه کم قی هم قضاء واجبوي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي که قی تر ډکي خولې کم وو، نو روژه نه فاسديږي، لهذا قضاء به هم نه واجبيږي، ځکه د لږ قي په صورت کي حکماً خروج (د قي دباندي راوتل) نسته، او کله چي خروج نسته، نو بنکاره ده چي روژه به هم نه فلسديږي، ځکه روژه فلسديږي د قي په راوتلو سره.

ثم إن عاد الخ د دې حاصل دا دی که يو چا قصداً لږ قی وکړی، او بيا هغه په خپله دننه سو (يعني هغه تېر نه کړی بلکي په خپله تېر سو)، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز روژه نه فاسديږي، ځکه چي د قي د لږوالي په وجه خروج ثابت نه سو، او ځرنګه چي په خپله دننه ولاړی، نو دخول هم ثابت نه سو، او کله چي دخول ثابت نه سو، نو ولي به روژه فلسديږي!، ليکن که روژتي په خپله قی تېر کړی، نو په دې صورت کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ځنځه دوه روايتونه دي: (۱) اول روايت دا دی چي په دې صورت کي هم د هغه روژه نه فاسديږي، ځکه د قي د لږ والي په وجه دخول ثابت نه سو، (۲) دويم روايت دا دی چي په دې صورت کي روژه فلسديږي، ځکه قصداً قی کول او بيا قصداً هغه تېرول داسي سو لکه ډېر قی، يعني د روژتي ډېر فعل هغه لږ قی د ډېر قي سره لاحق کړی، نو ځکه به روژه فلسديږي، ځکه چي ډېر قی روژه فلسدوي.

## د شګې یا د اوسپنې د ټوکرې تېرولو حکم

قَالَ: وَمَنِ ابْتَلَعَ الْحَصَاةَ أَوِ الْحَدِيدَ أَفْطَرَ او کوم روژتي چې شګه یا اوسپنه تېره کړي نو د هغه روژه ماتیږي لِوُجُودِ صُورَةِ الْفِطْرِ ځکه چې صورتاً افطار پیدا سو وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ لِعَدَمِ الْمَعْنَى او پر هغه کفاره واجب نه ده ځکه چې معناً افطار پیدا نه سو.

**اللغات:** ﴿ابتلع﴾ دافتعال د باب ماضي ده: تېرول، ﴿حصاة﴾ شګه، ﴿حدید﴾ اوسپنه.

**تشریح:** مسئله: دا ده که یو روژتي شګه یا د اوسپني ټوکره تېره کړي، نو د هغه روژه ماتیږي، او قضاء پر واجب ده، لیکن کفاره پر واجب نه ده، قضاء خو ځکه واجب ده چې د افطار صورت پیدا سو، ځکه چې یو شی له دباندي څخه په خولې دننه سو، او نس ته ورسول سو، او کفاره ځکه واجب نه ده چې معناً افطار پیدا نه سو، ځکه د معناً افطار مطلب دا دی چې یو نفع رسونکې شي انسان نس ته داخل کړي، هغه که د غذاء له قبیلې څخه وي او که د دواء، نو د معناً افطار د نشتوالي په وجه جنایت ناقص سو، نو ځکه به کفاره واجب نه وي.

## په روژه کې قصداً د ښځې سره د جماع حکم

وَمَنْ جَامَعَ فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ عَامِدًا او کوم روژتي چې جماع وکړي له دوو لارو څخه په یوه لار کې په قصد سره فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ نو پر هغه قضاء واجب ده اِسْتِدْرَاكًا لِلْمَصْلَحَةِ الْفَائِتَةِ د فوت سوي مصلحت د تلافی (راګرځولو) لپاره وَالْكَفَّارَةُ او کفار(هم) واجب ده لِتَكَامُلِ الْجِنَايَةِ دجرم د کامل والي(بشپړ والي) په وجه وَلَا يُشْتَرَطُ الْإِنْزَالُ فِي الْمَحَلَّيْنِ اِعْتِبَارًا بِالْاِغْتِسَالِ او په دواړو لارو کې انزال شرط نه دي پر غسل په قیاسولو سره وَهَذَا لِأَنَّ قَضَاءَ الشَّهْوَةِ يَتَحَقَّقُ دُونَهُ او دا په دې وجه چې له انزال څخه بغیر هم د شهوت پوره والی ثابتیږي وَإِنَّمَا ذَلِكَ شِبَعٌ او انزال خو د موړ والي لپاره دی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: أَنَّهُ لَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ بِالْجِمَاعِ فِي الْمَوْضِعِ الْمَكْرُوهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی: چې په ناخوښه ځای کي به(یعني د غائطو په ځای کي به) په جماع کولو سره کفاره نه واجبیږي اِعْتِبَارًا بِالْحَدِّ عِنْدَهُ پر حد باندي په قیاسولو سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَالْأَصَحُّ أَنَّهَا تَجِبُ خو صحیح دا ده چې کفاره واجبیږي لِأَنَّ الْجِنَايَةَ مُتَكَامِلَةٌ لِقَضَاءِ الشَّهْوَةِ ځکه چې جرم کامل سو د شهوت د پوره والي په وجه.

**اللغات:** ﴿استدراك﴾ د استفعال د باب مصدر دی: تلافي، فوت سوی شی راګرځول، ﴿تکامل﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: پوره کېدل، کامل کېدل، ﴿شبع﴾ د فتح د باب مصدر دی: موړېدل، خواهش پوره کېدل، ﴿جنایة﴾ جرم.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که یو روژتي په قصد او اراده سره جماع وکړي نو پر هغه قضاء هم واجب ده، او کفاره هم، برابر ده جماع که یې د مخ په خوا(قُبل) کي کړې وي، یا د شا په خوا(دُبر) کي، قضاء خو ځکه واجب ده، چې د جماع کولو په وجه د هغه روژه ماته سوه، او د روژې چې کوم مصلحت او مقصد وو، یعني د نفسِ امّاره مغلوبه کول هغه هم فوت سو، نو د مصلحت د تلافی لپاره پر هغه قضاء واجب ده، او کفاره ځکه واجب ده چې د جماع کولو په صورت

کې جنایت کامل دی، ځکه کله چې يوه شرمګاه په بله شرمګاه کې داخله سي، نو ښکاره ده چې صورتاً او معناً دواړو ډوله جماع ثابتيږي، نو ځکه به په دې صورت کې خامخا کفاره واجبيږي.

ولايشترط الإنزال الخ فرمايي چې په پورتنی مسله کې د کفارې د واجبېدلو لپاره انزال شرط نه دی. او له انزال څخه بغير هم کفاره واجبيږي، ځکه چې دخول راغلی. او څرنګه چې يوازې دخول د غسل د وجوب لپاره کافي دی، همدارنګه به د کفارې د وجوب لپاره هم کافي وي، او انزال به شرط نه وي. ځکه چې د جماع مقصد شهوت پوره کول دي، او دا له انزال څخه بغير هم حاصليږي، دا جلا خبره ده چې په انزال سره كما حقه شهوت حاصليږي. او د انسان شهوت په هر ډول سره پوره کيږي، لهذا کله چې بې له انزاله هم جماع ثابتيږي. نو کفاره به هم واجبيږي. صاحب د بنايه رَحِمَهُ الله پر دې موقع يو ډېر ښه مثال ذکر کړی دی، ليکلي يې دي چې که روژتي قصداً يوه ګوله وخوړه، نو د هغه روژه فاسديږي. او پر هغه به د روژې قضاء او کفاره دواړه واجب وي، حال دا چې په يوه ګوله سره د روژتي خېټه نه مړيږي، ليکن بيا هم په دې سره خوړل ثابتيږي، همداسي به په پورتنی مسله کې هم په دخول سره جماع ثابتيږي، او هغه به د کفارې د وجوب لپاره کافي وي- (بنايه ج۲، ص۶۰۹)

ومن أبي حنيفة الخ له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې که يو سړي په ناخوبه ځای کې جماع وکړي، يعني يو بدبخته سړي د شا (دُبُر) په لار کې خپل شهوت پوره کړي، نو پر هغه به کفاره نه واجبيږي، ځکه چې پر دې ډول حرکت کونکي باندې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حدّ نه واجبيږي، نو پر هغه قياس کوي چې کفاره به هم نه واجبيږي، ځکه چې په دې ځای کې د شهوت پوره کولو څخه طبيعت نفرت کوي، نو د شهوت په پوره کولو کې شبهه پيدا سوه، او په شبهې سره کفاره ساقطيږي، نو دلته به هم کفاره ساقطيږي.
ليکن په دې لړ کې صحيح قول دا دی چې په دُبُر کې په جماع سره کفاره واجبيږي، ځکه چې په دې صورت کې هم شهوت پوره کيږي، او د شهوت په پوره والي سره جنايت کامل ګرځي، او کامل جنايت د کفارې د وجوب سبب دی.

## په روژه کې د حيوان يا مړې ښځې سره د جماع کولو حکم

وَلَوْجَامَعَ مَيْتَةً أَوْبَهِيمَةً او که روژتي جماع وکړي د مړې ښځې سره يا د څاروي سره فَلَا كَفَّارَةَ أَنْزَلَ أَوْلَمْ يُنْزِلْ نو (پر هغه) کفاره واجب نه ده هغه که روژتي انزال سي، او که انزال نه سي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِأَنَّ الْجِنَايَةَ تَكَامُلُهَا بِقَضَاءِ الشَّهْوَةِ فِي مَحَلٍّ مُشْتَهًى ځکه چې د جرم کامل والی د شهوت په ځای کې په شهوت پوره کولو سره کيږي (يعني جرم او جنايت هغه وخت کامل او بشپړ ګرځي چې انسان په داسې ځای کې خپل شهوت پوره کړي چې هغه ځای د شهوت قابل وي) وَلَمْ يُوجَدْ او هغه (دلته) پيدا نه سو ثُمَّ عِنْدَنَا كَمَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ بِالْوِقَاعِ عَلَى الرَّجُلِ بيا چې څرنګه زموږ په نيز کفاره پر سړي په جماع کولو سره واجبيږي تَجِبُ عَلَى الْمَرْأَةِ (همداسي) به پر ښځې هم واجبيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ فِي قَوْلٍ: لَاتَجِبُ عَلَيْهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله په يوه قول کې فرمايي: چې پر ښځې به کفاره نه واجبيږي لِأَنَّهَا مُتَعَلِّقَةٌ بِالْجِمَاعِ ځکه چې کفاره د جماع سره تعلق لري وَهُوَ فِعْلُهُ او جماع کول د سړي کار دی وَإِنَّمَا هِيَ مَحَلُّ الْفِعْلِ او ښځه (خو فقط) د کار ځای دی وَفِي قَوْلٍ: تَجِبُ. او په بل

قول کې فرمايي: چې (پر ښځې به هم) واجبيږي وَيَتَحَمَّلُ الرَّجُلُ عَنْهَا اعْتِبَارًا بِمَاءِ الْاِغْتِسَالِ (خو) د ښځې له طرفه به سړی کفاره زغمي (يعني د ښځې کفاره به سړی ورکوي) د غسل پر اوبو په قياسولو سره وَلَنَا قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ●: مَنْ أَفْطَرَ فِي رَمَضَانَ فَعَلَيْهِ مَا عَلَى الْمُظَاهِرِ او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: څوک چې په رمضان کې روژه ماته کړي نو هغه شی به پر واجب وي کوم چې پر مظاهر واجب دی وَكَلِمَةُ مَنْ تَنْتَظِمُ الذُّكُوْرَ وَالْإِنَاثَ او کلمه د "من" ښځو او نارينه وو دواړو ته شامليږي وَلِأَنَّ السَّبَبَ جِنَايَةُ الْإِفْسَادِ لَا نَفْسُ الْوِقَاعِ او په دې وجه (هم) چې د کفارې (د وجوب) سبب د روژې فاسدولو جرم دی نه په خپله جماع وَقَدْ شَارَكَتْهُ فِيْهَا او په دې جرم کې ښځې هم د سړي سره شرکت کړی دی (يعني ښځه هم ور سره شريکه ده) وَلَا يَتَحَمَّلُ او سړی به (د ښځې کفاره) نه زغمي لِأَنَّهَا عِبَادَةٌ أَوْ عُقُوْبَةٌ ځکه چې کفاره عبادت ده يا سزا ده وَلَا يَجْرِيْ فِيْهَا التَّحَمُّلُ او په يوه کې (هم) د بل بار پورته کول (زغمل) نه جاري کيږي.

**اللغات:** ﴿ميتة﴾ مړه ښځه، ﴿بهيمة﴾ څاروی، ﴿مشتهی﴾ شهوت والا، هغه چې په ليدلو سره يې شهوت راپورته کيږي، ﴿وقاع﴾ جماع، ﴿مظاهر﴾ ظهار کونکی، ﴿التحمل﴾ برداشتول، زغمل، ګالل، جذبول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو روژتي سړی د مړې ښځې سره يا د يو حيوان سره جماع وکړي، نو پر هغه کفاره واجب نه ده، برابره ده که روژتي انزال سوی وي، او که نه وي، هو! که انزال سو، نو پر هغه قضاء واجب ده، او بې له انزاله قضاء هم واجب نه ده، ليکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر هغه کفاره واجب ده.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې د کفارې د وجوب سبب جماع ده، او جماع دلته سته، نو ځکه به کفاره واجب وي.

**زموږ دليل:** دا دی د چې د کفارې د وجوب سبب کامل جنايت دی، او په جماع کې جنايت هغه وخت کامليږي چې کله د شهوت په ځای کې شهوت پوره کړی سي، او په پورتني صورت کې مړې يا حيوان د شهوت ځای نه دي، ځکه چې د جماع دارومدار د طبيعت پر خوشالۍ او نشاط دی، حال دا چې د فطرت سليمه خاوند د مړې ښځې او حيوان سره جماع کول خو لا پرېږده په دې باره کې سوچ هم نه سي کولای، لهذا د هغو سره د جماع کولو په صورت کې جنايت کامل نه سو، او کله چې جنايت کامل نه سو، نو کفاره به هم واجب نه وي.

ثم عندنا الخ د دې حاصل دا دی چې څرنګه زموږ په نيز د جماع په وجه سره پر سړي کفاره واجبيږي، همدارنګه به پر ښځې هم واجبيږي، په دې شرط چې هغې په رضا او خوښه جماع کړې وي، په جبر او زورد هغې سره جماع سوې نه وي، له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې دوه قوله دي: (۱) پر ښځې کفاره واجب نه ده، ځکه چې د کفارې تعلق د جماع سره دی، او جماع د نارينه فعل دی، نه د ښځې، ښځه خو فقط د فعل محل او ځای دی، نو ځکه به پر هغې کفاره واجب نه وي، (۲) دويم قول دا دی چې پر ښځې هم کفاره واجب ده، ليکن د هغې له طرفه به سړی کفاره اداء کوي، او د دې قول لپاره يو مثال ذکر کوي، هغه دا چې که يو خاوند او ښځه جماع وکړي، او د غسل اوبه په قيمت وي (يعني خرڅيږي)، نو د ښځې د غسل د اوبو قيمت به سړی اداء کوي، لهذا په دې صورت کې به هم د ښځې کفاره سړی اداء کوي.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب إذا جامع في رمضان و لم يكن له شيء، حديث رقم: ۱۹۳۶.

ولنا الخ په دې بابکې زمونږ دلیل دا حدیث دی: من أفطر في رمضان فعليه ما على المظاهر (یعني څوک چې په رمضان کې روژه ماته کړي، نو هغه شی به پر واجب وي کوم چې پر مُظاهر واجبیږي)، او په حدیث کې د من لفظ ښځې او نارینه دواړو ته شامل دی، نو څکه به د روژې فاسدولو په صورت کې کفاره هم پر سړي واجب وي، او هم پر ښځې، دریم دلیل دا دی چې د کفارې د وجوب سبب د روژې فاسدولو جنایت او جرم دی، نه په خپله جماع، او په دې جرم کې سړی او ښځه دواړه یو ډول شریک دي، نو څرنګه چې پر سړي کفاره واجب ده، همداسې به پر ښځې هم واجب وي.

ولا یتحمل الخ امام شافعي رحمه الله په خپل دویم قول کې دا خبره کړې وه چې د ښځې کفاره به سړی اداء کوي. صاحب هدایې د هغې خبرې جواب ورکوي، فرمايي چې د ښځې کفاره به سړی نه اداء کوي، څکه چې کفاره خو يا عبادت دی یا عقوبت او سزا ده. او نائب کېدل (نیابت) نه په عبادت کې جاري کېدای سي، او نه په عقوبت کې، نو کوم عبادت یا عقوبت چې پر کوم انسان واجب وي، هغه به انسان په خپله اداء کوي، (هغه که نر وي، که ښځه)، او هیڅوک به د هغه له طرفه دا عبادت یا عقوبت نه زغمي.

## په روژه کې د غذاء یا د دواء خوړلو حکم

وَلَوْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ مَا يَتَغَذَّى بِهِ أَوْ يُتَدَاوَى بِهِ او که روژتي یو داسې شی وخوري یا یې وڅښي چې په هغه سره غذاء حاصلیږي یا په هغه سره علاج کیږي فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ نو پر هغه قضاء او کفاره دواړه واجب دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: لَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ او امام شافعي رحمه الله فرمايي: چې پر هغه کفاره واجب نه ده لِأَنَّهَا شُرِعَتْ فِي الْوِقَاعِ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ څکه چې کفاره په جماع کې خلافُ القیاس مشروع سوې ده لِارْتِفَاعِ الذَّنْبِ بِالتَّوْبَةِ څکه (د جماع) ګناه خو په توبه سره لیرې سوه فَلَا يُقَاسُ عَلَيْهِ غَيْرُهُ لهذا پر دې به بل شی نه قیاسیږي وَلَنَا أَنَّ الْكَفَّارَةَ تَعَلَّقَتْ بِجِنَايَةِ الْإِفْطَارِ فِي رَمَضَانَ عَلَى وَجْهِ الْكَمَالِ زمونږ دلیل دا دی چې کفاره په رمضان کې په کامله توګه د روژې ماتولو د جرم سره تعلق لري وَقَدْ تَحَقَّقَتْ او دا جرم ثابت سو (نو څکه به کفاره واجب وي) وَبِإِيجَابِ الْإِعْتَاقِ تَكْفِيرًا عُرِفَ او د کفارې په توګه (د غلام) د آزادولو په واجبولو سره دا معلومه سوه أَنَّ التَّوْبَةَ غَيْرُ مُكَفِّرَةٍ لِهَذِهِ الْجِنَايَةِ چې توبه د دې جرم لپاره پټونکې (معافونکې) نه ده (یعني کفاره نه ده).

**اللغات:** ﴿ما يتغذى به﴾ د تفعّل د باب مضارع مجهوله ده: هغه چې د غذاء او خوراک په توګه استعمالیږي، ﴿يتداوى به﴾ د مفاعلې د باب مضارع مجهوله ده: هغه چې د دواء او درمل په توګه استعمالیږي، ﴿ارتفاع﴾ د افتعال مصدر دی: پورته کېدل، لیرې کېدل، ﴿ذنب﴾ ګناه، ﴿مكفرة﴾ د تفعیل د باب مؤنث اسم فاعل دی: کفاره ورکول، پټول.

**تشریح:** مسئله: دا ده که روژتي سړي یو داسې شی وخوري چې په هغه سره غذاء حاصلیږي، یا هغه شی د دواء په توګه استعمالیږي، نو په دې سره د هغه روژه فاسدیږي، او پر هغه قضاء او کفاره دواړه واجبیږي، امام شافعي رحمه الله فرمايي چې پر هغه صرف قضاء واجبیږي، کفاره نه واجبیږي.

د امام شافعي دليل: دا دی چي په جماع کي خلافُ القياس کفاره مشروع ده، ځکه چي د جماع کولو گناه خو په توبه سره ليري کيږي او معافيږي (يعني په اصل کي توبه د جماع لپاره کفاره ده)، مگر بيا هم په جماع کي د توبي باوجود د کفاري وجوب له قياس څخه خلاف په حديث سره ثابت دي، ځکه نبي ﷺ پر يو صحرايي د توبي باوجود کفاره واجب کړي وه، نو کله چي د کفاري وجوب خلافُ القياس په حديث سره ثابت دی، نو پر هغه به خوراک، څښاک او نور نه قياسيږي، ځکه قاعده دا ده چي: ما ثبت على خلاف القياس فغيره لا يقاس عليه، او په خوراک، څښاک سره به صرف قضاء واجبيږي، نه کفاره.

زمونږ دليل: دا دی چي د کفاري تعلق په کامله توگه د افطار د جنايت سره دی، يعني که يو سړی په کامل جنايت سره روژه ماته کړي، نو پر هغه به کفاره واجب وي، او کامل جنايت صرف د جماع سره خاص نه دی، بلکي څرنگه چي په جماع کي جنايت کامل دی، همدارنگه په خوراک، څښاک کي هم جنايت کامل دی، او جماع کفاره واجبوي، نو ځکه به خوراک، څښاک هم کفاره واجبوي.

وبإيجاب الإعتاق الخ په دې عبارت سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، هغه فرمايلي وو چي په توبه سره گناه ليري کيږي (يعني په اصل کي توبه د گناه لپاره کفاره ده، او په توبي سره گناه معافيږي)، خو بيا هم د کفاري ورکول خلافُ القياس دي، د هغه جواب ورکوي چي د شريعت له طرفه د جماع په کفاره کي غلام واجبول د دې خبري دليل دی چي صرف په توبه سره د جماع گناه نه معافيږي، لکه څرنگه چي په توبي سره د زنا او غلا حدّ هم نه معافيږي، بلکي د توبي باوجود حد پر لگيږي، نو له دې څخه معلومه سوه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره صحيح نه ده چي توبه د جماع د گناه لپاره کفاره ده، او د کفاري ورکول خلافُ القياس دي.

## د روژې د کفاري پوره تفصيل

ثُمَّ قَالَ: وَالْكَفَّارَةُ مِثْلُ كَفَّارَةِ الظِّهَارِ بيا فرمايي: چي د روژې کفاره د ظهار د کفاري په شير ده لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِحَدِيثِ الْأَعْرَابِيِّ[1] او د صحرايي د حديث په وجه فَإِنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ هَلَكْتُ وَأَهْلَكْتُ ځکه صحرايي وويل: اې د الله رسوله! زه هم هلاک سوم او بل مي هم هلاک کړی فَقَالَ: مَاذَا صَنَعْتَ نو نبي ﷺ وفرمايل: تا څه وکړه قَالَ: وَاقَعْتُ امْرَأَتِي فِي نَهَارِ رَمَضَانَ مُتَعَمِّدًا هغه وويل: چي د روژې په ورځ مي د خپلي ښځي سره قصداً جماع وکړه فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعْتِقْ رَقَبَةً نو نبي ﷺ وفرمايل: يوه غاړه (يعني غلام) آزاد کړه فَقَالَ: لَا أَمْلِكُ إِلَّا رَقَبَتِي هَذِهِ هغه وويل: زه فقط د دې خپلي غاړي مالک يم (يعني يو غلام هم په ملکيت کي نه لرم) فَقَالَ: صُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ نو نبي ﷺ وفرمايل: دوې مياشتي پرلپسي روژې ونيسه فَقَالَ: وَهَلْ جَاءَنِي مَا جَاءَنِي إِلَّا مِنَ الصَّوْمِ هغه وويل: څه چي پر ما راغله هغه د روژې په وجه سره پر ما راغله فَقَالَ: أَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا نو نبي ﷺ وفرمايل: شپېتو مسکينانو ته خوراک ورکړه فَقَالَ: لَا أَجِدُ هغه وويل: هغه (هم) نه لرم فَأَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى

---

[1] تخريج: اخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب الجماع في رمضان، حديث رقم: ۱۹۳۷، و ابو داؤد في كتاب الصيام، باب كفارة من أتى أهله في رمضان، حديث رقم: ۲۳۹۰.

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُؤْتَى بِعَرَقٍ مِنْ تَمْرٍ نو نبي ﷺ حکم وکړې چي يو فَرَق کجوري دې راوړل سي وَيُرْوَى بِعَرَقٍ فِيهِ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا او په يوه روايت کي (د فَرَق پر ځای) عَرَق رانقل سوی دی چي په هغه کي پنځلس صاعه کجوري وې وَقَالَ: فَرِّقْهَا عَلَى الْمَسَاكِينِ او نبي ﷺ وفرمايل: دا پر مسکينانو تقسيم کړه فَقَالَ: وَاللهِ مَا بَيْنَ لَابَتَيِ الْمَدِينَةِ أَحَدٌ أَحْوَجُ مِنِّي وَمِنْ عِيَالِي هغه ووېل: په الله دې مې قسم وي چي د مدينې د دواړو ډاګونو (يا د دواړو طرفونو) په مينځ کي زما او زما تر بچو زيات محتاجه بل څوک نسته فَقَالَ: كُلْ أَنْتَ وَعِيَالُكَ نو نبي ﷺ وفرمايل: ته او ستا بچيان يې وخورئ يُجْزِيكَ وَلَا يُجْزِي أَحَدًا بَعْدَكَ دا خو ستا لپاره کافي (او جائز) دي لېکن تر تا وروسته به د بل هيچا لپاره کافي (او جائز) نه وي وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ فِي قَوْلِهِ يُخَيَّرُ او دا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی د هغه په دې قول کي چي کفاره ورکونکي ته اختيار دی لِأَنَّ مُقْتَضَاهُ التَّرْتِيبُ ځکه چي د دې حديث مقتضا ترتيب دی (يعني د ترتيب تقاضا کوي) وَعَلَى مَالِكٍ فِي نَفْيِ التَّتَابُعِ او د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی د پرلپسې والي په نفي کولو (يعني د امام مالک په نېز پرلپسې دوې مياشتې روژې نيول ضروري نه دي، خو دا حديث د هغه په خلاف هم حجت دی) لِلنَّصِّ عَلَيْهِ ځکه چي د پرلپسې والي په باره کي (په دې حديث کي) صراحت سوی دی.

**اللغات:** ﴿أهلكت﴾ د افعال د باب ماضي واحده متکلمه صيغه ده: هلاکول. ﴿واقعت﴾ د مفاعلې د باب مخکنۍ صيغه ده: جماع کول. ﴿رقبة﴾ غاړه، مراد ځني غلام او مينځه ده. ﴿متابع﴾ پرلپسې، بې له وقفې. ﴿الفرق﴾ ټوکرۍ. ﴿عرق﴾ خلته، تېلۍ. ﴿تمر﴾ کجوري، خرماوي.

**تشريح:** د عبارت مطلب بالکل آسانه دی، په عبارت کي صرف دا ښوول سوي ده چي د روژې کفاره د ظهار د کفارې په ډول ده، يعني څرنګه چي د ظهار په کفاره کي ترتيب واجب دی، او تر ټولو مخکي د غلام د آزادولو حکم سوی دی، بيا تر دوو مياشتو پوري د روژو د نيولو حکم سوی دی، او دريم شپېتو (۶۰) مسکينانو ته د خوراک ورکولو حکم سوی دی، همدارنګه به د روژې په کفاره کي هم دغه ترتيب واجب وي، او د دې ترتيب مطابق به د هغې اداء کول ضروري وي.

**دليل:** په دې باره کي خو اول دليل هغه حديث دی کوم چي مخکي ذکر سو، يعني: من أفطر في رمضان فعليه ما على المظاهر (يعني څوک چي په رمضان کي روژه ماته کړي، نو د ظهار کونکي په ډول کفاره پر واجب ده)، او پر مظاهر د مخکني ترتيب مطابق کفاره واجب ده، نو پر روژه ماتونکي به هم د هغه ترتيب مطابق کفاره واجب وي، د مظاهر په حق کي د کفارې دا ترتيب د قرآن کريم په دې دوو آيتونو سره ثابت سوی دی: وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَآسَّا ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۝ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِن قَبْلِ أَن يَتَمَآسَّا فَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا [المجادلة: ۳-۴]. **دويم دليل:** په دې باره کي دويم دليل صحرايي هغه حديث دی کوم چي په ترجمه کي په تفصيلي توګه بيان سو، په دې حديث سره موږ دليل په دې توګه نيسو چي نبي ﷺ صحرايي ته په څرګنده توګه تر ټولو مخکي د غلام آزادولو حکم کړی دی، تر هغه وروسته يې

د دوو میاشتو د روژو نیولو حکم کړی دی، بیا یې په دریم وار شپېتو مسکینانو ته د خوراک ورکولو حکم کړی دی، چې له دغه څخه دا خبره ثابتېږي چې د کفارې په اداء کولو کې ترتیب واجب دی.

وهوحجة على الشافعي رَحِمَهُ اللهُ الخ د دې حاصل دا دی چې د امام شافعي په نیز په کفاره کې ترتیب واجب نه دی، بلکې هغه په دې شیانو کې اختیار ورکوي، یعنې که یو سړی پر غلام آزادولو قدرت لري، نو هغه په روژو سره کفاره اداء کولای سي، همداسې که پر غلام آزادولو او د روژو پر نیولو د قدرت سره سره شپېتو مسکینانو ته خوراک ورکړي، نو هم صحیح دي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نیز د کفارې په روژو کې تسلسل او تتابع (پرلپسې والي) واجب نه دی، بلکې که یو سړی په بېلابېلو ورځو کې روژه ونیسي، نو د هغه روژه به اداء کیږي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل د حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ دا حدیث دی: أن رجلا سأل رسول الله ﷺ فقال إني أفطرت في رمضان. فقال أعتق رقبة أو صم شهرين متتابعين أو أطعم ستين مسكينا، هغه له دې حدیث څخه په دې توګه دلیل نیسي چې په دې کې د "أو" په ذریعه د کفارې اقسام بیان سوي دي، او د "أو" کلمه د تخییر لپاره راځي، نو له دې څخه دا معلومیږي چې په کفاراتو کې ترتیب واجب نه دی، بلکې دا حکم د تخییر په توګه دی، او د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل قیاس دی، یعنې امام مالک رَحِمَهُ الله د عدم تتابع په لړ کې د روژې کفاره پر قضائي روژو قیاس کړې ده، یعنې څرنګه چې د رمضان په قضائي روژو کې هم تتابع واجب نه دی، همدارنګه به د روژې په کفاره کې هم تتابع واجب نه وي، او په جلا جلا توګه به د روژو نیولو اجازه وي. لېکن د دې دواړو حضراتو په خلاف د صحرایي حدیث حجت او دلیل دی، ځکه چې په هغه کې د ترتیب رعایت هم سوی دی او د تتابع وضاحت هم سوی دی.

پاته سو د حضرت سعد ﷺ حدیث، نو د هغه جواب دا دی چې هغه خبر واحد دی، او زموږ بیان سوی حدیث یعنې د صحرایي حدیث، حدیث مشهور دی، او خبر واحد د حدیث مشهور سره مقابله نه سي کولای، دویم جواب دا دی چې د سعد ﷺ حدیث د تخییر یا د ترتیب لپاره نه دی بیان سوی، بلکې په دې کې هغه شیان بیان سوي دي چې په هغو سره کفاره اداء کېدای سي، لهذا په دې سره د تخییر یا عدم ترتیب په باره کې دلیل نیول صحیح نه دي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله د قیاس جواب دا دی چې زموږ دلیل حدیث دی او ته په قیاس سره دلیل نیسې، نو قیاس د حدیث په مقابله کې څه ارزښت لري.

## له فرج څخه علاوه په بل ځای کې د انزالېدلو حکم

وَمَنْ جَامَعَ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ فَأَنْزَلَ او څوک چې په غیر فرج کې جماع وکړي او (په هغه سره) انزال سي فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ نو پر هغه قضاء واجب ده لِوُجُودِ الْجِمَاعِ مَعْنًى ځکه چې معناً جماع پیدا سوه وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ او پر هغه کفاره واجب نه ده لِانْعِدَامِهِ صُورَةً ځکه چې صورتاً جماع نسته.

**اللغات:** ﴿الفرج﴾ د ښځې شرم ځای (دلته ځنې مراد قُبل او دُبر دي).

**تشریح:** مسئله: دا ده که یو روژتي د خپلې ښځې له قُبل او دُبر څخه علاوه د بدن په یوه بله برخه کې مثلاً په ورنو یا نس کې خپل فرج استعمال کړي، او انزال سي، نو پر هغه قضاء واجب ده، او کفاره واجب نه ده، قضاء خو ځکه واجب ده

چې معناً جماع پیدا سوه، او کفاره ځکه واجب نه ده چې صورتاً جماع پیدا نه سوه، ځکه صورتاً جماع دا ده چې فرج په فرج کې داخل کړی سي، او هغه دلته نسته.

## له رمضان څخه علاوه په نورو روزو کې د کفارې حکم

وَلَيْسَ فِي إِفْسَادِ صَوْمِ غَيْرِ رَمَضَانَ كَفَّارَةٌ او له رمضان څخه علاوه د بلې روژې په فاسدولو کې کفاره نسته لِأَنَّ الْإِفْطَارَ فِي رَمَضَانَ أَبْلَغُ فِي الْجِنَايَةِ ځکه چې په رمضان کې روژه ماتول ډېر غټ جنایت (جرم) دی فَلَا يُلْحَقُ بِهِ غَيْرُهُ نو د هغه سره به نورې روژې نه لاحقیږي.

تشریح: مسئله: دا ده که یو روژتي سړي له رمضان څخه علاوه یوه بله روژه فاسده کړي، نو پر هغه فقط قضاء واجب ده، کفاره واجب نه ده، ځکه چې کفاره د رمضان د روژې سره خاص ده، ځکه د رمضان روژه ماتول ډېر غټ جرم دی، او په هغه کې د روژې سره سره د مبارکې او سپېڅلې میاشتې بې حُرمتي هم سته، لېکن له رمضان څخه علاوه د روژې د ماتولو په صورت کې فقط د روژې بې حرمتي ده، لهذا د غیرِ رمضان روژې به د رمضان پر روژو نه قیاسیږي، او د غیرِ رمضان د روژې په فاسدولو سره به کفاره نه واجبیږي.

## په روزه کې د امالې کولو، یا په پزه او غوږ کې د دواء اچولو حکم

وَمَنِ احْتَقَنَ او څوک چې اماله وکړي أَوِ اسْتَعَطَ یا په پزه کې دواء واچوي أَوْ أَقْطَرَ فِي أُذُنِهِ یا په غوږ کې دواء وڅڅوي أَفْطَرَ نو روژه یې ماته سوه لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[●]: اَلْفِطْرُ مِمَّا دَخَلَ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: چې افطار (یعني روژه ماتېدل) به په هغه شي سره وي کوم چې (په نس کې) داخل سي وَلِوُجُودِ مَعْنَى الْفِطْرِ او په دې وجه (هم) چې د افطار معنیٰ پیدا سوه وَهُوَ وُصُولُ مَا فِيهِ صَلَاحُ الْبَدَنِ إِلَى الْجَوْفِ او هغه رسېدل دي ونس (کېدې) ته د هغه شي چې په هغه کې د بدن ګټه وي وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ لِانْعِدَامِهِ صُورَةً او پر هغه کفاره واجب نه ده ځکه چې صورتاً افطار پیدا نه سو.

اللغات: ﴿احتقن﴾ د افتعال د باب ماضي ده: اماله کول، یعني د شا (دُبُر) د لارې دواء نسته رسول. ﴿استعط﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په پزه کې دواء اچول. ﴿وصول﴾ د ضرب د باب مصدر دی: رسېدل.

تشریح: مسئله: دا ده که یو روژتي اماله وکړه یعني د شا په لاره کې یې نس ته دواء ننه کړه، یا یې په پزه کې دواء واچوله، یا یې په غوږ کې دواء واچوله، نو په دې هر صورت کې روژه ماتیږي، دلیل دا حدیث دی الفطر مما دخل ولیس مما خرج، (یعني روژه هغه وخت ماتیږي چې یو شی نس ته داخل سي، او د یو شي په راوتلو سره روژه نه ماتیږي).

دویم دلیل دا دی چې په دې صورتونو کې د افطار معنیٰ پیدا سوه، ځکه چې د افطار معنیٰ ده: یو شی د بدن د ګټې او فایدې لپاره معدې ته رسول.

● تخریج: أخرجه البیهقي في السنن الکبریٰ في کتاب الصیام، باب الإفطار بالطعام وبغیر الطعام، حدیث رقم: ۸۲۵۳.

## په غوږ کې د اوبو ننوتلو حکم

وَلَوْ اَقْطَرَ فِیْ اُذُنِهِ الْمَاءَ او که روژتي په خپلو غوږو کې اوبه وڅڅوي اَوْ دَخَلَهُمَا یا اوبه په خپله غوږو ته ننوځي لَا یَفْسُدُ صَوْمُهُ نو د هغه روژه نه فاسدیږي لِاِنْعِدَامِ الْمَعْنٰی وَالصُّوْرَةِ ځکه چې نه معناً افطار سته او نه صورتاً افطار سته بِخِلَافِ مَا اِذَا دَخَلَهُ الدُّهْنُ په خلاف د هغه صورت چې کله تېل په غوږ کې داخل کړي.

اللغات: ﴿اقطر﴾ د افعال د باب ماضي ده: څڅول. ﴿دهن﴾ تېل.

تشریح: مسئله: دا ده که یو روژتي په خپل غوږ کې اوبه واچوي، یا په خپله په غوږ ننوځي، په دې توګه چې په دریاب یا حوض کې ولمبیږي، او اوبه په غوږو ننوځي، نو په دواړو صورتونو کې روژه نه فاسدیږي، ځکه چې افطار نه معناً سته، او نه صورتاً. صورتاً افطار خو ځکه نسته چې د خولې د لارې یو شی داخل نه سو، او معناً افطار ځکه نسته چې د بدن د اصلاح لپاره یو شی بدن ته داخل نه سو، نو کله چې نه صورتاً افطار سته، او نه معناً، نو روژه به هم نه فاسدیږي.

بخلاف الخ فرمایي که روژتي په غوږ کې تېل وڅڅوي نو روژه فاسدیږي او پر هغه به قضاء واجب وي، ځکه په دې صورت کې معناً افطار پیدا سو، ځکه چې تېل د بدن د اصلاح لپاره په غوږ کې څڅول کیږي.

## د سر یا د نس په ژور زخم کې د دواء اچولو حکم

وَلَوْ دَاوٰی جَائِفَةً اَوْ آمَّةً بِدَوَاءٍ او که روژتي د نس پر زخم یا د سر پر زخم یوه دواء ولګوي فَوَصَلَ اِلٰی جَوْفِهِ اَوْ دِمَاغِهِ او دواء د هغه نس یا دماغ ته ورسیږي اَفْطَرَ عِنْدَ اَبِیْ حَنِیْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو روژه یې ماتیږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز وَالَّذِیْ یَصِلُ هُوَ الرَّطْبُ او کومه دواء چې رسیږي هغه لنده وي (له دې جملې څخه یې مطلب دا دی چې دا دواء کوم چې یې پر زخم لګولې ده، لنده به وي ځکه چې لنده دواء جوف ته رسیږي، او په وچه دواء کې هیڅ اختلاف نسته) وَقَالَا*: لَا یُفْطِرُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې روژه یې نه ماتیږي لِعَدَمِ التَّیَقُّنِ بِالْوُصُوْلِ ځکه چې د دواء رسېدلو یقین نسته لِانْضِمَامِ الْمَنْفَذِ مَرَّةً وَاتِّسَاعِهِ اُخْرٰی ځکه چې د زخم سوری کله بندیږي او کله خلاصیږي کَمَا فِی الْیَابِسِ مِنَ الدَّوَاءِ لکه په وچه دواء کې (چې هم روژه نه فاسدیږي) وَلَهُ اَنَّ رُطُوْبَةَ الدَّوَاءِ تُلَاقِیْ رُطُوْبَةَ الْجِرَاحَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د دواء لوندوالی د زخم د لوندوالي سره یوځای کیږي فَیَزْدَادُ مَیْلًا اِلَی الْاَسْفَلِ نو لاندې طرف ته د دواء میلان (نور) زیات سي فَیَصِلُ اِلَی الْجَوْفِ او نس ته ورسیږي بِخِلَافِ الْیَابِسِ په خلاف د وچې دواء لِاَنَّهُ یُنَشِّفُ رُطُوْبَةَ الْجِرَاحَةِ ځکه چې هغه د زخم لوندوالی وچوي فَیَنْسَدُّ فَمُهَا چې (په هغه سره) د زخم خوله بندیږي.

---

* القول الراجح: په دې مسئله کې نه د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول راجح دی، او نه د صاحبینو بلکې د اکثرو مشائخو قول راجح دی، هغوی فرمایي چې د دواء د رسېدلو اعتبار به کیږي، یعنې که دواء نس یا دماغ ته ورسیږي که څه هم وچه دواء وي نو روژه ماتیږي، کنې نه ماتیږي، کما قال العلامة أکمل الدین البابرتي رَحِمَهُ الله: و أکثر مشائخنا علی أن العبرة للوصول حتی إذا علم أن الدواء الیابس وصل إلی جوفه فسد صومه و إن علم أن الرطب لم یصل إلی جوفه لم یفسد صومه، العنایة ج:۲، ص: ۲۶۶. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۸]

**اللغات:** ﴿جائفة﴾ د نس هغه ژور زخم ته ويل کيږي چي نس ته رسيدلی وي، ﴿آمّة﴾ د سر هغه ژور زخم ته ويل کيږي چي دماغ ته رسيدلی وي، ﴿رطب﴾ لوند، خيشت، ﴿اندمال﴾ د اندمال مصدر دی؛ زخم جوړيدل، وکيدل، ﴿منفذ﴾ لاره، سوری، ﴿انسداد﴾ د انسداد مصدر دی؛ پرانخه کيدل، خلاصيدل، ﴿يابس﴾ وچ، ﴿رطوبة﴾ لوندوالی، خيشتوالی، ﴿ينشف﴾ د تفعيل مضارع ده، وچول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو روژتي په جائفه يا آمه زخم کي لنده دواء واچوله، او دواء سرايت وکړی، تر نس يا دماغ پوري ورسيدله، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه روژه فاسديږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه فاسديږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د زخم هغه سوری کوم چي نس يا دماغ ته تللی وي، هر وخت خلاص نه وي، بلکي کله خلاص وي، او کله بند وي، او ډيره ممکنه ده چي کله دې سري دواء زخم ته وراچولې وي، په هغه وخت کي دې سوری بند وي، لهذا په دې صورت کي په دواء رسيدلو کي يقين پيدا نه سو، بلکي شک پيدا سو (چي دواء به رسيدلې که نه وي)، او د شک په وجه سره روژه نه فاسديږي، نو ځکه به په دې صورت کي هم روژه نه فاسديږي، لکه څرنګه چي پر زخم د وچي دواء د لګولو په صورت کي روژه نه فاسديږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي د دې خبري يقيني علم او خبر مشکل او ناممکنه دی چي آيا دواء نس يا دماغ ته ورسيدله، که نه؟ ځکه چي دا يو باطني شی دی، ليکن دا خبره ښکاره ده چي کله د دواء رطوبت د زخم د رطوبت سره يو ځای سي، نو لاندي طرف ته د دواء ميلان زياتيږي، او کله چي لاندي طرف ته د دواء ميلان زيات سي، نو هغه باليقين نس او دماغ ته رسيږي، او کله چي نس او دماغ ته ورسيږي، نو روژه به فاسديږي، د دې په خلاف وچه دواء چي کله پر زخم واچول سي، نو هغه د زخم رطوبت په خپل ځان کي جذب کړي، او د زخم خوله بنده کړي، او کله چي د زخم خوله بنده سي، نو تر نس او دماغ پوري د دواء د رسيدلو امکان بالکل پاته نه سي، لهذا لنده دواء به پر وچه دواء قياسول صحيح نه وي، او د وچي دواء په صورت کي به روژه نه فاسديږي.

## د ذکر په سر کي د دواء اچولو حکم

وَلَوْ أَقْطَرَ فِي إِحْلِيلِهِ او که روژتي د ذکر په سوري کي دواء وڅڅوي لَمْ يُفْطِرْ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله نو د هغه روژه نه ماتيږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُفْطِرُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي روژه بې ماتيږي وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ: مُضْطَرِبٌ فِيهِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله قول په دې مسئله کي مختلف دی فَكَأَنَّهُ وَقَعَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجَوْفِ مَنْفَذًا ګواکي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دا خبره ثابته ده چي د سوري او نس په مينځ کي يوه لاره سته وَلِهَذَا يَخْرُجُ مِنْهُ الْبَوْلُ همدا وجه ده چي له نس څخه متيازي (بولي) راوځي وَوَقَعَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا ثابته ده أَنَّ الْمَثَانَةَ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ چي د ذکر د سوري او نس په مينځ کي مثانه واقع ده وَالْبَوْلُ يَتَرَشَّحُ مِنْهُ او متيازي له مثانې څخه راڅڅيږي وَهَذَا لَيْسَ مِنْ بَابِ الْفِقْهِ او دا (بحث) د فقهي نه باب څخه نه دی (بلکي دا د طبابت سره تعلق لري).

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله قوله وإن قطر في إحليله لا، أي لا يفطر أطلقه فشمل الماء والدهن، البحر الرائق ج:۲، ص: ۲۷۹. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۹۹]

اللغات: ﴿إحليل﴾ د نارينه اندام (د ذکر) سوری، ﴿مثانة﴾ د متیازو پوکنۍ (خلته، تپلی)، ﴿يترشح﴾ د تفعّل د باب مضارع دے، څڅيدل، ﴿حائل﴾ پرده، بنديز، خند.

تشریح: صورت د مسئلې، دا دی که روژتي خپل د ذکر په سوري کې دواء واچوله، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه روژه نه فاسديږي، لیکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د هغه روژه فاسديږي، او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په دې اړه کې يو حتمي قول نه دی رانقل سوی، د امام طحاوي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې هغه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی، او په مبسوط کې دي چې هغه د امام اعظم رَحِمَهُ الله سره دی، (ګواکي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دا ثابته نه ده چې د سوري او نس په مينځ کې لاره سته، که نه، ليکن ظاهر روايت دا دی چې امام محمد رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی).

خو په هر حال د دې اختلاف بنياد پر دې خبره دی چې د ذکر د سوري او د نس په مينځ کې يوه داسي لاره سته، که نسته، چې د هغې لارې په ذريعه يو بهيدونکی شی نس ته داخل سي، نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې د سوري او نس په مينځ کې داسي لاره سته، د هغه دليل دا دی چې متيازي هم له هغې لارې څخه راوځي، او که لاره نه وای، نو متيازي به څرنګه را وتلای؟، نو ثابته سوه چې د نس او د ذکر د سوري په مينځ کې لاره سته، لهذا کومه دواء چې د ذکر په سوري کې واچول سي، هغه به تر نس پوري رسيږي، او نس ته د بدن د اصلاح لپاره د يو شي ور رسول روژه فاسدوي، نو ځکه به په دې سره هم روژه فاسديږي، لکه څرنګه چې په امالې کولو سره فاسديږي.

امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ذکر د سوري او د نس په مينځ کې مثانه حائل ده، پاته سوې متيازي نو هغه له مثانې څخه راڅڅيږي (اصلي مطلب يې دا دی چې متيازي له نس څخه مثانې ته راڅڅيږي، او له مثانې څخه بيا د ذکر په سوري کې راځي)، لهذا کله چې د امام صاحب د تحقيق مطابق د نس او سوري په مينځ کې مثانه حائل ده، نو د ذکر په سوري کې به اچول سوې دواء تر نس پوري نه رسيږي، او کله چې تر نس پوري نه رسيږي، نو روژه به هم نه فاسديږي.

وهذا ليس الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا اختلاف او د احليل او نس په مينځ کې د لارې وجود يا د مثانې وقوع د فقهې سره تعلق نه لري، بلکي دا د طب (ډاکټرۍ) د فن، او د علم تشريح الأبدان سره تعلق لري.

فايده: صاحب د اثمار الهدايه وايي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب د طب مطابق دی، ځکه چې ډاکترانو دا ښکاره کړې ده چې د ذکر سوری سيده نس ته نه ځي، بلکي تر مثانې پوري ځي، او د مثانې په خلته کې متيازي په څاڅکو څاڅکو له نس څخه (يعني له هغه کولمې څخه چې په نس کې د متيازو لپاره لوی څښتن ﷻ جوړه کړې ده) راڅڅيږي.

## په روژه کې د بو شي د څکلو (خوند کتلو) حکم

وَمَنْ ذَاقَ شَيْئًا بِفِيهِ لَمْ يُفْطِرْ او کوم روژتي چې په خوله سره يو شی وڅکي نو روژه يې نه ماتيږي لِعَدَمِ الْفِطْرِ صُورَةً وَمَعْنًى ځکه چې صورتاً او معناً افطار نسته وَيُكْرَهُ لَهُ ذَلِكَ ليکن د هغه لپاره داسي کول مکروه دي لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْرِيضِ الصَّوْمِ عَلَى الْفَسَادِ ځکه چې په دې کې پر فساد د روژې ور اړول دي.

اللغات: ﴿ذاق﴾ څکل، ديوشي خوند کتل، ﴿تعريض﴾ وړاندي کول، مخته راوړل، پېشول (ور اړول).

**تشریح:** مسئله: دا ده چې د روژتي لپاره د یو شي خوند کتل او ځکل مکروه دي، خو په دې ځکلو سره د هغه روژه نه فاسدیږي، ځکه چې په ځکلو کې نه صورتاً افطار ستـه، او نه معناً افطار، حال دا چې د روژې د فساد لپاره صورتاً یا معناً افطار ضروري دی، خو د هغه دا عمل ځکه مکروه دی، چې په دې کې بې له ضرورته روژه د فساد پر طرف کشول او د فساد مخته ایښوول راځي.

## د خپل بچي لپاره د دودی ژوولو حکم

وَيُكْرَهُ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَمْضَغَ لِصَبِيِّهَا الطَّعَامَ او مکروه دي دښځي لپاره چې د خپل بچي لپاره خواړه وژووي إِذَا كَانَ لَهَا مِنْهُ بُدٌّ خو چې کله ښځي ته له ژوولو څخه څه چاره وي(یعني بل څوک وي چې د کوچني لپاره خواړه وژووي) لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَلَا بَأْسَ إِذَا لَمْ تَجِدْ مِنْهُ بُدًّا او کله چې د ښځي لپاره څه چاره نه وي نو(بيا) پروا نه لري صِيَانَةً لِلْوَلَدِ د زوی د ساتنې لپاره أَلَا تَرَى أَنَّ لَهَا أَنْ تُفْطِرَ إِذَا خَافَتْ عَلَى وَلَدِهَا آيا ته نه ګورې چې ښځي ته هغه وخت روژه ماتول جائز دي کله چې د زوی پر ضايع کېدلو ويريږي.

**اللغات:** ﴿تمضغ﴾ د فتح مضارع ده: ژوول. ﴿صيانة﴾ د نصر مصدر دی: ساتنه، حفاظت.

**تشریح:** مسئله: دا ده که د يوې ښځي کوچنی زوی وي، او په خپله خوراک نه سي کولای، او د دې لپاره يو بل څوک وي، چې خواړه وژووي او کوچني ته يې ورکړي، نو په دې صورت کې د روژتي مور لپاره د کوچني خواړه ژوول مکروه دي، ځکه په دې کې هم روژه پر فساد پېشول لازميږي، او دا صحيح نه دي، هو! که يو بل ژوونکی نه وو، نو بيا په دې صورت کې د دې روژتي ښځي لپاره خواړه ژوول او کوچني ته ورکول صحيح دي، او په دې کې هيڅ حرج نسته، ځکه که هغه داسي نه وکړي، نو د بچي د مرګ يا د سخت مرض خطره ده، همدا وجه ده چې شريعت ښځي ته دا اختيار ورکړی دی چې که په روژه نيولو سره د هغې په شيدو کې کمي راتله، او بچی يې له لوږي څخه متأثر کېدی، نو بيا دي روژه نه نيسي، لهذا کله چې د بچي د حفاظت په خاطر شريعت روژه ماتول جائز کړي دي، نو ژوول خو به حتماً جائز وي.

## د کندورو (ګوند) د ژوولو حکم

وَمَضْغُ الْعِلْكِ لَا يُفْطِرُ الصَّائِمَ او د ګوند(کوندورو) ژوول د روژتي روژه نه ماتوي لِأَنَّهُ لَا يَصِلُ إِلَى جَوْفِهِ ځکه چې ګوند د هغه تر نسه پوري نه رسيږي وَقِيلَ: إِذَا لَمْ يَكُنْ مُلْتَئِمًا يَفْسُدُ او ويل سوي دي: چې کله ګوند سره موښتي نه وي نو روژه فاسدوي(ځکه بيا د غلښو سره نه مښلي او په ژوولو سره ټوکره ټوکره کېږي او نس ته رسيږي) لِأَنَّهُ يَصِلُ إِلَيْهِ بَعْضُ أَجْزَائِهِ ځکه چې د هغه بعضي اجزاء نس ته رسيږي وَقِيلَ: إِذَا كَانَ أَسْوَدَ يَفْسُدُ او ويل سوي دي: چې کله ګوند تور وي نو روژه فاسدوي وَإِنْ كَانَ مُلْتَئِمًا که څه هم سره موښتي وي لِأَنَّهُ يَتَفَتَّتُ ځکه چې تور ګوند ذره ذره کېږي إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ لِلصَّائِمِ خو د روژتي لپاره د ګوند ژوول مکروه دي لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْرِيضِ الصَّوْمِ لِلْفَسَادِ ځکه چې په دې کې روژه پر فساد پېشول دي وَلِأَنَّهُ يُتَّهَمُ بِالْإِفْطَارِ او په دې وجه (هم) چې روژتي به افطار سره متهم سي(يعني خلک به دا تهمت پر لګوي چې هغه روژه خوري) وَلَا يُكْرَهُ لِلْمَرْأَةِ إِذَا لَمْ تَكُنْ صَائِمَةً لِقِيَامِهِ مَقَامَ السِّوَاكِ فِي حَقِّهِنَّ او د ښځي لپاره ګوند ژوول

مکروه نه دي(خو) چې کله يې روژه نه وي ځکه د ښځو په حق کې ګوند ژوول د مسواک پر ځای ولاړ دي وَيُكْرَهُ لِلرِّجَالِ عَلَى مَا قِيْلَ او د خلګو لپاره مکروه دي لکه څرنګه چې ويل سوي دي إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ عِلَّةٍ په دې شرط چې ژوول د يو مرض په وجه نه وي وَقِيْلَ: لَا يَسْتَحِبُّ لِمَا فِيْهِ مِنَ التَّشَبُّهِ بِالنِّسَاءِ او ويل سوي دي: چې د خلګو لپاره د ګوند ژوول ښه نه دي ځکه چې په دې کې د ښځو سره مشابهت راځي.

**اللغات:** ﴿مضغ﴾ د فتح د باب مصدر دی: ژوول. ﴿علك﴾ په کسره د عين سره يو ډول کنډوري(ګوند) دی چې ښځې يې د غاښونو د صفا کولو لپاره ژووي، او په فتح د عين سره يعني عَلك بيا مصدري د ضرب او نصر له باب څخه، او معنی يې ده: ژوول، غاښونه چيچل. ﴿متشبثا﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: سره موښتي، سره يو ځای سوي. ﴿يتفتت﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ميده ميده کېدل. ذره ذره کېدل.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که روژتي ګوند(کنډوري) وژووي، نو د هغه روژه نه فاسديږي، ځکه ګوند د خپل سرېښوالي په وجه د غاښو سره منبلي او نس ته نه رسيږي، او کوم شی چې ته نه رسيږي، هغه روژه نه فاسدوي. او بعضي فقهاو فرمايلي دي چې که ګوند سرمښتی نه وي، بلکې باريک او نرم وي، نو د هغه په ژوولو سره روژه فاسديږي، ځکه په دې صورت کې د ګوند ځيني اجزاء نس ته رسيږي، او بعضي فقهاؤ فرمايلي ده که تور ګوند وي نو د هغه په ژوولو سره روژه فاسديږي، که څه هم سره موښتي وي، ځکه چې د تور رنګ ګوند ميده ميده او ټوکړه ټوکړه کيږي، او د ټوکړه کېدلو په وجه د هغه بعضي اجزاء نس ته رسيږي.

إلا أنه يكره الخ صاحب د هدايې فرمايي چې که ګوند سره موښتي وي، او تر نسه پوري د هغه د رسېدلو انديښنه کمه وي، نو هم د روژتي لپاره ګوند ژوول مکروه دي، ځکه چې په دې کې پر فساد د روژې پېشول راځي، ځکه دا امکان سته چې څه اجزاء دي له روژتي څخه تېر سي، بل دا چې خلک به پر ده د روژې خوړلو تهمت لګوي، يعني کله چې خلک دی ويني چې يو شی ژووي، نو د روژې په خوړلو سره به يې متهم کړي، او خلک هم داسې کول(يعني په روژه کې يو شی ژوول) بدګني، او کوم کار چې خلک بد ګني هغه مکروه وي، نو په دې ټولو وجه به هم دا کار مکروه وي.

ولا يكره للمرأة الخ فرمايي: که د ښځې روژه نه وه، نو هغې لره ګوند ژوول مکروه نه دي، ځکه د ښځې په حق کې ګوند ژوول د مسواک قائم مقام دي، او ګوند د مسواک قائم مقام ځکه دی چې ښځې ډېري کمزوري او نازکي دي نو غاښونه او وري يې هم نازکي وي، لهذا هغوی د مسواک په ډول سخت شی نه سي زغملای، نو په دې وجه ګوند د هغوی په حق کې د مسواک په ډول دی، لېکن د خلګو لپاره ګوند استعمالول مکروه دي، هو! که د يو مرض په وجه يې استعمال کړي نو بيا مکروه نه دي، او يو قول دا دی چې د خلګو لپاره ګوند استعمالول مباح دي، لېکن ښه کار او مستحب نه دي، ځکه په دې کې د ښځو سره مشابهت راځي، او خلګ د ښځو له مشابهت څخه منع سوي دي.

## د رانجو لګولو او د برېتو غوړولو حکم

وَلَا بَأْسَ بِالْكُحْلِ وَدُهْنِ الشَّارِبِ او څه پروا نسته په رانجو لګولو کې او د برېتو په غوړولو کې(يعني پر برېتو د تېل په لګولو کې) لِأَنَّهُ نَوْعُ إِرْتِفَاقٍ ځکه چې دا يو ډول راحت دی وَهُوَ لَيْسَ مِنْ مَحْظُوْرَاتِ الصَّوْمِ او راحت د روژې له

ممنوعاتو څخه نه دي وَقَدْ نَدَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● إِلَى الْإِكْتِحَالِ يَوْمَ عَاشُورَاءَ وَإِلَى الصَّوْمِ فِيْهِ او نبي ﷺ د عاشوراء په ورځ روژه نيول او رانجه لګول مستحب ګرځولو دي وَلَا بَأْسَ بِالْإِكْتِحَالِ لِلرِّجَالِ إِذَا قَصَدَ بِهِ التَّدَاوِيَ او د خلکو لپاره په رانجو لګولو کي څه حرج نشته په دې شرط چي مقصد يې علاج وي دُوْنَ الزِّيْنَةِ نه ښکلا وَيَسْتَحْسِنُ دَهْنَ الشَّارِبِ او پر بريتو تېل لګول غوره دي إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ قَصْدِهِ الزِّيْنَةُ خو چي کله يې اراده ښکلا نه وي لِأَنَّهُ يَعْمَلُ عَمَلَ الْخِضَابِ ځکه چي دا د نکريزو کار کوي وَلَا يَفْعَلُ لِتَطْوِيْلِ اللِّحْيَةِ إِذَا كَانَتْ بِقَدْرِ الْمَسْنُوْنِ او د بږيري داوږدولو لپاره دې تېل نه لګوي چي کله بږيره د سنت په اندازه وي وَهُوَ الْقُبْضَةُ او سنت اندازه يو موټ ده.

**اللغات:** ﴿كحل﴾ رانجه، ﴿دهن﴾ تېل، ﴿شارب﴾ بريتونه، ﴿ارتفاق﴾ د افتعال د باب مصدر دی: د ژوند راحت او سکون حاصلول، نفع اخيستل، ﴿محظور﴾ اسم مفعول دی: منع کړی سوی، ﴿ندب﴾ د نصر ماضي ده: مستحب ګرځول، ترغيب ورکول، ﴿اكتحال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: رانجه لګول، ﴿لحية﴾ بږيره ﴿قبضة﴾ يو موټ.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي د روژتي لپاره رانجه لګول او بريتونه غوړول جائز دي، ځکه چي دا شيان د ژوند له آسانتياوو او راحتونو څخه دي، او د روژې په حالت کي آساني او راحت تر لاسه کول مکروه نه دي، بلکي رانجه لګول خو لا مستحب او غوره کار دی، ځکه نبي ﷺ د عاشوراء په ورځ روژه نيول او رانجه لګول مستحب ګرځولي دي. همدا ډول د خلکو لپاره د علاج په توګه په رانجه لګولو کي څه حرج نشته، لېکن د ښکلا او زينت لپاره د خلکو په حق کي رانجه لګول مکروه دي، ځکه چي ښکلا او ځان ښائسته کونه د ښځو خاصه ده. نه د خلکو (خو په ځانګړو حالاتو کي مستحسن دي)، همدارنګه که ښکلا او ښائست مقصود نه وي، نو د بريتو په غوړولو کي هم څه حرج نشته، ځکه چي تېل د نکريزو کار کوي، او نکريزي لګول سنت او غوره دي.

ولايفعل الخ فرمايي: که د يو سړي بږيره په سنت اندازه يعني يو موټ وي، نو د بږيري د اوږدولو په غرض تېل لګول پکار نه دي، ځکه دا هم په ښکلا او زينت کي داخل دي.

## په روژه کي د مسواک وهلو حکم

وَلَا بَأْسَ بِالسِّوَاكِ الرَّطْبِ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ لِلصَّائِمِ او د روژتي لپاره سهار او مانبام د لانده مسواک په وهلو کي څه پروا نشته لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ●: خَيْرُ خِلَالِ الصَّائِمِ السِّوَاكُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي د روژتي غوره خصلت مسواک دی مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ بغير له څه تفصيل څخه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُكْرَهُ بِالْعَشِيِّ لېکن امام شافعي رحمه الله فرمايي: چي د مانبام په وخت کي مکروه دی لِمَا فِيْهِ مِنْ إِزَالَةِ الْأَثَرِ الْمَحْمُوْدِ ځکه په دې سره خوښ (او غوره) اثر

● تخريج: أخرجه البيهقي في شعب الإيمان في كتاب الصيام، حديث رقم: ۳۷۹۷، والبخاري في كتاب الصوم، باب إذا نوى بالنهار صوماً، حديث رقم: ۱۹۲۷.

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الصيام، باب ما جاء في السواك والكحل للصائم، حديث رقم: ۱۶۷۷.

لیري کول دي وَهُوَ الْخُلُوْفُ او بنه اثر خلوف (یعني د روژتي د خولې بوی) دی فَشَابَهَ دَمَ الشَّهِيْدِ نو دا د شهید د وینو سره مشابه سو قُلْنَا: هُوَ أَثَرُ الْعِبَادَةِ اللَّائِقُ بِهِ الْإِخْفَاءُ موږ وایو چي خلوف د عبادت اثر دی او د عبادت سره لائق پټول دي (یعني د عبادت پټول زیات غوره دي) بِخِلَافِ دَمِ الشَّهِيْدِ په خلاف د شهید د وینو لِأَنَّهُ أَثَرُ الظُّلْمِ ځکه چي هغه د ظلم اثر دی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الرَّطْبِ الْأَخْضَرِ وَبَيْنَ الْمَبْلُوْلِ بِالْمَاءِ او څه فرق نسته د شنه (زرغونه) لانده مسواک او په اوبو سره د لانده سوي مسواک په مینځ کي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چي موږ روایت کړی.

**اللغات:** ﴿سواك﴾ مسواک وهل، ﴿غداة﴾ د سهار وخت، ﴿عشيّ﴾ ماښام، د شپې وخت، ﴿خلال﴾ جمع د خلة ده: خصلت، ﴿خلوف﴾ د خولې بوی، ﴿مبلول﴾ اسم مفعول دی: لوند سوی، ﴿أخضر﴾ شین، زرغون.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز د روژتي لپاره سهار، ماښام هر وخت د مسواک وهلو اجازه سته، او مسواک که په اوبو لوند وي، یا په خپله لوند وي، په هر صورت کي د هغه استعمالول روا دي، او هیڅ کراهت او قباحت پکښي نسته. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي له سهاره څخه تر زواله پوري د مسواک وهلو اجازه سته، لېکن تر زوال وروسته مسواک وهل مکروه دي.

**د امام شافعي دلیل:** دا حدیث دی کوم چي طبراني روایت کړی دی: لَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللهِ مِنْ رِيْحِ الْمِسْكِ، (یعني د روژتي د خولې بوی د الله ﷻ په نېز تر مشکو زیات ښه دی). او ښکاره ده چي په مسواک وهلو سره دا بوی لیري کېږي، نو ځکه تر زوال وروسته د روژتي لپاره مسواک وهل مکروه دي، او دا بوی د شهید د وینو سره مشابه دی، یعني څرنګه چي د شهید وینې نه پرېولل کېږي، او د خپلو وینو سره په قبر کي پټېږي، همدارنګه به د روژتي لپاره هم خلوف لیري کول مناسب نه وي، بلکي هغه ته به په همدغه حالت کي روژه پوره کول پکار وي.

**زموږ دلیل:** دا حدیث دی: خیر خلال الصائم السواك، (یعني د روژتي غوره خصلت مسواک وهل دي). په دې حدیث سره موږ په دې توګه دلیل نیسو، چي په دې حدیث کي مسواک وهل د روژتي لپاره ښه خصلت ګرځول سوی دی، او د سهار او ماښام هیڅ قید او تفصیل پکښي بیان سوی نه دی، نو څرنګه چي د سهار په وخت کي مسواک وهل مباح دي، همدارنګه به د ماښام په وخت کي هم مسواک وهل مباح وي، زموږ دویم دلیل دا دی چي نبي ﷺ په بعضي حدیثونو کي د هر لمانځه لپاره مسواک وهل سنت کړي دي، او د مسواک والا لمونځ یې اویا (۷۰) چنده تر بل لمانځه افضل ګرځولی دی، او په دې حدیثونو کي د رمضان او غیر رمضان همدارنګه د ماښام او غیرِ ماښام هیڅ تفصیل نسته. نو له دې حدیثونو څخه هم هر وخت د مسواک وهلو اباحت ثابتېږي.

قلنا هو الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله خلوف د شهید پر وینو قیاس کړی وو، د هغه جواب ورکوي، فرمایي چي خلوف د شهید پر وینو قیاسول صحیح نه دي، ځکه چي روژه عبادت دی، نو خلوف د عبادت اثر سو، او د عبادت لپاره اخفاء او پټول زیات مناسب دي، او اخفاء هغه وخت امکان لري چي کله خلوف لیري کړی سي، د دې په خلاف د شهید وینې دي، نو د هغو څرګندول او پرېښوول مناسب دي، ځکه چي هغه د ظلم اثر دي، او د شهید لپاره د قیامت په ورځ د خپل خصم په خلاف د وینو پاته کېدل زیات ضروري دي.

ولا فرق الخ د الرطب الأخضر څخه مراد هغه مسواک دی چي په خپله لوند وي، وچ نه وي، نو فرمايي چي مسواک ک په خپله لوند وي، يا په اوبو سره لوند سوی وي، په دواړو صورتونو کي د هغه استعمالول مباح دی، او هيڅ کراهت پکښي نسته، ځکه چي ذکر سوی حديث: خير خلال الصائم الخ مطلق دی، او په هغه کي د لانده يا وچ مسواک هيڅ تفصيل نسته.

په اصل کي دا عبارت دامام ابو يوسف رَحِمَهُ‌الله د هغه قول په رد کي ذکر سوی دی چي په هغه کي يې ويلي دي؛ چي ک مسواک په اوبو کي ايښول سوی وي، او په اوبو سره لوند سوی وي، نو د هغه استعمالول مکروه دی، لېکن زموږ بيان سوي حديث د هغه په خلاف حجت دي. والله أعلم بالصواب

## فَصْلٌ فِيْ أَعْذَارِ الْإِفْطَارِ

### (دا) فصل د روژې ماتولو د عذرنو (په بيان کي) دی

### د مريض لپاره د روژې حکم

وَمَنْ كَانَ مَرِيْضًا فِيْ رَمَضَانَ او څوک چي په رمضان کي مريض وي فَخَافَ إِنْ صَامَ إِزْدَادَ مَرَضُهُ او ويرېږي چي که روژه ونيسي نو مرض به يې زيات سي أَفْطَرَ وَقَضٰى نو روژه دي ماته کړي او قضاء دي يې راوړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَايُفْطِرُ او امام شافعي رَحِمَهُ‌الله فرمايي: چي روژه دي نه ماتوي هُوَيَعْتَبِرُخَوْفَ الْهَلَاكِ أَوْ فَوَاتَ الْعُضْوِ هغه د هلاکت د ويري يا د يو اندام د ضايع کېدلو اعتبار کوي كَمَا يَعْتَبِرُ فِي التَّيَمُّمِ لکه په تيمم کي چي هم دغه اعتبار کوي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: إِنَّ زِيَادَةَ الْمَرَضِ وَامْتِدَادَهُ قَدْ تُفْضِيْ إِلَى الْهَلَاكِ موږ جواب ورکوو: چي د مرض زياتېدل او د هغه اوږدېدل کله نا کله تر هلاکته رسول کوي (يعني کله نا کله د هلاکت سبب جوړېږي) فَيَجِبُ الْإِحْتِرَازُ عَنْهُ نو ځکه به له هغه څخه (هم) ځان ساتل واجب وي.

**اللغات:** ﴿إزداد﴾ د افتعال د باب ماضي ده: زياتېدل. ﴿فوات﴾ ضايع کېدل، فوتېدل. ﴿امتداد﴾ د افتعال د باب مصدر دی: اوږدېدل، غوړېدل. ﴿تفضي﴾ د افعال د باب مضارع ده: رسول. ﴿احتراز﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پرېږ کول، ځان ساتل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی په رمضان کي مريض وو، او هغه ته دا ډېره سوه چي که روژه ونيسم، مرض به مي زيات سي، نو زموږ په نېز د هغه لپاره حکم دا دی چي روژه دي نه نيسي، او هر وخت چي جوړ سو، د هغه قضاء دي راوړي، امام شافعي رَحِمَهُ‌الله فرمايي چي په معمولي غوندي او سپک مرض کي روژه ماتول جائز نه دي، بلکي که د روژې نيولو په وجه د انسان د هلاکت او مرګ خطره وه، يا يې د يو اندام د تلف کېدلو خطره وه، نو بيا د هغه لپاره د روژې نه

نيولو اجازه سته، کنې نسته، لکه په تيمم کي چي هم امام شافعي رَحِمَهُ الله دغه قيد لګولی دی چي که داوبو په استعمال د هلاکت يا ديو اندام د ضايع کېدلو ډېره وه، نو بيا تيمم جائز دی، کنې د زکام، توخ او ريخ په ډول د معمولي مرضونو په وجه نه تيمم جائز دی، او نه د روژې ماتول جائز دي.

په دې لړ کي زموږ دليل د قرآن کريم دا آيت دی: فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ [البقرة، ۱۸۴]، په دې آيت سره موږ په دې توګه دليل نيسو، چي په دې کي په مطلق توګه د هر مريض لپاره د روژې نه نيولو اجازه سوې ده، خو څرنګه چي په قياس او قرينې سره په سخت او زيات مرض کي د روژې نه نيولو اجازه سته، او د مرض د زياتېدلو ډېره هم په دې ډول معمولي مرضونو کي سته، نو ځکه به د هر ډول مرضونو په خاطر د روژې نه نيولو اجازه وي، په دې شرط چي د مرض د زيادت ډېره پکښې وي.

ونحن نقول الخ د دې حاصل دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چي روژه ماتول به د هلاکت يا د يو اندام د ضايع کېدلو سره خاص وي، صحيح نه ده، بلکي کله نا کله د مرض زياتېدل او اوږدېدل هم د هلاکت سبب جوړېږي، لهذا په دې صورتونو کي هم احتياط کول ضروري دي.

## د مسافر لپاره د روژې حکم:

وَإِنْ كَانَ مُسَافِرًا لَا يَسْتَضِرُّ بِالصَّوْمِ او که مسافر په روژې نيولو سره نه په تکليف کېدی فَصَوْمُهُ أَفْضَلُ نو د هغه لپاره روژه نيول افضله دي وَإِنْ أَفْطَرَ جَازَ او که روژه يې ماته کړه نو (هم) جائز دي لِأَنَّ السَّفَرَ لَا يَعْرَى عَنِ الْمَشَقَّةِ ځکه چي سفر له تکليف څخه خالي نه وي فَجُعِلَ نَفْسُهُ عُذْرًا نو په خپله سفر عذر وګرځول سو بِخِلَافِ الْمَرَضِ فَإِنَّهُ قَدْ يُخَفَّفُ بِالصَّوْمِ په خلاف د مرض ځکه چي مرض کله نا کله په روژې سره سپکېږي فَشُرِطَ كَوْنُهُ مُفْضِيًا إِلَى الْحَرَجِ نو ځکه په مرض کي دا شرط ولګول سو چي تر حرج پوري به رسونکی وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: الْفِطْرُ أَفْضَلُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي روژه ماتول افضله دي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1]: لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصِّيَامُ فِي السَّفَرِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: په سفر کي روژه نيول نېکي نه ده وَلَنَا أَنَّ رَمَضَانَ أَفْضَلُ الْوَقْتَيْنِ او زموږ دليل دا دی چي رمضان له دوو وختونو څخه يو افضل وخت دی فَكَانَ الْأَدَاءُ فِيهِ أَوْلَى نو په رمضان کي به اداء کول غوره وي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى حَالَةِ الْجَهْدِ او کوم حديث چي امام شافعي روايت کړی دی هغه د تکليف (او مشقت) پر حالت حمل سوی دی.

اللغات: ﴿لا يستضر﴾ د استفعال د باب مضارع منفي ده: په تکليف کېدل، تکليف محسوسول، ﴿لا يعرى﴾ مضارع منفي ده: خالي کېدل، ﴿يخفف﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: سپکول، ﴿بِرّ﴾ نېکي، ﴿جهد﴾ تکليف، مشقت، ستونزه.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصوم، حديث رقم: ۱۹۴۶، ومسلم في كتاب الصيام، حديث رقم: ۹۲.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که مسافر په روژې سره نه په تکليف کېدی، نو د هغه لپاره روژه نيول افضله دي، لېکن که بيا هم هغه روژه نه ونيوله، نو جائز دي. او هغه ته دا اختيار سته چې روژه نه ونيسي، ځکه په سفر کې عموماً ستونزې او تکليفونه وي، او ډېر کم له مشقت څخه خالي وي، نو ځکه شريعت نفسِ سفر عذر وګرځوی، په خلاف د مرض، ځکه چې مرض کله نا کله په روژې سره سپکيږي، تر دې چې ډېرو مرضونو ته روژه ګټه کوي، نو ځکه به په مرض کې مطلقاً د افطار رخصت نه ورکول کيږي، بلکې دا شرط به لګيږي چې که مرض مُفضی الی الحرج وو، نو په هغه کې به د روژې نه نيولو اجازه وي، لېکن که مُفضی الی الحرج نه وو، نو بيا به روژه نيول ضروري وي.

وقال الشافعي رَحِمَهُ اللهُ الخ فرمايي چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د مسافر لپاره مطلقاً روژه نه نيول افضله دي، برابره ده که په سفر کې هغه ته تکليف وي، که نه وي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا حديث دی: ليس من البر الصيام في السفر (يعني په سفر کې روژه نيول نېکي نه ده). په دې حديث سره امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې توګه دليل نيسي چې په دې حديث کې د تکليف او غير تکليف هيڅ قيد نشته، او مطلقاً د مسافر روژه له نېکۍ څخه ايستل سوې ده، نو ځکه به د مسافر لپاره مطلقاً روژه نه نيول افضله وي.

ولنا الخ زمونږ دليل دا دی چې د رمضان د روژو د اداء کولو لپاره دوه وختونه دي: (۱) اول وخت دا دی چې هغه د رمضان په مياشت کې اداء کړی سي، او دويم وخت دا دی چې هغه له رمضان څخه ماسوا په بل وخت کې را وګرځول سي، لکه څرنګه چې په قرآن کې راځي: فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ ٱلشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۖ وَمَن كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ [البقرة: ۱۸۵]، د دې آيت له اول څخه په رمضان کې د اداء کولو معنیٰ فهمول کيږي، او د آيت له آخر څخه په غير رمضان کې د اداء کولو جواز ثابتيږي، او دا خبره تسليم سوې ده چې د رمضان روژې په رمضان کې اداء کول ډېر افضله دي، ځکه چې دا تر ټولو زياته مقدسه او د برکت والا مياشته ده، او يوه مياشته هم د فضيلت او برکت په حواله د رمضان سره نه سي برابريدلی، نو ځکه موږ وايو که د روژې په نيولو کې مسافر ته په رمضان کې څه سختي او ستونزه نه وه، نو د هغه لپاره روژه نيول افضله دي.

وما رواه محمول الخ پاته سو د امام شافعي رَحِمَهُ الله حديث نو د هغه جواب دا دی چې هغه د تکليف او ستونزې پر حالت محمول دی، او د تکليف په صورت کې خو موږ هم دا وايو چې د مسافر لپاره د روژې نه نيول جائز او افضله دي.

## که د مرض يا د سفر په وخت کې روژتي مړ سو نو څه حکم دی؟

وَإِذَا مَاتَ الْمَرِيضُ أَوِ الْمُسَافِرُ او کله چې مريض يا مسافر مړ سي وَهُمَا عَلَى حَالِهِمَا او دواړه (د مرګ په وخت کې) پر خپل (مخکني) حال وي (يعني هغسې د مرض يا سفر په حالت کې وي) لَمْ يَلْزَمْهُمَا الْقَضَاءُ نو پر هغوی قضاء نه لازميږي لِأَنَّهُمَا لَمْ يُدْرِكَا عِدَّةً مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ځکه چې مريض او مسافر له نورو ورځو څخه د قضاء راوړلو په اندازه ورځې نه دي نيولي.

**اللغات:** ﴿عدة﴾ تعداد، شمېر. ﴿أخر﴾ جمع د آخر ده: نوري.

**تشريح:** مسئله: دا ده که مريض او مسافر د مرض او سفر په وجه روژې نه ونيسي، او د دې مرض يا سفر په حالت کې هغوی مړه سي، نو د هغو له ذمې څخه فريضه ساقطيږي، او پر هغو قضاء يا فديه نه لازميږي، ځکه له مرض او سفر څخه ماسوا هغو ته دومره وخت پيدا نه سو، چې په هغه کې دوی د قضائي روژو قضاء راوړي، نو کله چې دوی ته د قضاء

موقع پیدا نه سوه، نو ښکاره ده چي د دوی له طرفه د قضاء په باره کي هيڅ بې پروايي نه وسوه، نو ځکه به قضاء یا فدیه پر لازم نه وي.

## که د مرض یا د سفر تر ختمېدلو وروسته روژتي مړ سو نو څه حکم دی؟

وَلَوْ صَحَّ الْمَرِيضُ وَأَقَامَ الْمُسَافِرُ او که مریض جوړ سي او مسافر مقیم سي ثُمَّ مَاتَا بیا مړه سي لَزِمَهُمَا الْقَضَاءُ بِقَدْرِ الصِّحَّةِ وَالْإِقَامَةِ نو د صحت او اقامت په اندازه پر هغو قضاء لازميږي لِوُجُودِ الْإِدْرَاكِ بِهَذَا الْمِقْدَارِ د هغومره اندازه دوخت نیولو په وجه وَفَائِدَتُهُ وُجُوبُ الْوَصِيَّةِ بِالْإِطْعَامِ او د دې فایده به دا وي چي د خوراک په ذریعه د فدیې ورکولو وصیت به (پر هغو) واجب وي وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ فِيهِ خِلَافًا بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ وَبَيْنَ مُحَمَّدٍ او امام طحاوي رَحِمَهُ الله په دې باره کي د شیخینو او د امام محمد رَحِمَهُمُ الله په مینځ کي اختلاف ذکر کړی دی وَلَيْسَ بِصَحِيحٍ لیکن دا صحیح نه ده وَإِنَّمَا الْخِلَافُ● فِي النَّذْرِ بلکي اختلاف د نذر په مسئله کي دی وَالْفَرْقُ لَهُمَا أَنَّ النَّذْرَ سَبَبٌ او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله لپاره د فرق وجه دا ده چي نذر سبب دی فَيَظْهَرُ الْوُجُوبُ فِي حَقِّ الْخَلَفِ نو د خلیفه په حق کي به وجوب ښکاره کیږي وَفِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ السَّبَبُ إِدْرَاكُ الْعِدَّةِ او په دې مسئله کي [یعني د رمضان په مسئله کي] د ورځو نیول سبب دی فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ مَا أَدْرَكَ نو څومره ورځي چي ونیسي هغومره به وجوب مقدر وي (یعني هغومره ورځي به روژه نیول واجب وي).

تشریح: صورت د مسئلې: دا دی که یو مریض یا مسافر په رمضان کي روژې نیولای نه سوې، او تر رمضان وروسته مریض جوړ سو، او مسافر مقیم سو، بیا دواړه مړه سول، نو پر دوی به د صحت او د اقامت د ورځو په اندازه د هغو روژو قضاء واجب وي، نو که هغوی تر مرض یا سفر وروسته د ټولو قضاء سوو روژو د ورځو په اندازه ژوندي پاته سول، نو پر هغو به د ټولو روژو قضاء واجب وي، او که تر هغه کم ژوندي پاته سول، یعني څومره روژې چي قضاء سوي وې، هغومره ژوندي پاته نه سو، مثلاً پنځلس(۱۵) روژې ځني قضاء سوي وې، او تر صحت او اقامت وروسته دوی ۸ ورځي ژوندي پاته سول، او بیا مړه سول، نو اوس به پر دوی صرف د ۸ روژو قضاء واجب وي، ځکه چي له أيام أخر څخه هغوی صرف ۸ ورځي ژوندي پاته سول، یعني صرف ۸ ورځي یې ونیولې، لهذا د قرآن کريم د دې آیت فعدة من أيام أخر په وجه به د أيام أخر د نیولو مطلق قضاء واجب وي.

اوس که په دې ۸ ورځو کي هغو د قضائي روژو قضاء رواړل، نو ډېر ښه، که قضاء یې نه راوړل، نو پر هغو به د مرګ په وخت کي دا وصیت واجب وي: "چي زما د مال له دریمي حصې څخه دي د دې قضائي روژو فدیه اداء کړی سي"، او دا فدیه به انشاء الله د هغه له طرفه کافي سي، او د هغو په سزا به انشاء الله نه نیول کیږي، د ظاهري مذهب مطابق دا مسئله د حنفي فقهاؤ په مینځ کي متفق علیه ده، لیکن امام طحاوي رَحِمَهُ الله په دې کي اختلاف ذکر کړی دی، هغه شیخین رَحِمَهُمَا الله یو ځای او متفق ذکر کړي دي او د هغو مسلک یې دا ښوولی دی چي که مریض او مسافر تر مرض او سفر

---

● القول الراجح: في هذه المسئلة قول أبي حنيفة وأبي يوسف رَحِمَهُمَا الله، كما قال في الهندية: لو قال المريض لله على أن أصوم شهراً فمات قبل أن يصح لا يلزمه شيء، ولو صح يوما لزمه أن يصوم بجميع الشهر، الهندية ج:۱، ص: ۲۱۰. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۰۰]

وروسته هر ګومره ژوندي پاته سول، او په دې وخت کې هغو د قضائي روژو قضاء نه راوړل، نو پر هغو به د ټولو قضاء سوو روژو لپاره وصيت کول ضروري وي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز چې ګومره ورځي ژوندي پاته سي، صرف د هغومره ورځو د فديې وصيت کول به ضروري وي، او د نورو ورځو لپاره به وصيت ضروري نه وي. لېکن صاحب د هدايې فرمايي چې دا اختلاف صحيح نه دی، بلکې په دې مسئله کې د ټولو يوه فيصله دا ده چې له أيام أخر يعني د صحت او اقامت له ورځو څخه چې يې ګومره ورځي نيولي وي، د هغو په اندازه به وصيت واجب وي.

[خبر تيا: صاحب د اثمار الهدايې وايي چې ما په طحاوي شريف کې يو داسي عبارت پيدا نه کړی چې په هغه سره دې د شيخينو او د امام محمد په مينځ کې اختلاف ثابت سي، والله أعلم. (اثمار الهدايه، ج۲، ص، ۱۰۲)]

وإنما الخلاف في النذر الخ فرمايي چې د شيخينو او د امام محمد رَحِمَهُ الله اختلاف د نذر په مسئله کې دی، يعني که يو سړي دا نذر ومنی "چې که جوړ سوم، نو انشاء الله ۱۰ روژې به نيسم". او تر جوړېدلو وروسته هغه صرف دوې ورځې ژوندی پاته سو، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به پر هغه د ټولو لسو ورځو د فديې ورکولو وصيت ضروري وي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به صرف د صحت د بقاء په اندازه يعني د دوو ورځو د فديې ورکولو وصيت ضروري وي (يعني ګومره ورځي چې جوړ پاته سوی وي، د هغومره ورځو د فديې وصيت به کوي)، امام محمد رَحِمَهُ الله د بنده ايجاب، د الله تعالیٰ پر ايجاب قياس کړی دی، يعني څرنګه چې د رمضان روژه د الله له طرفه پر بندګانو واجب ده، او په رمضان کې د قضاء حکم د صحت د ورځو په اندازه دی، همدارنګه به په نذر سوو روژو کې هم د قضاء حکم د صحت د ورځو او له أيام أخر څخه د نيول سوو ورځو په اندازه وي. (نذر د بنده ايجاب دی، ځکه په دې کې بنده پر ځان يو شی واجبوي، د الله له طرفه پر واجب نه وي).

والفرق الخ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله د مسلک مطابق د قضائي روژو او د نذر سوو روژو په مينځ کې د فرق وجه دا ده چې د نذر په روژو کې د وجوب سبب نذر دی، او نذر هر وخت موجود وي، لهذا کله چې مرض ختم سي، نو د روژو اداء کول به واجب وي، او د نه اداء کولو په صورت کې به د اداء خليفه يعني فديه واجب وي، او تر مرګ وروسته به د ټولو نذر سوو روژو د فديې وصيت کوي ځکه چې تر مرګ وروسته هم نذر پاته وي، د دې په خلاف د رمضان د قضائي روژو سبب د أيام أخر نيول دي، نو ګومره چې هغه سړي تر جوړېدلو وروسته ژوند پاته سوی وي، او ګومره ورځي چې يې نيولي وي، د هغه په اندازه به روژې پر واجب وي، نو که هغه دا روژې اداء کړې، نو ډېر ښه، کنې د دې ورځو د فديې وصيت به پر واجب وي.

## د رمضان د قضائي روژو د قضاء راوړلو حکم

> وَقَضَاءُ رَمَضَانَ إِنْ شَاءَ فَرَّقَهُ او د رمضان (د روژو) قضاء که وغواړي نو جلا جلا دې يې راوړي (يعني که خوښه يې وي نو د رمضان قضائي روژې دې جلا جلا ونيسي) وَإِنْ شَاءَ تَابَعَهُ او که وغواړي نو پرلپسې دې يې ونيسي لِإِطْلَاقِ النَّصِّ ځکه چې نص مطلق دی لٰكِنَّ الْمُسْتَحَبَّ الْمُتَابَعَةُ لېکن مستحب پرلپسې والی دی مُسَارَعَةً إِلَى إِسْقَاطِ الْوَاجِبِ د واجب په ساقطولو کې د تلوار (او چټکتيا) کولو لپاره.

**اللغات:** ﴿فرّق﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: جلا جلا كول. ﴿تابع﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: يو كار پرلپسې كول. متواتر كول، بلا ناغه كول. ﴿مسارعة﴾ د مفاعلې مصدر دى: تېزي كول، چابكي او تلوار كول.

**تشريح:** فرمايي له كوم سړي څخه چي د رمضان روژې قضاء سوي وي، او قضاء يې راوړل وغواړي، نو هغه ته اختيار دى، كه غواړي نو په جلا جلا ورځو كي دي روژې ونيسي، او كه غواړي نو پرلپسې دي يې ونيسي، نه پر هغه تفريق واجب دى، او نه تتابع، ځكه په كوم آيت سره چي د رمضان د قضائي روژو حكم سوى دى يعني: فعدة من أيام أخر دا آيت مطلق دى، او په دې كي د تفريق يا تتابع هيڅ تفصيل نسته. هو! دومره خبره ده چي له چا څخه د رمضان روژې قضاء سوي وي، نو د هغه لپاره مستحب او غوره دا ده چي پرلپسې او بلاناغه يې قضاء راوړي، د دې لپاره چي ژر تر ژره د واجب له اداء څخه فارغه سي، او يو بل داسي عذر مخته را نه سي، چي هغه په اداء كي خلل جوړ سي، او اداء نوره وځنډول سي.

## كه قضائي روژې بل رمضان ته وځنډول سي نو څه حكم دى؟

وَإِنْ أَخَّرَ قَضَاءَهُ حَتَّى دَخَلَ رَمَضَانُ آخَرُ او كه يو سړي قضاء وځنډوله تر دې چي بل رمضان راغلى صَامَ الثَّانِيَ نو هغه دي د دويم رمضان روژې ونيسي لِأَنَّهُ فِي وَقْتِهِ ځكه چي دا په خپل وخت كي دي(يعني دا يې خپل وخت دى) وَقَضَى الْأَوَّلَ بَعْدَهُ او تر دې وروسته دي د اول رمضان قضاء راوړي لِأَنَّهُ وَقْتُ الْقَضَاءِ ځكه دا د قضاء وخت دى(يعني وروسته د قضاء وخت دى) وَلَا فِدْيَةَ عَلَيْهِ او پر هغه فديه نسته لِأَنَّ وُجُوبَ الْقَضَاءِ عَلَى التَّرَاخِي ځكه چي د قضاء وجوب په تراخي سره دى حَتَّى كَانَ لَهُ أَنْ يَتَطَوَّعَ همدا وجه ده چي د هغه لپاره جائز دي چي نفلي روژه ونيسي.

**اللغات:** ﴿أخّر﴾ د تفعيل ماضي ده: ځنډول. ﴿فدية﴾ جرمانه(مالي سزا). ﴿التراخي﴾ د تفاعل مصدر دى: وروسته كول، ځنډول، التواء. ﴿يتطوع﴾ د تفعّل مضارع ده: نفلي عبادت كول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دى كه پر يو سړي د يوه رمضان روژې پاته سوې، او هغه يې دومره وځنډولې چي دويم رمضان راغلى، نو اوس د هغه لپاره حكم دا دى چي اول دي د دويم رمضان روژې اداء كړي، او بيا دي د تېر سوي رمضان د قضائي روژو قضاء راوړي، ځكه دويم رمضان په خپل وخت كي راغلى، او دا سړى په دې دويم رمضان كي پر روژو قدرت هم لري، نو ځكه به هغه د دې رمضان نغدي روژې نيسي، او د نورو روژو قضاء به وروسته راوړي، ځكه چي ټوله ژوند د قضاء وخت دى، او د دې ځنډولو په وجه به پر هغه فديه او نور هم واجب نه وي، ځكه چي د رمضان د روژو قضاء فى الفور او سملستي نه واجبيږي، بلكي په هغو كي د تراخي او ځنډولو ګنجائش سته، همدا وجه ده چي تر قضاء راوړلو مخكي د دې سړي لپاره نفلي روژې نيول جائز دي، كه قضاء على الفور واجبېدى، نو د ده لپاره به تر قضاء راوړلو مخكي نفلي روژې نيول هېڅكله صحيح نه واى، لهذا تر قضاء مخكي د نفلي روژو جواز د دې خبري دليل دى چي قضاء سملستي نه واجبيږي.

## د حاملې او د مرضعې ښځې لپاره د روژې حکم

وَالْحَامِلُ وَالْمُرْضِعُ إِذَا خَافَتَا عَلَى أَنْفُسِهِمَا أَوْ وَلَدَيْهِمَا حامله ښځه او شيدې ورکوونکې ښځه چې کله وېرېږي پر خپلو زامنو يا پر خپلو بچو أَفْطَرَتَا وَقَضَتَا دَفْعًا لِلْحَرَجِ نو روژه دې ماته کړي او (وروسته دې) قضاء راوړي د تکليف لېرې کولو لپاره وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِمَا او پر هغو کفاره نشته لِأَنَّهُ إِفْطَارٌ بِعُذْرٍ ځکه چې دا روژه ماتول دي د عذر په وجه وَلَا فِدْيَةَ عَلَيْهِمَا او پر هغو فديه (هم) نشته خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيمَا إِذَا خَافَتْ عَلَى الْوَلَدِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی په هغه صورت کې چې کله ښځه پر خپل بچي وېرېږي هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالشَّيْخِ الْفَانِي هغه دا مسئله پر ډېر بوډا قياسوي وَلَنَا أَنَّ الْفِدْيَةَ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ فِي الشَّيْخِ الْفَانِي او زموږ دليل دا دی چې فديه په ډېر بوډا کې خلاف القياس واجب ده وَالْفِطْرُ بِسَبَبِ الْوَلَدِ لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ او د بچي په سبب روژه ماتول د ډېر بوډا په معنیٰ کې نه دي لِأَنَّهُ عَاجِزٌ بَعْدَ الْوُجُوبِ ځکه چې بوډا تر وجوب وروسته عاجز سوی وي وَالْوَلَدُ لَا وُجُوبَ عَلَيْهِ أَصْلًا او پر بچي خو د سره وجوب سته نه.

**اللغات:** ﴿حامل﴾ هغه ښځه چې بچی يې په نس وي، ﴿مرضع﴾ هغه ښځه چې بچي ته شيدې ورکوي، ﴿شيخ فاني﴾ هغه سپين ږيری (بوډا) چې ډېر ضعيفه وي. عمر خوړلی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که حاملې يا مرضعې ښځې ته دا يره وه چې که روژه ونيسم نو بچي ته به مې نقصان ورسيږي، يا ضايع به سي، نو د هغو لپاره دا اختيار سته چې د رمضان روژې دې نه نيسي، او وروسته دې د قضاء سره روژو قضاء راوړي، ځکه په حمل او رضاعت کې د روژو د نيولو په وجه هغو ته تکليف او حرج پېښيږي، او شريعت حرج لېري کړی دی، لهذا د حرج لېري کولو په خاطر به د هغو لپاره روژې خوړل جائز وي، او زموږ په نېز نه پر هغو کفاره واجب ده، او نه يې پول فديه واجب ده، ځکه د حاملې او مرضعې لپاره روژې نه نيول د عذر په وجه سره دي، او د عذر په وجه روژه نه نيول هيڅ جنايت او جرم نه دی، او کفاره د جنايت په وجه سره واجبيږي، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی، چې که حاملې يا مرضعې ښځې د بچي د ويرې په وجه روژه نه ونيوله، نو پر هغې د قضاء سره سره فديه هم واجب ده (ځکه چې د روژې په نه نيولو کې د ښځې لپاره ذاتي نفع هم ده او د بچي لپاره هم، نو د ذاتي نفعې په وجه به د روژې قضاء پر واجب وي، او د بچي د نفعې په وجه به فديه پر واجب وي)، امام شافعي رَحِمَهُ الله دا مسئله د شيخ فاني والا پر مسئله قياسوي، يعني څرنګه چې پر شيخ فاني باندې فديه واجب ده، همدارنګه به پر حاملې او مرضعې هم فديه واجب وي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چې د شيخ فاني په حق کې فديه د قياس په خلاف له نص څخه ثابته ده، نو پر هغه به حامله او مرضعه نه قياسيږي، ځکه چې دا د فقه قاعده ده: ما ثبت على خلاف القياس فغيره لا يقاس عليه. دويم او عقلي دليل دا دی چې د بچي په وجه د حاملې يا مرضعې روژه نه نيول د شيخ فاني په معنیٰ کې هم نه دي، ځکه شيخ فاني د روژو تر واجبېدلو وروسته د هغو له اداء څخه عاجزه کيږي، او حامله يا مرضعه د بچي په وجه روژې نه نيسي، حال دا چې پر بچي له سره روژې واجب نه دي، نو ځکه به يو پر بل قياسول صحيح نه وي.

## د ډېر بوډا (سپين ږيري) سړي لپاره د روژې حکم

وَالشَّيْخُ الْفَانِي الَّذِي لَا يَقْدِرُ عَلَى الصِّيَامِ او هغه ډېر بوډا سړی چې د روژو پر نيولو قدرت نه لري يُفْطِرُ وَيُطْعِمُ لِكُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا هغه به روژه خوري او د هري ورځي په بدله کې به يوه مسکين ته خوراک ورکوي كَمَا يُطْعِمُ فِي الْكَفَّارَاتِ لکه څرنګه چې په کفاراتو کې خوراک ورکول کيږي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى: وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ (البقرة: ۱۸۴) او په دې باره کې اصل د الله تعالیٰ (دا) فرمان دی: وعلى الذين يطيقونه...الخ قِيلَ مَعْنَاهُ: لَا يُطِيقُونَهُ ويل سوي دي: چې د دې معنیٰ ده: "څوک چې د روژې طاقت نه لري" وَلَوْ قَدَرَ عَلَى الصَّوْمِ يَبْطُلُ حُكْمُ الْفِدَاءِ او که ډېر بوډا سړی پر روژې قدرت پيدا کړي نو د فديې ورکولو حکم باطليږي لِأَنَّ شَرْطَ الْخَلَفِيَّةِ اسْتِمْرَارُ الْعَجْزِ ځکه چې د خليفه والي شرط د عاجزۍ همېشه پاته کېدل دي (او دلته عاجزي پاته نه سوه نو ځکه به فديه باطليږي).

**اللغات:** ﴿يطعم﴾ د افعال مضارع ده: خوراک ورکول. ﴿لا يطيقون﴾ د افعال مضارع منفي ده: وس او طاقت لرل. ﴿فداء﴾ فديه ورکول. ﴿استمرار﴾ د استفعال مصدر دی: همېشه کېدل، په وار وار کېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې هغه ډېر ضعيفه او ناتوانه بوډا چې د روژو نيولو قدرت نه لري، د هغه لپاره حکم دا دی چې روژې دې نه نيسي، او د هري روژې په عوض کې دې يوه مسکين ته خوراک ورکوي، لکه څرنګه چې په کفاراتو کې خوراک ورکول کيږي، او په دې مسئله کې اصل او اساس د قرآن کريم دا آيت دی: وعلى الذين يطيقونه فدية طعام مسكين، او مفسرين فرمايي چې يطيقونه د لا يطيقونه په معنیٰ سره دی، چې ښکاره مفهوم يې دا دی: "کوم خلک چې د روژو تاب او طاقت نه لري، پر هغو به د هري روژې په بدله کې د فديې په توګه يوه مسکين ته خوراک ورکول ضروري وي"، همدا به د هغه د روژې فديه وي.

ولو قدر على الصوم الخ فرمايي: که شيخ فاني پر روژو قدرت پيدا کړي، نو پر هغه د روژو قضاء واجبيږي، او فديه ځني ساقطيږي، ځکه چې روژه اصل ده، او فديه د روژې بدل او خليفه دی، او د خليفه د وجوب لپاره له اصل څخه دائمي او همېشه عجز شرط دی، خو کله چې شيخ فاني پر روژو قدرت پيدا کړي، نو ښکاره ده چې د هغه په حق کې عجز ختم سو، او کله چې عجز ختم سو، نو د خليفه يعني د فديې حکم به هم باطليږي، او د روژو قضاء به راوړي.

## که مړي د روژو د فديې وصيت وکړی نو د وصي لپاره څه حکم دی؟

وَمَنْ مَاتَ او څوک چې مړ سي (يعني مرګ ته نژدې سي) وَعَلَيْهِ قَضَاءُ رَمَضَانَ او پر هغه د رمضان قضائي روژې پاته وي فَأَوْصَى بِهِ او د هغو (د اداء کولو) وصيت (هم) وکړي أَطْعَمَ عَنْهُ وَلِيُّهُ نو د هغه له طرفه به خپل ولي خوراک ورکوي لِكُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا د هري ورځي په بدله کې يوه مسکين ته نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ نيم صاع د غنمو يا يو صاع د کجورو يا د اوربشو لِأَنَّهُ عَجَزَ عَنِ الْأَدَاءِ فِي آخِرِ عُمُرِهِ ځکه چې هغه له اداء څخه عاجزه سو په آخر د خپل عمر کې فَصَارَ كَالشَّيْخِ الْفَانِي نو د ډېر بوډا په شان سو ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ الْإِيصَاءِ عِنْدَنَا بيا وصيت کول ضروري دي

زموږ په نیز خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَعَلَى هَذَا الزَّكَاةُ او زکاة هم پر دغه اختلاف دی هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِدُيُونِ الْعِبَادِ امام شافعي رَحِمَهُ الله دا (فدیه او زکاة) د بندګانو پر قرضو باندې قیاسوي إِذْ كُلُّ ذَلِكَ حَقٌّ مَالِيٌّ ځکه چې دا هر یو مالي حق دی يَجْرِي فِيهِ النِّيَابَةُ او په مالي حق کې نائبوالی جاري کیږي وَلَنَا أَنَّهُ عِبَادَةٌ او زموږ دلیل دا دی چې فدیه ورکول یو عبادت دی وَلَا بُدَّ فِيهِ مِنَ الِاخْتِيَارِ نو په دغه کې اختیار ضروري دی وَذَلِكَ فِي الْإِيصَاءِ دُونَ الْوِرَاثَةِ او دا اختیار په وصیت کې سته (لیکن) په وراثت کې نشته لِأَنَّهَا جَبْرِيَّةٌ ځکه چې وراثت جبري شی دی ثُمَّ هُوَ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً بیا دا وصیت په شروع کې تبرع دی حَتَّى يُعْتَبَرَ مِنَ الثُّلُثِ همدا وجه ده چې د مال له دریمې ځخه به معتبر وي وَالصَّلَاةُ كَالصَّوْمِ بِاسْتِحْسَانِ الْمَشَايِخِ او لمونځ د روژې په شان دی د مشائخو په استحسان سره وَكُلُّ صَلَاةٍ تُعْتَبَرُ بِصَوْمِ يَوْمٍ او د هر لمانځه اعتبار به کیږي د یوې ورځې په روژې سره (یعنې د نیمې په حق کې هر لمونځ د یوې ورځې د روژې په شان دی) هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح ده.

**اللُغات:** ﴿أوصى﴾ د افعال ماضي ده: وصیت کول، ﴿البُر﴾ غنم، ﴿تمر﴾ خرما، ﴿ایصاء﴾ د افعال مصدر دی: وصیت کول، ﴿تبرع﴾ د تفعّل مصدر د: نفل، یو غیر لازمي شی له خپله ځانه کول، ﴿ثلث﴾ دریمه حصه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو داسې سړی مرګ ته نژدې سو چې پر هغه د رمضان قضائي روژې پاته وې، او هغه خپلو میراث خوارو (ورثه وو) ته د فدیې ورکولو وصیت وکړی، نو د مړي ولي به د هغه له طرفه د هرې روژې په بدله کې یوه محتاج سړي ته د غنمو نیم صاع ورکوي. یا به د اوربشو یا کجورو یو صاع ورکوي.

(موږ دلته د آسانۍ لپاره اول د صاع وزن ذکر کوو، وروسته به دلیل ذکر کړو)

| صاع | رطل | وسق | کیلو | ګرام | لیتر |
|---|---|---|---|---|---|
| یو صاع | ۸ رطله کیږي | ..... | ۳,۵۳۸ (یعنې ۳ کیلو او ۵۳۸ ګرامه کیږي) | ۳۵۳۸ | ۵,۸۸ |
| نیم صاع | ۴ | ..... | ۱,۷۶۹ (یعنې یو کیلو او ۷۶۹ ګرامه کیږي) | ۱۷۶۹ | ۲,۹۴ |
| ۶۰ صاعه | ..... | یو وسق | ۲۱۲,۲۸ | ..... | ۳۵۲,۸۰ |

**دلیل:** دا حدیث دی: عن ابن عمر عن النبي ﷺ قال من مات وعليه صيام شهر فليطعم عنه مكان كل يوم مسكينا. له دې حدیث ځخه معلومه سوه چې د مړي له طرفه به د هرې ورځې په بدله کې یوه مسکین ته خوراک ورکوي. بل دلیل دا دی چې که یو سړي د رمضان د روژو قضاء راوړی سوه، لیکن د سستی په وجه یې نه راوړه، او مړ سو، نو اوس به هغه د شیخ فاني په شان وي، او د شیخ فاني حکم په تېره مسئله کې ذکر سو چې هغه به فدیه ورکوي، نو دلته به هم د مړي ولي فدیه ورکوي.

ثم لابد الخ که پر مړي قضائي روژې پاته وې، یا زکاة پاته وو، نو د هغه د اداء کولو وصیت کول پر مړي ضروري دي، او کله چې مړی وصیت وکړي، نو پر وارث به د هغو اداء کول هم واجب سي، او که وصیت یې نه وکړی، لیکن وارث په

خپله خوښه اداء کول غوښتل، نو اداء کولای یې سي، خو پر وارث اداء کول واجب نه دي، او تر وصیت کولو وروسته هم صرف د مړي د مال له دریمې حصې څخه اداء کول واجب دي، له ټوله مال څخه یې اداء کول واجب نه دي، او که دومره فدیه وه چي له دریمي حصې څخه نه اداء کېدله، نو له دریمي حصې څخه زیات مال مصرفول هم پر ولي واجب نه دي(دا مذهب زموږ دی)، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر ولي مطلقاً فدیه ورکول واجب دي، هغه که مړي وصیت کړی وي، که نه وي، او له ټوله مال څخه ور کول واجب دي، امام مالک رَحِمَهُ الله هم دا خبره کوي.

**د امام شافعي دليل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي فدیه او زکاة د الله قرض دی، نو څرنګه چي د بندګانو قرض د مړي له وصیت څخه بغیر د هغه اداء کول پر ولي ضروري دي، او له ټوله مال څخه ضروري دي، همدارنګه به د الله قرض هم بغیر له وصیت څخه اداء کول ضروري وي، او له ټوله مال څخه به اداء کول ضروري وي، نو امام شافعي رَحِمَهُ الله مالي عبادتونه د بندګانو پر قرض قیاسوي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د رمضان قضاء راوړل عبادت دی، نو د هغه فدیه ورکول هم عبادت دی، او عبادت هغه وخت اداء کیږي، کله چي یې یو څوک په خپل اختیار سره اداء کړي، نو اوس که یو څوک د فدیې ورکولو وصیت وکړي، نو د هغه په اختیار سره به فدیه اداء سي، او که وصیت نه وکړي، نو د هغه له طرفه به اختیار نه وي، لهذا فدیه به عبادت هم نه وي، نو په دې وجه موږ وویل که ولي وصیت وکړي نو پر ولي به فدیه اداء کول واجب وي، کنې نه به وي، او دا اداء کول به د مال له دریمي حصې څخه وي.

وذالك لا الإيصاء فرمایي چي اختیار د وصیت سره تعلق لري، د وراثت سره هیڅ تعلق نه لري، څکه چي وراثت یو غیر اختیاري او جبري شی دی، په هغه کي د هیڅا اختیار نه چلیږي،(بلکي هر وخت چي سړی مړ سي، نو د هغه له وصیت څخه بغیر وارث ته نقل کیږي)، همدا وجه ده چي که یو څوک د مرګ په وخت کي خپلو وارثانو ته دا ووایي: "چي فلانکی به زما وارث(میراث خور) نه وي او هغه ته به په میراث کي حصه نه ورکول کیږي" نو د هغه تر مرګ وروسته به بیا هم دا سړی د هغه میراث خور وي، او د هغه خبره به صحیح نه وي، څکه چي وراثت یو غیر اختیاري شی دی، او په دې کي د هیڅا اختیار نه چلیږي، نه د مړي، نه د بل چا، نو څکه وصیت کول ضروري دي.

ثم هو تبرع الخ وصیت کول په شروع کي تبرع او احسان دی، همدا وجه ده چي د مال له دریمي حصې څخه به فدیه اداء کول واجب وي، او په آخرت او قیامت کي به دا فدیه د واجب پرېښولو بدله او عوض سي.

والصلاة كالصوم الخ په عامو احادیثو کي راغلي دي چي که یو څوک د ډېري مجبوری په وجه د روژې قضاء نه راوړي، نو د هغه په بدله کي به فدیه ورکوي، لېکن دا خبره نسته چي که د لمانځه قضاء نه راوړي نو فدیه به ورکوي، لېکن مشائخو لمونځ پر روژې قیاس کړی دي فرمایي چي که له مړي څخه لمونځونه قضاء سوي وي، نو د هر لمانځه په بدله کي به یوه مسکین ته خوراک ورکوي، لکه څرنګه چي د یوې روژې په بدله کي هم یوه مسکین ته خوراک ورکول کیږي، صحیح خبره همدغه، څینو حضراتو ویلي دي چي د ټولي ورځي د پنځو لمونځونو په بدله کي به یوه مسکین ته خوراک ورکوي، لېکن دا صحیح نه ده.

## په روژه کې د نيابت حکم

وَلَا يَصُوْمُ عَنْهُ الْوَلِيُّ او د مړي له طرفه به ولي روژه نه نيسي وَلَا يُصَلِّيْ او نه به (د هغه له طرفه) لمونځ کوي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ●: لَا يَصُوْمُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې نه به يو شوک د بل له طرفه روژه نيسي وَلَا يُصَلِّيْ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ او نه به يو شوک د بل له طرفه لمونځ کوي.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې د مړي ولي خو د مړي له طرفه د روژې، لمانځه فديه ورکولای سي، لېکن په خپله د مړي له طرفه نه روژه نيولای سي، او نه لمونځ کولای سي، دليل هغه حديث دی کوم چې په کتاب کي ذکر سو، په دې حديث کي په ښکاره توګه د بل له طرفه د روژې او لمونځ کولو شخه منع سوې ده، او يا عقلاً هم دا خبره په ذهن کي راځي چې روژه او لمونځ د الله ﷻ د نژدېکت او د الله ﷻ د رحمت ذريعه ده، نو ښکاره ده چې د بل چا په کړني سره دا مقصود نه سي تر لاسه کېدای.

## د نفلي روژې يا د نفلي لمانځه د ماتولو حکم

وَمَنْ دَخَلَ فِيْ صَلَاةِ التَّطَوُّعِ أَوْ فِيْ صَوْمِ التَّطَوُّعِ او شوک چې په نفلي لمانځه يا نفلي روژه کي داخل سي ثُمَّ أَفْسَدَهُ قَضَاهُ بيا يې فاسد کړي نو د هغه قضاء به راوړي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لَهُ أَنَّهُ تَبَرَّعَ بِالْمُؤَدّٰى د هغه دليل دا دی چې هغه په مؤدیٰ سره تبرع وکړه (يعني اداء کړی سوی لمونځ يا روژه يې تبرع ده) فَلَا يَلْزَمُهُ مَا لَمْ يَتَبَرَّعْ بِهِ نو هغه شی به نه پر لازمېږي چې په هغه سره يې تبرع کړې نه وي وَلَنَا أَنَّ الْمُؤَدّٰى قُرْبَةٌ وَعَمَلٌ او زموږ دليل دا دی چې مؤدیٰ عبادت او عمل دی فَتَجِبُ صِيَانَتُهُ بِالْمُضِيِّ عَنِ الْإِبْطَالِ نو په پوره کولو سره به د هغه ساتل له باطلولو شخه واجب وي (بعضي شارحينو يې معنیٰ داسي کړې ده، چې له ابطال شخه به د تېر سوي لمانځه يا روژې ساتل واجب وي) وَإِذَا وَجَبَ الْمُضِيُّ وَجَبَ الْقَضَاءُ بِتَرْكِهِ او کله چې پوره کول واجب سو نو د هغه په پرېښولو سره به قضاء (هم) واجب وي ثُمَّ عِنْدَنَا لَا يُبَاحُ الْإِفْطَارُ فِيْهِ بِغَيْرِ عُذْرٍ بيا زموږ په نېز په نفلي روژه کي بې له عذره افطار کول (يعني ماتول) روا نه دي فِيْ إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ په يو د دوو روايتونو کي (يعني زموږ په نېز د يوه روايت مطابق په نفلي روژه...) لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَيُبَاحُ بِعُذْرٍ او د عذر په وجه روا دي وَالضِّيَافَةُ عُذْرٌ او مېلمستيا يو عذر دی لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ●: أَفْطِرْ وَاقْضِ يَوْمًا مَكَانَهُ "ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې روژه ماته کړه او د هغه پر ځای يوه ورځ قضاء راوړه".

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصوم، باب ما جاء في الكفارة، حديث رقم: ۷۱۸.

● تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرىٰ في كتاب الصيام، باب من رأى عليه القضاء، حديث رقم: ۸۳٦۳.

**اللغات:** ﴿تطوع﴾ د تفعل ماضي دی، نفلي عبادت کول. ﴿ نوای ﴾ اسم فعول دی. هغه چې اداء سوی وي. ﴿قربة﴾ نیکي، ﴿صیانة﴾ ساتنه، حفاظت. ﴿مضی﴾ مصدر دی [illegible] جاري ساتل. پوره کول (د دې باب پیرې معناوې راځي، خو دلته یې معنی د پوره کولو او جاري ساتلو ده). ﴿ضیافت﴾ میلمستیا، میلمه کېدل.

**تشریح، مسئله:** دا ده که یو سړي نفلي روژه یا نفلي لمونځ شروع کړي او بیا یې پوره کولو مخکې یې لمونځ فاسد یې کړي. یا یې روژه ماته کړه، نو زموږ په نېز پر هغه د لمانځه یا د روژې قضاء راوړل واجب دي. امام شافعي رحمه الله فرمایي چې پر هغه قضاء نسته.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې د روژې او لمانځه څومره حصه چې دغه سړي اداء کړې ده، هغه د ده له طرفه تبرع ده. او ده په خپل رضا او خوښه سره اداء کړې ده. لهذا کومه حصه چې پاتې ده، او ده کې یې نه ده نو د هغه حصې قضاء به پر ده واجب نه وي، ځکه چې قرآن داسي اعلان کړی دی: ما علی المحسنین من سبیل. (یعني په تبرع کوونکو باندې هیڅ زور او نیوکه نسته). او ښکاره ده چې په قضاء واجبولو کې پر ده باندې شرعي جبر او زور دی. چې هغه د دې آیت د عموم مخالف دي. صاحب د بنایې د شوافعو له طرفه یو بېله مثال دا ذکر کړی دی چې که یو سړي د صدقې په نیت په خپل جیب کې دوه درهمه کېښول، لیکن وروسته یې صرف یو درهم صدقه کړی، او دوهم یې صدقه نه کړی، نو پر هغه به د دوهم درهم صدقه کول ضروري نه وي. ځکه چې دا تبرع ده. [illegible] پورتنۍ مسئله کې هم د نفلي لمانځه یا نفلي روژې پاتې حصه نه پر هغه سړي واجب وي، او نه به د لمانځه او روژې قضاء واو په صورت کې پر هغه سړي قضاء واجب وي.

**زموږ دلیل:** دا دی چې د نفلي لمانځه او روژې چې کومه حصه هغه اداء کړې ده، هغه یو عبادت او عمل دی، او عمل له باطلولو څخه ساتل ضروري دي، ځکه په قرآن کریم کې ذکر سوي دي: ولا تبطلوا أعمالکم (اې خلکو! خپلو عملونه مه باطلوئ). نو له ابطال څخه د ساتلو لپاره د عمل پوره کول واجب سو، او کله چې یې پوره کول واجب سو، نو ښکاره ده چې د هغه د پرېښودلو په وجه به د هغه قضاء هم واجب وي. نو په دې وجه موږ وایو چې که یو چا نفلي لمونځ یا روژه شروع کړه او بیا یې فاسد کړه، نو پر هغه به د دې قضاء واجب وي.

زموږ د مسلک تائید په دې حدیث سره هم کیږي چې وروسته به ذکر سي یعني: أفطر واقض یوماً مکانه. دا جمله نبي ﷺ د یو نفلي روژې والا صحابي ته فرمایلې وه، او نبي ﷺ په صراحت سره هغه ته د نفلي روژې د ماتولو او بیا یې د قضاء راوړلو حکم کړی وو، نو له دې څخه هم دا خبره څرګندیږي چې د نفلو پوره کول ضروري دي، او د باطلولو په صورت کې به د هغه قضاء واجب وي.

ثم عندنا الخ فرمایي چې په دوو روایتونو کې د یوه روایت مطابق زموږ په نېز بې له عذره نفلي روژه ماتول روا نه دي، ځکه چې د لا تبطلوا أعمالکم څخه هم دغه ثابتیږي. دوهم روایت دا دی چې بې له عذره هم نفلي روژه ماتول روا دي. او د عذر په صورت کې خو بالاتفاق نفلي لمونځ او روژه ماتول روا دي. او ضیافت هم په عذر کې داخل دی، ځکه د نبي ﷺ په باره کې دا رانقل سوي دي: أنه کان في ضیافة رجل من الأنصار فامتنع رجل عن الأکل وقال إني صائم فقال ﷺ إنما دعاك أخوك لتکرمه فأفطر واقض یوما مکانه. (یعني نبي ﷺ د یو انصاري صحابي په میلمستیا کې وو، چې یو سړي له خوراک کولو څخه منع سو، او ویې ویل زه روژتی یم، نو نبي ﷺ وفرمایل ستا ورور تا ته ځکه دعوت درکړی چې ته د

هغه اکرام او عزت وکړي، نو روژه ماته کړي، او د هغه پر ځای بله ورځ قضاء روا ده). له دې حدیث څخه دوې خبرې معلومې سوې، (۱) اوله دا خبره دا معلومه سوه چې میلمستیا یو عذر دی، او د هغه په وجه نفلي روژه ماتول جائز دي. (۲) دویمه خبره دا معلومه سوه چې که یو سړي د عذر په وجه نفلي روژه ماته کړه، نو وروسته به د هغه قضاء واجب وي.

## د رمضان په ورځ کي د کوچني د بلوغت او د کافر د اسلام حکم

وَإِذَا بَلَغَ الصَّبِيُّ أَوْ أَسْلَمَ الْكَافِرُ فِي رَمَضَانَ او کله چې په رمضان کي کوچنی بالغ سي یا کافر مسلمان سي أَمْسَكَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا نو په پاته ورځ کي به هغوی (له خوراک، چښاک څخه) منع کیږي قَضَاءً لِحَقِّ الْوَقْتِ بِالتَّشَبُّهِ چې د روژتیانو سره د مشابهت په وجه د وخت حق اداء سي وَلَوْ أَفْطَرَا فِيهِ لَا قَضَاءَ عَلَيْهِمَا او که هغوی په پاته ورځ کي (هم) افطار وکړي نو پر هغو به قضاء واجب نه وي لِأَنَّ الصَّوْمَ غَيْرُ وَاجِبٍ فِيهِ ځکه چې روژه په دې ورځ کي واجب نه ده وَصَامَا بَعْدَهُ او تر دې ورځي وروسته به نوري روژې نیسي لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ وَالْأَهْلِيَّةِ ځکه چې سبب او اهلیت (دواړه) ثابت دي وَلَمْ يَقْضِيَا يَوْمَهُمَا وَلَا مَا مَضَى او د دغه ورځي او د تېرو سوو ورځو قضاء به نه راوړي لِعَدَمِ الْخِطَابِ ځکه چې (هغوی ته) خطاب نه وو وَهٰذَا بِخِلَافِ الصَّلَاةِ او دا د لمانځه په خلاف دي لِأَنَّ السَّبَبَ فِيهَا الْجُزْءُ الْمُتَّصِلُ بِالْأَدَاءِ ځکه چې په لمانځه کي سبب هغه جزء دی کوم چې د اداء سره متصل (جوخت) وي فَوُجِدَتِ الْأَهْلِيَّةُ عِنْدَهُ نو په دغه وخت کي اهلیت پیدا سو وَفِي الصَّوْمِ الْجُزْءُ الْأَوَّلُ او په روژه کي سبب اول جزء دی وَالْأَهْلِيَّةُ مُنْعَدِمَةٌ عِنْدَهُ او په هغه وخت کي اهلیت نسته (نو ځکه به روژه واجب نه وي) وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ إِذَا زَالَ الْكُفْرُ أَوِ الصِّبَا قَبْلَ الزَّوَالِ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې کله کفر یا کوچنیتوب تر زوال مخکي ختم سي فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ نو پر هغه به قضاء واجب وي لِأَنَّهُ أَدْرَكَ وَقْتَ النِّيَّةِ ځکه چې هغه د نیت وخت ونیوی وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ الصَّوْمَ لَا يَتَجَزَّأُ وُجُوبًا د ظاهر روایت دلیل دا دی چې روژه د وجوب په اعتبار سره نه ټوکرې کیږي (یعني حصې حصې نه کیږي) وَأَهْلِيَّةُ الْوُجُوبِ مُنْعَدِمَةٌ فِي أَوَّلِهِ او د ورځي په اول کي د وجوب اهلیت نسته (نو ځکه به روژه نه واجبیږي) إِلَّا أَنَّ لِلصَّبِيِّ أَنْ يَنْوِيَ التَّطَوُّعَ فِي هٰذِهِ الصُّورَةِ دُونَ الْكَافِرِ خو د کوچني لپاره په دې صورت کي د نفلي روژې نیت کول جائز دي، نه د کافر لپاره عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چې مشائخو ویلي دي لِأَنَّ الْكَافِرَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ التَّطَوُّعِ أَيْضًا ځکه چې کافر د نفلي عبادت أهل (لایق) هم نه دی وَالصَّبِيُّ أَهْلٌ لَهُ او کوچنی د هغه أهل دی.

**اللغات:** ﴿بلغ﴾ د نصر ماضي ده: بالغه کېدل، د بالغتوب عمر ته رسېدل، ﴿لتحقق﴾ د تفعّل مصدر دی: ثابتېدل، ﴿ينوي﴾ د ضرب مضارع ده: نیت کول، ﴿التطوع﴾ د تفعّل مصدر دی: نفل، نفلي عبادت.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که د روژې د میاشتي په کومي یوه ورځ کي کوچنی بالغ سو، یا یو کافر په اسلام مشرف سو، نو د هغو لپاره حکم دا دی چې د روژه مات تر وخته دې-پاته ورځ له خوراک، چښاک څخه منع سي، او د علمو روژتیانو په څېر دې امساک وکړي، او د هغو مشابهت دې اختیار کړي، د دې لپاره چې د رمضان له مقدس، بابرکت او

پېغلې شپږ څخه چې هغو شومره وخت نيولی وي، د هغه قدر وکړي. لېکن که بيا هم دې خلکو پاته ورځ امساک نه وکړي، او څه خوراک، څښاک يې وکړي، نو شرعاً هيڅ حرج نشته. ځکه چې پر دې خلکو د دې ورځې روژه واجب نه وه، لهذا په دې ورځ پر هغو د روژې په باره کې نه څه نيوکړه شته، او نه پر هغو د دې ورځې قضاء لازم ده. لېکن د را روانې ورځې څخه پر دوارو روژه نيول فرض او لازم دي، ځکه چې اوس په دوی کې د روژې نيولو وړتيا او قابليت هم پيدا سو، او د روژې د واجبېدلو سبب يعني د رمضان مياشته هم پيدا سوه. نو ځکه به د دوی لپاره روژه نيول فرض او واجب وي.

او پر دې خلکو نه د هغې ورځې قضاء واجب ده، او نه د تېرو سوو ورځو قضاء واجب ده. ځکه چې کوچنی تر بلوغت مخکې او کافر تر اسلام مخکې بالکل د شريعت د احکامو مکلف او مخاطب نه وي. نو ځکه به پر هغو روژې واجب نه وي، او کله چې واجب نه دي، نو قضاء به د څه شي واجبېږي؟

بخلاف الصلاة الخ د دې حاصل دا دی چې د لمانځه مسئله له روژې څخه جلا ده. ځکه چې د لمانځه د واجبېدلو سبب هغه وخت دی، کوم چې د اداء سره متصل وي، نو که د اداء سره متصل وخت تنګ هم وو، نو هم به لمونځ واجب وي (ځکه چې سبب پيدا سو)، که څه هم وروسته به د هغه قضاء لازم وي، نو که د تنګ جزء او بالکل د لمانځه په آخري وخت کې يو کوچنی بالغ سو، يا کافر مسلمان سو، نو پر هغو به د دې لمانځه قضاء لازم وي، ځکه چې په دې خلکو کې اهليت هم سته، او د لمانځه د وجوب سبب هم ثابت دی، د دې په خلاف د روژې مسئله ده، نو په روژه کې د واجبېدلو سبب د ورځې اوله او د شروع حصه ده، او د ورځې د شروع حصه د صبح صادق (سپېدې چاود) سره متصله ده، او د صبح صادق په وخت کې په دې خلکو کې قابليت او اهليت نه وو، نو ځکه به پر دوی د دغه ورځې روژه واجب نه وي، او کله چې روژه واجب نه سوه، نو قضاء به يې هم لازم نه وي.

وعن أبي يوسف رَحِمَهُ اللهُ الخ فرمايي په دې لړ کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې که تر زوال مخکې کوچنی بالغ سي، يا کافر مسلمان سي، نو پر هغو به د دې ورځې قضاء واجب وي، ځکه چې دوی ته د روژې د نيت وخت حاصل سو، ځکه زموږ په نېز تر زوال مخکې د روژې نيت کول صحيح دي، او کله چې دا نيت د مکلف او د شريعت د احکامو په حق کې صحيح دی، نو کوم يو چې نن مکلف او مخاطب سوی وي، د هغه له طرفه به هم نيت صحيح وي، لهذا که دوی پاته ورځ د روژې په نيت سره امساک وکړي، نو د هغو روژه به صحيح وي، او که امساک نه وکړي، نو پر هغو به د دې روژې قضاء واجب وي.

وجه الظاهر الخ د ظاهر روايت دليل دا دی چې روژه د وجوب په اعتبار نه متجزي کيږي (يعني حصه حصه او ټوکړه ټوکړه نه کيږي)، يعني په روژه کې داسې نه سي کېدلای چې د ورځې په اوله حصه کې دې واجب نه وي، او د ورځې په نصف (نيمې) کې دې واجب سي، بلکې د روژې وجوب به د ورځې د شروع په حصه کې کيږي، او دا خبره ښکاره ده چې د ورځې په شروع کې دا خلک مکلف نه وو، لهذا د دغه ورځې روژه پر دوی د سره واجب نه سوه، او کله چې روژه واجب نه سوه، نو ښکاره ده چې د هغې قضاء به هم واجب نه وي.

إلا أن للصبي الخ فرمايي: که کوچنی تر زوال مخکې بالغ سو، او په دې ورځ يې د نفلي روژې نيت وکړي، نو د هغه نيت به معتبر وي، او دا روژه به يې نفلي وي، ځکه چې کوچنی تر بلوغت مخکې هم د دې اهليت لري چې نفلي روژه

ونيسي، خو د کافر نيت به معتبر نه وي، ځکه کافر د کفر په حالت کې د نفلي روژې اهليت نه لري، نو ځکه به تر زوال مخکې د هغه نيت معتبر نه وي.

## د رمضان په ورځ کې د سفر د ختمېدلو حکم

وَإِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ الْإِفْطَارَ او کله چې مسافر د روژې ماتولو نيت وکړي ثُمَّ قَدِمَ الْمِصْرَ قَبْلَ الزَّوَالِ بيا تر زوال مخکې ښار ته راسي (يعني راورسيږي) فَنَوَى الصَّوْمَ أَجْزَأَهُ بيا د روژې نيت وکړي نو دا روژه د هغه لپاره کافي کيږي لِأَنَّ السَّفَرَ لَا يُنَافِي أَهْلِيَّةَ الْوُجُوبِ ځکه سفر (خو) نه (د روژې) د واجبېدلو د اهليت منافي دی وَلَا صِحَّةَ الشُّرُوعِ او نه (د روژې) د شروع کولو د صحيح والي منافي دی وَإِنْ كَانَ فِي رَمَضَانَ فَعَلَيْهِ أَنْ يَصُومَ او که په رمضان کې وو نو پر هغه واجب دي چې روژه ونيسي لِزَوَالِ الْمُرَخِّصِ فِي وَقْتِ النِّيَّةِ ځکه چې (د روژې) د نيت په وخت کې رخصت زائل سو أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ كَانَ مُقِيمًا فِي أَوَّلِ الْيَوْمِ ثُمَّ سَافَرَ آيا ته نه وينې چې که هغه د ورځې د شروع په حصه کې مقيم وي بيا سفر وکړي لَا يُبَاحُ لَهُ الْفِطْرُ نو د هغه لپاره به روژه ماتول روا نه وي تَرْجِيحًا لِجَانِبِ الْإِقَامَةِ د مقيم کېدلو و اړخ ته د ترجيح ورکولو لپاره فَهٰذَا أَوْلَى نو دا صورت خو به زيات غوره وي (يعني په دې صورت کې خو به په طريقهٔ اولیٰ سره روژه ماتول روا نه وي) إِلَّا أَنَّهُ إِذَا أَفْطَرَ فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ لېکن که هغه په دواړو صورتونو کې روژه ماته کړه لَا تَلْزَمُهُ الْكَفَّارَةُ نو پر هغه به کفاره نه لازميږي لِقِيَامِ شُبْهَةِ الْمُبِيحِ ځکه چې د مُبيح (يعني د حلالونکي شي) شبهه سته.

**اللغات:** ﴿مرخص﴾ د رخصت سبب، ﴿لا يباح﴾ مباح او حلال نه دي، روا نه دي، ﴿المبيح﴾ حلالونکی، روا کونکی.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی له رمضان څخه علاوه په بل وخت کې مسافر وو، او د سفر په وجه يې د نفلي روژې نيت نه وکړی، لېکن تر زوال مخکې د هغه سفر ختم سو، او خپل کور ته را ورسېدی، او د نفلي روژې نيت يې وکړی، نو د هغه دا نيت به صحيح وي، او روژه به يې اداء کيږي، ځکه چې سفر نه د روژې د اهليت او قابليت منافي دی، او نه د روژې د شروع کولو منافي دی، نو ځکه به تر زوال مخکې د هغه له طرفه نيت هم صحيح او جائز وي، همدا وجه ده چې که په رمضان کې دا قصه پېښه سوه، او يو مسافر په رمضان کې تر زوال مخکې مقيم سو، نو پر هغه به د دې ورځې روژه نيول واجب وي، ځکه چې تر زواله پوري د نيت وخت وی، او تر زوال مخکې د رخصت سبب (يعني سفر) ختم سو.

ألا ترى الخ دا عقلي دليل دی چې که يو سړی مثلاً تر نهو بجو پوري په کور کې وو، نو د هغه خو به خامخا روژه وي ځکه چې مقيم دی، اوس که تر نهو بجو وروسته مسافر سو، نو د سفر په وجه به روژه نه ماتوي، ځکه چې په شروع کې اقامت موجود وو، نو د اقامت اړخ ته به د ترجيح ورکولو لپاره روژه نيسي. يعني کله چې په شروع کې مقيم وو نو روژه به نيسي، لهذا پر هغه باندې په قياسولو سره چې کله تر زوال مخکې مقيم سي. نو هم به د اقامت اړخ ته ترجيح ورکول کيږي او روژه به نيسي.

## په رمضان کې د بې هوښۍ حکم

وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ فِي رَمَضَانَ او څوک چې په رمضان کې بیهوښه سي لَمْ يَقْضِ الْيَوْمَ الَّذِي حَدَثَ فِيهِ الْإِغْمَاءُ نو د هغه ورځي قضاء به نه راوړي چې په هغه کې بې هوښي پېښه سوې وي لِوُجُودِ الصَّوْمِ فِيهِ ځکه چې په هغه ورځ کې روژه سته(يعني د دې سري روژه ده ځکه چې هغهٔ نيت کړی دي او د نيت سره يې اساک هم کړی دی) وَهُوَ الْإِمْسَاكُ الْمَقْرُونُ بِالنِّيَّةِ او هغه د نيت سره متصل (جوخت) اساک دی إِذِ الظَّاهِرُ وُجُودُهَا مِنْهُ ځکه چې ښکاره همدغه ده چې نيت له سري شخه دی(يعني ښکاره همدغه ده چې نيت يې کړی دی) وَقَضَى مَا بَعْدَهُ لِانْعِدَامِ النِّيَّةِ او د نورو ورځو قضاء به راوړي ځکه چې نيت نسته.

**اللغات:** ﴿أغمي عليه﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: بې هوښه کېدل. ﴿حدث﴾ د فتح ماضي ده: واقع کېدل، مخته راتلل، پېښېدل. ﴿اغماء﴾ د افعال مصدر دی: بيهوښي، بې حسي، بې سدي. ﴿إمساك﴾ د افعال مصدر دی: منع کېدل، بندېدل. ﴿مقرون﴾ د نصر اسم مفعول دی: يو ځای سوی، متصل.

**تشريح؛ مسئله:** دا ده که د رمضان په مياشت کې يو سړی بيهوښه سو، نو د هغه لپاره شرعي حکم دا دی چې د دې ورځي قضاء دي نه راوړي، او که په نورو ورځو کې هم بيهوښه پاته سو نو د هغو قضاء دي راوړي، د دې ورځي قضاء ځو دي ځکه نه رواړي چې په دې ورځ کې د دې سري روژه ثابته سوه، ځکه چې د مسلمان ښکاره حال همدغه دی چې هغه به د روژې نيت کړی وي، ځکه هغه د رمضان په ټوله مياشت کې هره ورځ د روژې نيت کوي، نو د مسلمان ښکاره حال به د هغه په حق کې ثابت منل کيږي او د هغه د دې ورځي روژه به معتبره منل کيږي، نو ځکه به يې قضاء هم نه راوړي، او څرنګه چې تر دې ورځي وروسته دا سړی بالکل د نيت أهل پاته نه سو، ځکه چې بيهوښه دی، او بيهوښه نيت نه سي کولای، نو کله چې د هغه له طرفه نيت نسته، نو روژې به يې هم معتبري نه وي، او کله چې معتبري نه دي، نو قضاء به يې هم راوړي.

## د رمضان په اوله شپه کې د بې هوښۍ تفصيلي حکم

وَإِنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ أَوَّلَ لَيْلَةٍ مِنْهُ او که د رمضان په اوله شپه کې بيهوښه سي قَضَاهُ كُلَّهُ غَيْرَ يَوْمِ تِلْكَ اللَّيْلَةِ نو د ټوله رمضان قضاء به راوړي ماسوا د دغه شپې د ورځي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يَقْضِي مَا بَعْدَهُ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: تر دې ورځي وروسته به د نورو ورځو قضاء نه راوړي لِأَنَّ صَوْمَ رَمَضَانَ عِنْدَهُ يَتَأَدَّى بِنِيَّةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چې د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز د رمضان روژې په يوه نيت سره اداء کيږي بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتِكَافِ لکه اعتکاف(چې په يوه نيت سره اداء کيږي) وَعِنْدَنَا لَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ لِكُلِّ يَوْمٍ او زموږ په نېز د هري ورځي لپاره نيت کول ضروري دي لِأَنَّهَا عِبَادَاتٌ مُتَفَرِّقَةٌ ځکه چې روژې جلا جلا عبادتونه لِأَنَّهُ يَتَخَلَّلُ بَيْنَ كُلِّ يَوْمَيْنِ مَا لَيْسَ بِزَمَانٍ لِهَذِهِ الْعِبَادَةِ ځکه د هرو دوو ورځو په مينځ کي داسي زمانه[يعني شپه] راځي چې هغه د دې عبادت [يعني د روژې] زمانه نه وي بِخِلَافِ الْإِعْتِكَافِ په خلاف د اعتکاف[چې شپه، ورځ دواړه د اعتکاف زمانه ده].

**اللغات:** ﴿يتأدى﴾ د تفعّل مضارع ده؛ اداء کېدل. ﴿زمان﴾ وخت. ﴿يتخلل﴾ د تفعّل مضارع ده؛ په مينځ کې راتلل، خلل اچول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د رمضان په اوله شپه کې بېهوښه سو، او ټوله رمضان بېهوښه وو، نو زموږ په نېز به له اولي روژې څخه ماسوا پر هغه د ټوله رمضان د روژو قضاء واجب وي، ځکه چې هغه مسلمان دی، او د مسلمان ښکاره حال همدغه دی چې هغه به اوله شپه د روژې نيت کړی وي، نو ځکه به د اولي ورځي قضاء ساقطه وي، او د وروستنۍ روژو قضاء به واجب وي، د دې په خلاف د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې پر دې سړي د يوې ورځي قضاء هم واجب نه ده، بلکي د ده په حق کې به د رمضان ټولي روژې معتبره وي (يعني داسي به ګڼل کېږي چې دې سړي د ټوله رمضان روژې نيولي دي).

**د امام مالک دليل:** دا دی چې کله دا سړی په اوله شپه کې بېهوښه سو، او د ده له طرفه نيت په اوله شپه کې پيدا سو، نو دا يو نيت به د ټوله رمضان د روژو لپاره کافي وي، ځکه چې د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز په يوه نيت سره د ټولي مياشتي روژې اداء کېږي، نو د هري روژې لپاره د جلا نيت ضرورت نسته، لکه څرنګه چې په يوه نيت سره ټوله عَشَرَه (يعني پوره لس ورځي) اعتکاف صحيح دی، همدارنګه به په يوه نيت سره د ټولي مياشتي روژې نيول هم صحيح وي، او څرنګه چې په اوله شپه کې د دې سړي له طرفه نيت ثابت سوی دی، نو ګواکي ټوله مياشت د هغه له طرفه نيت ثابت دی، نو ځکه به پر هغه د يوې ورځي قضاء هم واجب نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د روژو تعلق د ورځي سره دی، او تر هري ورځي وروسته يو داسي زمانه راځي چې په هغه کې نيت نه سي ثابتېدلای، او نه په هغه کې روژه نيول کېدای سي (چې هغه شپه ده)، نو معلومه سوه چې د هري ورځي روژه جلا جلا عبادت دی، نو د هري روژې لپاره به جلا نيت ضروري وي، او په پورتنۍ مسئله کې صرف اوله ورځ د بېهوښه سړي له طرفه نيت ثابت دی، نو د هغه له طرفه به هغه روژه ثابته وي، او پر هغه به صرف د دې يوې روژې قضاء واجب نه وي، او څرنګه چې په پاتو ورځو کې هغه سړی بې هوښه دی، نو په هغو ورځو کې به د هغه له طرفه نيت هم ثابت نه وي، او کله چې نيت ثابت نه سو، نو ښکاره ده چې د هغو ورځو روژې به هم معتبري نه وي، لهذا د هغو قضاء به پر واجب وي.

بخلاف الإعتکاف الخ د امام مالک د قياس جواب ورکوي فرمايي چې د دې په خلاف د اعتکاف مسئله ده، ځکه چې په اعتکاف کې شپه او ورځ ټوله برابر دي، او ټوله څلورويشت (۲۴) ساعته اعتکاف عبادت دی، او په دې کې يو ګړی هم له عبادت څخه جلا نه دی، نو ځکه به د اعتکاف لپاره فقط يو نيت کافي وي، او هره ورځ به د اعتکاف لپاره جلا نيت ضروري نه وي.

## ټوله رمضان د بې هوښي حکم

وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ رَمَضَانَ كُلَّه او څوک چې ټوله رمضان بېهوښه سي قَضَاهُ نو د ټوله رمضان قضاء به راوړي لِأَنَّهُ نَوعُ مَرَضٍ ځکه چې بېهوښي يو ډول مرض دی يُضْعِفُ الْقُوَى وَلَا يُزِيْلُ الْحِجٰى چې هغه قوتونه کمزوري کوي خو عقل له منځه نه وړي (يعني په بې هوښي کې عقل نه ختمېږي، بالکي د خوب په ډول بې حسه کېږي) فَيَصِيْرُ عُذْرًا فِي التَّأْخِيْرِ لَا فِي الْإِسْقَاطِ نو بې هوښي به د روژې په ځنډولو کې عذر شمارل کېږي خو په ساقطولو کې به عذر نه شمارل کېږي (ځکه چې روژه هغه وخت ساقطېږي چې عقل بالکل ختم سي).

**اللغات:** ﴿قوی﴾ انساني او جسماني قوتونه، جسماني اندامونه. ﴿حِجٰی﴾ عقل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د روژې ټوله مياشت بېهوښه وو، يعني له اوله څخه تر آخره پوري د بېهوښۍ په حالت کې وو، نو پر هغه د ټوله رمضان قضاء واجب ده، ځکه چي په بېهوښۍ سره خو د انسان قواوي کمزوري کيږي، او د هغه طاقت او همت ستړې کيږي، همدارنګه د هغه عقل پټيږي خو زايليږي نه، او بالکل له منځه نه ځي، نو په دې وجه به له هغه څخه د روژې اداء په وقتي توګه ختميږي، خو څرنګه چي په اغماء کې عقل نه زايليږي او بالکل له منځه نه ځي، نو ځکه به له بېهوښه سړي څخه روژې نه ساقطيږي، بلکې د هغه پر ذمه به پاته وي، او تر صحت وروسته به د هغو قضاء واجب وي.

## ټوله رمضان د لېونتوب حکم

وَمَنْ جُنَّ رَمَضَانَ كُلَّهُ لَمْ يَقْضِهِ او څوک چي ټوله رمضان لېونی سي نو د هغه قضاء به نه رواړي خِلَافًا لِمَالِكٍ د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالْإِغْمَاءِ امام مالک رَحِمَهُ الله لېونتوب پر بېهوښۍ قياسوي وَلَنَا أَنَّ الْمُسْقِطَ هُوَ الْحَرَجُ او زموږ دليل دا دی چي ساقطونکی [شی خو] حرج دی وَالْإِغْمَاءُ لَا يَسْتَوْعِبُ الشَّهْرَ عَادَةً او بېهوښي په عامه توګه ټوله مياشت نه نيسي فَلَا حَرَجَ نو [په دې کې] به هيڅ حرج نه وي وَالْجُنُونُ يَسْتَوْعِبُهُ او لېونتوب ټوله مياشت نيسي فَيَتَحَقَّقُ الْحَرَجُ نو حرج به ثابتيږي [لهذا دېوې مياشتي په جنون کې به روژه نه واجبيږي].

**اللغات:** ﴿جن﴾ د نصر ماضي مجهوله ده: لېونی کېدل، ﴿يستوعب﴾ د استفعال مضارع ده: کښېاسل، ټوله نيول، له هر طرف څخه راګرځېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی د روژې په ټوله مياشت کې لېونی وو، نو زموږ په نېز له هغه څخه د رمضان روژې ساقطيږي، او پر هغه بالکل د روژو قضاء واجب نه ده، لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه قضاء واجب ده.

**د امام مالک دليل:** قياس دی، يعني لېونتوب پر بېهوښي قياسوي، فرمايي: چي څرنګه يو سړی ټوله مياشت بېهوښه وي (يعني د روژې په لوله شپه کې يې هم نيت کړی نه وي)، نو پر هغه د ټولي مياشتي قضاء واجب ده، همداسي که يو سړی ټوله مياشت لېونی وي، نو پر هغه به هم د ټولي مياشتي قضاء واجب وي.

**زموږ دليل:** او د امام د مالک رَحِمَهُ الله د قياس جواب دا دی چي په بېهوښي او لېونتوب کې فرق دی، ځکه چي لېونتوب په عامه توګه يوه مياشت يا تر هغه زيات پاتېږي، او بې هوښي په عامه توګه تر يوې مياشتي ډېره کمه وي، بلکي ډېر ځله تر يوې، دوو ورځو وروسته هم بې هوښي ختميږي، نو د بېهوښۍ په صورت کې د قضاء په واجبولو کې هيڅ حرج نسته، لهذا په دې صورت کې به قضاء واجب وي، او د لېونتوب په صورت کې د روژو د قضاء په واجبولو کې حرج او تکليف دی، او شريعت له بندګانو څخه حرج ليري کړی دی، نو ځکه به يو پر بل قياسول صحيح نه وي، او د لېونتوب په صورت کې به قضاء واجب نه وي.

## د رمضان په دوران کې د لېونتوب د ختمېدلو حکم

وَإِنْ أَفَاقَ الْمَجْنُونُ فِي بَعْضِهِ او كه لېونى د رمضان په يوه حصه كې جوړ سي قَضَى مَا مَضَى● نو د تېرو ورځو قضاء به راوړي خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللهُ د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله اختلاف دى هُمَا يَقُولَانِ: لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ الأَدَاءُ دوى فرمايي: چې پر هغه اداء واجب نه سوه لِانْعِدَامِ الْأَهْلِيَّةِ ځکه چې اهليت (پکښې) نسته وَالْقَضَاءُ مُرَتَّبٌ عَلَيْهِ او قضاء پر اداء مرتب كېږي وَصَارَ كَالْمُسْتَوْعِبِ نو دا سرى داسې سو لكه ټوله رمضان چې لېونى وو وَلَنَا أَنَّ السَّبَبَ قَدْ وُجِدَ او زموږ دليل دا دى چې سبب پيدا سو وَهُوَ الشَّهْرُ او هغه (د رمضان) مياشته ده وَالْأَهْلِيَّةُ بِالذِّمَّةِ او اهليت د ذمې (او غاړې) سره تعلق لري وَفِي الْوُجُوبِ فَائِدَةٌ او په وجوب كې فايده (هم) ده وَهُوَ صَيْرُورَتُهُ مَطْلُوبًا عَلَى وَجْهٍ او هغه د وجوب پر داسې طريقه مطلوب كېدل دي لَا يُحْرَجُ فِي أَدَائِهِ چې د هغه په اداء كولو كې حرج نه وي بِخِلَافِ الْمُسْتَوْعِبِ په خلاف په ټوله رمضان كې د لېوني سرې لِأَنَّهُ يُحْرَجُ فِي الْأَدَاءِ ځكه چې هغه ته په اداء كولو كې حرج دى فَلَا فَائِدَةَ نو (د هغه پر ذمې په وجوب كې) هيڅ فايده نسته وَتَمَامُهُ فِي الْخِلَافِيَّاتِ او د دې پوره بحث په كتاب الخلافيات كې دى ثُمَّ لَا فَرْقَ بَيْنَ الْأَصْلِيِّ وَالْعَارِضِيِّ بيا د اصلي او عارضي لېونتوب په مېنځ كې څه فرق نسته قِيلَ: هَذَا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ● ويل سوي دي: چې دا په ظاهر روايت كې وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چې هغه د اصلي او عارضي لېونتوب په مېنځ كې فرق كړى دى لِأَنَّهُ إِذَا بَلَغَ مَجْنُونًا ځكه كله چې يو څوک د لېونتوب په حالت كې بالغ سي اِلْتَحَقَ بِالصَّبِيِّ نو هغه د كوچني سره لاحق سي فَانْعَدَمَ الْخِطَابُ نو (له هغه څخه) خطاب ختم سي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَلَغَ عَاقِلًا په خلاف د هغه صورت چې د عقل په حالت كې بالغ سي ثُمَّ جُنَّ او بيا لېونى سي وَهَذَا مُخْتَارُ بَعْضِ الْمُتَأَخِّرِينَ او دا د بعضې متأخرينو خوښ روايت دى.

**اللغات**: ﴿أفاق﴾ د افعال ماضي ده: جوړېدل، په هوښ كې راتلل ﴿مجنون﴾ لېونى، ﴿صيرورة﴾ د ضرب مصدر دى: كېدل، گرځېدل.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دى كه د رمضان په يوه حصه كې د يو سړي لېونتوب ختم سو، نو زموږ په نيز به هغه د تېرو ورځو قضاء هم راوړي، يعني د لېونتوب په حالت كې چې څومره روژې ځنې قضاء سوي وي، د هغو ټولو قضاء به پر واجب وي، لېكن امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې پر هغه به ديوې روژې قضاء هم واجب نه وي، ځكه چې د لېونتوب په حالت كې د روژې نيولو اهليت او قابليت په هغه كې نه وو، نو پر هغه به بالكل اداء واجب نه وي، او څرنگه

---

● القول الراجح: قول الجمهور يعني: قضى ما مضى، كما قال شمس الحلواني رَحِمَهُ الله: وهو الصحيح، الكفاية ج:١، ص: ٢٠١. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٠١]

● القول الراجح: هو ظاهر الرواية (يعني لا فرق بين الأصلي والعارضي)، كما قال العلامة عابدين رَحِمَهُ الله: قوله لا يقضي مطلقاً أى سواء كان الجنون أصليا أو عارضا بعد البلوغ، رد المحتار ج:٢، ص: ١٣٢. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٠١]

چې قضاء پر اداء مرتب کیږي، ځکه کله چې اداء واجب نه سي، نو قضاء به د څه شي واجب سي، لهذا دا سړی به د مستوعب په ډول شمارل کیږي، یعني څرنګه چې یو سړی ټوله رمضان لېونی وي، نو د هغه له غاړي څخه به د ټولو روژو قضاء ساقطیږي، همدارنګه به د دې سړي له غاړي څخه هم د لېونتوب د روژو قضاء ساقطیږي، ځکه چې پر هغه هم په دې ورځو کي لېونتوب سپور وو.

**زموږ دليل:** دا دی چې د قرآن په دې آیت: فمن شهد منکم الشهر فليصمه سره پر هغه سړي روژه فرض ګرځول سوې ده، چې هغه د رمضان میاشت ونیسي، او څرنګه چې مجنون(لېوني) هم د رمضان میاشت نیولې ده. نو پر هغه هم د دې آیت په روی سره د رمضان روژې فرض سوې، او څرنګه چې د هغه جنون(لېونتوب) تر یوې میاشتي کم وو، نو پر هغه به را رواني روژې اداء کول او د پاتو روژو قضاء راوړل واجب وي، او په دې وجوب کي فایده هم ده، ځکه کله چې د هغه پر غاړه تر یوې میاشتي کمي روژې پاته وي، نو ښکاره ده چې د هغو په قضاء راوړلو او اداء کولو کي به هغه ته هیڅ تکلیف او حرج نه وي، او د قضاء ساقطونکی شی حرج دی، لهذا کله چې په دې صورت کي حرج نسته، نو ښکاره ده چې پر هغه به د تېرو ورځو قضاء هم واجب وي، د دې په خلاف که یو سړی ټوله میاشت لېونی وي، نو پر هغه به قضاء واجب نه وي، ځکه چې په هغه صورت کي د قضاء په واجبولو کي هیڅ فایده نسته، په دې توګه چې د یوې میاشتي د روژو په قضاء راوړلو کي حرج دی، او حرج قضاء ساقطوي، نو ځکه به په دې صورت کي قضاء ساقطیږي، فلافائدة في وجوبه، وتمامه في الخلافيات.

والأهلية بالذمة الخ له دې ځایه دیو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې فقط د رمضان د میاشتي وجود د روژې دوجوب لپاره کافي نه دی، بلکي د میاشتي سره سره د روژې د نیولو اهلیت(قابلیت) هم ضروري دی، او په پورتني مسئله کي دا سړی د رمضان په تېرو ورځو کي د لېونتوب په وجه د روژو نیولو أهل نه وو، لهذا پر هغه د تېرو ورځو اداء واجب نه سوه، او کله چې اداء واجب نه سوه، نو قضاء به هم نه واجبیږي، حال دا چې تاسو پر دې سړي د تېرو ورځو قضاء واجبوئ؟ جواب دا دی چې د اهلیت تعلق د ذمه واری سره دی، او مجنون که څه هم بالفعل د روژې پر اداء کولو قدرت نه لري، خو په هغه کي دننه دومره اهلیت سته چې پر هغه دې روژه واجب او لازم کړی سي، نو په دې وجه به پر مجنون هم روژې لازمي وي، خو څرنګه چې هغه یې اداء کولای نه سي، نو دا به کتل کیږي، چې د هغه جنون اوږد دی، که نه؟ نو که اوږد وو، نو د هغه له ذمې څخه به قضاء ساقطیږي، ځکه چې په دې صورت کي حرج دی، او که د هغه جنون لږ او کم وو، نو په دې صورت کي به پر هغه د لېونتوب د ورځو قضاء واجب وي، ځکه د روژو د قضاء راوړلو په صورت کي هیڅ حرج نسته.

ثم لا فرق الخ فرمایي چې پورته بیان سوي احکام هر ډول جنون ته شامل دي، هغه که اصلي او که عارضي، په دې دواړو کي هیڅ فرق نسته، ځیني خلګ وایي چې دا حکم د ظاهر روایت مطابق دی، کنې امام محمد رَحِمَهُ الله خو په دې دواړو کي فرق کړی دی، هغه دا چې که د جنونِ اصلي په صورت کي هغه د رمضان په یوه حصه کي جوړ سو، نو پر هغه به د تېرو ورځو قضاء واجب نه وي، او که د جنونِ عارضي په صورت کي جوړ سو. نو پر هغه به د تېر ورځو قضاء واجب وي، ځکه که جنون اصلي وي، او یو سړی د جنونِ اصلي په حالت کي بالغ سي، نو هغه به د کوچني سره لاحقیږي، نو که یو نابالغه کوچنی د رمضان په یوه حصه کي بالغ سي، پر هغه به د تېرو ورځو قضاء واجب نه وي، نو ځکه به پر مجنونِ اصلي هم د تېرو ورځو قضاء واجب نه وي(ځکه هغه هم د نابالغه کوچني سره لاحق سو) او نابالغه کوچنی د

شريعت ترخطاب لاندې نه راځي، د دې په خلاف که يو څوک د عقل په حالت کې بالغ سو، او بيا لېونى سو(يعني مجنونِ عارضي وو) او د رمضان په يوه حصه کې جوړ سو، نو پر هغه به د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د تېرو ورځو قضاء واجب وي، ځکه چې هغه د بلوغت په وخت کې د شريعت تر خطاب لاندې وو، بعضي متأخرينو فقهاوو د امام محمد نا روايت خوښ کړى دى.

## په ټوله رمضان کې د نيت نه کولو حکم

وَمَنْ لَمْ يَنْوِ فِي رَمَضَانَ كُلِّهِ لَا صَوْمًا وَلَا فِطْرًا او څوک چې په ټوله رمضان کې نه د روژې نيت وکړي او نه د روژې د نه نيولو(يعني نه دا نيت وکړي چې روژه نيسم او نه دا نيت وکړي چې روژه نه نيسم) فَعَلَيْهِ قَضَاؤُهُ نو پر هغه به د رمضان قضاء واجب وي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ الله: يَتَأَدَّى صَوْمُ رَمَضَانَ بِدُونِ النِّيَّةِ فِي حَقِّ الصَّحِيحِ الْمُقِيمِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د رمضان روژه د روغ(جوړ) مقيم په حق کې بې له نيته اداء کېږي لِأَنَّ الْإِمْسَاكَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ ځکه چې امساک(يعني له خوراک، څښاک او جماع څخه منع کېدل) پر هغه واجب دى فَعَلَى أَيِّ وَجْهٍ يُؤَدِّيهِ يَقَعُ عَنْهُ نو پر کومه طريقه چې يې اداء کوي د هغه له طرفه به واقع کېږي كَمَا إِذَا وَهَبَ كُلَّ النِّصَابِ لِلْفَقِيرِ لکه يو څوک چې ټوله نصاب فقير ته هبه کړي وَلَنَا أَنَّ الْمُسْتَحَقَّ الْإِمْسَاكُ بِجِهَةِ الْعِبَادَةِ او زموږ دليل دا دى چې واجب هغه امساک دى چې په طريقه د عبادت وي وَلَا عِبَادَةَ إِلَّا بِالنِّيَّةِ او عبادت بې له نيته نه ثابتېږي وَفِي هِبَةِ النِّصَابِ وُجِدَ نِيَّةُ الْقُرْبَةِ عَلَى مَا مَرَّ فِي الزَّكَاةِ او د نصاب هبه کولو په صورت کې د عبادت نيت سته لکه څرنګه چې په كتابُ الزكوٰة کې دا مسئله تېره سوه.

**اللغات:** ﴿لم ينو﴾ د ضرب ماضي جحد معلوم صيغه ده: نيت کول. ﴿جهة﴾ طرف، توګه، طريقه. ﴿قربة﴾ نېکي، عبادت.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو چا د رمضان په ټوله مياشت کې له خوراک، څښاک او جماع څخه ځان نيولى وو، لېکن هغه نه د روژې نيت کړى وو، او نه يې د روژې نه نيولو، نو دا سړى که مسافر يا مريض وو، نو بالاتفاق قضاء پر واجب ده، او که روغ او مقيم وو، نو زموږ په نېز قضاء پر واجب ده، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز قضاء پر واجب نه ده، د امام زفر رَحِمَهُ الله مذهب دا دى چې د رمضان روژه د روغ مقيم په حق کې له نيت څخه بغير هم اداء کېږي.

**د امام زفر دليل:** دا دى چې د رمضان په ورځو کې له خوراک، څښاک او جماع څخه منع کېدل واجب دي، نو برابره ده که هغه هر ډول هم دا واجب اداء کوي، اداء کېږي به، هغه که يې نيت کړى وي که نه وي، لکه يو سړى چې د نصاب ټوله مال تر کال تېرېدلو وروسته يو فقير ته هبه کړي، او د زکاة اداء کولو نيت نه وکړي، نو زکاة به يې اداء کېږي، همدارنګه که د رمضان په ورځو کې بې له نيته له خوراک، څښاک او جماع څخه منع سو، نو په دې سره به د هغه د رمضان روژه اداء کېږي.

**زموږ دليل:** دا دى چې د رمضان په ورځو کې مطلقاً له خوراک، څښاک او جماع څخه منع کېدل واجب نه دي، بلکې د عبادت په توګه منع کېدل واجب دي، او بې له نيته له خوراک، څښاک او جماع څخه منع کېدل عبادت نه سي کېدلاى، او دلته هغه نيت کړى نه دي، نو له دې څخه دا لازمه سوه چې هغه بالکل د روژې عبادت اداء کړى نه دي، او کله چې داسې ده، نو پر هغه به قضاء واجب وي، او پاته سو د ټوله نصاب هبه کول، نو په هغه کې د عبادت نيت سته، په دې توګه چې هغه د ثواب حاصلولو په نيت سره فقير ته مال ورکړى دى، نو کله چې د عبادت نيت سته، نو زکاة به هم اداء کېږي، د دې پوره تفصيل په كتاب الزكوٰة کې تېر سو.

## څوک چې په رمضان کې د روژې نيت نه وکړي او بيا څه وخوري نو د کفارې حکم

وَمَنْ أَصْبَحَ غَيْرَ نَاوٍ لِلصَّوْمِ او څوک چې په داسې حال کې سهار کړي چې د روژې نيت کونکی نه وي (يعني د روژې نيت يې کړی نه وي) فَأَكَلَ نو خوراک وکړي لَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله نو پر هغه کفاره واجب نه ده د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَ زُفَرُ: عَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر هغه کفاره واجب ده لِأَنَّهُ يَتَأَدَّى بِغَيْرِ النِّيَّةِ عِنْدَهُ ځکه چې د هغه په نيز روژه بې له نيته اداء کيږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا الله: إِذَا أَكَلَ قَبْلَ الزَّوَالِ تَجِبُ الْكَفَّارَةُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې که هغه تر زوال مخکې خوراک کړی وي نو کفاره واجبيږي لِأَنَّهُ فَوَّتَ إِمْكَانَ التَّحْصِيلِ ځکه چې هغه د روژې نيولو امکان فوت کړی فَصَارَ كَغَاصِبِ الْغَاصِبِ نو داسې سو لکه د غاصب څخه غصب کونکی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله: أَنَّ الْكَفَّارَةَ تَعَلَّقَتْ بِالْإِفْسَادِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې کفاره د روژې فاسدولو سره تعلق لري وَهٰذَا امْتِنَاعٌ او دا له روژې نيولو څخه منع کېدل دي إِذْ لَا صَوْمَ إِلَّا بِالنِّيَّةِ ځکه چې روژه بغير له نيته نه ثابتيږي.●

**اللغات**: ﴿غير ناو﴾ نيت کونکی نه وو، ﴿فوت﴾ د تفعيل ماضي ده: فوتول (فوت کول)، ﴿امتناع﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل، بندېدل، پرېږ کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د روژې په مياشته کې يوه ورځ مثلاً تر لسو (۱۰) بجو پورې هيڅ خوراک، څښاک نه وکړي، لېکن د روژې نيت هم نه وکړي، تر هغه وروسته قصداً خوراک وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه صرف قضاء واجبيږي، د روژې ماتولو کفاره پر واجب نه ده، دليل دا دی چې کفاره هغه وخت لازميږي، چې انسان روژه ونيسي او بيا يې ماته کړي، او دې سړي خو بالکل د روژې نيت کړی نه دی، نو داسې سو لکه روژه چې يې بالکل نيولې نه وي، نو کفاره به هم نه لازميږي، او قضاء په دې وجه واجب ده چې د رمضان روژه يې نه ونيوله، د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه کفاره سته، د هغه دليل دا دی چې د هغه په نيز د رمضان روژه بې له نيته هم روژه اداء کيږي، نو کله چې هغه تر لسو بجو پورې له خوراک، څښاک څخه ځان منع کړی وو، نو روژتي سو، او بيا يې قصداً روژه ماته کړه، نو ځکه به کفاره هم پر واجب وي.

**و قال ابو يوسف الخ** صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې که تر زوال مخکې يې خوراک وکړی، نو کفاره لازميږي، د هغو دليل دا دی چې تر زوال مخکې د دې خبرې امکان وو چې هغه به د روژې نيت وکړي، او روژه به ونيسي، لېکن هغه ماته کړه، نو د روژې نيولو امکان يې فوت کړی، نو که څه هم روژه يې نيولې او ماته کړې نه ده، لېکن په خوراک سره يې د روژې نيولو امکان ختم کړی، نو د روژې د امکان په ختمولو سره به هم کفاره لازميږي، د دې يو مثال داسې ذکر کوي چې مثلاً زيد له خالد څخه توره غصب کړه، نو خالد به له زيد څخه توره اخلي، او که توره ور سره نه وه، نو تاوان به يې ځني اخلي، لېکن په دې دوران کې نصير له زيد څخه توره غصب کړه، او هغه يې ضايع کړه، نو خالد ته دا حق سته چې

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۱۱۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۰۲]

له زيد څخه د تاوان اخيستلو پر ځاى له نصير څخه تاوان واخلي، ځکه چي نصير توره ضايع کړه، او د هغې د ورکولو امکان يې ختم کړي، لهذا کله چي نصير د ورکولو امکان ختم کړي، نو ځکه به له هغه څخه خلا تاوان اخلي، همدا رول په پورتني مسئله کي هم هغه سړي په خوراک کولو سره د روژې نيولو امکان ختم کړي، نو ځکه به د روژې کفاره ورکوي. (له غاصب څخه د غصب کونکي صورت همدغه دى کوم چي مونږ د زيد او نصير په مثال کي ذکر کړې).

ولأبي حنيفة الخ د کفارې د نه واجبېدلو لپاره د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي کفاره هغه وخت واجبيږي، چي کله يو څوک د روژې په نيت سره روژه ونيسي او بيا يې ماته کړي. دلته خو هغه بالکل نيت کړى نه دى، هو! دا ويل کېدلى سي چي هغه روژه نه ده نيولې، او د روژې په نه نيولو سره صرف قضاء واجبيږي، کفاره نه واجبيږي، نو ځکه به پر هغه کفاره واجب نه وي.

## په رمضان کي د حيض او د نفاس حکم

وَإِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ أَوْ نَفَسَتْ او کله چي ښځه د حيض يا نفاس والا سي أَفْطَرَتْ وَقَضَتْ نو روژه به ماتوي او (وروسته به د هغې) قضاء راوړي بِخِلَافِ الصَّلَاةِ په خلاف د لمانځه لِأَنَّهَا تُحْرَجُ فِي قَضَائِهَا ځکه چي د لمانځه په قضاء کي هغه په تکليف کيږي وَقَدْ مَرَّ فِي الصَّلَاةِ او دا بحث د لمانځه په بيان کي تېر سو.

**اللغات:** ﴿حاضت﴾ حيض راتلل، حيض والا کېدل.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دى که يوې ښځي ته په رمضان کي حيض راسي، يا يوه ښځه په رمضان کي د نفاس والا سي، نو حکم دا دى چي روژې دي نه نيسي، او کله چي له حيض او نفاس څخه فارغه سي، نو تر رمضان وروسته دي د هغو قضاء راوړي، لېکن په دې حالت کي چي کوم لمونځونه فوت سوي دي د هغو قضاء دي نه راوړي، ځکه چي د لمونځو د ډېربښت په وجه د هغو په قضاء راوړلو کي حرج او تکليف دى، حال دا چي روژې په يوه مياشت کي صرف ۷ يا ۸ فوتيږي، او په ټوله کال کي د هغو قضاء راوړل آسانه دي، نو ځرنګه چي د روژو په قضاء کي څه حرج نسته، نو ځکه به د هغو قضاء واجب وي.

## د روژې په دوران کي د سفر يا حيض د ختمېدلو حکم

وَإِذَا قَدِمَ الْمُسَافِرُ أَوْ طَهُرَتِ الْحَائِضُ فِي بَعْضِ النَّهَارِ او کله چي مسافر راسي يا حائضه ښځه پاکه سي د ورځي په يوه حصه کي أَمْسَكَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا نو هغوى به پاته ورځ امساک کوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: لَا يَجِبُ الْإِمْسَاكُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امساک واجب نه دى وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ كُلُّ مَنْ صَارَ أَهْلًا لِلُزُومِ او هم پر دې اختلاف هر هغه سړى دى چي (دورځي په مېنځ کي) د روژې د لازمېدلو أهل (قابل) سي وَلَمْ يَكُنْ كَذَلِكَ فِي أَوَّلِ الْيَوْمِ حال دا چي د ورځي په شروع کي داسي نه وي هُوَ يَقُولُ: اَلتَّشَبُّهُ خَلَفٌ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د روژتي مشابهت د روژې خليفه دى فَلَا يَجِبُ إِلَّا عَلَى مَنْ يَتَحَقَّقُ الْأَصْلُ فِي حَقِّهِ نو خليفه نه واجبيږي خو پر هغه سړي چي د هغه په حق کي اصل (يعني روژه) ثابته سي كَالْمُفْطِرِ مُتَعَمِّدًا أَوْ مُخْطِئًا لکه په قصد يا خطاء سره روژه ماتونکى وَلَنَا أَنَّهُ وَجَبَ

قَضَاءً لِحَقِّ الْوَقْتِ او زموږ دليل دا دی چې امساک د وخت د حق د اداء کولو لپاره واجب سوی دی لَا خَلَفًا نه د خليفه والي لپاره لِأَنَّهُ وَقْتٌ مُعَظَّمٌ ځکه چې د رمضان ورځ د تعظيم لائق وخت دی بِخِلَافِ الْحَائِضِ وَالنُّفَسَاءِ په خلاف د حيض او نفاس والا ښځې وَالْمَرِيضِ وَالْمُسَافِرِ او د مريض او مسافر حَيْثُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ حَالَ قِيَامِ هَذِهِ الْأَعْذَارِ ځکه چې د دې عذرونو په وجود کې پر هغو امساک نه واجبيږي لِتَحَقُّقِ الْمَانِعِ عَنِ التَّشَبُّهِ ځکه چې د روژتي له مشابهت څخه مانع سته حَسَبَ تَحَقُّقِهِ عَنِ الصَّوْمِ لکه څرنګه چې د روژې له ثبوت څخه مانع سته.

**اللغات:** ﴿تشبه﴾ د تفعّل مصدر دی: مشابهت اختيارول، ﴿متعمد﴾ د تفعّل اسم فاعل دی: په قصد سره کار کونکی، ﴿مخطئ﴾ د افعال اسم فاعل دی: په خطاء او غلطۍ سره کار کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مسافر د رمضان په يوه ورځ کې خپل وطن ته واپس راغلی، يا ښځه له حيض څخه پاکه سوه، نو زموږ په نيز پر دواړو د ورځې په پاته حصه کې له خوراک، څښاک او جماع څخه امساک واجب دی، که څه هم د ورځې په تېره حصه کې واجب نه وو، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر دوی پاته ورځ کې امساک واجب نه دی، همدا اختلاف د هر هغه سړي په باره کې دی چې هغه د ورځې په يوه حصه کې د روژې أهل سي، مثلاً کافر مسلمان سي، يا کوچنی بالغ سي، يا لېونی جوړ سي، نو زموږ په نيز به پر دوی د ورځې په پاته حصه کې امساک واجب وي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به واجب نه وي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې د روژتيانو سره مشابهت اختيارول د روژې خليفه دی، او قاعده دا ده چې خليفه پر هغه چا واجبيږي چې پر هغه اصل واجب وي، او پر چا چې اصل واجب نه وي، پر هغه خليفه هم نه واجبيږي، نو کله چې پر مسافر او حائضې ښځې اصل يعني روژه واجب نه ده، نو د هغه خليفه يعني امساک به څرنګه پر واجب وي، لېکن که يو چا په رمضان کې قصداً روژه ماته کړه، يا يې خطاءً روژه ماته کړه، په دې توګه چې د شک په ورځ کې يې يو شی وخوړی، بيا معلومه سوه چې نن خو رمضان دی، يا يې پېشلمی په دې ګومان وکړی چې تر اوسه شپه لا پاته ده، وروسته معلومه سوه چې شپه پاته نه وه، بلکې سهار وو، نو څرنګه چې پر دې قصداً يا خطاءً روژه ماتونکي باندې اصل يعني روژه واجب ده، نو تر روژې ماتولو وروسته به پر دوی د هغه خليفه يعني امساک هم واجب وي (لنډه دا چې د امام شافعي په نيز پر قصداً يا خطاءً روژه ماتونکي په پاته ورځ کې امساک واجب دی، بل پر هيڅا واجب نه دی، دليل تېر سو).

**زموږ دليل:** دا دی چې د روژتيانو مشابهت اختيارول د روژې خليفه نه دی، ځکه چې د روژتيانو سره مشابهت د ورځې په بعضې حصه کې پيدا سو، او روژه توله ورځ وي، او د يو شي بعض د کُل خليفه نه سي کېدلای، نو ثابته سوه چې د ورځې په بعضې حصه کې امساک د روژې د خليفه والي په وجه واجب نه دی، بلکې د وخت يعني د رمضان د حق د اداء کولو لپاره واجب دی، ځکه چې د رمضان ورځ يوه ډېره سپېڅلې او د ډېر عظمت والا ورځ وي، همدا وجه ده چې په رمضان کې د قصداً روژې فاسدولو په وجه کفاره واجبيږي، او په غيرِ رمضان کې په فاسدولو سره کفاره نه واجبيږي، او د رمضان تعظيم هغه وخت کېږي چې انسان روژه ونيسي او په عباداتو کې مشغول پاته سي، اوس که يو سړی د روژې اهل نه وي، نو په امساک سره دې د هغې حق اداء کړي، او څرنګه چې دا امساک د روژې خليفه نه دی، نو ځکه به د هغې وجوب د اصل يعني د روژې پر وجوب مبني نه وي، او کله چې د امساک وجوب د روژې پر وجوب مبني نه دی، نو امساک به پر هغه چا هم واجبيږي چې پر هغه روژه واجب نه وي.

بخلاف الحائض الخ د دې په خلاف حيض او نفاس والا ښځه، مريض او مسافر دي، چې پر هغو دې هلرونو د وجود په حالت کې امساک واجب نه دی، ځکه دا عذرونه(حيض، نفاس، سفر، مرض) چې څرنګه له روژې نيولو څخه مانع دي، همدارنګه د روژتيانو له مشابهت اختيارلو څخه هم مانع دي، ځکه چې د حائضې او نفاسې په حق کې مشابهت اختيارول په دې وجه ممنوع دی چې پر دې دواړو روژه حرامه ده، او د حرام فعل سره تشبيه هم حرامه ده، او د مريض او مسافر په حق کې مشابهت اختيارول ځکه ممنوع دی، چې دې دواړو ته د روژې ماتولو رخصت د تکليف او حرج ليرې کولو لپاره دی، نو که پر دوی د روژتيانو مشابهت اختيارول لازم سه نو د موضوع ماتول او نقض به لازم سي، ځکه چې همدغه نقض د موضوع دی چې يو طرف دوی ته د روژې ماتولو رخصت ورکول سي، او بل طرف پر دوی مشابهت اختيارول لازم کړی سي.

## که څوک په دې ګومان پيشلمی وکړي چې وخت لا پاته دی، لېکن داسې نه وي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا تَسَحَّرَ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: او که يو څوک پيشلمی وکړي وَهُوَ يَظُنُّ أَنَّ الْفَجْرَ لَمْ يَطْلُعْ او د هغه دا ګومان وي چې سهار راختلی نه دي(يعني تر اوسه سپېدې چاودلي نه دي) فَإِذَا هُوَ قَدْ طَلَعَ خو بيا معلومه سي چې سهار راختلی دی أَوْ أَفْطَرَ وَهُوَ يَرَى أَنَّ الشَّمْسَ قَدْ غَرَبَتْ يا روژه ماته کړي او هغه دا فکر کوي چې لمر لوېدلی دی فَإِذَا هِيَ لَمْ تَغْرُبْ خو بيا معلومه سي چې لوېدلی نه دی أَمْسَكَ بَقِيَّةَ يَوْمِهِ نو دا سړی به په خپله پاته ورځ کې امساک کوي قَضَاءً لِحَقِّ الْوَقْتِ بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ أَوْ نَفْيًا لِلتُّهْمَةِ په ممکنه اندازه د وخت د حق د پوره کولو لپاره يا د تهمت د ليرې کولو لپاره وَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ او پر هغه قضاء واجب ده لِأَنَّهُ حَقٌّ مَضْمُونٌ بِالْمِثْلِ ځکه چې دا حق مضمون بالمثل دی(يعني داسې حق دی چې د هغه په ضمان کې د هغه د مثل را ګرځول واجب دي) كَمَا فِي الْمَرِيضِ وَالْمُسَافِرِ لکه په مريض او مسافر کې (چې دا حکم دی) وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ او پر هغه کفاره واجب نه ده لِأَنَّ الْجِنَايَةَ قَاصِرَةٌ لِعَدَمِ الْقَصْدِ ځکه چې د ارادې د نشتوالي په وجه جرم ناقص دی وَفِيهِ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ: مَا تَجَانَفْنَا لِإِثْمٍ قَضَاءُ يَوْمٍ عَلَيْنَا يَسِيرٌ او هم د دغه په باره کې حضرت عمر ﷺ فرمايلي دي: چې موږ هيڅ ګناه ته ميلان کړی نه دي (او) پر موږ د يوې ورځې قضاء راوړل آسانه دي وَالْمُرَادُ بِالْفَجْرِ الْفَجْرُ الثَّانِي او له سهار څخه مراد دويم سهار (يعني صبح صادق[روڼ ګهيځ]) دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الصَّلَاةِ او موږ دا (خبره) په کتاب الصلاة (باب مواقيت الصلاة) کې بيان کړې ده.

**اللغات:** ﴿تسحر﴾ پيشلمی کول، په پيشلمي کې خوراک کول. ﴿جناية﴾ جرم، قصور. ﴿قاصرة﴾ ناقص، کم، نا بشپړ. ﴿ما تجانفنا﴾ د تفاعل له باب څخه ماضي منفي ده: ميلان کول، مائلېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو سړي په دې ګومان سره پيشلمی وکړی چې تر اوسه صبح صادق(روڼ ګهيځ) نه دي، لېکن وروسته معلومه سوه چې صبح صادق وو، يا يو چا په دې ګومان روژه ماته کړه چې لمر لوېدلی دي، حال دا چې لمر لوېدلی نه وو، نو په دې دواړو صورتونو کې د هغه روژه فاسده سوه، لېکن څومره وخت چې پاته دی، پر هغه دغومره وخت امساک واجب دی، چې د وس او امکان په اندازه د رمضان د سپېڅلي او برکتمن وخت تعظيم او احترام وسي، او

له هغه څخه تهمت هم ليري سي، څکه که څه هم هغه په اراده او قصد سره روژه ماته کړې نه ده، خو جاهل خلک به دا تهمت پر وايي چي قصداً يې روژه ماته کړې ده، او داسي نوري بول بول خبري به کوي. نو له دې خرافاتو څخه د ځان ساتلو لپاره پر هغه امساک واجب دی، او وروسته به د دې روژې قضاء راوړي، څکه چي روژه يو داسي شرعي حق دی چي هغه مضمون بالمثل دی، يعني د اداء په فوتېدلو سره نه ساقطيږي، بلکي شرعاً د دې ضمان بالمثل واجب دی، يعني د دې په ضمان کي به د دې په مثل بله روژه نيسي، لکه يو څوک چي مريض سي، يا مسافر سي، نو ښکاره ده چي د هغه په حق کي اداء فوت سو، خو تر سفر او مرض ختمېدلو وروسته به پر هغه قضاء بالمثل واجب وي، لېکن په دې صورت کي پر هغه کفاره واجب نه ده، څکه چي د هغه جنايت کم او قاصر دی، څکه د صبح صادق او تر لمر لوېدلو مخکي دې سړي قصداً خوراک نه دي کړی، بلکي دا سړی په اندازه لګولو کي غلط سوی دی. لهذا په دې دواړو صورتونو کي د روژې ماتولو په حواله د هغه له طرفه هيڅ تعدّي نه راغله، نو څکه به کفاره هم پر واجب نه وي.

والمراد بالفجر الخ فرمايي چي په متن کي له سهار راختلو څخه مراد دويم سهار دی، چي د هغه نوم صبح صادق (ربښتونی سهار يا سپېدې چاود يا رڼ ګهيځ) دی.

## د پېشلمي شرعي حيثيت

ثُمَّ السَّحُورُ مُسْتَحَبٌّ بيا پېشلمی کول مستحب دي لِقَوْلِهِ ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: تَسَحَّرُوْا فَإِنَّ فِي السُّحُوْرِ بَرَكَةً څکه نبي ﷺ فرمايلي دي، پېشلمی کوئ څکه چي په پېشلمي کي برکت دی وَالْمُسْتَحَبُّ تَأْخِيْرُهُ او پېشلمی ځنډول مستحب دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ●: ثَلَاثٌ مِنْ أَخْلَاقِ الْمُرْسَلِيْنَ څکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي درې شيان د رسولانو له اخلاق څخه دي تَعْجِيْلُ الْإِفْطَارِ وَتَأْخِيْرُ السُّحُوْرِ وَالسِّوَاكُ [۱] روژه مات په تلوار (او چابکي) سره کول [۲] او پېشلمی په ځنډ سره کول [۳] او مسواک وهل إِلَّا أَنَّهُ إِذَا شَكَّ فِي الْفَجْرِ خو کله چي هغه په سهار کېدلو کي شک وکړي (چي آيا سهار به وي که نه؟) وَمَعْنَاهُ تَسَاوِي الظَّنَّيْنِ او د شک معنیٰ دا ده چي دواړه ګومانونه برابر سي فَالْأَفْضَلُ أَنْ يَدَعَ الْأَكْلَ نو (بيا) افضله دا ده چي خوراک پرېږدي تَحَرُّزًا عَنِ الْمُحَرَّمِ له حرام شي څخه د ځان ساتلو لپاره وَلَا يَجِبُ عَلَيْهِ ذٰلِكَ خو پر هغه خوراک پرېښوول واجب نه دي وَلَوْ أَكَلَ فَصَوْمُهُ تَامٌّ او که هغه خوراک وکړی نو روژه يې پوره ده لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ اللَّيْلُ څکه چي اصل خو شپه ده وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: إِذَا كَانَ فِيْ مَوْضِعٍ لَا يَسْتَبِيْنُ الْفَجْرَ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي که دا سړی په داسي ځای کي وي چي هلته سهار نه ښکاره کيږي أَوْ كَانَتِ اللَّيْلَةُ مُقْمِرَةً يا د سپوږمۍ شپه وي أَوْ مُتَغَيِّمَةً يا وريځنه شپه وي (يعني پر آسمان وريځ غوړېدلې وي) أَوْ كَانَ بِبَصَرِهِ عِلَّةٌ يا د ده په سترګو کي يو مرض وي وَهُوَ يَشُكُّ او ده ته (د سهار په راختلو کي) شک وي لَا يَأْكُلُ نو خوراک

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب بركة السحور من غير إيجاب، حديث رقم: ۱۹۲۳، ومسلم في كتاب الصيام، حديث رقم: ۴۵، والترمذي في كتاب الصوم، باب: ۱۷، حديث رقم: ۷۰۸.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصوم، باب ما جاء في تأخير السحور، حديث رقم: ۷۰۳، فقط في تأخير السحور.

دي نه کوي وَلَوْ أَكَلَ فَقَدْ أَسَاءَ او که خوراک يې وکړی نو بد کار يې وکړی (يعني بنه کار يې نه وکړی) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: دَعْ مَا يُرِيبُكَ إِلَى مَا لَا يُرِيبُكَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "پرېږده! هغه شی کوم چي تا په شک کي اچوي د هغه شي و طرف ته کوم چي تا په شک کي نه اچوي" (يعني شک پرېږده! پر يقين عمل کوه) وَإِنْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ أَكَلَ وَالْفَجْرُ طَالِعٌ او که د هغه غالب گومان دا وي چي هغه په داسي حال کي خوراک وکړی چي سهار راختلی وو فَعَلَيْهِ قَضَاؤُهُ عَمَلًا بِغَالِبِ الرَّأْيِ وَفِيهِ الْاِحْتِيَاطُ نو پر هغه د دې روژې قضاء راوړل واجب دي په غالب گومان باندي د عمل کولو لپاره او هم په دې کي احتياط دی وَعَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ لَا قَضَاءَ عَلَيْهِ او د ظاهر روايت مطابق پر هغه قضاء واجب نه ده لِأَنَّ الْيَقِينَ لَا يَزُولُ إِلَّا بِمِثْلِهِ ځکه چي يقين نه زائليږي خو په خپل مثل سره (يعني يقين صرف په يقين سره زائليږي).

**اللغات:** ﴿تسحر﴾ د تفعل مصدر دی: پېشلمی کول، ﴿سحور﴾ پېشلمی، ﴿تعجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: تلوار کول، ﴿تساوی﴾ د تفاعل مصدر دی: برابربدل، ﴿مقمرة﴾ سپوږميزه شپه، د سپوږمۍ شپه، ﴿مغيمة﴾ وريځ والا، ﴿أساء﴾ د افعال ماضي ده: بد کار کول، ﴿يريب﴾ د افعال مضارع ده: په شک او شبهه کي اچول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي د روژې په مياشته کي د شپې په آخره حصه کي پېشلمی کول مستحب دي، ځکه په دې کي برکت هم دی، او د روژې د نيولو قوت هم په دې کي زيات دی، په حديث کي راغلي دي: تسحروا فإن في السحور بركة، (يعني پېشلمی کوئ، ځکه چي په دې کي برکت دی)، نو د دې حديث په وجه پېشلمی کول مستحب دي، ځکه چي په حديث کي د أمر په صيغه سره د پېشلمي حکم سوی دی، او دلته أمر پر وجوب نه سي حمل کېدای، کنې امت به په مشقت کي مبتلا سي، لهذا دلته به امر پر ندب او استحباب حمل کيږي، فرمايي چي څرنګه پېشلمی کول مستحب دي، همدارنګه په ځنډ سره کول مستحب دي، ځکه همدغه د نبيانو او رسولانو طريقه وه، چي هغوی به بالکل د شپې په آخري حصه کي پېشلمی کوی، نو د عامو خلکو په حق کي به هم دا طريقه غوره او مستحب وي.

إلا أنه الخ د دې حاصل دا دی که يو سړي پېشلمی کوی، خو د هغه دا يقين نه وو چي شپه ده، بلکي په دې شک کي وو چي شايد سهار به وي، يا شايد شپه به وي، او سهار به نه وي، نو د هغه لپاره غوره او افضله دا ده چي خوراک، څښاک بند کړي، چي له حرام فعل څخه وژغورل سي، ځکه چي د روژې په مياشت کي قصداً خوراک، څښاک کول حرام دي، او ډېره ممکنه ده چي د هغه شک په يقين بدل سي، او هغه په حرام کار مبتلا سي، خو بيا هم پر هغه خوراک، څښاک پرېښوول واجب او ضروري نه دي، همدا وجه ده که د شک په وخت کي هغه يو څه شی وخوري، نو روژه يې نه ماتيږي، ځکه چي د سهار کېدلو تر يقين مخکي د شپې کېدل اصل دي، او داسي ده لکه بالکل چي يې په شپه کي پېشلمی کړی وي، نو ځکه به د هغه روژه پوره وي.

وعن أبي حنيفة الخ فرمايي چي له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه په نوادر کي يو روايت دا رانقل سوی دی چي که يو سړی په داسي ځای کي وي، چي هلته انسان په دې نه خبريږي چي سهار سوی دي، که نه دي، يا شپه داسي روښانه او سپوږميزه

---

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب صفة القيامة، حديث رقم: ٢٥١٨، والنسائي في كتاب الأشربة، باب الحث على ترك الشبهات.

ري چې د ستورو او سپوږمۍ په رڼا کې د سهار د سپيدو آثار نه ښکاره کېږي. يا شپه وريځمنه وي. او د سهار وخت په صحيح توګه نه معلومېږي، يا ديو سړي نظر ډېر کمزوری وي، يا د سترګو په يو مرض مبتلا وي. او د سهار صحيح اندازه نه ورمعلومېږي، يعنې د سهار په کېدلو او نه کېدلو کې ورته شک او شبهه وي. نو هغه ته پېشلمې نه کول پکار دي. بلکې څرنګه چې د هغه په زړه کې د سهار کېدلو خيال راسي، نو هغه ته پکار ده چې خوراک، څښاک دې پرېږدي، او پېشلمې دې نه کوي، خو که هغه په دې حال کې هم پېشلمې وکړي، نو بد کار يې وکړ، ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: دع ما يريبك إلى ما لا يريبك. (يعني شکمن شی پرېږده! هغه شی اختيار کړه چې يقيني وي). او څرنګه چې په پورتني صورتونه شکمن دي، نو ځکه به پر هغه د پېشلمي پرېښوول ضروري وي.

وإن كان الخ او که د دې سړي غالب ګومان دا وو چې تر سهار کېدلو وروسته يې پېشلمې کړې دی، نو پر هغه به د دې روژې قضاء راوړل واجب وي، ځکه چې دا د فقهي قاعده ده: أكبر الرأى بمنزلة اليقين (يعني غالب ګومان د يقين په درجه کې دی)، نو پر دې سړي به د غالب ګومان مطابق عمل کول واجب وي. او په دې کې احتياط هم دی، لېکن په ظاهر روايت کې پر دې سړي قضاء واجب نه ده، ځکه که څه هم د ده غالب ګومان د سهار کېدلو دی، خو بيا هم د ده په حق کې د شپې وجود اصلي او يقيني دی، او قاعده دا ده: اليقين لايزال إلا بمثله. او څرنګه چې دلته د سهار کېدلو يقين نسته، نو ځکه به د هغه پېشلمې هم په شپه کې وي، او د هغه روژه به پوره وي، او کله چې روژه پوره ده. نو قضاء به د څه شي واجب وي؟.

## که تر پېشلمې وروسته معلومه سوه چې صبح صادق راختلی وو نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| وَلَوْ ظَهَرَ أَنَّ الْفَجْرَ طَالِعٌ او که (وروسته) دا ښکاره سوه چې سهار راختلی وو لَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ نو پر هغه کفاره واجب نه ده لِأَنَّهُ بَنَى الْأَمْرَ عَلَى الْأَصْلِ ځکه چې هغه خپله معامله پر اصل مبني کړه فَلَا يَتَحَقَّقُ الْعَمَدِيَّةُ نو عمداً روژه ماتول به نه ثابتېږي. |

تشريح: مسئله: دا ده که تر پېشلمي کولو وروسته انسان ته معلومه سوه چې پېشلمې يې د سهار (صبح صادق) په وخت کې کړې دی، نو پر هغه قضاء واجب ده، لېکن کفاره واجب نه ده، ځکه چې هغه په دې ګومان پېشلمې وکړې چې تر اوسه شپه لا پاته ده، نو کله چې يې په دې ګومان پېشلمې کړې دی، نو قصداً روژه ماتول ثابت نه سو، نو کفاره به هم نه واجبېږي.

## په لمر لوېدلو کې د شک حکم

| |
|---|
| وَلَوْ شَكَّ فِي غُرُوْبِ الشَّمْسِ او که د لمر په لوېدلو کې شکمن سو لَا يَحِلُّ لَهُ الْفِطْرُ نو د هغه لپاره روژه ماتول حلال نه دي لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ النَّهَارُ ځکه چې اصل خو ورځ ده وَلَوْ أَكَلَ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ او که خوراک يې وکړی نو پر هغه قضاء واجب ده عَمَلًا بِالْأَصْلِ په اصل باندې د عمل کولو لپاره وَإِنْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ أَكَلَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ او که د هغه غالب ګومان دا وو چې تر لمر لوېدلو مخکې يې خوراک کړی دی فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ رِوَايَةً وَاحِدَةً نو په يوه روايت کې پر هغه قضاء واجب ده لِأَنَّ النَّهَارَ هُوَ الْأَصْلُ ځکه چې ورځ اصل ده وَلَوْ كَانَ شَاكًّا فِيْهِ او که هغه په دې کې شکمن وو وَتَبَيَّنَ أَنَّهَا لَمْ تَغْرُبْ |

لو ښکاره سوه چې لمر لوېدلی نه وو ﴿يَنْبَغِي أَنْ تَجِبَ الْكَفَّارَةُ﴾ نو مناسب دا ده چې کفاره واجب سي ﴿نَظَرًا إِلَى مَا هُوَ الْأَصْلُ﴾ ﴿وَهُوَ النَّهَارُ﴾ د اصل يعني د ورځي و طرف ته په نظر کولو سره.

**تشريح**: مسئله: دا ده که يو روژتي په دې باره کي شکمن سو چي لمر به لوېدلی وي، که نه وي، نو د هغه لپاره روژه ماتول جائز نه دي، ځکه چي اصل خو ورځ ده. ځکه ورځ له مخکي څخه را روانه ده. نو د ورځي کېدل يقيني سو. او يقين صرف په يقين سره زائلېږي. په شک سره يقين نه سي زائلېدی. لهذا کله چي د ورځي وجود يقيني دی. نو ځکه به روژه ماتول هم حلال نه وي. او که بيا هم هغه خوراک وکړی، نو پر هغه قضاء واجب ده. چي پر اصل عمل وسي. ځکه اصل خو همدغه دی چي ورځ پاته ده. او که د هغه غالب گومان دا وو چي تر لمر لوېدلو مخکي يې خوراک کړی دی. نو د ټولو په اتفاق پر هغه قضاء واجب ده. ځکه د ورځي پاته کېدل خو اصل دي. لېکن د هغه سره غالب گومان هم يو ځای سو. نو يقيناً به قضاء واجب وي.

ولو كان شاكًا الخ او که په لمر لوېدلو کي د هغه شک وو، او روژه يې ماته کړه. او بيا په دليل ورته معلومه سوه چي لمر لوېدلی نه وو، نو مناسب دا ده چي پر هغه به د قضاء سره کفاره هم واجب وي، ځکه اصل همدغه دی چي ورځ پاته ده. او په دليل سره هم د ورځي پاته کېدل ثابت سو. نو گواکي هغه قصداً په ورځ کي روژه ماته کړه، او په ورځ کي روژه ماتول قضاء او کفاره دواړه واجبوي. نو ځکه به د قضاء سره کفاره هم واجبول مناسب وي.

## که څوک په هېره خوراک وکړي او بيا قصداً خوراک وکړي نو څه حکم دی؟

﴿وَمَنْ أَكَلَ فِي رَمَضَانَ نَاسِيًا﴾ او چا چي خوراک وکړی په رمضان کي په هېره سره ﴿وَظَنَّ أَنَّ ذَلِكَ يُفْطِرُهُ﴾ او (بيا) يې دا گومان وکړی چي په هېره خوراک روژه ماتوي ﴿فَأَكَلَ بَعْدَ ذَلِكَ مُتَعَمِّدًا﴾ نو تر هغه وروسته يې قصداً خوراک وکړی ﴿عَلَيْهِ الْقَضَاءُ دُونَ الْكَفَّارَةِ﴾ نو پر هغه قضاء واجب ده، نه کفاره ﴿لِأَنَّ الِاشْتِبَاهَ اسْتَنَدَ إِلَى الْقِيَاسِ﴾ ځکه چي شبهه د قياس و طرف ته منسوبه ده ﴿فَتَتَحَقَّقُ الشُّبْهَةُ﴾ نو (په دې سره) شبهه ثابته سوه ﴿وَإِنْ بَلَغَهُ الْحَدِيثُ وَعَلِمَهُ﴾ او که هغه ته (دا) حديث رسېدلی وو (چي په هېره روژه نه ماتېږي) او په پوه هم وو ﴿فَكَذَلِكَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ﴾ نو د ظاهر روايت مطابق هم دغه حکم دی (چي کفاره واجب نه ده) ﴿وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهَا تَجِبُ﴾ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله (يو) روايت دا دی چي کفاره واجبېږي ﴿وَكَذَا عَنْهُمَا﴾ او همدارنګه له صاحبينو څخه روايت سوی دی ﴿لِأَنَّهُ لَا اشْتِبَاهَ﴾ ځکه چي (په حديث تر پوهېدلو وروسته) هيڅ اشتباه نسته ﴿فَلَا شُبْهَةَ﴾ نو هيڅ شبهه به (هم) نه وي ﴿وَجْهُ الْأَوَّلِ﴾ د اول روايت وجه (يعني د کفارې نه واجبېدلو وجه) ﴿قِيَامُ الشُّبْهَةِ الْحُكْمِيَّةِ بِالنَّظَرِ إِلَى الْقِيَاسِ﴾ قياس ته په نظر کولو سره د حکمي شبهې موجودېدل دي ﴿فَلَا يَنْتَفِي بِالْعِلْمِ﴾ نو (په حديث) په پوهېدلو سره شبهه نه ليري کېږي ﴿كَوَطْءِ الْأَبِ جَارِيَةَ ابْنِهِ﴾ لکه پلار چي د خپل زوی د مېنځي سره وطي وکړي (نو د هغه په وجه به حد نه لازمېږي).

**اللغات**: ﴿وطی﴾ جماع کول. ﴿جارية﴾ مېنځه.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی که يو روژتي د رمضان په يوه ورځ کې په هېره خوراک وکړي. بيا يې دا خيال سو چې په هېره خوراک کولو سره روژه ماتيږي، او قصداً يې نور خوراک هم وکړي، نو پر هغه فقط قضاء واجب ده، کفاره واجب نه ده. دليل دا دی چې په هېره خوراک کولو سره د روژې ماتېدلو شک او شبهه د قياس په وجه پيدا سوې ده، ځکه د قياس تقاضا دا ده چې په هېره خوراک کولو سره دې روژه ماته سي. ځکه چې په دې صورت کې هم د روژې رکن يعني امساک ختم سو، نو کله چې دا اشتباه د قياس و طرف ته منسوبه ده، نو په هېره خوراک کولو سره د روژې په ماتولو کې شبهه پيدا سوه، او د شبهې په وجه کفارات ساقطيږي.

وان بلغه الحديث الخ او که دې سړي ته دا حديث رسېدلی وو چې: من نسي وهو صائم فأكل أو شرب فليتم صومه فإنما أطعمه الله وسقاه. او د دې حديث په معنیٰ پوهېدی هم چې په نسياناً خوراک سره روژه نه فاسديږي، خو بيا هم هغه قصداً خوراک وکړي، نو د ظاهر روايت مطابق هم پر هغه کفاره نه واجبيږي. لېکن په نوادر کې له امام صاحب رحمه الله څخه روايت دی چې په دې صورت کې کفاره واجبيږي. او همدا حکم له صاحبينو رحمهما الله څخه روايت سوی دی. د امام صاحب رحمه الله د دې روايت دليل دا دی چې کله هغه ته دا حديث معلوم دی چې د هېرې په صورت کې روژه نه فاسديږي، او دا هم معلومه خبره ده چې د حديث په مقابله کې به قياس پرېښوول (متروک) کيږي، او متروک شی هيڅ يول شبهه نه پيدا کوي، لهذا په دې صورت کې د عدم صوم شبهه ثابته نه سوه. او کله چې شبهه ثابته نه سوه، نو کفاره به هم نه ساقطيږي، او د ظاهر الرواية مطابق د کفارې د عدم وجوب دليل دا دی چې قياس ته په نظر کولو سره هم دلته حکماً شبهه سته، ځکه په هېره د خوراک په کولو سره هم امساک فوت سو او يو شی هم د خپل رکن تر فوتېدلو وروسته نه پاتيږي، او په دې مسئله کې عالم او جاهل دواړه برابر دي، يعني په دې عالم هم خبر دی چې د يو شي رکن چې کله فوت سي نو هغه شی نه پاتيږي، او جاهل هم په خبر دی، نو ځکه به په دې حديث من نسي الخ تر پوهېدلو وروسته هم قياس نه منتفي کيږي، لکه پلار چې د زوی د مينځې سره وطي وکړي، نو پر پلار به حد نه واجبيږي، هغه که پلار د دې په حرمت خبر وي، او که نه وي، ځکه د دې حديث أنت ومالك لأبيك په وجه سره د ملکيت شبهه سته، همدارنګه قياس ته په نظر کولو سره په نسياناً خوراک کې هم د روژې ماتېدلو شبهه سته، نو کله چې شبهه سته، نو کفاره به نه واجبيږي، ځکه چې کفاره د شبهې په وجه ساقطيږي.

## که خوک ښکر ولګوي او په دې ګومان نور خوراک وکړي چې روژه ماته سوه نو څه حکم دی؟

وَلَوِ احْتَجَمَ او که ښکر ولګوي وَظَنَّ أَنَّ ذٰلِكَ يُفْطِرُهُ او دا ګومان وکړي چې ښکر لګول روژه ماتوي ثُمَّ أَكَلَ مُتَعَمِّدًا عَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ بيا په قصداً خوراک وکړي نو پر هغه قضاء او کفاره دواړه واجب دي لِأَنَّ الظَّنَّ مَا اسْتَنَدَ إِلَىٰ دَلِيلٍ شَرْعِيٍّ ځکه چې د هغه ګومان د يو شرعي دليل و طرف ته منسوب نه سو إِلَّا إِذَا أَفْتَاهُ فَقِيهٌ بِالْفَسَادِ لېکن کله چې يو فقيه د روژې د فاسدېدلو فتویٰ ورکړي لِأَنَّ الْفَتْوَىٰ دَلِيلٌ شَرْعِيٌّ فِي حَقِّهِ ځکه چې د هغه په حق کې فتویٰ شرعي دليل دی وَلَوْ بَلَغَهُ الْحَدِيثُ فَاعْتَمَدَهُ او که ده ته حديث رسېدلی وو او ده پر هغه اعتماد وکړی (او خوراک يې وکړی) فَكَذٰلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالىٰ نو د امام محمد رحمه الله په نيز همدغه حکم دی (چې کفاره نه لازميږي) لِأَنَّ قَوْلَ الرَّسُولِ عَلَيْهِ

الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا يَنْزِلُ عَنْ قَوْلِ الْمُفْتِيْ ځکه چي د نبي ﷺ قول د يو مفتي له قول څخه کم نه دی وَعَنْ أَبِيْ يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالٰى خِلَافُ ذٰلِكَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د دې په خلاف روايت سوی دی لِأَنَّ عَلَى الْعَامِّيِّ الْإِقْتِدَاءَ بِالْفُقَهَاءِ ځکه چي پر عام سړي د فقهاؤ اقتداء کول ضروري دي لِعَدَمِ الْإِهْتِدَاءِ فِيْ حَقِّهِ إِلَى مَعْرِفَةِ الْأَحَادِيْثِ ځکه چي د هغه په حق کي د احاديثو معرفت تر لاسه کول معدوم دی (يعني د عام سړي لپاره په حديثو پوهېدل نا ممکن دي) وَإِنْ عَرَفَ تَأْوِيْلَهُ او که هغه د حديث په تأويل پوهېدی تَجِبُ الْكَفَّارَةُ نو کفاره واجبېږي لِانْتِفَاءِ الشُّبْهَةِ ځکه چي شبهه ختمه سوه وَقَوْلُ الْأَوْزَاعِيْ رَحِمَهُ اللهُ لَا يُوْرِثُ الشُّبْهَةَ او د امام اوزعي رَحِمَهُ الله قول شبهه نه پيدا کوي لِمُخَالَفَتِهِ الْقِيَاسَ ځکه چي هغه د قياس مخالف دی.

**اللغات:** ﴿العامي﴾ عام سړی چي عالم نه وي، مراد ځني عام خلک يعني عوام دي، ﴿إهتداء﴾ د افتعال مصدر دی: لاره پيدا کول، هدايت تر لاسه کول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو روژتي ښکر ولګوی، او دا خيال يې وکړی چي ښکر لګول روژه ماتوي، نو ځکه يې قصداً يو شی وخوړی، او روژه يې ماته کړه، نو پر هغه قضاء هم واجب ده، او کفاره هم واجب ده، ځکه چي د هغه دا ګومان چي ښکر لګول روژه ماتوي د يو شرعي دليل و طرف ته منسوب نه سو (لکه په تېره مسئله کي چي د قياس و طرف ته منسوب سو)، ځکه چي روژه خونس ته د يو شي په ننوتلو سره ماتېږي، نه د يو شي په وتلو سره، او په ښکر لګولو کي خوويني له بدن څخه راوځي، نو ځکه به دا روژه نه ماتوي، لهذا د دې سړي دا خيال به قصداً وي چي ښکر لګول روژه ماتوي، او دا سړی به د هغه سړي په شان وي چي په رمضان کي قصداً خوراک، چښاک کوي، او په رمضان کي په قصداً خوراک سره د روژې قضاء هم واجبيږي، او کفاره هم.

إلا إذا الخ فرمايي: که دې سړي ته يو معتمد او منلي مفتي دا فتویٰ ورکړې وه چي ښکر لګول روژه ماتوي، او تر هغه وروسته هغه خوراک کړی وي، نو پر هغه صرف قضاء واجب ده، نه کفاره، ځکه چي فتویٰ د هغه په حق کي شرعي دليل دی، نو د فتویٰ په وجه سره قصداً د هغه خوراک کول داسي دي لکه تر شرعي دليل وروسته روژه ماتول، او په دې سره کفاره نه واجبيږي.

ولو بلغه الحديث الخ فرمايي چي که ښکر لګونکي ته دا حديث رسېدلی وو أفطر الحاجم والمحجوم (يعني د ښکر لګونکي او پر چا چي ښکر لګېدلی دی د دواړو روژه ماته سوه)، او هغه د حديث پر صحيح والي اعتماد هم وکړی، او بيا يې تر ښکر لګولو وروسته قصداً خوراک وکړی، نو هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پر دې سړي کفاره واجب نه ده، ځکه کله چي د يو مفتي قول د هغه په حق کي شرعي دليل دی، نو د نبي ﷺ قول به په درجه اولیٰ سره شرعي دليل وي، ځکه نبوي فرمان د يو مفتي له قول څخه بالکل کم نه دی.

وعن أبي يوسف الخ فرمايي چي په دې لړ کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي د دې سړي لپاره د احاديثو پېژندګلوي او په احاديثو پوهېدل نا ممکن دی، ځکه چي عام سړی دی، لېکن د دې په خلاف د معتمد مفتي په خبره عام سړی په آسانه پوهېږي، نو ځکه به د هغه په حق کي د مفتي قول شرعي دليل وي، لېکن حديث به شرعي دليل نه

وي، او په ښکر لګولو سره د روژې د فاسدېدلو شبهه هم نسته، او کله چې د روژې د فساد شبهه نسته، نو کفاره به هم نه ساقطیږي، بلکې واجب به وي.

وإن عرف تأويل الخ فرمايي که ښکر لګونکي ته د دې حديث أفطر الحاجم والمحجوم تأويل معلوم وو، او هغه په ښه توګه په دې خبر وو چې په ښکر لګولو سره روژه نه ماتیږي، بیا یې تر ښکر لګولو وروسته قصداً خوراک وکړی، نو پر هغه کفاره واجب ده، ځکه چې د حديث په تأويل تر پوهېدلو وروسته دا شبهه ختمیږي چې په ښکر لګولو سره روژه فاسدیږي، او کله چې شبهه نسته، نو ښکاره ده چې کفاره به هم نه ساقطیږي.

وقول الأوزاعي الخ له دې ځایه د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې د علماؤ په اختلاف سره هم شبهه پیدا کیږي، او په پورتنۍ مسئله کې د علامه اوزاعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، ځکه چې د هغه په نېز په ښکر لګولو سره روژه فاسدیږي، نو په دې اختلاف سره هم د روژې په فساد کې شبهه پیدا سوه، او په شبهې سره کفاره ساقطیږي، لهذا په دې صورت کې هم د امام اوزاعي رَحِمَهُ الله د اختلاف په وجه کفاره ساقطېدل پکار دي، حال دا چې داسې نه ده؟ جواب دا دی چې د امام اوازاعي اختلاف شبهه نه پیدا کوي، ځکه چې اختلاف هغه وخت شبهه پیدا کوي چې کله د قیاس سره موافق وي، لېکن د امام اوازعي رَحِمَهُ الله اختلاف د قیاس مخالف دی، ځکه چې د قیاس تقاضا دا ده که يو شی نس ته داخل سي نو د هغه په وجه به روژه ماتیږي، او که يو شی دباندې راووځي په هغه سره به روژه نه ماتیږي، او څرنګه چې په ښکر لګولو کې له بدن څخه خرابه وينه راوځي، نو ځکه به د قیاس مطابق په هغه سره روژه نه ماتیږي، لهذا د امام اوزاعي قول به د قیاس د مخالفت په وجه شبهه نه پیدا کوي، او کله چې دا اختلاف شبهه نه پیدا کوي، نو ښکاره ده چې کفاره به هم نه واجبیږي.

**فایده:** زموږ په نېز ښکرلګول روژه نه فاسدوي، او د حنابله وو په نېز یې فاسدوي، د حنابله وو دلیل خو همدغه حديث أفطر الحاجم والمحجوم دی، او زموږ دلیل احتجم وهو صائم او داسې نور حديثونه دي، لهذا په روایاتو کې تعارض راغلی، نو په روایاتو کې به د تعارض په وجه د قیاس و طرف ته رجوع کوو، او قیاس دا دی چې په ښکر لګولو سره روژه نه فاسدیږي. د أفطر الحاجم والمحجوم تأويل دا دی چې غیبت روژه ماتوي، ځکه دا جمله نبي ﷺ هغه وخت وفرمایله چې کله يوه سړي بل سړي ته ښکر لګوی، او په دې دوران کې یې غیبت هم کوی، نو نبي ﷺ په دې حديث کې غیبت د روژې ماتېدلو سبب وګرځوی، لېکن راوي دا پر ښکر لګولو حمل کړی چې ښکر لګول روژه ماتوي، لېکن داسې نه ده، بلکې له دې څخه غیبت مراد دی، يعني غیبت د روژې ثواب بالکل ختموي.

## تر غیبت وروسته د خوراک کولو حکم

**وَلَوْ أَكَلَ بَعْدَمَا اغْتَابَ مُتَعَمِّدًا** او که يو شوک تر غیبت کولو وروسته قصداً خوراک وکړي **فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ** نو پر هغه قضاء او کفاره (دواړه) واجب دي **كَيْفَمَا كَانَ** څرنګه چې هم وي **لِأَنَّ الْفِطْرَ يُخَالِفُ الْقِيَاسَ** ځکه چې روژه ماتول د قیاس مخالف دي **وَالْحَدِيثُ مُؤَوَّلٌ بِالْإِجْمَاعِ** او په حديث کې بالاجماع تأويل سوی دی.

**اللغات:** ﴿اغتاب﴾ د افتعال د باب ماضي ده: غیبت کول، ﴿مؤوّل﴾ د تفعیل اسم مفعول دی: هغه چې تأويل یې سوی وي.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو څو دروژې په حالت کې غيبت وکړي، او خيال يې دا سو چې په غيبت سره روژه ماتيږي، او قصداً يې خوراک وکړي، نو پر هغه قضاء هم واجب ده، او کفاره هم، برابره ده که هغه ته دا حديث رسيدلی وي چې په غيبت سره روژه ماتيږي، يا رسيدلی نه وي، او د دې حديث په تأويل سره خبر وي، او که نه وي، او يو مفتي د فساد فتویٰ ورکړې وي، که نه وي، ځکه چې د غيبت په وجه د روژې ماتيدل د قياس مخالف دی، او د دې حديث الغيبة تفطر الصائم بالإجماع تأويل سوی دی، يعني د حديث مطلب دا دی چې د غيبت کولو په وجه د روژتې أجر او ثواب ختميږي، نو کله چې بالاتفاق دا حديث مؤول دی، نو په دې سره به د روژې په فساد او ماتيدلو کې شبهه نه پيدا کيږي، او کله چې شبهه نه پيدا کيږي، نو ښکاره ده چې کفاره به هم واجبيږي، ځکه چې کفاره د شبهې په وجه ساقطيږي.

صاحب د کفايې دا حديث په دې الفاظو سره ذکر کړی دی: ثلاث يفطرن الصائم وينقضن الوضوء ويهدمن العقل الغيبة والنميمة والنظر إلى محاسن المرأة (د رې شيان روژه او اودس ماتوي، او عقل بربادوي: ① غيبت، ② چغل خوري(چغلماري)، ③ د ښځې و ښکلاؤ ته کتل)، مطلب دا دی چې په دې شيانو سره د روژې او د اودس ثواب ختميږي، او د عقل ښکنه له منځه ځي.

## د بيدې يا د لېونۍ روژتې ښځې سره د جماع حکم

وَإِذَا جُومِعَتِ النَّائِمَةُ أَوِ الْمَجْنُونَةُ که د بيدې ښځې يا لېونۍ ښځې سره جماع وسي وَهِيَ صَائِمَةٌ حال دا چې هغه روژتې وي عَلَيْهَا الْقَضَاءُ دُوْنَ الْكَفَّارَةِ نو پر هغې قضاء واجب ده نه کفاره وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالَى: لَا قَضَاءَ عَلَيْهِمَا امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې پر دواړو قضاء (هم) واجب نه ده اِعْتِبَارًا بِالنَّاسِيْ پر هېرونکي په قياسولو سره وَالْعُذْرُ هُنَا أَبْلَغُ لِعَدَمِ الْقَصْدِ او عذر دلته (له هيري ځخه) زيات غټ دی ځکه چې اراده نسته وَلَنَا أَنَّ النِّسْيَانَ يَغْلِبُ وُجُوْدُهُ او زموږ دليل دا دی چې د هيري وجود غالب وي(يعني هېره هر وخت پېښيږي) وَهٰذَا نَادِرٌ لو د دغه ښځو سره د جماع مسئله نادره ده(يعني کله کله پېښيږي) وَلَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ او کفاره به نه واجبيږي لِانْعِدَامِ الْجِنَايَةِ ځکه چې جنايت (جرم) نسته.

**اللغات:** ﴿جومعت﴾ د مفاعلې د باب ماضي مجهوله ده: جماع کول. ﴿نائمة﴾ بيده ښځه. ﴿نسيان﴾ د ضرب د باب مصدر دی: هېرېدل.

**تشريح:** د عبارت تر تشريح مخکې په دې خبره پوه سئ چې په متن کې د "مجنونة" پر لفظ دا اعتراض کيدای سي چې پر مجنون او مجنونه خو روژه فرض نه ده، او که روژه ونيسي هم، نو د هغو روژه به معتبره نه وي، نو په دې وجه د بعضو حضراتو رايه دا ده چې دا لفظ مخکې "مجبورة" وو (يعني هغه ښځه چې په زور او جبر جماع سره وسي)، لېکن د کاتب په غلطی سره "مجنونة" وليکل سو، او په زياتره نسخو کي دا لفظ همدغسي خور سو، لېکن دا رايه قوي نه معلوميږي، د دې غوره او ښځه توضيح دا ده چې دا لفظ په اصل کي هم "مجنونة" دی، خو له دې ځخه مراد هغه ښځه ده چې د ورځې په شروع کي عاقله او جوړه وي، او د روژې نيولو نيت وکړي، بيا مثلاً د ورځې په مېنځ کي لېونۍ سي، او په دې حالت کي د هغې سره جماع وسي، او تر دې وروسته د هغې لېونتوب ختم سي(بنايه ج٣، ص٢٢٩)، نو د داسي ښځې

او بيلې ښځې سره که يو څوک جماع وکړي، او دا دواړه روژتياني وي، نو پر دې ښځو زموږ په نېز قضاء واجبېږي، کفاره نه واجبېږي.

امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې پر دوی قضاء هم نه واجبيږي، د هغو دليل قياس دی، يعنی هغوی نائمه او مجنونه ښځې پر ناسي يعني پر هغه سړي قياسوي چې په هېره يې خوراک کړی وي، يعني څرنګه چې پر ناسي د روژې قضاء نه واجبيږي، همدا ډول که د نائمه او مجنونه ښځې سره جماع وسي، نو پر هغو به هم قضاء نه واجبيږي، څکه چې د خوب او لېونتوب عذر د هيري تر عذر زيات او غټ دی، په دې توګه چې د ناسي په فعل کې د هغه د ارادې څه نا څه عمل داخل وي، ليکن د نائمه او مجنونه ښځې له طرفه خو اراده هم نه وي، نو څکه به د دوی عذر د ناسي له عذر څخه زيات او غټ دی، او پر ناسي قضاء نه واجبيږي، نو پر دې ښځو به په درجه اولیٰ قضاء نه واجبيږي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چې نائمه او مجنونه پر ناسي قياسول صحيح نه دي، څکه چې دوی په هر اعتبار سره د ناسي په معنیٰ سره نه دي، څکه چې هېره هر وخت پېښيږي، او د نائمې يا مجنونې سره جماع کله نا کله او ډېر کم پېښيږي، اوس که موږ د هيري په صورت کې قضاء واجب کړو، نو خلک به په حرج او تکليف کې مبتلا سي، او شريعت حرج ليري کړی دی، ليکن که د نائمې او مجنونې سره جماع وسي، نو پر هغو به د قضاء په واجبولو کې هيڅ حرج نه وي، څکه چې دا مسئله نادرُ الوجود ده، نو څکه به قضاء پر واجب وي، او کفاره پر واجب نه سوه، څکه چې د کفارې د وجوب لپاره دا ضروري دي چې جرم به کامل او قوي وي، او په پورتنۍ مسئله کې د نائمې او مجنونې له طرفه ګردسره جنايت او جرم نسته څکه چې د دوی له طرفه فقط د جماع اراده هم سوې نه ده، نو څکه فقط قضاء واجب سوه، او کفاره ساقطه سوه. والله أعلم بالصواب

## فَصْلٌ فِيمَا يُوجِبُهُ عَلَىٰ نَفْسِه

(دا) فصل د هغو روژو (په بيان کې) دی چې بنده يې پر خپل ځان واجبوي

**تشريح:** تر اوسه پوري د هغو روژو بيان وو چې الله تعالیٰ پر خپلو بندګانو واجب کړي وې، له دې ځايه د هغو روژو بيان دی چې بنده يې پر خپل ځان د نذر او نورو په ذريعه واجبوي، او څرنګه چې د الله تعالیٰ ايجاب اصل دی او د بنده ايجاب فرع دی، نو څکه مخکې د اصل احکام بيان سول، اوس د فرعي احکام بيانيږي.

**د نذر تعريف او قسمونه:** نذر دې ته ويل کيږي چې بنده پر خپل ځان يو شی واجب او لازم کړي، د نذر دوه قسمونه دي: ① منجز، ② معلق، منجز هغه نذر دی چې پر يو شرط موقوف نه وي، مثلاً يو څوک داسي نذر وکړي "چې سبا به زه يوه روژه نيسم"، دې ته نذرِ معين هم ويل کيږي. نذرِ معلق او نذرِ غيرِ معين دا دی چې يو څوک داسي ووايي "که زما دا کار وسو، نو زه به يوه روژه نيسم"، بيا هر ډول نذر هم نه صحيح کيږي، بلکې د نذر د صحيح کېدلو لپاره يو شو شرطونه دي: (۱) اول شرط دا دی چې نذر سوی شی به له هغه جنس څخه وي، چې د هغه جنس شی په شريعت کې واجب وي، مثلاً د لمانځه نذر، د روژې نذر او داسي نور، (۲) دويم شرط دا دی چې نذر به په خپل ذات کې مقصود وي.

د بل شي لپاره به واسطه او وسيله نه وي، خو که يو سړی د اودس يا سجدهٔ تلاوت نذر ومني، نو د هغه نذر معتبر نه دی، ځکه چې اودس او سجدهٔ تلاوت په خپل ذات کې مقصود نه دي، بلکې د بل شي لپاره ذريعې او وسيلې دي. (۳) دريم شرط دا دی چې نذر سوی شی به پر دې سړي واجب نه وي، نه في الحال او نه في المآل، مثلاً که يو شوک د نن ورځې د ماپښين د لمانځه نذر ومني، نو د هغه نذر هم شرعاً معتبر نه دی، ځکه چې د ماپښين لمونځ خو في الحاله پر ده واجب دی، او د في المآله مثال د لکه د رمضان روژې.

## د لوی اختر د روژې د نذر منلو حکم

وَإِذَا قَالَ: لِلّٰهِ عَلَيَّ صَوْمُ يَوْمِ النَّحْرِ او که يو چا وويل: چې د الله ﷻ لپاره پر ما د لوی اختر د ورځې روژه ده أَفْطَرَ وَقَضَى نو روژه دې نه نيسي او د هغې قضاء دې راوړي فَهٰذَا النَّذْرُ صَحِيحٌ عِنْدَنَا او دا نذر زموږ په نيز صحيح دی خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُمَا يَقُولَانِ: إِنَّهُ نَذْرٌ بِمَا هُوَ مَعْصِيَةٌ دوی فرمايي: چې دا نذر په هغه شي سره دی چې هغه ګناه ده (يعني دا نذر د معصيت دی) لِوُرُودِ النَّهْيِ عَنْ صَوْمِ هٰذِهِ الْأَيَّامِ ځکه چې د دې ورځو له روژو څخه نهي راغلي دي وَلَنَا أَنَّهُ نَذَرَ بِصَوْمٍ مَشْرُوعٍ او زموږ دليل دا دی چې دې سړي د مشروعې روژې نذر منلی دی وَالنَّهْيُ لِغَيْرِهِ او نهي د غير په وجه سره دي وَهُوَ تَرْكُ إِجَابَةِ دَعْوَةِ اللّٰهِ تَعَالَى او هغه د الله ﷻ د دعوت قبوليت پرېښوول دي فَيَصِحُّ نَذْرُهُ نو د هغه نذر به صحيح وي لٰكِنَّهُ يُفْطِرُ لېکن روژه به نه نيسي اِحْتِرَازًا عَنِ الْمَعْصِيَةِ الْمُجَاوِرَةِ له هغه ګناه څخه د ځان ساتلو لپاره کوم چې د روژې سره متصل ده ثُمَّ يَقْضِي إِسْقَاطًا لِلْوَاجِبِ بيا به (د دغه روژې) قضاء راوړي د واجب د ساقطولو لپاره وَإِنْ صَامَ فِيهِ او که هغه په دې ورځ روژه ونيسي يَخْرُجُ عَنِ الْعُهْدَةِ نو له ذمه وارۍ څخه وځي لِأَنَّهُ أَدَّاهُ كَمَا الْتَزَمَهُ ځکه چې هغه روژه داسې اداء کړه لکه څرنګه چې يې واجب کړې وه.

**اللغات:** ﴿يوم النحر﴾ د ذي الحجې لسمه ورځ. ﴿معصية﴾ ګناه، نافرماني. ﴿إجابة﴾ جواب ورکول، قبلول. ﴿المجاورة﴾ متصل، يو ځای کېدل. ﴿عهدة﴾ ذمه واري.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي دا نذر ومنی چې زه به د لوی اختر په ورځ روژه نيسم، نو زموږ په نيز د هغه نذر صحيح دی، لېکن هغه به د دې ورځې روژه نه نيسي، بلکې په دې ورځ به روژه خوري او وروسته به يې قضاء راوړي، لېکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د دې سړي نذر صحيح نه دی.

**د امام زفر او امام شافعي دليل:** دا دی چې د لوی او کوچني اختر په ورځو کې روژه نيول معصيت او ګناه ده، ځکه په حديث شريف کې د دې ورځو له روژو څخه منع سوې ده، لکه څرنګه چې په حديث کې راځي: ألا لا تصوموا في هذه الأيام فإنها أيام أكل وشرب وبعال. (يعني په دې ورځو کې روژه مه نيسئ دا خو د خوراک، څښاک او عيش و عشرت ورځې دي)، او د معصيت نذر منل صحيح نه دي، لکه څرنګه چې حديث دی: لا نذر في معصية. (يعني په معصيت کې به نذر نه وي)، نو ځکه به په دې ورځو کې د روژې نذر منل هم صحيح نه وي.

زموږ دلیل ، دا دی چي د لوی او د کوچني اختر په ورځو کي روژه د خپل ذات په اعتبار سره مشروع ده، او په دې ورځو کي چي کوم منع راغلې ده، هغه د يو بل شي يعني د الله ﷻ د دعوت له قبوليت څخه د اعراض کولو په وجه راغلې ده، ځکه چي توله بندګان په دې ورځو کي د الله تعالیٰ مېلمانه دي، او پر بندګانو او مېلمنو د الله تعالیٰ دعوت قبلول لازم دي، لېکن که يو سړی په دې ورځو کي روژه نيسي، نو ښکاره ده چي هغه د الله ﷻ د دعوت له قبلولو څخه اعراض کوي، او د معصيت مرتکب کېږي، لهذا په دې ورځو کي د روژې نيولو ممانعت د بل سبب په وجه راغلی، نو د هغه سړي نذر به صحيح وي، خو ځرنګه چي په دې ورځو کي روژه نيول معصيت دي (ځکه چي د الله ﷻ دعوت پرېښوول هم معصيت دی)، او د مسلمان لپاره له معصيت څخه ځان ژغورل ضروري دي، نو ځکه د هغه لپاره حکم دا دی چي په دې ورځ کي دې روژه نه نيسي، بلکي وروسته دې د هغې قضاء راوړي، چي د هغه له ذمې څخه واجب نذر ساقط سي.

وإن صام فيه الخ فرمايي چي په لوی او کوچني اختر کي خو روژه نيول منع دي، لېکن که بيا هم يو چا په دې ورځو کي د نذر روژه ونيوله، نو د هغه نذر پوره سو، او روژه يې صحيح سوه، ځکه چي هغه واجب هغسي اداء کړی ځرنګه چي يې د هغه اداء کول پر ځان لازم کړي وو، او په داسي اداء کولو سره انسان بری الذمه کېږي، نو به ځکه دا سړی بری الذمه وي.

## د لوی اختر د روژې د نذر منلو مختلفه صورتونه او حکمونه

وَإِنْ نَوَى يَمِينًا او که روژتي د قسم نيت کړی وو فَعَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِينٍ نو پر هغه کفارهٔ يمين (د قسم کفاره) واجب ده يَعْنِي إِذَا أَفْطَرَ يعني کله چي روژه ماته کړي وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى وُجُوْهٍ سِتَّةٍ او دا مسئله پر شپږو صورتونو ده إِنْ لَمْ يَنْوِ شَيْئًا [۱] که روژتي هيڅ نيت (هم) کړی نه وو أَوْ نَوَى النَّذْرَ لَا غَيْرَ [۲] يا يې د نذر نيت کړی وو نه د نورو أَوْ نَوَى النَّذْرَ وَنَوٰى أَنْ لَّا يَكُوْنَ يَمِينًا [۳] يا يې د نذر نيت کړی وو او دا نيت يې (هم) وو چي دا به يمين نه وي يَكُوْنُ نَذْرًا نو (د هغه دا کلام به) نذر وي لِأَنَّهُ نَذْرٌ بِصِيْغَتِهِ ځکه چي دا کلام د خپلي صيغې په اعتبار سره نذر دی كَيْفَ وَقَدْ قَرَّرَهُ بِعَزِيْمَتِهِ او ځرنګه به نذر نه وي حال دا چي هغه په خپل نيت سره دا کلام ثابت کړی (او مضبوط کړی) دی وَإِنْ نَوَى الْيَمِيْنَ وَنَوٰى أَنْ لَّا يَكُوْنَ نَذْرًا [۴] او که د قسم نيت يې کړی وو او دا نيت يې (هم) وو چي دا به نذر نه وي يَكُوْنُ يَمِيْنًا نو دا به يمين وي لِأَنَّ الْيَمِيْنَ مُحْتَمَلُ كَلَامِهِ ځکه چي د هغه په کلام کي د قسم احتمال سته وَقَدْ عَيَّنَهُ وَنَفٰى غَيْرَهُ او هغه قسم متعين (هم) کړی او د غير (يعني د نذر) نفي يې (هم) وکړې وَإِنْ نَوَاهُمَا يَكُوْنُ نَذْرًا وَيَمِيْنًا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ [۵] او که د نذر او قسم دواړو نيت يې کړی وو نو نذر او قسم به دواړه وي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يَكُوْنُ نَذْرًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز به نذر وي وَلَوْ نَوَى الْيَمِيْنَ فَكَذٰلِكَ عِنْدَهُمَا [۶] او که (فقط) د قسم نيت يې کړی وو نو د طرفينو رَحِمَهُ الله په نيز همدغه حکم دی (يعني قسم او نذر به دواړه وي) وَعِنْدَهُ يَكُوْنُ

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله: ومن نوى بالنذر يمينا فأفطر فعليه القضاء والكفارة، خانية ج:۱، ص: ۱۰۶. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۰۲]

يَمِينًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز به قسم وي لِأَنِ يُوْسُفَ أَنَّ النَّذْرَ فِيهِ حَقِيقَةٌ وَالْيَمِيْنَ مَجَازٌ د امام ابو يوسف رحمه الله دليل دا دی چي په دې کلام کي (خو) نذر حقيقت دی او يمين مجاز دی حَتَّى لَا يَتَوَقَّفَ الْأَوَّلُ عَلَى النِّيَّةِ همدا وجه ده چي نذر پر نيت موقف نه دي وَيَتَوَقَّفَ الثَّانِيْ او يمين (پر نيت) موقوف دي فَلَا يَنْتَظِمُهُمَا نو دا کلام به دواړو ته نه شامليږي (يعني په دې کلام کي به دواړه نه راځي) ثُمَّ الْمَجَازُ يَتَعَيَّنُ بِنِيَّتِهِ بيا به مجاز په نيت سره متعين کيږي وَعِنْدَ نِيَّتِهِمَا تَتَرَجَّحُ الْحَقِيْقَةُ او د دواړو د نيت په وخت کي به حقيقت ته ترجيح ورکول کيږي وَلَهُمَا أَنَّهُ لَا تَنَافِيَ بَيْنَ الْجِهَتَيْنِ او د طرفينو دليل دا دی چي د دواړو جهتونو (يعني د نذر او قسم) په مينځ کي هيڅ منافات نسته لِأَنَّهُمَا يَقْتَضِيَانِ الْوُجُوْبَ ځکه چي دا دواړه جهتونه د وجوب تقاضا کوي إِلَّا أَنَّ النَّذْرَ يَقْتَضِيْهِ لِعَيْنِهِ خو نذر د وجوب تقاضا د خپل ذات لپاره کوي وَالْيَمِيْنَ لِغَيْرِهِ او يمين د غير لپاره (د وجوب تقاضا کوي) فَجَمَعْنَا بَيْنَهُمَا عَمَلًا بِالدَّلِيْلَيْنِ نو موږ په دواړو دليلونو باندي د عمل کولو لپاره دواړه جمع کړي دي كَمَا جَمَعْنَا بَيْنَ جِهَتَيِ التَّبَرُّعِ وَالْمُعَاوَضَةِ فِي الْهِبَةِ بِشَرْطِ الْعِوَضِ لکه د تبرع او معاوضې دواړه جهتونه چي مو جمع کړي دي په هبه کي په شرط د عوض.

**اللغات:** ﴿يمين﴾ قسم، ﴿عزيمة﴾ پخه اراده، نيت، قصد، ﴿لا يتوقف﴾ د تفعّل مضارع منفي ده: موقوف کېدل، ﴿لا ينتظمهما﴾ د افتعال مضارع منفي ده: شاملېدل، ﴿تبرع﴾ د تفعّل مصدر دی: نفل، هغه کار کول چي لازمي نه وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي په لله علي صوم يوم النحر سره د يمين نيت وکړي، او په يومُ النحر (دلوی اختر په ورځ) کي يې روژه نه ونيوله، نو پر هغه د قضاء سره سره کفارهٔ يمين هم واجب ده، او د دې مسئلې تو له شپږ صورتونه دي: (۱) اول صورت دا دی چي دا سړي په دې جمله لله علي صوم... الخ سره هيڅ نيت نه وکړي، (۲) په دې جمله سره صرف د نذر نيت وکړي، (۳) يا د يمين استثناء وکړي او د نذر نيت وکړي، (۴) د دريم صورت برعکس وکړي، يعني د يمين نيت وکړي، او د نذر استثناء وکړي (چي نذر به نه وي)، (۵) د نذر او يمين دواړو نيت وکړي، (۶) صرف د يمين نيت وکړي، دا ټوله شپږ صورتونه دي، له دې شپږو څخه به په اولو دريو صورتونو کي دا جمله د نذر لپاره وي، ځکه چي په دې کلام کي نذر حقيقت دی، او يمين مجاز دی، او د حقيقت لپاره د نيت ضرورت نشته، او مجاز نيت ته ضرورت لري، نو کله چي هغه بالکل نيت نه وکړي، يا صرف د نذر نيت وکړي، يا د نذر نيت وکړي سره د يمين نه کېدلو، نو ښکاره ده چي په دې دريو سره صورتونو کي به د هغه دا قول لله علي صوم.. الخ د نذر لپاره وي، او د يمين لپاره به نه وي، ځکه کله چي بې له نيته دا کلام د نذر لپاره حقيقت دی، نو د نذر د نيت سره به په درجهٔ اولیٰ د نذر لپاره وي.

او په څلورم صورت کي چي کله هغه د نذر نفي وکړي، او د يمين نيت وکړي، نو د هغه کلام به د يمين لپاره وي، ځکه چي په دې کلام (لله علي... الخ) کي (مجازاً) د يمين احتمال هم سته، ځکه چي په لله کي "ل" کله د "ب" په معنیٰ سره هم راځي، نو "لله علي" به د "بالله أي أقسم بالله" په معنیٰ سره وي، نو کله چي دا ثابته سوه، چي د دې سړي په دې کلام

کې د یمین احتمال هم سته، او هغه د نذر نفي وکړي، او د یمین نیت یې وکړي، نو د هغه نیت به صحیح وي، او دا کلام به د یمین لپاره وي.

په پنځم صورت کې د دې سري قول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د نذر او یمین دواړو لپاره دی، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز صرف د نذر لپاره دی، او په شپږم صورت کې هم د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا قول د نذر او یمین دواړو لپاره دی، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز صرف د یمین لپاره دی.

لأبي یوسف الخ په پنځم صورت کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې په دې کلام کې نذر حقیقت دی، او یمین مجاز دی، همدا وجه ده چې د نذر کېدلو لپاره دا کلام پر نیت موقوف نه دی، لېکن د یمین کېدلو لپاره پر نیت موقوف دی، او په یوه لفظ کې حقیقت او مجاز دواړه جمع کول ناجائز دي، اوس که دې سړي صرف د نذر نیت وکړی، نو نذر به متعین کیږي، او که یې صرف د یمین نیت وکړی، نو یمین به ثابتیږي، او که د دواړو نیت یې وکړی، نو په حقیقت او مجاز کې به حقیقت ته ترجیح ورکول کیږي، او حقیقت نذر دی، نو ځکه به په پنځم صورت کې د دې سړي کلام د نذر لپاره وي.

ولهما أنه الخ د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې په دې کې هیڅ خرابي نشته چې په لله علی صوم الخ کې حقیقت او مجاز دواړه مراد کړی سي، ځکه خرابي هغه وخت راځي، چې کله په یوه جهت سره دواړه مراد کړی سي، حال دا چې په پورتني صورت کې د حقیقت او مجازو دواړو جهتونه جلا جلا دي، او د هغه تفصیل دا دی چې د لله علی الخ جمله د وجوب لپاره استعمال سوې ده، او په وجوب کې د حقیقت یعني د نذر او د مجاز یعني د یمین دواړو احتمال سته، خو څرنګه چې دا کلام د نذر لپاره "بالذات" د وجوب تقاضا کوي، ځکه چې د دې آیت ولیوفوا نذورهم په روی سره د نذر پوره کول واجب سوي دي، او د یمین لپاره "لغیره" (یعني د مجاز لپاره) د وجوب تقاضا کوي، یعني چې په قسم ماتولو سره د الله ﷻ د نامه بې حرمتي نه وسي، نو د دې کلام اصل موجب خو وجوب دی، لېکن وجوب د دوو جلا جهتونو یعني د نذر او یمین تقاضا کوي، او په دواړو عمل کول ممکن دی، نو مورږ د وجوب په دواړو جهتونو د عمل کولو لپاره دا صورت د حقیقت او مجاز یعني د نذر او یمین دواړو لپاره متعین کړی، د دې لپاره یو مثال ذکر کوي چې مثلاً که څوک په دې شرط یو شی بل چا ته هبه کړي چې دومره درهم به راکوې، بیا به یې په هبه کې در کوم (د هغه دا کلام صحیح دی)، نو اوس تاسو وګورئ چې دا کلام خو د الفاظو په اعتبار سره هبه، تبرع او احسان دی، لېکن د درهم د شرط په وجه دا کلام معاوضه او بیع هم وګرځېدی، او دواړه جمع سوه، نو څرنګه چې په دې مسئله کې د تبرع او معاوضې دواړه جهتونه جمع سوي دي، همدارنګه به په پورتني صورت کې هم دواړه جهتونه یعني نذر او یمین جمع کیږي.

## د ټوله کال د روژې د نذر منلو حکم

وَلَوْقَالَ: لِلّٰهِ عَلَيَّ صَوْمُ هٰذِهِ السَّنَةِ او که (داسې) ووایي: [۱] چې د الله لپاره پر ما د دې کال روژې دي أَفْطَرَ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ النَّحْرِ وَأَيَّامَ التَّشْرِيقِ وَقَضَاهَا نو (د أیام منهیه یعني) د کوچني او لوی اختر او د تشریق د ورځو روژې به نه نیسي او (وروسته) به یې قضاء راوړي لِأَنَّ النَّذْرَ بِالسَّنَةِ الْمُعَيَّنَةِ نَذْرٌ بِهٰذِهِ الْأَيَّامِ ځکه چې د متعین کال نذر منل د دې ورځو نذر (هم) دی وَكَذَا إِذَا لَمْ يُعَيِّنْ [۲] او همدارنګه چې کله (کال) متعین نه کړي لٰكِنَّهُ شَرَطَ التَّتَابُعَ لېکن د

پرلپسې روژو شرط ولګوي (چې پرلپسې به يو کال روژې نيسم نو هم به دأيام منهيه روژې نه نيسي، وروسته به يې قضاء راوړي) لِأَنَّ الْمُتَابَعَةَ لَا تَعْرَى عَنْهَا ځکه چې تتابع له أيام منهيه څخه خالي نه دی (يعني د کال په پرلپسې والي کې أيام منهيه هم راځي) لٰكِنْ يَقْضِيهَا فِي هٰذَا الْفَصْلِ مَوْصُولَةً لېکن په دې صورت کې به دأيام منهيه قضاء متصلاً راوړي تَحْقِيقًا لِلتَّتَابُعِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ دامکان په اندازه د تتابع ثابتولو لپاره وَيَتَأَتَّى فِي هٰذَا خِلَافُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ او په دې صورت کې د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله اختلاف پيدا کيږي (يعني دوی فرمايي چې په أيام منهيه کې کرد سره نذر صحيح نه دی، نو ځکه يې وروسته قضاء ضروري نه ده) لِلنَّهْيِ عَنِ الصَّوْمِ فِيهَا ځکه چې په أيام منهيه کې له روژو څخه منع سوې ده وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ●: أَلَا لَا تَصُومُوا فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ او هغه د نبي ﷺ (دا) قول دی: "خبردار! په دې ورځو کې روژه مه نيسئ فَإِنَّهَا أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَبِعَالٍ ځکه چې دا د خوراک، څښاک او جماع کولو ورځې دي" وَقَدْ بَيَّنَّا الْوَجْهَ فِيهِ او موږ په دې باره کې وجه بيان کړې ده وَالْعُذْرَ عَنْهُ او د دې لپاره مو عذر (هم) بيان کړی دی وَلَوْ لَمْ يَشْتَرِطِ التَّتَابُعَ [۲] او که هغه د تتابع شرط نه ولګوه لَمْ يُجْزِهِ صَوْمُ هٰذِهِ الْأَيَّامِ نو د هغه لپاره د دې ورځو روژه جائز نه ده لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيمَا يَلْتَزِمُهُ الْكَمَالُ ځکه هغه چې پر ځان کوم څه لازموي په هغه کې کمال (کامليدل) اصل دي وَالْمُؤَدّٰى نَاقِصٌ او (په دې ورځو کې) اداء کړی سوې روژه ناقصه ده لِمَكَانِ النَّهْيِ ځکه چې (په حديث) کې منع سوې ده بِخِلَافِ مَا إِذَا عَيَّنَهَا په خلاف د هغه صورت چې کله هغه کال متعين کړي لِأَنَّهُ الْتَزَمَ بِوَصْفِ النُّقْصَانِ ځکه چې هغه د نقصان د وصف سره (کال پر ځان) لازم کړی دي فَيَكُونُ الْأَدَاءُ بِالْوَصْفِ الْمُلْتَزَمِ نو اداء به په هغه وصف سره ثابتيږي کوم چې هغه (پر ځان) لازم کړی دی.

**اللغات:** ﴿أيام التشريق﴾ تر لوی اختر مخکې او وروسته هغه ورځې چې تر لمونځونو وروسته په لوړ آواز سره تکبيرونه پکښې ويل کيږي، ﴿تتابع﴾ د تفاعل مصدر دی، پرلپسې کېدل، جوختېدل، ﴿لا تعرى﴾ مضارع منفي ده: خالي کېدل، ﴿بعال﴾ جماع، کوروالی.

**تشريح:** په دې عبارت کې د دې جملې لله علی صوم هذه السنة درې صورتونه بيان سوي دي، چې په ترجمه کې هم موږ لنډه اشاره ورته وکړه.

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي يو کال متعين کړی او داسې يې وويل چې پر ما دالله لپاره د دې کال روژې لازمي دي، نو پر هغه به پوره د يوه کال روژې لازمي وي، چې په هغه کې أيام منهيه يعني د لوی اختر او کوچني اختر او د أيام تشريق ورځې هم داخلي دي، لېکن پر دې سړي په دې ورځو کې (يعني په أيام منهيه کې) روژې نيول لازم نه دي، بلکې هغه ته پکار ده چې په أيامِ منهيه کې دي روژې نه نيسي، او وروسته دي دهغو قضاء راوړي، ځکه چې کله هغه د

● تخريج: أخرجه الطبراني في معجمه بلفظه ج:۳، ص: ۲۰۳؛ ومسلم في كتاب الصيام، قال رسول الله ﷺ أيامُ التشريق أيامُ أكل و شرب، حديث رقم: ۱۴۴.

يوه متعين کال د روژو نذر ومنی نو ښکاره ده چي په هغه کال کي د کوچني او لوی اختر او د أيام تشريق ورځي هم شاملي دي، خو څرنګه چي په دې ورځو کي له روژې نيولو څخه منع سوې ده، نو ځکه به نذر کونکی په دې ورځو کي روژه نه نيسي، او وروسته به يې قضاء راوړي (قضاء که يې هر وخت راوړي صحيح ده، يعني که تر کال پوره کېدلو وروسته يې سملستي متصلاً قضاء راوړي، يا يې بل وخت راوړي، هروخت يې قضاء صحيح ده).

وكذا إذا لم يعين الخ دا تفصيل خو په لول صورت کي دی يعني چي کله دې سري ديوه متعين کال نذر منلی وي، دويم صورت دا دی چي هغه د کال تعيين ونه کړي، او داسي ووايي "چي پر ما د الله لپاره ديوه کال روژې لازمي دي". نو د دې دوه صورتونه دي: (۱) هغه به د تتابع او پرلپسي والي شرط لګولی وي، او داسي به يې ويلي وي چي پر ما پرلپسې ديوه کال روژې لازمي دي، (۲) يا به يې د تتابع شرط لګولی نه وي، که اول صورت وي، يعني د تتابع شرط يې لګولی وي، نو د دې حکم هم هغه دی کوم چي د کال متعينولو دی، يعني د پوره کال روژې لازمي دي، لېکن په کوچني اختر او داسي نورو کي به روژه نه نيسي، او وروسته به متصلاً پرلپسې د هغو قضاء راوړي، يعني کله چي يو کال پوره سي، نو سملستي به د کوچني اختر، لوی اختر او د أيام تشريق د روژو قضاء راوړي، چي د تتابع د شرط فايده حاصله سي، او د امکان په اندازه د تتابع رعايت وسي.

(مخکي دوه صورتونه ذکر سول چي په هغو کي دا ورېل سوه چي په أيام منهيه کي به روژې نه نيسي، بلکي وروسته به يې قضاء راوړي، خو که هغه په دې دوو صورتونو کي په أيام منهيه کي روژې ونيسي نو هم صحيح دي، ځکه کله چي کال متعين کړي، يا د تتابع شرط ولګوي، نو په هغه کي أيام منهيه هم راځي لېکن د حديث د منع په وجه ناقصي لازمېږي، لهذا غوره دا ده چي وروسته يې قضاء راوړي، لېکن په درېم صورت کي بالکل په دې ورځو کي روژه نيول صحيح نه دي چي هغه صاحب د هدايې د ولولم يشترط التتابع... څخه بيان کړی دی).

ويتأتى هذا الخ او په دويم صورت کي د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله اختلاف دی، هغوی فرمايي چي پر دې سړي د أيام تشريق او نورو قضاء واجب نه ده، ځکه په حديث کي د دې ورځو له روژو څخه منع سوې ده، حديث دا دی: ألا لا تصوموا في هذه الأيام ... الخ، نو د ټوله کال په نذر منلو کي به د دې ورځو نذر صحيح نه وي. او کله چي د دې ورځو نذر صحيح نه دی، نو د دې ورځو قضاء به هم واجب نه وي.

وقد بينا الوجه الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د فصل په شروع کي مونږ د دې حديث جواب هم بيان کړی دی، او په دې باندي مو د عمل نه کولو عذر هم بيان کړی دی (هغه دا چي د لوی او د کوچني اختر او د أيام تشريق په ورځو کي روژه د خپل ذات په اعتبار سره مشروع او عبادت ده، او په دې ورځو کي چي کوم منع راغلې ده، هغه د يو بل شي يعني د الله ﷻ د دعوت له قبوليت څخه د اعراض کولو په وجه راغلې او دا هم معصيت دی...... الخ).

ولو لم يشترط التتابع الخ (له دې ځايه درېم صورت بيانېږي) د دې حاصل دا دی چي که نذر منونکي کال متعين نه کړی، او د تتابع شرط يې هم نه ولګوی، نو ټولي روژې کاملي لازم سوې، نو په دې پنځو ورځو کي به روژې نه نيسي، ځکه چي په حديث کي د دې ورځو له روژو څخه منع سوې ده، نو که په دې ورځو کي روژې ونيول سي، نو د حديث د منع په وجه به ناقصي اداء سي، او دا صحيح نه ده چي کاملي روژې دي ناقصي اداء سي، او که بيا هم هغه روژې ونيولې، نو نه اداء کېږي (بلکي حتماً به يې قضاء راوړي، او د رمضان په روژو سره هم دا نذر نه اداء کېږي، يعني په دې درېم

صورت کې به د رمضان پر ځای د دپروشو نورو ورځو قضاء هم راوړي، ځکه چې هغه په دې صورت کې کال متعین نه کړی او د تتابع شرط يې هم نه ولګوی. نو پوره ۱۲ میاشتي روژې واجب سوې، يعني أيامِ منهيه او رمضان به په دې کې داخل نه وي).

بخلاف ما الخ د دې په خلاف که هغه کال متعين کړي، نو بنکاره ده چې په دې متعین کال کې أيام خمسه هم شامل او داخل دي، او د دې ورځو وجوب ناقص دی، او کوم شی چې ناقص واجب وي، هغه په ناقصه توګه اداء کېدای سي، ځکه چې دا د فقهي قاعده ده ما وجب ناقصا جاز أن يتأدى ناقصا.

## که په نذر کې د قسم نيت وکړي نو د کفارهٔ يمين حکم

قَالَ: وَعَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِيْنٍ إِنْ أَرَادَ بِهٖ يَمِيْنًا فرمايي: چې پر نذر کونکي به کفارهٔ یمین واجب وي که هغه په نذر سره د يمين نيت وکړي وَقَدْ سَبَقَتْ وُجُوْهُهٗ او د دې صورتونه مخکې تېر سول.

**اللغات:** ﴿سبقت﴾ د نصر ماضي ده: مخکې کېدل، تېرېدل. ﴿وجوه﴾ جمع د وجه ده: شکل، صورت، مخ.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که نذر کونکی په خپل دې کلام لله علی صوم هذه السنة سره د يمين نيت وکړي، نو پر هغه د حانث کېدلو په وجه کفارهٔ یمین هم واجبېږي، (ځکه کله چې هغه د ټوله کال د روژو قسم وکړي، او په أيام منهيه کې روژې نه ونيسي، نو په خپل قسم کې حانث سو يعني قسم يې وخوری، ځکه چې أيام منهيه هم په ټوله کال کې داخلې دي، نو کله چې په خپل قسم کې حانث سو نو کفاره به هم واجبېږي.) او د دې مسئلې شپږ صورتونه مخکې تېر سول، هلته په بنه توګه ځان په پوه کړئ!.

## که د لوی اختر په ورځ روژه شروع کړي بيا يې ماته کړي نو د هغه حکم

وَمَنْ أَصْبَحَ يَوْمَ النَّحْرِ صَائِمًا او څوک چې د لوی اختر په ورځ د روژې په حالت کې سهار کړي ثُمَّ أَفْطَرَ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ بيا روژه ماته کړي نو پر هغه يو شی واجب نه دی (نه قضاء او نه کفاره) وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ فِي النَّوَادِرِ أَنَّ عَلَيْهِ الْقَضَاءَ او له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه د نوادر روايت دا دی چې پر هغه قضاء واجب ده لِأَنَّ الشُّرُوْعَ مُلْزِمٌ كَالنَّذْرِ ځکه چې (روژه) شروع کول د نذر په ډول (د روژې) لازمونکی شی دی وَصَارَ كَالشُّرُوْعِ فِي الصَّلَاةِ فِي الْوَقْتِ الْمَكْرُوْهِ او داسي سو لکه په مکروه وخت کې لمونځ شروع کول وَالْفَرْقُ لِأَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د فرق وجه او ظاهر روايت دا دی أَنَّ بِنَفْسِ الشُّرُوْعِ فِي الصَّوْمِ يُسَمّٰى صَائِمًا چې محض د روژې په شروع کولو سره هغه ته روژتي ويل کيږي حَتّٰى يَحْنَثَ بِهِ الْحَالِفُ عَلَى الصَّوْمِ تر دې چې په دې سره د روژې قسم خورونکی حانثيږي (يعني څوک چې دا قسم وخوري چې روژه به نه نيسم، هغه محض د روژې په شروع کولو سره حانثيږي) فَيَصِيْرُ مُرْتَكِبًا لِلنَّهْيِ لهذا په شروع کولو سره هغه د نهي مرتکب کيږي فَيَجِبُ إِبْطَالُهٗ نو ځکه به د هغه باطلول واجب وي فَلَا تَجِبُ صِيَانَتُهٗ او د هغه ساتنه به واجب نه وي وَوُجُوْبُ الْقَضَاءِ يَنْبَنِيْ عَلَيْهِ او د قضاء وجوب هم پر ساتنې مبني دی وَلَا يَصِيْرُ مُرْتَكِبًا

بِالشُّرُوعِ بِنَفْسِ النَّذْرِ او محض په نذر سره د نهي نه مرتکب کيږي وَهُوَ الْمُوْجِبُ او همدا نذر واجبونکی دی وَلَا بِنَفْسِ الشُّرُوعِ فِي الصَّلَاةِ او نه محض د لمانځه په شروع کولو سره (د نهي مرتکب کيږي) حَتَّى يُتِمَّ رَكْعَةً تر دې چې يو رکعت پوره کړي (نو بيا مرتکب کيږي) وَلِهٰذَا لَا يَحْنَثُ بِهِ الْحَالِفُ عَلَى الصَّلَاةِ او همدا وجه ده چې د لمانځه په شروع کولو سره د لمانځه قسم خوړونکی نه حانثيږي (يعني څوک چې دا قسم وخوري چې لمونځ به نه کوم هغه محض د لمانځه په شروع کولو سره نه حانثيږي تر دې چې يو رکعت پوره نه کړي) فَتَجِبُ صِيَانَةُ الْمُؤَدّٰى نو د مؤدّیٰ (اداء کړی سوي) ساتنه به واجب وي وَيَكُوْنُ مَضْمُوْنًا بِالْقَضَاءِ او (د هغه په وجه سره به) د قضاء راوړلو ضامن وي وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ الله: أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْقَضَاءُ فِيْ فَصْلِ الصَّلَاةِ أَيْضًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د لمانځه په صورت کي هم قضاء نه واجبيږي وَالْأَظْهَرُ هُوَ الْأَوَّلُ (لېکن) اول قول زيات ښکاره دی، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿ملزم﴾ د افعال اسم فاعل دی: لازمونکی، ﴿يحنث﴾ د فتح مضارع ده: قسم ماتول، ﴿صيانة﴾ ساتنه، ژغورل، خوندي کول، حفاظت، ﴿يبتني﴾ د افتعال مضارع ده: مبني کېدل.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو چا د أيامِ خمسه منهي عنها (يعني د پنځو منع سوو ورځو) په يوه ورځ کي روژه شروع کړه او بيا يې فاسده کړه، نو د امام صاحب او صاحبينو تولو په نېز پر دې سړي قضاء او کفاره واجب نه دي، او همدا ظاهر روايت دی، لېکن له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه د نوادر يو روايت دا دی چې پر دې سړي قضاء واجب ده، ځکه چې نفلي روژه تر شروع کولو وروسته لازميږي، لهذا که شروع کونکي دا روژه پوره کړه خو صحيح ده، لېکن که فاسده يې کړه، نو قضاء يې واجب ده، لکه يو څوک چې په دې ورځو کي د روژې نيولو نذر وکړي، نو په نورو ورځو کي به د دې قضاء راوړي (لکه مخکي چې ذکر سوه)، يا لکه يو څوک چې په مکروه وخت کي نفلي لمونځ شروع کړي، او بيرته يې فاسد کړي، نو پر هغه د لمانځه قضاء واجب ده، نو څرنګه چې په دې صورتونو کي د نذر کولو او تر شروع کولو وروسته د فاسدولو په صورت کي قضاء واجبيږي، همداسي به په پورتني صورت کي هم قضاء واجب وي.

ولأبي حنيفة الخ فرمايي چې د لوی اختر په ورځ روژه شروع کول، او په دې ورځ د روژې نذر منل، همدارنګه په اوقات مکروهه وو کي لمونځ شروع کول، د دې تولو په مينځ کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز فرق سته، يعني د روژې او د لمانځه او د نذر مسئلې جلا جلا دي، فرق دا دی چې فقط د روژې په شروع کولو سره انسان روژتي کيږي، همدا وجه ده که يو سړي د نفلي روژې نه نيولو قسم کړی وي، او د لوی اختر په ورځ روژه شروع کړي او بيا يې فاسده کړي نو د روژې په شروع کولو سره به هغه حانثيږي، او د قسم کفاره به ورکوي، لنډه دا چې د لوی اختر په ورځ په روژه شروع کولو سره انسان روژتي کيږي، خو څرنګه چې د لوی اختر په ورځ روژه نيول ممنوع دي، نو ځکه به د روژې په شروع کولو سره هغه د منهي عنه عمل ارتکاب کونکی وي، او له منهي عنه عمل څخه خپل ځان ساتل او منهي عنه عمل باطلول ضروري دي، او د هغه پوره کول يا ساتنه ضروري نه ده، او د کوم شي باطلول چې ضروري وي، د هغه قضاء نه واجبيږي، نو ځکه به د لوی اختر په ورځ د روژې په شروع کولو او فاسدولو سره قضاء نه واجبيږي، ځکه چې د قضاء وجوب پر ساتني مبني دی، يعني د ساتني او پوره کولو په خاطر قضاء واجبيږي، نو کله چې ساتنه او پوره کول ضروري نه دي، نو قضاء به هم نه واجبيږي.

د دې په خلاف د لوی اختر په ورځ د نذر مسئله ده، نو نفسِ نذر ممنوع نه دی، هو! د روژې نذر مثل او د هغه پوره کول ممنوع دي، نو کله چې نفسِ نذر ممنوع نه دی، نو فقط د نذر په منلو سره به انسان د نهې نه مرتکب کیږي. او کله چې د نهې نه مرتکب کیږي، نو د نذر مثل به صحیح وي، خو څرنګه چې د لوی اختر په ورځ د دې نذر پوره کول ممنوع دي. نو څکه دغه سړي ته پکار ده چې په بله ورځ دې د هغې قضاء راوړي.

همدارنګه د لمانځه مسئله ده چې هیڅ سړی هم په مکروه وخت کې د لمانځه په شروع کولو سره لمونځ ګزاره نه شمارل کیږي. بلکې تر څو چې یې د اول رکعت سجده کړې نه وي، تر هغه وخته د هغه لمانځه ته لمونځ هم نه ویل کیږي. همدا وجه ده که یو څوک قسم وکړي چې لمونځ به نه کوم، لیکن لمونځ شروع کړي او تر رکوع پورې یې وکړي، نو هغه په خپل قسم کې نه حانثیږي (څکه چې اول رکعت ته تر سجدې مخکې لمونځ هم نه ویل کیږي)، لهذا په لمانځه کې به فقط په شروع کولو سره یو سړی د منهي عنه فعل نه مرتکب کیږي، او د شروع کړی سوي شي ساتنه به واجب وي، او د کوم شي ساتنه چې واجب وي، د فاسدولو په صورت کې به د هغه قضاء هم واجبیږي، نو څکه به په مکروه وخت کې د لمانځه تر شروع کولو وروسته د هغه د فاسدولو په صورت کې د هغه قضاء واجبیږي.

وعن أبي حنيفة الخ فرمایي چې له امام صاحب رَحِمَهُ الله یو روایت دا دی چې که یو سړی په مکروه وختونو کې لمونځ شروع کړي او بیا یې فاسد کړي، نو پر هغه هم قضاء واجب نه ده، لیکن صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله وایي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول زیات صحیح او ښکاره دی. والله أعلم بالصواب

# بَابُ الْإِعْتِكَافِ

(دا) باب د اعتکاف (په بیان کې) دی

**تشریح:** روژه پر اعتکاف څکه مخکې بیان سوه چې روژه د اعتکاف لپاره شرط ده (او اعتکاف مشروط دی)، او شرط پر مشروط مخکې وي، نو په دې وجه روژه هم مخکې بیان سوه.

اعتکاف له عکف څخه مشتق دی، او د افتعال د باب مصدر دی، د عکف معنیٰ ده: پاته کېدل، درنګ کول، او د اعتکاف شرعي معنیٰ ده: هو اللبث في المسجد مع النية، "یعني په مسجد کې [د روژې او عبادت] په نیت سره پاته کېدل".

## د اعتکاف شرعي حیثیت

قَالَ: اَلْاِعْتِكَافُ مُسْتَحَبٌّ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمایي: اعتکاف مستحب دی وَالصَّحِيْحُ أَنَّهُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ (خو) صحیح دا ده چې اعتکاف سنتِ مؤکده دی لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] وَاظَبَ عَلَيْهِ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ څکه چې نبي ﷺ د رمضان په آخري لسیزه کې پر اعتکاف همېشتوب کړی دی وَالْمُوَاظَبَةُ دَلِيْلُ السُّنَّةِ او همېشتوب د سنت والي دلیل دی.

[1] تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الإعتكاف، باب الإعتكاف في العشر الأواخر، حديث رقم: ۲۰۲۹، و ابو داؤد في كتاب الصوم، حديث رقم: ۲۴۹۲.

**اللغات:** ﴿مؤكده﴾ تاكيد والا، ټينګ، ﴿واظب﴾ دمفاعلې ماضي ده: هميشتوب كول، پابندي كول. ﴿أواخر﴾ جمع د آخر ده: آخري.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې امام قدوري رَحِمَهُ الله اعتكاف مستحب ګرځولی دی، لېكن صحيح خبره دا ده چې اعتكاف مستحب نه دی، بلكې سنتِ مؤكده دی، ځكه نبي ﷺ به هر كال په مدينه منوره كې اعتكاف كوی، لكه ځرنګه چې په بخاري او مسلم كې له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت دی: كان رسول الله ﷺ يعتكف فی العشر الأخر من رمضان حتی توفاه الله، او په بعضې روايتونو كې د حين قدم المدينة الفاظ هم ذكر سوي دي، يعني نبي ﷺ چې كله مدينې منورې ته راغلی نو هر كال به يې اعتكاف كوی، او پر كوم عمل چې نبي ﷺ هميشتوب كړی وي، هغه د دې عمل د سنتوالي دليل دی، نو ځكه به اعتكاف سنتِ مؤكده وي.

## د اعتكاف تعريف، ركنونه او شرطونه

وَهُوَ اللُّبْثُ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ الصَّوْمِ وَنِيَّةِ الْإِعْتِكَافِ او اعتكاف پاته كېدل (او اوسېدل) دي په مسجد كې د روژې سره او د اعتكاف په نيت سره أَمَّا اللُّبْثُ فَرُكْنُهُ هر چې پاته كېدل دي نو هغه د اعتكاف ركن دی لِأَنَّهُ يُنْبِئُ عَنْهُ ځكه چې اعتكاف د لُبث خبر وركوي فَكَانَ وُجُودُهُ بِهِ نو د اعتكاف وجود به هم په دې (لُبث) سره وي وَالصَّوْمُ مِنْ شَرْطِهِ عِنْدَنَا او روژه زموږ په نېز د اعتكاف لپاره شرط ده خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَالنِّيَّةُ شَرْطٌ فِي سَائِرِ الْعِبَادَاتِ او نيت په ټولو عبادتونو كې شرط دی هُوَ يَقُولُ: إِنَّ الصَّوْمَ عِبَادَةٌ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې روژه يو عبادت دی وَهُوَ أَصْلٌ بِنَفْسِهِ او روژه په خپله اصل ده فَلَا يَكُونُ شَرْطًا لِغَيْرِهِ نو د بل عبادت لپاره به شرط نه وي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[●]: لَا إِعْتِكَافَ إِلَّا بِالصَّوْمِ او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: چې اعتكاف (معتبر) نه دی مګر د روژې سره وَالْقِيَاسُ فِي مُقَابَلَةِ النَّصِّ الْمَنْقُولِ غَيْرُ مَقْبُولٍ او قياس به د نصِ منقول (يعني د حديث) په مقابله كې مقبول نه وي (يعني پرېښوول كېږي به) ثُمَّ الصَّوْمُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ الْوَاجِبِ مِنْهُ رِوَايَةً وَاحِدَةً بيا روژه د واجب اعتكاف د صحيح كېدلو لپاره شرط ده ديوه روايت مطابق وَلِصِحَّةِ التَّطَوُّعِ فِيمَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى او د نفلي اعتكاف د صحيح كېدلو لپاره (شرط ده) د هغه روايت مطابق كوم چې حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام څخه روايت كړی دی لِظَاهِرِ مَا رَوَيْنَا د هغه حديث د ظاهر په وجه كوم چې موږ روايت كړی وَعَلَى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ لَا يَكُونُ أَقَلَّ مِنْ يَوْمٍ نو د دې روايت پر بنياد به اعتكاف تر يوې ورځې كم نه وي وَفِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى[●] أَقَلُّهُ سَاعَةٌ او د مبسوط په روايت كې (راغلي) دي او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی چې د (نفلي)

---

● تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرٰی في كتاب الصيام، باب المعتكف يصوم، حديث رقم: ۸۵۸۳.

● القول الراجح: رواية الأصل و قول محمد رَحِمَهُ الله يعني أقله ساعة، كذا في الدر المختار ج:۲، ص: ۱۳۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۰۵]

اعتکاف کمه اندازه يو ساعت (گړی) دی (يعني يو گړی هم اعتکاف کېدای سي) فَيَكُوْنُ مِنْ غَيْرِ صَوْمٍ نو دا اعتکاف به بې له روژې وي لِأَنَّ مَبْنَى النَّفْلِ عَلَى الْمُسَاهَلَةِ ځکه چي د نفلو بنياد پر آسانی دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَقْعُدُ فِي صَلَاةِ النَّفْلِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ آيا ته نه گورې چي لمونځ گزاره پر ولاړې د قدرت سره هم په نفلي لمانځه کي کېنستلای سي وَلَوْ شَرَعَ فِيْهِ ثُمَّ قَطَعَهُ لَا يَلْزَمُهُ الْقَضَاءُ فِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ او که نفلي اعتکاف يې شروع کړی بيا يې ختم کړی نو پر هغه به قضاء ضروري نه وي د مبسوط د روايت مطابق لِأَنَّهُ غَيْرُ مُقَدَّرٍ ځکه چي د نفلي اعتکاف هيڅ اندازه معلومه نه ده فَلَمْ يَكُنِ الْقَطْعُ إِبْطَالًا نو (د اعتکاف) ختمول به (د اعتکاف) باطلول نه وي وَفِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ يَلْزَمُهُ او د حسن بن زياد په روايت کي پر دې سړي قضاء ضروري ده لِأَنَّهُ مُقَدَّرٌ بِالْيَوْمِ كَالصَّوْمِ ځکه چي د اعتکاف اندازه يوه ورځ ده لکه روژه ثُمَّ الْإِعْتِكَافُ لَا يَصِحُّ إِلَّا فِي مَسْجِدِ جَمَاعَةٍ بيا اعتکاف نه صحيح کېږي مگر د جماعت والا په مسجد کي (يعني په کوم مسجد کي چي لمونځونه په جماعت سره کېږي) لِقَوْلِ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ*: لَا إِعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدِ جَمَاعَةٍ ځکه چي حذيفه ﷺ فرمايلي دي: "اعتکاف نه کېږي مگر د جماعت په مسجد کي" وَعَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ الله: أَنَّهُ لَا يَصِحُّ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ يُصَلَّى فِيْهِ الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله روايت دی: چي اعتکاف نه صحيح کېږي خو په داسي مسجد کي چي په هغه کي پنځه سره لمونځونه کېږي لِأَنَّهُ عِبَادَةُ إِنْتِظَارِ الصَّلَاةِ ځکه چي اعتکاف د لمانځه د انتظار عبادت دی فَيَخْتَصُّ بِمَكَانٍ تُؤَدَّى فِيْهِ نو د داسي ځای سره به خاص وي چي په هغه کي لمونځ اداء کېږي أَمَّا الْمَرْأَةُ فَتَعْتَكِفُ فِي مَسْجِدِ بَيْتِهَا او هر چي ښځه ده نو هغه به د خپل کور په مسجد کي اعتکاف کوي لِأَنَّهُ هُوَ الْمَوْضِعُ لِصَلَاتِهَا ځکه چي د هغې د لمانځه ځای هغه دی فَيَتَحَقَّقُ إِنْتِظَارُهَا فِيْهِ نو د هغې انتظار به په هغه ځای کي ثابتېږي وَلَوْ لَمْ يَكُنْ لَهَا فِي الْبَيْتِ مَسْجِدٌ او که د ښځي لپاره په کور کي مسجد نه وو تَجْعَلُ مَوْضِعًا فِيْهِ فَتَعْتَكِفُ فِيْهِ نو په کور کي به يو ځای وټاکي او په هغه کي به اعتکاف کوي.

**اللغات:** ﴿لبث﴾ پاته کېدل، درنگ کول، درېدل. ﴿ينبئ﴾ د افعال مضارع ده: خبر ورکول. ﴿مساهلة﴾ د مفاعلې مصدر دی: آسانه کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله اول د اعتکاف تعريف او حقيقت بيانوي، او بيا تر هغه وروسته صاحب د هدايې تفصيلي کلام ذکر کوي، فرمايي چي د روژې په حالت کي په نيت سره پاته کېدلو ته اعتکاف ويل کېږي، ځکه پاته کېدل د اعتکاف رکن دی، ځکه چي اعتکاف د لبث او د پاته کېدلو خبر ورکوي، نو د اعتکاف وجود به په لبث سره ثابتېږي، لېکن د اعتکاف لپاره د روژې شرط کېدل صرف زموږ په نيز دي، کنې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د اعتکاف لپاره روژه شرط نه ده، او بې له روژې هم د هغه په نيز اعتکاف صحيح دی، خو د اعتکاف لپاره نيت

---

* تخريج: أخرجه الدار قطني في سننه ج:۲، ص: ۲۰۰، من أثر حذيفة ﷺ.

بالاتفاق شرط دی، څکه څرنګه چي نور عبادتونه د عادت او عبادت په مينځ کي دائر دي، او فقط په نيت سره د عبادت ارخ ته ترجيح ورکول کيږي، همدا ډول اعتکاف هم د عبادت او عادت په مينځ کي دائر دی، او په نيت سره به د اعتکاف عبادتوالی معلوميږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي روژه يو عبادت ده، او په خپل ذات کي اصل ده، يعني د بل شي په تابع کېدلو سره عبادت نه ده، نو کله چي روژه په عبادت کېدلو کي اصل ده، نو هغه به د بل شي يعني د اعتکاف لپاره نه شرط کيږي، څکه چي په شرط کېدلو کي د تابع کېدلو مفهوم پروت دی، چي هغه د روژې د اصليت منافي دی.

**زموږ دليل:** هغه حديث دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو يعني لا إعتكاف إلا بالصوم. (يعني له روژې څخه بغير اعتکاف صحيح نه دی)، نو کله چي په حديث کي صراحتاً له هغه اعتکاف څخه نفي سوي دي چي په هغه کي روژه نه وي، نو ښکاره ده چي د اعتکاف لپاره به روژه شرط او ضروري وي، او د حديث په مقابله کي به قياس پرېښوول کيږي.

**د اعتکاف په دوران کي د روژې د نيولو شرعي حيثيت:** ثم الصوم... الخ فرمايي چي روژه د واجب اعتکاف لپاره شرط ده، او په دې کي صرف يو روايت دی چي هغه متفق عليه دی، او حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د نفلي اعتکاف لپاره هم د روژې د شرط کېدلو روايت بيان کړی دی، او د دې حديث: لا إعتكاف إلا بالصوم په ظاهر او اطلاق سره يې دليل نيولی دی، يعني په دې حديث کي د واجب او غير واجب اعتکاف هيڅ تفصيل نسته، او د مطلق اعتکاف لپاره روژه شرط سوې ده، نو څکه به د هر ډول اعتکاف لپاره روژه شرط وي، هغه که واجب وي، که نفل، او د دې روايت مطابق به د اعتکاف کمه موده او اندازه يوه ورځ وي، څکه چي د اعتکاف لپاره روژه شرط ده، او د روژې کمه اندازه يوه ورځ ده، نو د مشروط اندازه به هم يوه ورځ وي.

او د مبسوط د روايت مطابق د نفلي اعتکاف لپاره هيڅ معلومه موده او اندازه نسته، بلکي که يو سړی د يو ګړي لپاره هم د اعتکاف په نيت سره په مسجد کي پاته سي، د هغه اعتکاف صحيح کيږي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول هم دا دی، نو د دې قول مطابق د نفلي اعتکاف لپاره روژه شرط نه ده، څکه چي روژه يو ګړی او ساعت نه نيول کيږي، د دې قول دليل دا دی چي د نفل او تطوع دارومدار پر آسانی، او سهولت دی، او په نفلو کي له هر طرفه د خلکو لپاره آساني سته، همدا وجه ده که يو سړی پر دې قدرت لري چي په ولاړي لمونځ وکړي، نو د هغه لپاره نفلي لمونځ هم په ناسته کول صحيح دي، لهذا معلومه سوه چي د نفلو دارومدار پر آسانتيا دی، او په نفلي اعتکاف کي هغه وخت آساني راځي چي کله په هغه کي نه روژه فرض وي، او نه د هغه لپاره څه وخت مقرر او متعين وي.

ولوشرع فيه الخ صاحب د هدايې د مبسوط او د حسن بن زياد د روايتونو په مينځ کي د اختلاف ثمره څرګندوي، فرمايي که يو چا نفلي اعتکاف شروع کړی او بيا يې پرېښووی، او يوه ورځ يې پوره نه کړی، نو د مبسوط د روايت مطابق پر هغه دې ورځي د اعتکاف قضاء راوړل واجب نه دي، څکه چي د مبسوط د روايت مطابق د اعتکاف لپاره د وخت هيڅ اندازه نسته، لهذا د مبسوط د روايت مطابق چي شروع کونکي څومره وخت هم اعتکاف وکړي، نو هغومره وخت يې تبرع او نېکي وکړه، او کله چي هم اعتکاف پرېږدي، نو قضاء نه پر واجبيږي، څکه قضاء خو په هغه صورت کي واجبيږي، کله چي ابطال راسي (يعني د اعتکاف باطلول راسي، او دلته ابطال نسته څکه چي تر يوه ګړي وروسته بيا پر هغه اعتکاف لازم نه دی، نو ابطال نه راغلی، لهذا قضاء به هم واجب نه وي)، ليکن د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله د روايت مطابق په دې صورت کي پر دې سړي د اعتکاف قضاء واجب ده، څکه چي د روژې په ډول د اعتکاف اندازه هم يوه ورځ ده، او

ځکه چې قاعده دا ده ملته تر يوې ورځې مخکې هغه خپل اعتکاف ختم کړی دی، نو ځکه به پر هغه قضاء واجب وي، چې نفلي عبادت تر شروع کولو وروسته واجبيږي، او که تر پوره کولو مخکې هغه فاسد کړی سي، نو د هغه قضاء واجبيږي.

**اعتکاف به په کوم مسجد کې کيږي؟** ثم الإعتكاف... الخ فرمايي چې د اعتکاف د صحيح کېدلو لپاره داسې مسجد ضروري دی چې په هغه کې به لږ تر لږه درې وخته په جماعت سره لمونځ کيږي، ځکه د حضرت حذيفه ﷺ قول دا دی چې لا إعتكاف إلا في مسجد جماعة. (يعني فقط د جماعت والا په مسجد کې اعتکاف صحيح دی)، په دې لړ کې حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام اعظم څخه دا را نقل کړي دي چې اعتکاف به صرف په هغه مسجد کې صحيح وي چې په هغه کې پنځه وخته لمونځ په جماعت سره کيږي، ځکه چې اعتکاف د لمانځه د انتظار عبادت دی، يعني کله چې معتکف په مسجد کې مقيم وي، نو د هغه اقامت د لمانځه د انتظار لپاره وي، نو ځکه به اعتکاف په داسې ځای کې صحيح وي، چې هلته هر لمونځ په جماعت اداء کيږي، چې د معتکف په حق کې د لمانځه د انتظار عبادت ثابت سي.

**ښځه به چيرې اعتکاف کوي؟** أما المرأة... الخ د ښځې لپاره افضله دا ده چې په هغه ځای کې اعتکاف وکړي چيرې چې دا په کور کې لمونځونه کوي، ځکه چې اعتکاف د لمانځه د انتظار عبادت دی، او ښځه په کور کې خپل د لمانځه په ځای کې د لمانځه انتظار کوي، نو ځکه به د هغې د لمانځه ځای د هغې په حق کې د اعتکاف ځای وي، او که هغې په کور کې د لمانځه لپاره يو ځانګړی ځای ټاکلی نه وو، نو بيا به د خونې (کمرې) په يوه حصه او کونج کې د اعتکاف لپاره ځای ټاکي او هلته به اعتکاف کوي؛ أصلاً په دې عبارت سره پر امام شافعي رَحِمَهُ الله ردکوي، ځکه چې امام شافعي رَحِمَهُ الله د سړي په څېر د ښځې لپاره هم په کور کې اعتکاف جائز نه ګڼي، او فرمايي چې نه د سړي لپاره په کور کې اعتکاف جائز دی، او نه د ښځې لپاره، ليکن دا صحيح نه ده، او شايد هغه به زموږ دليل په غوره سره مطالعه کړی نه وي.

## د کومو شيانو لپاره معتکف له مسجد څخه وتلای سي؟

وَلَا يَخْرُجُ مِنَ الْمَسْجِدِ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ أَوِ الْجُمُعَةِ او اعتکاف کونکی به له مسجده څخه نه وځي مګر د انساني حاجت لپاره يا د جمعې د لمانځه لپاره أَمَّا الْحَاجَةُ فَلِحَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هر چې د انساني حاجت لپاره وتل دي نو هغه د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حديث په وجه سره دي كَانَ[1] النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا يَخْرُجُ مِنْ مُعْتَكَفِهِ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ (چې) نبي ﷺ به خپل د اعتکاف له ځايه څخه نه وتی مګر د انساني حاجت لپاره وَلِأَنَّهُ مَعْلُومٌ وُقُوعُهَا او په دې وجه چې د انساني حاجت واقع کېدل معلوم دي وَلَا بُدَّ مِنَ الْخُرُوجِ فِي تَقْضِيَتِهَا او د هغه د پوره کولو لپاره وتل ضروري دي فَيَصِيرُ الْخُرُوجُ لَهَا مُسْتَثْنًى نو د انساني حاجت لپاره وتل به (د نه وتلو له حکم څخه) مستثنیٰ وي وَلَا يَمْكُثُ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الطُّهُورِ او نه به ايساريږي له پاکۍ څخه تر فراغت وروسته لِأَنَّ مَا ثَبَتَ بِالضَّرُورَةِ يَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا ځکه کوم شی چې د ضرورت په وجه ثابت سي هغه به د ضرورت په اندازه متعين کيږي وَأَمَّا الْجُمُعَةُ فَلِأَنَّهَا مِنْ أَهَمِّ حَوَائِجِهِ او هر چې جمعه ده نو هغه د معتکف له مهمو حاجتونو څخه ده وَهِيَ مَعْلُومٌ

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الإعتكاف، باب لا يدخل البيت إلا لحاجة، حديث رقم: ۲۰۲۹.

وَلَوْمُهَا او د جمعې واقع کېدل (هم) معلوم دی وَكَانَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله : الْجَامِعُ إِلَيْهَا مُطْلَقًا او امام شافعي رحمه الله فرمايي، چې د جمعې لپاره وتل اعتکاف فاسدوي لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْإِعْتِكَافُ فِي الْجَامِعِ ځکه چې د هغه لپاره په جامع مسجد کې اعتکاف کول ممکن دي وَنَحْنُ نَقُولُ: الْإِعْتِكَافُ فِي كُلِّ مَسْجِدٍ مَشْرُوعٌ او موږ وايو، چې اعتکاف په هر مسجد کې مشروع دی وَإِذَا صَحَّ الشُّرُوعُ فَالضَّرُورَةُ مُطْلَقَةٌ فِي الْخُرُوجِ او کله چې (په هر مسجد کې د اعتکاف) شروع صحیح سوه نو ضرورت (خو) د وتلو اجازه ورکوي وَيَخْرُجُ حِينَ تَزُولُ الشَّمْسُ او معتکف به وځي (د جمعې د لمانځه لپاره) کوم وخت چې لمر تر سر واوري (يعني تر زوال وروسته) لِأَنَّ الْخِطَابَ يَتَوَجَّهُ بَعْدَهُ ځکه چې خطاب تر زوال وروسته متوجه کيږي وَإِنْ كَانَ مَنْزِلُهُ بَعِيدًا عَنْهُ او که د هغه د اعتکاف ځای له جامع مسجد څخه لیري وي يَخْرُجُ فِي وَقْتٍ يُمْكِنُهُ إِدْرَاكُهَا نو په داسې وخت کې به وځي چې د هغه لپاره د جمعې نیول ممکن وي وَيُصَلِّي قَبْلَهَا أَرْبَعًا او چې تر جمعې مخکې څلور رکعته (سنت) کولای سي وَفِي رِوَايَةٍ سِتًّا او په يوه روايت کې دي چې شپږ رکعته کولای سي الْأَرْبَعُ سُنَّةٌ وَالرَّكْعَتَانِ تَحِيَّةُ الْمَسْجِدِ (چې له هغو څخه) څلور رکعته سنت دي او دوه رکعت تحية المسجد دي وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا أَوْ سِتًّا او تر جمعې وروسته به څلور رکعته سنت وکړي يا شپږ رکعته سنت عَلَى حَسَبِ الْإِخْتِلَافِ فِي سُنَّةِ الْجُمُعَةِ د جمعې په سنتونو کې د اختلاف مطابق وَسُنَّتُهَا تَوَابِعُ لَهَا او د جمعې سنتونه د جمعې تابع دي فَأُلْحِقَتْ بِهَا نو ځکه د جمعې سره لاحق کړی سول وَلَوْ أَقَامَ فِي مَسْجِدِ الْجَامِعِ أَكْثَرَ مِنْ ذَٰلِكَ او که معتکف په جامع مسجد کې تر دې زیات قیام وکړی لَا يَفْسُدُ اعْتِكَافُهُ نو د هغه اعتکاف نه فاسديږي لِأَنَّهُ مَوْضِعُ إِعْتِكَافٍ ځکه چې جامع مسجد (هم) د اعتکاف ځای دی إِلَّا أَنَّهُ لَا يُسْتَحَبُّ خو دا مستحب نه دي (يعني به کار نه دی) لِأَنَّهُ الْتَزَمَ أَدَاءَهُ فِي مَسْجِدٍ وَاحِدٍ ځکه چې هغه په يوه مسجد کې د اعتکاف د اداء کولو التزام کړی دی فَلَا يُتِمُّهُ فِي مَسْجِدَيْنِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ نو بې له ضرورته به هغه په دوو مسجدونو کې نه پوره کوي.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی چې د معتکف لپاره له مسجد څخه وتل جائز نه دي، ماسوا له دوو ضرورتونو څخه يو طبعي او انساني ضرورت دی، لکه د کوچنی او غټ اودس ماتي ضرورت، دوېم ديني ضرورت دی، لکه د جمعې او د جنابت د غسل ضرورت.

د طبعي او انساني ضرورت لپاره دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث دی، يعني: كان النبي ﷺ لايخرج من معتكفه إلا لحاجة الإنسان. له انساني حاجت څخه مراد غټ او کوچنی اودس مات دی، دوېم دليل دا دی چې د غټ او کوچني اودس ماتي واقع کېدل له مخکې څخه معلوم دي (چې انسان ته خامخا دا ضرورت ور پېښيږي)، او دا هم معلومه ده چې د هغو د پوره کولو لپاره له مسجد څخه وتل ضروري دي، ځکه له هغو څخه بغير خلاصون نسته، نو د دې ضرورتونو لپاره وتل به له اعتکاف څخه مستثنیٰ وي، ځکه چې انسان د غير اختياري أمورو مکلف نه دی، خو دا ضروري ده چې اعتکاف کونکي به له انساني ضرورت او طهارت څخه تر فراغت وروسته سمدستي د اعتکاف ځای ته

ځي، له طهارت څخه تر فراغت وروسته به په هغه ځای کي نه درېږي، ځکه چي د انساني ضرورتونو لپاره وتل د ضرورت په وجه ثابت دي، او کوم شی چي د ضرورت په وجه ثابت وي، هغه به د ضرورت په اندازه ثابتېږي، لهذا د ضرورت په اندازه به د وتلو اجازه وي، او له ضرورت څخه به د زیاتو وتلو اجازه نه وي.

وأما الجمعة الخ پاته سو د جمعې د لمانځه لپاره د وتلو جواز، نو دا زموږ مذهب دی، د امام شافعي او امام مالک رحمهما الله په نېز د جمعې لپاره وتل جائز نه دي، تر دې که د جمعې لپاره ووتی، نو اعتکاف یې فاسد سو.

**دلیل**: د امام شافعي او امام مالک دلیل دا دی چي خروج د اعتکاف ضد دی، او شی د خپل ضد په وجه فاسدیږي، نو په دې وجه به اعتکاف په خروج من المسجد سره فاسدیږي، خو په هغه صورتونو کي به نه فاسدیږي، چي په هغو کي خروج د سخت ضرورت په وجه وي، لکه کوچنی او غټ اودس مات، او د جمعې د لمانځه لپاره د خروج هیڅ ضرورت نسته، ځکه چي د معتکف لپاره په داسي مسجد کي اعتکاف کول ممکن دي چي هلته د جمعې لمونځ کیږي، او م کله چي دا ممکن دي، نو ضرورت ثابت نه سو، لهذا د جمعې د لمانځه لپاره به وتل هم جائز نه وي.

**زموږ دلیل**: دا دی چي په دلیل سره دا خبره ثابته ده چي اعتکاف په هر مسجد کي مشروع دی، لکه څرنګه چي په آیت کي راغلي: ولا تباشروهن وأنتم عاکفون في المساجد، نو کله چي په هر مسجد کي اعتکاف مشروع دی، نو د جمعې د لمانځه لپاره وتل به د هغه له اعتکاف څخه داسي مستثنیٰ وي لکه څرنګه چي د انساني ضرورت لپاره وتل مستثنیٰ دي، او د انساني ضرورت لپاره وتل جائز دي، نو د جمعې د لمانځه لپاره به وتل هم جائز وي.

ویخرج حین الخ اوس پاته سوه دا خبره چي د جمعې د لمانځه لپاره به څه وخت وځي، نو په دې باره کي حکم دا دی چي د اعتکاف ځای که د جامع مسجد سره نژدې وو، نو تر زوال وروسته به وځي، ځکه چي د جمعې د اداء کولو خطاب تر زوال وروسته بنده ته متوجه کیږي، او هر کله چي دا خطاب متوجه سي، نو هلته به ضرورت ثابتیږي، او هر کله چي ضرورت ثابت سي، نو په هغه وخت کي به د جمعې د لمانځه لپاره وځي، خو که د اعتکاف ځای له جامع مسجد څخه لیري وو، نو معتکف به د زوال وخت ته نه ګوري، بلکي دومره مخکي به وځي چي په آساني سره مسجد ته ورسیږي او هلته ۴ رکعته سنت وکړای سي او د هغه سره د جمعې خطبه او لمونځ هم ونیسي، بعضي حضراتو ویلي نه چي شپږ رکعته وکړای سي، څلور رکعته سنت او دوه رکعته تحیة المسجد؛ او د اعتکاف کونکي لپاره دا اجازه سته چي د جمعې تر لمانځه وروسته څلور رکعته سنت په جامع مسجد کي وکړي، لکه څرنګه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی، یا شپږ رکعته سنت وکړي، لکه څرنګه چي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قول دی.

له دې تقریر څخه ښکاره سوه چي د معتکف لپاره په جامع مسجد کي د جمعې د خطبې او د جمعې د لمانځه او سنتونو په اندازه د قیام کولو اجازه سته، لیکن که تر دې یې زیات قیام وکړی، نو د هغه اعتکاف خو فاسد نه سو، لیکن دا کار خلاف اولیٰ او غیر مستحب دي، اعتکاف خو ځکه فاسد نه سو، چي جامع مسجد هم د اعتکاف ځای دی، او خلاف اولیٰ ځکه دی چي هغه فقط په یوه مسجد کي د اعتکاف اداء کول پر خپل ځان لازم کړي دي، نو بې له ضرورته به اعتکاف په دوو مسجدونو کي نه پوره کوي، له دې عبارت څخه معلومیږي، چي که بالفرض هغه خپل اعتکاف په جامع مسجد کي پوره کړی، یا زیات وخت په جامع مسجد کي ایسار سو، نو اعتکاف خو یې صحیح سو، لیکن مکروه سو، او دا هم معلومه سوه چي د عذر په وجه له یوه مسجد څخه بل مسجد ته نقل کېدل جائز دي، د مثال په توګه د مسجد بام رالولیږي، یا په مسجد کي بله یوه غټه د مرګ خطره وي، نو د معتکف لپاره بل مسجد ته نقل کېدل جائز دي.

## بې له عذره يو ګړى هم له مسجد څخه وتل اعتکاف فاسدوي

وَلَوْخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ سَاعَةً بِغَيْرِعُذْرٍ او که معتکف له مسجد څخه بې له عذره يو ګړى (هم) ووځي فَسَدَ اِعْتِكَافُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله تَعَالَىٰ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه اعتکاف فاسد سو لِوُجُوْدِ الْمُنَافِي ځکه چې د اعتکاف منافي پيدا سو وَهُوَالْقِيَاسُ او هغه قياس دى وَقَالَا: لَا يَفْسُدُ حَتّٰى يَكُونَ أَكْثَرَمِنْ نِصْفِ يَوْمٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې نه فاسديږي تر دې چې له نيمي ورځي څخه زيات (بې له عذره ووځي) وَهُوَالْإِسْتِحْسَانُ لِأَنَّ فِي الْقَلِيْلِ ضَرُوْرَةً او همدا استحسان دى ځکه چې په لږ (ګړي وتلو) کي ضرورت سته.

**اللغات:** ﴿ساعة﴾ يو ګړى، يوه لمحه (يوه ثانيه).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که معتکف له مسجد څخه بې له عذره د لږ ګړي لپاره هم ووتى، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه اعتکاف فاسديږي، ځکه چې د اعتکاف حقيقت پاته کېدل او ايسارېدل دي، او وتل د هغه منافي دي، او قاعده دا ده چې الشئ لا يقوم مع ضده، "يعني هيڅ شى هم د خپل ضد سره نه پاتيږي"، لهذا د بې له عذره وتلو په صورت کي به اعتکاف فاسديږي، هغه که لږ ګړى وي، که ډېر، او د قياس تقاضا همدغه ده چې په محض وتلو سره دې اعتکاف فاسد سي، لکه څرنګه چې د روژې مسئله ده يعني څرنګه چې په زيات خوراک سره روژه فاسديږي، همدارنګه په لږ خوراک سره هم روژه فاسديږي، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي که معتکف تر نيمى ورځي زيات بې له عذره له مسجد څخه ووتى، نو بيا د هغه اعتکاف فاسديږي، کنې نه فاسديږي، او همدا د استحسان تقاضا ده، ځکه چې د انسان ضرورتونه بې شمېره دي، او د هر ضرورت لپاره د لږ او ډېرو وتلو حاجت پيداکيږي، خو څرنګه چې تر نيمى ورځي زيات وتل کثير دي، او تر هغه کم قليل دي، نو ځکه به تر نيمى ورځي زيات وتل معاف نه وي، او په هغه سره به اعتکاف فاسديږي.

## د کومو شيانو لپاره معتکف له مسجد څخه وتلاى نه سي؟

قَالَ: وَأَمَّا الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ وَالنَّوْمُ يَكُوْنُ فِي مُعْتَكَفِهِ فرمايي: چې د معتکف خوراک، څښاک او خوب به د هغه د اعتکاف په ځاى کي وي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَأْوًى إِلَّا الْمَسْجِدَ ځکه چې د نبي ﷺ لپاره به له مسجد څخه ماسوا بله (هيڅ) تکانه (آرام ځاى) نه وو وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُ قَضَاءُ هٰذِهِ الْحَاجَةِ فِي الْمَسْجِدِ او په دې وجه (هم) چې دا حاجتونه په مسجد کي پوره کول ممکن دي فَلَا ضَرُوْرَةَ إِلَى الْخُرُوْجِ نو د وتلو ضرورت نسته.

**اللغات:** ﴿مأوى﴾ پناګاه، آرامګاه، تکانه.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې د معتکف استوګنه، خوراک، څښاک ټوله به په مسجد کي وي، ځکه د الله نبي چې به کله اعتکاف کوى، نو ټوله ضرورتونه به يې په مسجد کي پوره کول، او بيا په مسجد کي د دې ضرورتونو پوره کول ممکن هم دي، نو ځکه به د خوراک، څښاک لپاره وتل بې له ضرورته وي، او بې له ضرورته وتل جائز نه دي.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲ ص: ۱۲۵. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۰۶]

## په مسجد کې د رانيولو او د خرخولو حکم

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَبِيعَ وَيَبْتَاعَ فِي الْمَسْجِدِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُحْضِرَ السِّلْعَةَ او هيڅ پروانشته چې معتکف په مسجد کې خرڅول يا رانيول وکړي بې له دې چې سامان حاضر کړي لِأَنَّهُ قَدْ يَحْتَاجُ إِلَى ذَلِكَ بِأَنْ لَا يَجِدَ مَنْ يَقُومُ بِحَاجَتِهِ ځکه چې کله نا کله معتکف دې ته مجبوره کيږي په دې توګه چې هغه داسې څوک پيدا نه کړي چې د هغه حاجت ور پوره کړي إِلَّا أَنَّهُمْ قَالُوا: يُكْرَهُ إِحْضَارُ السِّلْعَةِ لِلْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ خو مشائخو ويلي دي: چې د خرڅولو او رانيولو لپاره سامان مسجد ته راوړل مکروه دي لِأَنَّ الْمَسْجِدَ مُحَرَّزٌ عَنْ حُقُوقِ الْعِبَادِ ځکه چې مسجد د بندګانو له حقونو څخه خوندي(محفوظ) دی وَفِيهِ شَغْلُهُ بِهَا او په سامان راوړلو کې مسجد په سامان سره مشغوله کول دي وَيُكْرَهُ لِغَيْرِ الْمُعْتَكِفِ الْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ فِيهِ او له معتکف څخه علاوه د بل چا لپاره په مسجد کې خرڅول او رانيول مکروه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: جَنِّبُوا مَسَاجِدَكُمْ صِبْيَانَكُمْ إِلَى أَنْ قَالَ: وَبَيْعَكُمْ وَشِرَاءَكُمْ ځکه نبي ﷺ وفرمايل: خپل مسجدونه له کوچنيانو څخه وساتئ تر دې چې وريې فرمايل: له خپلو خرڅولو او رانيولو څخه(هم).

**اللغات:** ﴿يبتاع﴾ د افتعال مضارع ده: رانيول. ﴿سلعة﴾ سامان. ﴿إحضار﴾ د افعال مصدر دی: حاضرول. ﴿محرز﴾ د افعال اسم مفعول دی: خوندي سوی، محفوظ سوی. ﴿جنبوا﴾ د تفعيل جمع أمر حاضر دی: ليرې ساتل، خوندي کول.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليلونه ښکاره دي.

## د اعتکاف په حالت کې د چپ پاتېدلو حکم

قَالَ: وَلَا يَتَكَلَّمُ إِلَّا بِخَيْرٍ فرمايي: چې روژتي به خبرې نه کوي مګر(صرف) نېکې خبرې وَيُكْرَهُ لَهُ الصَّمْتُ او د هغه لپاره چپ پاته کېدل مکروه دي لِأَنَّ صَوْمَ الصَّمْتِ لَيْسَ بِقُرْبَةٍ فِي شَرِيعَتِنَا ځکه چې د چپ پاته کېدلو روژه(د خاموشۍ روژه) زموږ په شريعت کې عبادت نه ده لَكِنَّهُ يَتَجَانَبُ مَا يَكُونُ مَأْثَمًا لېکن له داسې خبرو څخه به پرهېز کوي چې هغه ګناه وي.

**اللغات:** ﴿صمت﴾ خاموشي، چوپتيا. ﴿قربة﴾ عبادت، نېکي. ﴿يتجانب﴾ د تفاعل مضارع ده: ليرې وسېدل، پرهېز کول، ځان ساتل. ﴿مأثم﴾ مصدر ميمي دی: ګناه.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې معتکف به د اعتکاف په دوران په ذکرونو، تسبيحاتو او عبادتونو کې مشغول اووسي، او فقط نېکې خبرې به کوي، نه به د جاپان او دوبۍ خبرې کوي، او نه به د يو چاغيبت او چغلي کوي، لېکن داسې به هم نه کوي چې بالکل چپ او خاموشه وي، ځکه زموږ په شريعت کې د خاموشۍ روژه عبادت نه ده، بلکې دا د مجوسيانو طريقه ده، نو روژتي ته پکار ده چې له هغه څخه ځان وساتي، او د روژې په دوران کې به صرف غوره او نېکې خبرې کوي، لېکن له هغو خبرو څخه به پرهېز کوي چې هغه د ګناه لامل وي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب المساجد، باب ما يكره في المساجد، حديث رقم: ٧٥٠.

## د اعتكاف په حالت کې د وطې (كوروالي) حكم

وَيَحْرُمُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ الْوَطْئُ او پر اعتكاف كونكي وطې كول حرام دي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ [البقرة: ۱۸۷] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "د ښځو سره مباشرت مه کوئ په داسې حال کې چې تاسو ياست په مسجدونو کې اعتكاف كونكي" وَكَذَا اللَّمْسُ وَالْقُبْلَةُ همدارنګه مسه كول او مچه اخيستل (حرام دي) لِأَنَّهُ مِنْ دَوَاعِيهِ فَيَحْرُمُ عَلَيْهِ ځکه چې دا د وطې له دواعيو څخه دي نو ځکه به پر هغه حرام وي إِذْ هُوَ مَحْظُورُهُ ځکه چې وطې د اعتكاف له ممنوعاتو څخه دي كَمَا فِي الْإِحْرَامِ لکه څرنګه چې په احرام کې (ممنوع) دي بِخِلَافِ الصَّوْمِ لِأَنَّ الْكَفَّ رُكْنُهُ په خلاف د روژې ځکه چې له وطې څخه ځان نيول د روژې رکن دی لَا مَحْظُورُهُ نه د روژې ممنوع فَلَمْ يَتَعَدَّ إِلَى دَوَاعِيهِ نو ځکه به وطې (په روژه کې) تر دواعيو پورې نه متعدي کيږي.

**اللغات:** ﴿عاكف﴾ اعتكاف كونكی، ﴿قبلة﴾ مچه، ﴿دواعي﴾ جمع د دَاعِيَةٌ ده: خواهش زياتونكی شی، رابلونكی شی (مراد ځنې هغه شيان دي چې بنده وطې كولو ته اماده كوي)، ﴿محظور﴾ ممنوع.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې د معتكف لپاره وطې كول حرام دي، دليل دا آيت دی: ولا تباشروهنّ و أنتم عاكفون في الساجد، په دې آيت کې هغو صحابه وو ته خطاب دی چې هغوی به د اعتكاف په حالت کې له مسجد څخه خپلو كورونو ته را تلل، او له خپلو ښځو سره به تر كوروالي وروسته واپس مسجد ته تلل، په دې آيت کې هغوی له دې حركت څخه منع سوي دي، او په حالت د اعتكاف کې وطې حرام ګرځول سوي دي.

وكذا اللمس الخ فرمايي چې څرنګه د اعتكاف په حالت کې وطې كول حرام دي، همدارنګه ښځه په شهوت سره مسول او مچول هم حرام دي، ځکه چې دا شيان د جماع دواعي دي، نو څرنګه چې د احرام په حالت کې جماع او دواعي د جماع دواړه حرام دي، همدارنګه به د اعتكاف په حالت کې هم دواړه حرام وي.

بخلاف الصوم الخ فرمايي چې په روژه کې دواعي د جماع حرام نه دي، ځکه چې له جماع څخه ځان ساتل د روژې رکن دی، د روژې محظور او ممنوع دی، نو له جماع څخه به ځان ساتل خو فرض وي، لېكن د هغه دواعي به حرام نه وي، ځکه چې د جماع دواعي د روژې له ممنوعاتو څخه نه دي، او کله چې داسې ده، نو په روژه کې به جماع د دواعيو و طرف ته نه متعدي کيږي، يعني داسې به نه کيږي چې څرنګه له جماع څخه منع كېدل رکن دي، نو داسې به له د جماع له دواعيو څخه هم منع كېدل رکن وي.

## په جماع سره د اعتكاف د باطلوالي تفصيلي حكم

فَإِنْ جَامَعَ لَيْلًا أَوْ نَهَارًا عَامِدًا أَوْ نَاسِيًا نو که معتكف جماع وکړي په شپه يا ورځ کې په قصد يا په هېره سره بَطَلَ إِعْتِكَافُهُ نو د هغه اعتكاف باطل سو لِأَنَّ اللَّيْلَ مَحَلُّ الْإِعْتِكَافِ ځکه چې شپه د اعتكاف محل دی بِخِلَافِ الصَّوْمِ په خلاف د روژې وَحَالَةُ الْعَاكِفِينَ مُذَكِّرَةٌ او د معتكفينو حالت په ياد وربستونكی دی فَلَا يُعْذَرُ بِالنِّسْيَانِ نو ځکه به په هېره سره معذوره نه ګڼل کيږي.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل بالکل ښکاره دی، څو څه غور او فکر ته اړتيا لري.

## په ما دون الفرج کې د جماع حکم

وَلَوْ جَامَعَ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ فَأَنْزَلَ او که اعتکاف کونکي په ماسوا د فرج کې جماع وکړي او انزال سي أَوْ قَبَّلَ أَوْ لَمَسَ فَأَنْزَلَ يا (له ښځي څخه) مچه واخلي يا (ښځه) مسه کړي بَطَلَ اِعْتِكَافُهُ نو د هغه اعتکاف باطليږي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْجِمَاعِ ځکه چي دا (شيان) د جماع په معنیٰ کي دي حَتَّى يَفْسُدَ بِهِ الصَّوْمُ تر دې چي په دې سره روژه فاسديږي وَإِنْ لَمْ يُنْزِلْ لَا يَفْسُدُ او که انزال نه سي نو اعتکاف نه فاسديږي وَإِنْ كَانَ مُحَرَّمًا که څه هم دا حرام دي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى الْجِمَاعِ ځکه چي دا د جماع په معنیٰ کي نه دي (يعني که ښځه مچ کړي يا يې مسه کړي او انزال نه سي نو دا د جماع په معنیٰ کي نه دي) وَهُوَ الْمُفْسِدُ او جماع (د اعتکاف) فاسدونکې ده وَلِهٰذَا لَا يَفْسُدُ بِهِ الصَّوْمُ همدا وجه ده چي په دې سره روژه نه فاسديږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که معتکف له فرج څخه علاوه په ورون يا يو بل ځای کي جماع وکړه او انزال سو، يا يې ښځه مسه کړه يا يې مچ کړه او انزال سو، نو په دې ټولو صورتونو کي اعتکاف باطليږي، ځکه په دې توګه شهوت پوره کول د جماع په معنیٰ کي دي، همدا وجه ده چي په دې سره روژه فاسديږي، او جماع کول اعتکاف فاسدوي، نو کوم چي د هغه په معنیٰ کي دي، هغه به هم اعتکاف فاسدوي، او که په دې صورتونو کي انزال نه سو، نو اعتکاف نه فاسديږي، که څه هم د اعتکاف په حالت کي داسي کول حرام دي، دليل دا دی چي بې له انزاله دا فعل د جماع په معنیٰ کي نه دی، حال دا چي جماع اعتکاف فاسدوي، همدا وجه ده چي د روژې په حالت کي مچول او مسه کول جائز دي.

## صرف د ورځو د اعتکاف د نذر منلو حکم

وَمَنْ أَوْجَبَ عَلَى نَفْسِهِ اِعْتِكَافَ أَيَّامٍ او که يو سړي پر خپل ځان د يو څو ورځو اعتکاف واجب کړي لَزِمَهُ اِعْتِكَافُهَا بِلَيَالِيهَا نو پر هغه د دې ورځو اعتکاف د شپو سره لازم دی لِأَنَّ ذِكْرَ الْأَيَّامِ عَلَى سَبِيلِ الْجَمْعِ يَتَنَاوَلُ مَا بِإِزَائِهَا مِنَ اللَّيَالِي ځکه د جمع په توګه د ورځو يادول و هغو شپو ته (هم) شامليږي کوم چي د دې ورځو په مقابل کي وي يُقَالُ: مَا رَأَيْتُكَ مُنْذُ أَيَّامٍ ويل کيږي: له څو ورځو څخه مي ليدلی نه يې وَالْمُرَادُ بِلَيَالِيهَا او مراد يې دا دی چي د هغو په شپو کي مي هم ليدلی نه يې وَكَانَتْ مُتَتَابِعَةً وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطِ التَّتَابُعَ او دا ورځي به پرلپسې وي که څه هم هغه د تتابع (پرلپسې والي) شرط لګولی نه وي لِأَنَّ مَبْنَى الْاِعْتِكَافِ عَلَى التَّتَابُعِ ځکه د اعتکاف بنياد پر تتابع دی لِأَنَّ الْأَوْقَاتَ كُلَّهَا قَابِلَةٌ ځکه چي ټوله وختونه د اعتکاف قابل دي بِخِلَافِ الصَّوْمِ لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى التَّفَرُّقِ په خلاف د روژې ځکه چي د روژې مدار پر تفريق دی لِأَنَّ اللَّيَالِيَ غَيْرُ قَابِلَةٍ لِلصَّوْمِ ځکه چي شپې د روژې قابلې نه دي فَيَجِبُ عَلَى التَّفَرُّقِ نو په متفرقه توګه به روژې واجبيږي حَتَّى يَنُصَّ عَلَى التَّتَابُعِ تر دې چي هغه (په نذر کي) د تتابع صراحت وکړي (يعني تر څو چي په نذر کي د پرلپسې روژو صراحت نه وکړي، تر هغه وخته به روژې په متفرقه توګه واجبيږي) وَإِنْ نَوَى الْأَيَّامَ خَاصَّةً او که هغه په ځانګړې توګه د ورځو نيت وکړي صَحَّتْ نِيَّتُهُ نو د هغه نيت صحيح دی لِأَنَّهُ نَوَى الْحَقِيقَةَ ځکه چي هغه د حقيقت نيت وکړی.

**اللغات:** ﴿ليال﴾ جمع د ليلة ده، شپه. ﴿بإزاء﴾ په مقابل کې، په برابر.

**تشريح:** اوله مسئله او دليل ښکاره دی.

وإن نوى الأيام الخ د دې حاصل دا دی چې مثلاً که يو چا دا نذر ومنی چې د يو څو ورځو اعتکاف به کوم، يعني صرف د ورځو نيت يې وکړی، او شپې يې له نيت څخه وايستلې، نو د هغه نيت صحيح دی. او پر هغه به صرف د ورځو اعتکاف واجب وي، د دې وجه دا ده چې د يوم حقيقي معنیٰ د ورځې ده، نو که يو څوک له يوم څخه د شپې نفي وکړي، صرف د ورځې نيت وکړي، نو هغه د لفظ د حقيقي معنیٰ اعتبار وکړی، نو دا صحيح ده، لهذا په دې صورت کې به صرف د ورځې اعتکاف لازم وي.

## صرف د دوو (۲) ورځو د اعتکاف د نذر منلو حکم

وَمَنْ أَوْجَبَ عَلَى نَفْسِهِ اعْتِكَافَ يَوْمَيْنِ او کوم سړی چې پر ځان دوې ورځې اعتکاف واجب کړي يَلْزَمُهُ بِلَيْلَتَيْهِمَا نو پر هغه سړي به د هغو دوو (۲) ورځو د شپو اعتکاف (هم) لازم وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: لَا تَدْخُلُ اللَّيْلَةُ الأُولَى او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې اوله شپه به (په دې کې) نه داخليږي لِأَنَّ الْمُثَنَّى غَيْرُ الْجَمْعِ ځکه چې تثنيه له جمعي څخه ماسوا ده وَفِي الْمُتَوَسِّطَةِ ضَرُورَةُ الاتِّصَالِ او په مينځوې شپه کې د اتصال ضرورت دی وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ فِي الْمُثَنَّى مَعْنَى الْجَمْعِ د ظاهر روايت دليل دا دی چې په تثنيه کې د جمعي معنیٰ شته فَيُلْحَقُ بِهِ احْتِيَاطًا لِأَمْرِ الْعِبَادَةِ نو تثنيه به د جمعي سره احتياطاً يو ځای کيږي د عبادت د تعلق په وجه، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿مثنى﴾ تثنيه، د دوو (۲) معدود.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي پر خپل ځان د دوو (۲) ورځو اعتکاف واجب او لازم کړی، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پر هغه د دوو ورځو او دوو شپو اعتکاف واجب دی، لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې اوله شپه به په اعتکاف کې نه داخليږي، لهذا پر هغه به د دوو ورځو او يوې شپې اعتکاف واجب وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې تثنيه له جمع څخه علاوه ده، لهذا څرنګه چې د جمع يعني د درو ورځو په ذکر کې شپې داخليږي، هغسې به د دوو ورځو په ذکر کې شپې نه داخليږي، ځکه چې تثنيه له جمع څخه علاوه ده، او کله چې په دوو ورځو کې شپې نه داخليږي، نو د قاعدې مطابق به د يوې شپې اعتکاف هم پر هغه واجبېدل پکار نه وي، خو څرنګه چې په اعتکاف کې تتابع ضروري دی، او د تتابع لپاره اتصال ضروري دی، نو د ضرورت په وجه به مينځوې شپه په اعتکاف کې داخليږي، لېکن اوله شپه به نه داخليږي، ځکه چې اوله شپه د اتصال سره هيڅ تعلق نه لري، لهذا په اعتکاف کې به د هغې د داخلولو هيڅ ضرورت هم نه وي.

**د طرفينو دليل:** د ظاهر روايت او د طرفينو دليل دا دی چې په تثنيه کې د جمع معنیٰ شته، ځکه چې د ځايونو تثنيه د جمع په معنیٰ کې وي، او اعتکاف د عبادت سره تعلق لري يعني عبادت دی، او په عبادت کې به د احتياط اړخ ته کتل کيږي، نو دلته د احتياط تقاضا دا ده چې تثنيه د جمع په معنیٰ وګرځوو، ځکه چې د درو ورځو په اعتکاف کې د هغو شپې هم داخلې دي، نو کله چې په جمع کې شپې په ورځو کې داخلې دي، نو په تثنيه کې هم د شپو داخلول پکار دي.

# كِتَابُ الْحَجِّ

## (دا) كتاب د حج (د احكامو په بيان كې) دى

تشريح: صاحب د هدايې تر كتابُ الصوم وروسته كتابُ الحج بيانوي، وجه دا ده چې روژه خالص بدني عبادت دى، لېكن حج بدني او مالي دواړه قسمه عبادت دى، او له دواړو څخه مركب دى، او ښكاره ده چې مفرد تر مركب مخكې وي، نو ځكه صاحب د هدايې اول د مفرد يعني د "صوم" احكام بيان كړل، وروسته د مركب يعني د "حج" احكام بيانوي، دويمه وجه دا ده چې روژه هر كال راځي، لېكن حج د هر سړي په حق كې هر كال نه راځي، نو د حج په نسبت د روژې مسائلو ته زيات ضرورت دى، نو په دې حواله سره هم د صوم احكام د حج تر احكامو مخكې بيان سول.

ښكاره دې وي چې د "حج" لفظ د حاء په كسره او فتحه دواړو سره استعماليږي، په قرآن كريم كې د كسرې مثال دا آيت دى: وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ ٱلْبَيْتِ مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا [آل عمران: ۹۷]، او د فتحې مثال دا آيت دى: ٱلْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَـٰتٌ [البقرة: ۱۹۷]، وګورئ! په اول آيت كې دا لفظ په كسره د حاء حِجّ دى، او په دويم آيت كې په فتحه د حاء حَجّ دى.

**د حج لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د حج لغوي معنیٰ ده: قصد كول، اراده كول، او د حج اصطلاحي معنیٰ ده: القصد إلى مكان مخصوص في أوان مخصوص مع فعل مخصوص على وجه التعظيم (يعني د تعظيم په توګه په ځانګړو وختونو كې د ځانګړو فعلونو سره د ځانګړي ځاى اراده كولو ته او د هغه پر طرف سفر كولو ته د شريعت په اصطلاح كې حج ويل كيږي).

**فرضيت:** د حج فرضيت په كتاب، سنت او اجماع ټولو سره ثابت دى، په كتابُ الله كې خو د حج فرضيت په دې آيت سره ثابت دى: وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا [آل عمران: ۹۷]؛ او په سنت كې په ډېرو حديثونو سره د حج فرضيت ثابت دى چې له هغو څخه دوه حديثونه دا دي: (۱) بني الإسلام على الخمس....الحديث، په دې حديث كې د اسلام له پنځونو بناګانو څخه يوه بناء حج هم شمارل سوى دى، (۲) من مات ولم يحج فليمت إن شاء يهودياً أو نصرانياً؛ او اجماع خو ښكاره چې د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر ننه پورې پر حج د ټولو مسلمانانو اتفاق او اجماع را روانه ده.

**د فرضيت وخت:** د حج د فرضيت په باره كې ډېر قولونه دي، خو د جمهورو په نيز راجح قول دا دى چې د هجرت په شپږم (۶) كال حج فرض سوى دى.

## د حج شرعي حيثيت او د حج شرطونه

الْحَجُّ وَاجِبٌ حج واجب دی عَلَى الْأَحْرَارِ الْبَالِغِينَ الْعُقَلَاءِ الْأَصِحَّاءِ پر داسي خلكو چي هغوی آزاد، بالغان، عاقلان، روغ وي إِذَا قَدَرُوا عَلَى الزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ په دې شرط چي كله هغوی پر داسي توښه او سپرلي قدرت پيدا كړي فَاضِلًا عَنِ الْمَسْكَنِ چي هغه زيات وي د استوګني له ځای څخه وَمَا لَا بُدَّ مِنْهُ او له ضروري شيانو څخه وَعَنْ نَفَقَةِ عِيَالِهِ إِلَى حِينِ عَوْدِهِ او د أهل وعيال له نفقې څخه د هغه تر واپس راتللو پوري وَكَانَ الطَّرِيقُ آمِنًا او لاره به (هم) په امن وي وَصَفَهُ بِالْوُجُوبِ امام قدوري رَحِمَهُ الله حج په وجوب سره متصف كړی وَهُوَ فَرِيضَةٌ مُحْكَمَةٌ حال دا چي حج يوه مستحكمه فريضه ده ثَبَتَتْ فَرْضِيَّتُهَا بِالْكِتَابِ چي د هغې فرضيت په كتابُ الله سره ثابت سوی دی وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى: وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ... الْآيَةُ [آل عمران:۹۷] او هغه د باري تعالیٰ (دا) قول دی: ولله على الناس حج البيت من استطاع إليه سبيلا.

**اللغات:** ﴿أحرار﴾ جمع د حُرّ ده: آزاد خلك، ﴿أصحاء﴾ جمع د صحيح ده: روغ رمټ او سلامت خلك، ﴿راحلة﴾ كجاوه، (سپرلی)، ﴿عيال﴾ بال بچ، اولاد، تر پالني لاندي أهل وعيال، ﴿طريق﴾ لاره.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: چي حج پر هغه سړي واجبيږي چي هغه آزاد، بالغ، عاقل، روغ او سلامت وي، په دې شرط چي د لاري پر توښې او سپرلي قدرت لري، او دا توښه او سپرلي به د استوګني له ځای، له كورني ارتياوو، او د اهل و عيال له دومره نفقې څخه زياته وي چي هغه له حج څخه د ده تر راتګه پوري د اهل و عيال كافي سي، او لاره به په امن وي.

وصفه بالوجوب الخ صاحب د هدايې وايي: امام قدوري د حج لپاره د وجوب لفظ استعمال كړی دی، حال دا چي حج قطعي فرض دی، د هغه فرضيت په دې آيت: وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ ٱلْبَيْتِ مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا [آل عمران: ۹۷] سره ثابت دی، نو څه وجه ده چي امام قدوري د وجوب لفظ استعمال كړی دی؟ د دې جواب دا دی چي د قدوري په عبارت كي له وجوب څخه اصطلاحي وجوب مراد نه دی، بلكي دلته وجوب په معنیٰ د ثبوت او لزوم سره دی، يعني حج ثابت او لازم دی پر آزاد، بالغ .....الخ باندي، ځكه چي لفظ د واجب د ثابت او لازم لپاره هم استعماليږي، نو په دې صورت كي به دا لفظ فرضو ته هم شامل وي، ځكه چي فرض هم ثابت او لازم دي.

## حج په ژوند كي يو وار فرض دی

وَلَا يَجِبُ فِي الْعُمْرِ إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً او حج نه واجبيږي په (ټوله) عمر كي مګر (فقط) يو وار لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[●] قِيلَ لَهُ: اَلْحَجُّ فِي كُلِّ عَامٍ أَوْ مَرَّةً وَاحِدَةً ځكه نبي ﷺ ته وويل سوه: حج په هر كال كي سته يا (صرف) يو وار سته فَقَالَ: لَا بَلْ مَرَّةً وَاحِدَةً نو نبي ﷺ وفرمايل: نه! بلكي يو وار سته فَمَا زَادَ فَهُوَ تَطَوُّعٌ نو كوم چي (تر يوه وار) زيات سي

---

● تخريج: اخرجه ابو داؤد في كتاب المناسک، باب فرض الحج، حديث رقم: ۱۷۲۱، وابن ماجه في كتاب المناسک، باب فرض الحج، حديث رقم: ۲۸۸۵.

هغه نفل دی وَلِأَنَّ سَبَبَهُ الْبَيْتُ او په دې وجه (هم) چې د حج سبب بيتُ الله (كعبه) ده وَأَنَّهُ لَا يَتَعَدَّدُ او كعبه متعدد (مكرّره) نه ده (يعني بيتُ الله صرف يو ده) فَلَا يَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ نو وجوب به (هم) نه مكرّر كيږي.

**اللغات:** ﴿مرة﴾ يو وار، ﴿تطوع﴾ نفل، غيرِ واجب، ﴿لا يتعدد﴾ د تفعّل د باب مضارع منفي ده: له يوه وار څخه زياتيدل، څو ځله كيدل، ﴿يتكرر﴾ د تفعّل مضارع ده: مكرر كيدل، دويم وار كيدل.

**تشريح:** حج په ټوله عمر كي يو وار فرض دی، تر هغه وروسته به حج نفلي وي، ځكه كله چې له نبي ﷺ څخه په دې باره كي پوښتنه وشوه، نو نبي ﷺ وفرمايل: چې نه! حج په ټوله عمر كي يو وار دی (يعني يو وار فرض دی)، پوره حديث داسي دی: عن ابن عباس أن الأقرع بن حابس سأل النبي ﷺ فقال يا رسول الله الحج في كل سنة أو مرة واحدة؟ قال بل مرة واحدة فمن زاد فهو تطوع.

ولأن سببه الخ په ټوله عمر كي يو وار د حج د فرضيت عقلي دليل دا دی چې د حج سبب بيتُ الله الحرام دی، او څرنګه چې بيتُ الله يو دی، نو ځكه به حج په ټوله عمر كي يو وار فرض وي، د دې په خلاف د لمانځه ظاهري سبب وخت دی، او هغه ورځ پنځه واره بدليږي، نو ځكه به هره ورځ پنځه لمونځونه فرض وي، او د رمضان د روژو سبب مياشته ده، او هغه هر كال راځي، نو ځكه به هر كال د رمضان روژې فرض وي.

## حج فوراً واجبيږي كه يې د ځنډولو هم ګنجايش سته

ثُمَّ هُوَ وَاجِبٌ عَلَى الْفَوْرِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ الله بيا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز حج فوراً (سملستي) واجب دی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله ● مَا يَدُلُّ عَلَيْهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه داسي روايت سوی دی چې هغه (هم) پر دغه دلالت كوي (چې حج فوراً واجب دی) وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللهُ عَلَى التَّرَاخِي او د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز په تراخي (تأخير) سره واجب دی لِأَنَّهُ وَظِيفَةُ الْعُمُرِ ځكه چې حج خو د (ټوله) عمر وظيفه ده فَكَانَ الْعُمُرُ فِيهِ كَالْوَقْتِ فِي الصَّلَاةِ نو (ټوله) عمر د حج په باره كي داسي دی لكه د لمانځه په باره كي چې وخت دی. وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّهُ يَخْتَصُّ بِوَقْتٍ خَاصٍّ د اول (قول) وجه دا ده چې حج د يو ځانګړي وخت سره خاص دی وَالْمَوْتُ فِي سَنَةٍ وَاحِدَةٍ غَيْرُ نَادِرٍ او د يوه كال په دوران كي مرګ واقع كيدل نادر نه دي فَيَتَضَيَّقُ اِحْتِيَاطًا نو د احتياط لپاره به تنګي اختياريږي (يعني سملستي به حج واجبيږي) وَلِهَذَا كَانَ التَّعْجِيلُ أَفْضَلَ هم په دې وجه حج ژر كول افضل دي بِخِلَافِ وَقْتِ الصَّلَاةِ لِأَنَّ الْمَوْتَ فِي مِثْلِهِ نَادِرٌ په خلاف د لمانځه د وخت چې په دومره وخت كي مرګ واقع كيدل نادر دي.

**اللغات:** ﴿على الفور﴾ فوراً، سملستي، بې له ځنډه، ﴿على التراخي﴾ په ځنډ او تأخير سره، ﴿وظيفه﴾ واجب كار، معمول، ﴿يتضيق﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: تنګيدل، (تنګي راوستل).

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۱۵۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۰۶]

تشريح: د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي كله هم حج فرض سي، نو سمدستي د هغه اداء كول واجب دي، كه بې له عذره يې وځنډوي، نو ګنهګاره كيږي، خو كله چي يې هم اداء كړي، نو اداء كيږي، په دې كي قضاء نسته. او د امام صاحب له روايت څخه معلوميږي چي د هغه ميلان هم و دې طرف ته دى چي حج سمدستي اداء كول واجب دي، امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي حج على التراخي واجب دى، نو كه يو څوک په اول كال حج نه وكړي، بلكي ويې ځنډوي، نو د دوى په نيز هغه نه ګنهګاره كيږي.

وَلأنه وظيفة الخ د امام محمد او امام شافعي دليل دا دى چي حج د ټوله عمر كار دى، او ټوله عمره د حج وخت دى، همدا وجه ده چي هر كله حج وسي، نو قضاء كيږي نه، بلكي اداء به وي، د دې يو مثال ذكر كوي چي مثلاً له يوې(۱) بجې څخه تر دريو (۳) بجو پوري د ماپښين وخت دى، نو كه تر دريو بجو مخكي په هر وخت كي د ماپښين لمونځ وسي، نو اداء كيږي، لمونځ ګزاره نه ګنهګاره كيږي، كه څه هم په اول وخت كي يې كول افضله دي، همداسي حج هم دى يعني چي كله هم حج وكړي نو نه ګنهګاره كيږي.

وجه الأول الخ د امام ابو يوسف او امام صاحب دليل دا دى چي حج ذيو ځانګړي وخت سره خاص دى، يعني د ذى الحجې په نهمه او لسمه ورځ حج كيږي، تر دې وروسته په ټوله كال كي حج نه سي كېداى، لهذا كه يو څوک تر فرضيت وروسته په اول كال كي حج نه وكړي، نو را روان كال به يې كوي، او دا معلومه نه ده چي تر را روان كاله پوري به هغه ژوندي پاته وي، او كه مړ به وي(څكه چي په يوه كال كي د مرګ واقع كېدل شاذ و نادر نه دي)، او كه له حج څخه بغير مړ سو، نو ګنهګاره به وي، نو په دې وجه حج على الفور واجب دى، همدا وجه ده چي على الفور حج كول د ټولو اماماتو په نيز افضله او غوره كار دى.

بخلاف وقت الصلاة الخ د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُ الله د مثال جواب وركوي فرمايي چي د دې په خلاف د لمانځه د وخت مسئله ده، څكه د لمانځه وخت اوږد نه دى، او دومره كوچنى دى چي په هغه كي د مرګ راتلل شاذ ونادر دي، نو په دې وجه د لمانځه په آخري وخت كي هم بې له عذره لمونځ اداء كول جائز دي، او په هغه كي د ځنډولو ګنجايش سته، لهذا د حج په مثال كي به لمونځ ذكر كول صحيح نه وي.

## د آزادي او د بلوغت د شرطيت(شرط كېدلو) بيان

وَإِنَّمَا شُرِطَ الْحُرِّيَّةُ وَالْبُلُوغُ آزادي او بلوغت په دې وجه شرط كړى سو لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: أَيُّمَا عَبْدٍ حَجَّ عَشْرَ حِجَجٍ ثُمَّ أُعْتِقَ فَعَلَيْهِ حَجَّةُ الْإِسْلَامِ څكه نبي ﷺ فرمايلي دي: "كه يو غلام لس حجه كړي وي بيا آزاد كړى سي نو پر هغه د اسلام حج (دويم وار) فرض دى وَأَيُّمَا صَبِيٍّ حَجَّ عَشْرَ حِجَجٍ ثُمَّ بَلَغَ فَعَلَيْهِ حَجَّةُ الْإِسْلَامِ او كه يو كوچني لس حجه كړي وي بيا بالغ سي نو پر هغه د اسلام حج (دويم وار) فرض دى" وَلِأَنَّهُ عِبَادَةٌ او څكه چي حج يو عبادت دى وَالْعِبَادَاتُ بِأَسْرِهَا مَوْضُوعَةٌ عَنِ الصِّبْيَانِ او ټوله عبادتونه له كوچنيانو څخه پورته سوي دي وَالْعَقْلُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ التَّكْلِيفِ او عقل شرط دى د تكليف(مكلف كېدلو) د صحيح كېدلو لپاره وَكَذَا صِحَّةُ الْجَوَارِحِ او همدا بول د

---

[1] تخريج: أخرجه حاكم في المستدرك، كتاب المناسك، حديث رقم: ۱۸۶۹.

اندامونو صحیح کېدل(هم شرط دی) لِأَنَّ الْعَجْزَ دُونَهَا لَازِمٌ ځکه د اندامونو له صحت څخه بغیر عاجزي ضروري ده
(یعني که دیو چا اندامونه روغ نه وي، نو هغه به د حج له اداء څخه خامخا عاجزه وي).

**تشریح:** له دې ځایه صاحب د هدایې د حج د شرطونو وجهې بیانوي فرمایي چې تر ټولو اول شرط آزادېدل دي، پر غلام حج فرض نه دی، او که یو غلام لس حجونه هم وکړي، نو بیا هم تر آزادېدلو وروسته پر هغه د اسلام حج کول فرض دي، (او مخکې حجونه به یې نفلي شمارل کېږي)، ځکه په حدیث کې راغلي دي: أيما عبد حج عشر حجج ثم أعتق فعليه حجة الإسلام. همدا ډول د حج د فرضیت لپاره بالغ کېدل هم شرط دي، او د دې شرط وجه دا ده چې تر بلوغت مخکې د کوچنیانو حج معتبر نه دی، ځکه چې حدیث دی: أيما صبي حج عشر حجج ثم بلغ فعليه حجة الإسلام. یعني تر بلوغت وروسته دویم وار پر نابالغه کوچني حج کول فرض دي، او بیا خو حج یو عبادت دی، او له کوچنیانو څخه ټوله عبادتونه ساقط سوي او معاف سوي دي، ځکه چې هغوی د شریعت د خطاب او د شریعت د عباداتو مکلف او أهل نه دي.

والعقل الخ فرمایي چې د حج د فرضیت لپاره عاقل کېدل هم شرط دي، ځکه چې له عقل څخه بغیر یو څوک مکلف جوړول صحیح نه دي، همدارنګه د اندامونو صحیح او سالم کېدل هم شرط او ضروري دي، ځکه که د انسان اندامونه صحیح او سالم نه وي، نو هغه به د حج د ارکانو له اداء کولو څخه عاجزه وي، او پر عاجزه سړي هم حج فرض نه دی، لهذا د حج د فرضیت لپاره د اندامونو سلامتیا هم ضروري ده.

## د ړانده سړي د حج بیان

وَالْأَعْمَى إِذَا وَجَدَ مَنْ يَكْفِيهِ مُؤْنَةَ سَفَرِهِ او ړوند سړی چې کله یو داسې څوک پیدا کړي چې هغه د ړانده سړي د سفر د مشقت کفایت وکړي(یعني براشت یې کړي) وَوَجَدَ زَادًا وَرَاحِلَةً او توښه او سپرلي (هم) پیدا کړي لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْحَجُّ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله نو (بیا هم) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه حج نه واجبېږي خِلَافًا لَهُمَا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی وَقَدْ مَرَّ فِي كِتَابِ الصَّلَاةِ او دا (بحث) په کتابُ الصلاة (بابُ الجمعة) کې تېر سو.

**اللغات:** ﴿أعمى﴾ ړوند، بې دیده، د سترګو له دید څخه بې برخې، ﴿مؤنة﴾ بار، خرچه، مشقت.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که یو سړی ړوند وي، او یو بل داسې څوک د هغه لپاره پیدا سي، چې د حج په سفر کې د هغه مرسته وکړي، او د هغه د ډوډو او راوستلو تکلیف برداشت کړي، او په خپله هغه ړوند دومره سرمایه لري چې د خپل ځان او د هغه سړي د توښې او سپرلي لپاره کفایت وکړي، نو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر داسې ړانده سړي حج فرض دی، لېکن د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز فرض نه دی، په اصل کې دا اختلاف د دوی حضراتو پر خپلو أصولو مبني دی، د امام اعظم رَحِمَهُ الله اصل او قاعده دا ده چې د بل چا په قدرت او مرستې سره حاصل سوی استطاعت معتبر نه دی، لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز داسې استطاعت معتبر دی، همدا وجه ده چې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز که د ړانده

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله في اداء الحج بنفسه، كما قال العلامة ابن عابدين: فلا يجب على مقعد إلى أن قال: وأعمى وإن وجد قائداً... لا بأنفسهم ولا بالنيابة في ظاهر المذهب عن الإمام. رد المحتار ج:۲، ص: ۱۵۲. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۰۸]

سړي لپاره يو لارښوونکی او مرستيال پيدا سو، نو پر هغه حج فرض دی، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بيا هم فرض نه دی، ځکه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله د بل چا په لارښووني او مرستي سره حاصل سوی استطاعت معتبر نه گڼي، د قاعدې عبارت دا دی: الأصل عند أبي حنيفه رَحِمَهُ الله ان كل من لا يقدر بنفسه فوسع غيره لا يكون وسعا له. وعندهما يكون وسعا له.

## د گوډ(شل) سړي د حج بيان

وَأَمَّا الْمُقْعَدُ فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَجِبُ او هر چي شل سړی دی نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي پر هغه حج واجب دی لِأَنَّهُ مُسْتَطِيعٌ بِغَيْرِهِ ځکه چي هغه د بل چا په ذريعه قدرت لرونکی دی فَأَشْبَهَ الْمُسْتَطِيعَ بِالرَّاحِلَةِ نو د هغه سړي سره مشابه سو چي هغه پر سپرلي قدرت لري وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى أَنَّهُ لَا يَجِبُ لِأَنَّهُ غَيْرُ قَادِرٍ عَلَى الْأَدَاءِ بِنَفْسِهِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي پر شل سړي حج واجب نه دی ځکه چي هغه په خپله پر اداء کولو قدرت نه لري بِخِلَافِ الْأَعْمَى لِأَنَّهُ لَوْ هُدِيَ يُؤَدِّي بِنَفْسِهِ په خلاف د ړانده سړي ځکه که د هغه لارښوونه(او لاس نيونه) وسي نو هغه په خپله (هم) حج اداء کولای سي فَأَشْبَهَ الضَّالَّ عَنْهُ نو دا د هغه سړي سره مشابه سو چي د حج لاره ئې ورکه وي.

**اللغات:** ﴿مقعد﴾ شل، فلج، گوډ، په پښو معيوب، ﴿هدى﴾ د ضرب ماضي مجهوله ده: لار ښوول، (لاس نيول)، ﴿ضال﴾ بې لاري، له لاري څخه ورک.

**تشريح:** د عبارت تر تشريح مخکي په دې خبره پوه سئ چي دلته د امام صاحب رَحِمَهُ الله کوم روايت بيان سوی دی، دا د امام صاحب اصل او مستند روايت نه دی، بلکي د حضرت حسن بن زياد رَحِمَهُ الله روايت دی، حاصل يې دا دی چي پر شل، فلج سوي او پر هغه چي له دواړو پښو څخه خلاص وي، حج واجب دی، ځکه چي دا د بل چا د استطاعت او مرستي په ذريعه مستطيع او قدرت لرونکی دی، يعني د بل چا په ذريعه د ارکانو پر اداء کولو قدرت لري، نو دا سړی د هغه سړي په شان سو کوم چي پر سپرلي باندي د حج کولو قدرت لري(يعني د سپرلي په ذريعه د سپرتيا په حالت کي حج کولای سي)، او پر هغه سړي حج فرض دی چي د سپرلي په ذريعه پر حج قدرت لري، نو ځکه به پر مفلوج، او شل هم حج فرض وي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله اصل روايت دا دی چي پر مفلوج او شل حج فرض نه دی، ځکه کله چي د هغه په نېز د ړانده سړي په حق کي د بل چا استطاعت معتبر نه دی، نو بيا شل او مفلوج د کوم باغ مولۍ ده.

د امام محمد رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي پر شل حج فرض نه دی، ځکه چي دا سړی په خپله د حج د ارکانو پر اداء کولو قدرت نه لري، نو پر هغه حج فرض کول بې فائدې دي، د دې په خلاف د ړانده سړي مسئله ده، نو هغه له شل څخه بېل او عليحده دی، ځکه چي د ړانده لپاره که يو لارښوونکی او مرستيال پيدا سي، او هغه د ارکانو په اداء کولو کي د هغه لارښوونه او لاس نيونه وکړي، نو هغه په خپله ارکان اداء کولای سي، نو ړوند سړی د ضالّ يعني د هغه سړي په شان سو چي د حج لاره ئې ورکه سوې وي، او د ضالّ لپاره که لارښوونکی پيدا سي، نو پر هغه حج فرض دی، لهذا پر ړانده سړي به هم حج فرض وي، په دې شرط چي د هغه لپاره هم يو لارښوونکی او مرستيال پيدا سي.

## د توښې او سپرلي د شرطيت بيان

وَلَا بُدَّ مِنَ الْقُدْرَةِ عَلَى الزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ او پر توښه او سپرلي قدرت(لرل) ضروري دي وَهُوَ قَدْرُ مَا يَكْتَرِيْ بِهِ شِقَّ مَحْمِلٍ او هغه پر دومره اندازه مال قدرت لرل دي چي په هغه سره حاجي د کجاوې يوه حصه په کرايه اخيستى سي أَوْ رَأْسَ زَامِلَةٍ يا يو بار وړونکي حيوان په کرايه اخيستى سي وَقَدْرِ النَّفَقَةِ ذَاهِبًا وَجَائِيًا او د تګ راتګ پر خرڅه (هم قدرت لرل ضروري دي) لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❶ سُئِلَ عَنِ السَّبِيْلِ إِلَيْهِ ځکه چي له نبي ﷺ څخه د (دې آيت) من استطاع إليه سبيلاً په باره کي پوښتنه وسوه فَقَالَ: اَلزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ نو نبي ﷺ وفرمايل: چي (له دې څخه مراد) توښه او سپرلى دى وَإِنْ أَمْكَنَهُ أَنْ يَكْتَرِيَ عُقْبَةً او که د هغه لپاره په واري (او نوبت) سره په کرايه د سپرلي اخيستل ممکن وو فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دی(يعني پر هغه حج واجب نه دی) لِأَنَّهُمَا إِذَا كَانَا يَتَعَاقَبَانِ لَمْ تُوْجَدِ الرَّاحِلَةُ فِيْ جَمِيْعِ السَّفَرِ ځکه چي کله دواړه په واري (او نوبت) سره سپرېږي نو په ټوله سفر کي به (ديوه لپاره پوره) سپرلي پيدا نه سي(يعني په ټوله سفر کي به سپرتيا ر نه سي حال دا چي د حج شرط دا دی چي په ټوله سفر کي به پر سپرلي او سپرتيا د انسان قدرت وي).

**اللغات:** ﴿يكترى﴾ د افتعال مضارع ده: په کرايه اخيستل، ﴿شق محمل﴾ پر اوښ چي کومه کجاوه پرته وي د هغې دوې حصې وي او په هره حصه کي يو، يو سړی کښېني، يوې حصې ته شقّ محمل وايي(نو که يو چا دومره قدرت درلودی چي يوه حصه په کرايه واخلي نو هم حج پر واجب دی)، ﴿زاملة﴾ بار وړونکی اوښ، ﴿عقبة﴾ نوبت، وار.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره پوه سئ چي د شق محمل اصلي معنیٰ هغه ده کوم چي په لغاتو کي بيان سوه، خو اوس مراد ځني د طيارې، موټر او داسي نورو يو(۱) سيټ دی، او له رأس زامله څخه مراد بار وړونکي اوښ دی، زاملة هغه اوښ ته ويل کيږي چي پر هغه د حج په سفر يا په بل سفر کي سامان وړل کيږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی دومره مالداره وي چي د اوښ يو سيټ يا پوره اوښ يا زامله اوښ* په کرايه اخيستلای سي، همدارنګه د حج د سفر پر نفقه هم قدرت لري، نو پر هغه حج کول فرض دي، ځکه چي د حج د فرضيت لپاره د آزادي، عقل او بلوغت سره سره پر توښه او سپرلي هم قدرت شرط دی، ځکه له نبي ﷺ څخه چي کله يو چا د من استطاع إليه سبيلا په باره کي پوښتنه وکړه، نو نبي ﷺ وفرمايل چي له دې څخه توښه او سپرلى مراد دي.

وإن أمكنه الخ فرمايي که يو سړي په نوبتي سپرتيا سره د سپرلي په کرايه اخيستلو قدرت درلودی، په دې توګه چي تر يو ځايه پوري به هغه پر سپرېږي، بيا به دی په پښو روانيږي، او له هغه ځايه څخه تر بل ځايه پوري بل سړی پر سپرېږي، (او پر داسي مضبوطه سپرلي يې قدرت نه درلودی چي دواړه په يوه وخت کي پر سپاره وي)، نو پر داسي

---

❶ تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء في ايجاب الحج بالزاد والراحلة، حديث رقم: ۸۱۳، وابن ماجه في كتاب للناسک، باب: ۶، حديث: ۲۸۹۶.

* پر زامله اوښ قدرت لرل دا دي چي حاجي سامان پر اوښ بار کړي، او په خپله په پښو ور سره روان سي، نو که سړی طاقتمن وي، د پښو د تګ وس لري، او مکه مبارکه هم نژدې وي، نو فقط پر زامله اوښ[رأس زامله] قدرت لرل هم حج واجبوي.

سړي حج فرض نه دی، ځکه کله چې دوه خلک د حج په سفر کي پر يوه سپرلي په نوبت سره سپرېږي. نو ښکاره ده چي په ټوله سفر کي به ديوه سړي په حق کي هم په بشپړه توګه سپرلی را نه سي، (بلکي تر يو ځايه پوري به ديوه په حق کي وي او تر بل ځايه پوري به د بل په حق کي وي)، حال دا چي په ټوله سفر کي پر بشپړه سپرلي قدرت ضروري دی، نو ځکه به په دې صورت کي حج فرض نه وي.

## توښه او سپرلی به له ورځني اړتياوو څخه زيات وي

وَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ فَاضِلًا عَنِ الْمَسْكَنِ وَعَمَّا لَا بُدَّ مِنْهُ او شرط دي چي دا مال به د هغه د استوګني له ځای او له ورځني اړتياوو څخه زيات وي كَالْخَادِمِ وَأَثَاثِ الْبَيْتِ وَثِيَابِهِ لکه خادم، د كور سامان او جامې (کالي) لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ مَشْغُولَةٌ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ ځکه چي دا شيان په اصلي حاجت (حاجتِ اصليه) سره مشغول دي وَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ فَاضِلًا عَنْ نَفَقَةِ عِيَالِهِ إِلَىٰ حِينِ عَوْدِهِ او دا (هم) شرط دي چي دا مال به د هغه تر راتګه پوري د هغه د عيال له خرڅې څخه زيات وي لِأَنَّ النَّفَقَةَ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ لِلْمَرْأَةِ ځکه چي نفقه د ښځي لپاره واجب حق دی وَحَقُّ الْعَبْدِ مُقَدَّمٌ عَلَىٰ حَقِّ الشَّرْعِ بِأَمْرِهِ او د شريعت په حکم د بنده حق د شريعت پر حکم مخکي دی.

**اللغات:** ﴿أثاث﴾ سامان، ﴿عود﴾ د نصر مصدر دی: واپس راتلنه، راګرځېدنه.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د حج د فرضيت لپاره پر زاد (توښه) او راحله (سپرلي) قادره کېدل شرط دي (لکه څرنګه چي مخکي ذکر سو)، په دې عبارت کي دا بيانوي چي په کوم مال سره زاد او راحله حاصلوي، هغه مال به د انسان له ورځني او شخصي ضرورتونو څخه زيات وي، يعني د استوګني له کور، خادمان، او جامو څخه د زاد او راحلې زياتېدل شرط دي، همدارنګه دا هم شرط دي چي دا مال به د انسان تر واپس راتګه پوري د هغه د اهل و عيال له نفقې څخه زيات وي، ځکه چي پر خاوند د ښځي نفقه واجب ده، او شريعت پر خپل حق د بندګانو حق مخکي کړی دی، او څرنګه چي حج د شريعت حق دی، نو ځکه شريعت دا شرط لګوي چي د ښځي او عيال نفقه به مخکي اړدي، بيا به په زائد مال د شريعت ذ حق يعني د حج د زاد او راحلې بندوبست کوي.

## د کومو خلکو لپاره توښه او سپرلي شرط دي؟

وَلَيْسَ مِنْ شَرْطِ الْوُجُوبِ عَلَىٰ أَهْلِ مَكَّةَ وَمَنْ حَوْلَهُمُ الرَّاحِلَةُ او د حج د واجبېدلو لپاره د مکې پر خلکو او د هغو د اطرافو پر خلکو سپرلي شرط نه ده لِأَنَّهُ لَا تَلْحَقُهُمْ مَشَقَّةٌ زَائِدَةٌ فِي الْأَدَاءِ ځکه چي دې خلکو ته د حج په اداء کولو کي څه زيات تکليف نه لاحقيږي فَأَشْبَهَ السَّعْيَ إِلَى الْجُمُعَةِ نو دا د جمعې و لمانځه ته د تګ کولو سره مشابه سو (يعني د هغو لپاره حج ته تلل داسي سو لکه نور خلک چي د جمعې لمانځه ته ځي) وَلَا بُدَّ مِنْ أَمْنِ الطَّرِيقِ او د لاري په امن کېدل (هم) ضروري دي لِأَنَّ الْإِسْتِطَاعَةَ لَا تَثْبُتُ دُونَهُ ځکه چي له هغه څخه بغير استطاعت نه ثابتيږي ثُمَّ قِيلَ: هُوَ شَرْطُ الْوُجُوبِ بيا ويل سوي دي: چي د لاري په امن کېدل د حج د وجوب شرط دی حَتّٰى لَا يَجِبَ عَلَيْهِ الْإِيصَاءُ تر دې چي پر هغه وصيت کول واجب نه دي وَهُوَ مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوي دي

وَقِيلَ: هُوَشَرْطُ الْأَدَاءِ دُوْنَ الْوُجُوْبِ او ویل سوي دي: چې دا د حج د اداء شرط دي نه د وجوب لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● فَسَّرَ الْإِسْتِطَاعَةَ بِالزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ لَا غَيْرُ ځکه چې نبي ﷺ د استطاعت تفسير (فقط) په توښه او سپرلي سره کړی دی نه په نورو سره.

**اللغات:** ﴿إيصاء﴾ د افعال مصدر دی: وصيت کول.

**تشريح:** مخکې تېر سو چې د حج د وجوب په شرطونو کې پر زاد او راحلې قدرت لرل هم دي، خو د مکې او د مکې پر شاوخوا او سېلونکو باندې د حج د فرضيت لپاره راحله شرط نه ده، لهذا که په دې خلکو کې يو څوک د راحلې قدرت نه لري، نو بيا هم پر هغه حج واجب دی، خو په دې شرط چې د پښو پر تګ قدرت لري، او دا شرط دلته هم ضروري دی چې د هغه تر واپس راتلو پورې به د اهل و عيال لپاره نفقه کافي وي.

پاتې سو دا چې د مکې له اطرافو څخه مراد څه دي؟ نو په دې کې دوه قولونه دي: يو دا چې کوم خلک د مکې او ميقات په مينځ کې آباد دي، هغو ته ولو ته د مکې د اطرافو خلک وايي، دويم دا چې له اطرافو څخه مراد هغه سيمه ده چې د هغې او د مکې په مينځ کې له دريو ورځو څخه کمه مسافه وي، نو د دې سيمې د خلکو لپاره سپرلي شرط نه ده.

**دليل:** دا دی چې دې خلکو ته بغير له سپرلي څخه حج کول هيڅ تکليف نه لري، لهذا حج ته د هغو تلل د جمعې د لمانځه د تګ سره مشابه سو، او د جمعې لمانځه ته د تللو لپاره سپرلي شرط نه ده، که څه هم تکليف وي، همدارنګه به د مکې او د مکې د اطرافو د خلکو لپاره هم د حج د فرضيت لپاره سپرلي شرط نه وي.

ولا بد من أمن الطريق الخ فرمايي چې د حج د وجوب لپاره د لاري په امن کېدل هم شرط دي، يعني په دغه لاره کې به غالب ګومان د امن او سلامتيا وي، ځکه که لاره په امن نه وي، نو قدرت نه ثابتيږي، بيا په دې کې اختلاف دی چې د لاري امنيت د حج د وجوب لپاره شرط دی، او که د حج د اداء لپاره، نو بعضي مشائخو فرمايلي دي چې د لاري امنيت د حج د وجوب لپاره شرط دی، په نوادر کې همدا روايت له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه رانقل سوی دی، او همدا د امام کرخي رَحِمَهُ الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی، بعضي مشائخو فرمايلي دي چې د لاري امنيت د حج د اداء کولو لپاره شرط دی، او دا د امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی.

د دويم قول دليل دا دی چې نبي ﷺ د دې آيت ولله على الناس حج البيت من استطاع إليه سبيلا تفسير صرف په زاد او راحله سره کړی دی، که د لاري امنيت د حج د وجوب لپاره شرط وای، نو رسول الله ﷺ به د زاد او راحلې سره د لاري امنيت هم ذکر کړی وای، نو کله چې نبي ﷺ د زاد او راحلې سره د لاري امنيت ذکر کړی نه دی، نو دا د دې خبري دليل دی چې د لاري په امن کېدل د زاد او راحلې په څېر د حج لپاره شرط نه دی، بلکې د حج د اداء کولو لپاره شرط دی.

**د اختلاف ثمره:** ثمره د اختلاف په دې صورت کې ښکاره کيږي چې که په يو سړي کې د حج ټول شرطونه جمع وي، ليکن د لاري د نه امنيت په وجه هغه حج نه وکړی سي، تر دې چې مرګ ته نژدې سي، نو د اول قول د مشائخو په نيز پر هغه د حج وصيت واجب نه دی (يعني دا وصيت پر واجب نه دی چې زما تر مرګ وروسته دي زما پر ځای بل څوک حج وکړي)، ځکه چې پر هغه ګردسره حج واجب سوی نه دی، (هغه په دې وجه چې د اول قول د مشائخو په نيز د لاري امنيت د حج د وجوب شرط دی، او امنيت نسته، نو حج واجب نه سو، نو د حج وصيت به څرنګه واجب وي)، او د دويم

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب قول الله تعالى: وتزوّدوا فإن خير الزاد التقوى، حديث رقم: ١٥٢٣.

قول د مشائخو په نېز پر هغه د حج وصيت واجب دی. (ځکه چي د هغو په نېز د لاري په امن کېدل د حج د اداء کولو لپاره شرط دي، نه د حج د وجوب لپاره) نو کله چي نفس حج پر هغه واجب سو، لېکن د لاري د نه امنيت په وجه هغه اداء نه کړی سو، نو ځکه به له خپلي غاړي څخه د حج د فريضې د ساقطولو لپاره پر هغه په خپل مال کي د حج د اداء کولو وصيت واجب او ضروري وي.

## د ښځي لپاره د محرم يا خاوند د شرطيت بيان

قَالَ: وَيُعْتَبَرُ فِي الْمَرْأَةِ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د ښځي په حق کي به د دې خبري اعتبار کېږي أَنْ يَكُونَ لَهَا مَحْرَمٌ تَحُجُّ بِهِ أَوْ زَوْجٌ چي د ښځي لپاره به يو محرم وي چي د هغه سره به دا حج کوي يا د ښځي خاوند به وي وَلَا يَجُوزُ لَهَا أَنْ تَحُجَّ بِغَيْرِهِمَا إِذَا كَانَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ مَكَّةَ مَسِيرَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ او ښځي ته له دې دواړو څخه علاوه د بل چا سره حج کول جائز نه دي چي کله د ښځي او مکې تر مېنځ د دريو ورځو مسافه وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ لَهَا الْحَجُّ إِذَا خَرَجَتْ فِي رُفْقَةٍ وَمَعَهَا نِسَاءٌ ثِقَاتٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د ښځي لپاره حج کول جائز دي چي کله هغه (د سفر) د ملګرو سره ووځي او د هغې سره باوري (د اعتماد وړ) ښځي وي لِحُصُولِ الْأَمْنِ بِالْمُرَافَقَةِ ځکه چي د ملګرتيا په وجه امن حاصل سو وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: لَا تَحُجَّنَّ اِمْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: چي ښځه به (بالکل) حج نه کوي خو (هلته) چي د هغې سره محرم وي وَلِأَنَّهَا بِدُونِ الْمَحْرَمِ يُخَافُ عَلَيْهَا الْفِتْنَةُ او په دې وجه (هم) چي بغير له محرم څخه پر هغې د فتنې ېېره ده وَتَزْدَادُ بِانْضِمَامِ غَيْرِهَا إِلَيْهَا او د هغې سره د بلي ښځي په يو ځای کېدلو کي د فتنې ېېره (نوره) زياتيږي وَلِهَذَا تَحْرُمُ الْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ همدا وجه ده چي د پردۍ ښځي سره خلوت حرام دی وَإِنْ كَانَ مَعَهَا غَيْرُهَا که څه هم د هغې سره بله ښځه وي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ مَكَّةَ أَقَلُّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ په خلاف د هغه صورت چي کله د هغې او مکې ترمېنځ له دريو ورځو څخه کمه مسافه وي لِأَنَّهُ يُبَاحُ لَهَا الْخُرُوجُ إِلَى مَا دُونَ السَّفَرِ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ ځکه چي د سفر له مسافې څخه په کمه مسافه کي د ښځي لپاره بې له محرمه وتل جائز دي.

**اللغات:** ﴿رفقة﴾ قافله، د سفر ملګري، ﴿ثقات﴾ جمع د ثقة ده: د اعتبار وړ، معتبر، باوري.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که د ښځي د ښار او د مکې مکرمې په مېنځ کي د دريو ورځو يا تر دې زياته مسافه وه، نو د ښځي لپاره د حج لپاره تلل په هغه وخت کي جائز دي، چي د هغه سره محرم وي، يا خاوند وي.

محرم هغه سړي ته ويل کېږي چي د هغې سره د ښځي نکاح د همېشه لپاره حرامه وي، هغه که د قرابت په وجه وي، او که د رضاعت په وجه وي، او که د مصاهرت (خسرګنۍ) په وجه وي، خو د محرم لپاره شرط دا دي چي هغه به عاقل، بالغ، آزاد وي، نور که غلام وي، که مسلمان وي، که کافر وي؛ خو که محرم فاسق، يا مجوسي يا کوچنی يا لېونی وي، نو

[1] تخريج: أخرجه دارقطني في كتاب الحج، حديث رقم: ۲۴۱۷.

د هغه سره د ښځې تلل صحيح نه دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي که ښځه د نورو ښځو سره يو ځای د حج په سفر روځي، او د هغې سره باوري او د اعتبار ور ښځې وي، نو د هغې لپاره حج ته تلل جائز دي، که څه هم د هغې سره محرم او خاوند نه وي، ځکه چې د نورو ښځو سره د ملګرتيا په وجه امن حاصل سو.

زموږ دليل: د نبي ﷺ دا قول دی: چې بغير له محرم څخه به هيڅکله ښځه د حج لپاره نه ځي، په مسلم او ابو داؤد کې راځي: لا يحل لإمرأة تؤمن بالله واليوم الآخر تسافر سفراً يكون ثلاثة أيام فصاعداً إلا ومعها أبوها أو إبنها أو زوجها أو أخوها أو محرم منها، له دې حديث څخه دا ثابتيږي چې بغير له محرم څخه د ښځې لپاره درې ورځې يا له دريو ورځو څخه زيات سفر کول جائز نه دي، نو معلومه سوه چې بې له محرمه د ښځې سفر جائز نه دی، که څه هم د حج سفر وي.

ولأنها بدون الخ بل دليل دا دی چې بې له محرمه پر ښځې باندې د فتنې ډېره ده، او کله چې ښځې دېري سره ملګري سي (او سره ګډې سي، لکه امام شافعي چې فرمايي)، او دا معلومه ده چې ښځې د عقل په اعتبار سره هم ناقصې دي، او د دين په اعتبار سره هم ناقصې دي، نو ځکه به فتنه نوره زياته سي، همدا وجه ده چې د سړي لپاره د پردی ښځې سره يوازې والی حرام دی، که څه هم د هغې سره بله ښځه وي، ځکه چې اول يوه فتنه وه، اوس دوې فتنې سوې، نو حاصل دا سو چې بې له محرمه به د ښځې لپاره د دريو ورځو په سفر تلل جائز نه وي.

بخلاف ما إذا كان الخ لېکن که د ښځې او مکې مکرمې په مينځ کې تر دريو ورځو کمه مسافه وي، نو بيا د ښځې لپاره بې له محرمه او بې له خاونده حج ته تلل جائز دي، ځکه چې شريعت ښځې ته هغه وخت بې له محرمه د سفر اجازه ورکړې ده چې د سفر اندازه د سفر له مسافې څخه کمه وي (يعني تر دريو ورځو د سفر مسافه کمه وي)، او په دومره لږ موده کې د فتنې ډېره هم نسته.

## د محرم په شتون کې خاوند ښځه له حج څخه منع کولای سي، که نه؟

وَإِذَا وَجَدَتْ مَحْرَمًا لَمْ يَكُنْ لِلزَّوْجِ مَنْعُهَا او کله چې ښځه يو محرم پيدا کړي نو خاوند ته د هغې د منع کولو اختيار نسته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُ أَنْ يَمْنَعَهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې خاوند ته د هغې د منع کولو اختيار سته لِأَنَّ فِي الْخُرُوجِ تَفْوِيتَ حَقِّهِ ځکه (د حج په سفر کې) د ښځې په وتلو کې د خاوند حق فوتول دي وَلَنَا أَنَّ حَقَّ الزَّوْجِ لَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْفَرَائِضِ او زموږ دليل دا دی چې د خاوند حق د فرائضو په حق کې نه ښکاره کيږي وَالْحَجُّ مِنْهَا او حج (هم) له فرائضو څخه دی حَتَّى لَوْ كَانَ الْحَجُّ نَفْلًا لَهُ أَنْ يَمْنَعَهَا تر دې که نفلي حج وو نو خاوند ته د هغې د منع کولو اختيار سته وَلَوْ كَانَ الْمَحْرَمُ فَاسِقًا قَالُوا: لَا يَجِبُ عَلَيْهَا او که د ښځې محرم فاسق (ګنهکاره) وو نو فقهاؤ فرمايلي دي: چې پر ښځې حج واجب نه دی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ لَا يَحْصُلُ بِهِ ځکه چې په فاسق محرم سره مقصود نه حاصليږي.

**اللغات:** ﴿تفويت﴾ د تفعيل مصدر دی: فوتول، ضايع کول. ﴿فاسق﴾ بدلاری او بدکاری سړی، ګنهکاره.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د حج د اراده لرونکي ښځې لپاره که يو محرم پيدا سي، نو خاوند ته دا اختيار نسته چې هغه له حج اداء کولو څخه منع کړي، د امام احمد رَحِمَهُ الله مسلک هم دا دی، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې خاوند ته دا اختيار سته.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي که ښځه د محرم سره په سفر ولاړه سي، نو د خاوند حق فوتيږي، او مخکي ذکر سو چي د بنده حق د شريعت پر حق مخکي وي، نو ځکه به خاوند د خپل حق په خاطر ښځه د حج له اداء کولو څخه منع کولای سي، لهذا دا داسي سو لکه يوه ښځه چي د حج نذر ومني (چي که زما دا کار وسو نو زه به حج کوم). نو د خاوند لپاره دا اختيار سته چي هغه له نذر پوره کولو څخه منع کړي.

**زموږ دليل:** دا دی، چي د خاوند حق د فرائضو په حق کي نه ښکاره کيږي، همدا وجه ده چي خاوند ته دا اختيار نسته چي هغه خپله ښځه له لمونځ کولو او د رمضان له روژو نيولو څخه منع کړي، نو څرنګه چي حج هم د دين له فرائضو څخه دی، نو له حج څخه د منع کولو اختيار هم خاوند ته حاصل نه دی، هو! که ښځي د نفلي حج اراده کړې وي، نو خاوند هغه منع کولای سي، ځکه چي نفلي حج له فرائضو څخه نه دی.

ولوكان المحرم فاسقا الخ او که د ښځي محرم فاسق وو، يعني د حلال او حرام ېې هيڅ فرق نه کوی، او په بدکاري کي بې باکه وي، نو مشائخو ويلي دي چي د داسي فاسق محرم په وجود کي پر ښځي حج فرض نه دی، ځکه چي د محرم مقصد له فتنې څخه حفاظت دی، او کله چي محرم په خپله د فتنو مرکز وي، نو د ښځي به څه حفاظت وکړي؟

## د محرم تفصيلي بيان

وَلَهَا أَنْ تَخْرُجَ مَعَ كُلِّ مَحْرَمٍ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَجُوسِيًّا او ښځي ته جائز دي چي (د حج په سفر کي) د هر محرم سره ووځي خو دا چي هغه مجوسي وي لِأَنَّهُ يَعْتَقِدُ إِبَاحَةَ مُنَاكَحَتِهَا ځکه چي مجوسي د هغې سره نکاح روا ګڼي وَلَا عِبْرَةَ بِالصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ او د کوچني او لېوني اعتبار نسته لِأَنَّهُ لَا تَتَأَتَّى مِنْهُمَا الصِّيَانَةُ ځکه چي له هغو څخه حفاظت حاصليدای نه سي وَالصَّبِيَّةُ الَّتِي بَلَغَتْ حَدَّ الشَّهْوَةِ بِمَنْزِلَةِ الْبَالِغَةِ او هغه کوچنۍ نجلۍ چي د شهوت حد ته رسېدلې وي د بالغي ښځي په درجه کي ده حَتَّى لَا يُسَافِرَ بِهَا مِنْ غَيْرِ مَحْرَمٍ تر دې چي بې له محرمه به د هغې سره سفر نه کوي وَنَفَقَةُ الْمَحْرَمِ عَلَيْهَا او د محرم نفقه پر ښځي واجب ده لِأَنَّهَا تَتَوَسَّلُ بِهِ إِلَى أَدَاءِ الْحَجِّ ځکه چي ښځه د حج د اداء کولو ذريعه محرم جوړوي وَاخْتَلَفُوا فِي أَنَّ الْمَحْرَمَ شَرْطُ الْوُجُوبِ أَوْ شَرْطُ الْأَدَاءِ او په دې باره کي مشائخو اختلاف کړی دی چي محرم (د حج) د وجوب شرط دی که د اداء عَلَى حَسَبِ اخْتِلَافِهِمْ فِي أَمْنِ الطَّرِيقِ او دا اختلاف د مشائخو د هغه اختلاف په بول دی کوم چي د لاري د امن په باره کي وو.

**اللغات:** ﴿إباحة﴾ د افعال مصدر دی: حلال کېدل، ﴿لا عبرة﴾ اعتبار نسته، ﴿تتوسل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ذريعه جوړول، وسيله جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي ښځي ته د هر محرم سره د حج پر سفر تلل جائز دي، هغه که آزاد وي که غلام، مسلمان وي که کافر او ذمي، ځکه چي د دې ټولو خلکو سره د فتنې او فساد هيڅ بيره نسته او په دوی سره حفاظت ممکن دی، او له محرم څخه مقصود همدغه دي، هو! د مجوسي محرم سره تلل جائز نه دي، ځکه چي د مجوسيانو په نيز د محارمو سره نکاح کول، او د مور او لور سره بې له نکاحه جماع کول صحيح دي، نو د مجوسي محرم په وجود کي د فتنې او فساد قوي خطره سته، لهذا د محرم کوم مقصد چي دی، هغه به خپله د مجوسي له طرفه فوت سي، همدارنګه

کوچنۍ او لېونۍ که ډيوې ښځې محرم وي، نو د هغو سره هم د حج پر سفر تلل جائز او صحيح نه دي، ځکه چې د محرم مقصد د ښځې ساتنه او حفاظت دی، او هغوی په خپله حفاظت ته ضرورت لري، نو د نورو به څه حفاظت وکړي؟

والصبية الخ فرمايي چې که يوه نجلۍ بالغه شوې نه وي، لېکن د شهوت حد ته رسېدلې وي، نو هغه د بالغې ښځې په حکم کې ده، او د هغې لپاره هم بغير له محرمه دباندې وتل او سفر کول جائز نه دي.

ونفقة المحرم الخ د دې حاصل دا دی چې کوم محرم د ښځې سره د حج په سفر ځي، د هغه ټوله خرچه به پر دې ښځې واجب وي، ځکه چې ښځې دا سرې د حج د اداء کولو ذريعه جوړه کړې ده، نو د هغه نفقه به هم ښځه زغمي، همدا وجه ده که يوه ښځه پر خپله نفقه قدرت لري، لېکن د محرم پر نفقې قدرت نه لري، او پر محرم هم حج فرض نه وي، نو پر هغې ښځې به حج فرض نه وي، ځکه چې د محرم پر نفقې د قدرت نه لرلو په صورت کې به دا ښځه په پوره زاد او راحله باندې قدرت لرونکې نه شمارل کيږي، حال دا چې د حج د وجوب لپاره په زاد او راحله باندې په بشپړه توګه قدرت شرط دی.

واختلفوا الخ فرمايي چې آيا د ښځې د حج په لړکې د محرم وجود د حج د وجوب شرط دی، که د حج د اداء کولو؟ نو په دې باره کې هغه اختلاف دی، کوم چې د لارې د امنيت په باره کې وو، يعني د امام اعظم رَحِمَهُ الله د روايت مطابق د محرم وجود د حج د وجوب شرط دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول مطابق د محرم وجود د حج د اداء کولو شرط دی، ثمره د اختلاف مخکې تېره شوه، هلته يې مطالعه کړئ.

## تر احرام تړلو وروسته د بلوغت يا د آزادېدلو حکم

| وَإِذَا بَلَغَ الصَّبِيُّ بَعْدَمَا أَحْرَمَ او که کوچنی تر احرام تړلو وروسته بالغ سي أَوْعُتِقَ الْعَبْدُ يا غلام آزاد سي فَمَضَيَا او دواړه (خپل) حج پوره کړي لَمْ يُجْزِهُمَا عَنْ حَجَّةِ الْإِسْلَامِ نو دا حج د هغو لپاره د اسلام له حج (يعني له فرضي حج) څخه کفايت نه کوي لِأَنَّ إِحْرَامَهُمَا انْعَقَدَ لِأَدَاءِ النَّفْلِ ځکه چې د هغو احرام د نفلي حج د اداء کولو لپاره تړل سوی دی فَلَا يَنْقَلِبُ لِأَدَاءِ الْفَرْضِ نو هغه به د فرضي حج د اداء کولو لپاره نه اوړي. |
|---|

**اللغات:** ﴿مضيا﴾ د ضرب د باب تثنيه غائب ماضي ده، د صلې په فرق سره د دې باب ډېرې معناوې راځي: جاري کول، پوره کول، تېرېدل، ﴿لا ينقلب﴾ د انفعال د باب مضارع منفي ده: اوښتل، ګرځېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو کوچنی يا غلام احرام وتړي، د حج افعال شروع کړي، بيا کوچنی بالغ سي، يا غلام آزاد کړی سي، او هغوی په همدغه احرام کې حج پوره کړي، نو د هغو دا حج به نفل وي (لکه څرنګه چې يې شروع کړی وي)، او له فرضي حج څخه کفايت نه کوي، ځکه چې د احرام د تړلو په وخت کې دا دواړه د فرضي حج قابل (أهل) نه وو، بلکه د هغو احرام د نفلي حج لپاره تړل سوی وو، لهذا وروسته به هغه احرام په فرضي احرام سره نه بدلېږي، او پر هغو به فرضي حج پاته او لازم وي، په را روان وخت کې چې کله هم قدرت پيدا کړي نو فرضي حج به اداء کوي، او دا حج به د فرضي حج لپاره کافي نه وي.

## که تر وقوفِ عرفه مخکې کوچني دويم وار احرام وتړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ جَدَّدَ الصَّبِيُّ الْإِحْرَامَ قَبْلَ الْوُقُوفِ او که کوچنی تر وقوفِ عرفه مخکې د احرام تجديد وکړي (يعني دوباره يې وتړي) وَنَوَى حَجَّةَ الْإِسْلَامِ او د اسلامي حج (فرضي حج) نيت وکړي جَازَ نو جائز دي وَالْعَبْدُ لَوْ فَعَلَ ذٰلِكَ لَمْ يَجُزْ او که غلام دا کار وکړي نو جائز نه دي لِأَنَّ إِحْرَامَ الصَّبِيِّ غَيْرُ لَازِمٍ لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ ځکه چې د کوچني احرام (پر کوچني) لازم نه دی د اهليت د نشتوالي په وجه أَمَّا إِحْرَامُ الْعَبْدِ لَازِمٌ او د غلام احرام خو (پر غلام) لازم دی فَلَا يُمْكِنُهُ الْخُرُوجُ عَنْهُ بِالشُّرُوعِ فِي غَيْرِهِ نو د غير په شروع کولو سره د هغه لپاره له احرام څخه وتل ممکن نه دي، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿جدد﴾ نوی کول، له سره کول، دوباره کول.

**تشريح؛ صورت د مسئلې:** دا دی که نابالغه کوچني احرام وتړی، بيا بالغ سو، او بيا هغه تر بلوغت وروسته له وقوفِ عرفه څخه مخکې اول احرام ختم کړی، دويم احرام يې د فرضي حج د اداء کولو لپاره وتړی، نو فرضي حج يې جائز دی، لېکن که غلام احرام وتړی، او تر آزادېدلو وروسته يې له وقوفِ عرفه څخه مخکې اول احرام ختم کړی، او بل احرام يې د فرضي حج په نيت وتړی، نو دا جائز نه دي.

دفرق وجه دا ده چې د نابالغه کوچني احرام د هغه د عدمِ قابليت او د شريعت د احکامو د نه مکلف کېدلو په وجه غيرِ لازم وو (يعني پر هغه لازم نه وو)، همدا وجه ده که هغه د احرام په حالت کي د يو ممنوع کار اتکاب وکړي، نو پر هغه هيڅ دم او نور څه نه واجبيږي، نو کله چې د هغه احرام غيرِ لازم دی، نو د هغه فسخ کول به هم جائز وي، او پاته سو غلام نو د هغه احرام (پر هغه) لازم دی، ځکه چې غلام د شرعي احکامو مکلف وي، همدا وجه ده که غلام د احرام په حالت کي ښکار وکړي، نو پر هغه خو دم نه واجبيږي، ځکه چې مالک نه دی، خو روژې حتماً پر واجبيږي، لېکن پر کوچني هيڅ شی نه واجبيږي، له دې څخه معلومه سوه چې د غلام احرام لازم دی، او د کوچني احرام لازم نه دی. والله أعلم بالصواب



# فَصْلٌ فِي الْمَوَاقِيْتِ

(دا) فصل د حج د ميقاتونو (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکې صاحب د هدايې د حج او د حج د واجبېدلو شرطونه بيان کړل، اوس له دې ځايه د حج اول منزل او پړاو يعني ميقاتونه بيانوي، ښکاره دې وي چې مواقيت جمع د ميقات ده، او د ميقات معنیٰ ده: ټاکلی وخت، خو دلته مجازاً له ميقات څخه هغه ټاکلی ځای او مقام مراد دی چې له هغه ځايه حاجيان احرام تړي

## د ميقات تعريف، شمېر او ځايونه

وَالْمَوَاقِيتُ الَّتِي لَا يَجُوزُ أَنْ يُجَاوِزَهَا الْإِنْسَانُ إِلَّا مُحْرِمًا خَمْسَةٌ او هغه ميقاتونه چې تر هغو د انسان لپاره بې له احرام تېرېدل جائز نه دي پنځه دي لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ ذُو الْحُلَيْفَةِ وَلِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتُ عِرْقٍ وَلِأَهْلِ الشَّامِ جُحْفَةُ د مدينې د خلکو لپاره ذو الحليفه دی او د عراق د خلکو لپاره ذات عرق دی او د شام د خلکو لپاره جحفه دی وَلِأَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٌ وَلِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ او د نجد د خلکو لپاره قرن دی او د يمن د خلکو لپاره يلملم دی هَكَذَا وَقَّتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● هٰذِهِ الْمَوَاقِيتَ لِهٰؤُلَاءِ همدارنګه رسول الله ﷺ دا ميقاتونه د دغه خلکو لپاره ټاکلي دي وَفَائِدَةُ التَّأْقِيتِ الْمَنْعُ عَنْ تَأْخِيرِ الْإِحْرَامِ عَنْهَا او د ميقات ټاکلو فايده له دې ميقاتونو څخه د احرام تأخير منع کول دي(يعني د ميقات ټاکلو فايده دا ده چې له دې ميقاتونو څخه احرام ځنډول منع دي) لِأَنَّهُ يَجُوزُ التَّقْدِيمُ عَلَيْهَا بِالْاِتِّفَاقِ ځکه چې تر دې ميقاتونو احرام مخکې کول بالاتفاق جائز دي.

**اللغات**: ﴿ميقات﴾ له کوم ځای څخه چې حاجيان احرام تړي هغه ته ميقات ويل کيږي، ﴿يجاوز﴾ د مفاعلې مضارع ده: تېرېدل. ﴿تأقيت﴾ د تفعيل مصدر دی: ميقات جوړول. (ميقات ټاکل).

**تشريح**: مکې مکرمې ته د راتلونکو خلکو لپاره نبي ﷺ پنځه ځايونه ټاکلي دي، او حاجيانو ته يې دا هدايت کړی چې دې ځايو ته به په رسېدلو سره حتماً احرام تړي، او بغير له احرام څخه به تر دې ځايو نه تېرېږي، ځکه چې بغير له احرام څخه تر ميقات تېرېدل جائز نه دي، (۱) له دې پنځو ځايو څخه د مدينې د خلکو ميقات ذو الحليفه دی، د دې ميقات او مدينې تر مينځ ۶ يا ۷ ميله فاصله ده، (۲) د عراقيانو ميقات ذات عرق دی، دا ځای له مکې څخه د مشرق او شمال په مينځ کې واقع دی، او په قول د علامه کرماني د دې ميقات او مکې تر مينځ تر مينځ ۴۲ ميله فاصله ده، (۳) د شام د خلکو ميقات جحفه دی، دا له مکې څخه د مغرب او شمال په مينځ کې د يو کلي نوم دی، په قول د صاحب د بنايې د دې ميقات او مکې تر مينځ ۸۲ ميله فاصله ده، خو د دې او مدينې تر مينځ درې منزله دي، (۴) د نجد د خلکو ميقات قرن دی، عرب دې ته قرن المنازل وايي، دا يو جګ غر دی چې له عرفات څخه ښکاره کيږي، او د مشهوره تابعي حضرت اويس قرني نسبت هم دې غره ته کيږي، (۵) د يمن د خلکو لپاره ميقات يلملم دی، چې دا له مکې څخه د جنوب پر طرف د دېرشو (۳۰) ميلو پر فاصله يو مشهور غر دی، او دا د هندوستان د خلکو او نورو ميقات هم دی.

هكذا وقت الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د ميقاتونو دا تفصيل له نبي ﷺ څخه را نقل سوی دی، او د دې ميقاتونو فايده دا ده چې هيڅ سړی به هم له احرام څخه بغير تر دې ميقاتونو نه تيرېږي، يعني که يو څوک مخکې احرام نه وتړي، نو هغه ته پکار ده چې دې ميقاتونو ته په رسېدلو سره حتماً احرام وتړي، او بې له احرامه دې تر دې نه تېرېږي، همدا وجه ده چې فقهاؤ دا فيصله کړې ده چې تر دې ميقاتونو مخکې احرام تړل بالاتفاق صحيح او جائز دي.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب مهل أهل مكة للحج والعمرة، حديث رقم: ١٥٢٤، ١٥٢٦، ١٥٢٩، ١٥٣٠، ومسلم في كتاب الحج، حديث رقم: ١١، ١٢، و ابو داؤد في كتاب المناسک، حديث رقم: ١٧٣٨.

## تول میقاتونه په یوه نقشه کې

| ذوالحلیفه | دا د مدینې د خلکو میقات دی | د شمال پر طرف له مکې مکرمې څخه ۴۱۰ کیلو متره لیرې دی (یو کیلو متر ۱۰۰۰ متره کیږي) |
|---|---|---|
| ذات عرق | دا د عراق د خلکو میقات دی | د مشرق پر طرف له مکې مکرمې څخه ۹۰ کیلو متره لیرې دی |
| جحفه | دا د شام د خلکو میقات دی | د شمال، مغرب پر طرف له مکې مکرمې څخه ۱۸۲ کیلومتره لیرې دی |
| قرن | دا د نجد د خلکو میقات دی | د مشرق پر طرف له مکې مکرمې څخه ۸۰ کیلومتره لیرې دی |
| یلملم | دا د یمن د خلکو میقات دی | د مشرق پر طرف له مکې مکرمې څخه ۱۳۰ کیلومتره لیرې دی |
| تنعیم | دا د مکې د خلکو میقات دی | د شمال، مغرب پر طرف له مکې مکرمې څخه ۷,۵ (یعني اووه نیم) کیلومتره لیرې دی |

## د اطرافي سړي لپاره د احرام حکم

ثُمَّ الْآفَاقِيُّ إِذَا انْتَهَى إِلَيْهَا عَلَى قَصْدِ دُخُولِ مَكَّةَ بیا چې کله اطرافي سړی مکې ته د داخلېدو په اراده سره میقات ته ورسیږي عَلَيْهِ أَنْ يُحْرِمَ نو پر هغه احرام تړل واجب دي قَصَدَ الْحَجَّ أَوِ الْعُمْرَةَ أَوْ لَمْ يَقْصُدْ عِنْدَنَا (برابر ده) که یې د حج اراده کړې وي یا د عمرې د احکم زموږ په نېز دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: لَا يُجَاوِزُ أَحَدٌ الْمِيقَاتَ إِلَّا مُحْرِمًا ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "هیڅوک به له میقات څخه نه تیریږي مګر د احرام په حالت کې" وَلِأَنَّ وُجُوبَ الْإِحْرَامِ لِتَعْظِيمِ هَذِهِ الْبُقْعَةِ الشَّرِيفَةِ او ځکه چې د احرام واجبدل د دې شریفې (او سپېڅلې) ټوټې د تعظیم لپاره دی فَيَسْتَوِي فِيهِ الْحَاجُّ وَالْمُعْتَمِرُ وَغَيْرُهُمَا نو په دې کې به حج کوونکی او عمره کوونکی او نور تول برابر وي.

**اللغات:** ﴿آفاقي﴾ کوم سړی چې له میقات څخه دباندې په اطرافو کې اوسیږي هغه ته آفاقي ویل کیږي، اطرافي. ﴿بقعة﴾ د مځکې ټوټه (ټوکړه)، د مځکې حصه.

**تشریح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره پوه سئ چې آفاقي هغه سړي ته ویل کیږي چې له میقات څخه بهر اوسیږي، او کوم چې په میقات کې دننه اوسیږي، هغه ته مکّي ویل کیږي، مخکې چې د میقاتونو کوم تفصیل بیان سو، هغه د آفاقیانو لپاره وو، لېکن په میقات کې د اوسېدونکو خلکو او د مکې د خلکو میقات "حل" دی. (له حرم څخه وتلې او حرم ته څیرمه سیمې ته حل ویل کیږي، همدارنګه د میقات سیمې ته حل ویل کیږي، یعني دا دوې سیمې د دغو میقات دی).

**مسئله:** دا ده که یو سړی اطرافي وو، او د مکې د تګ په اراده سره میقات ته ورسېدی، نو زموږ په نېز پر هغه احرام تړل فرض دي، هغه که د حج یا عمرې په اراده سره ځي، یا د تجارت یا د بل غرض په اراده سره ځي، ځکه د نبي ﷺ فرمان

---

[1] تخریج: اخرجه البیهقي في السنن الکبریٰ في کتاب الحج، باب من مر بالمیقات یرید حجاً أو عمرة، حدیث رقم: ۸۹۲۴.

دی: "چي هيڅ سړی به هم له احرام څخه بغير تر ميقات نه تيريږي". ځرنګه چي دا حديث مطلق دی، او په دې کې د حج يا د عمرې يا د تجارت او د نورو هيڅ تفصيل نسته، نو کله چي د حج يا د عمرې په نيت سره مکې ته د تلونکي سړي لپاره له احرام څخه بغير تر ميقات تېرېدل جائز نه دي، همداسي به د تجارت او نورو په نيت سره د تلونکي سړي لپاره هم له احرام څخه بغير تر ميقات تجاوز کول جائز نه وي.

ولأن وجوب الخ په دې باره کي عقلي دليل دا دی چي تر ميقات مخکي د احرام واجبېدل د مکې مکرمې د تعظيم او احترام په خاطر دي، نو ځرنګه چي د حج يا د عمرې په نيت سره د تلونکي سړي لپاره د مکې تعظيم کول واجب دي، همدارنګه د تجارت په غرض سره د تلونکي سړي لپاره هم د مکې تعظيم کول واجب دي، او په دې حکم کي ټول برابر دي، نو ځکه به احرام دواړه تړي.

## د ميقات د اوسېدونکو لپاره د احرام حکم

وَمَنْ كَانَ دَاخِلَ الْمِيقَاتِ او څوک چي په ميقات کي دننه وي لَهُ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ لِحَاجَتِهِ نو هغه ته د خپل ضرورت لپاره بې له احرامه مکې ته داخلېدل جائز دي لِأَنَّهُ يَكْثُرُ دُخُولُهُ مَكَّةَ ځکه چي په مکه کي د هغه داخلېدل ډېر واقع کيږي وَفِي إِيجَابِ الْإِحْرَامِ فِي كُلِّ مَرَّةٍ حَرَجٌ بَيِّنٌ او هر وار د احرام په واجبولو کي ښکاره حرج (تکليف) دی فَصَارَ كَأَهْلِ مَكَّةَ نو دا سړی د مکې د خلکو په ډول سو حَيْثُ يُبَاحُ لَهُمُ الْخُرُوجُ مِنْهَا ثُمَّ دُخُولُهَا بِغَيْرِ إِحْرَامٍ لِحَاجَتِهِمْ او د مکې خلکو ته د خپلو اړتياوو لپاره له مکې څخه وتل او بيا داخلېدل بې له احرامه روا دي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَصَدَ أَدَاءَ النُّسُكِ په خلاف د هغه صورت چي کله د حج (يا د عمرې) د اداء کولو قصد وکړي لِأَنَّهُ يَتَحَقَّقُ أَحْيَانًا ځکه چي دا قصد (خو) کله نا کله متحقق کيږي فَلَا حَرَجَ نو (په دې صورت کي د احرام په واجبولو کي) هيڅ حرج نسته.

**اللغات:** ﴿يباح﴾ حلال کېدل، روا کېدل، ﴿نسك﴾ حج (يا عمره)، ﴿أحيانا﴾ کله نا کله (کله کله).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی په ميقات کي دننه وي، که څه هم د ميقات اوسېدونکي نه وي، لېکن بيا هم هغه ته د خپلو ضرورتونو لپاره بغير له احرامه مکې ته تلل را تلل جائز دي، ځکه چي ډېر ځله د انسان ضرورتونه بې شمېره وي، او له انسان څخه په يوه ورځ کي څو ځله تګ راتګ غواړي، اوس که موږ هر وار پر هغه احرام لازم او واجب وګرځوو، نو هغه سړی به په حرج کي مبتلا سي، او شريعت له بندګانو څخه حرج ليري کړی دی، نو ځکه به پر دې سړي احرام تړل ضروري نه وي، او ځرنګه چي د مکې خلکو ته د خپلو ضرورتونو لپاره له مکې څخه وتل او په مکه کي داخلېدل بې له احرامه جائز دي، همدارنګه به د ميقات د اوسېدونکي لپاره هم جائزو، پاته سوه د مکې د تعظيم او احترام مسئله، نو په ميقات کي د دننه اوسېدلو په وجه پر دې سړي په ښکاره بدن سره د مکې تعظيم کول ضروري نه دی، بلکي په زړه کي مکه مبارکه محترمه ګڼل او په اعتقاد سره يې تعظيم کول د هغه په حق کي کافي دي.

بخلاف الخ د دې حاصل دا دی که يو سړی د حج يا د عمرې په اراده سره مکې ته داخلېدل غواړي، نو که څه هم هغه په ميقات کي دننه وي، لېکن بيا هم هغه ته احرام تړل او مکې ته داخلېدل ضروري دي، او له احرام تړلو څخه بغير د هغه لپاره مکې ته داخلېدل جائز نه دي، ځکه چي انسان همېشه او هر وخت د حج يا د عمرې په اراده مکې ته نه داخليږي، بلکي کله ناکله داخليږي، نو ځرنګه چي په دې صورت کي د احرام په واجبولو کي څه حرج نسته، نو ځکه به د حج يا

عمرې په اراده سره پر داخلېدلونكي سرې احرام تړل او مكې مكرمې ته داخلېدل واجب وي، هغه كه د ميقات استوګن وي، كه نه وي.

## تر ميقات مخكې د احرام تړلو حكم

وَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ عَلَى هٰذِهِ الْمَوَاقِيْتِ جَازَ بيا كه يو سړى پر دې ميقاتونو احرام مخكې كړي نو جائز دي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ [البقرة: ۱۹۶] ځكه الله تعالىٰ فرمايلي دي: د الله لپاره حج او عمره پوره كړئ وَإِتْمَامُهُمَا أَنْ يُحْرِمَ بِهِمَا مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهِ او د حج او عمرې پوره كول دا دي چې احرام د خپلې كورنۍ له جونګړي (يعني له خپل كور) څخه وتړي كَذَا قَالَهُ عَلِيٌّ وَابْنُ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا همداسې حضرت علي او ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ويلي دي وَالْأَفْضَلُ التَّقْدِيْمُ عَلَيْهَا او پر دې ميقاتونو احرام مخكې كول افضل دي لِأَنَّ إِتْمَامَ الْحَجِّ مُفَسَّرٌ بِهِ ځكه چې د حج د پوره كولو تفسير (هم) په دغه سره سوى دى (چې له كوره د حج يا د عمرې احرام وتړي) وَالْمَشَقَّةُ فِيْهِ أَكْثَرُ وَالتَّعْظِيْمُ أَوْفَرُ او په دې كې زيات تكليف دى او بشپړ تعظيم دى وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ إِنَّمَا يَكُوْنُ أَفْضَلَ إِذَا كَانَ يَمْلِكُ نَفْسَهُ أَنْ لَا يَقَعَ فِيْ مَحْظُوْرٍ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چې پر ميقات احرام مخكې كول هغه وخت افضله دي چې كله محرم ته پر خپل ځان دا قابو وي چې په يو ممنوع (او نارواً) كار كې به نه ولوېږي.

**اللغات:** ﴿دويرة﴾ د دار تصغير دى، كوركى، جونګړه، مراد ځني كور او د استوګنې ځاى دى، ﴿أوفر﴾ اسم تفضيل دى: زيات بشپړ (پوره)، ﴿محظور﴾ د ضرب اسم مفعول دى: منع كړى سوى شى يا كار، نارواً شى يا كار.

**تشريح:** فرمايي چې د اطرافي (آفاقي) خلكو لپاره خو شرعي حكم همدغه دى چې ميقات ته په رسېدلو سره احرام وتړي، او تر احرام تړلو وروسته تر ميقات تېر سي، او كه يو سړى په خپل كور كې احرام وتړي، راووځي، نو دا ډېر افضله او غوره دي، ځكه د دې آيت و أتموا الحج والعمرة لله...الخ يو تفسير دا هم سوى دى چې له اتمام (يعني د حج او د عمرې له پوره كولو) څخه مراد دا دي چې حج يا عمره كوونكى له خپل كور څخه احرام وتړي، او دا تفسير له حضرت علي ﷺ او حضرت ابن مسعود ﷺ څخه رانقل سوى دى، چې دا د دې خبرې ښكاره دليل دى چې له كور څخه د حج يا عمرې احرام تړل افضل او غوره دي.

وعن أبي حنيفة رَحِمَهُ اللّٰهُ الخ له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دى چې تر ميقات احرام مخكې كول هغه وخت افضله دي چې كله محرم ته پرخپل ځان دا قابو (او كنټرول) وي چې تر ميقات مخكې به په يو ممنوع كار كې مبتلا نه سي، چې د هغه په وجه پر هغه دم او نور واجب سي، كنې دا مخكې والي به د هغه لپاره د سر درد جوړ سي.

## د ميقات د اوسېدونكو لپاره د ميقات حكم

وَمَنْ كَانَ دَاخِلَ الْمِيْقَاتِ فَوَقْتُهُ الْحِلُّ او څوك چې په ميقات كې دننه وي نو د هغه ميقات حِل دى مَعْنَاهُ الْحِلُّ الَّذِيْ بَيْنَ الْمَوَاقِيْتِ وَبَيْنَ الْحَرَمِ د دې معنىٰ دا ده چې هغه حِل كوم چې د ميقاتونو او د حرم په مېنځ كې دى لِأَنَّهُ يَجُوْزُ إِحْرَامُهُ مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهِ ځكه چې د هغه لپاره له خپل كور څخه احرام تړل جائز دي وَمَا وَرَاءَ الْمِيْقَاتِ إِلَى الْحَرَمِ

مَكَانٌ وَاحِدٌ او د میقات له دننه څخه تر حرمه پورې یو ځای دی (یعنې له دننه میقات څخه واخله تر حرمه پورې دې ټولې سیمې ته حل ویل کیږي).

**اللغات:** ﴿وقت﴾ میقات. ﴿حل﴾ د حرم او میقات په مینځ کې واقع سیمې ته او دننه میقات ته حل ویل کیږي.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې کوم سړی د میقات اوسېدونکي وي، د هغه میقات یعنې د احرام د تړلو ځای حل دی. دلیل دا دی چې مخکې تېر سو چې د حج یا د عمرې کونکي لپاره له خپل وطن څخه احرام تړل جائز دي، او څرنګه چې د هغه وطن میقات دی، نو ځکه به د هغه لپاره له میقات یعنې له حل څخه احرام تړل جائز وي.

## د مکې د خلکو لپاره د میقات حکم

وَمَنْ كَانَ بِمَكَّةَ او څوک چې په مکه کې وي فَوَقْتُهُ فِي الْحَجِّ الْحَرَمُ نو د هغه میقات په حج کې حرم دی وَفِي الْعُمْرَةِ الْحِلُّ او په عمره کې حل دی لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] أَمَرَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُحْرِمُوا بِالْحَجِّ مِنْ جَوْفِ مَكَّةَ ځکه نبي ﷺ خپلو صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم ته (دا) حکم کړی وو چې هغوی دې د حج احرام په مکه کې دننه وتړي وَأَمَرَ أَخَا عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنْ يُعْمِرَهَا مِنَ التَّنْعِيمِ او د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورور ته یې (دا) حکم کړی وو چې په عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دې له تنعیم څخه عمره وکړي وَهُوَ فِي الْحِلِّ او تنعیم په حل کې دی وَلِأَنَّ أَدَاءَ الْحَجِّ فِي عَرَفَةَ او په دې وجه (هم) چې حج په عرفات کې اداء کیږي وَهِيَ فِي الْحِلِّ او عرفات په حل کې دی فَيَكُونُ الْإِحْرَامُ مِنَ الْحَرَمِ لِيَتَحَقَّقَ نَوْعُ سَفَرٍ لهذا د حج احرام به له حرم څخه وي چې یو ډول سفر ثابت سي وَأَدَاءُ الْعُمْرَةِ فِي الْحَرَمِ او عمره په حرم کې اداء کیږي فَيَكُونُ الْإِحْرَامُ مِنَ الْحِلِّ لِهَذَا نو د عمرې احرام به په دې وجه له حل څخه وي إِلَّا أَنَّ التَّنْعِيمَ أَفْضَلُ خو (له تنعیم څخه احرام تړل) افضل دي لِوُرُودِ الْأَثَرِ بِهِ ځکه په دې باره کې حدیث راغلی دی. والله أعلم

**اللغات:** ﴿جوف﴾ مینځ، (دننه). ﴿أثر﴾ د صحابي قول ته ویل کیږي، خو دلته ځنې مراد حدیث دی.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی چې کوم سړی په مکه کې اوسیږي، هغه که د مکې استوګن وي، یا د یو څو وخت لپاره په مکه کې مقیم وي، نو د حج کولو په صورت کې د هغه میقات حرم دی، یعنې چیرې چې د حرم په حدودو کې وغواړي، هلته دې احرام وتړي. او د عمرې کولو په صورت کې د هغه میقات حل دی، یعنې که د عمرې احرام تړل وغواړي، نو د حرم له حدودو څخه دې ووځي، او احرام دې وتړي.

**دلیل:** دا دی چې د حجة الوداع پر موقع نبي ﷺ صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم ته وفرمایل: "په تاسو کې چې کوم چا د ځان سره هدي نه وي راوستې، هغه دې عمره وکړي او ځان دې حلال کړي"، نو هغوی همداسې وکړل. بیا چې کله د ترویې ورځ سوه (یعنې د ذی الحجې اتمه ورځ سوه)، نو نبي ﷺ صحابه وو ته حکم وکړی: "چې په مکه کې دننه احرام وتړئ"، هغوی ته یې له مکې څخه دباندې د وتلو حکم نه وکړی، نو له دې څخه معلومه سوه چې څوک په مکه کې وي، هغه ته په مکه

[1] تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب: ٦٢، ٧٨، ومسلم في كتاب الحج، باب وجوه الاحرام، حديث رقم: ١٣٩، و ابو داؤد في كتاب المناسك، باب: ٢٣.

کي د حج احرام تړل جائز دي، او ښکاره دي وي چي حضرت عائشي رضي الله عنها هم د نورو صحابه وو رضي الله عنهم سره د عمرې احرام تړلی وو، خو هغې ته حيض راغلی. نو نبي ﷺ حکم وکړی چي د عمرې احرام ختم کړه(ليري کړه)، بيا چي کله د ترويې ورځ راغله، نو د حج د احرام حکم يې ورته وکړی، کله چي حج ختم سو، نو عائشي رضي الله عنها ووېل: يارسول الله ﷺ! تنطلقون بحجة وعمرة و أنطلق بحج فأمر عبد الرحمن بن أبي بكر أن يخرج معها إلى التنعيم فاعتمرت بعد الحج. (يعني حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ووېل: اې رسول الله ﷺ! تاسو او صحابه وو خو حج او عمره دواړه وکړه اوس روانيږئ، او ما فقط حج وکړی روانيږم، نو نبي ﷺ د حضرت عائشي رَحِمَهُ الله دا غوښتنه پوره کړه، او د هغې ورور عبدالرحمن ﷺ ته يې حکم وکړی چي هغه دي په خپل خور له تنعيم څخه عمره وکړي، يعني له تنعيم څخه دي د عمرې احرام په وتړي)، او تنعيم د حرم له حدودو څخه دباندي په حل کي دی، له دې څخه معلومه سوه چي عمره کونکي به د عمرې لپاره حِل ته ځي، او احرام به تړي، بيا به حرم ته راځي او د عمرې ارکان به اداء کوي.

ولأن أداء الحج الخ دويم دليل دا دی چي د حج يا د عمرې د اداء کولو لپاره يو څه اندازه سفر متحقق کېدل پکار دي، اوس تاسو ووېل چي حج د عرفات په ميدان کي اداء کيږي، او عرفات حل دی، نو ځکه به د حج احرام په حرم کي تړل کيږي چي يو قسم سفر متحقق سي، يعني د احرام په حالت کي له حرم څخه حل ته تلل متحقق سي، او څرنګه چي عمره صرف په حرم کي اداء کيږي، نو ځکه به د عمرې احرام په حل کي تړل کيږي، چي يو قسم سفر متحقق سي، هسي خو د عمرې احرام په ټوله حل کي هر ځای تړل جائز دی، لېکن په تنعيم کي تړل افضله دي، چي په پوره توګه د نبي ﷺ د أثر پيروي وسي، ځکه نبي ﷺ حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته له تنعيم څخه د عمرې د احرام تړلو حکم کړی وو. والله أعلم بالصواب



# بَابُ الإِحْرَامِ

## (دا) باب د احرام (په بیان کې) دی

**تشریح:** صاحب د هدایې چې کله د میقات له بیان څخه فارغ سو، نو اوس هغه شی بیانوي کوم چې پر میقات لازم کیږي، یعني احرام، نو څرنګه چې پر میقات احرام تړل واجب دي، نو ځکه تر میقات وروسته د سملستي د احرام احکام او مسئلې بیانوي.

ښکاره دې وي چې إحرام د افعال د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ یې ده: په حُرمت کې داخلېدل، او اصطلاحي معنیٰ یې ده: د حج یا عمرې په نیت سره یو څو مباحات (رواشیان) پر ځان حرامول.

### تر احرام مخکې د غسل حکم

وَإِذَا أَرَادَ الإِحْرَامَ اغْتَسَلَ أَوْ تَوَضَّأَ او کله چې د احرام د تړلو اراده وکړي نو غسل دې وکړي یا دې اودس وکړي وَالْغُسْلُ أَفْضَلُ او غسل افضله دی لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● اغْتَسَلَ لِإِحْرَامِهِ ځکه روایت سوی دی چې نبي ﷺ د خپل احرام لپاره غسل وکړی إِلَّا أَنَّهُ لِلتَّنْظِيفِ خو دا غسل د پاکۍ حاصلولو لپاره دی حَتَّى تُؤْمَرَ بِهِ الْحَائِضُ تر دې چې حائضې ښځې ته به (هم) د غسل حکم کیږي وَإِنْ لَمْ يَقَعْ فَرْضًا عَنْهَا که څه هم په دې غسل سره د هغې فرض غسل نه اداء کیږي فَيَقُومُ الْوُضُوءُ مَقَامَهُ لهذا اودس به هم د غسل قائم مقام وي كَمَا فِي الْجُمُعَةِ لکه څرنګه چې په جمعه کې اودس د غسل قائم مقام دی لَكِنَّ الْغُسْلَ أَفْضَلُ خو غسل کول افضله دي لِأَنَّ مَعْنَى النَّظَافَةِ فِيهِ أَتَمُّ ځکه چې په غسل کې د پاکۍ معنیٰ پوره ده وَلِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اخْتَارَهُ او په دې وجه (هم) چې نبي ﷺ (په خپله) غسل اختیار کړی دی.

**اللغات:** ﴿تنظیف﴾ د تفعیل مصدر دی: پاکول، پاکي حاصلول. ﴿نظافة﴾ پاکي، ﴿أتم﴾ اسم تفضیل دی: زیات بشپړ، زیات پوره.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې کله یو سړی د حج یا د عمرې د احرام د تړلو اراده وکړي، نو هغه ته پکار ده چې غسل وکړي، که غسل نه سي کولای، نو اودس خو دې حتماً وکړي، خو افضل او غوره دا ده چې غسل وکړي، ځکه له نبي ﷺ څخه هم تر احرام تړلو مخکې غسل را نقل سوی دي، نو د نبي ﷺ د پیروي کولو لپاره هم حاجي ته غسل کول پکاري دي، دویمه خبره دا ده چې غسل واجب یا فرض نه دی، بلکې د دې تعلق د نظافت او پاکي حاصلولو سره دی، نو په دې وجه د اوداسه په نسبت غسل زیات غوره دی (ځکه چې په غسل کې د اوداسه په نسبت زیاته پاکي سته)، او څرنګه چې دا غسل د پاکي حاصلولو لپاره کیږي، نو که یوه حائضه ښځه د احرام د تړلو اراده وکړي، نو هغې ته د دې غسل تلقین ور

---

● تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء في الإغتسال عند الاحرام، حديث رقم: ۸۳۰.

کول پکاري دي، او د هغې په حق کې هم دا د نظافت غسل غوره دی، که څه هم په دې سره د هغې فرض غسل نه اداء کیږي، ځکه چې فرض غسل د وینې تر بندېدلو وروسته لازمیږي، او دا غسل تر وینو بندېدلو مخکې دی. نو ځکه به هغه صرف د نظافت او پاکۍ لپاره دا غسل کوي.

## د احرام جامې (کپړې)

قَالَ: وَلَبِسَ ثَوْبَيْنِ جَدِيْدَيْنِ أَوْ غَسِيْلَيْنِ: إِزَارًا وَرِدَاءً امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: او احرام تړونکي به دوې (داسې) جامې واغوندي چې دواړې به نوې وي يا دواړې به پرېولل سوې وي: يو لنګ او بل څادر (پټو) لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● اِئْتَزَرَ وَارْتَدَى عِنْدَ إِحْرَامِهِ ځکه چې نبي ﷺ د خپل احرام په وخت کې لنګ تړلی وو او څادر يې اغوستی وو وَلِأَنَّهُ مَمْنُوْعٌ عَنْ لُبْسِ الْمَخِيْطِ او په دې وجه (هم) چې محرم له ګنډل سوو جامو څخه منع سوی دی وَلَا بُدَّ مِنْ سَتْرِ الْعَوْرَةِ وَدَفْعِ الْحَرِّ وَالْبَرْدِ او عورت (ستر) پټول او ګرمي او يخ ليري کول ضروري دي وَذٰلِكَ فِيْمَا عَيَّنَّاهُ او دا خبره په هغه صورت کې حاصلیږي کوم چې موږ متعين کړی وَالْجَدِيْدُ أَفْضَلُ او نوې جامې (اغوستل) افضله دي لِأَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَى الطَّهَارَةِ ځکه چې دا طهارت ته زيات نژدې دي.

**اللغات:** ﴿غسيلين﴾ تثنيه د غَسِيْلٌ ده پر وزن د فَعِيْلٌ: پرېولل سوی، ﴿إزار﴾ لنګ، ﴿رداء﴾ څادر (پټو)، ﴿التزر﴾ د افتعال ماضي ده: لنګ تړل، ﴿ارتدیٰ﴾ د افتعال ماضي ده: څادر پر اوږه کول (د احرام څادر اغوستل)، ﴿مخيط﴾ ګنډل سوی، ﴿عورة﴾ د پټولو ځای، عورت.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې محرم دې تر غسل وروسته د احرام دوې جامې لنګ او څادر واغوندي، هغه دواړې جامې که نوې وي او بالکل پرېولل سوې نه وي، او که زړې پرېولل سوې وي، لنګ يعني إزار خو به له نامه څخه تر زنګونو پورې وي، او څادر به داسې وي چې پر شا او دواړو اوږو او سينه باندې راسي، دليل دا دی چې نبي ﷺ هم په احرام کې همدغه دوې جامې استعمال کړي دي، او عقلي دليل دا دی چې د محرم لپاره ګنډل سوي جامې اغوستل ممنوع دي، او دا خبره هم تسليم سوې ده چې ګرمي او يخ ليرې کول هم ضروري دي، نو دا دواړه خبرې په هغه صورت کې حاصلېدای سي، کوم چې موږ بيان کړی، يعني چې لنګ او څادر دواړه استعمال کړي، ځکه چې په دې صورت کې له ګنډل سوو جامو څخه خلاص سو، او عورت هم پټ سو، او تر څه اندازې پورې له ګرمۍ او يخ څخه هم وژغول سو.

والجديد أفضل الخ فرمايي چې د احرام د جامو لپاره که څه هم پرېولل سوې جامې کافي دي، خو افضل نوې جامې اغوستل دي، ځکه نوې جامې پاکۍ ته زياتې نژدې وي، ځکه چې تر اوسه پر هغه يو نجاست هم لګېدلی نه وي.

## تر احرام مخکې د عطر لګولو حکم

قَالَ: وَمَسَّ طِيْبًا امام قدوري فرمايي: چې محرم دې عطر ولګوي إِنْ كَانَ لَهُ که د هغه سره عطر وي وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يُكْرَهُ إِذَا تَطَيَّبَ بِمَا يَبْقَى عَيْنُهُ بَعْدَ الْإِحْرَامِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې داسې عطر لګول مکروه

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب ما يلبس المحرم من الثياب، حديث رقم: ۱۵۴۵.

دي چي د هغه عين (ذات) تر احرام وروسته هم پاته سي وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللهُ همدا قول د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دی لِأَنَّهُ مُنْتَفِعٌ بِالطِّيبِ بَعْدَ الْإِحْرَامِ ځکه چي دا سړی به تر احرام وروسته هم له عطرو څخه نفع حاصلونکی وي وَوَجْهُ الْمَشْهُورِ حَدِيثُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او د مشهوره قول دليل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی قَالَتْ: كُنْتُ أُطَيِّبُ [1] رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِإِحْرَامِهِ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي: "ما به پر نبي ﷺ د احرام د تړلو په خاطر عطر لګول مخکي تردې چي نبي ﷺ احرام وتړي (يعني تر احرام تړلو مخکي)" وَلِأَنَّ الْمَمْنُوعَ عَنْهُ التَّطَيُّبُ بَعْدَ الْإِحْرَامِ او په دې وجه (هم) چي ممنوع خو تر احرام وروسته عطر لګول دي وَالْبَاقِي كَالتَّابِعِ لَهُ او (مخکي) پاته کېدونکي عطر د بدن د تابع په ډول دي لِاتِّصَالِهِ بِهِ ځکه چي هغه د بدن سره متصل (او مونښتي) وي بِخِلَافِ الثَّوْبِ لِأَنَّهُ مُبَايِنٌ عَنْهُ په خلاف د جامو ځکه چي جامې له بدن څخه جلا وي.

**اللغات:** ﴿طيب﴾ خوشبويي، عطر. ﴿تطيب﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: عطر لګول. ﴿منتفع﴾ د انفعال اسم فاعل دی: فايده اخيستونکی. ﴿مباين﴾ د مفاعلې اسم فاعل دی: جلا، بېل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي زموږ په نېز تر احرام تړلو مخکي د حج يا د عمرې د اراده لرونکي سړي لپاره عطر لګول صحيح او جائز دي، که څه هم تر احرام تړلو وروسته د عطرو د ښه بوی او وړم اثر پاته سي، لېکن د امام محمد، امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دا دی چي که تر احرام تړلو وروسته د محرم پر بدن د عطرو عين پاتېدی، نو داسي عطر لګول مکروه دي (لکه مشک او خنډ (ګاته) عطر).

**د ليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چي په دې صورت کي به دا سړی تر احرام وروسته هم له خوشبويي او عطرو څخه فايده اخيستونکی شمارل کيږي، او تر احرام وروسته له خوشبويي څخه فايده اخيستل حرام او ناجائز دي.

**زموږ دليل:** دا دی چي له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه د نبي ﷺ پر سپېڅلي بدن عطر لګول ثابت دي، او په يوه بل روايت کي ذکر دي چي دا عطر به دومره زورړو او اثر لرونکي وو: كأني أنظر وبيص الطيب في مفرق رسول الله ﷺ وهو محرم. (يعني حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به فرمايل چي ما به د نبي ﷺ د سر د ورېښتانو په لاره کي د احرام تر تړلو وروسته (هم) د عطرو ځلا ليدله)، له دې حديث څخه معلوميږي چي د نبي ﷺ پر سپېڅلي بدن چي به کوم عطر لګېدل هغه به ګاته او سخت ول، او د هغه اثر به تر ډېره وخته پوري پاته وو، او له دې حديث څخه دا خبره هم ښکاره کيږي چي تر احرام مخکي داسي ګاته عطر لګول مکروه يا ممنوع نه دي چي اثر يې تر احرام وروسته هم پاته وي.

ولأن الممنوع عنه الخ عقلي دليل دا دی چي په اصل کي خو تر احرام وروسته عطر لګول ممنوع دي، لېکن کوم عطر چي تر احرام مخکي لګېدلي وي، او تر احرام وروسته د هغه اثر باقي وي، هغه به تابع وي، ځکه چي هغه د بدن سره مښتي وي، او د تابع به هيڅ اعتبار نه کيږي.

---

[1] أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب الطيب عند الإحرام، حديث رقم: ١٥٣٩.

بخلاف الخ د دې په خلاف که يو سړی تر احرام مخکې کنډل سوي جامې (کالي) واغوندي، او بيا تر احرام مخکې هغه جامې نه وکاږي، بلکې د هغو سره احرام وتړي، نو دا ممنوع دي، او که ويې نه کاږي نو د دې جامو په وجه به پر محرم د جنايت جزاء واجبيږي، ځکه چې عطر خو د انسان د بدن سره متصل او موښتي وي، نو ځکه هغه د محرم د بدن تابع وي، ليکن جامې له بدن ځخه جلا وي، نو جامې به نه تابع کيږي، او کله چې جامې نه تابع کيږي، نو د جامو حکم به هم جلا او مستقل وي، او تر احرام وروسته به کنډل سوي جامې اغوستل حرامي وي.

## تر احرام مخکې د دوو رکعتونو حکم

قَالَ: وَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ فرمايي: احرام ترونکي دي (تر احرام تړلو مخکې) دوه رکعته لمونځ وکړي لِمَا رَوَىٰ جَابِرٌ رَضِيَ اللهُ تَعَالَىٰ ځکه حضرت جابر ﷺ روايت کړی دی أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] صَلَّىٰ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ عِنْدَ إِحْرَامِهِ چې نبي ﷺ په ذو الحليفه کې د احرام د تړلو په وخت کې دوه رکعته لمونځ کړی وو.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې کوم سړي د احرام د تړلو اراده لري، هغه ته پکار ده چې تر غسل يا اودس کولو وروسته او تر احرام تړلو مخکې دوه رکعته لمونځ وکړي، ځکه کله چې نبي ﷺ له مدينې منورې ځخه خپل د حج سفر شروع کړی، او ذوالحليفه ته را ورسېدی (کوم چې د مدينې د خلکو ميقات دی)، نو تر احرام مخکې يې دوه رکعته لمونځ وکړی، لهذا امتيانو ته هم پکار ده چې د نبي ﷺ د عمل اقتداء وکړي، يعني چې کله د احرام د تړلو اراده ولري، نو تر هغه مخکې دې دوه رکعته لمونځ وکړي.

## د احرام دعاء

قَالَ: وَقَالَ: اَللّٰهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِي وَتَقَبَّلْهُ مِنِّي فرمايي: چې احرام ترونکي دي ووايي: اې الله! زه د حج اراده لرم، هغه زما لپاره آسانه کړه او زما له طرفه هغه قبول کړه لِأَنَّ أَدَاءَهَا فِي أَزْمِنَةٍ مُتَفَرِّقَةٍ وَأَمَاكِنَ مُتَبَايِنَةٍ ځکه چې د حج اداء کول په مختلفه زمانو او مختلفه (او ليري) ځايونو کې کيږي فَلَا يَعْرَىٰ عَنِ الْمَشَقَّةِ عَادَةً لهذا په عامه توګه به له تکليف ځخه خالي نه وي فَيَسْأَلُ التَّيْسِيرَ نو ځکه به احرام ترونکی د آسانه کېدلو غوښتنه کوي وَفِي الصَّلَاةِ لَمْ يُذْكَرْ مِثْلُ هٰذَا الدُّعَاءِ او په لمانځه کې داسې دعاء ذکر سوې نه ده لِأَنَّ مُدَّتَهَا يَسِيرَةٌ ځکه چې د لمانځه د اداء کولو موده ډېره لږ ده وَأَدَاءُهَا عَادَةً مُتَيَسِّرٌ او د هغه اداء کول په عامه توګه آسانه دي.

**اللغات:** ﴿يسّر﴾ د تفعيل امر دی: آسانه کول، ﴿أزمنة﴾ جمع د زمان دی: وخت، زمانه، ﴿أماكن﴾ جمع د مکان ده: ځای، ﴿لايعرى﴾ د فتح مضارع نفي ده: خالي کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې امام قدوري رَحِمَهُ الله محرم ته د حج د نيت طريقه ورښيي، فرمايي: محرم چې کله احرام وتړي، نو که يې صرف د حج احرام تړلی وي، نو داسې نيت دې وکړي چې: "اې الله! ما په دې احرام سره د حج اراده کړې ده، ته زما لپاره حج آسانه کړه، او زما له طرفه دا قبول کړه". د آسانۍ دعاء خو به ځکه کوي چې حج په يوه وخت

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسک، باب وقت الاحرام، حديث رقم: ١٧٧٠.

کي نه اداء کيږي، بلکې په څو ورځو کې اداء کيږي، او په ليرې ليرې او بېلابېلو ځايو کي اداء کيږي، او ښکاره ده چې په دومره ډېر وخت او ليرې بېلابېلو ځايو کي صرف يو عبادت اداء کول څه معمولي کار نه دی، نو د لوی څښتن ﷻ څخه د آسانی او سهولت خواست کول پکار دي، او د قبوليت خواست هم کول پکار دي، ځکه چې د هر عبادت قبليدل ضروري دي، نو ځکه به د عبادت په پيل د قبوليت دعاء هم کوي چې محنت ضايع نه سي.

ولی الصلاة الخ فرمايي چې په لمانځه کي او د لمانځه په نيت کي يوه داسې دعاء او خواست نسته لکه په حج کي چې ذکر سوه، وجه دا ده چې فرضي لمونځ په ډېر لږ وخت کي اداء کيږي چې ډېر وخت واخلي تر لسو دقيقو زيات وخت نه اخلي، دويم دا چې لمونځ په يوه وخت او په يوه ځای کي اداء کيږي، نو په عامه توګه د لمانځه اداء کول د خلکو لپاره ستونزمن او سخت نه وي، نو ځکه به د لمانځه په پيل کي د داسې دعاء هيڅ ضرورت نه وي.

## د تلبيه د شروع کولو وخت

قَالَ: ثُمَّ يُلَبِّيْ عَقِيْبَ صَلَاتِهِ فرمايي: بيا به محرم (احرام تړونکي) تلبيه ووايي تر خپل لمانځه وروسته لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَبَّى فِيْ دُبُرِ صَلَاتِهِ[1] ځکه روايت سوی دی چې نبي ﷺ تر خپل لمانځه وروسته تلبيه وويله وَإِنْ لَبَّى بَعْدَمَا اسْتَوَتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ او که هغه تلبيه ووايي وروسته تر دې چې پر هغه د ده سپرلي برابره سي (مطلب دا که هغه پر سپرلي سپوري سي بيا تلبيه ووايي) جَازَ نو (دا هم) جائز دي وَلٰكِنَّ الْأَوَّلَ أَفْضَلُ لِمَا رَوَيْنَا لېکن اول (يعني تر لمانځه وروسته تلبيه ويل) افضله دي د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی.

**اللغات:** ﴿يلبي﴾ د تفعيل مضارع ده: تلبيه ويل، ﴿دبر﴾ وروسته، ﴿استوت﴾ د استفعال ماضي ده: سيده کېدل، برابرېدل.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې د حج يا د عمرې د احرام د تړونکي لپاره پکار ده چې له دوو رکعتو څخه وروسته سمدستي تلبيه ووايي، ځکه چې نبي ﷺ تر لمانځه وروسته سمدستي تلبيه ويلې وه، لهذا داسې کول افضل دي، لېکن که يو سړی تر لمانځه وروسته او پر سپرلي تر سپرېدلو وروسته تلبيه ووايي نو هيڅ حرج نسته، لېکن د نبي ﷺ په اقتداء کي تر لمانځه وروسته فوراً ويل پکار دي.

## د مفرد لپاره د تلبيې حکم

وَإِنْ كَانَ مُفْرِدًا بِالْحَجِّ يَنْوِيْ بِتَلْبِيَتِهِ الْحَجَّ او که دا سړی فقط د حج اراده کونکی وي نو په خپله تلبيه سره به (فقط) د حج نيت کوي لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ ځکه چې حج يو عبادت دی وَالْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ او د اعمالو (او عبادتونو) دار و مدار پر نيتونو دی.

**اللغات:** ﴿مفرد﴾ افراد کونکی، مفرد بالحج هغه چا ته ويل کيږي چې په يوه احرام سره يوازې حج کوي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو سړی مفرد بالحج وي يعني د هغه اراده فقط د حج کولو وي، د عمرې کولو اراده يې نه وي، نو هغه دې په خپل تلبيه سره فقط د حج نيت وکړي، ځکه حج يو عبادت دی، او د عباداتو دار ومدار او صحت پر نيت موقوف وي.

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء متى أحرم النبي ﷺ؟ حديث رقم: ۸۱۹.

## د تلبيې الفاظ او په دې کې د کمې يا زياتوب حکم

وَالتَّلْبِيَةُ أَنْ يَقُوْلَ او تلبيه دا ده چې محرام (داسې) ووايي لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ (چې) زه حاضريم اې الله ! حاضريم لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ حاضر يم ستا هيڅ شريک نشته حاضر يم إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ ټول حمدونه او نعمتونه ستا لپاره دي وَالْمُلْكَ او باچاهي (هم ستا لپاره ده) لَا شَرِيْكَ لَكَ ستا هيڅ شريک نشته وَقَوْلُهُ: إِنَّ الْحَمْدَ بِكَسْرِ الْأَلِفِ لَا بِفَتْحِهَا او (په متن کې) د ماتن (دا) قول: إِنَّ الْحَمْدَ د الف په کسره سره دی نه په فتحه سره لِيَكُوْنَ اِبْتِدَاءً لَا بِنَاءً چې په حمد ابتداء وسي، (پر مخکې) بناء نه سي (يعني چې دا جلا جمله سي، د مخکې جملې سره متصله نه سي) إِذِ الْفَتْحَةُ صِفَةُ الْأُوْلٰى ځکه چې فتحه د اولې کلمې صفت کيږي (يعني د فتحې په صورت کې به دا جمله د اولې جملې صفت جوړه سي) وَهُوَ إِجَابَةٌ لِدُعَاءِ الْخَلِيْلِ صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِ او دا کلام (يعني لبيك... تر آخره پورې) د حضرت ابراهيم عليه السلام د دعاء د قبوليت جواب دی عَلٰى مَا هُوَ الْمَعْرُوْفُ فِي الْقِصَّةِ لکه په قصه کې چې دا خبره مشهوره ده وَلَا يَنْبَغِيْ أَنْ يُخِلَّ بِشَيْءٍ مِنْ هٰذِهِ الْكَلِمَاتِ او مناسب نه دي چې له دې کلماتو څخه يو شی کم کړي لِأَنَّهُ هُوَ الْمَنْقُوْلُ بِاتِّفَاقِ الرُّوَاةِ ځکه چې دا کلام د راويانو په اتفاق سره رانقل سوی دی فَلَا يَنْقُصُ عَنْهُ نو له دې څخه به (يو شی) نه کموي وَلَوْ زَادَ فِيْهَا جَازَ او که په دې کې اضافه وکړي (يعني څه کلمې زياتې کړي) نو جائز دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيْ رِوَايَةِ الرَّبِيْعِ رَحِمَهُ اللهُ عَنْهُ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله د ربيع د روايت مطابق هُوَ اعْتَبَرَهُ بِالْأَذَانِ وَالتَّشَهُّدِ امام شافعي رَحِمَهُ الله تلبيه پر اذان او تشهد قياس کړې ده. مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ ذِكْرٌ مَنْظُوْمٌ په دې اعتبار سره چې تلبيه (هم) منظوم ذکر دی وَلَنَا أَنَّ أَجِلَّاءَ الصَّحَابَةِ كَابْنِ مَسْعُوْدٍ وَابْنِ عُمَرَ وَأَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُمْ زَادُوْا عَلَى الْمَأْثُوْرِ او زموږ دليل دا دی چې غټو صحابه وو لکه ابن مسعود، ابن عمر او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُم پر منقولې تلبيې اضافه کړې ده وَلِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ الثَّنَاءُ وَإِظْهَارُ الْعُبُوْدِيَّةِ او په دې وجه (هم) چې د تلبيې مقصد د الله تعالىٰ ثنا او د بندګۍ ښکاره کول دي فَلَا يُمْنَعُ مِنَ الزِّيَادَةِ عَلَيْهِ نو پر دې به له اضافې کولو څخه منع نه کيږي.

**اللغات:** ﴿لبيك﴾ زه ستا لپاره حاضر يم، ﴿حمد﴾ تعريف، ﴿الملك﴾ سلطنت، باچاهي، بادشاهي. ﴿لا ينقص﴾ د نصر د باب مضارع منفي ده: کمول، ﴿مأثور﴾ منقول (رانقل سوي دعاګانې)، ﴿عبودية﴾ بنده کېدل، غلام کېدل.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې متن کې د تلبيې کلمات بيانوي، نو د تلبيې لپاره سنت کلمې دا دي: لبيك اللّٰهم لبيك، لبيك لا شريك لك لبيك، إن الحمد والنعمة لك والملك لا شريك لك، صاحب د هدايې دلته يو وضاحت کړی دی هغه دا چې تر الحمد مخکې د إنّ حرف د الف او د همزې په کسره سره دی، ځکه چې د کسرې په صورت کې به دا جمله د حمد لپاره مستقله سي، لېکن که د الف په فتحه سره أنّ وويل سي، نو دا جمله به د حمد لپاره مستقله نه سي، او پر مخکې به مبني سي، او ښکاره ده چې مستقل حمد له غير مستقل حمد څخه افضل او غوره دی، پاتې سوه دا

خبره چې تلبيه څه شي ده؟، په حج کي ولې داخله سوه، او د دې قصه څه ده؟ نو په دې لړ کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي چې دا ټوله جمله د حضرت ابراهيم عليه السلام د خوښتل سوي دعاء د قبوليت جواب دی، او د دې مشهوره قصه دا ده چې کله حضرت ابراهيم عليه السلام د کعبې شريفې له تعمير څخه فارغ سو، نو هغه ته د الله له طرفه دا حکم وسو چې خلکو ته د حج کولو دعوت ورکړه، نو ابراهيم پر جبل ابو قبيس وختی، او خلکو ته يې د کعبې د حج دعوت ورکړی، نو الله تعالیٰ په خپل قدرت سره دا آواز تر قيامته پوري د راتلونکو خلکو غوږو ته ورسوی، تر دې چې د پلرونو شاګلتو او د مندو رحمونو ته هم دا آواز ورسېدی، نو چا چې په هغه وخت کي څو واره پر دې آواز لبيک ويلي وي، هغه به دې دنيا ته په راتګ سره هغومره حجونه کوي.

ولا ينبغي الخ فرمايي چې د تلبيې له کلمو څخه يوه کلمه هم کمول صحيح او مناسب نه دي، ځکه چې دا کلمې له ټولو راويانو څخه يو ډول رانقل سوي دي، لهذا په دې کي به هيڅ ډول کمي مناسب نه وي، هو! که يو څوک پر دې کلمو اضافه وکړي، نو زموږ په نېز هيڅ حرج نسته، او د اضافې او زياتوب اجازه سته، ليکن له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه د ربيع بن سليمان د روايت مطابق رانقل سوي دي چې د هغه په نېز نه کمي کول جائز دي، او نه زياتوب، په دې باره کي د هغه دليل قياس دی، هغه د تلبيې کلمې د اذان او د تشهد پر کلمو قياس کړي دي، يعني څرنګه چې د اذان او د تشهد کلمې په اتفاق د راويانو رانقل سوي دي، او په هغو کي هيڅ ډول کمي، زياتوب صحيح نه ده، همدارنګه د تلبيې کلمې هم په اتفاق د روايانو رانقل سوي دي، لهذا په هغو کي به هم کمي، زياتوب صحيح نه وي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چې له غټو صحابه وو لکه د ابن مسعود، ابن عمر او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه د تلبيې پر کلمو اضافه او زياتوب را نقل سوي دي، لکه څرنګه چې صاحب د بنايې ليکلي دي چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُم په خپله تلبيه کي دا اضافه کړې وه: "لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ بِيَدَيْكَ وَرُغْبَىٰ إِلَيْكَ"، او ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا اضافه کړې وه: "لَبَّيْكَ عَدَدَ التُّرَابِ"، له دې څخه معلومېږي چې په دې کلمو کي اضافه کول صحيح او جائز دي، او په دې کي هيڅ حرج نسته، عقلي دليل دا دی چې د دې کلمو مقصد د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء او د خپل بندګۍ اظهار کول دي، او ښکاره ده چې د نورو کلمو په اضافه کولو سره په دې مقصد کي نوره اضافه راځي، نو په دې حواله سره به هم د تلبيې په کلمو کې اضافه او زياتوب صحيح او جائز وي.

## د احرام د شروع کولو وخت

قَالَ: وَإِذَا لَبَّى فَقَدْ أَحْرَمَ امام قدوري فرمايي: چې کله هغه تلبيه ووايي نو محرم سو يَعْنِي إِذَا نَوَى يعني که هغه نيت وکړي لِأَنَّ الْعِبَادَةَ لَا تُتَأَدَّى إِلَّا بِالنِّيَّةِ ځکه چې له نيت څخه بغير عبادت نه اداء کيږي إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْهَا خو امام قدوري نيت نه دي ذکر کړی لِتَقَدُّمِ الْإِشَارَةِ إِلَيْهَا فِي قَوْلِهِ اللَّهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ ځکه چې مخکي د هغه په دې قول اللهم إني اريد الحج کي نيت ته اشاره وسوه.

**تشريح:** فرمايي چې د سړي د محرم کېدلو لپاره تلبيه او نيت دواړه ضروري دي، لهذا نه يو سړی فقط په تلبيه سره محرم کيږي، او نه صرف په نيت سره، نو ځکه فرمايي: که په نيت سره يو څوک تلبيه ووايي نو هغه محرم ګرځي، ځکه چې حج يو عبادت دی، او يو عبادت هم بغير له نيت څخه نه اداء کيږي، پاته سو دا سوال چې کله د عبادت د اداء

کولو لپاره نيت مهم دی، نو بيا امام قدوري رَحِمَهُ الله د نيت يادونه ولې نه وکړه؟ جواب دا دی چې مخکې د امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې عبارت: اللهم إني أريد الحج... الخ کې نيت ته هم اشاره وسوه (ځکه چې د أريد معنیٰ هم د نيت ده)، نو په دې وجه امام قدوري رَحِمَهُ الله جلا د نيت يادونه ضروري نه وګڼله.

## د احرام د شروع کولو لپاره څه شی ضروري دی؟

وَلَا يَصِيرُ شَارِعًا فِي الْإِحْرَامِ بِمُجَرَّدِ النِّيَّةِ او محض په نيت سره يو څوک د احرام شروع کونکی نه ګرځي مَا لَمْ يَأْتِ بِالتَّلْبِيَةِ تر څو چې تلبيه نه ووايي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّهُ عَقْدٌ عَلَى الْأَدَاءِ ځکه چې احرام يو عقد دی پر اداء فَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرٍ نو ځکه ذکر ضروري دی كَمَا فِي تَحْرِيمَةِ الصَّلَاةِ لکه د لمانځه په تحريمه کې (چې ضروري دی) وَيَصِيرُ شَارِعًا بِذِكْرٍ يُقْصَدُ بِهِ التَّعْظِيمُ او ګرځي (د احرام) شروع کونکی په (هر) هغه ذکر چې په هغه سره مقصد تعظيم وي سِوَى التَّلْبِيَةِ ماسوا له تلبيې څخه فَارِسِيَّةً كَانَتْ أَوْ عَرَبِيَّةً (هغه که ذکر) فارسي وي، که عربي هٰذَا هُوَ الْمَشْهُورُ عَنْ أَصْحَابِنَا رَحِمَهُمُ اللهُ تَعَالَىٰ زموږ له ملګرو څخه همدغه مشهور (روايت) دی وَالْفَرْقُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الصَّلَاةِ عَلَىٰ أَصْلِهِمَا او د صاحبينو پر قاعده د لمانځه او د حج په مينځ کې فرق دا دی أَنَّ بَابَ الْحَجِّ أَوْسَعُ مِنْ بَابِ الصَّلَاةِ چې د حج باب د لمانځه له باب څخه زيات وسيع (پراخ) دی حَتَّىٰ يُقَامَ غَيْرُ الذِّكْرِ مَقَامَ الذِّكْرِ تر دې چې (په حج کې) غير ذکر (هم) د ذکر (يعني د تلبيې) قائم مقام کيږي كَتَقْلِيدِ الْبُدْنِ لکه د بُدنې په غاړه کې طوق اچول (يعني که يو حاجي د حج څاروي ته محض طوق واچوي نو دا که څه هم غير ذکر دی لېکن بيا هم دا د تلبيې قائم مقام دی، او په دې سره هغه محرم ګرځي) فَكَذَا غَيْرُ التَّلْبِيَةِ وَغَيْرُ الْعَرَبِيَّةِ نو همداسې به له تلبيه او عربي څخه ماسوا (بل ذکر د تلبيې او ذکر قائم مقام کيږي).

**اللغات:** ﴿شارع﴾ شروع کونکی، ﴿مجرد﴾ نقط، محض، يوازې، ﴿تقليد﴾ د څاروي غاړې ته طوق يا رسۍ وراچول، ﴿أوسع﴾ زيات پراخ، ﴿البُدن﴾ څاروی، بُدنه (د حج څاروی).

**تشريح:** مخکې موږ وويل چې د حج د شروع کولو او د انسان د محرم کېدلو لپاره صرف تلبيه يا صرف نيت کافي نه دی، بلکې نيت او تلبيه دواړه ضروري دي، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که صرف نيت وسي، نو هم انسان محرم کيږي، هغه که تلبيه ووايي، که نه ووايي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دلته هم قياس دی، او حج پر روژه قياسوي فرمايي چې څرنګه د روژې د شروع کولو لپاره (او د صائم کېدلو لپاره) صرف نيت کافي دی، د بل شي ضرورت نسته، همدا بول به دلته هم نيت کافي وي، زموږ دليل دا دی چې احرام د داسې عبادت د اداء کولو لپاره تړل کيږي چې په هغه کې بېلابېل ارکان د مثال په توګه طواف، سعي، رمي او داسې نور شامل دي، نو څرنګه چې لمونځ پر بېلابېلو ارکانو مشتمل دی، او د هغه د شروع کولو لپاره له نيت څخه علاوه يو بل ذکر يعني تکبير تحريمه هم ضروري دی، همدارنګه به د حج د شروع کولو او د محرم کېدلو لپاره هم د نيت سره سره يو بل ذکر يعني تلبيه ضروري وي، لېکن د تلبيې رانقل سوي کلمې اداء کول يا په عربي کې تلبيه ويل ضروري نه دي، بلکې که يو سړی د تلبيې له کلماتو څخه علاوه يوه بله داسې

دعاء وکړي، چې په هغې کې د الله ﷻ حمد او ثناء او د خپل بندګۍ اظهار هم وي، نو داسې دعاء هم کافي ده، هغه که په عربي وي، یا په فارسي وي، همدا د حنفي فقهاؤ مشهور او معتمد قول دی.

و الفرق الخ دا عبارت د یو سوال جواب دی، هغه دا چې د امام صاحب په نیز په غیر عربي کې الله أکبر ویل یعني تحریمه تړل جائز وو (لکه په کتاب الصلاة کې چې تېر سو)، نو پر هغه باندې په قیاسولو سره به په غیر عربي کې تلبیه ویل هم جائز وي، لېکن د صاحبینو مسلک دا وو چې په غیر عربي کې تحریمه جائز نه ده، نو دلته د هغو په نیز په غیر عربي کې تلبیه څرنګه جائز سوه (حال دا چې دوی هم دلته احرام پر لمانځه قیاسوي)، نو د هغه جواب ورکوي چې د حج باب د لمانځه په مقابله کې زیات پراخ دی، او په حج کې غیر ذکر هم د ذکر قائم مقام ګرځي، لهذا که یو سړی د احرام په نیت سره د څاروي غاړې ته طوق ور واچوي، روان یې کړي، نو هغه په دې سره هم محرم کېږي، که څه هم هغه تلبیه ویلې نه وي، ځکه چې دلته ذکرِ قلبي (د زړه ذکر) پیدا سو، که څه هم ذکرِ لساني نسته، نو کله چې په حج کې غیر ذکر یعني طوق ور اچول د ذکر یعني د تلبیې قائم مقام ګرځي، نو له منقولې تلبیې څخه علاوه به بل ذکر خو په درجه اولیٰ د تلبیې قائم مقام ګرځي، هغه که په عربي وي، که په فارسي وي، لېکن په لمانځه کې دومره پراخي نسته، نو ځکه به په لمانځه کې تکبیر او عربي ضروري وي.

## د حج د ممنوعاتو بیان

قَالَ: **وَيَتَّقِي مَا نَهَى اللهُ تَعَالَى عَنْهُ** فرمایي: چې محرم به له هغو شیانو څخه ځان ساتي چې له هغو څخه الله تعالیٰ نهي کړې دي **مِنَ الرَّفَثِ وَالْفُسُوقِ وَالْجِدَالِ** (یعني) له رفث، فسوق او جدال څخه **وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى: فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ** [البقرة: ۱۹۷] او په دې باره کې اصل د الله تعالیٰ (دا) قول دی: چې په حج کې نه رفث سته، نه فسوق او نه جدال **فَهَذَا نَهْيٌ بِصِيغَةِ النَّفْيِ** نو دا د نفي په صیغه سره نهي دی **وَالرَّفَثُ الْجِمَاعُ أَوِ الْكَلَامُ الْفَاحِشُ أَوْ ذِكْرُ الْجِمَاعِ بِحَضْرَةِ النِّسَاءِ** او رفث یا جماع ده یا بدې خبرې (او سپکه وینا) ده یا د ښځو په حضور کې د جماع یادونه ده **وَالْفُسُوقُ الْمَعَاصِي** او له فسوق څخه مراد ګناوې (کول) دي **وَهُوَ فِي حَالِ الْإِحْرَامِ أَشَدُّ حُرْمَةً** او دا (ګناوې بیا) د احرام په حالت کې ډېر زیات حرمت لري **وَالْجِدَالُ أَنْ يُجَادِلَ رَفِيقَهُ** او جدال دا دی چې محرم د خپل ملګري سره نښته (او مباحثه) وکړي **وَقِيلَ: مُجَادَلَةُ الْمُشْرِكِينَ فِي تَقْدِيمِ وَقْتِ الْحَجِّ وَتَأْخِيرِهِ** او یو قول دا دی: چې له جدال څخه مراد د حج د وخت په تقدیم او تأخیر کې د مشرکینو سره نښته او (مباحثه) کول دي **وَلَا يَقْتُلُ صَيْدًا** او محرم به ښکار نه قتلوي **لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَلَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ** [المائدة: ۹۵] ځکه الله تعالی فرمایلي دي: "او تاسو د احرام په حالت کې ښکار مه وژنئ!".

**اللغات:** ﴿رفث﴾ جماع یا د جماع خبرې، ﴿فسوق﴾ بدکاري، ګناه، ﴿جدال﴾ جګړه، نښته، زیات بحث او تکرار کول، فساد جوړول، ﴿صید﴾ ښکار.

**تشریح:** فرمایي چې کله یو سړی احرام وتړي او د حج نیت وکړي، نو هغه ته پکار ده چې د هر ډول لغوه، چټلو (او پالتو) کارو څخه ځان وساتي، او له هغو ټولو شیانو څخه پرېز وکړي چې الله تعالیٰ په خپل دې قول کې له هغو څخه د

ځان ساتلو او د احتياط کولو حکم کړی دی: فمن فرض فيهن الحج فلا رفث ولا فسوق ولا جدال في الحج الخ. يعني محرم خو به نه رفث کوي، او نه به په فسوق او فجور کې مبتلا کيږي، او نه به د حج په دوران کې جنګ او نښته کوي. صاحب د هدايې فرمايي چې په فلا رفث الخ سره چې کوم حکم بيان سوی دی، هغه پر نهي او ممانعت محمول دی، نو ځکه به محرم له دې شيانو څخه په ډېر ټينګار ځان ژغوري.

والرفث الخ فرمايي چې له رفث څخه يا جماع مراد ده، لکه په دې آيت کې چې له رفث څخه جماع مراد ده: أحل لكم ليلة الصيام الرفث إلى نسائكم، يا له رفث څخه سپکه وينا، بدي او چټلې خبرې مراد دي، يا له دې څخه د ښځو په شتون کې د جماع ذکر کول مراد دي، او له فسوق څخه معاصي او ګناوې مراد دي، او د ګناه کار خو په هر حال کې حرام او ناجائز دی. لېکن د احرام په حالت کې نور هم درونډ جرم دی.

والجدال الخ فرمايي چې له جدال څخه مراد دا دي چې انسان خپل د حج د ملګري سره جنګ او نښته وکړي، يا له جدال څخه د حج د وخت په باره کې د مشرکينو سره جنګ او مباحثه کول مراد دي، صاحب د بنايې د علامه زمخشري رحمه الله په حواله سره ليکلي دي چې قريشو به په خپله زمانه کې د حج د ارکانو په باره کې د ټولو عربو مخالفت کوی، نورو عربو به په عرفات کې وقوف کوی، دوی به په مشعر حرام کې وقوف کوی، همدارنګه به مشرکينو په خپله زمانه کې دوه کاله په ذوالقعده کې حج کوی، او دوه کاله به يې په ذو الحجه کې حج کوی، لېکن الله تعالی حکم وکړی چې د دوی سره په دې باره کې بحث ومباحثه مه کوئ، تاسو خپله د ذو الحجې په مياشت کې حج کوئ. (بنايه ج:۴، ص: ۵۲)

ولا يقتل صيدا الخ فرمايي چې د محرم لپاره د وچې (مځکې) حيوان ښکارول هم ممنوع او حرام دي، ځکه په دې آيت ولا تقتلوا الصيد وأنتم حرم کې د وچې او لندې دواړو د حيوان ښکار حرام سوی دي، لېکن په بل آيت وحرم عليكم صيد البر ما دمتم حرما کې صرف د وچې مځکې ښکار حرام سوی دی، چې په هغه سره د دريابي او سمندري حيوان د ښکار حلالوالی ثابتيږي.

## د محرم لپاره د ښکار مسئله

وَلَا يُشِيرُ إِلَيْهِ وَلَا يَدُلُّ عَلَيْهِ او محرم به د ښکار و طرف ته نه اشاره کوي او نه به پر هغه دلالت کوي (يعني نه به د ښکار خبر بل چا ته ورکوي) لِحَدِيثِ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابو قتاده رضی الله عنه د حديث په وجه أَنَّهُ أَصَابَ حِمَارَ وَحْشٍ چې هغه وحشي خر ښکار کړی وَهُوَ حَلَالٌ په داسې حال کې چې هغه حلال وو (يعني ابو قتاده محرم نه وو) وَأَصْحَابُهُ مُحْرِمُونَ (لېکن) ملګري يې محرم وو فَقَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] لِأَصْحَابِهِ نو نبي ﷺ د هغه ملګرو ته وويل هَلْ أَشَرْتُمْ هَلْ دَلَلْتُمْ هَلْ أَعَنْتُمْ آيا تاسو (د وحشي خره و طرف ته) اشاره کړې وه؟، آيا تاسو ورښوولی وو؟ آيا تاسو مرسته کړې وه؟ فَقَالُوا: لَا نو هغوی وويل: چې نه! فَقَالَ: إِذًا فَكُلُوا نو نبي ﷺ وفرمايل: چې بيا يې نو خورئ! وَلِأَنَّهُ إِزَالَةُ الْأَمْنِ عَنِ الصَّيْدِ او په دې وجه چې (په دې حرکتونو سره) له ښکار څخه امن ليرې کول دي لِأَنَّهُ آمِنٌ بِتَوَحُّشِهِ وَبُعْدِهِ عَنِ الْأَعْيُنِ ځکه چې ښکار د خپل وحشي کېدلو او له سترګو څخه د ليرې کېدلو په وجه په أمن وي.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب تحريم الصيد للمأكول البرّي، حديث رقم: ۶۰، ۶۱، ۶۲، والترمذي في كتاب الحج، باب: ۲۰، حديث رقم: ۸۴۷.

**اللغات:** ﴿يدل﴾ دلالت کول، د دې باب په صله کې چې على راسي نو معنىٰ يې دا کيږي: خبر ورکول، ورښودل.
﴿حمار وحش﴾ وحشي خر، ځنګلي خر.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې څرنګه د محرم لپاره ښکار کول ممنوع دي، همدارنګه په بل ښکار کول، يا يو غير محرم ته د ښکار خبر ورکول، يا د ښکار و طرف ته اشاره کول، يا په ښکار کولو کې مرسته ورسره کول ټول ممنوع او حرام دي. دليل دا دی چې يو وار حضرت ابو قتاده ﷺ محرم نه وو، خو ملګري يې محرم وو، نو هغه د سفر په دوران کې وحشي خر ښکار کړی، او ټولو په ګډه وخوړی، نبي کريم ﷺ ته چې کله د دې خبر ورسېدی، نو نبي ﷺ د ابو قتاده له ملګرو څخه پوښتنه وکړه، چې آيا تاسو د ښکار و طرف ته اشاره کړې وه؟ آيا تاسو ابو قتاده ته د دې خبر ورکړی وو؟ آيا تاسو د دې په نيولو کې د هغه مرسته کړې وه؟ نو ټولو ورېل: لا يا رسول الله. (يعني اې د الله نبي! له دې شيانو څخه موږ يو شی هم کړی نه دی)، نبي ﷺ وفرمايل: نو بيا هيڅ حرج نشته، کوم څه چې مو وخوړل هغه حلال دي، او کوم څه چې پاته سول هغه هم وخورئ. له دې څخه معلومه سوه چې د محرم لپاره د ښکار و طرف ته اشاره کول، يا د هغه خبر ورکول ټول حرام او ممنوع دي، کنې نبي ﷺ به د دې شيانو په باره کې د ابو قتاده ﷺ له ملګرو څخه پوښتنه نه کولای.

## د احرام په حالت کې کومې جامې اغوستل ممنوع دي؟

قَالَ: وَلَا يَلْبَسُ قَمِيصًا وَلَا سَرَاوِيلَ وَلَا عِمَامَةً وَلَا خُفَّيْنِ فرمايي: چې محرم به نه قميص اغوندي، نه پرتوګ، نه لنګوټه او نه موزې إِلَّا أَنْ لَا يَجِدَ نَعْلَيْنِ فَيَقْطَعُهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ خو که څپلې پيدا نه کړي نو موزې به تر بجلکو لاندې پرېکوي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] نَهَى أَنْ يَلْبَسَ الْمُحْرِمُ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ ځکه روايت سوی دی چې نبي ﷺ محرم د دې شيانو له اغوستلو څخه منع کړی دی وَقَالَ فِي آخِرِهِ او د دغه روايت په آخر کې يې فرمايلي دي وَلَا خُفَّيْنِ إِلَّا أَنْ لَا يَجِدَ نَعْلَيْنِ فَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ او نه به موزې اغوندي خو دا چې څپلې پيدا نه کړي نو هغه به تر بجلکو لاندې پرېکړي وَالْكَعْبُ هُنَا الْمَفْصَلُ الَّذِي فِي وَسَطِ الْقَدَمِ عِنْدَ مَعْقِدِ الشِّرَاكِ او له بجلکې څخه مراد دلته هغه بند(جوړ) دی چې هغه د تسمې د تړلو د ځای سره د پښې په مېنځ کې دی فِيمَا رَوَى هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ د هغه (روايت) مطابق کوم چې هشام له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه رانقل کړی دی.

**اللغات:** ﴿سراويل﴾ جمع د سروال ده: پرتوګ. سروالة: د پرتوګ يوه ټوکړه، ﴿عمامة﴾ په کسره د عين سره: لنګوټه، ﴿خف﴾ موزه، ﴿کعب﴾ بجلکه، د پښو هډوکی، ﴿معقد﴾ د نصر د باب اسم ظرف دی: د تړلو ځای، ﴿مفصل﴾ بند، ﴿شراك﴾ تسمه.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې د محرم لپاره ګنډل سوي جامې اغوستل ممنوع دي، نو په دې وجه امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې محرم به نه قميص اغوندي، نه پرتوګ، نه لنګوټه او نه موزې، ځکه چې دا شيان ګنډل سوي وي، او د هغه لپاره

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب ما يباح للمحرم بحج أو عمرة، حديث رقم: ١، والبخاري في كتاب الحج، باب ما لا يلبس المحرم من الثياب، حديث رقم: ١٥٤٢.

ګنډل سوي جامي اغوستل ممنوع دي، لېکن كه هغه څپلی نه لرلي، نو بيا د هغه لپاره د ماسي موزو د په پښو کولو اجازه سته چې تر بجلکو لاندې پرېکړل سوې وي (ځکه کله چې موزې تر بجلکو لاندې پرېکړل سي، نو موزې هم د څپلی په حکم سي، او د هغه لپاره څپلی په پښو کول جائز دي). د دې ټولو دليل هغه حديث دی کوم چې له حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه را نقل سوی دی، هغه فرمايي: قال رجل يا رسول الله ما تأمرنا أن نلبس من الثياب في الإحرام قال لا تلبسوا القمص ولا السراويلات ولا العمائم والا البرانس ولا الخفاف إلا أن يكون أحد ليس له نعلان فليلبس الخفين وليقطع أسفل من الكعبين... الخ (يعني يوه سړي له نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې موږ د احرام په حالت کي کوم شيان اغوندلو، نو نبي ﷺ وفرمايل چې قميصان، پرتوګان، لنګوټې، خولیاني او موزې مه اغوندئ. هو! كه ديو چا سره څپلی نه وي، نو هغه دي موزې په پښو کړي او تر بجلکو لاندې دي يې پرېکړي). له دې څخه معلومېږي چې د محرم لپاره ګنډل سوي شيان او ګنډل سوي جامې اغوستل جائز نه دي.

والكعب هنا الخ دا جمله څه ستونزمنه ده، په پښه کي دوه ځايه کعب يعني را پورته سوي هډوکي وي: [۱] يو د پنډۍ هډوکي چې چېري ختم سي، هلته دوه (۲) را پورته سوي هډوکي وي چې هغه ته موږ په پښتو کي بجلکي وايو. او په كتابُ الطهارات کي له أرجلكم إلى الكعبين څخه هم دغه اصلي بجلکي مرادې. [۲] دويم د پښې په مېنځ کي يو هډوکی سته چې هغه د بجلکو په نسبت لږ را پورته سوی دی، دلته له کعب څخه همدغه هډوکی مراد دی، دې ته که څه هم په پښتو کي بجلکه نه وايي، لېکن په عربي کي د کعب دا دواړه تفسيره سوي دي، نو ځکه موږ د عربي په مناسبت په عبارت او تشريح کي د دې ترجمه په بجلکي سره وکړه. نو فرمايي چې محرم به تر دغه ځايه پوري موزې پرېکوي چې د څپلی په حکم سي، له امام محمد څخه حضرت هشام هم دغه را نقل کړي دي چې موزې به تر دغه هډوکي پوري پرېکيږي.

## د احرام په حالت کي به د بدن کومې حصې نه پټيږي؟

قَالَ: وَلَا يُغَطِّي وَجْهَهُ وَلَا رَأْسَهُ او محرم به نه خپل مخ پټوي او نه خپل سر وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: يَجُوزُ لِلرَّجُلِ تَغْطِيَةُ الْوَجْهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د سړي لپاره مخ پټول جائز دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ●: إِحْرَامُ الرَّجُلِ فِي رَأْسِهِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: د سړي احرام د هغه په سر کي دی وَإِحْرَامُ الْمَرْأَةِ فِي وَجْهِهَا او د ښځي احرام د هغې په مخ کي دی وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ●: لَا تُخَمِّرُوا وَجْهَهُ وَلَا رَأْسَهُ او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: "چې تاسو د هغه مخ مه پټوئ او نه د هغه سر فَإِنَّهُ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا ځکه چې هغه به د قيامت په ورځ تلبيه ويونکی را پورته سي" قَالَهُ فِي مُحْرِمٍ تُوُفِّيَ دا حديث نبي ﷺ (د حج په دوران کي) د مړه سوي محرم په باره کي فرمايلی وو وَلِأَنَّ الْمَرْأَةَ لَا تُغَطِّي وَجْهَهَا او په دې وجه (هم) چې ښځه خپل مخ نه پټوي مَعَ أَنَّ فِي الْكَشْفِ فِتْنَةً سره د دې چې په لڅولو کي (يې) فتنه ده فَالرَّجُلُ بِالطَّرِيقِ الْأَوْلَى نو سړی خو به په طريقه اولیٰ (خپل مخ نه پټوي) وَفَائِدَةُ مَا رُوِيَ الْفَرْقُ فِي تَغْطِيَةِ الرَّأْسِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث فايده په سر پټولو کي فرق کول دي.

---

● تخريج: اخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب الحج، باب المرأة لا تنتقب في احرامها، حديث رقم: ۹۰۲۸.

● تخريج: اخرجه مسلم في كتاب الحج، باب ما يفعل بالمحرم إذا مات، حديث رقم: ۹۳.

**اللغات**: ﴿لا يغطي﴾ د تفعيل د باب مضارع منفي دى، پټول. ﴿لا تخمروا﴾ د تفعيل د باب مضارع منفي دى، پرېوتل، کپړه او جامه اچول (تر کپړې لاندې کول. پټول). ﴿کشف﴾ لڅول. پرده ليرې کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې زموږ په نېز د محرم لپاره خپل مخ او سر پټول جائز نه دي. لېکن امام شافعي رحمه الله فرمايي چې د محرم سړي لپاره خو سر پټول جائز نه دي لېکن مخ پټول جائز دي. همدا د امام مالک رحمه الله او د امام احمد رحمه الله قول دی.

**د امام شافعي دليل**: دا حديث دی: إحرام الرجل في رأسه وإحرام المرأة في وجهها. (يعني د سړي احرام د هغه په سر کې دی. او د ښځې احرام د هغه په مخ کې دی). امام شافعي رحمه الله په دې سره په دې توګه دليل نيسي چې په حديث کې ورېل سوه چې د سړي احرام د هغه په سر کې دی او داسې نه ورېل سوه چې د هغه په مخ کې دی. نو ځکه به د هغه لپاره خو سر پټول جائز نه وي. لېکن مخ پټول به جائز وي.

**زموږ دليل**: د ابن عباس رضي الله عنه حديث دی: أن رجلا وقصته راحلته وهو محرم فمات فقال رسول الله ﷺ اغسلوه بماء وسدر وكفنوه في ثوبيه ولا تمسوه طيبا ولا تخمروا رأسه ولا وجهه فإنه يبعث يوم القيامة ملبيا. (يعني يو سړی د احرام په حالت کې سپرلۍ وغورځوی مغزې يې ورمات کړې، او مړ سو، نو نبي ﷺ وفرمايل چې هغه ته د په اوبو او د بېرو په پاڼو سره غسل ورکړئ او په خپلو جامو کې يې پټ کړئ او عطر مه پر لګوئ، او مه د هغه سر پټوئ، مه د هغه مخ، ځکه چې هغه به د قيامت په ورځ تلبيه ويونکی راپورته سي). له دې حديث څخه معلومېږي چې د محرم سړي لپاره خپل سر او مخ پټول جائز نه دي، دوېم دليل دا دی چې ښځه لا د احرام په حالت کې لڅ مخ ګرځي، حال دا چې د هغې د مخ په لڅوالي کې فتنه ده، نو د سړي د مخ په لڅوالي کې خو هيڅ فتنه هم نسته، لهذا سړی به په درجه اولیٰ خپل مخ نه پټوي.

وفائدة الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د امام شافعي رحمه الله د حديث (يعني چې د سړي احرام د هغه په سر کې دی، او د ښځې احرام د هغې په مخ کې دی) مطلب دا دی چې په سر پټولو کې د سړي او ښځې په مېنځ کې فرق وسي، يعني د ښځې لپاره خپل سر پټول جائز دي، ځکه چې د هغې د احرام اثر د هغه په مخ کې دی، نه په سر کې، او د سړي لپاره سر پټول جائز نه دي، ځکه چې د هغه د احرام اثر د هغه په سر کې دی.

## د محرم لپاره د عطر لګولو او نورو حکم

قَالَ: وَلَا يَمَسُّ طِيبًا فرمايي: او محرم به عطر (هم) نه لګوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ●: اَلْحَاجُّ الشَّعِثُ التَّفِلُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې حاجي د خورو (منتشرو) وربښتانو والا (بېر سری) او د عطرو پرېښوونکی وي وَكَذَا لَا يَدَّهِنُ او تېل به (هم) نه لګوي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَلَا يَحْلِقُ رَأْسَهُ وَلَا شَعْرَ بَدَنِهِ او د خپل سر او بدن وربښتان به هم نه خرېي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ [البقرة: ١٩٦] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او سرونه مه خروئ وَلَا يَقُصُّ مِنْ لِحْيَتِهِ او نه به خپله ږيره کوچنۍ کوي (غوچې کوي) لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسك، باب ما يوجب الحج، حديث رقم: ٢٨٩٦.

الحلق ځکه دا (هم) د خريلو په معنیٰ کي دي وَلِأَنَّ فِيهِ إِزَالَةُ الشَّعَثِ وَقَضَاءُ التَّفَثِ او ځکه چي په دې کي د وربېښتانو منتشروالی او د خيرو ليري کولو دي.

اللغات: ﴿شعث﴾ هغه شوک چي وربېښتيان يې خواره او منتشر وي، بېر سرى. ﴿تفل﴾ هغه شوک چي عطر نه لګوي.
﴿لا يقص﴾ مضارع منفي ده: پرېکول، غڅي کول، کوچني کول (مراد ځني برېره غڅي کول دي). ﴿حلق﴾ خرول (خرېيل).

تشريح: فرمايي چي د محرم لپاره عطر لګول، د سر او بدن وربېښتيان خرېيل يا کوچني کول يا برېره کوچني کول دا ټول منوع دي، ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: الحاج الشعث التفل، "شعث" په فتحه د شين او کسره د عين سره هغه سړي ته ويل کيږي چي وربېښتيان يې منتشر (خواره) او په ګرز ککړ وي، يعني حاجي هغه دى چي وربېښتيان يې خواره او هغسي ککړ پاته وي، او عطر يې نه وي لګولي، لهذا د دې حديث په وجه به تېل هم نه استعمالوي، او د وربېښتيانو د خرېلو په باره کي دليل دا آيت دى: ولا تحلقوا رؤسكم او برېره به هم نه غڅي کوي ځکه چي غڅي کول هم د خرېلو په معنیٰ کي دي، او په دې وجه چي د وربېښتيانو په خرېلو او غڅي کولو سره هغه منتشر والي ليري کيږي کوم چي د حاجي لپاره (په حديث کي) مطلوب او مقصود دى، نو په دې وجه به هم وربېښتيان نه خروي او نه به يې غڅي کوي.

## د احرام په حالت کي د رنګداره جامو حکم

قَالَ: وَلَا يَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا بِوَرْسٍ او محرم به نه اغوندي په ورس رنګول سوي جامې وَلَا زَعْفَرَانٍ وَلَا عُصْفُرٍ او نه (به اغوندي) په زعفران او ژړ رنګ رنګول سوي جامې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: لَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ ثَوْبًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي محرم به داسي جامې نه اغوندي چي هغه ورس يا زعفران مسه کړي وي إِلَّا أَنْ يَكُونَ غَسِيلًا لَا يَنْفُضُ مګر دا چي هغه داسي پرېولل سوي وي چي ښه بوى نه کوي (يعني چي تر پرېوللو وروسته يې خوشبويي پاته نه سي) لِأَنَّ الْمَنْعَ لِلطِّيبِ لَا لِلَّوْنِ ځکه چي ممانعت د خوشبويي په وجه دى نه د رنګ په وجه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا بَأْسَ بِلُبْسِ الْمُعَصْفَرِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په ژړ رنګ رنګول سوو جامو کي څه حرج نسته لِأَنَّهُ لَوْنٌ لَا طِيبَ لَهُ ځکه هغه داسي رانګ دى چي خوشبويي نه لري وَلَنَا أَنَّ لَهُ رَائِحَةً طَيِّبَةً او زموږ دليل دا دى چي هغه ښه بوى لري.

اللغات: ﴿مصبوغ﴾ اسم مفعول دى: رنګول سوي، ﴿ورس﴾ زعفران ته ورته يو ډول ښه بوى لرونکی بوټی دى چي په يمن کي پيدا کيږي، ﴿عصفر﴾ ژړ رنګ، يو ډول ګل دى چي ژړ رنګ ځني راوځي، ﴿لا ينفض﴾ د نصر د باب مضارع منفي ده: د دې اصلي معنیٰ ده: د کپړې يا جامې رنګ خامېدل (کمزوري کېدل)، لېکن دلته يې معنیٰ په ښه بوى کولو سره سوې ده.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب ما لا يلبس المحرم من الثياب، حديث رقم: ١٥٤٢.

**تشریح:** فرمایي چي د محرم لپاره په زعفران، ورس، او په ژړ رنګ یا عصفر سره رنګول سوي جامي اغوستل جائز دي، ځکه نبي ﷺ د محرم لپاره له داسي جامو څخه منع کړي ده چي په دې شیانو سره رنګول سوي وي، حدیث ۲ کتاب کي ذکر سو، لیکن که په دې شیانو سره رنګول سوي جامې په ښه توګه پرېولل سي، تر دې چي په هغو کي خوشبوئي پاته نه سي، نو بیا یې په اغوستلو کي څه حرج نسته، ځکه چي د رنګول سوو جامو د اغوستلو ممانعت د خوشبوئي په وجه دی، نو که په پرېوللو سره د دې جامو خوشبوئي ختمه سي، بیا د جامو په اغوستلو کي هیڅ پروا نسته.

د امام شافعي رحمه الله رایه دا ده چي په داسي جامو کي هیڅ حرج نسته چي د عصفر ګل په رنګ سره رنګول سوي وي، ځکه د هغه خیال دا دی چي په عصفر ګل کي صرف رنګ وي، خوشبوئي نه وي، لیکن زموږ په نیز تحقیق دا دی چي په عصفر ګل کي د رنګ سره سره خوشبوئي هم وي، نو ځکه زموږ په نیز د عصفر ګل په ژړ رنګ سره رنګول سوي جامې اغوستل د محرم لپاره صحیح نه دي.

## د احرام په حالت کي د غسل حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَغْتَسِلَ وَيَدْخُلَ الْحَمَّامَ فرمایي: او څه حرج نسته چي محرم غسل وکړي او حمام ته داخل سي لِأَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اِغْتَسَلَ وَهُوَ مُحْرِمٌ ځکه حضرت عمر ؓ غسل وکړی په داسي حال کي چي هغه محرم وو.

**اللغات:** ﴿حمام﴾ غسلخانه (د لمبېدلو ځای).

**تشریح:** **مسئله:** دا ده چي د محرم لپاره غسل کول او حمام ته داخلېدل صحیح او جائز دي، که څه هم په دې سره د وېښتانو منتشر والی او ګرز لیري کیږي، ځکه چي دا شیان د احرام منافي نه دي، او بل دا چي حضرت عمر ؓ د احرام په حالت کي غسل کړی دی، دا د دې خبري ښکاره دلیل دی چي د محرم لپاره غسل جائز دی.

## له کور یا کجاوې څخه د سایې حاصلولو حکم

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَسْتَظِلَّ بِالْبَيْتِ وَالْمَحْمِلِ او د محرم لپاره (په دې کي) څه باک نسته چي په کور یا کجاوې سره سایه حاصله کړي وَقَالَ مَالِكٌ: يُكْرَهُ أَنْ يَسْتَظِلَّ بِالْفُسْطَاطِ وَمَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ او امام مالک رحمه الله فرمایي: په غټه خېمه او د هغې په شان (په بل شي) سره سایه حاصلول مکروه دي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ تَغْطِيَةَ الرَّأْسِ ځکه چي دا د سر پټولو سره مشابه دي وَلَنَا أَنَّ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يُضْرَبُ لَهُ فُسْطَاطٌ فِي إِحْرَامِهِ او زموږ دلیل دا دی چي د حضرت عثمان ؓ لپاره به د هغه د احرام په حالت کي غټه خېمه درېدله وَلِأَنَّهُ لَا يَمَسُّ بَدَنَهُ فَأَشْبَهَ الْبَيْتَ او په دې وجه (هم) چي غټه خېمه د محرم بدن نه مسه کوي نو هغه د کور سره مشابه سوه.

**اللغات:** ﴿يستظل﴾ د استفعال د باب مضارع ده: (د یو شي) سایه حاصلول، (د یو شي په سایه کي کښېنستل).

﴿محمل﴾ کجاوه، هودج، ﴿فسطاط﴾ غټه خېمه.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده چي زموږ په نیز د محرم لپاره د یوې خونې (کمرې) یا یو کور په بام سره یا د لوښي او نورو په کجاوې سره سایه حاصلول صحیح او جائز دي، لیکن د امام مالک رحمه الله په نیز په غټه خېمه او غټو شیانو سره سایه حاصلول مکروه دي، ځکه چي دا د سر پټولو سره مشابه دي، او د محرم لپاره سر پټول جائز نه دي، او کوم شی چي د هغه

سره مشابه وي، نو هغه که ناجائز نه سي، مکروه خو به خامخا. ځکه چي د ممنوع او ناروا شي مشابهت هم ناخوښه او مکروه کار دی.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چي د دريم خليفه سيدنا حضرت عثمان بن عفان ﷺ لپاره به د احرام په حالت کي يوه خيمه درېدله، او هغه به په دې سره سايه حاصلول. دا دې خبري دليل دی چي محرم ته له ګرمۍ څخه د ځان ساتلو لپاره سايه حاصلول صحيح او جائز دي، هغه که په بام سره سايه حاصله کړي، او که په ختې خېمې سره. ځکه که د ختې خېمې سايه حاصلول ممنوع وای، نو حضرت عثمان ﷺ به هيڅکله په ختې خېمه کي کښېنستی نه وای.

ولانه لا يسس الخ په دې لړ کي عقلي دليل دا دی چي جامې د انسان مخ او بدن سره کوي، لېکن ختې خيمه له بدن څخه لېري او لوړه وي، نو دا د بام سره مشابه سوه. او په بام سره بالاتفاق سايه حاصلول صحيح دي، نو په داسي خېمې سره به هم سايه حاصلول صحيح وي.

## د کعبې په پردو کي د سر پټولو حکم

| |
|---|
| وَلَوْدَخَلَ تَحْتَ أَسْتَارِ الْكَعْبَةِ او که محرم د کعبې په پردو کي داخل سي (يعني په تنوځي) حَتّٰى غَطَّتْهُ تر دې چي پردې منه پټ کړي إِنْ كَانَ لَا يُصِيبُ رَأْسَهُ وَلَا وَجْهَهُ نو که پردې د هغه د سر او د مخ سره نه لګېدلې فَلَا بَأْسَ بِهِ لِأَنَّهُ اِسْتِظْلَالٌ نو په دې کي څه حرج نسته ځکه چي دا سايه حاصلول دي. |

**اللغات:** ﴿أستار﴾ جمع د ستر ده: پرده، ﴿غطته﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: پټول.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو محرم د کعبې شريفي تر پردې لاندي سو، او په پرده کي پټ سو، نو د دې دوه صورتونه دي: (١) که پرده د هغه د مخ او د سر سره نه لګېدله نو په دې کي څه حرج نسته، ځکه چي دا سايه حاصلول سو، او په سايه حاصلولو کي څه حرج نسته، (٢) او که پرده د هغه د سر يا د مخ سره لګېدله نو مکروه دي، ځکه چي اوس دا د سر د پټولو سره مشابه سو، نو په داسي صورت کي محرم ته پکار ده چي له پردو څخه سملستي لېري سي.

## د محرم لپاره د هميانۍ (د پيسو د بټوې) تړلو حکم

| |
|---|
| وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَشُدَّ فِي وَسَطِهِ الْهِمْيَانَ او د محرم لپاره (په دې کي) څه باک نسته چي پر ملا هميانۍ وتړي وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ الله: يُكْرَهُ إِذَا كَانَ فِيهِ نَفَقَةُ غَيْرِهِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که په دې کي د بل چا نفقه وي نو مکروه دي لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ ځکه چي د دې هيڅ ضرورت نسته وَلَنَا أَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى لُبْسِ الْمَخِيطِ او زموږ دليل دا دی چي هميانۍ تړل د ګنډل سوو جامو د اغوستلو په معنیٰ کي نه ده فَاسْتَوَتْ فِيهِ الْحَالَتَانِ نو په هغې کي به دواړه حالتونه برابر وي. |

**اللغات:** ﴿يشد﴾ د نصر مضارع ده: تړل، ﴿هميان﴾ هميانۍ، د پيسو بټوه، د پيسو خلته (تېلۍ).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د محرم لپاره هميانۍ، بټوه، يا خلته پر ملا تړل او په هغه کي د خپلي خرچې لپاره پيسې اېښول جائز دي، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي که محرم د خپلي نفقې او خرچې اېښولو لپاره هميانۍ او نور وتړي خو صحيح دي، لېکن که په دې کي د بل چا خرڅه اړدي نو مکروه دي، ځکه چي هغه ته د بل چا د خرچې لپاره د هميانۍ تړلو هيڅ ضرورت نسته، او د محرم لپاره غيرِ ضروري کار کول مکروه دي.

ولنا الخ زمونږ دليل دا دی د محرم لپاره ګنډل سوي جامې اغوستل ممنوع دي، او همياني او بټوه د ګنډل سوو جامو په معنی کي نه ده. لهذا کله چي د هغه په معنی کي نه ده، نو د هغه اغوستل به هم جائز وي، او په هغه کي به خپله نفقه او خرچه اېښوول هم صحيح وي او د نورو خرچه اېښوول به هم صحيح او جائز وي، ځکه چي دا يو ډول مرسته او تعاون دی، او قرآن په دې فرمان تعاونوا على البر والتقوى سره د داسي تعاون حکم کړی دی.

## د محرم لپاره په خطمي ګل (خيرو ګل) او په صابون سره د سر پرېوللو حکم

وَلَا يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَلَا لِحْيَتَهُ بِالْخِطْمِيِّ او محرم به خپل سر او ږيره په خطمي ګل سره نه پرېولي لِأَنَّهُ نَوْعُ طِيبٍ ځکه چي دا يو ډول عطر (خوشبويي) ده وَلِأَنَّهُ يَقْتُلُ هَوَامَّ الرَّأْسِ او په دې وجه چي خطمي ګل د سر خزندې (يعني سپږې) وژني.

**اللغات:** ﴿خطمی﴾ خيرو ګل، توته کله، يو بوټی دی چي سور او سپين ګل لري او د صابون په توګه استعمالېږي.

﴿هوام﴾ خزندې، سپږې.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي د محرم لپاره خو د لمبېدلو او غسل کولو اجازه سته، لېکن د هغه لپاره سر يا ږيره په ګل خطمي، خوشبوداره صابون (يا شامپو) سره پرېوللو جائز نه دي، ځکه چي ګلِ خطمي هم يو ډول خوشبويي ده، او د محرم لپاره خوشبويي استعمالول ممنوع دي، دويمه خبره دا ده چي ګلِ خطمي د سر سپږې مرداروي، حال دا چي د محرم لپاره يو ژوندی شی مړ کول او له منځه وړل حلال نه دي، نو په دې حواله سره هم د هغه لپاره ګلِ خمطي، صابون او نور استعمالول جائز نه دي.

## محرم به تلبيه ډېره وايي

قَالَ: وَيُكْثِرُ مِنَ التَّلْبِيَةِ عَقِيبَ الصَّلَوَاتِ فرمايي: او محرم به تر لمونځونو وروسته تلبيه ډېره وايي وَكُلَّمَا عَلَا شَرَفًا أَوْ هَبَطَ وَادِيًا او هر کله چي لوړ ځای ته وخيږي يا لاندي ځای ته شوه سي أَوْ لَقِيَ رُكْبَانًا يا د سپرو خلکو سره يو ځای سي (نو تلبيه به وايي) وَبِالْأَسْحَارِ او د سهار په وخت (کي به هم تلبيه وايي) لِأَنَّ أَصْحَابَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوا يُلَبُّونَ فِي هَذِهِ الْأَحْوَالِ ځکه چي د نبي ﷺ صحابه وو به په دې حالتونو کي تلبيه ويله وَالتَّلْبِيَةُ فِي الْإِحْرَامِ عَلَى مِثَالِ التَّكْبِيرِ فِي الصَّلَاةِ او په احرام کي تلبيه ويل په لمانځه کي د تکبير ويلو په ډول دي فَيُؤْتَى بِهَا عِنْدَ الْانْتِقَالِ مِنْ حَالٍ إِلَى حَالٍ نو (دلته به هم) له يوه حالت څخه بل حالت ته د نقل کېدلو په وخت کي تلبيه ويل کيږي.

**اللغات:** ﴿علا﴾ ختل، ﴿شرفًا﴾ لوړوالی، غونډی، لوړ ځای، ﴿هبط﴾ کښته کېدل، شوه کېدل، ﴿رکبان﴾ جمع د راکب ده: سپور، ﴿أسحار﴾ سحر ګاه، ګهيځ، سهار (يعني کله چي شپه آخري ته ورسيږي).

**تشريح:** مسئله: دا ده چي محرم دي تر لمونځونو وروسته تلبيه ډېره وايي، هغه که فرضي لمونځونه وي او که نفلي، قضائي وي او که وقتي، امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي تر وقتي فرضي لمونځونو وروسته به تلبيه ويل کيږي، تر قضائي او نفلي لمونځونو وروسته به نه ويل کيږي.

وکذا الغ او کله چې لوړ ځای ته وخیژي، یا لاندې ځای ته کښته سي، یا له سپرو خلکو سره ملاقي سي. نو په دې حالتونو کې به هم تلبیه ډېره وایي. او د سهار په وخت کې به هم تلبیه ډېره وایي. دلیل دا دی چې صحابه وو به په دې حالتونو کې تلبیه ډېره ویله. دویم دلیل دا دی چې په احرام کې د تلبیې مثال داسې دی لکه په لمانځه کې چې تکبیر دی، نو څرنګه چې په لمانځه کې له یو حال څخه د بل حال و طرف ته د منتقل کېدلو په وخت کې تکبیر ویل کیږي، همدارنګه به احرام کې هم تلبیه ویل کیږي.

## محرم به په لوړ آواز سره تلبیه وايي

ويرفع صوته بالتلبية او محرم به په تلبیې سره خپل آواز لوړوي (يعني محرم به تلبیه په زوره وايي) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ●: أَفْضَلُ الحَجِّ العَجُّ وَالثَّجُّ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "چې افضله حج آواز لوړول او وینه بیول دي" فَالعَجُّ رَفْعُ الصَّوْتِ بِالتَّلْبِيَةِ دعج معنیٰ ده: په تلبیه سره آواز لوړول وَالثَّجُّ إِسَالَةُ الدَّمِ او د ثج معنیٰ ده: وینه بیول.

**اللغات:** ﴿عج﴾ په لوړ آواز سره تلبیه ویل. ﴿ثج﴾ وینه بیول، قرباني کول.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې محرم به په لوړ آواز سره تلبیه وايي، ځکه چې په لوړ آواز سره تلبیه ویل د حج د غوره والي او د افضل والي ذریعه ده، لکه څرنګه چې په حدیث پاک کې راځي: أفضل الحج العج والثج. (يعني افضله حج هغه دی چې په هغه کې عج او ثج وي)، صاحب د هدایې فرمایي چې له عج څخه مراد په لوړ آواز سره تلبیه ویل دي، او له ثج څخه مراد د هدي څاروی قربانول او وینه بیول دي، لهذا هر حاجي ته پکار ده چې د تلبیې په وخت کې د آواز د لوړوالي هم خاص خیال وساتي.

## مکې ته د داخلېدو اولنی ادب

قَالَ: فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ ابْتَدَأَ بِالمَسْجِدِ الحَرَامِ فرمایي: او کله چې محرم مکې ته داخل سي نو له مسجدِ حرام څخه دې شروع وکړي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ دَخَلَ المَسْجِدَ ځکه روایت سوی دی چې کله نبي ﷺ مکې ته داخل سو نو مسجدِ حرام ته ولاړی وَلِأَنَّ المَقْصُودَ زِيَارَةُ البَيْتِ او ځکه چې مقصود د کعبې زیارت دی وَهُوَ فِيهِ او کعبه په مسجدِ حرام کې ده وَلَا يَضُرُّهُ لَيْلًا دَخَلَهَا أَوْ نَهَارًا او محرم ته (دا څه) ضرر نه رسوي که د شپې مکې ته داخل سي او که د ورځې لِأَنَّهُ دُخُولُ بَلْدَةٍ ځکه چې دا په ښار کې داخلېدل دي فَلَا يَخْتَصُّ بِأَحَدِهِمَا نو خاص به نه وي په یوه پوري له شپې او ورځې څخه.

**اللغات:** ﴿لا یضر﴾ د نصر مضارع نفي صیغه ده: ضرر نه رسوي، مضر نه دي.

**تشریح:** محرم چې کله مکې مکرمې ته داخل سي، نو د هغه لپاره تر ټولو مخکې هدایت دا دی چې سیده دې مسجد حرام ته ولاړ سي، او د بیتُ الله (کعبې شریفې) دیدار دې وکړي، ځکه چې نبي ﷺ هم د حجة الوداع پر موقع مکې ته په داخلېدلو سره (اول) مسجدِ حرام ته ولاړی، او هلته یې اودس وکړی، د بیت الله طواف یې وکړی، نو امتیانو ته هم پکار

---

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء في فضل التلبية والنحر، حديث رقم: ۸۲۸.

دي چي د نبوي طريقې اقتداء وکړي، او په مسجد حرام سره شروع وکړي، دويمه خبره دا ده چي د سفر مقصد د بيت الله زيارت او د هغې ديدار دی، او څرنګه چي بيت الله په مسجد حرام کي واقع ده، نو په دې وجه هم حاجې ته تر ټولو مخکې مسجدِ حرام ته مخ کول پکار دي؛ او له بابُ السلام څخه داخلېدل مستحب او غوره دي، ځکه چي نبي ﷺ له دې دروازې څخه مسجدِ حرام ته داخل سوی وو.

ولا يضره الخ د دې حاصل دا دی چي محرم هر وخت مکې مکرمې ته داخلېدی سي، هغه که شپه وي که ورځ وي، ځکه چي دا په ښار کي داخلېدل دي، او ښار ته داخلېدل د ورځي يا د شپې سره خاص نه دي، نو مکې ته به داخلېدل هم د شپې يا ورځي سره خاص نه وي، او هغه روايت کوم چي به ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د شپې په وخت کي له داخلېدلو څخه منع کوله، نو هغه به يې د سنت والي په وجه نه کوله، بلکي په دې وجه به يې منع کوله چي حاجيان له غلو او ډاکه مارانو څخه خوندي سي.

فايده: علماؤ ليکلي دي چي مسجدِ حرام ته د اول ځل راتللو په وخت کي هر سړي ته پکار ده چي خپل ځان، قريبان او متعلقينو ته دعاء وکړي، ځکه پر کعبې چي د نظر لګېدلو په وخت کي کومه دعاء وغوښتل سي هغه عموماً قبلېږي.

## د کعبې د ليدلو په وخت کي به څه وايي؟

وَإِذَا عَايَنَ الْبَيْتَ كَبَّرَ وَهَلَّلَ او محرم چي کله کعبه ووينې نو تکبير او لا إله إلا الله دې ووايي وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمَا يَقُولُ: إِذَا لَقِيَ الْبَيْتَ بِاسْمِ اللهِ وَاللهُ أَكْبَرُ او ابن عمر ﷺ چي به کله کعبه وليدله نو (دا) به يې ويل: بسم الله والله أكبر وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُ الله لَمْ يُعَيِّنْ فِي الْأَصْلِ لِمَشَاهِدِ الْحَجِّ شَيْئًا مِنَ الدَّعَوَاتِ او امام محمد رَحِمَهُ الله د حج د خاصو (ځانګړو) ځايونو لپاره په مبسوط کي هيڅ يوه (ځانګړې) دعاء متعينه کړې نه ده لِأَنَّ التَّوْقِيتَ يُذْهِبُ بِالرِّقَّةِ ځکه چي د دعاء متعينول (يعني متعينه دعاء) د زړه نرمي ختموي وَإِنْ تَبَرَّكَ بِالْمَنْقُولِ مِنْهَا فَحَسَنٌ او که محرم په رانقل سوو دعاؤ سره تبرک حاصل کړی نو ډېره ښه ده.

اللغات: ﴿عاين﴾ د مفاعلې ماضي ده: ليدل، مخته راتلل، ﴿هلّل﴾ کلمهٔ طيبه ويل، ﴿مشاهد﴾ له شَهِدَ څخه مشتق دی: هغه خاص او مهم شی يا ځای کوم چي يې خلک ليدل غواړي (يعني ځانګړي ځايونه)، په حج کي ځني مراد کعبه شريفه، حجرِ أسود، عرفات، مزدلفه، منیٰ او داسي نور دي.

تشريح: مسئله: فرمايي د محرم نظر چي کله پر بيتُ الله (کعبې شريفې) پرېوځي نو سملستي دې الله أكبر او لا إله إلا الله ووايي، او په خپل ظاهر او باطن سره دې د الله ﷻ د کور د عظمت او د هغه د سپېڅلتيا څرګندونه وکړي، او د دې وخت سره مناسبه دعاء دې وکړي، ځکه چي د بيت الله د ليدلو په وخت کي دعاء قبلېږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله له سعيد بن جبير څخه او هغه له ابن جريج څخه دا دعاء رانقل کړې ده: أن النبي ﷺ كان إذا رأى البيت رفع يديه وقال: اللهم زد هذا البيت تشريفًا و تعظيمًا و تكريمًا ومهابة و زد من شرفه وكرمه ممن حجه أو اعتمر تشريفًا و تعظيمًا و تكريمًا وبرًّا، او له عطاء څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ کعبه وليدله، نو و به يې فرمايل: أعوذ برب البيت من الكفر

والفقر وضيق الصدر وعذاب القبر، او پر تكبير او تهليل باندي دليل د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روايت دى چي هغه به كله د بيت الله زيارت كوى نو بسم الله والله أكبر به يې وايي.

ومحمد لم يعين الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د حج د مشاهدو او خاصو ځايونو لپاره له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يوه خاصه دعاء رانقل سوې نه ده (بلكې هلته دا اشاره ترلاسه كيږي چي هره دعاء كه يې خوښه وي، هغه دي ووايي). ځكه كه يوه دعاء متعينه او خاصه كړى سي نو په دې سره د زړه نرمي ختميږي (ځكه چي زړه به په هغه كې مصروفه وي). حال دا چي د حج د مشاهدو د ليدلو په وخت كي د زړه نرمي مطلوب ده (يعني پكار دا ده چي د حج د خاصو ځايونو د ليدلو په وخت كې به زړه كې نرمي پيدا سي، لېكن كه يو شوك به يوه ځانګړې دعاء كې مشغوله وي، نو نرمي خو پرېږده. د حج مشاهد به لا څنې هېر سي). لېكن كه له را نقل سوو دعاګانو څخه (كوم چي اوس ذكر سوې) يوه دعاء تبركاً ووېل سي، نو دا د محرم لپاره غوره دي، او كه د دې سره سره په زړه كي نرمي هم پيدا سي، نو نور هم غوره او افضله دي.

## د حجرِ اسود د مچولو او استلام حكم

قَالَ: ثُمَّ ابْتَدَأَ بِالْحَجَرِ الْأَسْوَدِ فرمايي: بيا دي له حجرِ اسود څخه شروع وكړي فَاسْتَقْبَلَهُ وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ نو حجر اسود ته دي مخامخ سي او تكبير او تهليل دي ووايي (يعني الله أكبر او لا إله إلا الله دي ووايي) لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● دَخَلَ الْمَسْجِدَ ځكه روايت سوى دى چي نبي ﷺ مسجدِ حرام ته داخل سو فَابْتَدَأَ بِالْحَجَرِ فَاسْتَقْبَلَهُ وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ نو له حجر اسود څخه يې شروع وكړه او حجر اسود ته مخامخ سو او تكبير او تهليل يې ووايي قَالَ: وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: او خپل دواړه لاسونه به پورته كړي لِقَوْلِهِ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي: "لاسونه به نه پورته كيږي مګر په اوو(٧) ځايونو كي" وَذَكَرَ مِنْ جُمْلَتِهَا اسْتِلَامَ الْحَجَرِ چي د هغو له مجموعې څخه يې استلامِ حجر (هم) ذكر كړى وَاسْتَلَمَهُ إِنِ اسْتَطَاعَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُؤْذِيَ مُسْلِمًا او حجر اسود دي مچ كړي كه ممكنه وه بغير له دې څخه چي يو مسلمان ته تكليف وركړي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَبَّلَ الْحَجَرَ الْأَسْوَدَ وَوَضَعَ شَفَتَيْهِ عَلَيْهِ ځكه روايت سوى دى چي نبي ﷺ حجر اسود مچ كړه او خپل دواړه شونډوان يې پر هغې كېښوول وَقَالَ لِعُمَرَ● رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: إِنَّكَ رَجُلٌ أَيِّدٌ تُؤْذِي الضَّعِيفَ او حضرت عمر ﷺ ته يې وفرمايل: چي ته زورور (طاقتور) سړى يې كمزورو خلكو ته به تكليف وركړې فَلَا تُزَاحِمِ النَّاسَ عَلَى الْحَجَرِ نو پر حجر اسود د خلكو لپاره خنډ (او مانع) مه جوړېږه وَلَكِنْ إِنْ وَجَدْتَ فُرْجَةً فَاسْتَلِمْهُ لېكن كه تا

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب إستلام الركن بالمحجن، حديث رقم: ١٦٠٧.

● تخريج: قد مرّ تخريجه.

● أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسك، باب إستلام الحجر، حديث رقم: ٢٩٢٥.

● أخرجه البيهقي في سنن الكبرى في كتاب الحج، باب الإستلام في الزحام، حديث رقم: ٩٢٦١.

پراخي پيدا کړه نو مچ يې کړ؛ وَإِلَّا فَاسْتَقْبِلْهُ وَهَلِّلْ وَكَبِّرْ کنې هغې ته مخامخ سه تهليل او تکبير ووايه؛ وَلِأَنَّ الْإِسْتِلَامَ سُنَّةٌ وَالتَّحَرُّزُ عَنْ أَذَى الْمُسْلِمِ وَاجِبٌ او په دې وجه (هم) چې (د حجر اسود) مچول سنت دي او د مسلمان له تکليف څخه ځان ساتل واجب دي.

**اللغات:** ﴿استقبل﴾ مخامخ کېدل (استقبال کول)، ﴿مواطن﴾ ځايونه، ﴿استلام﴾ مچول، مچه اخيستل، ﴿شفتين﴾ دواړه شونډان، ﴿فرجة﴾ پراخي، گنجايش، ﴿تحرز﴾ پرهېز کول، ځان ساتل.

**تشريح:** په دې عبارت کې د محرم لپاره هغه ارکان او افعال بيانيږي چې هغه د حج په شروع کې تر سره کيږي، د هغو ترتيب او تفصيل دا دی چې په بيت الله کې د داخلېدونکي سړي لپاره اول کار دا دی چې طواف دې وکړي، او د طواف شروع دې له حجر اسود څخه وکړي، او څرنګه چې د طواف اراده وکړي، نو د حجر اسود استلام يا استقبال، تکبير او تهليل دې وکړي، او دواړه لاسونه دې تر اوږو پورې پورته کړي، ځکه نبي ﷺ هم دا ډول خپل طواف شروع کړی وو، او هغه اووه ځايونه چې هلته نبي ﷺ د لاسونو پورته کولو حکم کړی دی، په هغو کې يو ځای د حجر اسود د استلام پر وخت لاسونه پورته کول دي، نو د استلامِ حجر په وخت کې به هم محرم لاسونه پورته کوي.

واستلمه الخ فرمايي اصل حکم خو دا دی چې که ګڼه ګونه نه وي، او يو چا ته له تکليف ورکولو څخه بغير د حجر اسود مچول ممکن وي، نو محرم ته پکار دي چې په خوله سره يې مچ کړي، لېکن که ګڼه ګونه وي، يا بل چا ته له تکليف ورکولو څخه بغير مچول ممکن نه وي، نو په دې صورت کې د استلام حکم دی، د استلام معنیٰ ده په لاس يا ورغوي سره د حجر اسود مسه کول، او د حجر اسود د مچولو په باره کې له نبي ﷺ څخه رانقل سوي دي چې نبي ﷺ حجر اسود مچ کړه، يعني په خپله خوله مبارکه يې مچ کړه، او خپل دواړه مبارک شونډان يې پر کېښول، همدارنګه دا روايت هم سوی دی چې يو وخت نبي ﷺ حضرت عمر ﷺ ته داسي وفرمايل: "چې ته ډېر غښتلی او طاقتور سړی يې، نو د حجر اسود د مچولو په وخت کې د خلکو لپاره خنډ مه جوړېږه، کنې دوی ته به تکليف ورکړې، او د سنت د اداء کولو لپاره به واجب پرېږدې"، ځکه چې استلام سنت دی، لېکن مسلمان ته تکليف نه ورکول واجب دي، نو د سنت د اداء کولو لپاره به واجب نه پرېښوول کيږي، او بيا يې حضرت عمر ﷺ ته وفرمايل: "چې که د تکليف رسولو خطره نه وي، نو بيا يې په خوله سره مچوه، او که دا خطره وه نو بيا استقبال کوه، او تکبير و تهليل وايه".

## په يو شي سره د حجر اسود د مسه کولو مسئله

قَالَ: وَإِنْ أَمْكَنَهُ أَنْ يَمَسَّ الْحَجَرَ بِشَيْءٍ فِي يَدِهِ فرمايي: او که ممکنه وي چې حجرِ اسود په داسي شي سره مسه کړي چې هغه د مُحرم په لاس کې وي كَالْعُرْجُونِ وَغَيْرِهِ لکه ښاخ (يا لرګی) او داسي نور ثُمَّ قَبَّلَ ذٰلِكَ بيا يې مچ کړي (يعني که ممکنه وي چې په ښاخ يا بل شي سره حجر اسود مسه کړي او بيا دا ښاخ يا بل شی مچ کړي) فَعَلَهُ نو داسي دي وکړي لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: طَافَ عَلَى رَاحِلَتِهِ وَاسْتَلَمَ الْأَرْكَانَ بِمِحْجَنِهِ ځکه روايت سوی دی: چې نبي ﷺ پر خپل سپرلي طواف وکړی او په خپله لکړه (امسا) يې د ارکانو استلام وکړی (يعني حجر اسود او رکن يماني يې په لکړي سره مسه

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب إستلام الركن بالمحجن، حديث رقم: ۱۶۰۷، ومسلم في كتاب الحج، حديث رقم: ۲۵۳.

کرل) وَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ او که محرم په دې شيانو کي پر هيڅ شي قدرت نه درلودی اسْتَقْبَلَهُ وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ نو حجرِ اسود ته دې مخامخ سي او تکبير او تهليل دي ووايي وَحَمِدَ اللّٰهَ وَصَلّٰى عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د الله حمد دې بيان کړي او پر نبي ﷺ دي درود ووايي.

اللغات: ﴿عرجون﴾ ښاخ، نرۍ لرګی، په اصل کي د کجورو ښاخ ته ويل کيږي، يعني هغه ښاخ چي د کجورو ښډوري په راځړيږي، دا ښاخ چي کله وچ سي نو لږ غوندي کوږ سي، ﴿محجن﴾ امسا (لکړه کوم چي يې ضعيفه خلک په لاس کي نيسي)، کوږ سری لرګی، ﴿أركان﴾ جمع د رکن ده: د بيتُ الله په څلور سره کونجانو کي څلور أرکان دي، چي له هغو څخه حجر اسود او رکنِ يماني مچول سنت دي.

تشريح: مسئله: دا ده که يو سړی د ګڼي ګوڼي (رش) په وجه حجر اسود مچ او مسه نه کړی سي، نو هغه ته پکار ده چي يو لرګی دي رااخلي، او په هغه سره دي حجر اسود مسه کړي، او بيا دي هغه لرګی مچ کړي، ځکه د نبي ﷺ په باره کي دا رانقل سوي دي چي نبي ﷺ پر خپل سپرلي طواف وکړی، او په خپله لکړه (امسا) يې د ارکانو استلام وکړی (او په إستلم الأركان کي يې أركان ځکه جمع ذکر کړل چي نبي ﷺ په څو شوطونو کي دا استلام وکړی).

وإن لم يستطع الخ فرمايي که محرم پر دې هم قادره نه وو په يو لرګي يا لکړي سره استلام وکړي، نو د حجر اسود مخ ته دي ودريږي او الله أكبر او لا إله إلا الله دي ووايي او د الله حمد دي بيان کړي، او پر رسول الله ﷺ دي درود ووايي.

## د حجر اسود د مچولو پنځه(۵) طريقې

په پورتني عبارتونو کي د حجر اسود د مچولو تقريبًا درې طريقې ذکر سوې، لېکن صاحب د اثمار الهدايې پر دې موقع پنځه طريقې د دلائلو سره بيان کړي دي، هغه دا دي: [۱] اوله طريقه دا ده چي که ګڼه ګوڼه نه وي، نو حجر اسود دي مچ کړي. [۲] او که ګڼه ګوڼه وي نو په لاس سره دي يې مسه کړي، او بيا دي لاس مچ کړي. [۳] او که دا هم نه وکړای سي، نو په يو لرګي يا لکړي سره دي يې مسه کړي او بيا دي لرګی يا لکړه مچ کړي. [۴] او که په لکړي او لرګي سره يې هم مسه نه کړای سي، نو په لکړي يا لرګي سره دي د حجر اسود و طرف ته اشاره وکړي، بيا دي هغه مچ کړي. [۵] او که لکړه يا لرګی هم نه وي، نو په لاس دي د حجر اسود و طرف ته له ليري څخه اشاره وکړي او لاس دي مچ کړي، تکبير او تهليل دي ووايي، او پر نبي ﷺ دي درود ووايي، او طواف دي شروع کړي.

## د طواف او اضطباع طريقه

قَالَ: ثُمَّ أَخَذَ عَنْ يَمِينِهِ مِمَّا يَلِي الْبَابَ فرمايي: بيا دي (طواف) شروع کړي له راسته طرف څخه يعني له هغه طرف څخه چي (د کعبې) دروازې ته نژدې دی وَقَدِ اضْطَبَعَ رِدَاءَهُ په داسي حال کي چي د خپل څادر (پټو) اضطباع به يې کړې وي فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو پر کعبه به اووه (۷) دوره (شوطه) را وګرځيږي لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: اِسْتَلَمَ الْحَجَرَ ځکه روايت سوی دی: چي نبي ﷺ د حجر اسود استلام وکړی ثُمَّ أَخَذَ عَنْ يَمِينِهِ مِمَّا يَلِي

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب إستلام الحجر، حديث رقم: ۲۵۴.

الْبَابَ بیا یې له خپل راسته طرفه څخه یعني کوم چي دروازې ته نژدې دی(طواف) شروع کړی لِطَافَ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو اووه(۷) دوره طواف یې وکړی وَالْإِضْطِبَاعُ أَنْ يَجْعَلَ رِدَاءَهُ تَحْتَ إِبْطِهِ الْأَيْمَنِ او اضطباع دا ده چي محرم خپل پټوله خپل راسته بغل څخه راوباسي وَيُلْقِيَهِ عَلَى كَتِفِهِ الْأَيْسَرِ او پر خپله چپه اوږه یې واچوي وَهُوَ سُنَّةٌ وَقَدْ نُقِلَ ذَلِكَ عَنْ ● رَسُوْلِ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اضطباع سنت ده او له رسول الله ﷺ څخه رانقل سوی ده.

**اللغات:** ﴿إبط﴾ بغل. ﴿يلقي﴾ د افعال مضارع ده: اچول.

**تشریح:** مسئله: دا ده چي محرم کله د طواف کولو اراده وکړي، نو له راسته طرفه دي یې شروع کړي، یعني د حجر اسود د راسته طرف کومه حصه چي د بیت الله سره څیرمه او نژدې ده، له هغه حصې څخه دي طواف شروع کړي، ځکه له نبي ﷺ څخه همداسي رانقل سوي دي، او همدا طریقه سنت ده. او تر طواف مخکي اضطباع کول هم سنت دي، اضطباع دا ده چي محرم به خپل څادر(پټو) له راسته بغل څخه راوباسي او پر چپه اوږه به یې واچوي، ځکه چي همداسي نبي ﷺ کړي وو. او پر کعبې به اووه(۷) واره را وګرځي، یو وار راګرځېدلو ته "یو شوط" وایي.

## په طواف کي د حطیم شاملولو حکم

قَالَ: وَيَجْعَلُ طَوَافَهُ مِنْ وَرَاءِ الْحَطِيْمِ فرمايي: او محرم به خپل طواف له حطیم څخه دباندي کوي(یعني د حطیم شاته به یې کوي) وَهُوَ اسْمٌ لِمَوْضِعٍ فِيْهِ الْمِيْزَابُ او حطیم د یو ځای نوم دی چي په هغه کي میزابِ رحمت (د رحمت نلوه) واقع ده سُمِّيَ بِهِ لِأَنَّهُ حُطِمَ مِنَ الْبَيْتِ أَيْ كُسِرَ دې ځای ته ځکه حطیم ویل کیږي چي دا حصه له کعبې څخه حطم یعني ماته سوې (او جلا سوې) ده وَسُمِّيَ حِجْرًا لِأَنَّهُ حُجِرَ مِنْهُ أَيْ مُنِعَ او حطیم ته حِجر په دې وجه ویل کیږي چي دا حصه له کعبې څخه محجوره یعني منع سوې(او بنده سوې) ده وَهُوَ مِنَ الْبَيْتِ لیکن حطیم له کعبې څخه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● فِيْ حَدِيْثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا: فَإِنَّ الْحَطِيْمَ مِنَ الْبَيْتِ ځکه د حضرت عائشې رضي الله عنها په حدیث کي دي چي نبي ﷺ وفرمایل: بېشکه حطیم له کعبې څخه دی فَلِهٰذَا يُجْعَلُ الطَّوَافُ مِنْ وَرَائِهِ نو ځکه به طواف له حطیم څخه دباندي کیږي حَتَّى لَوْ دَخَلَ الْفُرْجَةَ الَّتِيْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْبَيْتِ لَا يَجُوْزُ تر دې که طواف کونکی په هغه پرانخه حصه کي داخل سو کوم چي د حطیم او د کعبې په مینځ کي ده نو جائز نه دي إِلَّا أَنَّهُ إِذَا اسْتَقْبَلَ الْحَطِيْمَ وَحْدَهُ خو که لمونځ ګزاره فقط حطیم ته مخامخ سي لَا يُجْزِئُهُ الصَّلَاةُ نو د هغه لمونځ (هم) نه جائز کیږي لِأَنَّ فَرْضِيَّةَ التَّوَجُّهِ ثَبَتَتْ بِنَصِّ الْكِتَابِ ځکه (قبلې ته) د مخامخ کېدلو فرضیت د قرآن په نص سره ثابت دی فَلَا يَتَأَدَّى بِمَا ثَبَتَ بِخَبَرِ الْوَاحِدِ إِحْتِيَاطًا نو احتیاطاً به پر هغه طرف لمونځ نه اداء کیږي چي د هغه ثبوت په خبرِ واحد سره سوی وي وَالْإِحْتِيَاطُ فِي الطَّوَافِ أَنْ يَكُوْنَ وَرَاءَهُ او په طواف کي احتیاط دا دی چي تر حطیم شاته (یعني له حطیم څخه دباندي) وي.

---

● أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب الإضطباع في الطواف، حديث رقم: ۱۸۸۴.

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب جدر الكعبة وبابها، حديث رقم: ۴۰۵، وبخاري في كتاب الحج، باب رقم: ۴۲.

**اللغات:** ﴿میزاب﴾ ناوه (پرناوه).

**تشريح:** په دې عبارت کې دا خبره کیږي چې طواف کونکي به د حطیم شاته یعني له حطیم څخه دباندې طواف کوي د دې لپاره چې د حطیم طواف هم وسي، دلیل دا دی چې حطیم هم د بیتُ الله (کعبې شریفې) حصه ده. قریشو چې کله کعبه جوړوله نو د خرڅ د کمښت په وجه یې دا حصه پرېښووله. لهذا دا حصه هم له کعبې څخه ده. لکه څرنګه چې دا په حدیث سره هم ثابت دي، نو ځکه به له دې حصې څخه دباندې طواف کوي. په یو اثر کې راځي: عن عطاء فی رجل طاف فکان من طوافه دخولا فی الحجر. قال لا یعتد بما کان من دخول الحجر. له دې اثر څخه معلومه سوه چې حطیم ته حجر هم ویل کیږي، او په حطیم کې دننه طواف هم صحیح نه دی.

وهو اسم لموضع الخ حطیم هغه ځای ته ویل کیږي چې په هغه کې د کعبې شریفې د بام اوبه راتوییږي، او دې ته ځکه حطیم ویل کیږي چې د حطم معنیٰ ده: ماتېدل، او مشرکینو د خرڅ د کمښت په وجه دا حصه له کعبې څخه راماته او جلا کړه، او د حطیم دویم نوم حجر هم دی، او حِجر ځکه ورته ویل کیږي چې د حِجر معنیٰ ده: منع کړی سوی، لیرې سوی، او حطیم هم له کعبې شریفې څخه د خرڅ د کمښت په وجه لیرې سو، او په کعبه شریفه کې داخل نه سو، او دریم نوم یې جدر هم دی: یعني کوچنی دېوال.

وهو من البیت الخ حضرت عائشه رَضِیَ اللہُ عَنۡہَا فرمایي چې حطیم له کعبې څخه دی، لهذا تر حطیم به دباندې طواف کول ضروري وي، نو که یو څوک د کعبې او حطیم په مینځ کې د طواف لپاره تېر سي، نو د هغه طواف نه صحیح کیږي، ځکه چې هغه د کعبې د یوې حصې طواف پرېښووی.

إلا أنه إذا استقبل الخ دا عبارت د یو اشکال جواب دی، اشکال دا دی چې کله حطیم د کعبې یوه حصه ده، نو فقط حطیم ته په مخ کولو سره لمونځ صحیح کېدل پکار دي، حال دا چې فقط حطیم ته په مخ کولو سره لمونځ نه جائز کیږي، جواب دا دی چې د لمانځه په حالت کې د کعبې و طرف ته د مخ کولو فرضیت د کتابُ الله په دې آیت فول وجوهکم شطره څخه ثابت دی، او دا خبره په خبرِ واحد سره ثابته ده چې حطیم د بیت الله حصه ده، نو د احتیاط تقاضا دا ده چې کوم شی په قطعي نص سره ثابت وي، هغه به پر خبرِ واحد په عمل کولو سره نه اداء کیږي. او په طواف کې احتیاط په دې کې دی چې له حطیم څخه دباندې طواف وکړي، د دې لپاره چې حطیم هم په طواف کې شامل سي او پر حدیث هم عمل راسي، او هیڅ شبهه پاته نه سي.

## په اولو دریو دورو (شوطونو) کې د رَمَلُ حکم

قَالَ: وَيَرۡمِلُ فِي الثَّلَاثِ الۡأُوَلِ مِنَ الۡأَشۡوَاطِ فرمایي: چې طواف کونکي به په اولو دریو دورو کې رمل کوي وَالرَّمَلُ أَنۡ يَهُزَّ فِي مِشۡيَتِهِ الۡكَتِفَيۡنِ او رَمَل دا دی چې په خپل مزل کې به دواړې اوږې (داسې) ښوروي كَالۡمُبَارِزِ يَتَبَخۡتَرُ بَيۡنَ الصَّفَّيۡنِ لکه جنګ کونکی چې د دواړو صفونو په مینځ کې په فخر (او ناز) روان وي وَذٰلِكَ مَعَ الۡإِضۡطِبَاعِ او دا به د اضطباع سره کوي وَكَانَ سَبَبُهُ إِظۡهَارَ الۡجَلَدِ لِلۡمُشۡرِكِيۡنَ او د رَمَل سبب مشرکینو ته د طاقت (او مړانې) ښکاره کول وو

حِيْنَ قَالُوْا: أَضْنَاهُمْ حُمّٰى يَثْرِبَ كله چي هغوى دا وويل: دا مسلمانان د مدينې تبې كمزوري كړي دي ثُمَّ بَقِيَ الْحُكْمُ بَعْدَ زَوَالِ السَّبَبِ فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَبَعْدَهُ بيا حكم د سبب تر زائلېدلو وروسته پاتې سو د نبي ﷺ په زمانه كې (هم) او تر هغه وروسته (هم).

**اللغات:** ﴿يرمل﴾ په خيال او غرور سره تګ كول. ﴿أشواط﴾ جمع د شوط ده: پر كعبې شريفې يو ځل راګرځېدلو ته يو شوط ويل كېږي. ﴿يهز﴾ د نصر مضارع ده: حركت وركول، ښوورول. ﴿كتف﴾ اوږه. ﴿مبارز﴾ پلوان، جنګ كونكى، جنګ ته رابلونكى. ﴿يبختر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: په ناز او فخر سره تلل. ﴿جلد﴾ طاقت، قوت. ﴿أضناهم﴾ د افعال ماضي ده: ناتوانه او كمزوري كول. ﴿حمّى﴾ تبه. ﴿يثرب﴾ مدينه منوره.

**تشريح:** د تګ او رفتار په وخت كې د مېړني جنګيالي په ډول دواړه لاسونه لېرې ساتلو او سينه راكښلو ته رمل ويل كېږي، او د طواف په اولو دريو دورونو (شوطونو) كې رمل كول سنت دي؛ د رمل د مشروعيت سبب دا وو چي كله مسلمانان د صلح حديبيې په دويم كال مكې ته داخل سول، او مشركينو تر دريو ورځو پوري مكه مباركه خالي پرېښووله، غروته ولاړل، نو نبي ﷺ د صحابه وو سره د كعبې طواف وكړى، د طواف په دوران كې مشركينو په بعضي مسلمانانو ملنډې ووهلې او داې وويل چي: أضناهم حمّى يثرب، (يعني د مدينې تبې دوى ناتوانه او كمزوري كړي دي)، كله چي دا خبره نبي ﷺ ته ورسېدله، نو نبي ﷺ د ايماني قوت د ښرګندولو په غرض رمل شروع كړى، نو د نبي ﷺ په لېدلو سره نورو صحابه وو هم رمل شروع كړى، او د دې فايده دا سوه چي د مشركينو له زړونو څخه د مسلمانانو د كمزورۍ او ضعف احساس ختم سو، تر فتح مكه وروسته كه څه هم د رمل سبب ختم سو، لېكن بيا نبي ﷺ د حجة الوداع پر موقع هم رمل وكړى، او تر نبي ﷺ وروسته د صحابه وو په زمانه كې هم دا حكم او عمل جاري وو، لهذا تر قيامته پوري د طواف كونكو په حق كې دا سنت عمل وګرځول سو.

## په آخري دورونو كې د طواف د حالت حكم

قَالَ: وَيَمْشِيْ فِي الْبَاقِيْ عَلٰى هَيْئَتِهِ فرمايي: او طواف كونكى به په پاتې (څلورو) دورونو كې د خپل حالت (او عادت) مطابق تګ كوي عَلٰى ذٰلِكَ اتَّفَقَ رُوَاةُ[●] نُسُكِ رَسُوْلِ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ هم پر دې اتفاق كړى دى د نبي ﷺ د حج د افعالو روايت كونكو وَالرَّمَلُ مِنَ الْحَجَرِ إِلَى الْحَجَرِ او رمل كول به له حجر اسود څخه تر حجر اسود پوري وي هُوَ الْمَنْقُوْلُ مِنْ رَمَلِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ همدا د نبي ﷺ د رمل په باره كې را نقل سوي دي.

**تشريح:** عبارت خو بالكل ښكاره دى چي رمل به صرف په اولو دريو دورونو كې كېږي، او په پاتې څلورو دورونو كې به طواف كونكى د خپل عام حالت او عادت مطابق په سكون سره تګ كوي، ځكه څومره صحابه وو چي د نبي ﷺ د حج افعال بيان كړي دي، هغو ټولو همداسې ذكر كړي دي، چي رمل به صرف په اولو دريو دورونو كې كېږي، او دا رمل به له حجر اسود څخه شروع كېږي او پر حجر اسود به ختمېږي، ځكه چي له نبي ﷺ څخه هم من الحجر إلى الحجر رمل را نقل سوى دى، نو اُمت به هم د دغه مطابق عمل كوي.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب ما جاء في السعي، حديث رقم: ۱۶۴۴، ومسلم في كتاب الحج، باب إستحباب الرمل في الطواف، حديث رقم: ۲۳۲.

## که په رمل کې سختي او ګڼه ګوڼه وي نو څه حکم دی؟

قَالَ: فَإِنْ زَحَمَهُ النَّاسُ فِي الرَّمَلِ او که خلګ پر محرم په رمل کولو کې خنډ واچوي (یعني ګڼه ګوڼه او رش وي او محرم رمل نه سي کولای) قَامَ نو و دې دریږي (یعني ولاړ دې اووسي) فَإِذَا وَجَدَ مَسْلَكًا رَمَلَ او کله چي (هم) لاره پیدا کړي نو رمل دي وکړي لِأَنَّهُ لَا بَدَلَ لَهُ ځکه چي د رمل لپاره (هيڅ) بدل نسته فَيَقِفُ حَتَّى يُقِيمَهُ عَلَى وَجْهِ السُّنَّةِ نو دریږي به تر دې چي د سنت مطابق رمل اداء کړي بِخِلَافِ الْإِسْتِلَامِ لِأَنَّ الْإِسْتِقْبَالَ بَدَلٌ لَهُ په خلاف د استلام ځکه چي استقبال (مخامخ کېدل) د هغه بدل دی.

**اللغات:** ﴿زحم﴾ ګڼه ګوڼه (رش) جوړول، خنډ اچول، ﴿مسلك﴾ د تګ ځای، لاره.

**تشریح:** مخکې ذکر سوه چي په اولو دریو دورونو کې به رمل کیږي، نو که د رش او د خلګو د ډېربښت په وجه رمل کول ممکن نه وو، نو و دې دریږي، او بغیر له رمله دې طواف نه کوي، کله چي لږ پراخي وویني او پوه سي چي رمل کولای سي، نو رمل دې وکړي، دلیل دا دی چي د رمل هیڅ بدل نسته، نو که په اولو دریو دورونو کې رمل کول ممکن نه وو، نو په ولاړه به انتظار کوي، چي د سنت مطابق طواف اداء کړي، د دې په خلاف د حجر اسود استلام دی، نو که استلام ستونزمن او ناممکن سو، نو په ولاړه به انتظار نه کوي، بلکې استقبال به کوي یعني حجر اسود ته به مخ کوي، ځکه چي د استلام بدل سته، او هغه استقبال دی.

## په هر دور (شوط) کې د حجر اسود د مچولو حکم

قَالَ: وَيَسْتَلِمُ الْحَجَرَ كُلَّمَا مَرَّ بِهِ فرمايي: او مچوي به حجر اسود کله چي هم ور سره تېر سي إِنِ اسْتَطَاعَ په دې شرط چي طاقت يې لري لِأَنَّ أَشْوَاطَ الطَّوَافِ كَرَكَعَاتِ الصَّلَاةِ ځکه چي د طواف دورونه د لمانځه د رکعتونو په ډول دي فَكَمَا يَفْتَتِحُ كُلَّ رَكْعَةٍ بِالتَّكْبِيرِ نو څرنګه چي د هر رکعت شروع په تکبير سره کوي يَفْتَتِحُ كُلَّ شَوْطٍ بِاسْتِلَامِ الْحَجَرِ همداسې به د هر دَوْر شروع د حجر اسود په استلام (مچولو) سره کوي وَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْإِسْتِلَامَ او که يې د استلام طاقت نه درلودی اِسْتَقْبَلَ وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ عَلَى مَا ذَكَرْنَا نو حجرِ اسود ته دې مخامخ سي تکبير او تهليل دې ووايي لکه څرنګه چي مورږ ذکر کړه وَيَسْتَلِمُ الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ او د رکن يماني استلام به (هم) کوي وَهُوَ حَسَنٌ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ [1] او داسې کول د ظاهر روايت مطابق مستحب دي وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ سُنَّةٌ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي داسې کول سنت دي وَلَا يَسْتَلِمُ غَيْرَهُمَا او له حجر اسود او رکنِ يماني څخه په ماسوا د بل رکن استلام نه کوي فَإِنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2] كَانَ يَسْتَلِمُ هَذَيْنِ الرُّكْنَيْنِ ځکه نبي ﷺ به د دې دوو رکنونو استلام کوي وَلَا يَسْتَلِمُ غَيْرَهُمَا او د نورو رکنونو استلام به نه کوی وَيَخْتِمُ الطَّوَافَ بِالْإِسْتِلَامِ يَعْنِي اسْتِلَامَ الْحَجَرِ او طواف به پر استلام ختموي يعني د حجر اسود پر استلام.

---

[1] القول الراجح: ظاهر الرواية، كذا في رد المحتار ج:٢، ص: ١٨٤. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٠٩]

[2] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب إستحباب إستلام الركنين اليمانيين، حديث رقم: ٢٤٢، ٢٤٣.

**تشریح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي كه طواف كوونكى قدرت لري نو هغه ته پكار ده چي كله هم د حجر اسود نه تېر سي، نو هغه دي مچوي، ځكه چي د طواف دوورونه (شوطونه) د لمانځه د ركعتونو په ډېر دي. لكه څرنګه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: إن الطواف بالبيت صلوة. نو څرنګه چي د لمانځه هر ركعت په تكبير سره شروع كيږي. همدارنګه د هر دور (شوط) شروع له استلام او مچولو څخه كيږي، د دې تائيد د بخاري په دې حديث سره هم كيږي: أن نبي ﷺ طاف على بعير كلما أتى على الركن أشار إليه بشئ في يده؛ او كه د استلام او مچولو قدرت يې نه وو نو د حجر اسود استقبال به كوي، او تكبير و تهليل به وايي، لكه مخكي چي ذكر سوه.

ويستلم الركن الخ فرمايي چي طواف كوونكى به ركنِ يماني هم مچوي، او د ظاهر روايت مطابق د هغه استلام او مچول مستحب او غوره دي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول مطابق د هغه استلام او مچول سنت دي.

ولايستلم الخ فرمايي چي طواف كوونكي ته پكار ده چي له حجر اسود او ركنِ يماني څخه به ماسوا د ركنِ شامي او ركنِ عراقي استلام نه كوي، ځكه ﷺ چي نبي ﷺ به صرف د حجر اسود او ركنِ يماني استلام كوى، د نورو اركانو استلام به يې نه كوى، او كله چي طواف كوونكى طواف ختمول وغواړي، نو پكار ده چي د حجر اسود پر استلام طواف ختم كړي، نه د ركنِ يماني پر استلام.

## د مقامِ ابراهيم سره دوه ركعته كول

قَالَ: ثُمَّ يَأْتِي الْمَقَامَ فَيُصَلِّي عِنْدَهُ رَكْعَتَيْنِ فرمايي: بيا به مقام ابراهيم ته راسي او د هغه سره به دوه ركعته لمونځ وكړي أَوْ حَيْثُ تَيَسَّرَ مِنَ الْمَسْجِدِ يا چيري چي په مسجدِ حرام كي ورته آسانه وي (هلته به يې وكړي) وَهِيَ وَاجِبَةٌ عِنْدَنَا او دا زموږ په نيز واجب دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: سُنَّةٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي سنت دي لِانْعِدَامِ دَلِيْلِ الْوُجُوْبِ ځكه چي د وجوب دليل نسته وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: وَلْيُصَلِّ الطَّائِفُ لِكُلِّ أُسْبُوْعٍ رَكْعَتَيْنِ او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دى: چي طواف كوونكى دي د هرو اوو (۷) دوورونو (شوطونو) لپاره دوه ركعته كوي وَالْأَمْرُ لِلْوُجُوْبِ او امر د وجوب لپاره دى.

**اللغات**: ﴿مقام﴾ مقام ابراهيم، ﴿طائف﴾ طواف كوونكى، ﴿أسبوع﴾ اووه دوره (شوطه)، هر اووه شمېره لرونكي شي ته ويل كيږي.

**تشریح**: مسئله: دا ده چي كله طواف كوونكى طواف پوره كړي، نو هغه ته پكار ده چي د مقام ابراهيم سره دوه ركعته لمونځ وكړي، او كه د مقام ابراهيم سره ځاى نه وو، نو په مسجد حرام كي چي هر ځاى پيدا سي هلته دي لمونځ وكړي، او دا دوه ركعته زموږ په نيز واجب دي، لېكن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز سنت دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي د يو شي د واجبېدلو لپاره صريح نص ضروري دى، او د طواف د دوو ركعتونو پر وجوب هيڅ دليل نسته، نو ځكه به دا واجب خو نه وي، لېكن سنت به وي.

---

[1] تخريج: قلت غريب هذا اللفظ و أخرج مسلم في كتاب الحج، باب إستحباب الرمل بمعناه، حديث رقم: ۲۳۱.

دوهم دلیل دا دی چې نبي ﷺ فرمایلي دي: وليصلّ الطائف لكل أسبوع ركعتين. (یعني طواف کوونکي دې د هرو وو دورونو پر سر دوه رکعته کوي). په دې حدیث سره زموږ استدلال په دې توګه دی چې نبي ﷺ د وليصلّ امر په قرینه د لمونځ کولو حکم کړی دی، او امر د وجوب لپاره راځي، نو ځکه به د طواف دوه رکعتونه واجب وي. دریم دلیل دا دی چې په خپله د دې آیت واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى په قرینه د مقام ابراهيم سره د لمونځ کولو وجوبي حکم سوی دی. نو په دې آیت سره هم د دې دوو رکعتونو وجوب ثابتیږي.

## تر طواف وروسته دوهم وار د حجر اسود د مچولو حکم

ثُمَّ يَعُودُ إِلَى الْحَجَرِ فَيَسْتَلِمُهُ بیا به د حجر اسود و طرف ته راوګرځیږي او هغه به مچ کړي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لَمَّا صَلَّى رَكْعَتَيْنِ عَادَ إِلَى الْحَجَرِ ځکه روایت سوی دی چې کله نبي ﷺ دوه رکعته وکړل نو د حجر اسود و طرف ته واپس راغلی وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ طَوَافٍ بَعْدَهُ سَعْيٌ يَعُودُ إِلَى الْحَجَرِ او قاعده دا ده چې تر هر طواف وروسته سعی وي، په هغه طواف کې به حجر اسود ته واپس راځي لِأَنَّ الطَّوَافَ لَمَّا كَانَ يُفْتَتَحُ بِالْاِسْتِلَامِ ځکه څرنګه چې طواف په استلام سره شروع کېدی فَكَذَا السَّعْيُ يُفْتَتَحُ بِهِ همدارنګه به سعی هم په استلام سره شروع کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ بَعْدَهُ سَعْيٌ په خلاف د هغه صورت چې کله تر طواف وروسته سعی نه وي.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې د طواف او د طواف تر لمانځه وروسته که د محرم د سعي اراده وي، نو تر لمانځه وروسته دې واپس حجر اسود ته راسي او مچ دې یې کړي، ځکه چې له نبي ﷺ څخه همدا ثابت دي، نو د امتي په حق کې به هم دا عمل سنت او د نېکبختۍ سبب وي.

صاحب د هدایې یوه قاعده بیانوي فرمایي چې هر هغه طواف چې تر هغه وروسته سعی وي، په هغه کې به طواف کوونکی د حجر اسود و طرف ته واپس راځي، او تر کوم طواف چې وروسته سعی نه وي، تر هغه وروسته به واپس نه راځي، د واپس راتللو وجه دا ده چې څرنګه په استلام حجر سره د طواف شروع کیږي، همدارنګه به د سعي شروع هم په استلام حجر سره کیږي.

## د طوافِ قدوم بیان او شرعي حیثیت

قَالَ: وَهٰذَا الطَّوَافُ طَوَافُ الْقُدُومِ فرمایي: چې دا طواف طوافِ قدوم دی (یعني محرم چې کله اول وار کعبې ته راسي او کوم طواف چې اول وار کوي هغه طوافِ قدوم دی) وَيُسَمَّى طَوَافُ التَّحِيَّةِ او طوافُ التحیة (هم) ورته ویل کیږي وَهُوَ سُنَّةٌ وَلَيْسَ بِوَاجِبٍ او دا سنت دی واجب نه دی وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: إِنَّهُ وَاجِبٌ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: چې واجب دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: مَنْ أَتَى الْبَيْتَ ● فَلْيُحَيِّهِ بِالطَّوَافِ ځکه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: څوک چې کعبې ته

---

● تخریج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب حجة النبي ﷺ، حديث رقم: ١٢٧.

● تخریج: قال الزيلعي غريب جداً لم أجده.

راسي نو په طواف سره دي د هغه تحيه اداء کړي وَلَنَا أَنَّ اللهَ تَعَالىٰ أَمَرَ بِالطَّوَافِ او زمونږ دليل دا دی چي الله تعالیٰ د طواف امر کړی دی وَالْأَمْرُ الْمُطْلَقُ لَا يَقْتَضِي التَّكْرَارَ او مطلق امر د تکرار تقاضا نه کوي وَقَدْ تَعَيَّنَ طَوَافُ الزِّيَارَةِ بِالْإِجْمَاعِ او بالاتفاق طوافِ زيارت متعين سوی دی وَفِيمَا رَوَاهُ سَمَّاهُ تَحِيَّةً او د امام مالک په روايت سوي حديث کي نبي ﷺ د دې نوم طوافُ التحية ايښی دی وَهُوَ دَلِيلُ الْإِسْتِحْبَابِ او دا د استحباب دليل دی وَلَيْسَ عَلَى أَهْلِ مَكَّةَ طَوَافُ الْقُدُومِ او د مکې پر خلکو طوافِ قدوم نسته لِانْعِدَامِ الْقُدُومِ فِي حَقِّهِمْ ځکه چي د هغو په حق کي قدوم (يعني مکې ته راتګ) نسته.

**اللغات:** ﴿قدوم﴾ راتګ (راتلل)، ﴿تحية﴾ د ادب څرګندونه.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي اطرافي او بهرني خلک چي کله مکې مکرمې ته ورسيږي، نو د هغو لپاره طوافِ قدوم کول سنت دي، د طوافِ قدوم دويم نوم طوافِ تحيه او دريم نوم طوافِ لقاء او څلورم نوم طوافِ اول عهد دی، د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز دا طواف واجب دی، د هغه دليل دا حديث دی: من أتى البيت فليحيه بالطواف (يعني څوک چي بيتُ الله ته راسي نو په طواف سره دي هغه ولمانځي)، لکه د مؤمن سره د ملاقات تحيه چي په سلام سره اداء کوي، په دې حديث کي په طواف سره د تحيې اداء کولو حکم د امر په صيغه سره سوی دی، او امر د وجوب لپاره وي.

ولنا الخ زمونږ دليل دا دی چي الله تعالیٰ په دې آيت وليطوفوا بالبيت العتيق کي د طواف امر کړی دی، او مطلق امر د تکرار تقاضا نه کوي، او د طوافِ زيارت فرضيت او وجوب بالاجماع معلوم سوي دي، نو کله چي طوافِ زيارت د وجوب لپاره متعين سو، نو اوس به يو بل طواف نه واجبيږي، کنې د وجوب تکرار به لازم سي.

وفيما رواه الخ د امام مالک رَحِمَهُ الله د ذکر سوي حديث جواب دا دی چي په حديث کي دې طواف ته تحيه ويل سوي دي، او تحيه کېدل د استحباب دليل دی، ځکه چي په لغت کي تحيه د هغه إکرام او کار نوم دی کوم چي د تبرع په توګه وسي، او ښکاره ده چي د تبرع په توګه مستحب او مندوب کار کيږي، واجب کار خو د دې لپاره کيږي چي له غاړي څخه واجب شی ساقط سي، نو ځکه به طوافِ قدوم واجب نه وي، بلکي سنت به وي.

وليس على الخ فرمايي چي د مکې د اوسېدونکو په حق کي طوافِ قدوم سنت نه دی، ځکه چي دا طواف د "قدوم" يعني له بهر څخه د راتللو په وجه سنت سوی دی، او د مکې د خلکو په حق کي قدوم نسته، نو ځکه به د هغو په حق کي دا طواف هم نه وي.

## د سعي د شروع کولو طريقه

قَالَ: ثُمَّ يَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا فرمايي: چي بيا به محرم د صفا و طرف ته ووځي فَيَصْعَدُ عَلَيْهِ وَيَسْتَقْبِلُ الْبَيْتَ نو پر صفا به وخيږي او د کعبې و طرف ته به مخ کړي وَيُكَبِّرُ وَيُهَلِّلُ وَيُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او تکبير، تهليل او پر

نبي ﷺ به درود ووايي وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ وَيَدْعُو اللهَ لِحَاجَتِهِ او خپل دواړه لاسونه به پورته کړي او د خپل ضرورت لپاره به الله ته دعاء وکړي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] صَعِدَ الصَّفَا ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ پر صفا وختی حَتّٰى إِذَا نَظَرَ إِلَى الْبَيْتِ تر دې چي کله نبي ﷺ کعبه وليدله قَامَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ يَدْعُو اللهَ نو مخ پر قبله ودريدی الله ته يې دعاء وکړه وَلِأَنَّ الثَّنَاءَ وَالصَّلَاةَ يُقَدَّمَانِ عَلَى الدُّعَاءِ او په دې وجه چي ثناء او درود به دواړه پر دعاء مخکي کيږي تَقْرِيبًا إِلَى الْإِجَابَةِ قبوليت ته د نژدې کولو لپاره (يعني چي دعاء ژر قبوله سي) كَمَا فِي غَيْرِهِ مِنَ الدَّعَوَاتِ لکه په نورو دعاګانو کي چي (مخکي) کيږي وَالرَّفْعُ سُنَّةُ الدُّعَاءِ او لاسونه پورته کول د دعاء سنت دي وَإِنَّمَا يَصْعَدُ بِقَدْرِ مَا يَصِيرُ الْبَيْتُ بِمَرْأًى مِنْهُ او پر صفا به دومره اندازه خيږي چي کعبه د هغه په سترګو سي (يعني کعبه ده ته ښکاره سي) لِأَنَّ الْإِسْتِقْبَالَ هُوَ الْمَقْصُودُ بِالصُّعُودِ ځکه چي (له ختلو څخه) استقبال مقصود دی وَيَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا مِنْ أَيِّ بَابٍ شَاءَ او وځي به د صفا و طرف ته چي له هري دروازې څخه وغواړي وَإِنَّمَا خَرَجَ[2] النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَابِ بَنِيْ مَخْزُوْمٍ او نبي ﷺ له باب بنی مخزوم څخه وتلی وو وَهُوَ الَّذِيْ يُسَمّٰى بَابَ الصَّفَا چي هغه ته بابُ الصفا (هم) ويل کيږي لِأَنَّهُ كَانَ أَقْرَبَ الْأَبْوَابِ إِلَى الصَّفَا ځکه (نبي ﷺ وتلی وو) چي دا دروازه صفاء ته تر ټولو زياته نژدې وه لَا أَنَّهُ سُنَّةٌ نه په دې وجه چي له دې دروازې څخه وتل سنت دي.

**اللغات:** ﴿يصعد﴾ د فتح مضارع ده: ختل، ﴿تقريب﴾ د تفعيل مصدر دی: نژدې کول، ﴿مرأى﴾ د سترګو حد.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کله محرم له طواف قدوم څخه فارغه سي نو هغه ته پکار ده چي بيا صفاء او مروه ته مخ کړي، او د صفا پر غره دې وخيږي، او قبلې ته دې مخ کړي، تکبير او تهليل دې ووايي، او پر نبي کريم ﷺ دې درود ووايي، او بيا دې د خپل ضرورياتو لپاره دعاء وکړي، او لاسونه دې پورته کړي ځکه چي لاسونه پورته کول د دعاء سنت دي، د دې اعمالو دليل دا دی چي زموږ ستر لارښود حضرت محمد ﷺ د صفا پر غره هم داسي اعمال کړي وو، نو دا زموږ حق هم جوړيږي چي خپل د نبي ﷺ سنت او طريقې خپلي کړو.

فرمايي چي تر دعاء مخکي دي حمد، ثناء او درود ځکه وايي چي دعاء قبوليت ته نژدې سي، همدا وجه ده چي په نورو دعاګانو کي هم دا عمل کيږي، يعني حمد او درود پر دعاء مخکي کيږي، او محرم دې د صفا پر غره دومره وخيږي چي بيت الله بالکل په نظر راسي، د دې لپاره چي د بيت الله استقبال وکړي، ځکه چي پر صفا د ختلو مقصد د بيت الله استقبال دی.

ويخرج الخ او کله چي له مسجد حرام څخه د صفا د غره لپاره را ووځي نو هغه ته اختيار دی چي له هري دروازې څخه راوځي، په حديثو کي د يوې ځانګړي دروازې هيڅ تعيين نسته، بلکي د ټولو دروازو حکم برابر دی، پاته سوه دا چي نبي ﷺ ولي له باب بني مخزوم څخه راوتلی وو، نو د هغه وجه دا ده چي دا دروازه د ټولو دروازو په نسبت صفا ته زياته

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب حجة النبي ﷺ، حديث رقم: ١٤٧.

[2] أخرجه النسائي في سنن الكبرى، ج:٢، باب رقم: ٤١٠، حديث رقم: ٣٩٨٥.

نژدې ده، او څرنګه چې نبي ﷺ دېر ضعيف سوی وو، نو د نژدېکت په وجه يې له دې دروازې څخه وتل خوښ کړه، لهذا په دې سره دا نه سي ثابتېدای چې له باب بني مخزوم څخه وتل سنت دي، بلکې دا حکم مطلق او عام دی، او له هرې دروازې څخه وتل برابر دي.

## د ميلين أخضرين په مينځ کې د ځغستلو حکم (او د مروه اعمال)

قَالَ: ثُمَّ يَنْحَطُّ نَحْوَ الْمَرْوَةِ فرمايي: چې بيا به د "مروه" و طرف ته شوه(کښته) سي وَيَمْشِي عَلَى هَيْئَتِهِ او د خپل حالت(او عادت) مطابق به تګ وکړي فَإِذَا بَلَغَ بَطْنَ الْوَادِي يَسْعَى بَيْنَ الْمِيلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ سَعْيًا او کله چې مينځ د "وادي" ته ورسيږي نو د دوو زرغونو ميلونو په مينځ کې به په زوره وځغلي ثُمَّ يَمْشِي عَلَى هَيْئَتِهِ بيا به د خپل حالت(او عادت) مطابق روان سي حَتَّى يَأْتِيَ الْمَرْوَةَ وَيَصْعَدُ عَلَيْهَا تر دې چې مروه ته راسي او پر هغه به وخيږي وَيَفْعَلُ كَمَا فَعَلَ عَلَى الصَّفَا او (پر مروه به هم) داسي (تکبير، تهليل، دعاء او نور) وکړي لکه څرنګه چې يې پر صفا کړي وو لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] نَزَلَ مِنَ الصَّفَا وَجَعَلَ يَمْشِي نَحْوَ الْمَرْوَةِ ځکه روايت دی چې نبي ﷺ له صفا څخه را شوه سو او د مروه و طرف ته روان سو وَسَعَى فِي بَطْنِ الْوَادِي او د وادي په مينځ کې يې سعي وکړې حَتَّى إِذَا خَرَجَ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي مَشَى حَتَّى صَعِدَ الْمَرْوَةَ تر دې چې کله د وادي له مينځ څخه ووتی نو تګ يې وکړی (د خپل عادت مطابق) تر دې چې مروه ته وختی وَطَافَ بَيْنَهُمَا سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ او د صفا او مروه په مينځ کې يې اووه(۷) دوره(شوطه) طواف وکړی وَهَذَا شَوْطٌ وَاحِدٌ او دا يو (بشپړ) شوط دی.

**اللغات:** ﴿ينحط﴾ د انفعال مضارع ده: کښته کېدل، شوه کېدل. ﴿ميل﴾ هغه نښه او علامه چې په لاره کې درول سوې وي. ﴿يسعى﴾ د فتح مضارع ده: سعي کول(يعني تېز تلل او سعی کول). ﴿بطن الوادي﴾ د صفا او مروه په مينځ کې څه کښته ځای راځي، دې ځای ته بطن الوادي وايي. اوس پر دې ځای زرغونې بتياني درول سوي دي، دلته حاجيان ځغلي، دې زرغونو بتيانو ته ميلين اخضرين وايي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې محرم کله پر صفا له دعاء او نورو څخه فارغه سي، نو له صفا څخه دې راکښته سي، او د خپل عادت مطابق او په سکون سره دې روان سي، کله چې د وادي مينځ(بطن وادي) ته ورسيږي نو د ميلين اخضرين په مينځ کې دې سعي وکړي او په کراره دې وځغلي، بيا دې په سکون سره مروه ته راسي او پر و دې خيږي، او کوم کار چې يې پر صفا کړی وو، هغه دې پر مروه هم وکړي، دليل هغه حديث دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو.

قال: وهذا شوط الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې له صفا څخه مروه ته تلل يو شوط(دور) دی، او له مروه څخه صفا ته تلل دويم شوط دی، امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چې له صفا څخه مروه ته تلل او له مروه څخه صفا ته تلل يو شوط دی، لېکن صحيح قول اول يعني د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله دی، ځکه چې د نبي ﷺ د حج روايانو پر دې اتفاق

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب، حجة النبي ﷺ، حديث رقم: ۱۲۷.

کړې دي چې نبي ﷺ د صفا او مروه په مينځ کې اووه (۷) شوطه پوره کړه. او د امام طحاوي رحمه الله د بيان مطابق څوارلس (۱۴) شوطه کيږي، نو ځکه اول قول صحيح معلوميږي.

## د سعي اندازه او شرعي حيثيت

يَطُوفُ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو اووه (۷) دوره طواف به وکړي يَبْدَأُ بِالصَّفَا وَيَخْتِمُ بِالْمَرْوَةِ له صفا څخه به يې شروع کړي او پر مروه به يې ختم کړي وَيَسْعَى فِي بَطْنِ الْوَادِي فِي كُلِّ شَوْطٍ او په مينځ د وادي کې به په هر شوط کې سعي وکړي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَإِنَّمَا يَبْدَأُ بِالصَّفَا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] فِيهِ او له صفا څخه به ځکه شروع کوي چې نبي ﷺ په دې باره کې فرمايلي دي اِبْدَءُوا بِمَا بَدَأَ اللهُ تَعَالَى بِهِ تاسو په هغه سره شروع کوئ چې په هغه سره الله شروع کړې ده(يعني چې په هغه سره الله په آيت کې شروع کړې ده) ثُمَّ السَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَاجِبٌ بيا د صفا او مروه په مينځ کې سعي کول واجب دي وَلَيْسَ بِرُكْنٍ او رکن نه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: إِنَّهُ رُكْنٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا رکن دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِنَّ اللهَ تَعَالَى كَتَبَ عَلَيْكُمُ[2] السَّعْيَ فَاسْعَوْا چې الله تعالیٰ پر تاسو سعي ليکلې ده نو تاسو سعي وکړئ وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا [البقرة: ۱۵۸] او زموږ دليل دا دی چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: پر محرم څه ګناه نشته چې هغه د صفا او مروه طواف وکړي وَمِثْلُهُ يُسْتَعْمَلُ لِلْإِبَاحَةِ او دا ډول کلام د اباحت لپاره استعماليږي فَيَنْفِي الرُّكْنِيَّةَ وَالْإِيجَابَ نو رکنيت او ايجاب به دواړه منتفي کيږي إِلَّا أَنَّا عَدَلْنَا عَنْهُ فِي الْإِيجَابِ لیکن موږ له ايجاب څخه عدول وکړی(يعني موږ له اباحت څخه د ايجاب و طرف ته منتقل سو) وَلِأَنَّ الرُّكْنِيَّةَ لَا تَثْبُتُ إِلَّا بِدَلِيلٍ مَقْطُوعٍ بِهِ او ځکه چې رکنيت نه ثابتيږي مګر په قطعي دليل سره وَلَمْ يُوجَدْ او هغه نسته(نو ځکه به رکن نه وي) ثُمَّ مَعْنَى مَا رُوِيَ كُتِبَ اِسْتِحْبَابًا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث معنیٰ(يعني د دې حديث: إن الله تعالى كتب عليكم معنیٰ) دا ده: چې د مستحب په توګه سعي ليکل سوې ده كَمَا فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ [البقرة: ۱۸۰] لکه د الله تعالیٰ په دې قول کې(چې كتب د مستحب په معنیٰ دی): كتب عليكم إذا حضر أحدكم الموت... الخ.

**اللغات:** ﴿أشواط﴾ دورونه(شوطونه)، ﴿لا جناح﴾ هيڅ ګناه نسته، ﴿مقطوع به﴾ يقيني، قطعي.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې طواف اووه شوطه(دوره) دي، طواف به له صفا څخه شروع کيږي، او پر مروه به ختميږي، او په هر شوط کې به په بطن وادي کې سعي کوي، دليل هغه حديث دی چې په تېره مسئله کې تېر سو، يعني: أن النبي ﷺ نزل من الصفا وجعل يمشي نحو المروة. او له صفا څخه د سعي شروع کولو دليل دا حديث دی: ابدؤا بما

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب حجة النبي ﷺ، حديث رقم: ۱۴۷.

[2] تخريج: أخرجه بيهقي في سننه في كتاب الحج، باب وجوب الطواف بين الصفا والمروة، حديث رقم: ۹۳۶۵، ۹۳۶۶.

بدأ الله تعالى به. یعني په کوم ځای سره چې الله (په آیت کې) شروع کړې ده تاسو هم په هغه سره شروع وکړئ. او الله (په آیت کې) په صفا سره شروع کړې ده، آیت دا دی: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللهِ. او په دې حدیث کې لفظ د ابدؤا صیغه د امر ده، نو ځکه به په صفا سره شروع کول واجب وي.

ثم السعي الخ پاتې سوه دا خبره چې د صفا او مروه په مینځ کې سعي کول واجب دي، که رکن. نو په دې باره کې اختلاف دی، زموږ په نیز رکن نه دی، بلکې واجب دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز رکن دي، همدا د امام مالک رحمه الله او د امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی.

**د امام شافعي دلیل:** دا حدیث دی: إن الله تعالى كتب عليكم السعي فاسعوا. (یعني الله تعالیٰ پر تاسو سعی کول لیکلې دي نو تاسو سعی کوئ) او لیکل په فرض او رکن کې استعمالیږي، نو ځکه به سعی کول رکن وي.

**زموږ دلیل:** دا آیت دی: فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا. په دې آیت سره زموږ استدلال په دې توګه دی چې د لا جناح لفظ د اباحت (او روایت) لپاره استعمالیږي، او کوم لفظ چې د اباحت لپاره وي، هغه د رکن او وجوب نفي کوي. نو له آیت څخه په ښکاره دا ثابته سوه چې سعی بین الصفا والمروه نه رکن دی او نه واجب، لیکن د وجوب په حق کې موږ د آیت له ظاهر څخه عدول (انتقال) وکړی، یعني د وجوب د نفي په باره کې مو د آیت پر ظاهر عمل پرېښوی، ځکه ظاهر د آیت خو پر دې دلالت کوي چې سعی بین الصفا والمروه مباح دي واجب هم نه دي، او دا مو ځکه وکړه چې دا حدیث إن الله كتب عليكم السعي فاسعوا خبر واحد دی، او خبر واحد پر وجوب دلالت کوي، دویمه وجه دا ده چې د دې آیت اول داسې دي: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللهِ، او شعائر جمع د شعیرة ده، او شعیرة علامه او نښې ته ویل کیږي، او د دین نښه او علامه فرض وي، لهذا د آیت دا حصه د سعي پر فرضیت او رکنیت دلالت کوي، او د آیت آخري حصه: فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا د سعی پر اباحت دلالت کوي، نو موږ پر دواړو عمل وکړی، او د وجوب قائل سو، ځکه چې واجب خو اعتقاداً فرض نه وي، لیکن عملاً فرض وي، دریمه وجه دا ده چې د وجوب پر نفي مو عمل کول د اجماع په وجه پرېښوی، ځکه چې د سعی بین الصفا والمروه د اباحت هیڅوک هم قائل نسته.

د سعی پر واجبېدلو او رکن نه کېدلو زموږ دویم دلیل دا دی چې رکنیت په قطعي دلیل سره ثابتیږي، او قطعي دلیل دلته نسته، نو ځکه به سعی رکن هم نه وي.

ثم معنى ما روى الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حدیث إن الله كتب عليكم السعي فاسعوا جواب دا دی چې په دې کې له كتب عليكم څخه استحباب مراد دی، نه فرضیت، لکه څرنګه چې له دې آیت كتب عليكم إذا حضر أحدكم الموت څخه مراد هم دا دی چې د مرګ په وخت کې وصیت کول مستحب دي، نه فرض، نو څرنګه چې دلته د كتب عليكم لفظ د استحباب لپاره دی، همدا ډول به په حدیث کې هم لفظ د كتب عليكم د استحباب یعني د غیرِ فرض لپاره وي.

## د هغو اعمالو بیان کوم چې تر طوافِ قدوم وروسته کیږي

| |
|---|
| قَالَ: ثُمَّ يُقِيمُ بِمَكَّةَ حَرَامًا فرمایي: بیا به دا سړی په مکه کې پاته سي د احرام په حالت کې لِأَنَّهُ مُحْرِمٌ بِالْحَجِّ ځکه چې دا سړی د حج احرام تړونکی دی فَلَا يَتَحَلَّلُ قَبْلَ الْإِتْيَانِ بِأَفْعَالِهِ نو دی به نه حلالیږي د حج د افعالو تر اداء کولو |

مخکې يَطُوفُ بِالْبَيْتِ كَمَا بَدَأْنَاهُ او (د کعبې) طواف به کوي کله چې د هغه ذړه وغواړي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الصَّلَاةَ ځکه چې طواف د لمانځه سره مشابه دی قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ صَلَاةٌ نبي ﷺ فرمايلي دي: پر کعبه طواف کول لمونځ دی وَالصَّلَاةُ خَيْرُ مَوْضُوعٍ او لمونځ ښه موضوع ده (يعني ښه کار دی) فَكَذَا الطَّوَافُ نو همداسې طواف هم (ښه موضوع ده) إِلَّا أَنَّهُ لَا يَسْعَى عَقِيبَ هٰذِهِ الْأَطْوِفَةِ فِي هٰذِهِ الْمُدَّةِ لېکن دا سړی به په دې موده کې تر دې (نفلي) طوافونو وروسته سعی نه کوي لِأَنَّ السَّعْيَ لَا يَجِبُ فِيهِ إِلَّا مَرَّةً ځکه چې په حج کې سعي صرف يو وار واجب ده وَالتَّنَفُّلُ بِالسَّعْيِ غَيْرُ مَشْرُوعٍ او په نفلي توګه سعی کول مشروع نه دي وَيُصَلِّي لِكُلِّ أُسْبُوعٍ رَكْعَتَيْنِ او د هرو اوو (۷) شوطونو لپاره به دوه رکعته کوي وَهِيَ رَكْعَتَا الطَّوَافِ او دا دوه رکعته د طواف دي عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه (مخکې) چې موږ بيان کړه.

**اللغات:** ﴿حرامًا﴾ د احرام حالت، ﴿بدا﴾ ښکاره کېدل، مخته راتلل، ﴿عقيب﴾ وروسته، ﴿أطوفة﴾ جمع د طواف ده: طوافونه.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې کوم چا صرف د حج احرام تړلی وي، نو هغه دې تر طواف قدوم او سعي وروسته د احرام په حالت کې په مکه مکرمه کې مقيم پاته سي، او د حج په ورځو کې دې د حج افعال اداء کړي، ځکه هغه د حج د احرام تړلی دی، نو تر څو چې د حج ټول افعال په بشپړه توګه اداء نه کړي، تر هغه وخته نه حلالېږي، او په دې موده کې چې کله هم موقع په لاس ورسي، د کعبې مبارکې طواف دې کوي، ځکه په دې حديث الطواف بالبيت صلاة کې طواف د لمانځه سره مشابه ګرځول سوی دی، نو څرنګه چې له دريو وختونو څخه علاوه نور په هر وخت کې لمونځ جائز دی، او لمونځ غوره نېکي دي، همداسې به دېر طوافونه کول هم غوره نېکي او ښه خبره وي، او کله چې هم وخت پيدا کړي، طواف دې کوي، خو څرنګه چې د هغه په حق کې دا ټوله طوافونه نفل دي، نو ځکه به تر دې طوافونو وروسته پر هغه سعی کول واجب نه وي، ځکه چې د حج په احرام کې صرف يو وار سعی واجبېږي، چې هغه دې سړي تر طواف قدوم وروسته کړې ده، نو اوس دې سړي ته د سعی کولو هيڅ ضرورت نسته، او داسې هم نه سي کولای چې نفلي سعی وکړي، ځکه چې نفلي سعی مشروع او صحيح نه ده.

ويصلي الخ فرمايي چې په نفلي طواف کې دې هم د هرو اوو (۷) شوطونو پر سر دوه رکعته لمونځ کوي، او دې دوو رکعتو ته صلوٰة طواف ويل کېږي، لکه مخکې چې تېر سو.

## د اوومې ذی الحجې د اعمالو بيان

قَالَ: فَإِذَا كَانَ قَبْلَ يَوْمِ التَّرْوِيَةِ بِيَوْمٍ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: نو کله چې تر يوم ترويه يوه ورځ مخکې وي (يعني يوم الترويه ته يوه ورځ پاته وي) خَطَبَ الْإِمَامُ خُطْبَةً نو امام به خطبه ووايي يُعَلِّمُ فِيهَا النَّاسَ الْخُرُوجَ إِلَى مِنًى وَالصَّلَاةَ بِعَرَفَاتٍ وَالْوُقُوفَ وَالْإِفَاضَةَ چې په هغه کې به خلکو ته ورښيي د منیٰ و طرف ته وتل، په عرفات کې لمونځ کول، او په

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء في الكلام في الطواف، حديث رقم: ۹۶۰.

عرفات کي ورېدل. او له عرفات څخه روانېدل وَالْحَاصِلُ أَنَّ فِي الْحَجِّ ثَلَاثُ خُطَبٍ حاصل دا دی چې په حج کې درې خطبې دي أَوَّلُهَا مَا ذَكَرْنَا اوله خطبه خو هغه ده کوم چې موږ ذکر کړه وَالثَّانِيَةُ بِعَرَفَاتٍ يَوْمَ عَرَفَةَ او دويمه خطبه د عرفات په ورځ د عرفات په میدان کي ده وَالثَّالِثَةُ بِمِنًى فِي الْيَوْمِ الْحَادِيْ عَشَرَ او دريمه خطبه په منیٰ کي په يوولسم ورځ ده فَيَفْصِلُ بَيْنَ كُلِّ خُطْبَتَيْنِ بِيَوْمٍ نو د هرو دوو خطبو په مینځ کي به په يوې ورځي سره فصل کوي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: يَخْطُبُ فِي ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مُتَوَالِيَةٍ او امام زفر رَحِمَهُ الله وايي: چې پرلپسې به درې خطبې وايي أَوَّلُهَا يَوْمُ التَّرْوِيَةِ لِأَنَّهَا أَيَّامُ الْمَوْسِمِ وَمُجْتَمَعُ الْحَاجِّ اوله خطبه به د ترويه په ورځ کي (وايي) ځکه چې دا د حج د موسم ورځي او د حاجيانو د راجمع کېدلو ورځي دي وَلَنَا أَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْهَا التَّعْلِيْمُ او زموږ دليل دا دی چې له دغو خطبو څخه مقصود د حج د افعالو تعليم دی وَيَوْمُ التَّرْوِيَةِ وَيَوْمُ النَّحْرِ يَوْمَا اشْتِغَالٍ او د ترويې او نحر ورځي د مشغوليت ورځي دي فَكَانَ مَا ذَكَرْنَاهُ أَنْفَعَ وَفِي الْقُلُوْبِ أَنْجَعَ نو کوم چې موږ ذکر کړه هغه به زيات فايده من او په زړو کي زيات اغېزمن وي.

**اللغات:** ﴿يوم التروية﴾ د ذی الحجې اتمه(۸) ورځ. ﴿إفاضة﴾ روانېدل. ﴿متوالية﴾ پرلپسې، بې له فصله. ﴿موسم﴾ د حج موسم، د حج ورځي. ﴿مجتمع﴾ د جمع کېدلو وخت. ﴿أنجع﴾ زيات اغېزمن، زيات مؤثر.

**تشريح:** يوم ترويه د ذی الحجې اتمې ورځي ته ويل کيږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی چې امام دي تر يوم ترويه يوه ورځ مخکي يعني په اوومه ورځ دي د تر ماپښين تر لمانځه وروسته خلکو ته خطبه ووايي، په خطبه کي دي هغو ته د حج د ورځو افعال وربنيي، مثلاً د منیٰ و طرف ته د روانېدلو حکم او د هغه وخت، په عرفات کي د ماپښين او د ماښګر د لمانځه د جمع کولو حکم، او په عرفات د وقوف حکم، او له عرفات څخه د روانېدلو حکم.

والحاصل الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د حج په ورځو کي ټولي درې خطبې دي: (۱) د ذی الحجې په اوومه ورځ، (۲) د ذی الحجې په نهمه ورځ په عرفات کي، (۳) د ذی الحجې په يوولسمه ورځ په منیٰ کي د ماپښين تر لمانځه وروسته، نو په دې ټولو خطبو کي به زموږ په نيز يوه يوه ورځ فصل او وقفه کوي، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله په دې درې خطبو کي فصل او فرق نه مني، بلکي د هغه مسلک دا دی چې خطبې به درې ورځي پرلپسې وايي، نو د هغه په نيز لوله خطبه په اتمه ورځ ده، او دويمه په نهمه او دريمه په لسمه ورځ ده.

لأنها أيام الخ د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې دا درې سره د حج ورځي دي، او په دې ورځو کي حاجيان جمع کيږي، نو که په دې ورځو کي خطبه وويل سي، نو زيات ته فايده به وکړي، او ټولو حاجيانو ته به د زده کړي او تعليم موقع په لاس ورسي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چې په دې ورځو کي د خطبو مقصد خلکو ته د حج د افعالو تعليم ورکول دي، او دا مقصد په ۷/ ۹/ او ۱۱ تاريخونو کي په ښه توګه سره حاصلیږي، ځکه په دې تاريخونو کي د حج افعال کم وي، او خلک زيات مشغول نه وي، نو هغوی به په ښه اطمينان او غور سره د خطبې مفهوم او مطلب واوري، د دې په خلاف په يوم الترويه کي

خلګو په زړو کې منیٰ ته د تللو فکر وي، او په لسم تاريخ يعني د لوی اختر په ورځ خلک په سر خريلو، شيطان ويشتلو او نورو کې مشغول وي، نو که په دې تاريخونو کې هم خطبه ورېل سي، نو ښکاره ده چې خلک به کما حقه له خطبې څخه فايده نه واخلي، لهذا فايدمني او اضبزمني ورځي هغه دي کوم چې موږ بيان کړې.

## د ذی الحجې د اتمې ورځې (يومُ الترويه) د اعمالو بيان

**فَإِذَا صَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ بِمَكَّةَ** بيا چې کله په اتم د ذی الحجې په مکه مکرمه کې لمونځ وکړي **خَرَجَ إِلَى مِنًى** نو د منیٰ و طرف ته به ووځي **فَيُقِيمُ بِهَا حَتّٰى يُصَلِّيَ الْفَجْرَ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ** او په منیٰ کې به قيام وکړي تر دې چې د عرفات د ورځې (يعني د ذی الحجې د نهمې ورځې) د سهار لمونځ وکړي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● صَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ بِمَكَّةَ ځکه روايت سوی دی چې نبي ﷺ په اتم د ذی الحجې د سهار لمونځ په مکه کې وکړی فَلَمَّا طَلَعَتِ الشَّمْسُ بيا چې کله لمر راوختی رَاحَ إِلَى مِنًى نو منیٰ ته روان سو فَصَلَّى بِمِنًى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ او په منیٰ کې يې د ماپښين، مازيګر، ماښام، ماخوستن او سهار لمونځونه وکړل ثُمَّ رَاحَ إِلَى عَرَفَاتٍ بيا عرفات ته روان سو.

**اللغات:** ﴿راح﴾ روانېدل، تلل.

**تشريح:** په دې عبارت کې د حج د افعالو اداء کول او د هغو وختونه بيان سوي دي، فرمايي چې کله د يومُ الترويه لمر را وخيږي، يعني د ذی الحجې د اتمې ورځې د سهار تر لمانځه وروسته لمر راوخيږي، نو محرم دي د منیٰ و طرف ته روان سي، او د ذی الحجې د نهمې ورځې تر سهاره پوري دي په منیٰ کې پاته سي، او د سهار تر لمانځه وروسته دي له منیٰ څخه عرفات ته روان سي، ځکه چې نبي ﷺ هم د دې ترتيب مطابق د حج افعال اداء کړل، او په دې ترتيب سره په منیٰ او عرفات کې پاته سو، په کتاب کې ذکر سوی حديث په دې باره کې بالکل واضح او څرګند دی.

## په منیٰ کې د اقامت کولو شرعي حيثيت او عرفات ته د تللو حکم

**وَلَوْ بَاتَ بِمَكَّةَ لَيْلَةَ عَرَفَةَ** او که حاجي د عرفات شپه په مکه کې تېره کړي **وَصَلّٰى بِهَا الْفَجْرَ** او د سهار لمونځ په مکه کې وکړي **ثُمَّ غَدَا إِلٰى عَرَفَاتٍ** بيا سهار عرفات ته روان سي **وَمَرَّ بِمِنًى أَجْزَأَهُ** او د منیٰ سره تېر سي نو دا د هغه لپاره کافي دي **لِأَنَّهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِمِنًى فِي هٰذَا الْيَوْمِ إِقَامَةُ نُسُكٍ** ځکه چې په دې ورځ کې د حج (هيڅ) يو نسک اداء کول د منیٰ سره تعلق نه لري **وَلٰكِنَّهُ أَسَاءَ بِتَرْكِهِ الْاِقْتِدَاءَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** لېکن هغه د نبي ﷺ د اقتداء د پرېښوولو په وجه بد کار وکړی **قَالَ: ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلٰى عَرَفَاتٍ** فرمايي: بيا به د عرفات و طرف ته متوجه سي **فَيُقِيمُ بِهَا** او په عرفات کې به قيام وکړي (يعني په عرفات کې به پاته سي) لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَهٰذَا بَيَانُ الْأَوْلَوِيَّةِ او دا د اولیٰ کېدلو بيان دی أَمَّا لَوْ دَفَعَ قَبْلَهُ جَازَ لېکن که تر لمر راختلو مخکې عرفات ته روان سي نو جائز

---

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب حجة النبي ﷺ، حديث رقم: ١٤٧.

دي لِأَنَّهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِهٰذَا الْمَقَامِ حُكْمٌ ځکه چي د دې مقام سره يو حکم (هم) تعلق نه لري قَالَ فِي الْأَصْلِ: وَيَنْزِلُ بِهَا مَعَ النَّاسِ امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي فرمايلي دي، چي حاجي به د خلکو سره عرفات ته ورشوه سي لِأَنَّ الْإِنْتِبَاذَ تَجَبُّرٌ ځکه چي يوازي کېدل (جلا کېد) تکبّر دی وَالْحَالُ حَالُ تَضَرُّعٍ او دا حالت د عاجزۍ دی وَالْإِجَابَةُ فِي الْجَمْعِ أَرْجٰى او په جماعت کي د قبوليت زيات اُميد دی وَقِيْلَ مُرَادُهُ او ويل سوي دي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله مراد دا دی أَنْ لَا يَنْزِلَ عَلَى الطَّرِيْقِ كَيْ لَا يَضِيْقَ عَلَى الْمَارَّةِ چي هغه به لاري ته نه راشوه کيږي چي پر تېرېدونکو خلکو لاره تنګه نه سي.

**اللغات:** ﴿بات﴾ د ضرب ماضي ده: شپه تېرول، ﴿غدا﴾ د نصر ماضي ده: سهار کېدل، ﴿مرّ﴾ د نصر ماضي ده: تېرېدل، ﴿أسلم﴾ د افعال ماضي ده: بد کار کول، ناوړه کار کول، ﴿انتباذ﴾ د افتعال مصدر دی: جلا کېدل، يوازي وسېدل، ﴿تجبّر﴾ د تفعّل مصدر دی: تکبّر کول، ﴿تضرّع﴾ د تفعّل مصدر دی: زاري کول، عاجزي کول، ﴿أرجٰی﴾ اسم تفضيل دی: زيات اميد والا، ﴿مارّة﴾ د مارّ اسم فاعل جمع ده: تېرېدونکي.

**تشريح:** مسئله: دا ده که بالفرض يو سړی د ذي الحجې په اتمه ورځ منیٰ ته نه ورسېدی، او دا ورځ يې په مکه کي تېره کړه تر دې چي د ذي الحجې په نهمه يعني د عرفات ورځ د سهار تر لمانځه وروسته عرفات ته روان سو، او د منیٰ سره تېر سو، نو د هغه دا تېرېدل د منیٰ قائم مقام کيږي، ځکه چي په اتمه ورځ په منیٰ کي د حج يو فعل هم اداء کول مشروع نه دي، خو څرنګه چي دا عمل د نبي ﷺ د عمل خلاف دی، نو ځکه به دا سړی د نبي ﷺ د اقتداء د پرېښوولو په وجه د سنت پرېښوونکی ګڼل کيږي، او د هغه دا فعل به ښه نه ګڼل کيږي.

قال ثم الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله د اصل مسئلې و طرف ته رجوع کوي فرمايي: کوم حاجي چي د ذي الحجې په اتمه ورځ منیٰ ته ورسيږي، او هلته د ذي الحجې د نهمي ورځي د سهار لمونځ وکړي، نو اوس به تر لمر راختلو وروسته عرفات ته روان سي، دليل مخکښی حديث دی، لېکن ښکاره دي وي چي تر لمر راختلو وروسته وتل فقط اولیٰ دي، او که تر لمر راختلو مخکي روان سي، نو هم جائز دي، ځکه چي د عرفات د ورځي سره په منیٰ کي د سهار له لمانځه څخه علاوه بل هيڅ حکم تعلق نه لري، نو په دې کي هيڅ حرج نسته چي تر لمر راختلو مخکي عرفات ته روان سي.

قال في الأصل الخ صاحب د هدايې فرمايي چي په مبسوط کي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چي حاجي به د عرفات ميدان ته د خلکو سره ورشوه کيږي، يعني له خلکو څخه به نه جلا کيږي، ځکه له خلکو څخه جلا او لېري اوسېدل تکبر دی، حال دا چي دا وخت د عاجزۍ او تضرّع دی، دويمه وجه دا ده چي په جماعت سره د دعاء د قبلېدلو اميد زيات سته، بعضي خلکو ويلي دي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله مراد دا دی چي حاجي به لاري ته نه راشوه کيږي، ځکه په دې سره په لاره کي د تلونکو خلکو لپاره ستونزه او خنډ پيدا کيږي.

## د نهمي ذي الحجې د اعمالو بيان

قَالَ: وَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ فرمايي: او کله چي لمر زائل سي (يعني تر سر واوړي) يُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ نو امام به خلکو ته د ماپښين او د مازيګر لمونځ ورکړي فَيَبْتَدِئُ بِالْخُطْبَةِ نو په خطبه سره به شروع وکړي فَيَخْطُبُ خُطْبَةً او

خطبه به وايي يُعَلِّمُ فِيهِمَا النَّاسَ الْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ وَالْمُزْدَلِفَةِ وَرَمْيَ الْجِمَارِ وَالنَّحْرَ وَالْحَلْقَ وَطَوَافَ الزِّيَارَةِ چي په هغه کي به خلکو ته په عرفات او مزدلفه کي درېدل، د شيطانانو ويشتل، قرباني کول، سرخرييل او طواف زيارت ورښيي يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ او امام به دوې خطبې وايي يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا بِجِلْسَةٍ كَمَا فِي الْجُمُعَةِ د هغو دوو په مينځ کي به په ناستي سره فصل وکړي (يعني د دواړو خطبو په مينځ کي به کښيني) لکه څرنګه چي په جمعه کي دي هَكَذَا فَعَلَهُ[●] رَسُولُ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ همدارنګه نبي ﷺ کړي دي وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: يَخْطُبُ بَعْدَ الصَّلَاةِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي تر لمانځه وروسته به خطبه وايي لِأَنَّهَا خُطْبَةُ وَعْظٍ وَتَذْكِيرٍ ځکه چي دا خطبه د وعظ او نصيحت ده فَأَشْبَهَ خُطْبَةَ الْعِيدِ نو دا اختر د خطبې سره مشابه سوه وَلَنَا مَا رَوَيْنَا او زموږ دليل هغه حديث دی کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهَا تَعْلِيمُ الْمَنَاسِكِ او په دې وجه (هم) چي د خطبې مقصد د حج د مناسکو تعليم دی وَالْجَمْعُ مِنْهَا او جمع بين الصلاتين هم له مناسکو څخه ده وَفِي ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ: إِذَا صَعِدَ الْإِمَامُ الْمِنْبَرَ فَجَلَسَ أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ او په ظاهر د مذهب کي دي: چي کله امام منبر ته وخيږي نو مؤذنان دي اذان وکړي كَمَا فِي الْجُمُعَةِ لکه څرنګه چي په جمعه کي دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى أَنَّهُ يُؤَذِّنُ قَبْلَ خُرُوجِ الْإِمَامِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي مؤذن به د امام تر را وتلو مخکي اذان کوي وَعَنْهُ أَنَّهُ يُؤَذِّنُ بَعْدَ الْخُطْبَةِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه (بل) روايت دا دی چي تر خطبې وروسته به اذان کوي وَالصَّحِيحُ مَا ذَكَرْنَا او صحيح روايت هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[●] لَمَّا خَرَجَ وَاسْتَوَى عَلَى نَاقَتِهِ ځکه نبي ﷺ چي کله (له خيمې څخه) راووتی او پر اوښې سپور سو أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ بَيْنَ يَدَيْهِ نو مؤذنانو د نبي ﷺ مخ ته اذان وکړی وَيُقِيمُ الْمُؤَذِّنُ بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الْخُطْبَةِ او اقامت به وکړي مؤذن له خطبې څخه تر فراغت وروسته لِأَنَّهُ أَوَانُ الشُّرُوعِ فِي الصَّلَاةِ ځکه چي همدا د لمانځه د شروع کولو شېبې دي فَأَشْبَهَ الْجُمُعَةَ نو دا د جمعې (د خطبې) سره مشابه سوه.

**اللغات:** ﴿رمي﴾ د ضرب مصدر دی: ويشتل، ﴿نحر﴾ د فتح مصدر دی: حلالول (ذبح کول)، قرباني کول، ﴿حلق﴾ د ضرب مصدر دی: خرييل، ﴿وعظ﴾ نصيحت، ﴿تذکير﴾ د تفعيل مصدر دی: په ياد ورېستل، نصيحت کول، ﴿صعد﴾ د سمع ماضي ده: ختل، ﴿ناقة﴾ اوښه، ﴿أوان﴾ شېبې، وخت.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ذي الحجې په نهمه ورځ به امامُ المسلمين يا د هغه نائب د عرفات په ميدان کي د لمر تر زوال وروسته د ماپښين او د مازيګر لمونځونه د ماپښين په وخت کي اداء کړي، په دې ترتيب سره چي اول به خطبه ووايي، په خطبه کي به خلکو ته د حج د افعالو تعليم ورکړي، او د جمعې په ډول به دوې خطبې ووايي، او د

---

● تخريج: قد مرّ تخريجه في حديث رقم: ۹۲، والحاكم في المستدرك ج:۱، ص: ۴۶۱.

● قال الزيلعي غريب جدًا اول الحديث أخرجه البيهقي في سننه، باب رقم: ۱۸۲، حديث رقم: ۹۴۵۴، و آخر الحديث غريب.

دواړو خطبو په مینځ کې به فصل کوي، همدا د نبي ﷺ معمول وو. لېکن امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې د عرفات خطبه به تر لمانځه وروسته وي، نه مخکې.

د امام مالک دلیل: دا دی چې دا خطبه د وعظ او نصیحت ده، نو د اخترونو د خطبې سره مشابه شوه. او د اخترونو خطبه تر لمانځه وروسته ویل کیږي، لهذا دا خطبه به هم تر لمانځه وروسته ویل کیږي.

زموږ دلیل: دا روایت دی: خطب رسول الله ﷺ بعرفة قبل صلاة الظهر په دې حدیث کې په صراحت سره دا ذکر سوي دي چې نبي ﷺ په عرفات کې د ماپښین تر لمانځه مخکې خطبه ورېله. دویم دلیل: دا دی چې په عرفات کې د خطبې مقصد خلکو ته د حج د مناسکو تعلیم ورکول دي. او جمع بین الصلاتین هم د حج له مناسکو څخه ده. او دې د تعلیم مقصد تر لمانځه مخکې د خطبې په ویلو سره حاصلیږي، نه وروسته. نو ځکه زموږ په نېز د ماپښین تر لمانځه مخکې د خطبې ویلو حکم سوی دی.

واذا صعد الخ فرمايي: څرنګه چې د جمعې په لمانځه کې مؤذن هغه وخت اذان کوي کله چې امام پر منبر کښېني. همدا ډول به د عرفات په میدان کې هم مؤذن هغه وخت اذان کوي کله چې امام پر منبر کښېني، ځکه د عرفات خطبه تر لمانځه مخکې والي په وجه د جمعې د خطبې سره مشابه ده. نو په اذان کې به هم د عرفات خطبه د جمعې د خطبې سره مشابه وي.

او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په دې لړ کي دوه روایتونه رانقل سوي دي: (۱) اول روایت دا دی چې مؤذن به هغه وخت اذان کوي چې امام لا په خپل ځای او خېمه کي وي او راوتلی نه وي، ځکه چې دا اذان د ماپښین د لمانځه لپاره کیږي، نو څرنګه چې په نورو ورځو کي د امام تر راوتلو مخکي اذان کیږي، همدا ډول به د عرفات په ورځ هم د امام تر راوتلو مخکي اذان کیږي، (۲) دویم روایت دا دی چې کله امام خطبه ووايي، فارغ سي، نو اذان به کیږي. صاحب د هدايې فرمايي چې صحیح خبره هغه ده کوم چې موږ بیان کړه، یعني د امام مخ ته به اذان کیږي، ځکه کله چې نبي ﷺ له خپلې خېمې څخه راووتی او په اطمینان سره پر خپلې اوښې مبارکې کښېنستی، نو مؤذنانو د نبي ﷺ مخته اذان وکړی، دا روایت د دې خبرې ښکاره دلیل دا دی چې اذان به تر خطبې مخکې کیږي، او د امام مخته به کیږي، او کله چې امام له خطبې څخه فارغ سي، نو بیا به مؤذن اقامت کوي، ځکه چې همدا د لمانځه د شروع کولو وخت دی. او دا خطبه د جمعې د خطبې سره مشابه ده، او په جمعه کې تر خطبې وروسته اقامت کیږي، نو په دې کې به هم تر خطبې وروسته اقامت کیږي.

## په عرفات کي د ماپښين او د مازيګر د لمانځه د يو ځاى كولو حكم

قَالَ: وَيُصَلِّي بِهِمُ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ فِي وَقْتِ الظُّهْرِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ فرمايي: او امام به خلکو ته د ماپښین په وخت کې په یوه اذان او دوو اقامتونو سره د ماپښین او مازیګر لمونځونه ورکړي وَقَدْ وَرَدَ النَّقْلُ الْمُسْتَفِيضُ بِاتِّفَاقِ الرُّوَاةِ بِالْجَمْعِ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ او د راویانو په اتفاق سره د جمع بین الصلاتین په باره کي نقلِ مشهور (یعني مشهوره حدیثونه) راغلي دي وَفِيمَا رَوَى جَابِرٌ● رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د جابر ﷺ په روایت سوي حدیث کي دي أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّاهُمَا بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ چې نبي ﷺ دا دواړه لمونځونه په یو اذان او دوو اقامتونو سره وکړل ثُمَّ بَيَانُهُ أَنَّهُ يُؤَذِّنُ لِلظُّهْرِ وَيُقِيمُ

● تخريج: قد مرّ تخريجه في تحت حديث رقم: ۹۲.

بِخَبَرٍ يا د جمع بين الصلاتين وضاحت دا دی چي د ماپښين د لمانځه لپاره به اذان وکړي او د هغه لپاره به اقامت وکړي (يعني د ماپښين د لمانځه لپاره به اذان او اقامت دواړه وکړي) ثُمَّ يُقِيمُ لِلْعَصْرِ يا به د مازيګر د لمانځه لپاره اقامت وکړي لِأَنَّ الْعَصْرَ يُؤَدَّى قَبْلَ وَقْتِهِ الْمَعْهُودِ ځکه چي (دلته) د مازيګر لمونځ تر خپل متعين وخت مخکي اداء کيږي فَيُفْرَدُ بِالْإِقَامَةِ إِعْلَامًا لِلنَّاسِ نو د خلکو د خبرولو لپاره به يوازي (فقط) اقامت کيږي.

اللغات: ﴿نقل مستفيض﴾ د حديثو يو قسم دی، حديث مشهور. ﴿معهود﴾ معلوم، متعين. ﴿يفرد﴾ د افعال مضارع دی يوازي کول، يوازي اداء کول. ﴿إعلام﴾ د افعال مصدر دی: خبر ورکول.

تشريح: صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي په عرفات کي به امام خلکو ته د ماپښين او د مازيګر دواړه لمونځونه د ماپښين په وخت کي ورکړي، په دې باره کي ډېر حديثونه راغلي دي، او ټوله روايان پر دې خبره متفق دي، چي نبي ﷺ په عرفات کي جمع بين الصلاتين کړې ده، بيا حضرت جابر ﷺ هم په يوه اذان او دوو اقامتونو سره د نبي ﷺ د ماپښين او د مازيګر لمونځ رانقل کړی دی، د جمع بين الصلاتين تفصيل دا دی چي د ماپښين د لمانځه لپاره به اذان او اقامت دواړه کيږي، او د مازيګر د لمانځه لپاره به صرف اقامت کيږي، ځکه چي د جمع بين الصلاتين په وجه د مازيګر لمونځ له خپل معلوم وخت څخه مخکي اداء کيږي، نو فقط د خلکو د خبرولو لپاره به د مازيګر د لمانځه لپاره يوازي اقامت کيږي.

## د ماپښين او د مازيګر په مينځ کي د نفلي لمانځه حکم

وَلَا يَتَطَوَّعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ او د دواړو لمونځونو په مينځ کي به نفل نه کوي تَحْصِيْلًا لِمَقْصُوْدِ الْوُقُوْفِ د وقوفِ عرفه د مقصد د حاصلولو لپاره (يعني چي د وقوفِ عرفه مقصد حاصل سي) وَلِهٰذَا قُدِّمَ الْعَصْرُ عَلٰى وَقْتِهِ هم په دې وجه د مازيګر لمونځ پر خپل وخت مخکي سوی دی فَلَوْ أَنَّهُ فَعَلَ نو که هغه نفل وکړل فَعَلَ مَكْرُوْهًا نو مکروه کار يې وکړی وَأَعَادَ الْأَذَانَ لِلْعَصْرِ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د ظاهر روايت مطابق دي د مازيګر د لمانځه لپاره اذان را وګرځوي خِلَافًا لِمَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف د هغه کوم چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوي دي لِأَنَّ الْاِشْتِغَالَ بِالتَّطَوُّعِ أَوْ بِعَمَلٍ آخَرَ يَقْطَعُ فَوْرَ الْأَذَانِ الْأَوَّلِ ځکه چي په نفلو يا په بل کار مشغولېدل د اول اذان اتصال ختموي فَيُعِيْدُهُ لِلْعَصْرِ نو د مازيګر د لمانځه لپاره به يې راګرځوي.

تشريح: مسئله: دا ده چي د عرفات په ورځ به امام يا مقتدي د دواړو لمونځونو يعني د ماپښين او د مازيګر د لمونځونو په مينځ کي هيڅ نفلي لمونځ نه کوي، يعني له فرضي لمانځه څخه علاوه به بل هيڅ سنت او نفلي لمونځ نه کوي، ځکه په دې ورځ مقصد وقوفِ عرفه (د عرفات دريدل) دي، نو د دې مقصد د حاصلولو لپاره به خپل وخت په نفلي لمونځ او نورو کارو کي نه مصرفوي، هم د دې مقصد په وجه د مازيګر لمونځ تر خپل وخت مخکي اداء کيږي، لېکن که د دې باوجود امام يا مقتدي د دواړو لمونځونو په مينځ کي نفلي لمونځ وکړي، نو د ظاهر روايت مطابق به د مازيګر د لمانځه لپاره اذان راګرځوي، د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي اذان به نه راګرځوي، د ظاهر روايت دليل دا دی چي د ماپښين تر

لمانځه وروسته په نفلي لمانځه يا په نورو کارو کي مشغوله کېدل د مازيګر د لمانځه سره د اول اذان اتصال او ترلو ختموي، نو ځکه به د مازيګر د لمانځه لپاره اذان راګرځوي.

## د خطبې شرعي حيثيت

قَالَ: فَإِنْ صَلَّى بِغَيْرِ خُطْبَةٍ او که بغير له خطبې يې لمونځ وکړی أَجْزَأَهُ نو دا (هم) د هغه لپاره کافي دي(يعني جائز دي) لِأَنَّ هٰذِهِ الْخُطْبَةَ لَيْسَتْ بِفَرِيضَةٍ ځکه چي دا خطبه فرض نه ده.

**تشريح:** يعني که امام د عرفات په ورځ خطبه نه ووېله، او بغير له خطبې يې لمونځ وکړی نو هم جمع بين صلاتين جائز ده، ځکه چي خطبه فرض نه ده.

## د عرفات په ورځ د يوازي لمونځ کونکي لپاره د جمع صلاتين په مسئله کي مختلفه قولونه

قَالَ: وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ فِي رَحْلِهِ وَحْدَهُ فرمايي: او چا چي د ماپښين لمونځ په خپل منزل(او خيمه) کي يوازي وکړی صَلَّى الْعَصْرَ فِي وَقْتِهِ عِنْدَ● أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالٰى نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د مازيګر لمونځ په خپل وخت کي کوي وَقَالَا: يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا الْمُنْفَرِدُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي يوازي لمونځ کونکي به هم دواړه لمونځونه جمع کوي لِأَنَّ جَوَازَ الْجَمْعِ لِلْحَاجَةِ إِلَى امْتِدَادِ الْوُقُوْفِ ځکه چي د جمع کېدلو جواز د وقوفِ عرفه د اوږدېدلو د ضرورت په وجه دي(يعني د دواړو لمونځونو جمع کول په دې وجه جائز دي چي د وقوفِ عرفه لپاره وخت زيات پاته سي) وَالْمُنْفَرِدُ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ او منفرد (هم) دې ته محتاج دی (لهذا هغه به هم جمع بين الصلاتين کوي) وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: أَنَّ الْمُحَافَظَةَ عَلَى الْوَقْتِ فَرْضٌ بِالنُّصُوْصِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د وخت ساتنه(او د وخت پابندي کول) په قرآني آيت سره فرض دي فَلَا يَجُوْزُ تَرْكُهُ نو د هغه پرېښوول به جائز نه وي إِلَّا فِيْمَا وَرَدَ الشَّرْعُ بِهِ خو په هغه صورت کي چي د هغه په باره کي شريعت وارد سوی وي وَهُوَ الْجَمْعُ بِالْجَمَاعَةِ مَعَ الْإِمَامِ او هغه د امام سره په جماعت (د دواړو لمونځونو) جمع کول دي وَالتَّقْدِيْمُ لِصِيَانَةِ الْجَمَاعَةِ او (د مازيګر لمونځ) مخکي کول د جماعت د ساتني لپاره دي (چي جماعت فوت نه سي) لِأَنَّهُ يَعْسُرُ عَلَيْهِمُ الْاِجْتِمَاعُ لِلْعَصْرِ بَعْدَمَا تَفَرَّقُوْا فِي الْمَوْقِفِ ځکه پر خلکو راجمع کېدل ستونزمن کيږي وروسته تر هغه چي د عرفات په ميدان کي خواره سي(يعني که حاجيان د عرفات په ميدان کي خواره او منتشر سي نو د مازيګر د لمانځه لپاره بيا راجمع کېدل د هغو لپاره ستونزمن دي) لَا لِمَا ذَكَرَاهُ نه په هغه وجه کوم چي صاحبينو ذکر کړې ده إِذْ لَا مُنَافَاةَ ځکه هيڅ منافات نسته(په دې کي چي د وقوف عرفه لپاره وخت هم زيات پاته سي او د هغه سره لمونځ هم وسي) ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ● اَلْإِمَامُ شَرْطٌ فِي الصَّلَاتَيْنِ جَمِيْعًا بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو لمونځونو کي امام

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۱۸۹. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۱۰]

● القول الراجح: قول الإمام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۱۸۹. [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۱۱]

شرط دی وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: فِي الْعَصْرِ خَاصَّةً او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې خاص د مازيګر په لمانځه کې شرط دی لِأَنَّهُ هُوَ الْمُغَيَّرُ عَنْ وَقْتِهِ ځکه چې د مازيګر لمونځ له خپل وخت څخه بدل سوی دی وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْإِحْرَامُ بِالْحَجِّ او پر دې اختلاف د حج احرام (هم) دی وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ التَّقْدِيْمَ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د مازيګر لمونځ مخکې کول خلافُ القياس دي عُرِفَ شَرْعُهُ فِيْمَا إِذَا كَانَتِ الْعَصْرُ مُرَتَّبَةً عَلَى ظُهْرٍ مُؤَدًّى بِالْجَمَاعَةِ مَعَ الْإِمَامِ فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ بِالْحَجِّ (ځکه) د هغه مشروعيت داسې معلوم سوی دي چې د مازيګر لمونځ به د ماپښين پر داسې لمانځه مرتب وي چې هغه به د حج د احرام په حالت کې د امام سره په جماعت اداء سوی وي فَيُقْتَصَرُ عَلَيْهِ نو د مازيګر د لمانځه مخکې کول به پر دې (شرطونو) منحصر وي ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ الْإِحْرَامِ بِالْحَجِّ قَبْلَ الزَّوَالِ فِي رِوَايَةٍ بيا په يوه روايت کې تر زوال مخکې د حج احرام ضروري دی تَقْدِيْمًا لِلْإِحْرَامِ عَلَى وَقْتِ الْجَمْعِ چې احرام د جمع کېدلو تر وخت مخکې سي وَفِي أُخْرَى يَكْتَفِيْ بِالتَّقْدِيْمِ عَلَى الصَّلَاةِ او په دويم روايت کې پر لمانځه (د احرام) مخکې کول کافي دي لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ هُوَ الصَّلَاةُ ځکه مقصود خو لمونځ دی.

**اللغات:** ﴿رحل﴾ کجاوه، منزل، پړاو. ﴿منفرد﴾ يوازې. ﴿امتداد﴾ اوږدېدل، غوړېدل. ﴿بعسر﴾ سختېدل، ستونزمن کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو حاجي د عرفات په ورځ د ماپښين لمونځ په خپل تم ځای (منزل) کې يوازې وکړی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به دا سړی د مازيګر لمونځ په خپل وخت کې اداء کوي، يعني د ماپښين او مازيګر لمونځ به د ماپښين په وخت کې نه جمع کوي، صاحبين فرمايي چې يوازې لمونځ کونکې به هم دواړه لمونځونه جمع کوي، يعني د جمع بين الصلاتين په حکم کې منفرد او په جماعت سره لمونځ کونکی دواړه برابر دي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې په عرفات کې حاجي ته د ماپښين او د مازيګر د لمونځونو د جمع کولو اجازه ځکه ورکول سوې ده چې وقوفِ عرفات اوږد او ډېر وسي، يعني د وقوفِ عرفه د اوږدېدلو په وجه د جمع بين الصلاتين اجازه ورکول سوې ده، همدا وجه ده چې پر چا وقوف فرض نه وي، د هغه لپاره جمع بين الصلاتين هم جائز نه ده، او په دې ضرورت کې منفرد او په جماعت سره لمونځ اداء کونکی دواړه برابر دي، نو ځکه به د جمع بين الصلاتين حکم د دواړو لپاره برابر وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې په وخت کې دننه د لمانځه محافظت او ساتنه فرض ده، لکه څرنګه چې په آيت کې راځي: حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى، او إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا، او کوم شی چې په قرآني نصوصو سره ثابت وي، د هغه پرېښول جائز نه دي، خو دا چې د هغه په خلاف شريعت وارد سوی وي، او د شريعت ورود په هغه صورت کې سوی دی چې کله د امام سره په جماعت لمونځ اداء کړی سي، نو ثابته سوه چې که حاجي د عرفات په ورځ د ماپښين او د مازيګر لمونځ په جماعت سره اداء کوي، نو د هغه لپاره به د مازيګر لمونځ پر خپل وخت مخکې کول يعني د جمع بين الصلاتين اجازه وي، کنې نه به وي.

والتقديم لصيانة الخ له دې ځايه د صاحبينو د دليل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې د مازيګر لمونځ پر خپل وخت مخکې کول د وقوف د امتداد (اوږدېدلو) په وجه سره نه دي، لکه څرنګه چې تاسو وايياست، ځکه د لمانځه او د وقوف په مېنځ کې هيڅ منافات نسته، دواړه جمع کېدلای سي (ځکه په يوه ميدان کې کېږي، او د لمانځه وخت هم د

وقوف عرفه وخت دی، لهذا که د مازيګر لمونځ مخکې هم سي، نو په وقوف عرفه کې هيڅ زياتوب نه راځي)، نو د مازيګر د لمانځه د مخکې کولو اصلي وجه د جماعت حفاظت دی، ځکه که خلک د ماپښين تر لمانځه وروسته د عرفات په ميدان کې خواره سي، نو د مازيګر د لمانځه د جماعت لپاره به د هغو را جمع کېدل ستونزمن او سخت وي، نو د دې سختۍ په وجه او د جماعت د فضيلت د حاصلولو په وجه دا حکم سوی دی چې د مازيګر لمونځ به پر خپل وخت مخکې کېږي او د ماپښين د لمانځه سره به يو ځای کېږي.

ثم عند أبي حنيفة الخ د دې حاصل دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ماپښين او د مازيګر په دواړو لمونځونو کې د امامُ المسلمين يا د هغه د نائب وجود شرط دی، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز خاص د مازيګر په لمانځه کې شرط دی (نو که د ماپښين لمونځ يوازي وکړي نو هم صحيح دي)، او همدا اختلاف د حج په احرام کې دی، يعني د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو لمونځو کې د حج احرام شرط او ضروري دی، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز صرف د مازيګر په لمانځه کې د حج احرام شرط دی، د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د مازيګر لمونځ له خپل وخت څخه بدل سوی دی، نو ځکه به د امام يا د هغه د نائب شرطيت او د حج د احرام شرطيت خاص د مازيګر په لمانځه کې وي، او څرنګه چې د ماپښين په لمانځه کې هيڅ بدلون راغلی نه دي، لهذا دا شيان به د ماپښين په لمانځه کې شرط نه وي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د مازيګر لمونځ تر خپل وخت مخکې اداء کول د قياس خلاف دي، او دا مخکې اداء کول د ماپښين پر داسي لمانځه مرتب دي چې هغه د حج د احرام په حالت کې د امام سره په جماعت اداء سوی وي، نو د جمع بين الصلاتين لپاره په دواړو لمونځونو کې دا شرطونه ضروري او لازمي دي، ځکه چې دا قاعده خو تاسو ته معلومه ده چې کوم شی د قياس خلاف ثابت وي، هغه به پر خپل مورد منحصر وي، او د عرفات په ورځ خلاف قياس جمع بين الصلاتين مع وجود الإحرام والإمام ثابت دي، نو ځکه به د هر سړي او د هر حاجي په حق کې او په دواړو لمونځونو کې دا شرطونه ضروري وي، او صرف د مازيګر يا د ماپښين لمونځ به د دې شرطونو سره خاصول صحيح نه وي.

ولابد من الإحرام الخ د دې حاصل دا دی چې د جمع بين الصلاتين د جواز لپاره تر زوال مخکې د حج احرام ضروري دی، لېکن يو بل روايت دا دی چې تر زوال مخکې احرام ضروري نه دی، بلکې د ماپښين تر لمانځه مخکې که يو چا د حج احرام وتړی نو هم جائز دي، ځکه چې لمونځ اصل او مقصود دی، نو پر لمانځه به مخکې کول کافي وي، او پر وخت به مخکې کول څه ضروري نه وي.

## په عرفات کې به د کوم غره سره نژدې درېږي؟

قَالَ: ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلَى الْمَوْقِفِ فرمايي: چې بيا به متوجه سي ځای د درېدو ته فَيَقِفُ بِقُرْبِ الْجَبَلِ نو د غره سره به نژدې ودرېږي وَالْقَوْمُ مَعَهُ عَقِيبَ انْصِرَافِهِمْ مِنَ الصَّلَاةِ او (قوله) خلک به د لمانځه څخه تر فراغت وروسته د امام سره يو ځای سي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَاحَ إِلَى الْمَوْقِفِ عَقِيبَ الصَّلَاةِ[1] ځکه چې نبي ﷺ تر لمانځه وروسته د درېدلو ځای ته ولاړی وَالْجَبَلُ يُسَمَّى جَبَلُ الرَّحْمَةِ او دې غره ته جبل الرحمه ويل کېږي وَالْمَوْقِفُ مَوْقِفُ الْأَعْظَمِ او د درېدلو ځای ته موقف اعظم ويل کېږي.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب حجة النبي ﷺ، حديث رقم: ١٢٧.

**اللغات:** ﴿موقف﴾ د ضرب د باب اسم ظرف دی: د درېدلو ځای.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې کله امام او خلک په مسجد نمره کې د ماپښين او د ماز يګر لمونځونه يوځای وکړي، نو امام او ټوله خلک به موقف ته روان سي، او د غره سره به نژدې ودرېږي، د دې غره نوم جبلِ رحمت او د موقف نوم موقف اعظم دی، نبي ﷺ هم د دې غره سره وقوف کړی وو.

## ټوله ميدان د درېدلو ځای دی

قَالَ: وَعَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ عُرَنَةَ فرمايي: او عرفات ټوله د درېدلو ځای دی ماسوا له بطنِ عرنه څخه لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: عَرَفَاتٌ● كُلُّهَا مَوْقِفٌ وَارْتَفِعُوا عَنْ بَطْنِ عُرَنَةَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "چې عرفات ټوله د درېدلو ځای دی او له بطنِ عرنه څخه پورته اووسئ (ليري اووسئ) وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ وَارْتَفِعُوا عَنْ وَادِيْ مُحَسِّرٍ او ټوله مزدلفه د درېدلو ځای دی او له وادی محسر څخه پورته اووسئ".

**اللغات:** ﴿موقف﴾ د ضرب د باب اسم ظرف دی: د درېدلو ځای.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې له بطنِ عرنه څخه علاوه ټوله عرفات موقف او د درېدلو ځای دی، يعني حاجي به په بطنِ عرنه کې نه درېږي، نور په هر ځای کې درېدای سي، (بطنِ عرنه په عرفات کې د يو شېلې نوم دی). بعضي حضراتو فرمايلي دي چې نبي ﷺ ځکه په بطنِ عرنه کې له درېدلو څخه منع کړې ده چې په هغې کې يې شيطان ليدلی وو؛ همدارنګه نبي ﷺ فرمايلي دي چې له وادي محسر څخه علاوه ټوله مزدلفه موقف دی.

## د حج د امير لپاره په عرفات کې د درېدلو مستحب صورت

قَالَ: وَيَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ يَقِفَ بِعَرَفَةَ عَلَى رَاحِلَتِهِ فرمايي: او امام ته پکار ده چې په عرفات کې پر (خپل) سپرلي ودرېږي (يعني وقوفِ عرفه دې پر خپل سپرلي وکړي) لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● وَقَفَ عَلَى نَاقَتِهِ ځکه نبي ﷺ (هم) پر خپلې اوښې ودرېدی وَإِنْ وَقَفَ عَلَى قَدَمَيْهِ جَازَ او که پر پښو ودرېدی نو (هم) جائز دي وَالْأَوَّلُ أَفْضَلُ او اول افضل دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ بيان کړی وَيَنْبَغِي أَنْ يَقِفَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ او مناسب دا ده چې مخ پر قبله ودرېږي لِأَنَّ النَّبِيَّ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ كَذٰلِكَ ځکه نبي ﷺ هم مخ پر قبله ودرېدی وَقَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: خَيْرُ● الْمَوَاقِفِ مَا اسْتُقْبِلَتْ بِهِ الْقِبْلَةُ او نبي ﷺ فرمايلي دي: "غوره موقف هغه دی چې په هغه سره د قبلې استقبال وسي (يعني غوره درېدل هغه دي چې د قبلې وطرف ته وي)".

**اللغات:** ﴿ينبغي﴾ د انفعال مضارع ده: مناسب ده، پکار ده، ﴿راحلة﴾ سپرلي، ﴿ناقة﴾ اوښه.

---

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسك، حديث رقم: ۳۱۰، ۳۰۱۲.

● قد مر تخريجه تحت حديث رقم: ۹۸.

● قد مر تخريجه تحت حديث رقم: ۹۸.

● غريب بهذا اللفظ ولكن بمعناه أخرجه الحاكم في المستدرك ج:۴، ص: ۲۷۰.

**تشریح**: مسئله: دا ده چي د امامُ المسلمين او د خليفه لپاره پر سپرلۍ وقوف کول افضل دي، ځکه چي دا د نبي ﷺ سنت دی، لیکن که هغه په پښو ودریدی نو هم جائز دي، او مخ پر قبله وقوف کول هم افضل دي، ځکه د نبي ﷺ عمل او فرمان دواړه همدا ډول دي، لکه څرنګه چي په حديث کي راځي: إن لكل شئ شرفاً وإن شرف المجالس ما استقبل به القبلة. او په یوه روايت کي راځي: أكرم المجالس ما استقبل به القبلة.

## د امام لپاره مستحب عملونه

وَيَدْعُوْ وَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْمَنَاسِكَ او امام به دعاء وکړي او خلکو ته به د حج احکام ورو ښيي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] كَانَ يَدْعُوْ يَوْمَ عَرَفَةَ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ به د عرفات په ورځ دعاء کوله مَادًّا يَدَيْهِ كَالْمُسْتَطْعِمِ الْمِسْكِيْنِ (او) لاسونه به يې داسي غوړولي (او پورته کړي) ول لکه (خيرات) غوښتونکی مسکين وَيَدْعُوْ بِمَا شَاءَ او کومه دعاء چي غواړي هغه به کوي وَإِنْ وَرَدَ الْآثَارُ بِبَعْضِ الدَّعَوَاتِ که څه هم آثار (حدیثونه) د بعضي دعاګانو په باره کي وارد سوي دي وَقَدْ أَوْرَدْنَا تَفْصِيْلَهَا فِيْ كِتَابِنَا او موږ د هې تفصيل په خپل کتاب کي ذکر کړی دی الْمُتَرْجَمُ بِعِدَّةِ النَّاسِكِ فِيْ عِدَّةٍ مِنَ الْمَنَاسِكِ چي هغه نومول سوی دي په عدة الناسك فى عدة من المناسك سره بِتَوْفِيْقِ اللهِ تَعَالٰى د الله په توفيق سره.

**اللغات**: ﴿مستطعم﴾ خوراک غوښتونکی (خیرات غوښتونکی).

**تشریح**: د کومو دعاګانو په باره کي چي حدیثونه راغلي دي، له هغو څخه یو حدیث د حضرت علي رضي الله عنه دی: عن علي أنه عليه السلام قال أكثر دعائي و دعاء الانبياء من قبلي عشية عرفة: لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوْتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا وَفِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا وَفِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا اَللّٰهُمَّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ وَيَسِّرْ لِيْ أَمْرِيْ وَأَعُوْذُ بِكَ مِنْ وَسْوَاسِ الصَّدْرِ وَشَتَاتِ الْأَمْرِ وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا يَلِجُ فِي الْبَحْرِ وَشَرِّ مَا تَهُبُّ بِهِ الرِّيَاحُ. (بنايه ج۴، ص۱۰۷، عنايه ج۲)

## امام ته د نژدې دريدلو حکم

وَيَنْبَغِيْ لِلنَّاسِ أَنْ يَقِفُوْا بِقُرْبِ الْإِمَامِ او خلکو ته پکار دي چي امام ته نژدې ودریږي لِأَنَّهُ يَدْعُوْ وَيُعَلِّمُ ځکه چي امام دعاء کوي او (د حج احکام) ښيي فَيَعُوْا وَيَسْتَمِعُوْا نو خلک به دا ياد کړي او په غور سره به يې واوري وَيَنْبَغِيْ أَنْ يَقِفُوْا وَرَاءَ الْإِمَامِ او پکار دي چي د امام شا ته ودریږي لِيَكُوْنَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ چي مخ پر قبله سي وَهٰذَا بَيَانُ الْأَفْضَلِيَّةِ او دا بيان د افضليت دی لِأَنَّ عَرَفَاتٍ كُلَّهَا مَوْقِفٌ ځکه چي عرفات ټوله د دریدلو ځای دی عَلٰى مَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه.

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في سننه في كتاب الحج، باب أفضل الدعاء دعاء يوم عرفة، حديث رقم: ۹۴۷۴.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې لاربنووني ذکر سوي دي: (۱) يوه دا چې حاجې به د عرفات په ميدان کې د امام سره نژدې درېږي، چې د هغه خبرې واورې او يادې يې کړي. (۲) بله دا چې د امام په بول دې حاجې هم مخ پر قبله سي. خو دا لاربنووني واجب نه دي، بلکې د افضليت درجه لري.

## د عرفات په ورځ دوه مستحب عملونه

قَالَ: وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَغْتَسِلَ قَبْلَ الْوُقُوفِ فرمايي: او (د حاجي لپاره) مستحب دا ده چي (په عرفات کي) تر درېدلو مخکې غسل وکړي وَيَجْتَهِدَ فِي الدُّعَاءِ او په دعاء کي ښه کوښښ وکړي أَمَّا الِاغْتِسَالُ فَهُوَ سُنَّةٌ کوم چي غسل دی نو هغه سنت دی وَلَيْسَ بِوَاجِبٍ او واجب نه دی وَلَوِ اكْتَفَى بِالْوُضُوءِ جَازَ او که په اوداسه اکتفاء وکړي نو جائز دي كَمَا فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ وَعِنْدَ الْإِحْرَامِ لکه په جمعه، اخترونو او د احرام په وخت کي(چي هم واجب نه دي) وَأَمَّا الِاجْتِهَادُ او هر چي په دعاء کي کوښښ کول دي فَلِأَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِجْتَهَدَ فِي الدُّعَاءِ فِي هٰذَا الْمَوْقِفِ لِأُمَّتِهِ نو ځکه چي نبي ﷺ په دې ځای کي د خپل اُمت لپاره په دعاء کي کوښښ کړی وو فَاسْتُجِيبَ لَهُ إِلَّا فِي الدِّمَاءِ وَالْمَظَالِمِ چي هغه دعاء (د ټولو شيانو په باره کي) د نبي ﷺ لپاره قبوله سوه ماسوا په خونونو او ظلمونو کي (يعني له تلونو او ظلمونو څخه علاوه نور د ټولو شيانو په باره کي د نبي ﷺ دعاګاني الله تعالیٰ قبولي کړي).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي تر وقوفِ عرفه مخکي د حاجي لپاره غسل کول او ښه په عاجزي او تضرع سره دعاء کول مستحب يعني غيرِ واجب دي، صاحب د هدايې د مستحب وضاحت کوي فرمايي چي تر وقوفِ عرفه مخکي غسل کول سنت دي، واجب نه دي، نو که پر اوداسه يې اکتفاء وکړه نو هم جائز دي، لکه د جمعې، اخترونو او د احرام په وخت کي چي غسل کول سنت دي، لېکن که پر اوداسه اکتفاء وکړي نوهم جائز دي، او په دعاء کي کوښښ او مبالغه کول مستحب دي، ځکه چي نبي ﷺ د خپل امت لپاره په دې مقام کي په ډېر کوښښ او ژړا سره دعاء کړې ده، او د نبي ﷺ ټولي دعاګاني قبلي سوي هم دي، لېکن د ناحقه قتل او د حقوقُ العباد سره متعلق دعاګاني پر دې موقع ردّ سوي دي، ځکه چي له ظالم او جابر څخه به خامخا الله ﷻ د مظلومانو او د خپلو بندګانو د حقونو بدله اخلي.

## د عرفات په ورځ د تلبيې ويلو حکم

وَيُلَبِّي فِي مَوْقِفِهِ سَاعَةً بَعْدَ سَاعَةٍ او حاجي به په خپل موقف (يعني د درېدلو په ځای کي) ګړي په ګړي سره تلبيه وايي وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: يَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ كَمَا يَقِفُ بِعَرَفَةَ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي کله په عرفات کي ودرېږي نو (سملستي) به تلبيه ختموي لِأَنَّ الْإِجَابَةَ بِاللِّسَانِ قَبْلَ الِاشْتِغَالِ بِالْأَرْكَانِ ځکه چي په ژبه سره (د حاضرېدلو) جواب ورکول مخکي دي په ارکانو سره تر مشغوله کېدلو (لهذا کله چي وقوفِ عرفه شرع کړي، نو په ژبه سره بيا د لبيک ويلو ضرورت نسته) وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَا زَالَ يُلَبِّي حَتّٰى أَتَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ او زموږ دليل دا

---

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسك، باب الدعاء بعرفة، حديث رقم: ۳۰۱۳.

● تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسك، باب متى يقطع الحاج التلبية، حديث رقم: ۳۰۳۹، وبخاري في كتاب الحج، باب رقم: ۱۱، ومسلم في كتاب الحج، حديث رقم: ۲۶۶، و ابو داؤد في كتاب الحج، باب رقم: ۲۷، حديث رقم: ۱۸۱۵.

دی چې نبي ﷺ مسلسل تلبيه ويله تر دې چې جمرة العقبة ته را ورسيدی وَلِأَنَّ التَّلْبِيَةَ فِيهِ كَالتَّكْبِيرِ فِي الصَّلَاةِ او څرنګه چې په حج کې تلبيه داسې ده لکه په لمانځه کې چې تکبير دی فَيَأْتِي بِهَا إِلَى آخِرِ جُزْءٍ مِنَ الْإِحْرَامِ نو محرم به تلبيه وايي د احرام تر آخري جزء پورې.

**اللغات:** ﴿ساعة بعد ساعة﴾ ساعت په ساعت، ګړې په ګړې.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې حاجي به د عرفات په ميدان کې په خپل موقف کې هر ګړی تلبيه وايي تر دې چې د جمرا عقبه رمی وکړي، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې کله حاجي په ميدان د عرفات کې وقوف وکړي، نو سملستي به تلبيه بنده کړي، د امام مالک رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې تلبيه په ژبه سره د حاضرۍ جواب دی (ځکه د لبيك معنیٰ ده: زه حاضر يم، يعني زه عرفات ته حاضرېږم)، او په ژبه سره د حاضرۍ جواب د حج په ارکانو تر مشغوله کېدلو مخکې دی، يعني "زه حاضر يم" هلته ويل پکار دي چې تر اوسه عرفات نه وي حاضر سوی، او تر اوسه لا په وقوفِ عرفه نه وي مشغوله سوی، لېکن کله چې په وقوفِ عرفه مشغول سي، او عرفات ته حاضر سې نو بيا د دې يعني د لبيك د ويلو ضرورت نسته.

ولنا ما روی الخ زموږ دليل دا حديث دی چې نبي ﷺ تر رمی جمار پورې مسلسل تلبيه ويله، دويم دليل دا دی چې تلبيه په حج کې داسې ده لکه په لمانځه کې چې تکبير دی، او په لمانځه کې تکبير مکرّر ويل کېږي، تر دې چې د لمانځه تر آخره پورې پاتېږي، نو پر دې به په قياسولو سره تلبيه هم د احرام تر آخره پورې پاتېږي، لېکن سوال دا کېږي چې د دې قياس تقاضا خو دا ده چې د رمی جمار په وخت کې به هم تلبيه ويل کېږي، حال دا چې داسې نه ده، بلکې د جمرۀ عقبې د اولې ډبرې په وخت کې به تلبيه خامخا ختمېږي (يعني کله چې حاجي جمرۀ عقبې ته اوله ډبره ور غورځوي نو حتمًا به تلبيه بندوي)، جواب دا دی چې د قياس تقاضا خو همدغه وه، لېکن د اجماع او حديث په وجه به دا قياس پرېښوول کېږي.

## مزدلفې ته د روانېدلو وخت

قَالَ: وَإِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ فرمايي: چې کله لمر ولوېږي أَفَاضَ الْإِمَامُ نو امام دې را وګرځېږي (يعني له عرفات څخه دې روان سي) وَالنَّاسُ مَعَهُ عَلَى هَيْنَتِهِ او خلک دې ور سره وي په سکون سره حَتَّى يَأْتُوا الْمُزْدَلِفَةَ تر دې چې مزدلفې ته راسي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] دَفَعَ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ ځکه چې نبي ﷺ تر لمر لوېدلو وروسته روان سو وَلِأَنَّ فِيهِ إِظْهَارَ مُخَالَفَةِ الْمُشْرِكِينَ او په دې وجه (هم) چې په داسې کرنې کې د مشرکينو د مخالفت ښکارندونه ده وَكَانَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يَمْشِي عَلَى رَاحِلَتِهِ فِي الطَّرِيقِ عَلَى [2] هَيْنَتِهِ او نبي ﷺ به (هم) پر خپله اوښه په لاره کې په سکون سره تلی.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب الإفاضة من عرفة، حديث رقم: ١٩٢٢.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب الدفع من عرفة، حديث رقم: ١٩٢، و قد مرّ تخريجه تحت حديث رقم: ٩٨.

**اللغات:** ﴿أفاض﴾ د افعال ماضي ده، واپس روانېدل، راګرځېدل. ﴿على هينته﴾ په سکون (او وقار) سره.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې د ذي الحجې په نهمه ورځ دې حاجیان تر لمر لوېدلو وروسته سمدستي مزدلفې ته په ډېر سکون او ادب سره روان سي، او د ماښام لمونځ دې نه کوي، ځکه چې نبي ﷺ هم تر لمر لوېدلو وروسته له عرفات څخه روان سوی وو، دویم دلیل دا دی چې په دې کې د مشرکینو مخالفت دی، ځکه چې په جاهلیت کې به مشرکین له عرفات څخه تر لمر لوېدلو مخکې روانېدل، او څرنګه چې نبي ﷺ په لاره کې پر خپله قصواء اوښه په ډېر سکون او وقار سره روان وو، نو امتې ته هم پکار ده چې په سکون او اطمینان سره ځان بیایسته کړي.

## تر امام مخکې د تللو حکم

وَإِنْ خَافَ الزِّحَامَ بیا که حاجي له ګڼي (او رش) څخه وېرېږي فَدَفَعَ قَبْلَ الْإِمَامِ او تر امام مخکې (له عرفات څخه) روان سي وَلَمْ يُجَاوِزْ حُدُودَ عَرَفَةَ أَجْزَأَهُ لېکن د عرفات تر حدودو تېر نه سي نو دا د هغه لپاره جائز دي لِأَنَّهُ لَمْ يُفِضْ مِنْ عَرَفَةَ ځکه چې هغه له عرفات څخه نه ووتی وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَقِفَ فِي مَقَامِهِ او افضل دا ده چې پر خپل ځای ودرېږي كَيْ لَا يَكُوْنَ آخِذًا فِي الْأَدَاءِ قَبْلَ وَقْتِهَا چې تر وخت مخکې د اداء شروع کونکی نه سي وَلَوْ مَكَثَ قَلِيلًا بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ وَإِفَاضَةِ الْإِمَامِ او که تر لمر لوېدلو او د امام تر روانېدلو وروسته لږ ګړی ودرېږي لِخَوْفِ الزِّحَامِ د ګڼي (او رش) د بیرې په وجه فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کې څه حرج نسته لِمَا رُوِيَ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا [1] بَعْدَ إِفَاضَةِ الْإِمَامِ دَعَتْ بِشَرَابٍ ځکه روایت سوی دی چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د امام تر روانېدلو وروسته اوبه را وغوښتلې فَأَفْطَرَتْ ثُمَّ أَفَاضَتْ او روژه يې ماته کړه بیا روانه سوه.

**اللغات:** ﴿زحام﴾ ګڼه ګوڼه، رش، ازدحام. ﴿دفع﴾ له عرفات څخه وتل (تلل). ﴿شراب﴾ د څښلو شی (اوبه).

**تشریح:** مسئله: دا ده که حاجي د ګڼي ګوڼي او ازدحام په بېره د امام تر روانېدلو مخکې عرفات ته روان سو، او د عرفات له حدودو څخه نه ووتی نو جائز دي، ځکه چې دې ته "له عرفات څخه روانېدل او وتل" نه ویل کیږي، خو بیا هم دا خلاف اولیٰ دي، لهذا افضله دا ده چې پر خپل ځای پاته سي، د دې لپاره چې تر وخت مخکې اداء یعني له عرفات څخه روانېدل ثابت نه سي، له ذکر سوي عبارت څخه دا معلومه سوه چې که حاجي د امام تر روانېدلو مخکې او تر لمر لوېدلو مخکې د عرفات تر حدودو تېر سي، نو پر هغه قرباني واجب ده، لېکن که د عرفات و طرف ته بیرته راوګرځیږي، بیا د امام سره تر لمر لوېدلو وروسته روان سي، نو قرباني ساقطیږي، او که تر لمر لوېدلو وروسته راوګرځیږي، نو نه ساقطیږي.

ولو مكث قليلا الخ فرمايي که حاجي تر لمر لوېدلو او د امام تر روانېدلو وروسته د ازدحام د بیرې په وجه څه ودرېږي، نو په دې کې څه حرج نسته، ځکه روایت سوی دی چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له عرفات څخه د امام تر روانېدلو وروسته اوبه طلب کړې او روژه يې ماته کړه، بیا روانه سوه، ښکاره خبره ده چې د اوبو په راغوښتلو او د روژې په ماتولو کې څه ځنډ او وخت خامخا لګیږي، نو ثابته سوه چې په څه ځنډېدلو او درېدلو کې هیڅ حرج نسته.

---

[1] تخریج: أخرجه ابن شیبه في مصنفه.

## په مزدلفه کې د درېدلو مستحب ځای

قَالَ: وَإِذَا أَتَىٰ مُزْدَلِفَةَ فرمايي: چې کله حاجي مزدلفې ته راسي فَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يَقِفَ بِقُرْبِ الْجَبَلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْمِيْقَدَةُ نو مستحب دا ده چې د هغه غره سره نژدې ودرېږي چې پر هغه نغری (د اور بلولو ځای) دی يُقَالُ لَهُ قُزَحُ چې هغه غره ته قزح ويل کيږي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ عِنْدَ هٰذَا الْجَبَلِ ځکه چې نبي ﷺ (هم) د دې غره سره نژدې درېدلی وو وَكَذَا عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا همدارنګه حضرت عمر بن خطاب ﷺ هم وَيَتَحَرَّزُ فِي النُّزُوْلِ عَنِ الطَّرِيْقِ او ځان به ساتي له دې څخه چې لارې ته راښوه سي كَيْ لَا يَضُرُّ بِالْمَارَّةِ چې تېرېدونکو ته تکليف ور نه کړي فَيَنْزِلُ عَنْ يَمِيْنِهِ أَوْ يَسَارِهِ لهذا د لارې راسته يا چپه طرف ته دې شوه سي وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَقِفَ وَرَاءَ الْإِمَامِ او مستحب دا ده چې د امام شاته ودرېږي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْوُقُوْفِ بِعَرَفَةَ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ په وقوف عرفه کې بيان کړی.

**اللغات:** ﴿الميقدة﴾ له رقد څخه مشتق دی: د اور بلولو ځای، نغری، اور غالی (د جاهليت په زمانه کې به پر دې غره د اور بلولو ځای وو چې هغه ته به مقيده ويل کېده، دلته به اور ځکه بلېدی چې رڼا به خوره سي او تر ليرې پورې ورسېږي، ځکه چې دا غر ډېر جګ دی، د هارون رشيد په زمانه کې به په دې ځای کې شمعې لګېدلې، او تر هغه وروسته ځت ځت څراغونه شروع سول). ﴿قزح﴾ د قاف په ضمه او د زاء په فتحه سره دی، معنی يې ده جګ، لوړ، د جګوالي او لوړي په وجه دې غره ته قزح ويل کيږي.

**تشريح:** د حاجي لپاره په مزدلفه کې د جبل قزح سره نژدې درېدل مستحب دي، ځکه چې نبي ﷺ هم د دې غر سره نژدې درېدلی وو، او حضرت عمر ﷺ هم د دې سره نژدې وقوف کړی وو، همدارنګه حاجي ته پکار ده چې لارې ته راښوه نه سي، بلکې د لارې راسته يا چپه طرف دې شوه سي، ځکه لارې ته د راښوه کېدلو په صورت کې خلکو ته تکليف رسيږي، همدا راز د حاجي لپاره په مزدلفه کې هم تر امام شاته درېدل مستحب دي، دليل هغه دی کوم چې د وقوفِ عرفه په باره کې مخکې تېر سو.

## په مزدلفه کې د جمع بين الصلاتين بيان

قَالَ: وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ فرمايي: او امام به خلکو ته د ماښام او د ماخوستن لمونځ په يوه اذان او يوه اقامت سره ورکړي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللّٰهُ: بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په يوه اذان او دوو اقامتونو سره به لمونځ ورکړي اِعْتِبَارًا بِالْجَمْعِ بِعَرَفَةَ په عرفات کې پر جمع بين الصلاتين په قياسولو سره وَلَنَا رِوَايَةُ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او زموږ دليل د حضرت جابر ﷺ روايت دی أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ بَيْنَهُمَا بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ چې نبي ﷺ دواړه په يوه اذان او اقامت سره جمع کړل وَلِأَنَّ الْعِشَاءَ فِيْ وَقْتِهِ او ځکه چې د

---

تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء أن عرفة كلها موقف، حديث رقم: ۸۸۵.

تخريج: أخرجه ابن ابي شيبه في مصنفه.

ماخوستن لمونځ په خپل وخت کي دی فَلَا يُفْرَدُ بِالْإِقَامَةِ إِعْلَامًا نو د اطلاع ورکولو لپاره به يوازي اقامت نه کيږي بِخِلَافِ الْعَصْرِ بِعَرَفَةَ په خلاف په عرفات کي د مازيګر د لمانځه لِأَنَّهُ مُقَدَّمٌ عَلَى وَقْتِهِ ځکه چي هغه پر خپل وخت مخکي دی فَأُفْرِدَ بِهَا لِزِيَادَةِ الْإِعْلَامِ نو د اطلاع د زياتوالي لپاره به اقامت يوازي کيږي.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي امام به د ماښام او د ماخوستن لمونځونه په مزدلفه کي د ماخوستن په وخت کي په يوه اذان او اقامت سره ورکړي، د امام زفر رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي په يوه اذان او دوو اقامتونو سره به يې ورکړي، امام زفر رَحِمَهُ الله په مزدلفه کي جمع بين المغرب والعشاء قياس کړی ده په عرفات کي پر جمع بين الظهر والعصر باندي، يعني څرنګه چي په عرفات کي د ماپښين او مازيګر لمونځونه په يوه اذان او دوو اقامتونو سره جمع کيږي، همدارنګه به په مزدلفه کي د ماښام او ماخوستن لمونځونه په يوه اذان او دوو اقامتونو سره جمع کيږي، زموږ دليل د حضرت جابر ﷺ حديث دی چي نبي ﷺ په مزدلفه کي د ماښام او ماخوستن لمونځونه په يو اذان او يو اقامت سره جمع کړل، دويم دليل دا دی چي د ماخوستن لمونځ په خپل وخت کي دی، نو د خلکو د خبرولو لپاره د جلا اقامت بالکل ضرورت نشته، په خلاف د مازيګر د لمانځه چيٰ د عرفات په ميدان کي د مازيګر لمونځ تر خپل وخت مخکي کيږي، نو ځکه به د خلکو د لا خبرتيا لپاره د مازيګر د لمانځه لپاره اقامت کيږي.

## د دواړو لمونځونو په مينځ کي د نفلي لمانځه حکم

وَلَا يَتَطَوَّعُ بَيْنَهُمَا او د دې دواړو په مينځ کي به نفل نه کوي لِأَنَّهُ يُخِلُّ بِالْجَمْعِ ځکه چي هغه په جمع کي خلل اچوي وَلَوْ تَطَوَّعَ أَوْ تَشَاغَلَ بِشَيْءٍ او که نفل وکړي يا په بل شي مشغوله سي أَعَادَ الْإِقَامَةَ لِوُقُوعِ الْفَصْلِ نو اقامت دي را وګرځوي د فصل (بېلتون) واقع کېدلو په وجه وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يُعِيدَ الْأَذَانَ او مناسب خو دا وه چي اذان (هم) راوګرځوي كَمَا فِي الْجَمْعِ الْأَوَّلِ لکه په اوله جمع کي (يعني لکه د عرفات په جمع بين الصلاتين کي) إِلَّا أَنَّا اكْتَفَيْنَا بِإِعَادَةِ الْإِقَامَةِ خو موږ (په دې وجه فقط) د اقامت په راګرځولو اکتفاء وکړه لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] صَلَّى الْمَغْرِبَ بِمُزْدَلِفَةَ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ په مزدلفه کي د ماښام لمونځ وکړی ثُمَّ تَعَشَّى بيا يې د ماخوستن ډوډۍ وخوړل ثُمَّ أَفْرَدَ الْإِقَامَةَ لِلْعِشَاءِ بيا يې د ماخوستن د لمانځه لپاره يوازي اقامت وکړی.

**اللغات:** ﴿يخل﴾ د افعال مضارع ده: خلل اچول، خلل راوستل. ﴿تشاغل﴾ د تفاعل مضارع ده: مشغوله کېدل. ﴿تعشّى﴾ د تفعّل ماضي ده: د ماخوستن ډوډۍ خوړل.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي څرنګه په عرفات کي د جمع بين الظهر والعصر په دوران کي د حاجي لپاره نفل کول يا په يو بل کار مشغوله کېدل مناسب نه دي، همدارنګه په مزدلفه کي هم د جمع بين المغرب والعشاء په دوران کي نفل کول مناسب نه دي، ځکه په نفلو سره په جمع بين الصلاتين کي خلل واقع کيږي، خو که هغه نفل وکړل، يا يې بل کار وکړی، نو په دې سره په دواړو لمونځونو يعني د ماښام او د ماخوستن په لمونځونو کي فصل واقع سو، نو ځکه به اقامت را ګرځوي،

[1] تخريج: لم أجده بهذا اللفظ و روى البخاري عن ابن مسعود ﷺ حديثا بمعناه في كتاب المناسك، باب: ۹۷، حديث رقم: ۱۶۷۵.

مناسب خو دا ده چې اذان هم را وګرځوي، لکه څرنګه چې په عرفات کې د ظهر او د عصر په مینځ کې د فصل واقع کېدلو په صورت کې اذان هم راګرځول کیږي، خو موږ فقط د اقامت په راګرځولو اکتفاء ځکه وکړه چې نبي ﷺ یو وار په مزدلفه کې د ماښام لمونځ وکړی، بیا یې خوراک وکړی، بیا د ماخوستن لپاره جلا اقامت وکړی، یعنې اذان یې نه را وګرځوی فقط اقامت یې راوګرځوی.

## د جمع بين الصلاتين لپاره د جماعت حکم

وَلَا تُشْتَرَطُ الْجَمَاعَةُ لِهٰذَا الْجَمْعِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د دې جمع (یعنې د مزدلفې د جمع بین الصلاتین) لپاره جماعت شرط نه دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز لِأَنَّ الْمَغْرِبَ مُؤَخَّرَةٌ عَنْ وَقْتِهَا ځکه (دلته) د ماښام لمونځ له خپل وخت څخه ځنډول سوی دی بِخِلَافِ الْجَمْعِ بِعَرَفَةَ په خلاف د عرفات په جمع کې لِأَنَّ الْعَصْرَ مُقَدَّمٌ عَلَى وَقْتِهِ ځکه (هلته) د مازیګر لمونځ پر خپل وخت مخکې سوی دی.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په مزدلفه کې د ماښام او د ماخوستن د لمونځونو د جمع کولو لپاره جماعت شرط نه دی، او په عرفات کې د جمع بین الظهر والعصر لپاره جماعت شرط دی، د فرق وجه دا ده چې په مزدلفه کې د ماښام لمونځ له خپل وخت څخه وروسته کیږي، او تر وخت وتلو وروسته لمونځ د قیاس موافق دي، ځکه چې د ټولو لمونځونو قضاء راوړل صحیح او مشروع دي (ځکه په قضاء کې تر سبب یعنې تر وخت وروسته مسبب یعنې لمونځ راځي، او دا د قیاس موافق دي)، نو د قیاس د موافقت په وجه به د ما ورد به النص رعایت کول واجب نه وي (د ما ورد به النص مطلب دا دی چې په مزدلفه کې د جمع بین الصلاتین د جماعت په باره کې نص او حدیث راغلی، نو دلته به د هغه اعتبار نه کیږي، ځکه د ما ورد به النص به هلته پوره اعتبار کیږي چې مسئله بالکل د قیاس مخالفه وي)، او څرنګه چې په عرفات کې د مازیګر لمونځ تر وخت مخکې اداء کیږي، او تر وخت مخکې لمونځ کول په هر اعتبار سره د قیاس خلاف دي (ځکه چې سبب کوم چې وخت دی تر مسبّب ورسته راځي، او دا د قیاس خلاف دي)، او کوم شی چې د قیاس خلاف وي، په هغه کې به د ما ورد به النص کوم چې جماعت دی پوره پوره رعایت کیږي، نو په دې وجه به په جمع بین الظهر والعصر کې جماعت شرط وي.

## مزدلفې ته رسېدلو مخکې د ماښام د لمانځه حکم

قَالَ: وَمَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ فِي الطَّرِيقِ فرمایي: او څوک چې د ماښام لمونځ (د مزدلفې) په لاره کې وکړي لَمْ تُجْزِهِ عِنْدَ• أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا الله نو د طرفینو په نېز دا لمونځ د هغه لپاره کافي نه دی وَعَلَيْهِ إِعَادَتُهَا او پر هغه یې راګرځول واجب دي مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ تر څو چې سهار سوی نه وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ الله: يُجْزِئُهُ امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د هغه لپاره کافي دی وَقَدْ أَسَاءَ لیکن هغه بد کار وکړی وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا صَلَّى بِعَرَفَاتٍ او همدغه اختلاف دی چې کله هغه په عرفات کې لمونځ وکړي لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ أَدَّاهَا فِي وَقْتِهَا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا

---

• القول الراجح: هو هذا قول الطرفين، كذا في الدر المختار ج:٢، ص: ١٩٢. [القول الراجح ج:١، ص: ٢١٢]

دی چې هغه د ماښام لمونځ په خپل وخت کې اداء کړی فَلَا تَجِبُ إِعَادَتُهَا نو د هغه راګرځول به واجب نه وي كَمَا بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ لکه تر سهار راختلو وروسته (چې راګرځول واجب نه دي) إِلَّا أَنَّ التَّأْخِيْرَ مِنَ السُّنَّةِ خو ځنډول سنت دي فَيَصِيْرُ مُسِيْئًا بِتَرْكِهِ نو د سنت په پرېښوولو سره به هغه ګنهکاره وي وَلَهُمَا مَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَ• لِأُسَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِيْ طَرِيْقِ الْمُزْدَلِفَةِ او د طرفينو دليل هغه روايت دی چې نبي ﷺ اسامه بن زيد ﷺ ته د مزدلفې په لاره کې وفرمايل الصَّلَاةُ أَمَامَكَ "لمونځ ستا مخته دی" مَعْنَاهُ وَقْتُ الصَّلَاةِ مطلب يې دا دی چې د لمانځه وخت ستا مخته دی وَهٰذَا إِشَارَةٌ إِلٰى أَنَّ التَّأْخِيْرَ وَاجِبٌ او دا اشاره ده (د دې خبرې و طرف ته) چې ځنډول واجب دي وَإِنَّمَا وَجَبَ لِيُمْكِنَهُ الْجَمْعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ بِالْمُزْدَلِفَةِ او ځنډول په دې وجه واجب سو چې د هغه لپاره په مزدلفه کې دواړه لمونځونه سره جمع کول ممکن وي فَكَانَ عَلَيْهِ الْإِعَادَةُ مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ نو (تر هغه وخته) پر هغه (د سهار لمونځ) راګرځول واجب دي تر څو چې سهار سوی نه وي لِيَصِيْرَ جَامِعًا بَيْنَهُمَا چې د ماښام او ماخوستن دواړو لمونځونو جمع کونکی سي وَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ لَا يُمْكِنُهُ الْجَمْعُ خو کله چې سهار سي نو د هغه لپاره جمع کول ممکن نه دي فَسَقَطَتِ الْإِعَادَةُ نو ځکه (بيا) راګرځول ساقط سو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو حاجي عرفات يا مزدلفې ته تر رسېدلو مخکې په يو ځای کې د ماښام لمونځ وکړی، نو د طرفينو په نېز د هغه لمونځ نه صحيح کېږي، بلکې تر سهار کېدلو مخکې پر هغه د لمانځه راګرځول واجب دي، همدا مسلک د امام زفر او حسن بن زياد دی، او امام ابو يوسف فرمايي چې لمونځ خو يې صحيح کيږي، لېکن د سنت د مخالفت په وجه ګنهکاره کيږي، همدا اختلاف په هغه صورت کې دی چې کله د ماښام لمونځ په عرفات کې اداء کړي يعني په دې صورت کې هم د طرفينو په نېز د ماښام لمونځ نه صحيح کيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز صحيح کيږي، خو ګنهکاره به وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې دې سړي د ماښام لمونځ په خپل وخت کې اداء کړی دی او کوم سړی چې لمونځ په خپل وخت کې دننه اداء کړي پر هغه د لمانځه راګرځول واجب نه دي، لکه په هغه صورت کې چې هم (د امام صاحب په نېز) راګرځول واجب نه دي چې کله سهار سي (يعني په خپله د امام صاحب مسلک دا دی چې که عرفات يا مزدلفې ته تر رسېدلو مخکې د ماښام لمونځ په خپل وخت کې وکړي نو تر سهار مخکې به يې را ګرځوي، خو که سهار سو بيا يې د راګرځولو ضرورت نسته، امام ابو يوسف تيلس کوي يعني څرنګه چې يې تر سهار وروسته ضرورت نسته، نو مخکې به يې هم ضرورت نه وي)، هو! دا خبره ده چې پر دې موقع د ماښام لمونځ ځنډول سنت دي، نو د سنت د پرېښوولو په وجه به حتماً ګنهکاره وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې اسامه بن زيد ﷺ مزدلفې ته د تللو په وخت کې نبي ﷺ ته وويل چې اې د الله رسوله! د ماښام لمونځ وکړه، نو نبي ﷺ وفرمايل: الصلوٰة أمامك (يعني د لمانځه وخت ستا مخته دی) يعني اوس د ماښام وخت نه دی، بلکې هغه مخته په مزدلفه کې دی، له دې څخه معلوميږي چې د ماښام لمونځ ځنډول واجب دي، او د ماښام لمونځ ځنډول فقط په دې وجه واجب سوي دي چې د ماښام او ماخوستن دواړه لمونځونه په مزدلفه کې جمع کړی سي، او دا تر

• تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب الإفاضة من عرفات، حديث رقم: ۲۷۸.

سهار کېدلو مخکې کېدای سي، نو ځکه به تر سهار مخکې مخکې د ماښام لمونځ را ګرځوي او د ماخوستن د لمانځه سره به يې جمع کوي، خو کله چې سهار سي، نو د ماخوستن د لمانځه سره به د هغه جمع کول او يو ځای کول ممکن نه سي، او کله چې جمع ناممکنه سي، نو ځکه به اعاده ساقط وي، او بيا به يې نه را ګرځوي.

## د لسمي ورځې د سهار د لمانځه مستحب وخت

قَالَ: وَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ فرمايي: او چې کله سهار سي يُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ نو امام به خلکو ته د سهار لمونځ په تياره کې ورکړي لِرِوَايَةِ[1] ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د روايت په وجه أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّاهَا يَوْمَئِذٍ بِغَلَسٍ چې نبي ﷺ په دې ورځ د سهار لمونځ په تياره کې وکړی وَلِأَنَّ فِي التَّغْلِيسِ دَفْعَ حَاجَةِ الْوُقُوفِ او ځکه چې په تياره کې (د لمانځه په کولو) د وقوفِ مزدلفه حاجت پوره کېږي فَيَجُوزُ نو ځکه به دا جائز وي كَتَقْدِيمِ الْعَصْرِ بِعَرَفَةَ لکه په عرفات کې د مازيګر لمونځ مخکې کول (چې جائز دي).

**اللغات:** ﴿غلس﴾ تياره، هغه وخت چې د سهار رڼا لا خوره سوې نه وي.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې د لوی اختر د ورځې په سهار به امام د سهار لمونځ خلکو ته وختي او په تياره کې ورکړي، دليل د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روايت دی چې نبي ﷺ په دې ورځ د سهار لمونځ په غلس کې اداء کړی، دويم دليل دا دی چې په مزدلفه کې د سهار لمونځ په غلس کې اداء کول د وقوفِ مزدلفه د ضرورت په وجه دي (يعني چې په دې ورځ وقوف تر ډېره وسي)، نو کله چې د وقوفِ عرفه د ضرورت په وجه د مازيګر لمونځ پر خپل مباح وخت مخکې کول جائز دي، نو د وقوفِ مزدلفه په وجه به د سهار لمونځ هم پر خپل معتاد وخت يعني پر اسفار مخکې کول په درجه اولیٰ جائز وي.

## د سهار تر لمانځه وروسته عملونه

ثُمَّ وَقَفَ وَوَقَفَ مَعَهُ النَّاسُ وَدَعَا بيا دې امام وقوف وکړي او د هغه سره دې (ټوله) خلک وقوف وکړي او دعاء دې وکړي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[2] وَقَفَ فِي هٰذَا الْمَوْضِعِ يَدْعُو ځکه چې نبي ﷺ په دې ځای کې وقوف وکړی په داسې حال کې چې دعاء يې کوله حَتّٰى رُوِيَ فِي حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ تر دې چې د عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث کې روايت سوی دی فَاسْتُجِيبَ لَهُ دُعَاؤُهُ لِأُمَّتِهِ چې د نبي ﷺ دعاء د خپل امّت په حق کې قبوله سوه حَتَّى الدِّمَاءِ وَالْمَظَالِمِ حتیٰ د خونونو او د ظلمونو په حق کې (هم د نبي ﷺ دعاء قبوله سوه).

**تشريح:** فرمايي: کله چې امام د سهار له لمانځه څخه فارغ سي، نو د جبلِ قُزَح سره دې نژدې ودرېږي، او ټوله خلک دې د هغه تر شا ودرېږي، بيا دې امام د کعبې (شريفې) و طرف ته مخامخ سي، په پوره توجه او په بشپړ اخلاص سره دې دعاوې وکړي، ځکه چې نبي ﷺ پر دې موقع د خپل ټوله امت لپاره دعاوې وکړې، او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په روايت

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب إستحباب زيادة التغليس بصلاة الصبح، حديث رقم: ٢٩٢.

[2] قد مر تخريجه تحت حديث رقم: ٩.

کې ذکر سوې دې چې د نبي ﷺ تولې دعاګانې قبولې سوې، تر دې چې د ناحقه قتلونو او د ظلمونو سره اړوند دعاګانې خو په عرفات کې رد کړی سوې، لېکن په مزدلفه کې الله تعالیٰ قبولې کړې.

## په مزدلفه کې د وقوف شرعي حیثیت

ثُمَّ هٰذَا الْوُقُوْفُ وَاجِبٌ عِنْدَنَا بیا دا وقوف(یعني په مزدلفه کي درېدل) زموږ په نېز واجب دی وَلَيْسَ بِرُكْنٍ او رکن نه دی حَتّٰى لَوْ تَرَكَهُ بِغَيْرِ عُذْرٍ يَلْزَمُهُ الدَّمُ تر دې که بې له عذره یې پرېښووی نو پر هغه دم لازمیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: إِنَّهُ رُكْنٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چي دا رکن دی لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: فَاذْكُرُوا اللهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ (البقرة: ۱۹۸) ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: "نو د مشعر حرام سره د الله ذکر کوئ" وَبِمِثْلِهِ يَثْبُتُ الرُّكْنِيَّةُ او په داسي آیت سره فرضیت ثابتیږي وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَدَّمَ ❶ ضَعَفَةَ أَهْلِهِ بِاللَّيْلِ او زموږ دلیل دا دی چي نبي ﷺ د خپلي کورني کمزوري انسانان د شپې مخکي واستول وَلَوْ كَانَ رُكْنًا لَمَا فَعَلَ ذٰلِكَ نو که وقوفِ مزدلفه(په مزدلفه کي درېدل) رکن وای نو نبي ﷺ به داسي کړي نه وای(یعني د شپې به یې نه وای استولي نه وای) وَالْمَذْكُوْرُ فِيْمَا تَلَا الذِّكْرُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په تلاوت سوي آیت کي "ذکر کول" ذکر سوي وَهُوَ لَيْسَ بِرُكْنٍ بِالْإِجْمَاعِ او ذکر کول په اتفاق سره رکن نه دي(نو وقوف به هم رکن نه وي) وَإِنَّمَا عَرَفْنَا الْوُجُوْبَ بِقَوْلِهِ ❷ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او موږ د وقوفِ مزدلفه وجوب د نبي ﷺ له (دې) قول څخه معلوم کړی دی مَنْ وَقَفَ مَعَنَا هٰذَا الْمَوْقِفَ "چا چي زموږ سره په دې موقف(یعني مزدلفه) کي وقوف وکړی وَقَدْ كَانَ أَفَاضَ قَبْلَ ذٰلِكَ مِنْ عَرَفَاتٍ په داسي حال کي چي تر دې مخکي له عرفات څخه راغلی وي(یعني وقوفِ عرفه یې هم کړی وي) فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ نو د هغه حج پوره سو" عَلَّقَ بِهِ تَمَامَ الْحَجِّ (وګورئ!)نبي ﷺ د حج پوره کېدل په وقوفِ مزدلفه پوري معلق کړي دي وَهٰذَا يَصْلُحُ أَمَارَةً لِلْوُجُوْبِ او تعلیق د وجوب د نښه والي لیاقت لري (یعني معلق کول د وجوب نښه ده) غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا تَرَكَهُ بِعُذْرٍ (لېکن) بغیر له دې څخه چي کله یې وقوفِ مزدلفه د عذر په وجه پرې ایښی وي بِأَنْ يَكُوْنَ بِهِ ضَعْفٌ أَوْ عِلَّةٌ په دې توګه چي په هغه کي ضُعف یا مرض وي أَوْ كَانَتْ اِمْرَأَةً تَخَافُ الزِّحَامَ یا ښځه وي (او) له ګڼي ګوڼي څخه بیرېږي لَا شَيْءَ عَلَيْهِ (نو) پر هغه هیڅ شی واجب نه دی لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چي موږ روایت کړی.

**اللغات:** ﴿ضعفة﴾ جمع د ضعیف ده: کمزوري خلک. ﴿أمارة﴾ نښه، علامه. ﴿زحام﴾ ګڼه ګوڼه(رش).

---

❶ تخریج: أخرجه مسلم فی کتاب الحج، باب إستحباب تقدیم دفع الضعفة من النساء، حدیث رقم: ۲۹۳.

❷ تخریج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب المناسک، حدیث رقم: ۱۹۵۰، باب من لم یدرک عرفة.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده چې زموږ په نیز په مزدلفه کې وقوف کول (درېدل) واجب دي، رکن نه دي، لیکن د امام شافعي رحمة الله په نیز رکن دی، لهذا که یو چا بې له عذره دا وقوف پرېښوده، نو زموږ په نیز پر هغه دم واجبیږي، او د شوافعو په نیز د هغه حج خراپیږي.

**د امام شافعي دلیل:** دا آیت دی: فإذا أفضتم من عرفات فاذكروا الله عند المشعر الحرام، (او کله چې تاسو له عرفات څخه واپس راشئ، نو د مشعرِ حرام سره د الله ذکر وکړئ)، په دې آیت سره په دې توګه دلیل نیسي، چې په دې کې د مشعر حرام په وخت کې د الله د ذکر کولو حکم سوی دی، او مشعرِ حرام په مزدلفه کې دی، نو له دې آیت څخه د ذکر رکن کېدل ثابت سو، او څرنګه چې دا ذکر په مزدلفه کې کیږي، نو په مزدلفه کې به درېدل او وقوف کول هم رکن وي.

**زموږ دلیل:** چې نبي ﷺ د خپلې کورنۍ ضعیفه او کمزوري وګړي د مزدلفې په شپه منیٰ ته واستول، یعني بې له وقوف مزدلفه څخه یې منیٰ ته واستول، او دا حکم یې ورته وکړی چې د جمرهٔ عقبه رمي مه کوئ، تر دې چې لمر راوخیږي، لهذا که وقوفِ مزدلفه رکن وای، نو نبي ﷺ به داسې نه کولای، څکه چې د رکن رکنیت د صحیح او ضعیف دواړو په حق کې برابر دی، او د عذر په وجه به هم د رکن پرېښوول جائز نه وي

**جواب:** د امام شافعي د دلیل جواب دا دی چې په دې آیت کې ذکر کول مذکور دي، او ذکر کول بالاجماع رکن نه دي، نو پر کوم شي چې ذکر موقوف وي یعني وقوفِ مزدلفه، هغه به هم رکن نه وي، او د وقوف مزدلفه واجبېدل په حدیث سره ثابت دي، نبي ﷺ فرمایلي دي: "چا چې زموږ سره په مزدلفه کې وقوف وکړی، په داسې حال کې چې په عرفات کې یې هم وقوف کړی وي، نو د هغه حج پوره سو"، په دې حدیث کې د حج بشپړتیا په وقوفِ مزدلفه پوري معلق سوي دي، او معلق کېدل د وجوب علامه ده، نو څکه به په مزدلفه کې وقوف واجب وي، هو! که د عذر په وجه یې وقوفِ مزدلفه پرېښووی، نو پر هغه دم او هیڅ شی نه واجبیږي، لکه څرنګه چې په دې حدیث قدم ضعفة أهله الخ کې هم ذکر سو، د عذر مثال د حاجي ضعیفه کېدل، مریض کېدل یا ښځه له ګڼې ګوڼې څخه بېرېدل او داسې نور دي.

## په مزدلفه کې د وقوف (درېدلو) ځای

| |
|---|
| قَالَ: وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ فرمایي: او مزدلفه ټوله د درېدلو ځای دی إِلَّا وَادِيَ مُحَسِّرٍ ماسوا له وادی محسر څخه لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ مخکې روایت کړی. |

**تشریح:** دا خبره خو مخکې تېره سوه چې له وادی محسّر څخه علاوه ټوله مزدلفه د وقوف (درېدلو) ځای دی، یعني نور چې هر ځای حاجي ودرېږي، د مزدلفې وقوف اداء کېږي، دلیل مخکې تېر سو.

## له مزدلفې څخه منیٰ ته د (واپس) راتګ بیان

| |
|---|
| قَالَ: فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ فرمایي: او کله چې لمر راوخیږي أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ نو روان دي سره امام او (ټوله) خلک حَتَّىٰ يَأْتُوا مِنًى تر دې چې منیٰ ته راسي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ عَصَمَهُ اللهُ: هٰكَذَا وَقَعَ فِي نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ ضعیف بنده (یعني صاحب د هدایې رحمه الله) فرمایي: همدارنګه د قدوري په نسخو کې واقع سوي دي وَهٰذَا غَلَطٌ او دا غلط دي وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ إِذَا أَسْفَرَ او صحیح دا ده چې کله ښه رڼا سي أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ نو امام او خلک دي روان سي لِأَنَّ |

النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● دَفَعَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ ځکه چې نبي ﷺ (هم) تر لمر راختلو مخکې روان سو.

**اللغات:** ﴿أسفر﴾ د افعال ماضي ده: ښه رڼا کېدل، ښه څرګندېدل.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي کله چې د لوی اختر د ورځې لمر راوخيږي، نو امام او ټوله خلک دې له مزدلفې څخه روان سي منیٰ ته دې ولاړ سي، لېکن صاحب د هدايې فرمايي چې د مختصر القدوري دا عبارت غلط دی، او د مختصر قدوري په زياترو نسخو کې همدا غلطي شايع سوې ده، صحيح دا ده چې د سهار تر لمانځه وروسته دې په ښه رڼا کې تر لمر راختلو مخکې روان سي، ځکه نبي ﷺ تر لمر راختلو مخکې مزدلفې ته روان سوی وو، نو د عامو خلکو په حق کې به هم دا حکم وي.

## د رمي د طريقې او د شروع کولو بيان

قَالَ: فَيَبْتَدِئُ بِجَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فرمايي: او شروع به وکړي له جمرهٔ عقبه څخه فَيَرْمِيهَا مِنْ بَطْنِ الْوَادِي نو له بطنِ وادی څخه به يې اوولي بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ په اوو (داسي) کاڼو سره مِثْلَ حَصَى الْخَذْفِ لکه د وړيشتلو کاڼي (يعني په داسي کاڼو سره چې هغه کوچني وي لکه مردکه او په دوو ګوتو غورځول کېداى سي، په لنډه توګه دا چې په اوو کوچنيو ډبرو سره دې جمرهٔ عقبه اوولي) لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● لَمَّا أَتَى مِنًى لَمْ يُعَرِّجْ عَلَى شَيْءٍ ځکه کله چې نبي ﷺ منیٰ ته راغلی نو د هيڅ شي سره نه ودرېدی حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ تر دې چې جمرهٔ عقبه يې وويشتله (يعني منیٰ ته تر راتګ وروسته نبي ﷺ بل هيڅ کار نه وکړی، اول يې جمرهٔ عقبه وويشتله) وَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ●: عَلَيْكُمْ بِحَصَى الْخَذْفِ او نبي ﷺ فرمايلي دي: "پر تاسو لازم دي کوچنۍ ډبري لَا يُؤْذِي بَعْضُكُمْ بَعْضًا (او) بعضي ستاسو دي تکليف نه رسوي بعضو ته".

**اللغات:** ﴿حصيات﴾ جمع د حصاة ده: کاڼی، کوچنۍ ډبره، شګه. ﴿خذف﴾ دا په اصل کې د ضرب د باب مصدر دی: مراد ځنې په ګوتو سره د کاڼي غورځول (ويشتل) دي، او له حصى الخذف څخه مراد د ويشتلو (او غورځولو) کاڼي دي، يعني هغه کوچنۍ ډبري او کاڼي ځنې مراد دي چې په دوو ګوتو سره نيول کېدای او غورځول کېدای سي [او دومره وي لکه مردکه يا څه غټ]. ﴿لم يعرج﴾ د تفعيل د باب جحد معلوم دی: درېدل، توقف کول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې منیٰ ته په رسېدلو سره د حاجيانو لپاره تر ټولو اول عمل دا دی چې هغوی دي د جمرهٔ عقبه رمي وکړي، او له بطن وادي څخه دي شيطان اووه (۷) کاڼي اوولي، چې هغه به دومره کوچني وي چې د ګوتو په سرونو کې به نيول کيږي، د نيولو طريقه يې دا ده چې کاڼي به د ښتي ګوتي او د شهادت د ګوتي په سرونو سره ونيول

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب الصلاة بجمع، حديث رقم: ۱۹۳۸.

● تخريج: قد مر تخريجه تحت حديث رقم: ۹۸.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب في رمي الجمار، حديث رقم: ۱۹۶۶.

سي او شيطان دي په ويشتل سي، د دې مسئلې دليل دا دی چي نبي ﷺ کله منیٰ ته راغلی، نو تر ټولو مخکي يې جمرهٔ عقبه وويشتله، نو ځکه به منیٰ ته په رسېدلو سره هر حاجي هم جمرهٔ عقبه اولي.

## د رمي ادبونه او د تلبيې د بندولو وخت

وَلَوْ رَمٰى بِأَكْبَرَ مِنْهُ جَازَ او که حاجي تر هغه په غټ کاڼي ويشتل وکړي نو (هم) جائز دي (يعني که حاجي تر هغو په غټو کاڼو سره جمرهٔ عقبه اولي نو هم جائز دي) لِحُصُوْلِ الرَّمْيِ ځکه چي ويشتل حاصل سو غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَرْمِيْ بِالْكَبِيْرِ مِنَ الْأَحْجَارِ خو دا چي غټې ډبري به نه غورځوي كَيْ لَا يَتَأَذّٰى بِهِ غَيْرُهُ چي بل چا ته په دې سره تکليف نه ورسيږي وَلَوْ رَمَاهَا مِنْ فَوْقِ الْعَقَبَةِ أَجْزَأَهُ او که حاجي له جمرهٔ عقبه څخه لوړ ويشتل وکړي نو (هم) کافي دي لِأَنَّ مَا حَوْلَهَا مَوْضِعُ النُّسُكِ ځکه چي د جمرهٔ عقبه شاوخوا (هم) د نسک (يعني د حج د عبادت) ځای دی وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَكُوْنَ مِنْ بَطْنِ الْوَادِيْ او افضل دا ده چي (ويشتل) له بطن وادي څخه وي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَيُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ او د هري ډبري سره به تکبير وايي كَذَا رَوٰى [1] ابْنُ مَسْعُوْدٍ وَابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ همداسي له ابن مسعودلو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه روايت سوي دي وَلَوْ سَبَّحَ مَكَانَ التَّكْبِيْرِ أَجْزَأَهُ او که د تکبير پر ځای تسبيح ووايي نو (هم) کافي دي لِحُصُوْلِ الذِّكْرِ ځکه چي (د الله) ذکر حاصل سو وَهُوَ مِنْ آدَابِ الرَّمْيِ او ذکر کول د رمي له ادبونو څخه دي وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا او د جمرهٔ عقبه سره به نه درېږي لِأَنَّ النَّبِيَّ [2] صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَقِفْ عِنْدَهَا ځکه چي نبي ﷺ د جمرهٔ عقبه سره نه وه درېدی وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ مَعَ أَوَّلِ حَصَاةٍ او تلبيه به ختموي د اول کاڼي سره لِمَا رَوَيْنَا عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه حديث په وجه کوم چي موږ له ابن مسعود ﷺ څخه روايت کړی وَرَوٰى جَابِرٌ او جابر ﷺ روايت کړی دی أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [3] قَطَعَ التَّلْبِيَةَ عِنْدَ أَوَّلِ حَصَاةٍ چي نبي ﷺ تلبيه ختمه کړه د اول کاڼي په وخت کي رَمٰى بِهَا جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ چي په هغه سره يې جمرهٔ عقبه وويشتله (يعني نبي ﷺ د اول کاڼي د غورځولو په وخت کي تلبيه ختمه کړه).

**اللغات:** ﴿قطع﴾ د فتح ماضي ده: بندول، ختمول، پرېکول.

**تشريح:** مخکي د طول او عرض په اعتبار سره د کاڼو اندازه بيان سوه، چي هغه به دومره کوچني وي چي په دوو ګوتو سره به غورځول کېدای سي، لېکن که تر دې په غټ کاڼي سره رمي وسي نو هم جائز دي، ځکه چي مقصود حاصل سو، او مقصود ويشتل دي، هو! دا خبره ده چي غټې ډبري به نه غورځوي، کنې خلکو ته به تکليف ورسيږي، او افضل دا ده

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب يكبر مع كل حصاة، حديث رقم: ١٧٥٠.

[2] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب من رمى جمرة العقبة و لم يقف، حديث رقم: ١٧٥١، ١٧٥٩.

[3] قد مر تخريجه تحت حديث رقم: ١٠٥.

چې رمی له بطنِ وادي څخه وکړي، خو که د عقبۀ جمرې له لوړ طرف څخه راسي او رمی وکړي نو هم جائز دي، ځکه چې د عقبۀ جمرې څلور سره طرفه د نسک او د عبادت ځایونه دي.

ربېکوالعی او حاجي به د هر کاڼي سره الله أکبر وايي، لکه څرنګه چې د ابن مسعود او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُم له حديث څخه معلوميږي، ليکن که د تکبير پر ځای يوه بله تسبيح ووايي، نو هم صحيح دي، ځکه چې د الله ذکر حاصل سو. او د رمی له لیږنو څخه يو اداب د الله ذکر هم دی. او حاجي به د جمرۀ عقبه سره نه دريږي، ځکه چې نبي ﷺ هم دريدلی نه وو. او د اول کاڼي سره به تلبيه بندوي، د هغه حديث په وجه کوم چې ابن مسعود ﷛ روايت کړی دی، او جابر ﷛ روايت کړی دی چې نبي ﷺ د اول کاڼي سره تلبيه ختمه کړه.

## په رمی کې د کاڼو د ويشتلو طريقه

ثُمَّ كَيْفِيَّةُ الرَّمْيِ بيا طريقه د (شيطان) ويشتلو دا ده أَنْ يَضَعَ الْحَصَاةَ عَلَى ظَهْرِ إِبْهَامِهِ الْيُمْنَى چې کاڼی به د خپل راسته بټې ګوتې پر شا کښيږدي وَيَسْتَعِينُ بِالْمُسَبِّحَةِ او د شهادت له ګوتې څخه به کار واخلي (يعني د شهادت په ګوته به يې ونيسي) وَمِقْدَارُ الرَّمْيِ او د رمی اندازه (دا ده) أَنْ يَكُونَ بَيْنَ الرَّامِيْ وَبَيْنَ مَوْضِعِ السُّقُوطِ خَمْسَةُ أَذْرُعٍ چې د ويشتونکي او د کاڼي د ايله کيدلو د ځای تر مينځ به پنځه لاسه فاصله (واټن) وي (چې په اوسني حساب سره اووه نيم فوټه کيږي) كَذَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله همدا ډول امام حسن رَحِمَهُ الله له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت کړي دي لِأَنَّ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ يَكُونُ طَرْحًا ځکه تر دې خو کم ايله کول (او غورځول) دي (يعني که تر دې نژدې ورته ودريږي نو هغه ته کاڼي ايله کول يا کاڼي ور غورځول وايي، په ويشتل نه ورته وايي) وَلَوْ طَرَحَهَا طَرْحًا أَجْزَأَهُ او که کاڼي يې (د جمرې خوا ته) ايله کړی نو (هم) کافي دي لِأَنَّهُ رَمْيٌ إِلَى قَدَمَيْهِ ځکه (ګواکي) هغه د خپلو پښو و طرف ته رمي وکړې إِلَّا أَنَّهُ مُسِيءٌ لِمُخَالَفَتِهِ السُّنَّةَ خو دا سړی به د سنت د مخالفت په وجه ګنهګاره وي وَلَوْ وَضَعَهَا وَضْعًا او که هغه (فقط د جمرې سره) کاڼی کښېږدي لَمْ يُجْزِهِ نو (دا) کافي نه دي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِرَمْيٍ ځکه چې دا ويشتل نه دي.

**اللغات:** ﴿إبهام﴾ بټه ګوته، ﴿مسبحة﴾ د شهادت ګوته، ﴿يستعين﴾ د استفعال مضارع ده: مرسته اخيستل، د مرستې طلب کول، ﴿طرحا﴾ د فتح مصدر دی: ايله کول، غورځول، ليرې کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې د رمی جمار (يعني د شيطانانو د ويشتلو) کيفيت او طريقه بيان سوې ده چې حاجي به کاڼی د خپلې بټې ګوتې پر شا کښيږدي او د شهادت د ګوتې په مرسته به يې وغورځوي. د حاجي او د کاڼي د لوېدلو د ځای يعني د جمرې په مينځ کې به لږ تر لږه پنځه لاسه فاصله وي، چې هغه اووه نيم (۷:۵) فوټه کيږي، حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه همدغه روايت کړي دي، دليل دا دی چې له دې څخه د کمې فاصلې په صورت کې رمی او ويشتل نه متحقق کيږي، بلکې ايله کول متحقق کيږي، حال دا چې د شيطان ويشتل سنت دي، نه کاڼي ايله کول، او که حاجي د ويشتلو پر ځای کاڼی قصداً ايله کړی، نو هم کافي دي، ځکه چې هغه ګواکي کاڼي د خپلو پښو و طرف ته

وغورځوي، لېکن د سنت د مخالفت په وجه ګنهګاره کېږي، او که هغه کاڼي د جمرې سره کېښنوي، نو دا کافي نه دي، ځکه چې دا په هيڅ ډول هم رمی او ويشتل نه دي.

## جمرې ته د کاڼي د نږدې کېدلو حکم

وَلَوْ رَمَاهَا او که حاجي کاڼي وغورځوي فَوَقَعَتْ قَرِيبًا مِنَ الْجَمْرَةِ (لېکن) هغه د جمرې سره نږدې ولوېدی يَكْفِيهِ نو (دا) د هغه لپاره کافي دي لِأَنَّ هٰذَا الْقَدْرَ مِمَّا لَا يُمْكِنُ الْاِحْتِرَازُ عَنْهُ ځکه چې له دومره اندازې څخه ځان ساتل ممکن نه دي وَلَوْ وَقَعَتْ بَعِيدًا مِنْهَا لَا يُجْزِئُهُ او که کاڼی له جمرې څخه لېرې ولوېږي نو د هغه لپاره (دا) کافي نه دي لِأَنَّهُ لَمْ يُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا فِي مَكَانٍ مَخْصُوصٍ ځکه چې د رمی عبادت کېدل صرف په ځانګړي ځای کې معلوم سوي دي (يعني فقط ديو ځانګړي ځای يعني د جمرې ويشتل عبادت دي) وَلَوْ رَمَى بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ جُمْلَةً او که حاجي اووه سره کاڼي يو ځای (يعني په يوه وار) وغورځوي فَهٰذِهِ وَاحِدَةٌ نو دا (فقط) يو کاڼی دی (يعني فقط يو وار به شمارل کېږي) لِأَنَّ الْمَنْصُوصَ عَلَيْهِ تَفَرُّقُ الْأَفْعَالِ ځکه چې منصوص عليه جلا جلا افعال دي (يعني په حديث کې راغلي دي چې اووه کاڼي به جلا جلا غورځوي).

**تشريح:** عبارت واضح او ځرګنده دی.

## کاڼي به له کوم ځايه را اخيستل کېږي؟

وَيَأْخُذُ الْحَصٰى مِنْ أَيِّ مَوْضِعٍ شَاءَ او له کوم ځايه چې وغواړي کاڼي به را واخلي إِلَّا مِنْ عِنْدِ الْجَمْرَةِ خو له جمرې څخه يې نه را اخلي فَإِنَّ ذٰلِكَ يُكْرَهُ ځکه چې دا مکروه دي لِأَنَّ مَا عِنْدَهَا مِنَ الْحَصٰى مَرْدُودٌ ځکه د جمرې سره چې کوم کاڼي (پراته) دي هغه مردود (رد کړی سوي) دي هٰكَذَا جَاءَ فِي الْأَثَرِ همداسي په اثر کې راغلي دي فَيُتَشَاءَمُ بِهِ نو د هغو په [illegible] به منحوس سي (يعني د هغو په اخيستلو کې نحوست سته) وَمَعَ هٰذَا لَوْ فَعَلَ أَجْزَأَهُ خو که د دې باوجود حاجي داسي وکړي نو (هم) د هغه لپاره کافي دي لِوُجُودِ فِعْلِ الرَّمْيِ ځکه چې د ويشتلو فعل موجود سو (يعني که څه هم دا کاڼي منحوس دي خو بيا هم جمره [شيطان] په ويشتل کېږي).

**اللغات:** ﴿يتشاءم﴾ د تفاعل مضارع مجهول ده: فال نيول، په بد فالي او نحوست سره نيول.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې له هر ځای څخه حاجي وغواړي کاڼي دي راواخلي، خو غوره دا ده چې له مزدلفې څخه يې راواخلي، لېکن له جمرې څخه دي کاڼي نه را اخلي (يعني په کومو کاڼو چې يو وار جمره ويشتل سوې وي او د جمرې سره پراته وي هغه دي نه را اخلي)، ځکه په حديث کې راغلي دي چې د جمراتو سره پراته کاڼي مردود سوي وي، لهذا د هغو په اخيستلو کې نحوست سته، نو ځکه به هغه نه را اخلي. خو که بيا هم حاجي له جمرو څخه کاڼي را واخلي، او په هغو سره رمي وکړي، نو هم صحيح دي، ځکه چې د کاڼي د ويشتلو فعل خو راغلی، او مقصود همدغه فعل دی.

## په رمي كې له ډبرو څخه علاوه نور شيان استعمالول

وَيَجُوزُ الرَّمْيُ بِكُلِّ مَا كَانَ مِنْ أَجْزَاءِ الْأَرْضِ او جائز دي ويشتل په هر هغه شي سره چې د مځکې له جنس څخه وي عِنْدَنَا (دا حکم) زموږ په نيز خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِأَنَّ الْمَقْصُودَ فِعْلُ الرَّمْيِ ځکه چې اصل مقصود خو ويشتل دي وَذٰلِكَ يَحْصُلُ بِالطِّيْنِ كَمَا يَحْصُلُ بِالْحَجَرِ او دا په خټو سره (هم) حاصليږي (يعني دا په لوټو سره هم حاصليږي) لکه څرنګه چې په ډبرو سره حاصليږي بِخِلَافِ مَا إِذَا رَمٰى بِالذَّهَبِ أَوِ الْفِضَّةِ په خلاف د هغه صورت چې کله هغه په سرو يا سپينو زرو ويشتل وکړي لِأَنَّهُ يُسَمّٰى نِثَارًا لَا رَمْيًا ځکه چې دې ته خورول (او شيندل) ويل کيږي نه ويشتل.

**اللغات:** ﴿طين﴾ ختي، (خاوري)، ﴿نثر﴾ مصدر دی: خورول، غورول.

**تشريح:** فرمايي چې زموږ په نيز په هر هغه شي سره رمي کول جائز دي چې د مځکې له جنس څخه وي، هغه که لوټه وي، که ډبره وي، ليکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز صرف په ډبرې سره رمي کول جائز دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د اثر اتباع ده، يعني هغه د رواياتو تابعداري کوي ځکه په رواياتو کې په ډبره سره رمي کول له نبي ﷺ څخه ثابت دي، او زموږ دليل دا دی چې مقصود رمي او ويشتل دي، او رمي چې څنګه په ډبرو سره حاصليږي، همدارنګه په لوټه او نورو سره هم حاصليږي، نو په رمي کولو کې به ډبره، لوټه او داسې نور برابر وي، خو په سرو او سپينو زرو سره رمي کول جائز نه دي، ځکه د رمي مقصد د شيطان ذليله کول دي، خو که په سرو يا سپينو زرو يې اوولي نو دا خو د شيطان عزت سو، او د سرو يا سپينو زرو غورځولو ته هم خلک غورځول نه وايي بلکې په عزت سره خورول او پاشل ورته وايي (يعني مثلا که پر يو چا يا پر يو شي سره زر وغورځول سي، نو خلک وايي چې سره زر يې پر وشيندل)، حال دا چې مقصود رمي يعني ويشتل دي.

## د ذبحې، حلق او قصر حکم

قَالَ: ثُمَّ يَذْبَحُ إِنْ أَحَبَّ فرمايي: بيا به (هدی) ذبحه کړي که يې خوښه وي ثُمَّ يَحْلِقُ أَوْ يُقَصِّرُ بيا به سر وخريي يا به ويښتان کوچني کړي لِمَا رُوِيَ❶ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه له نبي ﷺ څخه روايت سوي دي أَنَّهُ قَالَ چې نبي ﷺ وفرمايل إِنَّ أَوَّلَ نُسُكِنَا فِي يَوْمِنَا هٰذَا أَنْ نَرْمِيَ ثُمَّ نَذْبَحَ ثُمَّ نَحْلِقَ "په دې ورځ کې زموږ اول نسک دا دی چې ويشتل وکړو بيا ذبح (هدی) حلاله کړو بيا سر وخريو" وَلِأَنَّ الْحَلْقَ مِنْ أَسْبَابِ التَّحَلُّلِ او ځکه چې سر خريل د حلال والي له اسبابو څخه دي (يعني په دې سره انسان حلال کيږي) وَكَذَا الذَّبْحُ او همداسې ذبحه کول (هم د حلالوالي له اسبابو څخه دي) حَتّٰى يَتَحَلَّلَ بِهِ الْمُحْصَرُ تر دې چې په دې (دواړو) سره محصر حلاليږي فَيُقَدَّمُ الرَّمْيُ عَلَيْهِمَا نو ويشتل به پر دې دواړو مخکې کيږي ثُمَّ الْحَلْقُ مِنْ مَحْظُوْرَاتِ الْإِحْرَامِ بيا سر خريل د احرام له ممنوعاتو څخه دي فَيُقَدَّمُ عَلَيْهِ الذَّبْحُ نو پر سر خريلو به (د هدي) ذبحه کول مخکې کيږي وَإِنَّمَا عَلَّقَ الذَّبْحَ بِالْمَحَبَّةِ او ذبحه کول په دې وجه

---

❶ تخريج: أخرجه مسلم بمعناه في كتاب الحج، باب بيان أن السنة يوم النحر، حديث رقم: ۱۳۲۵، ۱۲۲۶.

پر خوښې معلق کړې سو لِأَنَّ الدَّمَ الَّذِيْ يَأْتِيْ بِهِ الْمُفْرِدُ تَطَوُّعٌ ځکه چې هغه قرباني کوم چې یې لمفرد بالحج کوي نفلي قرباني ده وَالْكَلَامُ فِي الْمُفْرِدِ او خبره هم د لمفرد بالحج په باره کې ده. (لمفرد بالحج هغه چا ته ویل کیږي چې صرف د حج احرام یې تړلی وي)

**اللغات**: ﴿تحلل﴾ د تفعل مصدر دی؛ احرام ختمول، حلال کېدل، ﴿محصر﴾ هغه چې له حج څخه بند سوی (منع سوی) وي، یعني حج نه سي کولای، ﴿محظورات﴾ هغه شیان کوم چې د احرام په حالت کي ممنوع وي، ﴿حلق﴾ سر خریل، ﴿قصر﴾ ورېښتیان کوچني کول.

**تشریح**: صورت د مسئلې: دا دی چې د جمرۀ عقبه تر ویشتلو وروسته لمفرد بالحج حاجي ته اختیار دی، که غواړي، نو قرباني دي وکړي، بیا دي سر وخریي یا دي ورېښتیان کوچني کړي، او که غواړي، نو قرباني دي نه کوي (او که حاجي متمتع یا قارن وو نو قرباني کول واجب دي). دلیل دا دی چې نبي ﷺ فرمایلي دي؛ "په دې ورځ یعني د لوی اختر په ورځ زموږ لپاره اول عبادت دا دی چې رمی وکړو، بیا قرباني وکړي، بیا حلق وکړو"، دویم دلیل دا دی چې حلق له هغه اسبابو څخه یو سبب دی کوم چې حاجي له احرام څخه باسي، یعني حلق د تحلل له اسبابو څخه دی، او قرباني هم د تحلل له اسبابو څخه ده، لکه څرنګه چې محصر هم په قرباني او حلق سره حلالیږي، نو کله چې حلق او قرباني دواړه د تحلل له اسبابو څخه دي، نو رمی کول به پر دواړو مخکې کیږي، او څرنګه چې حلق د احرام له ممنوعاتو څخه دی، نو حلق به پر قرباني مخکې کیږي (ځکه که مخکې نسي نو د احرام په حالت کي به حلق راسي او دم به پر واجب سي، لیکن که اول قرباني وکړي نو دا ستونزه نه راځي، ځکه چې هغه د احرام له ممنوعاتو څخه نه ده).

وانما علّق الخ او قرباني ځکه پر مشیئت او خوښې معلق کړی سوه چې مفرد بالحج کومه قرباني کوي، هغه نفلي وي، نه واجب، او اوس زموږ خبره هم د مفرد بالحج په باره کي ده، لهذا پر هغه به قرباني واجب او لازم نه وي، بلکي د هغه په خوښې پورې به معلقه وي.

## حلق افضل دي

وَالْحَلْقُ أَفْضَلُ او سر خریل افضل دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: رَحِمَ اللهُ الْمُحَلِّقِيْنَ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "الله تعالیٰ دې پر سر خریونکو رحم وکړي" قَالَهُ ثَلَاثًا نبي ﷺ دا جمله درې واره وفرمایله اَلْحَدِيْثُ ظَاهِرٌ بِالتَّرَحُّمِ عَلَيْهِمْ (دا) حدیث پر محلقینو د رحم په باره کي ښکاره (دلیل) دی (نو ځکه به سر خریل افضل وي) وَلِأَنَّ الْحَلْقَ أَكْمَلُ فِي قَضَاءِ التَّفَثِ او ځکه چې سر خریل ډېر ښه دي د خیرو په پاکولو کي (یعني سر خریل په ښه توګه د سر خیري له منځه وړي) وَهُوَ الْمَقْصُوْدُ او همدغه مقصود دي وَفِي التَّقْصِيْرِ بَعْضُ التَّقْصِيْرِ او په ورېښتیانو کوچني کولو (غڅي کولو) کي څه نقص سته فَأَشْبَهَ الْإِغْتِسَالَ مَعَ الْوُضُوْءِ نو دا د غسل او اوداسه سره مشابه سو وَيَكْتَفِيْ فِي الْحَلْقِ بِرُبْعِ الرَّأْسِ او

---

[1] تخریج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب تفضيل الحلق على التقصير، حديث رقم: ٣١٧، ٣١٨.

(حاجي) په حلق کې د سر پر څلورمي حصې اکتفاء کولای سي اِعْتِبَارًا بِالْمَسْحِ (د سر) پر مسحې باندې په قیاسولو سره. وَحَلْقُ الْكُلِّ أَوْلَى او د ټوله سر خریل غوره دي اِقْتِدَاءً بِرَسُوْلِ اللهِ ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبي ﷺ په اقتداء کولو سره. وَالتَّقْصِيْرُ: أَنْ يَأْخُذَ مِنْ رُؤُوْسِ شَعْرِهِ مِقْدَارَ الْأَنْمُلَةِ او د وربښتیانو د کوچني کولو معنیٰ دا ده، چې د وربښتیو له سر څخه د ګوتې د سر په اندازه (وربښتیان) واخلي (یعني غڅې یې کړي یا یې په یو ماشین څنې واخلي).

**اللغات:** ﴿حلق﴾ سر خریل، ﴿ثلث﴾ خیري، چټلتیا، ﴿تقصیر﴾ د تفعیل مصدر دی: ① وربښتیان کوچني کول (غڅې کول، پرېکول)، ② کمي، کوتاهي، ﴿أنملة﴾ د ګوتې سر.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې د حاجي لپاره سر خریل او وربښتیان کوچني کول دواړه جائز دي، لېکن سر خریل افضل او اولیٰ دي. د افضلیت یې دوې وجهې دي: (۱) اوله وجه دا ده چې نبي ﷺ په حدیث کې د سر خریونکو لپاره درې وراره د الله ﷻ د رحمت دعاء کړې ده، او د وربښتیانو کوچني کونکو لپاره یې صرف یو وار دعاء کړې ده. (۲) دویمه وجه دا ده چې د حلق یا قصر مقصد پاکي حاصلول دي، او دا مقصد په سرخریلو سره په بشپړه توګه حاصلیږي، نو په دې حواله سره هم حلق افضل دي، د دې په خلاف په وربښتیانو کوچني کولو کې د پاکۍ په اعتبار سره کمي او نقص سته (یعني په هغه کې کمه پاکي حاصلیږي). لهذا دا د اوداسه او غسل سره مشابه سو، یعني قصر د اوداسه په څیر دی، او حلق د غسل په څیر دی، نو څرنګه چې غسل تر اوداسه افضل دی، همدارنګه به حلق هم تر قصر افضله وي.

ویکتفی فی الحلق الخ فرمایي چې څرنګه په اوداسه کې د سر په مسح کولو کې د سر پر څلورمي حصې مسح کول کافي دي، همدارنګه په حلق کې هم د سر څلورمه حصه خریل کافي دي، خو څرنګه چې نبي ﷺ ټوله سر خریلی وو. نو د هغه په اقتداء کې به ټوله سر خریل افضله وي.

والتقصیر الخ فرمایي چې د وربښتیانو کوچني کول دا دي چې حاجي د خپل سر له وربښتیانو څخه د ګوتې د سره په اندازه وربښتیان واخلي (هغه که په هر شي سره وي).

## تر حلق وروسته د احرام مسائل

قَالَ: وَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ فرمایي: او (تر حلق او قصر وروسته) د حاجي لپاره هر شی حلال سو ماسوا له ښځو څخه وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: وَإِلَّا الطِّيْبَ أَيْضًا او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: او ماسوا له عطرو څخه هم لِأَنَّهُ مِنْ دَوَاعِي الْجِمَاعِ ځکه چې عطر د جماع له دواعیو څخه دي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● فِيْهِ: حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ او زموږ دلیل په دې باره کې د نبي ﷺ (دا) قول دی: "چې د حاجي لپاره هر شی حلال سو ما سوا له ښځو څخه" وَهُوَ مُقَدَّمٌ عَلَى الْقِيَاسِ او دا حدیث پر قیاس مخکې دی وَلَا يَحِلُّ لَهُ الْجِمَاعُ فِيْمَا دُوْنَ الْفَرْجِ عِنْدَنَا او زموږ په نېز د هغه لپاره له فرج څخه په علاوه کې جماع کول حلال نه دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف

---

● قد مر تخریجه تحت حدیث رقم: ۱۲۲.

● تخریج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب المناسک، باب فی رمی الجمار، حدیث رقم: ۱۹۷۸.

دی لِأَنَّهُ قَضَاءُ الشَّهْوَةِ بِالنِّسَاءِ ځکه چې دا (هم) له ښځو څخه شهوت پوره کول دي فَيُؤَخَّرُ إِلَى تَمَامِ الْإِحْلَالِ نو تر بشپړ حلالېدلو پورې به ځنډول کیږي.

**اللغات:** ﴿طِيْب﴾ عطر، خوشبويي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې تر حلق او قصر وروسته زموږ په نېز د حاجي لپاره له جماع څخه ماسوا هر شی حلالیږي، لېکن جماع او دواعي د جماع نه حلالیږي، تر هغه وخته چې په بشپړه توګه له احرام څخه نه ووځي، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې د جماع په ډول عطر لګول هم نه حلالیږي، ځکه چې عطر لګول د جماع له دواعیو څخه دي، لکه څرنګه چې د ښځې مسه کول او مچول د جماع له دواعیو څخه دي، زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی: حل له كل شيئ الا النساء (يعني له ښځو څخه ماسوا د حاجي لپاره (تر حلق وروسته) هر شی حلالیږي)، او دا حدیث د امام مالک رَحِمَهُ الله پر قياس مخکې دی (يعني د امام مالک قياس د دې حديث مقابله نه سي کولای).

ولا يحل له الخ فرمايي چې زموږ په نېز له فرج څخه په علاوه کې هم جماع حلاله نه ده، که څه هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز حلاله ده، زموږ دليل دا دی چې له فرج څخه په علاوه کې جماع کول هم د شهوت پوره کول دي، نو ځکه به دا هم تر کامل حِلت پورې يعني تر بعد الطواف پورې ځنډول کیږي.

### رمی (ويشتل) د حاجي د حلالېدلو سبب دي، که نه؟

ثُمَّ الرَّمْيُ لَيْسَ مِنْ أَسْبَابِ التَّحَلُّلِ بيا رمی (ويشتل د حاجي) د حلالېدلو له سببونو څخه نه دي عِنْدَنَا زموږ په نېز خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُوَ يَقُوْلُ: إِنَّهُ يَتَوَقَّتُ بِيَوْمِ النَّحْرِ كَالْحَلْقِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې رمی هم د سر خريلو په ډول د لوی اختر د ورځې سره خاص دي فَيَكُوْنُ بِمَنْزِلَتِهِ فِي التَّحْلِيْلِ نو رمی به (هم) په حلالولو کې د سر د خريلو په درجه کې وي وَلَنَا أَنَّ مَا يَكُوْنُ مُحَلِّلًا يَكُوْنُ جِنَايَةً فِي غَيْرِ أَوَانِهِ او زموږ دليل دا دی چې کوم شی حلالونکي وي هغه به تر وخت مخکې (يعني د احرام په حالت کې) جرم وي كَالْحَلْقِ وَالرَّمْيُ لَيْسَ بِجِنَايَةٍ لکه سر خريل او (شيطان) ويشتل چې (د احرام په حالت کې) جرم نه دي بِخِلَافِ الطَّوَافِ په خلاف د طواف لِأَنَّ التَّحَلُّلَ بِالْحَلْقِ السَّابِقِ لَا بِهِ ځکه چې (دلته) حلالېدل د مخکې سر خريلو په وجه دي نه د طواف په وجه.

**اللغات:** ﴿جناية﴾ جرم، ﴿أوان﴾ وخت، ځانګړی وخت.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د جمرهٔ عقبه په رمی سره حاجي نه حلالیږي، بلکې د حلالېدلو لپاره حلق يا قصر ضروري دي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د حلالېدلو لپاره حلق يا قصر ضروري نه دي، بلکه که حاجي جمرهٔ عقبه اوولي، نو هغه حلاليږي، د هغه دليل دا دی چې د جمرهٔ عقبه رمي د يومُ النحر (د لوی اختر د ورځې) سره خاص دي، او کوم شی چې د يومُ النحر سره خاص وي، هغه به محلل يعني له احرام څخه ايستونکي وي، لکه څرنګه چې حلق د يوم النحر سره خاص دی، او محلل دی، نو همداسې به رمی جمار هم محلل وي، زموږ دليل دا دی چې کوم شی محلل وي، هغه تر حلالېدلو مخکې جرم وي، لکه حلق چې د احرام په حالت کې جرم دی، او رمی جمار

جرم نه دی، نو که د احرام په حالت کې یو څوک رمی جمار وکړي، نو هیڅ جرم نه دی. لهذا د دې ضابطې په وجه به رمی جمار نه محلل کیږي.

بخلاف الطواف الخ له دې څایه د یو سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې تر دې ضابطې لاندې طواف هم د احرام په حالت کې جرم کېدل پکار دي، څکه چې په طواف زیارت سره هم د ښځو سره جماع حلالیږي. نو طواف زیارت محلل سو، او ستاسو په قول چې کوم شی محلل وي، هغه تر حلالېدلو مخکې جرم وي، لهذا طواف د احرام په حالت کې جرم کېدل پکار وو، حال دا چې داسې نه ده، د دې جواب دا دی چې طواف زیارت محلل نه دی، څکه چې طواف زیارت تر حلق وروسته کیږي، او حلق محلل دی، نو د طواف زیارت کونکی حاجي تر دې مخکې د حلق په وجه حلالیږي. او د هغه په حلالېدلو کې د طواف زیارت هیڅ دخل نسته.

## د طواف زیارت بیان

قَالَ: ثُمَّ يَأْتِي مَكَّةَ مِنْ يَوْمِهِ ذٰلِكَ فرمایي: بیا به حاجي مکې (مبارکي) ته راسي په دغه ورځ أَوْ مِنَ الْغَدِ أَوْ مِنْ بَعْدِ الْغَدِ یا په سبا ورځ یا په بل سبا ورځ فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ طَوَافَ الزِّيَارَةِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو پر کعبې (شریفې) به طواف وکړي اووه دوره (شوطه) لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[●] لَمَّا حَلَقَ څکه روایت سوی دی چې کله نبي ﷺ سر وخروی أَفَاضَ إِلَى مَكَّةَ (نو) مکې ته روان سو فَطَافَ بِالْبَيْتِ او پر کعبه یې طواف وکړی ثُمَّ عَادَ إِلَى مِنًى بیا منیٰ ته واپس راغلی وَصَلَّى الظُّهْرَ بِمِنًى او د ماپښین لمونځ یې په منیٰ کې وکړی.

**اللغات:** ﴿غد﴾ سبا، را روانه ورځ.

**تشريح:** فرمایي چې د لوی اختر د ورځې تر افعالو یعني تر رمی، قربانۍ او حلق وروسته دې حاجي په دغه ورځ یعني د لوی اختر په اوله ورځ یا د لوی اختر په دویمه یا په دریمه مکې مبارکې ته راسي او طواف زیارت دې وکړي، څکه نبي ﷺ مکې ته د طواف زیارت لپاره د لوی اختر په ورځ راغلی. تر هغه وروسته واپس منیٰ ته ولاړی، او هلته یې د ماپښین لمونځ وکړی، ښکاره دې وي چې طواف زیارت د حج رکن دی، او د هغه اداء کول ضروري دي، نو که یو چا پرېښووی، د هغه حج نه پوره کیږي.

## د طواف زیارت د وخت بیان

وَوَقْتُهُ أَيَّامُ النَّحْرِ او د طواف زیارت وخت د قربانۍ ورځې دي لِأَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى عَطَفَ الطَّوَافَ عَلَى الذَّبْحِ څکه الله تعالیٰ پر قربانۍ طواف عطف کړی دی قَالَ: فَكُلُوا مِنْهَا [الحج: ٢٨] فرمایلي یې دي: فكلوا منها ثُمَّ قَالَ: وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ [الحج: ٢٩] بیا یې فرمایلي دي: وليطوفوا...الخ فَكَانَ وَقْتُهُمَا وَاحِدًا نو د دواړو وخت به یو وي وَأَوَّلُ وَقْتِهِ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ او د طواف زیارت اول وخت د یومُ النحر په ورځ تر سهار راختلو (یعني تر صبح صادق) وروسته دی لِأَنَّ مَا قَبْلَهُ مِنَ اللَّيْلِ وَقْتُ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ څکه تر سهار مخکې خو د شپې وخت په عرفات کې د درېدلو

---

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب إستحباب طواف الإفاضة يوم النحر، حديث رقم: ٣٣٥.

وخت دی وَالطَّوَافُ مُرَتَّبٌ عَلَيْهِ او طواف پر هغه مرتب دی وَأَفْضَلُ هٰذِهِ الْأَيَّامِ أَوَّلُهَا او په دې ورځو کې اوله ورځ افضله ده كَمَا فِي التَّضْحِيَةِ لکه په قرباني کولو کې چې (اوله ورځ افضله ده) وَفِي الْحَدِيْثِ: أَفْضَلُهَا أَوَّلُهَا او په حديث کې (هم راغلي) دي، "چې په دې ورځو کې اوله ورځ افضله ده".

**اللغات:** ﴿تضحية﴾ د تفعيل مصدر دی، قرباني کول.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې د طواف زيارت وخت د قرباني ورځې دي، يعني د لوی اختر اوله، دويمه او دريمه ورځ، ځکه د الله تعالیٰ په دې قول فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ کې طواف پر قرباني عطف سوی دی، او د معطوف او معطوف عليه دواړو وخت يو وي، لهذا د قرباني او د طواف زيارت دواړو وخت به هم يو وي، هو! دا خبره سته چې قرباني تر دريو ورځو وروسته جائز نه ده، خو طواف تر دريو ورځو وروسته هم مع الكراهت صحيح دی.

و أول الخ او د طواف اول وخت د لوی اختر په ورځ تر سهار راختلو وروسته شروع کيږي، ځکه چې تر سهار راختلو مخکې وخت يعني د شپې وخت د وقوف عرفه وخت دی، او طواف به پر وقوف مرتب وي، يعني تر وقوف عرفه وروسته به طواف کيږي، او د وقوف وخت د لوی اختر د ورځې تر طلوع فجر پوري دی، نو په دې وجه به تر طلوع فجر وروسته د طواف وخت شروع کيږي، خو په دې ورځو کې اوله ورځ د طواف زيارت لپاره افضله ده، لکه څرنګه چې په دې ورځو کې اوله ورځ د قرباني لپاره هم افضله ده، او په حديث کې هم دغه ذکر سوي دي چې افضل په دې ورځو کې اوله ورځ ده.

## په طواف زيارت کې د سعي او د رمل بيان

فَإِنْ كَانَ سَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَقِيْبَ طَوَافِ الْقُدُوْمِ او که حاجي تر طواف قدوم وروسته د صفا او مروه په مينځ کې سعی کړې وي لَمْ يَرْمُلْ فِيْ هٰذَا الطَّوَافِ نو په دغه طواف زيارت کې به رمل نه کوي وَلَا سَعْيَ عَلَيْهِ او پر هغه سعی (هم) نسته وَإِنْ كَانَ لَمْ يُقَدِّمِ السَّعْيَ او که هغه مخکې سعی کړې نه وي رَمَلَ فِيْ هٰذَا الطَّوَافِ نو په دې طواف کې دې رمل وکړي وَسَعٰى بَعْدَهُ او تر هغه وروسته دې سعی وکړي لِأَنَّ السَّعْيَ لَمْ يُشْرَعْ إِلَّا مَرَّةً ځکه سعی مشروع سوې نه ده خو (فقط) يو وار وَالرَّمَلُ مَا شُرِعَ إِلَّا مَرَّةً فِيْ طَوَافٍ بَعْدَهُ سَعْيٌ او رمل مشروع سوی نه دی خو (فقط) يو وار په داسې طواف کې چې تر هغه وروسته سعی وي.

**اللغات:** ﴿عقيب﴾ وروسته.

**تشريح:** مسئله: دا ده که حاجي تر طواف قدوم وروسته سعی بين الصفا والمروه کړې وي، نو په طواف زيارت کې به رمل نه کوي، او سعی هم پر واجب نه ده، او که مخکې يې سعی بين الصفا والمروه کړې نه وي، نو په دې طواف کې به رمل کوي، او تر هغه وروسته به سعی هم کوي، ځکه چې سعی هم فقط يو وار مشروع سوې ده، او رمل هم تر داسې طواف وروسته يو وار مشروع سوی دی چې تر هغه وروسته به سعی وي.

## تر طوافِ زيارت وروسته د دوو رکعتو بيان

وَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ هٰذَا الطَّوَافِ او حاجي به تر دغه طواف وروسته دوه رکعته لمونځ وکړي لِأَنَّ خَتْمَ كُلِّ طَوَافٍ بِرَكْعَتَيْنِ ځکه چې د هر طواف ختمول به پر دوو رکعتو وي فَرْضًا كَانَ الطَّوَافُ أَوْ نَفْلًا هغه که طواف فرض وي که نفل لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی قَالَ: وَقَدْ حَلَّ لَهُ النِّسَاءُ فرمايي: چې (تر طوافِ زيارت وروسته) د حاجي لپاره ښځې حلالې سوې وَلٰكِنْ بِالْحَلْقِ السَّابِقِ لېکن د مخکې سر خريلو په وجه إِذْ هُوَ الْمُحَلِّلُ ځکه چې هغه حلالونکي دي لَا بِالطَّوَافِ نه په طواف سره إِلَّا أَنَّهُ أَخَّرَ عَمَلَهُ فِيْ حَقِّ النِّسَاءِ خو دا چې د هغه عمل د ښځو په حق کي (تر طوافه پورې) ځنډول سوی دی (يعني تر طوافِ زيارت مخکې خوشبو، ښکار او داسې نور ټول شيان حلالېږي، لېکن جماع به تر طوافه پورې ځنډول کيږي او تر طواف وروسته به حلاله وي).

**اللغات:** ﴿محلل﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: حلالونکی.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## د طوافِ زيارت شرعي حيثيت

قَالَ: وَهٰذَا الطَّوَافُ هُوَ الْمَفْرُوْضُ فِي الْحَجِّ فرمايي: چې دا طواف په حج کي فرض دی وَهُوَ رُكْنٌ فِيْهِ او دا (له دريو ارکانو څخه) په حج کي يو رکن دی إِذْ هُوَ الْمَأْمُوْرُ بِهِ فِيْ قَوْلِهِ تَعَالٰى: وَلْيَطَّوَّفُوْا بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ [الحج، ۲۹] ځکه همدا دې حکم سوی دی د الله تعالیٰ په (دې) قول کي: وليطوفوا بالبيت ... وَيُسَمّٰى طَوَافُ الْإِفَاضَةِ وَطَوَافُ يَوْمِ النَّحْرِ او دې طواف ته طواف افاضه او طواف يوم النحر (هم) ويل کيږي وَيُكْرَهُ تَأْخِيْرُهُ عَنْ هٰذِهِ الْأَيَّامِ او تر دې ورځو دا طواف وروسته کول مکروه دي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ مُوَقَّتٌ بِهَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی چې دا طواف د همدې ورځو سره خاص دی وَإِنْ أَخَّرَهُ عَنْهَا او که (بيا هم) حاجي دا طواف تر دې ورځو وروسته کړی لَزِمَهُ دَمٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه يو دم لازم سو وَسَنُبَيِّنُهُ فِيْ بَابِ الْجِنَايَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او موږ به دا په باب الجنايات کي بيان کړو، انشاء الله تعالیٰ.

**اللغات:** ﴿العتيق﴾ پخواني، محترم.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې په حج کي طوافِ زيارت رکن او فرض دی، او د هغه اداء کول ضروري دی، ځکه د الله تعالیٰ په دې قول وليطوفوا بالبيت العتيق کي د طوافِ زيارت امر سوی دی، د دې دويم نوم طواف افاضه او دريم نوم يې طواف يوم نحر دی، امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې طواف زيارت له ايامِ نحر څخه ځنډول مکروه تحريمي دي، دليل د طواف قدوم په ضمن کي تېر سو چې طواف زيارت د ايام نحر سره خاص دی، خو که بيا هم هغه له دې ورځو څخه طواف زيارت وځنډوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه دم لازميږي، چې د هغه تفصيل به انشاء الله په کتابُ الجنايات کي راسي.

## تر طواف زیارت وروسته د رمي بیان

قَالَ: ثُمَّ يَعُوْدُ إِلٰى مِنًى فرمایي: بیا به منیٰ ته واپس راسي فَيُقِيْمُ بِهَا او هلته به قیام وکړي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] رَجَعَ إِلَيْهَا ځکه چي نبي ﷺ (هم) منیٰ ته واپس تللی وو كَمَا رَوَيْنَا لکه شرنګه چي موږ روایت بیان کړی وَلِأَنَّهُ بَقِيَ عَلَيْهِ الرَّمْيُ او په دې وجه (هم) چي پر هغه (تر اوسه) رمي جمار پاته دي وَمَوْضِعُهُ بِمِنًى او د هغه ځای منیٰ ده (نو ځکه به په منیٰ کي قیام کوي) فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِي مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ بیا چي کله لمر زائل سي د قرباني له ورځو څخه په دویمه ورځ (یعني د لوی اختر په دویمه ورځ چي کله لمر تر سر واوړي) رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ نو دری سره جمرات به اوولي فَيَبْدَأُ بِالَّتِي تَلِي مَسْجِدَ الْخَيْفِ او په هغه جمرې سره به شروع وکړي چي د مسجد خیف سره نژدې ده (یعني په اولي جمرې سره) فَيَرْمِيْهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ نو هغه به په اوو (۷) کانو سره اوولي يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ (او) د هر کاني سره به تکبیر وایي وَيَقِفُ عِنْدَهَا او د دې (اولي) جمرې سره به ودریږي ثُمَّ يَرْمِي الَّتِي تَلِيْهَا مِثْلَ ذٰلِكَ بیا به هغه جمره چي د اولي جمرې سره نژدې ده (یعني دویمه جمره) همدغه ډول اوولي وَيَقِفُ عِنْدَهَا او د دې (دویمي) جمرې سره به ودریږي ثُمَّ يَرْمِي جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ كَذٰلِكَ بیا به همدغه ډول جمرهٔ عقبه اوولي وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا او د جمرهٔ عقبه سره به نه دریږي هٰكَذَا رَوٰى جَابِرٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِيْمَا نَقَلَ[2] مِنْ نُسُكِ رَسُوْلِ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مُفَسَّرًا همداسي حضرت جابر رضی الله عنه په تفصیلي توګه سره په هغه حدیث کي روایت کړي دي چي هغه حضرت جابر رضی الله عنه د نبي ﷺ د نسک په باره کي را نقل کړی دی وَيَقِفُ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ فِي الْمَقَامِ الَّذِيْ يَقِفُ فِيْهِ النَّاسُ او د دواړو جمرو سره به په هغه ځای کي ودریږي چي په هغه کي خلک دریږي وَيَحْمَدُ اللّٰهَ وَيُثْنِيْ او د الله حمد او ثناء به ووایي وَيُهَلِّلُ وَيُكَبِّرُ او لا إله إلا الله او الله أكبر به ووایي وَيُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او پر نبي ﷺ به درود ووایي وَيَدْعُوْ لِحَاجَتِهِ او د خپل حاجت لپاره به دعاء وکړي.

**اللغات:** ﴿تلي﴾ د ضرب مضارع ده: نژدې کېدل، متصل کېدل. ﴿حصيات﴾ جمع د حصاة ده: کاڼي، کوچنۍ ډبري. ﴿يثني﴾ د افعال مضارع ده: تعریف بیانول، ثناء ویل. ﴿يهلّل﴾ د تفعیل مضارع ده: کلمه طیّبه ویل.

**تشریح:** فرمایي چي کله حاجي له طوافِ زیارت څخه فارغه سي، نو سیده دي منیٰ ته روان سي، او هلته دي قیام وکړي، ځکه مخکي حدیث تېر سو چي نبي ﷺ تر طوافِ زیارت وروسته منیٰ ته ولاړی او په منیٰ کي یې د ماپښین لمونځ وکړی، دویم دلیل دا دی چي پر حاجي تر اوسه لا رمي جمار پاته دي، او د رمي جمار ځای منیٰ ده، نو په دې وجه به هم منیٰ ته واپس تلل او هلته پاته کېدل ضروري وي، بیا چي د ذو الحجې په یوولسمه ورځ لمر تر سر واوړي، نو دري

---

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب إستحباب طواف الإفاضة يوم النحر، حديث رقم: ٣٣٥.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب رمي الجمار، حديث رقم: ١٩٧٣.

سره جمرات دي اوولي، شروع به له هغه جمرې څخه کوي. چې د مسجد خيف سره نژدې ده. دا جمره به اووه کاڼي اوولي، او د هر کاڼي سره به الله أکبر وايي، او د دې جمرې سره به ودرېږي. بيا به همداسي د هغه جمرې رمی وکړي چې د دې جمرې سره نژدې ده يعني دويمه جمره، او د دې دويمي جمرې سره به هم ودرېږي. بيا به همداسي د جمرهٔ عقبه رمی وکړي. خو د جمرهٔ عقبه سره به نه درېږي، د حضرت جابر رضي الله عنه په حديث کي همدغه ډول ذکر سوي دي.

ويقف عند الخ او د اولي او دويمي جمرې سره به هلته ودرېږي چيري چې خلک درېږي، هلته به د الله حمد او ثناء ووايي. تکبير او تهليل به ووايي، درود او دعاء به وکړي. لېکن د جمرهٔ عقبه سره به نه درېږي او نه به هلته دعاء کوي. چې ګڼه ګوڼه جوړه نه سي.

## تر رمی وروسته د دعاء بيان

وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ او خپل دواړه لاسونه به (تر اوږو پوري) پورته کړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِيْ إِلَّا فِيْ سَبْعِ مَوَاطِنَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: لاسونه به نه پورته کېږي خو په اوو (۷) ځايونو کي وَذَكَرَ مِنْ جُمْلَتِهَا عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ او د هغو له مجموعې څخه يې د جمرتين سره (هم د لاسو پورته کول) ذکر کړل وَالْمُرَادُ رَفْعُ الْأَيْدِيْ بِالدُّعَاءِ او مراد په دعاء سره د لاسونو پورته کول دي وَيَنْبَغِيْ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ فِيْ دُعَائِهِ فِيْ هٰذِهِ الْمَوَاقِفِ او پکار ده چې په دې ځايونو کي په خپله دعاء کي د مؤمنانو لپاره طلب د بخښني وکړي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ[2]: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْحَاجِّ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: اې الله! حاجي ته بخښنه وکړه وَلِمَنِ اسْتَغْفَرَ لَهُ الْحَاجُّ او هغه چا ته (بخښنه وکړه) چې د هغه لپاره حاجي بخښنه طلب کړي ثُمَّ الْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ رَمْيٍ بَعْدَهُ رَمْيٌ بيا قاعده دا ده چې هره هغه رمی چې تر هغه وروسته (بله) رمی وي يَقِفُ بَعْدَهُ تر هغه وروسته به درېږي لِأَنَّهُ فِيْ وَسَطِ الْعِبَادَةِ ځکه چې دا (وقوف) د عبادت په مينځ کي دی فَيَأْتِيْ بِالدُّعَاءِ فِيْهِ نو په دې (وقوف) کي به دعاء کوي وَكُلُّ رَمْيٍ لَيْسَ بَعْدَهُ رَمْيٌ او هره هغه رمی چې تر هغه وروسته رمی نه وي لَا يَقِفُ (هلته به) نه درېږي لِأَنَّ الْعِبَادَةَ قَدِ انْتَهَتْ ځکه چې عبادت ختم سو وَلِهٰذَا لَا يَقِفُ بَعْدَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِيْ يَوْمِ النَّحْرِ أَيْضًا همدا وجه ده چې د لوی اختر په ورځ به تر جمرهٔ عقبه وروسته نه درېږي.

**اللغات:** ﴿أيدی﴾ جمع د يد ده: لاس. ﴿مواطن﴾ جمع د موطن ده: ځايونه.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې کله حاجي د جمره اولیٰ او وسطیٰ د رمي کولو په وخت کي دعاء کوي. نو خپل دواړه لاسونه به پورته کوي، لکه په مشهوره حديث کي چې را نقل سوي دي. صاحب د هدايې فرمايي چې په دې ځايونو کي به د دعاء کولو پر وخت د ټولو مسلمانانو لپاره بخښنه غواړي. ځکه نبي ﷺ فرمايي دي: "الهي! حاجي ته هم بخښنه وکړې. او حاجي چې د چا لپاره بخښنه غواړي. هغه ته هم بخښنه وکړې.: له دې حديث څخه معلومه سوه چې حاجي به د نورو لپاره هم د بخښني دعاء کوي.

---

[1] تخريج: قد مرّ تخريج في باب صفة الصلاة ج:١.

[2] تخريج: أخرجه الحاكم في المستدرک، باب المناسک، حديث رقم: ١٦١٢، ج:١.

والأصل الخ صاحب د هدايې يوه قاعده بيان كړې ده چې تر كومې رمې وروسته بله رمي وي، تر هغه رمي وروسته به حاجي دريږي او وقوف به كوي، ځكه چې حاجي اوس هم د عبادت په مينځ كې دی، نو په وقوف كې به دعاء هم كوي، او تر كومې رمې چې وروسته بله رمي نه وي، تر هغه وروسته به وقوف او دعاء نه كوي، ځكه چې اوس عبادت ختم سو. همدا وجه ده چې په يومُ النحر كې به تر جمرهٔ عقبه وروسته وقوف نه كيږي، او تر اولې او دويمې جمرې وروسته به وقوف او دعاء كيږي ځكه چې تر هغو وروسته نورې جمرې سته.

## د ذی الحجې په دولسمه ورځ د رمې بيان

قَالَ: وَإِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ فرمايي: او چې كله سبا سي (يعني د ذی الحجې دولسمه ورځ سي) رَمَى الْجِمَارَ الثَّلاثَ بَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ كَذَلِكَ نو درې سره جمرات دې همدغه ډول (يعني د مخكې مطابق) تر زوال وروسته اوولي وَإِنْ أَرَادَ أَنْ يَتَعَجَّلَ النَّفْرَ نَفَرَ إِلَى مَكَّةَ او كه د ژر روانېدلو اراده يې وه نو د مكې و طرف ته دې روان سي وَإِنْ أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ او كه د پاتېدلو اراده يې وه رَمَى الْجِمَارَ الثَّلاثَ فِي الْيَوْمِ الرَّابِعِ بَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ نو څلورمه ورځ دې (هم) تر زوال وروسته درې سره جمرات اوولي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلا إِثْمَ عَلَيْهِ ځكه الله تعالىٰ فرمايلي دي: "څوک چې په دوو ورځو كې تلوار (ژر والى) وكړي نو پر هغه څه گناه نسته وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلا إِثْمَ عَلَيْهِ او څوک چې تأخير (ځنډوالى) وكړي نو پر هغه (هم) څه گناه نسته لِمَنِ اتَّقَى [البقرة: ۲۰۳] د هغه چا لپاره چې تقوىٰ اختيار كړي" وَالأَفْضَلُ أَنْ يُقِيمَ او افضل دا ده چې حاجي قيام وكړي (يعني په څلورمه ورځ هم په منىٰ كې پاته سي) لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلاةُ وَالسَّلامُ● صَبَرَ حَتَّى رَمَى الْجِمَارَ الثَّلاثَ فِي الْيَوْمِ الرَّابِعِ ځكه روايت سوى دى چې نبي ﷺ پاته سو تر دې چې په څلورمه ورځ يې (هم) درې سره جمرات وويشتل.

**اللغات:** ﴿نفر﴾ كوچ كول، كډه كول، روانېدل. ﴿تعجل﴾ د تفعّل ماضي ده: تلوار كول، يو كار ژر كول. ﴿إثم﴾ گناه. ﴿اتقى﴾ د افتعال ماضي ده: پرهېزگاري او تقوىٰ اختيارول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د ذو الحجې په ۱۱ ورځ دې حاجي په منىٰ كې پاته سي، او په ۱۲ ورځ چې كله لمر تر سر واوړي، نو د مخكې په څېر دې درې سره جمرات اوولي. بيا كه د هغه تلوار وي، نو تر رمي وروسته دې په ۱۲ ورځ مكې مكرمې ته روان سي، او كه د پاته كېدلو اراده يې وي، نو را روانه ورځ يعني په ۱۳ ورځ دې هم تر زوال وروسته درې سره جمرات اوولي، او بيا دې مكې ته ولاړ سي، همدا وجه ده چې دولسمې ورځې ته يوم النفر الأول او ديارلسمې ورځې ته يوم النفر الثاني ويل كيږي. دليل د الله تعالىٰ دا قول دى: فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلا إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلا إِثْمَ عَلَيْهِ ...الآية، (يعني څوک چې په دولسمه ورځ ژر روان سي پر هغه هيڅ گناه نسته. او څوک چې تر ديارلسمې ورځې پورې [يعني د أيامُ النحر تر څلورمې ورځې پورې] ايسار سي پر هغه هم هيڅ گناه نسته)، خو افضل دا ده چې تر ديارلسمې

---

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الحج، باب من غربت له الشمس يوم النفر الأول، حديث رقم: ۹۶۸۷.

ورځې پورې په منیٰ کې پاته سي، ځکه نبي ﷺ هم په منیٰ کې تر هغه وخته پاته سو. تر څو چې يې دايامُ النحر په څلورمه ورځ يعني د ذوالحجې په ديارلسمه ورځ يې درې سره جمرات ووېشتل.

## د ذي الحجې په ديارلسمه ورځ تر سهار مخکې د کوچ کولو بيان

وَلَهُ أَنْ يَنْفِرَ او حاجي ته د روانېدلو (کوچ کولو) اختيار سته مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ مِنَ الْيَوْمِ الرَّابِعِ تر څو چې د څلورمې ورځې سهار راختلی نه وي (يعني د څلورمې ورځې تر صبح صادق مخکې) فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَنْفِرَ خو کله چې سهار را وخيږي نو (بيا) د هغه لپاره د روانېدلو اختيار نسته لِدُخُولِ وَقْتِ الرَّمْيِ ځکه چې د رمي وخت داخل سو وَفِيْهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو حاجي د ذوالحجې په دولسمه ورځ مکې ته روان نه سو، او په منیٰ کې پاته سو، نو تر څو چې د ديارلسمې ورځ سهار سوی نه وي، تر هغه وخته د هغه لپاره له منیٰ څخه د روانېدلو اختيار سته، لېکن که د ديارلسمې ورځې سهار سو، نو د هغه لپاره د روانېدلو اختيار نسته، تر څو چې رمي نه وکړي، ځکه چې د رمي وخت شروع سو، لېکن په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، هغه فرمايي چې په دولسمه ورځ تر لمر لوېدلو وروسته د روانېدلو او کوچ کولو اختيار ختميږي.

## د ذي الحجې په ديارلسمه ورځ تر زوال مخکې د رمي بيان

وَإِنْ قَدَّمَ الرَّمْيَ فِي هٰذَا الْيَوْمِ او که حاجي په دې ورځ مخکې رمي وکړي يَعْنِي الْيَوْمَ الرَّابِعَ قَبْلَ الزَّوَالِ بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ يعني په څلورمه ورځ تر زوال مخکې (او) تر صبح صادق وروسته رمي وکړي جَازَ عِنْدَ[•] أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو جائز دي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَقَالَا: لَا يَجُوْزُ اِعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْأَيَّامِ او صاحبين فرمايي: جائز نه دي پر نورو ورځو په قياسولو سره وَإِنَّمَا التَّفَاوُتُ فِي رُخْصَةِ النَّفْرِ او فرق صرف د روانېدلو (کوچ کولو) په رخصت (او اجازه) کې دی فَإِذَا لَمْ يَتَرَخَّصْ نو کله چې حاجي د رانېدلو رخصت اختيار نه کړی اِلْتَحَقَ بِهَا نو څلورمه ورځ به (هم) په نورو ورځو پورې ملحقه کېږي وَمَذْهَبُهُ مَرْوِيٌّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت سوی دی وَلِأَنَّهُ لَمَّا ظَهَرَ أَثَرُ التَّخْفِيْفِ فِي هٰذَا الْيَوْمِ فِي حَقِّ التَّرْكِ او په دې وجه چې کله په دې ورځ کې د رمي د پرېښوولو په حق کې د تخفيف اثر ښکاره سو فَلَأَنْ يَظْهَرَ فِي جَوَازِهِ فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا أَوْلَى نو په درجه اولیٰ سره به په ټولو وختونو کې د رمي په جواز کې د تخفيف اثر ښکاره کېږي بِخِلَافِ الْيَوْمِ الْأَوَّلِ وَالثَّانِي په خلاف د اولې او دويمې ورځې حَيْثُ لَا يَجُوْزُ الرَّمْيُ فِيْهِمَا إِلَّا بَعْدَ الزَّوَالِ فِي الْمَشْهُوْرِ مِنَ الرِّوَايَةِ ځکه چې په دې دوو ورځو کې رمي جائز نه دي مګر تر زوال وروسته د مشهور روايت مطابق لِأَنَّهُ لَا يَجُوْزُ تَرْكُهُ فِيْهِمَا ځکه

• القول الراجح: هو هذا قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:٢، ص: ٢٠٠. [القول الراجح ج:١، ص: ٢١٣]

چي په دې دوو ورځو کي رمي پرېښوول جائز نه دي فَبَقِيَ عَلَى الْأَصْلِ الْمَرْوِيِّ نو پر هغه اصل به باقي پاته وي کوم چي روايت سوی دی.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو حاجي د ذو الحجې په ديارلسمه ورځ تر صبح صادق وروسته او تر زوال مخکي رمي وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه رمي جائز دي، او همدا استحسان دی، او صاحبين فرمايي چي جائز نه دي (بلکې تر زوال وروسته به يې کوي)، همدا مسلک د امام شافعي رَحِمَهُ الله دی. صاحبينو د رمي په لړ کي ديارلسمه ورځ پر نورو ورځو قياس کړې ده، يعني څرنګه چي د ذو الحجې په يوولسمه او دوولسمه ورځ تر زوال مخکي رمي کول جائز نه دي، همداسي به په ديارلسمه ورځ هم جائز نه وي. خو فقط دومره فرق سته چي په ديارلسمه ورځ بې له رمي روانېدل جائز دي، او نوري ورځي بې له رمي روانېدل جائز نه دي، لهذا کله چي هغه ته په ديارلسمه ورځ بې له رمي د کوچ کولو او روانېدلو رخصت وو، لېکن هغه له دې رخصت څخه فايده نه واخيستله، نو ديارلسمه ورځ به هم د نورو ورځو سره لاحقيږي. او کوم حکم چي د نورو ورځو وي، چي تر زوال مخکي به رمي جائز نه وي، همدا حکم به د ديارلسمي ورځي هم وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي له ابن عباس څخه هم دا روايت سوي دي چي د ذو الحجې په ديارلسمه ورځ تر زوال مخکي رمي کول جائز دي. دويم دليل دا دی چي کله په دې تاريخ رمي پرېښوول او بې له رمي مکې ته روانېدل جائز دي، نو رمي کول به په درجه اولی جائز وي (هغه که په هر وخت کي يعني د ورځي په هره حصه کي وي)، ځکه چي د رمي نه پرېښوول تر پرېښوولو ډېر غوره دي. د دې په خلاف په ۱۱/ او ۱۲/ ذی الحجه کي رمي پرېښوول جائز نه دي، نو ځکه به په دې ورځو کي تر زوال مخکي رمي کول جائز نه وي. او پر دې ورځو به ۱۳ ورځ قياسول صحيح نه وي.

## د لوی اختر (يومُ النحر) په ورځ د رمی د شروع کولو وخت

فَأَمَّا يَوْمُ النَّحْرِ فَأَوَّلُ وَقْتِ الرَّمْيِ مِنْ وَقْتِ طُلُوعِ الْفَجْرِ پاته سو يومُ النحر نو په دې ورځ د رمی اول وخت له سهار راختلو (صبح صادق) څخه (شروع کيږي) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: أَوَّلُهُ بَعْدَ نِصْفِ اللَّيْلِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د دې اول وخت تر نيمی شپې وروسته (شروع کيږي) لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ[1] صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لِلرُّعَاءِ أَنْ يَرْمُوا لَيْلًا ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ شپنيانو (شپانو) ته اجازه ورکړه چي د شپې رمی وکړي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[2]: لَا تَرْمُوا جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ إِلَّا مُصْبِحِينَ او زموږ دليل دا دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي: "تاسو جمرهٔ عقبه مه اولئ خو دا چي په سهار کي داخل سئ (يعني د سهار په وخت کي يې اولئ)" وَيُرْوَى: حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ او (بل) روايت سوی دی: "(چي جمرهٔ عقبه مه اولئ) تر دې چي لمر راوخيږي" فَيَثْبُتُ أَصْلُ الْوَقْتِ بِالْأَوَّلِ نو اصل وخت په اول حديث سره ثابتيږي وَالْأَفْضَلِيَّةُ بِالثَّانِي او افضليت په دويم حديث سره ثابتيږي وَتَأْوِيلُ مَا

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في السنن في كتاب الحج، باب المواقيت، حديث رقم: ٢٦٥٩.

[2] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء في تقديم الضعفة من جمع بليل، حديث رقم: ٨٩٣.

رَوٰى اللَّيْلَةُ الثَّانِيَةُ وَالثَّالِثَةُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث تأويل دا دی چي له دې څخه دويمه او دريمه شپه مراد ده وَلِأَنَّ لَيْلَةَ النَّحْرِ وَقْتُ الْوُقُوْفِ او ځکه چي د يومُ النحر شپه (په عرفات کي) د وقوف وخت دی وَالرَّمْيُ يَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ او رمی پر دغه وقوف مرتب کيږي فَيَكُوْنُ وَقْتُهُ بَعْدَهُ ضَرُوْرَةً نو ځکه به د رمی وخت خامخا تر وقوف وروسته وي ثُمَّ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ يَمْتَدُّ هٰذَا الْوَقْتُ إِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا وخت تر لمر لوېدلو پوري اوږديږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: إِنَّ أَوَّلَ نُسُكِنَا فِيْ هٰذَا الْيَوْمِ الرَّمْيُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي په دې ورځ زموږ اول عبادت رمي دی جَعَلَ الْيَوْمَ وَقْتًا لَهُ (نو) نبي ﷺ ورځ د رمي وخت وګرځوله وَذِهَابُهُ بِغُرُوْبِ الشَّمْسِ او ورځ ختميږي په لمر لوېدلو سره وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَمْتَدُّ إِلٰى وَقْتِ الزَّوَالِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي دا وخت تر زوال پوري اوږديږي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا او د هغه په خلاف زموږ روايت کړی سوی حديث حجت دی.

**اللغات:** ﴿يوم النحر﴾ د قرباني ورځ. يعني د ذو الحجې لسمه او د لوی اختر ورځ. ﴿رعاء﴾ جمع د راعي ده: شپانه. ﴿مصبحين﴾ د افعال جمع اسم فاعل دی: د سهار په وخت کي داخلېدونکي خلک.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نيز په يومُ النحر يعني د ذو الحجې په لسمه ورځ تر صبح صادق وروسته د جمرۀ عقبه د رمي وخت شروع کيږي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د شپې تر نيمي حصې وروسته د رمي وخت شروع کيږي(که څه هم د هغه په نيز تر لمر راختلو وروسته رمی مستحب ده. لېکن وخت يې شروع کيږي تر نيمی شپې وروسته).

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي نبي ﷺ شپنيانو ته د شپې د رمي کولو اجازه ورکړه (او د نيمي شپې په باره کي په بل حديث سره دليل نيسي).

**زموږ دليل:** هغه حديث دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو. په هغه کي نبي ﷺ تر صبح صادق مخکي له رمي کولو څخه منع کړې ده، په بل روايت کي راغلي دي چي "تر لمر راختلو وروسته رمی وکړئ". له دې دواړو روايتونو څخه دا خبره ښکاره کيږي چي په يومُ النحر کي د رمي وخت شپه نه ده، بلکي د رمي وخت تر صبح صادق وروسته شروع کيږي. نو د احنافو د مسلک په تائيد کي دوه روايتونه ذکر سول. په اول روايت کي تر صبح صادق وروسته د رمي وخت ښوول سوی دی، په دويم روايت کي تر لمر راختلو وروسته د رمي وخت ښوول سوی دی، نو صاحب د هدايې په دواړو روايتونو کي تطبيق کوي چي له اول روايت څخه د جمرۀ عقبه اصل وخت مراد دی. او له دويم حديث يعني له حتی تطلع الشمس څخه مراد افضل وخت دی.

**جواب:** د امام شافعي د دليل جواب دا دی چي له دې حديث څخه مراد د يوولسم او دوولسم شپه ده.

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب المناسك، باب الحلق والتقصير، حديث رقم: ۱۹۱۸.

ولأن ليلة الخ په دې باره کي زموږ دويم دليل دا دی چي د جمرهٔ عقبه رمی پر وقوف عرفه مرتب دي، او کوم شی چي پر بل شي مرتب وي، هغه به تر د دې بل شي وروسته ثابتيږي، او څرنګه چي د يومُ النحر شپه د وقوف عرفه وخت دی. نو ځکه به په دې شپه کي رمی کول جائز نه وي، او تر دغه شپې وروسته به يعني د يومُ النحر له صبح صادق څخه به د رمي وخت شروع کيږي.

ثم عند أبي حنيفة رَحِمَهُ اللهُ الخ فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په يومُ النحر کي د جمرهٔ عقبه د رمی وخت تر لمر لوېدلو پوري دی، ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چي په دې ورځ يعني په يومُ النحر کي زموږ اول عمل رمي کول دي. په دې حديث کي نبي ﷺ د رمي وخت ورځ ګرځولې ده، او د ورځي اطلاق تر لمر لوېدلو پوري کيږي، نو ځکه به د رمي وخت تر لمر لوېدلو پوري وي، لېکن په يومُ النحر کي د رمي د وخت په باره کي تفصيل دا دی چي د يومُ النحر تر صبح صادق وروسته تر تر لمر راختلو پوري مع الکراهت د جواز وخت دی، او له لمر راختلو څخه تر زوال پوري سنت وخت دی. او تر زوال وروسته تر لمر لوېدلو پوري بلا کراهت د جواز وخت دی، او تر غروب وروسته د شپې تر آخره پوري مع الکراهت د جواز وخت دی، له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په يومُ النحر کي د رمی وخت تر زواله پوري دی، ځکه چي نبي ﷺ تر زوال مخکي رمي کړي دي، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلاف هغه حديث حجت دی کوم چي موږ مخکي روايت کړی.

## د لوی اختر (يومُ النحر) په ورځ د رمي نه کونکي حکم

> وَإِنْ أَخَّرَ إِلَى اللَّيْلِ او که حاجي رمي تر شپې پوري وځنلوي رَمَاهُ نو د شپې دي رمي وکړي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ او پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لِحَدِيثِ الرِّعَاءِ د شپنيانو د حديث په وجه (کوم چي په تېر عبارت کي ذکر سو) وَإِنْ أَخَّرَ إِلَى الْغَدِ او که رمي تر سبا (يعني تر دويمي ورځي) پوري وځنلوي رَمَاهُ نو (هم) دي رمي وکړي لِأَنَّهُ وَقْتُ جِنْسِ الرَّمْيِ ځکه چي دا وخت هم د رمي له جنس څخه دی وَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او پر هغه دم واجب دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز لِتَأْخِيرِهِ عَنْ وَقْتِهِ ځکه چي رمي له خپل وخت څخه وځنډولې كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ لکه څرنګه چي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دی.

**اللغات:** ﴿غد﴾ سبا ورځ، را روانه ورځ.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو حاجي د يومُ النحر يعني د ذو الحجې په ورځ رمي نه وکړي، تر دې چي شپه سي، نو هغه دي د شپې رمي وکړي، او دم او هيڅ شی پر واجب نه دی، دليل د شپنيانو حديث دی چي په هغه کي نبي دوی ته د شپې د رمي کولو رخصت ورکړی دی، او که د شپې هم رمي نه وکړي، تر دې چي يوولسمه ورځ سي، نو په دې ورځ دي رمي وکړي، ځکه چي د يوولسمي ورځي وخت هم د رمي له جنس څخه دی، خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه دم واجبيږي، ځکه چي د جمرهٔ عقبه رمي يې له خپل وخت څخه وځنډولې، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي د حج نسک له خپل وخت څخه ځنډول دم واجبوي.

## د سپرتیا په حال کې د رمي حکم

قَالَ: فَإِنْ رَمَاهَا رَاكِبًا أَجْزَأَهُ فرمايي: كه حاجي د سپرتيا په حال كې رمي وكړي نو كافي دي لِحُصُوْلِ فِعْلِ الرَّمْيِ ځكه چې فعل د رمي حاصل سو وَكُلُّ رَمْيٍ بَعْدَهُ رَمْيٌ او هره هغه رمي چې تر هغه وروسته (نوري) رمي وي فَالْأَفْضَلُ أَنْ يَرْمِيَهُ مَاشِيًا نو افضل دا ده چې هغه رمي پياده وكړي وَإِلَّا فَيَرْمِيْهِ رَاكِبًا كنې د سپرتيا په حال كې دې هغه رمي وكړي لِأَنَّ الْأَوَّلَ بَعْدَهُ وُقُوْفٌ وَدُعَاءٌ ځكه چې تر اولې رمي وروسته دربدل او دعاء كول سته عَلٰى مَا ذَكَرْنَا لكه (مخكې) چې موږ ذكر كړه فَيَرْمِيْ مَاشِيًا نو پياده به رمي وكړي لِيَكُوْنَ أَقْرَبَ إِلَى التَّضَرُّعِ چې تضرع ته زيات نژدې سي وَبَيَانُ الْأَفْضَلِ مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او (دا) د افضيلت بيان له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دى.

**اللغات:** ﴿راكبا﴾ د سپرتيا په حال كې، ﴿ماشيا﴾ پياده، (په داسې حال كې چې سپور نه وي)، ﴿تضرع﴾ عاجزي ښكاره كول، زاري كول.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده كه يو حاجي د سپرتيا په حال كې د جمرهٔ عقبه رمي وكړي نو هم جائز دي، ځكه اصل مقصد خو رمي كول دي، او هغه د سپرتيا په حال كې هم حاصليږي. په دې عبارت كې د رمي يوه قاعده هم ذكر سوې ده: چې هره هغه رمي چې تر هغه وروسته رمي وي، په هغه كې پياده رمي كول افضل او غوره دي، او كه نه وي، نو د سپرتيا په حال كې رمي كول افضل دي. ځكه تر رمي وروسته چې رمي وي نو په هغه صورت كې خو د دوارو په مينځ كې وقوف او دعاء سته، نو ځكه به پياده رمي كول افضل وي، ځكه چې په دې كې خضوع. توجه او تضرع زياته ده، صاحب د هدايې فرمايي چې د افضيلت قول له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله را نقل سوى دى.

## په منیٰ کې د شپې تېرولو حکم

وَيُكْرَهُ أَنْ لَا يَبِيْتَ بِمِنًى لَيَالِيَ الرَّمْيِ او مكروه دي چې د رمي په شپو كې په منیٰ كې شپه تېره نه كړي لِأَنَّ النَّبِيَّ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَاتَ بِمِنًى ځكه چې نبي ﷺ په منیٰ كې شپه تېره كړې و وَعُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يُؤَدِّبُ عَلٰى تَرْكِ الْمُقَامِ بِهَا او حضرت عمر رضي الله عنه به په منیٰ كې د قيام پر پرېښوولو تأديب وركوى وَلَوْ بَاتَ فِيْ غَيْرِهَا مُتَعَمِّدًا لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ عِنْدَنَا او كه حاجي قصداً له منیٰ څخه په علاوه كې شپه تېره كړي نو زموږ په نيز پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِأَنَّهُ وَجَبَ لِيَسْهُلَ عَلَيْهِ الرَّمْيُ فِيْ أَيَّامِهِ ځكه (په منیٰ كې) قيام په دې وجه لازم سوى دى چې پر حاجي د رمي په ورځو كې رمي كول آسانه سي فَلَمْ يَكُنْ مِنْ أَفْعَالِ الْحَجِّ نو قيام د حج له افعالو څخه نه سو فَتَرْكُهُ لَا يُوْجِبُ الْجَابِرَ نو د هغه پرېښوول به يو نقصان پوره كونكى (شی) نه واجبوي.

**اللغات:** ﴿يسهل﴾ د فتح مضارع ده: آسانه كېدل، ﴿جابر﴾ اسم فاعل دی: نقصان پوره كونكى شی، د نقصان تلافي كونكى او پوره كونكى شی.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد فی كتاب المناسك، باب يبيت بمكة ليالي منى، حديث رقم: ١٩٥٨.

**تشريح**: مسئله: دا ده چې زموږ په نيز د رمي په شپو کي په منیٰ کي شپه تېرول سنت دي، لېکن شپه نه تېرول مکروه دي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز واجب دي. دليل دا دی چې نبي ﷺ هم د رمي په شپو کي شپه په منیٰ کي تېره کړې وه، او که يو حاجي به په منیٰ کي قيام پرېښووی، نو حضرت عمر رضي الله عنه به هغه ته تنبيه ورکوله. لهذا که يو حاجي له منیٰ څخه ماسوا په بل ځای کي قصداً شپه تېره کړي، نو زموږ په نيز پر هغه دم او هيڅ شی نه واجبيږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز دم واجبيږي. زموږ دليل دا دی چې د حاجي لپاره په منیٰ کي قيام کول څکه ثابت دي. چې د هغه لپاره رمي کول آسانه سي، نو معلومه سوه چې په منیٰ کي قيام کول د حج فعل نه دی. او کله چې د حج فعل نه سو. نو د هغه د پرېښوولو په وجه به جابر يعني دم هم نه واجبيږي.

## تر رمي وروسته مکې ته د سامان استولو او په خپله په منیٰ کي د پاتېدلو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يُقَدِّمَ الرَّجُلُ ثِقَلَهُ إِلَى مَكَّةَ فرمايي: او مکروه دي چې حاجي خپل سامان مخکي مکې ته واستوي وَيُقِيمَ حَتّٰى يَرْمِيَ او (په خپله په منیٰ کي) پاته سي تر دې چې رمي وکړي لِمَا رُوِيَ أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَمْنَعُ مِنْهُ څکه روايت سوی دی چې حضرت عمر رضي الله عنه به له دې څخه منع کوله وَيُؤَدِّبُ عَلَيْهِ او پر دې به يې تأديب ورکوی وَلِأَنَّهُ يُوجِبُ شُغْلَ قَلْبِهِ او په دې وجه (هم) چې دا عمل د هغه زړه مشغوله کوي.

**اللغات**: ﴿ثقل﴾ بار، سامان. ﴿يؤدب﴾ د تفعيل مضارع ده: تأديب ورکول، تنبيه ورکول. ﴿شغل﴾ مصدر دی، بوختيا، مصروفيت.

**تشريح**: مخکي به حاجيانو خپل سامان د ځان سره خوندي کوی، چې هر ځای به تلل سامان به ور سره بوو. لېکن اوس يې په د مکې مبارکي په هوټلونو کي خوندي ساتي، نو د مخکيني حاجيانو په باره کي فرمايي چې د حاجي لپاره دا مکروه ده چې له منیٰ څخه اول خپل سامان واستوي، او په خپله د رمي لپاره په منیٰ کي پاته سي، څکه چې دی به په منیٰ کي وي، او زړه به يې د سامان سره وي. او د حج عبادت به ځني هېر وي، خو که د نن سبا په ډول يې مخکي ټوله سامان د مکې مبارکي په يو هوټل يا په بل ځای کي ايښی وي. نو هيڅ حرج نسته.

## په وادي مُحَصّب کي د درېدلو حکم

وَإِذَا نَفَرَ إِلَى مَكَّةَ نَزَلَ بِالْمُحَصَّبِ او کله چې حاجي مکې ته روان سي نو په محصّب کي دي کښته سي (يعني له سپرلۍ څخه دي راښوه سي) وَهُوَ الْأَبْطَحُ او هغه ابطح دی وَهُوَ اسْمُ مَوْضِعٍ قَدْ نَزَلَ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] او محصّب د يو ځای نوم دی چې په هغه کي نبي ﷺ کښته سوی وو وَكَانَ نُزُوْلُهُ قَصْدًا او هلته د نبي ﷺ کښته کېدل قصداً وو هُوَ الْأَصَحُّ همدا صحيح ده حَتّٰى يَكُوْنَ النُّزُوْلُ بِهِ سُنَّةً تر دې چې په محصّب کي کښته کېدل سنت دي عَلَى مَا رُوِيَ أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [2] قَالَ لِأَصْحَابِهِ لکه څرنګه چې روايت دی چې نبي ﷺ (په منیٰ کي) خپلو صحابه وو ته

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب إستحباب نزول المحصب يوم النفر، حديث رقم: ۳۳۴.

[2] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب المناسك، باب التحصيب، حديث رقم: ۲۱۰.

وفرمايل إِنَّا نَازِلُونَ غَدًا بِالْخَيْفِ خَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ "چي موږ به سبا په خيف بني كنانه كي كښته سو حَيْثُ تَقَاسَمَ الْمُشْرِكُونَ فِيهِ عَلَى شِرْكِهِمْ چي هلته مشركينو پر خپل شرك قسمونه كړي ول" يُشِيرُ إِلَى عَهْدِهِمْ عَلَى هِجْرَانِ بَنِي هَاشِمٍ نبي ﷺ (په دې كلام سره) اشاره كوله د مشركينو و پوره كوښښ ته د بنو هاشمو پر پرېښوولو (يعني په دې خبرو سره د نبي ﷺ اشاره دا وه چي مشركينو د بنو هاشمو سره د تعلق په پرېكولو كي كوښښ كړى وو) فَعَرَفْنَا أَنَّهُ نَزَلَ بِهِ إِرَاءَةً لِلْمُشْرِكِينَ لَطِيفَ صُنْعِ اللَّهِ تَعَالَى بِهِ نو موږ پوه سو چي نبي په محصّب كي مشركينو ته د الله ﷻ د هغه زياتي مهرباني د ور ښكاره كولو لپاره كښته سو كوم چي الله تعالىٰ پر نبي ﷺ كړې ده (يعني موږ په پوه سو چي په محصب كي د نبي ﷺ د رېډلو راشوه كېدل په دې وجه دي چي د لوى ښښتن ﷻ مهرباني مشركينو ته ور ښكاره كړي) فَصَارَ سُنَّةً نو ځكه دا كښته كېدل سنت سو كَالرَّمَلِ فِي الطَّوَافِ لكه په طواف كي چي رمل (سنت سو).

**اللغات**: ﴿نفر﴾ روانېدل. ﴿أبطح﴾ ډبرينه ځكه. ﴿نزل﴾ پړاو كول. شوه كېدل. (دربېدل). ﴿جهد﴾ كوښښ. زيار. ﴿تقاسم﴾ د تفاعل مضارع ده: په خپل مينځ كي قسمونه كول(خوړل). ﴿هجران﴾ بايكاټ. اړيكه پرېښوول. تعلق ختمول. ﴿صنع﴾ كار. كارنامه.

**تشريح**: په عبارت كي د بيان سوي مسئلې حاصل دا دى چي كله حاجي له منیٰ څخه مكې ته روان سي. نو په وادي محصب كي دي ضرور پړاو وكړي، ځكه نبي ﷺ هم هلته پړاو وكړى، او صحابه وو ته يې له مخكي څخه هلته د پړاو كولو او د كښته كېدلو خبر وركړى، نو كله چي نبي ﷺ هلته ورسېدى. او پړاو يې وكړى. صحابه فرمايي چي موږ پوه سو چي د نبي ﷺ مقصد د اسلام په طاقت او قوت سره په كفارو باندي رعب اچول دي او هغو ته پر مسلمانانو د الله له طرفه رحم او كرم ښوول مقصد دي (يعني چي الله تعالىٰ پر مسلمانانو ډېر رحم او مهرباني كړې ده). او خاص د دې مقصد لپاره نبي ﷺ هلته را كښته سو او پړاو يې وكړى. او نن كه څه هم د عربو سپېځلې ځكه له كفارو او مشركينو څخه صفا سوې ده، خو څرنګه چي په طواف كي تر سقوطِ علت وروسته نن هم رمل كول سنت دي. همدا ډول به په محصّب كي پړاو كول، او كښته كېدل نن هم د هر حاجي لپاره سنت وي.

## د طواف صدر حكم

قَالَ: ثُمَّ دَخَلَ مَكَّةَ فرمايي: بيا دي حاجي داخل سي مكې (مباركي) ته وَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ او پر كعبه دي طواف وكړي اووه(۷) دوره لَا يَرْمَلُ فِيهَا (او) په هغو كي به رمل نه كوي وَهَذَا طَوَافُ الصَّدْرِ دا طواف صدر دى وَيُسَمَّى طَوَافَ الْوَدَاعِ او طواف وداع (هم) ورته ويل كيږي وَطَوَافَ آخِرِ عَهْدٍ بِالْبَيْتِ او د كعبې د آخري عهد طواف (هم ورته ويل كيږي) لِأَنَّهُ يُوَدِّعُ الْبَيْتَ وَيَصْدُرُ بِهِ ځكه چي په دې طواف سره حاجي كعبه پرېږدي(رخصتيږي) او

روانيږي وَهُوَ وَاجِبٌ عِنْدَنَا او دا طواف زموږ په نېز واجب دی خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ حَجَّ هٰذَا الْبَيْتَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې د دې کور حج کوي فَلْيَكُنْ آخِرُ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ الطَّوَافَ نو د هغه آخري عهد دې د کعبې (مبارکې) طواف وي وَرَخَّصَ لِلنِّسَاءِ الْحُيَّضِ او نبي ﷺ حائضه ښځو ته (د دې طواف د پرېښوولو) رخصت ورکړی إِلَّا عَلَى أَهْلِ مَكَّةَ مگر د مکې پر خلکو (طواف وداع واجب نه دی) لِأَنَّهُمْ لَا يَصْدُرُونَ وَلَا يُوَدِّعُونَ ځکه چې د مکې خلک نه (له مکې څخه) روانيږي او نه رخصتيږي وَلَا رَمَلَ فِيهِ لِمَا بَيَّنَّا او په دې طواف کې رمل (هم) نشته د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی أَنَّهُ شُرِعَ مَرَّةً وَاحِدَةً چې رمل فقط يو وار مشروع سوی دی وَيُصَلِّي رَكْعَتَي الطَّوَافِ بَعْدَهُ او تر دې وروسته به د طواف دوه رکعته وکړي لِمَا قَدَّمْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ مخکې بيان کړی.

**اللغات:** ﴿أشواط﴾ جمع د شوط ده: دور. پر کعبې مبارکې يو ځل راگرځېدلو ته يو شوط ويل کيږي. ﴿يودع﴾ د تفعيل مضارع ده: د دې باب ډيرې معناوې راځي: رخصتول، پرېښوول، خدای په امان ويل او داسې نور. ﴿يصدر﴾ د نصر مضارع ده: د دې باب هم ډيرې معناوې راځي: روانېدل، صادرېدل او داسې نور.

**تشريح:** په دې عبارت کې حاجيانو ته دا لارښوونه سوې ده چې کله هغوی د منیٰ له ټولو مناسکو او افعالو څخه فارغه سي، او د محصّب پر لار مکې ته داخل سي. نو تر ټولو مخکې دې پر کعبې مبارکې اووه (۷) دوره طواف وکړي، په دې طواف کې به رمل نه کوي. د دې طواف نوم طواف صدر، طواف وداع او طواف آخرِ عهد دی. طواف وداع ځکه ورته وايي چې تر دې طواف وروسته حاجيان کعبې ته خدای په امان وايي او رخصتيږي، او طواف صدر او طواف آخرِ عهد ځکه ته ورته وايي چې په دې طواف سره حاجيان له کعبې څخه روانيږي، او د هغو آخري عمل دا طواف دی، زموږ په نېز دا طواف واجب دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز سنت دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې طواف صدر د طواف قدوم په منزله دی، همدا وجه ده چې دواړه طوافونه آفاقي حاجي کوي، او د مکې اوسېدونکي حاجي يې نه کوي، حال دا چې د حج په واجباتو کې آفاقي او مکي دواړه برابر دي، لهذا کله چې د مکې حاجي دا طوافونه نه کوي، نو دا د دې خبرې دليل دی چې دا طوافونه واجب نه دي.

**زموږ دليل:** دا حديث دی: "څوک چې د بيتُ الله حج کوي، نو د هغه آخري عمل دې د بيتُ الله طواف وي..."، او د دې حديث په آخري جمله کې نبي ﷺ حائضې ښځو ته رخصت ورکړی دی. يعنې د حيض او نفاس والا ښځو ته له طواف صدر څخه بغير هم روانېدل جائز دي. په دې حديث کې فليکن امر دی، او بې له قرينې امر د وجوب لپاره راځي، نو ثابته سوه چې دا طواف واجب دی، دويمه وجه دا ده چې نبي ﷺ حائضو ښځو ته له طواف صدر څخه بغير د روانېدلو اجازه او رخصت ورکړی دی، دا هم د وجوب دليل دی، کنې د رخصت د تخصيص به څه فايده وي. فافهم و تدبّر

---

تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء في المرأة تحيض بعد الإفاضة، حديث رقم: ٩٤٣، و ابو داؤد في كتاب المناسک، باب الوداع، حديث رقم: ٢٠٠٢.

إلا على أهل مكة الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله وايي چي د مکې پر خلکو طواف صدر واجب نه دی. ځکه چي د مکې اوسېدونکي نه له مکې څخه وځي او نه له کعبې څخه رخصتيږي، په دې طواف کي رمل ځکه نسته چي رمل صرف يو ځل په طوافِ قدوم يا طوافِ زيارت کي مشروع دی، لهذا دويم وار د هغه ضرورت نسته. خو تر طواف صدر وروسته به هم د طواف دوه رکعته کوي، ځکه چي د باب په اول کي تېر سو چي هر طواف به په دوو رکعتونو سره ختميږي، طواف که فرض وي، که غير فرض وي.

## د زمزم د اوبو حکم

ثُمَّ يَأْتِي زَمْزَمَ او بيا به حاجي زمزم ته راسي فَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا او له زمزم څخه به اوبه وچيښي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] اِسْتَقَى دَلْوًا بِنَفْسِهِ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ په خپله يوه سولاغه راوکښله فَشَرِبَ مِنْهُ او له هغې څخه يې اوبه وچيښلې ثُمَّ أَفْرَغَ بَاقِيَ الدَّلْوِ فِي الْبِئْرِ بيا يې د سولاغې پاته اوبه څاه ته واچولې.

**اللغات:** ﴿استقى﴾ د استفعال ماضي ده: اوبه راکښل، اوبه غوښتل. ﴿دلو﴾ سولاغه(سلواغه). ﴿أفرغ﴾ تويول، اچول. ﴿بئر﴾ څاه.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## تر طوافِ وداع وروسته اعمال

وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَأْتِيَ الْبَابَ او مستحب دي چي حاجي (د کعبې) دروازې ته راسي وَيُقَبِّلَ الْعَتَبَةَ او د هغې چوکاټ مچ کړي وَيَأْتِيَ الْمُلْتَزَمَ او ملتزم ته راسي وَهُوَ مَا بَيْنَ الْحَجَرِ إِلَى الْبَابِ او ملتزم له حجرِ اسود څخه (د کعبې) تر دروازې پوري دی فَيَضَعُ صَدْرَهُ وَوَجْهَهُ عَلَيْهِ نو پر ملتزم به خپله سينه او مخ کښېږدي وَيَتَشَبَّثُ بِالْأَسْتَارِ سَاعَةً او څه ګړی به د کعبې په پردو پوري ومښلي ثُمَّ يَعُوْدُ إِلَى أَهْلِهِ بيا به خپل اهل وعيال ته را واپس سي هٰكَذَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[2] فَعَلَ بِالْمُلْتَزَمِ ذٰلِكَ همدا ډول روايت سوی دی چي نبي ﷺ د ملتزم سره دغسي وکړه قَالُوْا: وَيَنْبَغِيْ أَنْ يَنْصَرِفَ وَهُوَ يَمْشِيْ وَرَاءَهُ مشائخو فرمايلي دي: مناسب دا ده چي په داسي حال کي واپس سي چي د شا پر طرف روان وي وَوَجْهُهُ إِلَى الْبَيْتِ او د هغه مخ د کعبې (مبارکي) و طرف ته وي مُتَبَاكِيًا مُتَحَسِّرًا عَلَى فِرَاقِ الْبَيْتِ (او) په داسي حال کي چي په ژړا وي او د کعبې پر بېلتون افسوس (او غم) کونکی وي حَتّٰى يَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ تر دې چي له مسجد حرام څخه ووځي فَهٰذَا بَيَانُ تَمَامِ الْحَجِّ نو دا د پوره حج بيان سو.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن سعد في طبقات الكبرىٰ، باب حجة الوداع، ج: ۲، ص: ۱۴۰، دار الكتب العلميه بيروت.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسک، باب الملتزم، حديث رقم: ۱۸۹۹.

# فَصْلٌ

**اللغات:** ﴿يلثم﴾ د تفعيل مضارع مجهول ده: مچول، ﴿عتبة﴾ چوکاټ، ﴿يتشبث﴾ د تفعّل مضارع ده: موښتل، غاړه په غاړه کېدل، ﴿أستار﴾ پردې، ﴿متباكى﴾ د تفاعل اسم فاعل دی: ژړېدونکی، ﴿متحسر﴾ د تفعّل اسم فاعل دی: حسرت او افسوس کونکی.

**تشريح:** امام قدوري او صاحب د هدايې رَحِمَهُمَا الله حاجيانو ته آخري وصيت او نصيحت کوي فرمايي چې د زمزم تر چيښلو وروسته حاجي ته پکار ده چې د کعبې دروازې ته راسي او د هغې چوکاټ دي مچ کړي. او بيا دي ملتزم ته (کوم چې له حجرِ اسود څخه د کعبې تر دروازې پورې دی) راسي او پر هغه دي خپله سينه او مخ کېښېږدي، او يو څه وخت دي د کعبې د پردو سره ومښلي او د الله ﷻ په مينه او دعاء کي دي مصروف سي. تر هغه وروسته دي خپل وطن را روان سي، ځکه چې په دې کي د نبي ﷺ اتباع ده.

د بعضي مشائخو رايه دا ده چې له کعبې څخه دي حاجي د شا پر طرف را روان سي، مخ دي يې د کعبې و طرف ته وي، او د کعبې پر جدايي او فراق دي افسوس کوي، او ژاړي دي. او په دغه حال کي دي له مسجدِ حرام څخه ووځي.

فهذا بيان الخ فرمايي چې تر دې ځايه پورې د بشپړ حج تفصيلي بيان وسو. او په ښه تشريح سره مو ذکر کړی، لوس دا ستاسو ذمه واري ده چې په خپله سينه کي يې خوندي کړی، او د حج په سپېڅلو ورځو کي فايده څني واخلئ او نور هم له دې فايدې څخه برخمن کړی. الله ﷻ دي مونږ ټولو ته د خپل مقدّس کور ديدار را نصيب کړي، آمين.



**تشریح:** په دې فصل کې چې کومې مسئلې بیانیږي، د هغو تعلق هم د حج او د حج د افعالو سره دی، لهذا د باب د تکملې په توګه دا فصل جلا بیانیږي.

## مکې ته له تګ څخه بغیر عرفات ته د تګ حکم

وَإِنْ لَمْ يَدْخُلِ الْمُحْرِمُ مَكَّةَ او که احرام تړونکی مکې ته داخل نه سي وَتَوَجَّهَ إِلَى عَرَفَاتٍ او عرفات ته ولاړ سي وَوَقَفَ بِهَا عَلَى مَا بَيَّنَّا او په عرفات کې زموږ د بیان سوي تفصیل مطابق وقوف وکړي سَقَطَ عَنْهُ طَوَافُ الْقُدُومِ نو له هغه څخه طوافِ قدوم ساقطیږي لِأَنَّهُ شُرِعَ فِي ابْتِدَاءِ الْحَجِّ عَلَى وَجْهٍ يَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ سَائِرُ الْأَفْعَالِ ځکه چې طوافِ قدوم د حج په پیل کې داسې مشروع دی چې د حج ټول افعال به پر هغه مرتب وي فَلَا يَكُونُ الْإِتْيَانُ بِهِ عَلَى غَيْرِ ذَلِكَ الْوَجْهِ سُنَّةً نو له دې څخه علاوه به په بله طریقه طوافِ قدوم اداء کول سنت نه وي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ بِتَرْكِهِ او د طوافِ قدوم په پرېښودلو سره پر حاجي هیڅ شی نه واجبیږي لِأَنَّهُ سُنَّةٌ ځکه چې دا طواف سنت دی وَبِتَرْكِ السُّنَّةِ لَا يَجِبُ الْجَابِرُ او د سنت پرېښودلو په وجه نقصان پوره کونکی (یعني دم) نه واجبیږي.

**اللغات:** ﴿شرع﴾ مشروع سوی دی، ﴿سائر﴾ ټوله، ﴿جابر﴾ د نقصان تلافی کونکی شی.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده که یو محرم مکې ته داخل نه سو، او طوافِ قدوم یې هم نه وکړی، بلکې له میقات څخه سیده عرفات ته ولاړی، او د شریعت د بیان سوي طریقې مطابق یې هلته وقوف وکړی، نو د هغه له غاړي څخه طوافِ قدوم ساقط سو، ځکه چې طوافِ قدوم د حج په شروع کې په دې توګه مشروع سوی دی چې د حج ټول افعال به پر هغه مرتب وي، لهذا په بله توګه به طوافِ قدوم سنت نه وي، او د طوافِ قدوم په وجه دم او هیڅ شی هم نه واجبیږي، ځکه چې طوافِ قدوم سنت دی، او د سنت د پرېښودلو په وجه دم او هیڅ د نقصان پوره کونکی شی نه واجبیږي.

## د وقوفِ عرفات د کمې اندازې حکم

وَمَنْ أَدْرَكَ الْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ مَا بَيْنَ زَوَالِ الشَّمْسِ مِنْ يَوْمِهَا إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ او څوک چې د عرفات په ورځ د لمر د زوال او د یومُ النحر د صبح صادق په مینځ کې وقوفِ عرفه ونیسي فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ نو هغه حج ونیوی فَأَوَّلُ وَقْتِ الْوُقُوفِ بَعْدَ الزَّوَالِ عِنْدَنَا نو زموږ په نیز د وقوف اول وخت د لمر تر زوال وروسته دی لِمَا رُوِيَ [1] أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ بَعْدَ الزَّوَالِ ځکه روایت سوی دی چې نبي ﷺ تر زوال وروسته وقوف وکړی وَهَذَا بَيَانُ أَوَّلِ الْوَقْتِ او دا د اول وخت بیان دی وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2]: مَنْ أَدْرَكَ عَرَفَةَ بِلَيْلٍ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ او نبي ﷺ فرمایلي دي: "څوک چې د شپې عرفات ونیسي هغه حج ونیوی وَمَنْ فَاتَهُ عَرَفَةُ بِلَيْلٍ فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ او له چا څخه چې د شپې (هم) عرفات فوت سي نو له هغه څخه حج فوت سو" وَهَذَا بَيَانُ آخِرِ الْوَقْتِ او دا د آخري وخت بیان دی

---

[1] تخریج: أخرجه ابوداؤد فی کتاب المناسک، باب صفة حجة النبی ﷺ، حدیث رقم: ١٩٠٥.

[2] تخریج: أخرجه الترمذي فی کتاب الحج، باب ما جاء فی من أدرک الإمام بجمع.

وَمَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ إِنْ كَانَ يَقُوْلُ: إِنَّ أَوَّلَ وَقْتِهِ بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ أَوْ بَعْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ او امام مالک رَحِمَهُ الله كه څه هم دا وايي: چي د وقوف عرفه اول وخت تر سهار يا لمر راختلو وروسته دى فَهُوَ مَحْجُوْجٌ عَلَيْهِ بِمَا رَوَيْنَا خو د هغه په خلاف زموږ روايت سوى حديث حجت دى.

**اللغات:** ﴿أدرك﴾ د افعال ماضي دي: نيول، پيدا كول، ﴿محجوج عليه﴾ د نصر اسم مفعول دى: هغه چي حجت پر قائم كړى سي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي زموږ په نېز د عرفات په ورځ تر زوال وروسته د وقوفِ عرفه وخت شروع كيږي، او د يومُ النحر تر صبح صادق (يعني د سهار تر سپېدو) پوري پاتيږي، نو څوک چي هم په دې وختونو كي هر وخت په عرفات كي وقوف وكړي، د هغهٔ حج اداء كيږي، ځكه نبي ﷺ هم تر زوال وروستهٔ وقوف وكړى، او دا د دې خبري دليل دى چي تر زوال وروسته د وقوف وخت شروع كيږي، بيا په يو بل روايت كي د نبي ﷺ دا فرمان را نقل سوى دى چي څوک د شپې وقوفِ عرفه وكړي هغه حج ونيوى، او څوک چي يې د شپې هم نه ونيسي، هغه حج هم نه ونيوى، او دا د آخري وخت بيان دى، نو ځكه موږ وايو چي د عرفات د ورځي له زوال څخه د يومُ النحر تر صبح صادق پوري د وقوف وخت دى.

ومالك الخ فرمايي چي د امام مالک رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي د عرفات د ورځي تر صبح صادق وروسته يا په دې ورځ د لمر تر راختلو وروسته د وقوفِ عرفه وخت شروع كيږي، لېكن صاحب د هدايې فرمايي چي د نبوي عمل سره متعلق زموږ بيان سوى حديث د هغه په خلاف حجت او دليل دى، ځكه په هغه كي د دې خبري ښكاره صراحت سوى دى چي نبي ﷺ تر زوال وروسته وقوف وكړى، نو كه د وقوف وخت تر دې مخكي واى، نو نبي ﷺ به په خپل فرمان سره د هغه وضاحت حتماً كړى واى، لېكن له نبي ﷺ څخه په دې باره كي د نبي هيڅ فرمان را نقل سوى نه دي، او دا دې خبري دليل دى چي د وقوفِ عرفه وخت به تر زوال وروسته شروع كيږي.

## كه تر زوال وروسته لږ وخت وقوفِ عرفه وكړي او بيا كوچ وكړي نو څه حكم دى؟

ثُمَّ إِذَا وَقَفَ بَعْدَ الزَّوَالِ وَأَفَاضَ مِنْ سَاعَتِهِ بيا كه حاجي تر زوال وروسته وقوفِ عرفه وكړي او په هغه ګړي روان سي أَجْزَأَهُ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز د هغه لپاره دا كافي دي لِأَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● ذَكَرَ بِكَلِمَةِ أَوْ ځكه چي نبي ﷺ كلمه د "أو" ذكر كړې ده (په را روان حديث كي) فَإِنَّهُ قَالَ: اَلْحَجُّ عَرَفَةُ (لو هغه دا چي) نبي ﷺ فرمايلي دي: "حج عرفات دى فَمَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ سَاعَةً مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ لهذا كه يو څوک په عرفات كي يو ګړى د شپې يا ورځي وقوف وكړي فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ نو د هغه حج پوره سو" وَهِيَ كَلِمَةُ التَّخْيِيْرِ او (په دې حديث كي) لفظ د "أو" د تخيير لپاره دى وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يُجْزِئُهُ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لپاره وقوف كافي نه دى إِلَّا أَنْ يَّقِفَ فِي الْيَوْمِ وَجُزْءٍ مِنَ اللَّيْلِ خو دا چي د ورځي هم او د شپې په يوه جزء كي هم وقوف وكړي وَلٰكِنَّ الْحُجَّةَ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ لېكن د هغه په خلاف زموږ روايت سوى حديث حجت دى.

---

● تخريج: أخرجه ابو داد في كتاب المناسک، باب من لم يدرک عرفة، حديث رقم: ١٩٢٩.

**اللغات:** ﴿أفاض﴾ د افعال ماضي دہ: واپس روانېدل. ﴿تخيير﴾ اختيار ورکول.

**تشريح:** **مسئله:** دا دہ کہ يو حاجي تر زوال وروسته لږ ګړي وقوف عرفه وکړي. تر دې وروسته له هغه ځای څخه روان سو، نو د هغه وقوف هم اداء کيږي، او حج يې هم پوره کيږي، ځکه په دې حديث فمن وقف بعرفة الخ کي د شپې يا د ورځي په هره حصه کي په وقوف کولو سره د حج د پوره کېدلو حکم سوی دی. او څرنګه چي په حديث کي کلمه د "أو" د تخيير لپاره دہ، نو ځکه به د ورځي يا شپې په هره حصه کي په وقوف سره حج پوره کيږي. او فقط د شپې يا د ورځي سره به وقوف خاص نه وي، د دې په خلاف امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي په شپه او ورځ دواړو کي وقوف ضروري دي، نه يوازي د ورځي په وقوف سره حج پوره کيږي، او نه فقط د شپې. بلکي د شپې او ورځي په دواړو جزؤنو کي به په وقوف کولو سره حج پوره کيږي، لېکن صاحب د هدايې فرمايي چي زموږ بيان سوی حديث د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی، ځکه نبي ﷺ په کلمه د "أو" په وقوفِ عرفه سره د حج د پوره کېدلو حکم کړی دی. چي هغه د شپې يا د ورځي يا د دواړو د تعيين او تخصيص منافي دي.

## د خوب، بې هوښۍ يا ناخبرۍ په صورت کي د عرفات سره د تېرېدلو حکم

وَمَنِ اجْتَازَ بِعَرَفَةَ نَائِمًا او څوک چي د عرفات سره د خوب په حالت کي تېر سي أَوْ مُغْمًى عَلَيْهِ يا د بې هوښۍ په حالت کي (تېر سي) أَوْ لَا يَعْلَمُ أَنَّهَا عَرَفَاتٌ يا هغه ته دا خبر نه وي چي دا عرفات دی جَازَ عَنِ الْوُقُوفِ نو دا تېرېدل د وقوف عرفه لپاره کافي دي لِأَنَّ مَا هُوَ الرُّكْنُ قَدْ وُجِدَ ځکه کوم شی چي رکن دی هغه پيدا سو وَهُوَ الْوُقُوفُ او رکن وقوف دی وَلَا يَمْتَنِعُ ذٰلِكَ بِالْإِغْمَاءِ وَالنَّوْمِ كَرُكْنِ الصَّوْمِ او دا وقوف د بې هوښۍ او خوب په وجه نه ممتنع کيږي لکه د روژې رکن چي دی بِخِلَافِ الصَّلَاةِ په خلاف د لمانځه لِأَنَّهَا لَا تَبْقَى مَعَ الْإِغْمَاءِ ځکه چي لمونځ د بې هوښۍ سره نه پاتېږي وَالْجَهْلُ يُخِلُّ بِالنِّيَّةِ او ناخبري په نيت کي خلل راولي وَهِيَ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ لِكُلِّ رُكْنٍ او نيت د هر رکن لپاره شرط نه دی.

**اللغات:** ﴿اجتاز﴾ د افتعال ماضي دہ: تېرېدل. ﴿مغمی عليه﴾ بې هوښه سړی.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی کہ يو حاجي د خوب يا د بې هوښۍ په حالت کي د عرفات په ورځ د عرفات د ميدان سره تېر سو، يا هغه ته دا معلومه نه وه چي دا عرفات دی، نو په دې دريو سره صورتونو کي وقوفِ عرفه اداء سو. ځکه چي د حج رکن وقوف دی، او هغه پيدا سو، پاته سو بې هوښي او خوب نو هغه د وقوف لپاره مانع نه دي، لکه څرنګه چي يو څوک د سهار په اوله حصه کي د روژې نيت وکړي، بيا ټوله ورځ بيده يا بې هوښه پروت وي. نو د هغه روژه اداء کيږي، په خلاف د لمانځه ځکه چي لمونځ د بې هوښۍ په حالت کي نه پاتېږي، او پاته سو نه خبرېدل، نو دا په نيت کي خلل پيدا کوي، يعني د کوم شي علم چي نه وي، د هغه نيت به معتبر نه وي، خو د هر رکن لپاره جلا جلا نيت شرط نه دی، بلکي دلته دا اُصول دی چي د وقوف عرفه لپاره اصل نيت (يعني د حج نيت) هم کافي دی، لهذا د وقوف لپاره هم نيت شرط نه سو، او کله چي نيت شرط نه سو، نو عرفات ته به له تګ څخه بغير فقط د عرفات سره تېرېدل وقوف شمارل کيږي.

## د بې هوښه سړي له طرف څخه د بل چا د احرام تړلو حکم

وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ او څوک چې بې هوښه سي فَأَهَلَّ عَنْهُ رُفَقَاؤُهُ او د هغه له طرفه خپل ملګري تلبيه ووايي جَازَ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ نو دا جائز دي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا: لَا يَجُوزُ او صاحبين فرمايي: چې جائز نه دي وَلَوْ أَمَرَ إِنْسَانًا بِأَنْ يُحْرِمَ عَنْهُ إِذَا أُغْمِيَ عَلَيْهِ أَوْ نَامَ او که هغه يو سړي ته حکم کړی وي چې دا سړی دي د هغه له طرفه احرام وتړي کله چې هغه بې هوښه سي يا بيده سي فَأَحْرَمَ الْمَأْمُورُ عَنْهُ صَحَّ بِالْإِجْمَاعِ او دا سړی (هم) د هغه له طرفه احرام وتړي نو دا بالاجماع صحيح دي حَتَّى إِذَا أَفَاقَ أَوِ اسْتَيْقَظَ وَأَتَى بِأَفْعَالِ الْحَجِّ جَازَ تر دې که هغه جوړ سي (يعني په سد کي راسي) يا راويښ سي او د حج (نور) افعال اداء کړي نو حج يې جائز (او صحيح) دی لَهُمَا أَنَّهُ لَمْ يُحْرِمْ بِنَفْسِهِ د صاحبينو دليل دا دی چې هغه نه په خپله احرام تړلی دی وَلَا أَذِنَ لِغَيْرِهِ بِهِ او نه يې بل چا ته د احرام د تړلو اجازه ورکړې ده وَهَذَا لِأَنَّهُ لَمْ يُصَرِّحْ بِالْإِذْنِ او دا ځکه چې هغه په صراحت سره اجازه ذکر کړې نه ده وَالدَّلَالَةُ تَقِفُ عَلَى الْعِلْمِ او دلالتًا اجازه پر علم موقوف وي وَجَوَازُ الْإِذْنِ بِهِ لَا يَعْرِفُهُ كَثِيرٌ مِنَ الْفُقَهَاءِ او د احرام د اجازې جواز ډېر علماء نه پېژني (يعني په دې ډېر علماء هم خبر نه دي چې د بل چا له طرف احرام تړل جائز دي) فَكَيْفَ يَعْرِفُهُ الْعَوَامُّ نو عوام به يې څرنګه وپېژني بِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَ غَيْرَهُ بِذَلِكَ صَرِيحًا په خلاف د دې صورت چې کله هغه په صراحت سره بل سړي ته د دې حکم کړی وي وَلَهُ أَنَّهُ لَمَّا عَاقَدَهُمْ عَقْدَ الرُّفْقَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې بې هوښه سړي چې کله د ملګرو سره د ملګرتيا تړون وکړی فَقَدِ اسْتَعَانَ بِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ فِيمَا يَعْجِزُ عَنْ مُبَاشَرَتِهِ بِنَفْسِهِ نو هغه (ګواکي) په خپلو ملګرو کي له هر يوه څخه د داسي کار په باره کي د مرستي غوښتنه وکړه چې هغه يې له کړني څخه عاجزه سي وَالْإِحْرَامُ هُوَ الْمَقْصُودُ بِهَذَا السَّفَرِ او احرام د دې سفر مقصد دی فَكَانَ الْإِذْنُ بِهِ ثَابِتًا دَلَالَةً نو دلالتًا به د احرام اجازه ثابته وي وَالْعِلْمُ ثَابِتٌ نَظَرًا إِلَى الدَّلِيلِ او دليل په کتني سره به علم (هم) ثابت وي وَالْحُكْمُ يُدَارُ عَلَيْهِ او د حکم مدار پر علم دی.

**اللغات:** ﴿أهل﴾ د افعال ماضي ده: تلبيه ويل، د احرام نيت کول. ﴿أفاق﴾ جوړېدل. بې هوښي ختمېدل. ﴿استيقظ﴾ د استفعال ماضي ده: ويښېدل، له خوبه راپورته کېدل. ﴿لم يصرح﴾ د تفعيل جحد صيغه ده: تصريح نه کول. په صراحت سره نه ذکر کول. ﴿عاقد﴾ د مفاعلې ماضي ده: تړون او عقد کول. معامله کول. ﴿استعان﴾ د استفعال ماضي ده: مدد غوښتل. ﴿يدار﴾ مضارع مجهوله ده: مدار کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د يوې مسئلې دوې حصې بيان سوي دي: (١) اوله حصه دا ده چې که يو سړی بې هوښه سو، او د هغه له طرفه د هغه ملګري احرام وتړي. تلبيه يې ورېل. نو دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز دي لېکن صاحبين رَحِمَهُ الله فرمايي چې جائز نه دي. (٢) دويمه حصه دا ده که يو سړي خپل يو ملګري ته حکم وکړی چې که زه

---

● القول الراجح: هو هذا قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما في رد المحتار ج:٢، ص: ٢٠٠. [القول الراجح ج:١، ص: ٢١٣].

هوښه سوم یا بیده سوم، نو زما له طرفه احرام وتړه، او دا سړی بې هوښه سو. یا بیده سو، او د هغه له طرفه ملګري احرام وتړي نو بالاتفاق جائز دي. تر دې چي کله دا سړی په هوښ کي راغلی. یا راویښ سو، او د حج افعال یې اداء کړل. نو د هغه حج اداء کیږي.

لهما أنه الخ په اوله حصه کي د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دی چي نه دې سړي په خپله احرام تړلی دی. او نه یې بل ته د احرام د تړلو اجازه ورکړې ده، ځکه په خپله احرام نه تړل خو ښکاره دي، او بل ته اجازه نه ورکول په دې وجه دي چي اجازه خو یا صراحتاً وي یا دلالتاً وي، او دلته دواړه صورتونه نسته. صراحتاً اجازه ځکه نسته چي هغه په صریح الفاظو کي بل چا ته اجازه ورکړې نه ده، او دلالتاً ځکه نسته چي اجازه پر علم موقوفه ده. نو که یو چا ته له مخکي شخه دا معلومه وه چي په اجازه ورکولو سره اجازه ثابتیږي، او بیا د بل چا له طرفه احرام تړل کېدای سي. نو دا دلالتاً اجازه سوه، لیکن دا خبره سترو علماؤ او فقهاؤ ته معلومه نه ده، نو عوام او جاهلانو ته به څرنګه معلومه سي. نو ځکه دلالتاً اجازه هم پیدا نه سوه، لهذا د بل سړي احرام تړل به صحیح نه وي. د دې په خلاف که هغه یو چا ته صراحتاً د احرام د تړلو اجازه ورکړه. نو د بل سړي لپاره به د هغه له طرفه احرام تړل صحیح او جائز وي.

له أنه الخ د امام صاحب رحمه الله دلیل دا دی چي کله دا سړی د یو څو ملګرو سره د حج په سفر روان سو، نو هغه په دې سفر کي له ملګرو څخه په هر هغه کار کي د مرستي غوښتنه وکړه چي د هغه له اداء کولو څخه هغه عاجز او بې وسه سي، او څرنګه چي د حج د سفر اصلي مقصد احرام دی. او د بې هوښي یا د خوب په وجه دا سړی د احرام له تړلو څخه قاصره او عاجزه سو. نو د احرام په باره کي دلالتاً اجازه پیدا سوه، او د دلیل یعني د ملګرو د تړون په وجه علم هم حاصل سو، او د حکم مدار پر علم وي، نو کله چي علم حاصل سو. نو حکم به هم حاصلیږي. او د بل سړي لپاره به احرام تړل صحیح وي.

## ښځه په ټولو احکامو کي د نر په څیر ده ما سوا له یو څو احکامو څخه

قَالَ: وَالْمَرْأَةُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ كَالرَّجُلِ فرمایي: ښځه په دې ټولو مسئلو کي د سړي په څیر ده لِأَنَّهَا مُخَاطَبَةٌ كَالرَّجُلِ ځکه چي ښځه (هم) د سړي په څیر (د شریعت د احکامو) مخاطبه ده غَيْرَ أَنَّهَا لَا تَكْشِفُ رَأْسَهَا خو ښځه به سر نه لڅوي لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ ځکه چي د هغې سر عورت دی وَتَكْشِفُ وَجْهَهَا او خپل مخ به لڅوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: إِحْرَامُ الْمَرْأَةِ فِي وَجْهِهَا ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "چي د ښځي احرام د هغې په مخ کي دی" وَلَوْ سَدَلَتْ شَيْئًا عَلَى وَجْهِهَا او که ښځه یو شی پر مخ را وځړوي وَجَافَتْهُ عَنْهُ جَازَ او له مخ څخه یې لیري کړي نو جائز دي فَكَذَا رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا همداسي له حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت سوي دي وَلِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْإِسْتِظْلَالِ بِالْمَحْمَلِ او په دې وجه (هم) چي دا داسي دي لکه په کجاوې سره سایه حاصلول وَلَا تَرْفَعُ صَوْتَهَا بِالتَّلْبِيَةِ او ښځه به په تلبیه کي خپل آواز نه پورته کوي (یعني تلبیه به په زوره نه وایي) لِمَا فِيهِ مِنَ الْفِتْنَةِ ځکه چي په دې کي فتنه ده وَلَا تَرْمُلُ او نه به رمل کوي وَلَا تَسْعٰى بَيْنَ الْمِيلَيْنِ او نه به د میلینِ أخضرین په مینځ کي ځغلي لِأَنَّهُ مُخِلٌّ بِسَتْرِ الْعَوْرَةِ ځکه چي

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب الحج، باب المرأة لا تنتقب في إحرامها، حديث رقم: ۹۰۲۸، ۹۰۲۹.

ځنځــتل د عورت په ستر کي خلل پيدا کوي وَلَا تَحْلِقُ وَلٰكِنْ تُقَصِّرُ او سر به نه خريي لېکن قصر به کوي (يعني وربښتيان به کوچني کوي) لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى النِّسَاءَ عَنِ الْحَلْقِ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ ښځي له سرُ خريلو څخه منع کړي دي وَأَمَرَهُنَّ بِالتَّقْصِيرِ او هغو ته يې د قصر حکم کړی دی وَلِأَنَّ حَلْقَ الشَّعْرِ فِي حَقِّهَا مُثْلَةٌ او ځکه چي د ښځي په حق کي سر خريل (يو ډول) مُثله ده كَحَلْقِ اللِّحْيَةِ فِي حَقِّ الرَّجُلِ لکه د خلکو په حق کي چي ږيره خريل (يو ډول مُثله ده) وَتَلْبَسُ مِنَ الْمَخِيطِ مَا بَدَا لَهَا او اغوندي به له ګنډل سوو جامو څخه هغه چي د هغې خوښه سي لِأَنَّ فِي لُبْسِ غَيْرِ الْمَخِيطِ كَشْفُ الْعَوْرَةِ ځکه چي د نا ګنډل سوو جامو په اغوستلو کي د عورت لڅېدل سته قَالُوا: وَلَا تَسْتَلِمُ الْحَجَرَ (متأخرينو) مشائخو فرمايلي دي: چي ښځه به د حجرِ اسود استلام (هم) نه کوي إِذَا كَانَ هُنَاكَ جَمْعٌ چي کله هلته ګڼه ګونه (رش) وي لِأَنَّهَا مَمْنُوعَةٌ عَنْ مُمَاسَّةِ الرِّجَالِ ځکه چي ښځه له دې څخه منع سوې ده چي د خلکو بدن مــه کړي إِلَّا أَنْ تَجِدَ الْمَوْضِعَ خَالِيًا خو دا چي ښځه خالي ځای پيدا کړي.

**اللغات:** ﴿عورة﴾ ســتر، د پټولو ځای، ﴿تكشف﴾ د ضرب مضــارع ده: لڅول، پرده ليري کول، ﴿سدلت﴾ د نصر ماضي ده: پرده ځړول، ﴿جافت﴾ د مفاعلې ماضي ده: ليري ساتل، ﴿استظلال﴾ د استفعال مصدر دی: د يو شي سايه حاصلول، په سايه کي کېښــتل، ﴿محمل﴾ کجاوه، ﴿مماسة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو تر بله مسه کول.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي ښځه د حج په ټولو مناسکو کي د نر په څېر ده، ځکه د الله تعالیٰ دا خطاب ولله على الناس حج البيت دواړو ته شامل دی، لهذا کوم کار چي نر کوي هغه به ښځه کوي، ماسوا له يو څو شيانو څخه، مثلاً د ښځي لپاره سر لڅول جائز نه دي، ځکه چي د ښځي سر هم عورت يعني واجبُ الستر دی، خو ښځه به خپل مخ لڅ ساتي، ځکه په حديث کي دي چي د ښځي إحرام په مخ کي دي، هو ! که ښځي پر خپل مخ يو شی را ځړوی او هغه يې له مخ څخه ليري وساتی نو جائز دي، ځکه د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حديث کي همداسي را نقل سوي دي، او دويم دليل دا چي کپړه يا بل شی را ځړول له محمل څخه د سايې حاصلولو په ډول دي، او سايه حاصلول جائز دي، نو پر مخ به د کپړې يا بل شي راځړول هم صحيح وي.

ولاترفع صوتها الخ او ښځه به د تلبيې په وخت کي خپل آواز هم نه پورته کوي، ځکه د هغې په آواز کي د فتنې ېږه ده، او په طواف کي به رمل هم نه کوي، او نه به سعی کوي، ځکه چي دا دواړه شيان د عورت په پټولو کي خلل راولي، او ښځه به سر هم نه خريي، بلکي وربښتــيان به کوچني کوي، ځکه د الله رسول ﷺ ښځي له حلق څخه منع کړي دي او د قصر حکم يې کړی دی، دويم دليل دا چي د ښځو په حق کي حلق يو ډول د مُثلې په څېر دی، مثله ورېل کيږي: "تر ممنوع حد پوري د شکل خرابول". لکه څرنګه چي د خلکو په حق کي ږيره خريل يو ډول مُثله ده.

وتلبس من المخيط الخ او ښځه د احرام په حالت کي هر ډول ګنډل سوي جامې اغوستلای سي، ځکه په ناګنډل سوو جامو کي د ښځي عورت ښکاره کيږي، چي هغه شرعاً ممنوع دی، او ښځه به د احرام په حالت کي د حجرِ اسود د مچولو

---

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ماجاء في كراهية الحلق للنساء، حديث رقم: ٩١٢، ٩١٥.

کوښښ هم نه کوي، ځکه په دې صورت کې د هغې بدن د خلکو د بدن سره لګیږي، او دا ممنوع دي، خو که ځای خالي وي نو په استلام او مچولو کې څه حرج نشته.

## څوک چې د بُدنه (ځاروي) غاړې ته رسۍ واچوي نو هغه محرم دی

قَالَ: وَمَنْ قَلَّدَ بُدْنَةً امام محمد (په جامع صغیر کې) فرمایي: او څوک چې بدنې ته طوق واچوي تَطَوُّعًا أَوْ نَذْرًا (برابره ده) نفلي بدنه وي او که د نذر وي أَوْ جَزَاءَ صَيْدٍ او که د ښکار جزاء (جرمانه) وي أَوْ شَيْئًا مِنَ الْأَشْيَاءِ یا دیو بل شي (بدنه) وي وَتَوَجَّهَ مَعَهَا يُرِيدُ الْحَجَّ او د بدنې سره روان سي په داسې حال کې چې اراده یې د حج وي فَقَدْ أَحْرَمَ نو هغه محرم سو لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: مَنْ قَلَّدَ بُدْنَةً فَقَدْ أَحْرَمَ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "چا چې بدنې ته طوق واچوی نو هغه محرم سو" وَلِأَنَّ سَوْقَ الْهَدْيِ فِي مَعْنَى التَّلْبِيَةِ فِي إِظْهَارِ الْإِجَابَةِ او په دې وجه (هم) چې د ځاروي (او بدنې) بیول د تلبیې معنیٰ لري د قبولیت د جواب ورکولو په اظهار کې لِأَنَّهُ لَا يَفْعَلُهُ إِلَّا مَنْ يُرِيدُ الْحَجَّ أَوِ الْعُمْرَةَ ځکه چې دا کار نه کوي مګر هغه څوک چې د حج یا د عمرې اراده لري وَإِظْهَارُ الْإِجَابَةِ قَدْ يَكُونُ بِالْفِعْلِ كَمَا يَكُونُ بِالْقَوْلِ او د قبولیت اظهار کله نا کله په فعل سره کیږي لکه څرنګه چې په قول سره کیږي فَيَصِيرُ بِهِ مُحْرِمًا نو ځکه به انسان په طوق اچولو سره محرم کیږي لِاتِّصَالِ النِّيَّةِ بِفِعْلٍ هُوَ مِنْ خَصَائِصِ الْإِحْرَامِ ځکه چې نیت د داسې فعل سره متصل سو چې هغه د احرام له ځانګړنو څخه دی وَصِفَةُ التَّقْلِيدِ أَنْ يَرْبِطَ عَلَى عُنُقِ بُدْنَتِهِ قِطْعَةَ نَعْلٍ أَوْ عُرْوَةَ مَزَادَةٍ أَوْ لِحَاءَ شَجَرَةٍ او د طوق اچولو صورت دا دی چې انسان د خپلې بُدنې پر غاړه د څپلې ټوټه یا د بَدنۍ (لوټې) لاسی یا د درختې پوستکی وتړي.

**اللغات:** ﴿قلد﴾ د تفعیل ماضي ده: د ځاروي غاړې ته رسۍ او طوق اچول. ﴿بدنة﴾ ځاروی. ﴿سوق﴾ د ضرب مصدر دی: شړل، بیول. ﴿یربط﴾ د ضرب مضارع ده: تړل. ﴿عنق﴾ غاړه. ﴿قطعة﴾ ټوټه، ټوکره. ﴿عروة﴾ د نیولو ځای، لاسی. ﴿مزادة﴾ بدنۍ، لوټه، د سفر د سامان د اېښوولو لوښی. ﴿لحاء﴾ د درختې سرپرن پوستکی.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که یو څوک د خپلې بدنې غاړې ته رسۍ واچوي، (بدنه که نفلي وي، که د نذر وي، او که د تېر احرام په حالت کې د ښکار کولو په وجه د جرمانې ځاروی وي، یا دم تمتع او داسې نور وي)، او دا سړی د حج په اراده د خپلې بدنې سره د مکې مکرمې و طرف ته هم روان سي، نو دا محرم سو، که په ژبه سره تلبیه ووایي او که نه ووایي، اول دلیل خو دا حدیث دی: من قلد بدنة فقد أحرم.

ولأن سوق الهدی الخ دا عقلي دلیل دی چې حضرت ابراهیم علیه السلام خو ټولو انسانانو ته د حج بلنه ورکړه (لکه مخکې چې ذکر سوه)، او تلبیه خلک د هغه په جواب کې وایي، چې "موږ د حج لپاره حاضر یو". لیکن دا تلبیه چې څرنګه په قول سره ده، همدارنګه کله نا کله په فعل سره هم وي، یعني داسې حرکت کول هم د تلبیې په معنیٰ دی چې

[1] تخریج: أخرجه ابن أبي شیبه في مصنفه، باب في الرجل يقلد أو يجلل، حدیث رقم: ۱۲۷۱۱.

له هغه شخصه "په حج کي د حاضرېدلو" خبره معلومه سي؛ او هدي ته طوق اچول د دې خبرې علامه ده چي هغه حج يا عمرې ته حاضرېږي، بل کار نه کوي، نو ځکه وويل سوه چي که د حج يا د عمرې په نيت سره ښاروي ته طوق واچوي، نو محرم کرځي.

وصفة التقليد الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د طوق او رسۍ اچولو صورت او طريقه ده دا چي انسان د خپلې بدنې په غاړه کي د څپلۍ يوه ټوټه راوځړوي، يا د هغې په غاړه کي د لوټې (يا يو لوښي) لاسۍ يا د درختي پوستکی را وځړوي، ځکه چي په دې سره دا ښاروی د الله ﷻ لپاره خاص کيږي. او بيا هيڅوک کار نه په لري. ځکه خلکو ته معلومه سي چي دا د بُدنې يعني د حج ښاروی دی.

## حج ته له روانېدلو څخه بغير د بدنې (ښاروي) استولو حکم

فَإِنْ قَلَّدَهَا بيا که هغه بدنې ته طوق واچوي وَبَعَثَ بِهَا او (مکې مکرمې) ته يې واستوي وَلَمْ يَسُقْهَا (لېکن) په خپله يې نه بوځي لَمْ يَصِرْ مُحْرِمًا نو محرم نه کرځي لِمَا رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَىٰ عَنْهَا ځکه له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت دی أَنَّهَا قَالَتْ: كُنْتُ أَفْتِلُ[1] قَلَائِدَ هَدْيِ رَسُولِ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ هغه فرمايي: "ما به د نبي ﷺ د هدي طوقونه وودل (يعني ما به د نبي ﷺ د هدي د طوق لپاره رسۍ وودله) فَبَعَثَ بِهَا وَأَقَامَ فِي أَهْلِهِ حَلَالًا بيا به نبي ﷺ هدی واستوله او په خپل کور کي به د حلال والي په حالت کي پاته سو" فَإِنْ تَوَجَّهَ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمْ يَصِرْ مُحْرِمًا بيا که تر هغه وروسته په خپله (هم) روان سو نو محرم نه کرځي حَتّٰى يُلْحِقَهَا تر څو چي د هدي د ښاروي سره يو ځای نه سي لِأَنَّ عِنْدَ التَّوَجُّهِ إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ يَدَيْهِ هَدْيٌ يَسُوقُهُ ځکه د روانېدلو په وخت کي چي کله د هغه مخته هدی نه وي چي وربې شري (يعني هدی ور سره نه وي چي هغه بوزي) لَمْ يُوجَدْ مِنْهُ إِلَّا مُجَرَّدَ النِّيَّةِ نو (په دې وخت کي) د هغه له طرفه فقط نيت پيدا سو وَبِمُجَرَّدِ النِّيَّةِ لَا يَصِيرُ مُحْرِمًا او يوازي په نيت سره محرم نه کرځي فَإِذَا أَدْرَكَهَا وَسَاقَهَا أَوْ أَدْرَكَهَا بيا که هدی (په لاره کي) پيدا کړي (يعني ور سره يو ځای سي) او وربې شري (يعني هدی بوزي) يا يې (فقط) پيدا کړي فَقَدِ اقْتَرَنَتْ نِيَّتُهُ بِعَمَلٍ هُوَ مِنْ خَصَائِصِ الْإِحْرَامِ نو د هغه نيت د داسي عمل سره يو ځای سو چي هغه عمل د احرام له خصوصياتو څخه دی فَيَصِيرُ مُحْرِمًا نو محرم به کرځي كَمَا لَوْ سَاقَهَا فِي الْإِبْتِدَاءِ لکه (په هغه وخت کي چي محرم کرځي) چي په شروع کي يې بوزي قَالَ: إِلَّا فِي بُدْنَةِ الْمُتْعَةِ فرمايي: مګر د تمتع په بدنه کي فَإِنَّهُ مُحْرِمٌ حِينَ تَوَجَّهَ ځکه چي (په هغې کي صرف) په روانېدلو سره محرم کرځي مَعْنَاهُ إِذَا نَوَى الْإِحْرَامَ مطلب دا چي کله (د روانېدلو په وخت کي) د احرام نيت وکړي وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَجْهُ الْقِيَاسِ فِيهِ مَا ذَكَرْنَا د قياس وجه په دې کي هغه ده کوم چي موږ ذکر کړه وَوَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ او د استحسان وجه دا ده أَنَّ هٰذَا الْهَدْيَ مَشْرُوْعٌ عَلٰى

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب تقليد الغنم، حديث رقم: ١٧٠٣.

الْإِبْتِدَاءِ نُسُكًا مِنْ مَنَاسِكِ الْحَجِّ وَضْعًا چي دا هدی(یعني د تمتع هدی) له شروع څخه د حج په عبادتونو کي د یو عبادت په توګه مشروع ده لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِمَكَّةَ ځکه چي دا هدی د مکې (مبارکي) سره خاص ده وَيَجِبُ شُكْرًا لِلْجَمْعِ بَيْنَ أَدَاءِ النُّسُكَيْنِ او د حج د دوو عبادتونو(یعني د حج او د عمرې) د جمع کولو په وجه د شکرانې په توګه واجب ده وَغَيْرُهُ قَدْ يَجِبُ بِالْجِنَايَةِ او له تمتع(او قران) څخه علاوه(نوري هدي) کله د جنایت کولو په وجه واجبیږي وَإِنْ لَمْ يَصِلْ إِلَى مَكَّةَ که څه هم هغه مکې ته نه ورسیږي فَلِهَذَا اكْتَفَى فِيهِ بِالتَّوَجُّهِ نو ځکه په دې کي په روانېدلو اکتفاء وسوه وَفِي غَيْرِهِ تَوَقَّفَ عَلَى حَقِيقَةِ الْفِعْلِ او په نورو هدیو کي به د فعل پر حقیقت هدی موقوفه وي.

**اللغات:** ﴿اقتل﴾ د نصر واحد متکلم مضارع صیغه ده: وودل(اوبدل)، ﴿هدی﴾ د حج د قرباني څاروی، ﴿بدنة المتعة﴾ د حج تمتع څاروی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو چا د هدي څاروي ته طوق واچوی او د مکې مکرمې ته یې واستوی، خو په خپله یې نه بوتی، بلکي په کور کي مقیم پاته سو، نو هغه په دې سره نه محرم کیږي، دلیل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حدیث دی، هغه فرمایي چي ما به د نبي ﷺ د هدي طوق جوړ کړی، او نبي ﷺ به هغه د هدي په غاړه کړی او هدی به یې مکې ته واستوله، او په خپله به د مخکي مطابق په کور کي حلال پاته سو، له دې څخه معلومیږي چي د محرم کېدلو لپاره فقط د هدي څاروی استول کافي نه دي. بلکي هغه په خپله بیول ضروري دي، او که د هدي تر استولو وروسته په خپله روان سو نو فقط په روانېدلو سره هم نه محرم کیږي، بلکي هغه وخت محرم کیږي چي د هدي سره یو ځای سي، ځکه چي د روانېدلو په وخت کي د هغه مخته هیڅ هدی نه وي چي هغه یې بوزي او ورپې شړي، نو کله چي د هغه سره هیڅ هدیه نه وي، نو د هغه له طرفه صرف نیت پیدا سو، او صرف په نیت سره هغه نه محرم کیږي، تر څو چي د هغه سره د هدي څاروی نه وي، هو! که د هدي د څاروی سره یو ځای سو، او هغه یې روان کړی، یا یې فقط پیدا کړی نو د هغه نیت د یو داسي عمل سره متصل سو کوم چي د احرام له خصوصیاتو څخه دی، نو ځکه به هغه په دې عمل سره محرم کیږي، لکه څرنګه چي په شروع کي هم د هدي په روانولو او بیولو سره محرم کیږي.

إلا في بدنة الخ امام محمد رَحِمَهُ الله یو استثنائي صورت بیانوي فرمایي چي د تمتع او قران له هدیو څخه علاوه د نورو هدیو حکم دا دی چي که هدی واستوي او وروسته په خپله روان سي، نو په روانېدلو سره نه محرم کیږي، تر دې چي د هدي سره یو ځای نه سي، لیکن د تمتع د هدي حکم دا دی چي که هدي واستوي، او بیا روان سي. نو صرف په روانېدلو سره محرم کیږي، په دې شرط چي د احرام نیت وکړي، دا حکم استحساني دی، کنې قیاس هغه دی چي په محض روانېدلو سره نه محرم کیږي، لکه په نورو هدیو کي چي دا حکم دی.

وجه القیاس الخ صاحب د هدایې فرمایي چي د قیاس دلیل موږ مخکي بیان کړی. د استحسان دلیل دا دی چي د تمتع او قران هدی له شروع څخه د شرعي وضعي په اعتبار سره د حج د افعالو یو فعل دی، د حج فعل ځکه دی چي دا هدی د مکې سره خاص ده، او هلته د هغې رسول ضروري دي، همدارنګه د دوو نعمتونو یعني د حج او د عمرې د یو ځای کولو لپاره د شکرانې په توګه دا هدی واجب سوې ده، نو ځکه په دې کي فقط په روانېدلو اکتفاء وسوه، لیکن له دې څخه علاوه په نورو هدیو کي کوم چي د جنایت او داسي نورو په واجب سوي وي مکې ته رسول ضروري نه دي، نو ځکه به د

تمتع او قران له هدي څخه علاوه نوري هدي د فعل پر حقيقت يعني پر سوق(بېولو او روانېدلو) موقوف وي، يعني کله چي د هدي سره يو ځای او هدی روانه کړي، نو بيا به محرم کيږي.

## پر څاروي د زل(ځل) اچولو او د إشعار په ذريعه د محرم والي بيان

فَإِنْ جَلَّلَ بَدَنَةً او که يو څوک پر بدنه زل واچوي أَوْ أَشْعَرَهَا يا هغه شعار کړي أَوْ قَلَّدَ شَاةً يا بزې(وزې) ته طوق واچوی لَمْ يَكُنْ مُحْرِمًا نو نه محرم کيږي لِأَنَّ التَّجْلِيلَ لِدَفْعِ الْحَرِّ وَالْبَرْدِ وَالذِّبَّانِ ځکه چي زل اچول د ګرمۍ، يخ او مچيانو ليري کولو لپاره دي فَلَمْ يَكُنْ مِنْ خَصَائِصِ الْحَجِّ نو ځکه به د حج له خصوصياتو څخه نه وي.

**اللغات:** ﴿جلل﴾ د تفعيل ماضي ده: پر څاروي زل (خورجين) اچول. ﴿اشعار﴾ د څاروي بوک څيرل او وينه را ايستل، د جاهليت په زمانه کي به ډاکوګان ډېره ول، نو ځکه به حاجي خپله بدنه شعار کوله چي دا نښان تر ډېره پاته سي او هيڅوک تکليف ور نه کړي، او طوق به يې ځکه نه ور اچوی چي هغه ژر پرېکېدی. ﴿ذبان﴾ جمع د ذباب ده: مچيان.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړي پر بدنې زل واچوی، يا يې د بدنې بوک څيري کړی، يا يې بزې ته طوق واچوی، او بدنه يا بزه يې مکې ته روانه کړه، نو په دې صورتونو کي نه محرم کيږي، که څه هم د احرام نيت وکړي، ځکه چي زل کله نا کله د يخ او د ګرمۍ د ليري کولو لپاره پر اچول کيږي، لهذا دا عمل د حج له خصوصياتو څخه نه سو، حال دا چي د احرام هغه نيت به معتبر وي، چي د داسي عمل سره يو ځای سي چي هغه د حج له خصوصياتو څخه وي.

## د اشعار شرعي حيثيت

وَالْإِشْعَارُ مَكْرُوهٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او اشعار د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مکروه دی فَلَا يَكُونُ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ نو ځکه به د حج له عبادتونه څخه نه وي وَعِنْدَهُمَا إِنْ كَانَ حَسَنًا فَقَدْ يُفْعَلُ لِلْمُعَالَجَةِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز که څه هم اشعار ښه دی لېکن کله نا کله د علاج لپاره هم کيږي(نو ځکه به د حج له خصوصياتو او عبادتونو څخه نه وي) بِخِلَافِ التَّقْلِيدِ په خلاف د طوق اچولو لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْهَدْيِ ځکه چي هغه د هدي سره خاص دی وَتَقْلِيدُ الشَّاةِ غَيْرُ مُعْتَادٍ او بزې ته طوق اچول (د خلکو) عادت نه دي وَلَيْسَ بِسُنَّةٍ أَيْضًا او سنت هم نه دي (نو ځکه به دا هم د حج خصوصيت نه وي).

**اللغات:** ﴿اشعار﴾ د اشعار تفصيلي معنیٰ د تېر عبارت په ضمن کي ذکر سوه. ﴿غير معتاد﴾ غيرِ عادت، غيرِ معروف.

**تشريح:** صاحب د هدايې فرمايي چي په اشعار کولو سره انسان ځکه نه محرم کيږي چي اشعار د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مکروه دی، او کوم فعل چي مکروه وي، نو هغه د حج له افعالو څخه نسي کېدلای، او کله چي اشعار د حج فعل نه سو، نو د هغه په کولو سره به انسان څرنګه محرم کيږي؟ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز که څه هم اشعار مباح او ښه دی، لېکن کله نا کله د څاروي د علاج لپاره هم اشعار کيږي، نو ځکه به د حج له خصوصياتو څخه نه وي، حال دا چي د محرم والي لپاره د حج د يو ځانګړي او مخصوص عمل سره د نيت اتصال ضروري دي.

بخلاف التقليد الخ د دې په خلاف د تقليد يعني ځاروي ته د طوق اچولو مسئله ده، ځکه چې دا عمل صرف د هدي سره خاص دی، يعني د حج يو مخصوص عمل دی.

وتقليد الشاة الخ دا عبارت د يو سوال جواب دی، سوال دا دی چې کله تقليد د حج يو مخصوص عمل دی، نو بزې ته په طوق اچولو سره انسان بايد محرم سي، حال دا چې په دې سره انسان نه محرم کيږي، جواب ورکوي چې د بزې تقليد يعني بزې ته طوق اچول نه عادت دي، او نه له حديثو څخه ثابت دي، بلکې تقليد فقط د بدنې يعني د اوښ او غوا سره خاص دی، نو ځکه به بزې ته په طوق اچولو سره انسان نه محرم کيږي.

## بُدنه کومو ځارويانو ته ويل کيږي؟

قَالَ: وَالْبُدْنُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: او بدنې له اوښ او غوا (دواړو) څخه راځي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: مِنَ الْإِبِلِ خَاصَّةً او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې بدنې خاص له اوښ څخه راځي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[●] فِي حَدِيثِ الْجُمُعَةِ ځکه نبي ﷺ د جمعې په حديث کې فرمايلي دي فَالْمُسْتَعْجِلُ مِنْهُمْ كَالْمُهْدِي بُدْنَةً "چې په خلکو کې (د جمعې لمانځه ته) ژر راتلونکی سړی د بدنې د هدي د استونکي په ډول دی وَالَّذِي يَلِيهِ كَالْمُهْدِي بَقَرَةً او کوم چې د هغه سره جوخت (متصل راځي) هغه د غوا د هدي د استونکي په ډول دی" فَصَلَ بَيْنَهُمَا (وګورئ!) نبي ﷺ د بدنې او د غوا په مينځ کې فرق کړی دی وَلَنَا أَنَّ الْبُدْنَةَ تُنْبِئُ عَنِ الْبَدَانَةِ او زموږ دليل دا دی چې بدنه خبر ورکوي د بدانت وَهِيَ الضَّخَامَةُ او بدانت غټوالي (او لوی والي) ته ويل کيږي وَقَدِ اشْتَرَكَا فِي هَذَا الْمَعْنَى او اوښ او غوا دواړه په دې معنیٰ کې مشترک دي وَلِهَذَا يُجْزِئُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَنْ سَبْعَةٍ همدا وجه ده چې له دواړو څخه هر يو (داختر په قرباني کې) د اوو (۷) خلکو له طرفه کافي کيږي وَالصَّحِيحُ مِنَ الرِّوَايَةِ فِي الْحَدِيثِ كَالْمُهْدِي جُزُورًا او (په کتاب کې د بيان سوي حديث) صحيح روايت کالمهدي جزورا دی وَاللهُ تَعَالَى أَعْلَمُ او (په صحيح خبره) الله ښه خبر دی.

اللغات: ﴿إبل﴾ اوښ، ﴿بقر﴾ غوا، ﴿مستعجل﴾ د استفعال اسم فاعل دی: تلوار کونکی، ﴿مهدي﴾ د افعال اسم فاعل دی: هديه ورکونکی، هدی استونکی، ﴿تنبئ﴾ د افعال مضارع ده: خبر ورکول، ﴿بدانة﴾ غټ جسم والا کېدل، غټ کېدل، ﴿ضخامة﴾ غټوالی، پلنوالی، پنډوالی، ﴿جزور﴾ اوښ.

---

[●] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجمعة، باب فضل الجمعة، حديث رقم: ٨٨١.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په بدنه کي اوښ او غوا دواړه مشترک دي. او پر دواړو د بدنې اطلاق کيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د بدنې اطلاق فقط پر اوښ کيږي.

**د امام شافعي دليل**: د جمعې حديث دی چي په هغه کي دا حکم هم ذکر سوی دی: فالمستعجل منهم كالمهدي بدنة والذي يليه كالمهدي بقرة (يعني د جمعې د لمانځه لپاره اول راتلونکی سړی په ثواب کي د هغه سړي په ډول دی چي د اوښ هدی یې مکې ته استولې وي او تر هغه وروسته راتلونکی سړی د هغه سړي په ډول دی چي د غوا هدی یې استولې وي)، په دې حديث کي د بدنې او غوا په مينځ کي فرق سوی دی، نو معلومه سوه چي غوا له بدنې څخه علاوه جلا شی دی.

**زموږ دليل**: دا دی چي د بدنې لغوي معنیٰ ده: بدانت يعني غټوالی، مطلب دا چي د غټ بدن او جسم والا څاروي ته بدنه ويل کيږي. او دا معنیٰ په اوښ او غوا دواړو کي سته. نو ځکه به د بدنې اطلاق پر دواړو کيږي، همدا وجه ده چي په قرباني کي اوښ او غوا هر يو د اوو [۷] خلکو له طرفه کافي کيږي.

والصحيح الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث جواب دا دی چي د دې حديث په صحيح روايت کي د كالمهدى بدنة پر ځای كالمهدى جزوراً راغلي دی، او جزور اوښ ته ويل کيږي. يعني څوک چي اول جامع مسجد ته راسي هغه ته به د اوښ په اندازه ثواب رسيږي. او څوک چي تر هغه وروسته راسي هغه ته به د غوا په اندازه ثواب رسيږي. نو نبي ﷺ د اوښ او غوا په مينځ کي فرق کړی دی، نه د بدنې او غوا په مينځ کي. والله أعلم بالصواب



# بَابُ الْقِـــرَانِ

## دا باب د (حجِ) قران په بيان کي دی

**تشریح**: تر دې مخکي صاحب د هدايې د مفرد حج (يعني د حجِ إفراد) او د منفرد حاجي احکام بيان کړل، اوس له دې ځايه د مرکب حج احکام بيانوي، او څرنګه چي مفرد له مرکب څخه مخکي وي، نو ځکه يې د مفرد حج احکام مخکي ذکر کړل، او حجِ قران ځکه مخکي بيانوي چي زموږ په نېز د حج له دريو سره قسمونو څخه يعني له إفراد، تمتع او قِران څخه تر ټولو افضل حجِ قِران دی، نو په دې وجه د مرکب حج په بيان کي حجِ قران تر حجِ تمتع مخکي بيانوي.

ښکاره دي وي چي قِران د ضرب د باب قَرَنَ يَقْرِنُ مصدر دی، لغوي معنیٰ يې ده: يو ځای کول، جمع کول، او د شريعت په اصطلاح کي په يوه احرام سره د حج او د عمرې دواړو اداء کولو ته قِران ويل کيږي.

## د حج "قِران" حيثيت او کوم حج افضل دی؟

اَلْقِرَانُ أَفْضَلُ مِنَ التَّمَتُّعِ وَالْإِفْرَادِ قِران له تمتع او افراد څخه افضل دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: اَلْإِفْرَادُ أَفْضَلُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې افراد افضل دی وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: اَلتَّمَتُّعُ أَفْضَلُ مِنَ الْقِرَانِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چې تمتع له قِران څخه افضل دی لِأَنَّ لَهُ ذِكْرًا فِي الْقُرْآنِ ځکه چې په قرآن کې د تمتع ذکر سته وَلَا ذِكْرَ لِلْقِرَانِ فِيهِ (لېکن) د قِران ذکر په قرآن کې نشته وَلِلشَّافِعِيِّ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: اَلْقِرَانُ رُخْصَةٌ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: "چې قِران رخصت دی" وَلِأَنَّ فِي الْإِفْرَادِ زِيَادَةَ التَّلْبِيَةِ وَالسَّفَرِ وَالْحَلْقِ او ځکه چې په افراد کې د تلبيې، سفر او حلق زياتوب سته (يعني په إفراد کې تلبيه، سفر او حلق زيات سوي دي) وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: يَا آلَ مُحَمَّدٍ[2] أَهِلُّوا بِحَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ مَعًا او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: اې آلِ محمد! "تاسو د حج او عمرې دواړو احرام يوځای وتړئ" وَلِأَنَّ فِيهِ جَمْعًا بَيْنَ الْعِبَادَتَيْنِ او ځکه چې په دې کې دوه عبادتونه جمع کيږي فَأَشْبَهَ الصَّوْمَ مَعَ الْإِعْتِكَافِ نو دا د روژې او د اعتکاف د جمع کولو سره مشابه سو وَالْحِرَاسَةَ فِي سَبِيلِ اللهِ مَعَ صَلَاةِ اللَّيْلِ او د الله په لار کې د پيره دارۍ او د تهجد د جمع کولو سره مشابه سو وَالتَّلْبِيَةُ غَيْرُ مَحْصُورَةٍ او د تلبيې څه اندازه معلومه نه ده وَالسَّفَرُ غَيْرُ مَقْصُودٍ او سفر غير مقصود دی وَالْحَلْقُ خُرُوجٌ عَنِ الْعِبَادَةِ او حلق له عبادت څخه وتل دي (يعني سر خريل له حج څخه د وتلو لپاره دي) فَلَا يَتَرَجَّحُ بِمَا ذُكِرَ نو په ذکر سوو شيانو سره به افراد نه راجح کيږي وَالْمَقْصُودُ بِمَا رُوِيَ نَفْيُ قَوْلِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث مقصد د جاهليت د دې قول نفي کول دي إِنَّ الْعُمْرَةَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ مِنْ أَفْجَرِ الْفُجُورِ "چې د حج په مياشتو کې عمره کول غټه ګناه ده" وَلِلْقِرَانِ ذِكْرٌ فِي الْقُرْآنِ او په قرآن پاک کې د قِران ذکر هم سته لِأَنَّ الْمُرَادَ مِنْ قَوْلِهِ تَعَالَى وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ [البقرة: ۱۹۶] ځکه د الله تعالىٰ له دې قول وأتموا الحج والعمرة لله څخه مراد دا دي أَنْ يُحْرِمَ بِهِمَا مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهِ چې هغه له خپل کور څخه د حج او عمرې دواړو احرام وتړي عَلَى مَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې موږ روايت کړل ثُمَّ فِيهِ تَعْجِيلُ الْإِحْرَامِ بيا په قِران کې د احرام تعجيل دی وَاسْتِدَامَةُ إِحْرَامِهِمَا مِنَ الْمِيقَاتِ إِلَى أَنْ يَفْرُغَ مِنْهُمَا او د دواړو احرام له ميقات څخه تر هغه وخته (مسلسل) پاتيږي چې له دواړو څخه فارغه سي وَلَا كَذَلِكَ التَّمَتُّعُ او تمتع داسې نه دی فَكَانَ الْقِرَانُ أَوْلَى مِنْهُ نو ځکه به قِران له تمتع څخه افضل وي وَقِيلَ الْإِخْتِلَافُ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ بِنَاءٌ عَلَى او ويل سوي دي چې زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په مېنځ کې اختلاف پر دې (خبره) مبني دی أَنَّ الْقَارِنَ

---

[1] تخريج: قال الزيلعي هذا الحديث غريب جداً لم أجده.

[2] تخريج: أخرجه الطحاوي في شرح معاني الآثار ج: ۱، ص: ۳۷۹.

عِنْدَنَا يَطُوْفُ طَوَافَيْنِ وَيَسْعَى سَعْيَيْنِ چي زموږ په نيز به قارن دوه طوافه او دوې سعي کوي وَعِنْدَهُ طَوَافًا وَاحِدًا وَسَعْيًا وَاحِدًا امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به يو طواف او يوه سعي کوي.

**اللغات:** ﴿اهلوا﴾ دافعال جمع امر حاضر معلوم دی: د احرام نيت وکړئ، تلبيه وواياست. ﴿غير محصورة﴾ بې شمېره، بې اندازې. ﴿أفجر﴾ اسم تفضيل دی: ډېر بد، ډېره غټه ګناه. ﴿دوبرا﴾ کوږ. ﴿استدامة﴾ د استفعال مصدر دی: باقي ساتل.

**تشريح:** د حج درې قسمه دي: (۱) افراد، (۲) قران، (۳) تمتع، د دوی په افضيلت کي اختلاف دی، نو فرمايي چي زموږ په نيز قران افضل دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز افراد افضل دی، او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز تمتع افضل دی.

**د اما م مالک دليل:** دا دی چي په سپېڅلي قرآن کي د تمتع ذکر سوی دی فمن تمتع بالعمرة إلى الحج، او د قِران ذکر نسته، او دا خبره تسليم سوې ده چي کوم شی په قرآن کي ذکر سوی وي، هغه به افضل وي په نسبت و هغه ته چي په قرآن کي ذکر سوی نه وي.

**د امام شافعي دليل:** د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی: القران رخصة والإفراد عزيمة. (يعني قران رخصت دی، افراد عزيمت دی)، او ښکاره ده چي عزيمت اختيارول غوره دي په نسبت د رخصت و اختيارولو ته، نو ثابته سوه چي افراد افضل دی، دويم دليل دا دی چي په حجِ افراد کي تلبيه، سفر او حلق درې سره زيات سوي دي، په دې توګه چي قارن د حج او عمرې دواړو لپاره يو سفر کوي، د دواړو لپاره يوه تلبيه وايي، او د دواړو لپاره يو ځل سر خريي، او مفرد ديوازي حج لپاره سفر کوي، او ديوازي حج تلبيه وايي او سر خريي.

**زموږ دليل:** دا دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي: "اې د محمد ﷺ کورنی! تاسو د حج او عمرې دواړو احرام يو ځای تړئ"، غور وکړئ چي د الله رسول ﷺ خپل اولاد ته دا حکم کړی دی چي د حج او عمرې دواړو احرام يو ځای تړئ، او يو ځای د دواړو احرام تړلو ته قران ويل کيږي، نو معلومه سوه چي نبي ﷺ خپل اولاد ته د قران امر کړی دی، او دا هم ښکاره ده چي نبي ﷺ خپل اولاد ته د افضل شي امر کوي، نه د مفضول، لهذا ثابته سوه چي قران افضل دی، دويم دليل دا دی چي د قران په صورت کي دوه عبادتونه يعني حج او عمره دواړه جمع کيږي، نو قران داسي سو لکه يو سړی چي روژه او اعتکاف دواړه جمع کړي، يا يو مجاهد په سنګر کي تهجد هم کوي او پر مجاهدينو پېره هم کوي.

والتلبية الخ د امام شافعي د عقلي دليل جواب دا دی چي د تلبيې هيڅ اندازه معلومه نه ده، نو ځکه قارن ته هم پکار ده چي د مُفرد په مقابله کي زياته تلبيه ووايي، او پاته سو سفر نو هغه مقصود نه دی، مقصود خو حج دی، او سفر د هغه د اداء کولو وسيله ده، لهذا سفر به د ترجيح وجه نه وي، او پاته سو سر خريل نو هغه بنفسه عبادت نه دی، بلکي له عبادت يعني له حج څخه د وتلو لپاره دی، نو ځکه به سر خريل هم د ترجيح وجه نه وي.

والمقصود الخ د امام شافعي د نقلي دليل جواب دا دی چي په دې حديث القران رخصة کي د قران رخصت او د افراد عزيمت بيانول مقصود نه دي، بلکي د جاهليت د زمانې د يوې باطلي عقيدې ترديد کول مقصود دي، هغه عقيده دا وه چي د حج په مياشتو کي عمره کول غټه ګناه ده، نو د الله رسول ﷺ د دې عقيدې په ترديد کي وفرمايل چي دا عقيده غلطه ده، او دا حکم يې وکړی چي قران مطلق رخصت نه دی، بلکي رخصتِ اسقاط دی، او زموږ په شريعت کي به

رخصت اسقاط باندي عمل کول عزيمت دي، لکه د سفر په وخت کي چي په لمانځه کي قصر کول رخصت دي، خو عزيمت نه دي، همداسي به د حج په مياشتو کي عمره نه کول رخصت وي، خو عزيمت به نه وي.

وللقران الخ د امام مالک د دليل جواب ورکوي فرمايي چي د امام مالک دا خبره چي د قِران ذکر په قرآن مجيد کي نسته غلطه ده، ځکه چ د الله تعالى له دې قول وأتموا الحج والعمرة لله څخه همدغه مراد دي چي د حج او عمرې دواړو احرام له خپل کور څخه وتړئ، او قِران هم دا دی چي انسان د حج او عمرې دواړو احرام يو ځای وتړي، نو ګواکي د قران ذکر هم په قرآن پاک کي سته.

ثم فيه الخ له دې ځايه صاحب د هدايې د قِران د ترجيح وجهي بيانوي فرمايي چي څرنګه په قِران کي د عمرې سره د حج احرام هم يو ځای تړل کيږي، نو ځکه به د حج په احرام کي تعجيل او تلوار وي، او تلوارکول بنه صفت دی(تعجيل او تلوار په قران کي ځکه سته چي په قِران کي د حج او عمرې احرام يو ځای تړل کيږي، او له حج او عمرې دواړو څخه تر فراغت وروسته احرام خلاصيږي، نو په دې کي احرام ژر وتړل سو، او تر ډېره پوري پاته سو، ليکن په تمتع کي اول فقط د عمرې احرام تړل کيږي، او له عمرې څخه تر فراغت وروسته احرام خلاصيږي، بيا د ذو الحجې په اتمه ورځ د حج احرام تړل کيږي، نو په دې کي خو يو د حج احرام وځنډول سو، او بل تر ډېره پوري پاته نه سو)، نو په دې وجهو به قِران افضله وي.

وقيل الخ فرمايي چي د بعضي حضراتو رايه دا ده چي زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په مينځ کي چي د قِران او د افراد د افضيلت په باره کي کوم اختلاف دی، هغه پر دې خبره مبني دی چي زموږ په نېز به قارن دوه طوافه او دوې سعي کوي(يعني د عمرې لپاره به جلا طواف او جلا سعی کوي، او د حج لپاره به جلا عمره او جلا سعی کوي)، ليکن د شوافعو په نېز به يو طواف او يوه سعی کوي(يعني د عمرې او حج دواړو لپاره به يو طواف او يوه سعی کوي، جلا جلا به يې نه کوي)، نو کله چي په افراد کي هم يو طواف يوه سعی ده، او په قِران کي هم يوه طواف او يوه سعی ده، نو بيا به د قِران په نسبت افراد افضل وي، ځکه چي په دې اعتبار سره په قِران کي دوه عبادتونه يو ځای اداء کيږي، او اعمال د يوه عبادت اداء کيږي کيږي، نو ځکه به د دواړو يعني د حج او د عمرې له يو ځای اداء کولو څخه دواړه جلا جلا اداء کول غوره وي.

## د حجِ "قِران" طريقه

قَالَ: وَصِفَةُ الْقِرَانِ أَنْ يُهِلَّ بِالْعُمْرَةِ وَالْحَجِّ مَعًا مِنَ الْمِيقَاتِ فرمايي: او د قِران طريقه دا ده چي له ميقات څخه د عمرې او حج دواړو لپاره يو ځای تلبيه ووايي وَيَقُولُ عَقِيبَ الصَّلَاةِ: اللَّهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهُمَا لِي وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّي او تر لمانځه وروسته (داسي) ووايي: اې الله! زه د حج او عمرې اراده کوم نو دواړه زما لپاره آسانه کړه لِأَنَّ الْقِرَانَ هُوَ الْجَمْعُ بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ ځکه چي قِران د حج او د عمرې سره جمع کول دي مِنْ قَوْلِكَ قَرَنْتُ الشَّيْءَ بِالشَّيْءِ (چي هغه) ستا له دې قول قرنت الشئ بالشئ څخه مشتق دی إِذَا جَمَعْتَ بَيْنَهُمَا (دا جمله هغه وخت ويل کيږي) چي کله ته دوه شيان سره يو ځای کړې وَكَذَا إِذَا أَدْخَلَ حَجَّةً عَلَى عُمْرَةٍ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ لَهَا أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ او همدارنګه چي کله داخل کړي حج په عمره باندي مخکي تر دې چي د عمرې لپاره څلور دوره طواف وکړي(نو دا به هم قران وي) لِأَنَّ الْجَمْعَ قَدْ تَحَقَّقَ ځکه جمع کېدل خو ثابت سو إِذِ الْأَكْثَرُ مِنْهَا قَائِمٌ ځکه چي له اوو(٧) دورونو څخه اوس (هم) زياتره پاته

دي وَمَتٰى عَزَمَ عَلٰى أَدَائِهِمَا يَسْأَلُ التَّيْسِيْرَ فِيْهِمَا او كله چي د دواړو د اداء كولو اراده وكړي نو د دواړو د آسانۍ لپاره به دعاء وكړي وَقَدَّمَ الْعُمْرَةَ عَلَى الْحَجِّ فِيْهِ او په اداء كولو كي به عمره پر حج مخكي كړي وَكَذٰلِكَ يَقُوْلُ: لَبَّيْكَ بِعُمْرَةٍ وَحَجَّةٍ مَعًا او داسي به ووايي: لبيك بعمرة وحجة معًا (يعني عمره او حج دواړه به يو ځای ذکر کړي خو عمره به اول ذکر کړي) لِأَنَّهُ يَبْدَأُ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ ځكه چي هغه (مخكي) د عمرې په افعالو شروع كوي فَكَذٰلِكَ يَبْدَأُ بِذِكْرِهَا نو د هغې په ذكر به هم (اول) شروع كوي وَإِنْ أَخَّرَ ذٰلِكَ فِي الدُّعَاءِ وَالتَّلْبِيَةِ او كه هغه په دعاء او تلبيه كي عمره وځنډوي لَا بَأْسَ بِهِ نو (هم) څه حرج نسته لِأَنَّ الْوَاوَ لِلْجَمْعِ ځكه چي واو د جمعي لپاره راځي وَلَوْ نَوٰى بِقَلْبِهِ او كه هغه په زړه كي نيت وكړي وَلَمْ يَذْكُرْهُمَا فِي التَّلْبِيَةِ او په تلبيه كي حج او عمره ذكر نه كړي أَجْزَأَهُ نو دا (هم) د هغه لپاره كافي دي اِعْتِبَارًا بِالصَّلَاةِ په لمانځه باندي په قياسولو سره.

**اللغات:** ﴿قرنت﴾ يو ځای كول. ﴿عزم﴾ پخه اراده كول. نيت ترل.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قران طريقه او كيفيت دا دی چي قران كونكي دي له ميقات څخه د حج او عمرې دواړو لپاره يو ځای احرام وتړي او تلبيه دي ووايي. او د احرام تر لمانځه وروسته دي دا دعاء وكړي: "اې الله! زه د حج او عمرې اراده لرم، ته زما لپاره دواړه آسانه كړې. او زما څخه يې قبول كړې. دليل دا دی چي قران يعني حج او عمره جمع كول له قرنت الشئ بالشئ څخه راخيستل سوی دی، دا محاوره هغه وخت ويل كيږي چي كله ته دوه شيان يو ځای سره جمع كړې.

وكذا الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي كه يو سړي فقط د عمرې احرام وتړي او د طواف له اوو (٧) دورونو (شوطونو) څخه صرف درې دوره پوره كړي، بيا د حج نيت وكړي، نو بيا هم دا سړی قارن گرځي، او د هغه حج به حج قران وي، ځكه چي تر اوسه لا د طواف زيات دورونه پاته دي، نو اكثر به د كُل قائم مقام كيږي او ويل كيږي به چي تر اوسه يې د عمرې طواف نه دی كړی، او كله چي يې د عمرې طواف كړی نه دي، نو د عمرې او د حج دواړو جمع كول متحقق سو، او د دواړو جمع كولو ته قِران ويل كيږي، لهذا په دې صورت كي به هم قران متحقق كيږي.

ومتٰى عزم الخ او كله چي د دواړو د اداء كولو اراده وكړي، نو د دوی د آسانۍ لپاره دي دعاء وكړي، او د عمرې افعال دي مخكي اداء كړي او د حج افعال دي وروسته اداء كړي، او په تلبيه كي دي داسي ووايي: لبيك بعمرة وحجة معًا، يعني عمره او حج دواړه به يو ځای ذكر كړي، لېكن په ذكر كي به عمره مخكي كړي. ځكه د قران په صورت كي چي كله شروع د عمرې په افعالو كيږي، نو په ذكر كي به هم هغه مخته كيږي، لېكن كه د دې باوجود يې په دعاء او تلبيه كي عمره وځنډله نو هيڅ پروا نه لري، ځكه چي په بحجة وعمرة كي واو د جمع لپاره دی، خو عمره مخكي كول اولیٰ دي، ځكه چي د الله تعالیٰ په دې قول فمن تمتع بالعمرة إلى الحج كي هم عمره مخكي ذكر سوې ده.

ولونوى الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي که يو سړي په زړه سره نيت وکړي، او په ژبه سره يې په تلبيه کې حج او عمره ذکر نه کړل، نو هم جائز دي، لکه په لمانځه کې چې په ژبه سره نيت کول شرط نه دي. همداسې به دلته هم په ژبه سره نيت کول شرط نه وي.

## قارن حاجي چې کله مکې ته داخل سي نو کوم اعمال به کوي؟

فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ بيا چې کله قارن مکې ته داخل سي اِبْتَدَأَ وَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو (د حج افعال دي) شروع کړي او پر کعبه دې اووه دوره طواف وکړي يَرْمُلُ فِي الثَّلَاثِ الْأُوَلِ مِنْهَا له هغو څخه به په اولو دريو کې رمل وکړي وَيَسْعٰى بَعْدَهَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ او تر هغه وروسته به د صفا او مروه په مينځ کې سعى وکړي وَهٰذِهِ أَفْعَالُ الْعُمْرَةِ او دا د عمرې افعال دي ثُمَّ يَبْدَأُ بِأَفْعَالِ الْحَجِّ بيا به د حج افعال شروع کړي فَيَطُوفُ طَوَافَ الْقُدُومِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو اووه دوره به طواف قدوم وکړي وَيَسْعٰى بَعْدَهُ او تر هغه وروسته به سعى وکړي كَمَا بَيَّنَّا فِي الْمُفْرِدِ لکه مونږ چې په مفرد بالحج کې بيان کړل وَيُقَدِّمُ أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ او د عمرې افعال به مخکې کړي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ [البقرة: ۱۹۶] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "څوک چې په عمره تمتع وکړي تر حجه پورې" وَالْقِرَانُ فِي مَعْنَى الْمُتْعَةِ او قران د تمتع په معنیٰ کې دی وَلَا يَحْلِقُ بَيْنَ الْعُمْرَةِ وَالْحَجِّ او د عمرې او حج په مينځ کې به سر نه خريي لِأَنَّ ذٰلِكَ جِنَايَةٌ عَلٰى إِحْرَامِ الْحَجِّ ځکه چې حلق د حج پر احرام جرم دی وَإِنَّمَا يَحْلِقُ فِي يَوْمِ النَّحْرِ بلکې د لوى اختر په ورځ به سر خريي كَمَا يَحْلِقُ الْمُفْرِدُ لکه څرنګه چې مفرد (هم د لوى اختر په ورځ) سر خريي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې قارن کله مکې مبارکې ته داخل سي، نو طواف قدوم دې نه کوي. بلکې د عمرې افعال دې شروع کړي، لهذا اول دې طواف عمره وکړي. او د طواف په درې دورونو کې دې رمل وکړي، تر هغه وروسته دې د صفا او مروه په مينځ کې سعى وکړي، دا خو د عمرې افعال سول. بيا دې د حج افعال شروع کړي، نو د مفرد بالحج په ډول دې اول طواف قدوم وکړي، او تر هغه وروسته دې سعى وکړي، امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې قارن دې د عمرې افعال مخکې اداء کړي او د حج افعال دې وروسته اداء کړي، دا ترتيب له قرآن کريم څخه را اخيستل سوی دی، ځکه الله تعالیٰ هم په دې آيت فمن تمتع بالعمرة إلى الحج کې عمره پر حج مخکې کړې ده، او قران د تمتع په معنیٰ سره دی، يعني په قران او تمتع دواړو کې دوه دوه عبادتونه يعني عمره او حج دواړه په يوه سفر کې جمع سوي دي. نو کوم ترتيب چې په تمتع کې وي هغه ترتيب به په قران کې هم وي (چې هغه د عمرې مخکې کول او د حج وروسته کول دي).

ولايحلق الخ فرمايي قارن دې د عمرې د افعالو تر اداء کولو وروسته حلق يا قصر نه کوي، ځکه چې د عمرې د افعالو تر اداء کولو وروسته هم قارن محرم وي، نو که هغه حلق يا قصر وکړي، نو د حج د احرام په حالت کې به دا جرم سي. او دم به لازم سي، او ښکاره ده چې دا صحيح نه دي، لهذا په يومُ النحر به د مفرد بالحج په ډول حلق يا قصر کوي.

## قارن حاجي په حلق سره حلالیږي، که په ذبحې سره؟

وَيَتَحَلَّلُ بِالْحَلْقِ عِنْدَنَا او زموږ په نيز قارن په حلق سره حلاليږي لَا بِالذَّبْحِ نه په ذبحې سره كَمَا يَتَحَلَّلُ الْمُفْرِدُ لکه څرنګه چي مفرد(په حلق سره) حلاليږي ثُمَّ هٰذَا مَذْهَبُنَا بيا دا زموږ مذهب دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَطُوفُ طَوَافًا وَاحِدًا وَيَسْعٰى سَعْيًا وَاحِدًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي قارن به(د عمرې لپاره يو طواف او يوه سعي كوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ إِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي تر قيامته پوري عمره په حج كي داخله سوه وَلِأَنَّ مَبْنَى الْقِرَانِ عَلَى التَّدَاخُلِ او ځکه چي د قران بنياد پر تداخل دی حَتّٰى اُكْتُفِيَ فِيْهِ بِتَلْبِيَةٍ وَاحِدَةٍ وَسَفَرٍ وَاحِدٍ وَحَلْقٍ وَاحِدٍ تر دې چي په دې کي پر يوه تلبيه، يوه سفر او يوه حلق باندي اكتفاء سوې ده(نو کله چي په دې شيانو کي تداخل وسو) فَكَذٰلِكَ فِي الْأَرْكَانِ نو همداسي به په اركانو كي(هم تداخل كيږي) وَلَنَا أَنَّهُ لَمَّا طَافَ صُبَيُّ بْنُ مَعْبَدٍ طَوَافَيْنِ وَسَعٰى سَعْيَيْنِ او زموږ دليل دا دی چي کله صُبي بن معبد دوه طوافه او دوې سعي وکړې قَالَ لَهُ[2] عُمَرُ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ: هُدِيْتَ لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ نو عمر رضي الله عنه ورته وفرمايل: "تا ته ښوونه وسوه د خپل نبي د طريقې" وَلِأَنَّ الْقِرَانَ ضَمُّ عِبَادَةٍ إِلٰى عِبَادَةٍ او ځکه چي قران يو عبادت د بل عبادت سره يوځای كول دي وَذٰلِكَ إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ بِأَدَاءِ عَمَلِ كُلِّ وَاحِدٍ عَلَى الْكَمَالِ او دا شی هغه وخت ثابتيږي چي د هر يوه عمل په بشپړه توګه اداء سي وَلِأَنَّهُ لَا تَدَاخُلَ فِي الْعِبَادَاتِ او ځکه چي په عبادات (مقصوده وو) كي تداخل نسته وَالسَّفَرُ لِلتَّوَسُّلِ وَالتَّلْبِيَةُ لِلتَّحْرِيْمِ وَالْحَلْقُ لِلتَّحَلُّلِ او سفر د وسيلې (ذريعې) لپاره دی، او تلبيه د تحريم لپاره ده، او حلق د حلالېدلو لپاره دی فَلَيْسَتْ هٰذِهِ الْأَشْيَاءُ بِمَقَاصِدَ نو دا شيان مقصود بالذات نه دي بِخِلَافِ الْأَرْكَانِ په خلاف د اركانو(چي هغه مقصود بالذات دي) أَلَا تَرٰى أَنَّ شَفْعَيِ التَّطَوُّعِ لَا يَتَدَاخَلَانِ آيا ته نه ګوري! چي د نفلي لمونځ دوې شفعي نه سره متداخل كيږي وَبِتَحْرِيْمَةٍ وَاحِدَةٍ يُؤَدَّيَانِ حال دا چي دواړه په يوه تحريمه سره اداء كيږي وَمَعْنٰى مَا رَوَاهُ دَخَلَ وَقْتُ الْعُمْرَةِ فِي وَقْتِ الْحَجِّ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث معنیٰ دا ده چي "د عمرې وخت د حج په وخت كي داخل سو".

**اللغات:** ﴿يتحلّل﴾ د تفعّل مضارع ده: حلالېدل، احرام خلاصول، ﴿تداخل﴾ يو په بل کي داخلېدل، ﴿اكتفي﴾ د افتعال ماضي مجهوله ده: كافي ګڼل، اكتفاء كول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نيز قارن په حلق سره حلاليږي، نه په ذبحې (يعني د څارويو په ...لالولو) سره، مطلب دا چي څرنګه مفرد په حلق سره حلاليږي، همدارنګه به قارن هم په حلق سره حلاليږي، او د قارن لپاره د

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب دخلت العمرة في الحج إلى يوم القيامة، حديث رقم: ۹۳۲.

[2] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب المناسک، باب في القران، حديث رقم: ۱۷۹۸.

عمرې او د حج د افعالو د جلا جلا اداء کولو حکم هم زموږ مذهب دی، کنې د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې قارن به د عمرې او حج افعال جلا جلا نه اداء کوي، بلکې د دواړو لپاره به يو طواف او يوه سعی کوي.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی: دخلت العمرة فى الحج الخ (يعني عمره په حج کې داخله سوه)، او د داخليدلو مطلب دا دی چې د يو شي اعمال او افعال په بل شي کې داخل سي، گواکې د حديث شريف مفهوم دا سو چې د عمرې افعال د حج په افعالو کې داخل سول، او د حج طواف او سعی به د عمرې د طواف او سعي لپاره کافي وي.

ولأن مبنى الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دويم دليل دا دی چې د قِران دارومدار پر تداخل دی، همدا وجه ده چې په قِران کې د حج او عمرې دواړو لپاره يوه تلبيه، يو سفر او يو حلق کيږي، او د جلا جلا تلبيې، سفر يا حلق ضرورت نسته، لهذا کله چې د افعالو په حواله سره په قِران کې تداخل ستهٔ، نو د ارکانو په حواله سره به هم په هغه کې تداخل کيږي، يعني د حج طواف او سعی به د عمرې لپاره هم کافي وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې حضرت صُبَي بن معبد رضي الله عنه په حجِ قِران کې دوه طوافه او دوې سعي وکړې، نو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: هديت لسنة نبيك، (تا ته د خپل نبي طريقه وښوول سوه)، يعني تا د خپل نبي سنت پيدا کړی، مطلب دا چې د الله رسول ﷺ هم حجِ قِران کړی وو، او رسول الله ﷺ هم دوه طوافه او دوې سعي کړي وې، او همدا سنت دي.

ولأنّ القِران ضمّ دويم دليل دا دی چې قِران دې ته ويل کيږي چې يو عبادت د بل عبادت سره يو ځای کړی سي، او دا مفهوم هغه وخت اداء کيږي، چې کله له دواړو څخه د هر عبادت افعال په پوره توګه اداء کړی سي، او د عمرې او حج دواړو لپاره جلا جلا طواف او سعی وکړی سي.

ولأنه لاتداخل الخ زموږ دريم دليل او د امام شافعي جواب دا دی چې په عبادات مقصوده کې تداخل نه کيږي، او تا چې کوم شيان ښوولي دي هغه غيرِ مقصوده دي، نو خود به تداخل کيږي ځکه سَفر تر مکې پورې د رسيدلو ذريعه ده، او تلبيه له احرام څخه ماسوا د نورو شيانو د حرامولو لپاره ده، او حلق له احرام څخه د وتلو لپاره دی، لهذا دا ټول شيان مقصودنه سو، بلکې وسائل دي، نو ځکه به په دوی کې تداخل کيږي.

بخلاف الأركان الخ د دې په خلاف د ارکانو مسئله ده، ځکه ارکان مقصود بالذات دي، نو پر ارکانو به وسائل او ذرائع قياسول صحيح نه وي، د دې مثال دا دی چې که يو څوک د څلورو رکعتو يعني د دوو شفعو نيت وتړي، نو هغه به پوره څلور رکعته کوي، داسې به نه کوي چې صرف دوه رکعته وکړي، ځکه چې څلور سره رکعته عبادت مقصوده دي، نو ځکه به تداخل نه پکښې کيږي، که څه هم دواړې شفعې سره جلا دي، او په يوه تحريمه سره شروع سوي دي، همداسې دلته طواف او سعی هم عبادتِ مقصوده دي، نو ځکه به د حج او عمرې دواړو په طوافونو او سعيو کې تداخل نه کيږي، بلکې جلا جلا به اداء کيږي.

ومعنىٰ ما رواه الخ فرمايي چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث دخلت العمرة الخ صحيح مفهوم دا دی چې د عمرې وخت د حج په وخت کې داخل سو، يعني د جاهليت په زمانه چې کومه دا عقيده وه چې د حج په مياشتو کې عمره کول لويه او ستره ګناه ده، په دې حديث سره د هغه خرابې عقيدې او خام خيالۍ ترديد وسو.

## د دوو (۲) طوافونو او دوو (۲) سعیو حکم

قَالَ: وَإِنْ طَافَ طَوَافَيْنِ لِعُمْرَتِهِ وَحَجَّتِهِ فرمايي: او كه قارن د خپلې عمرې او د حج لپاره دوه طوافه وکړي وَسَعَى سَعْيَيْنِ يُجْزِيهِ او دوې سعي وكړي نو دا هغه لپاره كافي دي لِأَنَّهُ أَتَى بِمَا هُوَ الْمُسْتَحَقُّ عَلَيْهِ ځكه چې ده هغه شى اداء كړى كوم چې پر ده واجب وو وَقَدْ أَسَاءَ بِتَأْخِيرِ سَعْيِ الْعُمْرَةِ وَتَقْدِيمِ طَوَافِ التَّحِيَّةِ عَلَيْهِ خو (دا) ده بد كار وكړى چې د عمرې سعى يې وځنډوله او طوافِ قدوم يې پر سعى مخكې كړى وَلَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ او پر ده هيڅ شى نه لازميږي أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ د صاحبينو په نېز خو ښكاره دي لِأَنَّ التَّقْدِيمَ وَالتَّأْخِيرَ فِي الْمَنَاسِكِ لَا يُوجِبُ الدَّمَ عِنْدَهُمَا ځكه چې د دوى په نېز د حج په عبادتونو كې تقديم او تأخير دم نه واجبوي وَعِنْدَهُ طَوَافُ التَّحِيَّةِ سُنَّةٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز طوافِ قدوم سنت دى وَتَرْكُهُ لَا يُوجِبُ الدَّمَ لهذا (په خپله) د هغه پرېښوول دم نه واجبوي فَتَقْدِيمُهُ أَوْلَى نو د هغه مخكې كول خو به په درجه اولىٰ (دم نه واجبوي) وَالسَّعْيُ بِتَأْخِيرِهِ بِالْاِشْتِغَالِ بِعَمَلٍ آخَرَ لَا يُوجِبُ الدَّمَ او په بل كار كې د مشغولېدلو په وجه د سعى ځنډول دم نه واجبوي فَكَذَا بِالْاِشْتِغَالِ بِالطَّوَافِ نو همداسې به په طواف كې د مشغولېدلو په وجه (دم نه واجبيږي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه قارن دوه طوافه وكړي، يو د عمرې لپاره، او بل د حج لپاره (طوافِ قدوم وكړي). او بيا دوې سعي وكړي، يوه د عمرې لپاره او بله د حج لپاره. نو دا جائز دي، ځكه چې پر هغه دوه طوافونه او دوې سعي واجب وې، او ده هغه اداء كړل، خو څرنګه چې ده په ترتيب سره اداء نه كړل. نو دا يې بد كار وكړى. په ترتيب سره د اداء كولو مطلب دا دى چې اول د عمرې طواف كول پكار وو، او تر هغه وروسته د عمرې سعى كول پكار وو. او بيا طوافِ قدوم كول پكار وو، خو څرنګه چې هغه د عمرې سعى تر طوافِ قدوم وروسته وكړه، او طوافِ قدوم يې تر عمرې مخكې وكړى، نو د ترتيب اوښتولو په وجه لږ نقص راغلى، خو بيا هم دا غټ نقص نه دى، لهذا د دې په وجه به پر قارن دم او هيڅ شى نه واجبيږي، نه د امام صاحب په نېز او د صاحبينو په نېز.

وعنده طواف التحية الخ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ځكه تاوان نه واجبيږي، چې د هغه په نېز طوافِ قدوم سنت دى، لهذا په خپله د هغه پرېښوول دم نه واجبوي، نو د هغه مخكې كول خو به په درجه اولىٰ دم نه واجبوي.

والسعى الخ او پاتې سوه د عمرې سعى تر طوافِ قدوم وروسته كول، نو په دې سره هم دم نه واجبيږي. ځكه چې له طواف څخه ماسوا په بل كار كې د مشغولېدلو په وجه د سعى وروسته كېدل دم نه واجبوي. مثلاً يو څوك د عمرې تر طواف وروسته په خوراک يا خواب مشغول سو، بيا يې د عمرې سعى وكړه، نو هيڅ شى نه واجبيږي. نو همدا ډول كه د حج په طوافِ قدوم باندې د مشغولېدلو په وجه د عمرې سعى وروسته سي، نو په دې سره به هم دم نه واجبيږي.

## د دمِ قران بيان

قَالَ: وَإِذَا رَمَى الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ فرمايي: او كله چې قارن د قربانۍ په ورځ (د اختر په ورځ) د جمرهٔ عقبه رمي وكړي ذَبَحَ شَاةً أَوْ بَقَرَةً نو حلال دي كړي يو بزه (وزه) يا يوه غوا أَوْ بَدَنَةً أَوْ سُبُعَ بَدَنَةٍ يا يوه بُدنه يا د يُوې بدنې اوومه حصه

فَلِهٰذَا يَجِبُ عَلَيْهِ دَمُ الْقِرَانِ نو دا دمِ قِران دی لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمُتْعَةِ ځکه چي قِران د تمتع په معنیٰ سره دی وَالْهَدْيُ مَنْصُوصٌ عَلَيْهِ فِيهَا او په تمتع کي د هدي قرباني کول منصوص عليه دي(يعني په تمتع کي د هدي په باره کي نص راغلی دی) وَالْهَدْيُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ او هدی په اوښ، غوا او بزې سره کيږي عَلَى مَا نَذْكُرُهُ فِي بَابِهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى چي هغه به موږ انشاء الله د هدی په باب کي ذکر کړو وَأَرَادَ بِالْبُدْنَةِ هٰهُنَا الْبَعِيرَ او دلته له بدنې څخه مراد اوښ دی وَإِنْ كَانَ اسْمُ الْبُدْنَةِ يَقَعُ عَلَيْهِ وَعَلَى الْبَقَرَةِ که څه هم د بدنې لفظ پر اوښ او غوا دواړو واقع کيږي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه وَكَمَا يَجُوزُ سُبُعُ الْبَعِيرِ يَجُوزُ سُبُعُ الْبَقَرَةِ او څرنګه چي د اوښ اوومه حصه جائز ده همدارنګه د غوا اوومه حصه (هم) جائز ده.

**اللغات:** ﴿سبع﴾ اوومه حصه، ﴿بعير﴾ اوښ.

**تشريح:** فرمايي قارن چي کله په يومُ النحر کي د جمرهٔ عقبه رمي وکړي، نو هغه دي يوه بزه، يا غوا، يا اوښ يا د بدنې اوومه حصه قرباني کړي. د دې نوم دمِ قِران دی، د دې د واجبېدلو دليل دا دی چي قِران د حج او د عمرې په جمع کولو کي د تمتع په معنیٰ سره دی(يعني لکه څرنګه چي په تمتع کي حج او عمره سره جمع کيږي. همدارنګه په قِران...)، او په تمتع کي د هدي قرباني منصوص عليه ده. لکه څرنګه چي په نص يعني آيت کي راځي: فمن تمتع بالعمرة إلى الحج فما استيسر من الهدى. نو کله چي په حجِ تمتع کي قرباني واجب ده، نو په قِران کي به هم واجب وي.

والهدی الخ صاحب د هدايې فرمايي چي په اوښ، غوا او بزې تولو سره هدی کېدای سي، تفصيل به په بابُ الهدی کي ذکر سي، او دلته له بدنې څخه اوښ مراد دی، که څه هم د بدنې لفظ پر اوښ او غوا دواړو ويل کيږي. نو څرنګه چي د اوښ داوومي حصې قرباني جائز ده، همدارنګه به د غوا د اوومي حصې قرباني جائز وي.

## که د قارن سره د حلالولو لپاره څاروی نه وي نو د روژو حکم

فَإِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مَا يَذْبَحُ بيا که د قارن سره د حلالولو لپاره يو شی نه وي صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ نو هغه دي د حج په دوران کي درې ورځي روژې ونيسي آخِرُهَا يَوْمُ عَرَفَةَ چي د هغو آخري ورځ به عرفات وي وَسَبْعَةَ أَيَّامٍ إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ او اووه روژې دي ونيسي کله چي خپل أهل و عيال ته راسي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ ځکه الله تعالیٰ فرمايي دي: "او څوک چي هدی پيدا نه کړي نو هغه دي په حج کي درې ورځي روژې ونيسي وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ [البقرة: ١٩٦] او اووه روژې دي(هغه وخت ونيسي) چي کله تاسو واپس راسئ (نو دا پوره لس (روژې) سوې" فَالنَّصُّ وَإِنْ وَرَدَ فِي التَّمَتُّعِ فَالْقِرَانُ مِثْلُهُ لهذا نص که څه هم د تمتع په حق کي وارد سوی دی لېکن قِران هم د تمتع په څير دی لِأَنَّهُ مُرْتَفِقٌ بِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ ځکه چي قارن هم د دوو عبادتونو(يعني د حج او عمرې) څخه فايده اخلي وَالْمُرَادُ بِالْحَجِّ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ وَقْتُهُ او له حج څخه مراد (والله أعلم) د هغه وخت کېدای سي لِأَنَّ نَفْسَهُ لَا يَصْلُحُ ظَرْفًا ځکه چي نفسِ حج د ظرف جوړېدلو صلاحيت نه لري إِلَّا أَنَّ الْأَفْضَلَ أَنْ يَصُومَ قَبْلَ يَوْمِ

التَّرْوِيَةِ بِيَوْمٍ وَيَوْمَ التَّرْوِيَةِ وَيَوْمَ عَرَفَةَ خو افضل دا ده چي تر يومِ ترويه مخکي يوه ورځ او په يومِ ترويه او په يومِ عرفه روژه ونيسي لِأَنَّ الصَّوْمَ بَدَلٌ عَنِ الْهَدْيِ ځکه چي روژه د هدي بدل ده فَيُسْتَحَبُّ تَأْخِيرُهُ إِلَى آخِرِ وَقْتِهِ نو ځکه مستحب دا ده چي تر خپل آخري وخته پوري روژې وځنډول سي رَجَاءَ أَنْ يَقْدِرَ عَلَى الْأَصْلِ په دې اميد چي پر أصل (هدی) به قدرت پيدا کړي.

**اللغات:** ﴿مرتفق﴾ د اتفعال اسم فاعل دی: آساني او فايده حاصلونکی.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو قارن د قرباني وس نه لري، يا وس خو لري، لېکن څاروی نه پيدا کيږي، نو بيا د هغه لپاره حکم دا دی چي د قرباني په بدله کي دي لس روژې ونيسي، په دې ترتيب چي درې روژې دي تر يومُ النحر مخکي ونيسي، او اووه (٧) روژې دي هغه وخت ونيسي چي کله کور ته راسي، دليل د الله تعالىٰ دا قول دی: فمن لم يجد فصيام ثلاثة أيام في الحج وسبعة إذا رجعتم تلك عشرة كاملة. دا آيت که څه هم د تمتع په حق کي وارد سوی دی، خو قران هم د تمتع په څېر دی، په دې توګه چي قارن او متمتع دواړه دوه عبادتونه يعني حج او عمره سره جمع کوي، نو د دې مشابهت په وجه چي کوم حکم د تمتع دی، هغه به د قران وي.

والمراد الخ صاحب د هدايې فرمايي چي په دې آيت فصيام ثلثة أيام في الحج کي له حج څخه مراد د حج وخت او د حج زمانه ده، ځکه چي حج د افعالو د مجموعې نوم دی (يعني د وقوفِ عرفه او د طوافِ زيارت نوم دی)، او يو فعل د بل فعل لپاره د ظرف جوړېدلو ورتيا نه لري (يعني درې روژې په وقوفِ عرفه او طوافِ زيارت کي نه سي اداء کېدلای)، لهذا له دې څخه به د حج وخت مراد وي، او څرنګه چي د حج زمانه له شوال څخه شروع کيږي، نو تر احرام تړلو وروسته چي کله هم وغواړي درې روژې دي ونيسي، لېکن افضل دا ده چي د ذو الحجې په ٧، ٨، او ٩ روژې ونيسي، ځکه چي روژه د هدی په بدله کي واجب سوې ده، نو په دې هيله تر آخري وخته پوري د روژو ځنډول مستحب دي، چي کېدای سي پر اصل يعني پر هدی قدرت پيدا سي، لکه څرنګه چي د اوبو د نه لرونکي سړي لپاره په تيمم سره لمونځ تر آخري وخته پوري ځنډول مستحب دي (په دې هيله چي اوبه به پيدا سي).

## د کفارې روژې به چيري نيول کيږي؟

وَإِنْ صَامَهَا بِمَكَّةَ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الْحَجِّ جَازَ او که قارن اووه[٧] روژې په مکه کي له حج څخه تر فراغت وروسته ونيسي نو جائز دي وَمَعْنَاهُ بَعْدَ مُضِيِّ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ د دې معنىٰ دا ده چي د أيام تشريق تر تېرېدلو وروسته لِأَنَّ الصَّوْمَ فِيهَا مَنْهِيٌّ عَنْهُ ځکه چي په ايامِ تشريق کي روژه ممنوع ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: لَا يَجُوزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي جائز نه دي لِأَنَّهُ مُعَلَّقٌ بِالرُّجُوعِ ځکه چي اووه سره روژې معلقي دي په رجوع باندي إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ الْمُقَامَ خو دا چي هغه سړی په مکه کي د پاته کېدلو نيت وکړي فَحِينَئِذٍ يُجْزِيهِ لِتَعَذُّرِ الرُّجُوعِ نو په هغه وخت کي جائز دي د رجوع د متعذر کېدلو په وجه وَلَنَا أَنَّ مَعْنَاهُ: رَجَعْتُمْ عَنِ الْحَجِّ أَيْ فَرَغْتُمْ او زموږ دليل دا دی چي د رجعتم معنىٰ ده: رجعتم عن الحج يعني فرغتم إِذِ الْفَرَاغُ سَبَبُ الرُّجُوعِ إِلَى أَهْلِهِ ځکه چي (له حج څخه) فراغت خپل أهل وعيال ته د

راستنېدلو سبب دی فَكَانَ الْأَدَاءُ بَعْدَ السَّبَبِ فَيَجُوزُ لهذا (د روژو) اداء کول به تر سبب وروسته سي نو ځکه به جائز وي.

**تشريح:** په مخکنۍ مسئله کي ووېل سوه چي اووه (۷) روژې به قارن هغه وخت نيسي چي کله خپل وطن ته راسي، خو که قارن له حج څخه تر فراغت وروسته په مکه کي اووه روژې ونيولې نو جائز دي، خو شرط دا دی چي دايام تشريق تر تېرېدلو وروسته به يې نيسي، ځکه په ايام تشريق کي روژه نيول ممنوع دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قارن لپاره په مکه مکرمه کي د دې اوو (۷) روژو نيول جائز نه دي، ځکه د الله تعالیٰ په دې قول وسبعة إذا رجعتم کي دا اووه روژې په رجوع پوري معلقي سوي دي، او رجوع هغه وخت ثابتېږي، چي کله دا سړی خپل وطن ته واپس راسي، نو ځکه به په مکه کي د دې روژو نيول جائز نه وي، هو! که هغه په مکه کي د قيام نيت وکړي، نو بيا په مکه کي هم نيول جائز دي، ځکه چي په دې صورت کي رجوع نامکنه ده.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چي د الله تعالیٰ د دې قول رجعتم معنیٰ ده: فرغتم. "يعني کله چي تاسو له حج څخه فارغ سی نو اووه روژې ونيسئ"، هغه که په مکه کي وي، که په لاره کي وي، او که وطن ته ورسېږي. صاحب د هدايې وايي چي له حج څخه فارغېدل هم خپل أهل و عيال ته د واپس راتللو سبب دی، لهذا کله چي هم له حج څخه تر فراغت وروسته اووه روژې ونيسي، نو تر سبب وروسته روژې راځي، او تر سبب وروسته چي کوم شی هم راسي، هغه اداء کيږي، نو ځکه به له حج څخه تر فراغت وروسته دا اووه روژې اداء کيږي، که څه هم په مکه کي يې اداء کړي.

## تر ايام نحر مخکي د روژو نه نيولو حکم

وَإِنْ فَاتَهُ الصَّوْمُ او که له قارن څخه (درې) روژې فوت سي حَتَّى أَتَى يَوْمُ النَّحْرِ تر دې چي يوم نحر راسي (يعني د لوی اختر ورځ راسي) لَمْ يُجْزِهِ إِلَّا الدَّمُ نو د هغه لپاره هيڅ شی نه کافي کيږي مگر دم وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَصُومُ بَعْدَ هٰذِهِ الْأَيَّامِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي تر أيام تشريق وروسته به روژې ونيسي لِأَنَّهُ صَوْمٌ مُوَقَّتٌ ځکه چي دا متعيني روژې دي (يعني د خپل وخت سره خاصي دي) فَيُقْضٰى كَصَوْمِ رَمَضَانَ نو د رمضان د روژو په څېر به د هغو قضاء هم راوړل کيږي وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: يَصُومُ فِيهَا او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه سړی به په ايامِ تشريق کي روژې ونيسي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ [البقرة: ۱۹۶] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او څوک چي هدی پيدا نه کړي هغه دي د حج په وخت کي درې روژې ونيسي وَهٰذَا وَقْتُهُ او د تشريق زمانه د حج وخت دی وَلَنَا النَّهْيُ الْمَشْهُورُ عَنِ الصَّوْمِ فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ او زموږ دليل په دې ورځو کي له روژې نيولو څخه هغه مشهوره نهي دي فَيَتَقَيَّدُ بِهِ النَّصُّ نو په دې نهي سره به نص مقيد کيږي أَوْ يَدْخُلُهُ النَّقْصُ يا په دې روژو کي به نقصان داخليږي فَلَا يَتَأَدّٰى بِهِ مَا وَجَبَ كَامِلًا نو په دې ناقصو روژو سره به هغه روژې نه اداء کيږي چي هغه په کامله توګه واجب سوي وي.

**اللغات:** ﴿فاته﴾ د نصر ماضي دي: فوتېدل، قضاء کېدل. ﴿صوم مؤقت﴾ د ځانګړي او معلوم وخت روژې.

**تشريح:** مخکې ذکر سوه که قارن پر هدي قدرت نه لري، نو لس روژې دې ونيسي، درې له يومُ النحر څخه مخکې، او اووه له حج څخه تر فراغت وروسته. خو که هغه درې روژې تر يومُ النحر مخکې نه ونيولې، تر دې چې يومُ النحر راغلی، نو زموږ په نيز پر هغه دم واجبيږي، روژې کافي نه دي. امام شافعي فرمايي چې دا روژې دې تر ايامِ تشريق وروسته را وګرځوي، او امام مالک فرمايي چې دا روژې دې په ايامِ تشريق کې را وګرځوي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې دا روژې د يو وخت سره خاصې او متعينې دي، الله ﷻ فرمايي: فصيام ثلاثة أيام في الحج، او کومې روژې چې متعينې وي، هغه که په خپل متعين وخت کې اداء نه کړی سي، نو د هغو قضاء به راوړل کيږي. لکه د رمضان روژې چې په رمضان کې اداء نه کړی سي، نو وروسته به د هغو قضاء راوړل کيږي، لهذا دا روژې به همداسې وي، چې کله تر يوم نحر مخکې اداء نه کړی سي، نو تر ايام تشريق وروسته به د هغو قضاء راوړل کيږي.

**د امام مالک دليل:** دا دی چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: فمن لم يجد فصيام الخ، "يعني څوک چې د هدي ځاروی پيدا نه کړي، نو هغه دې د حج په وخت کې درې روژې ونيسي"، او ايامِ تشريق هم د حج وخت دی، ځکه چې په دې ورځو کې رمي کيږي، نو کله چې ايامِ تشريق د حج وخت دی، نو د قرآن په حکم به دا درې روژې په ايامِ تشريق کې هم صحيح وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې په ايامِ تشريق کې له روژو نيولو څخه منع سوې ده، لکه په حديث کې چې راځي: لا تصوموا في هذه الأيام. او دا حديث مشهور دی، او په مشهور حديث سره کتابُ الله مقيد کېدای سي، نو ځکه به نص يعني ثلاثة أيام في الحج د ايامِ تشريق څخه علاوه په نورو ورځو مقيّد کيږي، يعني له ايامِ تشريق څخه علاوه د حج په نورو ورځو کې د دې دريو روژو حکم سوی دی، خو که نص په دې حديث سره مقيد نه سي، نو د نهي په وجه به د دې ورځو په روژو کې نقصان باليقين پيدا سي، او پر قارن چې د دمِ قران پر ځای کومې روژې واجب سوي دي، هغه کاملې دي، او قاعده دا ده چې کامل به په ناقص سره نه اداء کيږي. لکه څرنګه چې د تېرې ورځې د مازيګر لمونځ بله ورځ د نمر لوېدلو په وخت کې نه سي اداء کېدلای. لنډه دا چې په ايامِ تشريق کې دا روژې نه سي اداء کېدلای، او تر ايامِ تشريق وروسته هم نه سي اداء کېدلای. ځکه چې د دم په بدله کې د روژو وجوب خلاف قياس ثابت دی، او خلاف قياس چې کوم شی ثابت وي، هغه به تر خپل مورد پورې منحصر وي، او د هغه مورد د حج ورځې دي (او د حج په ورځو کې تر يومُ النحر مخکې ورځې دي، ځکه چې تر أيام تشريق وروسته د حج ورځې ختميږي، او په أيام تشريق کې روژې صحيح نه دي، نو ځکه به تر يوم النحر مخکې د روژو مورد وي). لهذا تر خپل وخت او مورد وتلو به د روژو نيول صحيح نه وي، بلکې حکم به د خپل اصل يعني د هدي د ځاروي و طرف ته ګرځي، نو د هدي ځاروی چې کله هم په لاس ورسي، د هغه قرباني کول به پر واجب وي.

## تر ايامِ تشريق وروسته د روژو د قضاء حکم

وَلَا يُؤَدِّي بَعْدَهَا او تر ايامِ تشريق وروسته (هم) روژې نه اداء کيږي لِأَنَّ الصَّوْمَ بَدَلٌ ځکه چې روژه بدل ده وَالْأَبْدَالُ لَا تُنْصَبُ إِلَّا شَرْعًا او بدل نه متعين کيږي مګر (صرف) د شريعت له طرفه (يعني بدل فقط شريعت معلومولای سي د هر چا کلام نه دی) وَالنَّصُّ خَصَّهُ بِوَقْتِ الْحَجِّ او نص روژه د حج د وخت سره خاص کړې ده وَجَوَازُ الدَّمِ عَلَى الْأَصْلِ او د قربانۍ جائز کېدل پر خپل اصل دي (نو ځکه به تر حج وروسته هم جائز وي) وَعَنْ عُمَرَ أَنَّهُ أَمَرَ فِي مِثْلِهِ بِذَبْحِ الشَّاةِ او له حضرت عمر ﷺ څخه روايت دی چې هغه په داسې واقعه کې د بزې ذبحه کولو حکم وکړی.

**اللغات:** ﴿لا تنصب﴾ د نصر مضارع منفي مجهوله ده: درول، متعينول.

**تشريح:** په دې عبارت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله ردّ سوی دی، په دې توګه چې د مذکوره دريو روژو قضاء تر ايامِ تشريق وروسته هم صحيح نه ده، ځکه چې روژه د دمِ قران بدل ده، او بدل د الله له طرفه ثابتيږي. او شريعت يعني آيت بدل يعني روژه د حج د وخت سره خاص کړې ده، نو کله چې د حج د وخت سره خاص ده. نو د حج تر وخت وروسته په معنې تر ايامِ تشريق وروسته به د روژې اداء کول جائز نه وي، او د قرباني جائز کېدل د روژې بدل نه دي. بلکې هغه پر خپل اصل پاته دي. لهذا کله چې روژې فوت سي، نو حکم به د خپل اصل و طرف ته راګرځي. او قرباني به پر واجب وي.

وعن عمر الخ زمونږ تأييد په دې سره هم کيږي چې د حضرت عمر ﷺ په زمانه کې يو قارن د هدي څاروی نه درلودی. او د حج د ورځو درې روژې هم ځني قضاء سوې، او يومُ النحر راغله، نو حضرت عمر ﷺ دا فتویٰ ورکړه چې بزه قرباني کړه، نو له دې ځخه هم دا خبره ثابته سوه چې که د روژو وخت تېر سي، نو حکم به د اصل و طرف ته راګرځي او قرباني به واجبيږي.

## د قارن حاجي د حلال کېدلو وخت

| |
|---|
| فَلَوْلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْهَدْيِ تَحَلَّلَ بيا که قارن پر هدي قدرت پيدا نه کړي نو حلال دي سي وَعَلَيْهِ دَمَانِ او پر هغه به دوې قرباني واجب وي دَمُ التَّمَتُّعِ وَدَمُ التَّحَلُّلِ قَبْلَ الْهَدْيِ [١] يوه د تمتع قرباني [٢] او بله تر هدي مخکې د حلالېدلو قرباني فَإِنْ لَمْ يَدْخُلِ الْقَارِنُ مَكَّةَ وَتَوَجَّهَ إِلَى عَرَفَاتٍ او که قارن مکې ته داخل نه سي (بلکې) عرفات ته متوجه سي فَقَدْ صَارَ رَافِضًا لِعُمْرَتِهِ بِالْوُقُوفِ نو هغه د وقوف عرفه په وجه د خپلې عمرې پرېښوونکي سو لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ أَدَاؤُهَا ځکه پر هغه د عمرې اداء کول ناممکن سو لِأَنَّهُ يَصِيرُ بَانِيًا أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ عَلَى أَفْعَالِ الْحَجِّ ځکه چې هغه به د حج پر افعالو د عمرې د افعالو بناء کونکی سي وَذٰلِكَ خِلَافُ الْمَشْرُوعِ او دا خلاف مشروع دي. |

**اللغات:** ﴿بانی﴾ بناء کونکی. ﴿رافض﴾ پرېښوونکی.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (١) اوله مسئله دا ده چې هغه قارن (يا متمتع) چې درې روژې ځني فوت سوي وي که پر قرباني هم قدرت پيدا نه کړي نو د هغه لپاره حکم دا دی چې تر قرباني کولو مخکې دې حلال سي، او وروسته دې دوه دمه يعني دوې قرباني وکړي، يو دمِ تمتع او دويم تر قرباني مخکې د حلالېدلو دم، ځکه چې قرباني هم د حج له افعالو ځخه يو فعل دی. نو ځکه به د هغې پرېښوول دم واجبوي.

(٢) دويمه مسئله دا ده که قارن د دې پر ځای چې د عمرې ارکان اداء کړي سيده عرفات ته ولاړ سي. نو فقط په وقوفِ عرفه کولو سره د عمرې پرېښوونکي سو (لهذا اوس به قارن نه وي. او د قران دم به هم پر واجب نه وي، بلکې د عمرې قضاء به پر واجب وي او بل به د عمرې د پرېښوولو دم پر واجب وي)، ځکه چې تر وقوف عرفه وروسته د هغه لپاره عمره اداء کول متعذر سو، عمره اداء کول ځکه متعذر سو چې که هغه اوس هم عمره وکړي، نو تر حج وروسته به وي، تر حج مخکې نه سي کېدلای، نو په دې صورت کې به د عمرې د افعالو ترتب به د حج پر افعالو وي، حال دا چې دا خلافِ مشروع دي، مشروع دا دي چې د حج د افعالو ترتب به د عمرې پر افعالو وي. يعني اول به عمره اداء کوي، وروسته به حج اداء کوي.

## که قارن فقط د عرفات و طرف ته متوجه سي نو څه حکم دی؟

وَلَا يَصِيْرُ رَافِضًا بِمُجَرَّدِ التَّوَجُّهِ او قارن فقط (عرفات ته) په روانېدلو سره د عمرې پرېښوونکی نه ګرځي هُوَ الصَّحِيْحُ مِنْ مَذْهَبِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ اَيْضًا همدا د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله صحیح مذهب هم دی وَالْفَرْقُ لَهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ مُصَلِّ الظُّهْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِذَا تَوَجَّهَ إِلَيْهَا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مسلک د قارن او د هغه سړي په مینځ کي چي د جمعې په ورځ د ماپښین لمونځ وکړي او (بیا) د جمعې (لمانځه) ته روان سي فرق دا دی أَنَّ الْأَمْرَ هُنَالِكَ بِالتَّوَجُّهِ مُتَوَجِّهٌ بَعْدَ أَدَاءِ الظُّهْرِ چي د جمعې په ورځ د ماپښین د لمانځه تر اداء کولو وروسته (هم) د جمعې لمانځه ته د تللو حکم (هغه ته) متوجه دی وَالتَّوَجُّهُ فِي الْقِرَانِ وَالتَّمَتُّعِ مَنْهِيٌّ عَنْهُ قَبْلَ أَدَاءِ الْعُمْرَةِ او په قِران او تمتع کي د عمرې تر اداء کولو مخکي له تللو څخه نهي سوي دي فَافْتَرَقَا نو دواړي مسئلې جلا سوې (یعني په دواړو مسئلو کي فرق راغلی).

**اللغات:** ﴿مجرد﴾ محض، فقط.

**تشریح:** مسئله: دا ده چي قارن د عمرې له اداء کولو څخه بغیر فقط د عرفات و طرف ته په متوجه کېدلو او روانېدلو سره د عمرې پرېښوونکی او ختمونکی نه شمارل کیږي، بلکي د عمرې پرېښوونکی هغه وخت شمارل کیږي، چي کله هغه د ذو الحجې په نهمه ورځ تر زوال وروسته عرفات ته ورسیږي او وقوف وکړي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله صحیح مذهب همدا دی، لېکن له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حضرت حسن په روایت کي دا رانقل سوي دي چي د عرفات و طرف ته په متوجه کېدلو سره عمره ختمیږي او پر هغه به د عمرې د پرېښوونکي حکم لګیږي، او قیاس هم دا دی چي څرنګه د جمعې په ورځ په کور کي د ماپښین د لمانځه تر کولو وروسته د جمعې و طرف ته محض په روانېدلو سره د ماپښین لمونځ فاسدیږي، همداسي به په دې مسئله کي هم محض د قارن په روانېدلو سره عمره ختمیږي.

والفرق له الخ خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مذهب د فرق وجه دا ده چي د جمعې په مسئله کي چي کله یو څوک د ماپښین لمونځ وکړي او د جمعې و طرف ته متوجه او روان سي، نو د هغه دا روانېدل صحیح او جائز دي، ځکه چي اوس هم هغه د الله ﷻ د دې خطاب فاسعوا إلی ذکر الله مستحق دی، او دا خطاب د ماپښین د لمانځه تر اداء کولو وروسته هم هغه په حق کي ثابتیږي، او د قران او تمتع په مسئله کي هغه د عمرې تر اداء کولو مخکي د عرفات و طرف ته له روانېدلو څخه منع سوی دی، نو په دې دواړو مسئلو کي به د دومره فرق باوجود یوه پر بله قیاسول څرنګه صحیح وي.

## که عمره پرېږدي نو له قارن څخه د قرباني د ساقطېدلو حکم

قَالَ: وَسَقَطَ عَنْهُ دَمُ الْقِرَانِ فرمایي: چي له قارن څخه د قِران قرباني ساقطه سوه لِأَنَّهُ لَمَّا ارْتَفَضَتِ الْعُمْرَةُ لَمْ يُرْتَفَقْ لِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ ځکه کله چي عمره پرېښوول سوه نو هغه ته د دوو عبادتونو د اداء کولو آساني تر لاسه نه سوه (و بعضي شارحینو یې معنیٰ دا کړې ده: او کله چي له هغه څخه عمره پاته سوه نو هغه د دوو عبادتونو له اداء کولو څخه فایله نه واخیستل، په دې صورت کي به لم یرتفق معلومه صیغه وي) وَعَلَيْهِ دَمٌ او پر هغه به قرباني واجب وي لِرَفْضِ عُمْرَتِهِ بَعْدَ الشُّرُوْعِ فِيْهَا د خپلي عمرې د پرېښوولو په وجه وروسته تر شروع کولو په هغې سره وَعَلَيْهِ قَضَاؤُهَا او پر

هغه به د عمرې قضاء (هم) واجب وي لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهِمَا د عمرې د شروع کولو د صحت په وجه فَأَشْبَهَ الْمُحْصَرَ نو هغه د محصر سره مشابه سو، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿ارتفضت﴾ د افتعال ماضي ده: پاته کېدل، ختمېدل، پرېښوول. ﴿لم يرتفق﴾ آساني حاصلول، فايده اخيستل. ﴿محصر﴾ هغه سړی چي له حج کولو څخه منع سوی وي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي قارن کله د عمرې د ارکانو له اداء کولو څخه بغير سيده عرفات ته ولاړ سي، نو د هغه له ذمې څخه دم قران هم ساقطېږي (لکه مخکي چي مونږ ذکر کړه)، ځکه چي د عمرې د پرېښوولو په وجه هغه د حج او د عمرې دواړو عبادتونو جمع کونکي نه سو، نو کله چي د دواړو جمع کونکي نه سو، نو دمِ شکر يعني دمِ قران به هم نه واجبېږي، لېکن پر هغه د عمرې قضاء واجبېږي، او د عمرې د پرېښوولو په وجه يو دم هم پر واجبېږي، دم خو ځکه واجبېږي، چي هغه تر احرام تړلو وروسته عمره پرې ايښې ده، او قضاء ځکه واجبېږي، چي عمره شروع کول يې صحيح دي (ځکه کله چي هغه د عمرې احرام وتړی، نو عمره کول يې صحيح سو، خو بيرته يې پرېښووله نو ځکه به قضاء هم پر واجب وي).

فأشبه المحصر الخ او دا سړی د مُحصر مشابه سو، محصر هغه سړي ته ويل کيږي چي احرام وتړي، خو د دښمن يا د بل شي په وجه د حج له افعالو څخه منع کړی سي، نو پر محصر قرباني مع القضاء واجب ده (يعني يوه قرباني به کوي او چي کله احصار ختم سي نو د حج قضاء به هم راوړي)، همدا ډول به د عمرې پر پرېښوونکي هم قرباني مع القضاء واجب وي.



# بَابُ التَّمَتُّعِ

## (دا) باب د (حجِ) تمتع (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر بابُ القِران لاندي ذکر سوه چي زموږ په نېز حجِ قِران تر ټولو افضل دی، نو ځکه يې هغه تر تمتع مخکې بيان کړی، اوس تمتع بيانوي، ښکاره دي وي چي د تمتع لغوي معنیٰ ده: فايده اخيستل، ګټه پوره کول، هغه کوم ټول فايده او ګټه وي، او په اصطلاح کي د تمتع مفهوم دا دی چي يو سړی د حج په مياشتو کي له ميقات څخه د عمرې احرام وتړي، مکې ته داخل سي، او د عمرې تر بشپړتيا وروسته احرام خلاص کړي، او تر هغه وروسته د حج په ورځو کي د حج لپاره دويم احرام وتړي، نو ځرنګه چي دا سړی په يوه سفر کي له حج او عمرې دواړو څخه فايده اخيستونکی سو، نو ځکه د هغه دې فعل ته تمتع ويل کيږي، او هغه ته متمتع ويل کيږي، د تمتع د ثبوت لپاره تر ټولو ښکاره دليل دا آيت دی: فمن تمتع بالعمرة إلى الحج... الخ.

### د تمتع شرعي حيثيت

اَلتَّمَتُّعُ أَفْضَلُ مِنَ الْإِفْرَادِ تمتع له افراد څخه افضل دی وَعَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ الْإِفْرَادَ أَفْضَلُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله روايت دی چي افراد افضل دی لِأَنَّ الْمُتَمَتِّعَ سَفَرُهُ وَاقِعٌ لِعُمْرَتِهِ ځکه چي د تمتع کونکي سفر د عمرې لپاره واقع کيږي وَالْمُفْرِدَ سَفَرُهُ وَاقِعٌ لِحَجَّتِهِ او د افراد کونکي سفر د حج لپاره واقع کيږي وَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ أَنَّ فِي التَّمَتُّعِ جَمْعًا بَيْنَ الْعِبَادَتَيْنِ د ظاهر روايت وجه دا ده چي په تمتع کي دوه عبادتونه سره جمع کيږي فَأَشْبَهَ الْقِرَانَ نو دا د قران سره مشابه سو ثُمَّ فِيْهِ زِيَادَةُ نُسُكٍ بيا په تمتع کي يو نسک (عبادت) زيات دی وَهِيَ إِرَاقَةُ الدَّمِ او هغه وينې بيول (يعني قرباني کول) دي وَسَفَرُهُ وَاقِعٌ لِحَجَّتِهِ او د متمتع سفر د حج لپاره واقع کيږي وَإِنْ تَخَلَّلَتِ الْعُمْرَةُ که څه هم په مينځ کي عمره راځي لِأَنَّهَا تَبَعُ الْحَجِّ ځکه چي عمره د حج تابع ده كَتَخَلُّلِ السُّنَّةِ بَيْنَ الْجُمُعَةِ وَالسَّعْيِ إِلَيْهَا لکه ځرنګه چي د جمعي د لمانځه او هغې ته د تګ په مينځ کي سنت راځي.

**اللغات:** ﴿إراقة﴾ بيول. ﴿نسك﴾ عبادت.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي د معتمدقول او د معتبر مذهب پر بنسټ تمتع له افراد څخه افضل او غوره دی. لېکن په نوادر کي د امام اعظم رَحِمَهُ الله يو روايت دا دی چي حجِ افراد له تمتع څخه افضل دی، د دې روايت دليل دا دی چي د متمتع سفر د عمرې لپاره وي، ځکه چي هغه له ميقات څخه مخکي د عمرې احرام تړي، او بيا چي مکې ته ولاړ سي، نو اول د عمرې افعال اداء کوي، او عمره سنت ده. د دې په مقابل کي د مفرد سفر د حج لپاره وي، ځکه چي هغه له ميقات څخه د حج احرام تړي، او کله چي مکې ته ورسيږي، نو د حج افعال اداء کوي، او حج فرض دی، او ښکاره ده

چې کوم سفر د فرضو لپاره وي، دا تر هغه سفر ډېر افضل او غوره دی کوم چې د سنت لپاره وي. نو په دې حواله سره به افراد تر تمتع افضل وي.

وجه ظاهرالروایة الخ د ظاهر روایت دلیل دا دی چې د قران په شان په تمتع کې هم دوه عبادتونه دي. او بیا په تمتع کې بل زیات نسک یعني قرباني هم سته، نو ځکه به د دوو عبادتونو په اجتماع او د قربانۍ په اضافې سره تمتع تر افراد افضل او غوره وي، او څرنګه چې دا د قران په معنیٰ سره دی، او قران افضل دی، نو تمتع به هم افضل او غوره وي.

وسفره واقع الخ د نوادر د روایت جواب ورکوي فرمایي چې د متمتع سفر هم د حج لپاره دی، که څه هم په مینځ کې عمره راسي، ځکه چې عمره د حج تابع ده. لکه د جمعې د لمانځه او د سعي إلی الجمعه په مینځ کې چې سنت راځي. نو دا نه ویل کیږي چې دا سعي د سنت و طرف ته دي، بلکې دا ویل کیږي چې دا سعي د جمعې د لمانځه و طرف ته دي، همدا ډول به د متمتع سفر هم د حج لپاره وي، که څه هم د سفر او حج په مینځ کې عمره راسي.

## د متمتع د دوو قسمونو بیان

وَالْمُتَمَتِّعُ عَلَى وَجْهَيْنِ او متمتع پر دوه قسمه دی مُتَمَتِّعٌ يَسُوقُ الْهَدْيَ یو هغه چې هدی بیایي وَمُتَمَتِّعٌ لَا يَسُوقُ الْهَدْيَ او بل هغه چې هدی نه بیایي وَمَعْنَى التَّمَتُّعِ التَّرَفُّقُ بِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ فِي سَفَرٍ وَاحِدٍ او د تمتع معنیٰ ده: په یوه سفر کې د دوو عبادتونو په اداء کولو سره نفع پورته کول (یعني په یوه سفر کې عمره او حج دواړه کول) مِنْ غَيْرِ أَنْ يُلِمَّ بِأَهْلِهِ بَيْنَهُمَا إِلْمَامًا صَحِيحًا بغیر له دې څخه چې د دواړو په مینځ کې د خپل أهل و عیال سره صحیح المام وکړي وَيَدْخُلُهُ اخْتِلَافَاتٌ او په دې تعریف کې ډېر اختلافات داخل دي نُبَيِّنُهَا إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چې هغه به موږ انشاء الله بیان کړو.

**اللغات:** ﴿یسوق﴾ بیول، شړل، ﴿ترفق﴾ آساني او فایده حاصلول، کته تر لاسه کول. ﴿یلم﴾ د افعال مضارع ده: خپل وطن ته واپس راتلل (راستنېدل).

**تشریح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره پوه سئ چې د إلمام معنیٰ ده: د عمرې تر احرام تړلو وروسته خپل وطن ته راتلل بغیر له دې څخه چې احرام باقي وساتل سي، بیا المام پر دوه قسمه دی: (۱) المام فاسد، (۲) المام صحیح، المام فاسد هغه ته ویل کیږي چې متمتع مخکې د هدی شاروی بېولی وي. بیا یې المام کړی وي (دې ته المام فاسد ځکه ویل کیږي چې د هدي د بېولو په وجه اول احرام نه سي ختمولای، لهذا که څه هم خپل کور او وطن ته راسي نو دا به ویل کیږي چې خپل کور ته راغلی نه دی، نو ځکه دې ته المام فاسد ویل کیږي)، او المام صحیح هغه دی چې مخکې یې د هدی شاروی بېولی نه وي.

**صورت د مسئلې:** دا دی چې د متمتع دوه قسمونه دي: (۱) یو هغه متمتع دی چې سوق د هدي وکړي (یعني له میقات څخه هدی واخلي او د ځان سره یې بوزي)، او (۲) دویم هغه متمتع دی چې هدی نه بوزي (یعني له میقات څخه هدی د ځان سره نه بوزي بلکې وروسته یې رانیسي او ذبحه یې کړي)، او د تمتع شرعي او اصطلاحي معنیٰ ده: "په یوه سفر کې د دوو عبادتونو په جمع کولو سره فایده او نفع اخیستل، او د دې دوو عبادتونو په مینځ کې په خپل وطن کې صحیح المام نه کول"، صاحب د هدایې فرمایي: د تمتع په تعریف کې ډېر اختلاف دی، چې هغه به موږ انشاء وروسته بیان کړو.

## د تمتع طريقه

وَصِفَتُهُ أَنْ يَبْتَدِئَ مِنَ الْمِيقَاتِ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ او د تمتع طريقه دا ده چي متمتع د حج په مياشتو کي له ميقات څخه شروع وکړي فَيُحْرِمَ بِالْعُمْرَةِ نو د عمرې احرام وتړي(يعني د تمتع طريقه دا ده چي متمتع د حج په مياشتو کي له ميقات څخه د عمرې احرام شروع کړي) وَيَدْخُلَ مَكَّةَ او مکې ته داخل سي فَيَطُوفَ لَهَا وَيَسْعَى او د عمرې لپاره طواف او سعی وکړي وَيَحْلِقَ أَوْ يُقَصِّرَ او حلق يا قصر وکړي وَقَدْ حَلَّ مِنْ عُمْرَتِهِ او له خپلي عمرې څخه حلال سي وَهَذَا هُوَ تَفْسِيرُ الْعُمْرَةِ او همدا تفسير د عمرې دی.

**تشريح**: مخکي معلومه سوه چي په تمتع کي دوه عبادتونه اداء کيږي: عمره او حج، اول عمره کيږي، نو په دې عبارت کي د عمرې طريقه را ښيي چي په عمرې کي به څلور کاره کيږي: (۱) د حج په مياشت کي د عمرې احرام تړل، (۲) اووه[۷] شوطه طواف کول (۳) د صفا او مروه په مينځ کي اووه[۷] شوطه سعی کول، (۴) تر هغه وروسته حلق يا قصر کول. او حلالېدل.

## د عمرې طريقه

وَكَذَلِكَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يُفْرِدَ بِالْعُمْرَةِ او همدا ډول چي کله يو څوک اراده وکړي چي يوازي به عمره کوي فَعَلَ مَا ذَكَرْنَا نو هغه دي وکړي کوم چي موږ ذکر کړل هَكَذَا فَعَلَ ❶ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ همدارنګه نبي ﷺ په قضائي عمره کي وکړل وَقَالَ مَالِكٌ: لَا حَلْقَ عَلَيْهِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر عمره کونکي حلق نسته إِنَّمَا الْعُمْرَةُ الطَّوَافُ وَالسَّعْيُ عمره خو صرف طواف او سعي (ته ويل کيږي) وَحُجَّتُنَا عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا او د امام مالک په خلاف هغه حديث حجت دی کوم چي موږ روايت کړی وَقَوْلُهُ تَعَالَى مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ [الفتح: ۲۷] نَزَلَتْ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ او د الله تعالیٰ (دا) قول محلقين رؤسکم د قضائي عمرې په باره کي رانازل سو وَلِأَنَّهَا لَمَّا كَانَ لَهَا تَحَرُّمٌ بِالتَّلْبِيَةِ كَانَ لَهَا تَحَلُّلٌ بِالْحَلْقِ او څکه کله چي د عمرې تحريم په تلبيه سره دی نو په حلق سره به د هغې تحليل کيږي(يعني کله چي د تلبيې په ذريعه د عمرې احرام تړل کيږي نو د حلق په ذريعه به يې حلالول هم پکار وي) كَالْحَجِّ لکه په حج کي (چي د حلق يا د قصر په ذريعه حلاليږي).

**تشريح**: فرمايي د عمرې کوم کيفيت او کومه طريقه چي د متمتع ده. هغه طريقه د يوازي عمره کونکي سري لپاره هم ده. يعني هغه سړی چي فقط د عمرې په غرض احرام وتړي. او مکې مبارکي ته ولاړ سي، هغه به هم مخکني څلور اعمال کوي: (۱) د عمرې احرام به تړي، (۲) طواف به کوي، (۳) سعی به کوي، (۴) حلق يا قصر به کوي، څکه چي نبي ﷺ هم په عمرةُ القضاء کي دغه ډول طواف. سعی او حلق وکړل. امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر عمره کونکي حلق نسته. او عمره خو صرف طواف او سعی ته ويل کيږي، لېکن په عمرةُ القضاء کي د نبي ﷺ معمول د هغه په خلاف حجت دی. څکه چي نبي ﷺ په عمرةُ القضاء کي له طواف او سعی څخه ماسوا حلق هم کړی وو، همدارنګه په

---

❶ تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب من ساق البدن معه، حديث رقم: ۱۶۹۱.

محققین رحمهم الله او مفسرینو کې هم د عمرة القضاء په باره کې حلق او قصر وارد سوی دی. چې له دې څخه هم په عمره کې د حلق کول ضروري معلومیږي.

وإنها الخ په دې لړ کې دریم دلیل دا دی چې کله په تلبیې سره عمره کونکی محرم کیږي، نو په حلق یا قصر سره به هغه ته حلالېدل پکار وي، لکه په حج کې چې حاجي په تلبیه سره محرم کیږي، او په حلق یا قصر سره حلالیږي (همدا رول په عمره کې هم په حلق یا قصر سره حلالېدل پکار دي).

## د طواف په شروع کې د تلبیې د ختمولو حکم

وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ إِذَا ابْتَدَأَ بِالطَّوَافِ او تلبیه به پرېږدي چې کله طواف شروع کړي وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: كُلَّمَا وَقَعَ بَصَرُهُ عَلَى الْبَيْتِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې هر کله د هغه نظر پر کعبې (مبارکې) پرېوځي (نو تلبیه به پرېږدي) لِأَنَّ الْعُمْرَةَ زِيَارَةُ الْبَيْتِ ځکه چې عمره خو د کعبې زیارت دی (یعني د کعبې زیارت ته ویل کیږي) وَتَتِمُّ بِهِ او په نظر پرېوتلو سره زیارت پوره کیږي وَلَنَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[●] فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ قَطَعَ التَّلْبِيَةَ حِينَ اسْتَلَمَ الْحَجَرَ او زموږ دلیل دا دی چې نبي ﷺ په قضائي عمره کې تلبیه هغه وخت پرېښووله څه وخت چې یې حجرِ اسود مچ کړه وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الطَّوَافُ او ځکه چې مقصود طواف دی فَيَقْطَعُهَا عِنْدَ افْتِتَاحِهِ نو ځکه به د طواف د شروع کولو په وخت کې تلبیه پرېږدي وَلِهَذَا يَقْطَعُهَا الْحَاجُّ عِنْدَ افْتِتَاحِ الرَّمْيِ همدا وجه ده چې حاجي د رمي د شروع کولو په وخت کې تلبیه پرېږدي.

**اللغات:** ﴿يقطع﴾ د فتح مضارع ده: پرېکول، ختمول، پرېښوول.

**تشریح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې عمره کونکي به د طواف د شروع کولو په وخت کې سمدستي تلبیه پرېږدي، او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې کله د هغه نظر پر کعبې مبارکې پرېوځي، نو سمدستي به تلبیه پرېږدي، د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې عمره د کعبې زیارت کولو ته ویل کیږي، او د کعبې زیارت په نظر پرېوتلو سره پوره کیږي، نو ځکه به پر کعبې مبارکې په نظر پرېوتلو سره سمدستي تلبیه پرېږدي.

ولنا الخ زموږ دلیل دا دی چې نبي ﷺ د عمرة القضاء په وخت کې تلبیه هغه وخت پرېښووله، کله چې یې حجر اسود مچ کړه، نو ثابته سوه چې د طواف شروع کولو په وخت کې به تلبیه پرېږدي، نه پر کعبې د نظر پرېوتلو په وخت کې، دویم دلیل دا دی چې د عمرې مقصود طواف دی، نو ځکه به د طواف د شروع کولو په وخت کې تلبیه پرېږدي، همدا وجه ده چې کله په حج کې هم حاجي د طوافِ زیارت تیاري شروع کړي یعني رمي شروع کړي نو سمدستي به تلبیه پرېږدي.

## د متمتع لپاره تر عمرې وروسته اعمال

قَالَ: وَيُقِيمُ بِمَكَّةَ حَلَالًا فرمايي: او په مکه کې به حلال پاته سي لِأَنَّهُ حَلَّ مِنَ الْعُمْرَةِ ځکه چې هغه له عمرې څخه حلال سو قَالَ: فَإِذَا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ مِنَ الْمَسْجِدِ بیا چې کله یوم ترویه سي نو له مسجد حرام څخه دې د

---

● تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء متى يقطع التلبية في العمرة، حديث رقم: ۹۱۹.

حج احرام وتړي وَالشَّرْطُ أَنْ يُحْرِمَ مِنَ الْحَرَمِ او له حرم څخه احرام تړل شرط دي أَمَّا الْمَسْجِدُ فَلَيْسَ بِلَازِمٍ او له مسجد څخه تړل لازم نه دي وَهٰذَا لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمَكِّيِّ او دا ځکه چې دا سړی د مکې په حکم کې دی وَمِيقَاتُ الْمَكِّيِّ لِلْحَجِّ الْحَرَمُ او د مکې میقات په حج کې حرم دی عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه څرنګه چې (دا خبره) موږ بیان کړه وَفَعَلَ مَا يَفْعَلُهُ الْحَاجُّ الْمُفْرِدُ او دا سړی دي هغه افعال وکړي کوم چې يې مفرد بالحج کوي لِأَنَّهُ مُؤَدٍّ لِلْحَجِّ ځکه چې هغه د حج اداء کونکی دی إِلَّا أَنَّهُ يَرْمُلُ فِي طَوَافِ الزِّيَارَةِ لیکن هغه به په طواف زیارت کې رمل کوي وَيَسْعَى بَعْدَهُ او تر طواف وروسته به سعی کوي لِأَنَّ هٰذَا أَوَّلُ طَوَافٍ لَهُ فِي الْحَجِّ ځکه چې دا په حج کې د هغه اول طواف دی بِخِلَافِ الْمُفْرِدِ په خلاف د مفرد لِأَنَّهُ قَدْ سَعَى مَرَّةً ځکه چې هغه یو وار سعی کړې ده.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې متمتع کله د عمرې له افعالو څخه فارغه سي، نو اوس هغه ته حکم دا دی چې احرام دې خلاص کړي، او د حلالوالي په حالت کې دې په مکه کې پاته سي، بیا چې کله یوم ترویه یعني د ذی الحجې اتمه ورځ راسي، نو د حج احرام دې وتړي، دا احرام به له حرم څخه تړي، ځکه چې له حرم څخه د دې احرام تړل شرط دی، او له مسجد حرم څخه تړل افضل دي، همدارنګه له یوم ترویه څخه مخکې احرام تړل افضل دي، دلیل دا دی چې دا سړی د مکې د اوسېدونکي سړي په حکم کې دی، او په حج کې دننه د مکې د اوسېدونکي میقات حرم دی، لکه مخکې چې د مواقیتو په بیانو کې دا خبره ذکر سوه، نو که دا سړی د حرم په هره حصه کې احرام وتړي، صحیح دي، خو له مسجد حرام څخه تړل افضل دي.

وفعل الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمایي چې دا متمتع دي هغه افعال وکړي، کوم چې يې مفرد بالحج کوي، ځکه چې اوس هغ د حج افعال اداء کوي، هو! دومره فرق سته چې دا سړی دي په طواف زیارت کې رمل وکړي، او تر هغه وروسته دي د صفا او مروه په مینځ کې سعی وکړي، ځکه چې په حج کې دا د هغه اول طواف دی، په خلاف د مفرد چې هغه مخکې په طواف قدوم کې سعی کړې ده. او سعی صرف یو ځل مشروع ده.

## که متمتع منیٰ ته تر تللو مخکې طواف وکړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ كَانَ هٰذَا الْمُتَمَتِّعُ بَعْدَمَا أَحْرَمَ بِالْحَجِّ طَافَ وَسَعَى قَبْلَ أَنْ يَرُوحَ إِلَى مِنًى او که دغه متمتع د حج د احرام تر تړلو وروسته (او) منیٰ ته تر روانېدلو مخکې طواف او سعی وکړي لَمْ يَرْمُلْ فِي طَوَافِ الزِّيَارَةِ وَلَا يَسْعَى بَعْدَهُ (نو) په طواف زیارت کې به رمل نه کوي او نه به تر هغه وروسته سعی کوي لِأَنَّهُ قَدْ أَتَى بِذٰلِكَ مَرَّةً ځکه چې هغه یو وار (رمل او سعی) وکړل وَعَلَيْهِ دَمُ التَّمَتُّعِ او پر هغه د تمتع قرباني واجب ده لِلنَّصِّ الَّذِي تَلَوْنَاهُ د هغه آیت په وجه کوم چې موږ تلاوت کړی فَإِنْ لَمْ يَجِدْ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ بیا که هغه (د قرباني څاروی) پیدا نه کړی نو د حج (په وخت) کې دي درې روژې ونیسي وَسَبْعَةً إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ او اووه (۷) روژې دي (هغه وخت) ونیسي چې کله خپل أهل و عیال ته راستن سي عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي بَيَّنَّاهُ فِي الْقِرَانِ د هغه طریقې مطابق کوم چې په موږ په حج قران کې بیان کړه

| |
|---|
| فَإِنْ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ شَوَّالٍ ثُمَّ اعْتَمَرَ او كه په شوال كي درې ورځې ونيسي بيا عمره وكړي لَمْ يُجْزِهِ عَنِ الثَّلَاثَةِ نو دا د تمتع د دريو ورځو لپاره كافي نه دي لِأَنَّ سَبَبَ وُجُوبِ هٰذَا الصَّوْمِ التَّمَتُّعُ ځكه د دې روژو د واجبدلو سبب تمتع ده لِأَنَّهُ بَدَلٌ عَنِ الْهَدْيِ ځكه چي دا روژې د هدي (دم) بدل دي وَهُوَ فِيْ هٰذِهِ الْحَالَةِ غَيْرُ مُتَمَتِّعٍ او هغه په دې حالت كي متمتع نه دى فَلَا يَجُوْزُ أَدَاؤُهُ قَبْلَ وُجُوْدِ سَبَبِهِ نو د سبب تر وجود مخكي به د روژو اداء كول جائز نه وي وَإِنْ صَامَهَا بِمَكَّةَ بَعْدَمَا أَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ قَبْلَ أَنْ يَطُوْفَ او كه د عمرې د احرام تر تړلو وروسته (او) تر طواف مخكي روژې ونيسي جَازَ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز جائز دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لَهُ قَوْلُهُ تَعَالٰى: فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ [البقرة: ۱۹۶] د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د الله تعالىٰ (دا) قول دی: فصيام ثلاثة أيام في الحج وَلَنَا أَنَّهُ أَدَاءُ بَعْدَ انْعِقَادِ سَبَبِهِ او زموږ دليل دا دی چي متمتع روژې د سبب تر وجود وروسته اداء كړې وَالْمُرَادُ بِالْحَجِّ الْمَذْكُوْرِ فِي النَّصِّ وَقْتُهُ او په نص كي چي كوم حج ذكر سوی دی له هغه څخه د حج وخت مراد دی عَلٰى مَا بَيَّنَّا لكه څرنگه چي موږ (دا خبره) بيان كړه وَالْأَفْضَلُ تَأْخِيْرُهَا إِلٰى آخِرِ وَقْتِهَا وَهُوَ يَوْمُ عَرَفَةَ او افضل تر آخري وخته پوري د روژو ځنډول دي او (آخري وخت) د عرفات ورځ ده لِمَا بَيَّنَّا فِي الْقِرَانِ د هغه دليل په وجه كوم چي موږ په قران كي بيان كړی. |

**اللغات:** ﴿يروح﴾ د نصر مضارع ده: روانېدل. ﴿وجه﴾ صورت، طريقه. ﴿انعقاد﴾ د انفعال مصدر دی: منعقد كېدل، واقع كېدل.

**تشريح:** مخكي ذكر سوه چي متمتع به له عمرې څخه تر فراغت وروسته احرام خلاص كړي. او په مكه كي به په حلال حالت كي مقيم پاته سي، او كله چي د ذو الحجې اتم تاريخ سي. نو د حج احرام به وتړي. نو اوس كه متمتع د حج احرام وتړی، او منىٰ ته تر تللو مخكي يې طواف قدوم او سعي وكړه، نو هغه به په طواف زيارت كي نه رمل كوي. او نه به تر هغه وروسته سعي كوي، برابره ده كه په طواف قدوم كي يې رمل كړی وي، كه نه وي. تر طواف زيارت وروسته به سعي ځكه نه كوي، چي هغه خو تر طواف قدوم وروسته يو وار سعي وكړه، نو تر طواف زيارت وروسته به سعي نه كوي، او په طواف زيارت كي به رمل ځكه نه كوي چي رمل په داسي طواف كي مشروع دی چي تر هغه وروسته سعي وي، او دلته تر طواف زيارت وروسته سعي نسته، ځكه چي سعي يو وار وسوه، نو ځكه به په طواف زيارت كي رمل نه كوي.

وعليه دم التمتع الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر متمتع د تمتع قرباني واجب ده. دليل دا آيت دی: فمن تمتع بالعمرة إلى الحج فما استيسر من الهدى، او كه متمتع د هدي پر قرباني قادر نه وو. نو د قارن په څېر به د حج په موسم كي درې ورځې ونيسي، او اووه روژې به له حج څخه تر فراغت وروسته ونيسي. تفصيل او دليل په حج قران كي تېر سو.

فإن صام الخ د دې حاصل دا دی كه ديو سړي اراده د حج تمتع وه، او د شوال په مياشت كي يې درې روژې ونيولې. بيا يې د عمرې احرام وتړی، او قرباني يې پيدا نه كړه، نو دا درې روژې د تمتع د قرباني لپاره كافي نه دي، بلكي د عمرې تر احرام وروسته به دويم وار درې روژې نيسي، ځكه چي دا درې ورځې د تمتع د قرباني په بدله كي دي، او تمتع د عمرې

تر احرام وروسته شروع کيږي، نو تر احرام مخکي د روژو سبب پيدا نه سو، نو ځکه به دا روژې کافي نه وي، ځکه چي تر سبب مخکي د هغو وجود نه سي راتلای.

وإن صامها الخ او که تر احرام وروسته او تر طواف مخکي هغه دري روژې ونيولې، نو زموږ په نيز جائز دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا آيت دی: فصيام ثلاثة أيام في الحج. په دې توګه چي په دې آيت کي د حج په حالت کي د روژو نيولو ذکر سوی دی، او د حج حالت هغه وخت شروع کيږي چي کله د حج احرام وتړل سي، نو ځکه به د حج د احرام تر تړلو وروسته دا روژې جائز وي، د عمرې تر احرام وروسته به جائز نه وي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چي دې سري د سبب يعني د تمتع تر وجود وروسته دري روژې اداء کړي دي، او تر سبب وروسته اداء کول شرعاً صحيح دي، نو ځکه به د عمرې تر احرام وروسته دا روژې هم معتبري او صحيح وي.

والمراد بالحج الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي فرمايي چي په دې آيت کي له حج څخه مراد نفسِ حج نه دی، بلکي د حج وخت مراد دی، او د حج وخت شوال، ذوالقعده او د ذو الحجې لس ورځي دي، نو په پورتني صورت کي هم د حج په وخت کي دا روژې راغلې، لېکن افضل دا ده چي دا روژې تر آخري وخته پوري وځنډول سي، چي د دې روژو آخري روژه د عرفات په ورځ راسي، په دې توګه چي د ذو الحجې په ۷، ۸ او ۹ دي روژه ونيسي، ځکه دا اُميد سته چي قرباني به په لاس ورسي، لکه مخکي چي هم په بابُ القِران کي دا خبره په تفصيل سره ذکر سوه.

## د متمتع لپاره د هدي د بېولو حکم او طريقه

وَإِنْ أَرَادَ الْمُتَمَتِّعُ أَنْ يَسُوقَ الْهَدْيَ او که متمتع وغواړي چي د هدی څاروی بوزي أَحْرَمَ وَسَاقَ هَدْيَهُ نو احرام دي وتړي او خپل هدی دي بوزي وَهٰذَا أَفْضَلُ او دا افضل دي لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● سَاقَ الْهَدَايَا مَعَ نَفْسِهِ ځکه نبي ﷺ (هم) د خپل ځان سره د هدي څارويان بوتله وَلِأَنَّ فِيهِ اِسْتِعْدَادًا وَمُسَارَعَةً او ځکه چي په هدی بېولو کي د (عبادت لپاره) تيارېدل او تېزي کول دي فَإِنْ كَانَتْ بَدَنَةً قَلَّدَهَا بِمَزَادَةٍ أَوْ نَعْلٍ بيا که هدی بدنه وي نو هغې ته دي د څرمني د توکړې (توتې) طوق واچوي يا دي د څپلی (نال) طوق ور واچوي لِحَدِيثِ● عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حديث په وجه عَلَى مَا رَوَيْنَاهُ لکه څرنګه چي موږ (مخکي) روايت کړی وَالتَّقْلِيدُ أَوْلَى مِنَ التَّجْلِيلِ او طوق اچول ډېر غوره دي تر ځل (خورجين) اچولو لِأَنَّ لَهُ ذِكْرًا فِي الْكِتَابِ ځکه چي د طوق اچولو ذکر په قرآن کي سته وَلِأَنَّهُ لِلْإِعْلَامِ او ځکه چي طوق اچول د خبر ورکولو لپاره دي وَالتَّجْلِيلُ لِلزِّينَةِ او ځل اچول د ښکلا لپاره دي وَيُلَبِّي ثُمَّ يُقَلِّدُ او متمتع به تلبيه ووايي بيا به طوق ور واچوي لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُحْرِمًا بِتَقْلِيدِ الْهَدْيِ وَالتَّوَجُّهِ مَعَهُ ځکه چي هغه هدي ته په طوق اچولو او د هدی سره په روانېدلو محرم کيږي عَلَى مَا سَبَقَ لکه

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب من ساق البدن معه، حديث رقم: ۱۶۹۱.

● تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب المناسک، باب من بعث هديه و أقام، حديث رقم: ۱۷۵۹.

مخکي چي (دا بيان) تېر سو وَالْأَوْلَى أَنْ يُعْقِدَ الْإِحْرَامَ بِالتَّلْبِيَةِ نو ځکه غوره دا ده چي په تلبيه سره احرام وتړي وَيَسُوقَ الْهَدْيَ او هدى به وشړي (بوزي) وَهُوَ أَفْضَلُ مِنْ أَنْ يَقُودَهَا او د هدي شړل (بېول) افضل دي تر دې چي کش يې کړي لِأَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْرَمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ وَهَدَايَاهُ تُسَاقُ بَيْنَ يَدَيْهِ ځکه نبي ﷺ په ذوالحليفه کي احرام وتړی او د نبي ﷺ هدايا د نبي ﷺ مخته شړل کېدې (بېول کېدې) وَلِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِي التَّشْهِيرِ او ځکه چي دا طريقه (د هدي) په مشهوره کولو کي زياته بليغه ده إِلَّا أَنْ لَا تَنْقَادَ مګر که هدى غاړه نه کښېږدي (بلکي شوخي کوي) فَحِينَئِذٍ يَقُودُهَا نو په دې وخت کي به يې کشوي.

**اللغات:** ﴿هدايا﴾ جمع د هدي ده: هغه ځاروی چي د حج په وخت کي په حرم کي قرباني کيږي. ﴿استعداد﴾ د استفعال مصدر دی: تياري کول. ﴿مسارعة﴾ د مفاعلې مصدر دی: تېزي او چابکي کول. ﴿مزادة﴾ بدنۍ، هغه لوښی چي د سفر سامان پکښي اېښول کيږي. ﴿نعل﴾ څپلۍ، نال (هغه اوسپنيزه حلقه چي د آس او غويي او د نورو پر ښونګرو لګيږي). ﴿تقليد﴾ د تفعيل مصدر دی: طوق ور اچول، رسۍ ور اچول، غاړکۍ ور اغوستل. ﴿إعلام﴾ د افعال مصدر دی: خبر ورکول. ﴿يقود﴾ د نصر مضارع ده: کشول. ﴿تساق﴾ مضارع مجهوله صيغه ده: شړل، بېول. ﴿بين يديه﴾ مخته. ﴿لا تنقاد﴾ د انفعال نفي صيغه ده: غاړه ايښوول، تابع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله متمتع هدى يې بېول وغواړي، نو هغه ته پکار ده چي احرام وتړي او هدى روانه کړي، دا طريقه يعني د ځان سره د هدي بېول افضله دي، ځکه چي نبي ﷺ په حجة الوداع کي خپلي هدايا د خپل ځان سره بېولي وې، نو د نبي ﷺ په اقتداء کي هر حاجي ته هدى بېول افضل او غوره دي، په دې لړ کي دويم دليل دا دی چي د خپل ځان سره د هدې په بېولو کي د خير او د عبادت تياري ده او د واجب په اداء کولو کي تېزي او تلوار دی، او دا دواړه شرعاً خوښ شيان دي.

فإن كانت الخ اوس که د هدي ځاروی اوښ يا غوا وي، نو د هغه غاړي ته دي د څرمني د ټوټې يا د څپلۍ د ټوکړې طوق ور واچوي، لکه مخکي چي حديث د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په دې باره کي تېر سو: کنت أفتل قلائد هدى رسول الله ﷺ ... الخ.

والتقليد أولى الخ فرمايي هدي ته طوق ور اغوستل غوره دي تر دې چي پر هدي ځل (خورجين) واچوي، ځکه چي د طوق ذکر په قرآن کي هم سوی دی، په آيت کي راځي: والهدى والقلائد، دويمه خبره دا ده چي د طوق ور اچول صرف دا خبر ورکوي چي دا ځاروی د هدي دی، لېکن ځل د ښکلا لپاره هم پر اچول کيږي، او دېر ځله د يخ او د ګرمۍ ليري کولو لپاره هم پر اچول کيږي، لهذا تجليل خاص د هدي د ځاروي د خبر ورکولو لپاره نه سو، نو ځکه به تقليد غوره او افضله وي.

ويلبي ثم الخ مخکي دا بيان تېر سو چي که يو سړی هدي ته طوق ور واچوي او د احرام په نيت د هغې سره روان سي. نو احرام تړل کيږي، يعني هغه محرم کيږي، نو په دې وجه غوره دا ده چي د تلبيې په ذريعه احرام وتړي، ځکه چي تلبيه اصل ده، او تر هغه وروسته دي طوق ور واچوي او روان دي سي، نو په دې توګه به د تلبيې په ذريعه احرام هم وتړل سي، او طوق به هم ور واچول سي.

ويسوق الهدى الخ يو د هدي سوق يعني شړل او بېول دي، او بل قود او قيادة يعني د هدي كشول دي. "شړل" دا دي چې هدى مخته روانه وي، او محرم د شا د خوا په پسې وي او شړي يې، "كشول" دا دي چې هدى د محرم شاته وي. او محرم يې را كشوي، نو فرمايي چې د هدي ځاروى د شا له طرفه شړل(هڅه كول) او بېول غوره دي د هغه له كشولو څخه. ځكه كله چې رسول الله ﷺ له ذوالحليفه څخه احرام وتړى، نو د نبي ﷺ د هدي ځارويان د نبي ﷺ مخته شړل كېدل. دويم دليل دا دى چې د هدي په شړلو او بېولو سره هدى په عوامو كي مشهوره كيږي، او په دې سره هر سړي ته دا خبره معلوميږي چې دا د هدي ځاروى دى(نو هيڅ غل او ډاكو به هيڅ ډول كار هم نه په لري. او كه ورك سي نو بيرته به يې خلګ مالک ته سپاري)، لهذا شړل افضله دي، هوا كه د هدي ځاروى شوخ وي، او په شړلو سره نه ځي، نو په داسې صورت كي يې كشولاى سي، او په دې كي هيڅ حرج نسته.

## د هدي او د بدنې د إشعار حكم (او د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَأَشْعَرَ الْبُدْنَةَ عِنْدَ أَبِيْ يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ فرمايي: چي محرم دي د بدنې إشعار وكړي د صاحبينو په نيز وَلَا يُشْعِرُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام صاحب په نيز به إشعار نه كوي وَيُكْرَهُ الْإِشْعَارُ او إشعار مكروه دى هُوَ الْإِدْمَاءُ بِالْجُرْحِ لُغَةً او إشعار په لغت كي (وينل كيږي) په زخمي كولو سره وينه را ايستل(يعني د بُدنې په بوک كي چاره وهل او وينه را ايستل) وَصِفَتُهُ أَنْ يَشُقَّ سَنَامَهَا او د اشعار طريقه دا ده چي د بدنې بوک څيري كړي بِأَنْ يَطْعَنَ فِي أَسْفَلِ السَّنَامِ مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ په دې توګه چي له راسته طرف څخه بوک په لاندي حصه كي ووهي قَالُوْا: وَالْأَشْبَهُ هُوَ الْأَيْسَرُ متأخرينو ويلي دي: چي زيات مشابه(يعني زيات غوره) چپه طرف دى لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● طَعَنَ فِي جَانِبِ الْيَسَارِ مَقْصُوْدًا ځكه نبي ﷺ په چپه طرف كي قصداً نيزه وهلې وه وَفِي جَانِبِ الْأَيْمَنِ اتِّفَاقًا او په راسته طرف كي يې اتفاقاً(يعني بېله قصده) نيزه وهلې وه وَيُلَطِّخُ سَنَامَهَا بِالدَّمِ إِعْلَامًا او د هدي بوک دي په وينو ولړي د خبر وركولو لپاره(چي دا د هدى ځاروى دى) وَهٰذَا الصُّنْعُ مَكْرُوْهٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او دا عمل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مكروه دى وَعِنْدَهُمَا حَسَنٌ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز ښه دى وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ سُنَّةٌ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز سنت دى لِأَنَّهُ مَرْوِيٌّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَنِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ځكه چي اشعار له نبي ﷺ او له خلفاء راشدينو څخه(هم) رانقل سوى دى وَلَهُمَا أَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنَ التَّقْلِيْدِ أَنْ لَا يُهَاجَ إِذَا وَرَدَ مَاءً أَوْ كَلَأً او د صاحبينو دليل دا دى چي د طوق ور اچولو مقصد دا دى چي كله د هدي ځاروى اوبو يا وښو ته راسي نو نه دي ښړل كيږي أَوْ يُرَدُّ إِذَا ضَلَّ يا چي كله ورک سي نو واپس دي كړى سي وَإِنَّهُ فِي الْإِشْعَارِ أَتَمُّ او دا معنىٰ په اشعار كي پوره ده لِأَنَّهُ أَلْزَمُ ځكه چي اشعار (د اوښ سره) لازم(يعني متصل) دى فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ يَكُوْنُ سُنَّةً نو په دې وجه به سنت وي إِلَّا أَنَّهُ عَارَضَهُ جِهَةُ كَوْنِهِ مُثْلَةً خو د اشعار سره د مُثله كېدلو اړخ(هم) معارض سوى دى فَقُلْنَا بِحُسْنِهِ نو

---

● تخريج: أخرجه الإمام مالک في الموطاء في كتاب الحج، باب العمل في الهدى حين يساق، حديث رقم: ۱۴۵.

ځکه موږ ورېل چې اشعار حسن (يعني غوره) دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ مُثْلَةٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې اشعار مُثله ده وَأَنَّهُ مَنْهِيٌّ عَنْهُ او له مُثلې څخه منع سوې ده (نو ځکه به اشعار مکروه وي) وَلَوْ وَقَعَ التَّعَارُضُ فَالتَّرْجِيحُ لِلْمُحَرِّمِ او که (د حُرمت اواباحت په مينځ کې) تعارض واقع سي نو ترجيح حُرمت لره وي وَإِشْعَارُ ● النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لِصِيَانَةِ الْهَدْيِ او د نبي ﷺ اشعار د هدي د ساتني لپاره وو لِأَنَّ الْمُشْرِكِينَ لَا يَمْتَنِعُونَ عَنْ تَعَرُّضِهِ إِلَّا بِهِ ځکه چې مشركين به په هدی له لاس وهلو څخه نه منع کېدل مگر په اشعار سره (يعني کومه هدی چې به اشعار سوې نه وه مشرکينو به په هغه خامخا کار درلودی يعني هغه به یې نبحه کوله) وَقِيلَ: إِنَّ أَبَا حَنِيفَةَ كَرِهَ إِشْعَارَ أَهْلِ زَمَانِهِ او ورېل سوي دي: چې امام صاحب د خپلي زمانې د خلکو لپاره اشعار مکروه کړی دی لِمُبَالَغَتِهِمْ فِيهِ عَلَى وَجْهٍ يُخَافُ مِنْهُ السِّرَايَةُ ځکه چې هغوی به په اشعار کې دومره مبالغه کوله چې (د زخم) د سرايت کولو ېېره به څني وه وَقِيلَ: إِنَّمَا كَرِهَ إِيثَارَهُ عَلَى التَّقْلِيدِ او ورېل سوي دي: چې اشعار ته پر تقليد ترجيح ورکول مکروه دي.

**اللغات:** ﴿أشعر﴾ د افعال ماضي ده: اشعار کول. ﴿إدماء﴾ د افعال مصدر دی: وينه را ايستل، په وينه لړل. ﴿جرح﴾ د نصر مصدر دی: زخمي کول، زخم لګول. ﴿يشق﴾ د نصر مضارع ده: څيرل. ﴿سنام﴾ بوک، د اوښ يا غوايي د اوږې راوتلې برخه. ﴿يطعن﴾ د فتح مضارع ده: په نېزه وهل. ﴿أسفل﴾ لاندينی حصه. ﴿لايهاج﴾ د فتح نفي مجهوله ده: شړل، ايستل، پرېشانه کول. ﴿يرد﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: راګرځول، واپس راوړل، بيرته ورکول. ﴿تعرض﴾ د تفعّل مصدر دی: لاس وهنه (يو شي ته ضرر رسول).

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که د هدی څاروی بزه يا پسه وي، نو په اتفاق سره د هغه اشعار کول مکروه دي، او که بُلنه يعني اوښ يا غوا وي، نو د صاحبينو په نېز د هغه اشعار کول جائز او ښه دي. او د امام صاحب په نېز د هغه اشعار کول مکروه دي، په لغت کې اشعار دې ته وېل کيږي چې محرم په هدی کې داسي زخم جوړ کړي چې وينه څني را ووځي، طريقه يې دا ده چې له راسته طرف څخه بوک په لاندي حصه کې په نېزه ووهل سي، او څيري کړل سي، متأخرين علماء فرمايي چې د بوک په چپه طرف کې نېزه وهل غوره دي، ځکه نبي کريم ﷺ په چپه طرف کې قصداً او په اراده نېزه وهلې وه، او په راسته طرف کې يې نابيره او بېله ارادې نېزه وهلې وه، او ښکاره ده چې د نبي ﷺ قصداً عمل به دأمت لپاره د عمل او تقليد وړ وي.

ويلطخ الخ فرمايي چې د اشعار کولو په وخت کې به په را وتونکو وينو سره د څاروي بوک ولړل سي، چې خلک پوه سي چې دا څاروی د هدي دی.

وعند الشافعي الخ د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز اشعار سنت دی، ځکه چې دا عمل له نبي ﷺ او خلفاءِ راشدينو څخه راورت سوی دی.

---

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب إشعار البدن و ما تقليده عند الاحرام، حديث رقم: ٢٠٥.

ولهما الخ د صاحبینو دلیل دا دی چې د هدې څاروي ته د طوق ور اچولو مقصد دا دی چې خلک د هغه احترام وکړي، او چې کله هغه وښو یا اوبو ته راسي، نو خلک په هغه کار نه ولري، او له وښو یا اوبو څخه یې نه وشړي، او له تقليد څخه بغير په اشعار کې هم دا مقصد په پوره توګه حاصلیږي، ځکه چې اشعار هم د اوبښ سره لازم دی، یعني د اشعار زخم هم ژر نه جوړیږي، او هر وخت په اوبښ کې هغه زخم معلومیږي (لیکن طوق پرېکېدای هم سي)، لهذا اشعار خو سنت کېدل پکار وو، لیکن څرنګه چې په اشعار کې يو ډول د مُثلې معنیٰ هم سته (ځکه څرنګه چې په مُثله کې تکليف ستـ همداسي په دې سره هم څاروی په تکليف کيږي)، نو ځکه به سنت نه وي، خو حسن او غوره به خامخا وي.

ولأبي حنيفة الخ د امام صاحب دلیل دا دی چې څاروی اشعار کول په حقیقت کې څاروی مُثله کول دي (یعني په دې سره څاروي ته تکليف رسول دي)، او په حدیث کې له مثلې څخه منع سوې ده، نو ځکه به اشعار نه سنت وي. او نه حسن، بلکي مکروه به وي، ځکه چې دلته دوه ډوله حديثونه راغلي له يوه څخه د اشعار جواز ثابتیږي، او له بل څخه د مُثلې حُرمت ثابتیږي او قاعده دا ده چې کله محرّم او مبيح دواړه جمع سي، نو ترجيح او غوره والي به محرّم لره وي، لهذا د اشعار جواز که څه هم ثابت دی، خو د حُرمت جانب ته به په ترجيح ورکولو سره هغه مکروه وي. او که دا وویل سي چې کله اشعار مکروه دی، نو بیا نبي ﷺ ولې اشعار وکړی؟ د دې جواب دا دی چې د نبي ﷺ اشعار د هدې د څاروي د حفاظت لپاره وو، ځکه چې مشرکینو او کفارو به هغه څاروی ذبحه کوی چې اشعار سوی به نه وو، خو کله چې به څاروی اشعار سوی وو، نو په هغه به یې لاس نه وهی، نو په دې وجه به د نبي ﷺ هدایا اشعار کېدلې، لهذا کوم عمل چې د مجبوری او ارتيا په وجه صادر سوی وي، هغه سنت نه دی. نو ځکه به اشعار هم سنت نه وي.

وقيل الخ امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چې امام صاحب رَحِمَهُ الله د ټولو خلکو اشعار ته مکروه ويلي نه دي، بلکي امام صاحب رَحِمَهُ الله په خپله زمانه کي (د عراق) د خلکو لپاره اشعار مکروه ګرځولی وو، ځکه چې هغوی به په اشعار کي دومره مبالغه کوله چې ډېر ځله به د زخم د سرايت په وجه د هدي د هلاکېدلو خطره پيدا سوه. او بعضي حضراتو فرمايلي دي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اشعار مکروه نه دی، بلکي مکروه دا دي چې اشعار ته پر تقليد يعني پر طوق اچولو ترجيح ورکړل سي، او تقليد ناقص وګڼل سي، ځکه اصل عمل خو طوق ور اچول دي. نو پر دې به اشعار مخکي کول خلافُ الاولیٰ وي، لهذا په يوه درجه کي ګرځول پکار دي.

## د متمتع سائقُ الهدي او غیرِ سائقُ الهدي په تحلیل کې فرق

قَالَ: فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ طَافَ وَسَعٰى فرمایي: بیا چې کله متمتع مکې ته داخل سي نو طواف او سعی دي وکړي وَهٰذَا لِلْعُمْرَةِ او دا طواف او سعی د عمرې لپاره دي عَلٰى مَا بَيَّنَّا فِيْ مُتَمَتِّعٍ لَا يَسُوْقُ الْهَدْيَ لکه مورږ چې د هغه متمتع په باره کي (دا خبره) بيان کړه چې هدی نه بيايي إِلَّا أَنَّهٗ لَا يَتَحَلَّلُ خو دا چې هغه دي نه حلاليږي حَتّٰى يُحْرِمَ بِالْحَجِّ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ تر دې چې په يوم ترويه کي د حج احرام وتړي لِقَوْلِهِ❶ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِيْ مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا سُقْتُ الْهَدْيَ که په خپل باره کي ماته مخکي دا خبره معلومه وای کوم چې

---

❶ تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب تقضي الحائض المناسك كلها إلا الطواف، حديث رقم: ١٦٥١.

وروسته را ته معلومه سوه نو ما به هدی بېولې نه وای (يعني کومه خبره چي ما ته وروسته معلومه سوه که اول راته معلومه وای نو ملبه هدی نه بېولای) وَلَجَعَلْتُهَا عُمْرَةً او ما به دا احرام د عمرې احرام جوړ کړی وای وَتَحَلَّلْتُ مِنْهَا او له دې څخه به حلال سوی وای وَهٰذَا يَنْفِي التَّحَلُّلَ عِنْدَ سَوْقِ الْهَدْيِ او دا حديث د هدي د بېولو په وخت کي د حلالېدلو نفي کوي.

**اللغات:** ﴿استقبلت﴾ د استفعال ماضي متکلمه ده: (که) ماته مخکي راغلي وای (که ماته مخکي معلومه وای). ﴿استدبرت﴾ مخکنی صيغه ده: (کوم چي) وروسته راته راغله (کوم چي وروسته را ته معلوم سوه). ﴿تحللت﴾ مخکنی صيغه ده: احرام به مي خلاص کړی وای.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کله متمتع هدی د ځان سره بوزي، او مکې ته ورسېږي، نو طواف او سعي دي وکړي، او د هغه طواف او سعی به د عمرې لپاره وي، لکه د هدي د نه بېونکي متمتع په باره کي چي موږ دا خبره بيان کړه، چي هغه به هم مکې ته په رسېدلو سره اول د عمرې طواف او سعی کوي، خو هغه په عمره کولو سره حلالېږي. لېکن دا سړی په عمره کولو سره نه حلالېږي، بلکي محرم پاتېږي. او بيا به په يومِ ترويه کي د حج احرام وتړي، ځکه چي نبي ﷺ د حجة الوداع پر موقع دا فرمايلي وو: "که ماته مخکي د دې خبري علم وای چي د هدي بېول له حلالېدلو څخه انسان منع کوي. نو ما به هدی نه را وستلای، خو څرنګه چي ما اوس هدی را وستې ده. نو ځکه اوس زه نه حلالېږم، او تر يومِ ترويه پوري به محرم پاتېږم، او بيا په يومِ ترويه کي د حج احرام ترم". له دې فرمان څخه دا خبره ښکاره کيږي چي د هدي راوستونکی متمتع د عمرې د افعالو تر اداء کولو وروسته نه حلالېږي.

## په يومِ ترويه کي د متمتع لپاره حکم

وَيُحْرِمُ بِالْحَجِّ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ او د ذی الحجې په اتمه ورځ به متمتع د حج احرام وتړي كَمَا يُحْرِمُ أَهْلُ مَكَّةَ لکه د مکې خلک چي احرام تړي عَلٰى مَا بَيَّنَّا لکه مخکي چي (دا خبره) موږ بيان کړه وَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ قَبْلَهُ جَازَ او که تر يوم ترويه مخکي احرام وتړي نو جائز دي وَمَا عَجَّلَ الْمُتَمَتِّعُ مِنَ الْإِحْرَامِ بِالْحَجِّ فَهُوَ أَفْضَلُ او متمتع چي څومره ژر د حج احرام وتړي هغه افضل دي لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُسَارَعَةِ وَزِيَادَةِ الْمَشَقَّةِ ځکه په دې کي (د عبادت و طرف ته) تېزي (چابکي) او زيات تکليف دی وَهٰذِهِ الْأَفْضَلِيَّةُ فِي حَقِّ مَنْ سَاقَ الْهَدْيَ او دا افضليت د هغه متمتع په حق کي دی چي هدی يې بېولې وي وَفِي حَقِّ مَنْ لَمْ يَسُقْ او د هغه په حق کي (هم) دي چي هدی يې بيولې نه وي وَعَلَيْهِ دَمٌ او پر دې متمتع (هم) قرباني واجب ده وَهُوَ دَمُ التَّمَتُّعِ او دا قرباني د تمتع ده عَلٰى مَا بَيَّنَّا لکه مخکي چي موږ بيان کړه وَإِذَا حَلَقَ يَوْمَ النَّحْرِ فَقَدْ حَلَّ مِنَ الْإِحْرَامَيْنِ او کله چي په ورځ د نحر (يعني د ذی الحجې په لسمه ورځ) سر وخريي نو له دواړو احرامونو څخه حلال سو لِأَنَّ الْحَلْقَ مُحَلِّلٌ فِي الْحَجِّ ځکه چي سر خريل حلالونکي دي په حج کي كَالسَّلَامِ فِي الصَّلَاةِ لکه سلام چي په لمانځه کي (حلالونکی دی) فَيَتَحَلَّلُ بِهِ عَنْهُمَا نو په سر خريلو به د حج او د عمرې دواړو له احرام څخه حلالېږي.

**اللغات:** ﴿يوم التروية﴾ د ذو الحجې اتمه ورځ، ﴿عجّل﴾ د تفعيل ماضي ده: تلوار كول.(يو كار ژر كول).
﴿محلّ﴾ احرام ختمونكى.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دى چې دا متمتع به د عمرې تر اداء كولو وروسته د عمرې په احرام كې پاته سي، او ګله چې د ذو الحجى اتمه يعني ورځ د ترويې سي، نو د مكې د خلكو په ډول به دا سړى هم د حج احرام وتړي، ځكه چې اوس هغه په حرم كې دى او مكّي دى، نو د حج د احرام كوم وخت چې د مكې د خلكو لپاره وي، هغه به د دې لپاره هم وي، او د مكې خلک په يوم ترويه كې د حج احرام تړي، نو دا سړى به هم په يوم ترويه كې احرام تړي، خو كه چيري هغه له يوم ترويه څخه مخكې احرام وتړي نو دا هم جائز دي، بلكې افضل دي، ځكه چې په دې كې د نېكۍ او عبادت و طرف ته وراندې توب او تېزي ده، او په تكليف كې زياتوالى دى، نو په دې وجه به د احرام مخكې كول افضل وي.

وهذا الخ فرمايي چې په دې افضليت كې د هدى بېونكى او نه بېونكى دواړه برابر دي، يعني د دواړو لپاره د حج په احرام كې تلوار كول افضل دي، او پر دې متمتع دمِ تمتع هم واجب ده، ځكه چې دا دم د جمع بين العبادتين شكرانه ده، او دا سړى له دوو عبادتونو څخه يو ځاى نفع اخلي، (لكه مخكې چې په دې باره كې آيت تېر سو: فمن تمتع إلى الحج ...) نو ځكه به پر هغه دم واجب وي.

وإذا حلق الخ فرمايي چې كله متمتع په يوم نحر كې حلق يا قصر وكړي، نو هغه په دې سره د حج او د عمرې دواړو له احرام څخه حلال سو، ځكه چې حلق كول په حج كې محرم حلالوي، لكه په لمانځه كې چې سلام حلالونكى دى، نو د حلق په ذريعه به د عمرې او د حج دواړو له احرام څخه وځي.

## د مكې د اوسېدونكو لپاره د تمتع او قران حكم

قَالَ: وَلَيْسَ لِأَهْلِ مَكَّةَ تَمَتُّعٌ فرمايي: او د مكې د خلكو لپاره نه حجِ تمتع سته وَلَا قِرَانٌ او نه حجِ قران سته وَإِنَّمَا لَهُمُ الْإِفْرَادُ خَاصَّةً بلكې د هغوى لپاره خاص حجِ افراد دى خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دى وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ قَوْلُهُ تَعَالَى: ذَٰلِكَ لِمَن لَّمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ [البقرة: ١٩٦] د امام شافعي په خلاف د الله تعالىٰ (دا) قول حجت دى: ذلك لمن لم يكن أهله حاضري المسجد الحرام وَلِأَنَّ شَرْعَهُمَا لِلتَّرَفُّهِ بِإِسْقَاطِ إِحْدَى السَّفْرَتَيْنِ او ځكه چې د قِران او د تمتع مشروعيت د راحت (او آسانى) حاصلولو لپاره دى په دوو سفرونو كې د يوه سفر په ساقطولو سره وَهَذَا فِي حَقِّ الْآفَاقِيِّ او دا (آساني او) راحت د آفاقي (اطرافي) په حق كې سته وَمَنْ كَانَ دَاخِلَ الْمِيقَاتِ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمَكِّيِّ او څوک چې په ميقات كې دننه وي هغه (هم) د مكّي سړي په درجه كې دى حَتَّى لَا يَكُونَ لَهُ مُتْعَةٌ وَلَا قِرَانٌ تر دې چې د هغه لپاره (هم) نه متعه سته او نه قران بِخِلَافِ الْمَكِّيِّ إِذَا خَرَجَ إِلَى الْكُوفَةِ وَقَرَنَ په خلاف د مكّي سړي چې كله هغه كوفې ته ولاړ سي او قِران وكړي حَيْثُ يَصِحُّ نو دا صحيح دي لِأَنَّ عُمْرَتَهُ وَحَجَّتَهُ مِيقَاتِيَّتَانِ ځكه چې د هغه عمره او حج دواړه ميقاتي دي (يعني دواړه له ميقات څخه كيږي) فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ الْآفَاقِيِّ نو د اطرافي په درجه كې سو.

**اللغات:** ﴿ترفّه﴾ د تفعّل مصدر دی؛ راحت او آساني حاصلول. ﴿آفاق﴾ اطرافي يعني هغه سړی چې په مکه کې نه اوسيږي، بلکې له ميقات څخه بهر او په اطرافو کې اوسيږي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې زموږ په نېز د مکّي سړي او په ميقات کې د اوسېدونکي سړي لپاره نه حجِ قران سته او نه حجِ تمتع سته، بلکې د هغه لپاره صرف حجِ افراد مشروع دی، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د هغه لپاره قران او تمتع کول صحيح دي، او پر هغه د قران او تمتع دم هم نه واجبيږي، لکه څرنګه چې پر آفاقي واجبيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې دا آيت فمن تمتع بالعمرة إلى الحج... الخ مطلق دی، او په دې کې د مکّي او آفاقي هيڅ تفصيل نسته، نو څرنګه چې د آفاقي لپاره قران او تمتع جائز دي، همداسې به د مکّي او ميقاتي لپاره هم دا دواړه حجونه جائز او مشروع وي.

**زموږ دليل:** دا آيت دی: ذلك لمن لم يكن أهله حاضري المسجد الحرام ...الخ يعني دا تمتع د هغه چا لپاره ده چې د هغه کورنۍ د مسجدِ حرام سره نه اوسيږي، يعني حجِ تمتع د غيرِ مکّي سړي او د آفاقي سړي لپاره دی، نو ثابته سوه چې د مکّي لپاره تمتع نسته. په دې آيت کې د ذلك مشار اليه زموږ په نېز تمتع دی. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د وجوبِ هدي حکم دی.

ولأن شرعهما الخ زموږ عقلي دليل دا دی چې حج تمتع او حج قران ځکه مشروع سوي دي چې د حج او د عمرې دواړو لپاره جلا جلا دوه سفرونه نه وکړی سي، بلکې يو سفر ساقط کړی سي، او فقط په يوه سفر کار وسي، او حاجي ته آساني او راحت ورپه برخه سي، او له تکليف څخه وژغورل سي، ځکه چې سفر له تکليف او ستونزو څخه ډک دی، لکه په حديث کې چې راځي: السفر قطعة من العذاب، او د سفر تکليف صرف د آفاقيانو په حق کې سته، نو ځکه به د سفر د ساقطولو راحت هم صرف د آفاقيانو لپاره وي.

ومن كان الخ فرمايي: کوم سړی چې په ميقات کې اوسيږي، هغه هم د مکّي سړي په حکم دی، او د هغه لپاره هم تمتع او قران نسته، خو که يو مکّي سړی د حج له مياشتو څخه مخکې کوفې ته ولاړ سي، نو بيا د هغه لپاره هم تمتع او قران دواړه صحيح دي، ځکه چې اوس د هغه حج او عمره دواړه ميقاتي دي، يعني دواړه له ميقات څخه تري، لهذا دا سړی د آفاقي په درجه کې سو، او د آفاقي لپاره قران او تمتع دواړه جائز دي، نو ځکه به د هغه لپاره هم دواړه حجونه جائز وي.

## تر عمرې وروسته د متمتع لپاره خپل وطن ته د راتګ حکم

وَإِذَا عَادَ الْمُتَمَتِّعُ إِلَى بَلَدِهِ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الْعُمْرَةِ او که متمتع له عمرې څخه تر فراغت وروسته خپل وطن ته واپس راسي وَلَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ او هدي يې (هم مخکې) بوتلې نه وي بَطَلَ تَمَتُّعُهُ نو د هغه تمتع باطليږي لِأَنَّهُ أَلَمَّ بِأَهْلِهِ فِيمَا بَيْنَ النُّسُكَيْنِ إِلْمَامًا صَحِيحًا ځکه چې هغه د دوو نُسُکو يعني د حج او د عمرې په مينځ کې د خپلې کورنۍ سره صحيح الملم وکړی وَبِذَلِكَ يَبْطُلُ التَّمَتُّعُ او په داسې کولو سره تمتع باطليږي كَذَا رُوِيَ عَنْ عِدَّةٍ مِنَ التَّابِعِينَ همدارنګه له يو شمېر تابعينو څخه روايت سوي دي.

**اللغات:** ﴿ألمّ﴾ د افعال ماضي ده: کور ته واپس راتلل (راستنېدل). ﴿عدة﴾ يو شمېر، څو، ډېر.

**تشريح:** مخکې د المام دوه قسمونه او د المام معنیٰ بيان سوه. نو د آسانۍ لپاره اوس بيا ذکر کيږي؛ د إلمام معنیٰ ده د عمرې تر احرام ترلو وروسته خپل وطن ته راتلل بغير له دې څخه چې احرام باقي وساتل سي، بيا المام پر دوه قسمه دی: (١) الماﻡ فاسد، (٢) الماﻡ صحيح. الماﻡ فاسد هغه ته ويل کيږي چې متمتع مخکې د هدی څاروی بېولی وي. بيا يې الماﻡ کړی وي(دې ته الماﻡ فاسد ځکه ويل کيږي چې د هدي د بېولو په وجه اول احرام نه سي ختمولای. لهذا که څه هم خپل کور او وطن ته راسي نو دا به ويل کيږي چې خپل کور ته راغلی نه دی، نو ځکه دې ته الماﻡ فاسد ويل کيږي). او الماﻡ صحيح هغه دی چې مخکې يې د هدیٰ څاروی بيولی نه وي.

**مسئله:** دا ده که د يو سړي اراده د تمتع وه، او هغه د حج په مياشتو کې تر عمرې کولو وروسته خپل وطن ته واپس راغلی، او هدی يې هم بېولې نه وه، نو وطن ته په واپس راتللو سره د هغه تمتع باطليږي، ځکه چې هغه د حج او عمرې په مينځ کې د خپل أهل وعيال سره صحيح الماﻡ وکړی. او په صحيح الماﻡ سره تمتع باطليږي، نو ځکه به د دې سړي تمتع هم باطليږي، لکه څرنګه چې د تابعينو له يوې ډلې څخه هم دا حکم رانقل سوی دی چې د هغو له لړليک څخه سعيد بن المسيّب، عطاء بن أبی رباح، مجاهد او ابراهيم نخعي رَحِمَهُمُ الله هم دي. (بنايه ج:٢، ص: ٢٢٧)

## او که متمتع سائقُ الهدی وو نو څه حکم دی؟

وَإِذَا سَاقَ الْهَدْيَ فَإِلْمَامُهُ لَا يَكُوْنُ صَحِيْحًا او که متمتع د هدي څاروی بوتلی نو د هغه الماﻡ به صحيح نه وي وَلَا يَبْطُلُ تَمَتُّعُهُ عِنْدَ• أَبِیْ حَنِيْفَةَ وَأَبِیْ يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه تمتع نه باطليږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ يَبْطُلُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: باطليږي لِأَنَّهُ أَدَّاهُمَا بِسَفَرَتَيْنِ ځکه چې هغه عمره او حج په دوو سفرونو کې اداء کړه وَلَهُمَا أَنَّ الْعَوْدَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ مَا دَامَ عَلَى نِيَّةِ التَّمَتُّعِ او د شيخينو دليل دا دی چې تر څو د هغه نيت د تمتع وي پر هغه واپس راتلل واجب دي لِأَنَّ السَّوْقَ يَمْنَعُهُ مِنَ التَّحَلُّلِ ځکه چې د هدي بيول هغه له حلال کېدلو څخه منع کوي فَلَمْ يَصِحَّ إِلْمَامُهُ نو د هغه الماﻡ به صحيح نه وي بِخِلَافِ الْمَكِّيِّ إِذَا خَرَجَ إِلَى الْكُوْفَةِ وَأَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَسَاقَ الْهَدْيَ په خلاف د مکّي سړي چې کله کوفې ته ولاړ سي او د عمرې احرام وتړي او هدی يې بوزي حَيْثُ لَمْ يَكُنْ مُتَمَتِّعًا نو هغه نه متمتع کيږي لِأَنَّ الْعَوْدَ هُنَاكَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِ ځکه چې پر هغه دلته واپس راتلل واجب نه دي فَصَحَّ إِلْمَامُهُ بِأَهْلِهِ نو په خپله کورنۍ کې د هغه الماﻡ صحيح سو.

**تشريح:** په دې عبارت کې چې کومه مسئله بيان سوې ده، دا له مخکنۍ مسئلې څخه بالکل عليحده ده، حاصل يې دا دی که تر عمرې کولو وروسته خپل وطن ته واپس راتلونکي سړي هدی يې بيولې وي. نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه تمتع نه باطليږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کې د هغه تمتع باطليږي، ځکه چې دې سړي په دوو سفرونو کې حج او عمره اداء کړل، حال دا چې متمتع به په يوه سفر کې دواړه اداء کوي، نو د سفر د اختلاف په وجه دا سړی متمتع نه سو.

• القول الراجح: هو هذا قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا فی رد المحتار ج:٢، ص: ٢١٥. [القول الراجح ج:١، ص: ٢١٢]

د شيخينو دليل: دا دی چي تر ټولو دا سړی د تمتع پر نيت وي، تر هغه وخته د هغه لپاره مکې مکرمې ته واپس تلل واجب او ضروري دي، ځکه چي هغه مخکي هدی بيولې ده، او د هدي بيول له حلالېدلو ځخه محرم منع کوي. نو ځکه به وطن ته تر راتګ وروسته هم د دې سړي المام نه صحيح کيږي، او کله چي المام نه صحيح کيږي، نو تمتع به يې هم نه باطليږي.

بخلاف المکّي الخ د دې په خلاف که يو مکّي سړی کوفې ته يعني له ميقات ځخه دباندي ولاړ سي، او بيا ميقات ته راسي د عمرې احرام وتړي او هدی هم د ځان سره بوځي، نو هغه نه متمتع کيږي، ځکه چي د هغه وطن مکّه ده، نو کله چي خپل کور ته (يعني مکې ته) راسي، نو المام يې صحيح سو، ځکه چي واپس کوفې ته نه ځي، بلکي د هغه ځای مکه ده، نو داسي سو چي په خپل أهل کي تر المام کولو وروسته کوفې ته کردسره تللی نه دی، او مکې ته واپس راغلی نه دی، بلکي په خپل کور (يعني په مکه) کي وو، نو د هغه المام صحيح سو، نو ځکه به يې تمتع صحيح نه وي.

## د متمتع لپاره د حج په مياشتو کي د عمرې د شرط بيان

وَمَنْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ او څوک چي د حج تر مياشتو مخکي د عمرې احرام وتړي فَطَافَ لَهَا أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعَةِ أَشْوَاطٍ او د عمرې لپاره له څلورو دورونو ځخه کم طواف وکړي ثُمَّ دَخَلَتْ أَشْهُرُ الْحَجِّ بيا د حج مياشتي راسي فَتَمَّمَهَا وَأَحْرَمَ بِالْحَجِّ او هغه عمره پوره کړي او د حج احرام وتړي كَانَ مُتَمَتِّعًا نو دا سړی به متمتع وي (يعني داسړی متمتع دی) لِأَنَّ الْإِحْرَامَ عِنْدَنَا شَرْطٌ ځکه چي زموږ په نيز احرام شرط دی فَيَصِحُّ تَقْدِيمُهُ عَلَى أَشْهُرِ الْحَجِّ نو د حج پر مياشتو به د احرام مخکي کول صحيح وي وَإِنَّمَا يُعْتَبَرُ أَدَاءُ الْأَفْعَالِ فِيهَا او معتبر د حج په مياشتو کي د عمرې افعال اداء کول دي وَقَدْ وُجِدَ الْأَكْثَرُ او د زياتره (اکثره) افعالو اداء کول پيدا سو وَلِلْأَكْثَرِ حُكْمُ الْكُلِّ او اکثر لره حکم د کُل دی وَإِنْ طَافَ لِعُمْرَتِهِ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ فَصَاعِدًا او که هغه د عمرې لپاره د حج له مياشتو ځخه مخکي څلور دوره يا تر دې زيات طواف وکړي ثُمَّ حَجَّ مِنْ عَامِهِ ذَلِكَ بيا په دغه کال حج وکړی لَمْ يَكُنْ مُتَمَتِّعًا نو متمتع به نه وي لِأَنَّهُ أَدَّى الْأَكْثَرَ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ ځکه چي هغه د حج تر مياشتو مخکي اکثره دورونه اداء کړل وَهَذَا لِأَنَّهُ صَارَ بِحَالٍ لَا يَفْسُدُ نُسُكُهُ بِالْجِمَاعِ او دا حکم په دې وجه دی چي دا سړی په داسي حالت کي سو چي په جماع کولو سره د هغه عمره نه باطليږي فَصَارَ كَمَا إِذَا تَحَلَّلَ مِنْهَا قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ نو داسي سو لکه د حج تر مياشتو مخکي چي له عمرې ځخه حلال سي وَمَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ يَعْتَبِرُ الْإِتْمَامَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ او امام مالک رَحِمَهُ الله د حج په ورځو کي د عمرې د پوره کولو اعتبار کوي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَا او د هغه په خلاف زموږ ذکر سوی دليل حجت دی وَلِأَنَّ التَّرَفُّقَ بِأَدَاءِ الْأَفْعَالِ او ځکه چي نفع اخيستل د افعالو په اداء کولو سره راځي وَالْمُتَمَتِّعُ الْمُتَرَفِّقُ بِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ فِي سَفَرَةٍ وَاحِدَةٍ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ او متمتع هغه دی چي نفع واخلي د دوو عبادتونو په اداء کولو سره په يوه سفر کي په مياشتو د حج کي.

تشريح: صورت د مسئلې: دا دی که يو سړي د حج له مياشتو ځخه مخکي د عمرې احرام وتړي، او بيا يې د عمرې لپاره درې دوره (شوطه) طواف هم وکړی، او تر درې شوطه طواف وروسته يې عمره موقوفه کړه، تر دې چي کله د حج

میاشتې راشلې، نو عمره یې پوره کړه، او بیا یې د حج احرام وتړی، نو زموږ په نېز دا سړی هم متمتع دی، ځکه چې زموږ په نېز د عمرې د صحیح کېدلو لپاره احرام شرط دی. او احرام دلته سته، پاتې سوه د حج پر میاشتو د عمرې د احرام مخکې کولو مسئله، نو څرنګه چې طهارت د لمانځه شرط دی، او د لمانځه پر وخت د هغه مخکې کول جائز دي، همداسې احرام هم د عمرې شرط دی، نو دا به هم د حج پر میاشتو مخکې کول جائز وي، خو دا ضروري ده چې څرنګه لمونځ تر خپل وخت داخلېدلو وروسته اداء کیږي، همدا ډول به د حج افعال هم د خپل وخت تر داخلېدلو وروسته اداء کیږي، او په پورتنۍ مسئله کې دې سړي د حج تر میاشتو مخکې د عمرې د طواف لپاره فقط درې شوطه کړي دي، او څلور شوطونه یې د حج په میاشتو کې کړي دي، او څلور د اوو (٧) اکثر دي، نو ځکه به د للأكثر حكم الكل د قاعدې پر بنیاد دا فیصله کیږي چې دې سړي ټوله طواف د حج په میاشتو کې کړی دی، او تر هغه وروسته یې سملستي د حج احرام تړلی دی، لهذا هغه د دواړو عبادتونو یعني د حج او د عمرې جمع کونکې سو، نو ځکه به هغه متمتع وي.

وإن طاف الخ او که د حج له میاشتو څخه یې مخکې څلور شوطه طواف وکړی، او بیا په دغه کال کې حج هم وکړی، نو متمتع نه دی، ځکه چې هغه د حج له میاشتو څخه مخکې د طواف اکثره حصه اداء کړه، او څرنګه چې اکثر لره حکم د کُل دی، نو ګواکې هغه ټوله طواف د حج له میاشتو څخه مخکې وکړی.

وهٰذا الخ صاحب د هدایې فرمایي چې دا سړی په دغه دویم صورت کې ځکه نه متمتع کیږي چې تر څلور شوطه طواف وروسته عمره د جماع کولو په وجه بیا نه فاسدیږي، نو دا سړی د هغه سړي په ډول سو چې د حج له میاشتو څخه مخکې د عمرې له احرام څخه حلال سي، او د حج له میاشتو څخه مخکې چې څوک د عمرې له احرام څخه حلال سي، هغه بالکل نه متمتع کیږي، نو ځکه به دا سړی هم متمتع نه وي.

ومالك رَحِمَهُ اللهُ الخ د امام مالک رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې که څه هم دې سړي د حج تر میاشتو مخکې احرام تړلی دی، او په هغه کې یې څلور شوطه طواف هم کړی دی، خو بیا هم عمره یې د حج په میاشتو کې پوره کړه، لهذا داسې به شمارل کیږي چې عمره یې د حج په میاشتو کې پوره کړې ده، نو ځکه به تمتع صحیح وي، ځکه چې د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز پوره کول معتبر دي، لېکن زموږ بیان سوی دلیل د هغه په خلاف حجت دی، او د هغه د مسلک د تردید لپاره کافي دی.

ولأن الترفق الخ زموږ دویم دلیل او د امام مالک جواب دا دی چې ترفق یعني نفع او راحت د افعالو په اداء کولو سره اخیستل کیږي، او متمتع به هم د حج په میاشتو کې په یوه سفر کې د حج او د عمرې دواړو په اداء کولو سره نفع او راحت حاصلوي، او دغه سړي د حج په میاشتو کې عمره او حج جمع کړې نه دي، بلکې عمره یې د حج تر میاشتو مخکې اداء کړه (ځکه چې أکثر لره هم د حکم د کل وي)، نو ځکه به تمتع صحیح نه وي.

## د حج د میاشتو بیان

قَالَ: وَأَشْهُرُ الْحَجِّ شَوَّالٌ وَذُو الْقَعْدَةِ وَعَشْرٌ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ فرمایي: چې د حج میاشتې شوال، ذوالقعده او د ذو الحجې لس ورځې دي كَذَا رُوِيَ عَنِ الْعَبَادِلَةِ الثَّلَاثَةِ وَعَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ همداسې له دریو عبادله وو (عبدالله ګانو) او له عبد الله ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه (هم) روایت سوی دي وَلِأَنَّ الْحَجَّ يَفُوتُ بِمُضِيِّ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ او ځکه چې حج فوتیږي د ذو الحجې د لسو ورځو په تېرېدلو سره وَمَعَ بَقَاءِ الْوَقْتِ لَا يَتَحَقَّقُ الْفَوَاتُ او د وخت د بقا

په وخت کي فوتېدل نه ثابتيږي وَهٰذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ الْمُرَادَ مِنْ قَوْلِهِ تَعَالَى: اَلْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَاتٌ [البقرة، ١٩٧] شَهْرَانِ وَبَعْضُ الثَّالِثِ او دا دلالت کوي پر دې چي د الله تعالیٰ له (دې) قول: الحج أشهر معلومات څخه دوې مياشتي او د دريمي مياشتي بعضي حصه مراد ده لَاكُلُّهُ نه ټوله مياشته.

**اللغات:** ﴿أشهر﴾ جمع د شهر ده: مياشت، ﴿مضى﴾ د ضرب مصدر دى: تېرېدل، ﴿لا يتحقق﴾ د تفعل مضارع منفي دى: ثابتېدل، پوره کېدل.

**تشريح:** فرمايي چي د شوال، ذوالقعده او ذو الحجې اولي لس ورځي اشهرِ حج يعني د حج مياشتي او وختونه دي، ځکه چي همدارنګه له عبادله ثلاثه (عبد الله بن مسعود، عبد الله بن عباس، عبد الله بن عمر) او له عبد الله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنهُم څخه رانقل سوي دي، او ښکاره ده چي کوم څه له هغو څخه رانقل سوي دي، هغو به دا له نبي ﷺ څخه اورېدلي وي، لهذا په دې لړ کي به د هغو قول او روايت د اعتماد وړ دى.

ولأن الحج الخ په دې لړ کي دويم دليل دا دى چي که د ذو الحجې ټوله مياشته اشهرِ حج واى، لکه امام مالک رَحِمَهُ الله چي فرمايي، نو د ذو الحجې د لسو ورځو تر تېرېدلو وروسته به د يو چا حج صحيح کېدلاى او فوتېدلاى به نه، ځکه چي د وخت په بقاء کي هيڅ شی نه فوتيږي، لهذا د ذاوالحجې تر لسو ورځو تېرېدلو وروسته د حج فوتېدل د دې خبري ښکاره دليل دى چي د ذو الحجې ټوله مياشت په اشهرِ حج کي داخله نه ده، بلکي د دې مياشتي صرف لس ورځي په اشهرِ حج کي داخل دي، او له دې څخه دا خبره هم ښکاره کيږي چي په الحج أشهر معلومات کي که څه هم لفظ د أشهر جمع ده، خو بيا هم له دې څخه د شوال او د ذو القعدې پوره دوې مياشتي او د ذو الحجې لس ورځي مراد دي.

## د حج تر مياشتو مخکي د احرام د تړلو حکم

فَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ بِالْحَجِّ عَلَيْهَا بيا که يو څوک د حج له مياشتو څخه مخکي احرام وتړي جَازَ إِحْرَامُهُ وَانْعَقَدَ حَجًّا نو د هغه احرام جائز دى او د حج لپاره وتړل سو (يعني د حج لپاره يې تړل صحيح سو) خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دى فَإِنَّ عِنْدَهُ يَصِيرُ مُحْرِمًا بِالْعُمْرَةِ ځکه د هغه په نېز په عمرې سره محرم کيږي لِأَنَّهُ رُكْنٌ عِنْدَهُ ځکه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز احرام يو رکن دى وَهُوَ شَرْطٌ عِنْدَنَا لېکن زموږ په نېز احرام شرط دى فَأَشْبَهَ الطَّهَارَةَ فِي جَوَازِ التَّقْدِيمِ عَلَى الْوَقْتِ نو احرام د طهارت سره مشابه سو پر خپل وخت د مخکي کولو په جواز کي (يعني څرنګه چي اودس پر خپل وخت مخکي کول جائز دي همداسي به احرام هم پر خپل وخت مخکي کول جائز وي) وَلِأَنَّ الْإِحْرَامَ تَحْرِيمُ أَشْيَاءَ وَإِيجَابُ أَشْيَاءَ او ځکه چي احرام د يو څو شيانو حرامول او د يو څو شيانو واجبول دي وَذٰلِكَ يَصِحُّ فِي كُلِّ زَمَانٍ او دا په هره زمانه کي صحيح دي فَصَارَ كَالتَّقْدِيمِ عَلَى الْمَكَانِ نو داسي سو لکه احرام پر مکان (يعني پر ميقات) مخکي کول.

**اللغات:** ﴿تحريم﴾ د تفعيل مصدر دى: حرامول، ﴿إيجاب﴾ د افعال مصدر دى: واجبول، ﴿مكان﴾ ځاى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي له اشهرِ حج (يعني د حج له مياشتو) څخه مخکې احرام وتړی، او تر اشهرِ حج پورې يې تړلی وو، نو زموږ په نيز دا احرام جائز دی، او په دې احرام سره د هغه لپاره حج اداء کول صحيح دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د هغه لپاره په دې احرام سره حج کول صحيح نه دي، څو ځرنګه چې د هغه په نيز احرام يو رکن دی، نو د لغو کېدلو څخه د خوندي کېدلو لپاره د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز دا احرام د عمرې لپاره منعقد کيږي. او په دې سره عمره اداء کولو صحيح کيږي، خو د حج لپاره دا احرام نه منعقد کيږي، ځکه ځرنګه د حج نور ارکان پر اشهرِ حج مخکې کول صحيح نه دي، همداسې به احرام هم پر اشهرِ حج مخکې کول صحيح نه وي.

وهو شرط الخ زموږ دليل دا دی چې زموږ په نيز احرام شرط دی، او شرائط پر مشروط به وختونو مخکې کول جائز دي، لکه اودس چې د لمانځه شرط دی، نو ځرنګه چې اودس د لمانځه پر وخت مخکې کول جائز دي، همداسې به احرام هم د حج پر وخت مخکې کول جائز وي.

ولأن الإحرام الخ زموږ دويم دليل دا دی چې په احرام سره يو څو شيان (مثلاً ښکار کول. عطر لګول او سرخريل) حراميږي، او يو څو شيان (مثلاً ناګنډل سوي جامې اغوستل، رمی او سعی کول) په واجبيږي، او دا شيان په هره زمانه کې اداء کېدای سي، نو ځکه به احرام په هره زمانه کې تړل کېدای سي. لکه ځرنګه چې احرام پر مکان يعني پر ميقات مخکې کول جائز دي. همداسې به احرام پر زمان يعني پر اشهرِ حج مخکې کول هم جائز وي. او په دې کې به څه حرج نه وي.

## د حجِ تمتع يو ځانګړې صورت

قَالَ: **وَإِذَا قَدِمَ الْكُوفِيُّ بِعُمْرَةٍ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ** امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: او کله چې کوفي د حج په مياشتو کې د عمرې لپاره راسي **وَفَرَغَ مِنْهَا** او له عمرې څخه فارغه سي **وَحَلَقَ أَوْ قَصَّرَ** او حلق وکړي يا قصر وکړي **ثُمَّ اتَّخَذَ مَكَّةَ أَوِ الْبَصْرَةَ دَارًا** بيا مکه يا بصره استوګن ځای جوړ کړي (يعني وطن ځنې جوړ کړي) **وَحَجَّ مِنْ عَامِهِ ذٰلِكَ** او په دغه کال حج وکړي **فَهُوَ مُتَمَتِّعٌ** نو هغه متمتع دی **أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّهُ تَرَفَّقَ بِنُسُكَيْنِ فِي سَفَرٍ وَاحِدٍ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ** هر چې اول دي نو په دې وجه چې هغه د حج په مياشتو کې په يوه سفر کې د دوو عبادتونو نفع واخيستله (نو ځکه به متمتع وي) **وَأَمَّا الثَّانِي فَقِيلَ: هُوَ بِالْاِتِّفَاقِ** او هر چې دويم دی نو ويل سوي دي: چې هغه بالاتفاق دي **وَقِيلَ: هُوَ قَوْلُ**● **أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله** او ويل سوي دي: چې دا د امام صاحب قول دی **وَعِنْدَهُمَا لَا يَكُونُ مُتَمَتِّعًا** او د صاحبينو په نيز نه متمتع کيږي **لِأَنَّ الْمُتَمَتِّعَ مَنْ تَكُونُ عُمْرَتُهُ مِيقَاتِيَّةً وَحَجَّتُهُ مَكِّيَّةً** ځکه چې متمتع هغه څوک دی چې عمره يې ميقاتي وي او حج يې مکي وي **وَنُسُكَاهُ هٰذَانِ مِيقَاتِيَّانِ** (لېکن) د دغه سړي دواړه عبادتونه ميقاتي دي **وَلَهُ أَنَّ السَّفْرَةَ الْأُولٰى قَائِمَةٌ مَا لَمْ يَعُدْ إِلَى**

● القول الراجح: هو هذا قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله اى يكون متمتعا فى الصورتين سواء اتخذ مكة دارا أو البصرة، كذا فى رد المحتار ج:۲، ص: ۲۱۶.
[القول الراجح ج:۱، ص: ۲۱۶]

وَطَنِهِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي اول سفر (تر هغه وخته) پاته دی تر څو چي هغه خپل وطن ته واپس رانه سي وَقَدِ اجْتَمَعَ لَهُ نُسُكَانِ فِيهَا او په دې سفر کي د هغه لپاره دوه عباتونه جمع سول فَوَجَبَ دَمُ التَّمَتُّعِ لهذا د تمتع قرباني به پر واجب وي.

**اللغات:** ﴿ترفق﴾ د تفعّل ماضي ده: فايده اخيستل، نفع پورته کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د کوفې اوسېدنکي سړی په اشهرِ حج کي د عمرې لپاره مکې شريفي ته ولاړ سي. او هلته عمره اداء کړي، بيا په حلق يا قصر سره ځان حلال کړي. تر هغه وروسته مکه يا بصره (يعني له ميقات څخه دباندي بل ښار) وطنِ اقامت جوړ کړي يعني هلته مقيم سي، او په دغه کال د حج په ورځو کي حج هم اداء کړي. نو هغه متمتع دی، او په دويم صورت کي يعني چي کله له عمرې څخه تر فراغت وروسته په بصره (يا په بل ښار) کي مقيم سي نو د بعضي حضراتو په نېز په دې صورت کي د کوفې د سړي متمتع کېدل متفق عليه دي، يعني د امام صاحب او صاحبينو تولو په نېز دا سړی متمتع دی، لېکن د بعضي حضراتو رايه دا ده چي په دې صورت کي هغه صرف د امام صاحب په نېز متمتع دی، د صاحبينو په نېز هم متمتع نه دی.

لأن المتمتع الخ په قول د بعضو د صاحبينو دليل دا دی چي د متمتع عمره ميقاتي او حج مکي وي، يعني متمتع خو د عمرې احرام له ميقات څخه تړي، او د حج احرام له مکې يعني له حرم څخه تړي، او دلته داسي نه ده، بلکي د عمرې او حج دواړو احرام يې له ميقات څخه تړلی دی، په دې توګه چي کوفي سړی کله د عمرې کولو لپاره له کور څخه روان سو، نو د عمرې احرام يې له ميقات څخه وتړی، او د عمرې له ارکانو څخه تر فراغت وروسته په بصره کي مقيم سو. نو دا هغه د حلالوالي په حالت کي له ميقات څخه تجاوز وکړی، ځکه بصره له ميقات څخه دباندي د يو ښار نوم دی. نو کله چي هغه د حج لپاره واپس راځي، نو هغه به بيا له ميقات څخه د حج احرام هم تړي، نو معلومه سوه چي هغه د عمرې او د حج دواړو احرام له ميقات څخه تړي، نو ځکه به نه متمتع کيږي.

وله أن السفر الخ د امام صاحب دليل دا دی چي کوم سفر کوفي سړی له کوفې څخه د مکې و طرف ته وکړی، بصرې ته تر واپس تللو وروسته او په بصره کي تر مقيم کېدلو وروسته هغه سفر اوس هم پاته دی، تر څو چي خپل اول وطن يعني کوفې ته واپس ولاړ نه سي، ځکه دا أصول دي "چي تر څو يو سړی خپل اول وطن ته نه ورسيږي، د هغه اول سفر به پاته وي" لهذا دا سړی د هغه سړي په څېر سو چي تر اوسه له ميقات څخه وتلی نه وي، او واپس راسي حج وکړي، نو دا چي د هغه هم دوه عبادتونه يعني عمره او حج په يوه سفر کي جمع سول، او په يوه سفر کي د دې دوو عبادتونو جمع کونکي ته متمتع ويل کيږي، لهذا دا سړی به هم متمتع وي، او پر هغه به د د تمتع دم واجب وي.

## د حجِ تمتع بل ځانګړی صورت

فَإِنْ قَدِمَ بِعُمْرَةٍ او که يو کوفي سړی د عمرې لپاره راسي فَأَفْسَدَهَا او عمره فاسده کړي وَفَرَغَ مِنْهَا وَقَصَّرَ او له هغې څخه فارغ سي او قصر وکړي ثُمَّ اتَّخَذَ الْبَصْرَةَ دَارًا بيا بصره استوګن ځای جوړ کړي ثُمَّ اعْتَمَرَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ بيا د حج په مياشتو کي عمره وکړي وَحَجَّ مِنْ عَامِهِ او په دغه کال حج وکړي لَمْ يَكُنْ مُتَمَتِّعًا عِنْدَ* أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله نو د

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في البحر الرائق ج:٢، ص: ٣٧٠. [القول الراجح ج:١، ص: ٢١٧]

امام صاحب په نېز نه متمتع کيږي وَقَالَا: هُوَمُتَمَتِّعٌ او صاحبين فرمايي؛ چې متمتع دی لِأَنَّهُ إِنْشَاءُ سَفَرٍ ځکه چې دا د سفر نوي کول(ايجاد) دی وَقَدْ تَرَفَّقَ فِيْهِ بِنُسُكَيْنِ او هغه د دواړو عبادتونو نفع واخيستل وَلَهُ أَنَّهُ بَاقٍ عَلٰى سَفَرِهِ مَا لَمْ يَرْجِعْ إِلٰى وَطَنِهِ او د امام صاحب دليل دا دی چې دا سړی پر خپل(اول) سفر پاتـه دی تر څو چې خپل وطن راستن نه سي.

**اللغات:** ﴿إنشاء﴾ د افعال مصدر دی: ايجاد، نوي کول، پيدا کول.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو کوفي سړی د عمرې احرام وتړي مکې ته راسي، او د عمرې د افعالو د اداء کولو په وخت کې د ښځې سره جماع وکړي يا په بل ډول عمره فاسده کړي، خو بيا هم د عمرې افعال پوره کړي، حلق يا قصر وکړي، او له عمرې څخه ځان فارغه کړي، تر دې وروسته بصرې ته ولاړ سي، او بصره وطنِ اقامت جوړ کړي، يعني هلته مقيم سي. بيا يو څو ورځې وروسته په اشهرِ حج کې دويم ځل عمره وکړي، او په دغه کال کې حج هم وکړي، نو هغه متمتع دی که نه؟

په دې لړ کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې دا سړی متمتع نه دی، لېکن صاحبين فرمايي چې دا سړی متمتع دی، د صاحبينو دليل دا دی چې کله دې سړي اوله عمره فاسد کړه بصرې ته ولاړی او بيا يې له بصرې څخه د عمرې احرام وتړی مکې ته ولاړی او په دغه کال يې حج او عمره دواړه وکړه، نو دا سړی په يوه سفر کې د دوو عبادتونو جمع کونکي سو، ځکه چې له بصرې څخه مکې ته تلل مستقل او عليحده يو سفر دی، او په دې سفر کې هغه حج او عمره دواړه پوره کړل، نو ځکه به هغه متمتع وي.

وله أنّه باقٍ الخ د امام صاحب دليل دا ی چې تر څو دا کوفي سړي خپل وطن يعني کوفې ته واپس ولاړ نه سي تر هغه وخته د هغه اول سفر پاته دی، او د دويم سفر يعني له بصرې څخه تر مکې پورې د دغه سفر هيڅ اعتبار نسته، بلکې د هغه په حق کې اول سفر معتبر دی(لکه مخکې چې د امام صاحب أصول هم تېر سو)، او څرنګه چې په دې سفر کې هغه عمره فاسد کړه، لهذا اوس هغه د دوو عبادتونو جمع کونکي نه سو، نو متمتع به هم نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې سره اړوند يو وضاحت

فَإِنْ كَانَ رَجَعَ إِلٰى أَهْلِهِ بيا که هغه خپل وطن ته واپس راسي ثُمَّ اعْتَمَرَ فِيْ أَشْهُرِ الْحَجِّ بيا د حج په مياشتو کې عمره وکړي وَحَجَّ مِنْ عَامِهِ او په دغه کال کې حج وکړي يَكُوْنُ مُتَمَتِّعًا فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا نو د احنافو په اتفاق هغه متمتع کيږي لِأَنَّ هٰذَا إِنْشَاءُ سَفَرٍ لِانْتِهَاءِ السَّفَرِ الْأَوَّلِ ځکه چې دا د اول سفر د ختمېدلو په وجه (له نوي سره) د سفر ايجاد دی وَقَدِ اجْتَمَعَ لَهُ نُسُكَانِ صَحِيْحَانِ فِيْهِ او د هغه لپاره په دې دويم سفر کې دوه عبادتونه په صحيح توګه سره جمع سول.

**تشريح:** مسئله خو بالکل ښکاره ده چې که تر عمرې فاسدولو وروسته دا سړی خپل وطن ته(يعني کوفې ته) واپس ولاړ سي او بيا په اشهرِ حج کې راسي عمره او حج پوره کړي، نو د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نېز هغه متمتع دی، ځکه چې وطن ته د واپس تللو په وجه د هغه اول سفر ختم سو، او دويم سفر متحقق سو، او څرنګه چې په دې دويم سفر کې هغه دوه عبادتونه پوره کړل، نو ځکه به متمتع وي.

## په پورتني مسئله کي په مکه کي پاتېدل

وَلَوْ بَقِيَ بِمَكَّةَ او که هغه په مکه کي پاته سي وَلَمْ يَخْرُجْ إِلَى الْبَصْرَةِ او بصري ته ولاړ نه سي حَتَّى اعْتَمَرَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ تر دې چي د حج په مياشتو کي عمره وکړي وَحَجَّ مِنْ عَامِهِ او په دغه کال حج وکړي لَا يَكُونُ مُتَمَتِّعًا بِالِاتِّفَاقِ نو (هم) بالاتفاق نه متمتع کيږي لِأَنَّ عُمْرَتَهُ مَكِّيَّةٌ ځکه چي د هغه عمره مکي ده وَالسَّفَرُ الْأَوَّلُ انْتَهَى بِالْعُمْرَةِ الْفَاسِدَةِ او اول سفرېې د فاسدې عمرې په وجه ختم سو وَلَا تَمَتُّعَ لِأَهْلِ مَكَّةَ او د مکې د خلکو لپاره تمتع نسته.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو کوفي سړی د عمرې تر فاسدولو وروسته په مکه کي مقيم سو. او بصرې ته نه ولاړی، بيا چي کله د حج مياشتي راغلې، نو عمره يې هم وکړه، او حج يې هم وکړی. نو په دې صورت کي هم نه متمتع کيږي، او دا صورت متفق عليه دی، ځکه چي په مکه کي د مقيم کېدلو په وجه د هغه عمره هم مکي سوه. حال دا چي د متمتع عمره به مکي نه وي، بلکي ميقاتي به وي، او بيا د هغه اول سفر يعني له کوفې څخه تر مکې پوري راتگ د فاسدې عمرې په وجه هم ختم او باطل سو، او دا سړی مکي سو، او د مکې د خلکو په حق کي تمتع نسته. نو ځکه به هغه په دې صورت کي متمتع نه وي.

## د تمتع د قاعدې بيان

وَمَنِ اعْتَمَرَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ وَحَجَّ مِنْ عَامِهِ او څوک چي د حج په مياشتو کي عمره وکړي او (بيا) په دغه کال حج وکړي فَأَيُّهُمَا أَفْسَدَ مَضَى فِيهِ نو په حج او عمره کي چي هر يو فاسد کړي هغه دي پوره کړي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ الْخُرُوجُ عَنْ عُهْدَةِ الْإِحْرَامِ ځکه چي د هغه لپاره د احرام له عهدې څخه وتل ممکن نه دي إِلَّا بِالْأَفْعَالِ مګر د افعالو په اداء کولو سره وَسَقَطَ دَمُ الْمُتْعَةِ او د تمتع دم (قرباني څښي) ساقطه سوه لِأَنَّهُ لَمْ يَتَرَفَّقْ بِأَدَاءِ نُسُكَيْنِ صَحِيحَيْنِ فِي سَفَرَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چي هغه په صحيح توګه په يوه سفر کي د دوو عبادتونو په اداء کولو سره نفع نه واخيستله.

**اللغات:** ﴿مضى فيه﴾ د ضرب ماضي ده: د دې باب ډېري معناوي راځي، چي د صلې په بدلون يې معنیٰ هم بدليږي: تېرېدل، پوره کول، جاري ساتل.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو چا په اشهرِ حج کي عمره وکړه، او په دغه کال يې حج وکړی. نو له دې دواړو څخه چي کوم فاسد کړي، د هغه پوره کول ضروري دي، ځکه چي د افعالو له اداء کولو څخه بغير له احرام څخه وتل ممکن نه وي. هو! خو د تمتع دم ساقطيږي، او د تمتع دم پر هغه چا واجبيږي چي په يو سفر کي په صحيح توګه دوه عبادتونه (عمره او حج) جمع کړي، او څرنګه چي دلته يو فاسد سو، نو په صحيح توګه د دوو عباتونو د نه جمع کولو په وجه متمتع نه سو.

## په تمتع کي د ښځي د قرباني حکم

وَإِذَا تَمَتَّعَتِ الْمَرْأَةُ فَضَحَّتْ بِشَاةٍ او که ښځه تمتع وکړي او بزه (وزه) قرباني کړي لَمْ يُجْزِهَا عَنِ الْمُتْعَةِ نو دا قرباني د هغې لپاره د تمتع له قرباني څخه کفايت نه کوي لِأَنَّهَا أَتَتْ بِغَيْرِ الْوَاجِبِ ځکه چي ښځي غيرِ واجب اداء کړی وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الرَّجُلِ او د سړي په باره کي هم دغه حکم دی.

**اللغات**: ﴿ضحت﴾ د تفعيل ماضي ده؛ قرباني کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يوې ښځې حج تمتع وکړی، او په يومُ النحر کې يې قرباني وکړه، نو دا قرباني د دم تمتع پر ځای نه سي در بدلای، ځکه چې د هغې د سفر په وجه پر هغې د يومُ النحر قرباني واجب نه ده. او دم تمتع واجب دی، نو غير واجب به څرنګه د واجب قائم مقام سي، همدا حکم د سړي دي.

**يادونه**: په دې مسئله کې خاص د ښځې ذکر ځکه وسو چې په دې باره کې يوې ښځې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه پوښتنه کړې وه، کنې د سړي هم دغه حکم دی.

## د احرام په وخت کې د حيض حکم

وَإِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ عِنْدَ الْإِحْرَامِ او کله چې د احرام په وخت کې ښځه حائضه سي اِغْتَسَلَتْ وَأَحْرَمَتْ وَصَنَعَتْ كَمَا يَصْنَعُهُ الْحَاجُّ نو غسل دې وکړي احرام دې وتړي او څنګه عمل چې حاجيان کوي هغسې دې دا (هم) وکړي غَيْرَ أَنَّهَا لَا تَطُوفُ بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرَ خو دا به پر کعبې طواف نه کوي تر دې چې پاکه سي لِحَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ● حِينَ حَاضَتْ بِسَرِفَ د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حديث په وجه چې کله هغه په سَرِف نومي ځای کې حائضه سوه وَلِأَنَّ الطَّوَافَ فِي الْمَسْجِدِ وَالْوُقُوفَ فِي الْمَفَازَةِ او ځکه چې طواف په مسجد کې کيږي او وقوف په بيابان (دښت) کې کيږي وَهَذَا الْاِغْتِسَالُ لِلْإِحْرَامِ لَا لِلصَّلَاةِ او دا غسل د احرام لپاره دی نه د لمانځه لپاره فَيَكُونُ مُفِيدًا نو ځکه به فايده من وي فَإِنْ حَاضَتْ بَعْدَ الْوُقُوفِ وَطَوَافِ الزِّيَارَةِ او که تر وقوف او طواف زيارت وروسته ښځه حائضه سي اِنْصَرَفَتْ مِنْ مَكَّةَ نو له مکې څخه دې ولاړه سي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا لِطَوَافِ الصَّدْرِ او د طواف صدر په وجه پر هغې هيڅ شی واجب نه دی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● رَخَّصَ لِلنِّسَاءِ الْحُيَّضِ فِي تَرْكِ طَوَافِ الصَّدْرِ ځکه چې نبي ﷺ حائضو ښځو ته د طواف صدر د پرېښوولو اجازه ورکړې ده.

**اللغات**: ﴿حاضت﴾ ښځې ته حيض راتلل. ﴿مفازة﴾ دښت، بيابان.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د احرام د تړلو په وخت کې يوه ښځه حائضه سوه، نو هغې ته حکم دا دی چې غسل دې وکړي او احرام دې وتړي. او له طواف څخه علاوه نور ټول د حج ارکان دې اداء کړي. او بيا دې تر پاکېدلو وروسته طواف وکړي، په دې لړ کې اول دليل د حضرت عائشې هغه حديث دی چې په هغه کې دا ذکر سوي دي چې کله حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په "سَرِف" نومي ځای کې حائضه سوه. نو نبي ﷺ هغې ته د غسل کولو او د احرام تړلو او د حج د ټولو افعالو د اداء کولو حکم وکړی، لېکن له طواف څخه يې منع کړه، نو د هري حائضې ښځې لپاره به دغه حکم وي چې په داسې حال کې به همدغه اعمال تر سره کوي.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحيض، باب الأمر بالنفساء إذا نفسن؛ حديث رقم: ۲۹۴.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب طواف الوداع، حديث رقم: ۱۷۵۵.

ولأن الطواف الخ دويم دليل دا دی چي طواف په مسجد کي کيږي، او د ښځي لپاره د حيض په حالت کي مسجد ته تلل منع دي، لېکن وقوف په دښت کي کيږي، او له دې څخه حائضه ښځه نه ده منع سوې، نو ځکه به د هغې لپاره د وقوف او نورو اجازه وي، او ښځه چي کوم غسل کوي، هغه به مفيد وي، ځکه چي د حيض په حالت کي غسل د نظافت او صفا والي لپاره کيږي، د لمانځه لپاره نه کيږي، نو ځکه به مفيد وي (چي نظافت او صفايي راسي).

او که يوه ښځه تر طواف زيارت او وقوف عرفه وروسته حائضه سوه، نو هغه د طواف صدر له کولو څخه بغير له مکې څخه وتلای سي، او د طواف صدر د پرېښوولو په وجه پر هغې دم او نور واجب نه دي، ځکه چي نبي ﷺ حائضو ښځو ته د طواف صدر د پرېښوولو رخصت ورکړی دی.

## د مکي سړي لپاره د طواف صدر د عدم وجوب بيان

وَمَنِ اتَّخَذَ مَكَّةَ دَارًا فَلَيْسَ عَلَيْهِ طَوَافُ الصَّدْرِ او څوک چي مکه (مبارکه) کور (يعني وطنِ اقامت) جوړ کړي نو پر هغه طوافِ صدر نسته لِأَنَّهُ عَلَى مَنْ يَصْدُرُ ځکه چي طوافِ صدر پر هغه چا واجب دی څوک چي (له مکې څخه خپل کور ته) روانيږي إِلَّا إِذَا اتَّخَذَهَا دَارًا بَعْدَمَا حَلَّ النَّفْرُ الْأَوَّلُ خو دا چي هغه تر اول کوچ (يعني تر دولسمي ورځي) وروسته مکه (مبارکه) کور جوړ کړي فِيمَا يُرْوَى عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ په هغه روايت کي کوم چي له امام صاحب څخه روايت سوی دی وَيَرْوِيهِ الْبَعْضُ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او ځيني حضرات دا روايت له امام محمد څخه روايت کوي لِأَنَّهُ وَجَبَ عَلَيْهِ بِدُخُولِ وَقْتِهِ ځکه چي طوافِ صدر پر هغه سړي واجب سوی دي د وخت د داخلېدلو په وجه فَلَا يَسْقُطُ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ بَعْدَ ذٰلِكَ نو وروسته تر دې به د اقامت په نيت سره نه ساقطيږي، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿يصدر﴾ د نصر مضارع ده: راستنېدل (واپس کېدل)، روانېدل، (صادر بدل).

**تشريح:** مسئله: دا ده چي طوافِ صدر پر هغه چا واجب دی چي له مکې مبارکي څخه ځي، لېکن چا چي مکه مبارکه کور جوړ کړی، نو پر هغه طوافِ صدر واجب نه دی.

إلا إذا اتخذها الخ د نفرِ أول معنیٰ ده: اول وار کوچ کول، د دې مطلب دا دی چي د ذو الحجې په دولسمه ورځ تر رمي کولو وروسته حاجيان له منیٰ څخه کوچ کوي، او مکې مبارکي ته راځي، دې ته نفرِ أول ويل کيږي، د دې نفرِ أول په وخت کي طوافِ صدر کول واجب دي، نو که د طوافِ صدر تر وجوب وروسته يو څوک مکه مبارکه کور جوړ کړي، نو پر هغه هم طوافِ صدر واجب دی، ځکه چي هغه مخکي واجب سوی دی (يعني تر نفرِ أول وروسته واجب سو)، نو ځکه به نه ساقطيږي، ځيني حضراتو ويلي دي چي دا قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، او ځيني حضراتو امام محمد رَحِمَهُ الله ته منسوب کړی دی. والله أعلم بالصواب



# بَابُ الْجِنَايَاتِ

## (دا) باب د جرمونو (په بيان کي) دی

**تشريح**: مصنف رَحِمَهُ الله د محرم له اقسامو او احکامو څخه تر فراغت وروسته اوس هغه عوارض ذکر کوي کوم چي احرام ته عارضيږي، او معلومه خبره ده چي عوارض وروسته پيښيږي، نو ځکه يې بابُ الجنايات وروسته ذکر کړی؛

جنايات جمع د جناية ده، لغوي معنیٰ يې ده: جرم، او اصطلاحي معنیٰ يې ده: هغه کار چي په حالت د احرام کي شرعاً حرام او ممنوع وي.

### په احرام کي د عطرو د کفاري تفصيل

وَإِذَا تَطَيَّبَ الْمُحْرِمُ او که محرم خوشبويي (عطر) ولګوي فَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ نو پر هغه کفاره واجب ده فَإِنْ طَيَّبَ عُضْوًا كَامِلًا فَمَا زَادَ او که پر بشپړ اندام يا تر هغه زيات عطر ولګوي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه يو دم واجب دی وَذٰلِكَ مِثْلُ الرَّأْسِ وَالسَّاقِ وَالْفَخِذِ وَمَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ او بشپړ اندام لکه سر، پنډۍ، ورون او دې ته ورته لِأَنَّ الْجِنَايَةَ تَتَكَامَلُ بِتَكَامُلِ الْإِرْتِفَاقِ ځکه چي جرم پوره کيږي په پوره فايده اخيستلو سره وَذٰلِكَ فِي الْعُضْوِ الْكَامِلِ او پوره فايده اخيستل په بشپړ اندام کي دي فَيَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ كَمَالُ الْمُوْجِبِ نو پر بشپړ اندام به پوره سزا مُرَتَّبه وي.

**اللغات**: ﴿تطيّب﴾ د تفعّل ماضي ده: خوشبويي او عطر او لګول. ﴿کامل﴾ بشپړ، پوره، ﴿ساق﴾ پنډۍ، ﴿تتکامل﴾ د تفاعل مضارع ده: پوره کېدل، بشپړېدل، ﴿ارتفاق﴾ فايده اخيستل، نفع پورته کول.

**تشريح**: مسئله: دا ده چي د محرم لپاره د احرام په حالت کي عطر او خوشبويي استعمالول ممنوع دي، اوس که يو محرم عطر استعمال کړي، نو هغه جنايت وکړی، لهذا د دې جنايت تاوان به ورکوي، د هغه تفصيل دا دی که يې لږ عطر ولګول او پر ټوله اندام يې نه ولګول نو پر هغه صدقه او کفاره واجبيږي، او که پر ټوله اندام مثلاً پر بشپړ سر يا پنډۍ يا ورون يې عطر ولګول نو په دې صورت کي پر هغه دم واجبيږي، دليل دا دی چي جرم پوره کيږي په پوره فايده اخيستلو سره او پوره فايده اخيستل په بشپړ اندام کي راځي، لهذا پر بشپړ اندام به پوره سزا ورکول کيږي.

### د پورتنۍ مسئلې څه نور وضاحت

وَإِنْ تَطَيَّبَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ او که تر يوه اندام کم عطر ولګوي فَعَلَيْهِ الصَّدَقَةُ نو پر هغه صدقه واجب ده لِقُصُوْرِ الْجِنَايَةِ ځکه چي جرم کم دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: يَجِبُ بِقَدْرِهِ مِنَ الدَّمِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د جرم په اندازه دم واجب دی اِعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ پر کُل د جزء په قياسولو سره وَفِي الْمُنْتَقٰى: أَنَّهُ إِذَا طَيَّبَ رُبُعَ الْعُضْوِ او په منتقیٰ کي دي: چي که د اندام پر څلورمه حصه عطر ولګوي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه (هم پوره) دم واجب دی اِعْتِبَارًا

بِالْحَلْقِ په سر خریلو باندې په قیاسولو سره وَنَحْنُ نَذْكُرُ الْفَرْقَ بَيْنَهُمَا مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او موږ به وروسته د دواړو په مینځ کې فرق بیان کړو، انشاء الله تعالی.

**اللغات:** ﴿قصور﴾ ناقص کېدل، کمېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که محرم له یوه اندام څخه پر کمه حصه عطر ولګول، نو پر هغه صدقه واجب ده، ځکه چې د هغه جرم کم دی، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر هغه د جرم په اندازه واجبيږي، مثلاً که پر نيم اندام يې عطر ولګول نو نيم دم به واجب وي، او که د اندام پر څلورمه حصه يې عطر ولګول نو د دم څلورمه حصه به واجب وي على هذا القياس.... امام محمد رَحِمَهُ الله جزء پر كُل قياسوي، يعني كله چې په ټوله اندام كې دم سته، نو د اندام په جزء كې به هم د جرم په اندازه دم وي.

وفي المنتقى الخ صاحب د هدايې فرمايي چې په منتقى كې ذكر دي كه يو محرم د اندام پر څلورمه حصه عطر ولګوي نو پر هغه هم پوره دم واجبيږي، او دا يې په سر خريلو باندې قياس كړي دي، يعني څرنګه چې د سر څلورمه حصه خريل د ټوله سر خريلو په درجه كې دي، همداسې به د اندام پر څلورمه حصه عطرلګول هم پر ټوله اندام د عطر لګولو په درجه كې وي، فرمايي چې موږ به انشاء الله وروسته د رُبعِ عضو او د رُبعِ حلق په مينځ كې فرق ذكر كړو.

## د واجب دم كمه اندازه

ثُمَّ وَاجِبُ الدَّمِ يَتَأَدَّى بِالشَّاةِ بيا واجب دم په بزې (وزې) سره اداء كيږي فِي جَمِيعِ الْمَوَاضِعِ إِلَّا فِي مَوْضِعَيْنِ په ټولو ځايونو كې ماسوا له دوو ځايونو څخه نَذْكُرُهُمَا فِي بَابِ الْهَدْيِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چې هغه به موږ په باب الهدي كې انشاء الله ذكر كړو.

**تشریح:** فرمايي: د احرام په دوران كې چې په كومو ځايونو كې دم واجبيږي، په هغه ټولو ځايونو كې واجب سوى دم په بزه سره اداء كيږي، لېكن دوه ځايونه داسې دي چې هلته بزه كفايت نه كوي، او په هغه كې اوښ يا غوا واجبيږي: (۱) اول ځاى دا دى كه انسان په حالت د جنابت يا په حالت د حيض او نفاس كې طوافِ زيارت وكړي، نو پر هغه بُدنه واجبيږي، (۲) دويم ځاى دا دى كه تر وقوفِ عرفه وروسته يو څوك جماع وكړي، نو پر هغه هم بُدنه واجبيږي، د دې نور تفصيل به انشاء الله په باب الهدي كې راسي.

## په احرام كې د واجبې صدقې اندازه

وَكُلُّ صَدَقَةٍ فِي الْإِحْرَامِ غَيْرُ مُقَدَّرَةٍ او د احرام هره هغه صدقه چې اندازه يې معلومه نه وي فَهِيَ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ نو هغه نيم صاع غنم دي إِلَّا مَا يَجِبُ بِقَتْلِ الْقُمْلَةِ وَالْجَرَادَةِ مگر هغه صدقه كوم چې د سپږې او ملخ په وژلو سره واجبيږي (نو د هغه اندازه معلومه نه ده) هَكَذَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى همدارنګه له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دي.

**اللغات:** ﴿غير مقدرة﴾ غير متعين، هغه چې اندازه يې معلومه نه وي، ﴿قملة﴾ سپږه، ﴿جرادة﴾ ملخ.

**تشريح: مسئله:** دا ده که په حالت د احرام کي داسي صدقه واجب سوه چي د هغې هيڅ اندازه معلومه نه وه، نو په داسي صورت کي به د غنمو نيم صاع ورکړي، هو! که يو چا په حالت د احرام کي سپږه يا ملخ مړ کړی، نو په دې کي د صدقې اندازه معلومه نه ده، بلکي محرم ته اختيار دی چي څومره صدقه ورکوي، لهذا که يو موټ يا دوه موټه غنم يا بل شی ورکړي نو هم کافي دي، له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه همدغه مروي دي.

## د نکريزو حکم

قَالَ: فَإِنْ خَضَبَ رَأْسَهُ بِحِنَّاءٍ امام محمد فرمايي: او که محرم پر سر نکريزي ولګوي(يعني سر سور کړي) فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِأَنَّهُ طِيبٌ ځکه چي نکريزي(هم يو ډول) خوشبويي ده قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ●: اَلْحِنَّاءُ طِيبٌ نبي ﷺ فرمايلي دي: چي نکريزي خوشبويي ده وَإِنْ صَارَ مُلَبَّدًا او که سر په نکريزو پټ سو(يعني که محرم سر په نکريزو کي پټ کړی پوره يو ورځ يا يو شپه) فَعَلَيْهِ دَمَانِ: دَمٌ لِلتَّطَيُّبِ وَدَمٌ لِلتَّغْطِيَةِ نو پر هغه دوه دمه واجب دي: يو دم د خوشبويي لګولو په وجه او بل دم د سر پټولو په وجه وَلَوْ خَضَبَ رَأْسَهُ بِالْوَسْمَةِ او که سر د نيل په پاڼو(وسمه) تور کړي لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو هيڅ شی پر واجب نه دی لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِطِيبٍ ځکه چي وسمه خوشبويي نه ده وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ● أَنَّهُ إِذَا خَضَبَ رَأْسَهُ بِالْوَسْمَةِ لِأَجْلِ الْمُعَالَجَةِ مِنَ الصُّدَاعِ او له امام ابو يوسف څخه روايت دی چي که محرم خپل سر د صُداع د علاج لپاره(يعني د سر د درد لپاره) د نيل په پاڼو تور کړي فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ نو پر هغه کفاره واجب ده بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ يُغَلِّفُ رَأْسَهُ په دې اعتبار سره چي هغه سر پټ کړی وَهٰذَا صَحِيحٌ او همدا صحيح ده ثُمَّ ذَكَرَ فِي الْأَصْلِ رَأْسَهُ وَلِحْيَتَهُ بيا (امام محمد رَحِمَهُ الله) په مبسوط کي سر او ږيره دواړه ذکر کړي دي وَاقْتَصَرَ عَلَى ذِكْرِ الرَّأْسِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او په جامع صغير کي يې د سر پر ذکر اکتفاء کړې ده دَلَّ أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَضْمُونٌ (دا پر دې خبره) دلالت کوي چي له سر او ږيري څخه هر يو مضمون بالدم دی (يعني د هر يوه ضمان جلا جلا واجبيږي).

**اللغات:** ﴿خضب﴾ د ضرب ماضي ده: نکريزي يا بل شی پر سر لګول، سر تورول، ﴿حناء﴾ نکريزي، ﴿ملبدا﴾ : د دې معنیٰ ده: يو شی پلستر کول او بالکل پټول، ﴿تغطية﴾ د تفعيل مصدر دی: پټول، ﴿وسمة﴾ د سين په سکون او کسره دواړو سره راځي: د نيل درخته چي په پاڼو سره يې سره سر توريږي، وُسمه، ﴿صداع﴾ د سر درد، ﴿يغلف﴾ د ضرب مضارع ده: پټول، (بندول)، ﴿لحية﴾ ږيره.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو محرم خپل سر په نکريزو سور کړی، نو پر هغه يو دم واجبيږي، ځکه چي نکريزي يو ډول خوشبويي او عطر دي، لکه په حديث کي چي راځي: الحناء طيب، او د محرم لپاره خوشبويي لګول جرم دي، نو ځکه به پر هغه دم واجبيږي، او که يو محرم په داسي توګه نکريزي يا بل شی پر سر ولګوی چي سر په پټ سي، او تو له

---

● تخريج: قال الزيلعي أخرجه البيهقي في كتاب المعرفة في الحج و الطبراني في الكبير ج:٣، ص: ٢١٨، و أخرجه في كنز العمال، باب حرف الحاء، حديث رقم: ٢٣٢٣.

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كذا في الهندية ج:١، ص: ٢٤١. [القول الراجح ج:١، ص: ٢١٩]

وربښتيان سره وموښلي، نو پر هغه دوې قربانۍ واجبيږي، يوه قرباني د عطر لګولو په وجه، او دويمه د سر د پټولو په وجه، ځکه په حالت د احرام چې څرنګه عطر لګول حرام دي، همدارنګه سر پټول هم حرام دي.

ولو خضب الخ او که يو محرم خپل سر په وُسمه يعني د نيل د درختې په پاڼو سره تور کړي، نو هيڅ شی نه پر واجبيږي، ځکه چې دا عطر نه ګڼل کيږي، او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی که يو چا په دې خاطر پر سر وُسمه ولګوله چې د سر درد يې ليرې سي، يعني د علاج په غرض يې وسمه استعمال کړه، او پوره يوه ورځ يا يوه شپه يې سر پټ کړی، نو پر هغه کفاره واجبيږي، خو د کفارې وجوب به په دې وجه نه وي، چې هغه عطر استعمال کړه، بلکې په دې وجه به وي چې هغه د وسمې په ذريعه سر پټ کړی، او د احرام په حالت کې سر پټول بالاتفاق دم واجبوي او همدا صحيح دي.

ثم ذکر الخ په دې عبارت سره صاحب د هدايې د مبسوط او د جامع صغير په روايتونو کې فرق ذکر کوي فرمايي چې په مبسوط کې د سر او ږيرې دواړو ذکر سته، او په جامع صغير کې فقط د سر ذکر سته، د جامع صغير له روايت څخه معلوميږي چې د دم د واجبېدلو لپاره پر سر او ږيرې دواړو نکريزي لګول شرط نه دي، بلکې فقط پر سر يا ږيره نکريزي لګول هم دم واجبوي، همدا صحيح دي، ځکه چې هر يو جلا او کامل اندام دی.

## په احرام کې د زيتون تېل لګول

وَإِنِ ادَّهَنَ بِزَيْتٍ او که محرم د زيتون تېل ولګوي فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ[●] أَبِي حَنِيفَةَ نو پر هغه دم واجب دی د امام صاحب په نيز وَقَالَا: عَلَيْهِ الصَّدَقَةُ او صاحبين فرمايي: چې پر هغه صدقه واجب ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: إِذَا اسْتَعْمَلَهُ فِي الشَّعْرِ او امام شافعي فرمايي: که محرم د زيتون تېل په وربښتيانو کې استعمال کړي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو دم پر واجب دی لِإِزَالَةِ الشَّعَثِ د خرابوالي (او بيروالي) د ليرې کولو په وجه (يعني ځکه چې په دې سره هغه د وربښتيانو ناسموالی او بيروالی ختم کړی) وَإِنِ اسْتَعْمَلَهُ فِي غَيْرِهِ او که له وربښتيانو څخه ماسوا (په بل ځای کې) يې استعمال کړي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لِانْعِدَامِهِ ځکه چې (د وربښتيانو) خرابوالی ليرې نه سو وَلَهُمَا أَنَّهُ مِنَ الْأَطْعِمَةِ د صاحبينو دليل دا دی چې د زيتون تېل له خوراکي شيانو څخه دي إِلَّا أَنَّ فِيهِ ارْتِفَاقًا خو په دې کې يو ډول نفع سته بِمَعْنَى قَتْلِ الْهَوَامِّ وَإِزَالَةِ الشَّعَثِ په دې معنیٰ چې سپږې وژني او د وربښتيانو خرابوالی ختموي فَكَانَتْ جِنَايَةً قَاصِرَةً نو جرم به ناقص وي (لهذا صدقه به واجب وي) وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله أَنَّهُ أَصْلُ الطِّيبِ د امام صاحب دليل دا دی چې د زيتون تېل د خوشبويۍ اصل دي (يعني په دې کې خلک يو شی اچوي او خوشبويي ځنې تياروي) وَلَا يَخْلُو عَنْ نَوْعِ طِيبٍ او (په خپله هم) له څه ډول خوشبويۍ څخه خالي نه دي وَيَقْتُلُ الْهَوَامَّ وَيُلَيِّنُ الشَّعْرَ او سپږې وژني، وربښتيان نرموي وَيُزِيلُ التَّفَثَ وَالشَّعَثَ او خيرې او د وربښتيانو خرابوالی ليرې کوي فَيَتَكَامَلُ الْجِنَايَةُ بِهَذِهِ الْجُمْلَةِ نو په دې ټولو

---

● القول الراجح: هو هذا قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۲، ص: ۱۲۱۹، [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۲۰]

سره به جرم کامل کیږي فَتَجِبُ الدَّمَ نو ځکه به دم واجبوي وَكَوْنُهُ مَطْعُومًا لَا يُنَافِيهِ او د هغه خوراکي کېدل د خوشبويي کېدلو منافي نه دي كَالزَّعْفَرَانِ لکه زعفران وَهٰذَا الْخِلَافُ فِي الزَّيْتِ الْبَحْتِ وَالْخَلِّ الْبَحْتِ او دا اختلاف د زیتونو په خالص تېلو او د کنجتو په خالص تېلو کې دی أَمَّا الْمُطَيَّبُ مِنْهُ كَالْبَنَفْسَجِ وَالزَّنْبَقِ وَمَا أَشْبَهَهُمَا پاتــه سو هغه شی چي د زیتونو په تېلو سره خوشبوداره سوی وي لکه (د) بنفشې او چمبیلي (تېل) او د دوی په ډول(نور شیان) يَجِبُ بِاسْتِعْمَالِهِ الدَّمُ بِالْاِتِّفَاقِ نو د هغه په استعمال سره بالاتفاق دم واجبیږي لِأَنَّهُ طِيبٌ ځکه چي هغه خوشبويي ده وَهٰذَا إِذَا اسْتَعْمَلَهُ عَلٰى وَجْهِ التَّطَيُّبِ او دا په هغه صورت کي چي کله یې د خوشبویۍ (عطر لګولو) په توګه استعمال کړي.

**اللغات:** ﴿زیت﴾ د زیتون تېل، ﴿شعث﴾ د وربښتیانو بیروالی (خرابوالی او ناسموالی)، ﴿هوام﴾ جمع د هامة ده: په اصل کي زهر لرونکو خزندلو ته ویل کیږي، لېکن دلته مجازاً سپږو ته ویل کیږي، ﴿یلین﴾ د تفعیل مضارع ده: نرمول، ﴿تفث﴾ خیري، (د ښکلا پرېښوول)، ﴿بحت﴾ خالص (اصلي)، ﴿خل﴾ په فتحه د حاء سره: د کنجتو تېل، ﴿بنفسج﴾ د ګلِ بنفشې تېل، ﴿زنبق﴾ د چمبیلي تېل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که محرم د زیتون تېل ولګول، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دم پر واجب دی، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز صدقه پر واجب ده، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي که محرم وربښتیان د زیتون په تېلو غوړ کړل، نو دم پر واجب دی، او که بل ځای یې د زیتون تېل ولګول، نو هیڅ شی پر واجب نه دی.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چي په دې سره د وربښتیانو بیروالی او خیره لیري کیږي، حال دا چي د محرم لپاره خیره او بیروالی لیري کول ممنوع دي، لهذا د دې لیري کول به جنایت وي، او جنایت دم واجبوي، نو ځکه به د زیتون د تېلو په ذریعه د وربښتیانو په غوړولو سره هم دم واجب وي، لېکن که بل ځای د زیتون تېل ولګوي، نو هیڅ شی به نه واجبیږي، ځکه چي په دې صورت کي د خیري او بیروالي لیري کول نسته فلایجب الدم لانعدام الجنایة.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چي د زیتون تېل له خوراکي شیانو څخه دي، د عطرو او خوشبویۍ سره د دې هیڅ تعلق نسته، خو کله چي په دې سره د وربښتیانو سپږي ختمیږي، او د سر بیروالی هم په لیري کیږي، نو په دې وجه د دې په استعمال کي لږ نفع او فایده هم سته، لهذا د محرم په حق کي خو به د دې استعمال جنایت وي، لېکن جنایت قاصره به وي، او جنایت قاصره صدقه واجبوي، دم نه واجبوي، نو ځکه موږ وایو چي په دې صورت کي پر محرم دم نه واجبیږي، بلکي صدقه واجبیږي.

**د اما صاحب دلیل:** دا دی چي بېشکه د زیتون تېل خوشبويي نه ده، لېکن د خوشبویۍ اصل دی، نو څرنګه چي د خوشبويي او عطرو په استعمال سره دم واجبیږي، همدا ډول به د هغو د اصل په استعمال سره هم دم واجبیږي، همدارنګه د زیتون په تېلو کي یو ډول خوشبويي هم سته، او سپږي هم وژني، وربښتیان هم نرموي، خیره هم لیري کوي، نو د دې ټولو شیانو په وجه به حتمًا جنایت کامل وي، او جنایتِ کامله دم واجبوي، نو ځکه به دزیتونو په تېلو سره دم واجبیږي.

وكونه مطعوما الخ له دې ځايه د صاحبينو د قياس جواب وركوي، حاصل يې دا دى چې بېشكه د زيتون تېل له خوراكي شيانو څخه دي، خو له خوراكي شيانو څخه كېدل د ذكر سوو شيانو (يعني د نوعِ طيب. قتلِ هوام او نورو) منافي نه دي، لكه زعفران چې بالاتفاق د خوراک شى هم دى او خوشبويي هم ده.

وهذا الخلاف الخ فرمايي چې دا اختلاف د زيتونو او د كنجتو په خالص تېلو كي دى، لېكن كه په دې تېلو خوشبوداره شى گډ كړى سي، لكه بنفشه او چمبيلى، نو بيا د هغو په لگولو سره د ټولو په نېز دم واجبيږي، ځكه چې اوس دا عليحده خوشبويي سوه، هو! كه دا تېل پر جسم نه ولگوي، بلكي د خوراک په توگه يې استعمال كړي، نو دم نه واجبيږي، ځكه چې دا د خوشبويي په توگه استعمالول نه سو، بلكي خوړل سو.

## د زيتون تېل د دواء په توگه پر زخمونو لگول

وَلَوْ دَاوَى بِهِ جُرْحَهُ أَوْ شُقُوقَ رِجْلَيْهِ او كه محرم د زتيون په تېلو سره د خپل زخم يا د پښو د چاودو علاج وكړي فَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ نو پر هغه كفاره نسته لِأَنَّهُ لَيْسَ بِطِيبٍ فِي نَفْسِهِ ځكه چې د زتيون تېل بذاتِ خود خوشبويي نه ده إِنَّمَا هُوَ أَصْلُ الطِّيبِ بلكي هغه خو د خوشبويي اصل دى (يعني د بل شي په گډون خوشبويي ځني جوړيږي) أَوْ طِيبٌ مِنْ وَجْهٍ يا يو ړول خوشبويي ده فَيُشْتَرَطُ اسْتِعْمَالُهُ عَلَى وَجْهِ التَّطَيُّبِ لهذا د خوشبويي په ړول د هغه استعمالول شرط دي بِخِلَافِ مَا إِذَا تَدَاوَى بِالْمِسْكِ وَمَا أَشْبَهَهُ په خلاف د هغه صورت چې كله محرم په مشک يا د هغه په ړول (بلي خوشبويي) سره علاج وكړي.

**اللغات:** ﴿داوى﴾ د مفاعلې ماضي ده: علاج كول، درملنه كول، ﴿جرح﴾ زخم.

**تشريح:** مسئله: دا ده كه محرم د زخم يا د پښو د چاودو لپاره د زيتون تېل استعمال كړه، نو پر هغه دم يا صدقه نه واجبيږي، ځكه چې اول خو د زيتون تېل بذاتِ خود خوشبويي نه ده، بلكي د خوشبويي اصل دى، يا يو ړول خوشبويي ده، لهذا دا شرط به لگېږي چې كه د زيتون تېل د خوشبويي او عطرو په توگه استعمال سوه، نو بيا به صدقه يا دم واجبيږي، او كه د علاج په توگه استعمال سوه، نو پر هغه به كفاره نه واجبيږي، او كه محرم مشک يا كافور د دواء په توگه استعمال كړل، نو بيا هم كفاره واجبيږي، ځكه چې دا شيان خالص خوشبويي او عطر دي، لهذا په دې كي به د كفارې د واجبېدلو لپاره د خوشبويي په توگه د استعمالولو شرط نه وي.

## په احرام كي گنډل سوي جامې اغوستل

وَإِنْ لَبِسَ ثَوْبًا مَخِيطًا أَوْ غَطَّى رَأْسَهُ يَوْمًا كَامِلًا او كه محرم پوره يوه ورځ گنډل سوي جامې (كالي) واغوندي يا سر پټ كړي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دى وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ او كه تر دې كم دا كارونه وكړي فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ نو پر هغه صدقه واجب ده وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ● إِذَا لَبِسَ أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چې كه هغه تر نيمي ورځي زيات كالي واغوندي نو پر هغه دم واجب دى وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ

● القول الراجح: هو قول الجمهور يعني: فعليه صدقة، كذا فى الدر المختار ج:٢، ص: ٢٢. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٠]

اللهُ أَوَّلًا او همدا د امام صاحب اول قول دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَجِبُ الدَّمُ بِنَفْسِ اللُّبْسِ او امام شافعي فرمايي: چي محض په کالو اغوستلو سره دم واجبيږي لِأَنَّ الْإِرْتِفَاقَ يَتَكَامَلُ بِالْإِشْتِمَالِ عَلَىٰ بَدَنِهِ ځکه چي "نفع اخيستل" کامليږي پر بدن باندي د کالو په اشتمال سره (يعني چي کله کالي واغوستل سي او کالي بدن پټ کړي نو په هغه کړي فايده پوره سوه) وَلَنَا أَنَّ مَعْنَى التَّرَفُّقِ مَقْصُودٌ مِنَ اللُّبْسِ او زموږ دليل دا دی چي له اغوستلو څخه د راحت معنیٰ مقصود ده فَلَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ الْمُدَّةِ نو د يوې مودې اعتبار کول ضرور دي لِيَحْصُلَ عَلَى الْكَمَالِ چي راحت په پوره توګه حاصل سي وَيَجِبُ الدَّمُ او دم واجب سي فَقُدِّرَ بِالْيَوْمِ نو هغه موده يوه ورځ وټاکل سوه لِأَنَّهُ يُلْبَسُ فِيهِ ثُمَّ يُنْزَعُ عَادَةً ځکه چي په عامه توګه کالي په يوه ورځ کي اغوستل کيږي او بيا کښل کيږي وَتَتَقَاصَرُ فِيمَا دُونَهُ الْجِنَايَةُ او تر يوې ورځي په کمه موده کي جنايت قاصر (او کم) دی فَتَجِبُ الصَّدَقَةُ نو ځکه به (تر يوې ورځي په کمه موده) کي صدقه واجب وي غَيْرَ أَنَّ أَبَا يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَقَامَ الْأَكْثَرَ مَقَامَ الْكُلِّ لېکن ابو يوسف رَحِمَهُ الله اکثر د کُل قائم مقام کړي دي.

**اللغات:** ﴿مخيط﴾ ګنډل سوي جامې (کالي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو محرم ګنډل سوي جامې يوه ورځ يا يوه شپه واغوستلې، يا يې خپل سر يوه ورځ يا يوه شپه پټ کړی، نو پر هغه دم واجبيږي، او که تر يوې ورځي يا يې تر يوې شپې کم دا عمل وکړی، نو صدقه پر واجبيږي، لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که تر نيمي ورځي يې زيات دا عمل وکړی، نو دم پر واجبيږي، کنې نه پر واجبيږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول هم دغه دی، بيا يې له دې څخه رجوع وکړه او هغه وروستنی قول يې اختيار کړی چي که پوره يوه ورځ يا يوه شپه کالي واغوندي نو دم واجبيږي، کنې صدقه واجبيږي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي محض د ګنډل سوو جامو په اغوستولو سره دم واجبيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي کله محض په جامو سره بدن پټ سي، نو فايده او راحت کامل سو، نو ځکه به پر هغه دم واجبيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي له جامو اغوستلو څخه د راحت معنیٰ مقصود ده، يعني يخ او ګرمي ليري کول، ځکه چي د جامو اغوستل هم د دغه لپاره دي، الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ او دا معنیٰ کامليږي هم، او قاصر کيږي هم، او د کامل او قاصر په مينځ کي حد فاصل ضروري دی، چي جزاء د هغه مطابق وټاکل سي، نو حد فاصل يوه ورځ يا يوه شپه وټاکل سوه، يعني يوه پوره ورځ يا يوه پوره شپه اغوستل کامل جرم دی، نو د دې په وجه سره به کامله جزاء يعني دم واجبيږي، او تر دې کمه موده قاصر جرم دی، نو د دې په وجه به قاصره جزاء يعني صدقه واجبيږي، او څرنګه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اکثر د کُل قائم مقام کوي، نو ځکه د هغه په نېز هم د ورځي د اکثره حصې په اغوستولو کي کامله جزاء يعني دم واجبيږي.

## ګنډل سوي جامې د څادر(پټو) په ډول اغوستل او د لنګ په ډول تړل

وَلَوِارْتَدٰى بِالْقَمِيْصِ او که محرم کالي (کميس) د څادر په توګه واغوندي أَوِاتَّشَحَ بِهٖ يا اتشاح وکړي (يعني له راسته بغل څخه څادر راوباسي او پر چپه اوږه يې واچوي) أَوِاتَّزَرَ بِالسَّرَاوِيْلِ يا پر توګ د لنګ په ډول وتړي فَلَا بَأْسَ بِهٖ نو په دې کې څه حرج نشته لِأَنَّهٗ لَمْ يَلْبَسْهُ لُبْسَ الْمَخِيْطِ ځکه چې هغه دا د ګنډل سوو جامو په ډول نه دي اغوستلي وَكَذَا لَوْ أَدْخَلَ مَنْكِبَيْهِ فِي الْقَبَاءِ همدارنګه که هغه په چوغه(چپنه) کې خپلې اوږې دننه کړي وَلَمْ يُدْخِلْ يَدَيْهِ فِي الْكُمَّيْنِ او په لستونو کې یې لاسونه دننه نه کړي(نو په دې کې هم څه حرج نشته) خِلَافًا لِزُفَرَ● په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله (امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې په چوغه کې اوږې دننه کول ګواکې چوغه اغوستل دي، لیکن زموږ په نېز داسې نه ده) لِأَنَّهٗ مَا لَبِسَهٗ لُبْسَ الْقَبَاءِ ځکه چې هغه د چوغې اغوستلو په ډول چوغه نه واغوستله(يعني په عامه توګه چې څرنګه چوغه اغوستل کیږي هغسې یې نه واغوستله) وَلِهٰذَا يَتَكَلَّفُ فِي حِفْظِهٖ همدا وجه ده چې هغه د دې په ساتنه کې تکلف کوي وَالتَّقْدِيْرُ فِي تَغْطِيَةِ الرَّأْسِ مِنْ حَيْثُ الْوَقْتِ مَا بَيَّنَّاهُ او د سر د پټولو په باره کې به د هغه وخت په اعتبار سره اندازه لګيږي کوم چې موږ بیان کړی(خپل مخکیني قول ته اشاره کوي چې که ټوله ورځ سر پټ کړي نو دم به واجبیږي، کنې صدقه به واجبیږي) وَلَا خِلَافَ أَنَّهٗ إِذَا غَطّٰى جَمِيْعَ رَأْسِهٖ يَوْمًا كَامِلًا يَجِبُ عَلَيْهِ الدَّمُ او په دې باره کې هیڅ اختلاف نشته چې کله هغه ټوله ورځ خپل سر پټ کې نو پر هغه به قرباني واجب وي لِأَنَّهٗ مَمْنُوْعٌ عَنْهُ ځکه چې محرم(په حدیث کې) له دې څخه منع سوی دی وَلَوْ غَطّٰى بَعْضَ رَأْسِهٖ او که هغه د سر بعضي حصه پټه کړي فَالْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ الله● أَنَّهُ اعْتَبَرَ الرُّبُعَ نو له امام صاحب څخه روایت دی چې هغه د څلورمې حصې اعتبار کړی دی اِعْتِبَارًا بِالْحَلْقِ وَالْعَوْرَةِ پر حلق او عورت باندې په قیاسولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ سَتْرَ الْبَعْضِ اِسْتِمْتَاعٌ مَقْصُوْدٌ او دا ځکه چې د بعضي سر پټول (هم) نفع اخیستل دي يَعْتَادُهٗ بَعْضُ النَّاسِ (لکه څرنګه) چې دا د بعضو خلکو عادت دی وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ الله أَنَّهٗ يَعْتَبِرُ أَكْثَرَ الرَّأْسِ او له امام ابو یوسف څخه روایت دی چې هغه د سر د اکثري حصې اعتبار کوي اِعْتِبَارًا لِلْحَقِيْقَةِ د حقيقت په اعتبار کولو سره.

**اللغات:** ﴿ارتدٰی﴾ د افتعال ماضي ده: څادر پر اوږه کول، ﴿اتشح﴾ د افتعال ماضي ده له وشح څخه مشتق دی: څادر له راسته بغل څخه را ایستل او دواړه طرفونه یې پر چپه بغل اچول، ﴿اتزر﴾ دا هم د افعال ماضي ده: لنګ تړل، ﴿منکب﴾ اوږه، ﴿قبا﴾ چوغه، چپنه، ﴿کمّین﴾ دواړه لستوڼي.

---

● القول الراجح: هو قول الجمهور أى: لا بأس به، كذا فى الهندية ج:١، ص: ٢٤٢. [القول الراجح ج:١، ص: ٢٢١]

● القول الراجح: قول أبى حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا فى الهندية ج:١، ص: ٢٤٢. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢١]

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو محرم قمیص (کمیس) د څادر په ډول واغوستی، یا یې له راسته بغل څخه را وایستی او پر چپه اوږه یې واچوی، یا یې له پټوک څخه لنګ جوړ کړی، یعني د لنګ په ډول یې پر پښو را وپېچي، نو په دې صورتونو کې پر هغه صدقه او هیڅ شی نه واجبیږي، ځکه چې محرم دا جامې د ګنډل سوو جامو په ډول نه واغوستلې، حال دا چې ګنډل سوي جامې اغوستل دم واجبوي، نو ځکه به په دې صورتونو کې هم دم نه واجبیږي.

او که محرم په چوغه (قبا) کې صرف خپلې اوږې دننه کړې، او لاسونه یې په لستونو دننه نه کړه، نو هم زموږ په نېز پر هغه هیڅ شی نه واجبیږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کې پر محرم دم واجبیږي.

**د امام زفر دلیل:** دا دی چې چوغه ګنډل سوي جامې دي، لهذا کله چې محرم په هغې کې خپلې اوږې داخلې کړې نو هغه د ګنډل سوو جامو اغوستونکی سو، او کله چې محرم ګنډل سوي جامې واغوندي نو پر هغه به بالیقین د جنایت جزاء واجب وي.

**زموږ دلیل:** دا دی چې هغه قباء داسې نه واغوستله لکه څرنګه چې اغوستل کیږي، یعني لکه څرنګه چې د هغې د اغوستلو عادت دی، ځکه قباء عادتاً په دا ډول اغوستل کیږي چې په لستونو یې لاسونه هم دننه کیږي، همدا وجه ده که یو څوک لاسونه په لستونو دننه نه کړي، نو هغه د قباء په ساتنه کې تکلف کوي، او ډېر کوښښ کوي چې قباء ور څخه لیرې نه سي، ځکه چې په دې صورت کې د هغه پر اوږو د قباء تکیه کېدل مشکل دي، لهذا کله چې یې قباء هغسې نه واغوستله څرنګه چې اغوستل کیږي، نو پر هغه به دم جزاء هم واجب نه وي.

والتقدیر الخ فرمایي چې په سر پټولو کې به هم پوره د یوې ورځې اعتبار کیږي، نو که محرم پوره یوه ورځ خپل سر پټ کړی، نو بالاتفاق به پر هغه دم واجبیږي، ځکه چې دا په احرام کې ممنوع دي.

ولوغطی الخ او که محرم د سر بعضې حصه پټه کړه، نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې که دا بعضې حصه د سر د څلورمې حصې په اندازه وه، نو پر هغه دم واجبیږي، او دا به پر حلق او د عورت پر ستر قیاسیږي، یعني څرنګه چې د سر د څلورمې حصې په خریلو سره دم واجبیږي، او څرنګه چې په لمانځه کې د عورت د څلورمې حصې په ظهور سره لمونځ فاسدیږي، همداسې به د سر د څلورمې حصې په پټولو سره دم واجبیږي، ځکه چې دا هم مقصوده نفع ده، یعني دا عادت هم په بعضې خلکو کې سته چې صرف د سر څلورمه حصه پټوي (لکه د ځینو هیوادونو او د ترکیې خلک چې دومره کوچنې خولۍ (ټوپۍ) پر سر کوي چې په هغه سره فقط د سر څلورمه حصه پټیږي)، او د احرام په حالت کې له ممنوع شي څخه مقصوده نفع حاصلول دم واجبوي، نو ځکه به د سر د څلورمې حصې پټول هم موجب د دم وي؛ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلته هم د اکثر اعتبار کوي فرمایي چې که هغه د سر اکثره حصه پټه کړه، نو دم پر واجبیږي، کنې نه پر واجبیږي، ځکه د کثرت حقیقت همدغه دی چې د هغه مقابل کم وي، او دا په هغه صورت کې ممکن دي چې کله محرم له نیم څخه زیات سر پټ کړي.

## د سر او ږیرې د خریلو او کوچنې کولو بیان

| |
|---|
| وَإِذَا حَلَقَ رُبُعَ رَأْسِهِ او که محرم د سر څلورمه حصه (یا تر هغه زیاته حصه) وخریي أَوْ رُبُعَ لِحْيَتِهِ فَصَاعِدًا یا د ږیرې څلورمه حصه یا تر هغه زیاته حصه وخریي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی فَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ الرُّبُعِ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ او که تر څلورمې حصې کمه حصه وي نو پر هغه صدقه واجب ده وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجِبُ إِلَّا بِحَلْقِ الْكُلِّ او امام |

مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دم نه واجبيږي مګر د ټوله سر په خريلو سره وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَجِبُ بِحَلْقِ الْقَلِيْلِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په لږ خريلو سره (هم) دم واجبيږي اِعْتِبَارًا بِنَبَاتِ الْحَرَمِ د حرم پر وښو باندي په قياسولو سره وَلَنَا أَنَّ حَلْقَ بَعْضِ الرَّأْسِ إِرْتِفَاقٌ كَامِلٌ او زموږ دليل دا دی چي بعضي سر خريل پوره نفع اخيستل دي لِأَنَّهُ مُعْتَادٌ ځکه چي دا (هم) عادت دي فَتَتَكَامَلُ بِهِ الْجِنَايَةُ لهذا په دومره اندازې به جرم کامليږي وَتَتَقَاصَرُ فِيْمَا دُوْنَهُ او له څلورمي حصې څخه به په کمه حصه کي جرم ناقص وي بِخِلَافِ تَطْيِيْبِ رُبْعِ الْعُضْوِ په خلاف د اندام پر څلورمي حصې د عطر لګولو لِأَنَّهُ غَيْرُ مَقْصُوْدٍ ځکه چي هغه مقصود نه دي وَكَذَا حَلْقُ بَعْضِ اللِّحْيَةِ مُعْتَادٌ بِالْعِرَاقِ وَأَرْضِ الْعَرَبِ او همدارنګه د ږيري څه حصه خريل په عراق او عربو کي عادت دي (نو پر هغه به هم دم واجب وي).

**اللغات:** ﴿لحية﴾ ږيره، ﴿نبات﴾ وابنه، بوټي (راشنه کېدونکي شيان).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که محرم رُبع سر (د سر څلورمه حصه) يا د ږيري څلورمه حصه يا تر دې زياته حصه وخريله، نو زموږ په نيز پر هغه دم واجبيږي، او که د خريلو اندازه له رُبع څخه کمه وه، نو پر هغه صدقه واجبيږي، د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د بعض او رُبع په خريلو سره هيڅ شی نه واجبيږي، هو! که محرم ټوله سر يا ټوله ږيره وخريي نو پر هغه دم واجبيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر محرم د دم د وجوب په باره کي د قليل او کثير په مينځ کي هيڅ فرق نشته، نو که محرم له رُبع څخه کم وروېښتيان يا ږيره وخريي، نو هم پر هغه دم واجبيږي، حتیٰ که درې يا څلور وروېښتيان وخريي نو هم دم پر واجبيږي، د امام شافعي دليل قياس دی يعني وروېښتيان د حرم پر وښو قياسوي يعني که محرم د حرم لږ وابنه يا بوټي را وکاږي نو پر هغه هم دم واجبيږي، که څه هم دوه، درې تاره وي، همداسي به وروېښتيان هم وي.

ولنا أن الخ زموږ دليل دا دی چي اصل مقصود انتفاع (نفع اخيستل) دي، او پر انتفاع د وجوب دارومدار دی، اوس موږ ويـنو چي د رُبع سر خريل هم پوره او کامله انتفاع ده، ځکه چي په خلګو کي د دې عادت هم سته، لکه د ترکيانو عادت چي صرف د سر مينځ خريل دي، او د بعضي خلک عادت صرف د تندي د وروېښتيانو خريل دي، لنده دا چي کله د رُبع سر په خريلو سره انتفاع کامليږي، نو په دې سره به جنايت هم کامليږي، او له رُبع څخه د کمي حصې د خريلو په صورت کي به جنايت ناقص وي، او څرنګه چي د کامل جنايت په صورت کي دم واجبيږي، او د قاصر جنايت په صورت کي صدقه واجبيږي، نو ځکه به د رُبع سر د خريلو په صورت کي دم او له رُبع څخه به د کم خريلو په صورت کي صدقه واجبيږي، د دې په خلاف که يو سړی د يو اندام پر څلورمه حصه (رُبع) عطر ولګوي، نو پر هغه دم نه واجبيږي، ځکه چي د اندام پر رُبع عطر لګول عادت هم نه دي، او مقصود هم نه دي، لهذا په دې کي جنايت پيدا نه سو.

وكذا حلق الخ فرمايي: د رُبع سر چي کوم حکم دی، هغه د رُبع لحيه هم دی، ځکه چي په عراقيانو او عربو کي د رُبع لحيه خريل هم معتاد دي، لهذا که يو محرم رُبع لحيه وخريي نو پر هغه به هم دم واجبيږي.

## د څټ او بغلونو د خريلو حکم

وَإِنْ حَلَقَ الرَّقَبَةَ كُلَّهَا او كه محرم خپل ټوله څټ وخريي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِأَنَّهُ عُضْوٌ مَقْصُودٌ بِالْحَلْقِ ځکه چې دا اندام (هم) په خريلو کې مقصود دی (يعني بعضې خلک يې خريي) وَإِنْ حَلَقَ الْإِبْطَيْنِ أَوْ أَحَدَهُمَا او كه محرم دواړه بغلونه يا يو بغل وخريي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَقْصُودٌ بِالْحَلْقِ ځکه چې په دواړو کې هريو په خريلو کې مقصود دي لِدَفْعِ الْأَذَى وَنَيْلِ الرَّاحَةِ د ګندګۍ ليرې کولو او د راحت د حاصلولو لپاره فَأَشْبَهَ الْعَانَةَ نو دا د سپوخـــي (سپوختې) د وربېنتيانو سره مشابه سو ذَكَرَ فِي الْإِبْطَيْنِ الْحَلْقَ هٰهُنَا امام محمد رَحِمَهُ الله دلته د بغلونو په باره کې لفظ د حلق (خريلو) ذکر کړی دی وَفِي الْأَصْلِ النَّتْفُ او په مبسوط کې يې لفظ د نتف (کښلو) ذکر کړی دی وَهُوَ السُّنَّةُ او همدا کښل سنت دي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ: إِذَا حَلَقَ عُضْوًا فَعَلَيْهِ دَمٌ او صاحبين فرمايي: چې که محرم (پوره) اندام وخريي نو پر هغه دم واجب دی وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ فَطَعَامٌ او كه تر اندام کم وي نو طعام (صدقه) واجب ده أَرَادَ بِهِ الصَّدْرَ وَالسَّاقَ وَمَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ له دې څخه يې مراد سينه، پنډۍ او د دې په څير (نور اندامونه) دي لِأَنَّهُ مَقْصُودٌ بِطَرِيقِ التَّنَوُّرِ ځکه چې دا (هم) د چونې (پوډرو) په لګولو سره مقصود دي فَتَتَكَامَلُ بِحَلْقِ كُلِّهِ لهذا د دې په پوره حلق سره به جرم کامليږي وَتَتَقَاصَرُ عِنْدَ حَلْقِ بَعْضِهِ او د بعضې په حلق سره به جرم قاصر کيږي.

**اللغات:** ﴿رقبة﴾ څټ، ﴿إبط﴾ بغل، ﴿نيل﴾ د فتح مصدر دی: حاصلول، ﴿عانة﴾ سپوخته، تر نامه لاندې وربېنتيان، ﴿نتف﴾ وربېنتيان کښل (کاږل)، ﴿تنوّر﴾ د تفعّل مصدر دی له نُوْرَة څخه دی: د وربېنتيانو د صفا کولو او د ليرې کولو لپاره چونه (پوډر) لګول.

**تشريح:** مسئله: دا ده که محرم خپل ټوله څټ وخريي يا يې خپل دواړه بغلونه يا يو بغل وخريي نو پر هغه دم واجبيږي، ځکه چې څټ هم په خريلو کې مقصود دی، يعني بعضې خلک قصداً د ښکلا او زينت لپاره خپل څټونه خريي، په ځانګړې توګه انګريزان، همدا ډول بغلونه هم د بدبويۍ د ليرې کولو او راحت حاصلولو لپاره خريل کيږي، لهذا حلق الإبط د حلق العانه سره مشابه سو، او حلق العانه يعني تر نامه لاندې وربېنتيان خريل دم واجبوي، نو ځکه به د څټ يا بغل په خريلو سره دم واجبيږي.

ذكر في الخ د دې حاصل دا دی چې امام محمد رَحِمَهُ الله د بغلونو په باره کې دلته يعني په جامع صغير کې لفظ د حلق ذکر کړی دی، او په مبسوط کې يې لفظ د نتف ذکر کړی دی، له دې څخه دا خبره څرګنديږي چې حلق او نتف دواړه جائز دي، خو نتف يعني کاږل سنّت دي.

وقال الخ فرمايي چې په دې لړ کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله رايه دا ده چې که محرم خپل پوره اندام وخريي، نو پر هغه دم واجب دی، او که کم وخريي، نو صدقه پر واجب ده، او په متن کې له اندام څخه سينه، پنډۍ، ورون او داسې نور مراد

ځکه چي سينه، پنډۍ او نور هم په ټوله لګولو سره مقصود دي، يعني دا اندامونه هم خلګ په پوړرو سره صفا کړي، لهذا که ټوله اندام صفا کړی سي، نو جنايت به کامل وي، او که بعضي صفا کړی سي، نو جنايت به قاصر وي، جنايتِ کامله دم واجبوي، او جنايتِ قاصره صدقه واجبوي.

## د برېتو د کوچني کولو حکم

وَإِنْ أَخَذَ مِنْ شَارِبِهِ او که محرم خپل برېتونه کوچني کړي (غچي کړي) فَعَلَيْهِ طَعَامُ حُكُومَةِ عَدْلٍ نو پر هغه د عادلانو د فيصلې مطابق طعام (غنم) واجب دي وَمَعْنَاهُ: أَنَّهُ يُنْظَرُ أَنَّ هٰذَا الْمَأْخُوذَ كَمْ يَكُونُ مِنْ رُبُعِ اللِّحْيَةِ د دې معنیٰ دا ده: چي دا به کتل کيږي چي کوچنی سوې حصه د بږيري د څلورمي حصي په حساب سره څومره کيږي (يعني عادله سړی دي وګوري چي د برېتو غچي سوي ورېښتيان د بږيري د څلورمي حصې په حساب سره څومره دي، نو که د بږيري د څلورمي حصې سره برابر وي نو يو دم يعني يوه بزه واجب ده او که تر هغه کم وي...) فَيَجِبُ عَلَيْهِ الطَّعَامُ بِحَسَبِ ذٰلِكَ نو پر ده به د هغه حساب مطابق طعام واجبيږي حَتّٰى لَوْ كَانَ مثلاً مِثْلَ رُبُعِ الرُّبُعِ تر دې که مثلاً (د برېتو غچي سوي ورېښتيان) د بږيري د څلورمي حصې څلورمه حصه وي لَزِمَهُ قِيمَةُ رُبُعِ الشَّاةِ نو پر هغه به د يوې بزې د څلورمي حصې قيمت لازم وي وَلَفْظَةُ الْأَخْذِ مِنَ الشَّارِبِ تَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ هُوَ السُّنَّةُ فِيهِ دُوْنَ الْحَلْقِ او لفظ د الأخذ من الشارب دلالت کوي چي د برېتونو کوچني کول (غچي کول) سنت دي نه خريل وَالسُّنَّةُ أَنْ يَقُصَّ حَتّٰى يُوَازِيَ الْإِطَارَ او سنت دا دي چي برېتونه دومره کوچني کړی سي چي د اِطار سره برابر سي.

**اللغات:** ﴿شارب﴾ برېت، ﴿يوازي﴾ د مفاعلې مضارع ده: برابرېدل، ﴿اطار﴾ د لوړي شونډي غاړه (څنډه، ژۍ)، ﴿يقص﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: غچي کول (کوچني کول).

**تشريح: مسئله:** دا ده که محرم خپل برېتونه غچي کړل، يا يې وخريل، نو دوه عادله خلګ چي کومه فيصله وکړي، د هغه مطابق به کفاره واجب وي، لهذا عادله خلګ به ګوري چي د غچي کړی سوو برېتونو اندازه څومره ده، که د هغو اندازه د بږيري د څلورمي حصې څلورمه حصه وه، نو پر هغه به د بزې څلورمه حصه واجب وي، او که د بږيري د څلورمي حصې نيمه حصه وه، نو نيمه بزه به واجب وي، او که د بږيري د څلورمي حصې سره برابر ول، نو يوه بزه به واجب وي.

ولفظة الأخذ الخ د دې حاصل دا دی چي په متن کي د دې لفظ أخذ من شاربه مطلب دا دی چي د برېتونو غچي کول سنت دي، خريل د سنت خلاف دي، او بيا په برېتو غچي کولو کي سنت دا دي چي تر اِطار يعني د لوړي شونډي تر لوړي غاړي پوري غچي کړی سي، د دې لپاره چي دا غاړه (څنډه) بالکل صفا سي.

## د ښکر لګولو د ځای د خرېلو حکم

قَالَ: وَإِنْ حَلَقَ مَوْضِعَ الْمَحَاجِمِ فرمايي: او که محرم د ښکر لګولو ځای وخريي فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام صاحب په نېز پر هغه دم واجب دی وَقَالَا*: عَلَيْهِ صَدَقَةٌ او صاحبين فرمايي: چې پر هغه صدقه واجب ده لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَحْلِقُ لِأَجْلِ الْحَجَامَةِ ځکه چې محرم صرف د ښکر لګولو په وجه (دا ځای) خريي وَهِيَ لَيْسَتْ مِنَ الْمَحْظُورَاتِ او ښکر لګول (د احرام) له ممنوعاتو څخه نه دي فَكَذَا مَا يَكُونُ وَسِيلَةً إِلَيْهَا نو همدارنګه (به هغه شی هم د احرام له ممنوعاتو څخه نه وي) چې د ښکر لګولو وسيله وي إِلَّا أَنَّ فِيهِ إِزَالَةَ شَيْءٍ مِنَ التَّفَثِ خو څرنګه چې په خرېلو کې د څه ګندګۍ (خيرو) ليرې کول دي فَتَجِبُ الصَّدَقَةُ نو ځکه به صدقه واجب وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ حَلْقَهُ مَقْصُودٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د ښکر د ځای خرېل (هم) مقصود دي لِأَنَّهُ لَا يَتَوَسَّلُ إِلَى الْمَقْصُودِ إِلَّا بِهِ ځکه چې له خرېلو څخه بغير مقصود ته رسېدل نه سي کېدلای وَقَدْ وُجِدَ إِزَالَةُ التَّفَثِ عَنْ عُضْوٍ كَامِلٍ او بيا له بشپړ اندام څخه ګندګي ليري کول راغله فَيَجِبُ الدَّمُ نو ځکه به دم واجب وي.

**اللغات:** ﴿محاجم﴾ جمع د محجم‌ده: د ښکر لګولو ځای، ﴿تفث﴾ خيره، ګندګي (چټلتيا).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو محرم سړي د ښکر لګولو ځای وخريي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه دم واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر هغه صدقه واجبيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې د ښکر لګولو ځای فقط د ښکر لګولو لپاره خرېل کيږي، او ښکر لګول د احرام له ممنوعاتو څخه نه دي، نو کوم شی چې د ښکر لګولو ذريعه (وسيله) وي، هغه به هم د احرام له ممنوعاتو څخه نه وي، له دې دليل څخه ثابته سوه چې د ښکر لګولو د ځای د خرېلو په وجه به پر محرم هيڅ شی واجبېدل پکار نه وي، خو څرنګه چې د دې ځای په خرېلو کې څه د خيري او د ګندګۍ ليري کول راغله، نو دا جنايت او جرم سو، خو پوره خيره او تفث ليري نه سوه، لهذا دا جرم ناقص سو، او د ناقص جرم په صورت کې صدقه واجبيږي، نو ځکه به په دې صورت کې هم صدقه واجبيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د ښکر لګولو د ځای خرېل مقصود دي (يعني خلک داسي قصداً کوي)، ځکه چې له خرېلو څخه بغير ښکر لګول ممکن نه دي، لهذا دا ځای خرېل هم اصل مقصود سو، او وسيله نه سوه، او عقلي دليل دا دی چې دا ځای د ښکر لګولو په حق کې کامل اندام دی، نو ګواکي له کامل اندام څخه تفث ليري کړی سو، او د احرام په حالت کې له کامل اندام څخه تفث ليري کول دم واجبوي، نو ځکه به په دې صورت کې دم واجبيږي.

---

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كذا فى الفقه الاسلامى ج:۳، ص: ۲۵۸. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۲۲]

# د احرام په حالت کې د بل محرم سر خريل

وَإِنْ حَلَقَ رَأْسَ مُحْرِمٍ بِأَمْرِهِ او که يو محرم د بل محرم سر د هغه په حکم وخريي أَوْ بِغَيْرِ أَمْرِهِ يا د هغه له حکم څخه علاوه (د هغه سر وخريي) فَعَلَى الْحَالِقِ الصَّدَقَةُ نو پر خريونکي محرم صدقه واجب ده وَعَلَى الْمَحْلُوقِ دَمٌ او د کوم محرم سر چې وخريل سو پر هغه دم (قرباني) واجب ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ لَا يَجِبُ إِنْ كَانَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر محلوق دم واجب نه دی که د هغه په حکم سره نه وي بِأَنْ كَانَ نَائِمًا په دې توګه چې محلوق ويده وي لِأَنَّ مِنْ أَصْلِهِ أَنَّ الْإِكْرَاهَ يُخْرِجُ الْمُكْرَهَ مِنْ أَنْ يَكُونَ مُؤَاخَذًا بِحُكْمِ الْفِعْلِ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله اصل دا دی چې إکراه مُكْرَه له دې څخه باسي چې د فعل په حکم دي ونيول سي (يعني د هغه أصل دا دی چې ديو چا سره که زور او جبر وسي نو هغه به پر خپل فعل نه نيول کيږي نه په دنيا کي او نه په آخرت کي). وَالنَّوْمُ أَبْلَغُ مِنْهُ او خوب تر إکراه زيات دی وَعِنْدَنَا بِسَبَبِ النَّوْمِ وَالْإِكْرَاهِ يَنْتَفِي الْمَأْثَمُ او زموږ په نيز په خوب او إکراه سره ګناه ليري کيږي دُونَ الْحُكْمِ نه حکم (يعني په آخرت کي خو به نه نيول کيږي لېکن په دنيا کي به نيول کيږي) وَقَدْ تَقَرَّرَ سَبَبُهُ او د دم سبب ثابت سوی دی وَهُوَ مَا نَالَ مِنَ الرَّاحَةِ وَالزِّينَةِ او هغه راحت او ښکلا حاصلول دي فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ حَتْمًا لهذا پر هغه به حتماً دم لازم وي بِخِلَافِ الْمُضْطَرِّ په خلاف د مضطرّ (يعني هغه چې د خدايي مرض په وجه سر وخريي) حَيْثُ يَتَخَيَّرُ ځکه مضطرّ ته اختيار دی لِأَنَّ الْآفَةَ هُنَاكَ سَمَاوِيَّةٌ ځکه چې هلته آفت آسماني (يعني خدايي) دی وَهٰهُنَا مِنَ الْعِبَادِ او دلته د بندګانو له طرف څخه دی ثُمَّ لَا يَرْجِعُ الْمَحْلُوقُ رَأْسُهُ عَلَى الْحَالِقِ بيا به محلوق پر حالق رجوع نه کوي (يعني محلوق به له حالق څخه خپل تاوان او دم نه اخلي) لِأَنَّ الدَّمَ إِنَّمَا لَزِمَهُ بِمَا نَالَ مِنَ الرَّاحَةِ ځکه چې پر هغه دم د هغه راحت په وجه لازم سو کوم چې هغه حاصل کړی فَصَارَ كَالْمَغْرُورِ فِي حَقِّ الْعُقْرِ نو محلوق د هغه سړي په ډول سو چې د عقر په حق کي دوکه سوی وي وَكَذَا إِذَا كَانَ الْحَالِقُ حَلَالًا او همدارنګه چې کله حالق حلال وي لَا يَخْتَلِفُ الْجَوَابُ فِي حَقِّ الْمَحْلُوقِ رَأْسُهُ (نو هم به) د محلوق په باره کي حکم نه مختلف کيږي (بلکي په دې صورت کي به هم پر محلوق دم واجب وي) وَأَمَّا الْحَالِقُ تَلْزَمُهُ الصَّدَقَةُ فِي مَسْأَلَتِنَا فِي الْوَجْهَيْنِ او پاته سو حالق نو زموږ د مسئلې په دواړو صورتونو کي پر هغه صدقه واجبيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا حَلَقَ الْمُحْرِمُ رَأْسَ حَلَالٍ او هم پر دې اختلاف هغه صورت (هم) دی چې کله محرم د حلال سړي سر وخريي لَهُ أَنَّ مَعْنَى الْإِرْتِفَاقِ لَا يَتَحَقَّقُ بِحَلْقِ شَعْرِ غَيْرِهِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د فايدې (او راحت) اخيستلو معنیٰ به د بل د وړښتانو په خريلو سره نه ثابتيږي وَهُوَ الْمُوجِبُ او همدا (فايده [او راحت] اخيستل) فديه واجبوي وَلَنَا أَنَّ إِزَالَةَ مَا يَنْمُو مِنْ بَدَنِ الْإِنْسَانِ مِنْ مَحْظُورَاتِ الْإِحْرَامِ او زموږ دليل دا دی چې د انسان پر بدن چې

کوم ځه را شنه کيږي د هغه ليري کول د احرام له ممنوعاتو ځخه دي لِاسْتِحْقَاقِهِ الْأَمَانَ بِمَنْزِلَةِ نَبَاتِ الْحَرَمِ ځکه چي پر بدن راشنه کېدونکې شی د أمن مستحق دی لکه د حرم وابنه (او بوټي) فَلَا يَفْتَرِقُ الْحَالُ بَيْنَ شَعْرِهِ وَشَعْرِ غَيْرِهِ نو ځکه به د خپل د وربښتيانو او د بل د وربښتيانو په حالت کي فرق نه وي إِلَّا أَنَّ كَمَالَ الْجِنَايَةِ فِي شَعْرِهِ خو دا چي کامل جنايت په خپلو وربښتيانو کي دی (لهذا په دې کي به دم لازميږي، او د بل په وربښتيانو کي به صدقه لازميږي).

**اللغات**: ﴿حالق﴾ خريونکی، ﴿محلوق﴾ خريل سوی، ﴿مأثم﴾ گناه، ﴿مغرور﴾ دوکه سوی (هغه ځوک چي دوکه ورکول سوې وي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو محرم د بل محرم سر وخريي، برابره ده که د هغه په حکم سره وي، که نه وي، په دواړو صورتونو کي پر سر خريونکي (حالق) صدقه او د چا چي سر وخريل سو (يعني پر محلوق) دم واجب دی، امام شافعي فرمايي چي که د محلوق د حکم بغير د هغه سر وخريل سو، نو پر هغه دم نه واجبيږي، د حکم بغير صورت دا دی چي محلوق بيده وي، يا بې هوښه وي، يا مجبوره کړی سي، نو په دې حالتونو کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر محلوق دم او هيڅ شی نه واجبيږي، لېکن پر حالق صدقه واجب ده، همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله او د امام احمد رَحِمَهُ الله قول هم دی.

لأنّ من أصله الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله يو أصول بيان کړی دی فرمايي چي مُکرَه (مجبور سړی) چي پر کوم فعل مجبور کړی سي، هغه به د دې فعل په وجه نه په دنيا کي مأخوذ (نيول) کيږي، او نه په آخرت کي، نو د کوم محرم سر چي جبراً او په زوره وخريل سي، نو پر هغه به په دنيا کي په دم او قرباني سره نه مأخوذ کيږي، او نه به په آخرت کي په گناه او عذاب سره مأخوذ کيږي، بلکی هغه به په دنيا او آخرت دواړو کي برّی او پاک وي، او خوب له اکراه او جبر ځخه زيات دی، نو بيده انسان خو به په درجه اولیٰ نه مأخوذ کيږي، او زموږ په نېز په خوب او اکراه سره أخروي حکم يعني گناه خو ليري کيږي، لېکن دنيوي حکم يعني دم نه ليري کيږي، بلکي په دنيا کي به مأخوذ وي، ځکه چي سبب موجود دی، او سبب هغه ښکلا او راحت دی چي محلوق حاصل کړی، لهذا کله چي بيده او مُکرَه په دنيا کي مأخوذ کيږي، نو پر پورتني محلوق به هم حتماً دم واجب وي.

بخلاف المضطر الخ په خلاف د هغه محرم چي د يو خدايي مرض يا د يو خدايي تکليف په وجه د سر خريلو ته مجبور سي، نو د هغه حکم له بيده محرم ځخه جلا دی، او هغه ته د دريو شيانو اختيار دی: (۱) که غواړي نو بزه دي په دم کي ورکړي (۲) يا دي شپږو مسکينانو ته خوراک ورکړي (۳) يا دي دري روژې ونيسي، او مضطر محرم ته د دغه شيانو اختيار ځکه ورکول کيږي چي د هغه آفت آسماني دی، او د لوی ښتن ﷻ له طرفه دی، نو ځکه به هغه ته اختيار وي، او دا اختيار هم په آيت کي د لوی ښتن ﷻ له طرفه ورکول سوی دی: أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ [البقرة: ۱۹۶].

ثم لايرجع الخ له دې ځايه دا راښيي چي په ذکر سوې مسئله کي محلوق له حالق ځخه د قرباني او دم تاوان واپس نه سي اخيستلای، ځکه چي پر محلوق دم صرف په دې وجه واجبيږي چي د سر خريلو په وجه هغه ته راحت حاصليږي، لهذا کله چي دم د راحت حاصلولو په وجه واجبيږي، نو ځوک چي راحت حاصل کړي، هغه به دم ورکوي.

قال: كالمغرور الخ او دا محلوق (يعني مُكرَه او نائم محلوق) داسې دی لکه د عَقر په حق کې چې دوکه ورکول سوې وي، د دې مطلب دا دی چې يو سړي مينځه رانيوله، جماع يې ور سره وکړه، او يو بچی څني پيدا سو، بيا له بائع او مشتري څخه ماسوا دريم کس دا دعویٰ وکړه چې دا مينځه زما ملک ده، بائع دا زما له اجازې څخه بغير خرڅه کړې ده، قاضي د مُدعي يعني د دريم سړي لپاره فيصله وکړه، نو اوس پر مشتري واجب سوه چې مينځه به مُدعي ته ورکوي، او بچی به نه ورکوي بلکې قيمت به يې ورکوي، او عقر يعني د وطی په وجه سره واجب سوی بدل به هم ورکوي(ځکه چې مشتري د بل چا يعني د مُدعي د مينځې سره وطي کړې دي، نو د وطي بدل او قيمت به هم مُدعي ته ورکوي چې هغه ته عقر ويل کيږي) د مُدعي او مشتري خبره خلاصه سو، اوس چې څرنګه بائع مشتري ته دوکه ورکړې ده،(يعني د بل چا په مينځه يې پر خرڅه کړې وه)، نو مشتري به د کوچني او مينځې قيمت له بائع څخه اخلي، خو د عقر[د وطي قيمت] نه سي څني اخيستلای، ځکه چې عقر د وطي په وجه واجب سوی دی، او د وطي فايده او خوند خو په خپله مشتري خيستی دی، نو ځکه به مشتري له بائع څخه د وطي عوض نه سي اخيستلای، همدا ډول به په پورتنی ذکر سوې مسئله کې هم د راحت حاصلولو فايده او خوند صرف محلوق اخيستی دی، نو به دم هم صرف پر محلوق واجب وي، او پر حالق به يوه ذره قدر هم نه واجبيږي.

وكذا إذا كان الخ او که حالق غير محرم وو، او محلوق محرم وو، نو هم پر محلوق دم واجبيږي، برابره ده که د هغه په حکم يې سر خريلی وي، يا د هغه د اجازې بغير.

وأما الحالق الخ او که حالق محرم وي، نو په دواړو صورتونو کې پر هغه صدقه واجبيږي، يعني که د محلوق اجازه او حکم وي، که نه وي، او امام شافعي فرمايي چې پر حالق هيڅ شی نه واجبيږي، د امام شافعي او زموږ په مينځ کې همدغه اختلاف هغه وخت هم دی کله چې محرم د بل غير محرم سر وخريي، نو زموږ په نيز پر حالق محرم صدقه واجب ده، او د امام شافعي په نيز هيڅ شی نه واجبيږي، د امام شافعي دليل دا دی چې د بل چا د سر په خريلو کې د راحت معنیٰ نسته، يعني حالق ته د بل انسان د سر په خريلو کې هيڅ راحت نه حاصليږي، حال دا چې په دې صورت کې صرف راحت فديه واجبوي، نو کله چې د فديې مُوجِب پيدا نه سو، نو فديه به هم نه واجبيږي.

ولنا أن إزالة الخ زموږ دليل دا دی چې د انسان پر بدن راشنه کېدونکي شيان يعني ورېښتيان او نور ليري کول د احرام له منوعاتو څخه دي، ځکه چې پر بدن راشين کېدونکی شی د امان مستحق دی، لکه د حرم وابنه او بوټي چې د امان او احترام مستحق دي، نو څرنګه چې د حرم وابنه کارل جزاء واجبوي، همداسې به د بل انسان د ورېښتيانو په خريلو سره هم پر خريونکي جزاء يعني صدقه واجبيږي، هو! که يو څوک دا سوال وکړي چې کله خبره داسې ده، نو د بل انسان د سر په خريلو بايد دم واجب کړی سي، لکه د خپل سر په خريلو سره چې دم واجبيږي، د دې جواب دا دی چې د خپل سر په خريلو کې خو جنايت کامل دی(ځکه چې په دې کې ارتفاق کامل دی)، لهذا په دې صورت کې به جزاء کامل يعني دم واجبيږي، او د بل انسان د سر په خريلو کې جنايت قاصر دی، او د جنايت قاصره په وجه صدقه واجبيږي، لهذا په داسې صورت کې به پر هغه صدقه واجبيږي.

## د احرام په حالت کې د بل حلال انسان وربېښتان کوچني کول

فَإِنْ أَخَذَ مِنْ شَارِبِ حَلَالٍ او که محرم د حلال (يعني د غير محرم) بربېتونه کوچني کړي (غچې کړي) أَوْ قَلَّمَ أَظَافِيرَهُ يا د هغه نوکان پرېکړي أَطْعَمَ مَا شَاءَ نو کوم طعام چې وغواړي هغه دې صدقه کړي وَالْوَجْهُ فِيهِ مَا بَيَّنَّا او په دې باره کې دليل هغه دی کوم چې موږ بيان کړی (چې د بل چا د بدن وربېښته يا نور شيان ليرې کول د احرام له ممنوعاتو څخه دي او د امن مستحق دي) وَلَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ ارْتِفَاقٍ او دا (د بل انسان بربېتونه کوچني کول او نوکان پرېکول هم) له يو ډول راحت څخه خالي نه دي لِأَنَّهُ يَتَأَذَّى بِتَفَثِ غَيْرِهِ ځکه چې يو انسان د بل انسان په خيرو (او چټلى) سره تکليف محسوسوي وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ التَّأَذِّي بِتَفَثِ نَفْسِهِ که څه هم دا تکليف د خپلو خيرو (او ګندګى) له محسوس سوي تکليف څخه کم دی فَيَلْزَمُهُ الطَّعَامُ لهذا پر هغه به (څه) طعام لازم وي.

**تشريح:** مسئله : دا ده که يو محرم د بل غيرِ محرم بربېتونه کوچني کړل، يا يې د هغه نوکان پرېکړل، نو په دواړو صورتونو کې پر محرم د خپلې خوښې او رضا مطابق طعام او غنم صدقه کول واجب دي، دليل مخکې تېر سو يعني چې کوم شی د انسان پر بدن راشين کيږي، د هغه ليرې کول د احرام له ممنوعاتو څخه دي، همدارنګه د غيرِ محرم د بربېتو په کوچني کولو او د نوکانو په پرېکولو کې محرم ته څه راحت هم حاصليږي، په دې توګه چې يو انسان د بل انسان د نوکانو له خيري او د بربېتو له غټوالي او ناسموالي څخه تکليف او ناخوښي محسوسوي، که څه هم دا تکليف له هغه تکليف څخه کم دی کوم چې له خپلو خيرو څخه محسوسيږي، لهذا محرم هم د غيرِ محرم د بربېتونو په کوچني کولو يا نوکانو پرېکولو سره خپل ځان ته څه راحت ورسوي، او په حالت د احرام کې خپل ځان ته راحت رسول جرم دي، خو ځرنګه چې دا د معمولي درجې جرم دی، نو ځکه به محرم هغه طعام په صدقه کې ورکوي چې مناسب او د هغه خوښه وي.

## د احرام په حالت کې د لاسو يا د پښو نوکان پرېکول

وَإِنْ قَصَّ أَظَافِيرَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ او که محرم د خپلو لاسو يا د پښو نوکان پرېکړي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِأَنَّهُ مِنَ الْمَحْظُورَاتِ ځکه چې دا د احرام له ممنوعاتو څخه دي لِمَا فِيهِ مِنْ قَضَاءِ التَّفَثِ وَإِزَالَةِ مَا يَنْمُو مِنَ الْبَدَنِ ځکه په دې کې (هم) د خيري ختمول او پر بدن د راشنه کېدونکي شي ليرې کول دي فَإِذَا قَلَّمَهَا كُلَّهَا فَهُوَ ارْتِفَاقٌ كَامِلٌ نو که محرم ټوله نوکان پرېکړي نو دا بشپړ فايده اخيستل دي فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ نو ځکه به (يو) دم پر واجب وي وَلَا يُزَادُ عَلَى دَمٍ إِنْ حَصَلَ فِي مَجْلِسٍ وَاحِدٍ او پر يو دم به زياتوب نه کوي په دې شرط چې د ټولو نوکانو پرېکول په يوه مجلس کې واقع سوي وي لِأَنَّ الْجِنَايَةَ مِنْ نَوْعٍ وَاحِدٍ ځکه چې جرم له يوه قسم څخه دی (يعني يو قسم جنايت دی نو ځکه به تداخل پکښې کيږي) فَإِنْ كَانَ فِي مَجَالِسَ او که دا په بېلابېلو مجلسونو کې واقع سوي وي فَكَذَٰلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ نو د امام محمد په نېز هم دغه حکم دی (يعني يو دم به پر واجب وي) لِأَنَّ مَبْنَاهَا عَلَى التَّدَاخُلِ ځکه چې د داسې کفارې دارومدار پر تداخل دی فَأَشْبَهَ كَفَّارَةَ الْفِطْرِ لهذا دا مسئله د فطر د کفارې سره مشابه سوه إِلَّا إِذَا تَخَلَّلَتِ الْكَفَّارَةُ مګر

په هغه صورت کې چې کله کفاره په مينځ کې واقع سي (نو دويمه کفاره به واجب وي) لِارْتِفَاعِ الْأُولىٰ بِالتَّكْفِيرِ ځکه چې اول جنايت د کفارې په ورکولو سره پورته سو (ختم سو) وَعَلىٰ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ● تَجِبُ أَرْبَعَةُ دِمَاءٍ او د شيخينو پر قول څلور قربانياني واجبيږي إِنْ قَلَّمَ فِي كُلِّ مَجْلِسٍ يَدًا أَوْ رِجْلًا که هغه په هر مجلس کې ديوه لاس يا يوې پښې نوکان پرېکړي وي لِأَنَّ الْغَالِبَ فِيهِ مَعْنَى الْعِبَادَةِ ځکه چې په دې کفاره کې د عبادت معنیٰ غالبه ده فَيَتَقَيَّدُ التَّدَاخُلُ بِاتِّحَادِ الْمَجْلِسِ نو تداخل به د مجلس په اتحاد سره مقيد کيږي كَمَا فِي آيِ السَّجْدَةِ لکه څرنګه چې د سجدې په آيتونو کې (تداخل د مجلس په اتحاد سره مقيد دی).

**اللغات:** ﴿قلّم﴾ غچي کول (کوچني کول)، ﴿اظافير﴾ نوکان، ﴿تخلّلت﴾ د تفعل ماضي ده: په مينځ کې راتلل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که محرم خپل د لاسو او د پښو ټوله نوکان پرېکړل، نو پر هغه دم واجب دی، ځکه چې نوکان پرېکول د احرام له ممنوعاتو څخه دي، او د احرام له ممنوعاتو څخه ځکه دي چې د نوکانو په پرېکولو سره خيره (او چټلې) هم ليرې کيږي، او د بدن راشنه کېدونکي شيان هم ليري کيږي، او انسان ته په دې سره راحت او فايده هم حاصليږي، لهذا کله چې يې ټوله نوکان پرېکړل، نو دا د کاملې درجې نفع اخيستل سو، او د احرام په حالت کې کامله نفع اخيستل کامل جرم دی، او د کامل جرم په وجه دم واجبيږي، نو ځکه به په دې صورت کې دم واجب وي.

ولايزاد الخ فرمايي که د ټولو نوکانو پرېکول په يوه مجلس کې وو، نو يو دم به واجبيږي، او پر يوه دم به زياتوب نه کيږي، ځکه چې جنايت يو ډول دی، لهذا په ټولو کې به تداخل کيږي.

فإن كان الخ او که مثلاً په څلورو مجلسونو کې يې ټوله نوکان پرېکړل، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کې هم يو دم واجبيږي، ځکه چې د دې کفارې بنياد پر تداخل دی، په دې شرط چې جنس يو وي، نو په ټولو جنايتونو کې به تداخل کيږي، او يو دم به واجبيږي، لهذا دا مسئله د افطار د کفارې سره مشابه سوه، يعني که يو سړی په رمضان کې قصداً يو څو روژې ماتې کړي، نو د جنس د متحد کېدلو په وجه به پر هغه په آخر کې يوه کفاره واجبيږي، همداسې به په دې مسئله کې په څلورو مجلسونو کې د څلورو نوکانو په پرېکولو سره د يوه جنس کېدلو په وجه يو دم واجبيږي.

إلاإذا تخلّلت الخ هو! که کفاره په مينځ کې واقع سوه، مثلاً يو وار يې د يوه لاس يا يوې پښې نوکان پرېکړل او کفاره يې ورکړه، بيا يې د بل لاس يا پښې نوکان پرېکړل، نو د دويم لپاره به دويمه کفاره ورکوي، اوله کفاره کفايت نه کوي، ځکه چې اول جنايت د اولې کفارې په وجه ختم سو، لهذا دويم جنايت به د اول جنايت په کفاره کې تداخل نه کوي، او که د اول لپاره يې کفاره نه وه ورکړه، نو بيا به تداخل کيږي، او د ټولو لپاره به يو کفاره کافي وي.

وعلى قول أبي حنيفة الخ شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: "که هغه د څلورو مجلسونو په هر مجلس کې د يوه لاس يا يوې پښې پنځه سره نوکان پرېکړل نو پر هغه څلور دمه (قرباني) واجبيږي"، يعني د هر مجلس لپاره يو دم واجبيږي، ټوله په يو بل کې تداخل نه کوي، ځکه چې د قربانۍ په کفاره کې د عبادت معنیٰ غالب ده (نو څومره کفارې چې زياتيږي هغومره به عبادتونه زياتيږي)، لهذا په دې کې به تداخل کيږي، لېکن دا تداخل به د مجلس په اتحاد سره مقيد وي، يعني که مجلس

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا في الدر المختار ج:٢، ص: ٢٢١. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٣]

يو وي، نو تداخل به کيږي او يو دم به واجبيږي، او که مجلس يو نه وي، نو تداخل به نه کيږي، بلکې ډېر دمونه به واجبيږي (چې عبادتونه ډېر سي). لکه د سجدې په آيت کې چې همدغه حکم دی، يعني که د سجدې يو آيت په يوه مجلس کې په وار وار تلاوت کړی سي، نو د ټولو وارونو لپاره به يوه سجده کافي وي، او که مجلسونه مختلف او بېلابېل وي، نو د هر وار لپاره به جلا سجده کوي.

## فقط د يوه لاس يا د يوې پښې نوکان پرېکول

وَإِنْ قَصَّ يَدًا أَوْ رِجْلًا او که محرم د يوه لاس يا د يوې پښې نوکان پرېکړل فَعَلَيْهِ دَمٌ نو (هم) پر هغه دم واجب دی إِقَامَةً لِلرُّبُعِ مَقَامَ الْكُلِّ د څلورمې حصې د کُل په قائم مقام کولو سره (يعني ځکه چې څلورمه حصه د کُل قائم مقام ده) كَمَا فِي الْحَلْقِ لکه څرنګه چې په سر خريلو کې (څلورمه حصه د کُل قائم مقام ده).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو محرم فقط د يوه لاس يا د يوې پښې پنځه نوکان پرېکړي، نو پر هغه هم دم واجبيږي، ځکه چې يو لاس يا يوه پښه د څلورو سره وو يعني د دوارو لاسو او دوارو پښو څلورمه حصه ده، او د دم د وجوب په حق کې څلورمه حصه د کُل قائم مقام ده، لکه د سر د څلورمې حصې خريل چې د ټوله سر د خريلو قائم مقام دي.

## له پنځو څخه د کمو نوکانو پرېکولو حکم

وَإِنْ قَصَّ أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةِ أَظَافِيرَ او که محرم له پنځو نوکانو څخه کم پرېکړي فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ نو پر هغه صدقه واجب ده مَعْنَاهُ تَجِبُ بِكُلِّ ظُفُرٍ صَدَقَةٌ د دې معنیٰ دا ده چې د هر نوک په بدله کې صدقه واجبيږي وَقَالَ زُفَرُ: يَجِبُ الدَّمُ بِقَصِّ ثَلَاثَةٍ مِنْهَا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د درېو نوکانو په پرېکولو سره به دم واجبيږي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ الْأَوَّلُ او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول دی لِأَنَّ فِي أَظَافِيرِ الْيَدِ الْوَاحِدَةِ دَمًا ځکه چې د يوه لاس په نوکانو کې دم واجبيږي وَالثَّلَاثُ أَكْثَرُهَا او درې نوکان د هغه اکثر دي (لهذا په اکثر کې به هم دم واجبيږي) وَجْهُ الْمَذْكُورِ فِي الْكِتَابِ او په کتاب کې د ذکر سوي حکم دليل دا دی أَنَّ أَظَافِيرَ كَفٍّ وَاحِدٍ أَقَلُّ مَا يَجِبُ الدَّمُ بِقَلْبِهِ چې د يوه لاس نوکان د هغه مقدار کمه حصه ده چې د هغه په پرېکولو سره دم واجبيږي وَقَدْ أَقَمْنَاهَا مَقَامَ الْكُلِّ او موږ يو لاس (مخکې) د کُل قائم مقام کړی دی فَلَا يُقَامُ أَكْثَرُهَا مَقَامَ كُلِّهَا لهذا د يوه لاس اکثر به د کُل نه قائم مقام کيږي لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى مَا لَا يَتَنَاهَى ځکه چې دا به د لا متناهي شي سبب جوړ سي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که محرم د يوه لاس يا يوې پښې له پنځو څخه کم نوکان مثلاً درې نوکان پرېکړل نو پر هغه د هر نوک په بدله کې صدقه واجب ده، او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې که محرم درې نوکان پرېکړل، نو پر هغه دم واجبيږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول همدغه دی، ځکه چې د يوه لاس يا د يوې پښې په نوکانو کې درې نوکان اکثر دي، او اکثر د کُل قائم مقام وي، نو څرنګه چې د يوه لاس يا د يوې پښې په پنځو نوکانو سره دم واجبيږي، همدا رنګه به د درېو نوکانو په پرېکولو سره هم دم واجبيږي.

وجه المذكور الخ او په كتاب كي د ذكر سوى حكم دليل او د امام زفر رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دى چي په څومره اندازې نوكانو سره چي دم واجبيږي د هغه كمه درجه د يوه لاس يا د يوې پښې پنځه نوكان دي، يعني د يوه لاس يا د يوې پښې پنځه نوكان د كُل قائم مقام دي، او څرنګه چي موږ دا قاعده للأكثر حكم الكل يو وار جاري كړې ده، يعني يو وار مو پنځه نوكان د كُل قائم مقام كړي دي لكه مخكي چي موږ ووېل چي يو لاس يا يوه پښه د څلور سره وو څلورمه حصه ده، لهذا اوس به د يوه لاس د دريو نوكانو په پرېكولو كي د للأكثر حكم الكل قاعده نه جاري كيږي، كنې دا به د غيرمتناهي أمر سبب جوړ سي، څكه كه دا قاعده جاري سي، او درې ګوتي د پنځو ګوتو أكثر سي، نو بيا به دوې ګوتي د دريو ګوتو أكثر وي، لهذا په هغو كي به هم دم واجبيږي، او بيا به يونيمه ګوته د دوو ګوتو أكثر وي او په هغه كي به هم دم واجبيږي، همداسي به دا سلسله روانه وي، او غيرمتناهي أمر ناممكن دى، نو څكه به تر دې وروسته دا قاعده نه جاري كيږي.

## له بېلابېلو ګوتو څخه د پنځو نوكانو پرېكولو حكم

وَإِنْ قَصَّ خَمْسَةَ أَظَافِيرَ مُتَفَرِّقَةٍ مِنْ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ او كه يو محرم د خپلو لاسو او پښو بېلابېل (جلا جلا) پنځه نوكان پرېكړي فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ عِنْدَ* أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر هغه صدقه واجب ده وَقَالَ مُحَمَّدٌ: عَلَيْهِ دَمٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر هغه دم واجب دى اِعْتِبَارًا بِمَا لَوْ قَصَّهَا مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ پر هغه صورت په قياسولو سره چي كله د يوه لاس پنځه نوكان پرېكړي وَبِمَا إِذَا حَلَقَ رُبُعَ الرَّأْسِ مِنْ مَوَاضِعَ مُتَفَرِّقَةٍ او پر هغه صورت په قياسولو سره چي كله له بېلابېلو ځايونو څخه د سر څلورمه حصه وخريي وَلَهُمَا أَنَّ كَمَالَ الْجِنَايَةِ بِنَيْلِ الرَّاحَةِ وَالزِّينَةِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چي جنايت د راحت او زينت (ښكلا) په حصول سر كامليږي وَبِالْقَلْمِ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ يَتَأَذَّى بِهِ او په دې ډول پرېكولو سره هغه په تكليف كيږي وَيَشِينُهُ ذَلِكَ او دا طريقه هغه عيبجن كوي (يعني په دې سره هغه بدنما معلوميږي) بِخِلَافِ الْحَلْقِ په خلاف د سر خريلو لِأَنَّهُ مُعْتَادٌ عَلَى مَا مَرَّ څكه چي هغه عادت دى لكه مخكي چي تېر سو وَإِذَا تَقَاصَرَتِ الْجِنَايَةُ او كله چي جنايت ناقص وي تَجِبُ فِيهَا الصَّدَقَةُ نو په هغه كي به صدقه واجبيږي فَيَجِبُ بِقَلْمِ كُلِّ ظُفْرٍ طَعَامُ مِسْكِينٍ نو څكه به د هر نوك په پرېكولو سره د يوه مسكين واجبيږي وَكَذَلِكَ لَوْ قَلَّمَ أَكْثَرَ مِنْ خَمْسَةٍ مُتَفَرِّقًا همدا ډول كه هغه له پنځو څخه زيات بېلابېل نوكان پرېكړل (نو صدقه واجبيږي) إِلَّا أَنْ يَبْلُغَ ذَلِكَ دَمًا مګر دا چي هغه دم ته ورسيږي (يعني نوكان دې اندازې ته ورسيږي چي د صدقې قيمت يې دم ته ورسيږي) فَحِينَئِذٍ يَنْقُصُ عَنْهُ مَا شَاءَ نو په دې صورت كي چي له دې څخه څومره وغواړي هغومره دې كم كړي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو محرم پنځه نوكان پرېكړل، خو په دواړو پښو او لاسو كي يې له بېلابېلو (متفرقو) ځايونو څخه پرېكړل، نو د شيخينو په نېز پر هغه صدقه واجب ده، يعني د هر نوك په بدله كي به صدقه وركوي. او امام محمد فرمايي چي په دې صورت كي دم واجبيږي.

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا في البحر الرائق ج:٣، ص: ٢١. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٣]

**د امام محمد دليل:** قياس دی يعني څرنګه چې ديوه لاس يا ديوې پښې د پنځو نوکانو په پرېکولو سره دم واجبېږي، همداسې به په متفرقه توګه د پنځو نوکانو په پرېکولو سره هم دم واجبېږي، او څرنګه چې له متفرقو ځايونو څخه د سر خرېلو په صورت کې دم واجبېږي، همداسې به په متفرق توګه د نوکانو په پرېکولو سره هم دام واجبېږي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې جنايت په راحت او زينت(ښکلا) حاصلولو سره پوره کېږي، او په متفرقه توګه نوکان پرېکول د تکليف او عيب سبب دي، لهذا کله چې په دې صورت کې راحت او زينت حاصل نه سو، نو ځکه به جرم کامل نه وي، او کله چې جرم کامل نه سو، نو دم به هم نه واجبېږي، په خلاف له متفرقو ځايونو څخه د سر خرېلو صورت، ځکه چې هغه په خلکو کې عادت دی(لکه په انګرېزانو کې چې د زينت لپاره داسې کېږي)، لهذا هغه به د تکليف او عيب سبب نه وي، او کله چې سبب د تکليف نه سو، نو کامل جرم سو، او کله چې کامل جرم سو، نو ځکه به په دې ټول سر خرېلو سره دم واجبېږي.

وإذا تقاصرت الخ فرمايي چې کله جنايت قاصر وي، نو په هغه کې به صدقه واجبېږي، او د هر نوک په بدله کې به يو مسکين ته خوراک ورکوي(يعني پر هر نوک به نيم صاع غنم واجب وي)، همدارنګه که يو سړی له پنځو څخه زيات نوکان په متفرقه توګه پرېکړل، نو د هر نوک په بدله کې به صدقه واجبېږي، هو! که ټوله صدقات سره يوځای کړل سي، د يوه دم قيمت ته ورسېږي، نو په دې صورت کې به له صدقاتو څخه يو څه حصه کمه کړی سي چې د صدقې اندازې ته را ورسېږي، ځکه چې دم د کامل جرم په وجه واجبېږي، او دلته کامل جرم نسته، لهذا دم به نه واجبېږي.

## د مات سوي نوک پرېکولو حکم

قَالَ: وَإِنِ انْكَسَرَ ظُفْرُ الْمُحْرِمِ فرمايي: او که د محرم نوک مات سي وَتَعَلَّقَ او را وځړېږي فَأَخَذَهُ او محرم هغه پرېکړي(يعني ليرې يې کړی) فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی نه واجبېږي لِأَنَّهُ لَا يَنْمُو بَعْدَ الْإِنْكِسَارِ ځکه چې هغه تر ماتېدلو وروسته نه غټېږي فَأَشْبَهَ الْيَابِسَ مِنْ شَجَرِ الْحَرَمِ نو د حرم د وچې درختې(او بوټي) سره مشابه سو.

**اللغات:** ﴿انكسر﴾ د انفعال ماضي ده: ماتېدل. ﴿تعلّق﴾ د تفعّل ماضي ده: ځړېدل. ﴿يابس﴾ وچ.

**تشريح: مسئله:** دا ده که د محرم نوک په خپله مات سو او را ځوړند سو. بيا محرم هغه پرېکړي، نو پر محرم صدقه او هيڅ شی نه لازمېږي، ځکه چې نوک تر ماتېدلو وروسته نه غټېږي، لهذا اوس هغه د حرم د وچې درختې سره مشابه سو، او که د حرم وچه درخته وکښل سي، نو جائز دي، او هيڅ شی نه واجبېږي، نو همداسې به د مات سوي نوک په پرېکولو او ليرې کولو سره هم هيڅ شی نه واجبېږي.

## د احرام په حالت کې د عذر په وجه د يو ممنوع کار کولو حکم

وَإِنْ تَطَيَّبَ أَوْ لَبِسَ مَخِيْطًا أَوْ حَلَقَ مِنْ عُذْرٍ او که محرم د عذر په وجه عطر ولګوي يا ګنډل سوي کالي واغوندي يا سر وخريي فَهُوَ مُخَيَّرٌ إِنْ شَاءَ ذَبَحَ نو محرم ته اختيار دی که وغواړي نو يوه بزه دې حلاله کړي وَإِنْ شَاءَ تَصَدَّقَ عَلٰى سِتَّةِ مَسَاكِيْنَ بِثَلَاثَةِ أَصْوُعٍ مِنَ الطَّعَامِ او که وغواړي نو درې صاعه غله دې پر شپږو مسکينانو صدقه کړي وَإِنْ شَاءَ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ او که وغواړي نو درې روژې دې ونيسي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ [البقرة: ۱۹۶]

ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "او پر هغه د روژو فديه ده يا د صدقې يا د قرباني" وَكَلِمَةُ أَوْ لِلتَّخْيِيرِ او کلمه د "أو" د تخيير لپاره ده وَقَدْ فَسَّرَهَا رَسُولُ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] بِمَا ذَكَرْنَا او نبي ﷺ د دې آيت تفسير زموږ د ذکر سوي تفصيل مطابق کړی دی وَالْآيَةُ نَزَلَتْ فِي الْمَعْذُورِ او دا آيت د معذوره په حق کي نازل سوی دی ثُمَّ الصَّوْمُ يُجْزِيهِ فِي أَيِّ مَوْضِعٍ شَاءَ بيا معذور محرم ته په هر هغه ځای کي روژه کافي ده چيري چي هغه وغواړي لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ فِي كُلِّ مَكَانٍ ځکه چي روژه په هر ځای کي عبادت ده وَكَذَلِكَ الصَّدَقَةُ عِنْدَنَا او صدقه هم زموږ په نېز همداسي ده لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَأَمَّا النُّسُكُ فَيَخْتَصُّ بِالْحَرَمِ بِالِاتِّفَاقِ او پاته سوه قرباني نو هغه (د ټولو) په اتفاق د حرم سره خاص ده لِأَنَّ الْإِرَاقَةَ لَمْ تُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا فِي زَمَانٍ أَوْ مَكَانٍ ځکه چي وينه بيول صرف په زمان يا مکان کي عبادت پېژندل سوي دي(يعني په شريعت کي دويني بيولو عبادت د زماني يا مکان سره خاص دي) وَهَذَا الدَّمُ لَا يَخْتَصُّ بِزَمَانٍ او دا دم د زماني سره خاص نه دی فَتَعَيَّنَ اخْتِصَاصُهُ بِالْمَكَانِ لهذا د مکان سره د هغه خاصوالی متعين سو.

**اللغات:** ﴿إراقة﴾ د افعال مصدر دی: وينه بيول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو محرم د عذر په وجه عطر ولګول، يا يې ګنډل سوي کالي واغوستل، يا يې سر وخرېی، نو اوس د دم او د جزاء په باره کي هغه ته د درېو خبرو اختيار سته: (۱) که غواړي نو يوه بزه دي قرباني کړي (۲) يا دي پر شپږو مسکينانو درې صاعه غله صدقه کړي (۳) يا دي درې روژې ونيسي، د دې اختيار دليل د قرآن کريم دا آيت فمن كان منكم مريضا أو به أذى من رأسه ففدية من صيام أو صدقة أو نسك (يعني څوک چي له تاسو څخه ناروغه وي، يا يې په سر کي څه تکليف وي هغه ته د فديې د اداء کولو لپاره په روژو، صدقه او قرباني کي اختيار دی)، ځکه چي دا آيت د معذوره په حق کي را نازل سوی دی، او په دې کي د "أو" کلمه د تخيير لپاره ده، او په خپله نبي کريم ﷺ دلته "أو" پر تخيير حمل کړی دی، په حديث کي ذکر سوي دي چي د کعب بن عجره ﷺ په سر کي سپږي وې، او له هغو څخه ډېر په تکليف وو، نو نبي ﷺ هغه ته د سر خريلو حکم وکړی، او بيا يې پوښتنه څني وکړه: هل عند نسك. (آيا ته د قرباني طاقت لرې)، کعب بن عجره ﷺ وفرمايل: لا أقدر عليه. (اې د الله نبي! زه د قرباني طاقت نه لرم)، نو نبي ﷺ هغه ته د "درېو روژو نيولو" يا "شپږو مسکينانو ته د خوراک ورکولو" حکم وکړی. (بنايه ج:۴، ص:۲۶۲)

ثم الصوم الخ د دې حاصل دا دی چي په اتفاق د څلورو امامانو د محرم لپاره هر ځای روژه نيول جائز دي، ځکه چي روژه يو داسي عبادت دی، چي هر ځای جائز دی، د هيڅ ځای او مقام سره خاص نه دی، او زموږ په نېز صدقه همدغه رنګه ده، يعني صدقه هم هر ځای جائز ده، نو که يو معذور محرم د روژې يا صدقې په ذريعه فديه اداء کول وغواړي نو د هغه خوښه ده که په حرم کي يې اداء کوي، او که له حرم څخه يې دباندي اداء کوي، په هر صورت کي د هغه فديه اداء کيږي.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب المحصر، باب:۵، حديث رقم:۱۸۱۴.

د دې په خلاف که يو محرم د دم او قرباني په ذريعه فديه اداء کول وغواړي، نو د هغه لپاره خاص په حرم کې قرباني کول ضروري دي، ځکه چې د قرباني عبادتوالی صرف د زمان او مکان سره خاص دی، د زمان سره په دې معنیٰ خاص دی، چې قرباني په مخصوص زمان يعني په ځانګړي ورځو يعني په أيامِ نحر کې کيږي، او د مکان سره په دې معنیٰ خاص دی چې د حج ټوله قربانياني او هدايا په حرم کې قرباني کيږي، او د جنايت په وجه واجبېدونکې قرباني د زمان سره خاص نه ده، نو ځکه به حتماً د مکان يعني د حرم سره خاص وي، نو بيا به عبادت وي، او که د مکان سره خاص نه کړی سي، نو صحيح به نه وي.

## د حج د جنايت د فديې حکم

وَلَوِ اخْتَارَ الطَّعَامَ او که معذوره محرم خوراک ورکول اختيار کړي أَجْزَأَهُ فِيهِ التَّغْذِيَةُ وَالتَّعْشِيَةُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د هغه لپاره په دې باره کې سهار او ماښام خوراک ورکول کافي دي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز اِعْتِبَارًا بِكَفَّارَةِ الْيَمِينِ پر کفارهٔ يمين په قياسولو سره وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ* لَا يُجْزِئُهُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دا هغه ته کافي نه دي لِأَنَّ الصَّدَقَةَ تُنْبِئُ عَنِ التَّمْلِيكِ وَهُوَ الْمَذْكُورُ ځکه چې صدقه د تمليک خبر ورکوي او (په آيت کې) همدغه صدقه ذکر سوې ده.

**اللغات:** ﴿اختار﴾ د افتعال ماضي ده: اختيارول، چنول. ﴿تغذية﴾ د تفعيل مصدر دی: د سهار خوراک ورکول. ﴿تعشية﴾ دا هم د تفعيل مصدر دی: د ماښام خوراک ورکول. ﴿ينبئ﴾ د افعال مضارع ده: خبر ورکول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو معذوره محرم په دريو شيانو (دم، صدقه او صيام) کې د صدقې په ذريعه فديه ورکول وغواړي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دا صحيح او جائز دي، او هغه ته پکار ده چې شپږو مسکينانو ته سهار او ماښام دواړه وختونه په ډک نس خوراک ورکړي، په داسې کولو سره د هغه غاړه خلاصيږي، او فديه يې اداء کيږي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا مسئله پر کفارهٔ يمين قياس کړې ده، نو څرنګه چې په کفارهٔ يمين کې سهار او ماښام مسکينانو ته په خوراک ورکولو سره کفاره اداء کيږي، همداسې به فديه هم په دې سره اداء کيږي.

وعند محمد الخ د دې په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې په فديه کې هر مسکين ته خوراک ورکول کافي نه دي، بلکې هر مسکين ته نيم صاع غنم ورکول ضروري دي، ځکه د فديې په آيت کې راغلي دي يا صدقه وکړئ، او د صدقې کولو معنیٰ ده "مسکين مالک جوړول"، آيت دا دی: فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ [البقرة:۱۹۶]، لېکن په خوراک ورکولو کې د اباحت معنیٰ سته، نه د تمليک، نو ځکه به د خوراک په ورکولو سره صدقه نه اداء کيږي، او محرم به له فديې څخه نه خلاصيږي.



---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۲۲۸. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۲۲]

# فَصْلٌ فِيْ مُبَاشَرَةِ الْمَرْأَةِ

## (دا) فصل د ښځي سره د جماع کولو (په بيان کي) دی

### د احرام په حالت کي ښځي ته د کتلو، مسه کولو او مچولو حکم

وَإِنْ نَظَرَ إِلَى فَرْجِ امْرَأَتِهِ بِشَهْوَةٍ او که محرم د خپلي ښځي فرج ته په شهوت سره وکوري فَأَمْنَى او انزال سي لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لِأَنَّ الْمُحَرَّمَ هُوَ الْجِمَاعُ ځکه چي حرام شی جماع ده وَلَمْ يُوجَدْ او هغه (دلته) پيدا نه سوه فَصَارَ كَمَا لَوْ تَفَكَّرَ فَأَمْنَى نو داسي سو لکه محرم چي فکر وکړي او انزال سي وَإِنْ قَبَّلَ أَوْ لَمَسَ بِشَهْوَةٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ او که محرم په شهوت سره مچه واخلي يا په شهوت سره ښځه مسه کړي نو پر هغه دم واجب دی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ يَقُولُ: إِذَا مَسَّ بِشَهْوَةٍ فَأَمْنَى او په جامع صغير کي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که محرم په شهوت سره ښځه مسه کړي او انزال سي (نو بيا دم واجبيږي) وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا أَنْزَلَ أَوْ لَمْ يُنْزِلْ ذَكَرَهُ فِي الْأَصْلِ او په مبسوط کي يې ذکر کړي دي چي انزال سي او که انزال نه سي په دواړو کي هيڅ فرق نسته وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الْجِمَاعِ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ او همدا حکم له فرج څخه په علاوه کي د جماع دی وَعَنِ الشَّافِعِيِّ أَنَّهُ إِنَّمَا يُفْسِدُ إِحْرَامَهُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ إِذَا أَنْزَلَ او له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه (يو) روايت (دا) دی چي په دې ټولو صورتونو کي د هغه احرام فاسديږي وَاعْتَبَرَهُ بِالصَّوْمِ هغه پر روژې قياس کوي وَلَنَا أَنَّ فَسَادَ الْحَجِّ يَتَعَلَّقُ بِالْجِمَاعِ او زموږ دليل دا دی چي د حج فاسدېدل د جماع سره تعلق لري وَلِهٰذَا لَا يَفْسُدُ بِسَائِرِ الْمَحْظُورَاتِ همدا وجه ده چي حج په نورو ممنوعاتو سره نه فاسديږي وَهٰذَا لَيْسَ بِجِمَاعٍ مَقْصُودٍ او دا کار مقصوده جماع نه ده فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ مَا يَتَعَلَّقُ بِالْجِمَاعِ لهذا د دې سره به هغه حکم متعلق نه وي کوم چي د جماع سره متعلق دی إِلَّا أَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْاِسْتِمْتَاعِ وَالْاِرْتِفَاقِ بِالْمَرْأَةِ خو په دې کي له ښځي څخه د خوند اخيستلو او دراحت حاصلولو معنیٰ سته وَذٰلِكَ مَحْظُورُ الْإِحْرَامِ او دا په احرام کي ممنوع دي فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ نو ځکه به پر هغه دم لازميږي بِخِلَافِ الصَّوْمِ په خلاف د روژې لِأَنَّ الْمُحَرَّمَ فِيهِ قَضَاءُ الشَّهْوَةِ ځکه چي په روژه کي شهوت پوره کول حرام دي وَلَا يَحْصُلُ بِدُونِ الْإِنْزَالِ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ او دا خبره نه حاصليږي (يعني په بشپړه توګه شهوت نه پوره کيږي) په ماسوا د فرج کي (په جماع کولو سره) بې له انزاله.

**اللغات:** ﴿فرج﴾ شرمګاه، د ښځي تناسلي آله، ﴿أمنى﴾ د افعال ماضي ده: انزالېدل، ﴿قبّل﴾ د تفعيل ماضي ده: مچه اخيستل، ﴿محظور﴾ د ضرب د باب اسم مفعول دی: ممنوع، حَظَرَ يَحْظُرُ: منع کول، ساتل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو محرم د خپلې ښځې فرج ته د شهوت په نظر سره وکتل، او په دې سره انزال سو، نو پر هغه دم يا صدقه او نور نه واجبيږي، ځکه چې حرام کار دإحرام په حالت کې جماع کول دي، او هغه جماع کړې نه ده، بلکې د ليرې څخه انزال سو، نو ځکه به د جماع د نه وجود په وجه په دې مسئله کې نه پر محرم دم واجبيږي، او نه صدقه، لکه څرنگه چې د يوې ښځې په تصور کولو سره د محرم د انزالېدلو په صورت کې پر هغه دم او نور څه نه لازميږي، همداسې به په دې مسئله کې هم پر محرم دم او نور نه لازميږي.

وإن قبّل الخ او که محرم په شهوت ښځه مچ کړه، يا يې مسه کړه، نو پر هغه دم واجبيږي، هغه که انزال سي، که نه سي، په مبسوط کې همدغه ذکر دی، او په جامع صغير کې انزالېدل شرط دی، لکه څرنگه چې په جامع صغير کې فرمايي: "که په شهوت سره يې ښځه مسه کړه او انزال سو، نو دم پر واجبيږي"، لهذا د جامع صغير له روايت څخه دا معلوميږي چې که انزال نه سو، نو پر محرم دم نه واجبيږي.

وكذا الجواب الخ صاحب د هدايې فرمايي چې که محرم په مادون الفرج يعني په ورون يا بل ځای کې جماع وکړه، نو هم پر هغه دم واجبيږي، که انزال سي، که نه سي، لکه د مبسوط په روايت کې چې ذکر سوه.

وعن الشافعي الخ له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې په دې ټولو صورتونو کې يعني په شهوت سره د مچولو، مسه کولو او په مادون الفرج کې په جماع کولو سره که انزال سو، نو احرام فاسديږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله احرام پر روژې قياسوي، يعني څرنگه چې په دې شيانو سره روژه فاسديږي، په دې شرط چې انزال وسي، همداسې به په دې شيانو سره احرام هم فاسديږي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چې حج په جماع سره فاسديږي، همدا وجه ده چې له جماع څخه علاوه په نورو ممنوعاتو سره حج نه فاسديږي، مثلاً د عطرو، گنډل سوو جامو او نورو په استعمال سره حج نه فاسديږي، او ذکر سوي شيان يعني مسه کول، مچول او په مادون الفرج کې جماع کول مقصودي جماع نه ده، بلکې يو ډول خوند اخيستل دي، نو کله چې دا شيان جماع نه سوه، نو د هغو سره به د حج فساد هم متعلق نه وي، لکه څرنگه چې د جماع سره د حج فساد متعلق دی، هو! دومره خبره سته چې په دې شيانو کې له ښځې څخه د خوند حاصلولو معنیٰ سته، او له ښځې څخه خوند حاصلول د احرام له ممنوعاتو څخه دي، نو ځکه به پر هغه دم واجب وي، په خلاف د روژې، ځکه چې په روژه کې شهوت پوره کول حرام دي، او په مادون الفرج کې بغير له انزال څخه شهوت نه پوره کيږي، نو ځکه به بغير له انزال څخه روژه نه فاسديږي، خو که انزال وسي، نو روژه به فاسديږي.

## تر حج پوره کولو مخکې د ښځې او خاوند د جماع حکم

وَإِنْ جَامَعَ فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ قَبْلَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ او که محرم په يو د سبيلينو (دوو لارو) کې تر وقوف عرفه مخکې جماع وکړي فَسَدَ حَجُّهُ نو د هغه حج فاسد سو وَعَلَيْهِ شَاةٌ او پر هغه يوه بزه واجب ده وَيَمْضِي فِي الْحَجِّ كَمَا يَمْضِي مَنْ لَمْ

يُفْسِدَانِهِ او د حج افعال به داسي (پوره) کړي لکه د حج نه فاسدونکي سړی چي يې (پوره) کوي وَالْأَصْلُ فِيْهِ مَا رُوِيَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سُئِلَ عَمَّنْ او په دې مسئله کي اصل هغه حديث دی چي له رسول الله ﷺ څخه د هغه سړي په باره کي پوښتنه وسوه وَاقَعَ إِمْرَأَتَهُ وَهُمَا مُحْرِمَانِ بِالْحَجِّ (چي) هغه د خپلي ښځي سره جماع وکړه په داسي حال چي دواړه د حج په احرام کي ول قَالَ: يُرِيْقَانِ دَمًا وَيَمْضِيَانِ فِيْ حَجَّتِهِمَا (نو) نبي ﷺ وفرمايل: "چي دواړه دي يو دم قرباني کړي او دواړه دي خپل حج پوره کړي وَعَلَيْهِمَا الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ او پر دواړو آينده کال حج واجب دی" وَهٰكَذَا نُقِلَ عَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَىٰ عَنْهُمْ او همدارنګه د صحابه وو له يو جماعت څخه رانقل سوي دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: تَجِبُ بُدْنَةٌ او امام شافعي فرمايي: چي بدنه واجبيږي اِعْتِبَارًا بِمَا لَوْجَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوْفِ پر هغه صورت باندي په قياسولو چي محرم تر وقوف عرفه وروسته جماع وکړي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ إِطْلَاقُ مَا رَوَيْنَا او د امام شافعي په خلاف د هغه حديث مطلق کېدل حجت دي کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْقَضَاءَ لَمَّا وَجَبَ او څکه چي کله قضاء واجب سوه وَلَا يَجِبُ إِلَّا لِإِسْتِدْرَاكِ الْمَصْلَحَةِ او قضاء نه واجبيږي مګر د مصلحت د حاصلولو لپاره خَفَّ مَعْنَى الْجِنَايَةِ (نو) د جنايت معنیٰ سپکه سوه فَيَكْتَفِيْ بِالشَّاةِ نو څکه به پر بزې اکتفاء کوي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْوُقُوْفِ په خلاف تر وقوف عرفه وروسته لِأَنَّهُ لَا قَضَاءَ څکه چي (په دې صورت کي) قضاء واجب نه ده ثُمَّ سَوّٰى بَيْنَ السَّبِيْلَيْنِ بيا امام قدوري رَحِمَهُ الله په دواړو لارو کي جماع برابره ګرځولې ده وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ فِيْ غَيْرِ الْقُبُلِ مِنْهُمَا لَا يُفْسِدُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه (دويم) روايت دی چي له فرج څخه په علاوه کي جماع کول حج نه فاسدوي لِتَقَاصُرِ مَعْنَى الْوَطْءِ څکه چي (په دې صورت کي) د وطي معنیٰ ناقصه ده فَكَانَ عَنْهُ رِوَايَتَانِ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه سول.

**اللغات:** ﴿يمضي﴾ د ضرب مضارع ده: د دې باب اصلي معنیٰ ده: تېرېدل خو کله نا کله د صلې په بدلون سره د دې باب معنیٰ په "کولو" او "پوره کولو" او "جاري ساتلو" سره هم راځي، ﴿واقع﴾ د مفاعلې ماضي ده: جماع کول. ﴿يريقان﴾ د افعال تثنيه مضارع غائب ده: وينه بيول (قرباني کول)، ﴿قابل﴾ راتلونکی کال.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه او خاوند دواړه يو ځای حج ته ولاړل او حج يې شروع کړی، خو له وقوفِ عرفه (په عرفات کي له درېدلو) څخه مخکي خاوند د ښځي سره په قُبل يا دُبُر کي جماع وکړه. نو د ښځي او د خاوند دواړو حج فاسديږي، او پر هر يوه د يوې يوې بزې قربانول اجب دي، يا په اوښ او غوا کي يوه يوه حصه قربانول واجب دي، او د حج پاته افعال به هغه رنګه پوره کړي لکه څرنګه چي يې هغه سړی پوره کوي چي د هغه حج فاسد سوی نه وي.

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الحج، باب ما يفسد الحج، حديث رقم: ٩٧٧٨.

● القول الراجح: هذه الرواية بمعنى تسوية السبيلين في الحكم، كذا في رد المحتار ج:٢، ص: ٢٢٨. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٥]

وي، لېکن را روان کال به د دې حج قضاء راوړي، د دې مسئلې اصل دا حديث دی چې يو سړی د خپلې ښځې سره جماع وکړه، په داسې حال کې چې دواړه محرم ول، او دا قصه تر وقوف عرفه مخکې پېښه سوه، نو نبي ﷺ دواړو ته د دم قربانولو حکم وکړی(او له دم څخه زموږ په نېز مراد بزه ده، ځکه چې هغه د دم کمه درجه ده)، او ويې فرمايل: "چې د حج افعال پوره کړئ او را روان کال د دې قضاء راوړئ". د صحابه وو له يو جماعت څخه هم دغسې رانقل سوي دي.

او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دې غټ جرم په وجه بُدنه يعني د اوښ يا غوا قربانول واجب دي، بزه کافي نه ده، او نه د اوښ يا غوا يوه حصه کافي ده، د هغه دليل قياس دی يعني لکه څرنګه چې تر وقوف عرفه وروسته ښځه او خاوند جماع وکړي نو پر هغه بدنه واجبېږي، او بزه کفايت نه کوي، نو تر وقوفِ عرفه مخکې به هم په جماع سره بدنه واجبېږي.

والحجة الخ صاحب د هدايې فرمايي چې زموږ بيان سوی حديث د امام شافعي په خلاف حجت دی، ځکه په دې حديث کې د بريقان دماً حکم مطلق دی، او په دې کې د بزې او بدنې هيڅ قيد نسته، لېکن څرنګه چې بزه اقل ده، نو ځکه به هغه متعينه کېږي.

د بزې پر وجوب زموږ دويم دليل دا دی چې د حج فاسدولو په وجه چې کله د حج قضاء واجب سوه، نو جرم سپک(خفيف) سو، او په سپک جرم کې بزه هم کفايت کوي، نو ځکه به بزه کافي وي.

بخلاف ما بعد الوقوف الخ او تر وقوفِ عرفه وروسته د جماع کولو په صورت کې چې څرنګه د حج نه فاسدېدلو په وجه قضاء واجب نه سوه، نو ځکه جرم سپک نه سو، بلکې سخت(غليظ) سو، او په سخت جرم کې بدنه واجبېږي، نو ځکه به تر قوفِ عرفه وروسته د جماع په صورت کې بزه کافي نه وي.

ثم سوّى الخ صاحب د هدايې فرمايي چې امام قدوري د فی أحد السبيلين په ويلو سره په قُبل او دُبُر دواړو کې د جماع کولو حکم برابر ګرځولی دی، همدا د صاحبينو مذهب او د امام صاحب يو روايت دی، د امام صاحب دويم روايت دا دی چې تر وقوفِ عرفه مخکې په قُبل کې وطی کول خو حج فاسدوي، لېکن په دُبر کې په وطی کولو سره حج نه فاسدېږي، ځکه چې کامل وطی په قُبل کې کېږي، په دُبر کې وطي ناقصې وي، لهذا په دُبر کې به په وطی کولو سره حج نه فاسدېږي. ګواکې په دې لړ کې له امام صاحب څخه دوه روايتونه دي، يو د فساد او دويم د عدمِ فساد، خو اول روايت زيات راجح دی(لکه موږ چې په قولِ راجح کې هم دې ته اشاره وکړه).

## د حج په قضاء راوړلو کې ښځه جلا کول ضروري دي که نه؟

وَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُفَارِقَ إِمْرَأَتَهُ فِي قَضَاءِ مَا أَفْسَدَاهُ عِنْدَنَا او زموږ په نېز پر محرم واجب نه دي چې خپله ښځه جلا کړي د هغه حج په قضاء راوړلو کې کوم چې دواړو(تېر کال) فاسد کړی وي خِلَافًا لِمَالِكٍ د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی إِذَا خَرَجَا مِنْ بَيْتِهِمَا په هغه صورت کې چې کله دواړه له کور څخه ووځي(يعني امام مالک فرمايي چې کله دواړه له کوره ووځي نو دواړه به سره جلا کېږي) وَلِزُفَرَ إِذَا أَحْرَمَا او د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی چې کله دواړه احرام وتړي(نو دواړه به سره جلا کېږي) وَلِلشَّافِعِيِّ إِذَا انْتَهَيَا إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي جَامَعَهَا فِيهِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی چې کله دواړه هغه ځای ته ورسېږي چېرې چې يې جماع کړې وي(نو دواړه به جلا کېږي) لَهُمْ أَنَّهُمَا يَتَذَاكَرَانِ ذٰلِكَ د دوی(ټولو) دليل دا

دی چې خاوند او ښځه به تېره قصه یاده کړي فَيَتَقَاضَانِ إِلَى الْمُوَاقَعَةِ نو په جماع کې به ولوېږي فَيَفْتَرِقَانِ نو ځکه به سره جلا کيږي وَلَنَا أَنَّ الْجَامِعَ بَيْنَهُمَا وَهُوَ النِّكَاحُ قَائِمٌ او زموږ دليل دا دی چې د دواړو جمع کونکی شی چې نکاح ده د هغو په مينځ کي قائم ده فَلَا مَعْنَى لِلْإِفْتِرَاقِ قَبْلَ الْإِحْرَامِ نو تر احرام مخکې جلا کېدل هيڅ معنیٰ نه لري لِإِبَاحَةِ الْوِقَاعِ ځکه چې جماع کول روا دي وَلَا بَعْدَهُ او نه تر احرام وروسته (يعني تر احرام وروسته جلا کېدل هم هيڅ معنیٰ نه لري) لِأَنَّهُمَا يَتَذَاكَرَانِ مَا لَحِقَهُمَا مِنَ الْمَشَقَّةِ الشَّدِيدَةِ بِسَبَبِ لَذَّةٍ يَسِيرَةٍ ځکه چې د دواړو به هغه تکليف په ياد وي کوم چې هغو ته د لږ خوندي خوند په سبب لاحق سوی وو فَيَزْدَادَانِ نَدَمًا وَتَحَرُّزًا نو د دواړو پښېماني او پرهېز (پرهېز) به نور (هم) زيات سي فَلَا مَعْنَى لِلْإِفْتِرَاقِ لهذا جلا کېدل هيڅ معنیٰ او مطلب نه لري.

**اللغات:** ﴿يفارق﴾ د مفاعلې مضارع ده: جلا کېدل، ﴿ندما﴾ پښېماني، ﴿افتراق﴾ د افتعال مصدر دی: جلا کېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که هغه خاوند او ښځه کوم چې يې د تېر کال حج د جماع په وجه فاسد کړی وو، اوس دريم ولر د حج لپاره بيا روان سي، نو زموږ په نېز پر هغو دا واجب نه ده چې سره جلا سي، يا هر يو جلا لاره غوره کړي، د دې په خلاف امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې هر وخت له کور څخه ووځي نو دواړه به سره جلا کيږي، او نه به سره يو ځای کيږي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې تر احرام تړلو وروسته به دواړه سره جلا کيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې تېر کال پر کوم ځای دوی جماع کړې وه، کله چې هغه ځای ته نژدې ورسيږي، نو سره جلا کيږي به.

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چې تېر کال يو وار دې سړي او ښځې د حج په وخت کي جماع وکړه، نو ډېره ممکنه ده چې کله دوی د جماع د ځای سره تېرېږي، نو شهوت به بيا راپورته سي، او بيا به دا دواړه له قابو څخه ووځي او په جماع کي به مشغول سي، نو له جماع څخه د خوندي کېدلو لپاره غوره دا ده چې هغه ځای ته له رسېدلو څخه مخکې سره جلا سي.

**زموږ دليل:** دا دی چې حج کول او د حج لپاره سفر کول يو آسانه کار نه دی، بلکې هغه له تکليف او ستونزو څخه ډک دی، لهذا ښځه او سړی به دې ځای ته په رسېدلو سره د جماع د تصوّر پر ځای د افسوس او پښېمانۍ اوښکې بيوي، او د حال په ژبه سره به دا آواز کوي چې همدا هغه ځای دی چېري چې موږ بې لاري سو، او د يو معمولي خوند په خاطر بيا يو ستونزمن سفر ته اړ سو، نو ځکه به دواړه نه له احرام څخه مخکې جلا کيږي، او نه تر احرام وروسته ځکه چې دواړه خاوند او ښحه دي، او د دوی نکاح پاتې ده، لهذا تر احرام مخکې خو د هغو لپاره جماع کول صحيح دي، او تر احرام تړلو وروسته جماع ور ته حلاله نه ده، او بيا د مخکني جرم ستونزې او پرېشانۍ د دوی د تنبيه او خبرتيا لپاره کافي دي، لهذا د دوی په حق کي به د بېلتون او جلاوالي هيڅ خبره نه کيږي، او نه دا هيڅ معنیٰ لري.

## تر وقوفِ عرفه وروسته د جماع حکم

وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ او کوم محرم چې تر وقوفِ عرفه وروسته جماع وکړي لَمْ يَفْسُدْ حَجُّهُ نو د هغه حج نه فاسديږي وَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ او پر هغه بدنه واجب ده خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِيمَا إِذَا جَامَعَ قَبْلَ الرَّمْيِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف

دی په هغه صورت کي چي کله تر رمي مخکي جماع وکړي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● : مَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "څوک چي پر عرفات ودرېږي نو د هغه حج پوره سو" وَإِنَّمَا تَجِبُ الْبَدَنَةُ لِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او بدنه خو (يا) د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د قول په وجه واجبيږي أَوْ لِأَنَّهُ أَعْلَى أَنْوَاعِ الْإِرْتِفَاقِ يا ځکه واجبيږي چي جماع د خوند(او راحت) لوړه درجه ده فَيَتَغَلَّظُ مُوجَبُهُ لهذا د هغې موجب(او سزا) به هم سخته وي.

**اللغات:** ﴿يتغلظ﴾ د تفعل مضارع ده: سختېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو محرم تر وقوفِ عرفه وروسته د خپلي ښځي سره جماع وکړي، نو د هغه حج نه فاسديږي، خو څرنګه چي هغه تر وقوفِ عرفه وروسته هم محرم دی، او پر هغه د حج ځيني افعال لکه طوافِ زيارت او نور پاته دي، نو ځکه به د دې جماع په وجه پر هغه يوه بدنه يعني اوښ يا غوا واجب وي، امام شافعي فرمايي چي د هغه حج فاسد سو.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي تر رمي مخکي د هغه احرام کامل دی، او په کامل احرام کي جماع حج فاسدوي، په خلاف تر رمي وروسته ځکه چي تر رمي وروسته د حلال کېدلو وخت راغلی، نو تر رمي وروسته احرام کامل نه سو، لهذا تر رمي وروسته به جماع حج نه فاسدوي.

**زموږ دليل:** دا دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي: "چا چي وقوفِ عرفه وکړی(يعني پر عرفات ودرېدی) د هغه حج پوره سوه"، له دې حديث څخه بالاتفاق د حج پوره کېدل د افعالو د اداء کولو په اعتبار سره مراد نه دي، ځکه چي اوس هم بعضي ارکان پاته دي، لهذا اوس به يې مراد دا وي چي تر وقوفِ عرفه وروسته حج پوره سو، يعني له فاسدېدلو څخه په أمن سو.

وإنما تجب الخ او بدنه د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په دې قول سره واجبيږي: إذا جامع قبل الوقوف بعرفة فسد نسكه وعليه دم وإذا جامع بعد الوقوف فحجته تامة وعليه بدنة، دويم دليل دا دی چي جماع د خوند حاصلولو لوړه درجه ده، نو د دې په وجه چي کوم شی واجبيږي، هغه به هم غليظ او د لوړي درجې وي، او هغه بدنه ده، نو ځکه بدنه واجب سوه، دا روايت هم سوی دی چي په حج کي دننه بدنه فقط دوه ځای واجبيږي: يو په هغه وخت کي چي کله تر وقوفِ عرفه وروسته جماع وکړي، دويم په هغه صورت کي چي کله په حالت د جنابت کي طوافِ زيارت وکړي.

## تر سر خريلو وروسته د جماع حکم

وَإِنْ جَامَعَ بَعْدَ الْحَلْقِ او که محرم تر حلق وروسته جماع وکړي فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو پر هغه بزه واجب ده لِبَقَاءِ إِحْرَامِهِ فِي حَقِّ النِّسَاءِ ځکه چي د هغه احرام د ښځو په حق کي پاته دی دُوْنَ لُبْسِ الْمَخِيطِ وَمَا أَشْبَهَهُ نه د ګنډل سوو جامو او د هغو سره د مشابه په حق کي(له مشابه څخه مراد عطر لګول او داسي نور دي) فَخَفَّتِ الْجِنَايَةُ لهذا جرم سپک سو فَاكْتَفَى بِالشَّاةِ نو ځکه پر بزې اکتفاء وسوه.

---

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الحج، باب ما جاء من أدرك الإمام بجمع فقد أدرك الحج، حديث رقم: ٨٨٩.

**اللغات:** ﴿حلق﴾ د ضرب مصدر دی: سر خريل. ﴿متطيب﴾ ګنډل سوي جامې. ﴿خفت﴾ د ضرب ماضي ده: سپکېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه يو حاجي سر وخريي. لېكن تر اوسه يې طواف زيارت كړی نه وو. چې جماع يې وكړه، نو نه د هغه حج فاسديږي، او نه بدنه پر واجبيږي. خو څرنګه چې د بنځو په حق کې هغه اوس هم محرم دی. نو ځکه به يوه بزه پر واجب وي، ځکه چې تر حلق وروسته په جنايت کې خفت او سپکوالی راغلی. او بنکاره ده چې په معمولي جنايت کې بزه كفايت كوي، نو ځکه پر بزې اكتفاء وسوه. او په دې مسئله کې صرف د جماع په وجه سره پر هغه بزه واجبيږي، همدا وجه ده كه هغه تر حلق وروسته ګنډل سوي جامې واغوندي يا عطر استعمال كړي، نو پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي، ځکه د دې شيانو په حق کې هغه تر حلق وروسته حلال سو.

## د عمرې تر څلورو شوطونو(دورونو) مخکې د جماع حكم

وَمَنْ جَامَعَ فِي الْعُمْرَةِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ او څوک چې په عمره کې تر څلور دوره(شوطه) طواف كولو مخكې جماع وكړي فَسَدَتْ عُمْرَتُهُ نو د هغه عمره فاسديږي فَيَمْضِي فِيهَا نو عمره به پوره كړي وَيَقْضِيهَا او قضاء به يې راوړي وَعَلَيْهِ شَاةٌ او پر هغه يوه بزه واجب ده وَإِذَا جَامَعَ بَعْدَمَا طَافَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ أَوْ أَكْثَرَ او كه هغه تر څلور دوره يا تر زيات طواف كولو وروسته جماع وكړي فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو پر هغه يوه بزه واجب ده وَلَا تَفْسُدُ عُمْرَتُهُ او عمره يې نه فاسديږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَفْسُدُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو کې عمره فاسديږي وَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ اعْتِبَارًا بِالْحَجِّ او پر حج باندې په قياسولو سره پر هغه يوه بدنه واجب ده إِذْ هِيَ فَرْضٌ عِنْدَهُ كَالْحَجِّ ځکه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز عمره فرض ده لكه حج(چې فرض دی) وَلَنَا أَنَّهَا سُنَّةٌ او زموږ دليل دا دی چې عمره سنت ده فَكَانَتْ أَحَطَّ رُتْبَةً مِنْهُ لهذا عمره به له حج څخه د كمې درجې وي فَتَجِبُ الشَّاةُ فِيهَا وَالْبَدَنَةُ فِي الْحَجِّ إِظْهَارًا لِلتَّفَاوُتِ نو د فرق د بنكاره كولو لپاره به په عمره کې بزه واجبيږي او په حج کې به بدنه واجبيږي.

**اللغات:** ﴿أحط﴾ اسم تفضيل دی: د كمې درجې. ﴿تفاوت﴾ د تفاعل مصدر دی: فرق.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه يو سړي د عمرې احرام وتړي، او د عمرې طواف يې شروع كړي، او تر څلور دوره(شوطه) پوره كولو مخكې يې جماع وكړه، نو زموږ په نېز د هغه عمره هم فاسديږي، او يوه بزه هم پر واجبيږي، او د عمرې پاته افعال به پوره كړي، او كه تر څلور دوره(شوط) وروسته يې جماع وكړه، نو عمره يې نه فاسديږي، لېكن د جماع په وجه يوه بزه پر اجبيږي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دواړو صورتونو کې پر دې سړي بدنه واجبيږي.

**د امام شافعي دليل:** قياس دی، يعني عمره پر حج قياسوي، ځکه چې د هغه په نېز د حج په شان عمره هم فرض ده، او د هغه په نېز د حج په فاسدېدلو کې بدنه واجبيږي، لهذا د عمرې د فساد په صورت کې به هم بدنه واجبيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چې عمره سنت ده، او حج فرض دی، نو عمره به په رتبه او درجه کې له حج څخه كمه وي، لهذا كه سنت يعني عمره فاسده سي، نو بزه به واجبيږي، د دې لپاره چې د فرضو او سنتو په مينځ کې فرق پاته سي.

## په هېره يا په خوب کې يا بالجبر د جماع کولو حکم

وَمَنْ جَامَعَ نَاسِيًا كَانَ كَمَنْ جَامَعَ مُتَعَمِّدًا او څوک چې په هېره جماع وکړي هغه د قصداً جماع کونکي په شان دی
وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: جِمَاعُ النَّاسِيْ غَيْرُ مُفْسِدٍ لِلْحَجِّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هېري والا جماع حج نه فاسدوي
وَكَذَا الْخِلَافُ فِيْ جِمَاعِ النَّائِمَةِ وَالْمُكْرَهَةِ او همدا اختلاف د بيدې ښځې او د مجبورې ښځې په جماع کې هُوَ يَقُوْلُ:
اَلْحَظْرُ يَنْعَدِمُ بِهٰذِهِ الْعَوَارِضِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې حراموالی د دې عوارضو په وجه ختمېږي فَلَمْ يَقَعِ
الْفِعْلُ جِنَايَةً لهذا دا فعل (يعني جماع) به (ګردسره) جنايت نه وي وَلَنَا أَنَّ الْفَسَادَ بِاِعْتِبَارِ مَعْنَى الْاِرْتِفَاقِ فِي
الْاِحْرَامِ اِرْتِفَاقًا مَخْصُوْصًا او زموږ دليل دا دی چې فساد په احرام کې د مخصوص خوند حاصلولو په اعتبار سره دی
وَهٰذَا لَا يَنْعَدِمُ بِهٰذِهِ الْعَوَارِضِ او دا خوند د دې عوارضو په وجه نه ختمېږي وَالْحَجُّ لَيْسَ فِيْ مَعْنَى الصَّوْمِ او حج د
روژې په معنیٰ سره نه دی لِأَنَّ حَالَاتِ الْاِحْرَامِ مُذَكِّرَةٌ ځکه چې د احرام حالتونه ور په يادونکي دي بِمَنْزِلَةِ حَالَاتِ
الصَّلَاةِ لکه د لمانځه حالتونه بِخِلَافِ الصَّوْمِ په خلاف د روژې، والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿ناسی﴾ د ضرب اسم فاعل دی: هېرونکی، هيري والا. ﴿حظر﴾ د ضرب مصدر دی: حُرمت، ممانعت. ﴿جناية﴾ جرم.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې څرنګه زموږ په نېز په قصداً جماع کولو سره د محرم حج او نور فاسديږي، همدارنګه په هېره په جماع کولو سره هم حج فاسديږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په هېره سره جماع کول حج نه فاسدوي، لکه څرنګه چې په هېره د جماع کولو په وجه روژه نه فاسديږي، همدا اختلاف هغه وخت دی چې کله يو څوک د بيدې ښځې سره جماع وکړي، يا په زوره د يوې ښځې سره جماع وکړي، او دا ښځه محرمه هم وي، نو زموږ په نېز د محرمې ښځې حج فاسديږي، که څه هم ګنهګاره نه ده، ليکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د هغې حج نه فاسديږي.

والحج ليس الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې حُرمت (حراموالی) د هيري او خوب او داسې نورو عوارضو په وجه ختميږي، نو حرام فعل ګردسره جنايت نه سو، او کله چې جنايت نه سو، نو حج به هم نه فاسديږي، ځکه چې حج خو په جنايت کولو سره فاسديږي.

ولنا أن الفساد الخ زموږ دليل دا دی چې حج او عمره د احرام په حالت کې د يو خاص ډول خوند حاصلولو په وجه فاسديږي، يعني د جماع په خوند سره حج فاسديږي، او د جماع خوند د هيري، خوب او نورو عوارضو په وجه نه ختميږي، يعني هېره او خوب د حصولِ لذت منافي نه دي، لکه څرنګه چې په هېره يا په زوره د جماع په وجه غسل هم واجبيږي، او حرمتِ مصاهرت هم ثابتيږي، نو کله چې د خوب، او هيري په حالت کې جماع په نورو مسئلو کې تأثير کوي، نو په حج کې به هم تأثير کوي، او حج به فاسديږي.

والحج ليس الخ پاتې سو دا امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس چې هغه حج پر روژې قياسوي، نو د هغه جواب دا دی چې حج پر روژې قياسول صحيح نه دي، ځکه چې د احرام ټول حالتونه ورپه يادونکي دي، او هر وخت محرم ته د جماع او له

ممنوعات احرام څخه د منع کېدلو تنبيه ورکوي، لکه څرنګه چي د لمانځه حالتونه ور په يادونکي دي. نو څکه به په احرام او لمانځه کي هېره عذر نه ګرځول کيږي، د دې په خلاف د روژې حالت دی، څکه د روژې حالت روژتي ته ور په يادونکی نه دی، څکه چي روژه باطني شی ده، او ډېر ځله د هغه روژه په ياد نه وي، همدا وجه ده چي په روژه کي هېره عذر ګرځول سوي ده. والله أعلم بالصواب

# فَصْلٌ فِيْ جِنَايَةِ الطَّوَافِ

## (دا) فصل په طواف کي د جنايت کولو (په بيان کي) دی

**تشريح:** په مخکني فصل کي ذکر سوي مسائل د دې فصل له مسائلو څخه جلا او عليحده دي، نو څکه دا مسئلې په جلا او ځانګړي فصل کي بيانيږي.

### بغير له اودس څخه د طواف حکم

وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الْقُدُوْمِ مُحْدِثًا او څوک چي طواف قدوم بې اودسه وکړي فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ نو پر هغه صدقه واجب ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُعْتَدُّ بِهِ او امام شافعي فرمايي: چي د داسي طواف اعتبار به نه کيږي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[●]: اَلطَّوَافُ صَلَاةٌ څکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "چي طواف لمونځ دی" إِلَّا أَنَّ اللهَ تَعَالَى أَبَاحَ فِيْهِ الْمَنْطِقَ لېکن الله ﷻ په طواف کي خبري روا ګرځولي دي فَتَكُوْنُ الطَّهَارَةُ مِنْ شَرْطِهِ نو څکه به د طواف لپاره طهارت شرط وي وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى: وَلْيَطَّوَّفُوْا بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ [الحج، ٢٩] مِنْ غَيْرِ قَيْدِ الطَّهَارَةِ زمونږ دليل د الله تعالیٰ (دا) فرمان دی: وليطوفوا... الخ (چي دا آيت) د طهارت له قيد څخه خالي دی فَلَمْ تَكُنْ فَرْضًا نو څکه به طهارت فرض نه وي ثُمَّ قِيْلَ: هِيَ سُنَّةٌ بيا ويل سوي دي: چي طهارت سنت دی وَالْأَصَحُّ أَنَّهَا وَاجِبَةٌ (لېکن) صحيح دا ده چي طهارت واجب دی لِأَنَّهُ يَجِبُ بِتَرْكِهَا الْجَابِرُ څکه چي د طهارت په پرېښودلو سره د نقصان پوره کونکی شی واجبيږي وَلِأَنَّ الْخَبَرَ يُوْجِبُ الْعَمَلَ او په دې وجه هم چي حديث عمل واجبوي فَيَثْبُتُ بِهِ الْوُجُوْبُ نو په هغه سره به وجوب ثابتيږي فَإِذَا شَرَعَ فِيْ هٰذَا الطَّوَافِ وَهُوَ سُنَّةٌ نو کله چي څوک دا طواف شروع کړي حال دا چي دا طوف سنت دی يَصِيْرُ وَاجِبًا بِالشُّرُوْعِ (نو) په شروع کولو سره واجب ګرځي وَيَدْخُلُهُ نَقْصٌ بِتَرْكِ الطَّهَارَةِ او د طهارت په پرېښودلو سره په دې کي نُقص داخليږي فَيُجْبَرُ بِالصَّدَقَةِ نو دا نُقص به په صدقه سره پوره کيږي (يعني د هغه تلافي به په صدقه سره کيږي) إِظْهَارًا لِدُنُوِّ رُتْبَتِهِ د دې خبري د ښکاره کولو لپاره چي د دغه طواف رُتبه کمه ده عَنِ الْوَاجِبِ بِإِيْجَابِ اللهِ له هغه طواف څخه کوم چي د الله

[●] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الحج، باب الطواف على الطهارة، حديث رقم: ٩٠٨٥، وكنز العمال، باب حرف الحاء، حديث رقم: ١٢٠٠٢.

تعالیٰ په واجبولو سره واجب سوی دی ﴿وَهُوَ طَوَافُ الزِّيَارَةِ﴾ او هغه طواف زیارت دی ﴿وَكَذَا الْحُكْمُ فِي كُلِّ طَوَافٍ هُوَ تَطَوُّعٌ﴾ او همدا حکم په هر هغه طواف کي دی چي نفلي وي.

**اللغات**: ﴿محدث﴾ بې اودسه سړی، ﴿لايعتد به﴾ د افتعال نفي مضارع مجهوله ده: دا به نه شمارل کیږي ( د دې اعتبار به نه کیږي )، ﴿أباح﴾ د افعال ماضي ده: روا کول. حلالول. ﴿أدنیٰ﴾ کمي. سپکوالی، ﴿تطوع﴾ نفلي.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چي د محدث(بې اودسه سړي) طواف زموږ په نېز معتبر او صحیح دی، خو صدقه پر واجبیږي.او د امام شافعي په نېز معتبر نه دی.

**د امام شافعي دلیل**: دا حدیث دی: الطواف صلوة، یعني نبي ﷺ طواف د لمانځه سره مشابه ګرځولی دی، او دا خبره ښکاره ده چي د طواف او لمانځه په ذات کي هیڅ مشابهت نه سته، ځکه چي د طواف ذات دوران یعني پر کعبه ګرځېدل او دور لګول دي، او دا د لمانځه د ذات منافي دي، لهذا د مشابهت مراد دا دی چي د طواف حکم د لمانځه د حکم په ډول دی، یعني څرنګه چي لمونځ بغیر له طهارت څخه معتبر نه دی، همدارنګه به طواف هم بغیر له طهارت څخه معتبر نه وي.

**زموږ دلیل**: دا دی چي په قرآن کي د طواف دا آیت وليطوفوا بالبيت العتيق مطلق دی، یعني الله تعالیٰ فقط پر کعبې د طواف کولو حکم کړی دی، د اودس او طهارت هیڅ قید یې ذکر کړی نه دی، لهذا له دې آیت څخه د طهارت فرضیت نه ثابتیږي. او په خبرِ واحد سره پر کتابُ الله زیاتوب کول هم جائز نه دي، حاصل دا چي د طواف لپاره طهارت فرض نه سو، لېکن د بعضي حضراتو په نېز سنت دی. لکه دا قول چي د ابن شجاع هم دی، خو صحیح دا ده چي طهارت واجب دی، کوم چي د ابوبکر رازي قول دی. د واجبېدلو دلیل یې دا دی چي په طواف قدوم کي د طهارت پرېښوولو په وجه جابر( یعني د نقصان پوره کونکی شی ) چي هغه صدقه ده واجبیږي، او د کوم شي په پرېښوولو سره چي جابر واجبیږي. هغه شی واجب وي، نو ځکه به طهارت واجب وي، دویم دلیل دا دی چي الطواف صلوة خبر واحد دی، او له خبر واحد څخه وجوب ثابتیږي، لهذا له دې حدیث څخه به هم د طهارت وجوب ثابتیږي.

فإذا شرع الخ په طواف قدوم کي د طهارت په پرېښوولو سره د صدقې د واجبېدلو دلیل دا دی چي کله محرم طواف قدوم شروع کړي کوم چي سنت دی، نو دا په شروع کولو سره واجب سو، او د طهارت د پرېښوولو په وجه په دې کي نقصان داخل سو، نو د دې نقصان تلافي به په صدقه سره کیږي، پاته سوه دا خبره چي د دې نقصان تلافي به صدقه سره ولي کیږي؟، حال دا که طواف زیارت د بې اودسۍ په حالت کي وسي، نو د هغه تلافي به په دم سره کیږي، جواب دا دی چي د طواف قدوم تلافي به په دې وجه په صدقه سره کیږي چي دا ښکاره سي چي طواف قدوم په مرتبه او درجه کي تر طواف زیارت کم دی، او همدا حکم په هر نفلي طواف کي دی، یعني هر کله چي یو نفلي طواف بې اودسه وسي، نو د هغه په وجه به صرف صدقه واجبیږي. طواف زیارت ځکه په مرتبه او درجه کي لوړ دی چي هغه د الله په فرضولو سره فرض سوی دی، لهذا په هغه کي به د بې اودسۍ په صورت کي دم یعني بزه واجبیږي.

## بغير له اودس څخه د طواف زيارت حكم

وَلَوْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ مُحْدِثًا او كه محرم بې اودسه طواف زيارت وكړي فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو پر هغه يوه بزه واجب ده لِأَنَّهُ أَدْخَلَ النَّقْصَ فِي الرُّكْنِ ځكه چي هغه په ركن كي نقص داخل كړى فَكَانَ أَفْحَشَ مِنَ الْأَوَّلِ نو دا به تر مخكني لا (يعني تر طواف قدوم لا) بد حركت وي فَيُجْبَرُ بِالدَّمِ لهذا د دې تلافي به په دم سره كيږي وَإِنْ كَانَ جُنُبًا او كه محرم جنب وي (يعني طواف زيارت د جنابت په حالت كي وكړي) فَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ نو بيا پر هغه بدنه واجب ده كَذَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ همدارنګه له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت سوى دى وَلِأَنَّ الْجَنَابَةَ أَغْلَظُ مِنَ الْحَدَثِ او ځكه چي جنابت له حدث څخه زيات غليظ (سخت) دى فَيَجِبُ جَبْرُ نُقْصَانِهَا بِالْبَدَنَةِ إِظْهَارًا لِلتَّفَاوُتِ نو د جنابت د نقصان تلافي به په بدني سره كيږي (د دواړو په مينځ كي) د فرق د ښكاره كولو لپاره وَكَذَا إِذَا طَافَ أَكْثَرَهُ جُنُبًا أَوْ مُحْدِثًا او همدارنګه كه محرم اكثره طواف د جنابت يا د بې اودسۍ په حالت كي وكړي (نو پر هغه به دم واجبيږي) لِأَنَّ أَكْثَرَ الشَّيْءِ لَهُ حُكْمُ كُلِّهِ ځكه چي د شي اكثر لره حكم د كل وي.

**اللغات:** ﴿أفحش﴾ اسم تفضيل دى: ډېر بد. ﴿يجبر﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: تلافي كول، نقصان پوره كول، اصلي معنى يې ده: مات هډوكى جوړول. ﴿بدنة﴾ غټ ښاروى (غوا، اوښ).

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دى كه يو محرم په حالت د بې اودسۍ كي طواف زيارت وكړى، نو پر هغه قرباني يعني بزه واجبيږي، ځكه چي په دې سره هغه په ركن يعني په طواف زيارت كي نقصان پيدا كړى، او په ركن كي نقصان پيدا كول زيات بد دي په واجب كي له نقصان پيدا كولو څخه. نو كله چي په ركن كي نقصان پيدا كول زيات بد دي، نو د هغه تلافي به هم په غټ شي يعني په بزې سره كيږي، او په واجب يعني په طواف قدوم كي به د پيدا كېدونكي نقصان تلافي په كوچني شي يعني په صدقه سره كيږي، لهذا كه طواف زيارت يې د جنابت په حالت كي وكړى، نو پر هغه به بدنه يعني اوښ يا غوا واجبيږي، همدا له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه را نقل سوي دي، او دويم دليل دا دى چي جنابت د بې اودسۍ په نسبت زيات غليظ او سخت دى، نو د بې اودسۍ او جنابت په مينځ كي به د فرق ښكاره كولو لپاره د جنابت په وجه سره د پيدا كېدونكي نقصان تلافي په بدنه سره كيږي، او په بې اودسۍ سره د پيدا كېدونكي نقصان تلافي به په بزې سر كيږي.

وكذا إذا الخ او همدارنګه كه د طواف زيارت اكثره حصه يې د بې اودسۍ په حالت كي وكړه، نو هم بزه واجبيږي، او كه د جنابت په حالت كي يې وكړه، نو بدنه واجبيږي، ځكه چي د يو شي د اكثر هغه حكم وي، كوم چي يې د كل وي، لكه څرنګه چي دا مشهوره قاعده ده: وللأكثر حكم الكل.

## د مخكني سړي لپاره د طواف راګرځولو حكم

وَالْأَفْضَلُ أَنْ يُعِيدَ الطَّوَافَ مَا دَامَ بِمَكَّةَ او افضل دا ده چي محرم طواف زيارت راوګرځوي تر څو چي په مكه كي وي وَلَا ذَبْحَ عَلَيْهِ او پر هغه قرباني واجب نه ده وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: وَعَلَيْهِ أَنْ يُعِيدَ او په ځيني نسخو كي دي: چي پر محرم

طواف راګرځول واجب دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يُؤْمَرُ بِالْإِعَادَةِ فِي الْحَدَثِ اِسْتِحْبَابًا او صحيح دا ده چې په حدث كې به هغه ته د استحباب په توګه د راګرځولو حكم كيږي وَفِي الْجَنَابَةِ إِيجَابًا او په جنابت كې به د ايجاب په توګه (د طواف د راګرځولو حكم ورته كيږي) لِفُحْشِ النُّقْصَانِ بِسَبَبِ الْجَنَابَةِ ځكه چې د جنابت په سبب نقصان غټيږي وَقُصُورِهِ بِسَبَبِ الْحَدَثِ او د بې اودسۍ په وجه نقصان كميږي ثُمَّ إِذَا أَعَادَهُ وَقَدْ طَافَهُ مُحْدِثًا بيا كه هغه طواف راوګرځوي حال دا چې مخكې يې د بې اودسۍ په حالت كې طواف كړى وي لَا ذَبْحَ عَلَيْهِ نو پر هغه قرباني واجب نه ده وَإِنْ أَعَادَهُ بَعْدَ أَيَّامِ النَّحْرِ كه څه هم هغه تر ايامِ نحر وروسته راګرځولى وي لِأَنَّ بَعْدَ الْإِعَادَةِ لَا تَبْقَى إِلَّا شُبْهَةُ النُّقْصَانِ ځكه چې تر راګرځولو وروسته فقط د نقصان شبهه پاتې كيږي وَإِنْ أَعَادَهُ وَقَدْ طَافَهُ جُنُبًا فِي أَيَّامِ النَّحْرِ او كه هغه په ايامِ نحر كې طواف راوګرځوي حال دا چې مخكې يې د جنابت په حالت كې طواف كړى وي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شى واجب نه دى لِأَنَّهُ أَعَادَهُ فِي وَقْتِهِ ځكه چې هغه طواف په خپل وخت كې راګرځولى دى وَإِنْ أَعَادَهُ بَعْدَ أَيَّامِ النَّحْرِ او كه هغه طواف تر ايامِ نحر وروسته راوګرځوي (په هغه صورت كې چې مخكې يې د جنابت په حالت كې طواف كړى وي) لَزِمَهُ الدَّمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ بِالتَّأْخِيرِ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه د تأخير (ځنډولو) په وجه دم واجبيږي عَلَى مَا عُرِفَ مِنْ مَذْهَبِهِ لكه څرنګه چې دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله له مذهب څخه معلوم سوي دي.

**اللغات:** ﴿فحش﴾ غټيدل، بنكاره كېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دى كه يو محرم د بې اودسۍ يا د جنابت په حالت كې طواف زيارت وكړي، نو هغه به د طواف په راګرځولو كې كومه طريقه اختياروي؟ فرمايي چې په دې باره كې تول درې قولونه دي: (۱) اول قول دا دى چې تر څو دا سړى په مكه كې مقيم وي، تر هغه وخته پورې د دغه طواف راګرځول افضل دي، (۲) دوهم قول كوم چې د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله په نيز دېر صحيح دى دا دى چې كه هغه مخكې د بې اودسۍ په حالت كې طواف زيارت كړى وي، نو هغه ته به استحباباً د طواف د راګرځولو حكم كيږي، او كه په حالت د جنابت كې يې كړى وي، نو هغه ته به وجوباً او لازماً د هغه د راګرځولو حكم كيږي، ځكه چې د جنابت په وجه پيدا سوى نقصان د بې اودسۍ له نقصان څخه قوي او غټ دى، نو ځكه به په دې صورت كې راګرځول واجب وي، او د بې اودسۍ په صورت كې به راګرځول مستحب وي.

ثم إذا الخ له دې ځايه دا رانبيي چې كه يو محرم په حالت د بې اودسۍ كې طواف زيارت كړى وي، او بيا يې راوګرځوي، نو پر هغه هيڅ قرباني او دم نه واجبيږي، هغه كه يې په ايامِ نحر كې راوګرځوي او كه تر ايامِ نحر وروسته، ځكه چې تر طواف راګرځولو وروسته خو نقصان او كمي ليرې سوه. اوس صرف د نقصان شبهه پاته سوه، او صرف د نقصان د شبهې په وجه هيڅ تاوان او دم نه واجبيږي.

وإن أعاده الخ د دې حاصل دا دى كه يو محرم مخكې د جنابت په حالت كې طواف زيارت كړى وي، بيا يې په ايامِ نحر كې راوګرځوي. نو پر هغه هم هيڅ شى نه واجبيږي، نه قرباني او نه صدقه، ځكه چې هغه طواف زيارت په خپل وخت كې را وګرځوى. او كه تر ايامِ نحر وروسته يې طواف راوګرځوى، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خو بدنه ساقطيږي،

لېکن دم یعني بزه واجبیږي، ځکه چي په راګرځولو سره خو بدنه بالاتفاق ساقطیږي. لېکن د امام صاحب رحمة الله مذهب دا دی چي که د حج یو نسک له خپل وخت څخه وځنډول سي. نو پر هغه به دم واجبیږي. نو ځرنګه چي دلته هم طواف زیارت له خپل وخت یعني له ایام نحر څخه ځنډول سوی دی. نو ځکه به د امام صاحب رحمة الله په نیز د هغه د ځنډولو په وجه دم لازمیږي.

## د مخکني سړي لپاره د طواف د راګرځولو حکم

وَلَوْرَجَعَ إِلٰى أَهْلِهِ وَقَدْ طَافَهُ جُنُبًا او که محرم خپل وطن ته واپس راسي په داسي حال کي چي طواف زیارت یې د جنابت په حالت کي کړی وي عَلَيْهِ أَنْ يَعُوْدَ نو پر هغه ضروري دي چي راوګرځیږي لِأَنَّ النَّقْصَ كَثِيْرٌ ځکه چي نقصان زیات دی فَيُؤْمَرُ بِالْعَوْدِ اِسْتِدْرَاكًا لَهُ نو د هغه د تلافی لپاره به د راګرځېدلو حکم کیږي وَيَعُوْدُ بِإِحْرَامٍ جَدِيْدٍ او دا سړی به په نوي احرام سره راګرځي وَإِنْ لَمْ يَعُدْ وَبَعَثَ بُدْنَةً أَجْزَأَهُ او که هغه نه راوګرځیږي او یوه بدنه واستوي نو (هم) کافي دي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ جَابِرٌ لَهُ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی چي بدنه د نقصان پوره کونکې ده إِلَّا أَنَّ الْأَفْضَلَ هُوَ الْعَوْدُ خو افضل راګرځېدل دي وَلَوْرَجَعَ إِلٰى أَهْلِهِ وَقَدْ طَافَهُ مُحْدِثًا او که محرم خپل أهل ته واپس راسي په داسي حال کي چي طواف زیارت یې د بې اودسۍ په حالت کي کړی وي إِنْ عَادَ وَطَافَ جَازَ نو که دا سړی راوګرځیږي طواف وکړي نو (هم) جائز دي وَإِنْ بَعَثَ بِالشَّاةِ فَهُوَ أَفْضَلُ او که بزه واستوي نو دا افضل دي لِأَنَّهُ خَفَّ مَعْنَى النُّقْصَانِ ځکه چي (په دې صورت کي) د نقصان معنیٰ سپکه (کمه) ده وَفِيْهِ نَفْعٌ لِلْفُقَرَاءِ او د بزې په استولو کي د نقیرانو فایده ده وَلَوْلَمْ يَطُفْ طَوَافَ الزِّيَارَةِ أَصْلًا حَتّٰى رَجَعَ إِلٰى أَهْلِهِ او که هغه بالکل طواف زیارت کړی نه وي تر دې چي خپل وطن ته واپس راسي فَعَلَيْهِ أَنْ يَعُوْدَ بِذٰلِكَ الْإِحْرَامِ نو پر هغه واجب دي چي په دغه احرام سره (مکې ته) راوګرځیږي لِانْعِدَامِ التَّحَلُّلِ مِنْهُ ځکه چي هغه له دې احرام څخه حلال سوی نه دي وَهُوَ مُحْرِمٌ عَنِ النِّسَاءِ أَبَدًا حَتّٰى يَطُوْفَ او دا سړی به له ښځو څخه همېشه حرام وي تر دې چي طواف وکړي.

**اللغات:** ﴿يؤمر﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: حکم کول. ﴿خف﴾ د ضرب ماضي ده: سپکېدل.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو محرم په حالت د جنابت کي طواف زیارت وکړي او خپل وطن ته واپس راغلی. نو اوس د هغه لپاره حکم دا دی چي له خپل وطن څخه واپس مکې ته ولاړ سي، او طواف زیارت دي راوګرځوي، ځکه په حالت د جنابت کي طواف زیارت کول ډېر غټ عیب او نقصان دی. نو د دې عیب د تلافی لپاره به له وطن څخه واپس مکې ته تلل ضروري وي. او ښکاره خبره ده چي که له میقات څخه تېر سوی وي. نو په نوي احرام سره به راګرځي. کنې د نوي احرام هیڅ ضرورت نسته. او که مکې ته واپس نه ولاړ، بلکي د نقصان د تلافی لپاره یې یوه بدنه واستوله. نو دا هم جائز دي، ځکه چي بدنه هم د نقصان تلافي کوي. خو افضل واپس تلل دي. چي جابر (یعني د نقصان تلافي

کونکی) د مجبور (یعني د کوم شي تلافي چې کیږي) له جنس څخه سي، یعني افضل دا ده چې د طواف تلافي په طواف سره وسي.

ولو رجع الخ او که محرم طواف زیارت بې اودسه کړی وو، او بیا خپل وطن ته واپس راغلی، نو اوس که هغه واپس راسي، دویم وار طواف وکړي، نو جائز دي، لیکن په دې صورت کي د تلافی لپاره بزه استول افضل دي، ځکه چي د حدث په وجه نقصان سپک او کم دی، او د بزې په استولو کي د مکې د فقیرانو نفع ده، نو په دې خاطر بزه استول افضل دي.

ولو لم یطف الخ او که محرم بالکل طواف زیارت نه وکړی، او خپل وطن ته واپس راغلی، نو اوس د هغه لپاره په دغه احرام سره مکې ته واپس تلل لازم دي، ځکه د طواف زیارت په نه کولو سره دا سړی له خپل احرام څخه حلال نه سو، نو د حلالیدلو او د خپلي ښځي سره د واده د اړیکو د قائمولو لپاره پر هغه واجب دي چي واپس مکې ته ولاړ سي او له طواف زیارت څخه ځان فارغه کړي.

## بغیر له اودس څخه د طواف صدر حکم

وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الصَّدْرِ مُحْدِثًا او کوم محرم چې طواف صدر بې اودسه وکړي فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ نو پر هغه صدقه واجب ده لِأَنَّهُ دُونَ طَوَافِ الزِّيَارَةِ ځکه چې طواف صدر تر طواف زیارت کم دی وَإِنْ كَانَ وَاجِبًا که څه هم دا واجب دی فَلَا بُدَّ مِنْ إِظْهَارِ التَّفَاوُتِ خو (بیا هم) د فرق ښکاره کول ضروري دي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ تَجِبُ شَاةٌ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي بزه واجبیږي إِلَّا أَنَّ الْأَوَّلَ أَصَحُّ خو اول قول زیات صحیح دی وَلَوْ طَافَ جُنُبًا او که هغه د جنابت په حالت کي طواف صدر وکړي فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو پر هغه یوه بزه واجب ده لِأَنَّهُ نَقْصٌ كَثِيرٌ ځکه چي دا زیات نقصان دی ثُمَّ هُوَ دُونَ طَوَافِ الزِّيَارَةِ بیا دا له طواف زیارت څخه کم دی فَيُكْتَفَى بِالشَّاةِ نو پر بزې به اکتفاء کیږي.

تشریح: مسئله: دا ده که محرم په حالت د بې اودسۍ کي طواف صدر وکړی، نو پر هغه صدقه واجبیږي، ځکه طواف صدر که څه هم واجب دی، خو په درجه کي له طواف زیارت څخه کم دی، نو د دواړو په مینځ کي به د فرق د ښکاره کولو لپاره د بې اودسۍ په حالت کي په طواف صدر کي صدقه او په طواف زیارت کي بزه واجبیږي.

وعن أبي حنيفة الخ د امام صاحب رَحِمَهُ الله یو روایت دا دی چي د بې اودسۍ په حالت کي په طواف صدر کي هم بزه واجبیږي، لیکن اول روایت یعني د صدقې د وجوب روایت زیات صحیح دی.

ولو طاف جنبا الخ د دې حاصل دا دی که محرم طواف صدر د جنابت په حال کي وکړی، نو پر هغه بزه واجبیږي، ځکه چي د جنابت په حال کي طواف کول غټ جرم او غټ نقصان دی، خو په طواف زیارت کي له پیښیدونکي نقصان څخه کم دی، لهذا په دې کي به دم هم کوچنی واجبیږي، لیکن د جنابت په حالت کي به په طواف زیارت کي غټ دم یعني بدنه واجبیږي.

## د طوافِ زيارت د پرېښوولو ببلا ببل صورتونه او د هغو حکمونه

وَمَنْ تَرَكَ مِنْ طَوَافِ الزِّيَارَةِ ثَلَاثَةَ أَشْوَاطٍ او څوک چې د طوافِ زيارت درې دوره(شوطه) پرېږدي فَمَا دُونَهَا يا تر هغه کم فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو پر هغه يوه بزه واجب ده لِأَنَّ النُّقْصَانَ بِتَرْكِ الْأَقَلِّ يَسِيرٌ ځکه (له نيم څخه) د کم پرېښوولو په وجه نقصان معمولي دی فَأَشْبَهَ النُّقْصَانَ بِسَبَبِ الْحَدَثِ نو د بې اودسۍ په سبب چې کوم نقصان راځي د هغه سره مشابه سو فَتَلْزَمُهُ شَاةٌ لهذا پر هغه به بزه لازمېږي فَلَوْ رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ بيا که دا سړی خپل أهل وعيال ته واپس راسي أَجْزَأَهُ أَنْ لَا يَعُودَ وَيَبْعَثُ شَاةً نو د هغه لپاره دا کافي دي چې (مکې ته) واپس ولاړ نه سي او يوه بزه واستوي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَمَنْ تَرَكَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ بَقِيَ مُحْرِمًا أَبَدًا او څوک چې څلور دوره(له طوافِ زيارت څخه) پرېږدي نو هغه د همېشه لپاره(د ښځو په حق کي) محرم پاتېږي حَتَّى يَطُوفَهَا تر دې چې طوافِ زيارت (بيرته) وکړي لِأَنَّ الْمَتْرُوكَ أَكْثَرُ ځکه پرېښوول سوی اکثر طواف دی فَصَارَ كَأَنَّهُ لَمْ يَطُفْ أَصْلًا نو داسي سو لکه هغه چي بالکل طواف کړی نه وي.

**اللغات:** ﴿المتروك﴾ د نصر اسم مفعول دی: پرېښوول سوی.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که محرم د طوافِ زيارت درې دورونه(شوطونه) پرېښوول، يا يې تر دې کم پرېښوول نو پر هغه دم واجبېږي، ځکه چې درې دورونه د اوو(۷) دورونو اقل دي، نو د دې د پرېښوولو په وجه به پيدا کېدونکی نقصان خفيف او کم وي، لهذا د هغه نقصان سره مشابه سو، کوم چې د حدث(بې اودسۍ) په وجه پيدا کيږي، لو د حدث په وجه د پيدا کېدونکي نقصان تلافي په بزې سره کيږي، نو ځکه به دلته هم بزه واجب وي.

فلو رجع الخ او که دا سړی کوم چې يې د طوافِ زيارت درې يا کم دورونه پرې ايښي دي، خپل وطن ته ولاړ سي، نو د هغه لپاره دا خبره جائز ده چې مکې ته واپس ولاړ نه سي، او يوه بزه واستوي، دليل مخکي تېر سو.

ومن ترك الخ او که يو سړي د طوافِ زيارت څلور دورونه يا تر دې زيات دورونه پرېښوول نو تر څو چې د طوافِ زيارت قضاء نه راوړي، تر هغه وخته د ښځو په حق کي محرم دی، ځکه چې له اوو(۷) څخه څلور يا تر دې زيات اکثر دي، او اکثر په حکم کي د کُل دي، نو هغه ګواکي بالکل طوافِ زيارت کړی نه دي، او د طوافِ زيارت د نه کولو په صورت کي همېشه هغه محرم پاتېږي، تر څو چې طوافِ زيارت نه را وګرځوي.

## د طوافِ صدر د پرېښوولو ببلا ببل صورتونه او د هغو حکمونه

وَمَنْ تَرَكَ طَوَافَ الصَّدْرِ أَوْ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ مِنْهُ او څوک چې طوافِ صدر پرېږدي يا له هغه څخه څلور دوره(شوطه) پرېږدي فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو پر هغه يوه بزه واجب ده لِأَنَّهُ تَرَكَ الْوَاجِبَ أَوِ الْأَكْثَرَ مِنْهُ ځکه چې هغه واجب يا له واجب څخه اکثره حصه پرېښووله وَمَا دَامَ بِمَكَّةَ يُؤْمَرُ بِالْإِعَادَةِ او تر څو چې په مکه کي وي هغه ته به د طوافِ صدر د راګرځولو حکم کيږي إِقَامَةً لِلْوَاجِبِ فِي وَقْتِهِ چې واجب په خپل وخت کي اداء سي وَمَنْ تَرَكَ ثَلَاثَةَ أَشْوَاطٍ مِنْ طَوَافِ الصَّدْرِ او

څوک چي د طوافِ صدر درې دوره پرېږدي **فَعَلَيْهِ الصَّدَقَةُ** نو پر هغه صدقه واجب ده **وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الْوَاجِبِ فِيْ جَوْفِ الْحِجْرِ** او څوک چي واجب طواف په حطيم کي دننه وکړي **فَإِنْ كَانَ بِمَكَّةَ أَعَادَهُ** نو که په مکه کي وي هغه دي راوګرځوي **لِأَنَّ الطَّوَافَ وَرَاءَ الْحَطِيْمِ وَاجِبٌ** ځکه چي طواف د حطيم شا ته(يعني له حطيم څخه بهر) واجب دی **عَلٰى مَا قَدَّمْنَاهُ** لکه مخکي چي مونږ ذکر کړه **وَالطَّوَافُ فِيْ جَوْفِ الْحِجْرِ أَنْ يَّدُوْرَ حَوْلَ الْكَعْبَةِ** او په حطيم کي دننه طواف دا دی چي طواف کونکی پر کعبه شاوخوا راوګرځي **وَيَدْخُلُ الْفُرْجَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْحَطِيْمِ** او داخل سي په هغو دوو خالي ځايونو کوم چي د کعبې او حطيم په مينځ کي دي **فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ أَدْخَلَ نُقْصَانًا فِيْ طَوَافِهِ** نو هغه چي کله داسي وکړي نو په خپل طواف کي يې نُقص داخل کړی **فَمَا دَامَ بِمَكَّةَ أَعَادَهُ كُلَّهُ** لهذا تر څو چي په مکه کي وي نو ټوله طواف دي راوګرځوي **لِيَكُوْنَ مُؤَدِّيًا لِلطَّوَافِ عَلَى الْوَجْهِ الْمَشْرُوْعِ** چي پر مشروع طريقه د طواف اداء کونکی سي.

**اللغات:** ﴿جوف﴾ مينځ، دننه. ﴿فرجتين﴾ د فُرجة تثنيه ده: پراخي، خالي ځای.

**تشريح:** په دې عبارت کي څو مسئلې بيان سوي دي: (۱) که يو محرم طوافِ صدر پرېښووی، يا يې د طوافِ صدر څلور دورونه پرېښوول او وطن ته ولاړی، نو پر هغه يوه بزه واجبيږي، ځکه چي هغه د واجب يا د واجب اکثره حصه پرېښوولې او د واجب په پرېښوولو کي په قربانۍ سره نقصان پوره کيږي، نو ځکه به په دواړو صورتونو کي قرباني واجبيږي، او تر څو چي هغه په مکه کي وي هغه ته به د طوافِ صدر د کولو حکم کيږي، د دې لپاره چي واجب په خپل وخت کي اداء سي، او د طوافِ صدر وخت له مکې څخه تر رخصتېدلو مخکي دی. (۲) دويمه مسئله دا ده چي که يو محرم د طوافِ صدر درې دورونه پرېښوول نو پر هغه صدقه واجبيږي، يعني د هر دور (شوط) په بدله کي به نيم صاع غنم ورکوي. (۳) دريمه مسئله دا ده چي که يو محرم په حطيم کي دننه واجب طواف وکړی، يعني د کعبې او حطيم په مينځ کي چي کوم دوه خالي ځايونه دي، په هغو کي هم د طواف په وخت کي تېر سو، نو هغه ته پکار ده چي تر څو په مکه کي مقيم وي، طواف دي راوګرځوي، ځکه حطيم په طواف کي داخلول او له حطيم څخه دباندي طواف کول واجب دي، لېکن دغه محرم په حطيم کي دننه د طواف کولو په وجه په شرعي طريقه سره طواف نه وکړی، لهذا ده ته به دويم وار په شرعي طريقه سره د طواف دراګرځولو حکم کيږي.

## په طواف کي د پرېښوول سوي حصې د راګرځولو حکم

**وَإِنْ أَعَادَ عَلَى الْحِجْرِ خَاصَّةً** او که هغه فقط د حطيم طواف راوګرځوي **أَجْزَأَهُ** نو (هم) کافي دي **لِأَنَّهُ تَلَافٰى مَا هُوَ الْمَتْرُوْكُ** ځکه کوم څه چي پرېښوول سوي د هغه (تدارک او) تلافي يې وکړه **وَهُوَ أَنْ يَّأْخُذَ عَنْ يَمِيْنِهِ خَارِجَ الْحِجْرِ** او د حطيم طواف دا دی چي له حطيم څخه دباندي له راسته طرف څخه (طواف) شروع کړي **حَتّٰى يَنْتَهِيَ إِلٰى آخِرِهِ** تر دې چي د حطيم آخر ته ورسيږي **ثُمَّ يَدْخُلَ الْحِجْرَ مِنَ الْفُرْجَةِ** بيا له خالي ځای څخه حطيم ته داخل سي **وَيَخْرُجَ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ** او له بل طرف څخه يې را ووځي **هٰكَذَا يَفْعَلُهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ** داسي به اووه(۷) واره وکړي **فَإِنْ رَجَعَ إِلٰى أَهْلِهِ وَلَمْ**

فَرَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ او كه هغه خپل وطن ته واپس راغلی او د حطيم طواف يې نه را وګرځوی فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِأَنَّهُ تَمَكَّنَ نُقْصَانٌ فِي طَوَافِهِ بِتَرْكِ مَا هُوَ قَرِيبٌ مِنَ الرُّبُعِ ځکه چې د هغه په طواف کې تقريباً (د کعبې) د څلورمې حصې د پرېښوولو په وجه نقصان پيدا سو فَلَا تُجْزِئُهُ الصَّدَقَةُ نو د هغه لپاره به صدقه کافي نه وي (بلکې دم به واجب وي).

**اللغات:** ﴿قريب﴾ نژدې (تقريباً).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې په حطيم کې د طواف کونکي لپاره خو افضل دا ده چې ټوله طواف په شرعي طريقه سره راوګرځوي، ليکن که ټوله طواف يې نه راوګرځوی، او صرف د حطيم طواف يې راوګرځوی، نو هم صحيح او جائز دي. ځکه هغه چې کوم شی پرې ايښی وو، د هغه تلافي يې وکړه، لهذا د هغه پر ذمه به اوس يو شی پاتې نه وي.

وهو أن الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د حطيم د طواف راګرځولو طريقه دا ده چې له حطيم څخه به دبانډې له راسته طرف څخه طواف شروع کړي، تر دې چې د حطيم آخر ته ورسيږي، بيا به له پراخی (يعني له خالي ځای) څخه حطيم ته داخل سي، تر دويم خالي ځای به راووځي، دا يوه دور (شوط) سو، همدارنګه به اووه(۷) واره وکړي.

فإن رجع الخ او که دا سړی خپل وطن ته واپس راغلی او د حطيم طواف يې نه راوګرځوی، نو پر هغه دم واجبيږي، ځکه په طواف کې د کعبې د څلورمې حصې پرېښوولو په وجه د هغه په طواف کې نقصان پيدا سو، نو د هغه د تدارک او تلافی لپاره صدقه کفايت نه کوي، بلکې دم به ورکوي.

## په طوافِ زيارت او طوافِ صدر کې يو په اوداسه او دويم بې اودسه اداء کول

وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ عَلَى غَيْرِ وُضُوْءٍ او څوک چې طوافِ زيارت بې اودسه وکړي وَطَوَافَ الصَّدْرِ فِي آخِرِ أَيَّامِ التَّشْرِيْقِ طَاهِرًا او طوافِ صدر د تشريق د ورځو په آخر کې په اوداسه وکړي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه يو دم واجب دی فَإِنْ كَانَ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ جُنُبًا بيا که هغه طوافِ زيارت د جنابت په حال کې کړی وي فَعَلَيْهِ دَمَانِ عِنْدَ● أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو دامام صاحب په نيز پر هغه دوه دمه واجب دي وَقَالَا: عَلَيْهِ دَمٌ وَاحِدٌ او صاحبين فرمايي: چې پر هغه يو دم واجب دی لِأَنَّ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَمْ يَنْتَقِلْ طَوَافُ الصَّدْرِ إِلَى طَوَافِ الزِّيَارَةِ ځکه په اول صورت کې طوافِ صدر د طوافِ زيارت و طرف ته نه منتقل کيږي لِأَنَّهُ وَاجِبٌ ځکه چې طوافِ صدر واجب دی وَإِعَادَةُ طَوَافِ الزِّيَارَةِ بِسَبَبِ الْحَدَثِ غَيْرُ وَاجِبٍ او د حدث په وجه د طوافِ زيارت راګرځول واجب نه دي وَإِنَّمَا هُوَ مُسْتَحَبٌّ بلکې هغه مستحب دي فَلَا يَنْتَقِلُ إِلَيْهِ نو ځکه به طوافِ صدر د طوافِ زيارت و طرف ته نه منتقل کيږي وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يَنْتَقِلُ طَوَافُ الصَّدْرِ إِلَى طَوَافِ الزِّيَارَةِ او په دويم صورت کې طوافِ صدر د طوافِ زيارت و طرف ته منتقل کيږي لِأَنَّهُ مُسْتَحِقُّ الْإِعَادَةِ ځکه چې د طوافِ زيارت راګرځول واجب دي فَيَصِيْرُ تَارِكًا لِطَوَافِ الصَّدْرِ نو دا سړی به د طوافِ صدر پرېښوونکی وګرځي مُؤَخِّرًا

● القول الراجح: قول الإمام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الهندية ج: ١، ص: ٢٤٦. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٦]

لِطَوَافِ الزِّيَارَةِ مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ (او) له ايام نحر څخه به د طواف زيارت وروسته كونكى (وګرځي) فَيَجِبُ الدَّمُ بِتَرْكِ الصَّدْرِ بِالِاتِّفَاقِ نو د طواف صدر د پرېښوولو په وجه به بالاتفاق دم واجبيږي وَبِتَأْخِيرِ الْآخَرِ عَلَى الْخِلَافِ او د طواف زيارت په وروسته كولو سره به على الاختلاف دم واجبيږي إِلَّا أَنَّهُ يُؤْمَرُ بِإِعَادَةِ طَوَافِ الصَّدْرِ مَا دَامَ بِمَكَّةَ خو تر څو چې په مكه كې وي هغه ته به د طواف صدر د راګرځولو حكم كيږي وَلَا يُؤْمَرُ بَعْدَ الرُّجُوعِ (لېكن وطن ته) تر واپس تللو وروسته به (د طواف راګرځولو) حكم نه ورته كيږي عَلَى مَا بَيَّنَّا لكه (مخكې) چې موږ بيان كړه.

**تشريح:** په دې عبارت كې دوې مسئلې بيان سوي دي، او پر دوو اُصولو متفرع سوي دي: (۱) يو اُصول دا دی كه څوک طواف زيارت د جنابت په حالت كې وكړي، نو تر هغه وروسته چې كوم طواف صدر كوي هغه به د طواف زيارت و طرف ته نقل كيږي، يعني له هغه څخه به طواف زيارت جوړيږي، ځكه هغه ګواكې طواف زيارت ګردسره كړی نه دی(نو دا طواف صدر به د هغه پر ځای دريږي)، او كه طواف زيارت يې د حدث په حالت كې كړی وي، نو طواف صدر به د طواف زيارت و طرف ته نه نقل كيږي، يعني طواف صدر به طواف زيارت نه جوړيږي، بلكې هغسې طواف صدر به پاته وي. (۲) دويم اُصول دا دی كه يو څوک تر أيام نحر يعني د ذي الحجې تر دولسمې ورځې وروسته طواف زيارت وكړي، نو د امام صاحب په نيز د تأخير په وجه دم لازميږي، ځكه چې د هغه په نيز د طواف زيارت وخت د دولسمې ورځې تر ماښامه پوري پاتيږي، او د صاحبينو په نيز دم نه لازميږي. او كه يو څوک طواف صدر (چې هغه ته طواف وداع هم وايي) تر أيام نحر وروسته وكړي، نو هيڅ پروا نه لري، ځكه چې طواف صدر د طواف زيارت په ډول نه دی(اوس صورت د مسئلې ته ګوري چې د هغه په ترڅ كې به دواړې مسئلې او دواړه اُصول بيان سي).

**صورت د مسئلې:** دا دی كه يو سړي طواف زيارت بې اودسه وكړی، او طواف صدر يې په اوداسه وكړی، لېكن د ايام تشريق په آخر كې يې وكړی، نو بالاتفاق پر هغه يو دم واجبيږي(د بې اودسه طواف زيارت كولو په وجه)، د دې په خلاف كه هغه طواف زيارت د جنابت په حالت كې وكړی، او طواف صدر يې د مخكې په څير په اوداسه وكړی، او د ايام تشريق په آخر كې يې وكړی، نو دا مسئله مختلف فيه ده، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت كې دوه دمه واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې صورت كې يو دم واجبيږي.

صاحب د هدايې د دې دواړو مسئلو دليل او د فرق وجه بيانوي فرمايي چې په اول صورت كې (يعني كله چې يې طواف زيارت بې اودسه كړی وي) طواف صدر د طواف زيارت وطرف ته نه منتقل كيږي، يعني دواړه طوافونه پر خپل ځای پاتيږي، ځكه چې طواف صدر واجب دی، او د حدث په وجه د طواف زيارت راګرځول واجب نه دي، صرف مستحب دي، نو ځكه به يو طواف د بل و طرف ته نه منتقل كيږي، او د بې اودسه طواف زيارت كولو په وجه به يو دم واجبيږي.

د دې په خلاف چې څرنګه په دويم صورت كې هغه په حالت د جنابت كې طواف زيارت كړی دی، نو ځكه به دا طواف زيارت كالعدم وي، او طواف صدر كوم چې يې د ايام تشريق په آخر كې اداء كړی دی، هغه به د طواف زيارت و طرف ته منتقل كيږي، او هغه سړی به د طواف صدر پرېښوونكی هم وي، او له ايام نحر څخه به د طواف زيارت ځنډونكی هم وي، نو دواړه شيان دم واجبوي، لهذا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به په دې دويم صورت كې دوه دمه واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به په دې صورت كې صرف يو دم واجبيږي.

إلا أنه يؤمر بالعَوْد خو تر څو چې دا سړی په مکه کې وي، تر هغه وخته به د تولو په نيز هغه ته طواف صدر راګرځولو حکم کيږي، ځکه چې د هغه طواف صدر د جنابت په وجه د طواف زيارت و طرف ته منتقل سو. يعني طواف زيارت ځني جوړ سو، لهذا دا سړي سو لکه طواف صدر چې يې کړی نه وي، نو ځکه به يې راګرځوي، او که بغير له طواف صدر څخه وطن ته ولاړی، نو اوس به هغه ته د واپس کېدلو حکم نه کيږي (چې مکي ته به واپس ځي). بس! بزه دې واستوي، دا افضله طريقه ده، ځکه چې صرف واجب پاته سوی دی، او په دې کې د فقيرانو فائده هم ده.

## په عمره کې بغير له اوداسه د طواف او سعي حکم

وَمَنْ طَافَ لِعُمْرَتِهِ وَسَعَى عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ او څوک چې د خپلې عمرې لپاره بې اودسه طواف او سعي وکړي وَحَلَّ او حلال سي فَمَا دَامَ بِمَكَّةَ يُعِيدُهُمَا نو تر څو چې په مکه کې وي دواړه به راګرځوي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ او پر هغه هيڅ شی واجب نه دی أَمَّا إِعَادَةُ الطَّوَافِ فَلِتَمَكُّنِ النَّقْصِ فِيهِ بِسَبَبِ الْحَدَثِ هر چې د طواف راګرځول دي نو هغه ځکه چې د حدث په وجه په هغه کې نقصان پيدا سو وَأَمَّا السَّعْيُ فَلِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلطَّوَافِ او کوم چې سعي ده نو ځکه چې هغه د طواف تابع ده وَإِذَا أَعَادَهُمَا لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او کله چې هغه دواړه راوګرځوي نو (بيا) پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لِارْتِفَاعِ النُّقْصَانِ ځکه چې نقصان ختم سو وَإِنْ رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ قَبْلَ أَنْ يُعِيدَ او که تر طواف راګرځولو مخکې هغه خپل وطن ته ولاړ سي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه قرباني واجب ده لِتَرْكِ الطَّهَارَةِ فِيهِ ځکه چې په طواف کې يې طهارت پرېښوی وَلَا يُؤْمَرُ بِالْعَوْدِ او (مکې ته) د واپس تللو حکم به نه ورته کيږي لِوُقُوعِ التَّحَلُّلِ بِأَدَاءِ الرُّكْنِ ځکه چې د رکن په اداء کولو سره حلالوالی واقع سو إِذِ النُّقْصَانُ يَسِيرٌ ځکه چې نقصان معمولي غونډي دی وَلَيْسَ عَلَيْهِ فِي السَّعْيِ شَيْءٌ او د سعي په باره کې پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لِأَنَّهُ أَتَى بِهِ عَلَى إِثْرِ طَوَافٍ مُعْتَدٍّ بِهِ ځکه چې هغه تر معتبر طواف وروسته سعي وکړه وَكَذَا إِذَا أَعَادَ الطَّوَافَ وَلَمْ يُعِدِ السَّعْيَ فِي الصَّحِيحِ او همدارنګه د صحيح قول مطابق که هغه طواف راوګرځوي او سعي نه راوګرځوي (نو په دې صورت کې هم پر هغه هيڅ شی واجب نه دی).

**اللغات**: ﴿يعيد﴾ د افعال مضارع ده: راګرځول. ﴿على إثر﴾ وروسته.

**تشريح**: مسئله: دا ده که يو چا د عمرې طواف او سعي بين الصفا والمروه بې اودسه وکړل، او حلال سو، يعني له احرام څخه ووتی، نو تر څو چې دا سړی په مکه کې وي، پر هغه د دې دواړو راګرځول واجب دي، او دم او بل هيڅ شی نه پر واجبيږي، د طواف راګرځول خو ځکه واجب دي چې د حدث په وجه په دې کې نقصان پيدا سو، نو د نقصان د ليرې کولو لپاره به طواف راګرځوي، او سعي که څه هم د طهارت محتاجه نه ده، خو د طواف سره د سعي راګرځول ځکه واجب دي چې سعي د طواف تابع ده، نو کله چې طواف راګرځوي، نو سعي به هم تر طواف وروسته ور سره راګرځوي، او کله چې هغه دواړه راوګرځوي، بيا پر هغه د تاوان په توګه هيڅ شی نه واجبيږي، ځکه چې پيدا سوی نقصان په راګرځولو سره ليرې سو.

وإن رجع الخ او که دا سړی تر طواف راګرځولو مخکې خپل وطن ته واپس راغلی نو پر هغه دم واجبېږي، ځکه په طواف کې يې طهارت پرې اېښی دی، حال دا چې طهارت واجب دی، نو د دې نقصان د تلافي لپاره به دم پر واجب وي، او دا حکم به نه ورته کېږي چې له وطن څخه واپس مکې ته ولاړ سي، ځکه چې هغه د عمرې توله افعال او ارکان اداء کړي دي، او د حدث کوم نقصان چې دی، هغه معمولي غوندي دی، لهذا په دم سره د هغه تلافي کېږي، د واپس تللو ضرورت نسته.

وليس عليه الخ او پر هغه د سعی په باره کې هيڅ شی نه واجبېږي، ځکه چې هغه سعی تر داسې طواف وروسته کړې ده چې هغه شرعاً معتبر دی (يعني د بې اودسی په حال کې هغه طواف کړی دی نه د جنابت په حال کې، او د بې اودسی په حال کې طواف شرعًا معتبره دی)، همدارنګه د سعی په باره کې هغه وخت هم هيڅ شی نه واجبېږي، چې کله هغه طواف راوګرځوي، او سعی نه راوګرځوي، همدا صحيح قول دی (ځکه مخکې يې د ترتيب مطابق سعی کړې وه، يعني تر طواف وروسته يې کړې وه)، که څه هم ځينې حضرات په دې صورت کې دم واجبوي.

## د سعي د پرېښوولو جرمانه

وَمَنْ تَرَكَ السَّعْيَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ او څوک چې په حج کې د صفا او مروه په مينځ کې سعی (ځغستل) پرېږدي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه يو دم واجب دی وَحَجُّهُ تَامٌّ او حج يې پوره دی لِأَنَّ السَّعْيَ مِنَ الْوَاجِبَاتِ عِنْدَنَا ځکه چې سعی زموږ په نېز له واجباتو څخه ده فَيَلْزَمُ بِتَرْكِهِ الدَّمُ دُونَ الْفَسَادِ نو د هغې په پرېښوولو سره به دم لازمېږي نه (د حج) فساد.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## له عرفات څخه تر امام د مخکې وتلو حکم

وَمَنْ أَفَاضَ قَبْلَ الْإِمَامِ مِنْ عَرَفَاتٍ او څوک چې له عرفات څخه تر امام مخکې کوچ وکړي (روان سي) فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لِأَنَّ الرُّكْنَ أَصْلُ الْوُقُوفِ ځکه چې اصل رکن وقوف عرفه دی فَلَا يَلْزَمُهُ بِتَرْكِ الْإِطَالَةِ شَيْءٌ لهذا (د وقوف) د اوږدوالي د پرېښوولو په وجه به پر هغه هيڅ شی نه واجبېږي وَلَنَا أَنَّ الْإِسْتِدَامَةَ إِلَى غُرُوبِ الشَّمْسِ وَاجِبَةٌ او زموږ دليل دا دی چې تر لمر لوېدلو پورې مسلسل وقوف کول واجب دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: فَادْفَعُوا بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "نو تاسو تر لمر لوېدلو وروسته (له عرفات څخه) روان سئ" فَيَجِبُ بِتَرْكِهِ الدَّمُ نو د هغه د پرېښوولو په وجه به دم واجبېږي بِخِلَافِ مَا إِذَا وَقَفَ لَيْلًا په خلاف د هغه صورت چې کله يو څوک د شپې وقوف وکړي لِأَنَّ اِسْتِدَامَةَ الْوُقُوفِ عَلَى مَنْ وَقَفَ نَهَارًا لَا لَيْلًا ځکه چې مسلسل وقوف کول پر هغه سړي لازم دي چې هغه د ورځې وقوف کوي نه د شپې فَإِنْ عَادَ إِلَى عَرَفَةَ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ بيا که هغه تر لمر لوېدلو وروسته عرفات ته

---

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبه في مصنفه، باب في وقت الدفعة من المزدلفة، حديث رقم: ١٥٤٢٧ في معناه.

واپس راسي **لَا يَسْقُطُ عَنْهُ الدَّمُ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** نو له هغه شخحه به دم نه ساقطيږي د ظاهر روايت مطابق **لِأَنَّ الْمَتْرُوْكَ لَا يَصِيْرُ مُسْتَدْرَكًا** ځکه کومه حصه چي پرېښوول سوې ده د هغه تلافي (او تدارک) نه سي کېدلای **وَاخْتَلَفُوْا فِيْمَا إِذَا عَادَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ** او په هغه صورت کي فقهاؤ اختلاف کړی دی چي کله هغه تر لمر لوېدلو مخکي عرفات ته واپس راسي.

**اللغات:** ﴿أفاض﴾ د افعال ماضي ده: کوچ کول، روانېدل. ﴿استدامة﴾ د استفعال مصدر دی: باقي پاته کېدل، مسلسل او پرلپسې کول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي وقوفِ عرفه وکړی (يعني په عرفات کي ودرېدی)، لېکن تر لمر لوېدلو او د امامُ المسلمين تر روانېدلو مخکي له عرفات څخه روان سو، نو زموږ په نېز پر هغه دم واجبيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي په اصل کي رکن وقوفِ عرفه دی، تر ماښامه پوري د وقوف اوږدوالی رکن نه دی، بلکي هغه مستحب دي، لهذا د وقوفِ د اوږدوالي د پرېښوولو په وجه به پر محرم دم نه واجبيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي تر لمر لوېدلو پوري وقوف اوږدول واجب دي، لکه څرنګه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: فادفعوا بعد غروب الشمس. (يعني تاسو له عرفات څخه تر لمر لوېدلو وروسته روان سئ)، له دې حديث څخه معلومه سوه چي تر لمر لوېدلو پوري وقوف اوږدول واجب دي، او څرنګه چي دا سړی تر لمر لوېدلو مخکي روان سوی دی، نو ځکه به د واجب د پرېښوولو په وجه دم پر واجبيږي.

بخلاف ما إذا وقع الخ له دې ځايه د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی که يو سړي تو له ورځ وقوفِ عرفه وکړی، او تر لمر لوېدلو يو څو دقيقې مخکي له عرفات څخه روان سو، نو تاسو خو پر هغه دم واجبوی، لېکن که يو سړي فقط د شپې وقوفِ عرفه وکړی، او د ورځي عرفات ته ورنژدې هم نه سو، نو تاسو پر هغه هيڅ شی نه واجبوئ، حال دا چي هغه تر ماښامه وقوف پرېښووی؟ صاحب د هدايې جواب ورکوي فرمايي چي تر لمر لوېدلو پوري وقوف اوږدول صرف پر هغه سړي لازم دی چي د ورځي وقوف کوي، او کوم څوک چي د ورځي وقوف نه کوي، پر هغه به تر لمر لوېدلو پوري وقوف اوږدول هم واجب نه وي، او د وقوف پرېښوولو جرمانه او دم به هم پر واجب نه وي.

فإن عاد الخ فرمايي که دا سړی کوم چي تر امام مخکي روان سوی وو تر لمر لوېدلو وروسته عرفات ته واپس راغلی او يا د امام سره روان سو، نو د ظاهر روايت مطابق له هغه شخحه قرباني نه ساقطيږي، ځکه د مخکي تللو په وجه چي په کوم وخت او زمانه کي وقوف پرېښوول سو، د هغه تلافي ممکنه نه ده، نو ځکه به واجب سوی دم نه ساقطږي، او که دا سړی تر لمر لوېدلو مخکي عرفات ته راغلی، او بيا تر لمر لوېدلو وروسته د امام سره روان سو، نو امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې سره هم قرباني نه ساقطيږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ساقطيږي.

## د وقوفِ مزدلفه د پرېښوولو حکم

**وَمَنْ تَرَكَ الْوُقُوْفَ بِالْمُزْدَلِفَةِ** او څوک چي په مزدلفه کي درېدل پرېږدي **فَعَلَيْهِ دَمٌ** نو پر هغه دم واجب دی **لِأَنَّهُ مِنَ الْوَاجِبَاتِ** ځکه چي "په مزدلفه کي" درېدل له واجباتو څخه دي.

**تشريح:** عبارت او ترجمه څرګنده دي.

## ټوله ورځې د رمي د پرېښوولو حکم

وَمَنْ تَرَكَ رَمْيَ الْجِمَارِ فِي الْأَيَّامِ كُلِّهَا او څوک چې ټوله ورځې د جمرو رمي پرېږدي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِتَحَقُّقِ تَرْكِ الْوَاجِبِ ځکه چې د واجب پرېښوول متحقق سو وَيَكْفِيْهِ دَمٌ وَاحِدٌ او د هغه لپاره يو دم کافي دی لِأَنَّ الْجِنْسَ مُتَّحِدٌ ځکه چې جنس يو دی كَمَا فِي الْحَلْقِ لکه په حلق کي (چې جنس يو دی) وَالتَّرْكُ إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ بِغُرُوْبِ الشَّمْسِ مِنْ آخِرِ أَيَّامِ الرَّمْيِ او پرېښوول هغه وخت ثابتېږي چې کله د رمي په آخري ورځ لمر ولوېږي (او تر هغه مخکې يې راګرځول جائز دي) لِأَنَّهُ لَمْ يُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا فِيْهَا ځکه چې د رمي عبادت والی پېژندل سوی نه دي مګر د رمي په ورځو کي وَمَا دَامَتِ الْأَيَّامُ بَاقِيَةً فَالْإِعَادَةُ مُمْكِنَةٌ او تر څو چې (د رمي) ورځې پاته وي تر هغه وخته يې راګرځول ممکن دي فَيَرْمِيْهَا عَلَى التَّأْلِيْفِ نو په ترتيب سره به رمي وکړي ثُمَّ بِتَأْخِيْرِهَا يَجِبُ الدَّمُ عِنْدَ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ بيا د رمي په ځنډولو سره قرباني واجبيږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خِلَافًا لَهُمَا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿ما دامت﴾ تر څو چې پاته وي، ﴿إعادة﴾ د افعال مصدر دی: راګرځول، دويم ځل کول، ﴿تأليف﴾ د تفعيل مصدر دی: ترتيب.

**تشريح:** د رمي ورځې د ذو الحجې دا څلور ورځې دي: ۱۰/ ۱۱/ ۱۲/ ۱۳.

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي په دې ټولو ورځو کي رمي پرېښوولې، نو پر هغه دم واجب دی، ځکه چې رمي واجب دي، او د واجب په پرېښوولو سره دم واجبيږي، نو ځکه به پر هغه هم دم واجب وي، لېکن په دې ټولو ورځو کي د رمي د پرېښوولو لپاره يو دم کافي دی، د ټولو رمي شمېر اويا (۷۰) دی، دليل دا دی چې د ټولو رميو جنس ذاتاً هم يو دی، او محلاً هم يو دی، نو دا ټولې به يوه رمی ګرځول کيږي (يعني تداخل به پکښې کيږي)، او يو دم به واجبيږي، لکه د ټوله بدن د وړېښتيانو په خريلو سره چې صرف يو دم واجبيږي.

والترك الخ فرمايي چې د رمي پرېښوول هغه وخت ثابتيږي، کله چې د ذو الحجې د ديارلسمي (۱۳) ورځې لمر ولوېږي، ځکه چې د رمي عبادت کېدل په همدغه ورځو کي معلوم دي، نو تر څو چې ورځې پاته وي، د رمي راګرځول ممکن دي، لهذا که د ذو الحجې په ديارلسمه ورځ يې د رمي کولو اراده وکړه، نو په دې ورځ به د ټولو ورځو رمي په ترتيب سره را وګرځوي، او څرنګه چې په دې صورت کي رمي له خپل وخت څخه وځنډول سوې، نو ځکه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دم واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به نه واجبيږي، ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د واجب په ځنډولو سره هم دم واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز نه واجبيږي.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۲۲۵. [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۲۷]

## د رمي د پرېښوولو بېلابېل صورتونو او حکمونه

وَإِنْ تَرَكَ رَمْيَ يَوْمٍ وَاحِدٍ او که محرم د يوې ورځې رمي پرېږدي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه (هم) يو دم واجب دی لِأَنَّهُ نُسُكٌ تَامٌّ ځکه چې د يوې ورځې رمي (هم) پوره يو نسک (عبادت) دی وَمَنْ تَرَكَ رَمْيَ إِحْدَى الْجِمَارِ الثَّلَاثِ او څوک چې په دريو جمرو کې د يوې جمرې رمي پرېږدي فَعَلَيْهِ الصَّدَقَةُ نو پر هغه صدقه واجب ده لِأَنَّ الْكُلَّ فِي هٰذَا الْيَوْمِ نُسُكٌ وَاحِدٌ ځکه چې د دريو سره جمرو رمی په دې ورځ کې يو نسک دی فَكَانَ الْمَتْرُوكُ أَقَلَّ نو پرېښووله سوې رمي (له نصف څخه هم) کمه سوه (نو ځکه به صدقه واجب وي) إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْمَتْرُوكُ أَكْثَرَ مِنَ النِّصْفِ خو دا چې پرېښووله سوې رمي تر نصف زياته سي فَحِينَئِذٍ يَلْزَمُهُ الدَّمُ نو په دې وخت کې به پر هغه دم واجبيږي لِوُجُودِ تَرْكِ الْأَكْثَرِ ځکه چې د رمي اکثر پرېښوول راغله وَإِنْ تَرَكَ رَمْيَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِي يَوْمِ النَّحْرِ او که يو څوک په ورځ د نحر د جمرهٔ عقبه رمي پرېږدي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِأَنَّهُ تَرَكَ كُلَّ وَظِيفَةِ هٰذَا الْيَوْمِ رَمْيًا ځکه چې هغه د دې ورځې د رمي ټوله وظيفه پرېښووله وَكَذَا إِذَا تَرَكَ الْأَكْثَرَ مِنْهَا او همدارنګه چې کله هغه (د جمرهٔ عقبه) د رمي اکثره حصه پرېږدي وَإِنْ تَرَكَ مِنْهَا حَصَاةً أَوْ حَصَاتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا او که هغه له رمي څخه يو يا دوه يا درې کاڼي پرېږدي تَصَدَّقَ لِكُلِّ حَصَاةٍ نِصْفَ صَاعٍ نو د هر کاڼي لپاره دې نيم صاع (غنم) صدقه کړي إِلَّا أَنْ يَبْلُغَ دَمًا لېکن که دا صدقه يو دم (يعني د يوې بزې قيمت ته) ورسيږي فَيَنْقُصُ مَا شَاءَ نو څومره چې وغواړي هغه دې کم کړي لِأَنَّ الْمَتْرُوكَ هُوَ الْأَقَلُّ ځکه چې پرېښووله سوې رمي تر نصف کمه ده فَتَكْفِيهِ الصَّدَقَةُ نو صدقه به د هغه لپاره کافي وي.

**اللغات:** ﴿حصاة﴾ کاڼی (کوچنی ډبره)، ﴿تصدق﴾ د تفعل ماضي ده: صدقه کول (خيراتول).

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو محرم او حاجي په څلورو ورځو کې يوه ورځ رمي پرېښووله نو پر هغه يوه قرباني واجبيږي، ځکه چې دا هم پوره يو نسک دی، او د پوره يو نسک يا د هغه د اکثر په پرېښوولو سره دم واجبيږي، نو ځکه به دلته هم پر هغه دم واجب وي، او د ټولو ورځو د رمي په پرېښوولو سره يوه دم ځکه واجب سو چې د ټولو رميو جنس متحد دی، او په متحد جنس کې به تداخل کيږي.

ومن ترك الخ فرمايي که محرم د يوې ورځې د رمي څه حصه پرېښووله يعني له دريو جمرو څخه يې د يوې جمرې رمي پرېښووله او د پاته دوو جمرو رمي يې وکړه، نو پر هغه صدقه واجب ده، يعني د هر کاڼي په عوض کې به نيم صاع غنم اداء کړي، ځکه چې د دريو سره جمرو رمی په دې ورځ کې يو نسک شمارل کيږي، او د يوې جمرې رمی تر نصف کمه ده، او د يوه نسک تر نصف د کم پرېښوولو په صورت کې صدقه واجبيږي، نو ځکه به د يوې جمرې د رمي په پرېښوولو سره پر هغه صدقه واجب وي، هو! که له دريو سره جمراتو څخه يې اکثره حصه پرېښووله، مثلاً د دوو جمرو رمي يې پرېښووله، يا يې مثلاً له (۲۱) کاڼو څخه ۱۲ يا ۱۳ کاڼي پرېښوول نو بيا پر هغه دم لازميږي، ځکه چې اکثر د کُل قائم مقام دي او د کُل په پرېښوولو سره دم واجبيږي، نو د اکثر په پرېښوولو سره به هم پر هغه دم واجب وي.

وإن ترك الخ او که يو سړی په ورځ د نحر د جمرۀ عقبه رمي پرېښوولې، نو پر هغه هم دم واجبيږي، ځکه چې د دې ورځې ټوله وظيفه صرف په جمرۀ عقبه کې منحصر ده(يعني په دې ورځ حاجيان صرف د جمرۀ عقبه رمي کوي)، نو ګواکې هغه د يوې ورځې رمي پرېښوولې، او د يوې ورځې د رمي په پرېښوولو سره دم واجبيږي، نو د يوم النحر د رمي په پرېښوولو سره به هم دم واجب وي، همدا راز که هغه د جمرۀ عقبه له اوو(٧) کانو څخه اکثر يعني څلور يا پنځه کاڼي پرېښوول، نو هم پر هغه دم واجبيږي، ځکه چې اکثر د کُل قائم مقام دي.

وإن ترك الخ او که محرم د يوې جمرې له رمي څخه يو يا دوه يا درې کاڼي پرېښوول يعني له څلورو څخه يې کم پرېښوول نو د هر کاڼي په بدله کې دې نيم صاع غنم صدقه کړي، لېکن که کاڼي زيات سول او د صدقې قيمت د يوه دم يعني د بزې د قيمت سره برابر سو، نو څومره چې وغواړي هغومره قيمت دې څنې کم کړي(د دې لپاره چې صدقه له دم څخه کمه سي)، ځکه چې پرېښوول سوې حصه خو له نصف څخه کمه ده، او له نصف څخه په کم کې دم نه واجبيږي، بلکې صدقه واجبيږي، او څرنګه چې دلته د صدقې قيمت د دم سره برابر سو، نو ځکه به له هغه څخه څه کموي چې د دم سره برابره نه سي.

## د حج افعال ځنډول يا يې ترتيب بدلول

وَمَنْ أَخَّرَ الْحَلْقَ حَتَّى مَضَتْ أَيَّامُ النَّحْرِ او څوک چې سر خريل وځنډوي تر دې چې د قربانۍ ورځې تيرې سي فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ• أَبِي حَنِيفَةَ نو پر هغه د امام صاحب په نېز يو دم واجب دی وَكَذَا إذَا أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ او همدارنګه کله چې هغه طواف زيارت وځنډوي وَقَالَا: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين فرمايي: چې په دواړو صورتونو کې پر هغه هيڅ شی واجب نه دی وَكَذَا الْخِلَافُ فِي تَأْخِيرِ الرَّمْيِ وَفِي تَقْدِيمِ نُسُكٍ عَلَى نُسُكٍ او همدا اختلاف د رمي په ځنډولو او پر يوه نسک د بل نسک په مخکې کولو کې دی كَالْحَلْقِ قَبْلَ الرَّمْيِ وَنَحْرِ الْقَارِنِ قَبْلَ الرَّمْيِ وَالْحَلْقِ قَبْلَ الذَّبْحِ لکه تر رمي مخکې سر خريل او تر رمي مخکې د قارن قرباني کول او تر ذبحه کولو مخکې سر خريل لَهُمَا أَنَّ مَا فَاتَ مُسْتَدْرَكٌ بِالْقَضَاءِ د صاحبينو دليل دا دی چې (دلته) کوم څه فوت سوي دي په قضاء سره د هغو تلافي (او تدارک) کېدای سي وَلَا يَجِبُ مَعَ الْقَضَاءِ شَيْءٌ آخَرُ او د قضاء سره به بل شی نه واجبيږي وَلَهُ حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د ابن مسعود ﷺ (دا) حديث دی أَنَّهُ قَالَ: مَنْ قَدَّمَ نُسُكًا عَلَى نُسُكٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ چې نبي ﷺ وفرمايل: "څوک چې يو نسک پر بل نسک مخکې کړي نو پر هغه دم واجب دی" وَلِأَنَّ التَّأْخِيرَ عَنْ الْمَكَانِ يُوجِبُ الدَّمَ فِيمَا هُوَ مُوَقَّتٌ بِالْمَكَانِ كَالْإِحْرَامِ او ځکه چې کوم شی د مکان سره متعين وي لکه احرام نو له خپل مکان څخه د هغه وروسته کول دم واجبوي فَكَذَا التَّأْخِيرُ عَنْ الزَّمَانِ فِيمَا هُوَ مُوَقَّتٌ بِالزَّمَانِ لهذا کوم شی چې د زمان سره متعين وي له خپلې زمانې څخه به د هغه وروسته کول هم دم واجبوي.

---

• القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:٢، ص: ٢٢٦. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٨]

**اللغات:** ﴿أخر﴾ د تفعیل ماضي ده: ځنډول، وروسته کول. ﴿مضت﴾ د ضرب ماضي ده: تېر بېدل.

**تشریح:** په دې عبارت کي صرف دیوه أصل او قاعدې سره اړوند مسئلې بیان سوي دي. هغه أصل او قاعده دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د حج له مناسکو څخه یو نسک ځنډول دم واجبوي. لېکن د صاحبینو په نېز دم نه واجبوي. (ښکاره دي وي چي د سر د خرېلو او کوچني کولو ورځي ایامِ نحر دي. یعني د نحر او قرباني ورځي چي په علمه اصطلاح مونږ ور ته دلوی اختر ورځي وایو).

په عبارت کي دبیان سوي مسئلې حاصل دا دی که یو محرم سر خرېل یا د سر کوچني کول(حلق او قصر) له ایامِ نحر څخه وځنډول، یعني په دې ورځو کي یې نه حلق وکړی او نه قصر، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه یو دم واجبېږي، او همدارنګه که هغه طواف زیارت وځنډوی، نو هم دم واجبېږي. لېکن د صاحبینو په نېز په دې دواړو صورتونو کي قرباني نه واجبېږي، د امام صاحب او صاحبینو په مېنځ کي همدا اختلاف هغه وخت دی چي کله یو څوک د جمرهٔ عقبه رمي له یومُ النحر یعني د ذو الحجې د لسمي ورځي څخه تر یوولسمي ورځي پوري وځنډوي، او د یوولسمي ورځي رمي تر دولسمي او د دولسمي رمي تر دیارلسمي او د دیارلسمي رمي تر څوارلسمي پوري وځنډوي، نو د امام صاحب په نېز د دې ځنډولو په وجه دم واجبېږي، او د صاحبینو په نېز نه واجبېږي، او که د حج یو نسک یې پر بل نسک مخکي کړی، مثلاً حلق یې پر رمي مخکي کړی، یا قارن یا متمتع تر رمي مخکي دمِ تمتع(د تمتع قرباني) حلاله کړه، یا محرم د قرباني تر حلالولو مخکي حلق وکړی، نو په دې ټولو صورتونو کي د امام صاحب په نېز دم واجبېږي، او د صاحبینو په نېز نه واجبېږي.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چي دم د پرېښوولو په وجه واجبېږي، نه د ځنډولو په وجه، او له دې ذکر سوو مسئلو څخه په یوه مسئله کي هم هیڅ واجب او نسک پرېښوول سوی نه دی، بلکي له خپل وخت څخه مخکي سوی یا وروسته سوی دی، او کوم شی چي له خپل وخت څخه وروسته یا مخکي سي، د هغه تلافي په قضاء سره کېدای سي، او د کوم شي تلافي چي په قضاء سره کېدای سي، په هغه کي به له قضاء څخه علاوه بل هیڅ شی نه واجبېږي، نو ځکه به په دې ذکر سوو شیانو کي دم نه واجبېږي.

**د امام صاحب دلیل:** د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْه حدیث دی، او په ځیني نسخو کي د ابن مسعود پر ځای ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لیکل سوی دی، حدیث دا دی چي کوم سړی یو نسک پر بل نسک مخکي کړي نو پر هغه دم واجبېږي.

ولأن التأخیر الخ دوېم عقلي دلیل دا دی: کوم نسک چي دیو مکان سره خاص وي، هغه که له خپل مکان څخه وروسته کړی سي، نو دم واجبېږي، مثلاً که حاجي بغیر له احرام څخه تر میقات تېر سي، او بیا احرام وتړي، نو پر هغه دم واجبېږي، همداسي به کوم نسک چي دیوې زمانې سره خاص وي، هغه که له خپلي زمانې څخه وروسته کړی سي، نو پر هغه به هم دم واجبېږي، ځکه چي په علمه توګه د زمان او مکان حکم یو وي.

## حلق یا قصر ځنډول یا له حرم څخه دباندي کول

وَإِنْ حَلَقَ فِي أَيَّامِ النَّحْرِ فِي غَيْرِ الْحَرَمِ بیا که محرم د قرباني په ورځو کي له حرم څخه ماسوا (بل ځای) سر وخرېي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی وَمَنِ اعْتَمَرَ فَخَرَجَ مِنَ الْحَرَمِ وَقَصَّرَ او څوک چي عمره وکړي بیا له حرم څخه ووځي

او وربېښتيان کوچني کړي لَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ● نو د طرفينو په نيز پر هغه (هم) دم واجب دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او امام ابو يوسف فرمايي: چې پر هغه هيڅ شی واجب نه دی قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: ذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ قَوْلَ أَبِي يُوسُفَ فِي الْمُعْتَمِرِ صاحب د هدايې فرمايي: چې امام محمد په جامع صغير کې د امام ابو يوسف قول د عمره کونکي په حق کې ذکر کړی دی وَلَمْ يَذْكُرْهُ فِي الْحَاجِّ او د حج کونکي په حق کې يې نه دی ذکر کړی قِيلَ: هُوَ بِالِاتِّفَاقِ (او) ويل سوي دي: چې دا مسئله بالاتفاق ده (چې دم پر واجب دی) لِأَنَّ السُّنَّةَ جَرَتْ فِي الْحَجِّ بِالْحَلْقِ بِمِنًى ځکه چې په حج کې د سر خريلو سنت په منیٰ کې جاري دی وَهُوَ مِنَ الْحَرَمِ او منیٰ له حرم څخه ده وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ عَلَى الْخِلَافِ او صحيح دا ده چې دا مسئله پر اختلاف ده هُوَ يَقُولُ: الْحَلْقُ غَيْرُ مُخْتَصٍّ بِالْحَرَمِ امام ابو يوسف فرمايي: چې د سر خريل د حرم سره خاص نه دي لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ أُحْصِرُوا● بِالْحُدَيْبِيَةِ وَحَلَقُوا فِي غَيْرِ الْحَرَمِ ځکه چې نبي ﷺ او صحابه په حديبيه کې ايسار کړی سول او هغوی له حرم څخه دباندې سرونه وخريل وَلَهُمَا أَنَّ الْحَلْقَ لَمَّا جُعِلَ مُحَلِّلًا او د طرفينو دليل دا دی چې کله حلق مُحلل وګرځېدی صَارَ كَالسَّلَامِ فِي آخِرِ الصَّلَاةِ نو داسې سو لکه د لمانځه په آخر کې چې سلام دی فَإِنَّهُ مِنْ وَاجِبَاتِهَا ځکه سلام (هم) د لمانځه له واجباتو څخه دی وَإِنْ كَانَ مُحَلِّلًا که څه هم سلام حلالونکی دی فَإِذَا صَارَ نُسُكًا نو کله چې حلق نسک دی اِخْتَصَّ بِالْحَرَمِ نو د حرم سره به خاص وي كَالذَّبْحِ لکه (څاروی) حلالول وَبَعْضُ الْحُدَيْبِيَةِ مِنَ الْحَرَمِ او د حديبيې بعضې حصه په حرم کې داخل ده فَلَعَلَّهُمْ حَلَقُوا فِيهِ نو کېدای سي چې هغوبه په دې حصه کې سرونه خريلي وي فَالْحَاصِلُ أَنَّ الْحَلْقَ يَتَوَقَّتُ بِالزَّمَانِ وَالْمَكَانِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ حاصل دا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز سر خريل د زمان او مکان دواړو سره خاص دي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا يَتَوَقَّتُ بِهِمَا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د دواړو سره خاص نه دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَتَوَقَّتُ بِالْمَكَانِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د مکان سره خاص دي دُونَ الزَّمَانِ نه د زمانې سره وَعِنْدَ زُفَرَ يَتَوَقَّتُ بِالزَّمَانِ دُونَ الْمَكَانِ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز به د زمانې سره خاص وي، نه د مکان سره وَهَذَا الْخِلَافُ فِي التَّوْقِيتِ فِي حَقِّ التَّضْمِينِ بِالدَّمِ او دا د زمان يا مکان سره د خاصېدلو اختلاف د دم د واجبېدلو په حق کې دی وَأَمَّا فِي حَقِّ التَّحَلُّلِ فَلَا يَتَوَقَّتُ بِالِاتِّفَاقِ لېکن د حلال کېدلو په حق کې خو بالاتفاق خاص نه دي.

**اللغات:** ﴿جرت﴾ د ضرب ماضي ده: جاري کېدل، ﴿أحصروا﴾ منع کړی سول، بند کړی سول (ايسار کړی سول)، ﴿يتوقت﴾ د تفعّل مضارع ده: متعين کېدل، مؤقت کېدل، (خاصېدل)، ﴿تحلّل﴾ د تفعّل مصدر دی: احرام خلاصول.

---

● القول الراجح: هو هذا قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص: ٢٢٥. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٩]

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الشروط، باب الشروط في الجهاد والمصالحة، حديث رقم: ٢٧٣١، ٢٧٣٢.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱) اوله مسئله دا ده که حاجي د نحر په ورځو کي له حرم څخه بهاندې حلق وکړي (يعني سر وخريي). (۲) دوهمه مسئله دا ده که يو سړی عمره وکړي او تر طواف او سعی کولو وروسته له حرم څخه دباندي ولاړ سي، او هلته (د عمرې) حلق يا قصر وکړي، نو د طرفينو په نېز په دې دواړو مسئلو کي پر محرم دم واجبيږي، او د امام ابو يوسف په نېز په دواړو مسئلو کي هيڅ شی نه واجبيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: اصل دا دی چي دا دواړه مسئلې د طرفينو او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په مينځ کي مختلف فيها دي. که څه هم امام محمد په جامع صغير کي د امام ابو يوسف دا قول لا شئ عليه د عمره کونکي سره خاص کړی دی، او د حاجي په باره کي د دم د وجوب يا عدمِ وجوب هيڅ صراحت کړی نه دي، په دې لړ کي د ځينو حضراتو رايه دا ده چي که حاجي له حرم څخه دباندي حلق وکړي، نو بالاتفاق پر هغه دم واجبيږي، د طرفينو په نېز هم او د امام ابو يوسف په نېز هم. ځکه چي په حج کي سنت همدغه ده چي حلق په منیٰ کي وسي، او څرنګه چي منیٰ په حرم کي ده. نو ځکه به له منیٰ او حرم څخه خارج پر حلق کونکي د سنت پرېښوولو په وجه دم لازميږي.

والأصح الخ لېکن صحيح دا ده چي دا مسئله مختلف فيه ده، او له حرم څخه خارج پر حلق کونکي د طرفينو په نېز خو دم لازميږي، لېکن د امام ابو يوسف په نېز نه لازميږي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي حلق کول د حرم سره خاص نه دي، ځکه کله چي نبي ﷺ او صحابه په حديبيه کي له حج څخه منع کړی سول، نو نبي ﷺ او صحابه وو هلته حلق وکړی، او حديبيه له حرم څخه خارج ده، نو که له حرم څخه خارج د حلق په وجه دم واجبېدلای، نو نبي ﷺ او صحابه وو به په حديبيه کي حلق نه کولای، يا خو به يې دم (يعني قرباني) کولای، لېکن نبي ﷺ نه په خپله قرباني وکړه، او نه يې صحابه وو ته د دې حکم وکړی، نو له دې څخه دا خبره څرګنديږي چي له حرم څخه خارج حلق کول جرم نه دي، او کله چي جرم نه دي، نو دم به هم نه واجبيږي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي څرنګه سلام د لمانځه لپاره محلل دی، او د لمانځه له واجباتو څخه دی، همدا ډول حلق هم د حج لپاره محلل دی، او د حج له واجباتو او مناسکو څخه دی، او د حج ټوله افعال، ارکان، مناسک او واجبات د حرم سره خاص دي، او په حرم کي د هغو اداء کول ضروري دي، نو ځکه به له حرم څخه خارج او دباندي حلق کول جرم وي، لهذا موجب د دم به هم وي، او د امام ابو يوسف دا وينا "چي نبي ﷺ او صحابه وو په حديبيه کي حلق کړی وو، او حديبيه له حرم څخه خارج ده" موږ نه منو، ځکه چي د حديبيې يوه حصه په حرم کي داخله ده، نو ډېره ممکنه ده چي نبي ﷺ او صحابه وو به دې په دې حصه کي حلق کړی وي، لهذا په دې قصې سر دليل نيول صحيح نه دي.

فالحاصل الخ د دې حاصل دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په حج کي حلق د زمان او مکان دواړو سره خاص دی، له زمان څخه مراد ايامِ نحر او له مکان څخه مراد حرم دی، او د حاجي لپاره په حرم کي او په ايامِ نحر کي حلق کول ضروري دي، نو که يو حاجي په ايامِ نحر کي حلق وکړي، لېکن له حرم څخه يې دباندي وکړي، يا له ايامِ نحر څخه ماسوا په نورو ورځو کي په حرم کي حلق وکړي، نو په دواړو صورتونو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه دم واجبيږي.

د دې په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز حلق کول نه د زمان سره خاص دي، او نه د مکان سره، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز خو د مکان يعني د حرم سره خاص دي، لېکن د زمان يعني د ايامِ نحر سره خاص نه دي، نو که يو سړی له حرم څخه دباندي حلق وکړي، نو پر هغه دم واجبيږي، هو! که يو سړي له ايامِ نحر څخه ماسوا په نورو ورځو کي په حرم کي حلق وکړي، نو پر هغه دم نه واجبيږي، ځکه چي د هغه په نېز حلق کول د زمان يعني د ايامِ نحر سره خاص نه دي.

وهذا الخلاف الخ فرمايي چې د امامانو دا پورتنی اختلاف صرف د دم د وجوب سره تعلق لري، نو کوم حضرات چې حلق د زمان يا د مکان سره خاصوي، د هغوی په نيز د مخالفت په صورت کې دم واجبيږي، او کوم حضرات چې حلق د يوه سره هم نه خاصوي، مثلاً امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله، نو د هغوی په نيز له ايام نحر څخه ماسوا يا له حرم څخه دباندې په حلق سره دم نه واجبيږي، لنډه دا چې د اختلاف تعلق صرف د دم د وجوب سره دی، د حلق د محلل کېدلو سره نه دی، نو لکه څرنګه چې په ايام نحر کې په حلق سره محرم حلاليږي، همدارنګه له ايام نحر څخه ماسوا په نورو ورځو کې له حرم څخه دباندې په حلق سره هم محرم حلاليږي، او دا حکم د ټولو په نيز دی.

## د عمره کونکي لپاره د حلق يا قصر وخت

وَالتَّقْصِيْرُ وَالْحَلْقُ فِي الْعُمْرَةِ غَيْرُ مُؤَقَّتٍ بِالزَّمَانِ بِالْإِجْمَاعِ وربېنتيان کوچني کول يا سر خريل (د ټولو) په اتفاق د زمانې سره خاص نه دي لِأَنَّ أَصْلَ الْعُمْرَةِ لَا يَتَوَقَّتُ بِهِ ځکه چې اصل عمره د زمانې سره خاص نه ده بِخِلَافِ الْمَكَانِ په خلاف د مکان (حرم) لِأَنَّهُ مُؤَقَّتٌ بِهِ ځکه چې عمره د مکان (حرم) سره خاص ده.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې عمره کونکي لره د حلق يا د قصر کولو لپاره هيڅ وخت متعين نه دی، بلکې عمره کونکي چې کله وغواړي حلق يا قصر کولای سي، ځکه کله چې په خپله عمره د زمان سره خاص نه ده، او على الاطلاق د عمرې اداء کول جائز دي، نو د دې ارکان به هم د زمان سره خاص نه وي، او هر وخت به د هغو اداء کول جائز وي، لېکن عمره د مکان يعني د حرم سره خاص ده، نو د دې ارکان به هم د مکان يعني د حرم سره خاص وي، لهذا د عمرې حلق او قصر به په حرم کې کوي.

## د مخکنۍ مسئلې څخه نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ لَمْ يُقَصِّرْ حَتّٰى رَجَعَ وَقَصَّرَ فرمايي: اوکه عمره کونکی قصر نه وکړي تر دې چې واپس راسي او قصر وکړي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا نو د ټولو په اتفاق پر هغه هيڅ شی واجب نه دی مَعْنَاهُ: إِذَا خَرَجَ الْمُعْتَمِرُ ثُمَّ عَادَ د دې مطلب دا دی: چې کله عمره کونکی (له حرام څخه) را ووځي بيا (دوباره) حرم ته واپس راسي لِأَنَّهُ أَتٰى بِهِ فِي مَكَانِهِ ځکه (په دې صورت کې) هغه حلق يا قصر په خپل ځای کې اداء کړی فَلَا يَلْزَمُهُ ضَمَانُهُ نو پر هغه به د دې ضمان نه لازميږي.

**اللغات**: ﴿ضمان﴾ جرمانه.

**تشريح**: تر دې مخکې صاحب د هدايې فرمايلي وه چې د عمرې افعال د مکان يعني د حرم سره خاص دي، نو پر هغه يوه مسئله متفرع کوي فرمايي چې که عمره کونکی د عمرې د ارکانو تر اداء کولو وروسته له حرم څخه ووتی او له حرم څخه دباندې يې حلق يا قصر نه وکړی، بلکې حرم ته بيا واپس راغلی حلق يا قصر يې وکړی، نو پر هغه بالاتفاق هيڅ شی نه واجبيږي، دليل دا دی چې هغه حلق يا قصر په خپل ځای يعني په حرم کې وکړی، نو ځکه به پر هغه فقط د دې ځنډولو په وجه ضمان نه واجبيږي.

## د قارن لپاره تر حلالولو مخکې د حلق حکم

وَإِنْ حَلَقَ الْقَارِنُ قَبْلَ أَنْ يَذْبَحَ بيا كه قارن د څاروي تر حلالولو مخكې سر وخريي فَعَلَيْهِ دَمَانِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو پر هغه د امام صاحب په نېز دوې قرباني واجب دي دَمٌ بِالْحَلْقِ فِي غَيْرِ أَوَانِهِ يو دم د بې وخته سر خريلو په وجه لِأَنَّ أَوَانَهُ بَعْدَ الذَّبْحِ ځکه چي د سر خريلو وخت تر حلالولو وروسته دی وَدَمٌ بِتَأْخِيرِ الذَّبْحِ عَنِ الْحَلْقِ او يو دم له حلق څخه د ذبحې د ځنډولو په وجه وَعِنْدَهُمَا يَجِبُ عَلَيْهِ دَمٌ وَاحِدٌ او د صاحبينو په نېز پر هغه يو دم واجب دی وَهُوَ الْأَوَّلُ او هغه اول دم دی وَلَا يَجِبُ بِسَبَبِ التَّأْخِيرِ شَيْءٌ او د تأخير په وجه (پر هغو) هيڅ شی نه واجبېږي عَلَى مَا قُلْنَا لكه څرنګه چي موږ (مخكې) وويل.

**اللغات:** ﴿أوان﴾ ټاكلی وخت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي كه قران كوونكی سړي د هدي د څاروي تر حلالولو مخكې حلق وكړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه دوه دمه واجبېږي. يو دم خو په دې وجه واجبېږي، چي هغه حلق بې وخته وكړی، ځكه چي د حلق وخت تر حلالولو وروسته دی، او دويم دم په دې وجه واجبېږي، چي هغه د هدي حلالول تر حلق وروسته كړه، ځكه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د واجب شي په ځنډولو سره هم دم واجبېږي، د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې مسئله كي صرف يو دم واجبېږي، او هغه په دې وجه چي هغه حلق تر هدي حلالولو مخكې كړی، او څرنګه چي د صاحبينو په نېز د واجب په ځنډولو سره دم نه واجبېږي، نو ځكه به د هغو په نېز د حلالولو په ځنډولو سره پر هغه هيڅ شی نه واجبېږي.

صاحب د بنايې او صاحب د عنايې وايي چي په دې عبارت كي له كاتب څخه سهوه سوې ده، صحيح مسلک دا دی چي د امام صاحب په نېز په دې صورت كي د حلق او ذبح په تقديم او تأخير سره دوه جلا جلا دمه نه واجبېږي، بلكي صرف يو دم واجبېږي، ځكه چي دا خبره تر لمر سپينه ده چي كله حلق تر حلالولو مخكې كړی سي، نو حلالول به خامخا خپله وروسته كيږي، نو ځكه به يو دم واجبېږي، لهذا د قدوري له دې عبارت فعليه دمان څخه يو دم قران مراد دی، او دويم هغه دم مراد دی كوم چي په حلق او ذبح كي د تقديم او تأخير په وجه واجبېږي.

او صاحب د اثمار الهدايه وايي چي د صاحبينو په نېز چي كوم يو اول دم واجبېږي، له هغه څخه هم مراد دم قِران دی، كوم چي د قِران په شكرانه كي واجب دی، ځكه د صاحبينو أصول تېر سو چي د هغو په نېز د يوه نسک په تقديم او تأخير سره پر محرم هيڅ دم نه لازمېږي.



● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:٢، ص: ٢٢٦. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٣٠]

# فَصْلٌ فِي الصَّيْدِ فِي الْإِحْرَامِ

## (دا) فصل د احرام په حالت کي د ښکار کولو (په بيان کي) دی

**تشريح**: د محرم لپاره دوچي حيوان ښکارول حرام دي، او په جنايت کي داخل دي، خو څرنګه چي د دې جنايت قسم له مخکنيو جناياتو څخه جلا دی، نو ځکه په جلا فصل کي بيانيږي.

### د محرم لپاره کوم ښکار حرام دی؟

اِعْلَمْ أَنَّ صَيْدَ الْبَرِّ مُحَرَّمٌ عَلَى الْمُحْرِمِ پوه سه! چي د وچي (مځکي) ښکار پر محرم حرام دی وَصَيْدَ الْبَحْرِ حَلَالٌ او د درياب (سمندر) ښکار حلال دی لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ [المائدة: ۹۶] إِلَىٰ آخِرِ الْآيَةِ ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "ستاسو لپاره د درياب ښکار حلال دی" د آيت تر آخره پوري وَصَيْدُ الْبَرِّ مَا يَكُونُ تَوَالُدُهُ وَمَثْوَاهُ فِي الْبَرِّ او د وچي ښکار هغه دی چي زيږيلنه او استوګنه يې په وچه کي وي وَصَيْدُ الْبَحْرِ مَا يَكُونُ تَوَالُدُهُ وَمَثْوَاهُ فِي الْمَاءِ او د اوبو ښکار هغه دی چي زيږيلنه او استوګنه يې په اوبو کي وي وَالصَّيْدُ هُوَ الْمُمْتَنِعُ الْمُتَوَحِّشُ فِي أَصْلِ الْخِلْقَةِ او د ښکار حيوان هغه دی چي خپل ځان له ښکاري څخه ژغوري او د اصل خلقت په اعتبار سره وحشي (او نا اموخته) وي وَاسْتَثْنَىٰ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] الْخَمْسَ الْفَوَاسِقَ او نبي ﷺ پنځه بد حيوانان (له ښکار څخه) جلا کړي دي وَهِيَ: الْكَلْبُ الْعَقُورُ او هغه (۱) دارونکی سپی دی وَالذِّئْبُ (۲) او لېوه دی وَالْحِدَأَةُ (۳) او تپوس دی وَالْغُرَابُ (۴) او کارګه دی وَالْحَيَّةُ وَالْعَقْرَبُ (۵) او مار او لړم دي فَإِنَّهَا مُبْتَدِئَاتٌ بِالْأَذَىٰ ځکه چي دا حيوانان (انسان ته) په تکليف رسولو کي وړانديتوب کوي وَالْمُرَادُ بِهِ الْغُرَابُ الَّذِي يَأْكُلُ الْجِيَفَ او له کارګه څخه مراد هغه کارګه دی چي مرداري خوري (يعني مردار سوي حيوانان او ګندګي خوري). هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه رانقل سوي دي.

**اللغات**: ﴿صيد﴾ ښکار، ﴿بر﴾ وچه مځکه، ﴿توالد﴾ د تفاعل مصدر دی: نسل زيږونه، ﴿مثوی﴾ ټکانه، استوګن ځای، ﴿ممتنع﴾ ځان ساتونکی (ځان ژغورونکی)، ﴿متوحش﴾ وحشي، ځنګلي، هغه حيوان چي د انسانانو سره نابلده او نا اموخته وي، ﴿الكلب العقور﴾ داره مار سپی، ﴿ذئب﴾ لېوه، ﴿حدأة﴾ تپوس، ﴿غراب﴾ کارګه (کارغه)، ﴿جيف﴾ جمع د جيفة ده: مرادر سوي حيوانان.

**تشريح**: صورت د مسئلي: دا دی چي د محرم لپاره د وچي حيوانانو او مارغان ښکارول حرام او ناجائز دي، لېکن د دريابي حيوانانو او مارغانو ښکارول صحيح او جائز دي، دليل دا آيت دی: أحل لكم صيد البحر...الخ، صاحب د هدايې فرمايي

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب المناسك، باب ما يقتل المحرم من الدواب، حديث رقم: ۱۸۴۶.

چې دوچې حيوان هغه ته ويل کيږي چې د هغه توالد او ټکانه په وچه کې وي، او د دریاب ښکار هغه ته ويل کيږي چې د هغه توالد او ټکانه يې په اوبو کې وي، او ښکار هغه حيوان ته ويل کيږي، چې خپل ځان له ښکاري څخه ساتي، او په اصل فطرت کې وحشي او ترهېدونکی وي.

واستثنى الخ اوس ذکر سوه چې د وچې حيوانان ښکارول د محرم لپاره ناجائز دي، خو نبي ﷺ له دې څخه پنځه ياغي او سرکښه حيوانان مستثنىٰ کړي دي، او د هغو وژل او نيول يې مباح کړځولوي دي، هغه پنځه حيوانان دا دي: ① داړونکی او خوله اچونکی سپی، ② لېوه، ③ ټپوس، ④ کارګه، ⑤ مار ⑥ لړم.

په حديث کې د فواسق لفظ راغلی دی، فواسق د فاسقة جمع ده، ځرنګه چې دا خبيث او ناکاره حيوانان دي، نو ځکه هغو ته فواسق وويل سول، او بل دا چې په حديث کې د خمس لفظ راغلی دی، لېکن دا حيوانان شپږ دي، د دې جواب دا دی چې په حديث کې ذئب او کلب عقور دواړه يو دي، ليکن په شمېر کې دواړه جلا ذکر سول، دويم جواب دا دی چې له الخمس الفواسق څخه د پنځو انحصار او حصر بيانول مقصود نه دي، لهذا تر پنځو زياتېدل به د حديث منافي نه وي. (بنايه ج۴، ص۳۰۲)، حاصل دا چې د احرام په حالت کې د دې حيواناتو وژل په دې وجه جائز دي، چې دا حيوانان بغير له دې څخه چې انسان لاس په ووهي په تکليف ورکولو سره شروع کوي، او له کارګه څخه مراد هغه کارګه دی چې مرداري خوري، همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه رانقل سوي دي.

## د احرام په حالت کې د ښکار د سزا بيان

قَالَ: وَإِذَا قَتَلَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا فرمايي: او کله چې محرم د ښکار حيوان قتل کړي أَوْ دَلَّ عَلَيْهِ مَنْ قَتَلَهُ يا داسي سړي ته ښکار ور وښيي چې هغه يې قتل کړي فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ نو پر هغه جزاء واجب ده أَمَّا الْقَتْلُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ هر چې قتل دی نو ځکه چې الله تعالىٰ فرمايلي دي: "تاسو د احرام په حالت کې د ښکار حيوان مه وژنئ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ [المائدة: ۹۵] او که چا هغه قصداً قتل کړی نو (پر هغه) جزاء ده" نَصٌّ عَلَىٰ إِيجَابِ الْجَزَاءِ دا آيت د جزاء په واجبولو کې صريح دی وَأَمَّا الدَّلَالَةُ فَفِيهَا خِلَافُ الشَّافِعِيِّ هر چې د ښکار ښوونه ده نو په هغه کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُوَ يَقُولُ: الْجَزَاءُ تَعَلَّقَ بِالْقَتْلِ هغه فرمايي: چې جزاء د قتل سره تعلق لري وَالدَّلَالَةُ لَيْسَتْ بِقَتْلٍ او د ښکار ښوونه قتل نه دی فَأَشْبَهَ دَلَالَةَ الْحَلَالِ حَلَالًا نو دا مشابه سو (د دې سره چې) يو حلال سړی بل حلال سړي ته (د ښکار) ښوونه وکړي وَلَنَا مَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ[●] أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او زموږ [اول] دليل د ابو قتاده هغه حديث دی کوم چې موږ روايت کړی وَقَالَ عَطَاءٌ: أَجْمَعَ النَّاسُ عَلَىٰ أَنَّ عَلَى الدَّالِّ الْجَزَاءَ [دويم دليل] او عطاء رَحِمَهُ الله ويلي دي: چې خلکو پر دې خبره اجماع کړې ده چې پر دلالت کونکي (ښوونکي) هم جزاء سته وَلِأَنَّ الدَّلَالَةَ مِنْ مَحْظُورَاتِ الْإِحْرَامِ [دريم دليل] او ځکه چې دلالت کول د احرام له ممنوعاتو څخه دي وَلِأَنَّهُ

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج باب تحريم الصيد المأكول البرى حديث رقم: ۶۱، ۶۳، ۶۴.

تَفْوِيْتُ الْأَمْنِ عَلَى الصَّيْدِ [لملزوم دليل] او ځکه چي دلالت کول د ښکار أمن فوتول دي إِذْ هُوَ آمِنٌ بِتَوَحُّشِهٖ وَتَوَارِيْهِ ځکه چي ښکار د خپل وحشت او پټېدلو په وجه په امن کي وي فَصَارَ كَالْإِتْلَافِ نو (دا) د تلف کولو (هلاکولو) سره مشابه سو وَلِأَنَّ الْمُحْرِمَ بِإِحْرَامِهٖ اِلْتَزَمَ الْإِمْتِنَاعَ عَنِ التَّعَرُّضِ [پنځم دليل] او ځکه چي محرم په خپل احرام سره (دا) پر ځان لازمه کړې ده چي پر ښکار به تعرّض نه کوي (يعني په ښکار به لاس نه وهي) فَيَضْمَنُ بِتَرْكِ مَا الْتَزَمَهٗ نو د کوم شي التزام چي يې کړی دی د هغه په پرېښوولو سره به ضامن کېږي كَالْمُوْدَعِ لکه هغه څوک چي هغه ته امانت اېښوول سوی وي بِخِلَافِ الْحَلَالِ لِأَنَّهٗ لَا الْتِزَامَ مِنْ جِهَتِهٖ [شپږم دليل] په خلاف د حلال سړي، ځکه چي د حلال سړي له طرفه هيڅ التزام نسته عَلٰى أَنَّ فِيْهِ الْجَزَاءَ [اووم دليل] او دا هم ده چي د حلال سړي په دلالت کولو کي جزاء (هم) سته عَلٰى مَا رُوِيَ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ وَزُفَرَ لکه څرنګه چي له امام ابو يوسف او امام زفر رَحِمَهُ الله څخه راويت سوي دي وَالدَّلَالَةُ الْمُوْجِبَةُ لِلْجَزَاءِ او کوم دلالت چي جزاء واجبوي هغه دا دی أَنْ لَا يَكُوْنَ الْمَدْلُوْلُ عَالِمًا بِمَكَانِ الصَّيْدِ چي مدلول به د ښکار په ځای خبر نه وي وَأَنْ يُصَدِّقَهٗ فِي الدَّلَالَةِ او دا چي مدلول په دلالت کي د ښوونکي تصديق (هم) وکړي حَتّٰى لَوْ كَذَّبَهٗ وَصَدَّقَ غَيْرَهٗ تر دې که هغه د ښوونکي تکذيب وکړي او د بل سړي تصديق وکړي لَا ضَمَانَ عَلَى الْمُكَذَّبِ نو د چا تکذيب چي سوی دی پر هغه ضمان نسته (يعني پر ښوونکي ضمان نسته) وَلَوْ كَانَ الدَّالُّ حَلَالًا فِي الْحَرَمِ او که ښوونکی په حرم کي حلال وو لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو پر هغه هيڅ شی نسته لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي مو ړ ذکر کړی.

**اللغات**: ﴿دلّ﴾ د نصر ماضي ده: ښوونه (دلالت کول)، د ښکار د ځای خبر ورکول. ﴿تفويت﴾ د تفعيل مصدر دی: نوتول (فوت کول)، ﴿تواري﴾ د تفاعل مصدر دی: پټېدل، پټ اوسېدل. ﴿كذّب﴾ د تفعيل ماضي ده: درواغجن ګڼل، تکذيب کول. ﴿دالّ﴾ د ښکار ورښوونکی. ﴿مدلول﴾ هغه چي ښکار ور وښوول سي.

**تشريح**: په دې اوږده عبارت کي صرف دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱) اوله مسئله متفق عليه او اجماعي ده. هغه دا ده چي د محرم لپاره د وچې مځکي ښکار قتلول حرام او ناجائز دي، دليل دا آيت دی: لا تقتلوا الصيد و أنتم حرم ومن قتله منكم متعمدا فجزاء مثل ما قتل من النعم [المائده: ۹۲]، نو دې فرمان ته په کتني سره د محرم لپاره بذات خود ښکار کول حرام دي. (۲) دويمه مسئله چي هغه مختلف فيه ده، دا ده چي څرنګه زموږ په نېز د محرم لپاره ښکار کول حرام دي، همدارنګه د محرم لپاره يو چا ته د ښکار خبر ورکول او د ښکار ور ښوول هم حرام دي، همدا وجه ده که محرم بل سړي ته ښکار ور وښووی او بل سړي ښکار قتل کړی، نو پر دې محرم به د دلالت په وجه جزاء واجب وي، لېکن امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله دلالت جرم نه ګڼي، او په دې صورت کي د هغه په نېز پر محرم جزاء نه واجبېږي.

**دليل**: د دې حضراتو دليل دا دی چي په دې آيت ومن قتله منكم متعمدا الخ کي د جزاء وجوب د ښکار د قتل سره متعلق دي، او په دلالت کولو او ښوولو کي د قتل معنیٰ نسته، نو داسي سو لکه يو حلال سړی چي بل حلال سړي ته په حرم

کې ښکار ور وښيي، او هغه يې قتل کړي، نو جزاء پر دالّ نه واجبيږي، بلکې پر مدلول واجبيږي، ځکه چې په حرم کې ښکار قتل کړی، نو همدارنګه چې کله محرم دال وي، نو پر هغه به هم جزاء واجب نه وي.

زمو دليل: د حضرت ابو قتاده رضي الله عنه دا حديث کوم چې د باب الإحرام په اول کې تېر سو: أنه أصاب حمار وحش وهو حلال و أصحابه محرمون فقال النبي ﷺ لأصحابه هل أشرتم هل دللتم هل أعنتم فقالوا لا فقال إذاً فكلوا. د حديث ترجمه او طريقه د استدلال هم د باب په اول کې ذکر سول.

دويم دليل: دا دی چې له حضرت عطاء ابن رباح رَحِمَهُ الله څخه دا رانقل سوي دي چې مسلمانانو پر دې خبره اجماع کړې ده چې پر دلالت کونکي جزاء واجب ده، صاحب د بنايې ليکلي دي: قال الطحاوي: هو مروی عن عدة من الصحابة ولم يروى عنهم خلافه فكان إجماعاً (بنايه ج ۲، ص ۳۰۷).

دريم دليل: دا دی چې دلالت کول د احرام له ممنوعاتو څخه دی، او کوم شی چې د احرام له ممنوعاتو څخه وي، د هغه ارتکاب کول يقيناً جزاء واجبوي.

څلورم دليل: دا دی چې هر ښکار او صيد په أمن کې وي، او خپل ځان له ښکاريانو څخه خوندي ساتي، نو څرګنده خبره ده چې کوم سړی بل چا ته د ښکار خبر ورکوي، او ښکار ور وښيي، هغه د ښکار امن فوتوي، او امن فوتول د هغه د هلاکولو او تلف کولو په څېر دي، او هلاکول جزاء واجبوي، لهذا پر ښوونکي او دلالت کونکي به هم جزاء واجب وي.

پنځم دليل: دا دی چې محرم د احرام په تړلو سره پر ځان د دې خبري التزام کړی دی، چې هغه به د احرام له ممنوعاتو څخه ګوښه اوسيږي، ښکار او نورو ممنوعاتو ته به نه ور نژدې کيږي، لېکن کله چې هغه د ښکار خبر ورکړی، يا يې په خپله ښکار قتل کړی، نو خپل دغه التزام يې پرېښووی، او د التزام په پرېښوولو سره جزاء واجبيږي، نو ځکه به پر هغه هم جزاء واجب وي، لکه يو سړی چې خپل مال بل چاته په امانت کېښيږدي، نو مُودَع (چا ته چې امانت اېښوول سوی دي) پر ځان د دې خبري التزام کوي چې هغه به د دې مال حفاظت کوي، لېکن که مودَع دا ضايع کړی، نو د التزام د پرېښوولو په وجه به پر هغه ضمان واجبيږي، نو همداسي به په دې مسئله کې هم د التزام د پرېښوولو په وجه پر محرم جزاء واجبيږي.

شپږم دليل: بخلاف الحلال الخ دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله جواب هم دی، هغه په دليل کي ويلي وو چې که حلال سړی بل چا ته ښکار ور وښيي نو پر هغه ضمان نه لازميږي، همداسي به پر محرم هم نه لازميږي، نو د هغه جواب ورکوي چې فرمايي: که حلال سړی بل چا ته د ښکار ښوونه وکړي، نو پر هغه هيڅ جزاء نه واجبيږي، ځکه چې هغه پر ځان د هيڅ شي التزام کړی نه دي، نو ځکه به د ښوولو او دلالت کولو په وجه پر هغه جزاء نه واجبيږي، لهذا د امام شافعي رَحِمَهُ الله ليارہ محرم پر حلال قياسول صحيح نه دي.

اووم دليل: على أن فيه الخ دا امام شافعي دويم جواب هم دی، فرمايي چې يو روايت دا هم دی چې د امام ابو يوسف او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز که حلال دالّ د حرم پر ښکار دلالت وکړی، نو پر هغه هم جزاء واجب ده، نو په دې روايت سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس ګنجايش نور هم ختميږي.

والدلالة الخ صاحب د هدايې فرمايي چې هغه ښوونه او دلالت کوم چې جزاء واجبوي، دا دی چې مدلول ته د ښکار ځای معلوم نه وي، خو که مدلول ته د ښکار ځای معلوم وو، نو پر محرم دال جزاء نه واجبيږي، دويم شرط دا دی چې کله

دال و مدلول ته ښکار ور وښيي، نو مدلول به هغه ريښتونى ګڼي، او د دال تصديق به کوي، خو که مدلول دال دروغجن وګڼي، او دويم سړى يې ريښتونى وګڼي، او د دويم سړي په خوله يې ښکار قتل کړي، نو څوک چي يې دروغجن ګڼلى دى، پر هغه جزاء نه واجبيږي، هو! که دا دويم سړى محرم وو، نو پر هغه هم جزاء واجبيږي.

ولو كان الخ او که دال په حرم کي حلال وو، محرم نه وو، نو پر هغه جزاء نه واجبيږي، دليل مخکي تېر سو چي هغه پر ځان د هيڅ شي التزام کړى نه دي.

## د احرام په حالت کي په هېره او قصداً د ښکار کونکي حکم

وَسَوَاءٌ فِي ذَلِكَ الْعَامِدُ وَالنَّاسِيْ او په ضمان کي قصداً (ښکار) کونکى او په هيره (ښکار) کونکى دواړه برابر دي لِأَنَّهُ ضَمَانٌ يَعْتَمِدُ وُجُوْبُهُ الْإِتْلَافُ ځکه چي جزاء داسي ضمان دى چي د هغه د وجوب دارومدار پر تلف کولو (او هلاکولو) دى فَأَشْبَهَ غَرَامَاتِ الْأَمْوَالِ نو دا د مالي تاوانونو سره مشابه سو وَالْمُبْتَدِئُ وَالْعَائِدُ سَوَاءٌ او اول وار حمله کونکى او دويم وار حمله کونکى دواړه برابر دي لِأَنَّ الْمُوْجِبَ لَا يَخْتَلِفُ ځکه چي واجبونکى شى مختلف نه دى.

**اللغات:** ﴿سواء﴾ برابر دي، ﴿غرامات﴾ تاوانونه، جرمانې، ﴿عائد﴾ دويم ځل د يو کار کونکى، راګرځېدونکى، ﴿موجب﴾ واجبونکى، د وجوب سبب.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دى چي قصداً قتل کونکى او په هېره قتل کونکى همدارنګه قصداً دلالت کونکى او په هېره دلالت کونکى ټوله د ضمان په وجوب کي برابر دي، يعني څرنګه چي د قصداً قتل کولو او قصداً دلالت کولو په وجه جزاء واجبيږي، همدارنګه به د هيري په صورت کي هم د دې دواړو په وجه جزاء واجبيږي، ځکه چي د ښکار جزاء داسي ضمان دى چي د هغه مدار پر إتلاف او هلاک دى، يعني د تلف کولو او هلاکولو په وجه جزاء واجبيږي، او تلف کول په قصد او هيره دواړو کي سته، نو جزاء به هم په دواړو صورتونو کي واجب وي، او دا دمالي تاوان سره مشابه دي، نو که يو څوک د يو چا مال قصداً هلاک کړي يا په هېره، په دواړو صورتونو کي پر هغه تاوان واجبيږي.

والمبتدئ الخ فرمايي چي د جزاء د وجوب په باره کي اول وار حمله کونکى او تر يوه وار حمله کولو وروسته دويم وار حمله کونکى دواړه برابر دي، نو څرنګه چي پر اول وار حمله کونکي جزاء واجبيږي، همدارنګه پر دويم وار حمله کونکي هم جزاء واجبيږي، ځکه چي د جزاء د واجبېدلو مدار پر اتلاف دى، او اتلاف په دواړو کي سته.

(د اول وار حمله کونکي صورت دا دى چي ښکار په يوه ځل غشي ويشتلو مړ کړي، نو د دې جزاء هم واجب ده، او د دويم وار حمله کونکي صورت دا دى چي يو ځل ښکار په غشي اوولي، او هغه پر ښکار ولګيږي، لېکن ښکار مړ نه سي، بيا يې په دويم ځل غشي ويشتلو مړ کړي، دې ته عائد يا دويم وار حمله کونکى وايي، نو په دې صورت کي هم د ښکار جزاء واجب ده).

## د ښکار د جزاء د اداء کولو طريقه

وَالْجَزَاءُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او د ښکار جزاء (بدله) د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا ده أَنْ يُقَوَّمَ الصَّيْدُ فِي الْمَكَانِ الَّذِيْ قُتِلَ فِيْهِ چي د ښکار قيمت به په هغه ځای کي اندازه کړی سي (معلوم کړی سي) چيري چي هغه وژل سوی وي أَوْ فِيْ أَقْرَبِ الْمَوَاضِعِ مِنْهُ إِذَا كَانَ فِيْ بَرِّيَّةٍ يا به (په هغه ځای کي معلوم کړی سي چي) د ښکار د وژلو ځای ته نژدې

(وي) كله چي ښكار په دښت(او صحراء) كي وي ﴿فَيُقَوِّمُهُ ذَوَا عَدْلٍ﴾ نو د هغه قيمت به اندازه كړي دوه عادله خلګ(يعني دوه عادل خلګ به د وژل سوي حيوان قيمت معلوم كړي) ﴿ثُمَّ هُوَ مُخَيَّرٌ* فِي الْفِدَاءِ﴾ بيا وژونكي محرم ته په فديه وركولو كي اختيار دى ﴿إِنْ شَاءَ ابْتَاعَ بِهَا هَدْيًا﴾ كه وغواړي نو په دغه قيمت سره دي د هدي څاروى رانيسي ﴿وَذَبَحَهُ﴾ او هغه دي حلال كړي ﴿إِنْ بَلَغَتْ هَدْيًا﴾ په دې شرط چي دا قيمت د هدي د څاروي و قيمت ته رسيږي ﴿وَإِنْ شَاءَ اشْتَرَى بِهَا طَعَامًا﴾ او كه وغواړي نو په دغه قيمت سره دي طعام رانيسي ﴿وَتَصَدَّقَ عَلَى كُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ﴾ او پر هر مسكين دي د غنمو نيم صاع يا د كجورو او اوربشو يو صاع صدقه كړي ﴿وَإِنْ شَاءَ صَامَ﴾ او كه وغواړي نو (د هر نيم صاع غنمو په بدله كي دي يوه ورځ) روژه ونيسي ﴿عَلَى مَا نَذْكُرُ﴾ چي هغه به موږ (وروسته) ذكر كړو(انشاء الله تعالىٰ).

**اللغات:** ﴿يقوم﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: قيمت لګول، قيمت معلومول، د قيمت اندازه كول. ﴿فداء﴾ فديه وركول. ﴿ابتاع﴾ د افتعال ماضي ده: رانيول. ﴿بُر﴾ غنم.

**تشريح:** په دې عبارت كي بيان سوې مسئله ډېره آسانه ده، تفصيل يې دا دى چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د ښكارجزاء دا ده چي په كوم ځاى كي ښكار قتل كړى سي، د هغه ځاى دوه عادله خلګ يا كه په دښت او صحراء كي قتل كړى سي نو د دښت سره د نژدې ځاى دوه عادله خلګ دي د حيوان قيمت اندازه كړي، او هغه قيمت به محرم ته ور وښيي، وروسته بيا محرم ته د فديه وركولو په باره كي د دريو خبرو اختيار سته: (۱) كه دا قيمت د هدي د څاروي سره برابر وي، نو كه د هغه خوښه وي په دې قيمت سره دي د هدى څاروى رانيسي، او غوښې دي يې پر مسكينانو تقسيم كړي، (۲) او كه د هغه زړه غواړي نو په دې قيمت دي غله رانيسي، او د سرسايې په اندازه دي يې پر مسكينانو تقسيم كړي، يعني كه غنم وي، نو هر مسكين ته دي نيم صاع وركړي، او كه كجوري يا اوربشي وي، نو يو صاع دي وركړي، (۳) دريم اختيار دا دى چي د هر نيم صاع غنمو يا د يوه صاع كجورو... په بدله كي دي روژه ونيسي، د روژې تفصيلات به انشاء الله وروسته ذكر سي.

## په ښكار كي د حيوان د مثل د وجوب تفصيل

وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ: تَجِبُ فِي الصَّيْدِ النَّظِيرُ فِيمَا لَهُ نَظِيرٌ امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د كومو حيوانانو مثل وي په ښكار كي به د هغو مثل واجبيږي ﴿فَفِي الظَّبْيِ شَاةٌ﴾ نو په هوسۍ كي به بزه واجب وي ﴿وَفِي الضَّبُعِ شَاةٌ﴾ او په كوړ كي به(هم) بزه واجب وي ﴿وَفِي الْأَرْنَبِ عَنَاقٌ﴾ او په سوی كي به سېرلى(يعني د بزې بچى چي يوه كال ته نژدې وي) واجب وي ﴿وَفِي الْيَرْبُوعِ جَفْرَةٌ﴾ او په خاني كي به د بزې څلور مياشتنى بچى واجب وي ﴿وَفِي النَّعَامَةِ بُدْنَةٌ﴾ او په شترمرغ كي به اوښ واجب وي ﴿وَفِي حِمَارِ الْوَحْشِ بَقَرَةٌ﴾ او په وحشي خره كي به غوا واجب وي ﴿لِقَوْلِهِ تَعَالَى:﴾

*القول الراجح: هو هذا قول الشيخين، كذا في رد المحتار ج:۲ ص: ۲۳۲ [القول الراجح ج:۱ ص: ۲۳۱]

فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ [المائدة: ٩٥] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "نو جزاء واجب ده په مثل د قتل سوي(حيوان) له څارويانو څخه" وَمِثْلُهُ مِنَ النَّعَمِ مَا يُشْبِهُ الْمَقْتُولَ صُورَةً او له څارويانو څخه د قتل سوي(حيوان) مثل هغه دی چي په شکل کي د قتل سوي(حيوان) سره مشابه وي لِأَنَّ الْقِيمَةَ لَا تَكُونُ نَعَمًا ځکه چي قيمت څارويان نه دي وَالصَّحَابَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَوْجَبُوا النَّظِيرَ مِنْ حَيْثُ الْخِلْقَةُ وَالْمَنْظَرِ فِي النَّعَامَةِ وَالظَّبْيِ وَحِمَارِ الْوَحْشِ وَالْأَرْنَبِ او صحابه وو(هم) په شترمرغ، هوسی، وحشي خره او سوی کي د خلقت او شکل په اعتبار مثل واجب کړی دی عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه موږ چي(اوس په خپل قول کي)بيان کړه (و دې قول ته اشاره کوي: ففي الظبي شاة الی آخره...) وَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1]: الضَّبْعُ صَيْدٌ او نبي ﷺ فرمايلي دي: "چي کوږ ښکار دی وَفِيهِ الشَّاةُ او په هغه کي بزه واجب ده" وَمَا لَيْسَ لَهُ نَظِيرٌ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ تَجِبُ فِيهِ الْقِيمَةُ او د کوم ښکار مثل چي نه وي نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز د هغه قيمت واجبيږي مِثْلَ الْعُصْفُورِ وَالْحَمَامِ وَأَشْبَاهِهِمَا لکه مرغی، کوتره او د دوی مشابه وَإِذَا وَجَبَتِ الْقِيمَةُ كَانَ قَوْلُهُ كَقَوْلِهِمَا او کله چي قيمت واجب سي نو د امام محمد قول به د شيخينو د قول په څير وي(د قيمت په اندازه کولو او په هغه سره د هدي يا د طعام په رانيولو کي) وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ يُوجِبُ فِي الْحَمَامَةِ شَاةً او امام شافعي په کوتره کي بزه واجبوي وَيُثْبِتُ الْمُشَابَهَةَ بَيْنَهُمَا مِنْ حَيْثُ او په دواړو کي دا ډول مشابهت ثابتوي أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَعُبُّ چي له دواړو څخه هريو په غړپ اوبه چيښي وَيَهْدِرُ او(د چيښلو په وخت کي)آواز کوي.

**اللغات:** ﴿ظبي﴾ هوسی، وسی، غرڅنی، ﴿ضبع﴾ کوږ، ﴿عناق﴾ د بزې هغه سېرلی چي يوه کال ته نژدې وي، ﴿يربوع﴾ خانی، ځنګلي او صحرايي موږک، ﴿جفرة﴾ د بزې د څلورو مياشتو ماده بچی(سېرلی)، ﴿نعامة﴾ شتر مرغ، ﴿يعب﴾ د نصر مضارع ده: اوبه غړپل، يعني له څښلو څخه بغير اوبه چيښل، ابو عمر رحمه الله وايي: چي په مرغانو کي يوازي کوتره داسي اوبه چيښي، ﴿يهدر﴾ آواز کول، آواز را ايستل.

**تشريح:** تر دې مخکي د ښکار د جزاء په باره کي د شيخينو مسلک بيان سو، اوس له دې ځايه د امام محمد او امام شافعي مذهب بيانيږي، تفصيل يې دا دی چي د ښکار کوم حيوانان چي صورةً مثل او نظير لري، د هغو په وژلو سره د هغو مثل واجبيږي، نو د سوی او خاني مثل د بزې څلور مياشتنی ماده بچی دی، لهذا د دوی په وژلو سره به هغه واجبيږي، او د شتر مرغ په جزاء کي به اوښ او د وحشي خره په جزاء کي به غوا واجبيږي، ځکه چي اوښ د شتر مرغ او غوا د وحشي خره په مثل دي، دليل دا آيت دی: فجزاء مثل ما قتل من النعم (يعني د قتل سوو حيوانانو جزاء به هغه څارويان وي کوم چي صورتاً د قتل سوو حيوانانو سره مشابه وي)، ځکه چي پر قيمت د نَعَم اطلاق نه سي کېدلای، نو ځکه به قيمت نه واجبيږي، بلکي د قتل سوي حيوان په مثل به له څارويانو څخه يو څاروی واجبيږي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب الأطعمة باب في أكل الضبع حديث رقم: ٣٨٠١

والصحابة الخ فرمايي چي د صحابه وو يو ښه جماعت لکه حضرت علي، ابن مسعود، ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُم او نورو هم د شتر مرغ او نورو په جزاء کي داسي ښاروي واجب کړي دي چي په شکل او صورت کي د هغو په مثل وي، او په خپله د نبي ﷺ دا حديث سنن اربعه وو رانقل کړي دی "چي کوږ ښکار دی(او که يو محرم هغه قتل کړي) نو په هغه کي بزه ده"، لهذا تاسو غور وکړئ! که مثل د قيمت په توګه مراد وای لکه څرنګه چي د شيخينو مذهب دی، نو صحابه وو او نبي ﷺ به ښاروی نه واجبولای(بلکي قيمت به يې واجبولای). له دې دلائلو څخه ښکاره سوه چي د ښکار جزاء به قيمت نه وي، بلکي له ښارويانو څخه به هغه ښاروی وي چي صورةً او خلقةً مقتول حيوان مشابه او مثل وي، هو! که يو حيوان خلقةً مثل نه لري، نو د امام محمد په نيز د هغه قيمت واجبيږي، لکه د مرغی، کوتري او د داسي نورو مثل په ښارويانو کي نسته، نو د دې حيوانانو قيمت به واجبيږي، لهذا په داسي مرغانو او حيوانانو کي به د امام محمد قول د شيخينو د قول په څير وي.

والشافعي الخ ليکن امام شافعي په کوتره کي بزه واجبوي، او د دواړو په مينځ کي دا مشابهت ثابتوي چي دا دواړه د عامو حيوانانو په خلاف په غرپ اوبه چيښي، او د چيښلو په وخت کي آواز راباسي، نو کله چي د دوی په مينځ کي مشابهت سته، نو د دوی په جزاء کي به هم مشابهت وي، لهذا د کوتري په جزاء کي به بزه واجب وي.

## د شيخينو په نيز د "مثل" مطلب

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ أَنَّ الْمِثْلَ الْمُطْلَقَ هُوَ الْمِثْلُ صُورَةً وَمَعْنًى او د شيخينو دليل دا دی چي مطلق مثل هغه دی چي په شکل او معنیٰ دواړو کي مثل وي وَلَا يُمْكِنُ الْحَمْلُ عَلَيْهِ او د (آيت شريف مثل) پر دې حمل کول ممکن نه دي فَحُمِلَ عَلَى الْمِثْلِ مَعْنًى نو پر مثلِ معنوي به حمل کيږي لِكَوْنِهِ مَعْهُودًا فِي الشَّرْعِ ځکه په شريعت کي مثلِ معنوي معهود(او متعين) وي كَمَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ لکه څرنګه چي په حقوقُ العباد کي دي أَوْ لِكَوْنِهِ مُرَادًا بِالْإِجْمَاعِ يا ځکه چي مثلِ معنوی په اجماع سره مراد دی أَوْ لِمَا فِيهِ مِنَ التَّعْمِيمِ يا په دې وجه چي په مثلِ معنوي کي تعميم دی وَفِي ضِدِّهِ التَّخْصِيصُ او د هغه په ضد کي تخصيص دی وَالْمُرَادُ بِالنَّصِّ وَاللهُ أَعْلَمُ فَجَزَاءُ قِيمَةِ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ الْوَحْشِيِّ او د آيت مطلب به (والله اعلم) دا وي: "نو د قتل سوي وحشي حيوان جزاء قيمت ده" وَاسْمُ النَّعَمِ يُطْلَقُ عَلَى الْوَحْشِيِّ وَالْأَهْلِيِّ (ځکه چي) لفظ د نَعَم د وحشي او کورني دواړو حيوانانو لپاره استعماليږي كَذَا قَالَهُ أَبُو عُبَيْدَةَ وَالْأَصْمَعِيُّ همدارنګه ابو عبيده او اصمعي رَحِمَهُمَا الله فرمايلي دي وَالْمُرَادُ بِمَا رُوِيَ التَّقْدِيرُ بِهِ دُونَ إِيجَابِ الْمُعَيَّنِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله له روايت سوي حديث څخه مراد " اندازه کول" دي، د خاص (او متعين) شي واجبول څني مراد نه دي.

**تشريح:** په دې عبارت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چي په دې آيت فجزاء مثل الخ کي چي کوم د "مِثل" لفظ راغلی دی، د دې مثل دوه قسمه دي: (۱) مثل حقيقي، يعني هغه چي د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره د مقتول مِثل او مشابه وي، (۲) مثلِ معنوي، يعني هغه مثل چي په صورت کي خو د مقتول مِثل نه وي،

لیکن په معنیٰ کي یې مثل وي، او په دې آیت کي له مثل څخه مثلِ حقیقي مراد نه دی، ځکه چې بیا د دې آیت له مصداق څخه مرغۍ، کوتره او داسي نور وځي، نو حتماً به د آیت مثل پر مثلِ معنوي حمل کوو، او دا یوه نوې خبره نه ده، بلکي په شریعت کي د دې نور مثالونه هم سته. مثلاً د حقوقُ العباد په مسئله کي په ځینو ټوکه مثلِ معنوي واجبیږي، مثلاً که یو سړی د بل سړي سامان ضایع او هلاک کړي، نو عموماً د قیمت په ذریعه د هغه تاوان ورکول کیږي، هغسي سامان نه ورکول کیږي.

أو لکونه الخ د ښکار په جزاء کي د مثل معنوي د مرادولو دویم دلیل دا دی چي مثلِ معنوی بالاجماع مراد دی، او په خپله امام محمد رَحِمَهُ الله هم په کوتره او مرغۍ کي مثل معنوي واجبوي، اوس که یو ځای مثلِ معنوي مراد کړی سي، او بل ځای مثلِ صوري مراد کړی سي، نو بیا به له یو لفظ څخه حقیقت او مجاز دواړه مراد کړی سي، کوم چي صحیح نه دي، نو ځکه به غوره دا وي چي له فجزاء مثل څخه مثلِ معنوی مراد کړی سي.

أو لما فیه الخ د مثل معنوي د مرادولو دریم دلیل دا دی چي په دې صورت کي تعمیم سته، ځکه چي د مثل معنوي د مرادولو په صورت کي دا آیت هغه حیوانانو ته هم شاملیږي چي د هغو مثل او نظیر وي، او هغو ته هم شاملیږي چي مثل یې نه وي، لیکن د مثل صوري د مرادولو په صورت کي فقط هغو حیوانانو ته شاملیږي چي مثل یې وي، او آیتونه او حدیثونه پر تعمیم حمل کول اولیٰ دي تر دې چي پر تخصیص حمل کړی سي.

والمراد بالنص الخ له دې ځایه د امام محمد رَحِمَهُ الله د دلیل جواب ورکوي، امام محمد رَحِمَهُ الله د دې آیت فجزاء مثل ما قتل من النعم ترجمه داسي کړې وه "چي د مقتول حیوان جزاء د نَعم یعني له څارویانو څخه ورکړئ"، د هغه جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي له فجزاء مثل څخه فجزاء قیمة ماقتل من النعم الوحش مراد دي، یعني د آیت ترجمه دا ده: "کوم وحشي حیوان چي قتل کړی سي، د هغه په جزاء کي د هغه قیمت ورکړئ"، یعني د هغه قیمت اندازه کړئ او بیا یې ورکړئ، په دې صورت کي به له نعم څخه مقتول حیوان(یعني ښکار) وي، او د دې وجه دا بیانوي چي لفظ د نعم د څارویانو لپاره هم استعمالیږي او د وحشي حیوانانو لپاره هم استعمالیږي، لکه څرنګه چي د لغت ماهرینو ابو عبیده او اصمعي رَحِمَهُمَاالله هم فرمایلي دي، او کله چي نعم د وحشي حیوانانو لپاره هم استعمالیږي، نو په آیت کي به له "من النعم" څخه مراد وحشي ښکار وي، او د آیت مطلب به دا وي "چي کوم څوک وحشي ښکار قتل کړي د هغه جزاء دي په قیمت سره ورکړي".

والمراد بما روی الخ دا هم د امام محمد رَحِمَهُ الله جواب دی، ځکه چي هغه په دې حدیث الضبع صید الخ او د صحابه وو په آثارو سره دلیل نیولی وو او فرمایلي وو" که مثل د قیمت په توګه مراد وای لکه څرنګه چي د شیخینو مذهب دی، نو صحابه وو او نبي ﷺ به څاروی نه واجبولای، بلکي قیمت به یې واجبولای"، نو جواب ورکوي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله خبره صحیح نه ده، بلکي د نبي ﷺ د حدیث او آثارو مقصد اندازه کول دي، یعني مطلب یې دا دی چي تاسو د دې ښکار قیمت د دغه څاروي د قیمت سره اندازه کړئ، او دا یې مطلب نه دی چي خاص دغه معیّن څاروی ورکړی، بلکي اندازه ځني مراد ده.

## په جزاء کي اختيار د چا دی؟

ثُمَّ الْخِيَارُ إِلَى الْقَاتِلِ فِي أَنْ يَجْعَلَهُ هَدْيًا أَوْ طَعَامًا أَوْ صَوْمًا عِنْدَ ● أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ بيا د شيخينو رحمهما الله په نيز اختيار قاتل لره دی په دې کي چي د مقتول قيمت هدی کړي يا يې طعام کړي يا يې روژه کړي(يعني په قيمت کي قاتل ته ما اختيار سته چي که د هدي ځاروی په رانيسي او که غله په رانيسي او که د قيمت د نشتوالي په صورت کي روژه نيسي) وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ: الْخِيَارُ إِلَى الْحَكَمَيْنِ فِي ذَلِكَ امام محمد او امام شافعي رحمهما الله فرمايي: چي اختيار هغه دوو عادلو خلکو لره دی چي په دې باره کي تاکل سوي وي فَإِنْ حَكَمَا بِالْهَدْيِ يَجِبُ النَّظِيرُ نو که هغو د هدي حکم وکړی نو د هغه مثل به واجبيږي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه وَإِنْ حَكَمَا بِالطَّعَامِ أَوْ بِالصِّيَامِ او که د طعام يا د روژې حکم يې وکړی فَعَلَى مَا قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ وَأَبُو يُوسُفَ نو د شيخينو رحمهما الله پر قول به(قيمت واجبيږي) لَهُمَا أَنَّ التَّخْيِيرَ شُرِعَ رِفْقًا بِمَنْ عَلَيْهِ د شيخينو دليل دا دی چي اختيار ورکول پر هغه (قاتل) محرم د مهرباني لپاره مشرع سوی دی پر کوم چي ضمان (واجب) دی فَيَكُونُ الْخِيَارُ إِلَيْهِ نو اختيار به هغه ته وي كَمَا فِي كَفَّارَةِ الْيَمِينِ لکه د قسم په کفاره کي چي دی وَلِمُحَمَّدٍ وَالشَّافِعِيِّ قَوْلُهُ تَعَالَى: يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ هَدْيًا [المائدة: ٩٥] او د امام محمد او امام شافعي رحمهما الله دليل د الله تعالىٰ (دا) قول دی: يحكم به ...الخ ذَكَرَ الْهَدْيَ مَنْصُوبًا لِأَنَّهُ تَفْسِيرٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى يَحْكُمُ بِهِ (په دې آيت کي) هديًا ځکه منصوب ذکر کړی سو چي دا د يحكم به تفسير دی(يعني په يحكم به کي د به تفسير دی) أَوْ مَفْعُولٌ لِحُكْمِ الْحَكَمِ يا د حاکم د حکم مفعول دی(يعني د يحكم مفعول دی) ثُمَّ ذَكَرَ الطَّعَامَ وَالصِّيَامَ بِكَلِمَةِ أَوْ بيا يې طعام او صوم په کلمه د "أو" سره ذکر کړي دي فَيَكُونُ الْخِيَارُ إِلَيْهِمَا نو اختيار به دواړه عادلانو لره وي قُلْنَا: الْكَفَّارَةُ عُطِفَتْ عَلَى الْجَزَاءِ لَا عَلَى الْهَدْيِ موږ جواب ورکوو: چي کفار پر جزاء عطف سوې ده نه پر هدی بِدَلِيلِ أَنَّهُ مَرْفُوعٌ په دې دليل چي لفظ د جزاء (هم) مرفوع دی وَكَذَا قَوْلُهُ تَعَالَى أَوْ عَدْلُ ذَلِكَ صِيَامًا [المائدة: ٩٥] مَرْفُوعٌ او همدارنګه د الله تعالىٰ (دا) قول أو عدل ذلك صيامًا (هم) مرفوع دی فَلَمْ يَكُنْ فِيهِمَا دَلَالَةُ اخْتِيَارِ الْحَكَمَيْنِ نو په طعام او صيام کي به د عادلانو پر اختيار دلالت نه کيږي وَإِنَّمَا يَرْجِعُ إِلَيْهِمَا فِي تَقْوِيمِ الْمُتْلَفِ بلکي د دواړو عادلانو و طرف ته به د تلف سوي(هلاک سوي) ښکار د قيمت په اندازه کولو کي رجوع کيږي ثُمَّ الْإِخْتِيَارُ بَعْدَ ذَلِكَ إِلَى مَنْ عَلَيْهِ بيا به تر هغه وروسته اختيار هغه چا لره وي چي جزاء پر واجب سوې وي.

**اللغات:** ﴿خيار﴾ اختيار، ﴿رفق﴾ مهرباني، نرمي، ﴿تقويم﴾ د تفعيل مصدر دی: قيمت لګول، قيمت اندازه کول، ﴿متلف﴾ د افعال اسم مفعول دی: تلف سوی، هلاک سوی، فوت سوی.

---

● القول الراجح: قول الشيخين رحمهما الله كذا في رد المحتار ج:٢ ص: ٢٣٣، والهندية ج:١، ص: ٢٣٧. [القول الراجح ج:١ ص: ٢٣٢]

**تشريح:** په دې عبارت کې د شيخينو او د امام محمد او امام شافعي په مينځ کې د اختيار په باره کې د اختلاف وضاحت کيږي، تفصيل يې دا دی چې کله دوو عادلو خلکو د مقتول حيوان قيمت اندازه معلومه کړه، نو اوس په دې قيمت سره د هدي د څاروي د رانيولو اختيار، يا د غلې د رانيولو او صدقه کولو اختيار، يا د روژې د نيولو اختيار د شيخينو په نيز من عليه الجزاء يعني محرم (قاتل) لره دی، لېکن د امام محمد او امام شافعي په نيز دا اختيار هغو دوو عادلانو لره دی چې د مقتول حيوان د قيمت اندازه يې معلومه کړې وي، نو د دوی په نيز به د هغو پر قول پرېکړه کيږي، که هغو د هدي د څاروي د رانيولو حکم وکړی، نو من عليه الجزاء به په هغه عمل کوي، او که هغو د طعام يا صيام پرېکړه وکړه، نو من عليه الجزاء به په هغه عمل کوي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې په شريعت کې چې کله او چيرې ديو شي اختيار ورکول سوی وي، نو هلته د من عليه الجزاء د آسانۍ لپاره اختيار ورکول سوی وي، لکه په کفارهٔ يمين کې چې کوم درې اختيارات ورکول سوي دي (خوراک ورکول، جامې ورکول او غلام آزادول)، هغه درې سره من عليه الجزاء يعني قسم خوړونکي ته ورکول سوي دي، همداسې به په دې مسئله کې چې کوم درې اختيارات دي، د هغو تعلق او حق به هم د من عليه الجزاء يعني د محرم قاتل سره وي.

**د امام محمد او امام شافعي دليل:** دا آيت دی: فجزاء مثل ما قتل من النعم يحكم به ذوا عدل منكم هديا بالغ الكعبة أو كفارة طعام مساكين او عدل ذلك صياماً ليذوق وبال أمره، دوی په دې آيت سره دليل په دې توګه نيسي چې لفظ د هديا ځکه منصوب دی چې هغه په يحكم به کې د ضميرِ مجرور تفسير دی، نو په دې صورت کې به ترجمه دا سي چي: "د مقتول جزاء به هغه شی وي چې د هغه دوه عادله خلک حکم وکړي او هغه شی به له هدي څخه وي (يعني محکوم به به هدی وي)"، او د عبارت دويمه توضيح دا ده چې هدياً د يحكم مفعول به دی، په دې صورت کې به ترجمه دا سي چي: "دوه عادله خلک دې د هدي حکم وکړي"، نو په دې دواړو صورتونو کې د هدی د معلومولو (او متعينولو) اختيار دوو عادلو خلکو ته ورکول سوی دی، او بيا کفارهٔ طعام او صيام (يعني أو كفارة طعام او عدل ذلك صياماً) د "أو" په ذريعه پر هديا عطف سوي دي، نو ځکه به د دې اختيار هم د دوو عادلانو لپاره وي، ځکه قاعده دا ده چې د معطوف عليه او معطوف حکم يو دی.

قلنا الخ صاحب د هدايې د شيخينو له طرفه امام محمد او امام شافعي ته جواب ورکوي فرمايي چې کفارهٔ طعام او صيام پر هديا عطف کول صحيح نه دي، ځکه چې هديا منصوب دی، او دا دواړه مرفوع دي، حال دا چې دا ضروري ده چې د معطوف عليه او معطوف اعراب به يو وي، نو ځکه به پر هدياً د هغو عطف صحيح نه وي، لېکن پر فجزاء به د هغو عطف صحيح وي، ځکه چې فجزاء هم مرفوع دی، لهذا کله چې پر فجزاء د هغو عطف صحيح سو، نو اوس به له هغه څخه دا ثابتيږي چې د طعام او صيام اختيار به عادلو خلکو لره نه وي، نو کله چې هغو ته د طعام او صيام اختيار نسته، نو بيا به هغو ته د هدي د متعينولو اختيار هم نه وي، ځکه چې په دې صورت کې به فصل فى الاختيار لازم سي، او هغه قطعاً صحيح نه دی، حاصل دا چې دا ثابته سوه چې عادلانو ته به صرف د مقتول حيوان د قيمت د معلومولو (او اندازه کولو) اختيار وي، او د دې قيمت د مصرفولو اختيار به فقط قاتل او من عليه الجزاء لره وي.

## په ښکار کي د قیمت د اندازه کولو د ځای بیان

وَيُقَوِّمَانِ فِي الْمَكَانِ الَّذِيْ أَصَابَهُ او دواړه عادلان به په هغه ځای کي قیمت اندازه کړي چیري چي ښکار قتل سوی وي لِاخْتِلَافِ الْقِيَمِ بِاخْتِلَافِ الْأَمَاكِنِ ځکه چي د ځایونو په اختلاف سره قیمتونه مختلف کیږي فَإِنْ كَانَ الْمَوْضِعُ بَرًّا لَا يُبَاعُ فِيْهِ الصَّيْدُ نو که د ښکار د قتل کېدلو ځای دښت وي چي هلته د ښکار خرڅلاو نه کیږي يُعْتَبَرُ أَقْرَبُ الْمَوَاضِعِ إِلَيْهِ مِمَّا يُبَاعُ فِيْهِ وَيُشْتَرٰى نو اعتبار به د هغه ځای کیږي چي د دښت سره نژدې وي چي په هغه کي د ښکار خرڅول او رانیول کیږي قَالُوْا: وَالْوَاحِدُ يَكْفِيْ وَالْمُثَنّٰى أَوْلٰى مشائخو فرمایلي دي: چي یو (عادل) سړی کافي دی او دوه زیات غوره دي لِأَنَّهُ أَحْوَطُ ځکه چي په دې کي ډېر احتیاط دی وَأَبْعَدُ عَنِ الْغَلَطِ او (داسي کول) له غلطۍ څخه زیات لیري دي كَمَا فِيْ حُقُوْقِ الْعِبَادِ لکه څرنګه چي په حقوقُ العباد کي دي وَقِيْلَ: يُعْتَبَرُ الْمُثَنّٰى هٰهُنَا بِالنَّصِّ او ویل سوي دي: چي دلته به د آیت په وجه د دوو (عادلانو) اعتبار کیږي.

**اللغات:** ﴿برٌ﴾ وچه مځکه، دښت، ناآباده ځای. ﴿المثنی﴾ دوه (د اثنان معدود).

**تشریح:** صورت د مسئلې او دلیل ښکاره دی.

## هدی به چیري حلالیږي؟

وَالْهَدْيُ لَا يُذْبَحُ إِلَّا بِمَكَّةَ او هدی به نه حلالیږي مګر په مکه کي لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى: هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ [المائدة: ۹۵] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: هدياً بالغ الكعبة وَيَجُوْزُ الْإِطْعَامُ فِيْ غَيْرِهَا او له مکې څخه ماسوا (په بل ځای) کي طعام ورکول (هم) جائز دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالْهَدْيِ هغه طعام پر هدي قیاسوي وَالْجَامِعُ التَّوْسِعَةُ عَلٰى سُكَّانِ الْحَرَمِ او جامع شی (یعني د قیاس وجه) دا ده چي د حرم پر اوسېدونکو پراخي وي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: اَلْهَدْيُ قُرْبَةٌ غَيْرُ مَعْقُوْلَةٍ او موږ وایو: چي هدی داسي عبادت دی چي په فهم کي نه راځي (یعني عبادتِ غیر معقوله دی) فَيَخْتَصُّ بِمَكَانٍ أَوْ زَمَانٍ نو ځکه به د مکان یا زمانې سره خاص وي أَمَّا الصَّدَقَةُ قُرْبَةٌ مَعْقُوْلَةٌ فِيْ كُلِّ زَمَانٍ وَمَكَانٍ هر چي صدقه ده نو هغه په هر زمان او مکان کي عبادت معقوله دی.

**اللغات:** ﴿سکان﴾ جمع د ساکن ده: اوسېدونکي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د ښکار په جزاء کي محرم هدی اختیار کړه، نو د هغه لپاره په حرم کي د هدي حلالول لازم او ضروري دي، ځکه په دې آیت هدياً بالغ الكعبة کي خاص کعبه مراد نه ده، بلکي حرم مرادی، او که محرم طعام ورکول اختیار کړه، نو هغه ته په حرم او غیرِ حرم دواړو کي اختیار سته، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي طعام به هم د مکې مبارکي فقیرانو ته ورکوي، بل ځای جائز نه دي، د امام شافعي دلیل قیاس دی یعني طعام ورکول د هدي پر حلالولو قیاسوي، او د هدي او طعام په مینځ کي د قیاس وجه او علتِ مشترکه دا دی چي د حرم پر اوسېدونکي پراخي راسي، یعني څرنګه چي په مکه کي د هدي د حلالولو مقصد دا دی چي د حرم اوسېدونکي د دې له غوښو څخه فایده

واخلي، همدا مقصد به د حرم فقراؤ ته د طعام په ورکولو کي هم وي، زموږ له طرفه جواب دا دی چي هدی غیر معقول عبادت دی، نو ځکه به د يو زمان يا مکان سره خاص وي، او صدقه په هر زمان او مکان کي معقول عبادت دی، نو يو معقول شی به پر غيرِ معقول شي قياسول صحيح نه وي.(هدی يعني څاروی قربانول غير معقول عبادت ځکه دی چي په دې کي يو حيوان ته تکليف رسيږي او د هغه وينه بيول کيږي او وژل کيږي، نو بايد هدی او قرباني ګناه واى، لېکن الله ﷻ هغه عبادت ګرځولېده، نو د هغې د عبادتوالي وجه په فهم کي نه راځي او نه د هغې عبادت کېدل د عقل مطابق دي، او صدقه ځکه معقول عبادت دی چي په دې سره د يو انسان زړه خوشاله کيږي، او دا د هر چا په عقل او فهم کي راځي چي د يو انسان په زړه خوشاله کولو سره به الله ﷻ هم خوشاله کيږي، او همدغه د عقل مطابق دي).

## د روژو د نيولو د ځاى بيان

وَالصَّوْمُ يَجُوْزُ فِيْ غَيْرِ مَكَّةَ او روژې له مکې څخه علاوه(په بل ځاى) کي (هم) جائز دي لِأَنَّهُ قُرْبَةٌ فِيْ كُلِّ مَكَانٍ ځکه چي روژه هر ځاى عبادت ده.

**تشريح:** فرمايي چي څرنګه روژه هم د صدقې په ډول هر ځاى معقول عبادت دی، نو هغه به هم د يو زمان يا مکان سره نه خاص کيږي، او په غيرِ حرم او غيرِ مکه يعني په هر ځاى کي به جائز وي.

## په غيرِ حرم کي د هدي د حلالولو بيان

فَإِنْ ذَبَحَ الْهَدْيَ بِالْكُوْفَةِ نو که قاتل په کوفه کي څاروی حلال کړي أَجْزَأَهُ عَنِ الطَّعَامِ نو دا هغه ته له طعام څخه کفايت کوي مَعْنَاهُ إِذَا تَصَدَّقَ بِاللَّحْمِ وَفِيْهِ وَفَاءٌ بِقِيْمَةِ الطَّعَامِ د دې معنیٰ دا ده چي کله دومره غوښي صدقه کړي چي په هغه کي د طعام قيمت پوره کيږي لِأَنَّ الْإِرَاقَةَ لَا تَنُوْبُ عَنْهُ ځکه چي وينه بيول (په غيرِ حرم کي) د هدي نه سي قائم مقام کېدلای.

**اللغات:** ﴿وفاء﴾ په پوره توګه اداء کول، ﴿لاتنوب﴾ د نصر مضارع منفي ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل.

**تشريح:** مسئله : دا ده چي د ښکار په بدله کي واجب سوې هدی په حرم کي حلالول پکار دي، لېکن که يو څوک داسي نه وکړي بلکي د حرم له حدودو څخه دباندي مثلاً په کوفه کي هدی حلاله کړي، او غوښي يې پر فقيرانو تقسيم کړي، او د غوښو قيمت دومره وي څومره چي د ښکار قيمت وي، نو هدی اداء نه سوه، خو د طعام يعني د غنمو په بدله کي کافي سوه، او داسي به ګڼل کيږي چي د ښکار په قيمت سره يې غوښي رانيولې او د هر نيم صاع غنمو په برابر يې غوښي تقسيم کړي، نو د غنمو د تقسيمولو په بدله کي به دا کافي وي. د دې وجه دا ده چي هغه د حرم له حدودو څخه دباندي د هدي څاروی حلال کړی دی، نو ځکه به يې وينه بيول عبادت نه وي، او د هدي قائم مقام به نه وي، خو د غنمو قائم مقام به وي.

## د هدي د څارويانو بيان

وَإِذَا وَقَعَ الْإِخْتِيَارُ عَلَى الْهَدْيِ او کله چي د قاتل اختيار پر هدي واقع سي(يعني قاتل هدی ورکول اختيار کړي) يُهْدِيْ مَا يُجْزِئُهُ فِي الْأُضْحِيَةِ نو داسي څاروی به هدی کړي کوم چي په اضحيه(قرباني) کي د هغه لپاره جائز وي لِأَنَّ مُطْلَقَ اِسْمِ الْهَدْيِ مُنْصَرِفٌ إِلَيْهِ ځکه چي د هدی مطلق نوم د قربانۍ و طرف ته ګرځي وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ: يُجْزِيْ صِغَارُ النَّعَمِ فِيْهَا امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په هدی کي د څارويانو کوچني بچيان (هم) جائز دي

إِلَى الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَوْجَبُوا عَنَاقًا وَجَفْرَةً ځکه چي صحابه وو د بزې د نهو مياشتو بچی او د بزې څلور مياشتنی بچی (د ښکار په بدله کي) واجب کړي دي وَعِنْدَ[●] أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ يَجُوزُ الصِّغَارُ عَلَى وَجْهِ الْإِطْعَامِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د شاروپانو کوچني بچيان د طعام ورکولو په توګه جائز دي يَعْنِي إِذَا تَصَدَّقَ يعني چي کله هغه صدقه کړي.

**اللغات:** ﴿النعم﴾ شارويان، ﴿عناق﴾ د بزې کم عمره بچی چي کال ته نژدې وي، ﴿جفرة﴾ د پسه يا بزې څلور مياشتنی بچی، يعني مينځوی بچی.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که محرم قاتل له درې اختياراتو څخه هدی اختيار کړه، نو هغه ته پکار ده چي په هدی کي داسي شاروی حلال کړي چي د هغه قرباني صحيح کيږي. د مثال په توګه که اوښ وي نو د پنځو کالو به وي، که غوا وي نو د دوو کالو به وي، او که بزه وي نو د يوه کال به وي. ځکه په آيت کي لفظ د هدی مطلق دی، او په شريعت کي چي کله مطلق د هدي لفظ ويل کيږي، نو له هغه څخه د قرباني د عمر شاروی مراديږي، نه تر هغه کم. امام محمد او امام شافعي فرمايي چي د هدي په قرباني کي د کوچني عمر شارويان حلالول هم جائز دي، ځکه چي صحابه وو عناق او جفره هم د هدي په قرباني کي واجب کړي دي. له دې څخه معلوميږي چي د هدي په باب کي کوچني بچيان حلالول هم جائز دي.

وعند أبي الخ د شيخينو په نېز د شاروپانو کوچني بچيان علیٰ وجه الاطعام حلالول جائز دي، يعني تر حلالولو وروسته دي يې غوښي پر مسکينانو تقسيم کړي، او هر مسکين ته دي دومره غوښي ورکړي چي هغه د نيم صاع غنمو يا يو صاع اوربشو او کجورو سره برابري سي.

صاحب د هدايې په اصل کي په دې جمله سره امام محمد او امام شافعي ته يو ډول جواب ورکوي چي صحابه وو چي کوم د بزې د بچو فيصله کړې ده، هغه د ښکار د بدلې په توګه نه ده. بلکي د هغې مطلب دا دی چي د ښکار قيمت دي اندازه کړی سي، او په هغه سره دي د بزې بچی رانيول سي، او هغه دي ذبح کړی سي. او د هغه غوښي دي مثلاً د نيم صاع غنمو په برابر تقسيم کړی سي، نو د غنمو د تقسيمولو پر ځای به غوښي تقسيم کړی سي (يعني دا به له طعام څخه کافي سي)، د صحابه وو فيصله داسي وه، لېکن که هغو به د هدي فيصله کوله، نو د بزې د يوه کال د بچي فيصله به يې کوله چي هغه په قرباني کي جائز دي.

## د ښکار په کفاره کي د غلې د اندازې بيان

وَإِذَا وَقَعَ الْإِخْتِيَارُ عَلَى الطَّعَامِ او کله چي د قاتل اختيار پرطعام ورکولو واقع سي يُقَوَّمُ الْمُتْلَفُ بِالطَّعَامِ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز به د هلاک سوي حيوان قيمت په طعام سره اندازه کيږي لِأَنَّهُ هُوَ الْمَضْمُونُ ځکه چي (فقط) ښکار مضمون دی (يعني د ښکار ضمان واجب سوی دی) فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ نو د هغه د قيمت اعتبار به کيږي وَإِذَا اشْتَرَى بِالْقِيمَةِ طَعَامًا او کله چي د قيمت په بدله کي طعام رانيسي تَصَدَّقَ عَلَى كُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ

---

●القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله كذا في فتح القدير ج:٣ ص: ١٢. [القول الراجح ج:١ ص: ٢٣٣]

نو پر هر مسکين دې نيم صاع غنم يا يو صاع کجوري يا يو صاع اوربشي صدقه کړي **وَلَا يَجُوزُ أَنْ يُطْعِمَ لِمِسْكِينٍ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ** او يوه مسکين ته(هم) تر نيم صاع کم ورکول جائز نه دي **لِأَنَّ الطَّعَامَ الْمَذْكُورَ يَنْصَرِفُ إِلَى مَا هُوَ الْمَعْهُودُ فِي الشَّرْعِ** ځکه چې کوم طعام په آيت کې ذکر سوی دی هغه به په شريعت کې د متعين طعام و طرف ته ګرځي.

**اللغات:** ﴿متلف﴾ د افعال اسم مفعول دی: هلاک سوی، ﴿مضمون﴾ د ضرب اسم مفعول دی: ضمان ورکول سوی.

﴿تمر﴾ کجوري، خرماوي، ﴿معهود﴾ متعين، معلوم، معروف.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښرګنده او آسانه دی چې که قاتل محرم د ښکار په جزاء کې غله ورکول وغواړي، نو کوم حيوان چې يې قتل کړی وي، د هغه قيمت دې اندازه کړي، او په هغومره قيمت سره دې طعام او غله رانيسي، نو که هغه غنم وي نو پر هر مسکين دې نيم صاع غنم صدقه کړي، او که کجوري يا اوربشي وي نو يو صاع دې صدقه کړي، او هيڅ مسکين ته دې هم تر نيم صاع غنمو کم نه ورکوي، ځکه په دې آيت أو کفارة طعام مساکين کې چې کوم د طعام حکم سوی دی، هغه د شريعت د متعين سوي طعام و طرف ته منسوب کيږي، او په شريعت کې متعين سوی طعام همدغه دی چې غنم به د نيم صاع په اعتبار سره وي، او اوربشي يا خرماوي به د يوه صاع په اعتبار سره وي.

## د ښکار په کفاره کې د روژو بيان

**وَإِنِ اخْتَارَ الصِّيَامَ** او که (د ښکار) قاتل روژې اختيار کړي **يُقَوَّمُ الْمَقْتُولُ طَعَامًا** نو د قتل سوي حيوان قيمت به په طعام سره اندازه کړی سي **ثُمَّ يَصُومُ عَنْ كُلِّ نِصْفِ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعٍ مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ يَوْمًا** بيا به قاتل د هر نيم صاع غنمو يا د هر يوه صاع کجورو يا اوربشو په بدله کې يوه ورځ روژه نيسي **لِأَنَّ تَقْدِيرَ الصِّيَامِ بِالْمَقْتُولِ غَيْرُ مُمْكِنٍ** ځکه چې په قتل سوي حيوان سره د روژو اندازه کول ممکن نه دي **إِذْ لَا قِيمَةَ لِلصِّيَامِ** ځکه چې روژې قيمت نه لري **فَقَدَّرْنَاهُ بِالطَّعَامِ** نو ځکه موږ په طعام سره د قتل سوي حيوان اندازه وکړه **وَالتَّقْدِيرُ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ مَعْهُودٌ فِي الشَّرْعِ** او پر دې طريقه اندازه کول په شريعت کې متعين دي **كَمَا فِي بَابِ الْفِدْيَةِ** لکه د فديې په باب کې چې دي **فَإِنْ فَضَلَ مِنَ الطَّعَامِ أَقَلُّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ** بيا که تر نيم صاع کم طعام پاته سي **فَهُوَ مُخَيَّرٌ إِنْ شَاءَ تَصَدَّقَ بِهِ وَإِنْ شَاءَ صَامَ عَنْهُ يَوْمًا كَامِلًا** نو قاتل ته اختيار دی که غواړي نو هغه دې صدقه کړي او که غواړي نو د هغه په بدله کې دې پوره يوه ورځ روژه ونيسي **لِأَنَّ الصَّوْمَ أَقَلَّ مِنْ يَوْمٍ غَيْرُ مَشْرُوعٍ** ځکه چې تر يوې ورځې کمه روژه (په شريعت کې) مشروع نه ده **وَكَذَلِكَ إِنْ كَانَ الْوَاجِبُ دُونَ طَعَامِ مِسْكِينٍ** او همدارنګه که واجب مقدار د يوه مسکين تر طعام کم وي **يُطْعِمُ قَدْرَ الْوَاجِبِ** نو واجب مقدار طعام به ورکړي **أَوْ يَصُومُ يَوْمًا كَامِلًا** يا به پوره يوه ورځ روژه ونيسي **لِمَا قُلْنَا** د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿تقدير﴾ اندازه کول(اندازه لګول)، مقررول.

**تشريح:** په دې عبارت کي له دريو اختياراتو څخه دريم اختيار بيان سوی دی، تفصيل يې دا دی چي که محرم روژه اختيار کړه، نو هغه ته پکار ده چي تر ټولو مخکي د مقتول حيوان د قيمت اندازه په غله سره وکړي، د هغه يو صورت دا دی چي د مقتول حيوان قيمت مثلاً يو غنم کيږي، نو د هر نيم صاع غنمو په بدله کي دي يوه روژه ونيسي، او که دا صورت ممکن نه وي، نو مخکي دي دا اندازه وکړي چي د مقتول حيوان قيمت څو دی، او که تر اندازه کولو وروسته معلومه سوه چي مثلاً د مقتول حيوان قيمت سل (۱۰۰) روپۍ دی، نو اوس دي وګوري چي په سل روپۍ څومره غنم کيږي يا څومره اوربشي او خرماوي کيږي، بيا دي د هر نيم صاع غنمو يا يو صاع اوربشو او غرماوو په بدله کي يوه روژه ونيسي، ځرنګه چي د روژې هيڅ قيمت نسته، لهذا په روژو سره د مقتول حيوان اندازه کول ناممکن دي، نو ځکه مورږ د مقتول حيوان اندازه په طعام سره وکړه، او په دې طريقه سره اندازه کول په شريعت کي معهود او متعين هم دي، لکه ځرنګه چي په باب د فديه کي راغلي دي چي شيخ فاني به د هري روژې په بدله کي نيم صاع غنم فديه ورکوي.

فإن فضل الخ د دې حاصل دا دی چي که د مقتول حيوان اندازه په غنمو سره وسوه، او په هغه حساب سره محرم روژې ونيولې، ليکن په آخر کي تر نيم صاع کم غنم پاته سوه، نو هغه دي صدقه کړي، ليکن که هغه روژه نيسي، نو پوره يوه ورځ به روژه نيسي، ځکه چي زموږ په شريعت کي تر يوه ورځ کم روژه نسته، همدارنګه که مقتول ښکار کوچنی حيوان يا مرغۍ وه چي د هغه قيمت تر نيم صاع غنمو کم راتلی، نو په دې صورت کي به هم محرم ته اختيار وي، که هغومره غنم رانيسي او صدقه کوي يې، او که د هغه په بدله کي پوره يوه ورځ روژه نيسي.

## ښکار ته د تکليف رسولو يا د زخمي کولو بيان

وَلَوْ جَرَحَ صَيْدًا او که محرم د ښکار حيوان زخمي کړي أَوْ نَتَفَ شَعْرَهُ يا د هغه ورېښتيان وکاږي أَوْ قَطَعَ عُضْوًا مِنْهُ يا د هغه يو اندام پرېکړي ضَمِنَ مَا نَقَصَهُ نو د هغه کومه حصه چي يې عيبجنه کړې وي د هغه ضامن به وي اِعْتِبَارًا لِلْبَعْضِ بِالْكُلِّ پر کُل باندي د جُزء په قياسولو سره كَمَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ لکه ځرنګه چي په حقوقُ العباد کي دي وَلَوْ نَتَفَ رِيْشَ طَائِرٍ او که محرم د يو مارغه وزر وکاږي أَوْ قَطَعَ قَوَائِمَ صَيْدٍ يا د ښکار پښې پرېکړي فَخَرَجَ مِنْ حَيِّزِ الْاِمْتِنَاعِ چي (په هغه سره) مارغه د خپل ځان له ساتلو څخه ووځي فَعَلَيْهِ قِيْمَتُهُ كَامِلَةً نو پر محرم (د هغه) پوره قيمت واجبيږي لِأَنَّهُ فَوَّتَ عَلَيْهِ الْأَمْنَ بِتَفْوِيْتِ آلَةِ الْاِمْتِنَاعِ ځکه چي محرم د ځان ساتلو د آلې د فوتولو په وجه د هغه أمن فوت کړی (ختم کړی) فَيَغْرَمُ جَزَاءَهُ نو ځکه به هغه د مارغه د جزاء تاوان ورکوي.

**اللغات:** ﴿نتف﴾ کښل (کاږل)، ﴿ريش﴾ وزر، ﴿قوائم﴾ د ښاروپانو پښې، ﴿يغرم﴾ د نصر مضارع ده: تاوان او جرمانه ورکول.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو محرم د ښکار ښاروي زخمي کړی، يا يې د هغه ورېښتيان وکښل، يا يې د هغه يو اندام پرېکړی، نو د دې په وجه چي د هغه په قيمت کي څومره نقصان پيدا سي، د هغه به محرم ضامن وي، مثلاً د ښکار قيمت لس روپۍ وو، ديوه اندام د پرېکولو په وجه د هغه قيمت پنځه روپۍ پاته سو، نو دا محرم به د پنځو روپو ضامن وي، دلته جزء پر کل قياس سوی دی، لکه ځرنګه چي په حقوق العباد کي هم جزء پر کُل قياسيږي، يعني که يو سړی

د بل چا ټوله مال هلاک کړي، نو د ټوله مال ضامن به وي، او که د مال يو څه حصه هلاکه کړي، نو د هغه په اندازه به ضامن وي.

ولو نتف ريش الخ او که محرم د يوه مارغه د وزر ښکي (بڼي) وکاږلې، يا يې د ښکار دحيوان پښې پرېکړې، تر دې چې هغه مارغه او حيوان له دې څخه ووتی چې خپل ځان له خلکو څخه خوندي کړي، نو پر محرم د هغه ټوله قيمت واجبيږي، ځکه کله چې محرم د هغه د حفاظت آله ختمه کړه، نو ګواکي د هغه امن يې ختم کړی، او کله چې يې د هغه امن ختم کړی نو ګواکي هغه يې هلاک کړی، او د هلاکولو په صورت کي د مقتول ټوله قيمت واجبيږي، نو په دې صورت کي به هم پر هغه د ټوله قيمت ضمان واجب وي.

## د مرغانو د هګۍ د ماتولو بيان

وَمَنْ كَسَرَ بَيْضَ نَعَامَةٍ او کوم محرم چې د شتر مرغ هګۍ ماته کړي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ نو پر هغه د هګۍ قيمت واجب دی وَهٰذَا مَرْوِيٌّ عَنْ عَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ او دا له حضرت علي او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه روايت سوي دي وَلِأَنَّهُ أَصْلُ الصَّيْدِ او ځکه چې هګۍ د ښکار اصل دی (يعني له هغه څخه ښکار پيدا کيږي) وَلَهُ عَرَضِيَّةُ أَنْ يَصِيرَ صَيْدًا او په هګۍ کي دا ورتيا سته چې ښکار جوړ سي فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الصَّيْدِ احْتِيَاطًا مَا لَمْ يَفْسُدْ لهذا هغه احتياطاً د ښکار په درجه کي سوه (نو) تر څو چې خرابه سوې نه وي فَإِنْ خَرَجَ مِنَ الْبَيْضِ فَرْخٌ مَيِّتٌ بيا که له هګۍ څخه مړ چيچي را ووځي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ نو پر محرم به د هغه قيمت واجب وي وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَغْرَمَ سِوَى الْبَيْضَةِ او قياس دا دی چې له هګۍ څخه علاوه به (د بل شي) ضمان نه ورکوي لِأَنَّ حَيَاةَ الْفَرْخِ غَيْرُ مَعْلُومَةٍ ځکه چې د چيچي ژوند معلوم نه دی وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ أَنَّ الْبَيْضَ مُعَدٌّ لِيَخْرُجَ مِنْهُ الْفَرْخُ الْحَيُّ او د استحسان وجه (او دليل) دا دی چې هګۍ د دې لپاره جوړه سوې ده چې له هغې څخه ژوندی چيچی راووځي وَالْكَسْرُ قَبْلَ أَوَانِهِ سَبَبٌ لِمَوْتِهِ او تر وخت مخکي د هګۍ ماتول د چيچي د مرګ سبب دی فَيُحَالُ بِهِ عَلَيْهِ احْتِيَاطًا نو احتياطاً به د چيچي مرګ د هګۍ پر ماتولو حمل کيږي وَعَلٰى هٰذَا إِذَا ضَرَبَ بَطْنَ ظَبْيَةٍ او هم پر دغه حکم (دا مسئله مبني) ده چې کله محرم (بلاربه) هوسۍ پر نس ووهي فَأَلْقَتْ جَنِينًا مَيِّتًا نو هغه مړ بچی وزېږوي وَمَاتَتْ او (په خپله هم) هوسۍ مړه سي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُمَا نو به پر محرم به د بچي او هوسۍ دواړو قيمت واجب وي.

**اللغات:** ﴿كسر﴾ د ضرب ماضي ده: ماتول، ﴿بيض﴾ هګۍ، ﴿عرضية﴾ صلاحيت، ورتيا، ﴿فرخ﴾ د مارغه بچی (چيچی)، ﴿معد﴾ تيار سوی، جوړ سوی، ﴿ظبية﴾ هوسۍ.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو محرم د شتر مرغ هګۍ ماته کړه، نو پر هغه د هګۍ قيمت واجب دی، له حضرت علي او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه همدغه روايت سوي دي، دويم دليل دا دی چې هګۍ د ښکار اصل دی، او په هګۍ کي د ښکار جوړېدلو ورتيا هم سته (يعني په هګۍ کي دا ورتيا سته چې تر شا ربېدلو وروسته د ښکار مرغه ځني جوړ سي)، نو

تر څو چې هغه هګۍ خرابه سوې نه وي، تر هغه پورې به هګۍ احتياطاً دښکار په درجه کې ګرځول کيږي، او څرنګه چې دښکار په هلاکولو سره ضمان واجبيږي، نو دښکار داصل په ماتولو سره به هم ضمان واجبيږي.

فإن خرج الخ اوس که له ماتې سوې هګۍ څخه مړ چيچې راووتی نو پر محرم به دبچې قيمت واجب وي، او دا حکم استحساني دی، ځکه د قياس تقاضا دا ده چې فقط دهګۍ قيمت دې واجب سي، او دچيچې قيمت دې نه واجبيږي، ځکه په هګۍ کې دچيچې ژوند نه سي معلومېدای، ځکه ممکنه ده چې چيچې به له مخکې څخه مړ وي، دهګۍ د ماتولو په وجه به نه وي مړ سوی، نو دمحرم له طرفه فقط دهګۍ ماتول راغله، نه دچيچې وژل، نو کله چې دچيچې وژل نه راغله، نو پر هغه به دچيچې ضمان هم واجب نه وي، خو دهګۍ ضمان به پر واجب وي.

وجه الاستحسان الخ داستحسان دليل دا دی چې الله ﷻ هګۍ ددې لپاره جوړه کړې ده چې له هغې څخه ژوندی چيچې راووځي (او دهغې له ظاهري حالت څخه همدغه معلوميږي چې په هغې کې به چيچې وي)، نو کله چې محرم تر وخت مخکې هګۍ ماته کړه، نو دا ماتول به دچيچې دمرګ سبب وي، او کله چې دهګۍ ماتول دچيچې دمرګ سبب سو، نو ګواکې هغه چيچې هلاک کړی، او کله چې يې چيچې هلاک کړی، نو ځکه به دچيچې ضمان پر واجب وي.

وعلى هذا الخ هم پر دې استحسان دا مسئله متفرع ده چې که محرم يوه هوسۍ پر نس ووهله، او دهغه په سبب هوسۍ مړ بچې وغورځوی، بيا هوسۍ هم مړه سوه، نو پر محرم به دهوسۍ او بچې دواړو قيمت واجبيږي، ځکه چې دلته هم ظاهراً دهغه دا فعل ددواړو دمرګ سبب سو.

## دهغه حيواناتو بيان چې په وژلو سره يې څه نه واجبيږي

وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْغُرَابِ وَالْحِدَأَةِ وَالذِّئْبِ وَالْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ وَالْفَأْرَةِ وَالْكَلْبِ الْعَقُورِ جَزَاءٌ او نسته په وژلو د کارګه، ټپوس، مار، لړم، موږک او داړونکي سپي کې هيڅ جزاء (بدله) لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : خَمْسٌ مِنَ الْفَوَاسِقِ يُقْتَلْنَ فِي الْحِلِّ وَالْحَرَمِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "چې پنځه خبيث حيوانان به په حِل او حرام (دواړو) کې قتل کيږي اَلْحِدَأَةُ وَالْحَيَّةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْفَأْرَةُ وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ ټپوس، مار، لړم، موږک او داړونکی سپی" وَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] : يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ الْفَأْرَةَ وَالْغُرَابَ وَالْحِدَأَةَ وَالْعَقْرَبَ وَالْحَيَّةَ وَالْكَلْبَ الْعَقُورَ او (بل ځای) نبي ﷺ فرمايلي دي: "چې محرم به موږک، کارګه، ټپوس، لړم، مار او داړونکی سپی وژني" وَقَدْ ذُكِرَ الذِّئْبُ فِي بَعْضِ الرِّوَايَاتِ او په ځيني رواياتو کې لېوه ذکر سوی دی وَقِيلَ: اَلْمُرَادُ بِالْكَلْبِ الْعَقُورِ الذِّئْبُ او ويل سوي دي: چې له داړونکي سپي څخه مراد لېوه دی أَوْ يُقَالُ: أَنَّ الذِّئْبَ فِي مَعْنَاهُ يا ويل کيږي به: چې لېوه دداړونکي سپي په معنیٰ سره دی وَالْمُرَادُ بِالْغُرَابِ الَّذِي يَأْكُلُ الْجِيَفَ او له کارګه څخه مراد هغه دی چې مرداري (او نجاست) خوري وَيَخْلِطُ او دانه ګډوي (يعني په خوشايي يا نجاست کې چې کومې دانې وي هغه د نجاست سره ګډې خوري) لِأَنَّهُ يَبْتَدِئُ بِالْأَذٰی ځکه چې داسې

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب مايندب للمحرم وغيره قتله من الدواب في الحل والحرم حديث رقم: ٦٧، ٦٨

کارګه (انسان ته) په تکليف رسولو شرع کوي أَمَّا الْعَقْعَقُ فَغَيْرُ مُسْتَثْنًى لیکن عقعق مستثنیٰ نه دی لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى غُرَابًا ځکه چي هغه ته کارګه نه ويل کيږي وَلَا يَبْتَدِئُ بِالْأَذَى او نه هغه په تکليف رسولو شروع کوي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ الْكَلْبَ الْعَقُورَ وَغَيْرَ الْعَقُورِ وَالْمُسْتَأْنِسَ وَالْمُتَوَحِّشَ مِنْهُمَا سَوَاءٌ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله روايت دی چي سپی که داړونکي وي که نه وي اموخته وي که نه وي ټوله برابر دي لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ فِي ذٰلِكَ الْجِنْسُ ځکه چي په دې کي (د سپي) جنس معتبر دی وَكَذَا الْفَأْرَةُ الْأَهْلِيَّةُ وَالْوَحْشِيَّةُ سَوَاءٌ او همدارنګه کورنی او صحرايي موږک دواړه برابر دي وَالضَّبُّ وَالْيَرْبُوعُ لَيْسَا مِنَ الْخَمْسِ الْمُسْتَثْنَاةِ او ګوه او خانی له دې پنځو حيوانانو څخه نه دي د کومو استثناء چي وسوه لِأَنَّهُمَا لَا يَبْتَدِئَانِ بِالْأَذَى ځکه چي هغه (انسان ته) په تکليف ورکولو شروع نه کوي.

**اللغات:** ﴿عقعق﴾ ګيږکه، ګيڅکه (يوه اوږده لکۍ لرونکې مارغه دی چي د افغانستان په زياتره سيمو کي سته، او په باغونو او کښتونو کي اوسيږي)، ﴿ضب﴾ ګوه (د سمساري په شکل خو تر سمساري کوچنی يو ځناور دی چي د عربي هيوادونو په دښتونو کي زيات پيدا کيږي، او عرب يې ښکاروي او خوري يې، او له دې څخه سمساره بالکل مراد نه ده، لکه بعضي چي وايي، ځکه چي ګوه د جمهورو په نيز حلال دی، او سمساره د جمهورو په نيز مرداره ده، او ګوه په اُردو ژبه کي ورته وايي خو څرنګه چي د پښتو په بعضي نامتو قاموسونو کي هم ګوه ورته ويل سوي دي نو ځکه موږ په ترجمه کي ګوه وليکل)، ﴿يربوع﴾ خانی (ځنګلي موږک).

**تشريح:** په عبارت کي بيان سوې مسئله بالکل آسانه ده، مختصره تشريح يې دا ده چي که يو محرم په احرام کي کارګه يا ټپوس يا لېوه يا داړونکی سپی يا مار او لړم ووژل، نو پر هغه هيڅ جزاء نه واجبيږي، دليل دا دی چي نبي ﷺ له حيوانانو څخه پنځه خبيث او بد حيوانان استثناء کړي دي، او د محرم لپاره يې د هغه د وژلو اجازه ورکړې ده، دويم حديث دا دی "چي موږک، کارګه، ټپوس، مار لړم او داړونکی سپی محرم وژلای سي".

وقد ذكر الذئب الخ په دې سره د يو سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي په بخاري او مسلم کي د فواسقِ خمسه په ضمن کي د ذئب ذکر نسته، لیکن ماتن رَحِمَهُ الله ذئب له فواسقِ خمسه څخه شمار کړی دی، جواب دا دی چي د صحيحينو له روايت څخه ماسوا په نورو روايتونو کي ذئب ذکر سوی دی، دويم جواب دا دی چي د صحيحينو په حديث کي چي کوم کلبِ عقور ذکر سوی دی، له هغه څخه مراد ذئب هم دی، او دواړه يو دي، نو په دې وجه په ځيني کتابو کي ذئب نه دي ذکر سوی.

والمراد بالغراب الخ صاحب د هدايې فرمايي چي په حديث کي له غُراب څخه مراد د کارګه هغه قسم دی چي مرداري خوري، او په نجاستونو او خوشايو کي چي کومي دانې وي هغه خوري او د دانو سره نجاست هم ګډوي، نو څرنګه چي دا کارګه په نجاست سره شروع کوي، او خلګو ته تکليف ورکوي (يعني د هغوی له کورونو او لاسونو څخه شيان څڅلوي)، نو ځکه به د هغه په وژلو کي څه حرج نه وي.

أما العقعق الخ او کارګه ته ورته بل قسم عقعق مارغه دی، چي په رنګ تور او سپين دی (او په پښتو کي ګيږکه ورته وايي)، په حديث د فواسق کي د دې استثناء نه ده سوې، ځکه چي دا په نجاست کي لوبيږي، او نه په تکليف ورکولو شروع کوي، بلکي فقط د کښت دانې او غله خوري.

(وعن أبي حنيفة الخ) له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د جزاء په نه واجبېدلو کي کلب عقور او غير عقور، وحشي او غيرِ وحشي هر ډول سپيان برابر دي، او هر سپی په فواسقِ خمسه کي شامل او داخل دی، ځکه چي په استثناء کي جنسيت معتبر او اصل دی، او په جنسيت کي هر ډول سپي داخل دي، همدارنګه کورني او دښتي موږکان هم برابر دي، او د ټولو د وژلو اجازه سته.

(الضب الخ) همدارنګه ګوه او خانې هم له فواسقِ خمسه څخه جلا دي، او د هغو وژل جزاء واجبوي، ځکه چي هغه په تکليف او ضرر سره ورانديتوب نه کوي.

## د احرام په حالت کي د خزندو د وژلو حکم

وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْبَعُوضِ وَالنَّمْلِ وَالْبَرَاغِيثِ وَالْقُرَادِ شَيْءٌ او نسته په وژلو د غوماشي، مېږي، زغانځي او منګوږ کي هيڅ شی لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِصُيُودٍ ځکه چي دا خزندې ښکار نه دي وَلَيْسَتْ بِمُتَوَلِّدَةٍ مِنَ الْبَدَنِ او نه له بدن څخه پيدا سوي دي ثُمَّ هِيَ مُؤْذِيَةٌ بِطِبَاعِهَا او بيا دا په خپل طبيعت کي (فطرتاً) ضرر رسونکي دي وَالْمُرَادُ بِالنَّمْلِ السُّودُ أَوِ الصُّفْرُ الَّذِي يُؤْذِي او له مېږي څخه مراد هغه تور يا ژړ مېږی دی چي ضرر رسوي وَمَا لَا يُؤْذِي لَا يَحِلُّ قَتْلُهَا او کوم چي ضرر نه رسوي د هغه وژل حلال نه دي وَلَكِنْ لَا يَجِبُ الْجَزَاءُ لِلْعِلَّةِ الْأُولَى ليکن جزاء نه واجبېږي د اول علت په وجه.

**اللغات:** ﴿بعوض﴾ غوماشه، ﴿براغيث﴾ جمع د برغوثة ده: زغانځه (يو ډول تور رنګه خزنده ده)، ﴿قراد﴾ منګوږ.

**تشريح:** فرمايي چي د محرم لپاره د غوماشي، مېږي او داسي نورو وژل صحيح او حلال دي، او د دې شيانو په وژلو سره جزاء نه واجبېږي، ځکه چي جزاء د ښکار په وژلو سره واجبېږي، او دا شيان ښکار نه دي (ځکه ښکار فطرتاً له انسان څخه تربېدونکی وي او دا شيان راغب دي، او د انسان پر طرف ور ځغلي)، او بيا د دې پيدايښت هم د انسان له بدن څخه نه کيږي، چي موجب د جزاء دي سي، (لکه سپږي چي د انسان د بدن له خيرو څخه پيدا کيږي او د هغو وژل موجب د جزاء دي)، او بل دا شيان په فطري توګه ضرر رسونکي دي.

(والمراد بالنمل الخ) فرمايي چي له نمل څخه مراد هغه تو او ژړ مېږيان دي چي انسان ته تکليف ورکوي، د هغو وژل د محرم لپاره جائز دي، خو هغه مېږيان چي انسان ته تکليف نه ورکوي، د هغه وژل صحيح نه دي، خو که بيا يې هم ووژني، نو جزاء نه واجبېږي، ځکه چي دا خو نه د ښکار په حکم کي دي، او نه د انسان له بدن څخه پيدا کيږي.

## د سپږو د وژلو حکم

وَمَنْ قَتَلَ قَمْلَةً او کوم مُحرم چي سپږه قتل کړي تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ نو څه چي وغواړي هغه دي صدقه کړي مِثْلَ كَفٍّ مِنَ الطَّعَامِ مثلاً يو موټ غله لِأَنَّهَا مُتَوَلِّدَةٌ مِنَ التَّفَثِ الَّذِي عَلَى الْبَدَنِ ځکه چي سپږه له هغه خيرو (او چټلی) څخه پيدا کيږي چي پر بدن وي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ أَطْعَمَ شَيْئًا او په جامع صغير کي دي چي څه دي په وخوري وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ يُجْزِئُهُ أَنْ يُطْعِمَ مِسْكِينًا شَيْئًا يَسِيرًا عَلَى سَبِيلِ الْإِبَاحَةِ او دا د جامع صغير قول پر دې خبره دلالت کوي چي د روايښت په توګه په مسکين يو معمولي غوندي شی خوړل کافي دي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُشْبِعًا که څه هم هغه مړونکي (يعني په ډک نس) نه وي.

**اللغات:** ﴿قملة﴾ سپږه، ﴿تفث﴾ خيره، ﴿مشبع﴾ د افعال اسم فاعل دی: مړونکي، نس ډکونکي.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده که يو محرم سپږه ووژله، نو څه چې وغواړي هغه دې صدقه کړي، مثلاً يو ډک موټ غله دې صدقه کړي، او ځيني حضراتو فرمايلي دي چې که سپږې دوې يا درې وي نو يو موټ غنم دې صدقه کړي، او که تر دې زياتې سي، نو نيم صاع غنم دې صدقه کړي، دليل دا دی چې سپږه د انسان د بدن له خيرو څخه پيدا کيږي. او په احرام کې د خيرو په پاکولو سره صدقه واجبيږي، نو د سپږې د وژلو په صورت کې به هم صدقه واجبيږي.

وفي الجامع الصغير الخ فرمايي چې په جامع صغير کې امام محمد رَحِمَهُ الله داسې جمله ذکر کړې ده: أطعم شيئاً، او په متن کې راغلي دي چې مثلاً يو موټ غنم دې ورکړي، نو د جامع صغير له عبارت څخه معلوميږي چې مسکين ته په لاس کې ورکول او مالک جوړول ضروري نه دي، بلکې د مباح کولو په توګه دې يو شی په وخوري، که څه هم په ماړه نس نه وي، بيا هم کافي دي.

## د ملخ د وژلو حکم

**وَمَنْ قَتَلَ جَرَادَةً** او کوم مُحرم چې ملخ قتل کړي **تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ** نو څه چې وغواړي هغه دې صدقه کړي **لِأَنَّ الْجَرَادَ مِنْ صَيْدِ الْبَرِّ** ځکه ملخ د وچې ښکار دی **فَإِنَّ الصَّيْدَ مَا لَا يُمْكِنُ أَخْذُهُ إِلَّا بِحِيلَةٍ** ځکه چې ښکار هغه (ته ويل کيږي) چې له يو چل (او حيلې) څخه بغير د هغه نيول ممکن نه وي **وَيَقْصِدُهُ الْآخِذُ** او نيونکی د هغه د نيولو اراده وکړي **وَتَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ** او يوه خرما له يوه ملخ څخه غوره ده **لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: تَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ** د حضرت عمر ﷺ د قول په وجه: "چې يوه خرما له يوه ملخ څخه غوره ده".

**اللغات:** ﴿جرادة﴾ ملخ، ﴿حيلة﴾ چل، کوښښ (زيار).

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو محرم ملخ مړ کړي، نو څه چې وغواړي هغ دې صدقه کړي، دليل دا دی چې ملخ د وچې ښکار دی، ځکه چې ښکار هغه ته ويل کيږي چې د هغه نيول بغير له حيلې او چل څخه ممکن نه وي، او نيونکی د هغه اراده هم وکړي.

صاحب د قدوري فرمايي چې يوه خرما غوره ده له يوه ملخ څخه، دا په اصل کې د حضرت عمر ﷺ قول دی، قصه داسې وه چې د حمص خلکو به د احرام په حالت کې ډېر ملخان وژل او د هر ملخ په بدله کې به يې يو درهم صدقه کوی، حضرت عمر ﷺ وفرمايل: "اې د حمص خلکو! ستاسو درهمونه ډېر دي، او يوه خورما له يوه ملخ څخه غوره ده"، يعني د يوه ملخ په بدله کې يو درهم صدقه کول بيخي ډېر دي، نو که تاسو د يوه ملخ په بدله کې يوه خرما صدقه کړی نو دا هم بالکل کافي دي.

## د کيشپ (کيشو) د وژلو حکم

**وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِي ذَبْحِ السُّلَحْفَاةِ** او هيڅ واجب نه دي پر مُحرم د کيشپ په وژلو کې **لِأَنَّهُ مِنَ الْهَوَامِّ وَالْحَشَرَاتِ** ځکه چې کيشپ (هم) له خزندو او حشراتو څخه دی **فَأَشْبَهَ الْخَنَافِسَ وَالْوَزَغَاتِ** نو د نجاست د چينجيانو او د ځرمښکيانو سره مشابه سو **وَيُمْكِنُ أَخْذُهُ مِنْ غَيْرِ حِيلَةٍ** او له يو چل څخه بغير د هغه نيول (هم) ممکن دي **وَكَذَا لَا يُقْصَدُ بِالْأَخْذِ** همدارنګه د هغه د نيولو قصد هم نه کيږي **فَلَمْ يَكُنْ صَيْدًا** نو ځکه به ښکار نه وي.

**اللغات:** ﴿سلحفاة﴾ کيشپ(کيشو)، ﴿هوام﴾ خزندې، ﴿عناقس﴾ د ګندګۍ او غايطه موادو چينجيان. ﴿وزغات﴾ جمع د وزغة ده: څرمښکياني(چرمښکياني).

**تشريح:** مسئله: دا ده چې که يو محرم کيشپ قتل کړي، نو پر هغه هيڅ ضمان نه واجبيږي. ځکه چې کيشپ له حشرات الارض څخه دي، نو دا د نجاست دچينجيانو او د څرمښکيانو سره مشابه سو. او د دې شيانو په وژلو سره ضمان نه واجبيږي، نو د کيشپ په وژلو سره به هم ضمان نه واجبيږي.

ويمکن الخ دويمه خبره دا ده چې کيشپ بغير له چل او حيلې څخه نيول ممکن دي. او څوک يې د نيولو اراده هم نه کوي، لهذا دا د ښکار حيوان نه سي شمارل کېدلای، حال دا چې جزاء هغه وخت واجبيږي. چې د ښکار حيوان قتل کړی سي، نو په دې وجه به هم جزاء واجب نه وي.

## د حرم د خاروي د لوښلو حکم

وَمَنْ حَلَبَ صَيْدَ الْحَرَمِ او کوم محرم چې د حرم ښکار ولوښي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ نو پر هغه د دې قيمت واجب دی لِأَنَّ اللَّبَنَ مِنْ أَجْزَاءِ الصَّيْدِ ځکه چې شيدې د ښکار له اجزاؤ څخه دي فَأَشْبَهَ كُلَّهُ نو هغه د ښکار د کُل سره مشابه سوې.

**اللغات:** ﴿حلب﴾ د نصر ماضي ده: شيدې لوښل.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو محرم د حرم د ښکار شيدې ولوښلې، نو پر هغه د شيدو قيمت واجب دی. ځکه چې شيدې د ښکار له اجزاؤ څخه دي، نو شيدې د ښکار مشابه سوې، او په ښکار کي جزاء واجب ده. نو د ښکار په جزء يعني په شيدو کي به هم جزاء واجب وي.

## د غير ماکول اللحم حيوانانو د وژلو حکم

وَمَنْ قَتَلَ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الصَّيْدِ او څوک چې داسي ښکار قتل کړي چې غوښي يې نه خوړل کيږي كَالسِّبَاعِ وَنَحْوِهَا لکه درندګان او د دوی په شان فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ نو پر هغه جزاء واجب ده إِلَّا مَا اسْتَثْنَاهُ الشَّرْعُ ماسوا له هغه څخه چې شريعت مستثنیٰ کړي وي وَهُوَ مَا عَدَدْنَاهُ او د شريعت مستثنیٰ سوي حيوانان هغه دي کوم چې موږ شمار کړل وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجِبُ الْجَزَاءُ او امام شافعي فرمايي: چې(په ما لا يؤکل لحمه کي) جزاء نه واجبيږي لِأَنَّهَا جُبِلَتْ عَلَى الْإِيذَاءِ ځکه چې هغه د تکليف رسولو لپاره پيدا سوي دي(يعني د هغو په فطرت کي بل چا ته ضرر او تکليف رسول اخيلي دي) فَدَخَلَتْ فِي الْفَوَاسِقِ الْمُسْتَثْنَاةِ نو دا به په مستثنیٰ سوو فواسقو کي داخل وي وَكَذَا اِسْمُ الْكَلْبِ يَتَنَاوَلُ السِّبَاعَ بِأَسْرِهَا لُغَةً او همدارنګه لفظ د کلب دلغت له رويه ټولو درندګانو ته شامل دی وَلَنَا أَنَّ السَّبُعَ صَيْدٌ او زموږ دليل دا دی چې درنده ښکار دی لِتَوَحُّشِهِ ځکه چې هغه وحشي وي وَكَوْنِهِ مَقْصُودًا بِالْأَخْذِ او په نيولو سره مقصود (هم) وي إِمَّا لِجِلْدِهِ يا د هغه د څرمني لپاره [مقصودوي] أَوْ لِيُصْطَادَ بِهِ يا د دې لپاره [مقصودوي] چې ښکار په وسي أَوْ لِدَفْعِ أَذَاهُ يا د هغه د ضرر د ليري کولو لپاره [مقصودوي] وَالْقِيَاسُ عَلَى الْفَوَاسِقِ مُمْتَنِعٌ او قياس پر فواسقو

ممتنع دی لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ الْعَدَدِ ځکه چې په دې کې د عدد(شمېر) باطلول دي وَاسْمُ الْكَلْبِ لَا يَقَعُ عَلَى السَّبُعِ عُرْفًا او د عرف له رويه لفظ د کلب د درنده لپاره نه استعماليږي وَالْعُرْفُ أَمْلَكُ او هم دا عُرف زيات قوي دی.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو محرم له غيرِ ماکول اللحم حيواناتو څخه يو حيوان مثلاً له درندګانو څخه يې شېر يا پړانګ يا ګيدړه ووژله، نو زموږ په نيز پر هغه هم جزاء واجبيږي، هو! د فواسقِ خمسه وو په وژلو سره جزاء نه واجبيږي، کوم چې موږ مخکې ذکر کړل. امام شافعي فرمايي چې د غيرِ ماکول الحم په وژلو سره جزاء نه واجبيږي، دليل دا دی چې د دې درندګانو په خټه او فطرت کې د ضرر رسولو ماده پرته ده، نو ځکه به درندګان هم په فواسقِ خمسه وو کې داخليږي، دوېم دليل دا دی چې په فواسقِ خمسه وو کې نبي ﷺ د کلبِ عقور استثناء هم کړې ده، او لفظ د کلب د لغت له رويه ټولو درندګانو ته شامل دی، نو ځکه به ټوله درندګان مستثنیٰ شمارل کيږي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چې درندګان وحشي او ترهېدونکي وي، له خلکو څخه ځغلي، او خلک د هغوی د نيولو اراده هم کوي، او د هغو د نيولو اراده ځکه کوي چې يا خو د هغو له څرمنې څخه نفع واخلي لکه شېر يا پړانګ، يا ځکه چې په هغو ښکار وکړي لکه تازي او داسې نور، يا خو د ضرر لېرې کولو په غرض هغه نيسي لکه ځنګلي خنزير او داسې نور، نو په کوم حيوان کې چې دا خبرې پيدا سي، هغه ته به ښکار ويل کيږي، نو ځکه به درندګان ښکار وي، او د ښکار په باره کې الله ﷻ فرمايلي دي: ولا تقتلوا الصيد وأنتم حرم . لهذا د هغو په وژلو سره به جزاء واجبيږي

والقياس الخ د امام شافعي د قياس جواب دا دی چې درندګان پر فواسقو قياسول صحيح نه دي، ځکه چې د قياس په صورت کې د حديث عدد او شمېر يعني خمس باطليږي، او د امام شافعي دا وينا چې کلب درندګانو ته ويل کيږي، صحيح نه ده، ځکه لفظ د کلب په عُرف کې د درندګانو لپاره نه کارول کيږي، او په دې ټول مسئلو کې عُرف قوي دی او د عُرف اعتبار کيږي، لهذا په دې حواله سره به هم درندګان په فواسقِ خمسه کې نه شمارل کيږي، او د هغوی وژل به د محرم په حق کې د جزاء د وجوب سبب وي.

## د جزاء قيمت به د بزې تر قيمت زيات نه وي

وَلَا يُجَاوِزُ بِقِيمَتِهِ شَاةً او د جزاء قيمت به د بزې له قيمت څخه نه زياتوي(شاةً مرفوع دی ځکه چې مسند إليه دی) وَقَالَ زُفَرُ: تَجِبُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې ټوله قيمت به يې واجب وي تر کومه ځايه چې ورسيږي اِعْتِبَارًا بِمَأْكُولِ اللَّحْمِ پر ماکولُ اللحم شاروي په قياسولو سره وَلَنَا قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] : اَلضَّبُعُ صَيْدٌ وَفِيهِ الشَّاةُ او زموږ دليل دا دی: چې نبي ﷺ فرمايلي دي: "کوږ ښکار دی او په هغه کې بزه واجب ده" وَلِأَنَّ اِعْتِبَارَ قِيمَتِهِ لِمَكَانِ الْإِنْتِفَاعِ بِجِلْدِهِ او ځکه چې د غيرِ ماکول اللحم د قيمت اعتبار د هغو له څرمنې څخه د نفع اخيستلو په وجه دی لَا لِأَنَّهُ مُحَارِبٌ مُؤْذٍ نه په دې وجه چې هغه جنګي (او) ضرر رسونکی دی وَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ لَا يَزْدَادُ عَلَى قِيمَةِ الشَّاةِ ظَاهِرًا او هم د دغه فايدې په وجه به ظاهراً د جزاء قيمت د بزې پر قيمت نه زياتيږي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب الأطعمة باب أكل الضبع حديث رقم: ٣٨٠١

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو محرم غير مأكول اللحم درنده قتل کړی، نو پر هغه د دې درنده قيمت واجبيږي. لېکن په قيمت کې به د دې خبرې خيال ساتل کيږي چې دا قيمت د بزې له قيمت څخه زيات نه سي. امام زفر رحمه الله فرمايي چې د مقتول درنده ټوله قيمت واجبيږي، که هغه هر څو ته ورسيږي. يعني که هر څومره وي. د امام زفر رحمه الله دليل قياس دی يعني غير مأكول اللحم پر مأكول اللحم قياسوي. او زموږ دليل دا حديث دی: الضبع صيد وفيه شاة.

ولأن إعتبار الخ عقلي دا دی چې د غير مأكول اللحم يعني د درندګانو غوښې به کار نه راځي. صرف څرمنه يې په کار راځي، او د څرمنې قيمت يې ظاهراً له بزې څخه زيات نه وي، همدارنګه د غير مأكول اللحم د قيمت اعتبار د جنګ او موذي کېدلو په وجه هم نه کيږي، نو ځکه موږ وايو چې د درنده ضمان او قيمت به د بزې تر قيمت زيات نه وي.

## د حمله کونکي حيوان د وژلو حکم

وَإِذَا صَالَ السَّبُعُ عَلَى الْمُحْرِمِ او کله چې درنده پر محرم حمله وکړي فَقَتَلَهُ او محرم هغه قتل کړي لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر محرم هيڅ شی واجب نه دی وَقَالَ زُفَرُ: يَجِبُ او امام زفر فرمايي: چې واجب دی اِعْتِبَارًا بِالْجَمَلِ الصَّائِلِ پر حمله کونکي اوښ باندې په قياسولو سره وَلَنَا مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ قَتَلَ سَبُعًا او زموږ دليل هغه روايت دی کوم چې له حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت سوی دی چې هغه يو درنده قتل کړی وَأَهْدَى كَبْشًا او يو وزګړی (سېرلی) يې هدی کړی وَقَالَ: إِنَّا ابْتَدَأْنَاهُ او ويې فرمايل: "چې ما پر درنده وړانديتوب وکړی (يعني اوله حمله ما پر وکړه)" وَلِأَنَّ الْمُحْرِمَ مَمْنُوعٌ عَنِ التَّعَرُّضِ او ځکه چې محرم له تعرّض (او لاس وهني) څخه منع سوی دی لَا عَنْ دَفْعِ الْأَذَى نه د ضرر له ليرې کولو څخه وَلِهَذَا كَانَ مَأْذُونًا فِي دَفْعِ الْمُتَوَهَّمِ مِنَ الْأَذَى او هم په دې وجه محرم ته اجازه سته د داسې حيوان د دفع کولو (او وژلو) چې له هغه څخه د ضرر وهم وي كَمَا فِي الْفَوَاسِقِ لکه څرنګه چې په خبيثو حيوانانو کې (اجازه سته) فَلَأَنْ يَكُونَ مَأْذُونًا فِي دَفْعِ الْمُتَحَقِّقِ مِنْهُ أَوْلَى نو د هغو حيوانانو د دفع کولو (او وژلو) اجازه (خو) به په درجه اولیٰ وي چې له هغو څخه ضرر متحقق وي وَمَعَ وُجُودِ الْإِذْنِ مِنَ الشَّارِعِ لَا يَجِبُ الْجَزَاءُ حَقًّا لَهُ او د شارع له طرفه د اجازې باوجود د شارع د حق په وجه جزاء نه واجبيږي بِخِلَافِ الْجَمَلِ الصَّائِلِ په خلاف د حمله کونکي اوښ لِأَنَّهُ لَا إِذْنَ مِنْ صَاحِبِ الْحَقِّ ځکه چې (قاتل ته د دې اوښ) د حقداره له طرفه اجازه نسته وَهُوَ الْعَبْدُ او دا اوښ حقداره بنده دی.

**اللغات:** ﴿صائل﴾ د نصر اسم فاعل دی: حمله کونکی، ﴿جمل﴾ اوښ، ﴿کبش﴾ مېنده، وزګړی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو درنده پر محرم حمله وکړي، او محرم هغه قتل کړي، نو زموږ په نيز پر هغه جزاء نه واجبيږي، لېکن د امام زفر په نيز پر هغه د حيوان قيمت واجبيږي، د امام زفر دليل قياس دی، يعني که پر يو انسان اوښ حمله وکړي، او بيا انسان دا اوښ قتل کړي، نو پر هغه د دې اوښ قيمت واجبيږي، که څه هم د خپل ځان د دفاع په خاطر داسې وکړي، نو همدارنګه به د درنده د قتلولو په صورت کې هم پر قاتل جزاء واجبيږي.

ولنا الخ زمونږ اول دليل دا اثر دی چې حضرت عمر رضي الله عنه يو درنده قتل کړی، او يوه بزه يې د هدي په توګه واستوله، او يې فرمايل: "چې پر درنده اول وار ما وکړی". له دې څخه دا خبره څرګنديږي چې که درنده اول حمله وکړي، او محرم د خپل دفاع په خاطر هغه قتل کړي، نو پر هغه به ضمان نه واجبيږي.

ولأن المحرم الخ عقلي دليل دا دی چې محرم (په شريعت کې) په حيواناتو باندې له تعرض کولو او لاس وهنې څخه منع سوی دی، د خپل ځان له دفاع څخه نه دی منع سوی (بلکې شريعت هغه ته دا اجازه ورکړې ده چې د ځان دفاع وکړي)، همدا وجه ده چې په فواسق خمسه وو کې د ضرر وهم سته چې حمله به وکړي نو ځکه يې مخکې د وژلو اجازه سوې ده، نو کله چې د دې موهوم ضرر ليرې کولو اجازه سوې ده، نو د درندګانو د ضرر کوم چې ثابت او متحقق دی د هغه د ليرې کولو اجازه خو به په درجه اولیٰ وي، او څرنګه چې د درندګانو د ضرر ليرې کولو اجازه د شريعت له طرفه ده (يعني شريعت خپل حق ساقط کړی دی)، نو ځکه به د درنده په وژلو سره جزاء نه واجبيږي، په خلاف د حمله کونکي اوښ، ځکه چې د هغه مالک انسان دی، او د اوښ مالک هيڅا ته د اوښ د وژلو اجازه نه ورکوي، نو ځکه به د هغه دا حق نه ساقطيږي، او د حمله کونکي اوښ پر وژلو به جزاء واجب وي.

## د مجبورۍ په وجه د ښکار کولو حکم

> وَإِنِ اضْطُرَّ الْمُحْرِمُ إِلَى قَتْلِ صَيْدٍ او که محرم د يو ښکار قتلولو ته مجبوره سي فَقَتَلَهُ او هغه قتل کړي فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ نو پر هغه جزاء واجب ده لِأَنَّ الْإِذْنَ مُقَيَّدٌ بِالْكَفَّارَةِ بِالنَّصِّ ځکه چې اجازه د آيت په وجه په کفارې سره مقيد ده عَلَى مَا تَلَوْنَاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې موږ آيت تلاوت کړی.

**اللغات:** ﴿اضطر﴾ د افتعال ماضي ده: مجبوره کېدل.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که د سختې لوږې په وجه محرم د ښکار قتلولو ته مجبوره سو، او ښکار يې قتل کړی، نو هم پر هغه جزاء واجبيږي، ځکه په دې حالت کې چې شريعت د ښکار د قتلولو کومه اجازه ورکړې ده، هغه په کفارې سره مقيد ده، لکه څرنګه چې په آيت کې ذکر سوي دي: فمن كان منكم مريضا أو به أذى من رأسه ففدية من صيام أو صدقة أو نسك (يعني له تاسو څخه چې څوک مريض وي يا يې په سر کې څه تکليف وي، نو د روژې يا صدقې يا قربانۍ په ذريعه دې فديه اداء کړي)، يعني که د دې عوارضو په وجه هغه د احرام يو منافي کار وکړی، نو هغه ته پکار ده چې فديه ورکړي، لهذا د ښکار د قتلولو په صورت کې به هم جزاء ورکوي.

## د خارويانو د حلالولو حکم

> وَلَا بَأْسَ لِلْمُحْرِمِ أَنْ يَذْبَحَ الشَّاةَ وَالْبَقَرَةَ وَالْبَعِيرَ وَالدَّجَاجَةَ وَالْبَطَّ الْأَهْلِيَّ او د محرم لپاره د بزې، غوا، اوښ، چرګې او د کورنۍ هيلۍ په حلالولو کې هيڅ پروا نسته لِأَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ لَيْسَتْ بِصُيُودٍ لِعَدَمِ التَّوَحُّشِ ځکه چې دا شيان د وحشي نه کېدلو په وجه ښکار نه دي وَالْمُرَادُ بِالْبَطِّ الَّذِي يَكُونُ فِي الْمَسَاكِنِ وَالْحِيَاضِ او له هيلۍ څخه مراد هغه ده چې په کورونو او حوضونو کې اوسيږي لِأَنَّهُ أَلُوفٌ بِأَصْلِ الْخِلْقَةِ ځکه چې هغه په اصل فطرت کې اموخته (او روږد) ده.

**اللغات:** ﴿دجاجة﴾ چرګه، ﴿بط﴾ هيلۍ (ايلۍ)، ﴿حياض﴾ جمع د حوض ده: ډنډ، حوض، تالاو. ﴿ألوف﴾ روږد (مينه لرونکې، د وحشي ضد).

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## د بېر پښې کوترې د حلالو حکم

وَلَوْ ذَبَحَ حَمَامًا مُسَرْوَلًا او که محرم بیرپښې کوتره حلاله کړي فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ نو پر هغه جزاء واجب ده خِلَافًا لِمَالِكٍ رَحِمَهُ الله د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی لَهُ أَنَّهُ أَلُوفٌ مُسْتَأْنِسٌ د امام مالک دليل دا دی چې بيرپښې کوتره (د خلکو) سره روږده او اموخته وي وَلَا يَمْتَنِعُ بِجَنَاحَيْهِ او په خپلو وزرو سره ځان نه سي ژغورلای لِبُطْءِ نُهُوضِهِ د خپل پورته کېدلو (او حرکت کولو) د سستوالي په وجه وَنَحْنُ نَقُوْلُ: اَلْحَمَامُ مُتَوَحِّشٌ بِأَصْلِ الْخِلْقَةِ مُمْتَنِعٌ بِطَيَرَانِهِ او موږ وايو: چې کوتره د اصل فطرت په اعتبار سره وحشي وي او په خپل الوتلو سره ځان ژغورونکې وي وَإِنْ كَانَ بَطِيءَ النُّهُوْضِ که څه هم په پورته کېدلو کې سسته وي وَالْإِسْتِئْنَاسُ عَارِضٌ او د هغې اموخته والی عارضي دی فَلَمْ يُعْتَبَرْ نو د هغه اعتبار به نه کيږي.

**اللغات:** ﴿حمامة﴾ کوتره، ﴿مسرول﴾ هغه کوتره چې پښې يې په وربښتيانو پټې وي. ﴿ألوف﴾ روږد (د وحشي ضد).

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره پوه سئ چې مُسَرول له سروال څخه مأخوذ دی، او مسرول هغه کوترې ته ويل کيږي چې پر پښو يې ډېر وربښتيان وي، او داسې ښکاري لکه سروال (پرتوک) چې يې اغوستی وي، او د هغه په وجه يې ښپې ښې معلوميږي، نو ځکه موږ د هغې ترجمه په "بير پښې" کوترې سره وکړه. مسئله دا ده که يو محرم بير پښې کوتره حلاله کړه، نو پر هغه جزاء واجب ده. امام مالک وايي چې جزاء واجب نه ده. د امام مالک دليل دا دی چې بير پښې کوتره اموخته او د خلکو سره بلده وي، او خپل ځان کما حقه ساتلای هم نه سي، ځکه چې دا په پرواز کولو او پورته کېدلو کې ډېره سسته وي، او داسې حيوان د دې حقداره نه دی چې ښکار ورته وويل سي. او کله چې ښکار نه دی، نو پر قتل کولو به يې جزاء هم واجب نه وي.

ونحن نقول الخ زموږ دليل دا دی چې کوتره د خپل اصل خلقت او فطرت په اعتبار سره وحشي وي، که څه هم د هغې پورته کېدل سست وي، خو بيا هم د خپلو الوتلو په ذريعه د ځان ساتلو کوشش کوي، نو ځکه به د ښکار په تعريف کې داخله وي، پاته سو د هغې اموخته والی نو هغه اصلي نه دی، بلکې عارضي دی، او په شرعي احکامو کې د اصل اعتبار کيږي، د عارضي اموخته والي پر بناء د امام مالک رَحِمَهُ الله لپاره کوتره له ښکار څخه ايستل صحيح نه دي.

## د اموخته هوسۍ د حلالولو حکم

وَكَذَا إِذَا قَتَلَ ظَبْيًا مُسْتَأْنَسًا او همدارنګه چې کله محرم اموخته هوسۍ قتل کړي (نو جزاء واجبيږي) لِأَنَّهُ صَيْدٌ فِي الْأَصْلِ ځکه چې هغه د اصل فطرت په اعتبار سره ښکار ده فَلَا يُبْطِلُهُ الْإِسْتِئْنَاسُ نو اموخته والی به ښکار کېدل نه

باطلوي كَالْبَعِيرِ إِذَا نَدَّ لكه اوښ چي كله وتربږي (وترهيږي او وحشي سي) لَا يَأْخُذُ حُكْمَ الصَّيْدِ لِلْحُرْمَةِ عَلَى الْمُحْرِمِ نو هغه په حرام كېدلو كي پر محرم د ښكار حكم نه اخلي (چي پر محرم دي د هغه حلالول حرام سي).

**اللغات:** ﴿ظبي﴾ هوسی، ﴿ند﴾ ماضي ده: تربدل (ترهېدل)، تښتېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي كه محرم يوه اموخته هوسۍ قتل كړه، نو پر محرم جزاء واجب ده، ځكه چي هوسۍ د اصل خلقت په اعتبار سره ښكار ده، نو په عارضي توګه د هغې اموخته والی د هغې ښكار كېدل نه ور باطلوي. لكه څرنګه چي اوښ يو كورني او اموخته څاروی دی، لېكن كه هغه وتربږي او وحشي سي، نو بيا هم كورنی دی، او د ښكار په حكم كي نه داخلېږي، او د محرم لپاره به د هغه حلالول صحيح وي، ځكه چي ترهېدل (تربدل) عارضي توحش دي.

## د محرم د حلال سوي (ذبح سوي) ښكار حكم

وَإِذَا ذَبَحَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا او كله چي محرم يو ښكار حلال كړي فَذَبِيحَتُهُ مَيْتَةٌ نو د هغه ذبيحه مرداره ده (يعني داسي ده لكه حيوان چي په خپله مردار سي) لَا يَحِلُّ أَكْلُهَا د هغې خوړل حلال نه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: يَحِلُّ مَا ذَبَحَهُ الْمُحْرِمُ لِغَيْرِهِ او امام شافعي فرمايي: چي د محرم حلال سوی ښكار د غير محرم لپاره حلال دی لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ ځكه چي محرم د بل (غير) لپاره كاركونكی دی فَانْتَقَلَ فِعْلُهُ إِلَيْهِ نو د هغه كار به د بل و طرف ته منتقل كېږي وَلَنَا أَنَّ الذَّكَاةَ فِعْلٌ مَشْرُوعٌ او زموږ دليل دا دی چي حلالول مشروع كار دی وَهٰذَا فِعْلٌ حَرَامٌ او د محرم دا كار حرام دی فَلَا يَكُونُ ذَكَاةً نو دا به حلالول نه وي كَذَبِيحَةِ الْمَجُوسِيِّ لكه د مجوسي ذبيحه وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَشْرُوعَ هُوَ الَّذِي قَامَ مَقَامَ الْمُمَيِّزِ بَيْنَ الدَّمِ وَاللَّحْمِ او دا حكم ځكه دی چي مشروع حلالېدل هغه دي چي د وينو او غوښو په مينځ كي د فرق كولو قائم مقام وي تَيْسِيرًا د آسانۍ لپاره (يعني مشروعه او مباحه ذبحه هغه ده چي د غوښي او د ويني په مينځ كي تميز او فرق وكړي د آسانۍ لپاره) فَيَنْعَدِمُ بِانْعِدَامِهِ نو د مشروع فعل د نشتوالي په وجه به حلالول (ذبحه) (هم) معدومه وي.

**اللغات:** ﴿ذكاة﴾ څاروی حلالول، ذبح كول، ﴿ذبيحة﴾ حلال سوی څاروی، ﴿ميز﴾ فرق كول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي د محرم لپاره ښكار قتل كول او حلالول جائز نه دي، او كه هغه يو څاروی حلال كړي، نو د هغه ذبيحه مرداره ده، او د هېچا لپاره د هغې خوړل حلال نه دي، امام شافعي فرمايي كه محرم د بل چا لپاره څاروی حلال كړي نو هغه حلال دی، ځكه چي محرم د بل چا لپاره حلال كړی دی، نو هغه د بل چا لپاره كاركونكی سو، نو ځكه به د هغه دا فعل د بل چا و طرف ته منتقل كېږي، او دا به وبلل كېږي چي دغه بل دويم سړي دا څاروی حلال كړی دی، او څرنګه چي د غير محرم ذبيحه حلاله او صحيح ده، نو ځكه به د محرم ذبيحه هم د بل چا لپاره حلاله او جائز وي.

وهذا الخ د محرم د ذبيحې د حرامېدلو دويم علت دا دی چي ذبحه ځكه مشروع سوې ده چي د هغې په ذريعه د څاروي د غوښو او د وينو په مينځ كي فرق او امتياز وكړی سي، ځكه چي د وينو تر وتلو وروسته هم څه ناڅه وينه په څاروي او د هغه په غوښو كي پاتېږي، نو د آسانۍ لپاره دا ښه وګرځول سوه چي كه پر مشروع طريقه ذبح وكړي، نو دا به وبلل كېږي

چې وړني له غوښو څخه جلا سوې، او د محرم ذبحه پر مشروع طريقه نه ده، ځکه چې د آيت او حديث په وجه هغه حرامه سوې ده، لهذا دا به وړېل کيږي چې وړني له غوښو څخه جلا نه سوې، نو ذبيحه به يې هم حلاله نه وي.

## که محرم له خپل ښکار څخه څه وخوري نو څه حکم دی؟

فَإِنْ أَكَلَ الْمُحْرِمُ الذَّابِحُ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا او که حلالونکی محرم له خپلې ذبيحې څخه څه وخوري فَعَلَيْهِ قِيْمَةُ مَا أَكَلَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالٰى نو څه چې يې وخوړل د هغه قيمت به پر ده واجب وي د امام صاحب په نېز وَقَالَا: لَيْسَ عَلَيْهِ جَزَاءُ مَا أَكَلَ او صاحبين فرمايي: چې څه يې وخوړل د هغه جزاء پر ده واجب نه ده وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ مُحْرِمٌ آخَرُ او که له هغې څخه بل محرم څه وخوړل فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا نو پر هغه د ټولو په نېز هيڅ شی واجب نه دی لَهُمَا أَنَّ هٰذِهٖ مَيْتَةٌ فَلَا يَلْزَمُهُ بِأَكْلِهَا إِلَّا الْإِسْتِغْفَارُ د صاحبينو دليل دا دی چې دا مرداره ده نو د هغې په خوړلو سره به هيڅ شی نه لازميږي ماسوا له استغفار څخه وَصَارَ كَمَا إِذَا أَكَلَهُ مُحْرِمٌ غَيْرُهُ او داسې سو لکه يو بل محرم چې (له هغې څخه) خوراک وکړي وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ حُرْمَتَهُ بِاعْتِبَارِ كَوْنِهٖ مَيْتَةً او د امام صاحب دليل دا دی چې د محرم د ذبيحې حرامېدل د هغې د مردار بدلو په وجه دی (يعني په دې وجه دی چې هغه کواکې په خپله مرداره سوې ده) كَمَا ذَكَرْنَا لکه موږ چې ذکر کړه وَبِاعْتِبَارِ أَنَّهٗ مَحْظُوْرُ إِحْرَامِهٖ او په دې وجه چې ذبيحه د هغه د احرام له ممنوعاتو څخه ده لِأَنَّ إِحْرَامَهٗ هُوَ الَّذِيْ أَخْرَجَ الصَّيْدَ عَنِ الْمَحَلِّيَّةِ ځکه چې د هغه احرام هغه شی دی چې ښکار يې له خپل محل څخه وېستی (او مردار يې جوړ کړی) وَالذَّابِحَ عَنِ الْأَهْلِيَّةِ فِيْ حَقِّ الذَّكَاةِ او حلالونکی يې د حلالولو له اهليت (او لياقت) څخه وېستی فَصَارَتْ حُرْمَةُ التَّنَاوُلِ بِهٰذِهِ الْوَسَائِطِ مُضَافَةً إِلٰى إِحْرَامِهٖ نو په دې واسطو (او ذريعو) سره به د خوړلو حرامېدل د هغه د احرام و طرف ته منسوب وي بِخِلَافِ مُحْرِمٍ آخَرَ په خلاف د بل محرم لِأَنَّ تَنَاوُلَهٗ لَيْسَ مِنْ مَحْظُوْرَاتِ إِحْرَامِهٖ ځکه د بل محرم خوړل د هغه د احرام له ممنوعاتو څخه نه دي.

**اللغات:** ﴿وسائط﴾ واسطې، ذريعې، ﴿تناول﴾ د تفاعل مصدر دی: خوړل، خوراک کول، استعمالول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو محرم د ښکار حيوان حلال کړی، او د هغه جزاء يې هم اداء کړه، بيا يې له هغه څخه څه غوښې وخوړلې، نو څومره غوښې چې هغه خوړلې وي د هغه په اندازه قيمت پر هغه واجب دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز، او صاحبين فرمايي چې په دې صورت کې پر محرم هيڅ شی نه واجبيږي، ماسوا له استغفار څخه، لېکن که د ښکار جزاء هغه اداء کړې نه وه، او بيا يې د هغه غوښې وخوړلې، نو د امام صاحب په نېز هم پر هغه فقط جزاء واجبيږي، او د غوښو قيمت به په جزاء کې تداخل کوي. (بنايه ج:۴، ص: ۳۲۳)؛ او که له دې حيوان څخه يو بل محرم څه خوراک وکړي، نو د ټولو په نېز پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في المبسوط ج:۳، ص: ۱۰۰. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۳۲]

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د محرم دا ذبيحه مرداره ده. او د مردار شي په خوړلو سره هيڅ تاوان نه واجبيږي، ماسوا له استغفار څخه. او دا داسي سو لکه د دغه ذبيحې څخه چي بل محرم خوراک کړی وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي محرم ذبيحه په دوو[٢] وجهو سره حرامه ده: (١) يو خو ځکه چي د هغه ذبيحه مرداره ده. يعني داسي ده لکه حيوان چي په خپله مردار سي، لکه موږ چي ذکر کړه. (٢) او دويم ځکه چي د هغه ذبيحه د هغه د احرام له ممنوعاتو څخه ده يعني په حالت د احرام کي يې د هغه لپاره خوړل جرم او جنايت دی، د هغه وجه دا ده چي همد دغه احرام په وجه دا ذبيحه د ذبحي له محل څخه ووتله، او همد دغه احرام په وجه له محرم څخه د ذبحي اهليت ختم سو. نو د دې واسطو په وجه به د دې ذبيحې حرمت د هغه د احرام و طرف ته منسوبيږي، نو ثابته سوه چي د محرم لپاره له خپلي ذبيحې څخه خوړل د احرام له ممنوعاتو څخه دي. او د احرام له ممنوعاتو څخه يو ممنوع کار کول جزاء واجبوي، نو په دې وجه به پر هغه د خوړل سوو غوښو قيمت واجب وي، په خلاف د بل محرم ځکه چي د هغه لپاره د بل محرم له ذبيحې څخه خوړل د احرام له ممنوعاتو څخه نه دي، نو کله چي د بل له ذبيحې څخه خوړل د احرام له ممنوعاتو څخه نه دي. نو ضمان به هم پر واجب نه وي.

## د محرم لپاره د غيرِ محرم د ښکار د خوړلو حکم

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَأْكُلَ الْمُحْرِمُ لَحْمَ صَيْدٍ او هيڅ پروا نه لري چي محرم د داسي ښکار غوښې وخوري اِصْطَادَهُ حَلَالٌ وَذَبَحَهُ چي هغه يو حلال سړي ښکار کړی او حلال کړی وي إِذَا لَمْ يَدُلَّ الْمُحْرِمُ عَلَيْهِ په دې شرط چي محرم دا ښکار ور ښوولی نه وي وَلَا أَمَرَهُ بِصَيْدِهِ او نه يې د هغه د ښکارولو حکم ور ته کړی وي خِلَافًا لِمَالِكٍ فِيمَا إِذَا اصْطَادَهُ لِأَجْلِ الْمُحْرِمِ د امام مالک رَحِمَهُ الله په هغه صورت کي اختلاف دی چي کله حلال سړي د محرم لپاره ښکار کړی وي لَهُ قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1]: لَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْمُحْرِمِ لَحْمَ صَيْدٍ د امام مالک رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: "هيڅ حرج نسته محرم لره د ښکار د غوښو په خوړلو کي مَا لَمْ يَصِدْهُ أَوْ يُصَدْ لَهُ تر څو چي خپله يې ښکار کړی نه وي يا د هغه لپاره ښکار کړی سوي نه وي" وَلَنَا[2] مَا رُوِيَ أَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ تَذَاكَرُوا لَحْمَ الصَّيْدِ فِي حَقِّ الْمُحْرِمِ او زموږ دليل هغه روايت دی چي صحابه وو د محرم په حق کي د ښکار د غوښو يادونه وکړه فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا بَأْسَ بِهِ نو نبي ﷺ وفرمايل: "چي د دې په خوړلو کي هيڅ پروا نسته" وَاللَّامُ فِيمَا رُوِيَ لَامُ تَمْلِيكٍ او د امام مالک په روايت کړی سوي حديث کي چي کوم لام دی هغه د تمليک لپاره دی فَيُحْمَلُ عَلَى أَنْ يُهْدَى إِلَيْهِ الصَّيْدُ دُونَ اللَّحْمِ نو هغه حديث به پر دې مفهوم حمل کيږي چي محرم لره ښکار په هدی کي ورکړل سي نه غوښې (يعني د حديث مفهوم به دا وي: "هيڅ حرج نسته محرم لره د ښکار د غوښو په خوړلو کي تر څو چي يې خپله ښکار کړی نه وي يا هغه ته بل چاژوندی ښکار په هديه کي ورکړی نه وي) أَوْ مَعْنَاهُ أَنْ يُصَادَ بِأَمْرِهِ يا د هغه معنیٰ دا ده چي د محرم په حکم سره ښکار کړی سوی وي ثُمَّ

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد فی کتاب الحج، باب لحم الصيد للمحرم، حديث رقم: ١٧٥١.

[2] تخريج: أخرجه النسائي فی کتاب المناسک، باب ما يجوز للمحرم أكله من الصيد، حديث رقم: ٢٨١٨، ٢٨١٩.

ثُمَّ شَرَطَ عَدَمَ الدَّلَالَةِ بيا امام قدوري رَحِمَهُ الله د (ښکار) نه ور وښوول شرط کړي دي وَهٰذَا تَنْصِيْصٌ عَلٰى أَنَّ الدَّلَالَةَ مُحَرَّمَةٌ او دا جمله د دې خبرې تصريح ده چې ښکار ورښوول حرام دي قَالُوْا: فِيْهِ رِوَايَتَانِ علماؤ فرمايلي دي: چې په دې کې دوه روايتونه دي وَوَجْهُ الْحُرْمَةِ حَدِيْثُ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ او د حرمت دليل د ابو قتاده ﷺ حديث دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او هغه موږ (مخکې) ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿اصطاد﴾ د افتعال ماضي ده: ښکار کول. ﴿تذاکروا﴾ د تفاعل ماضي ده: په خپل مينځ کې د يو شي يادونه کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو غيرِمحرم ښکار وکړی، او حلال يې کړی. او بل محرم سړي هغه ته د دې ښکار هيڅ ښوونه نه وکړه، او نه يې د هغه د ښکارولو حکم ورته وکړی، نو زموږ په نېز که دا محرم سړی د داسې ښکار غوښې وخوړلې، نو پر محرم هيڅ ضمان نه واجبيږي، او امام مالک فرمايي چې که غيرِمحرم د محرم لپاره ښکار وکړی په دې توګه چې دا نيت يې وکړی چې ښکار به په محرم خورم، نو که په دې صورت کې محرم له ښکار څخه خوړاک وکړی، نو پر محرم به د خوړل سوو غوښو ضمان واجب وي، هغه که محرم د ښکار حکم ورته کړی وي، که نه وي.

**د امام مالک دليل:** دا حديث دی چې د محرم لپاره د داسې ښکار په خوړلو کې هيڅ حرج نسته چې هغه نه محرم ښکار کړی وي، او نه د هغه لپاره ښکار سوی وي، له دې حديث څخه معلوميږي چې که د محرم لپاره ښکار سوی وي، نو هم به د محرم لپاره له هغه څخه خوړل جائز نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې يو وار صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په دې باره کې مجلس کوی چې د محرم لپاره د بل غيرِ محرم ښکار خوړل څرنګه دي؟ په دې مجلس کې د دوی آواز پورته سو چې په هغه سره سرادرِ کونين ﷺ په خپل حجره کې له خوب څخه راپورته سو، او ويې فرمايل په څه باره کې مجلس کوئ؟ صحابه وو مسئله ورته بيان کړه، نو نبي ﷺ وفرمايل: لا بأس به. (يعني د هغه په خوړلو کې څه پروا نسته).

واللام فيما روی الخ د امام مالک رَحِمَهُ الله د حديث جواب دا دی چې په أو يصاد له کې لام د تمليک لپاره دی. او د حديث مفهوم دا دی چې که غير محرم ښکار وکړی، او هغه ښکار يې محرم ته هديه کړی. نو بيا يې محرم نه سي خوړلای، ځکه چې په دې صورت کې محرم د ښکار مالک جوړيږي، او ښکار کول يا د هغه مالک جوړېدل دواړه د محرم په حق کې صحيح نه دي، ليکن که غيرِ محرم يو محرم ته ښکار نه بلکې د ښکار غوښې په هديه کې ورکړي. نو د محرم لپاره د هغه خوړل بالکل جائز دي، او دا حديث مطلب دا نه دی چې که د محرم په نيت يې ښکار وکړی، نو هغه به حلال نه وي.

أو معناه الخ دويم جواب دا دی چې د حديث مطلب دا دی: که غيرِ محرم د يو محرم په حکم او أمر سره ښکار وکړی، نو څرګنده خبره ده چې دا ښکار به د محرم وي، نو ځکه به د محرم لپاره له هغه څخه خوړل صحيح نه وي.

ثم شرط الخ د دې حاصل دا دی چې امام قدوري رَحِمَهُ الله چې په متن کې د إذا لم يدل المحرم عليه الخ په عبارت سره د ښکار د نه ورښوولو او دلالت نه کولو کوم شرط لګولی دی، له هغه څخه په ډاګه دا فهمول کيږي چې د محرم لپاره د ښکار ورښوول هم حرام دي، او د ورښوول سي ښکار غوښې خوړل هم حرام دي، ليکن په دې مسئله کې د فقهاؤ دوه

نظرونه دي، لکه صاحب د بنايې چې هم ليکلي دي چې د حُرمت نظر او روايت د امام طحاوي رَحِمَهُ الله دی، او د حلت روايت د ابو عبيد الله جرجاني دی (يعني د هغه په نيز د ور ښوول سوي ښکار غوښې خوړل محرم ته روا دي). (بنايه ج۴، ص۴۴۷)

## د غير محرم لپاره د حرم د حيواناتو د ښکارولو حکم

وَإِنْ صَيْدِ الْحَرَمِ إِذَا ذَبَحَهُ الْحَلَالُ او د حرم په ښکار کې چې کله يې حلال سړی ذبح کړي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ يَتَصَدَّقُ بِهَا عَلَى الْفُقَرَاءِ نو د هغه قيمت واجبيږي چې هغه به پر فقيرانو تقسيموي لِأَنَّ الصَّيْدَ اِسْتَحَقَّ الْأَمْنَ بِسَبَبِ الْحَرَمِ ځکه چې ښکار د حرم په سبب د أمن حقداره دی قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] فِي حَدِيْثٍ فِيْهِ طُوْلٌ: وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا نبي ﷺ په يوه اوږده حديث کې فرمايلي دي: او د حرم ښکار به نه ټرول (بېرول) کيږي وَلَا يُجْزِيْهِ الصَّوْمُ او د هغه لپاره روژه نيول کافي نه دي لِأَنَّهَا غَرَامَةٌ ځکه چې د ښکار قيمت تاوان دی وَلَيْسَتْ بِكَفَّارَةٍ او کفاره نه ده فَأَشْبَهَ ضَمَانَ الْأَمْوَالِ نو دا د مالونو د ضمان سره مشابه سو وَهٰذَا لِأَنَّهُ يَجِبُ بِتَفْوِيْتِ وَصْفٍ فِي الْمَحَلِّ وَهُوَ الْأَمْنُ او دا (يعني د حلال سړي لپاره د روژې د نه صحيح کېدلو وجه دا ده) چې ضمان واجبيږي په محل کې د وصف يعني د امن په فوتولو سره وَالْوَاجِبُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِطَرِيْقِ الْكَفَّارَةِ جَزَاءٌ عَلَى فِعْلِهِ او پر محرم چې د کفارې په توګه کوم څه واجب سوي دي هغه د محرم د فعل جزاء ده لِأَنَّ الْحُرْمَةَ بِاعْتِبَارِ مَعْنًى فِيْهِ وَهُوَ إِحْرَامُهُ ځکه چې حُرمت د داسې معنیٰ په وجه دی کوم چې په محرم کې سته او هغه د ده احرام دی وَالصَّوْمُ يَصْلُحُ جَزَاءَ الْأَفْعَالِ لَا ضَمَانَ الْمَحَالِّ او روژه د افعالو جزاء جوړېدای سي (لېکن) د محل ضمان نه سي جوړېدلای وَقَالَ زُفَرُ: يُجْزِيْهِ الصَّوْمُ اِعْتِبَارًا بِمَا وَجَبَ عَلَى الْمُحْرِمِ او امام زفر فرمايي: چې د حلال لپاره (هم) روژه نيول جائز دي پر هغه شي باندې په قياسولو سره کوم چې پر محرم واجب سوي وي وَالْفَرْقُ قَدْ ذَكَرْنَاهُ او فرق موږ (اوس) ذکر کړی (چې روژه د افعالو جزاء جوړېدای سي لېکن... الخ) وَهَلْ يُجْزِيْهِ الْهَدْيُ؟ فَفِيْهِ رِوَايَتَانِ او آيا د هغه لپاره هدی ورکول کافي دي؟ نو په دې لړ کې دوه روايتونه دي.

**اللغات:** ﴿لا ينفّر﴾ د تفعيل نفي مجهوله صيغه ده: ټرول، ډارول، زغلول. ﴿غرامة﴾ تاوان، جرمانه.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو غيرِ محرم يعني حلال سړی د حرم ښکار قتل کړي، نو څرنګه چې د حرم هر شی د احترام او د أمن مستحق دی، نو ځکه به د قتل په وجه پر دې سړي د مقتول حيوان قيمت واجبيږي، او دا قيمت به پر فقيرانو او مکسينانو تقسيموي، د دې حکم ښکاره دليل دا هم دی چې په يوه اوږده حديث کې د نبي ﷺ دا فرمان ذکر سوی دی: وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا، (يعني حرم دومره مقدس او سپېڅلی ځای دی چې د هغه د ښکار د بېرولو او شړلو اجازه هم هيچا ته نسته، د هغه وژل خو لا څه کوې!؟) لهٰذا که يو څوک د حرم ښکار قتل کړي، نو پر هغه به د دې ښکار ټوله قيمت واجبيږي.

ولايجزيه الصوم الخ د دې حاصل دا دی که يو غير محرم سړي د ښکار تر قتلولو وروسته د هغه د قيمت ورکولو پر ځای د محرم په شان روژې ونيولې، نو آيا دا روژې کافي دي؟، فرمايي چې د غيرِ محرم په حق کې د ښکار په جزاء کې صرف

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب العلم، باب كتابة العلم، حديث رقم: ١١٢، و ابو داؤد في كتاب المناسك، باب تحريم مكة، حديث رقم: ٢٠١٧.

قیمت واجبیږي، او روژې کفایت نه کوي، ځکه چې قیمت اداء کول تاوان دی، کفاره نه ده. نو دا تاوان د اموالو د ضمان سره مشابه سو، لهذا څرنګه چې د مالي ضمان اداء به صرف په مال سره کیږي، او په بل شي سره به نه کیږي، همدارنګه به د دغه ښکار ضمان هم صرف په قیمت سره اداء کیږي، په بل شي سره به نه اداء کیږي.

وهذا الخ او د محرم په ښکار کي د روژې د صحیح کېدلو او د غیرِ محرم یعني د حلال سړي په ښکار کي د روژې د نه صحیح کېدلو په مینځ کي د فرق وجه دا ده چې پر محرم د خپل فعل په وجه جزاء واجبیږي (ځکه چې د هغه په حق کي د ښکار د حراموالي وجه د هغه احرام دی)، نو ځکه به د هغه لپاره روژې نیول کافي وي، او پر غیرِ محرم په دې وجه جزاء واجبیږي، چې هغه د محل یعني د حرم د ښکار صفت یعني امن او سکون فوت کړی، او روژه خو د فعل جزاء جوړېدای سي، لېکن د محل جزاء نه سي جوړېدای، نو ځکه به د محرم په حق کي روژه کافي وي، او د غیرِ محرم په حق کي به کافي نه وي.

وقال زفر الخ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چې د غیرِ محرم لپاره هم روژه نیول جائز او صحیح دي، لکه څرنګه چې د محرم لپاره جائز دي، همدا د امام مالک او امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی، صاحب د هدایې فرمایي چې د محرم په ښکار او د غیرِ محرم په ښکار کي موږ د فرق وجه ذکر کړه، نو ځکه به یو پر بل قیاسول صحیح نه وي.

وهل یجزیه الهدی الخ د دې عبارت دوه مطلبه دي: [۱] یو مطلب یې دا دی چې محرم چې کومه هدی د ذبحه کولو لپاره د ځان سره مکې مکرمې ته را وستې وي، نو که هغه د ښکاره په بدله کي ذبحه کړي، کافي به وي، که نه؟ نو په دې باره کي د مشائخو دوه روایتونه دي: (۱) یو دا چې دا هدی به د ښکار په بدله کي کافي وي، (۲) او دویم دا چې کافي به نه وي، ځکه چې دا خو د حج یا د عمرې هدی ده. [۲] دویم مطلب یې دا دی چې که د حرم د ښکار په بدله کي یو څاروی ذبحه کړي نو دا به کافي وي، که نه؟، نو په دې باره کي دوه نظرونه ده: (۱) یو دا چې کافي به وي، او دویم دا چې کافي به نه وي.

## له دباندي څخه حرم ته د ښکار راوړلو حکم

وَمَنْ دَخَلَ الْحَرَمَ بِصَيْدٍ او څوک چې حرم ته ښکار راولي فَعَلَيْهِ أَنْ يُرْسِلَهُ فِيهِ إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ نو پر هغه واجب دي چې دا ښکار په حرم کي ایله کړي په دې شرط چې ښکار د هغه په قبضه کي وي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله په خلاف د امام شافعي فَإِنَّهُ يَقُولُ: حَقُّ الشَّرْعِ لَا يَظْهَرُ فِي مَمْلُوكِ الْعَبْدِ لِحَاجَةِ الْعَبْدِ ځکه هغه فرمایي: چې د بنده د حاجت په وجه به د بنده په مملوک شي کي د شریعت حق نه ښکاره کیږي وَلَنَا أَنَّهُ لَمَّا حَصَلَ فِي الْحَرَمِ وَجَبَ تَرْكُ التَّعَرُّضِ لِحُرْمَةِ الْحَرَمِ او زموږ دلیل دا دی چې کله دا ښکار په حرم کي داخل سو نو د حرم د احترام په وجه د تعرّض (یعني د لاس وهني) پرېښوول واجب سوه إِذْ صَارَ هُوَ مِنْ صَيْدِ الْحَرَمِ ځکه چې هغه (اوس) د حرم ښکار سو فَاسْتَحَقَّ الْأَمْنَ نو د أمن حقداره به وي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی (یعني ولا ینفر صیدها).

**اللغات:** ﴿یرسل﴾ د افعال مضارع ده: پرېښوول.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده که یو سړي د ښکار یو حیوان حرم ته را وستی، نو پر هغه واجب دي چې دا ښکار ایله کړي، ځکه چې حرم ته د داخلېدلو په وجه هغه ښکار په أمن سو، او د حرم د احترام په خاطر نه پر هغه تعرض کول جائز دي، او نه د

هغه امن فوتول صحيح دي، لکه دا حديث چې په دې باره کې ګواه دی: ولا ينفر صيدها. لهذا پر مالک به د هغه ايله کول، او له بند څخه آزادول ضروري وي.

د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا ښکار ايله کول او آزادول واجب نه دي، د هغه دليل دا دی چې حرم ته د ننوتلو په وجه د ښکار ايله کول د شريعت حق دي، او هغه خپل په قبضه کې ساتل د بنده حق دي، او بنده خپل حق ته محتاجه دی (يعني حاجت ور ته لري)، خو شريعت هغه ته هيڅ حاجت نه لري. نو څکه به د بنده حق د شريعت پر حق مخکې وي، او د ښکار ايله کول به صحيح نه وي. (د احنافو دليل د مسئلې په اول کې بيان سو).

## د ښکار د خرڅولو حکم

فَإِنْ بَاعَهُ رُدَّ الْبَيْعُ فِيهِ بيا که هغه سړی ښکار خرڅ کړي نو د ښکار په حق کې به بيع رد کيږي إِنْ كَانَ قَائِمًا په دې شرط چې ښکار موجود وي لِأَنَّ الْبَيْعَ لَمْ يَجُزْ لِمَا فِيهِ مِنَ التَّعَرُّضِ لِلصَّيْدِ څکه بيع جائز نه ده څکه چې په بيع کې په ښکار لاس وهل (او کار لرل) دي وَذَلِكَ حَرَامٌ او دا حرام دي وَإِنْ كَانَ فَائِتًا فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ او که ښکار موجود نه وي نو پر بائع جزاء واجبيږي لِأَنَّهُ تَعَرَّضَ لِلصَّيْدِ څکه چې هغه په ښکار لاس ووهی بِتَفْوِيتِ الْأَمْنِ الَّذِي اسْتَحَقَّهُ د هغه امن په فوتولو سره چې د هغه ښکار مستحق وو وَكَذَلِكَ بَيْعُ الْمُحْرِمِ الصَّيْدَ مِنْ مُحْرِمٍ أَوْ حَلَالٍ او همدارنګه د محرم لپاره پر بل محرم يا حلال سړي ښکار خرڅول دي (يعني په هغه کې به هم بيع رد کيږي يا به جزاء واجبيږي) لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې مو‌ږ بيان کړی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو حلال سړي حرم ته د ښکار يو حيوان را وستی، او هلته يې خرڅ کړی، نو دا بيع به ردّ کيږي، په دې شرط چې هغه ښکار موجود وي. څکه چې دا بيع ناجائزه ده، او ناجائزه څکه ده چې په دې کې پر ښکار تعرّض کول او لاس وهل راځي، او په ښکار باندې په حرم کې دننه تعرض کول حرام دي. نو کله چې دا بيع ناجائزه سوه، نو څکه به يې رد کول واجب وي. او که هغه ښکار موجود نه وي (بلکې فوت سي)، نو پر بائع به د هغه جزاء واجبيږي، څکه ښکار چې د کوم امن مستحق وو، دغه سړي په بيع سره د هغه امن ضايع کړی (او پر هغه يې تعرض وکړی).

وكذلك الخ فرمايي چې همدارنګه که يو محرم د ښکار حيوان پر بل محرم يا غيرِ محرم خرڅ کړی. او هغه ښکار موجود وو، نو بيع به رد کيږي، او که موجود نه وو، نو د هغه قيمت به واجبيږي.

لما قلنا د هغه دليل په وجه کوم چې اوس دوې ليکې مخکې تېر سو.

## که د محرم سره په قفس (کپس) کې يا په کور کې ښکار وي نو د هغه حکم

وَمَنْ أَحْرَمَ وَفِي بَيْتِهِ أَوْ فِي قَفَصٍ مَعَهُ صَيْدٌ او څوک چې په داسې حال کې احرام وتړي چې د هغه سره په کور کې يا په کپس کې ښکار وي فَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُرْسِلَهُ نو پر هغه د دې پرېښوول (ايله کول) واجب نه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَجِبُ عَلَيْهِ أَنْ يُرْسِلَهُ او امام شافعي فرمايي: چې پر هغه د دې پرېښوول واجب دي لِأَنَّهُ مُتَعَرِّضٌ لِلصَّيْدِ بِإِمْسَاكِهِ فِي مِلْكِهِ څکه چې هغه پر ښکار تعرض کونکی دی په خپل قبضه کې د هغه د نيولو په وجه فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ

نو داسي سو لکه د هغه په لاس کي چي ښکار وي وَلَنَا أَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ كَانُوا يُحْرِمُونَ وَفِي بُيُوتِهِمْ صُيُودٌ وَدَوَاجِنُ او زموږ دليل دا دی چي صحابه وو به په داسي حال کي احرامونه تړل چي د هغوی په کورو کي به د ښکار حيوانان او د واجن ول (له دواجن څخه مراد څنګلي پالل سوي حيوانان دي) وَلَمْ يُنْقَلْ عَنْهُمْ إِرْسَالُهَا او له صحابه وو څخه د هغو پرېښوول نه دي رانقل سوي وَبِذَلِكَ جَرَتِ الْعَادَةُ الْفَاشِيَةُ او په کورو کي د هغو پر ساتلو عام(او مشهور) عادت جاري وو وَهِيَ مِنْ إِحْدَى الْحُجَجِ او عام عادت(هم) له دليلونو څخه يو دليل دی وَلِأَنَّ الْوَاجِبَ تَرْكُ التَّعَرُّضِ او ځکه چي واجب تعرض پرېښوول دي وَهُوَلَيْسَ بِمُتَعَرِّضٍ مِنْ جِهَتِهِ حال دا چي محرم له خپل طرفه تعرض کونکی نه دی لِأَنَّهُ مَحْفُوظٌ بِالْبَيْتِ وَالْقَفَصِ ځکه چي ښکار په کور يا کپس کي خوندي دی لَا بِهِ نه په محرم سره (يعني محرم خود خپل ځان سره خوندي کړی نه دي) غَيْرَأَنَّهُ فِي مِلْكِهِ (او) دا بېله خبره ده چي ښکار د هغه په ملکيت کي دی وَلَوْأَرْسَلَهُ فِي مَفَازَةٍ فَهُوَعَلَى مِلْكِهِ او(مثلاً) که محرم په يوه دښت(او ځنګله) کي ښکار ايله کړي نو بيا به (هم) هغه د ده په ملکيت کي وي فَلَا مُعْتَبَرَبِبَقَاءِ الْمِلْكِ نو د ملکيت د پاته کېدلو هيڅ اعتبار نسته وَقِيلَ: إِذَا كَانَ الْقَفَصُ فِي يَدِهِ لَزِمَهُ إِرْسَالُهُ او ويل سوي دي: که کپس د هغه په لاس کي وي نو پر هغه د ښکار پرېښوول ضروري دي لٰكِنْ عَلَى وَجْهٍ لَا يَضِيعُ خو په داسي توګه چي ښکار ضايع نه سي.

**اللغات:** ﴿قفص﴾ کپس، ﴿دواجن﴾ په کور کي پالل سوي ځنګلي او دښتي حيوانان، ﴿فاشية﴾ عام، مشهور.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي په داسي حالت کي احرام وتړی چي په کپس کي ښکار ور سره وو، يا د هغه په کور کي ښکار وو، نو پر هغه د ښکار پرېښوول واجب نه دي، امام شافعي فرمايي چي پر هغه د ښکار پرېښوول واجب دي، همدا قول د امام مالک دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي په خپل ملکيت او قبضه کي د ښکار په ساتلو سره محرم تعرض کونکی سو، او داسي سو لکه ښکار چي يې په خپل لاس کي نيولی وي، او د محرم لپاره پر ښکار تعرض کول حرام دي، نو ځکه به د هغه پرېښوول واجب وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي صحابه وو به په داسي حالت کي احرامونه تړل چي د هغوی په کورونو کي به د ښکار حيوانان، مارغان او دواجن هم ول، او له هغو څخه تر احرام تړلو وروسته د هغو ايله کول او پرېښوول رانقل سوي نه دي، بلکي په شهرت سره د نه پرېښوولو عادت را نقل سوی دی، او عادت هم له شرعي دلائلو څخه يو دليل دی، نو ځکه به د دې شيانو پرېښوول واجب نه وي.

ولأن الواجب الخ دويم دليل دا دی چي پر محرم واجب دا دي چي پر ښکار به تعرض نه کوي(يعني لاس به نه په وهي)، او دلته محرم له خپل طرف څخه پر ښکار بالکل هيڅ تعرض کړی نه دي، ځکه چي د هغه سره خو ښکار په کور يا کپس کي خوندي دی، او په لاس کي يې نه دی، هو! دا جلا خبره ده چي د هغه په ملکيت کي دی، نو که محرم دا ښکار په دښت او صحراء کي پرېږدي ([يعني ايله يې کړي] نو اوس که څه هم هغه متعرض نه دی)، لېکن بيا هم ښکار د هغه په ملکيت کي شمارل کيږي، نو معلومه سوه چي د ملکيت پاتېدل معتبر نه دي، او معلومه سوه چي د ملکيت سره سره

تعرض هم نه راځي، نو ځکه به د ښکار ایله کول پر هغه واجب نه وي. بس! هغه به فقط ښکار د خپل ځان سره نه ساتي، او نه به لاس ور وړي، چې تعرض ثابت نه سي.

وقيل إذا كان الخ ځيني حضراتو ویلي دي چې که کپس د محرم په لاس کې وي، نو د ښکار ایله کول او پرېښوول واجب دي، خو پر داسي طریقه به یې پرېږدي چې هغه ضایع او هلاک نه سي، ځکه چې د مال بربادول حرام دي، نو ځکه به یې په یو خوندي ځای کې یا په خپل کور کې پرېږدي.

## که څوک د حلال سړي ښکار ایله کړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: فَإِنْ أَصَابَ حَلَالٌ صَيْدًا فرمايي: که حلال سړی یو ښکار حاصل کړي ثُمَّ أَحْرَمَ بیا احرام وتړي (یعني محرم سي) فَأَرْسَلَهُ مِنْ يَدِهِ غَيْرُهُ بیا د هغه د لاس څخه یو بل څوک دا ښکار ایله کړي يَضْمَنُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ (نو) د امام صاحب په نېز به دا سړی (د تاوان) ضامن کېږي وَقَالَا●: لَا يَضْمَنُ او صاحبين فرمايي: چې نه به ضامن کېږي لِأَنَّ الْمُرْسِلَ آمِرٌ بِالْمَعْرُوفِ نَاهٍ عَنِ الْمُنْكَرِ ځکه چې ایله کونکی د ښک کار حکم کونکی او له بدو څخه منع کونکی دی وَ مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ[التوبة: ۹۱] او پر ښکي کونکو هيڅ نيوکره نسته (یعني پر نیکي کونکو هیڅ ضمان نسته ځکه چې هغوی د الله ﷻ د رضا لپاره یو کار کوي) وَلَهُ أَنَّهُ مَلَكَ الصَّيْدَ بِالْأَخْذِ مِلْكًا مُحْتَرَمًا او د امام صاحب دلیل دا دی چې محرم په نیولو سره د ملکِ محترم په توګه د ښکار مالک سو فَلَا يَبْطُلُ احْتِرَامُهُ بِإِحْرَامِهِ نو د احرام د تړلو په وجه به د هغه محترم ملک نه باطلیږي وَقَدْ أَتْلَفَهُ الْمُرْسِلُ او ایله کونکي دا ملکِ محترم ضایع کړی فَيَضْمَنُهُ نو ځکه به هغه ضمان ورکوي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَخَذَهُ فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ په خلاف د هغه صورت چې کله یې د احرام په حالت کې ښکار نیولی وي ځکه (په دې صورت کې) محرم (ګردسره) د ښکار مالک نه جوړېږي وَالْوَاجِبُ عَلَيْهِ تَرْكُ التَّعَرُّضِ او پر هغه حلال سړي (کوم چې وروسته محرم سو) د تعرض پرېښوول واجب وو وَيُمْكِنُهُ ذٰلِكَ او دا د هغه لپاره ممکن (هم) وو بِأَنْ يُخَلِّيَهُ فِي بَيْتِهِ په دې توګه چې ښکار یې په خپل کور کې پرې ایښي وای فَإِذَا قَطَعَ يَدَهُ عَنْهُ (لېکن) کله چې ایله کونکي د محرم قبضه له ښکار څخه ختمه کړه كَانَ مُتَعَدِّيًا نو هغه تعدیٰ کونکی سو (لهذا ضمان به پر هغه واجب وي) وَنَظِيرُهُ الْاِخْتِلَافُ فِي كَسْرِ الْمَعَازِفِ او د دې مثال هغه اختلاف دی کوم چې د لوبي او بازۍ د شیانو په ماتولو کې دی.

**اللغات:** ﴿أرسل﴾ د افعال ماضي ده: پرېښوول، ایله کول (خوشي کول)، ﴿يُخَلِّي﴾ د تفعیل مضارع ده: پرېښوول، ﴿متعدي﴾ د تفعّل اسم فاعل دی: تجاوز او زیاتي کونکی، ﴿معازف﴾ د عیش و عشرت او بازۍ سامان.

---

● القول الراجع: قول الصاحبين، كذا في رد المحتار ج:۲، ص: ۲۴۱. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۳۵]

تشريح: صورت د مسئلې: دا دی که يو غيرِ محرم ښکار ونيوی، او تر هغه وروسته يې احرام وتړی او محرم سو، بيا يو بل سړي د هغه د لاس څخه ښکار ايله کړی، نو د امام صاحب په نېز دا دويم سړی ضامن کيږي، او د صاحبينو په نېز نه ضامن کيږي.

د صاحبينو دليل: دا دی چي دا ايله کونکی د أمر بالمعروف او نهی عن المنکر کونکی دی، هغه په دې توګه چي د احرام تر ترلو وروسته ښکار نيول جرم دي، او شرعاً قبيح دي، او دې سړي د محرم د لاس څخه ښکار ايله کړی، نو امر بالمعروف او نهی عن المنکر يې وکړی، او په شريعت کي پر نيکي کونکو هيڅ نيوکړه نسته، نو پر هغه به هم هيڅ نيوکړه او ضمان نه وي.

د امام صاحب دليل: دا دی چي کله دې سړي ښکار ونيوی، هغه حلال وو(او د حلال والي په وخت کي چي کوم ملک حاصل سي، هغه ته ملک محترم وايي) لهذا پر ښکار د هغه ملکِ محترم واقع سو، او احرام د هغه ملکِ محترم نه سي باطلوای، ځکه چي بالاتفاق اوس هم د هغه ملک هغسي پاته دی، لېکن د هغه ملکِ محترم ايله کونکي سړي د ښکار په ايله کولو سره ضايع کړی، او ملکيت په هلاکولو او ضايع کولو سره ضمان واجبيږي، نو ځکه به پر ايله کونکي ضمان واجب وي، په خلاف د هغه صورت چي کله يې د احرام په حالت کي نيولی نه وي، ځکه چي د احرام په حالت کي د ښکار په نيولو سره هغه د ښکار نه مالک کيږي، او کله چي نه مالک کيږي، نو ايله کونکي به هم نه ضامن کيږي، ځکه چي هغه ملکيت ضايع نه کړی.

والواجب عليه ترک الخ له دې ځايه د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي موږ دا منو چي کله هغه د حلالوالي په حالت کي ښکار ونيوی، نو د ښکار مالک سو، لېکن تر احرام ترلو وروسته د تعرض په وجه د هغه لپاره ضروري وه چي ښکار يې ايله کړی وای او له خپل ملک څخه يې ايستلی وای، حال دا چي هغه له خپل ملک څخه نه وريستی، بلکي بل سړي ايله کړی او د هغه له ملک څخه يې وريستی، لهذا پر دې ايله کونکي سړي ضمان واجبېدل پکار نه دي، ځکه کوم کار چي محرم ته کول پکار وو، هغه کار ده وکړی، جواب دا دی چي پر محرم د ښکار تعرض پرېښوول واجب وو، او له خپل ملک څخه يې ايستل واجب نه وو، او د تعرض پرېښوول په هغه وخت کي هم ممکن وو چي ښکار د محرم په ملک کي پاته وای، په دې توګه چي محرم دا ښکار په خپل کور کي يا په يو بل خوندي ځای کي پرې ايښی وای، نو په دې صورت کي به تعرض هم نه راتلی، او د محرم ملک به هم پاته وای، خو کله چي دويم سړي د محرم ملک او قبضه له ښکار څخه ختمه کړه، نو دا ايله کونکی تعدیٰ کونکي سو، او پر تعدیٰ کونکي ضمان واجبيږي، نو ځکه به پر هغه هم ضمان واجب وي.

ونظيرة الخ فرمايي چي د امام صاحب او د صاحبينو د دې اختلاف مثال داسي دی لکه د معازفو د ماتولو اختلاف چي دی، مثلاً که يو سړي د بل چا د لهو ولعب شيان مات کړل، نو د امام صاحب په نېز پر هغه ضمان واجبيږي، لېکن د صاحبينو په نېز نه واجبيږي، ځکه چي هغه ناهي عن المنکر دی، او د نبي ﷺ په دې فرمان عمل کونکی دی: من رأى منكم منكرا فليغيره بيده.

## كه څوک د محرم ښكار ايله كړي نو څه حكم دى؟

وَإِذَا أَصَابَ مُحْرِمٌ صَيْدًا او كه محرم ښكار ونيوى فَأَرْسَلَهُ مِنْ يَدِهِ غَيْرُهُ او د هغه د لاس څخه بل سړي ايله كړى لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق پر هغه ضمان نشته لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ بِالْأَخْذِ ځكه محرم په نيولو سره د ښكار مالک نه سو فَإِنَّ الصَّيْدَ لَمْ يَبْقَ مَحَلًّا لِلتَّمَلُّكِ فِي حَقِّ الْمُحْرِمِ ځكه چي ښكار د محرم په حق كي د ملک جوړېدلو محل پاته نه سو لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا [المائدة: ٩٦] ځكه د الله ﷻ فرمان دى: "او تر څو چي تاسو په احرام كي اووسئ تر هغه وخته پر تاسو د وچي ښكار حرام سوى دى" فَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَى الْخَمْرَ نو داسي سو لكه مسلمان چي شراب رانيسي.

**اللغات**: ﴿تملك﴾ د تفعّل مصدر دى: مالک جوړېدل، ﴿خمر﴾ شراب.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده كه يو محرم ښكار ونيوى، او بل سړي دا ښكار ايله كړى، نو د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نيز پر هغه ضمان نه واجبيږي، ځكه محرم په نيولو سره د هغه مالک نه سو، ځكه چي د محرم په حق كي يو ښكار هم په ملک كي د راتللو محل نه دى، يعني پر يوه ښكار هم د محرم ملكيت نه سي ثابتېدلاى او نه يې هغه مالک جوړېدلاى سي، ځكه الهي فرمان دى: حرم عليكم صيد البر ما دمتم حرمًا، نو دا مسئله داسي سوه لكه يو مسلمان چي شراب رانيسي، او بل سړى يې چپه كړي، نو بالاتفاق پر چپه كونكي سړي تاوان او ضمان نه واجبيږي، ځكه چي شراب حرام دي، او مسلمان د هغه مالک نه سي جوړېدلاى.

## كه د محرم په لاس كي ښكار يو بل محرم قتل كړي نو څه حكم دى؟

فَإِنْ قَتَلَهُ مُحْرِمٌ آخَرُ فِي يَدِهِ بيا كه د محرم په لاس كي يو بل محرم ښكار قتل كړي فَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا جَزَاؤُهُ نو په دوى كي پر هر يوه جزاء واجب ده لِأَنَّ الْآخِذَ مُتَعَرِّضٌ لِلصَّيْدِ بِإِزَالَةِ الْأَمْنِ ځكه چي نيونكى پر ښكار تعرض كونكى دى د ښكار د امن په ختمولو سره وَالْقَاتِلُ مُقَرِّرٌ لِذَلِكَ او محرم قاتل د دې ثابتونكى دى وَالتَّقْرِيرُ كَالِابْتِدَاءِ فِي حَقِّ التَّضْمِينِ او ثابتول د ابتداء په شير دي د ضمان د واجبېدلو په حق كي كَشُهُودِ الطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ إِذَا رَجَعُوا لكه تر دخول مخكي چي كله د طلاق ګواهان رجوع وكړي وَيَرْجِعُ الْآخِذُ عَلَى الْقَاتِلِ او د ښكار نيونكى به پر قتل كونكي رجوع كوي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَرْجِعُ او امام زفر فرمايي: چي رجوع به نه كوي لِأَنَّ الْآخِذَ مُؤَاخَذٌ بِصُنْعِهِ ځكه نيونكى به د خپل فعل په وجه سره مأخوذ وي فَلَا يَرْجِعُ عَلَى غَيْرِهِ نو ځكه به پر بل رجوع نه كوي وَلَنَا أَنَّ الْآخِذَ إِنَّمَا يَصِيرُ سَبَبًا لِلضَّمَانِ عِنْدَ اتِّصَالِ الْهَلَاكِ بِهِ او زموږ دليل دا دى چي نيول د ضمان سبب هغه وخت جوړېږي چي كله هغه سره هلاكت متصل سي فَهُوَ بِالْقَتْلِ جَعَلَ فِعْلَ الْآخِذِ عِلَّةً نو قاتل د قتل په وجه سره د نيونكي فعل علت وګرځوى فَيَكُونُ فِي مَعْنَى مُبَاشَرَةِ عِلَّةِ الْعِلَّةِ نو دا به د علت د علت د ارتكاب كولو په معنىٰ كي وي (يعني دا به داسي دي لكه يو څوک چي د يوه علت لپاره د بل علت مرتكب سي) فَيُحَالُ بِالضَّمَانِ عَلَيْهِ نو ځكه به ضمان پر قاتل ور اړول كيږي.

**اللغات:** ﴿مقرر﴾ د تفعّل اسم فاعل دی: ثابتونکی، پوره کونکی.

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که یو محرم ښکار ونیوی، او تر نیولو وروسته یې په قبضه کې وساتی، لېکن یو بل محرم د هغه په قبضه کې هغه قتل کړی، نو په دې صورت چې کوم چا مخکې ښکار نیولی وو، پر هغه پوره جزاء واجب ده، او چا چې قتل کړی پر هغه هم پوره جزاء واجب ده. دلیل دا دی چې ښکار نیونکې محرم پر ښکار په دې توګه تعرض وکړی چې د هغه امن یې زائل کړی، او تعرض د احرام له ممنوعاتو څخه دی چې ارتکاب یې جزاء واجبوي، نو د تعرض په وجه به پر نیونکې محرم جزاء واجب وي، او د ښکار قتل کونکې محرم دا تعرض مستحکم کړی، څکه که هغه ښکار قتل کړی نه وای نو ممکنه وه چې دې محرم به د ښکار په ایله کولو سره تعرض ختم کړي وای، لېکن د بل محرم د قتل په وجه دا امکان ختم سو، او تعرض متقرّر او ثابت سو، او د ضمان د وجوب په حق کې تقرر او ثبوت هم د ابتداء په څیر دي، یعني د ښکار قتلول هم د تعرض کولو په څیر دي، او څرنګه چې په تعرض کولو سره جزاء واجبیږي، نو د قتلولو په وجه به هم جزاء واجبیږي.

کشهود الطلاق الخ د پورتنۍ مسئلې یو مثال دا دی چې مثلاً فاطمې دا دعوی وکړه: "چې زما خاوند تر دخول وروسته ما ته طلاق راکړی دی، نو څکه دې ماته پوره مهر راکول سي"، لېکن د فاطمې خاوند له دخول څخه انکار وکړی، او دوو ګواهانو د خاوند په حق کې ګواهي ورکړه یعني دا چې خاوند تر دخول مخکې طلاق ورکړی دی، نو فاطمې ته پوره مهر نه ورکول سو، وروسته ګواهانو له خپلې ګواهی څخه رَجوع وکړه، نو هغوی چې په خپله ګواهي سره فاطمې ته کوم تاوان ور رسولی وي، د هغه به ضامن وي، نو که څه هم د هغو ظلم کول د خاوند تر انکار وروسته دي، لېکن د هغو په ضامن کېدلو کې ګواکې ابتداءً ظلم دی، همداسې به قتل کونکی محرم ګواکې د ابتدائې ظلم په وجه ضامن وي.

ویرجع الأخذ الخ فرمایي: ښکار نیونکی محرم چې کوم ضمان اداء کړي، هغه به له قتل کونکې څخه واپس اخلي، او امام زفر فرمایي چې نه به یې اخلي، همدا د صاحبینو قول دی، د امام زفر دلیل دا دی چې ښکار نیونکی به د خپل حرکت یعني د تعرض په وجه مأخوذ وي (یعني پر ښکار نیونکې چې کوم ضمان واجب سوی دی هغه د خپل حرکت او فعل یعني د نیولو په وجه واجب سوی دی)، او په دې کې د قاتل هیڅ لاس نسته، نو څکه به له قاتل څخه هغه واپس نه اخلي، او زموږ دلیل دا دی چې نیونکې فقط ښکار نیولی دی، او فقط ښکار نیول جزاء نه واجبوي، بلکې د هغه قتلول او له منځه وړل جزاء واجبوي، او هغه کار خو قاتل وکړی چې ښکار یې قتل کړی، نو څکه اصل مجرم قاتل سو، څکه چې ډېره ممکنه وه چې نیونکې به ښکار ایله کړی وای، لېکن قاتل د هغه کار تمام کړی، د خپل ځان او د نیونکې تعرض یې مستحکم کړی، نو قاتل د قتل په وجه د نیونکې فعل علت یعني د قتل واسطه او ذریعه جوړ کړی، خو اصل قتل یې په خپله وکړی، نو ګواکې قاتل د علتُ العلت مرتکب سو، نو څکه به د نیونکې ضمان او تاوان هم قاتل ورکوي.

## د حرم د بوټو او د درختو د پرېکولو حکم

فَإِنْ قَطَعَ حَشِيشَ الْحَرَمِ او که یو شوک د حرم وابنه پرېکړي أَوْ شَجَرَةً لَيْسَتْ بِمَمْلُوكَةٍ یا داسې درخته پرېکړي چې د یو چا په ملک کې نه وي وَهُوَ مِمَّا لَا يُنْبِتُهُ النَّاسُ او هغه (وابنه یا درخته) له داسې قسم څخه وي چې خلک یې نه راشنه کوي (بلکې په خپله راشنه کیږي) فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ إِلَّا فِيمَا جَفَّ مِنْهُ نو پر پرېکونکې د هغه قیمت واجب دی ماسوا له وچو وښو څخه لِأَنَّ حُرْمَتَهُمَا ثَبَتَتْ بِسَبَبِ الْحَرَمِ څکه چې د وښو او د درختې حرمت د حرم په سبب ثابت دی قَالَ

عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ●: لَا يُخْتَلَى خَلَاهَا وَلَا يُعْضَدُ شَوْكُهَا نبي ﷺ فرمايلي دي، "د حرم شنه واښه به نه پرېکول کيږي او نه به د هغه ځوزان (ازغيان) ماتول کيږي" وَلَا يَكُونُ لِلصَّوْمِ فِي هٰذِهِ الْقِيْمَةِ مَدْخَلٌ او روژې ته به په دې قيمت کې هيڅ دخل نه وي لِأَنَّ حُرْمَةَ تَنَاوُلِهَا بِسَبَبِ الْحَرَمِ لَا بِسَبَبِ الْإِحْرَامِ ځکه چې د هغو د حاصلولو (يعني د پرېکولو) حرمت د حرم په وجه دی نه د احرام په وجه فَكَانَ مِنْ ضَمَانِ الْمَحَالِّ نو دا به د محل د ضمان له قبيلې ځخه وي عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه مخکې چې موږ بيان کړه (يعني: والصوم يصلح جزاء الأفعال لا ضمان المحال) وَيَتَصَدَّقُ بِقِيْمَتِهِ عَلَى الْفُقَرَاءِ او پرېکونکي به د هغو قيمت پر فقيرانو صدقه کړي وَإِذَا أَدَّاهَا مَلَكَهُ او کله چې د هغو قيمت اداء کړي نو د هغو مالک سو كَمَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ لکه څرنګه چې په حقوقُ العباد کې دي.

**اللغات:** ﴿حشيش﴾ واښه، ﴿خلٰی﴾ ماضي ده: وچېدل، ﴿لا يختلى﴾ د افتعال نفي مضارع مجهوله ده: واښه پرېکول، ﴿خلا﴾ واښه، ﴿يعضد﴾ مضارع مجهوله ده: پرېکول، شکول، ماتول، ﴿شوك﴾ ځوز (ازغی).

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې د حرم هر شی محترم او د امن مستحق دی تر دې چې د هغه ځای درختي، واښه او ازغي هم د امن مستحق دي، او ځوک چې د حرم واښه، درختي يا ازغي پرېکړي، نو د تاوان په توګه به د هغه قيمت ورکول پر ده واجب وي، ځکه چې د حرم د احترام په وجه دا ټوله شيان مأمون او محفوظ دي، او د پرېکولو يا ماتولو اجازه يې نسته، په خپله نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: لا يختلى خلاها ولا يعضد شوكها، او څرنګه چې دا شيان د حرم په وجه د امن مستحق دي، نو ځکه صاحب د کتاب فرمايي چې د دې د پرېکولو او شکولو په صورت کې به قيمت ورکول کيږي، په روژو سره کار نه کيږي، ځکه چې د دې شيانو تعلق د محل يعني د حرم سره دی، او مخکې تلسو وويل چې روژه د افعالو جزاء جوړېدای سي، لېکن د محل جزاء نه سي جوړېدلای.

ويتصدق الخ فرمايي: کوم قيمت چې د پرېکولو په وجه پر هغه واجب سو، هغه دې پر فقيرانو صدقه کړي، او کله چې يې قيمت صدقه کړی، نو هغه د دې درختو يا وښو مالک سو، لکه څرنګه چې په حقوق العباد کې دي، مثلاً زيد د عمر يو شی غصب کړی، او قاضي زيد ته د هغه د قيمت د ورکولو حکم وکړی، او زيد قيمت اداء کړی يعني عمر ته يې ورکړی، نو زيد د هغه شي مالک سو.

## د بوټو او د درختو تر پرېکولو وروسته د خرڅولو حکم

وَيُكْرَهُ بَيْعُهُ بَعْدَ الْقَطْعِ او تر پرېکولو وروسته د هغو خرڅول مکروه دي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِسَبَبٍ مَحْظُوْرٍ شَرْعًا ځکه چې هغه په داسي سبب سره د هغو مالک سو چې په شريعت کې له هغه ځخه منع سوې ده فَلَوْ أُطْلِقَ لَهُ فِي بَيْعِهِ لَتَطَرَّقَ النَّاسُ إِلَى مِثْلِهِ خو که هغه ته د هغو د خرڅلاو اجازه ورکول سي نو خلک به د دا ډول کارونو لپاره لاره هواره کړي إِلَّا أَنَّهُ يَجُوْزُ الْبَيْعُ مَعَ الْكَرَاهَةِ خو په کراهت سره يې خرڅلاو جائز دی بِخِلَافِ الصَّيْدِ په خلاف د ښکار وَالْفَرْقُ مَا ذَكَرْنَاهُ او فرق هغه دی چې موږ به يې (وروسته) ذکر کړو.

---

● تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب المناسك، باب تحريم مكة، حديث رقم: ۲۰۱۷.

**اللغات:** ﴿محظور﴾ ممنوع، ﴿اطلق﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: مطلق کېدل (دلته يې معنیٰ د اجازې او رخصت ورکولو ده)، ﴿تطرق﴾ د تفعّل ماضي ده: لاره پيدا کول. (لاره هوارول).

**تشريح:** مسئله: دا ده چې د حرم وابنه يا درختي پرېکول او خرڅول مکروه دي، ځکه چې په دې کې سرې په داسي سبب سره د دې شيانو مالک کيږي، کوم چې شرعاً ممنوع دي، نو اوس که د خرڅولو عامه اجازه ورکول سي، نو خلک به له دې څخه کاروبار جوړ کړي، او عام خلک به په دې کې مبتلا سي، خو که هغه يې بيا هم خرڅ کړي، نو مع الكراهت دا بيع جائز ده، د دې په خلاف د ښکار مسئله ده، نو مع الكراهت هم د هغه بيع جائز نه ده، صاحب د کتاب فرمايي چې د ښکار او د وښو په مېنځ کې چې کوم فرق دی، هغه به موږ وروسته بيان کړو. (څه انتظار وکړئ!)

## د خلکو د راشنه سوو وښو او درختو حکم

> وَالَّذِيْ يُنْبِتُهُ النَّاسُ عَادَةً او هغه وابنه او درختي چې په عامه توگه يې خلک راشنه کوي (کړي) عَرَفْنَاهُ غَيْرَ مُسْتَحِقٍّ لِلْأَمْنِ بِالْإِجْمَاعِ (نو) د هغو د امن نه مستحق کېدل موږ په اجماع سره پېژندلي دي وَلِأَنَّ الْمُحَرَّمَ الْمَنْسُوْبُ إِلَى الْحَرَمِ او ځکه چې حرام (خو) هغه شی دی چې د حرم و طرف ته منسوب وي وَالنِّسْبَةُ إِلَيْهِ عَلَى الْكَمَالِ عِنْدَ عَدَمِ النِّسْبَةِ إِلَى غَيْرِهِ بِالْإِنْبَاتِ او د حرم و طرف ته به په پوره نسبت هغه وخت وي چې کله د راشنه کولو نسبت د بل چا و طرف ته نه وسي وَمَا لَا يَنْبُتُ عَادَةً إِذَا أَنْبَتَهُ إِنْسَانٌ او کوم وابنه او درختي چې په عامه توگه نه راشنه کيږي که يو انسان هغه راشنه کړي اِلْتَحَقَ بِمَا يَنْبُتُ عَادَةً نو هغه به د داسي وښو او درختو سره لاحق کيږي چې عادةً راشنه کيږي (يعني چې انسان يې راشنه کوي).

**اللغات:** ﴿ينبت﴾ د نصر مضارع ده: راشنه کېدل، ﴿عادة﴾ د عادت په توگه، په عامه توگه، ﴿إنبات﴾ د افعال مصدر دی: راشنه کول.

**تشريح:** مسئله: دا ده کوم وابنه او درختي چې عادتاً راشنه کيږي او کرل کيږي، هغه د امن حقدار نه دي دا حکم په اجماع سره ثابت دی، ځکه چې له نبوي زمانې څخه تر اوسنۍ زمانې پوري خلک د حرم په محکه کې کښتونه کړي، بيا يې ربېي، او پر دې تر اوسه هيڅچا انکار کړی نه دی، له دې څخه معلوميږي چې کوم شيان خلک کړي، هغه به د امن حقداره نه وي، دويم دليل دا دی چې د هغو وښو او درختو پرېکول حرام دي کوم چې د حرم وطرف ته منسوب وي، او د حرم و طرف ته پوره نسبت هغه وخت کيږي چې د راشنه کولو او کرلو نسبت د بل چا و طرف ته نه وسي.

ومالاينبت الخ فرمايي: کوم وابنه او درختي چې عادةً نه راشنه کيږي، که يو انسان هغه وکري او راشنه يې کړي، نو هغه هم د عادتاً راشنه کېدنکو شيانو په لړليک کې داخليږي، او د هغو په پرېکولو سره به هم ضمان او قيمت نه واجبيږي.

## که يوه درخته په خپله د يو چا په ملک کې راشنه سي نو د هغه حکم

> وَلَوْ نَبَتَ بِنَفْسِهِ فِيْ مِلْكِ رَجُلٍ او که يوه درخته په خپله د يو سړي په ملک کې راشنه سي فَعَلَى قَاطِعِهِ قِيْمَتَانِ: قِيْمَةٌ لِحُرْمَةِ الْحَرَمِ حَقًّا لِلشَّرْعِ نو د هغه پر پرېکونکي دوه قيمتونه واجبيږي: يو قيمت خو د حرم د حُرمت لپاره د شريعت د حق په وجه واجبيږي وَقِيْمَةٌ أُخْرَى ضَمَانًا لِمَالِكِهِ او دويم قيمت د هغې د مالک لپاره د تاوان په توگه

واجبيږي كَالصَّيْدِ الْمَمْلُوكِ فِي الْحَرَمِ لکه په حرم کي چي دننه د مملوک ښکار (هم دغه حکم دی) وَمَا جَفَّ مِنْ شَجَرِ الْحَرَمِ لَا ضَمَانَ فِيْهِ او د حرم کومه درخته چي وچه سي په هغه کي ضمان نسته لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنَامٍ ځکه چي هغه وده کونکې نه ده.

**اللغات**: ﴿نام﴾ اسم فاعل دی: وده کونکی، غټېدونکی.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يوه داسي درخته کوم چي عادةً نه راشنه کيږي د يو چا په مملوکه مځکه کي راشنه سوه، او بل سړي دا پرې کړه، نو پر قاطع دوه قيمتونه واجبيږي، يو د حقُ الشرع يعني د حرم د احترام د نه کولو په وجه، او دويم د حقُ العبد يعني د چا په مځکه کي چي دا درخته راشنه سوې وي د هغه د حق د ضايع کولو په وجه. دا مسئله داسي ده لکه په حرم کي چي يو ښکار د يو چا مملوک وي، نو که يو سړی هغه قتل کړي، نو پر قاتل دوه قيمتونه واجبيږي، يو د شريعت د حق لپاره او دويم د بنده د حق لپاره.

وما جف الخ فرمايي د حرم هغه درختي يا وابنه چي وچ سوي وي، د هغو پرېکول ضمان نه واجبوي، ځکه چي د ضمان تعلق د وده کونکي او نامي شي سره دی، او وچ سوي وابنه يا درختي هيڅ وده نه کوي.

## د حرم پر وښو رمه پوول

وَلَا يُرْعَى حَشِيْشُ الْحَرَمِ او د حرم پر وښو به رمه نه پوول (څرول) کيږي وَلَا يُقْطَعُ إِلَّا الْإِذْخِرُ او نه به يو بوټي پرېکول کيږي ما سوا له اذخر بوټي څخه وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: لَا بَأْسَ بِالرَّعْيِ او امام ابو يوسف فرمايي: چي په پوولو کي څه پروا نسته لِأَنَّ فِيْهِ ضَرُوْرَةً ځکه چي په پوولو کي ضرورت دی فَإِنَّ مَنْعَ الدَّوَابِّ عَنْهُ مُتَعَذِّرٌ ځکه چي څارويان له هغه څخه منع کول ستونزمن دي وَلَنَا مَا رَوَيْنَا او زموږ دليل هغه حديث کوم چي روايت کړی دی وَالْقَطْعُ بِالْمَشَافِرِ كَالْقَطْعِ بِالْمَنَاجِلِ او په غاښو سره پرېکول داسي دي لکه په لورو سره پرېکول وَحَمْلُ الْحَشِيْشِ مِنَ الْحِلِّ مُمْكِنٌ او له حل څخه وابنه راوړل (هم) ممکن دي فَلَا ضَرُوْرَةَ نو د حرم وښو ته هيڅ ضرورت پاته نه سو بِخِلَافِ الْإِذْخِرِ په خلاف د اذخر وابنه لِأَنَّهُ اسْتَثْنَاهُ رَسُوْلُ اللهِ[1] صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه چي هغه رسول الله ﷺ مستثنیٰ کړي دي فَيَجُوْزُ قَطْعُهُ وَرَعْيُهُ نو د اذخر پرېکول او پر هغه رمه پوول جائز دي وَبِخِلَافِ الْكَمْأَةِ په خلاف د پوڅکی لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ جُمْلَةِ النَّبَاتِ ځکه هغه د وښو (او بوټو) له ټولګي څخه نه ده (ځکه چي هغه د باران په اوبو سره راشنه کيږي).

**اللغات**: ﴿مشافر﴾ شونډانو او غاښو ته ويل کيږي، ﴿مناجل﴾ جمع د مِنْجَل ده: لور، ﴿رعی﴾ پوول، څرول (رمه د څر لپاره څرځای (چراګاه) ته بېول)، څرل، ﴿كمأة﴾ پوڅکی (خردګی، خرېږی).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي له اذخر څخه علاوه د حرم بل بوټي او وابنه پرېکول يا پر هغه مال پوول (څرول) زموږ په نېز صحيح نه دي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي په حرم کي د مال او رمې په پوولو کي څه حرج نسته، يعني د هغه په نېز خو په حرم کي د څارويانو د پوولو او څرولو اجازه سته مګر د وښو او درختو د پرېکولو اجازه نسته،

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب المناسك، باب تحريم مكة، حديث رقم: ٢١٧.

ځکه چي په پوولو کي ضرورت سته، او ضرورت دا دی چي کله خلک د حج يا عمرې لپاره حرم ته داخل سي. نو د هغو سره به خامخا د سپرلي حيوانان هم وي، او ښکاره ده چي حيوانان له وښو ځخه بندول مشکل کار دی. نو د پوولو ضرورت متحقق سو.

ولنا الخ زموږ دليل مخکي بيان سوی حديث دی، يعني: لا يختلى خلاها، او پاته سو ضرورت نو هغه داسي هم پوره کېدای سي چي له حِل ځخه واښه راوړل سي.

والقطع بالمشافر له دې ځايه ديو سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي په حديث کي د حرم له وښو پرېکولو ځخه منع سوې ده، او له پوولو ځخه منع نه ده سوې. نو پوول جائز کېدل پکار دي، جواب ورکوي چي په غاښو سره پرېکول (کوم چي يې حيوانان پرېکوي) هم داسي دي لکه په لور سره پرېکول. نو کله چي په لور سره پرېکول منع دي، نو په غاښو سره پرېکول يعني د حيوانانو پوول به هم منع وي.

بخلاف الاذخر الخ په خلاف د اذخر وښو، ځکه چي د هغه استثناء په خپله نبي ﷺ کړې ده. روايت سوی دی چي کله نبي ﷺ وفرمايل: لا يختلى خلاها ولا يعضد شوكها، نو ابن عباس وفرمايل: إلا الاذخر يا رسول الله (ﷺ) فإنه لقبورهم وبيوتهم فقال ﷺ إلا الاذخر (يعني نبي ﷺ وفرمايل چي د حرم واښه دي نه پرېکېږي، او نه دي يې ازغي ماتېږي. نو ابن عباس وفرمايل: اې د الله رسوله! ماسوا له اذخر ځخه، ځکه چي هغه د خلکو په قبرونو او کورونو کي د خوشبويۍ لپاره استعمالېږي، نو نبي ﷺ وفرمايل: هو! ماسوا له اذخر ځخه).

وبخلاف الكمأة الخ او په خلاف د پوڅکی کوم چي د باران په ورځو کي راوځي، نو په حرم کي د هغې پرېکول او راکښل هم جائز دي، ځکه چي هغه د وښو او بوټو له قبيلې ځخه نه ده، ځکه چي عام بوټي د مځکي په اوبو را شنه کېږي، لېکن دا خاص د باران داوبو سره تعلق لري.

## په پورتني جناياتو کي د قارن حکم

وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلَهُ الْقَارِنُ مِمَّا ذَكَرْنَا او هر هغه شی کوم چي يې قارن له (پورتني) ذکر سوو شيانو ځخه وکړي أَنَّ فِيهِ عَلَى الْمُفْرِدِ دَمًا چي په هغه کي پر مفرد يو دم وي فَعَلَيْهِ دَمَانِ: دَمٌ لِحَجَّتِهِ وَدَمٌ لِعُمْرَتِهِ نو پر قارن به (په هغه کي) دوه دمه واجب وي: يو دم به د هغه د حج وي او بل دم به د هغه د عمرې وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: دَمٌ وَاحِدٌ او امام شافعي فرمايي: چي يو دم به واجب وي بِنَاءً عَلَى أَنَّهُ مُحْرِمٌ بِإِحْرَامٍ وَاحِدٍ عِنْدَهُ پر دې بناء چي د هغه په نېز قارن په يو احرام سره محرم دی وَعِنْدَنَا بِإِحْرَامَيْنِ او زموږ په نېز په دوو احرامونو سره محرم دی وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا (بيان) مخکي (په بابُ القِران کي) تېر سو قَالَ: إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ الْمِيقَاتَ غَيْرَ مُحْرِمٍ بِالْعُمْرَةِ أَوِ الْحَجِّ امام قدوري فرمايي: خو دا چي قارن د عمرې يا د حج له احرام ځخه بغير تر ميقات تېر سي فَيَلْزَمُهُ دَمٌ وَاحِدٌ نو (بيا) به يو دم پر لازمېږي خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ د امام زفر اختلاف دی لِمَا أَنَّ الْمُسْتَحَقَّ عَلَيْهِ عِنْدَ الْمِيقَاتِ إِحْرَامٌ وَاحِدٌ ځکه چي پر هغه د ميقات په وخت کي يو احرام واجب دی وَبِتَأْخِيرِ وَاجِبٍ وَاحِدٍ لَا يَجِبُ إِلَّا جَزَاءٌ وَاحِدٌ او د يوه واجب په تأخير سره به فقط يوه جزاء واجبېږي.

**تشريح:** په عبارت کې د بيان سوي مسئلې حاصل دا دی چې که قارن له پورته ذکر سوو جناياتو څخه يو جنايت وکړي، نو پر هغه زموږ په نېز دوه دمه واجبيږي، يو د حج او دويم د عمرې، امام شافعي فرمايي چې پر قارن هم يو دم واجبيږي، همدا قول د امام مالک او امام احمد هم دی، د اختلاف بنياد دا دی چې د دې حضراتو په نېز قارن په يو احرام سره محرم وي (ځکه چې د دوی په نېز د عمرې احرام د حج په احرام کې داخليږي)، او زموږ په نېز په دوو احرامونو سره محرم وي، دلائل په بابُ القران کې تېر سو، نو کله چې د دوی په نېز د قارن احرام يو دی، نو دمِ جنايت به هم يو واجبيږي، او څرنګه چې زموږ په نېز دوه احرامه دي، نو دمِ جنايت به هم دوه واجبيږي.

قال إلا الخ فرمايي چې صرف يو صورت داسې دی چې هلته زموږ په نېز هم پر قارن يو دم واجبيږي، هغه دا چې قارن بغير له احرام څخه تر ميقات تېر سي، نو پر دې قارن زموږ په نېز يو دم واجبيږي، که څه هم د امام زفر په نېز په دې صورت کې هم پر هغه دوه دمه واجبيږي، د امام زفر دليل دا دی چې هغه له ميقات څخه د حج او د عمرې دواړو احرام وروسته کړی دی، نو د هر احرام په وجه به يو دم پر واجب وي، زموږ دليل دا دی چې پر ميقات فقط يو احرام واجبيږي، او د يوه واجب په وروسته کولو سره به فقط يوه جزاء واجبه وي، نه دوې جزاوې، نو ځکه به په دې صورت کې دوه دمه نه واجبيږي.

## که دوه محرم خلک په ګډه ښکار وکړي نو څه حکم دی؟

وَإِذَا اشْتَرَكَ مُحْرِمَانِ فِي قَتْلِ صَيْدٍ او که ديوه ښکار په وژلو کې دوه محرم خلک شريک سي فَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا جَزَاءٌ كَامِلٌ نو په دوی کې پر هر يوه پوره جزاء واجب ده لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالشَّرِكَةِ يَصِيرُ جَانِيًا جِنَايَةً تَفُوقُ الدَّلَالَةَ ځکه چې هر يو د شرکت (ګډون) په وجه د داسې جنايت کونکی ګرځي چې هغه تر دلالت (يعني د ښکار تر ښوونې) بالا جنايت دی فَيَتَعَدَّدُ الْجَزَاءُ بِتَعَدُّدِ الْجِنَايَةِ نو د جنايت د تعدّد (جلا والي) په وجه به جزاء هم متعدده (جلا) کيږي.

**اللغات:** ﴿جانی﴾ جنايت کونکی، مجرم، ګناهګاره. ﴿تفوق﴾ د نصر مضارع ده: زياتېدل، بالا کېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده که دوه محرم خلک په ګډه ښکار وکړي، نو پر دواړو پوره جزاء واجبيږي، ځکه چې جزاء د احرام د احترام په وجه واجبيږي، او دلته دواړو احرام تړلی دی، او هر يوه د خپل احرام بې احترامي وکړه، نو ځکه به پر دواړو جلا جلا پوره دم لازم وي، که څه هم ښکار يو دی، ځکه که په دوی کې يو قاتل وای، او بل د ښکار ور ښوونکی وای، نو هم به پر دواړو پوره جزاء واجبېدلای، او دلته دواړه قاتلان دي، لهذا په درجه اولیٰ به پر دواړو جزاء واجبيږي، ځکه چې قتل په ګناه کې له دلالت علی القتل څخه زيات دی، او څرنګه چې دواړو جلا جلا جنايت کړی دی، نو ځکه به جزاء هم جلا جلا واجبيږي.

## که دوه حلال خلک په ګډه ښکار وکړي نو څه حکم دی؟

وَإِذَا اشْتَرَكَ حَلَالَانِ فِي قَتْلِ صَيْدِ الْحَرَمِ او که دوه حلال خلک د حرم د ښکار په قتل کې شريک سي فَعَلَيْهِمَا جَزَاءٌ وَاحِدٌ نو پر دواړو يوه جزاء واجب ده لِأَنَّ الضَّمَانَ بَدَلٌ عَنِ الْمَحَلِّ ځکه چې ضمان خو د محل يعني د ښکار په بدله کې دی لَا جَزَاءٌ عَنِ الْجِنَايَةِ د جنايت په بدله کې نه دی فَيَتَّحِدُ بِاتِّحَادِ الْمَحَلِّ نو د محل په متحد کېدلو سره به ضمان هم

متحد کيږي كَرَجُلَيْنِ قَتَلَا رَجُلًا خَطَأً لکه دوه خلک چې يو سړی په خطاء قتل کړي تَجِبُ عَلَيْهِمَا دِيَةٌ وَاحِدَةٌ (نو) پر دواړو به يو ديت واجبيږي وَعَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفَّارَةٌ (لېکن) کفاره به پر هر يوه واجبيږي (ځکه چې هغه د فعل بدله ده).

**تشريح:** مسئله: داده که دوه مُحرم خلک په ګډه يو ښکار قتل کړي، نو پر دواړو يوه جزاء واجبيږي، ځکه چې ضمان په دې صورت کې د احرام بدل نه دی بلکې د محل بدل دی يعني د حرم د احترام په وجه ضمان واجبيږي، او محل يعني حرم يو دی، نو ځکه به جزاء هم پر دواړو يوه واجبيږي، او هر يو به نيمه جزاء ورکوي، لکه دوه خلک چې په ګډه يو سړی په خطاء قتل کړي، نو پر دواړو يو ديت واجبيږي، او کفاره پر هر يوه جلا واجبيږي، ځکه چې ديت خو د مقتول سړي بدل دی، او څرنګه چې مقتول يو دی، نو ځکه به ديت هم يو واجب وي، او کفاره ځکه جلا واجبيږي، چې کفاره د نعل يعني د قتلولو بدل ده، او په دې فعل کې دواړه شريک دي.

## د محرم لپاره د ښکار د خرخولو يا د رانيولو حکم

وَإِذَا بَاعَ الْمُحْرِمُ الصَّيْدَ أَوِ ابْتَاعَهُ او که محرم ښکار خرڅ کړي يا يې رانيسي فَالْبَيْعُ بَاطِلٌ نو بيع باطله ده لِأَنَّ بَيْعَهُ حَيًّا تَعَرُّضٌ لِلصَّيْدِ ځکه چې د ژوندي ښکار بيعه پر ښکار تعرض کول دي بِتَفْوِيتِ الْأَمْنِ د هغه د امن په فوتولو سره وَبَيْعُهُ بَعْدَ مَا قَتَلَهُ بَيْعُ مَيْتَةٍ او تر وژلو وروسته د هغه بيعه د مرداري بيعه ده (چې هغه جائز نه ده).

**اللغات:** ﴿ابتاع﴾ د افتعال ماضي ده: رانيول، ﴿تعرض﴾ د تفعّل مصدر دی: لاس وهنه، تصرف کول، تعرض کول، ﴿تفويت﴾ د تفعيل مصدر دی: فوتول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې د محرم لپاره نه ښکار خرڅول جائز دي، او نه ښکار رانيول، ځکه چې محرم خو به يا ژوندی ښکار خرڅوي يا رانيسي، يا به يې تر وژلو وروسته خرڅوي يا رانيسي، او د هغه په حق کې دا دواړه صورتونه باطل دي، ځکه چې د ژوند په صورت کې د ښکار د امن په فوتولو سره پر ښکار تعرض کول لازميږي، او د وژلو په صورت د مردار خرڅول لازميږي، او دا دواړه شيان منع دي، نو ځکه موږ وايو چې پر محرم د ښکار د خرڅولو او رانيولو تولې لارې بندې دي.

## که له حرم څخه را ايستل سوی حيوان بچې وزېږوي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ أَخْرَجَ ظَبْيَةً مِنَ الْحَرَمِ او کوم سړی چې له حرم څخه هوسۍ را وباسي (هغه سړی که حلال او که محرم وي) فَوَلَدَتْ أَوْلَادًا بيا هوسۍ يو څو بچيان وزېږوي فَمَاتَتْ هِيَ وَأَوْلَادُهَا بيا هوسۍ او بچيان مړه سي فَعَلَيْهِ جَزَاؤُهُنَّ نو پر هغه د دې تولو جزاء واجب ده لِأَنَّ الصَّيْدَ بَعْدَ الْإِخْرَاجِ مِنَ الْحَرَمِ بَقِيَ مُسْتَحِقًّا لِلْأَمْنِ شَرْعًا ځکه چې هوسۍ له حرم څخه تر را ايستلو وروسته شرعاً د امن مستحق ده وَلِهٰذَا وَجَبَ رَدُّهُ إِلٰى مَأْمَنِهِ هم په دې وجه خپل د امن ځای ته د هغې بېول واجب دي وَهٰذِهٖ صِفَةٌ شَرْعِيَّةٌ او د امن استحقاق شرعي صفت دی فَتَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ نو دا صفت به د بچو و طرف ته هم سرايت کوي فَإِنْ أَدّٰى جَزَاءَهَا او که محرم د هوسۍ جزاء اداء کړي ثُمَّ وَلَدَتْ تر هغه وروسته هوسۍ بچيان وزېږوي لَيْسَ عَلَيْهِ جَزَاءُ الْوَلَدِ نو (بيا) پر محرم د بچو جزاء واجب نه ده لِأَنَّ بَعْدَ أَدَاءِ الْجَزَاءِ لَمْ تَبْقَ آمِنَةً ځکه چې د

جزاء تر اداء کولو وروسته هغه دامن مستحق پاته نه سوه لِأَنَّ وُصُوْلَ الْخَلَفِ كَوُصُوْلِ الْأَصْلِ ځکه چي (وحرم ته) د بدل رسېدل د اصل د رسېدلو په څير دي، والله أعلم بالصواب.

**اللغات**: ﴿مأمن﴾ اسم ظرف دی: د امن ځای، له خطري څخه پاک ځای، ﴿تسری﴾ د ضرب مضارع ده: سرایت کول، نوتل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي له حرم څخه هوسۍ يا يو بل د ښکار حيوان را وېستی، رايستونکی که محرم وو، که غيرِ محرم وو، وروسته تر دې هوسۍ بچي وزېږول، بيا هوسۍ هم مړه سوه، او بچي يې هم مړه سول، نو پر دې را ايستونکي د هغو جزاء واجب ده، ځکه چي له حرم څخه د ښکار تر را ايستلو وروسته هم هغه شرعاً د امن مستحق دی، نو د دغه استحقاق په وجه خپل د امن ځای ته(يعني حرم ته) د هغو رسول واجب دي، او څرنګه چي د امن استحقاق شرعي صفت دی، نو ځکه به د ښکار په واسطه سره د هوسۍ و بچو ته هم سرايت کوي، او څرنګه چي د هوسۍ جزاء واجبيږي، هغسي به د بچو جزاء هم واجبيږي.

فإن أدى الخ خو که دې را ايستونکي د هوسۍ جزاء(يعني قيمت) اداء کړی، بيا هوسۍ بچي وزېږول، نو په دې صورت کي پر هغه د بچو جزاء نه واجبيږي(صرف د هوسۍ جزاء پر واجبيږي)، ځکه چي تر جزاء اداء کولو وروسته هوسۍ د امن مستحقه پاته نه سوه، ځکه چي رايستونکي د جزاء په اداء کولو سره د هوسۍ بدل حرم ته ورسوی، او د بدل رسول د اصل د رسولو په څير دي، نو ګواکي په خپله هوسۍ تر حرم پوري ورسول سوه، لهذا اوس چي کوم بچيان پيدا سي، د هغو جزاء به واجب نه وي. والله أعلم بالصواب



# بَابُ مُجَاوَزَةِ الْوَقْتِ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ

(دا) باب بې له احرامه له میقات څخه د تېرېدلو (په بیان کې) دی

**تشریح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب د هغو جنایاتو بیان وکړی چې تر احرام وروسته واقع کیږي، اوس له دې ځایه هغه جنایات بیانوي چې تر احرام مخکې واقع کیږي، او څرنګه چې تر احرام وروستنی جنایت بشپړ او کامل وي، نو ځکه یې هغه مخکې بیان کړی، اوس قبل الإحرام والا جنایت بیانوي. (بنایه ج،۴، ص،۳۶۵)

د عبارت تر شروع مخکې د یو څو الفاظو تشریح او د دم د سقوط شرطونه ضروري ګڼم، تاسو یو ځل د هغو تفصیل ته ګورئ: بستان بني عامر یعنې د بني عامر باغ، دا د مکې سره نژدې او له حرم څخه دباندې په میقات کې دننه د یو ځای نوم دی، او ذاتِ عِرق د عراقیانو میقات دی. د بستان بني عامر ذاتِ عِرق ته نژدې دی. له کوفي څخه مراد آفاقي سړی دی، یعنې څوک چې تر میقات دباندې اوسیږي.

د دم د ساقطېدلو لپاره د امام صاحب په نېز پنځه شرطونه دي: [۱] کوم آفاقي چې مکې ته د عمرې یا د حج لپاره ځي، د هغه لپاره ضروري ده چې له میقات څخه احرام وتړي او که احرام نه وتړي، نو دم لازمیږي، [۲] او که آفاقي له میقات څخه احرام نه وتړي او د حج یا د عمرې تر شروع کولو مخکې واپس میقات ته راسي، او احرام وتړي او تلبیه هم ووایي نو دم ساقطیږي، [۳] او که تلبیه نه ووایي نو دم نه ساقطیږي، او د صاحبینو په نېز بې له تلبیې ویلو هم دم ساقطیږي، ځکه د صاحبینو په نېز صرف میقات ته راتلل او احرام تړل کافي دي، تلبیه ویل ضروري نه دي، [۴] کوم آفاقي چې د حج یا د عمرې لپاره مکې ته نه ځي، بلکې د بل کار لپاره ځي، نو هغه بې له احرامه هم مکې ته تلی سي، [۵] که د عمرې یا د حج عمل مثلاً طواف شروع کړي، او تر هغه وروسته میقات ته راسي، نو دم نه ساقطیږي.

## بې له احرامه تر میقات تېرېدونکی چې کله دویم ځل بیا میقات ته راسي نو څه حکم دی؟

وَإِذَا أَتَى الْكُوفِيُّ بُسْتَانَ بَنِي عَامِرٍ او کله چې د کوفې اوسېدونکی بستان بنی عامر (یعنې د بني عامر باغ) ته راسي فَأَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ او د عمرې احرام وتړي فَإِنْ رَجَعَ إِلَى ذَاتِ عِرْقٍ نو که هغه د ذاتِ عرق (یعنې د میقات) و طرف ته واپس ولاړ سي وَلَبَّى او تلبیه ووایي بَطَلَ عَنْهُ دَمُ الْوَقْتِ نو د هغه له غاړې څخه د میقات قرباني ساقطیږي وَإِنْ رَجَعَ إِلَيْهِ او که ذاتِ عرق ته واپس ولاړ سي وَلَمْ يُلَبِّ حَتَّى دَخَلَ مَكَّةَ خو تلبیه نه ووایي تر دې چې مکې ته داخل سي وَطَافَ لِعُمْرَتِهِ او د خپلې عمرې طواف وکړي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه یو دم واجبیږي وَهٰذَا عِنْدَ[●] أَبِي حَنِيفَةَ دا حکم د امام صاحب په نېز دی وَقَالَا: إِنْ رَجَعَ إِلَيْهِ مُحْرِمًا او صاحبین فرمايي: که هغه د احرام په حالت کې ذاتِ عرق ته واپس ولاړ سي فَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو پر هغه هیڅ شی واجب نه دی لَبَّى أَوْ لَمْ يُلَبِّ تلبیه یې ویلې وي او که نه وي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَسْقُطُ

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۲، ص: ۲۲۱. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۳۶]

لَبّٰى أَوْ لَمْ يُلَبِّ او امام زفر فرمايي: چي (له هغه شخصه) دم نه ساقطيږي تلبيه يې ويلې وي او که نه وي لِأَنَّ جِنَايَتَهُ لَمْ تَرْتَفِعْ بِالْعَوْدِ ځکه چي (ذاتِ عرق ته) د واپس تللو په وجه د هغه جنايت ختم نه سو وَصَارَ كَمَا إِذَا أَفَاضَ مِنْ عَرَفَاتٍ او داسي سو لکه هغه چي له عرفات شخصه (د امام تر روانېدلو مخکي) روان سي ثُمَّ عَادَ إِلَيْهِ بَعْدَ الْغُرُوْبِ او بيا تر لمر لوېدلو وروسته عرفات ته واپس راسي وَلَنَا أَنَّهُ تَدَارَكَ الْمَتْرُوْكَ فِي أَوَانِهِ او زمونږ دليل دا دی چي هغه د پرېښوول سوي شي تدارک په خپل وخت کي وکړی وَذٰلِكَ قَبْلَ الشُّرُوْعِ فِي الْأَفْعَالِ او هغه (يعني تدارک) د عمرې يا د حج د افعالو تر شروع کولو مخکي موجود دی فَيَسْقُطُ الدَّمُ نو ځکه به قرباني ساقطيږي بِخِلَافِ الْإِفَاضَةِ په خلاف د روانېدلو (له عرفات شخصه) لِأَنَّهُ لَمْ يَتَدَارَكِ الْمَتْرُوْكَ ځکه چي هغه د پرېښوول سوي شي تدارک نه وکړی عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چي (دا بيان) تېر سو غَيْرَ أَنَّ التَّدَارُكَ عِنْدَهُمَا بِعَوْدِهٖ مُحْرِمًا لېکن د صاحبينو په نېز د احرام په حالت کي د هغه په واپس راتللو سره تدارک حاصليږي لِأَنَّهُ أَظْهَرَ حَقَّ الْمِيْقَاتِ ځکه چي هغه د ميقات حق ښکار کړی كَمَا إِذَا مَرَّ بِهٖ مُحْرِمًا سَاكِتًا لکه په هغه صورت کي چي(هم دم نه لازميږي) کله چي هغه پر ميقات د احرام په حالت کي په خاموشي سره تېر سي(يعني تلبيه نه وايي) وَعِنْدَهُ رَحِمَهُ اللّٰهُ بِعَوْدِهٖ مُحْرِمًا مُلَبِّيًا او د امام صاحب په نېز د احرام د ترلو او د تلبيې د ويلو په حالت کي په واپس راتللو سره تدارک حاصليږي لِأَنَّ الْعَزِيْمَةَ فِي الْإِحْرَامِ مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهٖ ځکه چي د احرام په حق کي عزيمت دا دی چي احرام له خپلي کورنۍ شخصه وي(يعني له خپل کور شخصه وترل سي) فَإِذَا تَرَخَّصَ بِالتَّأْخِيْرِ إِلَى الْمِيْقَاتِ نو کله چي هغه تر ميقاته پوري (د احرام) د ځنډولو رخصت اختيار کړی وَجَبَ عَلَيْهِ قَضَاءُ حَقِّهٖ بِإِنْشَاءِ التَّلْبِيَةِ نو په تلبيه ويلو سره د احرام حق پوره کول پر هغه واجب سو وَكَانَ التَّلَافِيْ بِعَوْدِهٖ مُلَبِّيًا او د جرم تلافي به د تلبيې ويلو په حالت کي په واپس راتللو سره کيږي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافُ إِذَا أَحْرَمَ بِحَجَّةٍ بَعْدَ الْمُجَاوَزَةِ مَكَانَ الْعُمْرَةِ او هم پر دې اختلاف دا صورت (هم) دی چي کله هغه له احرام شخصه بغير تر ميقات تېرېدلو وروسته د عمرې پر ځای د حج احرام وتړي فِيْ جَمِيْعِ مَا ذَكَرْنَا (دا اختلاف) په ټولو هغو ځايونو کي دی کوم چي (اوس) موږ ذکر کړل وَلَوْ عَادَ بَعْدَ مَا ابْتَدَأَ بِالطَّوَافِ وَاسْتَلَمَ الْحَجَرَ او که دا سړی د طواف تر شروع کولو او د حجر اسود تر مچولو وروسته (ميقات) ته واپس راسي لَا يَسْقُطُ عَنْهُ الدَّمُ بِالْإِتِّفَاقِ نو د ټولو په اتفاق له هغه شخصه قرباني نه ساقطيږي وَلَوْ عَادَ إِلَيْهِ قَبْلَ الْإِحْرَامِ او که تر احرام ترلو مخکي ميقات ته راسي يَسْقُطُ بِالْإِتِّفَاقِ نو د ټولو په اتفاق قرباني ساقطيږي وَهٰذَا الَّذِيْ ذَكَرْنَا إِذَا كَانَ يُرِيْدُ الْحَجَّ أَوِ الْعُمْرَةَ او دا ټوله چي موږ ذکر کړل هغه وخت دي چي کله هغه سړي د حج يا د عمرې اراده کړې وي (او که د بل کار يا د بل ضرورت اراده يې وي نو پر هغه هيڅ شی نه لازميږي، ځکه چي د ميقات سره نژدې خلک هره ورځ د خپلو حاجتونو لپاره تر ميقات تيريږي).

**اللغات:** ﴿لبّى﴾ د تفعیل ماضي ده: تلبیه ویل. ﴿عود﴾ رجوع، واپس راتلل. ﴿أفاض﴾ روانېدل، کوچ کول. ﴿تدارك﴾ د تفاعل مصدر دی: تلافي، پرېښوول سوی شي دوباره نیول. ﴿أوان﴾ وخت، شیبې. ﴿دویرة﴾ کور، جونګړه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو آفاقي د احرام له تړلو څخه بغیر تر میقات تېر سي، او بیا د عمرې احرام وتړي، نو دا به کتل کیږي چي هغه تر احرام وروسته د عمرې یو فعل شروع کړی، که نه. که یو فعل یې شروع نه کړی، او واپس میقات ته راغلی او تلبیه یې وویله، نو پر هغه چي کومه قرباني بغیر له احرامه تر میقات د تېرېدلو په وجه واجب سوې وه، هغه ساقطیږي، او که هغه میقات ته واپس راغلی، خو تلبیه یې نه وویله تر دې چي مکې ته داخل سو، او د عمرې طواف یې وکړی، یعني د عمرې فعل یې شروع کړی، نو پر هغه قرباني واجب ده. ګواکي میقات ته په واپس راتګ کي تلبیه ویل ضروري دي د امام صاحب په نېز، او صاحبین فرمایي چي که هغه میقات ته د احرام په حالت کي واپس ولاړ سي نو پر هغه هیڅ شی نه لازمیږي، هغه که یې تلبیه ویلې وي، که نه وي، او امام زفر فرمایي چي قرباني نه ساقطیږي، تلبیه که یې ویلې وي، که نه وي، همدا قول د امام مالک او امام شافعي دی.

**د امام زفر دلیل:** دا دی چي بغیر له احرامه تر میقات د تېرېدلو جرم په دې سره نه ختمیږي چي هغه میقات ته واپس ولاړ سي، او کله چي جرم نه ختمیږي، نو د جرم دم (یعني دمِ جنایت) به هم نه ختمیږي، او دا داسي ده لکه یو حاجي چي تر امام مخکي له عرفات څخه روان سي، بیا تر لمر لوېدلو وروسته واپس راسي، او بیا د امام سره یو ځای روان سي، نو تر امام مخکي چي د روانېدلو په وجه کومه قرباني واجب سوې وه، په واپس راتګ سره هغه قرباني نه ساقطیږي، همدا ډول به بې له احرامه تر میقات د تېرېدلو په صورت کي چي کومه قرباني واجب سوې وه، میقات ته به په واپس تللو سره هغه نه ساقطیږي.

**مشترک دلیل:** د امام صاحب او صاحبینو مشترک دلیل دا دی چي د آفاقي جرم دومره وو چي بې له احرامه تر میقات تېر سو، لېکن کله چي بیا هغه تر احرام تړلو وروسته د عمرې د افعالو تر شروع کولو مخکي واپس میقات ته راغلی، نو په دې سره یې د خپل جرم او متروک (پرېښوول سوي شي) تلافي او تدارک وکړی، (له متروک او جرم څخه مراد بې له احرامه تر میقات تېرېدل دي)، او څرنګه چي یې تدارک په خپل وخت کي وکړی، نو ځکه به دا تدارک مفید هم وي، او کله چي دا تدارک مفید دی، نو واجب سوی دم به ساقطیږي، په خلاف د هغه صورت چي کله هغه تر امام مخکي له عرفات څخه روان سي، او تر لمر لوېدلو وروسته بېرته راسي، ځکه په دې صورت کي هغه د متروک تدارک نه وکړی، ځکه چي وقوف به تر لمر لوېدلو پوري کیږي، او هغه تر لمر لوېدلو وروسته راغلی، نو د متروک وقوف تدارک یې نه وکړی، لهذا د هغه د واپس را تللو هیڅ اعتبار نه کیږي، او دا رُجعت د هغه جرم تلافي او تدارک نه سي کولای، او کله چي د جرم تدارک نه سي کولای، نو ښکاره ده چي دم به هم نه ساقطیږي.

غیر أن التدارك الخ تر اوسه خو د امام صاحب او د صاحبینو دلیل مشترک وو، له دې ځایه یې فرق بیانوي، نو فرمایي چي د صاحبینو په نېز تدارک هغه وخت حاصلیږي چي کله هغه فقط د احرام سره واپس میقات ته راسي، د تلبیې ویلو ضرورت نسته، ځکه چي هغه د میقات حق یعني احرام ښکاره کړی، نو داسي سو، لکه هغه چي پر میقات د احرام سره چپ تېر سي، او تلبیه نه وایي، نو دا بالاتفاق جائز دي، همداسي دلته هم تلبیه ویل ضروري نه دي، او د امام صاحب دلیل دا دی چي بېله احرامه تر میقات د تېرېدلو تلافي او تدارک به هغه وخت کیږي چي کله هغه میقات ته واپس د احرام په حالت کي راسي او تلبیه هم وایي، ځکه د احرام په حق کي عزیمت دا دی چي د خپل وطن له آبادۍ څخه احرام وتړي، او رخصت دا دی چي له میقات څخه احرام وتړي، نو کله چي هغه تر میقاته پوري د احرام د ځنډولو

رخصت اختيار کړي، او تر ميقات هم بې له احرامه تېر سو، او بيا واپس راغلی نو تلبيه به ضرور وايي، ځکه حديث مخکي تېر سو چي په تلبيه ويلو سره احرام تړل کيږي، نو که پر ميقات يې تلبيه نه وواېي نو ګواکي احرام يې نه وتړی، نو تدارک نه وسو، نو ځکه تلبيه ويل ضروري دي.

وعلى هذا الخلاف الخ فرمايي: کوم اختلاف چي اوس مخکي په کومو شيانو کي ذکر سو. همدا اختلاف هغه وخت دی چي کله يو څوک تر ميقات تېرېدلو وروسته د عمرې پر ځای د حج احرام وتړي.

ولوعاد بعد ما ابتدأ الخ دا تېوله تفصيل هغه وخت دی چي کله تر احرام وروسته او د عمرې يا د حج د افعالو تر شروع کولو مخکي ميقات ته واپس راسي. لېکن که هغه تر طواف شروع کولو او د حجر اسود تر مچولو وروسته ميقات ته واپس راسي، نو بالاتفاق له هغه څخه دم نه ساقطيږي، ځکه چي اوس يې مخکي احرام مضبوط کړی، او که هغه له احرام تړلو څخه مخکي ميقات ته واپس ولاړ سي، نو بالاتفاق قرباني ساقطيږي، او موږ چي کوم دا خبره ذکر کړه چي بې له احرامه تر ميقات د تېرېدلو په صورت کي دم واجبيږي، دا هغه وخت دي چي که د هغه اراده د حج يا عمرې وي، او که د بل کار اراده يې وي، نو بيا هيڅ دم نه واجبيږي.

## که د حاجت لپاره ميقات ته داخل سي نو څه حکم دی؟

فَإِنْ دَخَلَ الْبُسْتَانَ لِحَاجَتِهِ بيا که هغه کوفي بستان بني عامر ته د خپل ضرورت لپاره داخل سي فَلَهُ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ نو هغه ته اختيار دی چي بې له احرامه مکې ته داخل سي وَوَقْتُهُ الْبُسْتَانُ او د هغه ميقات همدغه بستان بنی عامر دی وَهُوَ وَصَاحِبُ الْمَنْزِلِ سَوَاءٌ او دا سړی او د بستان اوسېدونکی سړی دواړه برابر دي لِأَنَّ الْبُسْتَانَ غَيْرُ وَاجِبِ التَّعْظِيمِ ځکه چي د بستان تعظيم واجب نه دی فَلَا يَلْزَمُهُ الْإِحْرَامُ بِقَصْدِهِ نو د بستان په قصد کولو سره به پر هغه احرام نه لازميږي وَإِذَا دَخَلَهُ الْتَحَقَ بِأَهْلِهِ او کله چي هغه بستان ته داخل سي نو د بستان د خلکو سره لاحق سو وَلِلْبُسْتَانِيِّ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ لِلْحَاجَةِ او د بستاني لپاره د خپل ضرورت په خاطر له احرام څخه بغير مکې ته داخلېدل جائز دي فَكَذَلِكَ لَهُ نو همداسي د هغه لپاره (هم) جائز دي وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ وَوَقْتُهُ الْبُسْتَانُ جَمِيعُ الْحِلِّ الَّذِي بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْحَرَمِ او د ماتن له دې قول ووقته البستان څخه هغه ټوله حِل مراد دی چي هغه د بستان او د حرم په مينځ کي واقع دی وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا (بيان) مخکي تېر سو فَكَذَا وَقْتُ الدَّاخِلِ الْمُلْحَقِ بِهِ نو همداسي به د هغه سړي ميقات وي کوم چي بستان ته داخل سوی (او) د بستاني سره لاحق سوی وي (يعني د هغه حکم به هم د بستاني دی) فَإِنْ أَحْرَمَا مِنَ الْحِلِّ وَوَقَفَا بِعَرَفَةَ بيا که دواړه له حِل څخه احرام وتړي او په عرفات کي ودريږي لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِمَا شَيْءٌ نو پر دواړو هيڅ شی واجب نه دی يُرِيدُ بِهِ الْبُسْتَانِيَّ وَالدَّاخِلَ فِيهِ له دواړو څخه مراد بستاني او په بستان کي داخل سړی دی لِأَنَّهُمَا أَحْرَمَا مِنْ مِيقَاتِهِمَا ځکه چي دواړو له خپل ميقات څخه احرام تړلی دی.

اللغات: ﴿بستان﴾ باغ، ﴿وقت﴾ ميقات، ﴿التحق﴾ د افتعال ماضي ده: لاحق کېدل، شاملېدل.

تشريح: مسئله: دا ده که يو آفاقي سړی د خپل تجارتي ضرورت يا د يو بل غرض په وجه په بستان بنی عامر (يعني په ميقات) کي دننه بغير له احرامه داخل سي، نو پر هغه هيڅ جرم نسته، او هغه ته دا اختيار سته که له بستان بنی عامر څخه (يعني له ميقات څخه) مکې ته داخليدل وغواړي، نو بغير له احرامه مکې ته داخليدای سي، د دې مطلب دا دی چي هغه ته له ميقات څخه د احرام تړلو ضرورت نسته، يعني هغه ته دا ضرورت نسته چي د بستان بني عامر اولي محُکي او سرحد ته ولاړ سي، هلته احرام وتړي، او بيا مکې ته داخل سي، بلکي په بستان بني عامر کي چي هغه هر ځای وي، هغه ځای د ده لپاره ميقات دی، هغه ته پکار ده چي له هغه ځايه احرام وتړي او مکې ته ولاړ سي، د عبارت دا مفهوم صحيح او د شريعت مطابق دی، دا يې بالکل مطلب نه دی چي بې له احرامه مکې ته داخليدل جائز دي، څکه علامه ابن الهمام ليکلي دي چي ټوله کتابونه دا خبره کوي چي کوم څوک مکې ته داخليدل غواړي پر هغه احرام لازم دی، هغه که يې اراده د حج يا عمرې وي، يا که د تجارت يا د بل کار وي.

وللبستاني أن يدخل الخ د دې حاصل دا دی چي څرنګه د بستان بنی عامر د اوسيدونکو لپاره ميقات بستان دی، او له دې ځايه بغير له احرامه د هغو لپاره مکې ته داخليدل جائز دي، همدارنګه د دې سړي لپاره هم تر احرام تړلو وروسته له بستان څخه بغير له احرامه داخليدل جائز دي.

والمراد بقوله الخ فرمايي چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله له دې قول ووقته البستان څخه مراد د حل هغه ټوله علاقه ده چي د دغه بستان او د حرم په مينځ کي واقع وي، هغه ټوله د ده لپاره ميقات ده، له کومه ځايه چي وغواړي احرام تړلای سي، او مکې تللی سي، خاص له بستان بنی عامر څخه احرام تړل ضروري نه دي، خو له خپل کور او خپل منزل څخه احرام تړل عزيمت دي، لنډه دا چي څرنګه د بستاني لپاره ټوله حل ميقات دی، همدارنګه په بستان کي د داخليدونکي سړي لپاره هم ټوله حل ميقات دی، څکه چي داخل سړی او بستاني دواړه برابر دي، همدا وجه ده که د بستان اوسيدونکی سړی او په بستان کي داخليدونکی سړی له حل څخه يو ځای احرام وتړي او سيده عرفات ته ولاړ سي، نو پر هغوی هيڅ دم نه واجبيږي، څکه چي دا حل د هغو په حق کي ميقات دی، او له ميقات څخه پر احرام تړونکي سړي هيڅ شی نه واجبيږي (په دې شرط چي يو بل جنايت نه وکړي).

## مکې ته يو ځل بې له احرامه او بل ځل د احرام سره داخليدل

وَمَنْ دَخَلَ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ او څوک چي بغير له احرامه مکې ته داخل سي ثُمَّ خَرَجَ مِنْ عَامِهِ ذٰلِكَ إِلَى الْوَقْتِ بيا په همدغه کال د ميقات و طرف ته را ووځي وَأَحْرَمَ بِحَجَّةٍ عَلَيْهِ او د داسي حج احرام وتړي چي هغه پر ده واجب وي أَجْزَأَهُ ذٰلِكَ مِنْ دُخُوْلِهِ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ نو دا حج د هغه لپاره بې له احرامه مکې ته له داخليدلو څخه کافي دی وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يُجْزِئُهُ او امام زفر فرمايي: چي د هغه لپاره کافي نه دی وَهُوَ الْقِيَاسُ او د قياس تقاضا همدغه ده اِعْتِبَارًا بِمَا لَزِمَهُ بِسَبَبِ النَّذْرِ پر هغه باندي په قياسولو سره کوم چي پر هغه د نذر په سبب واجب سي فَصَارَ كَمَا إِذَا تَحَوَّلَتِ السَّنَةُ نو داسي سو لکه کال چي بدل سي وَلَنَا أَنَّهُ تَلَافَى الْمَتْرُوْكَ فِي وَقْتِهِ او زموږ دليل دا دی چي هغه د پرېښوول سوي شي تلافي په خپل وخت کي وکړه لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَيْهِ تَعْظِيْمُ هٰذِهِ الْبُقْعَةِ بِالْإِحْرَامِ څکه چي پر هغه د دې سپېڅلې توټې (کعبې) تعظيم په احرام سره واجب وو كَمَا إِذَا أَتَاهُ مُحْرِمًا بِحَجَّةِ الْإِسْلَامِ فِي الْإِبْتِدَاءِ لکه کله چي هغه په

شروع كي د اسلام د حج (فرضي حج) احرام وتړي او ميقات ته راسي (نو دا حج هم د واجب سوي حج ځنځه كافي كيږي)

بِخِلَافِ مَا إِذَا تَحَوَّلَتِ السَّنَةُ په خلاف د هغه صورت چي كله كال بدل سي لِأَنَّهُ صَارَ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهِ ځكه (په دې صورت كي جلا احرام تړل) د هغه په ذمه كي قرض سو فَلَا يَتَأَدَّى إِلَّا بِإِحْرَامٍ مَقْصُودٍ نو نه به اداء كيږي مګر په مقصود (مستقل) احرام سره كَمَا فِي الْإِعْتِكَافِ الْمَنْذُورِ لكه د نذر په اعتكاف كي چي (هم دا حكم دی) فَإِنَّهُ يَتَأَدَّى بِصَوْمِ رَمَضَانَ مِنْ هٰذِهِ السَّنَةِ ځكه چي هغه به د دغه كال د رمضان په روژو سره اداء كيږي دُوْنَ الْعَامِ الثَّانِي نه د دويم كال د رمضان په روژو سره.

**اللغات:** ﴿بقعة﴾ د ځمكي ټوټه، ﴿تحوّلت﴾ د تفعّل ماضي ده: بدلېدل.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده كه يو آفاقي سړی بغير له احرامه مكې ته داخل سو، نو پر هغه حج يا عمره لازميږي، لكه څرنګه چي زموږ مذهب دی، بيا كه په دغه كال له مكې ځنځه راووتی، ميقات ته ولاړی د فرضي يا نفلي حج يا عمرې احرام يې وتړی، نو مكې ته د بې له احرامه داخلېدلو په وجه چي كوم حج يا عمره لازمه سوې وه، دا حج يا عمره د هغه له طرفه كافي كيږي، د جلا اداء كولو يې هيڅ ضرورت نسته. او امام زفر فرمايي چي دا نه كافي كيږي، او همدا قياس دی، قياس دا دی كه پر يو سړي د نذر په وجه حج واجب وو، او فرضي حج يې اداء كړی نو د دې په وجه نذر سوی حج نه ساقطيږي، بلكي جلا اداء كول يې ضروري دي، همدارنګه به دلته به هم د فرضي حج په اداء كولو سره هغه حج نه اداء كيږي كوم چي بې له احرامه مكې ته د داخلېدلو په وجه واجب سوی وي، او دا داسي سو لكه كال چي بدل سي، يعني كه يو سړی بې له احرامه مكې ته داخل سو، او بيا يې را روان كال فرضي حج اداء كړی، نو دا فرضي حج د هغه حج نه سي قائم مقام كېدلای، كوم چي د بې له احرامه داخلېدلو په وجه پر هغه واجب سوی وو.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چي هغه د متروک تلافي يعني د بې له احرامه داخلېدلو په وجه چي كوم حج يا عمره واجبه سوې وه، د هغه تلافي يې په خپل وخت كي دننه يعني په دغه كال كي يې وكړه، په دې توګه چي د فرضي حج په ضمن كي يې هغه اداء كړي، ځكه چي پر هغه په احرام سره د ځمكي د دې سپېڅلي ټوټې تعظيم واجب وو، هغه كه په هره طريقه سره وي، او هغه حاصل سو، نو د هغه لپاره د بل حج يا د عمرې كولو ضرورت پاته نه سو، د دې مسئلې مثال دا دی كه هغه په شروع كي د فرضي حج احرام تړلای وای، نو دا احرام به له فرضي حج ځنځه او له هغه حج ځنځه كوم چي پر ميقات د تېرېدلو په وجه لازميږي، د دواړو له طرفه كافي كېدلای.

بخلاف إذا الخ په خلاف د هغه صورت چي كله كال بدل سي، ځكه مكې ته د داخلېدلو په وجه چي كوم حج پر هغه واجب سوی وو، هغه د ده پر ذمه دَين (پور) سو، نو هغه به د بل حج په ضمن كي نه اداء كيږي، بلكي په نوي او مستقل احرام سره به اداء كيږي، يعني په هغه احرام سره به اداء كيږي چي د دغه دَين د اداء كولو په اراده سره تړل سوی وي، لكه د نذر په اعتكاف كي چي دغه حكم دی، يعني كه يو چا مثلاً د دغه كال د رمضان د اعتكاف نذر ومنی، نو كه هغه د دغه كال په رمضان كي اعتكاف وكړی، خو صحيح دی، لېكن كه د دغه كال د رمضان روژې ځني قضاء سوې، او د روژو د قضاء په وخت كي يې اعتكاف هم وكړی، نو هم يې اعتكاف اداء كيږي، لېكن كه نه يې په رمضان كي اعتكاف وكړی، او نه يې د رمضان د روژو د قضاء په وخت اعتكاف وكړی، او دا يې غوښتل چي د را روان كال د رمضان په روژو كي يې اداء كړي، نو نه اداء كيږي، بلكي مستقلي او جلا روژې به نيسي، او اعتكاف به كوي، ځكه چي دا اعتكاف د هغه پر ذمه

فرض سو، همداسې که کال تېر سو، نو واجب سوی حج د هغه پر ذمه فرض سو. لهذا هغه به هم په مستقل احرام سره اداء کېږي.

## په عمره کې بغیر له احرامه تر میقات تېرېدل او بیا عمره فاسدول

وَمَنْ جَاوَزَ الْوَقْتَ او څوک چې (بغیر له احرامه) تر میقات تېر سي فَأَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ بیا د عمرې احرام وتړي وَأَفْسَدَهَا او عمره فاسده کړي مَضَى فِيهَا وَقَضَاهَا نو د عمرې افعال دې پوره کړي او د هغې قضاء دې راوړي لِأَنَّ الْإِحْرَامَ يَقَعُ لَازِمًا ځکه چې احرام حتماً واقع کېږي فَصَارَ كَمَا إِذَا أَفْسَدَ الْحَجَّ نو داسې سو لکه حج چې فاسد کړي وَلَيْسَ عَلَيْهِ دَمٌ لِتَرْكِ الْوَقْتِ او د میقات د پرېښوولو په وجه به پر هغه دم نه لازمېږي وَعَلَى قِيَاسِ قَوْلِ زُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ لَا يَسْقُطُ عَنْهُ او د امام زفر د قول پر قیاس به له هغه شخصه دم نه ساقطېږي وَهُوَ نَظِيرُ الْإِخْتِلَافِ فِي فَائِتِ الْحَجِّ او دا اختلاف د هغه اختلاف مثال دی کوم چې د حج د فوتونکي په باره کې دی إِذَا جَاوَزَ الْوَقْتَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ چې کله بغیر له احرامه تر میقات تېر سي وَفِيمَنْ جَاوَزَ الْوَقْتَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ وَأَحْرَمَ بِالْحَجِّ (همدارنګه) دا اختلاف د هغه اختلاف مثال دی چې یو سړی بې له احرامه تر میقات تېر سي او د حج احرام وتړي ثُمَّ أَفْسَدَ حَجَّتَهُ بیا خپل حج فاسد کړي هُوَ يَعْتَبِرُ الْمُجَاوَزَةَ هٰذِهِ بِغَيْرِهَا مِنَ الْمَحْظُورَاتِ امام زفر دا تېرېدل له دې شخصه علاوه پر نورو ممنوعاتو قیاسوي وَلَنَا أَنَّهُ يَصِيرُ قَاضِيًا حَقَّ الْمِيقَاتِ بِالْإِحْرَامِ مِنْهُ فِي الْقَضَاءِ او زموږ دلیل دا دی چې هغه به (د حج) په قضاء کې له میقات شخصه د احرام په تړلو سره د میقات حق اداء کونکی وګرځېږي وَهُوَ يَحْكِي الْفَائِتَ (ځکه چې) قضاء د فوت سوي حکایت کوي (یعني د هغه قائم مقام ده) وَلَا يَنْعَدِمُ بِهِ غَيْرُهُ مِنَ الْمَحْظُورَاتِ او په قضاء سره نور ممنوعات نه ختمېږي فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو فرق ښکاره سو.

**اللغات:** ﴿جاوز﴾ د مفاعلې ماضي ده: تېرېدل، ﴿وقت﴾ میقات.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که یو سړی له احرام شخه بغیر تر میقات تېر سو، او بیا یې د عمرې احرام وتړی، خو عمره یې فاسده کړه، نو په دې مسئله کې درې احکام دي: (۱) یو دا چې د دې عمرې ټوله افعال دې پوره کړي، (۲) دویم دا چې تر دې وروسته دې له میقات شخه احرام وتړي او د دغه عمرې قضاء دې راوړي، (۳) دریم دا چې له ده شخه هغه دم ساقط سو، کوم چې بغیر له احرامه تر میقات د تېرېدلو په وجه واجب سوی وو.

(۱) د اول دلیل دا دی چې احرام یو لازم عقد دی، د دې تر شروع کولو وروسته د افعالو له اداء کولو او پوره کولو شخه بغیر انسان له دې شخه نه سي وتلای، نو ځکه به افعال پوره کوي، (۲) دویم دلیل چې هغه په صحیح توګه د عمرې اداء کولو التزام کړی وو، خو په صحیح توګه یې عمره اداء نه کړه، نو ځکه به یې قضاء واجب وي، (۳) او د سقوط دم دلیل دا دی چې کله هغه له میقات شخه احرام وتړی او قضاء یې راوړه، نو په دې سره د هغه نقصان تلافي وسوه کوم چې پر میقات د تېرېدلو په وخت کې د بې احرامۍ په وجه پیدا سوی وو، لهذا کله چې د پیدا سوي نقصان تلافي وسوه، نو دم ساقط سو، ځکه چې دم د نقصان د تلافۍ لپاره واجبېږي، لکه یو څوک چې په لمانځه کې سهوه سي، او هغه لمونځ فاسد کړي د لمانځه قضاء راوړي، نو سجده سهو ساقطېږي، امام زفر فرمایي چې د عمرې د قضاء راوړلو سره سره هم دم نه ساقطېږي، همدا اختلاف په هغه صورت کې دی چې کله یو سړی بې له احرامه تر میقات تېر سي، بیا د حج احرام

وتړي، مګر حج نه ونيسي، بلکي څني فوت سي، بيا را روان کال د دې حج قضاء راوړي، نو زموږ په نيز له ده څخه هغه دم ساقطيږي، کوم چي له ميقات څخه د بې احرامۍ په حالت کي د تېرېدلو په وجه واجب سوی وو، او د امام زفر په نيز نه ساقطيږي، او همدا ختلاف په هغه صورت کي دی چي کله يو سړی بې له احرامه تر ميقات تېر سي، او د حج احرام وتړي، بيا تر وقوفِ عرفه مخکي د جماع يا بل شي په ذريعه حج فاسد کړي، بيا د هغه قضاء راوړي، نو زموږ په نيز د بې احرامۍ په حالت کي چي تر ميقات د تېرېدلو په وجه کوم دم واجب سوی وو هغه ساقطيږي، او د امام زفر په نيز نه ساقطيږي، امام زفر رَحِمَهُ اللهُ بې له احرامه تېرېدل پر نورو ممنوعاتو قياسوي، يعني که پر يو ځا د عطر لګولو يا د ګنډل سوو جامو د اغوستلو په وجه دم واجب سوی وي، او بيا حج څني فوت سي، نو دا دم د قضاء په وجه سره نه ساقطيږي، همدا ډول به چي کوم دم له ميقات څخه د بې احرامۍ په حالت کي د تېرېدلو په وجه واجب سوی وي، نو هغه به هم د حج په قضاء راوړلو سره نه ساقطيږي.

ولنا الخ زموږ دليل دا دی چي کله هغه په قضاء کي له ميقات څخه احرام وتړي نو د ميقات حق يې اداء کړی، او قضاء هم د فوت سوي قائم مقام ده، نو ګواکي هغه بې له احرامه تر ميقات تېر سوی نه دی، او کله چي داسي ده نو دم به هم نه واجبيږي، او نور ممنوعات يعني عطر او داسي نور د حج په فوتېدلو او د هغه په قضاء راوړلو څخه نه ختميږي، بلکي باقي پاتيږي (ځکه نور ممنوعات چي کله يو وار لازم سي بيا نه ساقطيږي مثلاً کله چي يو وار د عطر لګولو په وجه دم لازم سي نو بيا نه ساقطيږي، بلکي په هر حال کي به هغه دم ورکوي که څه هم د هغه حج قضاء راوړي)، او کله چي هغه باقي پاتيږي، نو دم به هم باقي پاته وي، نو د نورو ممنوعاتو او د بې له احرامه تېرېدلو په مينځ کي فرق څرګند سو.

## د مکې د اوسېدونکو لپاره تر ميقات د تېرېدلو مسئله

وَإِذَا خَرَجَ الْمَكِّيُّ يُرِيدُ الْحَجَّ او که مکي سړی د حج په اراده (له حرم څخه د حِل و طرف ته) ووځي فَأَحْرَمَ او احرام وتړي وَلَمْ يَعُدْ إِلَى الْحَرَمِ لېکن حرم ته واپس را نه سي وَوَقَفَ بِعَرَفَةَ او وقوف عرفه وکړي فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو پر هغه يوه بزه واجب ده لِأَنَّ وَقْتَهُ الْحَرَمُ ځکه چي د هغه ميقات حرم دی وَقَدْ جَاوَزَهُ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ او هغه له خپل ميقات څخه بې له احرامه تېر سو فَإِنْ عَادَ إِلَى الْحَرَمِ لېکن که د حرم و طرف ته واپس راسي وَلَبَّى أَوْ لَمْ يُلَبِّ او تلبيه ووايي او که يې نه ووايي فَهُوَ عَلَى الْاِخْتِلَافِ الَّذِيْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْآفَاقِيِّ نو دا سړی پر هغه اختلاف دی کوم چي د آفاقي په حق کي موږ بيان کړی (يعني د امام صاحب په نيز که حرم ته واپس راسي او تلبيه ووايي نو دم څني ساقطيږي، او د صاحبينو په نيز فقط په واپس راتللو سره دم څني ساقطيږي، تلبيه شرط نه ده، او د امام زفر په نيز هيڅ وخت دم نه څني ساقطيږي که څه هم تلبيه ووايي).

**اللغات:** ﴿لم يعد﴾ د نصر جحد معلوم صيغه ده: واپس راتلل، راګرځېدل، ﴿لبّى﴾ د تفعيل ماضي ده: تلبيه ويل.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## د متمتع لپاره تر عمرې وروسته له حرم څخه د وتلو بيان

وَالْمُتَمَتِّعُ إِذَا فَرَغَ مِنْ عُمْرَتِهِ او متمتع چي کله له خپلې عمرې څخه فارغ سي ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْحَرَمِ او بيا له حرم څخه را ووځي فَأَحْرَمَ وَوَقَفَ بِعَرَفَةَ او د حج احرام وتړي او وقوفِ عرفه وکړي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجبيږي لِأَنَّهُ لَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ ځکه چي هغه کله مکې ته داخل سي وَأَتَى بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ او د عمرې افعال اداء کړي صَارَ بِمَنْزِلَةِ الْمَكِّيِّ نو د مکي سړي په درجه کي سو وَإِحْرَامُ الْمَكِّيِّ مِنَ الْحَرَمِ او د مکي احرام له حرم څخه وي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی (په فصل المواقيت کي) فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ بِتَأْخِيرِهِ عَنْهُ نو ځکه به پر هغه له حرم څخه د احرام د ځنډولو په وجه دم لازميږي فَإِنْ رَجَعَ إِلَى الْحَرَمِ بيا که متمتع تر وقوفِ عرفه مخکي د حرم وطرف ته راګرځيږي فَأَهَلَّ فِيهِ قَبْلَ أَنْ يَقِفَ بِعَرَفَةَ او تر وقوفِ عرفه مخکي په حرم کي تلبيه ووايي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي وَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ الَّذِي تَقَدَّمَ فِي الْآفَاقِيِّ او دا متمتع پر هغه اختلاف دی کوم اختلاف چي د آفاقي په باره کي مخکي تېر سو (يعني د امام صاحب په نېز که تلبيه ووايي نو دم ځني ساقطيږي، او د صاحبينو په نېز تلبيه شرط نه ده، او د امام زفر په نېز په دواړو حالتونو کي دم نه ساقطيږي).

**اللغات:** ﴿أَهَلَّ﴾ د افعال ماضي ده: کلمهٔ طيبه ويل، د حج او عمرې د افعالو نيت کول، تلبيه ويل.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.




**تشريح:** د مکي سړي لپاره د حج او د عمرې احرام جمع کول صحيح نه دي، بلکي دا د هغه په حق کي جنايت دی، نو ځکه دا باب تر باب الجنايات وروسته بيانوي، ځکه چي دا هم د باب الجنايات يو نوع ده.

## د مکي سړي لپاره په يوه احرام کي د حج او د عمرې د جمع کولو جرمانه

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: إِذَا أَحْرَمَ الْمَكِّيُّ بِعُمْرَةٍ امام صاحب فرمايي: چي کله مکي سړی د عمرې احرام وتړي وَطَافَ لَهَا شَوْطًا او د هغې لپاره يو دور (شوط) طواف وکړي ثُمَّ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ بيا د حج احرام وتړي فَإِنَّهُ يَرْفُضُ الْحَجَّ نو هغه به (د) حج (احرام) پرېږدي وَعَلَيْهِ لِرَفْضِهِ دَمٌ او پر هغه به د حج د پرېښوولو په وجه يوه قرباني واجب وي وَعَلَيْهِ حَجَّةٌ وَعُمْرَةٌ● او پر هغه به يو حج او عمره (هم) واجب وي وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ: رَفْضُ الْعُمْرَةِ أَحَبُّ إِلَيْنَا

●القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:٢، ص: ٢٣٨. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٣٦]

صاحبين فرمايي: چي زموږ په نېز عمره پرېښوول زيات غوره دي وَقَضَاهَا او هغه به د عمرې قضا راوړي (يعني زموږ په نېز عمره پرېښوول او قضاء يې راوړل زيات غوره دي) وَعَلَيْهِ دَمٌ لِرَفْضِهَا او د عمرې د پرېښوولو په وجه به پر هغه دم لازم وي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ رَفْضِ أَحَدِهِمَا ځکه چي له حج او عمرې څخه يو پرېښوول ضروري دي لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا فِي حَقِّ الْمَكِّيِّ غَيْرُ مَشْرُوعٍ ځکه چي د مكي سړي په حق کي حج او عمره جمع کول مشروع نه دي وَالْعُمْرَةُ أَوْلَى بِالرَّفْضِ او د پرېښوولو زياته وړ عمره ده لِأَنَّهَا أَدْنَى حَالًا ځکه چي عمره د حالت په اعتبار سره ادنیٰ ده وَأَقَلُّ أَعْمَالًا او په اعمالو کي کمه ده وَأَيْسَرُ قَضَاءً او د هغې قضاء آسانه ده لِكَوْنِهَا غَيْرَ مُؤَقَّتَةٍ ځکه چي عمره د يوه وخت سره خاصه نه ده.

**اللغات:** ﴿رفض﴾ پرېښوول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو مكّي سړی د عمرې احرام وتړی، او د عمرې طواف يې شروع کړی، لېکن تر يوه شوط طواف کولو وروسته يې دا احرام د حج و طرف ته منسوب کړی او د حج نيت يې وکړی، نو د امام صاحب په نېز د هغه لپاره حکم دا دی چي حج او د هغه نيت دي منسوخ کړي، او د عمرې پرېښوولو په وجه دي يو دم ورکړي، او تر هغه وروسته دي بيا د حج او د عمرې قضاء راوړي.

د صاحبينو مسلک دا دی چي ښه خبره دا ده چي دا سړی دي عمره پرېږدي، او وروسته دي يې قضاء راوړي، او د عمرې د پرېښوولو په وجه يو دم پر واجبېږي، ځکه له حج او عمرې څخه د يوه پرېښوول ضروري دي، ځکه چي محرم مكي دی، او د مكي لپاره حج او عمره جمع کول صحيح نه دي، نو ځکه به پر دې سړي له حج او عمرې څخه يو پرېښوول ضروري وي، او موږ وينو چي عمره پرېښوول د حج په نسبت زيات آسانه دي، ځکه چي د عمرې مرتبه له حج څخه کمه ده، عمره د عمل په حساب سره تر حج مختصره او لنډه ده، او د هيڅ وخت سره هم خاصه نه ده، بلکي هر وخت عمره کېدای سي، نو د حج په مقابله کي عمره پرېښوول آسانه دي، نو ځکه به عمره په پرېښوولو کي مخکي وي، او مكّي سړی به عمره پرېږدي.

## د پورتنی مسئلې څه نور وضاحت

وَكَذَا إِذَا أَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ بِالْحَجِّ او همدارنګه چي کله هغه د عمرې احرام وتړي بيا د حج احرام وتړي وَلَمْ يَأْتِ بِشَيْءٍ مِنْ أَفْعَالِ الْعُمْرَةِ او د عمرې له افعالو څخه هيڅ شی اداء نه کړي (نو بيا به هم حج پرېږدي) لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی فَإِنْ طَافَ لِلْعُمْرَةِ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ او که مكّي سړي د عمرې لپاره څلور شوطه طواف وکړي ثُمَّ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ بيا د حج احرام وتړي رَفَضَ الْحَجَّ بِلَا خِلَافٍ نو حج دي پرېږدي (دا) حکم بې له اختلافه دی لِأَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ ځکه چي اكثر لره حکم د كُل وي فَتَعَذَّرَ رَفْضُهَا نو د عمرې پرېښوول ناممکن سو كَمَا إِذَا فَرَغَ مِنْهَا لکه څرنګه له عمرې څخه فارغ سي (او بيا د حج احرام وتړي نو د عمرې پرېښوول ناممکن دي) وَكَذَلِكَ إِذَا طَافَ لِلْعُمْرَةِ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ او همدارنګه چي کله هغه د عمرې لپاره تر څلورو شوطو کم طواف وکړي (نو هغه د څلورو شوطونو د طواف په څېر نه دی، يعني اكثر نه دی، نو ځکه به يې حکم د كُل نه وي) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ د امام صاحب په نېز وَلَهُ أَنَّ إِحْرَامَ الْعُمْرَةِ قَدْ

تَأَكَّدَ بِأَدَاءِ شَيْءٍ مِنْ أَعْمَالِهَا د امام صاحب دليل دا دی چې د عمرې احرام د هغې د اعمالو د اداء کولو په وجه مؤکد سو وَإِحْرَامُ الْحَجِّ لَمْ يَتَأَكَّدْ او د حج احرام مؤکد سوی نه دی وَرَفْضُ غَيْرِ الْمُتَأَكِّدِ أَيْسَرُ او د غیر مؤکد پرېښوول آسانه دي وَلِأَنَّ فِي رَفْضِ الْعُمْرَةِ وَالْحَالَةُ هٰذِهِ إِبْطَالَ الْعَمَلِ او ځکه چې په داسې حال کې (يعني چې د عمرې څه افعال يې اداء کړي وي) د عمرې په پرېښوولو کې د عمل باطلول دي (يعني د عمرې باطلول دي) وَفِي رَفْضِ الْحَجِّ امْتِنَاعٌ عَنْهُ او د حج په پرېښوولو کې له حج څخه منع کېدل دي (نو ځکه به حج پرېږدي) وَعَلَيْهِ دَمٌ بِالرَّفْضِ أَيُّهُمَا رَفَضَهُ او پر هغه مکي سړي به يو دم واجب وي هغه که هر احرام پرېږدي (يعني که د عمرې احرام پرېږدي او که د حج) لِأَنَّهُ تَحَلَّلَ قَبْلَ أَوَانِهِ ځکه هغه تر وخت مخکې حلال سو لِتَعَذُّرِ الْمُضِيِّ فِيهِ ځکه چې د هغه پوره کول ستونزمن دي فَكَانَ فِي مَعْنَى الْمُحْصَرِ نو د محصر په معنیٰ کې سو إِلَّا أَنَّ فِي رَفْضِ الْعُمْرَةِ قَضَاءَهَا لَا غَيْرُ خو د عمرې په پرېښوولو کې فقط د عمرې قضاء واجبېږي وَفِي رَفْضِ الْحَجِّ قَضَاؤُهُ وَعُمْرَةٌ لېکن د حج په پرېښوولو کې د حج د قضاء سره سره عمره هم واجبېږي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى فَائِتِ الْحَجِّ ځکه چې هغه د حج د فوتونکي په حکم کې دی.

**اللغات:** ﴿اشواط﴾ جمع د شوط ده: دور، شوط، ﴿تحلل﴾ د تفعّل ماضي ده: احرام خلاصول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي مخکې د عمرې احرام وتړی، او د عمرې د افعالو تر اداء کولو مخکې يې بيا د حج احرام وتړی، نو اوس د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نېز متفقه فيصله دا ده چې دا سړی به عمره پرېږدي، ځکه چې عمره له حج څخه په رتبه کې کمه ده، او د هغې پرېښوول آسانه دي.

او که د عمرې لپاره يې څلور دوره (شوطه) طواف کړی وو، بيا يې د حج احرام وتړی، نو بالاتفاق به حج پرېږدي، ځکه چې اکثر لره حکم د کُل وي، نو هغه ګواکې ټوله طواف کړی دی، او د ټوله طواف کولو په صورت کې د طواف پرېښوول ناممکنه دي، او عمره خو هم دغه طواف ته وړيل کېږي، نو داسې سو لکه له عمرې څخه چې فارغ سو، يعني څرنګه چې له عمرې څخه تر فراغت وروسته عمره پرېښوول متعذر او ناممکن دي، همداسې که هغه د عمرې لپاره تر څلور شوطه کم طواف کړی وي نو هم د امام صاحب په نېز طواف پرېښوول متعذر دي، او د صاحبينو په نېز متعذر نه دي.

**د صاحبينو دليل:** په تېره مسئله کې د دې جملې لأنه لا بد من رفض أحدهما الخ په ضمن کې تېر سو.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې کله مکي سړی د عمرې له طواف څخه يو شوط وکړی، نو د عمرې د اعمالو د څه نا څه اداء کولو په وجه د هغه د عمرې احرام مؤکد سو، او د حج احرام يې مؤکد نه سو، او غيرِ مؤکد پرېښوول آسانه دي، نو ځکه به حج پرېږدي.

ولأن في رفض الخ دويم دليل دا دی چې کله يې د عمرې اعمال څه نا څه اداء کړل، نو په دغه حالت کې که عمره پرېږدي، نو ابطال عمل لازمېږي، او که حج پرېږدي نو فقط د حج له کولو څخه ځان منع کول لازمېږي، د حج باطلول نه لازمېږي، لو له يو کار څخه منع کېدل آسانه دي په نسبت د يو کار و باطلولو ته، نو په دې وجه به هم حج پرېښوول مناسب وي.

وعليه دم بالرفض الخ لنډه دا چې که مکي عمره پرېږدي او که حج، پر هغه به د پرېښوولو په وجه يو دم لازمېږي، ځکه چې هغه تر وخت مخکې حلال سو، يعني د ارکانو تر اداء کولو مخکې حلال سو، او د ارکانو تر اداء کولو مخکې

ځکه حلال سو، چي د حج او عمرې دواړو پوره کول متعذر دي، او پوره کول ځکه متعذر ده چي د مکي لپاره حج او عمره دواړه جمع کول ناجائز دي، نو هغه د محصر په معنیٰ سره سو، او پر محصر يوه قرباني واجبيږي، نو پر هغه به هم يوه قرباني واجب وي، محصر هغه سړي ته ويل کيږي چي د دښمن يا د بل شي په وجه له حج څخه منع سي، هو! دومره خبره سته چي که عمره يې پرېښوولـه لکه څرنګه چي صاحبين وايي، نو صرف د عمرې قضاء به پر واجب وي، او که حج يې پرېښووی، لکه امام صاحب چي وايي، نو پر هغه به د حج قضاء واجب وي، او د حج سره به عمره هم اداء کړي، ځکه د حج په قضاء راوړلو کي د حج سره عمره هم واجبيږي، ځکه چي دا سړی د حج د فوتونکي په حکم کي دی، د حج د فوتونکي معنیٰ دا چي د حج احرام وتړي مکې ته روان سي، مګر حج نه ونيسي، يا د وقوف عرفه د نه کولو په وجه حج څني فوت سي او داسي نور، او د حج پر فوتونکي د حج د قضاء سره سره عمره هم واجب ده، نو پر دې سړي به هم دواړه واجب وي.

## په پورتني صورت کي د دواړو عبادتونو د پوره کولو حکم

وَإِنْ مَضٰى عَلَيْهِمَا او که هغه مکي سړی حج او عمره دواړه پوره کړي أَجْزَأَهُ نو دا د هغه لپاره کافي دي لِأَنَّهُ أَدّٰى أَفْعَالَهُمَا كَمَا الْتَزَمَهُمَا ځکه چي هغه د حج او عمرې افعال داسي اداء کړل لکه څرنګه چي يې پر ځان لازم کړي وه غَيْرَ أَنَّهُ مَنْهِيٌّ عَنْهُمَا خو هغه د دواړو له جمع کولو څخه منع سوی وو وَالنَّهْيُ لَا يَمْنَعُ تَحَقُّقَ الْفِعْلِ او نهي د فعل له تحقق څخه مانع نه دي عَلٰى مَا عُرِفَ مِنْ أُصُولِنَا لکه څرنګه چي دا خبره زموږ له اصولو څخه معلومه سوې ده وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا (لېکن) پر هغه به يوه قرباني واجب وي د دواړو د جمع کولو په وجه لِأَنَّهُ تَمَكَّنَ النُّقْصَانُ فِي عَمَلِهِ لِارْتِكَابِهِ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ ځکه چي د ممنوع کار د ارتکاب په وجه د هغه په عمل کي نقصان پيدا سو وَهٰذَا فِي حَقِّ الْمَكِّيِّ دَمُ جَبْرٍ او دا دم د مکي په حق کي د نقصان دم دی (ځکه چي د حج او د عمرې له جمع کولو څخه منع سوی دی لېکن هغه جمع کړل او په خپل عمل کي يې نقصان پيدا کړی نو د هغه نقصان په وجه به دم ورکوي) وَفِي حَقِّ الْآفَاقِيِّ دَمُ شُكْرٍ او د آفاقي په حق کي د شکرانې دم دی (ځکه چي د آفاقي لپاره د دواړو جمع کول جائز دي، نو د هغه به د شکرانې په توګه دم ورکوي).

**اللغات:** ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده پر ځان لازمول، پر خپله غاړه اخيستل، ﴿تحقق﴾ د تفعّل مصدر دی: ثابتېدل، ﴿جبر﴾ تلافي، بدله، نقصان، جبران

**تشريح: مسئله:** خو بالکل ښکاره ده چي که مکي سړي حج او عمره دواړه اداء کړل، نو دواړه اداء کيږي، ځکه څرنګه چي يې دواړه پر ځان لازم کړي ول، هغسې يې دواړه اداء کړل، خو څرنګه چي هغه د حج او د عمرې له يوځای اداء کولو څخه منع سوی دی، نو د منهي عنه کار د ارتکاب په وجه به پر هغه دم واجبيږي، او فقط د دم په وجوب سره به کار کيږي، بيا به نه د هغه پر حج څه اثر راځي، او نه پر عمره، ځکه چي نهي او ممانعت د فعل له تحقق او وجود څخه مانع نه دي، لهذا د مکي سړي دواړه اداء کړی سوي فعلونه به واقع کيږي، او کوم نقصان چي د ممنوع کار د ارتکاب په وجه پيدا سوی دی، په دم سره به د هغه تلافي کيږي.

وهذا الخ فرمايي چي دا دم به د مکي سړي په حق کي د نقصان او تلافی دم وي، او د دې مستحق به صرف فقيران وي، او په خپله به مکي سړي ته دا اجازه نه وي چي له هغه څخه څه وخوري. د دې په خلاف چي څرنګه د آفاقي لپاره حج او عمره دواړه جمع کول صحيح او جائز دي، نو د هغه دم به د شکرانې دم وي، او د هغه لپاره به د دم څخه خوړل او استعمالول جائز وي.

## د حج په دوران کي تر حلق وروسته د دويم احرام تړلو حکم

وَمَنْ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ او څوک چي د حج احرام وتړي ثُمَّ أَحْرَمَ يَوْمَ النَّحْرِ بِحَجَّةٍ أُخْرَى بيا د ذو الحجې په لسمه د دويم حج احرام وتړي فَإِنْ حَلَقَ فِي الْأُولَى لَزِمَتْهُ الْأُخْرَى نو که په اول حج کي يې حلق کړی وي (يعني سر يې خرېلی وي) نو پر هغه به دويم حج لازم وي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ او پر هغه به هيڅ ضمان واجب نه وي وَإِنْ لَمْ يَحْلِقْ فِي الْأُولَى لَزِمَتْهُ الْأُخْرَى او که په اول حج کي يې حلق کړی نه وي نو بيا به هم دويم حج پر لازم وي وَعَلَيْهِ دَمٌ او يوه قرباني به پر واجب وي قَصَّرَ أَوْ لَمْ يُقَصِّرْ که قصر يې کړی وي که نه وي (يعني حلق يې کړی وي که نه وي، ځکه په ټولو ځايونو کي له قصر څخه حلق مراد دی ابنايه ج۲، ص۳۷۸) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام صاحب په نيز وَقَالَا: إِنْ لَمْ يُقَصِّرْ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ او صاحبين فرمايي: که قصر يې کړی نه وي نو پر هغه به هيڅ شی واجب نه وي لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ إِحْرَامَيِ الْحَجِّ أَوْ إِحْرَامَيِ الْعُمْرَةِ بِدْعَةٌ ځکه چي د حج دوه احرامه او د عمرې دوه احرامه جمع کول بدعت دي فَإِذَا حَلَقَ فَهُوَ وَإِنْ كَانَ نُسُكًا فِي الْإِحْرَامِ الْأَوَّلِ بيا که يې حلق وکړی نو هغه که څه هم په اول احرام کي نسک دی فَهُوَ جِنَايَةٌ عَلَى الثَّانِي لېکن پر دويم احرام جنايت دی لِأَنَّهُ فِي غَيْرِ أَوَانِهِ ځکه چي دا حلق په خپل وخت کي نه دی فَلَزِمَهُ الدَّمُ بِالْإِجْمَاعِ نو ځکه به پر هغه بالاجماع دم لازميږي وَإِنْ لَمْ يَحْلِقْ حَتَّى حَجَّ فِي الْعَامِ الْقَابِلِ او که يې حلق نه وکړی تر دې چي را روان کال يې دويم حج وکړی فَقَدْ أَخَّرَ الْحَلْقَ عَنْ وَقْتِهِ فِي الْإِحْرَامِ الْأَوَّلِ نو هغه په اول احرام کي حلق تر خپل وخت وځنډوی وَذَلِكَ يُوجِبُ الدَّمَ عِنْدَ ● أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او دا (هم) د امام صاحب په نيز دم واجبوي وَعِنْدَهُمَا لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ او د صاحبينو په نيز په ځنډولو سره پر هغه هيڅ شی نه لازميږي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه فَلِهَذَا سَوَّى بَيْنَ التَّقْصِيرِ وَعَدَمِهِ عِنْدَهُ نو په دې وجه د امام صاحب په نيز قصر کول او نه کول دواړه برابر سوي دي (يعني په دې وجه اَچي د حج يو عمل ځنډول د امام صاحب په نيز جنايت دی] په متن کي د امام صاحب په نيز په قصر او عدمِ قصر کي برابر حکم سوی دی) وَشَرَطَ التَّقْصِيرَ عِنْدَهُمَا او د صاحبينو په نيز قصر شرط سوی دی.

**اللغات:** ﴿قَصَّرَ﴾ د تفعيل ماضي ده: وريښتيان کوچني کول. ﴿سُوِّيَ﴾ د تفعيل ماضي مجهوله ده: برابرول.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الهندية ج:۱، ص: ۲۵۴. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۳۷]

تشریح: صورت د مسئلې: دا دی که یو سړي د حج احرام وتړی، تر هغه وروسته یې په یومُ النحر یعني د ذو الحجې په لسمه ورځ د را روان کال لپاره دویم ځل د حج احرام وتړی، نو د دې دوه صور تونه دي: (۱) هغه به له اول حج څخه د وتلو لپاره حلق کړی وي، (۲) یا به یې کړی نه وي، که اول صورت وي، یعني چي د اول حج لپاره یې حلق کړی وي، نو پر هغه دویم حج لازمیږي (او تر را روان کاله پوري به هغه محرم پاته وي، او کوم شیان چي محرم لره حلال نه دي هغه به ده ته هم حلال نه وي)، او هیڅ دم نه پر واجبیږي، ځکه په حلق کولو سره دا سړی له اول حج څخه حلال او فارغ سو (نو دوه احرامونه یې سره جمع نه کړل، حال دا چي دم هغه وخت واجبیږي چي یو سړی دوه احرامونه سره جمع کړي)، او که دویم صورت وي، یعني د اول حج حلق یې کړی نه وي، نو بیا هم پر هغه دویم حج لازمیږي، خو په دې صورت کي پر هغه د امام صاحب په نیز دم واجبیږي، هغه که یې تر دویم احرام وروسته قصر یعني حلق کړی وي که نه وي، صاحبین فرمايي چي که یې د دویم حج تر احرام وروسته حلق کړی نه وي، نو دم نه واجبیږي، دلیل دا دی چي د حج یا د عمرې دوه احرامونه جمع کول بدعت دي، اوس که دغه سړی د دویم حج تر احرام تړلو وروسته حلق وکړی، نو که څه هم دا حلق د اول حج له احرام څخه د وتلو لپاره دی، لیکن د دویم حج د احرام په حق کي دا حلق جنایت دی، ځکه چي اوس د دویم حج او د هغه له احرام څخه د وتلو وخت نه دی، نو ګواکي هغه تر وخت مخکي حلق وکړی، او تر وخت مخکي حلق کول دم واجبوي، نو ځکه به په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبینو ټولو په نیز دم واجب وي.

وإن لم يحلق الخ او که هغه د اول حج لپاره حلق کړی نه وي، تر دې چي را روان کال هغه دویم حج وکړي، نو څرنګه چي په دې صورت کي هغه د اول حج حلق تر خپل وخت وروسته کړی، نو په دې صورت کي به هم د امام صاحب په نیز دم واجب وي، ځکه چي د هغه په نیز د حج په افعالو کي تأخیر دم واجبوي، نو معلومه سوه چي د دویم حج تر احرام وروسته که محرم حلق وکړي که نه وکړي، په دواړو صورتونو کي به د امام صاحب په نیز دم واجب وي، ځکه چي همدا د دویم حج احرام تړل د تأخیر سبب دی، او څرنګه چي د صاحبینو په نیز د حج په افعالو کي تأخیر دم نه واجبوي، نو د هغوی په نیز د دم د وجوب لپاره تر دویم احرام وروسته حلق کول شرط دي، ځکه په دې صورت کي به دا حلق پر دویم احرام جنایت سي، او که حلق نه وکړي، نو بیا به جنایت نه وي، نو دم به هم نه واجبیږي.

## په یوه احرام کي د دوو عمرو د جمع کولو حکم

وَمَنْ فَرَغَ مِنْ عُمْرَتِهِ إِلَّا التَّقْصِيرَ او څوک چي له قصر (یا حلق) څخه علاوه د خپلي عمرې (له ټولو افعالو) څخه فارغه سي فَأَحْرَمَ بِأُخْرَى بیا د بلي عمرې احرام وتړي فَعَلَيْهِ دَمٌ نو پر هغه دم واجب دی لِإِحْرَامِهِ قَبْلَ الْوَقْتِ ځکه هغه (په دې صورت کي) تر وخت مخکي احرام وتړی (ځکه چي د دویمي عمرې وخت د اولي عمرې تر حلق یا قصر وروسته دی، لهذا د دوو احرامو جمع کونکی سو) لِأَنَّهُ جَمَعَ بَيْنَ إِحْرَامَيِ الْعُمْرَةِ ځکه چي هغه د عمرې دوه احرامونه سره جمع کړل وَهَذَا مَكْرُوهٌ او دا مکروه دي فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ نو ځکه به دم پر لازم وي وَهُوَ دَمُ جَبْرٍ وَكَفَّارَةٍ او دا دم به د تلافی او کفارې دم وي (یعني دا به د نقصان پوره کونکی او د نقصان د کفارې دم وي).

تشریح: صورت د مسئلې او دلیل ښکاره دی.

## د آفاقي لپاره د حج په احرام کې د عمرې شاملولو حکم

وَمَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ ثُمَّ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ او کوم آفاقي چې د حج احرام وتړي بيا د عمرې احرام وتړي لَزِمَاهُ نو پر هغه دواړه لازم سول لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا مَشْرُوعٌ فِي حَقِّ الْآفَاقِيِّ ځکه چې د حج او د عمرې جمع کول د آفاقي په حق کې مشروع دي وَالْمَسْأَلَةُ فِيهِ او مسئله (هم) د آفاقي په باره کې ده فَيَصِيرُ بِذَلِكَ قَارِنًا نو ځکه به آفاقي د دې په ذريعه قارن کرځي لَكِنَّهُ أَخْطَأَ السُّنَّةَ لېکن د سنت خلاف کارې وکړی فَيَصِيرُ مُسِيئًا نو ځکه به ګنهکار وي فَلَوْ وَقَفَ بِعَرَفَاتٍ نو (بيا) که وقوفِ عرفات وکړي وَلَمْ يَأْتِ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ او د عمرې افعال اداء نه کړي فَهُوَ رَافِضٌ لِعُمْرَتِهِ نو هغه د خپلې عمرې پرېښوونکی سو لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ أَدَاؤُهَا ځکه چې اوس پر هغه د عمرې اداء کول ستونزمن سو إِذْ هِيَ مَبْنِيَّةٌ عَلَى الْحَجِّ غَيْرُ مَشْرُوعَةٍ ځکه چې عمره داسې مشروع نه ده چې هغه دې پر حج مبني وي(بلکې عمره داسې مشروع ده چې حج به پر هغې مبني وي) فَإِنْ تَوَجَّهَ إِلَيْهَا لَمْ يَكُنْ رَافِضًا (خو) که هغه د عرفات و طرف ته متوجه سي نو د عمرې پرېښوونکی به نه وي حَتَّى يَقِفَ تر دې چې وقوفِ عرفه وکړي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او دا خبره موږ مخکې ذکر کړې ده(يعني د باب القِران په آخر کې).

**اللغات:** ﴿أهلّ﴾ د افعال ماضي ده: د حج نيت کول، ﴿مسيئًا﴾ ګنهکار، غلط کار کوونکی.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو آفاقي سړي د حج احرام وتړی، او د حج د افعالو تر اداء کولو مخکې يې د عمرې احرام هم وتړی، نو څرنګه چې دا سړی آفاقي دی، او د آفاقي په حق کې حج او عمره دواړه جمع کول مشروع او صحيح دي، نو ځکه به پر هغه حج او عمره دواړه لازم وي، او په داسې کولو سره به آفاقي قارن ګرځي، خو څرنګه چې اصل او سنت دا دي چې په قران کې د عمرې احرام او د عمرې افعال د حج پر افعالو مخکې کړی سي، لېکن دغه سړي د هغه برعکس عمل وکړی او د سنت مخالفت يې وکړی، نو ځکه به ګنهکاره وي.

فلو وقف الخ اوس که دغه سړي د حج د احرام تر تړلو وروسته د عمرې افعال اداء نه کړل، او سيده عرفات ته ولاړی، وقوفِ عرفه يې وکړی، نو د هغه عمره ختمه سوه يعني عمره څني فوت سوه بيا يې نه سي اداء کولای، ځکه چې تر وقوفِ عرفه وروسته د عمرې اداء کول متعذر او نامکنه دي، او هغه دا ډول چې که اوس هغه عمره وکړي، نو عمره به پر حج مبني سي، او پر حج عمره مبني کول مشروع نه دي، نو په دې وجه به تر وقوفِ عرفه وروسته د هغه عمره ختمېږي، او که دغه سړي عرفات ته مخ کړی، لېکن وقوفِ عرفه يې نه وکړی، نو صرف د تلو او د عرفات و طرف ته په متوجه کېدلو سره د هغه عمره نه ختمېږي، او تر وقوفِ عرفه مخکې به هغه ته د عمرې پرېښوونکی نه ويل کېږي، لکه څرنګه چې د دې مسئلې تفصيل په بابُ القران کې هم تېر سو.

## د حج د افعالو تر شروع کولو وروسته د عمرې د احرام حکم

فَإِنْ طَافَ لِلْحَجِّ او که آفاقي د حج لپاره طوافِ قدوم وکړي ثُمَّ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ بيا د عمرې احرام وتړي فَمَضَى عَلَيْهِمَا او حج او عمره دواړه جاري وساتي لَزِمَاهُ نو دواړه به پر هغه لازم وي وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا او پر هغه به د دواړو د جمع

کولو په وجه يو دم (هم) واجب وي لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا مَشْرُوعٌ ځکه چې د دواړو جمع کول مشروع دي عَلَى مَا مَرَّ پر هغه بناء کوم چې تېر سو (يعنې مخکې تېر سو چې د آفاقي په حق کې د دواړو جمع کول مشروع دي) فَصَحَّ الْإِحْرَامُ بِهِمَا لهذا د دواړو احرام صحيح سو وَالْمُرَادُ بِهٰذَا الطَّوَافِ طَوَافُ التَّحِيَّةِ او له دې طواف څخه مراد طوافِ قدوم دی وَأَنَّهُ سُنَّةٌ وَلَيْسَ بِرُكْنٍ او طوافِ قدوم سنت دی رکن نه دی حَتّٰى لَا يَلْزَمَهُ بِتَرْكِهِ شَيْءٌ تر دې چې د طوافِ قدوم په پرېښوولو سره پر هغه هيڅ شی نه لازميږي وَإِذَا لَمْ يَأْتِ بِمَا هُوَ رُكْنٌ او کله چې هغه داسې عمل نه وکړي چې هغه رکن وي يُمْكِنُهُ أَنْ يَأْتِيَ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ (نو) د هغه لپاره ممکنه ده چې د عمرې افعال اداء کړي ثُمَّ بِأَفْعَالِ الْحَجِّ بيا د حج افعال اداء کړي فَلِهٰذَا لَوْ مَضٰى عَلَيْهِمَا همدا وجه ده که دواړه جاري وساتي جَازَ نو جائز دي وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا او پر هغه به يوه قرباني واجب وي د دواړو د جمع کولو په وجه وَهُوَ دَمُ كَفَّارَةٍ وَجَبْرٍ او هغه د کفارې او د تلافۍ قرباني ده هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ بَانٍ أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ عَلٰى أَفْعَالِ الْحَجِّ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې دا سړی من وجه د حج پر افعالو د عمرې د افعالو مبني کونکی دی (ځکه طوافِ قدوم که څه هم سنت دی خو بيا هم په يوه درجه کې د حج له افعالو څخه دی).

**تشریح: مسئله**: دا ده که يو آفاقي د حج طوافِ قدوم وکړی، بيا يې د عمرې احرام وتړی، او دواړه يې جاري وساتل (يعنې اول يې عمره شروع کړه بيا يې حج کوی)، نو پر هغه حج او عمره دواړه لازم دي، ځکه چې د آفاقي په حق کې حج او عمره دواړه جمع کول مشروع دي، نو د دواړو احرام صحيح سو.

والمراد بهذا الطواف الخ او په متن کې له طواف څخه مراد طوافِ قدوم دی، او طوافِ قدوم سنت دی، رکن نه دی، د طوافِ قدوم په پرېښوولو سره هيڅ شی نه لازميږي، همدا وجه ده چې د طوافِ قدوم تر اداء کولو وروسته هم د هغه لپاره على الترتيب عمره او تر هغه وروسته د حج افعال اداء کول صحيح دي، او د دواړو د جمع کولو په وجه يو دم پر واجب دی، او دا دم د کفارې او د نقصان د تلافۍ لپاره دی، د شکرانې دم نه دی، ځکه چې دا سړی من وجه د حج پر افعالو د عمرې د افعالو بناء کوي، ځکه طوافِ قدوم که څه هم سنت دی (او د حج اصلي عمل نه دی ځکه چې د حج اصلي اعمال له وقوفِ عرفه څخه شروع کيږي)، خو بيا هم په يوه درجه کې د حج عمل دی، نو په دې اعتبار سره به تر طوافِ قدوم وروسته د عمرې افعال اداء کول مکروه وي، او د دې کراهت د جبران او تدارک لپاره به دا دم پر هغه واجب وي.

## د حج د احرام په وجه د عمرې احرام پرېښوول

وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَرْفُضَ عُمْرَتَهُ او (د دغه آفاقي لپاره) مستحب دا ده چې خپله عمره پرېږدي لِأَنَّ إِحْرَامَ الْحَجِّ قَدْ تَأَكَّدَ بِشَيْءٍ مِنْ أَعْمَالِهِ ځکه چې د حج د څه اعمالو په اداء کولو سره د حج احرام مؤکد سو بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَطُفْ لِلْحَجِّ په خلاف د هغه صورت چې کله يې د حج لپاره طوافِ قدوم کړی نه وي وَإِذَا رَفَضَ عُمْرَتَهُ يَقْضِيهَا او کله چې عمره پرېږدي نو قضاء به يې راوړي لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهَا ځکه چې (د هغه لپاره) په عمرې شروع کول صحيح دي وَعَلَيْهِ دَمٌ لِرَفْضِهَا او پر هغه به دم واجب وي د عمرې د پرېښوولو په وجه.

اللغات: ﴿يرفض﴾ د فتح مضارع ده: پرېښودل، ﴿لم يطف﴾ د نصر جحد معلوم صيغه ده: طواف کول.
تشريح: صورت د مسئلې او دليل ښکاره دي.

## په ايامِ تشريق کې د عمرې احرام تړل

وَمَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ فِي يَوْمِ النَّحْرِ أَوْ فِي أَيَّامِ التَّشْرِيقِ او څوک چې په ورځ د نحر يا په ورځو د تشريق کې د عمرې احرام وتړي لَزِمَتْهُ نو پر هغه عمره لازميږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی (يعني: لصحة الشروع فيها) وَيَرْفُضُهَا او دا عمره به پرېږدي أَيْ يَلْزَمُهُ الرَّفْضُ يعني پر هغه (د دې عمرې) پرېښوول واجب دي لِأَنَّهُ قَدْ أَدَّى رُكْنَ الْحَجِّ ځکه چې هغه د حج رکن اداء کړی فَيَصِيرُ بَانِيًا أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ عَلَى أَفْعَالِ الْحَجِّ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو (د نه پرېښوولو په صورت کې) به دا سړی په هر اعتبار سره د حج پر افعالو د عمرې د افعالو مبني کونکی وګرځيږي وَقَدْ كُرِهَتِ الْعُمْرَةُ فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ أَيْضًا او په دې ورځو کې عمره هم مکروه ده عَلَى مَا نَذْكُرُ لکه موږ چې به يې ذکر کړو (په باب الفوات کې) فَلِهٰذَا يَلْزَمُهُ رَفْضُهَا نو په دې وجه هم پر هغه د عمرې پرېښوول لازم دي.

تشريح: په ايامِ تشريق او يومُ النحر کې عمره کول مکروه دي، نو که يو سړي په يومُ النحر يا ايامِ تشريق کې تر حلق يا طوافِ زيارت مخکې د عمرې احرام وتړي، نو پر هغه عمره لازمه سوه، ځکه چې د عمرې شروع کول صحيح دي، خو د هغه لپاره د عمرې اداء کول صحيح نه دي، ځکه چې په دې ورځو کې عمره اداء کول مکروه دي، نو ځکه به د دې عمرې پرېښوول پر هغه لازم وي، او په دې وجه به هم د عمرې پرېښوول واجب وي چې دغه سړي د حج رکن يعني وقوفِ عرفه اداء کړی دی (ځکه چې هغه تر يومُ النحر او ايامِ تشريق مخکې اداء کيږي، او وقوفِ عرفه د حج اصلي عمل دی، يعني په هر درجه کې د حج عمل دی)، نو اوس که د عمرې افعال اداء کوي، نو په هره درجه کې به د حج پر افعالو د عمرې د افعالو مبني کونکي سي، او داسي کول له سنت څخه خلاف دي، نو ځکه به د عمرې له پرېښوولو څخه علاوه بله لاره نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې څه نور تفصيل

فَإِنْ رَفَضَهَا نو که دغه سړی عمره پرېږدي فَعَلَيْهِ دَمٌ لِرَفْضِهَا وَعُمْرَةٌ مَكَانَهَا نو د عمرې د پرېښوولو په وجه به پر هغه يو دم واجب وي او د هغې پر ځای به يوه عمره پر واجب وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی فَإِنْ مَضَى عَلَيْهَا ليکن که هغه دا عمره پوره کړي أَجْزَأَهُ نو دا د هغه لپاره کافي سوه لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهَا ځکه چې کراهت د داسي معنیٰ په وجه دی چې هغه معنیٰ د عمرې په غير کې ده (يعني کراهت په بل شي کې سته نه په عمره کې) وَهُوَ كَوْنُهُ مَشْغُولًا فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ بِأَدَاءِ بَقِيَّةِ أَعْمَالِ الْحَجِّ او هغه د دغه سړي په دې ورځو کې د حج په نورو اعمالو سره مشغوله کېدل دي فَيَجِبُ تَخْلِيصُ الْوَقْتِ لَهُ تَعْظِيمًا نو د تعظيم په خاطر به د حج لپاره وخت فارغه کول واجب وي وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا او د حج او عمرې د جمع کولو په وجه به پر هغه يو دم واجب وي إِمَّا فِي الْإِحْرَامِ أَوْ فِي الْأَعْمَالِ الْبَاقِيَةِ يا په احرام کې د جمع کولو په وجه (به دم پر واجب وي) يا د حج په نورو اعمالو کې د جمع کولو په وجه (به دم

پر واجب) قَالُوْا: وَهٰذَا دَمُ كَفَّارَةٍ أَيْضًا مشائخو فرمايلي دي، چي دا هم د كفارې قرباني ده وَقِيْلَ: إِذَا حَلَقَ لِلْحَجِّ او ويل سوي دي، چي كله د حج لپاره حلق وكړي ثُمَّ أَحْرَمَ بيا د عمرې احرام وتړي لَا يَرْفُضُهَا نو عمره به نه پرېږدي عَلٰى ظَاهِرِ مَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ د مبسوط د ظاهري عبارت مطابق وَقِيْلَ: يَرْفُضُهَا إِحْتِرَازًا عَنِ النَّهْيِ او ويل سوي دي، چي عمره به پرېږدي چي له نهي څخه خوندي سي قَالَ الْفَقِيْهُ أَبُوْ جَعْفَرٍ: وَمَشَايِخُنَا عَلٰى هٰذَا فقيه ابو جعفر فرمايلي دي، چي زموږ مشائخ (هم) پر دغه قول دي (چي عمره به پرېږدي).

**اللغات:** ﴿تخليص﴾ د تفعيل مصدر دی: خالي كول، خالص كول، فارغه كول. ﴿احتراز﴾ د افتعال مصدر دی: ځان ساتل.

**تشريح:** تر دې مخكې دا بيان وسو چي د حج او عمرې د جمع كونكي آفاقي لپاره عمره پرېښوول غوره او مستحب دي، له دې ځايه دا رښيي چي كله دغه آفاقي پر استحباب عمل وكړي، او عمره پرېږدي، نو اوس به د عمرې د پرېښوولو په وجه پر هغه يو دم لازمېږي، او د عمرې په بدله كي به بله عمره پر لازميږي.

فإن مضى الخ او كه عمره نه پرېږدي، بلكي پوره يې كړي، نو دا د هغه لپاره كافي او جائز دي، ځكه چي د عمرې په ذات كي هيڅ كراهت نسته، بلكي كراهت د داسي سبب په وجه دی چي هغه په غير كي دی، او هغه سبب دا دی چي كه هغه په عمره لګيا وي نو د حج د پاته افعالو لپاره وخت نه سي فارغه كولای، حال دا چي پر هغه د حج د پاته افعالو لپاره وخت فارغه كول واجب دي، ليكن د عمرې داداء كولو په وجه هغه داسي نسي كولای، خو بيا به هم په دې سره د هغه پر عمرې هيڅ اثر نه پرېوځي، ځكه چي د كراهت سبب له عمرې څخه علاوه په بل شي كي دی.

حاصل دا چي كله هغه عمره اداء كړه، نو د حج او د عمرې د يو ځای اداء كولو په وجه پر هغه يو دم واجبيږي، او د دواړو جمع كول او يو ځای اداء كول خو به يا په يوه احرام كي وي، په دې توګه چي هغه د حج تر حلق كولو مخكي د عمرې احرام وتړي (نو په دې صورت كي هغه په يوه احرام كي حج او عمره دواړه جمع كړل)، يا دا جمع به د حج په باقي افعالو يعني په رمئ جمار او نورو كي وي (يعني هغه تر اوسه يې لا طوافِ زيارت كړی نه دی او احرام يې وتړی نو د حج پاته اعمال يې په عمره كي شريک كړل)، لنډه دا چي جمع يې وكړه، نو د دې جمعي په وجه به پر هغه د كفارې دم واجبيږي.

وقيل الخ ځيني حضرات وايي: كه دغه آفاقي د حج لپاره حلق وكړي، بيا يې احرام وتړي، نو په دې لړ كي د فقهاوو دوه نظرونه دي: (۱) د ځيني فقهاوو نظر دا دی چي عمره به نه پرېږدي، يعني د عمرې پرېښوول واجب نه دي، لكه څرنګه چي د مبسوط له ظاهري عبارت څخه هم دا معلوميږي، (۲) او د ځيني حضراتو نظر دا دی چي عمره به پرېږدي، يعني پرېښوول يې واجب دي، چي له هغه نهي څخه ځان وساتي كوم چي په دې ورځو كي د عمرې كولو په باره كي راغلي دي، فقيه ابو جعفر هندواني وايي چي زموږ مشائخ هم پر دې قول دي، يعني چي د عمرې پرېښوول واجب دي.

## د فوت سوي حج لپاره د بل احرام تفصيل

فَإِنْ فَاتَهُ الْحَجُّ او كه له يو چا څخه حج قضاء سي ثُمَّ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ أَوْ بِحَجَّةٍ بيا د عمرې يا حج احرام وتړي فَإِنَّهُ يَرْفُضُهَا نو هغه به (دويمه عمره يا حج) پرېږدي لِأَنَّ فَائِتَ الْحَجِّ يَتَحَلَّلُ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ ځكه چي د حج فوتونكی د عمرې په افعالو سره حلاليږي مِنْ غَيْرِ أَنْ يَّنْقَلِبَ إِحْرَامُهُ إِحْرَامَ الْعُمْرَةِ بغير له دې څخه چي د هغه احرام دي د عمرې په احرام

بدل سي ‌حَلَّ مَا يَأْتِيكَ فِي بَابِ الْفَوَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ چي دا به تاته انشاء الله په بابُ الفوات کي راسي فَيَصِيرُ جَامِعًا بَيْنَ الْعُمْرَتَيْنِ مِنْ حَيْثُ الْأَفْعَالِ نو دافعالو په اعتبار سره به هغه د دوو عمرو جمع کونکی وګرځيږي فَعَلَيْهِ أَنْ يَرْفُضَهَا نو ځکه به پر هغه د عمرې پرېښوول واجب وي كَمَا لَوْ أَحْرَمَ بِعُمْرَتَيْنِ لکه په هغه صورت کي چي (هم د عمرې پرېښوول واجب دي) کله چي د دوو عمرو احرام وتړي.

**اللغات:** ﴿فاته﴾ د نصر ماضي ده: فوتېدل، قضاء کېدل.

**تشريح: مسئله**: دا ده که له يو چا څخه حج فوت سي (مثلاً وقوف عرفه څني فوت سي)، او هغه دويم وار د عمرې يا د حج احرام وتړي، نو هغه به دا دويم پرېږدي، هغه که عمره وي، که حج، ځکه چي د حج فوتونکی (يعني له چا څخه چي حج فوت سي هغه) د عمرې د افعالو په اداء کولو سره حلاليږي، بغير له دې څخه چي د هغه احرام دي واوړي د عمرې احرام دي سي، نو په اعتبار د افعالو دا سړی د دوو عمرو جمع کونکی سو، او دا جائز نه دي، نو ځکه به عمره پرېږدي، لکه په هغه وخت کي چي هم پرېښوول کيږي کله چي هغه د دوو عمرو احرام وتړي.

## تر حج فوتېدلو وروسته د بل حج احرام تړل

وَإِنْ أَحْرَمَ بِحَجَّةٍ او که هغه (دويم وار) د حج احرام وتړي يَصِيرُ جَامِعًا بَيْنَ الْحَجَّتَيْنِ إِحْرَامًا نو هغه د احرام په اعتبار سره د دوو حجونو جمع کونکی سو فَعَلَيْهِ أَنْ يَرْفُضَهَا نو پر هغه واجب دي چي دويم حج پرېږدي كَمَا لَوْ أَحْرَمَ بِحَجَّتَيْنِ لکه په هغه صورت کي چي کله هغه (يو ځای) د دوو حجونو احرام وتړي وَعَلَيْهِ قَضَاؤُهَا او پر هغه د دې قضاء واجب ده لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهَا ځکه چي د دويم حج شروع کول صحيح سو وَدَمٌ لِرَفْضِهَا او د هغه د پرېښوولو په وجه دم (هم) پر واجب دی بِالتَّحَلُّلِ قَبْلَ أَوَانِهِ تر خپل وخت مخکي په حلالېدلو سره، والله أعلم بالصواب.

**تشريح: مسئله**: دا ده که دغه سړي تر حج فوتېدلو وروسته د دويم حج احرام وتړی، نو په دې صورت کي هغه په يوه احرام کي د دوو حجونو جمع کونکی سو، او دا ناجائز دي، نو ځکه به پر هغه دويم حج پرېښوول واجب وي، لکه څرنګه چي په هغه وخت کي هم واجب دي چي کله د دوو حجونو احرام وتړي، خو پر هغه د دې حج قضاء لازم ده، ځکه چي د حج شروع کول صحيح دي، او يو دم هم پر واجب دی، ځکه کله چي يې دويم حج يې پرېښووی نو تر وخت مخکي حلال سو. والله أعلم بالصواب



# بَابُ الْإِحْصَارِ

## (دا) باب (له حج څخه) د منع کېدلو (په بيان کي) دی

**تشریح**: څرنګه چي احصار هم د محرم په حق کي جنايت دی، نو دا هم تر بابُ الجنايات وروسته د مستقل او جلا باب په ضمن کي بيانيږي.

د إحصار لغوي معنیٰ ده: منع کول، بندول. اصطلاحي او شرعي معنیٰ يې ده: چي محرم د دښمن د بيري يا د يو بل عذر يا د يو مرض په وجه د حج يا د عمرې د افعالو له اداء کولو څخه منع سي (بند سي)، او څوک چي منع سي هغه ته مُحصر ويل کيږي.

### د محصر تفصيلي تعريف او حکم

| |
|---|
| وَإِذَا أُحْصِرَ الْمُحْرِمُ بِعَدُوٍّ او کله چي محرم (له حج يا عمرې څخه) د دښمن په وجه منع سي أَوْ أَصَابَهُ مَرَضٌ يا په يوه مرض مبتلا سي فَمَنَعَهُ مِنَ الْمُضِيِّ او مرض هغه (د حج يا د عمرې) له پوره کولو څخه منع کړي جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ نو د هغه لپاره حلال کېدل جائز دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَكُونُ الْإِحْصَارُ إِلَّا بِالْعَدُوِّ او امام شافعي فرمايي: چي احصار (يعني منع کېدل) به نه ثابتيږي مګر د دښمن په وجه لِأَنَّ التَّحَلُّلَ بِالْهَدْيِ شُرِعَ فِي حَقِّ الْمُحْصَرِ لِتَحْصِيلِ النَّجَاةِ ځکه چي د محصر په حق کي د نجات حاصلولو لپاره په هدي سره حلال کېدل مشروع سوي دي وَبِالْإِحْلَالِ يَنْجُو مِنَ الْعَدُوِّ لَا مِنَ الْمَرَضِ او په حلال کېدلو سره نجات له دښمن څخه حاصليږي نه له مرض څخه وَلَنَا أَنَّ آيَةَ الْإِحْصَارِ وَرَدَتْ فِي الْإِحْصَارِ بِالْمَرَضِ بِإِجْمَاعِ أَهْلِ اللُّغَةِ او زموږ دليل دا دی چي د احصار آيت د لغتپوهانو په اتفاق د مرض په وجه د محصر کېدلو په باره کي راغلی دی فَإِنَّهُمْ قَالُوا: اَلْإِحْصَارُ بِالْمَرَضِ ځکه لغتپوهانو ويلي دي: چي احصار د مرض په وجه راځي وَالْحَصْرُ بِالْعَدُوِّ او حصر د دښمن په وجه راځي وَالتَّحَلُّلُ قَبْلَ أَوَانِهِ لِدَفْعِ الْحَرَجِ الْآتِيْ مِنْ قِبَلِ امْتِدَادِ الْإِحْرَامِ او تر وخت مخکي حلال کېدل د هغه حرج ليري کولو لپاره دي چي د احرام د اوږدېدلو په وجه سره راځي وَالْحَرَجُ فِي الْإِصْطِبَارِ عَلَيْهِ مَعَ الْمَرَضِ أَعْظَمُ او د مرض سره پر احرام د صبر کولو تکليف ډېر زيات دی. |

**اللغات**: ﴿أحصر﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: بندېدل، منع کېدل، ايسارېدل. ﴿مضيٌ﴾ مصدرِ ميمي دی: پوره کول، جاري ساتل (روانېدل)، تېرېدل. ﴿تحلل﴾ د تفعّل مصدر دی: حلال کېدل، احرام خلاصول.

**تشریح**: صورت د مسئلې: دا دی که يو محرم د دښمن د بيري يا د مرض په وجه د حج يا د عمرې د افعالو له پوره کولو څخه منع سي، نو د هغه لپاره د حج يا د عمرې د افعالو له اداء کولو څخه بغير د هدي د څاروي په ذبحه کولو سره حلال کېدل جائز دي، او امام شافعي فرمايي چي احصار صرف په دښمن سره ثابتېدای سي، په مرض او داسي نورو سره احصار نه ثابتيږي، همدا قول د امام مالک دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې د الله دا قول فإن أحصرتم فما استيسر من الهدی د احصار په باره کې را نازل سوی دی، يعني کله چې د اسلام دښمنانو نبي ﷺ او صحابه په حديبيه کې له حج څخه منع کړل، نو دا آيت نازل سو. د آيت حاصل دا دی چې "تاسو د هدي څاروي ذبحه کړی او حلال سئ"، او همداسې وسوه. نو له دې آيت څخه معلوميږي چې د احصار به د دښمن په وجه ثابتيږي، نه د مرض په وجه. دويم دليل دا دی چې د محصر په حق کې هدی ذبحه کول او حلال کېدل ځکه مشروع سوي دي چې محصر له راتلونکي بيري او عذر څخه نجات حاصل کړي، او موږ دا وينو چې نجات صرف له دښمن څخه حاصليږي، ځکه چې تر هدي ذبحه کولو وروسته هم له مرض څخه نجات او خلاصون نه حاصليږي، بلکې هغسې به پاته وي، نو له دې څخه هم معلوميږي چې احصار د دښمن سره خاص دی.

**زموږ دليل:** دا دی چې د احصار آيت د احصار بالمرض په باره کې را نازل سوی دی، او پر دې د ټولو لغتپوهانو اجماع ده، لکه څرنګه چې لغتپوهانو ويلي دي چې احصار د مرض په وجه منع کېدلو (او احصار) ته ويل کيږي، او حصر د دښمن په وجه احصار ته ويل کيږي، لهذا له دې آيت څخه د مرض په وجه محصر کېدل ثابت سو، او د دښمن په وجه احصار د حديث يعني د حديبيې په واقعه سره ثابتيږي، نو معلومه سوه چې احصار د دښمن سره خاص نه دی، لکه امام شافعي چې وايي، بلکې د دښمن او مرض دواړو په وجه إحصار راځي.

والتحلل قبل أوانه الخ د دې حاصل دا دی چې موږ تسليمو چې د احصار آيت د دښمن په حق کې رانازل سوی دی، لېکن مرض به د دښمن سره لاحقيږي، په دې توګه چې محصر ته تر وخت مخکې د حلال کېدلو اجازه د هغه حرج د ليري کولو په وجه ده کوم چې د احرام د زماني په اوږدولو سره پيدا کيږي، او په مرض کې پر احرام د صبر کولو حرج زيات دی په نسبت سره د دښمن د احصار و حرج ته، ځکه چې په مرض کې دواء او علاج ته هم هغه مجبوره کيږي، او له حرکت کولو څخه هم عاجزه وي، نو کله چې د ادنیٰ حرج د ليري کولو لپاره احصار تسليم کړی سو، نو د اعلیٰ درجې د حرج ليري کولو لپاره به په مرض سره د احصار اعتبار په درجه اولیٰ کيږي.

## د محصر لپاره د حلال کېدلو طريقه

وَإِذَا جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ او کله چې د مُحصر لپاره حلال کېدل جائز سي يُقَالُ لَهُ: اِبْعَثْ شَاةً نو هغه ته به وويل سي: چې يوه بزه واستوه تُذْبَحُ فِي الْحَرَمِ چې په حرم کې ذبحه کړی سي وَوَاعِدْ مَنْ تَبْعَثُهُ بِيَوْمٍ بِعَيْنِهِ يَذْبَحُ فِيهِ او (ورته وبه ويل سي چې ته) د چا په لاس هدی استوې د هغه سره د يوې ټاکلي ورځي وعده وکړه چې په دغه ورځ به هدی ذبحه کوي ثُمَّ تَحَلَّلَ بيا به (په هغه ورځ) محصر حلال سي وَإِنَّمَا يُبْعَثُ إِلَى الْحَرَمِ لِأَنَّ دَمَ الْإِحْصَارِ قُرْبَةٌ او حرم ته به ځکه استول کيږي چې د احصار قرباني يو عبادت دی وَالْإِرَاقَةُ لَمْ تُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا فِي زَمَانٍ أَوْ مَكَانٍ او وينه بيول فقط په زمان يا مکان کې عبادت پېژندل سوي دي عَلَى مَا مَرَّ لکه څرنګه چې (مخکې) تېر سو (په فصل الصيد کې: الهدی قربة غير معقولة فيختص بزمان أو مكان) فَلَا يَقَعُ قُرْبَةً دُونَهُ نو بغير له زمان او مکان څخه به هغه عبادت نه واقع کيږي فَلَا يَقَعُ بِهِ التَّحَلُّلُ لهذا په هغه سره به حلال کېدل هم نه واقع کيږي وَإِلَيْهِ الْإِشَارَةُ بِقَوْلِهِ تَعَالَى وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ [البقرة: ١٩٦] همد دغه و طرف ته (چې دمُ الاحصار عبادت دی او د زمان يا مکان سره به خاص وي) د الله تعالیٰ په

(دې) قول کې اشاره سوې ده: ولا تحلقوا رؤسکم...(او مه خرئ سرونه خپل تر دې چې ورسېږي هدی خپل ځای ته) فَإِنَّ الْهَدْيَ اِسْمٌ لِمَا يُهْدٰى إِلَى الْحَرَمِ ځکه چې هدی نوم دی د هغه شي چې حرم ته واستول سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَتَوَقَّتُ بِهِ او امام شافعي فرمايي: چې هدی د حرم سره خاص نه ده لِأَنَّهُ شُرِعَ رُخْصَةً ځکه چې هغه د رخصت په توګه مشروع سوې ده وَالتَّوْقِيتُ يُبْطِلُ التَّخْفِيفَ او تعيين (تخصيص) تخفيف باطلوي قُلْنَا: الْمُرَاعٰى أَصْلُ التَّخْفِيفِ موږ وايو: چې د اصل تخفيف مراعات سوی دی لَا نِهَايَتُهُ لېکن د تخفيف د انتهاء مراعات نه دي سوی وَتَجُوزُ الشَّاةُ لِأَنَّ الْمَنْصُوصَ عَلَيْهِ الْهَدْيُ او بزه جائز ده ځکه چې منصوص عليه هدی ده (يعني په قرآن کريم کې د هدي ذکر سوی دی) وَالشَّاةُ أَدْنَاهُ او بزه د هدي کمه درجه ده وَتُجْزِيهِ الْبَقَرَةُ وَالْبَدَنَةُ او د هغه لپاره غوا او اوښ هم جائز دي أَوْ سُبْعُهُمَا او د هغو اوومه حصه هم جائز ده كَمَا فِي الضَّحَايَا لکه څرنګه چې (د لوی اختر) په قربانيو کې (د هغو اوومه حصه جائز ده) وَلَيْسَ الْمُرَادُ بِمَا ذَكَرْنَا بَعْثَ الشَّاةِ بِعَيْنِهَا او کوم چې موږ ذکر کړه له هغه ځخه متعينه (او معلومه) بزه استول مراد نه دي لِأَنَّ ذٰلِكَ قَدْ يَتَعَذَّرُ ځکه چې دا کله نا کله ناممکنه وي بَلْ لَهُ أَنْ يَبْعَثَ بِالْقِيمَةِ بلکې د هغه لپاره (دا هم) جائز دي چې قيمت واستوي حَتّٰى تُشْتَرٰى الشَّاةُ هُنَالِكَ وَتُذْبَحَ عَنْهُ چې هلته (يعني په حرم کې) بزه رانيول سي او د هغه له طرفه ذبحه کړی سي وَقَوْلُهُ ثُمَّ تَحَلَّلَ إِشَارَةٌ إِلٰى أَنَّهُ لَيْسَ عَلَيْهِ الْحَلْقُ أَوِ التَّقْصِيرُ او د ماتن دا قول ثم تحلّل د دې خبرې و طرف ته اشاره (ده) چې پر محصر حلق يا قصر واجب نه دی وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ او همدا قول د طرفينو دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: عَلَيْهِ ذٰلِكَ (لېکن) امام ابو يوسف فرمايي: چې پر هغه حلق يا قصر واجب دی وَلَوْ لَمْ يَفْعَلْ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ خو که حلق نه وکړي نو (هم) هيڅ شی پر واجب نه دی لِأَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● حَلَقَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ ځکه چې نبي ﷺ (هم) د حديبيې په کال حلق کړی وو وَكَانَ مُحْصَرًا بِهَا حال دا چې هغه په حديبيه کې محصر وو وَأَمَرَ أَصْحَابَهُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بِذٰلِكَ او صحابه وو ته يې (هم) د دې حکم کړی وو وَلَهُمَا أَنَّ الْحَلْقَ إِنَّمَا عُرِفَ قُرْبَةً مُرَتَّبًا عَلٰى أَفْعَالِ الْحَجِّ د طرفينو دليل دا دی چې د حلق عبادتوالی هغه وخت پېژندل سوی چې د حج پر افعالو مرتّب کړی سي (يعني حلق هغه وخت عبادت دی چې د حج پر افعالو مرتّب کړی سي يعني د حج تر افعالو وروسته کړی سي، او محصر يو فعل هم اداء کړی نه دي) فَلَا يَكُونُ نُسُكًا قَبْلَهَا لهذا د حج تر افعالو مخکې به حلق عبادت نه وي وَفَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ لِيُعْرَفَ اِسْتِحْكَامُ عَزِيمَتِهِمْ عَلَى الْإِنْصِرَافِ او نبي کريم ﷺ او صحابه وو حلق ځکه وکړی چې پر واپس تګ د هغو د عزم مستحکم کېدل (کفارو ته) معلوم سي.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلح من المشركين، حديث رقم: ۲۷۰۱.

**اللغات:** ﴿مراعی﴾ د مفاعلې اسم مفعول دی: هغه چې رعايت او خيال يې ساتل سوی وي. ﴿نهاية﴾ انتهائي درجه، ﴿ضحايا﴾ قربانياني، ﴿استحكام﴾ د استفعال مصدر دی: مستحکم کېدل، مضبوطېدل (يعني پخه اراده). ﴿انصرام﴾ د انفعال مصدر دی: پرېکېدل، واپس تلل.

**تشريح:** په دې اوږده عبارت کې صرف دا ښوول سوې ده چې کله د دښمن يا د مرض او نورو په وجه يو محرم محصر سي، نو د هغه لپاره حلال کېدل جائز دي، لهذا د احصار په وخت کي به هغه ته ووېل سي چې حرم ته يوه بزه (هدی) واستوه، نو هغه دي بزه (هدی) واستوي، او چې د چا په لاس هدی ورکوي له هغه څخه دي د يوې ټاکلي ورځي وعده واخلي چې په دې ورځ به هغه دا هدی ذبحه کوي، بيا به د هغه تاريخ مطابق محصر محرم هم ځان حلال کړي، ښکاره دې وي چې د هدي د ذبحه کولو لپاره ورځ ټاکل او خاصول د امام صاحب قول دی، ځکه چې د هغه په نېز د احصار د دم لپاره يوه ورځ هم خاصه او متعينه نه ده، نو د ورځي د متعينولو وعده به د امام صاحب په نېز ځکه کيږي چې محصر ته خپل د حلال کېدلو وخت معلوم سي، او د صاحبينو په نېز چې څرنګه چې د احصار دم په حج کي دننه د يومُ النحر سره متعين او خاص دی، نو ځکه به د هغوی په نېز د ورځي د متعينولو ضرورت نه وي، هو! لېکن په عمره کي د هغو په نېز هم ورځ متعينول ضروري دي.

محصر چې کله دمِ احصار واستوي، نو اوس هغه ته اختيار دی چې په دغه ځای کي پاتيږي، يا وطن ته واپس ځي، بيا چې کله متعينه ورځ راسي، او هغه ته يقين سي، چې هدی به ذبحه سوې وي، نو اوس به محصر ته حلالېدل جائز وي، يعني هغه ټوله شيان به ورته جائز وي کوم چې د حلال لپاره جائز دي.

وإنما يبعث فرمايي چې د هدي څاروی به حرم ته ځکه استول کيږي، چې دمِ احصار قربت او عبادت دی، او د وينو بيول په هغه صورت کي عبادت پېژندل سوي دي، چې کله د وينو بيول د يو مکان يا د يو زمان سره خاص وي، نو کله چې بغير له حرمه وينه بيول عبادت نه دي، نو په دې سره به محصر هم نه حلالېږي.

وإليه الإشارة الخ په قرآن کريم کي هم دا اشاره سوې ده چې دمُ الاحصار به د مکان سره خاص وي: ولا تحلقوا رؤسكم حتى يبلغ الهدى محله [البقرة:١٩٦]، بيا د محل تفسير داسي سوی دی: ثمّ محلها إلى البيت العتيق [الحج:٣٥]، او مراد ځني عينِ کعبه نه ده، ځکه چې په عينِ کعبه کي وينه نه بيول کيږي، لهذا له دې څخه به حرم مراد وي، اوس به يې ترجمه دا وي: "چې سرونه مه خريئ تر دې چې هدی حرم ته ورسيږي". نو له دې څخه هم معلومه سوه چې د هدي څاروی په حرم کي دننه ذبحه کول ضروري دي، همدا ډول په دې آيت کي د دمُ الاحصار په باره کي لفظ دهدي راغلی دی، او هدی هغه ته ويل کيږي چې حرم ته واستول سي، او هلته ورسول سي.

وقال الشافعي الخ امام شافعي فرمايي چې هدی د حرم سره خاصول صحيح نه دي، بلکه که يو محصر په غيرِ حرم کي هم هدی ذبحه کړي او حلال سي، نو هيڅ حرج نسته، ځکه چې د محصر لپاره هدی ذبحه کول او حلال کېدل رخصت دي، يعني په احصار کي د هدي ذبحه کولو او د محصر د حلال کېدلو وجه دا ده چې محصر ته په دې کي آساني او تخفيف حاصل سي، نو اوس که د ذبحي لپاره حرم خاص کړی سي، نو آساني به ختمه سي، نور تکليف او ستونزه به پيدا سي، نو ځکه به د ذبحي لپاره حرم نه خاصيږي.

قلنا الخ زموږ له طرفه جواب دا دی چي دلته خو د اصل تخفیف او آسانی لحاظ او رعایت سوی دی یعني فقط د هدي په استولو سره خو د حلال کېدلو اجازه ورکول سوې ده. لېکن د انتهائي درجې رعایت او لحاظ به نه کیږي چي چیري محصر وغواړي هلته به هدی ذبحه کوي.

ويجوز الشاة الخ فرمايي چي په هدی کي لږ تر لږه بزه هم جائز ده، ځکه چي په دې آیت کي دا الفاظ هم راغلي دي: فما استیسر من الهدی [البقرة:۱۹۶]، (یعني کومه هدی چي تاسو ته آسانه وي)، او د هدي کمه درجه محرم ته آسانه وي، او د هدي کمه درجه بزه ده، لهذا بزه به جائز وي، او کله چي بزه جائز ده، نو ښکاره ده چي اوښ، غوا او د هغو اوومه حصه به په درجه اولیٰ جائز وي، لکه څرنګه چي په قرباني کي دا ټوله شیان سره برابر دي، او د ټولو قرباني جائز ده، همداسي به په هدي کي هم د ټولو ذبحه کول جائز وي.

وليس المراد الخ فرمايي چي خاص د بزې استول هم ضروري نه دي، بلکي که قیمت واستوي، او په حرم کي په هغه سره بزه رانیسي او ذبحه یې کړي، نو هم جائز دي، ځکه چي ډېر واره د بزې استول متعذر او ناممکنه وي.

وقوله ثم تحلل الخ فرمايي چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول ثم تحلل و دې خبري ته اشاره کوي چي پر محصر د حلال کېدلو لپاره حلق یا قصر کول واجب نه دي، او همدا د طرفینو قول دی، او ابو یوسف وایي چي پر محصر حلق یا قصر واجب دي، لېکن که حلق یا قصر نه وکړي، نو دم نه واجبیږي، که څه هم ګنهګاره کیږي. د امام ابو یوسف دلیل دا دی چي د حدیبیې په کال نبي ﷺ حلق کړی وو، حال دا چي نبي ﷺ په حدیبیه کي محصر وو، او صحابه وو ته یې هم د حلق امر کړی وو، له دې څخه معلومیږي چي د حلال کېدلو لپاره د هدي ذبحه کول کافي نه دي، بلکي تر ذبحي وروسته حلق یا قصر کول هم واجب دي. (صاحب د بنایې دلته فرمايي چي د امام ابو یوسف په نېز هم حلق یا قصر واجب نه دی بلکي مستحب دی، او د امام قدوري مراد هم دغه دی، ځکه که حلق یا قصر واجب کړی سي، نو د واجب د پرېښوولو په وجه به خامخا دم واجبیږي).

لهما أن الحلق الخ د طرفینو دلیل دا دی چي حلق یو داسي عبادت دی کوم چي د حج پر افعالو مرتب کیږي، د حج د افعالو تر اداء کولو مخکي حلق د حج یو فعل نه سي کېدلای، او څرنګه چي محصر د حج له افعالو څخه بې برخي دی، نو ځکه به د هغه په حق کي حلق یا قصر عبادت او نسک نه وي، او نه به د حلق کول پر هغه ضروري وي.

وفعل النبي الخ پاته سو د نبي ﷺ او صحابه وو حلق کول نو د هغه وجه دا وه چي د حدیبیې په کال د مسلمانانو او مشرکینو په مینځ کي پر دې خبره صلح واقع سوې وه چي مسلمانان به په دې کال بې له عمرې کولو واپس ځي، او مسلمانانو دا خبره منظور هم کړه، نو بیا مسلمانانو همدغه لپاره سرونه وخریل چي کفارو ته دا ور وښیي چي زموږ اراده پخه ده یعني موږ رښتیا هم بې له عمرې ځو، او دا ځکه چي کفار له مسلمانانو څخه په أمن سي، او کفار د مسلمانانو سره د څه مکر او چلبازی معامله نه وکړي، لنډه دا چي د نبي ﷺ او صحابه وو حلق له احرام څخه د وتلو لپاره نه وو، بلکي د پورتني مقصد لپاره وو، نو ځکه ورېل سوه چي پر محصر د حلال کېدلو لپاره حلق یا قصر کول واجب نه دي.

## که محصر قارن وو نو د هغه حکم

فَإِنْ كَانَ قَارِنًا بَعَثَ بِدَمَيْنِ او که محصر قارن وي نو دوه دمه دي واستوي لِاحْتِيَاجِهٖ إِلَى التَّحَلُّلِ مِنْ إِحْرَامَيْنِ ځکه چي هغه له دوو احرامونو څخه حلال کېدلو ته محتاجه دی فَإِنْ بَعَثَ بِهَدْيٍ وَاحِدٍ خو که هغه یوه هدی د دې لپاره واستوي لِيَتَحَلَّلَ عَنِ الْحَجِّ چي د حج له احرام څخه حلال سي وَيَبْقٰى فِي إِحْرَامِ الْعُمْرَةِ او د عمرې په احرام کي پاته سي لَمْ يَتَحَلَّلْ عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دواړو کي له يوه څخه (هم) نه حلالیږي لِأَنَّ التَّحَلُّلَ مِنْهُمَا شُرِعَ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چي له دواړو څخه حلال کېدل په يوه حالت کي مشروع سوي دي(يعني دواړه يو ځای ترل کيږي او يو ځای به يعني د لوی اختر په ورځ[يومُ النحر] به ځني حلاليږي، يو پر بل مخکي کول صحيح نه دي).

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## د إحصار د قرباني د حلالولو وخت او ځای

وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ دَمِ الْإِحْصَارِ إِلَّا فِي الْحَرَمِ او جائز نه دي د احصار دم ذبح کول(حلالول) مګر په حرم کي وَيَجُوزُ ذَبْحُهٗ قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ عِنْدَ● أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام صاحب په نېز تر يومُ النحر مخکي (هم په حرم کي) د هغه ذبحه کول جائز دي وَقَالَا: لَا يَجُوزُ الذَّبْحُ لِلْمُحْصَرِ بِالْحَجِّ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ او صاحبين فرمايي: چي د محصر بالحج لپاره ذبحه کول جائز نه دي مګر په يومُ النحر کي وَيَجُوزُ لِلْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ مَتٰى شَاءَ او د محصر بالعمره لپاره جائز دي چي هر وخت وغواړي اِعْتِبَارًا بِهَدْيِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ د تمتع او قِران پر قرباني په قياسولو سره وَرُبَّمَا يَعْتَبِرَانِهٖ بِالْحَلْقِ او صاحبين د احصار هدی پر حلق قياسوي إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُحَلِّلٌ ځکه چي له دواړو څخه هر يو محلل دی وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهٗ دَمُ كَفَّارَةٍ او د امام صاحب دليل دا دی چي دا د کفارې دم دی حَتّٰى لَا يَجُوزُ الْأَكْلُ مِنْهُ تر دې چي له دې څخه خوراک کول جائز نه دي فَيَخْتَصُّ بِالْمَكَانِ دُوْنَ الزَّمَانِ نو ځکه به د مکان (يعني د حرم) سره خاص وي نه د زمان(يعني د يومُ النحر) سره كَسَائِرِ دِمَاءِ الْكَفَّارَاتِ لکه د کفاراتو نور دمونه بِخِلَافِ دَمِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ په خلاف د تمتع دا و د قران د دم لِأَنَّهٗ دَمُ نُسُكٍ ځکه چي هغه دم نسک دی(يعني د عبادت دم دی) وَبِخِلَافِ الْحَلْقِ لِأَنَّهٗ فِي أَوَانِهٖ او په خلاف د حلق ځکه چي هغه په خپل وخت کي دی لِأَنَّ مُعْظَمَ أَفْعَالِ الْحَجِّ وَهُوَ الْوُقُوْفُ يَنْتَهِيْ بِهٖ ځکه چي د حج په افعالو کي تر ټولو مهم فعل يعني وقوف عرفه په دغه حلق سره پوره کيږي.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: اوله مسئله متفق عليه ده، هغه دا ده چي د احصار دم په حرم کي ذبحه کول ضروري دي، بل ځای يې ذبحه کول صحيح نه دي، او دويمه مختلف فيه مسئله دا ده چي د امام صاحب په نېز تر يومُ النحر مخکي د محصر بالحج او محصر بالعمره دواړو لپاره دم احصار ذبحه کول صحيح او جائز دي، لېکن د صاحبينو په نېز په دواړو کي فرق دی، د محصر بالعمرة لپاره خو تر يومُ النحر مخکي دم احصار ذبحه کول جائز دي،

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۳، ص: ۲۵۳. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۲۳۸]

لېکن د محصر بالعمره لپاره جائز نه دي، بلکي د هغه لپاره خاص په يومُ النحر کي دمِ احصار ذبحه کول لازم او ضروري دي.

**د صاحبينو دليل:** قياس دى، يعني څرنګه چي دمِ تمتع او دمِ قران محلل دي، او د يومُ النحر سره خاص دي، او له دې څخه علاوه په نورو ورځو کي د هغو ذبحه کول جائز نه دي، همدارنګه به دمِ احصار هم تريومُ النحر پوري خاص وي، او له يوم النحر څخه علاوه به د هغه ذبحه کول جائز نه وي، ځکه چي دا هم محلل دى، نو ځکه به دا هم د نورو دمونو په ډول د يوم النحر سره خاص وي.

د صاحبينو دويم دليل دا دى چي حاجي حلق په يومُ النحر کي ځکه کوي، ځکه چي هغه حاجي له احرام څخه حلالوي، نو دم احصار هم محصر حاجي له احرام څخه حلالوي، لهذا هغه به هم په يومُ النحر کي کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دى چي دمِ احصار د محلل کېدلو سره سره دمِ کفاره او دمِ جنايت هم دى، همدا وجه ده چي له دمِ احصار څخه څه خوړل جائز نه دي، بلکي دا د فقيرانو حق دى، او د کفاراتو قربانياني بالاتفاق د مکان يعني د حرم سره خاص وي، او د زمانې يعني د يوم النحر سره خاص نه وي، نو ځکه به د دمِ احصار ذبحه کول هم د حرم سره خاص وي، خو د يوم النحر سره به نه خاص کيږي.

بخلاف دم المتعة الخ په خلاف د دمِ تمتع او دمِ قران ځکه چي دا دواړه دمِ نسک او دمِ شکر دي، او دمِ نسک د يومُ النحر سره خاص وي، نو ځکه به دمِ تمتع او دمِ قران هم د يومُ النحر سره خاص وي.

وبخلاف الحلق الخ په دې عبارت سره صاحبينو ته جواب ورکوي هغوى دمِ احصار پر حلق قياس کړى وو، د هغه جواب ورکوي چي موږ دا خبره منو چي په حلق سره هم د دمِ احصار په ډول احرام خلاصيږي، لېکن د حلق حال دا دى چي په هغه سره د رمى جمار او د وقوف عرفه په ډول د حج مهم افعال پوره کيږي، يعني حلق تر دوى وروسته کيږي، نو حلق که څه هم د دمِ احصار په ډول محلل دى، خو بيا هم تر رمى جمار او وقوف عرفه وروسته دى، او د يومُ النحر سره خاص دى، او محلل دى پر خپل وخت، او دمِ احصار ذبحه کول محلل دي تر وخت مخکي، نو د دې فرق په وجه به پر حلق دمِ احصار قياسول صحيح نه وي.

## پر محصر بالحج عمره او حج دواړه واجب دي

قَالَ: وَالْمُحْصَرُ بِالْحَجِّ إِذَا تَحَلَّلَ او محصر بالحج چي کله حلال سي فَعَلَيْهِ حَجَّةٌ وَعُمْرَةٌ نو پر هغه حج او عمره دواړه واجب دي هَكَذَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَابْنِ عُمَرَ همدارنګه له ابن عباس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه روايت سوي دي وَلِأَنَّ الْحَجَّةَ يَجِبُ قَضَاؤُهَا لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ او ځکه چي د حج قضاء د شروع د صحيح کېدلو په وجه واجبيږي وَالْعُمْرَةُ لِمَا أَنَّهُ فِي مَعْنَى فَائِتِ الْحَجِّ او عمره ځکه واجبيږي چي محصر د حج د فوتونکي په معنیٰ سره دى.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړى له حج کولو څخه منع سو، بيا هغه هدى واستوله او حلال سو، نو پرهغه حج او عمره دواړه واجب دي، همدارنګه له ابن عباس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه روايت سوي دي، دوى فرمايي: قال رسول الله ﷺ من فاته عرفة بليل فقد فاته الحج فليحلل بعمرة وعليه الحج من قابل، له دې حديث څخه معلوميږي چي د حج پر فوتونکي حج واجب دي، او څرنګه چي محصر هم د حج د فوتونکي په معنیٰ سره دى، نو ځکه به عمره هم پر واجب وي.

ولأن الحجة الخ دويم دليل دا دی چې د محصر لپاره د حج شروع کول صحيح وو (ځکه چې د هر چا لپاره حج شروع کول صحيح دي)، لېکن د احصار په وجه هغه دا شروع بشپړ تيا ته نه ورسوله، نو ځکه به د شروع سوي حج قضاء پر واجب وي، او څرنګه چې د احصار په وجه هغه د حج د فوتونکي په معنیٰ او حکم کي دی، نو ځکه به عمره هم پر واجب وي.

## د محصر بالعمره د قضاء بيان

وَعَلَى الْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ الْقَضَاءُ او د عمري پر محصر د عمري قضاء واجب ده وَالْإِحْصَارُ عَنْهَا يَتَحَقَّقُ عِنْدَنَا او له عمري څخه احصار زموږ په نېز متحقق کيږي وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَتَحَقَّقُ او امام مالک فرمايي: چي نه متحقق کيږي لِأَنَّهَا لَا تَتَوَقَّتُ ځکه چې عمره د (هيڅ) وخت سره متعينه نه ده وَلَنَا أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] وَأَصْحَابَهُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أُحْصِرُوا بِالْحُدَيْبِيَةِ او زموږ دليل دا دی چې نبي ﷺ او صحابه په حديبيه کي (له حج څخه) منع کړی سول وَكَانُوا عُمَّارًا حال دا چې هغوی ټوله عمره کونکي وو وَلِأَنَّ شَرْعَ التَّحَلُّلِ لِدَفْعِ الْحَرَجِ او ځکه چې (په هدی استولو) سره د حلالوالي مشروع کېدل د حرج ليري کولو لپاره دي وَهٰذَا مَوْجُودٌ فِي إِحْرَامِ الْعُمْرَةِ او دا علت د عمري په احرام کي (هم) سته وَإِذَا تَحَقَّقَ الْإِحْصَارُ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ لهذا کله چې (په عمره کي هم) احصار متحقق سو نو پر هغه به قضاء (هم) واجب وي إِذَا تَحَلَّلَ کله چې حلال سي كَمَا فِي الْحَجِّ لکه څرنګه چې په حج کي (د احصار په صورت کي د حج قضاء واجب ده).

**اللغات:** ﴿عُمّار﴾ جمع د عامر ده: عمره کونکي.

**تشريح:** **صورت د مسئلي:** دا دی که يو سړي د عمري احرام تړلی وو، لېکن هغه د عمري د افعالو له اداء کولو څخه منع سو (يعني محصر سو)، نو پر هغه د دې عمري قضاء واجب ده. په دې باره کي زموږ سره د امام مالک اختلاف دی، ځکه چي زموږ په نېز له عمري څخه احصار سره ثابتېدای سي، او د امام مالک په نېز نسي ثابتېدلای.

**د امام مالک دليل:** دا دی چي عمر د هيڅ وخت سره خاص نه ده، چې د وخت په تېرېدلو سره دي د عمري فوتېدل لازم سي، نو کله چي د عمري د فوتېدلو بېره نسته، نو احصار به هم نه متحقق کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي نبي ﷺ او صحابه په حديبيه کي له عمري کولو څخه منع کړی سول، بيا هم دوی ټولو را روان کال قضاء راوړه، همدا وجه ده چي د هغې عمره نوم عمرةُ القضاء وه، نو معلومه سوه چي احصار له عمري څخه هم متحقق کېدای سي.

ولأن شرع الخ عقلي دليل دا دی چي په احصار کي حلال کېدل د حرج او تکليف د ليري کولو لپاره مشروع سوي دي، او دا خبره د عمري په احرام کي هم سته (ځکه چي د عمرې په احرام کي تر ډېره پاتېدل هم حرج دی)، لهذا په عمره کي هم احصار متحقق سو، او کله چي احصار متحقق سو، نو د احرام تر خلاصولو وروسته به قضاء واجب وي، لکه څرنګه چي په حج کي قضاء واجب ده.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب المحصر، باب الاحصار في الحج، حديث رقم: ١٨١٢.

## د محصر قارن د قضاء بیان

وَعَلَى الْقَارِنِ حَجَّةٌ وَعُمْرَتَانِ او پر محصر قارن یو حج او دوې عمرې واجب دي أَمَّا الْحَجُّ وَإِحْدَاهُمَا فَلِمَا بَيَّنَّا پاته سو د یوه حج او عمرې واجبېدل نو د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی (یعني قارن هم د مفرد په ډول د حج د فوتونکي په معنی سره دی) وَالثَّانِيَةُ لِأَنَّهُ خَرَجَ مِنْهَا بَعْدَ صِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهَا او دویمه عمره ځکه واجب ده چي قارن د هغې تر شروع کولو وروسته له هغې څخه وتلی دی (ځکه دا خبره مخکي تېره سوه چي که چا حج نه وکړای سو نو پر هغه یوه جلا او مستقله عمره لازمېږي، نو ځکه به دوې عمرې پر واجب وي).

**تشریح**: صورت د مسئلې او دلیل ښکاره دی.

## تر هدي استولو وروسته د احصار د ختمېدلو حکم

فَإِنْ بَعَثَ الْقَارِنُ هَدْيًا بیا که قارن هدی واستوي وَوَاعَدَهُمْ أَنْ يَذْبَحُوهُ فِي يَوْمٍ بِعَيْنِهِ او په ملګرو دا وعده وکړي چي خاص به په دې ورځ هدی ذبحه کوي ثُمَّ زَالَ الْإِحْصَارُ بیا احصار ختم سي فَإِنْ كَانَ لَا يُدْرِكُ الْحَجَّ وَالْهَدْيَ نو که (اوس) هغه حج او هدی نه سوه نیولای (یعني د هغو پر نیولو یې قدرت نه وو) لَا يَلْزَمُهُ أَنْ يَتَوَجَّهَ نو پر هغه متوجه کېدل (یعني مکې ته تلل) واجب نه دي بَلْ يَصْبِرُ حَتَّى يَتَحَلَّلَ بِنَحْرِ الْهَدْيِ بلکي صبر به وکړي تر دې چي د هدی په قربانېدلو سره حلال سي لِفَوَاتِ الْمَقْصُودِ مِنَ التَّوَجُّهِ وَهُوَ أَدَاءُ الْأَفْعَالِ ځکه مکې په تللو سره چي کوم څه مقصود دي یعني د افعالو اداء کولو هغه مقصود فوت سو وَإِنْ تَوَجَّهَ لِيَتَحَلَّلَ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ او که په دې اراده سره مکې ته ولاړ سي (روان سي) چي د عمرې د افعالو په اداء کولو سره به حلال سي لَهُ ذَٰلِكَ نو هغه لره دا اختیار سته لِأَنَّهُ فَائِتُ الْحَجِّ ځکه چي هغه د حج فوتونکی دی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که قارن محصر سو، او هدی یې د یو چا په لاس واستوله، او له هغه څخه یې دا وعده واخیستله، چي په فلانکی ورځ او په فلانکي وخت کي به یې ذبحه کړي، بیا د هدي تر ذبحه کېدلو مخکي (یعني د ټاکل سوي ورځي تر راتللو مخکي) د هغه احصار ختم سو، نو اوس به هغه څه کوي، په دې مسئله کي ټوله څلور صورتونه دي:

① یا خو به وخت دومره تنګ وي چي دا سړی حج او هدی دواړه نه سي نیولای، ② یا په وخت کي به دومره ګنجایش وي چي دواړه نیولای سي، ③ یا خو به هدی نیولای سي، لېکن حج به نه سي نیولای، ④ او یا خو به حج نیولای سي، لېکن هدی به نه سي نیولای.

څلور سره صورتونه په کتاب کي ذکر سوي دي، په دې عبارت کي د اول صورت تفصیل بیانیږي، نو په اول صورت کي مکې ته تلل پر هغه واجب نه دي، بلکي څه صبر دي وکړي تر دې چي ټاکلې ورځ راسي او د هدي په ذبحه کېدلو سره هغه حلال سي، ځکه مکې ته د تللو چي کوم مقصد دی (یعني د حج افعال اداء کول) هغه څني فوت سو، نو اوس تګ هیڅ فایده نه کوي. خو که په دې وجه مکې ته ولاړ سي چي د عمرې په افعالو سره به ځان حلال کړي، نو هغه ته دا حق سته. ځکه چي هغه فائت الحج دی، او د فائت الحج په باره کي مخکي ذکر سوه چي هغه ته د عمرې په ذریعه د حلال کېدلو اجازه سته.

## تر هدي استولو وروسته د هدي د نيولو حکم

وَإِنْ كَانَ يُدْرِكُ الْحَجَّ وَالْهَدْيَ او که هغه حج او هدی نيولای سول لَزِمَهُ التَّوَجُّهُ نو پر هغه مکې ته تلل لازم دي لِزَوَالِ الْعَجْزِ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْخَلَفِ ځکه چي د خليفه په ذريعه د مقصود تر حاصلولو مخکي عاجزي ليري سوه.

**اللغات:** ﴿توجه﴾ د تفعّل مصدر دی: د مکې وطرف ته سفر کول، ﴿خلف﴾ خليفه، بدل، قائم مقام.

**تشريح:** په دې عبارت کي دويم صورت بيانيږي، حاصل يې دا دی چي په دويم صورت کي توجّه يعني مکې ته تلل لازم دي، ځکه چي د خليفه په ذريعه يعني د هدي په ذريعه تر مقصود حاصلولو يعني تر حلالېدلو مخکي عاجزي ختمه سوه (او پر اصل يعني پر حج يې قدرت پيدا کړی)، لهذا خليفه يعني هدی بېکاره سوه. نو پر اصل به عمل کوي (يعني په خپله به حج کوي، ځکه دا اُصول دی چي پر اصل قدرت پيدا سي نو پر فرع او خليفه به عمل نه کيږي)، لکه ير څوک چي د عذر په وجه د لمانځه لپاره تيمم وکړي، لېکن د لمانځه تر پوره کولو مخکي هغه عذر زائل سي، او اوبه هم موجودي وي، نو پر هغه اودس کول واجب دي، ځکه چي تيمم بېکاره سو.

## د پورتنی مسئلې څه نور وضاحت

وَإِذَا أَدْرَكَ هَدْيَهُ صَنَعَ بِهِ مَا شَاءَ او کله چي هغه خپله هدی ونيسي نو څه چي غواړي هغه دي په وکړي لِأَنَّهُ مِلْكُهُ ځکه چي هدی د هغه ملکيت ده وَقَدْ كَانَ عَيَّنَهُ لِمَقْصُودٍ اِسْتَغْنَى عَنْهُ او هغه دا هدی د داسي مقصد لپاره متعينه کړې وه چي له هغه شخصه (اوس) دی بې پروا سو.

**اللغات:** ﴿ملك﴾ ملکيت، مملوک، ﴿عين﴾ د تفعيل ماضي ده: متعينول، معلومول، ټاکل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د دويم صورت تتمه ده، فرمايي چي کله محصر قارن حج او هدی دواړه ونيسي، نو په هدی کي هغه ته اختيار دی، څه چي وغواړي هغه دي ور سره وکړي، ځکه چي هغه خو اوس د ده په ملکيت کي راغله، او هغه دا ملکيت د يو مقصود لپاره متعين کړی وو، او هغه مقصود دا وو چي د دې په ذريعه به هغه ځان حلال کړي، خو څرنګه چي مقصود له دې ملکيت يعني هدي شخصه بغير پوره سو، نو اوس هدی په بشپړه توګه د هغه په ملکيت کي راغله، لهذا اوس به هغه ته په دې کي د تصرّف کولو بشپړ اختيار وي.

## د حج د نه نيولو حکم

وَإِنْ كَانَ يُدْرِكُ الْهَدْيَ دُونَ الْحَجِّ او که محصر هدی يې نيولای سوه (خو) حج يې نه سو نيولای يَتَحَلَّلُ نو (هم) به حلاليږي لِعَجْزِهِ عَنِ الْأَصْلِ ځکه چي هغه له اصل (يعني له حج) څخه عاجزه دی.

**اللغات:** ﴿يتحلل﴾ د تفعّل مضارع ده: حلال کېدل، احرام خلاصول.

**تشريح:** په دې عبارت کي دريم صورت بيانيږي، حاصل يې دا دی چي په دې صورت کي به (هم د اول صورت په څېر) د هدي په ذبحه کېدلو سره حلاليږي، ځکه چي دا سړی خو له اصل يعني له حج څخه عاجزه سو، نو اوس که مکې ته ولاړ سي، څه به وکړي!.

## د حج د نيولو او د هدي د نه نيولو حکم

وَإِنْ كَانَ يُدْرِكُ الْحَجَّ دُوْنَ الْهَدْيِ او که هغه حج نيولای سو، نه هدی جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ اِسْتِحْسَانًا نو د هغه لپاره استحساناً حلال کېدل جائز دي وَهٰذَا التَّقْسِيْمُ لَا يَسْتَقِيْمُ عَلٰى قَوْلِهِمَا فِي الْمُحْصَرِ بِالْحَجِّ او د صاحبينو د قول پر بناء د محصر بالحج په حق کي دا تقسيم صحيح نه دی لِأَنَّ دَمَ الْإِحْصَارِ عِنْدَهُمَا يَتَوَقَّتُ بِيَوْمِ النَّحْرِ ځکه چي د هغوی په نيز دا احصار دم (قرباني) د يومُ النحر سره خاص ده فَمَنْ يُدْرِكُ الْحَجَّ يُدْرِكُ الْهَدْيَ نو څوک چي حج نيولای سي هغه به هدی (هم) نيولای سي وَإِنَّمَا يَسْتَقِيْمُ عَلٰى قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او دا تقسيم فقط د امام صاحب پر قول صحيح دی وَفِي الْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ يَسْتَقِيْمُ بِالْإِتِّفَاقِ او د محصر بالعمره په حق کي دا تقسيم بالاتفاق صحيح دی لِعَدَمِ تَوَقُّتِ الدَّمِ بِيَوْمِ النَّحْرِ ځکه چي (د عمرې هدی ذبحه کول) د يومُ النحر سره خاص نه ده وَجْهُ الْقِيَاسِ وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ وَهُوَ الْحَجُّ د قياس وجه چي هغه د امام زفر قول (هم) دی دا ده چي هغه پر اصل يعني پر حج قادره سو قَبْلَ حُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ بِالْبَدَلِ وَهُوَ الْهَدْيُ په بدل يعني په هدي سره د مقصود تر حاصلولو مخکي وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ أَنَّا لَوْ أَلْزَمْنَاهُ التَّوَجُّهَ لَضَاعَ مَالُهُ او د استحسان وجه دا ده چي موږ که پر دغه محصر مکې ته تلل لازم کړو نو د ده مال به ضايع سي لِأَنَّ الْمَبْعُوْثَ عَلٰى يَدَيْهِ الْهَدْيُ لَيَذْبَحُهُ ځکه د چا په لاس چي يې هدی استولې ده هغه به خامخا هدی ذبحه کوي وَلَا يَحْصُلُ مَقْصُوْدُهُ او د ده مقصود به (هم) حاصل نه سي وَحُرْمَةُ الْمَالِ كَحُرْمَةِ النَّفْسِ او د مال حُرمت د نفس د حُرمت په ډول دی وَلَهُ الْخِيَارُ إِنْ شَاءَ صَبَرَ فِيْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ أَوْ فِيْ غَيْرِهِ او هغه ته اختيار دی که غواړي نو په دې ځای کي يا بل ځای کي دې صبر وکړي لِيُذْبَحَ عَنْهُ چي د هغه له طرفه هدی ذبحه کړی سي فَيَتَحَلَّلُ نو حلال به سي وَإِنْ شَاءَ تَوَجَّهَ لِيُؤَدِّيَ النُّسُكَ الَّذِيْ الْتَزَمَهُ بِالْإِحْرَامِ او که غواړي نو مکې ته دي روان سي چي هغه نسک (عبادت) اداء کړي کوم چي د احرام په ذريعه ده پر ځان لازم کړي دي وَهُوَ أَفْضَلُ او دا افضل دي لِأَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَى الْوَفَاءِ بِمَا وَعَدَ ځکه چي دا د هغه وعدې پوره کولو ته زيات نژدې دي کوم چي يې کړې ده.

**اللغات:** ﴿لا يستقيم﴾ د استفعال مضارع نفي ده: نه صحيح کېږي، ﴿مبعوث﴾ د فتح اسم مفعول دی: استول سوی.

**تشريح:** په دې عبارت کي څلورم صورت بيانيږي، يعني چي محصر بالحج خو حج نيولای سي، لېکن هدی نيولای نه سي، نو په دې صورت کي استحساناً د هغه لپاره حلال کېدل جائز دي، لېکن افضل دا ده چي مکې ته ولاړ سي، او د حج افعال اداء کړي.

وهذا التقسيم الخ صاحب د هدايې فرمايي چي دا تقسيم يعني کوم څلور صورتونه چي اوس تېر سول هغه د محصر بالحج په حق کي صحيح نه دی، ځکه چي د هغو په نېز دمِ احصار خاص دی د يومُ النحر سره، نو څوک چي حج نيولای سي، هغه به هدی هم نيولای سي، لېکن د امام صاحب پر قول صحيح دی، ځکه چي د امام صاحب په نېز هدی د يوم

النحر سره خاص نه دی، بلکې تر یوم النحر مخکې هم ذبحه کېدلای سي، او تر یومُ النحر وروسته هم ذبحه کېدلای سي، نو دا ممکنه ده چې يو څوک حج خو ونیسي، لېکن هدی نه ونیسي، او د محصر بالعمره په حق کې دا تقسیم بالاتفاق صحیح دی، ځکه چې د عمرې هدی د يوم النحر سره خاص نه ده، نو ممکنه ده چې محصر بالعمره عمره ونیسي، لېکن هدی نه ونیسي.

وجه القياس الخ د دې حاصل دا دی چې په څلورم صورت کې د محصر لپاره اصل او ضروري د حج افعال اداء کول دي، ما قیاس دی، او د امام زفر رَحِمَهُ الله قول هم دی، د دې قول وجه او دلیل دا دی چې محصر په بدل یعني په هدی سره تر مقصود حاصلولو مخکې پر اصل یعني پر حج قدرت پیدا کړی، او په داسې صورت کې په بدل او خلیفه سره مقصود نه حاصلیږي، بلکې اصل به اداء کیږي، نو ځکه د دې سړي په حق کې اصل دا ده چې مکې مبارکې ته ولاړ سي، او د حج افعال اداء کړي، او د هدی په ذبحه کولو سره ځان حلال نه کړي.

وجه الاستحسان الخ د استحسان وجه او دلیل دا دی چې که موږ پر دې محصر مکې ته تلل لازم وګرځوو، نو د هغه مال یعني هدی به ضایع او بیکاره سي (ځکه چې هغه به په ټاکلې او وعده کړی سوي وخت کې ذبحه کړی سي)، او پر انسان چې څرنګه چې د ځان حفاظت ضروري دي، همدارنګه د خپل مال حفاظت هم پر هغه ضروري دی، نو ځکه دې د حج لپاره نه ځي، خو که ولاړ سي نو غوره او افضله ده.

وله الخيار الخ په څلورم صورت کې د محصر لپاره درې اختیاره سته: [۱] چیري چې محصر سوی وي، هلته دې پاته سي او صبر دې وکړي، تر دې چې د وعدې مطابق د ده له طرفه په ټاکلې ورځ هدی ذبحه کړی سي، په هغه ورځ به دی حلال سي. [۲] دوېم اختیار دا دی چې بل ځای ته دې ولاړ سي او هلته دې تر هغه وخته صبر وکړي، چې د ده له طرفه هدی په ټاکلې ورځ ذبحه کړی سي، په هغه ورځ به دی حلال سي. [۳] درېم اختیار دا دی چې مکې ته دې ولاړ سي، او د احرام په ذریعه چې یې کوم نسک یعني عمره یا حج پر ځان لازم کړی وي، هغه دې اداء کړي، او همدا درېم صورت د هغه په حق کې افضل او غوره دی، ځکه چې په دې صورت کې دا سړی د هغه وعدې پوره کونکی ګرځي کوم چې یې د احرام او نیت په ذریعه پر ځان لازمه کړې وي.

## تر وقوفِ عرفه وروسته د احصار حکم

وَمَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ ثُمَّ أُحْصِرَ او څوک چې تر وقوفِ عرفه وروسته محصر سي لَا يَكُونُ مُحْصَرًا نو هغه محصر نه دی لِوُقُوعِ الْأَمْنِ عَنِ الْفَوَاتِ ځکه چې (د حج) له فوتېدلو څخه امن حاصل سو وَمَنْ أُحْصِرَ بِمَكَّةَ وَهُوَ مَمْنُوعٌ عَنِ الطَّوَافِ وَالْوُقُوفِ او څوک چې په مکه کې محصر سي په داسې حال کې چې هغه له طواف او وقوف څخه محصر سي فَهُوَ مُحْصَرٌ● نو هغه محصر دی لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ الْإِتْمَامُ ځکه چې پر هغه (د حج) پوره کول ستونزمن سو فَصَارَ كَمَا إِذَا أُحْصِرَ فِي الْحِلِّ نو داسې سو لکه په حِل کې چې محصر سي وَإِنْ قَدَرَ عَلَى أَحَدِهِمَا فَلَيْسَ بِمُحْصَرٍ خو که هغه (وروسته) پر طواف یا پر وقوف قدرت پیدا کړي نو (بیا) محصر نه دی أَمَّا عَلَى الطَّوَافِ فَلِأَنَّ فَائِتَ الْحَجِّ يَتَحَلَّلُ بِهِ

● القول الراجح: هو هذا، كما قال أكمل الدين البابرتي: والصحيح من الرواية أن الممنوع عن الوقوف والطواف يكون محصرا باتفاق أصحابنا، كذا في الدر المختار ج:٢، ص: ٢٥٥. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٣٩]

هر چي پر طواف قدرت پيدا کول دي نو ځکه چي د حج فوتونکي په طواف سره حلاليږي وَالدَّمُ بَدَلٌ عَنْهُ فِي التَّحَلُّلِ او د هدي استول په حلالېدلو کي د طواف بدل دي وَأَمَّا عَلَى الْوُقُوفِ فَلِمَا بَيَّنَّا او هر چي پر وقوف قدرت پيدا کول دي نو د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی (يعني: ومن وقف بعرفة لا يكون محصرًا) وَقَدْ قِيلَ: فِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ خِلَافٌ بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالَى او يو قول دا دی: چي په دې مسئله کي د امام صاحب اود امام ابو يوسف په مينځ کي اختلاف دی وَالصَّحِيحُ مَا أَعْلَمْتُكَ مِنَ التَّفْصِيلِ ليکن صحيح قول هغه دی چي د هغه په تفصيل ما ته خبر کړې. والله أعلم.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی که تر وقوف عرفه وروسته يو سړی محصر سو، يعني په عرفات کي يې وقوف وکړی، تر هغه وروسته محصر سو، نو هغه ته محصر نه ويل کيږي، ځکه چي د احصار سبب د حج د فوتېدلو بېره ده، حال دا چي کله هغه وقوف عرفه وکړی، نو دا بېره ختمه سوه، ځکه چي په وقوف سره حج پوره کيږي، لکه ځرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: مَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ، نو کله چي د احصار سبب ختم سو، نو احصار به هم نه پاتيږي، هو! دومره ده چي پر دې سړي د امام صاحب په نېز شلور دمه واجبيږي: (۱) يوم دم د وقوف مزدلفه د پرېښوولو په وجه. (۲) د رمي جمار د پرېښوولو په وجه. (۳) د طواف زيارت د ځنډولو په وجه (ځکه هر وخت چي احصار ختم سي، نو طواف زيارت به کوي، او احصار معلوم نه دی چي کله به ختم سي، نو حتماً به طواف زيارت ځنډيږي). (۴) و د حلق د ځنډولو په وجه؛ ليکن د صاحبينو په نېز د طواف زيارت او د حلق د ځنډولو په وجه هيڅ شی نه واجبيږي.

ومن أحصر بمكة الخ او که يو څوک په مکه کي تر وقوف عرفه او طواف زيارت مخکي محصر سو (يعني د احصار په وجه د دواړو له اداء کولو څخه عاجزه سو)، نو د هغه په حق کي شرعي احصار ثابت سو، نو اوس هغه ته د هدي په استولو سره د حلال کېدلو اجازه سته، ځکه چي د وقوف عرفه د نه کولو په وجه دا سړی د حج له پوره کولو څخه عاجزه سو، او د حج پوره کول هغه ته ستونزمن سو، لهذا د هغه سړي په څير سو کوم چي په حل کي احصار سي، او د محصر في الحل لپاره تر هدي استولو وروسته حلال کېدل جائز دي، لهذا د ده لپاره به هم تر هدي استولو وروسته حلال کېدل جائز او حلال وي.

وإن قدر الخ فرمايي: که له طواف او وقوف دواړو څخه عاجزه محصر سړي پر طواف يا وقوف قدرت پيدا نړی، نو د هغه احصار باطليږي، او د هدي استول د هغه لپاره صحيح نه دي، لهذا اوس که دې سړي پر وقوف عرفه قدرت پيدا کړی، نو حج يې پوره سو، اوکه پر وقوف عرفه قادره نه سو، بلکي فقط پر طواف يې قدرت پيدا کړی، نو د وقوف عرفه د پرېښوولو په وجه فائتُ الحج سو، او فائتُ الحج سړی د عمرې په طواف او سعی سره حلال کېدای سي، نو دی به هم په هغه سره ځان حلالوي، او هدی به نه استوي، ځکه چي په حلال کېدلو کي هدی د طواف بدل ده، ليکن دا سړی پر اصل يعني پر طواف قادر دی، نو بيا به د بدل څه ضرورت وي.

وقد قيل الخ فرمايي چي د ځيني خلکو رايه دا ده چي په دې مسئله کي د امام صاحب او امام ابو يوسف اختلاف دی، يعني د امام صاحب په نېز که يو سړی په مکه کي وي، نو هغه محصر نه دی، او د امام ابو يوسف په نېز که هغه پر طواف او سعي قدرت نه لري، نو بيا که څه هم په مکه کي وي محصر دی؛ ليکن صاحب د هدايې فرمايي چي هيڅ اختلاف نسته. او صحيح خبره هغه ده چي په تفصيل سره موږ ستاسو په مخ کي ذکر کړه. والله أعلم بالصواب.

# بَابُ الْـفَـوَاتِ

## (دا) باب د حج د فوتېدلو (په بيان کي) دی

**تشريح:** صاحب د بنايې ليکلي دي چي احصار مفرد دی، او فوات مرکب دی، ځکه احصار د هغه احرام نوم دی چي د ارکانو له اداء کولو ځخه بغير وي (ځکه احصار دې ته ويل کيږي چي انسان له مکې ځخه ليري محصر کړی سي، وقوفِ عرفه خو لا ځه کوي، طواف او سعی هم نه سي کولای)، او فوات د هغه احرام نوم دی چي د ارکانو اداء ور سره وي (ځکه فوات دې ته ويل کيږي چي تر احرام تړلو وروسته له انسان ځخه فقط وقوفِ عرفه فوت سي، نور مکې ته تللای سي، طواف او سعی کولای سي)، او ښکاره ده چي د مرکب په مقابله کي مفرد مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب مخکي د مفرد يعني د احصار احکام بيان کړل، او اوس د مرکب يعني د فوات احکام او مسائل بيانوي. (بنايه ج:۴، ص: ۲۱۳، بيروت)

### د وقوفِ عرفه د فوتېدلو بيان

وَمَنْ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ او څوک چي د حج احرام وتړي وَفَاتَهُ الْوُقُوْفُ بِعَرَفَةَ او وقوفِ عرفه ځني فوت سي حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ مِنْ يَّوْمِ النَّحْرِ تر دې چي د يومُ النحر صبح صادق را وخيږي (يعني د لوی اختر د ورځي سپېدې وچاودي) فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ نو له هغه ځخه حج فوت سو لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ وَقْتَ الْوُقُوْفِ يَمْتَدُّ إِلَيْهِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی چي د وقوفِ عرفه وخت د يومُ النحر تر صبح صادقه پوري اوږدېږي (پاتېږي) وَعَلَيْهِ أَنْ يَّطُوْفَ وَيَسْعٰى وَيَتَحَلَّلَ وَيَقْضِيَ الْحَجَّ مِنْ قَابِلٍ او پر هغه واجب دي چي طواف او سعی وکړي او حلال سي او را روان کال د حج قضاء راوړي وَلَا دَمَ عَلَيْهِ او پر هغه (د حج د پرېښوولو) دم واجب نه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[●]: مَنْ فَاتَهُ عَرَفَةُ بِلَيْلٍ ځکه نبي ﷺ فرمايي دي: "له چا ځخه چي وقوفِ عرفه د شپې فوت سي فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ نو له هغه ځخه حج فوت سو فَلْيَتَحَلَّلْ بِعُمْرَةٍ نو په عمره سره دي حلال سي وَعَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ او پر هغه روان کال حج واجب دی" وَالْعُمْرَةُ لَيْسَتْ إِلَّا الطَّوَافَ وَالسَّعْيَ او عمره نه ده مګر طواف او سعی (يعني عمره فقط طواف او سعي ته ويل کيږي) وَلِأَنَّ الْإِحْرَامَ بَعْدَ مَا انْعَقَدَ صَحِيْحًا او په دې وجه (هم) چي کله احرام صحيح منعقد سي لَا طَرِيْقَ لِلْخُرُوْجِ عَنْهُ إِلَّا بِأَدَاءِ أَحَدِ النُّسُكَيْنِ نو له هغه احرام ځخه د وتلو (بله) لاره نسته مګر په دوو عبادتونو کي د يوه په اداء کولو (يعني د حج يا د عمرې، او حج خو فوت سو، لهذا اوس به عمره کوي) كَمَا فِي الْإِحْرَامِ الْمُبْهَمِ لکه څرنګه چي په مبهم احرام کي (دا حکم) دی وَهٰهُنَا عَجَزَ عَنِ الْحَجِّ او دلته (خو) محرم له حج ځخه عاجزه سوی دی فَتَتَعَيَّنُ عَلَيْهِ الْعُمْرَةُ لهذا د هغه لپاره به عمره متعينه کيږي وَلَا دَمَ

---

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الحج، باب المواقيت، حديث رقم: ۲۴۹۶، ۲۴۹۷.

عَلَيْهِ او پر هغه هیڅ دم نشته لِأَنَّ التَّحَلُّلَ وَقَعَ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ ځکه چې حلال کېدلو د عمرې د افعالو په ذریعه واقع سو فَكَانَتْ فِي حَقِّ فَائِتِ الْحَجِّ بِمَنْزِلَةِ الدَّمِ فِي حَقِّ الْمُحْصَرِ لهذا د حج د فوتونکي په حق کي عمره کول داسي دي لکه دم چي د محصر په حق کي دی فَلَا يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا نو دم او عمره به دواړه نه سره یو ځای کیږي.

**اللغات:** ﴿يحتل﴾ د افتعال مضارع ده: زیاتېدل، غوړېدل، ﴿قابل﴾ راروان، آینده (راتلونکی)، ﴿نسك﴾ عبادت (دلته ځني مراد حج او عمره دي).

**تشریح:** مسئله: دا ده که یو سړي د حج احرام تړلی وو او د حج افعال یې هم شروع کړي وو، خو په یوه وجه وقوف عرفه ځني فوت سو، او د یومُ النحر تر سهاره پوري دا سړی عرفات ته هم نه ورسېدی، تر دې چي د یومُ النحر سهار سو، نو اوس د هغه حج فوت سو، ځکه چي مخکي دا خبره تېره سوه چي د عرفات وقوف د حج یو مهم رکن دی، او د دې وخت د یومُ النحر تر سهاره پوري پاتیږي، او دا خبره هم تېره سوه چي د وقوفِ عرفه په فوتېدلو سره حج فوتیږي، لهذا د دې سړي حج هم فوت سو، نو هغه ته پکار ده چي د عمرې افعال یعني سعی، طواف او نور وکړي، او ځان حلال کړي (ځکه دا قاعده ده چي له چا څخه حج فوت سي، هغه به د حج له احرام څخه ځان د عمرې په افعالو یعني په طواف او سعی حلالوي، او که دا یې هم نه سوه کولای، نو بیا دم لازمیږي)، او راروان کال دي د حج قضاء راوړي، خاص همدغه مضمون په دې حدیث کي هم بیان سوی دی: من فاته عرفة بليل الخ.

ولا دم عليه الخ فرمایي چي پر دې سړي دم واجب نه دی، ځکه په حدیث کي د دم هیڅ ذکر سوی نه دی، او بیا خو د هغه دا احرام په صحیح توګه تړل سوی دی، یعني احرام یې صحیح دی، اوس له احرام څخه د وتلو فقط یوه لاره سته، یا خو دي حج یا عمره وکړي، او که محصر وو نو دم او هدی دي واستوي، لېکن څرنګه چي په دې صورت کي دا سړی پر عمرې قدرت لري، نو عمره دي وکړي او ځان دي حلال کړي، لېکن دم پر لازم نه دی، لکه څرنګه چي په مبهم احرام کي هم دغه حکم دی، یعني که یو سړی احرام وتړي، او د حج یا د عمرې هیڅ تعیین او نیت نه وکړي، نو د هغه د حلال کېدلو لپاره هم دغه لار ده، چي یا به حج کوي یا عمره، همداسي په دې مسئله کي هم د محرم لپاره د حلال کېدلو لاره حج یا عمره کول دي، خو څرنګه چي د هغه حج فوت سو، یعني فائتُ الحج سو، نو په دې وجه به د هغه په حق کي د حلال کېدلو لپاره فقط عمره متعینه وي، او هیڅ دم به پر لازم نه وي، ځکه کله چي محصر پر عمره قدرت نه لري، نو د هغه په حق کي هدی د عمرې قائم مقام کیږي، خو څرنګه چي غیرِ محصر یعني فائت الحج (دلته) پر عمرې قدرت لري، نو ځکه به د هغه په حق کي د هدي او دم هیڅ ضرورت نه وي.

## د عمرې د نه فوتېدلو بیان

وَالْعُمْرَةُ لَا تَفُوتُ او عمره نه فوتیږي وَهِيَ جَائِزَةٌ فِي جَمِيعِ السَّنَةِ او ټوله کال عمره جائزه ده إِلَّا خَمْسَةَ أَيَّامٍ يُكْرَهُ فِيهَا فِعْلُهَا ماسوا له پنځو ورځو څخه چي په هغو کي عمره کول مکروه دي وَهِيَ يَوْمُ عَرَفَةَ وَيَوْمُ النَّحْرِ وَأَيَّامُ التَّشْرِيقِ او هغه (پنځه ورځي) د عرفات ورځ د قرباني ورځ او د تشریق ورځي دي لِمَا رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځکه له عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی أَنَّهَا كَانَتْ تَكْرَهُ الْعُمْرَةَ فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ الْخَمْسَةِ چي هغې به په دې پنځو ورځو کي عمره مکره ګڼله وَلِأَنَّ هٰذِهِ الْأَيَّامَ أَيَّامُ الْحَجِّ او ځکه چي دا د حج ورځي دي فَكَانَتْ مُتَعَيَّنَةً لَهُ نو د حج لپاره به متعیني دي

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: أَنَّهَا لَا تُكْرَهُ فِي يَوْمِ عَرَفَةَ قَبْلَ الزَّوَالِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چې د عرفات په ورځ تر زوال مخکې عمره کول مکروه نه دي لِأَنَّ دُخُولَ وَقْتِ رُكْنِ الْحَجِّ بَعْدَ الزَّوَالِ لَا قَبْلَهُ ځکه د حج د رکن وخت تر زوال وروسته داخليږي نه تر زوال مخکې وَالْأَظْهَرُ مِنَ الْمَذْهَبِ مَا ذَكَرْنَاهُ ليکن ښکاره مذهب هغه دی کوم چې موږ ذکر کړی (يعني د عرفات ورځ هم عمره مطلقا مکروه ده) وَلَكِنْ مَعَ هَذَا لَوْ أَدَّاهَا فِي هَذِهِ الْأَيَّامِ صَحَّ ليکن که د مکروهوالي باوجود څوک په دې ورځو کې عمره وکړي نو صحيح دي وَيَبْقَى مُحْرِمًا بِهَا فِيهَا او هغه به د عمرې په احرام سره په دې ورځو کې محرم پاتېږي لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِغَيْرِهَا ځکه چې کراهت له عمرې څخه علاوه (د بل شي) په وجه دی وَهُوَ تَعْظِيمُ أَمْرِ الْحَجِّ وَتَخْلِيصُ وَقْتِهِ لَهُ او هغه د حج تعظيم کول او د حج وخت د حج لپاره فارغه کول (سوچه کول) دي فَيَصِحُّ الشُّرُوعُ نو د عمرې شروع کول به صحيح وي.

**تشريح:** دا خبره څو ځله مخکې ذکر سوه چې عمره د يوې ځانګړي ورځې يا وخت سره خاصه نه ده، بلکې په هر موسم او هر وخت کې عمره اداء کېدای سي، ليکن پنځه ورځې داسې چې په هغو کې عمره مکروه ده، يعني جائز خو په دې ورځو کې هم ده، ليکن مکروه ده، هغه پنځه ورځې دا دي: [۱] د عرفات ورځ، (۲) د نحر ورځ (يعني د لوی اختر ورځ)، [۳،۴،۵] أيامِ تشريق (يعني د لوی اختر دويمه، دريمه او څلورمه ورځ)، په دې ورځو کې عمره مکروه ده، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې ورځو کې هم مکروه نه ده.

**زموږ دليل:** د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی، دويم دليل دا دی چې دا پنځه ورځې د حج دي، نو دا به د حج لپاره متعيني وي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د عرفات په ورځ تر زوال مخکې بې له کراهته عمره جائز ګرځوي، ځکه چې د حج رکن يعني د وقوفِ عرفه وخت تر زوال وروسته شروع کيږي، نه تر زوال مخکې، نو ځکه به تر زوال مخکې عمره کول مکروه نه وي، ليکن ظاهر مذهب هغه دی کوم چې موږ ذکر کړی.

ولكن مع هذا الخ د دې حاصل دا دی چې په دې پنځو ورځو کې خو عمره مکروه ده، ليکن که بيا هم يو سړی په دې ورځو کې عمره وکړي، نو د هغه عمره صحيح او جائز ده، ځکه په دې ورځو کې چې کوم کراهت دی هغه د داسې معنیٰ په وجه دی چې هغه په نفسِ عمره کې نسته، بلکې د عمرې په غير کې دی، او غير همدغه دی چې دا ورځې د حج لپاره خاص دي، په دې کې به بل فعل نه اداء کيږي، لنډه دا چې کله په دې ورځو کې کراهت له عمرې څخه علاوه د بل شي په وجه دی، نو په دې وجه که يو سړی په دې ورځو کې عمره وکړي، د هغه عمره به صحيح وي.

**فوائد:** نبي ﷺ ټوله څلور عمرې کړي دي، او څلور سره يې تر هجرت وروسته د ذي القعده په مياشت کې اداء کړي دي: ① عمرۀ حديبيه سنه: ۶ هـ، ② عمرۀ قضاء سنه: ۷ هـ، ③ عمرۀ حجة الوداع سنه: ۱۰ هـ، ④ عمرۀ جعرانه.

## د عمرې شرعي حيثيت (او د امام شافعي مسلک)

وَالْعُمْرَةُ سُنَّةٌ او عمره سنت ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: فَرِيضَةٌ او امام شافعي فرمايي، چي فرض ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: اَلْعُمْرَةُ فَرِيضَةٌ كَفَرِيضَةِ الْحَجِّ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "چي د حج په شان عمره هم فرض ده" وَلَنَا قَوْلُهُ [2] عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اَلْحَجُّ فَرِيضَةٌ وَالْعُمْرَةُ تَطَوُّعٌ او زمونږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی: "چي حج فرض دی او عمره نفل ده" وَلِأَنَّهَا غَيْرُ مُؤَقَّتَةٍ بِوَقْتٍ وَتَتَأَدّٰى بِنِيَّةِ غَيْرِهَا او ځکه چي عمره د هيڅ يوه وخت سره خاصه نه ده او د بل شي په نيت سره (هم) اداء کيږي (يعني د حج په احرام سره هم اداء کيږي) كَمَا فِيْ فَائِتِ الْحَجِّ لکه د حج په فوتونکي کي (چي هم دغه حکم دی) وَهٰذِهِ أَمَارَةُ النَّفْلِيَّةِ او دا د نفل کېدلو نښه ده (يعني دا چي عمره نفل ده) وَتَأْوِيْلُ مَا رَوَاهُ أَنَّهَا مُقَدَّرَةٌ بِأَعْمَالٍ كَالْحَجِّ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث تأويل دا دی چي د حج په څير عمره هم د (يو څو) اعمالو سره متعينه ده (يعني د حج د اعمالو په څير د عمرې اعمال هم متعين دي) إِذْ لَا تَثْبُتُ الْفَرْضِيَّةُ مَعَ التَّعَارُضِ فِي الْآثَارِ او په دې وجه (هم) چي په آثارو کي د تعارض سره سره فرضيت نه ثابتيږي قَالَ: وَهِيَ الطَّوَافُ وَالسَّعْيُ امام قدوري فرمايي: او عمره طواف او سعی ده (يعني عمره طواف کولو او سعی کولو ته ويل کيږي) وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِيْ بَابِ التَّمَتُّعِ او موږ دا خبره په بابُ التمتع کي ذکر کړه، والله أعلم بالصواب.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د أصح قول پر بناء زمونږ په نيز عمره سنت مؤکده ده، فرض يا واجب نه ده، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز فرض ده، همدا مسلک د امام احمد رَحِمَهُ الله هم دی.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی: العمرة فريضة كفريضة الحج.

**زمونږ دليل:** دا حديث دی: الحج فريضة والعمرة تطوع، او دويم عقلي دليل دا دی چي د عمرې لپاره هيڅ وخت متعين نه دی، بلکي ټوله کال هر وخت کېدای سي، او د غير په نيت سره (هم) اداء کيږي (يعني د حج په احرام او د حج په نيت سره هم اداء کيږي)، لکه په فائتُ الحج کي چي فائتُ الحج خو نيت د حج کړی وي، مګر اداء کوي عمره، او دا [يعني چي د هيڅ وخت سره متعين نه وي او د بل شي په نيت سره اداء کيږي] د يو شي د نفلوالي نښه ده، نو معلومه سوه چي عمره نفل ده.

وتأويل الخ د امام شافعي جواب دا دی چي ستا د حديث العمرة فريضة مطلب دا دی چي څرنګه د حج اعمال او افعال متعين او مقدر دي، همدارنګه د عمرې هم اعمال او افعال متعين او هغه طواف او سعی دي، يعني د دې دواړو د مجموعې نوم عمره ده.

إذ لاتثبت الخ دريم دليل دا دی چي د عمرې په فرضيت او عدمِ فرضيت کي آثار او روايات متعارض دي، او دا خو تاسو ته معلومه ده چي د تعارض په وجه فرضيت نه ثابتيږي، بلکي له تعارض څخه نفليت ثابتيږي، ځکه چي د فرضيت د ثبوت لپاره قطعي او يقيني دليل ضروري دی.

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الحج، باب من قال بوجوب العمرة، حديث رقم: ٨٧٦٧، ٨٧٦٩.

[2] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسک، باب العمرة، حديث رقم: ٢٩٨٩.

# بَابُ الحَجِّ عَنِ الغَيْرِ

## (دا) باب د بل چا له طرفه د حج کولو (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب هغه بابونه بيان کړل چي د هغو تعلق د انسان د ذات سره وو، او چي هغه اصالةً د انسان له طرفه اداء کېدل، اوس له دې ځايه هغه بابونه بيانوي چي تعلق يې د بل د کړني سره وي، او چي نيابةً د انسان له طرفه اداء کيږي، او څنګه چي اصلاً کېدونکی شی تر نيابةً کېدونکي شي مخکي وي، نو ځکه مخکي يې اصالةً حج بيان کړی، او اوس د نيابةً حج نوبت دی.

### د ايصالِ ثواب (ثواب رسولو) حکم

الْأَصْلُ فِي هَذَا الْبَابِ په دې باب کي اصل دا دی أَنَّ الْإِنْسَانَ لَهُ أَنْ يَجْعَلَ ثَوَابَ عَمَلِهِ لِغَيْرِهِ چي انسان ته د دې خبري اختيار سته چي د خپل عمل ثواب بل ته وبخښي صَلَاةً أَوْ صَوْمًا أَوْ صَدَقَةً أَوْ غَيْرَهَا هغه که لمونځ وي که روژه وي که صدقه وي او که بل عمل وي عِنْدَ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ (دا حکم) د اهل السنة والجماعت په نيز دی لِمَا رُوِيَ [1] عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَنَّهُ ضَحَّى بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ ځکه له نبي ﷺ څخه روايت سوی دی چي هغوی ﷺ دوه ابلک (کمر) پسونه ذبحه کړل أَحَدُهُمَا عَنْ نَفْسِهِ يو يې له خپل ځان څخه وَالْآخَرَ عَنْ أُمَّتِهِ مِمَّنْ أَقَرَّ بِوَحْدَانِيَّةِ اللَّهِ تَعَالَى او بل يې د امت له هغو وګړو څخه چي د الله تعالیٰ د يو والي اقرار يې کړی وي وَشَهِدَ لَهُ بِالْبَلَاغِ او نبي ﷺ ته يې د رسالت رسېدلو ګواهي ورکړې وي جَعَلَ تَضْحِيَةَ إِحْدَى الشَّاتَيْنِ لِأُمَّتِهِ (نو تاسو وليدل چي) نبي ﷺ له دوو قربانيو څخه يوه قرباني د خپل امت لپاره وګرځوله وَالْعِبَادَاتُ أَنْوَاعٌ: مَالِيَّةٌ مَحْضَةٌ كَالزَّكَاةِ وَبَدَنِيَّةٌ مَحْضَةٌ كَالصَّلَاةِ وَمُرَكَّبَةٌ مِنْهُمَا كَالْحَجِّ او عبادات پر څو قسمه دي: [۱] يوازي مالي عبادتونه لکه زکاة [۲] يوازي بدني عبادتونه لکه لمونځ [۳] چي مالي او بدني دواړه وي لکه حج وَالنِّيَابَةُ تَجْرِي فِي النَّوْعِ الْأَوَّلِ فِي حَالَتَيِ الِاخْتِيَارِ وَالضَّرُورَةِ او نيابت (نائب کېدل) د اول قسم په دواړو حالونو (يعني) په اختيار او ضرورت کي جاري کيږي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ بِفِعْلِ النَّائِبِ ځکه چي د نائب په فعل سره مقصود حاصليږي وَلَا تَجْرِي فِي النَّوْعِ الثَّانِي بِحَالٍ او په دويم قسم کي په هيڅ حال کي هم نيابت نه جاري کيږي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ وَهُوَ إِتْعَابُ النَّفْسِ لَا يَحْصُلُ بِهِ ځکه چي مقصود يعني د نفس ستړی کول د نائب په ذريعه نه حاصليږي وَتَجْرِي فِي النَّوْعِ الثَّالِثِ عِنْدَ الْعَجْزِ لِلْمَعْنَى الثَّانِي او په دريم قسم کي د عجز

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الأضاحي، باب اضاحي رسول الله ﷺ، حديث رقم: ۳۱۲۲.

په وخت کې نيابت جاري کيږي د دويمې معنیٰ په وجه وَهُوَ الْمَشَقَّةُ بِتَنْقِيصِ الْمَالِ او هغه دويمه معنیٰ د مال کمولو تکليف زغمل دي وَلَا تَجْرِي عِنْدَ الْقُدْرَةِ او د قدرت په وخت کې نيابت نه جاري کيږي لِعَدَمِ إِتْعَابِ النَّفْسِ ځکه چې (د قدرت په صورت کې) د نفس ستړی کول نشته وَالشَّرْطُ الْعَجْزُ الدَّائِمُ إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ او د مرګ تر وخته پورې عاجزي پاته کېدل شرط دي لِأَنَّ الْحَجَّ فَرْضُ الْعُمْرِ ځکه چې حج د ټوله عمر فرض دی (يعنې هر وخت يې قضا کولای سي) وَفِي الْحَجِّ النَّفْلِ تَجُوزُ الْإِنَابَةُ حَالَةَ الْقُدْرَةِ او په نفلي حج کې د قدرت په وخت کې هم نيابت جائز دي لِأَنَّ بَابَ النَّفْلِ أَوْسَعُ ځکه چې د نفلو باب ډېر پراخه دی ثُمَّ ظَاهِرُ الْمَذْهَبِ أَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْمَحْجُوجِ عَنْهُ بيا ظاهر مذهب دا دی چې حج د هغه چا له طرفه واقع کيږي چې د هغه له طرفه حج سوی وي وَبِذَلِكَ تَشْهَدُ الْأَخْبَارُ الْوَارِدَةُ فِي الْبَابِ او په دې بابه کې چې کوم حديثونه وارد سوي دي هغه (هم) د دې ګواهي ورکوي كَحَدِيثِ الْخَثْعَمِيَّةِ لکه د خثعميه رضي الله عنها حديث فَإِنَّهُ• صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيهِ: حُجِّي عَنْ أَبِيكِ وَاعْتَمِرِي ځکه چې په دې حديث کې نبي ﷺ فرمايلي دي: "ته د خپل پلار له طرفه حج وکړه او عمره وکړه" وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ: أَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْحَاجِّ او له امام محمد څخه روايت دی چې حج به د حاجي له طرفه واقع کيږي وَلِلْآمِرِ ثَوَابُ النَّفَقَةِ او (د حج) د حکم کونکي لپاره د خرچې (خرڅې) ثواب دی لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ بَدَنِيَّةٌ ځکه چې حج خو بدني عبادت دی وَعِنْدَ الْعَجْزِ أُقِيمَ الْإِنْفَاقُ مُقَامَهُ او د عاجزۍ په وخت کې خرچه د حج قائم مقام سوې ده كَالْفِدْيَةِ فِي بَابِ الصَّوْمِ لکه په روژه کې (چې فديه د روژې قائم مقام ده).

**اللغات:** ﴿كبش﴾ مږ، پسه، (او د وزو نر يعني سېرلي ته هم ويل کيږي). ﴿أملح﴾ ابلک، برګ، کمر (هغه تور رنګ چې څه سپينوالي هم په ګډ وي)، ﴿وحدانية﴾ يو والی، ﴿ضحّى﴾ د تفعيل ماضي ده: قرباني کول، ﴿نيابة﴾ پر ځای دربدل. نائب کېدل. قائم مقام کېدل، ﴿إتعاب﴾ د افعال مصدر دی: ستړی کول. ﴿إنابة﴾ د افعال مصدر دی: نائب جوړول، ﴿محجوج عنه﴾ د چا له طرفه چې حج وسي. ﴿إنفاق﴾ دا هم د افعال مصدر دی: خرڅول.

**تشريح:** د اهلِ السنة والجماعت مسلک او مذهب دا دی چې انسان ته دا پوره حق سته چې د خپل عمل ثواب بل ته ور وبخښي، له دې څخه دا مسئله هم څرګنديږي چې مړو (يعني موتیٰ) ته ثواب رسول (ايصالِ ثواب) هم صحيح دی، په دې شرط چې له دنياوي خرافاتو څخه پاک وي، د دې په خلاف معتزله ايصالِ ثواب نه مني، او دليل په دې آيت سره نيسي: ليس للإنسان إلا ما سعٰى. خو نه د معتزله وو دا فکر صحيح دی، او نه په دې آيت سره د دوی استدلال صحيح دی، د دوی د فکر ترديد د نبي ﷺ په هغه عمل سره کيږي چې يو ځل نبي ﷺ دوه پسونه قرباني کړل، د يو ثواب يې خپل ځان ته وبخښی. او د دويم ثواب يې د هغو مؤمنانو لپاره وقف کړی چې د توحيد او رسالت اقرار کوي، نو د نبي ﷺ له دې عمل څخه دا څرګنده سوه چې بل چا ته د ثواب رسولو ګنجايش سته. او په دې کې هيڅ حرج نشته.

---

• تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسك، باب الحج عن الحي إذا لم يستطع، حديث رقم: ۲۹۹.

پاته سو د معتزله وو استدلال نو د هغه جواب دا دی چې په آيت کې له سعی څخه مراد د ايمان سعي دي، او دا خبره خو موږ هم منو چې د هيڅا ايمان بل چا ته په کار نه ورځي، نو په دې سره خو نه د ايصالِ ثواب نفي کيږي، او نه دا آيت د هغه سره تعلق لري.

والعبادات أنواع الخ د ايصالِ ثواب د نور وضاحت او تشريح لپاره صاحب د هدايې فرمايي چې عبادات پر درې قسمه دي، ① خالص مالي عبادت لکه زکاة، ② خالص بدني عبادت لکه لمونځ، ③ له مال او بدن دواړو څخه مرکب عبادت لکه حج، چې په دې کې مال او بدن دواړه مصرفيږي، نو اوس په دې دريو قسمونو کي د ايصالِ ثواب په حواله سره تفصيل دا دی چې په اول قسم يعني صرف په مالي عبادت(زکاة) کي هر ډول نيابت جاري کيږي، هغه که انسان په خپله پر زکاة ورکولو قدرت لري، که نه، ځکه چې د دې عبادت مقصد مال خرڅول او مصرفول دي، او څرنګه چې انسان په خپله مال مصرفولای سي، همداسي يې په بل هم مصرفولای سي.

او دويم قسم يعني په خالص بدني عبادت(مثلاً لمونځ) کي نيابت او خلافت نه سي جاري کېدلای، نه د اختيار او صحت په حالت کي او نه د مجبورۍ او مرض په حالت کي، ځکه چې د دې عبادت مقصد د انسان نفس په ستړيا او تکليف کي اچول دي، او ښکاره ده چې د بل چا په کوښښ او محنت سره خو نه د انسان خپل نفس په تکليفيږي، او نه ستړی کيږي، نو په دې صورت کي به د نيابت هيڅ فايده نه وي، او کله چې د نيابت هيڅ فايده نسته، نو بلا وجه به د هغه جاري کېدل څرنګه صحيح وي!؟

پاته سو دريم قسم يعني هغه عبادت چې له مال او بدن دواړو څخه مرکب وي، نو څرنګه چې په هغه کي دوه طرفه دي: يو د مالي عبادت او بل د بدني عبادت، نو په دواړو طرفونو باندي د عمل کولو لپاره موږ ووېل چې د عاجزۍ په وخت کي به په حج کي نيابت جاري کيږي د اولي معنیٰ يعني د مالي عبادت کېدلو په وجه، ځکه چې په حج کي هم د مال په کمېدلو سره انسان په تکليفيږي، او د بدني عبادت په اعتبار کولو سره به د قدرت او اختيار په حالت کي نيابت نه جاري کيږي، ځکه چې په دې وخت کي د نيابت په صورت کي د امر کونکي لپاره خپل بدن او نفس په ستړيا او تکليف کي مبتلا کول نه راځي.

والشرط العجز الخ صاحب د هدايې فرمايي چې په حج کي د نيابت د جائز کېدلو لپاره دا شرط دي چې محجوج عنه يعني د چا له طرف چې حج کيږي هغه به تر مرګه پوري له حج څخه عاجزه وي، ځکه چې حج د ټوله عمر فرض دی، يعني د حج لپاره يو ځانګړی کال نه دي ټاکل سوی، بلکي په کوم کال کي چې هم حج وسي، نو اداء کيږي، او په نفلي حج کي د قدرت سره سره هم نيابت جائز دی، ځکه چې په نفلو کي ډېره پراخي سته، لکه څرنګه چې نفلي لمونځ هم پر ولاړي د قدرت سره په ناستي کول جائز دي.

ثم ظاهر المذهب الخ د دې حاصل دا دی چې په خپله به دا حج د چا له طرفه واقع کيږي، د آمر له طرفه که د مأمور(نائب) له طرفه، نو وايي چې ښکاره مذهب دا دی چې حج د آمر له طرفه واقع کيږي، نه د مأمور له طرفه، دليل حديث د خثعميه رضي الله عنها دي، ځکه کله چې خثعميې رضي الله عنها له نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې زما پلار بوډا دی، آيا ما ته دا اجازه سته چې د هغه له طرفه حج وکړم، نبي ﷺ وفرمايل: "هو! د هغه له طرفه حج وکړه او عمره وکړه".

وعن محمد الخ په دې باره کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې دا حج د نائب حاجي يعني د مأمور له طرفه واقع کيږي، او آمر ته د خپلي خرڅې او نفقې ثواب رسيږي، ځکه چې د صحيح قول مطابق حج بدني عبادت دی، او د

عاجزۍ په وخت کې خرچه او انفاق د حج قائم مقام ګرځول سوي دي. لکه د روژې په باب کې چې فديه د عاجزۍ په وخت کې د روژې قائم مقام ګرځول سوې ده. او ښکاره ده چې دې سړي ته د فديې ثواب رسيږي، نه د روژې، ځکه چې روژه يې نيولې نه ده. همدارنګه به آمر ته هم د مال مصرفولو ثواب حاصليږي، نه د حج، ځکه چې حج يې کړی نه دي.

## په يوه وخت کې د دوو خلګو له طرفه د يوه حج کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ أَمَرَهُ رَجُلَانِ فرمايي: او چا ته چې دوه خلګ حکم وکړي (يعني خپل نائب يې جوړ کړي) بِأَنْ يَحُجَّ عَنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَجَّةً چې د هر يوه له طرفه دي حج وکړي(يعني دواړه دا ورته ووايي چې ته زموږ له طرفه حج وکړه) فَأَهَلَّ بِحَجَّةٍ عَنْهُمَا نو هغه د دواړو له طرفه د يوه حج احرام وتړي فَهِيَ عَنِ الْحَاجِّ نو دا حج به د حج کونکي (نائب) له طرفه واقع کيږي وَيَضْمَنُ النَّفَقَةَ او حج کونکي به د نفقې (خرچې) ضامن وي لِأَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْآمِرِ ځکه چې حج خو د حکم کونکي له طرفه واقع کيږي(په دې جمله کې له مصنف څخه څه سهوه سوې ده چې هغه به په تشريح کې ذکر سي) حَتَّى لَا يَخْرُجَ الْحَاجُّ عَنْ حَجَّةِ الْإِسْلَامِ تر دې چې (نائب) حاجي د دې حج په وجه له فرضي حج څخه نسي خلاصيدلای(بلکي فرضي حج به هم حتماً کوي) وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَمَرَهُ أَنْ يُخْلِصَ الْحَجَّ لَهُ مِنْ غَيْرِ إِشْتِرَاكٍ او هر يوه هغه ته دا حکم کړی دی چې بې له شرکته يوازي د هغه لپاره حج وکړه وَلَا يُمْكِنُ إِيقَاعُهُ عَنْ أَحَدِهِمَا لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ او (دلته) د يوه له يوه طرفه (هم) د حج واقع کول ممکن نه دي د هغه د فضيلت د نيستي کېدلو په وجه فَيَقَعُ عَنِ الْمَأْمُورِ نو ځکه به د مأمور(نائب) له طرفه واقع کيږي وَلَا يُمْكِنُهُ أَنْ يَجْعَلَهُ عَنْ أَحَدِهِمَا بَعْدَ ذٰلِكَ او دا هم ممکنه نه ده چې تر دې وروسته نائب دا حج (خاص) په دواړو کې د يوه لپاره وګرځوي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَجَّ عَنْ أَبَوَيْهِ په خلاف د هغه صورت چې کله د خپل مور او پلار له طرفه حج وکړي فَإِنَّ لَهُ أَنْ يَجْعَلَهُ عَنْ أَيِّهِمَا شَاءَ نو (په هغه صورت کې) ده ته اختيار سته چې په مور او پلار کې د هر يوه لپاره وغواړي حج وګرځوي لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ بِجَعْلِ ثَوَابِ عَمَلِهِ لِأَحَدِهِمَا أَوْ لَهُمَا ځکه چې هغه متبرع(احسان کونکی) دی د خپل عمل د ثواب په ګرځولو کې د يوه لپاره يا د دواړو لپاره فَيَبْقَى عَلَى خِيَارِهِ بَعْدَ وُقُوعِهِ سَبَبًا لِثَوَابِهِ نو هغه به تر دې وروسته (هم) پر خپل اختيار باقي پاتيږي چې حج د ثواب سبب واقع سي وَهُنَا يَفْعَلُ بِحُكْمِ الْآمِرِ او دلته نائب د آمر په حکم سره حج کوي وَقَدْ خَالَفَ أَمْرَهُمَا حال دا چې نائب د دواړو آمرانو د حکم مخالفت وکړی فَيَقَعُ عَنْهُ نو حج به د نائب له طرفه واقع کيږي وَيَضْمَنُ النَّفَقَةَ إِنْ أَنْفَقَ مِنْ مَالِهِمَا او نائب به د خرچې ضامن وي که يې د آمرانو(حکم کونکو) له مال څخه خرچه کړې وي لِأَنَّهُ صَرَفَ نَفَقَةَ الْآمِرِ إِلَى حَجِّ نَفْسِهِ ځکه چې هغه د آمرانو خرچه په خپل (ذاتي) حج کې مصرف کړه (نه د هغو په حج کې).

**اللغات:** ﴿أهل﴾ د افعال ماضي ده؛ احرام تړل، ﴿يخلص﴾ د افعال مضارع ده؛ خالص کول. يوازي کول ﴿اشتراك﴾ د افتعال مصدر دی؛ ګډون کول. ﴿متبرع﴾ د تفعّل اسم فاعل دی؛ احسان کونکی. نفلي عبادت کونکی. ﴿يضمن﴾ د سمع مضارع ده؛ ضامن کېدل. تاوان ورکول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که دوو خلکو یو سړی خپل وکیل (نائب) جوړ کړی. او دا يې ورته ووېل چې زموږ له طرفه حج وکړه (يعني د هر يوه له طرفه حج وکړه)، نو مأمور (نائب) هم د دواړو له طرفه د يوه حج احرام وتړی. او د دا احرام يې د يوه لپاره متعين نه کړی، بلکې د دواړو له طرفه يې د حج د اداء کولو نيت وکړی. نو اوس د هغه دا حج د خپل ځان له طرفه واقع کيږي، او د يوه آمر له طرفه هم نه واقع کيږي، او آمرانو که هغه ته نفقه (د لارې او په مکه کې د اوسېدلو خرچه) ورکړې وي، نو دا سړی به د هغه هم ضامن وي، صاحب د هدايې چې د دې مسئلې کوم دليل بيان کړی دی. هغه په ښکاره د مدلول او دعوىٰ سره مطابق نه دی، ځکه چې مدلول او دعوىٰ خو دا ده چې حج د مأمور (نائب) له طرفه واقع کيږي، او په دليل کې وايي چې حج د آمر له طرفه واقع کيږي، او مأمور له فرضي حج څخه نه خلاصيږي. صاحب د نهايې ليکلي دي چې په کتاب کې ذکر سوی دليل دلته د بيان سوي مدلول او دعوې سره بالکل مطابق نه دی*، خو په هر حال دا حج د مأمور يعني د حج کونکي له طرفه واقع کيږي، ځکه چې هغه د آمرانو د حکم مخالفت کړی دی. ځکه آمرانو خو هغه ته دا حکم کړی وو چې په موږ کې د هر يوه لپاره بلا شرکته خالص حج وکړه، ليکن کله چې مأمور د دواړو له طرفه نيت وکړی او احرام يې وتړی، نو ښکاره ده چې د دواړو مخالفت يې وکړی، او کله چې يې مخالفت وکړی. نو دا حج به د هغه و طرف ته ګرځول کيږي، او د هغه له طرفه به واقع کيږي، او بيا هغه ته دواړو حکم کړی دی. نه يوه. نو ځکه وروسته به مأمور دا حج د يوه لپاره متعينولای هم نه سي، ځکه چې په دې صورت کې اولويت معدوم دی (يعني يو تر بل اولیٰ نه دی)، او د يوه لپاره په متعينولو سره ترجيح بلا مرجح لازميږي، او دا صحيح نه ده، او داسي هم نه سي کېدلای چې حج خو موږ د مأمور لپاره ومنو، ليکن وروسته مأمور له آمرانو څخه د يوه لپاره حج متعين کړي، ځکه کله چې هغه ته په يوه وخت کې دواړو د حج حکم وکړی، او دواړو هغه ته نفقه ورکړه، ليکن هغه د دوی د حکم مخالفت وکړی، نو اوس به دا مخالفت د دواړو په حق کې باقي پاته وي، او د يوه لپاره به هم د حج تعيين صحيح نه وي.

بخلاف ما إذا حج الخ د دې په خلاف که يو سړی د خپل مور او پلار له طرفه حج وکړي، نو هغه ته دا اختيار سته چې دا حج په دوی کې د يوه لپاره متعين کړي، يا د دواړو لپاره متعين کړي، ځکه چې په دې صورت کې هغه خود مختاره دی، او څه چې غواړي کولای يې سي، ځکه نه خو د مور او پلار له طرفه هغه ته حکم سوی دي، او نه په دې حج کې د هغوی نفقه داخل ده، د دې په خلاف په پورتني صورت کې د آمرانو له طرفه هغه ته حکم هم سوی دی، او د هغوی نفقه هم په حج کې داخل ده، نو ځکه به حج د مأمور له طرفه واقع کيږي، اوس که دې مأمور په خپل حج کې د آمرانو نفقه صرف کړې وه، نو پر هغه به د نفقې ضمان واجب وي، ځکه چې هغوی د خپلو ځانو له طرفه د حج د کولو لپاره نفقه ورکړې وه، نه د مأمور لپاره.

---

* او صاحب د بنايې ليکلي دي چې دلته د مدلول او دليل په مينځ کې مطابقت سته [بنايه ج: ۴، ص: ۴۳۱]، خو موږ يې د اوږدوالي په خاطر تفصيل نه ذکر کوو، او موږ چې کوم تفصيل په صورت د مسئلې کې ذکر کړی هغه تفصيل د احسن الهدايې په نيز معتبر دی، يعني صاحب د احسن الهدايې فرمايي چې دلته هيڅ مطابقت نسته.

## د پورتنۍ مسئلې څه نور صورتونه

وَإِنْ أَبْهَمَ الْإِحْرَامَ او که وکیل (نائب) احرام مبهم (ناشرگند) وساتي بِأَنْ نَوَى عَنْ أَحَدِهِمَا غَيْرَ عَيْنٍ په دلسې دول چې بغیر له څه تعیینه له دواړو څخه د یوه آمر نیت وکړي فَإِنْ مَضَى عَلَى ذَلِكَ نو که هغه پر دې مبهم نیت حج جاري وساتي (یعنې په دغسې ناشرگند نیت کې حج پوره کړي) صَارَ مُخَالِفًا لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ نو د نه اولویت (او د عدم ترجیح) په وجه هغه (د آمرانو) مخالفت کوونکی شو وَإِنْ عَيَّنَ أَحَدَهُمَا قَبْلَ الْمُضِيِّ او که تر حج کولو مخکې یې له دواړو څخه یو متعین کړی فَكَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ نو د ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز هم دغه حکم دی وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قیاس دی لِأَنَّهُ مَأْمُورٌ بِالتَّعْيِينِ ځکه چې نائب ته خو د متعینولو حکم سوی دی وَالْإِبْهَامُ يُخَالِفُهُ او ابهام د تعیین مخالف دی فَيَقَعُ عَنْ نَفْسِهِ لهذا حج به د هغه له طرفه واقع وي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يُعَيِّنْ حَجَّةً أَوْ عُمْرَةً په خلاف د هغه صورت چې کله یې حج یا عمره متعین کړي نه وي حَيْثُ كَانَ لَهُ أَنْ يُعَيِّنَ مَا شَاءَ (ځکه په دې صورت کې) هغه ته اختیار سته چې کوم وغواړي هغه دې متعین کړي لِأَنَّ الْمُلْتَزَمَ هُنَاكَ مَجْهُولٌ ځکه هلته چې یې کوم شی پر ځان لازم کړی دی هغه مجهول دی وَهٰهُنَا الْمَجْهُولُ مَنْ لَهُ الْحَقُّ او دلته د متن په مسئله کې چې د چا حق دی هغه مجهول دی وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ أَنَّ الْإِحْرَامَ شُرِعَ وَسِيلَةً إِلَى الْأَفْعَالِ د استحسان دلیل دا دی چې احرام د حج د افعالو د اداء کولو لپاره د وسیلې (ذریعې) په توگه مشروع سوی دی لَا مَقْصُودًا بِنَفْسِهِ په خپله مقصود نه دی وَالْمُبْهَمُ يَصْلُحُ وَسِيلَةً او مبهم احرام د وسیلې جوړېدلو صلاحیت لري (یعني هغه هم وسیله جوړېدای سي) بِوَاسِطَةِ التَّعْيِينِ د تعیین په ذریعه فَاكْتُفِيَ بِهِ شَرْطًا نو په شرط کېدلو کې په مبهم احرام اکتفاء وسوه (یعني په مبهم احرام اکتفاء وسوه ځکه چې هغه شرط دی، او شروط چې څرنگه وي د هغو رعایت به کیږي) بِخِلَافِ مَا إِذَا أَدَّى الْأَفْعَالَ عَلَى الْإِبْهَامِ په خلاف د هغه صورت چې د ابهام په حالت کې یې افعال اداء کړي وي لِأَنَّ الْمُؤَدَّى لَا يَحْتَمِلُ التَّعْيِينَ ځکه کوم شی چې اداء سوی وي هغه د تعیین احتمال نه لري فَصَارَ مُخَالِفًا نو ځکه به نائب د آمر مخالف وي.

**اللغات:** ﴿أبهم﴾ مبهم او ناشرگند ساتل. ﴿وسيلة﴾ ذریعه، لاره. ﴿مؤدّى﴾ اداء کړی سوی شی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په دوو خلکو کې هر یوه د خپل له طرفه د حج کولو لپاره یو سړی وکیل جوړ کړی، او دې وکیل مبهم احرام وتړی، یعني په دواړو کې یې د یو غیر معین سړي له طرفه د حج احرام وتړی، او د حج افعال یې اداء کړل، نو په دې صورت کې هم حج د هغه له طرفه واقع کیږي، او د آمرانو له طرفه نه واقع کیږي، ځکه چې د نه تعیین په وجه دا سړی دلته هم د خپلو آمرانو مخالفت وکړی، او د مخالفت په صورت کې به حج د هغه له طرفه واقع کیږي، او که هغه احرام مبهم وتړی، لېکن د حج د افعالو تر اداء کولو مخکې یې د یوه آمر له طرفه دا حج او احرام متعین کړی، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا تعیین صحیح کیږي، او همدا د استحسان تقاضا ده، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا

تعیین نه صحیح کیږي او قیاس همدغه دی، بلکي په دې صورت کي به هم د قیاس له رویه دا حج د وکیل او مأمور وطرف ته ګرځول کیږي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** د امام ابو یوسف او قیاس دلیل دا دی چي وکیل ته د دې خبري حکم سوی وو چي کله هغه په شروع کي احرام وتړي، نو د یوه آمر له طرفه دي د حج نیت او احرام متعین کړي، خوکله چي هغه په شروع کي احرام او نیت مبهم وساتل، نو دا ابهام به تر آخره پوري پاته وي، او وروسته به په متعینولو سره ابهام نه ختمیږي، ځکه چي ابهام د تعیین خلاف دی، نو ګواکي په دې صورت کي هم هغه د آمرانو د حکم مخالفت وکړی، نو ځکه به دا حج د هغه له طرفه واقع کیږي، نه د آمرانو له طرفه.

بخلاف ما إذا الخ د دې حاصل دا دی چي که یو سړي مبهم احرام وتړی، او د حج یا د عمرې تعیین یې نه وکړی، نو وروسته هغه ته د حج یا د عمرې د تعیین اختیار سته، د کوم شي لپاره چي وغواړي احرام متعینولای سي، ځکه چي په دې صورت کي هغه شی مجهول دی کوم چي هغه پر خپل ځان لازم کړی دی، او د مجهول شي تر اقرار وروسته د هغه ابهام او جهالت ختمول صحیح دي، مثلاً زید دا اقرار وکړی چي پر ما د خالد څه مال بلندي دی، او مال یې مبهم وساتی، خو څو ورځي وروسته یې دا ابهام لیري کړی او ویې ویل: لخالد علي الف روبية (چي د خالد پر ما دوه زره روپۍ بلندي دي) نو دا صحیح دي، مطلب دا چي د مجهول شي جهالت وروسته ختمول صحیح دي، خو د مجهول سړي جهالت او ابهام ختمول صحیح نه دي، او څرنګه چي په اوله مسئله کي د مجهول او مبهم سړي تعیین سوی دی، نو ځکه به هلته جهالت د ورستني تعیین او تعریف په وجه نه ختمیږي.

وجه الاستحسان الخ د استحسان وجه او دلیل دا دی چي احرام په خپله مقصود نه دی، بلکي شرط دی یعني د افعالو د اداء کولو وسیله ده، او د شرط قاعده دا ده چي که په مبهم توګه شروع سي، او وروسته تر اصل عمل شروع کولو مخکي متعین کړی سي، نو صحیح دي، ځکه شرط چي څرنګه هم پیدا سي نو کافي به وي، لهذا د شرط کېدلو په حیثیت سره په مبهم احرام اکتفاء وسوه، لکه اودس چي د لمانځه شرط دی، خو که یو چا دیخني د حاصلولو لپاره اودس وکړی، او بیا یې په هغه سره لمونځ وکړی، نو هم جائز دی، په خلاف د هغه صورت چي کله وکیل د ابهام په حالت کي افعال اداء کړي نو بیا تعیین نه سي کېدلای، ځکه کوم شی چي اداء سوی وي هغه د تعیین احتمال نه لري، هو! تر اوسه چي یې کوم شی اداء کړی نه وي، په هغه کي تعیین کول ممکن دي، حاصل دا چي کله وکیل په مبهم حالت کي افعال اداء کړي، نو ده د آمر مخالفت وکړی، او د آمر د مخالفت په صورت کي به فعل د مأمور (وکیل) له طرفه اداء کیږي.

## یو چا ته د خپل ځان له طرفه د حج قران کولو حکم

قَالَ: فَإِنْ أَمَرَهُ غَيْرُهُ أَنْ يُقْرِنَ عَنْهُ فرمایي: که یو سړي بل چا ته دا حکم وکړی چي زما له طرفه حج قران وکړه فَالدَّمُ عَلَى مَنْ أَحْرَمَ نو قرباني پر هغه چا واجبیږي چي احرام وتړي (یعني پر مأمور واجبیږي) لِأَنَّهُ وَجَبَ شُكْرًا لِمَا وَفَّقَهُ اللهُ تَعَالَى مِنَ الْجَمْعِ بَيْنَ النُّسُكَيْنِ ځکه چي دم قران د دې نعمت د شکرانې په توګه واجبیږي چي الله تعالیٰ هغه ته د حج او عمرې جمع کولو توفیق ورکړی وَالْمَأْمُورُ هُوَ الْمُخْتَصُّ بِهَذِهِ النِّعْمَةِ او په دې نعمت سره مأمور (یعني نائب) خاص دی لِأَنَّ حَقِيقَةَ الْفِعْلِ مِنْهُ ځکه چي حقیقي فعل د مأمور له طرفه دی وَهَذِهِ الْمَسْأَلَةُ تَشْهَدُ بِصِحَّةِ الْمَرْوِيِّ عَنْ

مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او دا مسئله ګواهي ورکوي د هغه روايت د صحيح کېدلو کوم چې له امام محمد څخه روايت سوی دی أَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْمَأْمُوْرِ چې حج به د مأمور (نائب) له طرفه واقع کيږي.

**اللغات:** ﴿وفق﴾ د تفعيل ماضي ده: توفيق ورکول، ﴿نسك﴾ عبادت، نېکي، حج او عمره.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو سړی بل چا ته د حج قران کولو حکم وکړي، نو دم قران پر مأمور (نائب) واجبيږي، نه پر آمر، دليل دا دی چې دم قران د الله تعالیٰ د دې نعمت شکرانه ده چې الله پاک هغه ته د حج او عمرې د جمع کولو توفيق ورکړی، او په دې نعمت سره مأمور خاص دی، ځکه چې حج قران د هغه له طرفه صادريږي، نو دم قران به پر مأمور واجب وي.

وهذه المسألة الخ فرمايي چې دا مسئله يعني چې دم قران به پر مأمور لازم وي د امام محمد رَحِمَهُ الله د دې خبرې تائيد کوي چې حج به د مأمور له طرفه واقع کيږي، نه د آمر له طرفه، هو! خو آمر ته به د حج د خرڅې او مصارفو ثواب حتماً رسيږي (لکه څرنګه دا مسئله څه مخکې په دې عبارت کې ذکر سوه: وعن محمد أن الحج يقع عن الحاج، وللآمر ثواب ...)

## د يوه سړي له طرفه د حج او د بل سړي له طرفه د عمرې کولو حکم

وَكَذٰلِكَ إِنْ أَمَرَهُ وَاحِدٌ بِأَنْ يَحُجَّ عَنْهُ او همدارنګه که هغه ته يو سړی حکم وکړي چې زما له طرفه حج وکړه وَالْآخَرُ بِأَنْ يَعْتَمِرَ عَنْهُ او بل سړي حکم ورته وکړی چې زما له طرفه عمره وکړه وَأَذِنَا لَهُ بِالْقِرَانِ او دواړه د قران کولو اجازه ورکړي فَالدَّمُ عَلَيْهِ نو (په دې صورت کې به هم) دم پر مأمور (نائب) واجب وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې مو بيان کړی (يعني چې په دې نعمت سره مأمور خاص دی).

**اللغات:** ﴿يعتمر﴾ د افتعال مضارع ده: عمره کول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی مثلاً زيد ته د حج کولو حکم وکړی، او بل سړي زيد ته د عمرې کولو حکم وکړی، او دواړو اجازه ورکړه چې قران وکړه، نو په دې صورت کې به هم د قران دم پر زيد وي، د دې وجه هغه ده کوم چې صاحب د هدايې مخکې بيان کړه، يعني د قران توفيق الله ﷻ زيد ته ورکړی، په دې کې د آمر هيڅ دخل نسته، نو ځکه به د دې نعمت شکرانه يعني دم قران پر زيد واجب وي.

## دم احصار به پر چا وي؟

وَدَمُ الْإِحْصَارِ عَلَى الْآمِرِ او دم احصار پر آمر (حکم کونکي) واجب دی وَهٰذَا عِنْدَ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا (حکم) د طرفينو په نيز دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: عَلَى الْحَاجِّ امام ابو يوسف فرمايي: چې پر حج کوونکي (يعني پر نائب) واجب دی لِأَنَّهُ وَجَبَ لِلتَّحَلُّلِ ځکه چې دم احصار د حلال کېدلو لپاره واجب سوی دی دَفْعًا لِضَرَرِ امْتِدَادِ الْإِحْرَامِ چې د احرام د اوږدوالي ضرر ليرې سي (يعني دم احصار ځکه واجب سوی دی چې محصر د احرام د زمانې د اوږد والي د ضرر ليري کولو لپاره

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله لأن قولهما قول المتون، كما قال العلامة ابن عابدين: قوله على الآمر هذا عندهما وعليه المتون رد المحتار ج:٢، ص: ٢٦٧. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٤٠]

په دم احصار سره ځان حلال کړي) وَهٰذَا رَاجِعٌ إِلَيْهِ او دا ضرر د نائب و طرف ته راجع دی فَيَكُونُ الدَّمُ عَلَيْهِ نو دم به هم پر هغه واجب وي وَلَهُمَا أَنَّ الْآمِرَ هُوَ الَّذِيْ أَدْخَلَهُ فِيْ هٰذِهِ الْعُهْدَةِ او د طرفينو دليل دا دی چي آمر هغه سړی دي چي نائب يې په دې ذمه واري (يعني په احصار) کي داخل کړی فَعَلَيْهِ خَلَاصُهُ نو د نائب خلاصول به هم پر آمر واجب وي.

**اللغات:** ﴿امتداد﴾ د افتعال مصدر دی: اوږدېدل، غوړېدل، ﴿عهدة﴾ ذمه واري، ﴿خلاص﴾ خلاصون.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که مأمور (نائب) محصر سو، او دم احصار يې قرباني کړی او حلال سو، نو دا قرباني د طرفينو په نيز پر آمر واجب ده، او د امام ابو يوسف په نيز پر مأمور (نائب) واجب ده؛ د امام ابو يوسف دليل دا دی چي دم احصار په دې خاطر د حلال کېدلو لپاره واجب سوی دی، چي د احرام د اوږدې مودې ضرر ليري سي، او ښکاره ده چي دا ضرر د مأمور و طرف ته راجع دی، نو دم احصار به هم پر مأمور واجب وي، او د طرفينو دليل دا دی چي آمر هغه سړی دی چي مأمور يې د احصار په مصيبت کي مبتلا کړی، نو چا چي مبتلا کړی وي، خلاصول به يې هم پر هغه واجب وي.

## د مړي له طرفه د حج کونکي د دم احصار بيان

وَإِنْ كَانَ يَحُجُّ عَنْ مَيِّتٍ او که نائب د يو مړي له طرفه حج کوي فَأُحْصِرَ بيا محصر سي فَالدَّمُ فِيْ مَالِ الْمَيِّتِ عِنْدَهُمَا● نو دم احصار به د طرفينو په نيز د مړي په مال کي واجب وي خِلَافًا لِأَبِيْ يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ د امام ابو يوسف اختلاف دی ثُمَّ قِيْلَ: هُوَ مِنْ ثُلُثِ مَالِ الْمَيِّتِ بيا يو قول دا دی: چي دم احصار به د مړي د مال له دريمي حصې څخه واجب وي لِأَنَّهُ صِلَةٌ كَالزَّكَاةِ وَغَيْرِهَا ځکه چي دم احصار (هم) صله ده لکه زکاة او نور وَقِيْلَ: مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ او دويم قول دا دی: چي دم احصار به د مړي له ټوله مال څخه واجب وي لِأَنَّهُ وَجَبَ حَقًّا لِلْمَأْمُوْرِ ځکه چي هغه د مأمور (نائب) د حق په توګه واجب سوی دی فَصَارَ دَيْنًا نو ځکه به قرض وي.

**اللغات:** ﴿ثلث﴾ دريمه حصه، ﴿صلة﴾ بغير له عوضه اداء کول، ﴿دين﴾ قرض.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو سړي د مړي له طرفه حج کوي، بيا محصر سو، نو د طرفينو په نيز به دم احصار د مړي له ميراث څخه واجبيږي، او د امام ابو يوسف په نيز به پر وکيل (مأمور) واجبيږي، بيا ځيني مشائخو ويلي دي چي دم احصار به د مړي د ميراث له دريمي څخه واجبيږي، ځکه چي دا صله ده؛ لکه څرنګه چي زکاة او کفارات صله دي، صله دې ته ويل کيږي چي د مالي عوض په مقابله کي نه وي، نو څرنګه چي پر مړي پاته سوی زکاة او کفارات د ميراث له دريمي حصې څخه ورکول کيږي، نو دم احصار به هم د مړي د مال له دريمي حصې څخه ورکول کيږي، او ځيني مشائخو ويلي دي چي دم احصار به د مړي له ټوله مال او ميراث څخه واجبيږي، ځکه چي دم احصار د مأمور (نائب) حق دی، او پر مړي د هغه اداء کول لازم دي، نو د قرض په ډول سو (يعني داسي سو لکه د مړي پر غاړه چي قرض وي)، او قرض د مړي په ټوله مال کي اداء کيږي، نو دم احصار به هم د مړي په ټوله مال کي واجب وي.

---

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَااللہ، لأن قولهما قول المتون، كما قال العلامة الحصكفي: وعليه المتون ردالمحتار ج: ۲، ص:۲۶۷؛ وقال العلامة قاضيخان: والأصل فيه أن كل دم يجب على المأمور بالحج يكون على الحاج لا في مال الميت إلا دم الإحصار في قول أبي حيفة، فإن ذلك يكون في مال الميت، الخانية ج:۱، ص:۱۲۷. [القول الراجح ج:۱ ص:۲۲۱]

## د جماع دم به پر چا وي؟

وَدَمُ الْجِمَاعِ عَلَى الْحَاجِّ او د جماع دم پر حج کونکي واجب دی لِأَنَّهُ دَمُ جِنَايَةٍ ځکه چي هغه دم جنايت دی وَهُوَ الْجَانِي عَنِ اخْتِيَارٍ او حاجي (هم) په خپل اختيار سره جرم کونکی دی (يعني په خپله يې دا جنايت کړی دی، آمر نه دي ورته ويلي) وَيَضْمَنُ النَّفَقَةَ او حاجي به د نفقې (خرچې) ضامن وي مَعْنَاهُ: إِذَا جَامَعَ قَبْلَ الْوُقُوفِ حَتَّى فَسَدَ حَجُّهُ د دې معنیٰ دا ده: چي کله نائب تر وقوف عرفه مخکي جماع وکړي تر دې چي د هغه حج فاسد سي لِأَنَّ الصَّحِيحَ هُوَ الْمَأْمُورُ بِهِ ځکه چي هغه ته د صحيح حج حکم سوی وو بِخِلَافِ مَا إِذَا فَاتَهُ الْحَجُّ په خلاف د هغه صورت چي کله له هغه شخصه حج فوت سي حَيْثُ لَا يَضْمَنُ النَّفَقَةَ نو (په دې صورت کي) به هغه د نفقې نه ضامن کيږي لِأَنَّهُ مَا فَاتَهُ بِاخْتِيَارِهِ ځکه چي هغه د ده په اختيار سره فوت نه سو أَمَّا إِذَا جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ خو که تر وقوف عرفه وروسته جماع وکړي لَا يَفْسُدُ حَجُّهُ نو د هغه حج نه فاسديږي وَلَا يَضْمَنُ النَّفَقَةَ او نه د خرچې ضامن کيږي لِحُصُولِ مَقْصُودِ الْآمِرِ ځکه چي د آمر مقصود حاصل سو وَعَلَيْهِ الدَّمُ فِي مَالِهِ او پر نائب به په خپل مال کي دم جنايت واجب وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی (يعني: لأنه دم جناية) وَكَذٰلِكَ سَائِرُ دِمَاءِ الْكَفَّارَاتِ عَلَى الْحَاجِّ او همدا ډول به د کفاراتو ټول دمونه پر حاجي (يعني پر نائب) واجب وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی (يعني: لأنه دم جناية يعني ځکه چي هغه د جناياتو دمونه دي، او جنايت هغه په خپله کړی دی).

**اللغات:** ﴿جناية﴾ جرم، قصور.

**تشريح:** مسئله تشريح ته ضرورت نه لري.

## که د مړي له طرفه حج کونکی په لاره کي مړ سي نو د مړي د وصيت حکم

وَمَنْ أَوْصَى بِأَنْ يُحَجَّ عَنْهُ او که يو سړی وصيت وکړی چي زما له طرفه دي حج وکړی سي فَأَحَجُّوا عَنْهُ رَجُلًا نو خپلوانو (هم) د هغه له طرفه يو سړی (نائب) حج ته واستوی فَلَمَّا بَلَغَ الْكُوفَةَ (ليکن) کله چي هغه (نائب) کوفې ته ورسېدی مَاتَ أَوْ سُرِقَتْ نَفَقَتُهُ وَقَدْ أَنْفَقَ النِّصْفَ نو مړ سو يا يې خرچه غلا سوه حال دا چي نيمه خرچه يې مصرف کړې وه يُحَجُّ عَنِ الْمَيِّتِ مِنْ مَنْزِلِهِ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ نو (دويم وار به) د مړي له طرفه د مړي له کور شخه د مړي د پاته مال په دريمه حصه حج کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ● او (دا حکم) د امام صاحب په نيز دي وَقَالَا: يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ حَيْثُ مَاتَ الْأَوَّلُ او صاحبين فرمايي: چي له هغه ځايه به د مړي له طرفه حج کيږي چيري چي اول نائب مړ

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رحمه الله، كذا في الدر المختار ج: ٢، ص: ٢٦٣، وكما قال محمد ابراهيم الحلبي: وإن مات الحاج بنفسه أو المأمور في الطريق و أوصى يحج عن منزل أمره بثلث ما بقي من ماله قياسًا (لا إستحسانًا) وعليه المتون، ملتقى الأبحر ج:١، ص:٣٠٩. [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٢٢]

سوی وي فَالْكَلَامُ هٰهُنَا فِي اعْتِبَارِ الثُّلُثِ وَفِي مَكَانِ الْحَجِّ نو په دې مسئله کې خبره (د مړي د مال) په دریمه حصه او د حج د ځای په باره کې ده أَمَّا الْأَوَّلُ فَالْمَذْكُورُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو اول چې کوم قول (په متن کې) ذکر سوی دی هغه د امام صاحب دی أَمَّا عِنْدَ مُحَمَّدٍ يُحَجُّ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ مِنَ الْمَالِ الْمَدْفُوعِ إِلَيْهِ إِنْ بَقِيَ شَيْءٌ لیکن د امام محمد په نیز چې کوم مال نائب ته ورکول سوی وي که له هغه څخه څه مال پاته سوی وي نو په هغه مال سره به د مړي له طرفه حج کیږي وَإِلَّا بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ کنې وصیت به باطل وي اِعْتِبَارًا بِتَعْيِينِ الْمُوصِي د موصي (یعني د مړي) پر متعینولو بانذي په قیاسولو سره إِذْ تَعْيِينُ الْوَصِيِّ كَتَعْيِينِهِ ځکه چې د وصي متعینول د موصي د متعینولو په څیر دي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يُحَجُّ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ مِنَ الثُّلُثِ الْأَوَّلِ او د امام ابو یوسف په نیز به د مړي له طرفه په هغه مال سره حج کیږي چې د اول مال له دریمې حصې څخه پاته سوی وي لِأَنَّهُ هُوَ الْمَحَلُّ لِنَفَاذِ الْوَصِيَّةِ ځکه چې د وصیت د نافذېدلو محل هغه دریمه حصه ده وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ قِسْمَةَ الْوَصِيِّ وَعَزْلَهُ الْمَالَ لَا يَصِحُّ او د امام صاحب دلیل دا دی چې د وصي تقسیم او مال جلا کول صحیح نه دي إِلَّا بِالتَّسْلِيمِ إِلَى الْوَجْهِ الَّذِي سَمَّاهُ الْمُوصِي مګر په سپارلو سره په داسې طریقه چې هغه موصي متعینه کړې وي لِأَنَّهُ لَا خَصْمَ لَهُ لِيَقْبِضَ ځکه چې د موصي هیڅ مقابل نسته چې (د وصیت پر مال) قبضه وکړي وَلَمْ يُوجَدْ فَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ قَبْلَ الْإِفْرَازِ وَالْعَزْلِ او پر داسې طریقه سپارل نه راغله نو داسې سو لکه تر بېلولو او جلا کولو مخکې چې د وصیت مال هلاک سي فَيُحَجُّ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ نو د پاته مال په دریمه حصه به حج کیږي وَأَمَّا الثَّانِي فَوَجْهُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ وَهُوَ الْقِيَاسُ هر چې دویمه مسئله ده نو د امام صاحب د قول وجه دا ده او همدا قیاس دی أَنَّ الْقَدْرَ الْمَوْجُودَ مِنَ السَّفَرِ قَدْ بَطَلَ فِي حَقِّ أَحْكَامِ الدُّنْيَا چې څومره اندازه سفر سوی دی هغه د دنیاوي احکامو په حق کې باطل سو قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1]: إِذَا مَاتَ ابْنُ آدَمَ انْقَطَعَ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ نبي ﷺ فرمایلي دي: کله چې انسان مړ سي نو د هغه عمل منقطع سي ما سوا له دریو عملونو څخه وَتَنْفِيذُ الْوَصِيَّةِ مِنْ أَحْكَامِ الدُّنْيَا او د وصیت نافذول له دونیاوي احکامو څخه دي فَبَقِيَتِ الْوَصِيَّةُ مِنْ وَطَنِهِ نو د هغه له وطن څخه وصیت باقي پاته سو كَأَنْ لَمْ يُوجَدِ الْخُرُوجُ ګواکې (د حج لپاره له وطن څخه) وتل راغلي نه دي وَجْهُ قَوْلِهِمَا وَهُوَ الْاِسْتِحْسَانُ أَنَّ سَفَرَهُ لَمْ يَبْطُلْ او د صاحبینو د قول وجه دا ده او همدا استحسان دی چې د نائب سفر باطل نه سو لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللهِ وَرَسُولِهِ [النساء: ۱۰۰] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: "څوک چې له خپل کور څخه د الله او د رسول و طرف ته د هجرت لپاره را ووځي (او مړ سي نو د هغه اجر ثابت سو)" وَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ مَاتَ فِي طَرِيقِ

---

[1] تخریج: أخرجه ابوداؤد فی کتاب الفرائض، باب ما جاء فی الصدقة عن الميت، حديث رقم: ۲۸۸۰، ومسلم فی کتاب الوصية، باب وصول ثواب الصدقات إلى الميت، حديث رقم: ۱۴.

الْحَجِّ كُتِبَ لَهُ حَجَّةٌ مَبْرُوْرَةٌ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ او نبي ﷺ فرمايلي دي: "څوک چي د حج په لاره کي مړ سي د هغه لپاره هر کال يو قبول سوی حج ليکل کيږي" وَإِذَا لَمْ يَبْطُلْ سَفَرُهُ اُعْتُبِرَتِ الْوَصِيَّةُ مِنْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ او کله چي د هغه سفر باطل نه سو نو له هغه ځايه به د وصيت اعتبار کيږي وَأَصْلُ الْاِخْتِلَافِ فِي الَّذِيْ يَحُجُّ بِنَفْسِهِ او اصل اختلاف د هغه سړي په باره کي دی چي په خپله حج کوي وَيَنْبَنِيْ عَلٰى ذٰلِكَ الْمَأْمُوْرُ بِالْحَجِّ او هم پر دې اختلاف به د حج مأمور مبني وي.

**اللغات:** ﴿أحجوا﴾ د افعال مضارع ده: حج په کول، ﴿عصم﴾ مقابل، مخالف فريق، ﴿فراز﴾ جلا کول، بېلول، ﴿عزل﴾ پرېښوول، (جلا کول)، ﴿مبرورة﴾ مقبول، د نېکۍ والا ﴿موصي﴾ د افعال اسم فاعل دی: وصيت کونکی (دلته څني مراد مړی دی، څکه چي هغه وصيت کړی دی)، ﴿وصيّ﴾ د ضرب له باب څخه پر وزن د فَعِيْلٌ دی، دا وزن کله کله په معنیٰ سره د مفعول هم راځي، لکه قتيل چي په معنیٰ سره د مقتول دی، او دلته هم د مفعول په معنیٰ سره دی، د وصيّ معنیٰ ده: وصيت ورته کړی سوی (مراد څني ميراث خواره دي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د مرګ په وخت کي خپلو ميراث خورو ته دا وصيت وکړی چي زما تر مرګ وروسته زما له طرفه په يو چا حج وکړئ!، نو تر مرګ وروسته د هغه ميراث خورو هم د هغه پر وصيت عمل وکړی او د هغه له مال څخه يې يوه سړي ته نفقه ورکړه او د حج لپاره يې روان کړی، خو دا سړی په لاره کي مړ سو، يا يې مال غلا سو، او تر اوسه يې نيمه نفقه خرڅه کړې وه، نو اوس څه حکم دی؟ فرمايي چي دلته دوې خبري دي: (۱) اوله خبره دا چي دويم وار چي کوم سړی د حج لپاره استول کيږي، نو هغه به په کوم مال سره استول کيږي، (۲) دويمه خبره دا ده چي دويم وار به له کومه ځايه حج په کيږي، آيا له هغه ځايه څخه چيري چي اول نائب مړ سوی دی (مثلاً په جده کي مړ سوی)، او که د مړي له کور څخه (مثلاً له افغانستانه څخه)؛ نو د اولي خبري يعني د مال او نفقې په باره کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دا دی چي دويم وار به په بل سړي د مړي د پاته سوي مال په دريمه حصه حج کيږي، مثلاً که د مړي سره شلور[۴] لکه روپۍ وې، نو اول وار چي ميراث خورو کوم سړی واستوی هغه ته يې لک روپۍ ورکړي وې، لېکن هغه په لاره کي مثلاً په جده کي مړ سو، يا يې مال غلا سو، او تر اوسه يې پنځوس زره روپۍ (۵۰۰۰۰) مصرف کړي وې، نو اوس به ميراث خواره د امام صاحب په نېز دويم وار بيا له پاته دريو لکو څخه دريمه حصه يعني يو لک روپۍ بل سړي ته (يا اول نائب ته) ورکړي او د حج لپاره به يې روان کړي.

أما عند محمد الخ په دې لړ کي د امام محمد رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي اول نائب ته چي کوم مال ورکول سوی وو، که له هغه څخه په پاته سوي مال حج کېدای سو (مثلاً په پورتني مثال کي د هغه سره پنځوس زره پاته سوي وې) نو په هغه سره دي حج وکړی سي، او که پاته مال غلا سوی وو، يا په پاته مال (يعني پنځوسو زرو) حج نه کېدی (يا په پنځوسو زرو خو حج کېدی، لېکن پنځوس زره هم پاته نه وې)، نو په دې صورت کي پر ميراث خورو د مړي وصيت پوره کول ضروري نه دي، بلکي د هغه وصيت باطل سو.

وعند أبي يوسف الخ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي د اول مال له دريمي حصې څخه چي څومره مال پاته سوي وي په هغه دي حج وکړی سي، که حج نه په کېدی، نو وصيت باطليږي، مثلاً د څلورو[۴] لکو دريمه حصه تقريباً يو لک و درو دېرش (۱۳۳۰۰۰) روپۍ وې، او له هغه څخه خو يې لک روپۍ اول سړي ته ورکړي وې، او تقريباً درو دېرش

زرو(۳۳۰۰۰) ځني پاته سوې، نو اوس که په درو دېرشو زرو حج کېدای سو، خو حج دي په وکړي، که حج نه په کېدی، نو د مړي وصيت باطل سو.

رأما الثاني الخ دويمه خبره يعني د حج د ځای په باره کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د دويم حج سفر به د مړي له وطن او کور ځخه (يعني له افغانستانه ځخه) شروع کيږي، لېکن د صاحبينو مسلک دا دی چي د دويم حج سفر به له هغه ځايه شروع کيږي چيري چي اول نائب (مأمور) مړی سوي وي (يعني له جدې ځخه).

(۱) **دليلونه:** په اوله مسئله کي (يعني د مال والا په مسئله کي) د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل قياس دی، او د وصي تعيين قياسوي پر تعيين د موصي (وصيت کونکی مړي)، يعني که په خپله موصي ژوندی وای، او له خپل مال ځخه يې مثلاً لک روپۍ د حج کولو لپاره يو چا ته ورکړي وای "چي زما له طرفه حج وکړه"، لېکن هغه لک روپۍ غلا سوې، يا هغه سړی مړ سو، نو مسئله دا ده چي ځومره مال له مخکي (لکو روپو) ځخه پاته وي، که په هغه حج کېدی، نو موصي به په هغه حج کوي (په هغه سړي يا په بل چا)، او که نه په کېدی، نو وصيت باطلېږي، همدارنګه د مړي وصي (ميراث خورو) چي ځوک واستوی، لېکن له هغه ځخه مال غلا سو، يا هغه مړ سو، نو ځومره مال چي د هغه سره پاته وي، نو وصي به هم په هغه سره (په بل چا يا په هغه سړي) حج کوي، ځکه چي د وصي متعينول د مړي [موصي] د متعينولو په ځېر دي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي کله اول وار د مال دريمه حصه راوستل سوه، او په هغه کي وصيت نافذ سو، نو فقط په هغه کي به حج کيږي، د مړي په مال کي به بار بار دريمه حصه نه را ايستل کيږي، کنې د ميراث خورو لپاره به ځه پاته سي!، ځکه په شريعت کي چي په کوم مال کي وصيت جاري کيږي، هغه د ټوله مال دريمه حصه ده، لهذا که په هغه کي وصيت پوره کول ممکن وو، نو صحيح ده، کنې بل وار به دريمه حصه نه را ايستل کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي د وصي لپاره د مال متروکه تقسيمول او د موصي (مړي) حصه له ټوله مال ځخه جلا کول په هغه وخت صحيح وي چي کله وصي دا مال په هغه مقصد کي مصرف کړي چي هغه موصي متعين کړی وي (د موصي مقصد دا دی چي زما لپاره دي پوره او کامل حج وسي)، ځکه چي د موصي له طرف هي قبضه کونکی نسته، او دا مال به مقبوض هغه وخت شمارل کيږي چي وصي دا مال د وصيت په مقصد او جهت کي مصرف کړي، او دلته د وصيت په مقصد کي نه دي مصرف سوی، ځکه چي د وصيت مقصد حج دی، او حج تر اوسه نه دي سوی، نو داسي سو لکه تر وېش او تقسيم مخکي چي ځه مال هلاک سي، او که تر وېش مخکي ځه مال هلاک سي، نو په هغه صورت کي به د ټوله پاته سوي مال په دريمه حصه کي د مړي وصيت نافذېږي، نو په پورتنۍ مسئله کي به هم د دويم حج لپاره د ټوله مال له دريمي حصې ځخه يو ځوک د مړي له طرفه استول کيږي. حتیٰ که تر دويم حج پوره کېدلو مخکي دا مال هم هلاک سو، نو بيا به په پاته ټوله مال کي له دريمي حصې ځخه د مړي له طرفه حج کيږي (مثلاً اول سړي ته يې د ځلورو لکو په دريمه حصه کي لک روپۍ ورکړې، او هغه غلا سوې يا مثلاً اول سړی مړ سو، نو دويم حج به په پاته درو دېرش زرو (۳۳۰۰۰) نه کيږي، بلکي د ماباقي مال يه ني د دوو لکو اووه شپه زرو (۲۶۷۰۰۰) په دريمه حصه کي کيږي، او که دا هم غلا سوې يا مثلاً دويم سړی هم مړ سو، نو بيا به د ماباقي مال په دريمه حصه کيږي، همدا سلسله به تر هغه وخته روانه وي چي تر ځو د مال په ماباقي دريمه حصه کي د حج امکان وي).

(۲) **دليلونه:** په دريمه مسئله کي د امام صاحب دليل او د قياس وجه دا ده چي نائب د مړي له کور ځخه د مرګ تر ځايه (مثلاً تر جدې) پوري چي کوم سفر کړی دی، هغه سفر د دنياوي احکامو په حق کي معدوم دی، ځکه په حديث

کي راځي چي کله انسان مړ سي، نو له دريو اعمالو (صدقةٔ جاريه، علم نافع او ولد صالح) څخه علاوه د هغه ټوله عملونه ختميږي، او څرنګه چي له دې دريو څخه سفر جلا دی، نو دا به هم ختميږي، او د نائب پر بکرل سوې مځکه او سفر به معدوم شمارل کيږي، نو دويم حج لپاره به بيا د مړي له وطن او کور څخه سفر کول ضروري وي، همدا د قياس تقاضا ده.

**د صاحبينو دليل:** او د استحسان وجه دا ده چي د هغه سفر معدوم سوی نه دي، ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: ومن يخرج من بيته مهاجراً إلى الله ورسوله ثم يدركه الموت فقد وقع أجره على الله. (يعني څوک چي له خپل کور څخه د الله او د رسول و طرف ته هجرت وکړي بيا په لاره کي مرګ ور ته راسي نو د هغه ثواب پر الله دی). له دې څخه معلومه سوه چي په لاره کي د مرګ ثواب انسان ته رسيږي، او همدغه د ثواب رسېدل د سفر مقصود دي، او د هجرت په سفر کي د حج او د جهاد سفر هم داخل دي، بلکي په صريح حديث کي راځي: "چي څوک د حج په لاره کي مړ سي، نو د هغه لپاره به هر کال د يوه مقبول حج ثواب ليکل کيږي". حاصل دا چي کله هغه ته د دې سفر ثواب ورسېدی، نو ښکاره ده چي د هغه سفر هم معدوم او باطل نه سو، او کله چي سفر باطل نه سو، نو اول وار چي تر کومه ځايه سفر سوی وي، هغه به پر خپل ځای پاته وي، او د دويم حج سفر به د مرګ له ځايه شروع کيږي، همدا د استحسان تقاضا ده.

وأصل الاختلاف الخ فرمايي چي په دويمه مسئله کي د امام صاحب او صاحبينو اصل اختلاف په دې باره کي دی چي يو سړی په خپله د حج په اراده سره ووځي، ليکن په لاره کي مړ سي، او دا وصيت وکړي چي زما له طرفه دې حج وکړی سي، اوس به د صاحبينو په نېز دا حج له هغه ځايه کيږي چيري چي دا سړی مړ سوی دی، او د امام صاحب په نېز به د دې سړي له کوره څخه حج کيږي، هم پر دغه اختلاف دا دويمه مسئله متفرع سوې ده چي که د مړي مأمور په لاره کي مړ سي، نو دويم حج به له کومه ځايه کيږي، له هغه ځايه څخه او که له کوره څخه؟، او لوړ په پوره تفصيل سره دا اختلاف ذکر سو.

## د مور او پلار لپاره د مبهم (ناخرګند) حج تفصيل

قَالَ: وَمَنْ أَهَلَّ بِحَجَّةٍ عَنْ أَبَوَيْهِ فرمايي: څوک چي د خپل مور او پلار له طرفه د حج احرام وتړي يُجْزِيْهِ أَنْ يَجْعَلَهُ عَنْ أَحَدِهِمَا نو د هغه لپاره جائز ده چي دا حج د يوه لپاره (يعني د مور يا د پلار لپاره) وګرځوي لِأَنَّ مَنْ حَجَّ عَنْ غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ ځکه څوک چي د بل چا له طرفه بغير د هغه له اجازې څخه حج وکړي فَإِنَّمَا يَجْعَلُ ثَوَابَ حَجِّهِ لَهُ نو (د دې مطلب دا دی چي) هغه د خپل حج ثواب هغه (بل چا ته) ته ور بخښي وَذٰلِكَ بَعْدَ أَدَاءِ الْحَجِّ او دا د حج تر اداء کولو وروسته کېدای سي فَلَغَتْ نِيَّتُهُ قَبْلَ أَدَائِهِ نو د حج تر اداء کولو مخکي به د ور بخښلو نيت لغوه وي وَصَحَّ جَعْلُهُ ثَوَابَهُ لِأَحَدِهِمَا بَعْدَ الْأَدَاءِ او تر حج اداء کولو وروسته به د هغه ثواب مور يا پلار ته ور بخښل صحيح وي بِخِلَافِ الْمَأْمُوْرِ په خلاف د مأمور عَلَى مَا قَرَّرْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه فرق پر بناء کوم چي مخکي موږ بيان کړی (و دې قول ته اشاره کوي: وههنا يفعل بحكم الآمر وقد خالفه).

**اللغات:** ﴿أبويه﴾ مور او پلار، والدين ﴿يجزيه﴾ د افعال مضارع ده: د هغه لپاره جائز ده، د هغه لپاره کافي دي.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک د مور او لپاره د حج احرام وتړي، نو د هغه لپاره دا جائز ده، چي د دې ثواب فقط يوه ته ور بخښيي، لکه څرنګه چي دا هم جائز ده، چي دواړو ته يې وربخښي، ځکه چي هغه دا حج د بل چا په نفقه او حکم سره نه کوي، بلکي په خپلو پيسو سره يې د تبرع او احسان په توګه د مور او پلار لپاره کوي.

لأن من حج الخ دلته دا فرق بیانوي چې که یو څوک د بل چا په خرچه او نفقه او د هغه په حکم سره حج اداء کوي، نو تر احرام ترلو مخکې به د آمر نیت خامخا کوي، ځکه چې د هغه په حکم او خرچې سره د هغه حج اداء کوي، خو که په خپله خرچه سره د بل چا لپاره د تبرع په توګه حج کوي، نو تر احرام مخکې د نیت ضرورت نشته، بلکې د حج تر اداء کولو وروسته دې د حج ثواب هغه ته ور وبخښیي، ځکه چې دا تبرع ده، او د هغه له طرفه حج نه اداء کوي، بلکې فقط ثواب یې ور وبخښي، او دا تر حج وروسته امکان لري، نو د آمر په حج او د تبرع په حج کې همدغه فرق دی.

**فوائد:** که دا درې شرطونه پیدا سي، نو بیا د مور او پلار له طرفه حج کول واجب دي: [۱] که پر مور او پلار حج فرض وي، [۲] او د حج مال یې هم پرې ایښې وي، [۳] او وصیت یې هم کړی وي، او که فقط یو شرط هم نیستي سي، نو بیا د مفو له طرفه حج کول فرض نه دي، بلکې د ثواب کار دی. والله أعلم بالصواب

# بَابُ الْهَدْيِ

## (دا) باب د هدي (په بیان کې) دی

**تشریح:** څرنګه چې په کتابُ الحج کې ډېر ځایونه د هدي یادونه وسوه، نو ځکه صاحب د هدایې د حج له احکامو څخه تر فراغت وروسته اوس د هدي تفصیلات او تشریحات بیانوي، کوم څاروی چې حرم ته د ذبحه کولو (حلالولو) لپاره واستول سي، هغه ته هدی ویل کیږي، هدی په دې آیت سره ثابته ده: فَإِذَآ أَمِنتُمۡ فَمَن تَمَتَّعَ بِٱلۡعُمۡرَةِ إِلَى ٱلۡحَجِّ فَمَا ٱسۡتَيۡسَرَ مِنَ ٱلۡهَدۡيِ [البقرة، ۱۹۶].

### د هديَ ادنیٰ درجه

**الْهَدْيُ أَدْنَاهُ شَاةٌ** د هدی کمه درجه بزه ده لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] سُئِلَ عَنِ الْهَدْيِ ځکه روایت سوی دی چې له نبي ﷺ څخه د هدي په باره کې پوښتنه وسوه فَقَالَ: أَدْنَاهُ شَاةٌ نو نبي ﷺ وفرمایل: "د هدي ادنیٰ درجه بزه ده".

**اللغات:** ﴿أدنى﴾ تر ټولو کمه درجه.

**تشریح:** صورت د مسئلې ښکاره دی چې د هدي کمه درجه بزه ده، ځکه چې په حدیث کې د هدي کمه درجه بزه ښودل سوې ده.

### د هدي اقسام

قَالَ: **وَهُوَ مِنْ ثَلَاثَةِ أَنْوَاعٍ: الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ** فرمایي: چې هدی په درو قسمونو سره کیږي: اوښ، غوا او بزه لِأَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا جَعَلَ الشَّاةَ أَدْنَى فَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَعْلَى ځکه کله چې نبي ﷺ بزه د هدي ادنیٰ درجه وګرځوله نو ضروري ده چې د هدي اعلیٰ درجه به (هم) وي وَهُوَ الْبَقَرُ وَالْجَزُورُ او اعلیٰ درجه غوا او اوښ دي وَلِأَنَّ الْهَدْيَ مَا يُهْدَى

---

[1] تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب ۱۰۲، حديث رقم: ۱۶۸۸ بمعناه.

إِلَى الْحَرَمِ او ځکه چې هدی هغه څاروی دی چې د حرم و طرف ته واستول سي لِيُتَقَرَّبَ بِهِ فِيهِ چې په هغه سره په حرم کې قُربت حاصل کړی سي وَالْأَصْنَافُ الثَّلَاثَةُ سَوَاءٌ فِي هٰذَا الْمَعْنٰى او په دې معنیٰ کې درې سره قسمونه برابر دي.

**اللغات:** ﴿إبل﴾ اوښ، ﴿بقر﴾ غوا، ﴿غنم﴾ اسم جنس دی پسه او بزې دواړو ته ويل کيږي، ﴿جزور﴾ اوښ.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې هدی په درې ډوله څارويانو سره کېدای سي: اوښ، غوا، بزه(پسه)، او دليل دا دی چې نبي ﷺ بزه د هدي ادنیٰ درجې ګرځولې ده، او ادنیٰ لپاره اعلیٰ خامخا وي، نو د هدي اعلیٰ درجه هغه څارويان دي چې تر بزې په جُثه او جسم کې اعلیٰ وي چې هغه نو اوښ او غوا دي، عقلي دليل دا دی چې هدی هغه څاروي ته ويل کيږي چې د تقرّب حاصلولو په نيت سره حرم ته واستول سي، او په دې مقصد کې بزه، غوا، اوښ درې سره برابر دي(يعني په دريو سره قربت حاصليږي)، لهذا په هدی کېدلو کې به هم درې سره برابر وي.

## د هدي او قرباني د برابر والي بيان

وَلَا يَجُوزُ فِي الْهَدَايَا إِلَّا مَا جَازَ فِي الضَّحَايَا او جائز نه دي په هَدْيو کې مګر هغه څارويان کوم چې په قربانيو کې جائز دي لِأَنَّهُ قُرْبَةٌ تَعَلَّقَتْ بِإِرَاقَةِ الدَّمِ كَالْأُضْحِيَةِ ځکه چې هدی هم د قربانۍ په څېر داسي قُربت(او عبادت) دی چې د وينو بيولو سره تعلق لري فَيَتَخَصَّصَانِ بِمَحَلٍّ وَاحِدٍ نو دواړه به د يوه محل سره خاص وي(يعني کوم شرطونه چې د قربانۍ وي هغه به د هدي هم وي).

**اللغات:** ﴿ضحايا﴾ قربانياني، ﴿قربة﴾ نېکي، ﴿إراقة﴾ د افعال مصدر دی: بيول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې په قربانۍ کې کوم څارويان جائز دي، هغه په هدی کې هم جائز دي. ځکه چې په هدی او قربانۍ دواړو کې وينه بهيږي، او دواړه د قربت حاصلولو لپاره کيږي، همدا وجه ده چې د قربانۍ لپاره چې په څاروي کې کوم شرطونه وي، هغه به په هدی کې هم وي، په قرباني کې يو شرط دا دی چې څاروی به ثني وي، همداسي به په هدی کې هم دا ضروري وي چې هغه به ثني وي، ثني د هغه عمر څاروي ته ويل کيږي چې نوي غاښونه يې راسي؛ بزه او پسه چې کله د دوو کالو سي، نو ثني کيږي، ګامېښه او غوا چې کله په دريم کال کې پښه کښېږدي نو ثني کيږي، اوښ چې کله په پنځم کال کې پښه کښېږدي، نو نوي غاښونه يې راځي او ثني کيږي.

## بزه له دوو ځايونو څخه علاوه بل په هر ځای کې کافي ده

وَالشَّاةُ جَائِزَةٌ فِي كُلِّ شَيْءٍ او بزه په هر شي کې(يعني په هره هدی کې) جائز ده إِلَّا فِي مَوْضِعَيْنِ: مَنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ جُنُبًا مګر په دوو ځايونو کې: [۱] څوک چې د جنابت په حالت کې طوافِ زيارت وکړي وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ [۲] او څوک چې تر وقوفِ عرفه وروسته جماع وکړي فَإِنَّهُ لَا يَجُوزُ فِيهِمَا إِلَّا بَدَنَةٌ نو په دې دوو ځايونو کې به له بدنې څخه علاوه بل هيڅ شی جائز نه وي وَقَدْ بَيَّنَّا الْمَعْنٰى فِيمَا سَبَقَ او دليل موږ مخکې بيان کړی (په باب الجنايات کې).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې چيرې هم د هدي ضرورت وي، هلته بزه ورکول کافي دي، خو دوه ځايونه داسي دي چې هلته بزه کفايت نه کوي، هلته به خامخا اوښ ورکوي، ځکه چې هلته جرم ډېر سخت دی، يو دا چې څوک د جنابت په حالت کې طوافِ زيارت وکړي، او دويم دا چې تر وقوفِ عرفه وروسته جماع وکړي.

## د هدي د غوښو حکم

وَيَجُوْزُ الْأَكْلُ مِنْ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ او له نفلي هدي او د تمتع او قِران له هديو څخه (حاجي ته) خوراک کول جائز دي لِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ ځکه چې دا (هريو) د عبادت دم دی فَيَجُوْزُ الْأَكْلُ مِنْهَا بِمَنْزِلَةِ الْأُضْحِيَةِ نو د قرباني په شير به له دې هديو څخه هم خوړل جائز وي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكَلَ مِنْ لَحْمِ هَدْيِهِ او په صحيح حديث کې راغلي دي چې نبي ﷺ (هم) د خپلې هدي له غوښو څخه خوراک وکړی وَحَسَا مِنَ الْمَرَقَةِ او (د غوښو) ښوروا يې وچيښله.

**اللغات:** ﴿نسك﴾ عبادت، ﴿حسا﴾ نوشول، چيښل، ﴿مرقة﴾ ښوروا.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## له هدي څخه خوراک کول مستحب دي

وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا او د حاجي لپاره له هديو څخه خوراک کول مستحب دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَكَذٰلِكَ يُسْتَحَبُّ أَنْ يَتَصَدَّقَ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِيْ عُرِفَ فِي الضَّحَايَا او همدا ډول پر هغه طريقه صدقه کول (هم) مستحب دي کومه چې د قربانيو په باره کې پيژندل سوې ده وَلَا يَجُوْزُ الْأَكْلُ مِنْ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا او له نورو هديو څخه خوړل جائز نه دي لِأَنَّهَا دِمَاءُ كَفَّارَاتٍ ځکه چې هغه د کفاراتو دمونه دي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] لَمَّا أُحْصِرَ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَبَعَثَ الْهَدَايَا عَلَى يَدَيْ نَاجِيَةَ الْأَسْلَمِيِّ او په صحيح روايت کې راغلي دي چې کله نبي ﷺ په حديبيه کې محصر سو او د ناجيه اسلمي په لاس يې قرباني واستولې قَالَ لَهُ: لَا تَأْكُلْ أَنْتَ وَرُفْقَتُكَ مِنْهَا شَيْئًا نو هغه ته يې وفرمايل: "ته او ستا ملګري له دې څخه هيڅ مه خورئ".

**اللغات:** ﴿رفقة﴾ جمع د رفيق ده: د سفر ملګري، انډيوالان.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې له محرم لپاره د قِران، تمتع او نفلي هديو څخه خوړل فقط جائز نه دي بلکي مستحب دي، ځکه له نبي ﷺ څخه هم خوړل ثابت دي، او که يو څوک د قرباني طريقه اختيار کړي يعني دا چې د هدي د غوښې درې حصې کړي، يوه حصه صدقه کړي، دويمه حصه هديه کړي، او دريمه د ځان لپاره ذخيره کړي، نو په دې کې هم هيڅ حرج نسته، بلکي دا طريقه په هدي کې مستحب ده، خو له مذکوره هديو څخه علاوه د نورو هديو غوښې په خپله خوړل جائز نه دي، بلکي هغه به پر فقيرانو تقسيموي، ځکه چې هغه د جنايت او کفارې هديي دي، او په صحيح حديث سره ثابت دي چې کله نبي ﷺ په حديبيه کې محصر سو، او هديي يې د ناجيه اسلمي په لاس واستولې، نو هغه ته يې وفرمايل: "چې له دې څخه مه ته خوراک کوه، او نه دي ستا ملګري له دې څخه خوراک کوي"، د حديثو شارحينو ليکلي دي چې نبي ﷺ ځکه ناجيه اسلمي او د هغه ملګري له خوراک کولو څخه منع کړل چې هغوی مالداره

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب المناسک، باب الهدي إذا أعطب قبل أن يبلغ، حديث رقم: ١٧٦٣.

او شتمن ول، د صدقې مستحق نه ول، له دې څخه هم معلومېږي چې دم احصار او د کفاراتو او جناياتو نوري قرباني ټوله د فقيرانو حق دی، له هغو څخه نه په خپله خوړل جائز دي، او نه شتمنو خلکو ته د هغو ورکول جائز دي.

## د هدي د ذبحه کولو (حلالولو) وختونه او ځايونه

وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ او جائز نه دي د نفلي هدي، د تمتع د هدي او د قران د هدي ذبحه کول مګر د قرباني په ورځ (يعني دلوی اختر په ورځ) قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: وَفِي الْأَصْلِ: يَجُوزُ ذَبْحُ دَمِ التَّطَوُّعِ قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: او په مبسوط کي دي چې نفلي قرباني تر يومُ النحر مخکي ذبحه کول جائز دي وَذَبْحُهُ يَوْمَ النَّحْرِ أَفْضَلُ او په يومُ النحر کي يې ذبحه کول افضله دي وَهَذَا هُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح ده لِأَنَّ الْقُرْبَةَ فِي التَّطَوُّعَاتِ بِاعْتِبَارِ أَنَّهَا هَدَايَا ځکه چې په نفلي هديو کي قربت (عبادتوالی) په دې اعتبار سره دی چې هغه هديي دي وَذَلِكَ يَتَحَقَّقُ بِتَبْلِيغِهَا إِلَى الْحَرَمِ او هدی کېدل هغه وخت متحقق کيږي چې حرم ته هدی ورسول سي فَإِذَا وُجِدَ ذَلِكَ بيا چې کله هدی کېدل پيدا سي جَازَ ذَبْحُهَا فِي غَيْرِ يَوْمِ النَّحْرِ نو له يومُ النحر څخه په علاوه کي به د هغې ذبحه کول جائز وي وَفِي أَيَّامِ النَّحْرِ أَفْضَلُ خو په ايامُ النحر کي (يې ذبحه کول) افضل دي لِأَنَّ مَعْنَى الْقُرْبَةِ فِي إِرَاقَةِ الدَّمِ فِيهَا أَظْهَرُ ځکه چې په وينه بيولو کي د عبادتوالي معنیٰ په دې ورځو کي زياته ښکاره ده أَمَّا دَمُ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى هر چې د تمتع او قِران هدي دي نو (هغه به ځکه په يومُ النحر کي ذبحه کيږي) چې الله تعالیٰ فرمايلي دي فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ [الحج: ٢٨، ٢٩] "نو له دې قرباني څخه يې تاسو (هم) وخورئ او غم ځپلي فقير ته يې (هم) ورکړئ بيا خپلي خيري ليري کړئ" وَقَضَاءُ التَّفَثِ يَخْتَصُّ بِيَوْمِ النَّحْرِ او د خيرو ليري کول د يومُ النحر سره خاص دي وَلِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ او په دې وجه هم چې د تمتع او قران هدي د عبادت دم دی (يعني د حج عبادت دی، او عبادت د يومُ النحر سره خاص وي) فَيَخْتَصُّ بِيَوْمِ النَّحْرِ كَالْأُضْحِيَةِ نو (دا به هم) د يومُ النحر سره خاص وي لکه قرباني (چې عبادت ده او د يومُ النحر سره خاص ده، او که تر يومُ النحر مخکي وسي، نو عبادت به نه وي، لهذا هدی به همداسي وي).

**اللغات:** ﴿متعة﴾ تمتع، ﴿تبليغ﴾ د تفعيل مصدر دی: رسول، ﴿بائس﴾ محتاج، غمجن، غم ځپلی، ﴿تفث﴾ خيري، چټلي.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې د تمتع او قِران هدی د مکان يعني د حرم او د زمان يعني د يومُ النحر دواړو سره خاص ده، لهذا دم تمتع او دم قِران به نه له حرم څخه دباندي ذبحه کول صحيح وي، او نه تر يومُ النحر مخکي، د دې په خلاف نفلي هدی ده، ځکه چې هغه د مکان يعني د حرم سره خاص ده، لېکن د زمان يعني د ايامُ النحر سره خاص نه ده، او تر يومُ النحر مخکي هم نفلي هدی ذبحه کېدای سي، خو په دې کي هم افضل او غوره دا ده چې په يومُ النحر کي ذبحه سي (لکه څرنګه چې په مبسوط کي هم ذکر سوي دي).

لأن القربة الخ د دې وجه (چې نفلي هدی تر يومُ النحر مخکي هم ذبحه کېدای سي) دا ده چې نفلي هدی کله حرم ته ورسول سي، نو فقط هلته په رسولو سره هغه هدی ګرځي، لهذا کله چې حرم ته په رسولو سره هدی ګرځي، نو اوس به د يومُ النحر وجود ضروري نه وي (چې خاص به نفلي هدی په يومُ النحر کي ذبحه کيږي، ځکه چې هغه په رسېدلو سره هدی جوړه سوه، نو د يومُ النحر انتظار به ضروري نه وي).

قولُهُ وإذا وجد الخ کله چي نفلي هدی حرم ته ورسول سي، نو هغه هدی سوه، لهذا تر يومُ النحر مخکي به يې هم ذبحه کول جائز وي، خو په يومُ النحر کي به يې ذبحه کول زيات افضله وي، د هغه وجه دا ده چي قرباني عبادت ده او د قربانۍ ښاروي هم په أيام النحر کي ذبحه کيږي، او نفلي هدی هم عبادت ده، نو که نفلي هدی هم په دې ورځو کي ذبحه سي، نو د عبادت معنیٰ به يې زياته ښکاره وي.

## ﴿د کومو ښارويو غوښي په خپله خوړل جائز دي او د کومو د جائز نه دي﴾

دلته موږ له اثمارُ الهدايې څخه دري نقشې را نقل کوو چي د باب ټيني مسئلې په لنډه توګه پکښې بيان سوي دي

| غوښي يې په خپله خوړل جائز دي | غوښي يې په خپله خوړل جائز نه دي |
| --- | --- |
| دمِ تمتع | د جناياتو دم |
| دمِ قران | د کفاراتو دم |
| نفلي هدی | د ښکار بدله (جزاء) |
| د قربانۍ غوښي | د مرض په وجه چي هدی په لاره کي ذبحه سي |
| 〃 | د احصار دم |
| 〃 | د نذر دم |

## ﴿کوم ښاروي په حرم کي ذبحه کول ضروري دي، او کوم ضروري نه دي﴾

| په حرم کي يې ذبحه کول ضروري دي | په حرم کي يې ذبحه کول ضروري نه دي |
| --- | --- |
| دمِ تمتع | چي هدی ناروغه سي نو هر ځای يې ذبحه کولای سي |
| دمِ قران | 〃 |
| نفلي هدی | 〃 |
| دمِ احصار | 〃 |
| د ښکار جزاء | 〃 |

## ﴿کوم ښاروي په يومُ النحر کي ذبحه کول ضروري دي، او کوم نه دي﴾

| په يومُ النحر کي ذبحه کول ضروري دي | په يومُ النحر کي ذبحه کول ضروري نه دي |
| --- | --- |
| دمِ تمتع | د کفاراتو دم |
| دمِ قران | د نذر دم |
| افضل دا ده چي نفلي هدی هم په يومُ النحر کي ذبحه کړي | دمِ احصار |
| 〃 | د ښکار جزاء |
| 〃 | د جناياتو دم |

## د کفاراتو د هديو د ذبحه کولو بيان

وَيَجُوزُ ذَبْحُ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا فِي أَيِّ وَقْتٍ شَاءَ او د پاتې هديو ذبحه کول چي کله هم وغواړي جائز دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجُوزُ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ او امام شافعي فرمايي: چي له يومُ النحر څخه علاوه (په بله ورځ) جائز نه دي اِعْتِبَارًا بِدَمِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ پر دمِ تمتع او دمِ قران باندي په قياسولو سره فَإِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ دَمُ جَبْرٍ عِنْدَهُ ځکه چي د امام شافعي په نېز (په دې دواړو کي) هر يو دمِ جبر (يعني د نقصان د تلافی دم) دی وَلَنَا أَنَّ هٰذِهِ دِمَاءُ كَفَّارَاتٍ او زموږ دليل دا دی چي دا د کفاراتو دمونه دي فَلَا تَخْتَصُّ بِيَوْمِ النَّحْرِ نو د يومُ النحر سره به خاص نه وي لِأَنَّهَا لَمَّا وَجَبَتْ لِجَبْرِ النُّقْصَانِ ځکه کله چي دا قرباني د نقصان د تلافی (او تدارک) لپاره واجب سوې كَانَ التَّعْجِيلُ بِهَا أَوْلَىٰ نو په دې کي به تلوار کول غوره وي لِارْتِفَاعِ النُّقْصَانِ بِهِ مِنْ غَيْرِ تَأْخِيرٍ چي بې له ځنډه په دې سره نقصان پورته سي (يعني چي ژر تر ژره نقصان په پوره کړی سي) بِخِلَافِ دَمِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ په خلاف د دمِ تمتع او دمِ قران لِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ ځکه چي هغه د عبادت دم دی (نو ځکه به په يومَ النحر کي افضله وي).

**اللغات:** ﴿جبر﴾ تلافي، جبران، عوض، تدارک، پوره کول، ﴿تعجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: تلوار او تېزي کول، يو کار ژر تر سره کول، چابکي.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## په حرم کي د هدي د ذبحه کولو شرط

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ الْهَدَايَا إِلَّا فِي الْحَرَمِ فرمايي: چي د هديو ذبحه کول جائز نه دي مګر په حرم کي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ فِي جَزَاءِ الصَّيْدِ: هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ [المائدة: ۹۵] ځکه د ښکار (د وژلو) په جزاء کي الله تعالیٰ فرمايلي دي: "چي هغه هدی به تر کعبې پوري رسېدونکې وي" (يعني کعبې ته به رسول کيږي) فَصَارَ أَصْلًا فِي كُلِّ دَمٍ هُوَ كَفَّارَةٌ نو په هره هغه قرباني کي دا آيت اصل سو چي هغه کفاره وي (يعني چي هغه د کفارې لپاره وي) وَلِأَنَّ الْهَدْيَ اِسْمٌ لِمَا يُهْدَىٰ إِلَىٰ مَكَانٍ او ځکه چي هدی د داسي شي نوم دی چي يو ځای ته هديه کړی سي (يعني واستول سي) وَمَكَانُهُ الْحَرَمُ او د هدي ځای حرم دی قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[●]: مِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ نبي ﷺ فرمايلي دي: "چي منیٰ ټوله د قرباني ځای دی وَفِجَاجُ مَكَّةَ كُلُّهَا مَنْحَرٌ او د مکې لاري ټوله د قربانی ځايونه دي" وَيَجُوزُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِهَا عَلَىٰ مَسَاكِينِ الْحَرَمِ وَغَيْرِهِمْ او جائز دي چي د هديو غوښې د حرم او غيرِ حرم پر مسکينانو صدقه کړي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ الصَّدَقَةَ قُرْبَةٌ مَعْقُولَةٌ ځکه چي صدقه په فهم کي راتلونکې عبادت دی وَالصَّدَقَةُ عَلَىٰ كُلِّ فَقِيرٍ قُرْبَةٌ نو پر هر فقير به (غوښې) صدقه کول عبادت وي.

---

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب المناسك، باب الذبح، حديث رقم: ۳۰۴۸، و ابو داؤد في كتاب المناسك، باب الصلاة بجمع، حديث رقم: ۱۹۳۷.

**اللغات:** ﴿منحر﴾ اسم ظرف دی؛ د ذبحه کولو او حلالولو ځای. ﴿فجاج﴾ جمع د فج ده؛ لاره، شېله. ﴿قربة﴾ نېکي، عبادت.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده که هدی نفلي وي او که غیرِ نفلي وي مثلاً د تمتع یا د قران یا د احصار او د داسي نورو وي. د هغو ټولو د ذبحه کولو ځای داحنافو په نېز فقط حرم دی، له حرم څخه علاوه په بل ځای یعني په حل کښې یې ذبحه کول جائز نه دي، دلیل دا دی چي د ښکار د جزاء په باره کي الله تعالیٰ فرمایلي دي: هدیا بالغ الكعبة. په دې آیت کي له کعبه څخه خاص کعبه مراد نه ده، بلکي حرم مراد دی، نو دا قول به په هر داسي دم کي اصل ږي کوم چي د کفارې په توګه واجب وي، یعني کوم دم چي هم د کفارې په توګه واجب سي او د نقصان د پوره کولو لپاره وي. هغه به حرم ته رسول ضروري وي، او د دمِ احصار په باره کي الله تعالیٰ فرمایلي دي: ولا تحلقوا رؤسكم حتى يبلغ الهدى محله. او د مطلق هدي په باره کي یې فرمایلي دي: ثم محلها إلى البيت العتيق. له دې ټولو آیتونو څخه معلومېږي چي د هدیو د ذبحه کولو ځای حرم دی.

ولأن الهدى إسم الخ عقلي دلیل دا دی چي هدی هغه شي ته ویل کیږي چي یو ځای ته واستول سي. او د هدي د استولو ځای حرم دی، نو ځکه به له حرم څخه بغیر هدی نه ذبحه کیږي، همدارنګه نبي ﷺ په خپل دې فرمان منى كلها منحر وفجاج مكة كلها منحر سره د منیٰ او د مکې ټوله ځایونه د ذبحي لپاره ګرځولي دي، او دا دواړه په حرم کي داخل دي. نو له دې څخه هم معلومه سوه چي منحر او مذبح به صرف حرم او د هغه ځایونه وي.

ويجوز أن يتصدق الخ زموږ په نېز د هدي غوښي د حرم او غیرِ حرم دواړو پر فقیرانو او مسکینانو صدقه کول جائز دي. امام شافعي فرمایي چي فقط د حرم پر فقیرانو او مسکینانو صدقه کول جائز دي، د امام شافعي دلیل قیاس دی یعني صدقه پر ذبحه قیاسوي، یعني څرنګه چي د هدي ذبحه کول د حرم سره خاص دي، همداسي به د هدي غوښي صدقه کول هم د حرم د مسکینانو سره خاص وي، لیکن زموږ له طرفه جواب دا دی چي دا قیاس غلط دی، ځکه چي ذبحه کول عبادتِ غیرِ معقوله دی، او صدقه کول عبادتِ معقوله دی، نو یو به پر بل نه قیاسیږي، لهذا څرنګه چي د حرم پر مسکینانو صدقه کول عبادتِ معقوله دی، همداسي به د غیرِ حرم پر فقیرانو صدقه کول عبادتِ معقوله وي.

## د هدیو د "تعریف" حکم

قَالَ: وَلَا يَجِبُ التَّعْرِيفُ بِالْهَدَايَا فرمایي: او واجب نه دي عرفات ته بېول د هدیو لِأَنَّ الْهَدْيَ يُنْبِئُ عَنِ النَّقْلِ إِلَى مَكَانٍ ځکه چي لفظ د هدي (فقط) یو ځای ته د منتقل کولو خبر ورکوي (یعني د هدي ترجمه دا ده: یو ځای ته هدی منتقل کول) لِيُتَقَرَّبَ بِإِرَاقَةِ دَمِهِ فِيهِ چي په هغه ځای کي د وینو په بېولو سره قربت حاصل کړی سي لَا عَنِ التَّعْرِيفِ عرفات ته د بېولو خبر نه ورکوي (یعني د هدي ترجمه "عرفات ته بېول" نه دي) فَلَا يَجِبُ نو ځکه به تعریف (عرفات ته بېول) واجب نه وي فَإِنْ عَرَّفَ بِهَدْيِ الْمُتْعَةِ او که محرم د تمتع د هدي تعریف وکړي (یعني عرفات ته یې بوزي) فَحَسَنٌ نو دا ښه دي لِأَنَّهُ يَتَوَقَّتُ بِيَوْمِ النَّحْرِ ځکه چي د تمتع د هدي ذبحه کول د یومُ النحر سره خاص دي فَعَسَى أَنْ لَا يَجِدَ مَنْ يُمْسِكُهُ نو ممکنه ده چي داسي سړی ورته پیدا نه سي چي هدی ونیسي (یعني ورېږ ساتي) فَيَحْتَاجُ إِلَى أَنْ يُعَرِّفَ بِهِ نو محتاج به

سي و دې ته چې عرفات ته يې بوزي وَلِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ او ځکه چې د تمتع هدی (خو) د عبادت دم دی فَيَكُونُ مَبْنَاهُ عَلَى التَّشْهِيرِ نو د هغه مدار به پر شهرت وي بِخِلَافِ دِمَاءِ الْكَفَّارَاتِ په خلاف د کفاراتو د دمونو لِأَنَّهُ يَجُوزُ ذَبْحُهَا قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ ځکه چې د هغو ذبحه کول تر يومُ النحر مخکي جائز دي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه مخکي چې موږ ذکر کړه وَسَبَبُهَا الْجِنَايَةُ فَيَلِيقُ بِهَا السَّتْرُ او د هغو سبب جنايت دی لهذا د هغو سره به پټوالی مناسب وي.

**اللغات:** ﴿تعريف﴾ د تفعيل مصدر دی: عرفات ته بېول، پر هدي نښه لګول. ﴿يتقرب﴾ د تفعّل مضارع مجهوله ده: نېکي کول، عبادت کول. ﴿يسلك﴾ د افعال مضارع ده: نيول. ﴿ستر﴾ پټ ساتل (پټوالی).

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي د "تعريف" په معنىٰ پوه سئ. شارحينو د دې دوې معناوي بيان کړي دي: ① د هدي څاروی عرفات ته بېول. ② د هدي څاروي ته طوق اچول يا د شعار نښه پر جوړول؛ په عبارت کي د بيان سوي مسئلې حاصل دا دی چې د هدي د څارويانو تعريف واجب او ضروري نه دی. ځکه د هدي مفهوم دا دی چې د هدي څاروی حرم ته راوستل سي او په حرم کي يې په ذبحه کولو سره تقرّب حاصل کړی سي، نو ځکه به د هدي په څاروي کي تعريف ضروري نه وي.

فإن عرف الخ فرمايي چې تعريف خو واجب او ضروري نه دی، لېکن که بيا هم يو سړی د تمتع په هدی کي تعريف وکړی، نو دا غوره او ښه کار دی. ځکه چې د تمتع هدی د يومُ النحر سره خاص ده، او کېدای سي چې د حاجي او محرم لپاره داسي سړی پيدا نه سي چې د هدي دا څاروی تر يومُ النحر پوري وساتي، نو ځکه به حاجي ته تعريف يعني د خپل ځان سره عرفات ته د هدي بېول ضروري وي.

ولأنه دم نسك الخ نفلي هدی، د تمتع هدی او د قران هدی د عبادت هديي دي، نو ځکه د هغو تشهير (مشهوره کول) غوره دي، لهذا د حاجي لپاره غوره دا ده چې هدی د ځان سره عرفات ته بوزي (يا طوق ور واچوي)، چې خلکو ته معلومه سي چې د هغه سره هدی ده، او له دې څخه عبرت حاصل کړي، او د هدي په ليدلو سره هغوی هم د خير کار ته آماده سي.

بخلاف دماء الكفارات الخ د دې په خلاف د کفاراتو هديي د جرم هديي دي، نو ځکه به د هغو پټول زيات غوره وي، او عرفات ته به يې نه بيايي، دويمه خبره دا ده چې دا هديي تر يومُ النحر مخکي ذبحه کېدای سي، يعنې ذبحه کول يې جائز دي، لهذا نو دا به عرفات ته څرنګه بيايي!

## په نحر او ذبح کي د افضليت بيان

قَالَ: وَالْأَفْضَلُ فِي الْبُدْنِ النَّحْرُ فرمايي: په اوښ کي نحر افضل دی وَفِي الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ الذَّبْحُ او په غوا او بزه کي ذبحه افضله ده لِقَوْلِهِ تَعَالَى: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ [الكوثر: ٢] ځکه الله تعالىٰ فرمايلي دي چې: "لمونځ وکړه د خپل ربّ لپاره او نحر وکړه" قِيلَ فِي تَأْوِيلِهِ: الْجَزُورُ د "وَانْحَرْ" په تأويل کي ويل سوي دي: چې اوښ دی (يعني اوښ نحر کړه) وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى: أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً [البقرة: ٦٧] او الله تعالىٰ فرمايلي دي: "چې تاسو غوا ذبحه کړئ" وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ

عَظِيمٍ [الصافات: ١٠٧] او (بل ځای) الله تعالیٰ فرمايلي دي: "او موږ حضرت ابراهيم عليه السلام ته د ذبحي لپاره عظيم څاروی [يعني د جنت څاروی] په فديه کي ورکړی: وَالذَّبْحُ مَا أُعِدَّ لِلذَّبْحِ او ذبح (يعني د ذال په کسره سره) هغه څاروی ته ويل کيږي چي د ذبحي لپاره تيار سوی وي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● نَحَرَ الْإِبِلَ وَذَبَحَ الْبَقَرَ وَالْغَنَمَ او په صحيح حديث کي (راغلي) دي چي نبي ﷺ اوښ نحر کړی او غوا و بزه يې ذبحه کړل ثُمَّ إِنْ شَاءَ نَحَرَ الْإِبِلَ فِي الْهَدَايَا قِيَامًا أَوْ أَضْجَعَهَا بيا که يې خوښه وي نو د هديو اوښ دي د ولاړي په حالت کي نحر کړي يا دي يې کښېنوي وَأَيَّ ذٰلِكَ فَعَلَ فَهُوَ حَسَنٌ او کومه طريقه چي هم اختياره کړي هغه ښه ده وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَنْحَرَهَا قِيَامًا خو افضل دا ده چي د ولاړي په حالت کي يې نحر کړي لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● نَحَرَ الْهَدَايَا قِيَامًا ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ هديي د ولاړي په حالت کي نحر کړې وَأَصْحَابُهُ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ كَانُوا يَنْحَرُونَهَا قِيَامًا او صحابه وو به (هم) هدي په ولاړي نحر کولې مَعْقُولَةَ الْيَدِ الْيُسْرَى په داسي حال کي چي د اوښانو د مخ چپه پښې به تړل سوي وې وَلَا يَذْبَحُ الْبَقَرَ وَالْغَنَمَ قِيَامًا او غوا او بزه به په ولاړي نه ذبحه کوي لِأَنَّ فِي حَالَةِ الْاِضْطِجَاعِ الْمَذْبَحَ أَبْيَنُ ځکه چي د پروتي په حالت کي د ذبحه کولو ځای زيات ښکاره وي (يعني په غاړه کي چي کوم د حلالولو ځای دی هغه د دې حيوانانو د پرې ايستلو په وخت کي ښه معلوميږي) فَيَكُونُ الذَّبْحُ أَيْسَرَ نو (په داسي وخت کي) به ذبحه کول ډېر آسانه وي وَالذَّبْحُ هُوَ السُّنَّةُ فِيهِمَا او په غوا او بزه کي (فقط) ذبحه سنت ده.

**اللغات:** ﴿نحر﴾ دې ته ويل کيږي چي د اوښ د مخ چپه پښه د ورانه سره وتړل سي، او د ولاړي په حالت کي يې د غاړي د خوراک په رګ کي چاړه ووهل سي، ﴿غنم﴾ بزه، پسه، ﴿جزور﴾ اوښ، ﴿معقول﴾ د نصر او ضرب اسم مفعول دی: تړل سوی، ﴿ابين﴾ د ضرب سم تفضيل دی: زيات ښکاره، ﴿اضطجاع﴾ د افتعال مصدر دی: پرېوتل.

**تشريح:** صورت د مسئلي او دليل ښکاره دی.

## په خپله د هدي د ذبحه کولو د افضليت بيان

قَالَ: وَالْأَوْلَى أَنْ يَتَوَلَّى ذَبْحَهَا بِنَفْسِهِ فرمايي: غوره دا ده چي حاجي په خپله د هديو د ذبحي متولي سي (يعني په خپله هدي او قرباني ذبحه کړي) إِذَا كَانَ يُحْسِنُ ذٰلِكَ په دې شرط چي په ښه ډول ذبحه کولای سي لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● سَاقَ مِائَةَ بُدْنَةٍ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ په حجة الوداع کي سل (١٠٠) بُدني (د

---

● تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب الضحايا، باب ما يستحب من الضحايا، حديث رقم: ٢٧٩٢.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب التحميد والتسبيح والتكبير قبل الإهلال، حديث رقم: ١٥٥١.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب يتصدق بجلال البدن، حديث رقم: ١٧١٨.

هدي لپاره) بوتلې فَنَحَرَ نَيِّفًا وَسِتِّيْنَ بِنَفْسِهِ چي (له هغو څخه يې) شپږ د پاسه شپېته بُلنې په خپله نحر کړې وَوَلَّى الْبَاقِيْ عَلِيًّا او د نورو ذمه واري يې حضرت علي رضي الله عنه ته وسپارل وَلِأَنَّهُ قُرْبَةٌ او ځکه چې نحر کول يو عبادت دی وَالتَّوَلِّيْ فِي الْقُرُبَاتِ أَوْلَى او په عبادتونو کې په خپله متولي کېدل(يعني په خپله کول) زيات غوره دي لِمَا فِيْهِ مِنْ زِيَادَةِ الْخُشُوْعِ ځکه چې په دې کې عاجزي زياته وي إِلَّا أَنَّ الْإِنْسَانَ قَدْ لَا يَهْتَدِيْ لِذٰلِكَ خو کله انسان د نبحه کولو صلاحيت(ورتيا) نه لري وَلَا يُحْسِنُهُ (يا يې) ښه نه سي کولای فَجَوَّزْنَا تَوْلِيَةَ غَيْرِهِ نو ځکه موږ (په دې کار کې) د بل چا نائب جوړول جائز وګرځول(يعني د چا چې نبحه زده نه وي، يا يې په ښه توګه نه سي کولای، هغه ته موږ دا اجازه ورکړه چې بل څوک د ځان نائب جوړ کړي).

**اللغات:** ﴿يتولى﴾ د تفعّل مضارع ده: متولي کېدل، ﴿نيف﴾ د دريو او نهو په مينځ کې شمېره، ﴿ولى﴾ د تفعيل ماضي ده: ذمه واره جوړول، نائب جوړول، ﴿جوّزنا﴾ د تفعيل ماضي ده: جائز کرځول.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دی.

## د هدی د رسۍ او د ځل(زَلْ) حکم

قَالَ: وَيَتَصَدَّقُ بِجِلَالِهَا وَخِطَامِهَا فرمايي: او صدقه به کړي د هديو ځلونه او د هديو رسۍ وَلَا يُعْطِيْ أُجْرَةَ الْجَزَّارِ مِنْهَا او د قصاب مزدوري به له هدي څخه نه ورکوي(يعني قصاب ته به په مزدوري کې د هدي څرمن يا غوښې نه ورکوي) لِقَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: تَصَدَّقْ بِجِلَالِهَا وَبِخُطُمِهَا ځکه چې نبي ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل: "د هديو ځلونه او رسۍ صدقه کړه وَلَا تُعْطِ أَجْرَ الْجَزَّارِ مِنْهَا او مه ورکوه د قصاب مزدوري له هغو څخه".

**اللغات:** ﴿جلال﴾ جمع د جل ده: ځل، خورجين، ﴿خطام﴾ جمع د خطم: رسۍ(رسياني)، ﴿جزّار﴾ قصاب، څاروی حلالونکی.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل ښکاره دي.

## پر هدي د سپرتيا حکم

وَمَنْ سَاقَ بُدْنَةً فَاضْطُرَّ إِلَى رُكُوْبِهَا او څوک چې هدی روانه کړي بيا د هغې و سپرېدلو ته مجبوره سي رَكِبَهَا نو پر سپور دې سي وَإِنِ اسْتَغْنَى عَنْ ذٰلِكَ او که له سپرتيا څخه يې بې پروا وي(يعني ضرورت نه ورته لري) لَمْ يَرْكَبْهَا نو نه دې پر سپرېږي لِأَنَّهُ جَعَلَهَا خَالِصَةً لِلّٰهِ تَعَالَى ځکه چې هغه بدنه خالص د الله تعالیٰ لپاره ګرځولې ده فَمَا يَنْبَغِيْ أَنْ يَصْرِفَ شَيْئًا مِنْ عَيْنِهَا أَوْ مَنَافِعِهَا إِلَى نَفْسِهِ نو مناسب نه ده چې د هغې له ذات يا له ګټو څخه د خپل ځان لپاره څه مصرف کړي إِلَى أَنْ يَبْلُغَ مَحِلَّهُ تر دې چې هغه څاروی خپل ځای(او ټکاني) ته ورسيږي(او نبحه کړی سي) إِلَّا أَنْ يَحْتَاجَ إِلَى

---

● تخريج: أخرجه ابوداؤد فى كتاب المناسك، باب كيف تنحر البدن، حديث رقم: ١٧٦٠.

رُكُوبِهَا خو دا چي محرم د هدي و سپرېدلو ته مجبوره سي (نو بيا پر سپرېدلی سي) لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بُدْنَةً ځکه روايت دی چي نبي ﷺ يو سړی وليدی چي بدنه يې روانه کړې وه فَقَالَ: إِرْكَبْهَا وَيْلَكَ نو ورېې فرمايل: "چي سپور سه پر دې هلاک سې! (دا جمله يعني "هلاک سې" نبي ﷺ هغه ته د زړه سواندی په توګه وويله، لکه موږ چي هم په پښتو کي کله نا کله د زړه سواندی او ترحّم په توګه داسي جملې کاروو، مثلاً: خوار سې!) وَتَأْوِيلُهُ أَنَّهُ كَانَ عَاجِزًا مُحْتَاجًا او د دې حديث تأويل دا دی چي دا سړی (له تګ څخه) عاجزه او (سپرتيا ته) مجبوره وو (خو بيا هم نه پر سپرېدی، نو ځکه نبي ﷺ ورته وويل: چي پر سپور سه!).

**اللغات:** ﴿ساق﴾ د نصر ماضي ده: شړل، بيول، روانول. ﴿ويلك﴾ هلاک سې!، تالره دې هلاکت وي!.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو محرم بُدنه (يعني هدی) روانه کړه، او په خپله په پښو روان سو، لېکن په لاره کي ستړی سو، او له تګ څخه عاجزه سو، نو اوس هغه ته جائز دي چي پر بدنه سپور سي، خو که هغه د پښو پر تګ يا پر بل سپرلي قدرت درلودی، نو هغه ته بالکل مناسب نه ده چي پر دغه بدنه سپور سي، ځکه هغه بدنه او هدی فقط د لوی څښتن ﷻ لپاره خاص کړې ده، لهذا په هيڅ ډول به د هغه لپاره له دې بدنې څخه نفع حاصلول صحيح نه وي، هو! که محرم سپرتيا ته محتاجه وو، او له دې بدنې څخه ماسوا بل سپرلی هم نه وو، نو په دې صورت کي د هغه لپاره پر بدنه سپرېدل جائز دي، ځکه کله چي نبي ﷺ يو کمزوری او بې وسه سړی په پښو روان وليدی، نو هغه يې ملامت کړی، او پر بدنه يې د سپرتيا حکم ورته وکړی.

## د سپرتيا په وجه په هدي کي د څه عيب پيدا کېدلو او د هدي د لوښلو حکم

وَلَوْ رَكِبَهَا او که محرم پر هدي سپور سي فَانْتَقَصَ بِرُكُوبِهِ او د هغه د سپرتيا په وجه (په هدي کي) نقصان پيدا سي فَعَلَيْهِ ضَمَانُ مَا نَقَصَ مِنْ ذٰلِكَ نو کوم نقصان چي راغلی د هغه ضمان پر محرم واجب دی وَإِنْ كَانَ لَهَا لَبَنٌ لَمْ يَحْلُبْهَا او که هدی شيد داره وي نو هغه دې نه لوښي لِأَنَّ اللَّبَنَ مُتَوَلِّدٌ مِنْهَا ځکه چي شيدې (هم) له هغې څخه پيدا سوي دي فَلَا يَصْرِفُهُ إِلَى حَاجَةِ نَفْسِهِ نو په خپل ذاتي حاجت کي به يې نه مصرفوي وَيَنْضِحُ ضَرْعَهَا بِالْمَاءِ الْبَارِدِ حَتَّى يَنْقَطِعَ اللَّبَنُ او د هدی پر غولانځي به يخي اوبه پاشي چي شيدې راتلل (يې) بند سي وَلٰكِنْ هٰذَا إِذَا كَانَ قَرِيبًا مِنْ وَقْتِ الذَّبْحِ لېکن دا (حکم) په هغه وخت کي (دی) چي کله يې د ذبحي وخت رانږدې وي فَإِنْ كَانَ بَعِيدًا مِنْهُ يَحْلُبُهَا او که د ذبحي وخت يې ليري وي نو ودې لوښي وَيَتَصَدَّقُ بِلَبَنِهَا كَيْ لَا يَضُرَّ ذٰلِكَ بِهَا او شيدې دې يې (پر مسکينانو) صدقه کړي د دې لپاره چي شيدې هدي ته ضرر نه ورسوي وَإِنْ صَرَفَهُ إِلَى حَاجَةِ نَفْسِهِ او که محرم شيدې په خپل ذاتي حاجت کي مصرف کړي تَصَدَّقَ بِمِثْلِهِ أَوْ بِقِيمَتِهِ نو د هغو مثل يا د هغو قيمت دې صدقه کړي لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ ځکه چي د دې شيدو ضمان پر هغه لازم دی (يعني که يو څوک د هدي شيدې ضايع کړي نو د هغه ضمان پر واجبيږي).

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب ركوب البدن، حديث رقم: ١٦٨٩.

**اللغات:** ﴿التقص﴾ د افتعال ماضي ده؛ کمېدل، نُقص پيدا کېدل. ﴿لم عطب﴾ له نصر او ضرب دواړو بابونو څخه راځي؛ لوېشل. ﴿يضعح﴾ د ضرب مضارع ده؛ پاشل، شخول. ﴿تمرع﴾ غولانځه. ﴿بارد﴾ يخ.

**تشريح: مسئله:** دا ده که د ضرورت او د عاجزۍ په وجه محرم پر بُدنه(هدی) سپور سو، او د سپرتيا په وجه په بُدنه کې څه نقصان پيدا سو، نو څومره نقصان چې پيدا سوی وي، پر دې سړي هغومره ضمان واجب دی. ځکه چې هغه صحيح او سالمه بدنه د الله لپاره خاص کړې ده، نو کوم نقصان چې په هغې کې پيدا سوی دي، د هغه تلافي او تدارک به پر هغه لازم وي.

وإن كان لها لبن الخ او که د هدي څاروی ماده يعني ښځينه وي، او شيدې يې ايله وي، نو په دې باره کې دوه صورتونه دي: (۱) که شيدې د څاروي لپاره نقصاني نه وي، نو محرم ته پکار ده چې هغه دي نه لوېشي، او نه دي يې په خپل ضرورت کې مصرفوي، بلکي پر غولانځه دي يې يخې اوبه پاشي چې شيدې يې بندې سي(ځکه په دې ډول د هغې شيدې بنديږي). (۲) او که شيدې يې په زياته اندازه رواني وي، او د هغو نه را لوېشل د څاروي لپاره نقصاني وي، يا يې د ذبحې وخت لېرې وي، نو هغه دي ولوېشي او شيدې دي يې پر فقيرانو او مسکينانو تقسيم کړي، او په خپله دي يې نه استعمالوي، خو که يې استعمال کړي، نو هغومره نوري شيدې به صدقه کوي، ځکه چې شيدې مِثلي شی دی، يعني مِثل لري، او په مثلي شي کې به اول په مثل سره ضمان ورکول کيږي، او که مثل يې نه وو، نو د هغه په اندازه قيمت به په ضمان کې ورکول کيږي.

## د هدي د مرګ بيان

وَمَنْ سَاقَ هَدْيًا فَعَطِبَ او څوک چې هدی روانه کړي بيا هغه هلاکه سي فَإِنْ كَانَ تَطَوُّعًا فَلَيْسَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ نو که هغه هدی نفلي وي نو پر هغه (د دې په بدله کې) بله هدی واجب نه ده لِأَنَّ الْقُرْبَةَ تَعَلَّقَتْ بِهَذَا الْمَحَلِّ ځکه چې قربت د دغه محل (يعني د دغه هدي) سره متعلق وو وَقَدْ فَاتَ او محل فوت سو وَإِنْ كَانَ عَنْ وَاجِبٍ فَعَلَيْهِ أَنْ يُقِيمَ غَيْرَهُ مَقَامَهُ او که واجب هدی وي نو پر هغه لازم ده چې بله هدی د دغه هدي پر ځای ودروي لِأَنَّ الْوَاجِبَ بَاقٍ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چې واجب (تر اوسه لا) د هغه پر ذمه پاته دی وَإِنْ أَصَابَهُ عَيْبٌ كَبِيرٌ يُقَامُ غَيْرُهُ مَقَامَهُ او که هدي ته زيات عيب ورسيږي نو (هم) به د هغه پر ځای بله هدی درول کيږي لِأَنَّ الْمَعِيبَ بِمِثْلِهِ لَا يَتَأَدَّى بِهِ الْوَاجِبُ ځکه چې په دې ډول عيبداره (هدي) سره واجب نه اداء کيږي فَلَا بُدَّ مِنْ غَيْرِهِ نو بله هدی به ضروري وي وَصَنَعَ بِالْمَعِيبِ مَا شَاءَ او په عيبداره (هدي) چې څه وغواړي هغه دي په وکړي لِأَنَّهُ الْتَحَقَ بِسَائِرِ أَمْلَاكِهِ ځکه چې دا عيبداره هدی (اوس) د هغه د نورو ملکيتونو سره يو ځای سوه.

**اللغات:** ﴿عطب﴾ هلاکېدل، تلفېدل. ﴿معيب﴾ اسم مفعول دی په اصل کې معيوب وو: عيبدار، عيبجن.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړي هدی روانه کړه، لېکن هدی هلاکه سوه (د ډيري ستريا په وجه يا د مرض په وجه يا په بله وجه)، نو اوس که هغه هدی نفلي وه، نو پر دې سړي به بله هدی نه واجبيږي، ځکه چې (په نفلي هدی کې) طاعت او قربت د همدغه هدي سره متعلق دی، نو کله چې هغه هلاکه سوه، نو متعلق شی هم فوت سو، نو ځکه به اوس بله هدی نه

واجبیږي، او که هغه هدی واجب وه، نو د هغه پر ځای به پر دې سړي بله هدی واجبیږي، ځکه چي واجب د ده پر نمه پاته دی، نو تر څو چي هدی په خپل ځای کي ذبح نه کړی سي، تر هغه وخته به واجب نه اداء کیږي.

وإن أصابه الخ او که د هدي په څارويکي زیات عیب او نقصان پیدا سو (مثلاً د غوږ زیاتره حصه یې پرېکړی سوه). نو هم به د هغه پرځای بله هدی دروول کیږي (یعني بله هدی به روانیږي). ځکه چي د دې پر عیب په وجه واجب نه اداء کیږي، نو ځکه به د دویمي هدي روانول ضروري وي، او په عیبداره هدي سره چي څه وغواړي هغه دي وکړي، ځکه چي هغه اوس د ده مملوک سوه (یعني د ده سوه)، او انسان ته په خپل مملوک کي د هر ډول تصرف اختیار سته.

## په لاره کي د هدي د مرګ بیان

وَإِذَا عَطِبَتِ الْبَدَنَةُ فِي الطَّرِيقِ او کله چي بدنه په لاره کي هلاکه سي (یعني ملاکت ته نږدې سي) فَإِنْ كَانَ تَطَوُّعًا نَحَرَهَا نو که نفلي هدی وي هغه دي نحر کړي وَصَبَغَ نَعْلَهَا بِدَمِهَا او بنونګري دي یې د هغې په وینو ور رنګ کړي وَضَرَبَ بِهَا صَفْحَةَ سَنَامِهَا او د هغې پر بوک دي د هغې په وینو سره مُهر (ټاپه) ولګوي (یعني بوک دي یې په خپلو وینو ود ولړي) وَلَا يَأْكُلُ هُوَ وَلَا غَيْرُهُ مِنَ الْأَغْنِيَاءِ او (له دې څخه به) نه په خپله خوراک کوي او نه به نور شتمن خلک خوراک کوي بِذَلِكَ أَمَرَ● رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاجِيَةَ الْأَسْلَمِيَّ ناجیه اسلمي ﷺ ته نبي ﷺ هم د دغه حکم کړی وو وَالْمُرَادُ بِالنَّعْلِ قِلَادَتُهَا او له نعل څخه مراد د بدنې طوق دی (چي دا طوق هم په عامه توګه د بنونګري یا نعل یوه ټوکړه وي) وَفَائِدَةُ ذَلِكَ أَنْ يَعْلَمَ النَّاسُ أَنَّهُ هَدْيٌ او د نعل رنګولو فایده دا ده چي خلک پوه سي چي دا هدی ده فَيَأْكُلُ مِنْهُ الْفُقَرَاءُ دُونَ الْأَغْنِيَاءِ نو له دې څخه به فقیران خوراک کوي نه شتمن خلک وَهَذَا لِأَنَّ الْإِذْنَ بِتَنَاوُلِهِ مُعَلَّقٌ بِشَرْطِ بُلُوغِهِ مَحِلَّهُ او دا ځکه چي د هدي د خوړلو اجازه پر دې شرط مُعلقه ده چي هدی به خپل محل ته رسیږي (یعني هدی چي د چا وي، هغه ته په دې شرط د هدي خوړل جائز دي چي هدی حرم ته ورسیږي او هلته نبحه سي) فَيَنْبَغِي أَنْ لَا يَحِلَّ قَبْلَ ذَلِكَ أَصْلًا نو مناسب دا ده چي تر دې مخکي دي بالکل (هیڅا ته هم) حلال نه سي إِلَّا أَنَّ التَّصَدُّقَ عَلَى الْفُقَرَاءِ أَفْضَلُ مِنْ خو پر فقیرانو صدقه کول له دې څخه افضله دې أَنْ يَتْرُكَهُ جَزَرًا لِلسِّبَاعِ چي د درندګانو لپاره یې خوراک پرېږدي وَفِيهِ نَوْعُ تَقَرُّبٍ او (پر فقیرانو) په صدقه کولو کي یو ډول تقرّب هم سته (یعني یو ډول ثواب هم سته) وَالتَّقَرُّبُ هُوَ الْمَقْصُودُ او همدا تقرّب مقصود دی فَإِنْ كَانَتْ وَاجِبَةً أَقَامَ غَيْرَهَا مَقَامَهَا او که واجبه بدنه وي (یعني که بدنه واجب هدی وي) نو د دې پر ځای دي بله بدنه ودروي وَصَنَعَ بِهَا مَا شَاءَ او په دې چي څه وغواړي هغه دي وکړي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ صَالِحًا لِمَا عَيَّنَهُ ځکه چي دا (اوس) د هغه شي لایق پاته نه سوه چي د هغه لپاره یې متعینه کړې وه وَهُوَ مِلْكُهُ كَسَائِرِ أَمْلَاكِهِ او دا (اوس) د هغه ملکیت ده لکه د هغه نور ملکیتونه.

● تخریج: أخرجه ابوداؤد في كتاب المناسک، باب الهدی إذا عطب قبل أن يبلغ، حديث رقم: ١٧٦٣.

**اللغات**: ﴿صبغ﴾ رنګ ور کول، ﴿نعل﴾ نال، بنونګري، ﴿صفحة﴾ يو طرف، ﴿سنام﴾ بوک، ﴿جزر﴾ خوراک، غذا، ﴿سباع﴾ درندګان.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د هدي بدنه په لاره کي (د ډيري ستړيا په وجه يا په بله وجه) هلاکېدلو ته نژدې سوه، نو اوس دوه صورتونه دي: دا بدنه به نفلي هدی وي، يا به واجب هدی وي، که نفلي وه، نو نحر به يې کړي، او په وينو سره به يې نعل (نال) او بوک ور رنګ کړي، او په خپله به يې غوښي نه خوري، او نه به يې نورو شتمنو خلکو ته ورکوي، ځکه چي رسول الله ﷺ ناجيه اسلمي رضي الله عنه ته هم د دې حکم کړی وو، او له نعل ځخه مراد د هدي طوق دی، او په وينو سره د رنګولو فايده دا ده چي خلک خبر سي چي دا ځاروی د هدي دی، د دې لپاره چي فقيران او محتاجه خلک يې وخوري، او شتمن خلک يې نه وخوري.

وهٰذا الخ فرمايي چي دا حکم ځکه دی چي د هغې د غوښو د خوړلو جواز معلّق دی په دې شرط سره چي دا هدی به خپل محل يعني حرم ته رسول کيږي، او هلته به ذبحه کيږي، ليکن دلته هغه له حرم ځخه مخکي ذبحه کړی سوه، نو مناسب خو دا وه چي د هيچا لپاره هم جائز نه سي، نه د فقيرانو لپاره او نه د شتمنو خلکو لپاره (ځکه چي شرط پيدا نه سو، نو مشروط به هم صحيح نه وي)، خو درندګانو ته د پرېښوولو په نسبت پر فقيرانو صدقه کول افضله دي، ځکه چي پر فقيرانو په صدقه کولو کي يو ډول تقرّب هم حاصليږي، نو د تقرب په وجه د فقيرانو لپاره دا هدی حلاله وګرځېدله، ځکه چي په دې باب کي تقرّب اصل مقصود دی، نو په کومه طريقه چي هم تقرّب حاصليږي، هغه به اختياريږي.

فإن كانت واجبة الخ او که هغه بدنه واجب هدی وه، نو د هغه پر ځای به بله هدی حرم ته روانه کړي، او په ذبحه سوي بدنې سره چي څه وغواړي هغه دي وکړي، ځکه دا چي يې د کوم مقصد لپاره ټاکلې وه، اوس د هغه لايق پاته نه سوه، او د مالک په ملکيت کي داخله سوه، نو څرنګه چي په نورو ملکيتونو کي د هغه پوره اختيار سته، همداسي به په دې کي هم د هغه پوره اختيار وي.

## هدی ته د طوق اچولو حکم

وَيُقَلِّدُ هَدْيَ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ او حاجي دي طوق واچوي نفلي هدي ته او د تمتع او قِران هدي ته لِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ ځکه چي دا (ټوله) دم نسک (د عبادت او د نعمت دمونه) دي وَفِي التَّقْلِيدِ إِظْهَارُهُ وَتَشْهِيرُهُ او په طوق اچولو کي د دم نسک ښکېدلو څرګندول او مشهوره کول دي (يعني په طوق اچولو سره دا ښکاره کيږي چي دا د عبادت او د نعمت هدي دي، او د نعمت څرګندول ښه دي) فَيَلِيقُ بِهِ نو ځکه به تقليد د دې (هديو) سره لايق وي وَلَا يُقَلِّدُ دَمَ الْإِحْصَارِ وَلَا دَمَ الْجِنَايَاتِ او طوق به نه اچوي د احصار هدي ته او نه د جناياتو هدي ته لِأَنَّ سَبَبَهَا الْجِنَايَةُ ځکه چي د دې سبب جنايت دی وَالسَّتْرُ أَلْيَقُ بِهَا او پټول د هغه سره زيات لايق دي وَدَمُ الْإِحْصَارِ جَابِرٌ او د احصار دم د نقصان تلافي کونکی دی فَيَلْحَقُ بِجِنْسِهَا نو دا به (هم) د جنايت د جنس سره يو ځای کيږي ثُمَّ ذِكْرَ الْهَدْيِ بيايي امام قدوري د هدی لفظ ذکر کړی دی وَمُرَادُهُ الْبَدَنَةُ او د هغه مراد بدنه ده لِأَنَّهُ لَا يُقَلَّدُ الشَّاةُ عَادَةً ځکه چي عادةً بزې ته طوق نه ور اچول کيږي وَلَا يُسَنُّ تَقْلِيدُهَا

عِنْدَنَا او نه بزې ته طوق ور اچول زموږ په نیز سنت دي لِعَدَمِ فَائِدَةِ التَّقْلِيْدِ ځکه چي (بزې ته) د طوق اچولو هیڅ فایده نسته عَلَى مَا تَقَدَّمَ لکه څرنګه چي مخکي (دا خبره) تېره سوه (فائده ځکه نسته چي اوښ ته طوق په دې وجه ور اچول کیږي چي که بالفرض ورک سي یا د یو چا کښت ته ورسي نو د کښت خاوند به کار نه په لري او بیرته به یې مالک [حاجي] ته وسپاري، همدا وجه ده چي حاجي د هغه خاص پروا نه کوي، او بې باکه وي چي ما طوق ور اچولی دی، لېکن د بزې په باره کي بې باکه نه وي، بلکي هر وخت یې بزه تر سترګو لاندي وي، ځکه چي بزه کوچنی څاروی دی، او دا خطره زیاته سته چي که ورکه سي نو درنده به یې وخوري، نو په دې وجه طوق نه ور اچوي، ځکه چي هغې ته طوق ور اچول هیڅ فایده نه لري).

**اللغات:** ﴿ستر﴾ پټوالی (پټول)، اخفاء. ﴿أليق﴾ اسم تفضیل دی: زیات لایق، زیات مناسب. ﴿جابر﴾ تلافي کونکی، نقصان فوره کونکی.

**تشریح:** صورت د مسئلې او دلیل ښکاره دی.

**فایده:** طوق پر دوه قسمه وي: [۱] یو د څپلی (یعني د نعل) طوق او هار وي، دا اوښ ته ور اچول کیږي، ځکه چي دا اوږد او درونږ وي، او بزې ته نه ور اچول کیږي، ځکه چي بیا د بزې لپاره تنګ ستونزمن کیږي. [۲] دویم طوق له وړیو څخه وودل سوی وي، هغه بزې ته ور اچول کیږي، هغه د بزې لپاره مناسب هم وي، او ښائسته هم وي، لکه څرنګه چي په حدیث کي راځي: عن عائشة قال كنت أفتل القلائد للنبي ﷺ فيقلد الغنم ويقيم في أهله حلالا [بخاري، حديث رقم: ۱۷۰۲]، (یعني حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چي ما به د نبي ﷺ لپاره [د وړیو] طوق ووډی، او نبي ﷺ به بزې ته ور واچوی [بزه به یې مکې ته واستوله]، او په خپله به په کور کي به مقیم پاته سو). والله أعلم بالصواب



# مَسَائِلُ مَنْثُورَةٌ

## (دا) بېلا بېلي مسئلې دي

تشریح: په عامه توګه مصنفین حضرات د کتاب په آخر کي جلا او متفرقي مسئلې بیانوي، چي هغه په مسائل منثوره، مسائل متفرقه، مسائل شتّی او په داسي نورو نومونو سره ذکر کوي، صاحب د هدایې هم د هغو مصنفینو د طرز او طریقې په خپلولو سره د کتابُ الحج په آخر کي د مسائل منثوره عنوان ذکر کړی دی، او په دې کي یې د حج بېلا بېلي مسئلې بیان کړي دي، چي اوس به ټوله تفصیل ستاسو مخته راسي، انشاء الله تعالی.

منثورة له نشر څخه دی، معنیٰ یې ده: خورول، غوړول، نو د مسائلِ منثوره اصلي معنیٰ سوه: خورې مسئلې، حاصل دا چي تر مسائلِ منثوره لاندي هغه مسئلې بیانیږي چي د کتابُ الحج په مختلفه بابونو کي پاته سوي وي یا د حج هغه مسئلې چي نادري پیښیږي، نو ځکه ورته مسائلِ منثوره وایي.

### د عرفات له ورځي څخه علاوه (په بله ورځ) د وقوف عرفه حکم

أَهْلُ عَرَفَةَ إِذَا وَقَفُوا فِي يَوْمٍ (که) د عرفات خلک یوه ورځ وقوف وکړي (یعني د عرفات په میدان کي ودریږي) وَشَهِدَ قَوْمٌ أَنَّهُمْ وَقَفُوا يَوْمَ النَّحْرِ او یو قوم (دا) ګواهي ورکړي چي دې خلکو د ذی الحجې په لسمه ورځ (یعني د لوی اختر په ورځ) وقوف کړی دی أَجْزَأَهُمْ نو دا وقوف د هغو لپاره کافي دی (یعني د هغو حج صحیح دی) وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يُجْزِيَهُمْ او قیاس دا دی چي کافي نه دی (یعني حج یې نه صحیح کیږي) اِعْتِبَارًا بِمَا إِذَا وَقَفُوا يَوْمَ التَّرْوِيَةِ په قیاسولو سره پر هغه صورت چي کله دا خلک د ذی الحجې په اتمه ورځ وقوف وکړي (نو حج یې بالکل نه صحیح کیږي) وَهٰذَا لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ تَخْتَصُّ بِزَمَانٍ وَمَكَانٍ او دا ځکه چي وقوف یو داسي عبادت دی چي د زمان او د مکان (دواړو) سره خاص دی فَلَا يَقَعُ عِبَادَةً دُوْنَهُمَا نو بغیر له زمان یا مکان څخه به وقوف عبادت نه واقع کیږي وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ أَنَّ هٰذِهِ شَهَادَةٌ قَامَتْ عَلَى النَّفْيِ د استحسان دلیل دا دی چي دا ګواهي پر نفي ولاړه ده وَعَلٰى أَمْرٍ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ او پر داسي شي ولاړه ده چي تر حکم لاندي نه داخلیږي لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْهَا نَفْيُ حَجِّهِمْ ځکه چي له دغه ګواهي څخه مقصود د دې خلکو د حج نفي دي وَالْحَجُّ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ او حج تر حکم لاندي نه داخلیږي (ځکه چي حج عبادت دی) فَلَا تُقْبَلُ نو ځکه به (دا) ګواهي نه قبلیږي وَلِأَنَّ فِيْهِ بَلْوٰى عَامًّا او په دې وجه (هم) چي په دې کي په عامه توګه خلک مبتلا کیږي لِتَعَذُّرِ الْإِحْتِرَازِ عَنْهُ ځکه چي له دې څخه ځان ساتل ستونزمن دي وَالتَّدَارُكُ غَيْرُ مُمْكِنٍ او د دې تلافي (او جبران) هم ممکن نه دی وَفِي الْأَمْرِ بِالْإِعَادَةِ حَرَجٌ بَيِّنٌ او د حج د راګرځولو په حکم کي ښکاره تکلیف دی فَوَجَبَ أَنْ يُكْتَفٰى بِهِ

عِنْدَ الْإِشْتِبَاهِ نو واجب سوه چې د اشتباه په وخت کې پر دې وقوف اکتفاء وکړی سي بِخِلَافِ مَا إِذَا وَقَفُوْا يَوْمَ التَّرْوِيَةِ په خلاف د هغه صورت چې کله دې خلکو د ذی الحجې په اتمه ورځ وقوف کړی وي لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ فِي الْجُمْلَةِ ځکه چې تر یوې اندازې پورې تلافي ممکنه ده بِأَنْ يَزُوْلَ الْإِشْتِبَاهُ يَوْمَ عَرَفَةَ په دې توګه چې د عرفات په ورځ به (په وقوف سره) دا اشتباه لیرې سي (یعني په نهمه ورځ به خلک وقوف وکړي نو کومه اشتباه چې په اتمه ورځ د وقوف کولو پیدا سوې وه هغه به لیرې سي) وَلِأَنَّ جَوَازَ الْمُؤَخَّرِ لَهُ نَظِيْرٌ او ځکه چې د مؤخّر د جائزوالي مثال سته وَلَا كَذٰلِكَ جَوَازُ الْمُقَدَّمِ او د مقدّم د جائزوالي مثال نسته قَالُوْا: يَنْبَغِيْ لِلْحَاكِمِ أَنْ لَا يَسْمَعَ هٰذِهِ الشَّهَادَةَ فقهاؤ فرمايلي دي: حاکم (او واکمن) ته پکار ده چې دا ګواهي نه واوري وَيَقُوْلَ: قَدْ تَمَّ حَجُّ النَّاسِ فَانْصَرِفُوْا (او پکار ده چې ګواهانو ته) ووايي: د خلکو حج پوره سو نو (ځکه) ولاړ سئ لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيْهَا إِلَّا إِيْقَاعُ الْفِتْنَةِ ځکه چې په دې ګواهي (بل) څه نسته ما سوا له فتنې راپورته کولو څخه وَكَذَا إِذَا شَهِدُوْا عَشِيَّةَ عَرَفَةَ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ همدارنګه که خلک د عرفات په ماښام د میاشتې لیدلو ګواهي ورکړي وَلَا يُمْكِنُهُ الْوُقُوْفُ فِيْ بَقِيَّةِ اللَّيْلِ مَعَ النَّاسِ أَوْ أَكْثَرِهِمْ او په پاته شپه کې د امام لپاره د ټولو یا د زیاتره خلکو سره وقوف کول ممکن نه وي لَمْ يَعْمَلْ بِتِلْكَ الشَّهَادَةِ نو (په دې صورت کې) به هم واکمن پر دې ګواهي عمل نه کوي.

**اللغات:** ﴿بلوى﴾ مبتلا کېدل. ﴿ايقاع﴾ واقع کول، اچول. ﴿عشية﴾ د ماښام وخت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که حاجیانو په یوه ورځ وقوف وکړی، دویمه ورځ څه خلک راغله امام ته یې دا ګواهي ورکړه چې د دې حاجیانو وقوف صحیح نه دی، ځکه چې پرون د ذی الحجې لسمه ورځ وه، نهمه ورځ یې نه وه. حال دا چې د ذی الحجې په لسمه ورځ د وقوف وخت ختمیږي، نو ځکه به د هغو وقوف صحیح نه وي، او کله چې وقوف صحیح نه سو، نو حج به یې هم صحیح نه وي، ځکه چې وقوف د حج ډېر اُهم او غټ رکن دی، لیکن امام قدوري وایي چې د دې حاجیانو وقوف او حج بالکل صحیح دی، او د دې خلکو ګواهي به نه قبلیږي، همدا استحسان دی.

خو په دې مسئله کې د قیاس تقاضا دا ده چې ګواهي به قبلیږي، او د هغو وقوف به صحیح نه وي، لکه څرنګه چې په هغه وخت کې هم د هغو وقوف نه صحیح کیږي کله چې دا خلک د ترویې په ورځ یعني د ذی الحجې په اتمه ورځ وقوف وکړي، ځکه چې دا تر وخت مخکې وقوف دی، نو څرنګه چې تر وخت مخکې وقوف نه صحیح کیږي، همداسې به تر وخت وروسته وقوف هم نه صحیح کیږي، ځکه چې وقوف یو داسې عبادت دی چې د زمان او د مکان دواړو سره خاص دی، یعني هم به د ذی الحجې په نهمه ورځ تر زوال وروسته وقوف شروع کیږي، او هم به د عرفات په میدان کې کیږي، لیکن په پورتنې صورت کې خو مکان سته لیکن زمان نسته، ځکه چې وقوف د ذی الحجې په لسمه ورځ سوی دی، نو ځکه به صحیح نه وي.

وجه الاستحسان الخ د استحسان او په متن کې د بیان سوي مسئلې دلیل دا دی چې د دې خلکو ګواهي خو پر نفي ولاړه ده، یعني پر نفي واقع سوې ده، ځکه د دوی د ګواهي مقصد عرفات له خلکو څخه د حج نفي کول دي، او دویم دا ګواهي پر داسې شي واقع سوې ده کوم چې د قاضي تر قضاء او حکم نه سي لاندي کېدای، ځکه چې حج د قاضي تر

حکم نه سي لاندي کېدلی، او هره هغه ګواهي چي پر داسي شیانو واقع سي، هغه به نه قبلیږي، نو ځکه به د دې خلکو ګواهي هم نه قبلیږي، او د اهلِ عرفات حج به صحیح او جائز وي.

ولأن فیه عموم بلوی الخ دویم دلیل دا دی چي په دې مسئله کي عمومِ بلویٰ ده، ځکه زیاتره وختونه په دې کي اختلاف واقع کیږي، او زیاتره وختونه په دې کي څه تقدّم او تأخر راځي، ځکه چي د دې مدار پر میاشت او سپوږمۍ دی، او په میاشت کي عموماً اختلاف واقع کیږي، لهٰذا د دې تدارک ممکن نه دی، ځکه چي د تدارک صرف یوه لار سته، او هغه د حج د راګرځولو حکم کول دي، او د حج د راګرځولو په حکم کي ښکاره تکلیف او حرج دی، نو د تکلیف لیري کولو په خاطر به پر دغه وقوف اکتفاء کیږي، او د حج د صحیح کېدلو فیصله به کیږي، که څه هم دا شک او اشتباه سته، چي دا په لسمه ورځ سوی دی، لېکن دې اشتباه ته به بالکل نه کتل کیږي.

بخلاف ما الخ د قیاس جواب ورکوي چي که خلګ په اتمه ورځ وقوف وکړي، نو هغه به صحیح نه وي، ځکه چي د هغه تدارک ممکن دی، ځکه تر اوسه لا د وقوف وخت پاته دی، او فی الجمله د هغه تدارک ممکن دی، په دې توګه چي را روانه ورځ وقوف وسي، او اشتباه لیري سي، لهٰذا د وقوف را ګرځول به ضروري وي، دویم دلیل دا دی چي که وقوف عرفه له خپل وخت څخه مؤخّر (وروسته) کړی سي، نو د هغه د جواز مثال سته، مثلاً د رمضان د روژو قضاء او د لمانځه قضاء چي دا تر خپل وخت وروسته هم جائز دي، نو د ذی الحجه په لسمه ورځ به وقوفِ عرفه هم جائز وي، لېکن که وقوفِ عرفه تر وخت مخکي (مقدّم) کړی سي، یعني په اتمه ورځ وقوف وسي، نو د هغه د جواز مثال نسته، نو ځکه به د یوم ترویه وقوف معتبر نه وي، او د لسمي ورځي وقوف به د یومِ ترویې پر وقوف قیاسول صحیح نه وي.

قالوا الخ د ګواهانو په حق کي مشائخو تر دې اندازې پوري ویلي دي چي امام ته پکار ده چي بالکل د هغو ګواهي ته غوږ نه ونیسي، او دا دې ورته ووایي چي اوس ستاسو ګواهي هیڅ فایده نه کوي، ځکه اوس خو د خلکو حج پوره سوی دی، نو ځکه چپ چاپ او په پټه خوله خپلو کورو ته ولاړ سئ، بېهوده مه جوړوئ، او که د دوی ګواهي امام قبوله کړي نو فقط د فتنې بازار ګرمیږي، دین او اسلام ته په دې کي یو ذره ګټه هم نه رسیږي، او د فتنې په باره کي نبي ﷺ فرمایلي دي: الفتنة نائمة لعن الله من أيقظها. (بنایه ج:۲، ص: ۴۶۳)

وکذا إذا شهدوا الخ د دې حاصل دا دی چي که حاجیانو د عرفات په شپه (په منیٰ کي) د عرفات لپاره تیاري کوله چي یو څو خلکو دا ګواهي اداء کړه چي موږ د ذی الحجې میاشته ولیدله د هغه مطابق نن ورځ کوم چي تېره سوه د عرفات ورځ کیږي (باید تاسو نن وقوف کړی وای)، او حال دا وو چي د وقوف لپاره صرف شپه یا د شپې یو څه حصه پاته وه، او په دې پاته حصه کي د امام لپاره د ټولو یا د زیاتره خلکو سره وقوف عرفه کول ممکن نه وو، یعني دا ممکنه نه وه چي ټوله یا زیاتره خلګ دې په دومره وخت کي عرفات ته را ورسیږي، بلکي دا خطره وه چي سهار به سي، نو ګواکي دا ګواهي هم تر وخت وتلو وروسته واقع سوه، لهٰذا دلته هم حکم دا دی چي امام به پر دې ګواهي عمل نه کوي، ځکه چي په دې سره هم فتنه او فساد خپرېږي، او په خلکو کي د بدګومانۍ او غلط فهمۍ بېهوده را پورته کیږي.

## په رمي کې د جمراتو د ترتيب د ساقطولو حکم

قَالَ: وَمَنْ رَمٰى فِي الْيَوْمِ الثَّانِيْ الْجَمْرَةَ الْوُسْطٰى وَالثَّالِثَةَ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: او څوک چې رمي وکړي په دويمه ورځ د جمرهٔ وسطیٰ او د جمرهٔ ثالثه وَلَمْ يَرْمِ الْأُوْلٰى او د جمرهٔ اولیٰ رمي نه وکړي (يعني د جمرهٔ اولیٰ رمي پرېږدي) فَإِنْ رَمٰى الْأُوْلٰى ثُمَّ الْبَاقِيَتَيْنِ فَحَسَنٌ نو که (د قضاء په وخت کې) اول د جمرهٔ اولیٰ رمي وکړي بيا د پاتې دوو جمرو رمي وکړي نو ښه يې وکړه لِأَنَّهُ رَاعَى التَّرْتِيْبَ الْمَسْنُوْنَ ځکه چې هغه د سنت ترتيب خيال وساتی وَلَوْ رَمَى الْأُوْلٰى وَحْدَهَا او که يوازې د جمرهٔ اولیٰ رمي وکړي أَجْزَأَهُ نو دا (هم) د هغه لپاره کافي دي لِأَنَّهُ تَدَارَكَ الْمَتْرُوْكَ فِيْ وَقْتِهِ ځکه چې هغه د پرېښوول سوي حصې تلافي په خپل وخت کې وکړه وَإِنَّمَا تَرَكَ التَّرْتِيْبَ او (فقط) ترتيب يې پرېښووی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله : لَا يُجْزِئُهُ مَا لَمْ يُعِدِ الْكُلَّ او امام شافعي فرمايي: چې دا د هغه لپاره کافي نه دي تر څو چې د ټولو جمرو رمی نه راوګرځوي لِأَنَّهُ شُرِعَ مُرَتَّبًا ځکه چې رمي په ترتيب سره مشروع سوي دي (يعني په شريعت کې رمي په ترتيب سره شروع سوي دي) فَصَارَ كَمَا إِذَا سَعٰى قَبْلَ الطَّوَافِ نو داسي سو لکه يو څوک چې تر طواف مخکې سعي وکړي أَوْ بَدَأَ بِالْمَرْوَةِ قَبْلَ الصَّفَا يا تر صفا مخکې په مروه شروع وکړي وَلَنَا أَنَّ كُلَّ جَمْرَةٍ قُرْبَةٌ مَقْصُوْدَةٌ بِنَفْسِهَا زموږ دليل دا دی چې هره جمره په خپله او (عليحده) مقصود عبادت دی فَلَا يَتَعَلَّقُ الْجَوَازُ بِتَقْدِيْمِ الْبَعْضِ عَلَى الْبَعْضِ نو جواز به پر بعضو د بعضي په مخکې کولو سره تعلق نه لري بِخِلَافِ السَّعْيِ لِأَنَّهُ تَابِعٌ لِلطَّوَافِ په خلاف د سعي ځکه چې هغه د طواف تابع ده (او مقصود عبادت نه ده) لِأَنَّهُ دُوْنَهُ ځکه چې سعي له طواف څخه (په درجه کې) کمه ده وَالْمَرْوَةُ عُرِفَتْ مُنْتَهَى السَّعْيِ بِالنَّصِّ او مروه د آيت په ذريعه د سعي مُنتها پېژندل سوي ده فَلَا تَتَعَلَّقُ بِهِ الْبِدَايَةُ نو د مروه سره به د سعي شروع کول (هيڅ) تعلق نه لري.

**اللغات:** ﴿تدارك﴾ تلافي، د نقصان پوره کول، جبران، ﴿منتهٰى﴾ د ختمېدلو ځای، مُنتها ﴿بداية﴾ شروع کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د ذی الحجې په يوولسمه ورځ درې سره جمرې (جمرات) ويشتل او د هغو رمي کول واجب دي، لېکن که يو حاجي په دې ورځ د جمرهٔ وسطیٰ او د جمرهٔ ثالثي رمي وکړي، او د جمرهٔ اولیٰ رمي نه وکړي، او بيا په دغه ورځ بېرته د جمرهٔ اولیٰ قضاء هم راوړي، نو د دې دوه صورتونه دي: (۱) يو دا که د جمرهٔ اولیٰ سره دويم ځل بيا د جمرهٔ وسطیٰ او جمرهٔ ثالثي رمي هم وکړي نو دا ډېر ښه دي، ځکه چې په دې کې د قضاء سره سره د ترتيب او سنت رعايت هم کيږي، (۲) او دويم دا چې صرف د جمرهٔ اولیٰ رمي وکړي، نو دا هم صحيح او جائز دي، ځکه ده چې کوم شی پرې اېښی وو (يعني د اولي جمرې رمي)، هغه يې په خپل وخت کې اداء کړی، خو فقط ترتيب يې پرېښووی، او ترتيب واجب يا ضروري نه دی، چې د هغه په پرېښوولو سره دې ضمان يا دم واجب سي، او دا حکم زموږ په نېز دی.

وقال الشافعي الخ د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د جمرهٔ اولیٰ سره د جمرهٔ وسطیٰ او د جمرهٔ ثالثي رمي راګرځول هم ضروري دي، ځکه چې د دريو سره جمرو رمي يو ځای او په ترتيب سره مشروع سوي دي، نو ترتيب

پرېښوول داسې دي لکه تر طواف مخکې چې سعی کول. یا په سعی کې د صفاء پر ځای له مروه څخه شروع کول. او دا له ترتیب څخه خلاف او بالاتفاق جائز نه دي، نو همدا ډول کله چې د جمرۀ اولیٰ رمي تر وسطیٰ او ثالثې وروسته سي، نو هغه به هم جائز نه وي، ځکه چې په دې کې هم ترتیب فوت سو.

ولنا الخ زموږ دلیل دا دی چې د هرې جمرې رمي بذاتِ خود عبادتِ مقصوده دی (یعني هره رمی جلا او مستقل عبادت دی، یوه رمی د بلې تابع نه ده)، لهذا د رمي جواز به د دې خبرې سره تعلق نه لري چې ولې بعضې پر بعضو مخکې سوې، بلکې کله چې هم د هرې جمرې رمي وسي، هغه به قربت او عبادت وي، هغه که په ترتیب وي او که نه وي، د دې په خلاف د سعی مسئله ده، نو سعی خو بذاتِ خود مقصود نه ده، بلکې د طواف تابع ده، ځکه چې سعی له طواف څخه کمه ده، نو ځکه به په سعی کې تقدّم او تأخر صحیح نه وي، همدارنګه د سعي ابتداء هم له صفاء څخه مشروع ده، ځکه چې له دې آیت إن الصفا والمروة الخ څخه همدغه معلومېږي چې صفاء د سعي مبداء ده او مروه د سعي منتها ده، نو که له مروه څخه د سعي ابتداء جائز کړی سي، نو دا به له دې آیت څخه خلاف سي، او دا صحیح نه ده، لنډه دا چې کله د سعي او د طواف ځای او مرتبه یو تر بله سره جلا دي، نو پر دوی به د رمي قیاسول صحیح نه وي.

## د پیاده حج د نذر منلو حکم

قَالَ: وَمَنْ جَعَلَ عَلَى نَفْسِهِ أَنْ يَحُجَّ مَاشِيًا امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: او څوک چې پر خپل ځان په پښو حج کول لازم کړي فَإِنَّهُ لَا يَرْكَبُ حَتَّى يَطُوفَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ نو هغه به (پر هیڅ سپرلي) نه سپرېږي تر دې چې طوافِ زیارت وکړي وَفِي الْأَصْلِ خَيَّرَهُ بَيْنَ الرُّكُوبِ وَالْمَشْيِ او په مبسوط کې امام محمد هغه ته د سپرېدلو او د پیاده تللو په مینځ کې اختیار ورکړی دی وَهَذَا إِشَارَةٌ إِلَى الْوُجُوبِ او د متن جمله اشاره کوي د وجوب و طرف ته وَهُوَ الْأَصْلُ او همدا اصل دي لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْقُرْبَةَ بِصِفَةِ الْكَمَالِ ځکه چې هغه په کامل (او بشپړ) صفت سره عبادت پر خپل ځان لازم کړی دی فَيَلْزَمُهُ بِتِلْكَ الصِّفَةِ نو په کامل صفت سره به عبادت پر هغه لازم وي كَمَا إِذَا نَذَرَ بِالصَّوْمِ مُتَتَابِعًا لکه یو څوک چې د پرلپسې روژو نذر ومني وَأَفْعَالُ الْحَجِّ تَنْتَهِي بِطَوَافِ الزِّيَارَةِ او د حج افعال پر طوافِ زیارت ختمېږي فَيَمْشِي إِلَى أَنْ يَطُوفَهُ نو (تر هغه وخته) به پیاده ځي تر څو چې طوافِ زیارت وکړي ثُمَّ قِيلَ: يَبْتَدِئُ الْمَشْيَ مِنْ حِينِ يُحْرِمُ بیا ویل سوي دي: چې پیاده تګ به هغه وخت شروع کوي چې احرام وتړي وَقِيلَ: مِنْ بَيْتِهِ او ویل سوي دي: چې له خپل کور څخه (به یې شروع کوي) لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ هُوَ الْمُرَادُ ځکه د الفاظو له ښکاره څخه همدغه مراد دي وَلَوْ رَكِبَ أَرَاقَ دَمًا خو که سپور سي نو قرباني دې وکړي لِأَنَّهُ أَدْخَلَ نَقْصًا فِيهِ ځکه چې هغه په خپل نذر کې نقصان داخل کړی قَالُوا إِنَّمَا يَرْكَبُ إِذَا بَعُدَتِ الْمَسَافَةُ وَشَقَّ الْمَشْيُ (د قدوري او د مبسوط په عبارت کې د تطبیق لپاره) فقهاؤ فرمایلي دي: چې کله فاصله (او واټن) لیري وي او پیاده تګ مشکل وي نو (پر سپرلي) به سپرېږي وَإِذَا قَرُبَتْ وَالرَّجُلُ مِمَّنْ يَعْتَادُ الْمَشْيَ او کله چې فاصله نژدې وي او سړی (هم) له هغو خلکو څخه وو چې د پیاده تګ عادت لري وَلَا يَشُقُّ عَلَيْهِ او پیاده تګ پر هغه سخت (هم) نه وي يَنْبَغِي أَنْ لَا يَرْكَبَ نو مناسب دا ده چې سپور نه سي.

**اللغات:** ﴿ماشي﴾ د ضرب اسم فاعل دی: په پښو تلونکی، پياده تلونکی. ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: خپل پر غاړه اخيستل، پر خپل ځان لازمول. ﴿أراق﴾ د افعال ماضي ده: وينه بيول (مطلب قرباني کول). ﴿نقص﴾ کمي، نقصان. ﴿شق﴾ د نصر ماضي ده: سختېدل، ستونزمن کېدل. ﴿يعتاد﴾ د افعال مضارع ده: عادت کېدل.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د پياده حج نذر ومني (يعني مثلاً داسي ووايي چي "زه به د الله لپاره يو حج په پښو کوم")، نو پر هغه واجب دي چي په پښو حج وکړي او پر سپرلي بالکل سپور نه سي، تر دې چي طواف زيارت وکړي، دا روايت د جامع صغير دی، او همدا صحيح دی، او په مبسوط کي د سپرېدلو او د پياده تګ په مينځ کي اختيار ورکول سوی دی، صاحب د هدايې فرمايي چي د جامع صغير له دې عبارت لا يركب حتى يطوف طواف الزيارة څخه د پياده تګ يعني د پياده حج کولو وجوب ثابتيږي، او همدا اصل دی، يعني د قاعدې موافق دي، ځکه څوک چي يو شی په پوره او کامله توګه پر ځان لازم کړي، هغه به په کمه او ناقصه توګه سره نه اداء کوي، او په حج کي پياده تلل کامل صفت دی، لکه څرنګه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: من حج ماشيا فله بكل خطوة حسنة من حسنات الحرم قيل: وما حسنات الحرم قال: كل حسنة بسبع مائة، (يعني چا چي پياده حج وکړی نو هغه ته به د هر قدم په بدله کي د حرم له نېکيو څخه يوه نېکي ورکول کيږي، له نبي ﷺ څخه پوښتنه وسوه: چي د حرم نېکۍ څه دي، وېې فرمايل: د حرم يوه نېکي د اووسوو (٧٠٠) عامو نېکيو سره برابره ده)، حاصل دا چي پياده حج کول کامل صفت دی، او نذر چي څرنګه پر ځان لازم کړی سي، هغه رنګه به لازم وي، نو پر هغه به حج په کامل صفت سره لازم وي، چي هغه پياده حج دی، لکه يو څوک چي د پرلپسې روژو نيولو نذر وکړي، نو پر هغه پرلپسې روژې نيول واجب دي، همداسي به دلته هم پياده تګ واجب وي، او څرنګه چي د حج افعال پر طواف زيارت پوره کيږي، نو ځکه به تر طواف زيارته پوري پياده تګ واجب وي.

ثم قيل الخ پاته سوه دا خبره چي دا نذر منونکی سړی به له کومه ځايه پياده روانيږي؟ له خپل کور څخه يا د احرام د تړلو له ځای څخه؟، نو په دې لړ کي دوه قولونه دي: (١) اول قول دا دی چي د احرام د تړلو له ځای څخه به پياده روانيږي، (٢) دويم قول دا دی چي له خپل کور څخه به پياده سفر شروع کوي، ځکه چي د جملې له ظاهر څخه همدغه مراد دي، لېکن دا قول صحيح نه دی، بلکي اول قول صحيح دی، او پر اول قول د علامه فخر الاسلام فتویٰ هم ده لکه څرنګه چي صاحب د بنايې ليکلي دي: وعليه فتوى فخر الإسلام والعتابي وغيرهما وهو الصحيح (بنايه ج:٤، ص: ٢٦٧)، خو که دا سړی د احرام تر تړلو وروسته د پياده تګ پر ځای پر سپرلي سپور سو، نو پر هغه به قرباني واجب وي، ځکه چي په نذر کي يې نقصان پيدا کړی، او دا نقصان به په قرباني سره ليري کيږي.

قالوا الخ د دې حاصل دا دی چي د جامع صغير او د مبسوط په روايتونو کي فرق دی، نو فقهاؤ د دواړو په مينځ کي دا تطبيق او ربط ورکړی دي چي که د نذر منونکي حاجي او د مکې تر مينځ مسافه ډېره اوږده وه او پياده تګ ستونزمن وو، نو په دې صورت کي به د سپرېدلو اجازه وي لکه څرنګه چي په مبسوط کي دي، لېکن که مسافه نژدې وه او دا سړی د پياده تګ سره عادت هم وو، نو په دې صوورت کي به نه سپرېدل مناسب وي لکه څرنګه چي په جامع صغير کي دي.

## د محرمې مينځې سره د رانيونکي (مشتري) لپاره د جماع حکم

وَمَنْ بَاعَ جَارِيَةً مُحْرِمَةً او څوک چې داسې مينځه خرڅه کړي چې احرام يې تړلی وي قَدْ أَذِنَ لَهَا مَوْلَاهَا فِي ذٰلِكَ او هغې ته د احرام اجازه مالک (خرڅونکي) ورکړې وي فَلِلْمُشْتَرِيْ أَنْ يُّحَلِّلَهَا وَيُجَامِعَهَا نو رانيونکي ته جائز دي چې مينځه حلاله کړي او جماع ور سره وکړي وَقَالَ زُفَرُ: لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې مشتري (رانيونکي) ته د دې اختيار نشته لِأَنَّ هٰذَا عَقْدٌ سَبَقَ مِلْكَهُ ځکه چې احرام يو داسې عقد (تړون) دی چې د مشتري تر ملکيت مخکې (تړل) سوی دی فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنْ فَسْخِهِ نو مشتري ته به د دغه تړون د ماتولو حق نه وي كَمَا إِذَا اشْتَرٰى جَارِيَةً مَنْكُوْحَةً لکه يو څوک چې منکوحه مينځه رانيسي (نو هلته هم مشتري د نکاح فسخ کولو حق نه لري) وَلَنَا أَنَّ الْمُشْتَرِيَ قَائِمٌ مَقَامَ الْبَائِعِ زموږ دليل دا دی چې مشتري د خرڅونکي (بائع) پر ځای ولاړ دی وَقَدْ كَانَ لِلْبَائِعِ أَنْ يُّحَلِّلَهَا فَكَذَا لِلْمُشْتَرِيْ او بائع ته دا اختيار وو چې دا حلاله کړي نو دا اختيار به مشتري ته هم وي إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ ذٰلِكَ لِلْبَائِعِ خو د بائع لپاره داسې کول مکروه دي لِمَا فِيْهِ مِنْ خُلْفِ الْوَعْدِ ځکه په دې کې وعده خلافي ده (ځکه چې بائع هغې ته د احرام اجازه ورکړې وه، نو که بيرته له خپلې اجازې څخه رجوع وکړي نو دا د وعدې مخالفت سو) وَهٰذَا الْمَعْنٰى لَمْ يُوْجَدْ فِيْ حَقِّ الْمُشْتَرِيْ او دا معنیٰ (يعني د وعدې مخالفت) د رانيونکي په حق کې نشته بِخِلَافِ النِّكَاحِ په خلاف د نکاح لِأَنَّهُ مَا كَانَ لِلْبَائِعِ أَنْ يَّفْسَخَهُ ځکه چې (په خپله) بائع ته دا اختيار نه وو چې نکاح فسخ کړي إِذَا بَاشَرَ بِإِذْنِهِ په دې شرط چې د بائع په اجازه سره نکاح سوې وي فَكَذَا لَا يَكُوْنُ ذٰلِكَ لِلْمُشْتَرِيْ نو همداسې به مشتري ته (هم) د نکاح د فسخ کولو اختيار نه وي وَإِذَا كَانَ لَهُ أَنْ يُّحَلِّلَهَا او کله چې د رانيونکي لپاره د مينځې حلالول جائز دي لَا يَتَمَكَّنُ مِنْ رَدِّهَا بِالْعَيْبِ عِنْدَنَا نو د عيب په وجه به مشتري د مينځې د واپس کولو (د بيرته ورکولو) واکدار نه وي زموږ په نيز وَعِنْدَ زُفَرَ يَتَمَكَّنُ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز مشتري (د عيب په وجه د مينځې د بيرته ورکولو) واک لري لِأَنَّهُ مَمْنُوْعٌ عَنْ غِشْيَانِهَا ځکه چې (د امام زفر په نيز) هغه د مينځې له جماع څخه منع سوی دی وَذُكِرَ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ: أَوْ يُجَامِعُهَا او (د جامع صغير) په ځينې نسخو کې (د و يجامعها پر ځای) ذکر سوي دي: أو يجامعها وَالْأَوَّلُ يَدُلُّ عَلٰى أَنَّهُ يُحَلِّلُهَا بِغَيْرِ الْجِمَاعِ بِقَصِّ شَعْرٍ أَوْ بِقَلْمِ ظُفْرٍ اول (يعني د متن عبارت) پر دې خبره دلالت کوي چې بنځه به له جماع څخه علاوه (په بل شي سره) حلاله کړي د ورېښته په غوڅي کولو سره يا د نوک په پرېکولو سره ثُمَّ يُجَامِعُ او بيا به جماع ور سره وکړي وَالثَّانِيْ يَدُلُّ عَلٰى أَنَّهُ يُحَلِّلُهَا بِالْمُجَامَعَةِ او دويم عبارت پر دې خبره دلالت کوي چې بنځه به په جماع سره حلاله کړي لِأَنَّهُ لَا يَخْلُوْ عَنْ تَقْدِيْمِ مَسٍّ يَقَعُ بِهِ التَّحْلِيْلُ ځکه چې جماع له مخکې داسې مسه کولو څخه خالي نه وي چې په هغه سره تحليل واقع سي (يعني د مينځې مسه کول او د هغې سره خپل بدن لګول خامخا له جماع څخه مخکې راځي او

په هغه سره مينځه حلاليږي) وَالْأَوْلَى أَنْ يُحَلِّلَهَا بِغَيْرِ الْمُجَامَعَةِ او غوره دا ده چي بغير له جماع څخه مينځه حلاله کړي تَعْظِيْمًا لِأَمْرِ الْحَجِّ د حج د مسئلې د درناوي لپاره. والله أعلم بالصواب.

**اللغات:** ﴿جارية﴾ مينځه، (خدمتګاره). ﴿خلف الوعد﴾ وعده خلافي، وعده نه پوره کول. ﴿غشيان﴾ غوړېدل، راتلل (مراد ځني جماع ده). ﴿يفسخه﴾ دفتح د باب مضارع ده: ماتول، باطلول، (فسخ کول). ﴿قص﴾ پرېکول، څچي کول، کوچني کول. ﴿ظفر﴾ نوک

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مالک خپلي مينځي ته د احرام د تړلو اجازه ورکړي، او مينځي يې احرام وتړي، بيا مالک دا مينځه خرڅه کړي، نو که رانيونکی (مشتري) محرم نه وو بلکي حلال وو، نو زموږ په نېز هغه ته دا اختيار سته چي مينځه له احرام څخه حلاله کړي، او د هغې سره جماع (وطي) وکړي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز مشتري ته دا اختيار نسته.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي احرام يو داسي عقد او تړون دی چي (هغه دلته) د مشتري له مالک کېدلو څخه مخکي ثابت سوی او منعقد سوی دی، نو ځکه به اوس مشتري ته د هغه د ماتولو او د فسخ کولو حق نه وي، لکه څرنګه چي يو څوک مثلاً د زيد منکوحه مينځه رانيسي، نو هغه ته دا اختيار نسته چي د زيد سره د هغې نکاح فسخ کړي او جماع ور سره وکړي، ځکه چي نکاح هم داسي عقد دی چي د مشتري تر ملکيت مخکي تړل سوی دی، همداسي په دې مسئله کي هم د مينځي احرام د مشتري تر ملکيت مخکي تړل سوی دی، نو ځکه به مشتري ته د هغې د حلالولو او د احرام د فسخ کولو اجازه نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي کله د خرڅلاو په وجه دا مينځه د بائع (خرڅونکي) له ملکيت څخه ووتله او د مشتري په ملکيت کي داخله سوه، نو مشتري د بائع قائم مقام سو، او بائع ته دا اختيار وو چي د مينځي احرام خلاص کړي، حلاله يې کړي او جماع ور سره وکړي، نو کوم څوک چي د بائع قائم مقام وي يعني مشتري، هغه ته به هم دا اختيار وي، لېکن د بائع لپاره دا کار مکروه وو چي مينځه حلاله کړي، جماع ور سره وکړي، او د مشتري لپاره دا کار مکروه هم نه دی، د بائع لپاره ځکه مکروه وو چي هغه مينځي ته د احرام د تړلو اجازه ورکړې وه، لهذا که بيرته له خپلي اجازې څخه رجوع وکړي او د هغې سره جماع وکړي، نو دا وعده خلافي سوه، لېکن د مشتري په حق کي دا وعده خلافي هم نسته، ځکه چي مشتري مينځي ته اجازه نه ده ورکړې، بلکي بائع ورکړې ده، لهذا د مشتري په حق کي به جماع مکروه هم نه وي.

بخلاف النکاح الخ فرمايي چي د دې په خلاف د منکوحي مينځي مسئله ده، ځکه که د هغې نکاح د بائع په اجازه سوې وي، نو بائع ته به په خپله دا اختيار نه وي چي نکاح فسخ کړي، لهذا همدا ډول به مشتري ته هم د نکاح د فسخ کولو او جماع کولو اختيار نه وي، ځکه چي مشتري د بائع قائم مقام دی، او بائع ته دا اختيار نسته، نو مشتري ته به هم نه وي.

وإذا کان له الخ د دې حاصل دا دی چي کله زموږ په نېز مشتري ته دا اختيار سته چي مينځه حلاله کړي، او جماع ور سره وکړي، نو له دې څخه ښکاره سوه چي د مينځي محرم والی هيڅ عيب نه دی، لهذا کله چي احرام عيب نه دی، نو د احرام په وجه به مشتري دا مينځه بائع ته نه واپس کوي، او نه هغه ته دا اختيار سته، ځکه چي دا ګرد سره عيب نه دی، هو! خو څرنګه چي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د مشتري لپاره د مينځي سره جماع کول او مينځه حلالول جائز نه دي، لهذا د هغه په

نېز د مشتري په حق کي د مینځي احرام عیب دی، ځکه چي د احرام په وجه جماع نه سي ور سره کولای، نو د هغه په نېز په مشتري ته د مینځي د واپس کولو اختیار وي.

و ذکر الخ فرمايي چي د جامع صغير په ځيني نسخو کي أو بجامعها ذکر سوي دي، مطلب دا چي په ځيني نسخو کي دا کلمه په واو سره يعني وبجامعها ذکر سوې ده، او په ځيني نسخو کي په أو سره يعني أو بجامعها ذکر سوې ده، د اولي نسخې عبارت کوم چي د هدايې متن دی او په واو سره دی، پر دې خبره دلالت کوي چي مشتري ته پکار ده چي محرمه مينځه په جماع سره حلاله نه کړي، بلکي مخکي دي د هغې نوکان يا ورېښتان ور پرېکړي، چي اول په هغه سره حلاله سي، بيا دي جماع ورسره وکړي، او د دوېمي نسخې عبارت کوم چي په أو سره دی، پر دې خبره دلالت کوي چي مشتري دي مينځه په جماع سره حلاله کړي، ځکه چي په دې صورت کي به هم تر جماع او کوروالي مخکي مچول او په شهوت سره مسه کول خامخا وي، او په مچولو او مسه کولو سره محرمه ښځه حلالیږي، نو په دې صورت کي به هم مینځه تر جماع مخکي حلاله سي؛ لهذا په دې صورت کي هم څه خبره نسته، خو څرنګه چي حج ډېر سپېڅلی او د احترام وړ عبادت دی، نو ځکه مشتري (رانيونکي) ته پکار ده چي د حج د تعظيم او درناوي په خاطر مخکي مينځه په يوه بله ذريعه سره حلاله کړي، او بيا دي په اطمينان کوروالی ور سره وکړي.

الحمد لله! نن د ۱۴۳۷ هجري کال د مياني [ذی القعدې] د مياشتي په لسمه نېټه چي د ۲۰۱٦ ميلادي کال د اګست د مياشتي له څورلسمي نېټې سره سمون لري د "فتح الهداية" دويم ټوک پای ته ورسېدی. لوی څښتن ﷻ دي په خپل سپېڅلي رحمت سره د پاته ټوکونو د تشريح او توضيح توفيق هم راکړي، وما ذٰلك على الله بعزيز.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ. وَصَلَّى اللهُ عَلَى سَيِّدِ الْمُرْسَلِينَ وَعَلَى آلِهِ وَصَحْبِهِ أَجْمَعِينَ، وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلَى يَوْمِ الدِّينِ.

احقر حبيب الرحمٰن مدني



